# تسهيل الهداية

## پښتو شرح د هدايه

مع

المرآة الصافيه لتخريج احاديث الهداية

الأقوال الراجحة في مسائل الهداية

حل لغات الهداية

تاليف


مولانا پروفیسر شاه فیصل

فاضل امداد العلوم



فیصل کتب خانه

محله جنگی پیښور


Scanned with CamScanner

نوی تصحیح شده او اضافه شده ایډیشن

# تسهیل الهدایه

## په قندهاریٔ او یوسفزیٔ پښتو کې شرح

# هدایه

تالیف :مولانا شا ه فیصل فاضل وفا ق المدارس وامداد العلوم

جلد: ۷

### خصوصیات او اضافات

① په هدایه کښې ذکرشوې حدیث باندې لاندې حاشیه کښې د هغې تخریج
② داحنافو په مینځ کښې په مختلف فیها مسئله کښې د راجح قول تعین
③ د قندهاریٔ او یوسفزیٔ پښتو ګډون او امتزاج
④ د هدایه د مشکلو لغاتو حل
⑤ دهدایه متن ته اعراب ورکول
⑥ د مضمون په لحاظ سره د هدایه متن تقسیمول
⑦ د هدایه د هرې جملې سره متصل دهغې ترجمه
⑧ د هدایه عبارتونو ته د موضوع په لحاظ سره عنوانات ورکول
⑨ شرحې ته په عربیٔ ژبه کښې مناسب عنوانات ورکول
⑩ د کتاب په اول کښې د فقه په ضروری مباحثو مشتمله جامع مقدمه

ناشر

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور موبائیل: ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

**دکتاب نوم** :تسهیل الهدایه شرح هدایه پښتو

**تالیف** :مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس وامدادالعلوم

**د ملاویدو پتې:**

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵
رشیدیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۳۳۳۹۱۵۸۴۷۷
علمیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴
مکتبه رحمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۶۰۴۹
مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰
مکتبه عرفان کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۲۱۳۱۶
مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰
مکتبه طیبه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۲۲۶۹۵
مکتبه حرمین کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۰۱۹۳۱
مکتبه علوم اسلامیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۹۱۹۵
راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳
مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹
صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۶۱
قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۶۱۹۶۰۳
عبدالمجید کتب خانه جلال اباد ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹
اسلامی کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷
مکتبه فاروقیه پیښور ۰۳۰۰۹۰۰۷۵۵۰
مکتبه رشیدیه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳
مکتبه معروفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۹۰۷۳۹۸

**د قندهارۍ او یوسفزۍ پښتو**

هغه ټکی کوم چه د یو بل څخه مختلف دی مونږ د قوسینو په مینځ کښې قندهاری ټکی ته یوسفزی ټکې لیکلې دي اودغه شان د دې پر عکس البته کوم ټکی چې کثیر الاستعمال دی نو په هغې کښې مو یا صرف په قندهارۍ پښتو بسوالې او اکتفاء کړې ده یا په یوسفزۍ پښتو مثلا مونږ او موږ، قسم او ډول وغیره دغه شان کوم ټکی چې مکرر راغلی دی نو په اول ځل مو په څو مقاماتو کښې د دواړو ژبو ټکی لیکلی دی او بیا مو صرف په یوه ژبه اکتفاء کړې ده په دې طریقه یو طالب علم په دې کتاب کښې د یوسفزۍ او قندهارۍ دواړو لغاتو پوهه حاصلولې شی کوم چې ده ته په نورو کتابونو کښې هم مدد ورکولې شی

**د مزید تفصیل دپاره په اول جلد کښې مقدمه ضرور اوګورۍ**



# کتاب الشفعة

ژباړه : دا کتاب د شفعة په بیان کې دې.

**تشریح:-** په کتاب الغصب او کتاب الشفعة کې مناسبت دا دې چې په دې دواړو کې د بل د مال د هغه د رضا نه بغیر مالك جوړیدل وی.خو چونکه شفعة مشروع او غصب امرغیر مشروع دې.نو د انصاف تقاضا دا وه.چه مشروع ئې په غیر مشروع باندې مقدم کړې وې.خو چونکه د غصب نه بچ کیدل ضرورری دی. اوپه شفعه کې د کور وغیره اخستل جائز دی.واجب او ضروری نه دی.ددې امله د کوم نه چې اجتناب ضروری وو.هغه ئې مقدم کړل.

### دشفعه لغوی او شرعی معنی او وجه تسمیه

الشُّفْعَةُ مُشْتَقَّةٌ مِنَ الشَّفْعِ شفعه د شفع نه مشتق ده. وَهُوَ الضَّمُّ او شفع ملاوولو ته وائی. سُمِّيَتْ بِهَا او شفعة ته شفعة نوم ددې امله کیخودې شو. لِمَا فِيهَا مِنْ ضَمِّ الْمُشْتَرَاةِ چې په شفع کې مشتراة ملاوول وی. إِلَى عَقَارِ الشَّفِيعِ د زمکې وغیره سره،

**حل اللغة:** ① الضم یوځائې کیدل ② المشتراة کوم شئ چې خرڅ شوې وی ③ عقار ،مځکه

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه شفعه د شفع نه مشتق ده.او ددې معنی ملاوول دی.اوس سوال دا پیدا کیږی.چه دلغوی او اصطلاحی معنی په مینځ کې څه مناسبت دې.نوددې ځواب دا دې.چه د ملاولو معنی دشفعة په اصطلاحی معنی کې هم موجود ده.ځکه چې په شفع کې شفیع مبیع د خپلې زمکې سره یوځائې کوی.د شفع اصل معنی ده. «ضم مثله إليه» یعنی یوڅیز دخپل مثل سره ملاوول،مرغینانی رحمه الله د اختصارد امله صرف په ملاوولو باندې اکتفاء اوکړله.د شفعة اصطلاحی تعریف دا دې. «هو تملك البقعة بما قام على المشتري بالشركة أو الجوار»

### په شفعه کښې ترتیب

قَالَ الشُّفْعَةُ وَاجِبَةٌ فرمائیلی دی.امام قدوری رحمه الله چې شفع ثابته ده لِلْخَلِيطِ فِي نَفْسِ الْمَبِيعِ دشریك فی المبیع دپاره، ثُمَّ لِلْخَلِيطِ فِي حَقِّ الْمَبِيعِ بیا په حق المبیع کې دشریك دپاره، كَالشِّرْبِ وَالطَّرِيقِ لکه شرب او لاره، ثُمَّ لِلْجَارِ او بیا د ګاونډی دپاره، أَفَادَ هَذَا اللَّفْظُ ثُبُوتَ حَقِّ الشُّفْعَةِ فائده کړلو دې لفظ ثبوت د حق شفعة لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْ هَؤُلَاءِ په دوی کښې دهریودپاره، وَأَفَادَ التَّرْتِيبَ او فائده ورکړې ده د ترتیب،

**حل اللغة:** ① الخليط: ،شریکوال ② الطريق: لاره، ③ الجار: ګاونډی ④ افاد ،فائده ئې اوکړه

**تشریح:-** شفعه چونکه داتصال په بنا (بنیاد) ملاویږی.اوپه اتصال کې درې فریق ګډ دی.① چې په عین مبیع کې شریك وی.② اول شرکت وو اواوس ویش شوې دې.البته په اوبواو لاره کې شرکت پاته دې.③چه یود بل ګاونډی وی دا درې واړه امام قدوری رحمه الله بیان کړی دی.

مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه دامام قدوری رحمه الله قول «للخليط إلخ» د دوو خبرو فائده ورکوی.یوه دا چې په درې واړو ته د شفعة حق ملاویږی.دا بیله خبره ده.چه اقوی موجود وی .نو ضعیف محروم وی.دویمه د دوی په مینځ کې د شفع د استحقاق ترتیب هم هغه دې.کوم چې ذکرکړې شوې دې.یعنی شریك فی نفس المبیع د ټولو نه مقدم دې.او وروستې شریك فی حق المبیع د اول نه کمزورې اود آخری نه قوی دې.اوګاونډې د ټولو نه ضعیف دې.بهرحال د قدوری رحمه الله دکلام نه نفس ثبوت او ترتیب ثابت شو.او اوس مرغینانی رحمه الله په دې دواړو خبرو باندې دلائل قائموی.

### دشفعه په ترتیب باندې دحدیث نه استدلال

أَمَّا الثُّبُوتُ فَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الشُّفْعَةُ لِشَرِيكٍ لَمْ يُقَاسِمْ(١) بهرحال ثبوت د نبی ﷺ د ارشاد نه چې «الشفعة..إلخ» نه دي. وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د امله د دې فرمان د نبی ﷺ نه {جَارُ الدَّارِ أَحَقُّ بِالدَّارِ} د کور ګاونډی زیات حقدار د کور دې وَالْأَرْضِ اود زمکې دې يَنْتَظِرُ لَهُ انتظار به کولای شی ده ته وَإِنْ كَانَ غَائِبًا اګرکه غائب وی إِذَا كَانَ طَرِيقُهُمَا وَاحِدًا(٢) خو په دې شرط چې د دواړو لاره یوه وی او د نبی ﷺ د فرمان نه چې «جار الدار إلخ» دوجې، وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ} اود نبی ﷺ د فرمان د امله چې «الجار أحق بسقبه» قِيلَ نو پوښتنه اوشو يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا سَقَبُهُ؟، یا رسول الله ﷺ «ماسقبه» څه شئ دې؟ قَالَ شُفْعَتُهُ} نو نبی ﷺ اوفرمائیل «شفعته» ،وَيُرْوَى {الْجَارُ أَحَقُّ بِشُفْعَتِهِ(٣) او روایت شوې دې.چه «الجار أحق بشفعته».

**تشریح:-** وړاندې تیر شو چې شفیع په درې قسمه دې.نوځکه به د شفعهٔ د ثبوت لپاره درې احادیث بیانوی. ① دهغه شریك لپاره دشفعهٔ ثبوت.چه هغه لا ویش نه وی کړې. ② د کور ګاونډی د زمکې زیات حقدار دې.دده به انتظارکولې شی.اګرچه غائب وی.خوپه دې شرط چې د دواړو لاره یوه وی.ددې حدیث نه د شریك فی حق المبیع لپاره شفع ثابته شوه. ③ ګاونډی دخپل سقب زیات حقداردې.اوپه یو روایت کې دی.چه «الجار أحق بشفعته» صاحب دهدایه رحمه الله درې واړه احادیث ذکرکړل

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی لَا شُفْعَةَ بِالْجِوَارِ.چه د ګاونډ د امله شفعه نشته، لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الشُّفْعَةُ فِيمَا لَمْ يُقْسَمْ، فَإِذَا وَقَعَتِ الْحُدُودُ وَصُرِفَتِ الطَّرِيقُ فَلَا شُفْعَةَ(٤) د نبی ﷺ د فرمان دوجې،چه «الشفعة إلخ» وَلِأَنَّ حَقَّ الشُّفْعَةِ مَعْدُولٌ بِهِ عَنْ سُنَنِ الْقِيَاسِ اوددې امله چې حق د شفعه اوړیدلې دې د قیاس نه، لِمَا فِيهِ مِنْ تَمَلُّكِ الْمَالِ عَلَى الْغَيْرِ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ ځکه چې په دې کې د بل دمال مالك کیدل دی بغیردهغه د رضا نه، وَقَدْ وَرَدَ الشَّرْعُ بِهِ (حق شفعه) حالانکه شریعت وارد شوې دې ددې سره (حق شفعه) فِيمَا لَمْ يُقْسَمْ په داسې مځکه کې ،چه هغه ویش شوې نه وی. وَهَذَا لَيْسَ فِي مَعْنَاهُ اودا (جار) نه دې ددې په معنی کې ، (دمور شرع په معنی کې) لِأَنَّ مُؤْنَةَ الْقِسْمَةِ تَلْزَمُهُ ځکه د ویش مشقت لازمیږی.شفیع ته «فِي الْأَصْلِ دُونَ الْفَرْعِ په اصل کې نه چې په فرع کې ،

**حل اللغة:** ① صرفت،جدا شی ② معدول ،اړولې شوې ③ سنن ،طریقه،

**تشریح:-** امام شافعی د جوار د امله د شفعهٔ د حق نه انکار کړې دې.ځکه چې هغوی صرف د شریك فی

١) قال الزيلعي رحمه الله غريب وأخرجه مسلم (أى فى المساقاة رقم ١٣٤) عن عبدالله بن إدريس ... عن جابر رضي الله عنه قال قضى رسول الله ﷺ بالشفعة فى كل شركة لم تقسم ربعة أو حائط لا يحل له أن يبيع حتى يؤذن شريكه فإن شاء أخذ وإن شاء ترك فإذا باع ولم يؤذنه فهو أحق به (نصب: ٤٢٢\٤)_

٢) قال الزيلعي رحمه الله هو مركب من حديثين فصدره من حديث قتادة رضي الله عنه أخرجه مسلم فى المساقاة رقم ١٣٥ وأبوداود فى البيوع باب ٧٣ رقم ٣٥١٣ والنسائى فى البيوع باب ٨٠ ) واخره من حديث جابربن عبدالله رضي الله عنه قا قال رسول الله ﷺ الجار أحق بشفعة جاره ينتظربها وإن كان غائباً إذا كان طريقهما واحد أخرجه أحمد فى مسنده (٣٨٨\٤) نصب: ٤٢٢\٤ - ٤٢٣)_

٣) من حديث أبى رافع مولى النبى ﷺ أخرجه البخارى فى الشفعة باب ٢ وأبوداود فى البيوع باب ٧٣ رقم ٣٥١٦ والنسائى فى البيوع باب ١٠٩ من المجتبى وفى السنن الكبرى (١٦\٤) رقم ٦٣٠٠)_

٤) من حديث جابربن عبدالله رضي الله عنه أخرجه البخارى فى البيوع باب ٩٦ وأبوداود فى البيوع باب ٦٧٣ رقم ٣٥١٤ والترمذى فى الأحكام باب ٣٣ رقم ١٣٧٠ وابن ماجه فى الشفعة باب ٣ )_



المبیع لپاره د شفعهٔ قائل دې.بیا ئې یوحدیث پیش کړې دې.چه شفعه په داسې مځکه کې ده.چه په هغې کې ویش نه وی شوې.اوکله چې حدود واقع شی.اولارې جلا شی.نوبیا شفعه نشته،بهرحال ددې حدیث نه په ظاهره هم دا صفا معلومیږی.چه چې د نفس جوار د امله بغیر شرکته شفعه نشته،دا دامام شافعی رحمه الله نقلی دلیل دی.اوعقلی دلیل ئې دا دې.چه شفع خلاف القیاس ثابته ده.ځکه چې په دې کې دمالك د رضا نه بغیردهغه د مال مالك جوړیږی.او مقرراصول دا دی.چه کوم څیزخلاف القیاس ثابت شی.نوهغه په دخپل مورد پورې خاص وی.اودامام شافعی رحمه الله په نیزمورد د شرع صرف غیرمقسوم جانداد دې.نوددې اصولو په وجه د پاته څیزونوپه دې باندې قیاس کول صحیح نه دی.نومعلومه شوه.چه د بل چا لپاره د ثبوت شفعهٔ هیڅ صورت نشته،او «هذا ليس في معناه» یعنی ګاونډی مورد شرع نه دې.یعنی امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په شفعه کې اصلی راز دا دې.چه مالك ته دویش ضرر اونه رسی.یعنی دوې (دوه) شریکان دی.یوخپله برخه خرڅه کړه.نواوس به بل اندیوال مجبوراً د مشتری سره ویش کوی.نوچه دا شریك د ویش د مشقت نه بچ شی.ددې لپاره ده ته حق شفعه ورکړې شو.خوپه ګاونډی کې دا خبره نشته.ځکه چې هلته اشتراك نشته.اوګاونډی د شرع د مورد په درجه کې نه دې.اوس ددې وجه بیانی.ځکه چې د ویش مشقت لازمیږی.په اصل کښې نه چې په فرع کې ،د اصل نه مراد مورد د شرع دې.اود فرع نه مراد غیرمورد شرع یعنی ګاونډی دې.دامام شافعی رحمه الله دلائل پوره شول.وړاندې زمونږ دلائل دی.

## په شفعه کښې داحنافو(رح) نقطه نظر

وَلَنَا مَا رَوَيْنَا اوزمونږ لپاره دلائل هغه روایات دی.کوم چې مونږ نقل کړی دی. وَلِأَنَّ مِلْكَهُ مُتَّصِلٌ بِمِلْكِ الدَّخِيلِ اوددې امله چې د شفیع ملکیت د مشتری د ملکیت سره متصل دې. اِتِّصَالَ تَأْبِيدٍ وَقَرَارٍ په اتصال د تابیداو قرار سره، فَيَثْبُتُ لَهُ حَقُّ الشُّفْعَةِ نوثابتیږی به د شفیع لپاره حق د شفعهٔ عِنْدَ وُجُودِ الْمُعَاوَضَةِ بِالْمَالِ دمعاوضه بالمال موجودګئ په وخت کې ، اِعْتِبَارًا بِمَوْرِدِ الشَّرْعِ په مورد شرع باندې قیاس کولوسره، وَهَذَا اودا حکم ددې امله دې. لِأَنَّ الِاتِّصَالَ عَلَى هَذِهِ الصِّفَةِ إِنَّمَا انْتَصَبَ چې په دې صورت باندې اتصال قائم دې. سَبَبًا فِيهِ سبب جوړ شوې دې په مورد شرع کې لِدَفْعِ ضَرَرِ الْجِوَارِ ګاونډی د ضرر لرې کولوپاره، إِذْ هُوَ مَادَّةُ الْمَضَارِّ ددې امله چې هم دا ګاونډیتوب د ټولو ضررونو جرړه ده.،عَلَى مَا عُرِفَ لکه چې معلومه ده.

**حل اللغة:** ① الاتصال،جخت والې ② تابید،همیشوالې ③ انتصب،ودریدلو، ④ المضار،مصدر د ضرر ،نقصان،

**تشریح:-** فرمائی.چه مونږ د درې واړه قسمه شفیع د شفعهٔ لپاره درې احادیث پیش کړی دی.په کوم سره چې د امام شافعی رحمه الله تقریربې روحه ګرځی.چه مقیس علیه خلاف القیاس ده.دا تقریرخوپه هغه وخت کې صحیح وو.چه د پاته دوې (دوه) قسمه شفعهٔ د ثبوت لپاره احادیث نه وو.

بیا که ستا خبره بالفرض تسلیم کړې شی.نومونږ دا وایو.چه په مورد شرع کې شفعه مفته نه ده ملاؤ شوې.بلکه په معاوضهٔ سره ملاؤ شوې ده.یعنی شفیع مالی معاوضه ورکړې ده.اود مشتری نه ئې کور اخستې دې.نوپه مقیس علیه کې هم د شفعه ثبوت هم داسې پکاروو.چه یعنی د معاوضه مال سره،حالانکه په مقیس علیه کې د شفعهٔ ثبوت خلاف القیاس نه دې.ځکه چې شفیع ته په مقیس علیه شفعه د دې امله ملاؤ شوې ده.چه د شفیع ملکیت د مشتری د ملکیت سره متصل دې.اودا اتصال عارضی نه دې.بلکه دائمی دې.ځکه چې داسې نشی کیدې.چه دې خپله مځکه واخلی.اولاړ شی.ددې نه مرغینانی رحمه الله په اتصال تابید او قرار سره تعبیرکړې دې.اوعلت یعنی اتصال مذکور په ګاونډ کې هم موجود دې.نومعلومه شوه.چه په مقیس علیه او مقیس کې علت جامعه مشترك دې.بیا دې ته خلاف القیاس ونیل او پاته په مورد شرع باندې قیاس نه کول څنګه صحیح کیدای شی.ځکه چې په کوم ځائې کې داسې اتصال وی.هغه موجب د شفعهٔ جوړیږی.ددې لپاره د ګاونډ ضرر لرې کړې شی.ځکه چې هم دا جواز د ضررونو جرړه ده.لکه د خرابو ګاونډیانوپه مینځ کې چې روزانه ددې مشاهده کیږی.

وَقَطْعُ هٰذِهِ الْمَادَّةِ اود ضرر دا مادهٔ ختمول بِتَمَلُّكِ الْأَصْلِ أَوْلٰى ددې په ذريعه غوره ده چې شفيع مالك جوړ كړې شي. لِأَنَّ الضَّرَرَ فِي حَقِّهِ بِإِزْعَاجِهِ خكه چې ضرر د شفيع په حق كې زيات قوى دې. عَنْ خُطَّةِ آبَائِهِ أَقْوٰى دده د لرې كولود امله دخپلو پلرونود زمكې نه،

**حل اللغة:** ① ازعاج: لرې كول ② خطة: حصه، ③ اقوى: زيات قوى ④ تحقق: ثبوت، ⑤ القسمة: تقسيم،

**تشريح:-** دا عبارت د يو تقديرى سوال ځواب دې سوال دا دې چې هركله چې شفيع د ضررنه بچ كول مقصود دى. نودا په دې صورت كې هم كيداې شي. چه د شفيع كور هم مشترى ته وركړې شي. په ځائې ددې د مشترى كور شفيع ته وركړې شى. ځواب دا دې چې په دې صورت كې ډيرلوئې حرج دې. ځكه چې په دې كې شفيع دخپل پلارنيكه د كورنه ويستل دى. نوآسان صورت هم هغه دې. چه شفيع ته د مشترى كور وركړې شي.

وَضَرَرُ الْقِسْمَةِ مَشْرُوعٌ اود ويش ضرر جائز دې. لَا يَصْلُحُ عِلَّةً لِتَحْقِيقِ ضَرَرِ غَيْرِهِ كوم چې دغيرد ضرر ثابت كاوه لپاره دعلت جوړيدو صلاحيت نه لرى.

**تشريح:-** په دې عبارت سره امام شافعى رحمه الله ته ځواب وركوى چې تاسو علت دشفعهٔ ضرر دويش بيان كړې دې. نودا محل دسوچ دې. ځكه چې ضرر دويش خويوجائزكاردې. كه په دوو شريكانوكې يوشريك د ويش دعوه اوكړى. نوويش به اوكړې شى. نومعلومه شوه. چه مشروع كاربل ته د نقصان رسولوعلت نشى جوړيدې. بلكه علت اتصال تابيد دې. لكه ځنګه چې موږ ذكركړلو. تردې ځائې پورې مرغينانى رحمه الله په ثبوت باندې خبرې اوكړې. وړاندې به په ترتيب د شفعې باندې خبرې كوى.

### دشفعه په ترتيب باندې دحديث نه استدلال

وَأَمَّا التَّرْتِيبُ فَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ بهرحال ترتيب د نبى ﷺ د فرمان د امله دې. {الشَّرِيكُ أَحَقُّ مِنَ الْخَلِيطِ چې شريك د خليط نه زيات حقدار دې. وَالْخَلِيطُ أَحَقُّ مِنَ الشَّفِيعِ} (١) اوخليط د شفيع نه زيات حقدار دې. فَالشَّرِيكُ فِي نَفْسِ الْمَبِيعِ نوشريك په نفس مبيع كې وى. وَالْخَلِيطُ فِي حُقُوقِ الْمَبِيعِ اوخليط د مبيع په حقوقو كې وى. وَالشَّفِيعُ هُوَ الْجَارُ اوشفيع هغه وى. ځوك چې ګاونډى وى.

**تشريح:-** وړاندې تيرشو. چه دا كلام د دوو خبرو لپاره مفيد دې. ثبوت او ترتيب، دا دوهم خيزدلته بيانوى. اوپه دې باندې استدلال په حديث باندې كوى. چه شريك د خليط نه زيات مستحق دې. اوخليط د شفيع نه زيات مستحق دى. اوس ددې وضاحت كوى. چه د شريك، خليط او شفيع نه ځوك مراد دى؟ نوفرمائى. ځوك چې په نفس مبيع كې شريك وى. دهغه نه ئې په شريك سره تعبيراوكړلو. اوځوك چې د مبيع په حقوقوكې برخه داروى. دهغه نه ئې په خليط سره اود ګاونډى نه ئې په شفيع سره تعبيراوكړلو.

وَلِأَنَّ الْإِتِّصَالَ بِالشَّرِكَةِ فِي الْمَبِيعِ أَقْوٰى اوددې امله چې په مبيع كې د شركت د امله اتصال زيات قوى وى وَأَنَّهُ فِي كُلِّ جُزْءٍ، ځكه چې دا اتصال په هرجزء كې وى. وَبَعْدَهُ الْإِتِّصَالُ فِي الْحُقُوقِ اوددې نه روسته په حقوقو كې اتصال دې. لِأَنَّهُ شَرِكَةٌ فِي مَرَافِقِ الْمِلْكِ، ځكه چې دملك په منافع كې اتصال دې. وَالتَّرْجِيحُ يَتَحَقَّقُ بِقُوَّةِ السَّبَبِ اوترجيح واقع شوې ده دسبب په قوت سره،

---

١) قال الزيلعى رحمه الله غريب وذكره ابن الجوزى فى التحقيق وقال إنه حديث لا يعرف وإنما المعروف ما رواه سعيد بن منصور .... قال الشعبى قال النبى ﷺ الشفيع أولى من الجار والجار أولى من الجنب ثم قال قال الزيلعى رحمه الله هذا الحديث رواه عبدالرزاق فى منصفه عن ابن المبارك ...عن شريح قال الخليط أحق من الشفيع والشفيع أحق من الجار والجار أحق ممن سواه (نصب: ٤٢٦\٤)_



**تشريح:-** بيا په دې باندې عقلى دليل دا دې چې په مبيع كې دچا شركت وى. دا اتصال د نورونه زيات قوى دى. ځكه چې دا اتصال دمبيعې په هريوجزء كې دې. اوددې نه روسته دحقوقو اتصال د جارداتصال نه قوى دې. ځكه چې دا اتصال دملك په منافعو كې اتصال دې. ودا يومسلم اصول دې. چه د سبب د قوت په وجه باندې ترجيح حاصليږى. اود سبب قوت په اول كې زيات دې. بيا په دوهم كې نود شفعهٔ په ملاويدوكې به هم دا ترتيب جارى كيږى.

وَلِأَنَّ ضَرَرَ الْقِسْمَةِ إِنْ لَمْ يَصْلُحْ عِلَّةً اوددې امله كه ضرر د ويش دعلت جوړيدو صلاحيت نه لرى صَلُحَ مُرَجِّحًا. نود مرجح كيدو صلاحيت خو به لرى.

**تشريح:-** په دې عبارت سره فرمائى. چه امام شافعى رحمه الله دويش ضرر دشفعهٔ علت خودلې دې. خو دا اګرچه علت نه دې. البته ضرردويش مرجح كيداى شى. يعنى په كوم صورت كې چې ضرر دويش لازميږى. هغه به په نورو باندې مقدم كولې شى. اوهغه شريك فى عين المبيع دې.

### شريك فى المبيع به په جار مقدم وى

قَالَ وَلَيْسَ لِلشَّرِيكِ فِي الطَّرِيقِ وَالشِّرْبِ وَالْجَارِ شُفْعَةٌ اونشته په لاره او په شرب كې د شريك لپاره اودجار لپاره شفعه، مَعَ الْخَلِيطِ فِي الرَّقَبَةِ دخليط فى الرقبه سره، لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّهُ مُقَدَّمٌ دهغه دليل د امله كوم چې موږ بيان كړلو.

**حل اللغة:** ① الرقبه: سټ، غلام، ② خليط: شريك،

**تشريح:-** كومه خبره چې صاحب دهدايه رحمه الله بيان كړه. هغه امام قدورى په دې طرزبيانوى. چه شريك فى المبيع موجود وى. نوشريك فى الحقوق اوجارته به شفعه نه ملاويږى. ددې دلائل وړاندې تيرشوى دى.

### داولنى مستحق خپل حق پريښولو صورت

قَالَ (فَإِنْ سَلَّمَ كه پريږدى هغه (شريك فى الرقبه) فَالشُّفْعَةُ لِلشَّرِيكِ فِي الطَّرِيقِ نوشفعه د لارې د شريك لپاره ده. فَإِنْ سَلَّمَ وكه هغه هم دستبرداره ى. أَخَذَهَا الْجَارُ) نواخلى به دا ګاونډى لِمَا بَيَّنَّا مِنَ التَّرْتِيبِ د هغه ترتيب د امله كوم چې موږ بيان كړلو وَالْمُرَادُ بِهٰذَا الْجَارُ الْمُلَاصِقُ. اوددې جارنه مراد جارملاصق دې. وَهُوَ الَّذِي عَلٰى ظَهْرِ الدَّارِ الْمَشْفُوعَةِ اودا هغه دې. چه د دارمشفوعه شا ته وى. وَبَابُهُ فِي سِكَّةٍ أُخْرٰى اوددې دروازه په بله كوڅه كې وى. عَنْ أَبِي يُوسُفَ اود امام ابويوسف رحمه الله نه منقول دى. أَنَّ مَعَ وُجُودِ الشَّرِيكِ فِي الرَّقَبَةِ چې شريك فى الرقبه موجود وى،. لَا شُفْعَةَ لِغَيْرِهِ نود نورو لپاره شفعه نشته، سَلَّمَ أَوِ اسْتَوْفٰى كه هغه دستبرداره كيږى اوكه نه،. لِأَنَّهُمْ مَحْجُوبُونَ بِهِ ځكه چې هغوى د شريك د امله محجوب دې.

**حل اللغة:** ① الملاصق: دمشفوعه كور شاته كور ② سكة: كوڅه ③ ظهر: شاته ④ محجوبون: جمع د محجوب، پرده شوي.

**تشريح:-** يعنى د شفعاؤ په مينځ كې هم هغه ترتيب دې. كوم چې موږ بيان كړلو. خوكه شريك فى الرقبه نه وى. نوشريك فى الطريق دا اخستې شى. اوكه هغه نه وى. نوبيا ئې جاراخستې شى. بيا مرغينانى رحمه الله د جارتفسيركړې دې. چه دا هغه ځوك دې. چه دده كور د دارمشفوعه په شا باندې وى. اودهغې دروازه په بله كوڅه كې وى. امام ابويوسف رحمه الله فرمائى. چه دپلارد اړخه انا چې موجود وى. نود مورد اړخه انا محرومه وى. ځكه چې دمورد اړخه دنيا مورمحبوبه ده د پلارد اړخه انا د وجې، برابره ده چې دپلارد اړخه انا په خپله ميراث اوړى اوكه نه اوړى. دغه ډول د شريك فى الرقبه دوجود په وخت كې به نور نفر محجوب وى. اوهغوى به په هرحال كې محبوب وى. برابره ده كه شريك فى الرقبه خپل حق اخلى اوكه نه اخلى.

### دظاهرروايت وجه

وَوَجْهُ الظَّاهِرِ اود ظاهر روايت وجه دا ده. أَنَّ السَّبَبَ تَقَرَّرَ فِي حَقِّ الْكُلِّ چې سبب (داتصال) ثابت شوي

دي.دهريوپه حق كي ،إِلَّا أَنَّ لِلشَّرِيكِ حَقَّ التَّقَدُّمِ خودشريك لپاره حق مقدم دي. فَإِذَا سَلَّمَ خوچه دي دستبردراه شو كَانَ لِمَنْ يَلِيهِ.نوشفعه به دهغه چا لپاره وي.چه ده ته نزدې وه ،بِمَنْزِلَةِ دَيْنِ الصِّحَّةِ.لكه څنګه چې پور د صحت مَعَ دَيْنِ الْمَرَضِ د مرض د پور سره وي.

**تشريح:-** كه د څه كسانوپه چا باندې دصحت دوخت پور وي.اودځه كسانو پرې د مرض الوفات د وخت پور وي.نوداولني پور خواه حق مقدم دې.يعنى دمړي د ميراث څخه به اول د اولنى پور ادا كولې شى.كه دهغه نه زياتى شى.نوبيا به د نورو پور خواهانو پور ادا كولې شى.خوكه اولنى كس خپل حق معاف كړى.نوبيابه دټولونه وړاندې دبل فريق حق ادا كولې شى.بعينه هم دغه ډول د شفعة په مسئله كي هم،څكه چې سبب د شفعه دهر يو لپاره ثابت دې.خود شريك فى الرقبه حق مقدم دې.نوچه هغه خپل حق نه اخلى.نونورو ته به شفعه ملاويږى.دا د ظاهر روايت دليل دې.

## شريك فى المبيع به په جار مقدم وي

وَالشَّرِيكُ فِي الْمَبِيعِ قَدْ يَكُونُ فِي بَعْضٍ مِنْهَا اوشريك فى المبيع كله شريك وى دكورپه څه برخه كي ،وَكَمَا فِي مَنْزِلٍ مُعَيَّنٍ مِنَ الدَّارِ لكه د كورپه معين منزل كي أَوْجِدَارٍ مُعَيَّنٍ مِنْهَا اود كور په معين ديوال كي ،. وَهُوَ مُقَدَّمٌ اوادا (شريك مذكور) مقدم دې عَلَى الْجَارِ فِي مَنْزِلٍ، دكور په ګاونډى باندې وَكَذَا عَلَى الْجَارِ فِي بَقِيَّةِ الدَّارِ اودغه ډول په هغه ګاونډى باندې چې په پاته كور كي شريك فِي أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله داامام ابويوسف رحمه الله نه په دوو رواياتوكي د زيات صحيح روايت په بناء باندې،

**حل اللغة:** ① المنزل: كور ② معين:معلوم ③ جدار:ديوال ④ بقية: پاته ⑤ الدار:كور

**تشريح:-** ،دار، كوم ته چې حويلى وائى.اود مظفرنګرپه كلوكي ورته بګړ وائى.په هغې كي دننه بيا د مختلفوكسانوكورونه وى.دې ته منزل وائى.(لكه كواټرې) اوس مسئله اوګورئ چې په يوه حويلۍ كي څو كورونه دى.اودټولو مالك يوكس وى.خوصرف په يوكوركي ور سره يوكس شريك دې.يا په كوركي ور سره هم شريك نه وى.البته صرف په ديوال كي ور سره شريك وى.اويوبل كس وى.چه هغه ددغه كور ګاونډى وى.نواول اګرچه په يوه برخه كي شريك وى.خوبيا هم شريك دې.نود شركت په جارباندې مقدم كولې شي.برابره ده كه شركت په هغه كوركښې وى.كوم چې خرڅ شوى اوى اوكه هغه وى چې په هغې كښې دده شركت نه وى.په دواړو صورتونوكي به دې په جارباندې مقدم وى.څكه چې اګرچه په دغه كوركي ده شركت نشته،خوددې حويلۍ په بل كور يا ديوال كي خوشركت شته،اود ګاونډى په څه كي هم اشتراك نشته،اوشريك په جارباندې مقدم وى.لكه څنګه چې وړاندې معلومه شوې ده.

لِأَنَّ اتِّصَالَهُ أَقْوَى څكه چې دده اتصال زيات قوى دې. وَالْبُقْعَةَ وَاحِدَةٌ اومځكه يوه ده

**تشريح:-** دا دليل بيانوى اوفرمائى چې دشريك اتصال د جارد اتصال نه قوى دې.اود سبب د قوت په وجه ترجيح حاصليږى.لكه څنګه چې وړاندې تيرشو.اومځكه يوه ده.اوټوله حويلى يوه ده.نوكه د حويلۍ په يوكور كي د غولې (صحن) اشتراك وى.نوپه حويلۍ كي اشتراك راغلو.اوشريك په جارباندې مقدم وى.

## دطريق خاص او شرب خاص مصداق

ثُمَّ لَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الطَّرِيقُ أَوِ الشِّرْبُ خَاصًّا بيا ضرورى ده چې وى لاره يا شرب خاص حَتَّى تَسْتَحِقَّ الشُّفْعَةَ بِالشَّرِكَةِ فِيهِ ددې لپاره چې شى شفيع په هغې كي د شركت د امله د شفعة مستحق، فَالطَّرِيقُ الْخَاصُّ نوخاص لاره دا ده أَنْ لَا يَكُونَ نَافِذًا.چه هغه نافذه نه وى. وَالشِّرْبُ الْخَاصُّ اوشرب خاص دا دې.أَنْ يَكُونَ نَهْرًا لَا تَجْرِي فِيهِ السُّفُنُ چې داسې وياله وى.چه كښتۍ په هغې كي نه چليږى. وَمَا تَجْرِي فِيهِ فَهُوَ عَامٌّ اوچه په كوم كي چليدې شى.هغه عام دې. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله اودا دامام ابوحنيفه اوامام محمد رحمه الله په نيزدې وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ



اودامام ابويوسف رحمه الله نه منقول دى.، أَنَّ الْخَاصَّ أَنْ يَكُونَ نَهْرًا يُسْقَى مِنْهُ قَرَاحَانِ أَوْ ثَلَاثَةٌ چې خاص هغه دې.چه دهغې نه دوې (دوه) يا درې باغونوته اوبه وركولې شى. قَرَاحَانِ أَوْ ثَلَاثَةٌ، وَمَا زَادَ عَلَى ذَلِكَ اوكوم چې ددې نه زيات وى فَهُوَ عَامٌّ.[1] هغه عام دې.

**حل اللغة:** ① نافذ:روانه،جارى ② السفن،جمع د سفينة ، كښتۍ ③ قراحان،تثنيه د قرحة، باغ

**تشريح:** په كوم خانې كي چې نې د لارې او شرب اتحاد خودلې دې.نوپه هغې كي عموم نشته.بلكه خاص لاره او شرب مراد دې.ګنى په جى ټى روډ كي اشتراك اوپه دريا ګنګا كي د اشتراك په وجه طريق خاص او شرب خاص نشى راتلې.اوددې اتحاد په وجه شفعه نه ثابتيږى.

بيا مرغينانى رحمه الله د طريق خاص اوشرب خاص تعريف كوى.يعنى كله لاره نافذه وى.اولاره د دواړو طرفونونه كولاڅ نه وى.نوهغه لاره به خاص وى.ګنى عامه به وى.اوعامه لاره نه وى.مثلاً د دوو كسانو د پټى په اوبو كي اشتراك دې.نوددې دا مطلب نه دې.چه د كوم نهرنه دا هډوبه كوى.هغه هم مشترك دې.اګرچه دواړه (مورى) ( ورخ) جلا جلا وى.

نودشرب خاص تعريف طرفينو رحمهما الله دا كړې دې.چه داسې نه وى.چه په هغې كي كښتۍ چليږى.اوكه كښتۍ په كي چليږى.نودا به عام وى.اوامام ابويوسف رحمه الله د شرب خاص تعريف دا كړې دې.چه دهغې د اوبونه دوې (دوه) يا درې باغونه اوبه كيږى.اوكه ددې نه زيات باغونه پرې اوبه كيږى.نوهغه شرب عام دې.

فائده: په كوم نهركي چې خلګ خپل خپل وار مقرر كړى.هغه نهرصغيردې.ګنى نهركبير،اوبعضې خلګو دا مسئله د هرې زمانې د مجتهد د رائې پورې پرېښودې ده.اوعلامه عينى رحمه الله دا قول زيات اشبه ګرځولې دې.نو زموږ په علاقوكي به د اجبهايه نه وتلى نهرونه شرب خاص وى.اواجبهايه به شرب عام وى.اوطريق خاص هغې ته وائى.چه په هغې باندې بند نه وى.بلكه كولاڅ وى.

## ديوخاص صورت حكم

وَإِنْ كَانَتْ سِكَّةٌ غَيْرُ نَافِذَةٍ كه چيرته وى كوڅه غيرنافذه يَتَشَعَّبُ مِنْهَا سِكَّةٌ غَيْرُ نَافِذَةٍ چې دهغې نه بله غيرنافذه كوڅه وتلې وى. وَهِيَ مُسْتَطِيلَةٌ اودا وتلې شوې كوڅه اوږده وى. فَبِيعَتْ دَارٌ فِي السُّفْلَى نوخرڅ شوكورپه سفلى كي فَلِأَهْلِهَا الشُّفْعَةُ خَاصَّةً دُونَ أَهْلِ الْعُلْيَا نود اوسيدونكو ددې (كوڅې لپاره شفعه ده خاص كرنه د عليا (لويې كوڅې د خلګ و) دپاره، وَإِنْ بِيعَتْ لِلْعُلْيَا اوكه خرڅ شى په عليا كي ، فَلِأَهْلِ السِّكَّتَيْنِ نوشفعه د دواړو كوڅود اوسيدونكو لپاره ده. وَالْمَعْنَى مَا او وجه هم هغه ده، ذَكَرْنَا فِي كِتَابِ أَدَبِ الْقَاضِي كوم چې موږ په باب ادب القاضى كي بيان كړې ده.

**حل اللغة:** ① ينشعب: وځى،تيريږى ② العليا:پورته ③ المستطيلة: اوږده.

**تشريح:-** چې يوه وړه غيرنافذه (كولاڅ) كوڅه وى.اودهغې نه بل وړه غيرنافذه كوڅه وتلې وى.دهغې صورت دا دې.كوم چې ته وينې.دا يوه كوڅه ده.چه عامه نه ده.اوددې نه دا كښته كوڅه وتلې ده.دا هم عام نه ده.كومه چې كښته ده.كله چې ددې كوڅې اوسيدونكى بهرته ځى.د پورتنۍ كوڅې په خلګو تيريږى.اود پورتنۍ كوڅې خلګو لپاره چې كله دوى بهرته اوځى د ښكتنۍ كوڅې په خلګو باندې د تيريدو اړتيا نه وى.نومعلومه شوه.چه د پورتنۍ كوڅې د خلګو سره د ښكتنۍ كوڅې د خلګو اشتراك نشته،اود ښكتنۍ كوڅې د خلګو په دواړو لاروكي اشتراك شته،نوكه په ښكتنۍ كوڅه كي يوكورخرڅ شو.نود پورتني كوڅې د

---

[1] القول الراجح هو قول بعض المشائخ من انه مفوض الى رائ كل مجتهد فى زمانه ان راهم كثيرا كانوا كثيرا وان رآهم قليلا كانوا قليلا (يعنى ما رآه طريقا عاما فهو عام وما رآه خاصا فهو خاص از فيصل) كذا فى الكفاية (٣٩٣/٨) ومجمع الأنهر (١٠٣/٤) والدرالمختار (١٠٣/٤) نقلاًعن القول الراجح ٢٦٧/٢)

خلګو لپاره د شفعه حق نشته، او د ښکتني کوڅې د خلګو اشتراك په دواړو کوڅو کي دی. نو که په ښکتنی کوڅه یو کور خرڅیږي نو د پورتنۍ کوڅې د خلګو لپاره د شفعه حق نشته، ځکه چې په هغې کي خو صرف د ښکتنۍ کوڅې د خلګو اشتراك دی. نو د دي اصله به دوی ته په دواړو کوڅو کي حق د شفعه ملاویږي.

وَلَوْ كَانَ نَهْرًا صَغِيرًا او که ورکوټی ویاله وي. يَأْخُذُ مِنْهُ نَهْرٌ أَصْغَرُ مِنْهُ چي دهغې نه نور دهغې نه واړه نهرونه وتلی وي. فَهُوَ عَلَى قِيَاسِ الطَّرِيقِ نو هغه هم د لارې په قیاس باندی دی. فِيمَا بَيَّنَّاهُ په هغه شفعه کي کومه چي موږ بیان کړه.

تشریح:- او دغه ډول که دوی (دوه) نهرونه وي. نو دهغې هم دا حکم دی. یعنی چي یوه نالی وي او دهغې نه بله وړه نالی وتلی وي. نو په پورتنۍ کي د ټولو اشتراك دی. او په ښکتني کي صرف د دغه کښته نهر اشتراك دی. نو که پورتني مځکه خرڅیږي. نو دواړو فریقو ته د شفعه حق حاصل دی. او که په ښکتنۍ برخه کي مځکه خرڅیږي. نو صرف هغه خلګ وته به دشفعه حق ملاویږي. دا چي دلته مځکه وي. د پورتني نهر خلګ نشي راتلی. چه د ښکتني ویاله په حدودو کي دخپلو کورونو دروازه کولاؤ کړي. او د ښکتنی ویاله خلګ د پورتنی ویاله په حدودو کي دخپلو کورونو دروازه ویستي شي. نو دغه شا د شفعه مسئله ده. دا مسئله مرغیناني رحمه الله بیان کړي ده. **قوله** والمعنی ما ذکر فی کتاب أدب القاضی **الخ** هغه وجه هم دا ده.

**قوله** فإن كانت سكة غير... **إلخ** په دي عبارت کي ،،کان،، تامه ده. ځکه غیرمرفوع دي.

## په دیوال باندي دتیرپه کیخودوباندي شفیع جوار کرځیدل

قَالَ وَلَا يَكُونُ الرَّجُلُ بِالْجُذُوعِ عَلَى الْحَائِطِ شَفِيعَ شَرِكَةٍ فرمائیلی دی امام رحمه الله چي نه ګرځي سړی په کیخودلو دتیرپه دیوال باندي شفیع د شرکت، وَلَكِنَّهُ شَفِيعُ جِوَارٍ) بلکه دی شفیع د جوار دی. لِأَنَّ الْعِلَّةَ هِيَ الشَّرِكَةُ فِي الْعَقَارِ ځکه چي علت هغه شرکت په مځکه کي دی وَبِوَضْعِ الْجُذُوعِ لَا يَصِيرُ شَرِيكًا فِي الدَّارِ او د تیرد کیخودو په وجه دی په کورکي شریک نه دی إِلَّا أَنَّهُ جَارٌ مُلَازِقٌ. البته دی جارملاصق دی.

حل اللغة: ① الجذوع: تیر ② الحائط: دیوال ③ العقار: مځکه ④ الوضع: کیخودل ⑤ ملازق: مولښتی (پیوست)

تشریح:- وړاندي چي په دیوال کي د شرکت کوم بحث راغلی وو. دهغې نه مراد دا دی. چه په کومه مځکه کي دیوال وي. په هغې کي دواړه شریك وي. او که خاني دیوکس وي. او دوی (دوه) نفر ملاؤ شوی وي. او په هغې ئې آبادي کړي وي. نو دي ته په دیوال کي شریك نه وائي.

**ف** هم دا مسئله مرغیناني رحمه الله بیان کړې ده. چه که په دیوال باندي د دواړو تیرونه پراته دي. خو هغه دیوال د یوملکیت دی. نو ددی په وجه هغه شریك فی الدارنه دی. نو ده ته شریك شرکت نشی ونیلی. ځکه چي د شفیع شرکت علت په مځکه کي شرکت دی. او هغه دلته نشته، او صرف د تیرپه کیخودو باندي دی د کورشریك نه دی. البته جارملاصق دی. دکوم تفسیرچه وړاندي تیرشوي دی.

قَالَ (وَالشَّرِيكُ فِي الْخَشَبَةِ فرمایيلی دی امام محمد رحمه الله او شریك په تیرکي تَكُونُ عَلَى حَائِطِ الدَّارِ جَارٌ چي وي په دیوال د کور باندي ګاونډی لِمَا بَيَّنَّا دهغه اصله چي موږ بیان کړه.

حل اللغة: ① الخشبة: تیر ② عدد: شمار ③ الاملاك: جمع د ملك، ملکیت ④ الانصباء: جمع د نصيبة، حصه ⑤ الربح: ګټه ⑥ الثمرة: میوه.

تشریح:- د اولنی ،،قال،، قائل صاحب دهدایه رحمه الله دی. او د دوهم ،،قال،، قائل امام محمد رحمه الله دی. هم ددوی قول د جامع صغیرپه کتاب البیوع کي ذکردی. کومه خبره چي امام محمد رحمه الله په جامع صغیرکي فرمائیلي ده. هغه خبره مرغیناني رحمه الله د اولنی ،،قال،، لاندي ذکرکړه. د دوهم قال لاندي **قوله** الشريك... **إلخ** مبتداء ده. او **قوله** جار **قوله** دهغې خبر دی. او **قوله** تكون على حائط الدار خشبة **قوله** صفت دی.



## دیوکور مختلف شفعاء او په مختلف ملکیتونه

(وَإِذَا اجْتَمَعَ الشُّفَعَاءُ امام قدوري رحمه الله فرمائیلی دی. کله چي څوشفیعان جمع شي. فَالشُّفْعَةُ بَيْنَهُمْ عَلَى عَدَدِ رُءُوسِهِمْ نو شفعه به دهغوی په مینځ کي د سرونو د شمارپه اعتبار سره وي. وَلَا يُعْتَبَرُ اخْتِلَافُ الْأَمْلَاكِ) او د ملکیتونو داختلاف به څه اعتبار نه وي.

تشریح:- یوکورڅلورکسانوپه شریکه واخستلو. مثلا دیوکس په کي سل او دبل پنځوس وي. دیو دیرش او دبل پنځلس، او دبل پنځه، اوس چي دپنځو روپووالا خپله برخه خرڅوي. نو ددې درې شفعاء دی. نو اوس سوال دا دی. چه شفعه خودې درې واړو ته ملاویږي. خوبرابربه ورته ملاویږي که د ملکیت په تناسب سره، احناف رحمهم الله فرمائي. چه ټولوته به برابرملاویږي. یعني د سرونو اعتباربه وي. د برخو اعتباربه نه وي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: هِيَ عَلَى مَقَادِيرِ الْأَنْصِبَاءِ او امام شافعي رحمه الله فرمائیلی دی. چه شفعه به د حصوپه اندازه وي. لِأَنَّ الشُّفْعَةَ مِنْ مَرَافِقِ الْمِلْكِ ځکه چي شفعه د ملك د منافع څخنی ده. أَلَا يُرَى أَنَّهَا لِتَكْمِيلِ مَنْفَعَتِهِ ولې دي خبرې ته نشي کتلي. چه شفع د ملك د منفعت د تکمیل لپاره وي. فَأَشْبَهَ الرِّبْحَ وَالْغَلَّةَ وَالْوَلَدَ وَالثَّمَرَةَ نو دا (حق شفعه) د ګټې، غلۀ، اولاد او میوې، سره مشابه شو

تشریح:- امام شافعي رحمه الله فرمائیلی دی. چه د ملك منافع چي په کوم څاني کي هم حاصليږي. نو هغه به د ملك په تناسب سره تقسیمولي شي. او شفعه هم منفعت د ملك دی. ځکه چي هغه خو ددي لپاره ورکړي شوي ده. چه شفیع دخپل ملك نه فائده واخستي شي. لکه چي د شفعۀ مقصد د منفعت تکمیل دی. په کوم باندي چي هغه څه ګواهان پیش کړی دی.

**ف** دوو کسانوپه پنځلسو روپوپوڅیز دتجارت لپاره واخستل. دیوپه کي لس روپۍ وې. او دبل په کي پنځه او څه شرط ئې په کي نه وی لګولی. او په اتلس روپۍ ئې هغه څیزخرڅ کړلو. نو دوی (دوه) روپۍ به د لسو روپووالاته او یوه روپۍ به د پنځو روپو والا ته ملاویږي. ځکه چي د دوی ملکیت هم په دي تناسب سره دی.

**ف** دوو کسانو یوه مځکه واخستله. د یو په کي لس زره او د بل په کښي پنځه زره روپۍ وې بیا ئې په هغې کي کر اوکړلو. نو غله مثلاً دیرش وګی پیدا شول. نو په دي کي به اولنی ته شل ا دوهم ته لس وګی ملاوویږي. ځکه چي د دوی مکیت هم په دي تناسب سره دی.

**ف** دوو کسانو په پنځلس روپۍ یوه وینځه واخستله. د یو په کي لس او د بل په کي پنځه روپۍ وې. بیا هغوی د چاته په نکاح سره ورکړله. او پچې ئې پیدا شو. کوم چي ددې دواړو غلام دی. او هغه په دیرش روپۍ باندي خرڅ شو. نو اول ته به شل او دوهم ته به لس روپۍ ملاویږي. دملکیت په تناسب سره.

**ف** دوو کسانو په شریکه یو باغ واخستلو. او د وړاندي مطابق هغې میوه اوکړله. نو د هغې نفع به هم د ملکیت په تناسب سره ویش کولي شي. نو امام شافعي رحمه الله فرمائیلي دی. چه هم دا حال د شفعه هم دی. چه دا به هم د ملکیت په تناسب سره وي. او موږ وایو. چه عدد به په رووسو تقسیمولي شي.

## د احنافو (رح) دلیل

وَلَنَا أَنَّهُمُ اسْتَوَوْا فِي سَبَبِ الِاسْتِحْقَاقِ او زموږ دلیل دا دی، چه دا واړه د استحقاق په سبب کي برابر دی وَهُوَ الِاتِّصَالُ او هغه اتصال دی فَيَسْتَوُونَ فِي الِاسْتِحْقَاقِ. نو په استحقاق کي به هم برابر وي. الا یری ولې دا خبره نشی لیدلي. أَلَا يُرَى أَنَّهُ لَوِ انْفَرَدَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ که په دوی کي یو ځانله وي. اسْتَحَقَّ كُلَّ الشُّفْعَةِ نو د مکملۀ شفعۀ مستحق په وي.. وَهَذَا آيَةُ كَمَالِ السَّبَبِ او دا د کمال سبب نښانه ده.

حل اللغة: ① استووا: برابر دی ② انفرد، ځانله شو ③ کمال: پوره ④ آية: نښه،

تشریح:- زموږ په نزد به شفعه د شفعي د ټولو شفعاؤ په مینځ کي په شمار د سرونو سره وي. ځکه چي د اتصال په وجه ټولوته شفعه ملاؤ شوه. او په نفس اتصال کي واړه شریك دی. نو معلومه شوه. چه په سبب کي واړه

برابر دی.نو په استحقاق کې هم برابریدل پکار دی.کومه چې په اسانه طریقه باندې داسې پیژندلې شی.که په دوی کې یو کس پاتې شی.او نور شریکان شفعه نه اخلی.نو پوره شفعه به هم هغه ته ملاویږی.نودا حکم ددې خبرې دلیل دې.چه په سبب کې کمال دې.ګنی بغیر د کمال سبب څخه به ورته پوره شفعه څنګه ملاویدله.

وَكَثْرَةُ الِاتِّصَالِ تُؤْذِنُ بِكَثْرَةِ الْعِلَّةِ او د اتصال کثرت د علت د کثرت خبر ورکوی. وَالتَّرْجِيحُ بِقُوَّةِ الدَّلِيلِ او ترجیح د دلیل په قوت سره واقع کیږی لَا بِكَثْرَتِهِ. نه چې ددې په کثرت سره، وَلَا قُوَّةَ هَاهُنَا او دلته قوت نشته، لِظُهُورِ الْأُخْرَى بِمُقَابَلَتِهِ دوهم د ظاهر کید د امله ددې په مقابله کې،

حل اللغة: ① تؤذن: خبرور کوی ② کثرة: زیاتوالی ③ ظهور: ښکاره والی.

تشریح:- که څوک دا سوال اوکړی چې په اتصال کې کمی پیشی منلې شوې خبره ده.نو بیا دې ته برابر ونیل څنګه صحیح کیدای شی؟ ځواب دا دې.چه منو.چه په اتصال کې قلت او کثرت وی.په نورو الفاظ کې داسې ونیلی شی.چه په علت کې کثرت شته.خود ترجیح د علت د کثرت په وجه نه وی.بلکه د علت د قوت په بنا (بنیاد) باندې وی.او دلته چې زیات وی.نو د هغې څخه به په قوت سره تعبیر نشی کیدې.ځکه که چیرته په دې کې قوت وې.نوبل به ددې په مقابله کې نشو ښکاره کیدې.یعنی چې شریک موجود وو.نو نورو ته به برخه نه ملاویدله.او دلته د صاحب کثیر په مقابله کې صاحب قلیل ته هم حق ملاویږی.نو معلومه شوه.چه د صرف د علت کثرت دې.د قوت کثرت نه دې.که د قوت کثرت وې.نو د نورو د حق ظهور به نه کیدلو.

الاخری بمقابلته ..الخ الأخری د علت صفت دې.او د «ه» مرجع صاحب کثرت اخستلې شی.او په عنایه کې عبارت داسې دې. «الأخری بمقابلتها» نواوس د «ها» مرجع علت دې.

وَتَمَلُّكُ مِلْكِ غَيْرِهِ لَا يُجْعَلُ ثَمَرَةً مِنْ ثَمَرَاتِ مِلْكِهِ او د خپل نه سوا د بل د ملک مالک کیدل نشی شمارلې د ثمره دده د ملکیت په ثمراتو کې، بِخِلَافِ الثَّمَرَةِ وَأَشْبَاهِهَا په خلاف د میوې.او دهغې هم مثل.

تشریح: دا عبارت د امام شافعی رحمه الله د دې خبرې نه ځواب دې چې هغوی شفعه د مرافق ملک شمار کړې وو.د هغې ځواب ورکوی. «وتملک ملک غیره..إلخ» ددې مطلب دا دې.چه شفعه د مرافق په ملک کې نشی شمارلې.ګنی بیا به په هرتملک کې د خپل ملک دخل پکار وو.لکه څنګه چې پلار د خپل ځوئی دوینځې مالک جوړیږی.خودا ملک دده د ملک ثمره نه ده.نو شفعه ته د مرافق ملک نشی ونیلې.البته په میوه وغیره کې پیداوار د ملک ثمره ده.او هم ددې وې د ملکیت په اندازه باندې تقسیمیږی.(کما مر)

## دیوشفیع د دستبردارئ په صورت کښې په پاته شریکانو تقسیم

وَلَوْ أَسْقَطَ بَعْضُهُمْ حَقَّهُ او که ساقط کړلو بعضو په دوی کې خپل فَهِيَ لِلْبَاقِينَ حق نودا شفعه به د پاته شفعاؤ لپاره وی فِي الْكُلِّ په ټوله مبیعه کې، عَلَى عَدَدِهِمْ په شمار د عدد د دوی لِأَنَّ الِانْتِقَاصَ لِلْمُزَاحَمَةِ د دې امله چې برخه کمیدل د ګنړوالی د امله وو مَعَ كَمَالِ السَّبَبِ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ سره د کمال سبب په حق د هریوکس کې ددوی نه، وَقَدْ انْقَطَعَتْ. اویقینا ختم شو مزاحمت.

حل اللغة: ① اسقط: ساقط کړلو ② الانتقاص: کموالی ③ المزاحمة: ګنړوالی ④ انقطعت: ختم شو

تشریح:- یعنی که په شفعاؤ کې یوکس خپل حق ساقط کړلو.نو اوس به شفعه د پاته شفعاؤ لپاره وی.ددوی د سرونوشمارپه مطابق.ځکه چې کمال سبب هر یو ته حاصل دې.بیا د مستحقینو د کثرت په وجه د مزاحمت په وجه دهریوپه برخه کې کمې واقع کیدلو.خواوس مزاحمت پاته پاتې نشو.نوځکه به پاته حضرات د شفعه مستحق وی.

## د څینې شفعاؤ د غیبوبت صورت



وَلَوْ كَانَ الْبَعْضُ غُيَّبًا او که بعضې غائب وی يُقْضَى بِهَا بَيْنَ الْحُضُورِ عَلَى عَدَدِهِمْ، نود حاضرینو په مینځ کې به دهغوی د شمار مطابق د شفعه فیصله کولې شی. لِأَنَّ الْغَائِبَ لَعَلَّهُ لَا يَطْلُبُ ځکه کیدای شی.چه غائب کس طلب اونکړی. وَإِنْ قَضَى لِحَاضِرٍ بِالْجَمِيعِ اوکه د ټولې فیصله د یو په حق کې اوکړې شوه، ثُمَّ حَضَرَ آخَرُ او بیا بل غائب شو. يُقْضَى لَهُ بِالنِّصْفِ نودهغه په حق کې به د نصف فیصله کولې شی. وَلَوْ حَضَرَ ثَالِثٌ اوکه دریم کس حاضر شو. فَبِثُلُثِ مَا فِي يَدِ كُلِّ وَاحِدٍ نود هر یو په قبضه کې چې څومره وی.د هغې د دریمې برخې (حصې) فیصله به اوکړې شی، تَحْقِيقًا لِلتَّسْوِيَةِ د برابرئ ثابتولو دپاره،

تشریح:- څوشفعاء دی.خو په هغو کې څه غائب دی.او څه موجود دی.نود موجودو په حق کې به قاضی د هغوی په مطالبه باندی فیصله کوی.اود غائب به څه خیال نه ساتی.بلکه د موجودینو په حق کې د سرونو په شمارمطابق ویش کولې شی.د غائب د خیال نه ساتلو وجه دا ده.چه کیدای شی.هغه د شفعه مطالبه اونکړی.

قاضی به اول د غایب څه خیال نه ساتی.خو که د فیصلې نه روسته هغه راغلو.اود شفعه مطالبه ئې اوکړله.حالانکه د یو موجود دپاه قاضی د ټولې شفعه فیصله کړې وه.نو اوس به قاضی د راتلونکی لپاره د نصف فیصله کوی.اوکه دریم م راغلو.او هغه هم د شفعه مطالبه اوکړله.نود دواړو په قبضه کې چې څه وی.نو په هغې کې هر یو ته قاضی ثلث ورکړی.ځکه چې په دې صورت کې به په درې واړو کې مساوات کولې شی.

فَلَوْ سَلَّمَ الْحَاضِرُ بَعْدَمَا قَضَى لَهُ بِالْجَمِيعِ نو که حاضر د هغه په حق کې د ټولې د فیصلې کاوه نه روسته د دستبردارئ فیصله اوکړله لَا يَأْخُذُ الْقَادِمُ إِلَّا النِّصْفَ نو راتلونکې به نه اخلی.مګر نیمه لِأَنَّ قَضَاءَ الْقَاضِي بِالْكُلِّ لِلْحَاضِرِ ځکه چې د قاضی فیصلې د حاضر لپاره د ټولې په سلسله کې منقطع کړه، يَقْطَعُ حَقَّ الْغَائِبِ عَنِ النِّصْفِ هغه د نیم په حق کې دغائب حق، بِخِلَافِ مَا قَبْلَ الْقَضَاءِ په خلاف د هغه صورت کې چې د قضاء د قاضی نه وړاندې وی.

حل اللغة: ① القادم: د سفرنه لاتلونکې ② النصف: نیم ③ قطع: کټ کړه ④ القضاء: فیصله

تشریح:- حاضر شفیع د شفعه دعوه اووکړله.او قاضی د ټولې شفعې هغه په حق کې فیصله اوکړه.خو حاضر شفیع وانه خستله.او بیا غایب شفیع راغلو.او شفعه طلبوی.نوهغه ته به پوره نه ملاویږی.بلکه د هغې د نصف به ورته ملاویږی.ځکه چې کله قاضی د حاضر لپاره د ټولې فیصله اوکړله.خو هغه وانه خستله.نود قاضی فیصلې د راتلونکی لپاره نیم حق ساقط کړې دې.او که اوسه پورې قاضی لا فیصله نه وی کړې.اوپه دې کې غائب راغلو.نوپوره شفعه به هغه ته ملاویږی.بهر حال د قاضی د فیصلې نه وړاندې نصف نه ساقطیږی.

## دشفعه حق کله.څنګه اوولې ثابتیږی؟

قَالَ: وَالشُّفْعَةُ تَجِبُ بِعَقْدِ الْبَيْعِ فرمائی.اوشفعه واجبیږی په عقدبیع باندې وَمَعْنَاهُ معنی ددې دا ده بَعْدَهُ لَا أَنَّهُ چه روسته ددې نه دا خبره نه ده هُوَ السَّبَبُ.چه بیع سبب دې.لِأَنَّ سَبَبَهَا الِاتِّصَالُ ځکه چې د شفعه سبب اتصال دې. عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ دهغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړلو. وَالْوَجْهُ فِيهِ اووجه ددې دا ده. أَنَّ الشُّفْعَةَ إِنَّمَا تَجِبُ چې شفعه ثابتیږی.، إِذَا رَغِبَ الْبَائِعُ عَنْ مِلْكِ الدَّارِ کله چې بائع د کور د ملکیت نه اعراض اوکړی. وَالْبَيْعُ يُعَرِّفُهَا او بیع ددې اعراض معرف ده. وَلِهَذَا يُكْتَفَى او هم ددې امله اکتفاء کولای شی بِثُبُوتِ الْبَيْعِ فِي حَقِّهِ په ثبوت بیع باندې دبائع په حق کې حَتَّى يَأْخُذَهَا الشَّفِيعُ تردې چې شفیع واخلی.کور لره إِذَا أَقَرَّ الْبَائِعُ بِالْبَيْعِ، چه بائع د بیع اقرار کړې وی وَإِنْ كَانَ الْمُشْتَرِي يُكَذِّبُهُ اګرچه مشتری د هغه تکذیب وی.

حل اللغة: ① رغب: بې رغبتی ② یکتفی: اکتفاء کولای شی ③ یکذب: دروغژن کوی

تشریح:- وړاندې په تفصیل سره تیرشو..چه د شفعهٔ سبب اتصال دې.او دې شر بیع ده.که اتصال وی خو بیع نه وی.نو نه ثابتیږی.

**ومعناه بعده** چې ئې اوونیل.نو مرغینانی رحمه الله دا اشاره کوی.چ په «یعقد البیع» کې باء د سبب لپاره نه ده.ګنی بیا به دا لازم شی.ه بیع سبب د شفعهٔ دې.حالانکه سبب اتصال دې.بیا دلته یو سوال پیدا کیږی.چه د بیع نه روسته شفه وې ثابتیږی.نو وې فرمائیل چې کور په اصل کې د مالك ملکیت دې.د هغه نه دې نشی رد کولې.البته دا که مالك د خپل کور نه اعراض اوکړی.او بل چا ته ئې ورکول غوی.او خرڅ ئې کی.نو دده اعراض کول په پوهه کې راحی.خکه چې دې بیع ته اماده شو.نودا اعراض ښکاره کوی.اوکله چې اعراض موجود شو.نو بیا شفه ثابتیږی.ددې امله موږ وایو.چه شفعهٔ به د بیع نه روسته ثابتیږی.هرکله چې د شفع دارومدار د بائع په اعراض باې دې.نو د هغه د اړخه د بیع موجود د شفعهٔ د ثبوت لپاره کافی دې.نو که بائع د بیع اقرار اوکړو.او مشتری انکار کوی.نو شفیع ته به شفعه ملاومیږی.خکه چې د بائع د اقرار په وجه دده اعراض موجود شو.او هم دا اعراض د شفعهٔ شرط دې.

## دطلب اشهاد او طلب مواثبه حیثیت

قَالَ وَتُسْتَقَرُّ بِالْإِشْهَادِ او شفه پخیږی په طلب اشهاد باندې وَلَابُدَّ مِنْ طَلَبِ الْمُوَاثَبَةِ او ضروری ده.چه دطلب مواثبه موجود شی. لِأَنَّهُ حَقٌّ ضَعِيفٌ خکه چې شفعه حق ضعیف دې. يَبْطُلُ بِالْإِعْرَاضِ کوم چې په اعراض سره باطلیږی فَلَابُدَّ مِنَ الْإِشْهَادِ وَالطَّلَبِ.نو ضروری دې اشهاد او د طلب کیدل، لِيُعْلَمَ بِذَلِكَ رَغْبَتُهُ فِيهِ دې لپاره چې په طلب سره د شفیع په دې کې رغبت معلوم شی. دُونَ إِعْرَاضِهِ عَنْهُ نه چې دې نه اعراض، وَلِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى إِثْبَاتِ طَلَبِهِ او په دې وجه چې شفیع محتاج دې.دخپل طلب ثابتولو لپاره عِنْدَ الْقَاضِي، چې پیش کړی اتصال دقاضی په مخ کې ، وَلَا يُمْكِنُهُ او دده لپاره اثبات ممکن نه دې ،، إِلَّا بِالْإِشْهَادِ .مګرپه اشهاد سره،

**حل اللغة:** ① **تستقر**:پخیږی ② **الاشهاد**: ګواه جوړول ③ **اعراض**:ډډه کول ④ **لایمکن**:ممکن نه ده

**تشریح:-** د شفعې سبب خو اتصال دې.او شرط ئې بیع ده.خو ددې دواړو باوجود که شفیع بغیر دځه عذر نهچوپ پاتې شو.نو شفعهٔ به ورته نه ملاویږی.بلکه چې ځنګه ورته معلومه شی.نو مواثبه ضروری ده.او بیا د احتیاط لپاره په دې باندې ګواهان قائمول او بیا طلب خصومت یعنی د قاضی عدالت ته تللل او د شفعې طلب کول،اوددې مطالبو په مینځ کې هم ترتیب دې.دکوم تفصیل چې اوس راځی.

ⓐدلته خو مرغینانی رحمه الله دا اوخودل.چه په شفعه کې مضبوطی په طلب اشهاد او طلب مواثبه سره راځی. خکه که د معلومیدو نه روسته طلب اونکړی.نو دا دلیل د اعراض دې.اوشفعهٔ حق ضعیف دې.کوم چې په اعراض سره باطلیږی.نو ضروری شوه.چه داسې دلیل موجود شی.په کوم چې دده اعراض نه کول ثابت کړې شی.او هغه طلب مواثبه او اشهاد دې.اوس به ددې نه دا معلومه شی.چه شفیع د شفعې نه اعراض نه دې کړې.بلکه رغبت ئې کړې دې.

ⓑد طلب مواثبهٔ نه روسته د طلب اشهاد اړتیا ددې لپاره دې.چه شفیع د قاضی په مخکی خپل طلب ثابت کړی.او دهغې د ثابتولو ذریعه اشها دې.نو خکه د اثبات طلب لپاره اشهاد ضروری دې.د طلب نور تفصیل به په راروان باب کې راشی.

## شفیع به د مشفوعه کله مالك جوړیږی ؟

قال فرمائیلی دی امام قدوری رحمه الله (وَتُمْلَكُ بِالْأَخْذِ) و کور مملوك ګرځی په اخستلو سره إِذَا سَلَّمَهَا الْمُشْتَرِي کله چې اوسپاری مشتری هغه ده ته، أَوْحَكَمَ بِهَا الْحَاكِمُ) یا حاکم ددې حکم اوکړی. لِأَنَّ الْمِلْكَ لِلْمُشْتَرِي قَدْ تَمَّ خکه چې د مشتری ملکیت پوره شوې دې. فَلَا يَنْتَقِلُ إِلَى الشَّفِيعِ نو شفیع ته به نه منتقل کیږی. إِلَّا بِالتَّرَاضِي مګر په رضا مندئ سره أَوْقَضَاءِ الْقَاضِي یا د قاضی په فیصلې سره،



**حل اللغة:** ① **تملک**:مالك جوړیږی ② **ینتقل**:نقل کیږی ③ **التراضی**: د جانبینو نه رضا مندی

**تشریح:-** مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه داتصال او بیع باوجود او د طلب مواثبه او اشهاد باوجود تراوسه پورې شفیع ددې کور مالك نه دې.بلکه د مالك جوړیدو لپاره دوې (دوه) صورتونه دی.یا چې مشتری شفیع ته هغه کور حواله کړی.یا قاضی فیصله اوکړی.په دواړو صورتونو کې چې کوم صورت هم موجود شی.نو شفیع به د هغې مالك جوړیږی.خکه چې مشتری دده د کور مالك شوې دې.اود هغه ملکیت تامه دې.د هغه کور چې د هغه د ملکیت نه اوباسی.نو دده لپاره په خوشحالئ سره د هغې سپارل دی.یا د حاکم فیصله ده.

كَمَا فِي الرُّجُوعِ وَالْهِبَةِ لکه څنګه چې په هبه کې د رجوع په صورت کې دی.

**تشریح:- کما فی الرجوع فی الهبة** که یوکس چاته خپل کور هبه کړو.او قبضه ئې ورله هم ورکړله.او اوس واهب هغه کور د موهوب له نه واپس اخستل غواړی.نو ددې دوې (دوه) صورتونه دی.چه یا ئې موهوب له په خپلې رضا او خوشالئ سره واپس کړی.اویا د حاکم په فیصلې سره،بعینه هم دغه صورت دلته هم دې.چه یا ئې خو مشتری په خپله شفیع ته ورکړی او یا دحاکم فیصله اوشی.

وَتَظْهَرُ فَائِدَةُ هَذَا او ښکاره کیږی به ددې فائده په هغه صورت کې فِيمَا إِذَا مَاتَ الشَّفِيعُ بَعْدَ الطَّلَبَيْنِ چې شفیع د دواړو طلبونو نه روسته مړ شی. وَبَاعَ دَارَهُ یا هغه خپل هغه کور خرڅ کړی. الْمُسْتَحَقَّ بِهَا الشُّفْعَةُ د کوم په وجه چې هغه د شفعې مستحق جوړ شوې وو. أَوْبِيعَتْ دَارٌ بِجَنْبِ الدَّارِ الْمَشْفُوعَةِ یا د مشفوعه کور سره په خوا کې یو بل کور خرڅ شو. قَبْلَ حُكْمِ الْحَاكِمِ أَوْتَسْلِيمِ الْمُخَاصِمِ د قاضی د فیصلې یا د مخاصم د تسلیمولو نه وړاندې لَا تُورَثُ عَنْهُ فِي الصُّورَةِ الْأُولَى نو په اول صورت کې کوردهغه د اړخه په میراث کې نشی تقسیمولې. وَتَبْطُلُ شُفْعَتُهُ فِي الثَّانِيَةِ او په دوهم صورت کې دده شفعه باطلیږی. وَلَا يَسْتَحِقُّهَا فِي الثَّالِثَةِ لِانْعِدَامِ الْمِلْكِ لَهُ او په دریم صورت کې دده د ملکیت نه کیدو په وجه هغه ددې کور مستحق نه دې.

**حل اللغة:** ① **بیعت**:خرڅ شی ② **دار**:کور ③ **المخاصم**: جګړه کونکې ④ **الانعدام**: نشتوالې ⑤ **لاتورث**:میراث نشی اوړلې.

**تشریح:-** دشفیع د ملیکت ثابتیدو لپاره په دواړو کارونوکې د یو کار وجود ضروری دې.ګنی ملکیت نه راځی.اوس په دې باندې درې مسائل متفرع کیږی.①شفیع د دواو طلبونو نه روسته مړ شو.نوچونکه کور تراوسه پورې د هغه په ملکیت کې نه دې راغلې.اود مړی په ترکه کې نه دې داخل.او په میراث کې خو د مړی ترکه تقسیمولې شی.نو دا کور به په میراث کې نشی تقسیمولې.البته که د شفیع وارثان دغه کور اخستل غواړی.نو بیا به دوباره شفعه طلب کړی.② شفیع د طلبینو نه روسته خپل کور خرڅ کړلو.د کوم په وه چې دې د شفعهٔ مستحق وو.نودده شفعه باطله شوه.خکه چې ده ته شفعهٔ ملاویدله.د اتصال په سبب، او اوس اتصال زائله شو.نو د شفعهٔ سبب زائله شو.③ شفیع دواړه طلبونه کړی دی.او هم په دغه وخت کې یو کور خرڅ شو.کوم چې دده د کور په خوا کې وو.کوم چې شفیع په شفعه کې اخستل غواړی.اوس شفیع غواړی چې دا دوهم کور هم زه اخلم.نوهغه نشی اخستې.خکه چې د شفعهٔ سبب اتصال دې.او اوس دارمشفوعه دده
په ملکیت کې نه دې.چه ددې اتصال ثابت شی.البته هغه کور اوس د مشتری په ملکیت کې دې.هغه د کور په شفعهٔ کې اخستې شی.

ثُمَّ قَوْلُهُ تَجِبُ بِعَقْدِ الْبَيْعِ بَيَانٌ بیا دقدوری رحمه الله قول چې «تجب بعقد البیع»ددې خبرې بیان دې. أَنَّهُ لَا يَجِبُ چې شفعهٔ نه ثابتیږی. إِلَّا عِنْدَ مُعَاوَضَةِ الْمَالِ بِالْمَالِ مګر د مال معاوضه په وخت دمال سره عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى. وَاللَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ د هغې د تفصیل مطابق کوم چې به موږ انشاء الله بیان کړو.او الله تعالی ښه پوهیږی.

تشريح:- بيا مرغيناني رحمه الله د قدوري د قول تشريح كوي.اوفرمائي. «تجب بعقد البيع» ددې مطلب دا دې.چه صرف بيع نه ده.بلكه چې د مال په مقابله كي مال راشي.نو هله به شفيع ته شفعه ملاويږي.ددې تفصيل به وړاندې راشي.

## باب طلب الشفعة والخصومة فيها

ژباړه دا باب دې د شفعې د طلبولو او په شفعة كې دخصومت په بيان كي دې.
د شفعة طلب او مخاصمه

### د شفعه طلب او مخاصمه

قَالَ فرمايي قدوري رحمه الله ﴿وَإِذَا عَلِمَ الشَّفِيعُ بِالْبَيْعِ﴾ وكله چې شفيع ته د بيع علم اوشو. ﴿أَشْهَدَ فِي مَجْلِسِهِ ذَلِكَ عَلَى الْمُطَالَبَةِ﴾ نو هم په خپل دغه مجلس كي به په مطالبه باندې ګواهان جوړ كړي. اعْلَمْ أَنَّ الطَّلَبَ عَلَى ثَلَاثَةِ أَوْجُهٍ: پوهه شه.چه طلب په درې قسمه دې. طَلَبُ الْمُوَاثَبَةِ وَهُوَ أَنْ يَطْلُبَهَا طلب مواثبه او دا هغه دې.چه دې شفعة طلب كړي. كَمَا عَلِمَ، حَتَّى لَوْ بَلَغَ الشَّفِيعَ الْبَيْعُ كله چې ده ته معلومه شي.تردې كه شفيع ته د بيعې خبر اورسي. وَلَمْ يَطْلُبْ شُفْعَةً اوده خپله شفعه طلب نكړه. بَطَلَتْ الشُّفْعَةُ نو شفعة باطله شوه. لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه كوم چې موږ ذكر كړې دې. ،وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الشُّفْعَةُ لِمَنْ وَاثَبَهَا}(۱) او د نبي ﷺ د فرمان د امله «الشفعة ...إلخ» چې شفعه د هغه چا لپاره ده چې طلب مواثبه اوكړي

تشريح:- كله چې شفيع ته دا معلومه شوه.چه زما ګاونډي خپل كور په فلاني باندې خرڅ كړلو.نو چې څنګه ورته معلومه شي.ده لپاره ضروري ده.چه طلب مواثبه اوكړي.يعني چې دا ووايي چې فلاني په فلاني باندې خپل كور خرڅ كړې دې.حالانكه زه ددې شفيع يم.په شفعه كي به دغه كور زه اخلم.چونكه دا طلب عجلت او فوريت غواړي.نوځكه د دې نوم طلب مواثبه كيخودې شو.ددې امله كه ده د علم نه روسته هم طلب مواثبه اونكړله.نودده شفعه به باطله شي.ددې دليل وړاندې تير شوې دې.

Ⓐپه دې باندې مرغيناني رحمه الله يو حديث پيش كړې دې. «الشفعة لمن واثبها» يعني شفعه د هغه لپاره ده.چه ددې طلب مواثبه اوكړي.دا حديث راته ملاؤ نشو.البته په (۲)مصنف عبدالرزاق كي ئې دې ته د قول وئيلې دې.او نقل كړې ئې دې.خوبيا خو څه خبره نه ده.ځكه چې هغه د صحابو رضي الله عنهم د دور قاضي وو.د هغوى قول قابل استدلال دې.ددې د مفهوم د نورو رواياتو نه تائيد كيږي.

وَلَوْ أُخْبِرَ بِكِتَابٍ اوكه هغه خبر وركړې شوې وى د خط په ذريعه ﴿الشُّفْعَةُ فِي أَوَّلِهِ أَوْ فِي وَسَطِهِ﴾ او د شفعة ذكر د هغې په اول يا مينځ كي وو. وَقَرَأَ الْكِتَابَ إِلَى آخِرِهِ نو ده خط تر آخره پورې اولوستو. بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ نودده شفعة باطله شوه. وَعَلَى هَذَا عَامَّةُ الْمَشَايِخِ، رحمهم الله او په دې باندې عام مشايخ رحمهم الله دى وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ مُحَمَّدٍ اوهم دا د امام محمد رحمه الله نه يو روايت دې.

تشريح:- كه يوكس ته د خط په ذريعه خبر وركړې شو.چه فلاني خپل كور خرڅ كړلو.او د شفعة ذكر ئې دخط په اول يا مينځ كي كړې وو.اوهغه خط ئې ولوستلو.خوهغه د شفعة طلب اونكړو.بلكه واړه خط ئې اولوستو.نو د عامو مشايخ و رحمهم الله د قول مطابق دده شفع باطله شوه.او دا دامام محمد رحمه الله نه يو روايت دې.

۱) قال الزيلعي رحمه الله غريب وأخرجه عبدالرزاق فى مصنفه من قول شريح إنما الشفعة لمن واثبها وكذالک ذكره القاسم بن ثابت السرقسطي فى كتاب غريب الحديث فى باب كلام التابعين وهو آخر الكتاب (نصب:۴۲۸/۴)_



وَعَنْهُ أَنَّ لَهُ مَجْلِسَ الْعِلْمِ او د امام محمد رحمه الله نه يو بل روايت هم دې.چه د شفيع لپاره مجلس علم دې. وَالرِّوَايَتَانِ فِي النَّوَادِرِ دواړه روايتونه په نوادر كي دى. ،وَبِالثَّانِيَةِ أَخَذَ الْكَرْخِيُّ او دوهم روايت امام كرخي رحمه الله اخستې دې.

تشريح:- دوهم روايت د امام محمد رحمه الله نه دا دې.كه د علم په مجلس كي كه دننه دننه ده طلب اوكړو.نو ده ته به شفعه ملاوډي.او دا دواړه رواياتونه ظاهر روايت نه دى.بلكه دنوادر روايتونه نه دى.اول روايت عامو مشائخو رحمهم الله او دوهم روايت امام كرخي رحمه الله اخستې دې.په «سكب الأنهر» كي دوهم روايت ته ترجيح وركړې شوې ده.

لِأَنَّهُ لَمَّا ثَبَتَ لَهُ خِيَارُ التَّمَلُّكِ ځكه چې هركله د شفيع لپاره د مالك جوړيدو اختيار دې. لَا بُدَّ لَهُ مِنْ زَمَانِ التَّأَمُّلِ نو ده لپاره د سوچ اړتيا دې. كَمَا فِي الْمُخَيَّرَةِ لكه څنګه چې په مخيره كي وى.

حل اللغة: ① التامل: سوچ② زمان:وخت ③ المخيرة: هغه ښځه چې د هغې ميړه هغې ته اووائى.كه ته غواړې نوخپل ځان طلاق كړه.﴾

تشريح:- دا د مجلس علم معتبر ګرځولو دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه هركله شريعت شفيع ته دا اختيار وركړې دې.كه دې غواړي نو د شفعة په ذريعه ددې كور مالك جوړيدې شي.نو ده ته دومره وخت وركول هم پكار دى.چه په هغې كي دې سوچ او فكر اوكړي.او هغه لړترلړ مجس علم دې.نود مجلس علم پورې دده خيار يعني شفعة به نه ساقطيږي.لكه څنګه چې په مخيره كي هم په مجلس كي اختيارپاته وى.يعني هغه ښځه چې د هغې ميړه هغې ته اووائى.كه ته غواړې نوخپل ځان طلاق كړه.نو په مجلس كي دې ته اختيار دې.كه د مجلس ختميدو نه وړاندې دې خپل ځان ته طلاق وركړو.نوهغه به واقع كيږي.اوكه مجلس بدل شو.نو ددې خيار ختم شو.په هدايه ټوك ثاني كي دا بحث تير شوې دې.

وَلَوْ قَالَ بَعْدَمَا بَلَغَهُ الْبَيْعُ الْحَمْدُ لِلَّهِ او كه اووئيل ده (شفيع) د خرڅيدو د خبر رسيدو نه روسته الحمد لله أَوْ "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ" يا لاحول ولا قوة الا بالله "أَوْ قَالَ "سُبْحَانَ اللَّهِ" يا ئې اووئيل سبحان الله، لَا تَبْطُلُ شُفْعَتُهُ نو د ده شفعة نه باطليږي. لِأَنَّ الْأَوَّلَ حَمْدٌ عَلَى الْخَلَاصِ مِنْ جِوَارِهِ ځكه چې اول دالله تعالى تعريف بيانول دى.دهغه د ګاونډ نه په خلاصيدو باندې وَالثَّانِي تَعَجُّبٌ مِنْهُ لِقَصْدِ إِضْرَارِهِ، او دوهم تعجب دې.د هغه د اړخ نه دهغې دخرڅونكى د اړخه د تكليف رسولو په قصد باندې وَالثَّالِثُ لِافْتِتَاحِ كَلَامِهِ او دريمه جمله د خپل كلام پيل كاوه لپاره ده فَلَا يَدُلُّ شَيْءٌ مِنْهُ عَلَى الْإِعْرَاضِ نو په دې كي يوكارهم په اعراض باندې دلالت نه كوى.

حل اللغة: ① حول:بچ كيدل② قوة: قدرت ،طاقت③ الخلاص:خلاصي④ جوار:ګاونډيتوب ⑤ الاضرار:بل ته ضرر رسول﴾

تشريح:- وړاندې دا خبره تيره شوې ده.چه اعراض موجود شي.نو شفعه باطله شوه.خو هره يوه خبره په اعراض كي نه ده داخله،نو تفصيل كوى.چه كله شفيع ته د خرڅيدو علم اوشي.اوهغه اووئيل.چه الحمد لله نو دا اعراض نه دې.ځكه چې دې د خپل ګاونډي د شر او ضرر نه تنګ شوې وو.نو اوس ورته موقع ملاؤ شوه.چه دغه كور په شفعه كي واخلى.او د بائع د شر نه خلاصى بيا مومى.نوده په دې باندې د الله تعالى د شكر ادا كاوه لپاره الحمدلله آووئيل.نودا د اعراض دليل نه دې.

Ⓑاوكه ده اووئيل.چه لاحول ولا قوة الا بالله نو دا هم اعراض نه دې.بلكه د تعجب اظهار دې.چه بائع څنګه ګاونډي دې.ماته ئې هم نه خودله.او كور ئې خرڅ كړو.په دې سره ماته نقصان رسول غواړي.اوكه ده اووئيل.چه سبحان الله نو دا هم اعراض نه دې.ځكه چې د بعضې خلګو عادت وى.چه هغوى د خبرې په پيل كي سبحان الله وائى.نو ده سبحان الله د افتتاح كلام لپاره وئيلې ده. لنډيز دا چې په دې درې واړه جملو كي يوه جمله هم د اعراض دليل نه دې.

وَكَذَا إِذَا قَالَ مَنْ ابْتَاعَهَا او دغه ډول کله چې اووائي.چه چا واخستلو؟ وَبِكَمْ بِيعَتْ او په څو خرڅ کړې شو لِأَنَّهُ يَرْغَبُ فِيهَا بِثَمَنٍ دُونَ ثَمَنٍ ځکه چې دې رغبت کوی په دغه کور کې په یو قیمت باندې نه په بل باندې وَيَرْغَبُ عَنْ مُجَاوَرَةِ بَعْضٍ او اعراض کوی د بعضو د ګاونډيتوب نه، دُونَ بَعْضٍ نه د بعضو نه،

**حل اللغة:** ① الابتاع:اغستل ② يرغب:رغبت کوی ③ ثمن: پیسې﴾

**تشریح:-** دغه ډول کله چې ده ته معلومه شوه.اوده پوښتنه اوکړو.چه په څو ئې خرڅ کړې دی؟ یا چا اخستې دې.نودا پوښتنه هم د اعراض دلیل نه دې.ځکه چې دې په هر قیمت باندې ددې په اخستلو کې غرضی نه وی.بلکه که کم وی.نو بیا پرې راضی دې.بهر حال دا د اعراض دلیل نه دې.اودغه ډول د بعضې کسانو د ګاونډی جوړېدو نه سرې تختی.د ټولونه نه تختی.نو ده چې کله پوښتنه اوکړو.چه چا اخستې دې.نو دا د اعراض دلیل نه دې.

## دبیع په خبر ملاوېدو د الحمدلله وغیره په وئیلو د شفعه عدم ابطال

وَالْمُرَادُ بِقَوْلِهِ فِي الْكِتَابِ اومراد د قدوری رحمه الله د قول کوم چې په کتاب کې دې. أَشْهَدُ فِي مَجْلِسِهِ ذٰلِكَ عَلَى الْمُطَالَبَةِ طَلَبَ الْمُوَاثَبَةِ، چې «أشهد فى مجلسه ذلك على المطالبة» نه مواثبه ده. وَالْإِشْهَادُ فِيهِ لَيْسَ بِلَازِمٍ او اشهاد په دې کې ضروری نه دې. إِنَّمَا هُوَ لِنَفْيِ التَّجَاحُدِ اشهاد خو د انکار د نفی لپاره وی. وَالتَّقْيِيدُ بِالْمَجْلِسِ إِشَارَةٌ او د مجلس قید لګولو کې اشاره ده. إِلَى مَا اخْتَارَهُ الْكَرْخِيُّ هغه اړخ ته کوم چې امام کرخی رحمه الله اختیار کړې دې.

**حل اللغة:** ① التجاحد:انکار کول ② اختار:غوره کړې دې ③ التقييد:قید لګول﴾

**تشریح:-** د دې خائې نه مرغینانی رحمه الله د امام قدوری رحمه الله د قول تشریح کوی.په قدوری کې راغلی دی.چه «أشهد فى مجلسه ذلك على المطالبة» نو ددې نه مراد طلب مواثبه دې.او طلب الاشهاد لازم او ضروری نه دې.بلکه طلب مواثبه باندې ګواهان قائمول صرف ددې امله دی.که مشتری د طلب مواثبه نه انکار اوکړی.نو چې ګواهان ددې اثبات کولې شی.

اود ګواهانو نه بغیرد طلب مواثبه د اړتیا وجه دا ده.چه دیانة د شفیع حق ثابت شی.اوکه د قسم حاجت راشی.نوشفیع په طلب باندې قسم خوړلې شی.بیا قدوری رحمه الله د «فى مجلسه ذالك» قید لګولې دې.په دې کې دې خبرې ته اشاره ده.چه د دوی په نیز دامام کرخی قول مختار دې.

وَيَصِحُّ الطَّلَبُ بِكُلِّ لَفْظٍ يُفْهَمُ مِنْهُ طَلَبُ الشُّفْعَةِ او صحیح دې طلب په هر هغه لفظ سره چې د هغې نه د شفعة طلب معلومیدې شی. كَمَا لَوْ قَالَ: طَلَبْتُ الشُّفْعَةَ أَوْ أَطْلُبُهَا أَوْ أَنَا طَالِبُهَا، لِأَنَّ الِاعْتِبَارَ لِلْمَعْنَى لکه چې اووائی. «طلبت الشفعة يا أطلبها يا أنا أطالبها» ځکه چې اعتبار معنی لره دې.

**تشریح:-** د طلب شفعة لپاره څه لفظ متعین نه دې.بلکه هر هغه لفظ چې د هغې نه د شفعة د طلب معلومیږی.په هغې سره د شفعې طلب صحیح دې.ځکه چې الفاظو لره اعتبار نه وی.بلکه د معنی اعتبار وی.او کله چې د طلب شفعة معنی او مفهوم موجود وی.نودشفعې طلب متحقق شو.

## د طلب اشهاد د وجوب وخت

وَإِذَا بَلَغَ الشَّفِيعَ بَيْعُ الدَّارِ او کله چې شفیع ته د کور دخرڅ خبر اورسی. لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ الْإِشْهَادُ نو په ده باندې اشهاد واجب نه دې. حَتَّى يُخْبِرَهُ رَجُلَانِ أَوْ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ أَوْ وَاحِدٌ عَدْلٌ تردې چې ده ته دوې (دوه) سړی یا یو سړې او دوې (دوه) ښځې یا یو عادل سړې خبر ورکړی. عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ، (۱) دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز،

(۱) القول الراجح هو هذا قول الإمام كذا فى الخانية (٤/٤٤٦) وشرح عقود (ص،٣٠) ونصب الراية (٥/٢٤٣) ورد المحتار (٥/١٥٧) كذا فى القول الراجح ٢/٢٦٨)



**تشریح:-** شفیع ته خبر ورکړې شو.چه فلانی خپل کور خرڅ کړو.نو په ده باندې اشهاد کله واجب دې.په دې کې د ابوحنیفه او د صاحبینو رحمهما الله اختلاف دې.دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز نصاب د شهادت یا عدالت شرط دې.اوصاحبین رحمهما الله فرمائی.چه دا خو یوه معامله ده.نو نه نصاب ضروری دې.اونه وصف د عدالت، بلکه چې چا هم خبر ورکړو.په شفیع باندې اشهاد ضروری دې.او ددې حضراتو اصل اختلاف د وکیل د معزوله کاوه په سلسله کې دې.هلته کې هم امام ابوحنیفه رحمه الله هم دا فرمائی.چه کله وکیل ته د معزوله کېدو خبر اورسی.نو نصاب د شهادت یا عدالت پکار دې.

. قَالَا: او صاحبین رحمهما الله فرمائی. يَجِبُ عَلَيْهِ أَنْ يُشْهِدَ چې په ده باندې اشهاد واجب دې. إِذَا أَخْبَرَهُ وَاحِدٌ کله چې ده ته یو سړی خبر ورکړی. حُرًّا كَانَ أَوْ عَبْدًا که آزاد وی اوکه غلام وی صَبِيًّا كَانَ أَوْ امْرَأَةً که ماشوم وی اوکه ښځه وی. وَإِذَا كَانَ الْخَبَرُ حَقًّا خوچه دده ګمان کې خبر رښتیا وی.. وَأَصْلُ الِاخْتِلَافِ فِي عَزْلِ الْوَكِيلِ او د اختلاف اصل په عزل د وکیل کې دې. وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ بِدَلَائِلِهِ وَأَخَوَاتِهِ فِيمَا تَقَدَّمَ اومونږ دا وړاندې ددې د دلائلو او نظائرو سره ذکر کړی دی.

**حل اللغة:** ① صبی:ماشوم ② امراة: ښځه ③ اخوات: جمع د اخوة، خور،مراد ترې نظائر دی.

اوصاحبین رحمهما الله فرمائی.چه مطلقاً په خبر واحد دې اکتفاء اوکړې شی.خو مرغینانی دا بحث به باب عزل الوکیل کې نه دی کړې.بلکه په باب ادب القاضی کې ئې په فصل فى القضاء بالمواريث كې (۱) کې کړې دې.هم دهغې حواله ورکوی.چه موږ دا مسئله سره د خپلو دلائلو او نظائرو وړاندې په ذکر شوې صفحه باندې کړې ده.

.وَهٰذَا بِخِلَافِ الْمُخَيَّرَةِ او دا د مخیره په خلاف دې. إِذَا أُخْبِرَتْ کله ه هغې ته خبر ورکړې شی عِنْدَهُ.دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز، لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ إِلْزَامُ حُكْمٍ،ځکه چې په دې کې الزام د حکم نشته. بِخِلَافِ مَا إِذَا أَخْبَرَهُ الْمُشْتَرِي او په خلاف د هغه صورت کې کله چې ده ته مشتری خبر ورکړې وی. لِأَنَّهُ خَصْمٌ فِيهِ ځکه چې هغه خصم دې وَالْعَدَالَةُ غَيْرُ مُعْتَبَرَةٍ فِي الْخُصُومِ په دې باب کې او عدالت د خصوم غیر معتبر وی.

**حل اللغة:** ① خصم:جګړه کونکې ② الزام:په بل باندې لازمول﴾

**تشریح:-** په اصل کې دا عبارت د یو تقدیری سوال ځواب دې سوال دا دې چې یوې ښځې ته خبر ورکړې شی.چه ستا مېړه تا ته د طلاق اختیار درکړې دې.نو امام ابوحنیفه هلته په خبر واحد باندې اکتفاء ولې کوی.ځواب دا دې.چه په دې دواړو کې توپیر دې.په مخیره کې الزام د حکم نشته،ځکه که هغې خپل ځان ته طلاق ورکړلو.او مېړه هغې تصدیق اوکړلو.نو ډېره ښه ده.ګنی د مېړه د انکار کاوه په صورت کې ښځه به د وړاندې پشان د ده ښځه وی.او د شفیع په مسئله کې الزام د حکم دې.ځکه که دې چپوالې اختیار کړی.نو ده ته د ګاونډ د ضرر تکلیف لاحق کیږی.نو په دې دواړو مسئلو کې توپیر دې.نوځکه امام صاحب په مخیره کښې نصاب او عدالت نه دی شرط کړی.

سوال:که مشتری یواځې شفیع ته د اخستلو خبر ورکړلو،نودلته هم امام ابوحنیفه رحمه الله نصاب او عدالت نه شرط کوی.ځواب دا دې.چه ځکه چې مشتری خصم دې اوپه خصم کې د عدالت دصفت څه اعتبار نه وی.

## د طلب تقریر اواشهاد حکم

وَالثَّانِي طَلَبُ التَّقْرِيرِ وَالْإِشْهَادِ، او دوهم طلب تقریر او اشهاد دې. لِأَنَّهُ مُحْتَاجٌ إِلَيْهِ ځکه چې شفیع محتاج وی. لِإِثْبَاتِهِ عِنْدَ الْقَاضِي دې (اشهاد) اړخ ته د طلب ثابتولو لپاره د قاضی مخامخ، عَلَى مَا ذَكَرْنَا، لکه چې موږ ذکر کړلو. وَلَا يُمْكِنُهُ الْإِشْهَادُ ظَاهِرًا اوده لپاره په ظاهره اشهاد ممکن نه دې. عَلَى طَلَبِ الْمُوَاثَبَةِ په طلب مواثبه باندې

**تشریح:-** مرغینانی رحمه الله وئیلی وو.چه طلب په درې قسمه دې.د اولنی ډول بیان ئې کړې دې.او دا د طلب

الاشهاد بيان دي.او ددې نوم طلب التقرير دی.ددې طلب ارتيا ولې پېښيږي.دا وړاندې بيان شوي دی.

او ددې ارتيا د طلب مواثبه نه روسته ولې راځي.نو ددې ځواب نې ورکړو.چه بعضې وخت په مجلس د علم کې سړی سره ګواه نه وی.او په مجلس علم کې طلب المواثبه ضروری ده.

لِأَنَّهُ عَلَى فَوْرِ الْعِلْمِ بِالشِّرَاءِ ځکه چې طلب مواثبه د اخستلونه په خبريدو پسې دستی وی. فَيَحْتَاجُ بَعْدَ ذَلِكَ إِلَى طَلَبِ الْإِشْهَادِ وَالتَّقْرِيرِ نو هغه محتاج دي.ددې نه روسته طلب اشهاد او تقرير ته، وَبَيَانُهُ او ددې طلب بيان هغه دې مَا قَالَ فِي الْكِتَابِ کوم چې امام قدوري رحمه الله په کتاب کې بيان کړې دې.(يعنى په راروان متن کې)

حل اللغة ① فور: دستی ② الاشهاد:ګواه جوړول

تشريح:- دليل دا دې چې طلب مواثبه چې څنګه ورته د خرڅ علم اوشی. دستی کول نې ضروری دی.نو که طلب اشهاد په جلا حيثيت سره واجب نکړې شی.نو حرج به راشی.او د شفيع د شفعة څخه به حرمان لازم شی.د دې تقرير امام قدوري رحمه الله په خپله په دې ډول باندې کوی.

## طلب اشهاد به په کوم ځائې کښې کوی

ثُمَّ يَنْهَضُ مِنْهُ يَعْنِي مِنَ الْمَجْلِسِ بيا دې ددې يعنی دمجلس نه پاسی (وَيُشْهِدُ عَلَى الْبَائِعِ او بائع سره دې ګواهان قائم کړی. إِنْ كَانَ الْمَبِيعُ فِي يَدِهِ) که مبيعه د هغه په قبضه کې وه مَعْنَاهُ لَمْ يُسَلِّمْهُ إِلَى الْمُشْتَرِي.ددې معنى ده.چه مشتری ته نې نه وی حواله کړې. (أَوْعَلَى الْمُبْتَاعِ او يا دې مشتری سره ګواهان قائم کړی. أَوْعِنْدَ الْعَقَارِ ويا زمکې سره، فَإِذَا فَعَلَ ذَلِكَ نو هرکله چې ده داسې اوکړل اسْتَقَرَّتْ شُفْعَتُهُ) نو د ده شفعة پخه شوه

تشريح:- يعنى کله چې شفيع د علم په مجلس کې طلب مواثبه اوکړله.نو ده لره پکار دی.چه اوس بهرته راوځی.او طلب اشهاد اوکړی.نوکه مبيعه د بائع په قبضه کې وه.د هغه په حضور کې دې ګواهان قائم کړی.اويا دې د مشتری سره ګوان قائم کړی.اود مبيعة سره هم ګواهان جوړولې شی.

وَهَذَا لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا خَصْمٌ فِيهِ..او دا ددې لپاره چې هريو په دې دواړو کې خصم دې.په دې کې لِأَنَّ لِلْأَوَّلِ الْيَدَ وَلِلثَّانِي الْمِلْكَ ځکه چې د اول لپاره قبضه او د دوهم لپاره ملك دې.،وَكَذَا يَصِحُّ الْإِشْهَادُ عِنْدَ الْمَبِيعِ او دغه ډول مبيعه سره اشهاد هم صحيح دي.لِأَنَّ الْحَقَّ مُتَعَلِّقٌ بِهِ ځکه چې حق د هغې سره تړلې شوې دې،فَإِنْ سَلَّمَ الْبَائِعُ الْمَبِيعَ.نوکه بائع مبيع حواله کړې وی. لَمْ يَصِحَّ الْإِشْهَادُ عَلَيْهِ نو په ده باندې اشهاد صحيح نه دي. لِخُرُوجِهِ مِنْ أَنْ يَكُونَ خَصْمًا دده دهليت ختميدو د امله چې خصم دې شی ،إِذْ لَا يَدَ لَهُ ځکه چې نه دده قبضه شته وَلَا مِلْكَ.او نه ملك،فَصَارَ كَالْأَجْنَبِيِّ نودې د پردی پشان شو.

تشريح:- د مبيع سره خو ځکه چې حق هم په هغې کې دي.اود بائع او مشتری سره ځکه چې دغه دواړه خصم جوړيدې شی.البته که مبيعه نې مشتری ته حواله کړې وه.نو اوس دې اجنبی شوې دې.نه دده ملکيت پاتې شوې نې قبضه،نو اوس ده سره اشهاد هسې عبث دې.بهر حال ددې دواړو طلبونو نه روسته شفعه مضبوطيږی.خومملوك به به نه وی.ددې تفصيلی بحث وړاندې تير شوې دې.

## دطلب اشهاد طريقه

وَصُورَةُ هَذَا الطَّلَبِ اودطلب صورت أَنْ يَقُولَ:إِنَّ فُلَانًا اشْتَرَى هَذِهِ الدَّارَ دا دې.چه فلانی دا کور اخستې دې. وَأَنَا شَفِيعُهَا او زه ددې شفيع يم. وَقَدْ كُنْتُ طَلَبْتُ الشُّفْعَةَ او ما شفعة طلب کړې وه. وَأَطْلُبُهَا او اوس هم کوم. الْآنَ فَاشْهَدُوا عَلَى ذَلِكَ تاسو ددې ګواهان شئ. وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ او ابويوسف رحمه الله نه منقول دی. أَنَّهُ يُشْتَرَطُ تَسْمِيَةُ الْمَبِيعِ وَتَحْدِيدُهُ چې د مبيعة نوم اخستل اودهغې حد بندی بيانول شرط دی.لِأَنَّ الْمُطَالَبَةَ لَا تَصِحُّ ځکه چې مطالبه صحي نه ده. فِي مَعْلُومٍ مکر په د معلوم څيزکې ، دې.وَالثَّالِثُ طَلَبُ الْخُصُومَةِ وَالتَّمَلُّكِ او دريم څيز، طلب الخصومة والتملك)) ، إِلَّا نَذْكُرُ كَيْفِيَّتَهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او موږ به انشاء الله ددې طريقه روسته بيان کړو.



تشريح:- دا د طلب اشهاد طريقه خودلې شوې ده.د کوم مطلب چې د ژباړه نه ښکاره دې.امام ابويوسف رحمه الله دا هم فرمائی.چه د مبيعة نوم او د هغې حدبندی دې اوکړی.چه ځومره ده.په مسکب الانهر (۱) کې دی. «وهل يشترط تسمية العقار وتحديده قيل نعم»

دلته د طلب دوې (دوه) قسمونه ذکر شول.اودريم ډول طلب الخصومة دې.او ددې دوهم نوم طب التملك دي.دا طلب به د قاضی مخکې وی.مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه ددې طريقه به روسته ذکرکولې شی.

## د طلب اشهاد په تاخير د شفعه د سقوط يا عدم سقوط حکم

قَالَ وَلَا تَسْقُطُ الشُّفْعَةُ او شفعه نه ساقطيږی بِتَأْخِيرِ هَذَا الطَّلَبِ ددې طلب د روسته کاوه په وجه . عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (۱) دابوحنيفه رحمه الله په نيز، وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او هم دا يو روايت دې.دابويوسف رحمه الله نه، وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله و پامام محمد رحمه الله فرمائيلی دی. إِنْ تَرَكَهَا شَهْرًا بَعْدَ الْإِشْهَادِ که ده د اشهاد نه تر يوې مياشتې پورې خصومت پرېښنول بَطَلَتِ الشُّفْعَةُ .نو شفعه به باطله شی. وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ رحمه الله او هم دا د زفر رحمه الله روايت دې؛ مَعْنَاهُ:إِذَا تَرَكَهَا مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ ددې معنی دا ده.چه کله دې خصومت بغير د عذر نه پريږدی.

حل اللغة ① التاخير:ورستوالې ② الترك:پرېښنول ③ تسقط: ساقطيږی

تشريح:- وړاندې تيرشو.چه د طلبينو نه روسته په شفعه کې مضبوطتيا پيدا کيږی.نو امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی.او دامام ابويوسف رحمه الله هم يو روايت دا دې.چه په طلب خصومت کې په تاخير سره شفعه نه باطليږی.احمد اوامام زفر رحمه الله فرمائی.چه که يوه مياشت روستو والې نې اوکړلو.نوشفعه باطليږی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ اوابويوسف رحمه الله نه دوهم روايت دې أَنَّهُ إِذَا تَرَكَ الْمُخَاصَمَةَ فِي مَجْلِسٍ مِنْ مَجَالِسِ الْقَاضِي.چه کله ده د قاضی د مجلسونونه په يو مجلس کې خصومت پرېښنولو . تَبْطُلُ شُفْعَتُهُ نود ده شفعه به باطليږی. لِأَنَّهُ إِذَا مَضَى مَجْلِسٌ مِنْ مَجَالِسِهِ ځکه چې کله د قاضی په مجلسونو کې يو مجلس تير شی. وَلَمْ يُخَاصِمْ فِيهِ اخْتِيَارًا اوده په خپل اختيار سره په هغه مجلس کې مخاصمت اونکړلو. دَلَّ ذَلِكَ عَلَى إِعْرَاضِهِ وَتَسْلِيمِهِ نو دا ده د اعراض او سپارولو باندې دلالت کوی.

حل اللغة ① المخاصمة:جګړه ② مضی :تير شی ③ اعراض:ډډه کول ④ تسليم:سپارل

تشريح:- اود امام ابويوسف رحمه الله دوهم قول دا دې.چه کله شفيع ته معلومه شی.چه قاضی په فلانئ ورځ په خپل عدالت کې کينی.اوده ته څه عذر نه ووزاو ددې باوجود ده طلب خصومت اونکړلو.نو شفعه باطله شوه.ځکه چې دا په اعراض باندې دلالت کوی.او په نه اخستلوباندې.تاخير مسقط دې اوکه نه دا اختلاف په هغه وخت کې دې.کله چې تاخير بغيرد عذر نه وو.اود عذر د امله نه تاخير په اتفاق سره شفعه نه ساقطوی.نو دلته درې اقوال شول. ① د شيخينو رحمهما الله قول چې تاخير غير مسقط دې.② د امام محمداو زفر رحمه الله قول چې په يوه مياشت باندې دارومداردې.③ د ابو يوسف قول چې د قاضی د مجلس نه بغير دعذر نه اعراض مسقط دې.

## دامام محمد د قول دليل

وَجْهُ قَوْلِ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ دمحمد رحمه الله د قول وجه دا ده لَوْ لَمْ يَسْقُطْ که دا ساقط نه شی بِتَأْخِيرِ الْخُصُومَةِ مِنْهُ أَبَدًا يَتَضَرَّرُ بِهِ الْمُشْتَرِي نود خصومت دتاخير په وجه د شفيع دارخه نو مشتری ته به په دې باندې تکليف برداشت کول وی.

تشريح:- د دې ځائې نه د امام محمد د قول دليل پيش کوی.که چيرته د هيڅ مودې پورې د خصومت په تاخير سره شفعه باطله نشی.نو په دې کې مشتری ته ضرر دې.

---

(۱) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله لكن الفتوى اليوم على قول محمد رحمه الله لأنه أوفق بهذا الزمان كذا فى الكفاية (۳۱۰/۸) ومجمع الأهر (۱۰۶/٤) ور المحتار (۱۵۹/۵) نقلاًعن القول الراجح (۱۷۰/۲)-

لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ التَّصَرُّفُ خكه چې هغه لپاره به تصرف ممكن نه وى. حَذَارِ نَقْضِهِ مِنْ جِهَةِ الشَّفِيعِ ددې تصرف د ختميدو د ويرې په وجه د شفعې د طرفه، فَقَدَّرْنَاهُ بِشَهْرٍ نو موږ مقدر كړلو دا په يوه مياشت پورې، لِأَنَّهُ آجِلٌ ددې لپاره چې دا مؤخر ده. وَمَا دُونَهُ اوچه كومه دې نه كمه وى. عَاجِلٌ هغه به عاجل وى. عَلَى مَا مَرَّ فِي الْأَيْمَانِ لكه څنګه چې په ايمان كې تير شوى دى.

تشريح:- دليل دا دې. چې هغه به هيڅ كله په دې كې تصرف نشى كولې. خكه چې هغه ته به ويره وى. چه شفيع به زما تصرف ختم كړى. نو ضرورى شوه. چه په دې كې څه وخت مقرر كړې شى. نو موږ يوه مياشت مودهٔ مقرر كړه. چه ددې نه وړاندې وړاندې تاخير به مسقط نه وى. اويوه مياشت تاخيربه مسقط وى. خكه چې په هدايه كتاب الايمان كې د يوې مياشتې نه كمه مودهٔ قليل اويوه مياشت يا ددې نه زياتې كثيرشمارلې شوې ده.

## دامام ابوحنيفه (رح) دليل

وَوَجْهُ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ اودامام ابوحنيفه رحمه الله د قول وجه وَهُوَ ظَاهِرُ الْمَذْهَبِ او هم دا ظاهر مذهب دې، وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى اوهم په دې باندې فتوى ده. أَنَّ الْحَقَّ مَتَى ثَبَتَ وَاسْتَقَرَّ دا ده. چه حق كله ثابت او مضبوط شو. ، لَا يَسْقُطُ إِلَّا بِإِسْقَاطِهِ نو نه ساقطيږى مګر هغې (صاحب حق) په ساقط كاوه سره وَهُوَ التَّصْرِيحُ بِلِسَانِهِ او هغه د هغه د ژبې تصريح كول دى. كَمَا فِي سَائِرِ الْحُقُوقِ لكه څنګه چې په ټولو حقوقو كې دى. ةمَا ذُكِرَ مِنَ الضَّرَرِ اوكوم ضرر چې ذكركړې شو. وَيُشْكِلُ بِمَا نو په دې باندې اشكال شوې دې. دهغه صورت سره، إِذَا كَانَ غَائِبًا، چې كله شفيع غائب وى. ةلَا فَرْقَ فِي حَقِّ الْمُشْتَرِي بَيْنَ الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ اود مشترى په حق كې د حضراوسفر په مينځ كې څه توپير نشته، وَلَوْ عَلِمَ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ فِي الْبَلَدِ قَاضٍ اوكه دا خبره معلومه شوه. چه په ښار كې قاضى نشته، لَا تَبْطُلُ شُفْعَتُهُ بِالتَّأْخِيرِ بِالِاتِّفَاقِ نو په اتفاق سره د تاخير په وجه دده شفعه نه باطليږى. لِأَنَّهُ لَا يَتَمَكَّنُ مِنَ الْخُصُومَةِ خكه چې دې په خصومت قادر نه وو إِلَّا عِنْدَ الْقَاضِي فَكَانَ عُذْرًا مګرد قاضى مخامخ نودا عذرشو.

حل اللغة: ① متى: كله ② سائر: واړه ③ المشترى: اغستونكې ④ يتمكن: قدرت لرى

تشريح:- دا دامام ابوحنفه رحمه الله دليل دې. د كوم په اړه كې چې موږ څه بيان كړې دې. دوى فرمائى. چه اصول مقرره دا دى. چه حق كله ثابت شى. نو هغه نه ختميږى. البته دا كه صاحب حق ئې ساقط كړى. نو دا بيله خبره ده. اوپه توهماتو سره اسقاط نه كيږى. بلكه د صاحب حق زبانى صراحت پكاردې. په ټولوحقوق كې هم دا اصول دى. نو په حق شفعه كې به هم دا اصول جارى كيږى.

امام محمد رحمه الله دلته يودليل پيش كړې وو. كه شفعه ثابته نشى. نومشترى ته به نقصان رسى. د هغې خواب وركوى. كه شفيع غائب وى. نوچه كله هم هغه ته معلومه شى. نوهغه ته شفعه ملاوړى. حالانكه ضرر په هغه صورت كې هم موجوددې. نوهركله چې د شفيع د سفر په صورت كې مشترى ضرر برداشت كوى. نوچه شفيع په حضركې وى. په هغې كې ئې هم برداشت كړى. خكه چې د سفر او حضر په مينځ كې د مشترى په حق كې څه توپير نشته،

دلته د هدايه په حاشيه كې يو ښه اشكال او خواب دې. كه د عذر په وجه تاخير اوشى. نوپه اتفاق سره شفعه نه ساقطيږى. نو كه په ښار كې قاضى نه وى. او د دې په وجه تاخير راشى. نودا تاخير هم د عذر په وجه دې. نو ددې تاخر په وجه به په اتفاق سره شفعه نه باطليږى. خكه چې هركله قاضى نشته. نودې به مخاصمت په كوم خائې كې كوى؟

## په شفعه كښې د قاضى كردار

قَالَ فرمايي قدورى رحمه الله (وَإِذَا تَقَدَّمَ الشَّفِيعُ إِلَى الْقَاضِي) وچه شفيع قاضى ته راشى فَادَّعَى الشِّرَاءَ اود شراء دعى وكړى. وَطَلَبَ الشُّفْعَةَ و شفعه طلب كړى. سَأَلَ الْقَاضِي الْمُدَّعَى عَلَيْهِ نو قاضى به د مدعى عليه يعنى مشترى



نه پوښتنه اوكړى. فَإِنِ اعْتَرَفَ بِمِلْكِهِ نو كه هغه دده د ملكيت اعتراف اوكړى. الَّذِي يُشْفَعُ بِهِ د كوم د امله چې هغه شفعه طلب كوى. نو ډير ښه ده. وَإِلَّا كَلَّفَهُ بِإِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ) ګنى قاضى به هغه (شفيع لره) به د ګواه قائمولو مكلف كړى. . لِأَنَّ الْيَدَ ظَاهِرٌ مُحْتَمِلٌ خكه چې قبضه يوظاهرى سبب دې. چه په كوم كې چې احتمال دې. فَلَا تَكْفِي لِإِثْبَاتِ الِاسْتِحْقَاقِ نو هغه د استحقاق ثابتولو لپاره كافى نه دې. . قَالَ رَحِمَهُ اللَّهُ: حضرت مرغينانى رحمه الله فرمائى. يَسْأَلُ الْقَاضِي الْمُدَّعِي قَبْلَ أَنْ يُقْبِلَ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ عَنْ مَوْضِعِ الدَّارِ وَحُدُودِهَا چې قاضى به مدعى عليه (مشترى) اړخ ته دمتوجه كيدو نه وړاندې د مدعى (شفيع) نه د كور او هغې دحدود پوښتنه وكوى. ؛ لِأَنَّهُ ادَّعَى حَقًّا فِيهَا دچا په اړه كې چې ده د حق دعوه كړې ده فَصَارَ كَمَا إِذَا ادَّعَى رَقَبَتَهَا نودا داسې شوه. لكه چې دهغه د كور د رقبهٔ دعوه وكړى. (يعنى د ملكيت

حل اللغة: ① محتمل: احتمال لرونكې ② الاثبات: ثابتول ③ تكفى: كافى كيږى ④ موضع: خائې ⑤ الدار: كور

تشريح:- د دعوه لپاره ثبوت پكار دې. نو كله چې شفيع د قاضى عدالت ته اورسى. اود شراء دعوه اوكړى. شفعهٔ طلب كړى. نوقاضى به د مشترى نه تحقيق اوكړى. چه ايا هلته واقع ددې مملوك كور شته، د كوم د امله چې دې د شفعه دعوه كوى يا نه كوى. كه مشترى ددې خبرې اقرار وكړى. نو صحيح ده. ګنى قاضى به شفيع ته اووائى. چه په خپل ملكيت باندې ګواهان قائم كړه.

څوك سوال اوكړى چې د ثبوت لپاره ولې دا كافى نه ده. چه هغه كور د شفيع په قبضه كې دې؟ نوخواب دا دې چې اوكافى نه دې خكه چې په قبضه كې احتمال شته. چه په خواست سره وى. يا په كرايهٔ باندې وى. نو امر محتمل د استحقاق ثابتولو لپاره كافى نه دې.

مرغينانى رحمه الله فرمائى. چه قاضى ته كله شفيع لاړ شى. نو د ټولو نه وړاندې به د شفيع نه دا پوښتنه اوكړى. چه په كوم كور كې ته شفعهٔ دعوه كوى. دا كوم خائې دې. په كوم ښار يا كلى كې او محله كې دې. و ددې حدود اربعه څومره اوږد او څومره پلن دى. ؟كه چې شفيع دا دعوه كوى. چه په دې كې زما حق دې. اوكله چې يو كس د يو كور په اړه كې دا دعوه اوكى. چه زه ددې مالك يم. نو هلته به د هغه نه د هغې دمحل وقوع او د هغې د حدود اربعه پوښتنه كولې شى. نو دغه ډول به د شفيع نه هم پوښتنه كولې شى.

وَإِذَا بَيَّنَ ذَلِكَ يَسْأَلُهُ عَنْ سَبَبِ شُفْعَتِهِ او كله چې شفيع هغه بيان كړى. نو قاضى به د هغه نه د هغه د شفعهٔ د سبب پوښتنه اوكړى. لِاخْتِلَافِ أَسْبَابِهَا د شفعهٔ د اسباب د اختلاف د وجې، فَإِنْ قَالَ: أَنَا شَفِيعُهَا نو كه هغه اوونې. چه زه ددې شفيع يم. بِدَارٍ لِي تُلَاصِقُهَا الْآنَ د خپل دې كور د امله كوم چې ددې كور سره متصل دې. تَمَّ دَعْوَاهُ نو اوس دده دعوه پوره شوه. عَلَى مَا قَالَهُ الْخَصَّافُ رحمه الله دهغه تفصيل مطابق كوم چې خصاف رحمه الله بيان كې دې. وَذَكَرَ فِي الْفَتَاوَى تَحْدِيدَ هَذِهِ الدَّارِ او په فتاوى كې دهغه كور حد بندى هم ذكر ده الَّتِي يُشْفَعُ بِهَا أَيْضًا، د كوم د امله چې هغه شفيع جوړيږى. وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الْكِتَابِ اوموږ هغه په هغه كتاب كې بيان كړې دې ،. الْمَوْسُومِ بِالتَّجْنِيسِ وَالْمَزِيدِ . د كوم نوم چې ،، التجنيس والمزيد ،، دې.

حل اللغة: ① تلاصق: مولښتى (پيوست) وى ② تحديد: حد بيانول ③ الموسوم: نومول (نامدار) شوى

تشريح:- كله چې شفيع دا خبرې بيان كړې. نو اوس به دده نه قاضى پوښتنه اوكړى. چه د شفعهٔ سبب څه دې؟ خكه چې د شفعهٔ اسباب مختلف دى. يعنى شركت فى المبيع، اوشركت فى الحقوق او جوار، نو كله چې شفيع اوونې. چه زه د ده د جار ملاصق په وجه شفيع يم. نو اوس دده دعوه پوره شوه. نو اوس به قاضى د مشترى نه د وړاندې پشان سوال اوكړى. اما خصاف رحمه الله هغه داسې بيان كړې دې.

په فتاوى كې دى. چه د كوم كور د امله هغه شفيع جوړيږى. د هغې به هم تحديد اوكړې شى. د مرغينانى رحمه الله يو كتاب دې ،، التجنيس والمزيد ،، په هغې كې مرغينانى رحمه الله فرمائيلى دى. چه مناسب دا دى. چه شفيع داسې اووائى. چه زه شفعه ددې كور د امله طلب كوم. كوم چې ما د فلانى نه اخستې وو. چه د

هغې حدود دا دي.ځکه چې د حدودو په ذکر سره به كور معلوم شي.او كوم كور چې خرڅ كړې شوې وي.نو دهغې حدود به هم بيان كړې شي.ځكه چې دعوه هله صحيح كيږي.چه د كوم شئ دعوه كوي.هغه معلوم وي.اود هغې علم د هغې د حدودو په ذكركولو سره كيږي.

علامه عيني رحمه الله فرمائيلي دي.چه دا ضروري ده.چه شفيع كوم كور اخستې وي.د كوم د امله چې هغه د شفعة دعوه كوي.هغه د شفيع په قبضه كي راغلې وي.ګنى د بائع د حاضريدو نه بغير به په مشتري باندې د شفيع دعوه صحيح نه وي.او ددې نه روسته به قاضي د طلب اشهاد په اړه كي پوښتنه وكړي.چه څنګه ئې كړې ده.او د چا په وړاندې ئې كړې ده.كله چې شفيع دا ټولې خبرې بيان كي.نو اوس دده عوى پوره شوه.(كذا في مجمع الأنهر (۱)).

## د شفيع د ګواهانود عاجزۍ صورت

قَالَ قدوري رحمه الله فرمائي. فَإِنْ عَجَزَ عَنِ الْبَيِّنَةِ كه شفيع د ګواهانونه عاجز شو. اسْتَحْلَفَ الْمُشْتَرِي نو قاضي به د مشتري نه قسم واخلي. بِاللهِ مَا يَعْلَمُ (چه د هغې الفاظ به دا وي)په الله قسم ماته علم نشته، أَنَّهُ مَالِكٌ لِلَّذِي ذَكَرَهُ مِمَّا يُشْفَعُ بِهِ چې دې مالك دې د هغه شئ د كوم چې ده ذكر وكړو.يعنى د دې كور د كوم د وې چې دې شفيع جوړيږي مَعْنَاهُ بِطَلَبِ الشَّفِيعِ ددې معنى ده.د شفيع په طلب باندې،

تشريح:- كله چې قاضي شفيع نه د ملك په ثبوت باندې ګواهان طلب كړل.او هغه عاجز شو.نود هغه دعوه ثابته نشوه.البته كه شفيع مطالبه اوكي.نود هغه په طلب به قاضي د مشتري نه قسم واخلي.چه تا ته علم شته كه نه چې دې د دې كور مالك دې.نو هغه به قسم اوخوري.دكومې طريقه چې په كتاب كي ذكر ده.اوس دلته دوې (دوه) خبرې دي.قسم په دوې (دوه) قسمه وي.يوه على البتات او يو على العلم ،د على البتات مطلب دا دې.چه په يقين سره قسم اوخوري.اود على العلم مطلب دا دې.چه زما په علم كي داسې دي.حقيقت حال الله تعالى ته معلوم دې.او اصول دا دي.چه كله يو سړې د بل په فعل وغيره باندې قسم خوري.نو هغه قسم على العلم وي.اوكه په خپل فعل يا په خپل څيزباندې قسم خوري.هغه قسم على البتات وي.نو چونكه دلته مشتري په داسې شئ باندې قسم خوري.كوم چې د بل په قبضه كي دي.نو دا به حلف على العلم وي.حلف على البتات به نه وي.

لِأَنَّهُ ادَّعَى عَلَيْهِ مَعْنًى ځكه چې شفيع په مشتري باندې د داسې شئ دعوه وكړه. لَوْ أَقَرَّ بِهِ كه مشتري د هغې اقرار اوكړي. لَزِمَهُ نو هغه شئ به په مشتري باندې لازم شي. ثُمَّ هُوَ اسْتِحْلَافٌ عَلَى مَا فِي يَدِ غَيْرِهِ بيا دا قسم اخستل داسې شئ باندې دې.كوم چې دده نه سوا د بل چا په قبضه كي دې، فَيَحْلِفُ عَلَى الْعِلْمِ نو په علم به حلف اخستې شي.

تشريح:- دليل دا دې چې شفيع په مشتري باندې د ثبوت شفعة دعوه كړې ده.نو كه مشتري اقرار كړې وو.چه دده استحقاق شته.نو په مشتري لازم دي.چه هغه ته خپل حق وركړي.نوځكه به د شفيع د اړخه مشتري په دې د ګواهانود قائمولو نه عاجز شي.نو ددې دوې (دوه) صورتونه دي. ① چه مدعى عليه اقرار اوكړي. ② د عدم اقرار په صورت كي قسم لازمي دې.نو ځكه به دلته د قاعده مطابق په مدعى عليه باندې يمين لازمي وي.

## د مشتري د قسم نه انكار.او د شفيع په ګواهانو قائمولو سره د شفيع د ملك ثبوت

فَإِنْ نَكَلَ نوكه دا (مشتري د قسم نه) انكار اوكړي. أَوْ قَامَتْ لِلشَّفِيعِ بَيِّنَةٌ يا د شفيع لپاره بينه قائم كړې شي. ثَبَتَ مِلْكُهُ فِي الدَّارِ الَّتِي يُشْفَعُ بِهَا نو د شفيع ملك به ثابتيږي.په هغه كوركي دكوم په وجه چې هغه شفيع



جوړيږي. وَثَبَتَ الْجِوَارُ او ګاونډتوب به ثابتيږي. فَبَعْدَ ذَلِكَ سَأَلَهُ الْقَاضِي يَعْنِي الْمُدَّعَى عَلَيْهِ بيا به ددې نه روسته قاضي د مدعى عليه (مشتري) نه پوښتنه كوي. هَلِ ابْتَاعَ أَمْ لَا، چې آيا ده اخستې دې اوكه نه؟ فَإِنْ أَنْكَرَ الِابْتِيَاعَ نو كه مشتري د اخستلو انكار اوكړي. قِيلَ لِلشَّفِيعِ نوشفيع ته به وئيلې شي أَقِمِ الْبَيِّنَةَ.چه بينه قائم كړې. لِأَنَّ الشُّفْعَةَ لَا تَجِبُ ځكه چې شفعه نه ثابتيږي. إِلَّا بَعْدَ ثُبُوتِ الْبَيْعِ خو د بيع د ثبوت نه روسته وَثُبُوتُهُ بِالْحُجَّةِ ، او د بيع ثبوت به حجت سره وي.

تشريح:- په مخكنۍ مسئله كي د مشتري په ذمه قسم واجب كړې شوې وو.نو كه هغه انكار اوكړي.يا شفيع ګواهان قائم كړي.په دواړو صورتونو كي كه هر يو وي.د شفيع ملكيت به په هغه كور كي ثابتيږي.د كوم په وجه چې هغه د شفعې مستحق جوړيږي.هركله چې خبره ددې ځائې پورې ثابته شوه.نو اوس به قاضي د مشتري نه پوښتنه كوي.چه فلاني خپل كور په رشتيا خرڅ كړې دې اوكه نه؟ كه هغه اقرار اوكړي.نو صحيح ده.ګنى د انكار په صورت كي په شفيع باندې ګواهان قائمول ضروري دي.ځكه چې د شفعې د ثبوت شرط بيع دې.،، كما مر،، نو د بيع د ثبوت لپاره حجت پكار دې.او حجت هم دا دې.كوم چې ذكر شو.يعنى د مشتري اقرار يا (دده د انكار په صورت كي) بيا د شفيع د اړخه ګواهان قائمول.

## كه شفيع د ګواهانو نه عاجز شنو قاضي به د مشتري نه په كومو الفاظو سره قسم اخلي؟

قَالَ (فَإِنْ عَجَزَ عَنْهَا نوكه عاجز شي.شفيع د ګواهانو قائمولو نه، اسْتَحْلَفَ الْمُشْتَرِي بِاللهِ مَا ابْتَاعَ نو قاضي به د مشتري نه قسم اخلي.( چې ددې الفاظ به دا وي) په خدائې قسم! ده نه دې اخستې، أَوْ بِاللهِ مَا اسْتَحَقَّ عَلَيْهِ فِي هَذِهِ الدَّارِ شُفْعَةً مِنَ الْوَجْهِ الَّذِي ذَكَرَهُ) يا په خدائې قسم! د شفيع استحقاق نشته (په ما باندې) په دې كوركي د شفعې په دې طريقه كومه چې ده ذكركړې ده. فَهَذَا عَلَى الْحَاصِلِ نو دا قسم په حاصل باندې دې. وَالْأَوَّلُ عَلَى السَّبَبِ اوړومبې (قسم) په سبب باندې دې. وَقَدِ اسْتَوْفَيْنَا الْكَلَامَ فِيهِ فِي الدَّعْوَى، او موږ په دې اړه كي كلام په تفصيل سره بيان كړې دې.په كتاب الدعوه كي ، وَذَكَرْنَا الِاخْتِلَافَ بِتَوْفِيقِ اللهِ، او موږ د الله په توفيق اختلاف ذكر كړې دې. وَإِنَّمَا يُحَلِّفُهُ عَلَى الْبَتَاتِ او قاضي به مشتري ته قطعي (يقيني) قسم وركوي. لِأَنَّهُ اسْتِحْلَافٌ عَلَى فِعْلِ نَفْسِهِ ځكه چې دا دده په فعل باندې قسم وركول دي. وَعَلَى مَا فِي يَدِهِ أَصَالَةً او په هغه شئ باندې (قسم وركول دي) كوم چې اصالة (بالفعل) دده په قبضه كي دې. ،،اصالة،، وَفِي مِثْلِهِ يُحَلِّفُ عَلَى الْبَتَاتِ او دده په فعل كي قطعي قسم وركولې شي.

حل اللغة: ① عجز: عاجزه شو ② ابتاع: خرڅ كړي ③ البتات: يقيني قطعي طور ④ استحلاف: قسم وركول

تشريح:- كه شفيع په اخستلو باندې ګواهان قائم نكړې شي.نو مشتري څخه به قسم اخستلې شي.بيا دلته امام قدوري رحمه الله د قسم دوې (دوه) جملې استعمال كړې دي. ① چې په دې كي د اخستلو نفى ده. ② چې په دې كي د شفيع د استحقاق نفى ده.ددې دواړو په اړه كي مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل.چه كوم ځائې د بيع نفى شوې ده.نو دا د سبب نفى ده.چه دې ته هغوى ،، حلف على السبب،، وئيلې دې.او كوم ځائې چې د استحقاق نفى ده.نو په هغې كي د حاصل سبب نفى ده.چه دې ته هغوى ،،حلف على الحاصل،، سره تعبير كړې دې.دويمه خبره مرغيناني رحمه الله دا بيان كړې ده.چه دلته د مشتري نه دده په ذاتي فعل باندې قسم اخستلې شي.او د هغه شئ په اړه كي قسم اخستلې شي.كوم چې دده په قبضه كي دې.د بل په فعل باندې قسم نه دې.په دې وجه د مذكوره قاعدې موافق دا ،،حلف على العلم،، نه وي.بلكه ،، حلف على سبيل البتات،، وي.يعنى قطعي قسم به وي.بيا مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه موږ په دې مسئله باندې تفصيلي بحث په ،، كتاب الدعوى فصل فى كيفية اليمين و الإستحلاف،، دريم ټوك كي كړې دې.او د طرفينو او د امام ابويوسف رحمه الله چې په ،، حلف على السبب،، او،، حلف على الحاصل،، كي كوم اختلاف دې.هغه موږ ذكركړې دې.

## شفیع لپاره په مجلس د قاضي کښې ثمن حاضرول ضروري دي اوکه نه؟

قَالَ فرمانیلي دي امام قدوري رحمه الله، (وَتَجُوزُ الْمُنَازَعَةُ فِي الشُّفْعَةِ) او په شفعه کي منازعت جائز دي. وَإِنْ لَمْ يُحْضِرِ الشَّفِيعُ الثَّمَنَ إِلَى مَجْلِسِ الْقَاضِي اګرچه شفیع د قاضي په مجلس کي ثمن حاضر نکړي. فَإِذَا قَضَى الْقَاضِي بِالشُّفْعَةِ بیا هرکله چي قاضي د شفعې فیصله اوکړله. لَزِمَهُ إِحْضَارُ الثَّمَنِ نو شفیع له لازم دي.چه ثمن حاضر کړي. وَهَذَا ظَاهِرُ رِوَايَةِ الْأَصْلِ او هم دا د مبسوط روایت ظاهر دي.

تشریح:- شفیع لپاره ضروري نه ده.چه ثمن راواخلي.او د قاضي په مجلس کي حاضر شي.یعني د ثمن راوړلو نه بغیر منازعات او خصومات (مقدمې) جائز دي.البته کله چي د قاضي فیصله اوشوه.نو اوس ثمن حاضرول لازمي دي.په دي باندي مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د مبسوط روایت ظاهر هم دې حکم اړخ ته اشاره کوي.یعني مبسوط کي دا مسئله صراحت سره داسې ذکر نه ده.البته هلته د عبارت نه هم دا خبره ښکاره کيږي.چه د ثمن حاضرولو نه بغیر منازعت جائز دې.ځکه د مبسوط عبارت داسې دي چي «للمشتری أن یحبس الدار حتی یستوفی الثمن منه أو من ورثته ان مات»

وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ لَا يَقْضِي او د امام محمد رحمه الله نه نقل دي.چه قاضي دې فیصله نه کوي حَتَّى يُحْضِرَ الشَّفِيعُ الثَّمَنَ تردي چي شفیع ثمن حاضر کړي. وَهُوَ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او هم دا د امام ابوحنیفه رحمه الله نه د حسن رحمه الله روایت دي. لِأَنَّ الشَّفِيعَ عَسَاهُ يَكُونُ مُفْلِسًا ځکه چي شفیع کله غریب وي فَيَتَوَقَّفُ الْقَضَاءُ عَلَى إِحْضَارِهِ.نو د قاضي فیصله به موقوف وي.د ثمن په حاضرولو باندې، حَتَّى لَا يَتْوِيَ مَالُ الْمُشْتَرِي چي د مشتري مال هلاك نشي. وَجْهُ الظَّاهِرِ د ظاهرالروایة دلیل دا دي أَنَّهُ لَا ثَمَنَ لَهُ عَلَيْهِ چي مشتري لپاره شفیع باندې هیڅ ثمن نشته قَبْلَ الْقَضَاءِ.د قاضي د فیصلې نه وړاندې، ،وَلِهَذَا لَا يُشْتَرَطُ تَسْلِيمُهُ، او هم په دې وجه ثمن سپارل شرط نه دي. فَكَذَا لَا يُشْتَرَطُ إِحْضَارُهُ دغه ډول دده (ثمن) حاضرول شرط نه دي.

حل اللغة:① عسی:قریبه ده ② مفلس:غریب③ تسلیم: سپارل④ احضار:حاضرول⑤ یتوقف:موقوف کیږي

تشریح:- امام محمد رحمه الله فرمائي.چه د ثمن حاضرولو نه بغیر به قاضي فیصله نه کوي.او د امام محمد رحمه الله نه حسن رحمه الله هم دغه ډول روایت کړې دي.د امام محمد رحمه الله دلیل دا دي.چه کیداې شي.شفیع مفلس وي.نو که فیصلې لپاره ثمن حاضرولو ته شرط اووایو.نو فیصله به په ثمن حاضرولو باندې موقوف شي.چه د مشتري مال هلاك نشي.چه دکور فیصله خو شفیع لپاره اوشوه.او تر اوسه پورې هغه ثمن ادا کړې نه دي.نو هغه به په انتظار کي ناست وي.هم دا هلاکت سره تعبیر کړې شوې دي.د ظاهرالروایة دلیل دا دي.چه د قاضي د فیصلې نه وړاندې شفیع باندې ثمن ادا کول واجب نه دي.نو هرکله چي د ثمن ادا کول شرط نه دي.نو ثمن اخستل او راوړل (او د قاضي مجلس ته حاضرول) به هم شرط نه وي.

## مشتري ته ترکومه پورې حق شته، چي مبیع د حواله کولو نه منع لري

وَإِذَا قَضَى لَهُ بِالدَّارِ او هرکله چي شفیع لپاره د کور فیصله اوکړې شوه. فَلِلْمُشْتَرِي أَنْ يَحْبِسَهُ نو مشتري ته حق شته.چه کور منع کړي. حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ تردې چي ثمن وصول کړي. وَيَنْفُذُ الْقَضَاءُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ أَيْضًا، او د امام محمد رحمه الله په نیز به هم فیصله نافذ وي. لِأَنَّهُ فَصْلٌ مُجْتَهَدٌ فِيهِ ځکه چي دا فیصله مجتهد فیه ده. وَوَجَبَ عَلَيْهِ الثَّمَنُ او په شفیع به ثمن واجب وي فَيُحْبَسُ فِيهِ نو منع کولې به شي مبیع، د ثمن په اړه کي ، بَعْدَمَا قَالَ لَهُ ادْفَعِ الثَّمَنَ إِلَيْهِ وروسته ددې نه چي ده ته قاضي اووئیل.چه مشتري ته ثمن ورکړه. فَلَوْ أَخَّرَ أَدَاءَ الثَّمَنِ نو که شفیع تاخیر اوکړو.د ثمن په ادا کاوه کي، لَا تَبْطُلُ شُفْعَتُهُ نو د شفیع شفعه به نه باطلیږي. لِأَنَّهَا تَأَكَّدَتْ ځکه چي دا (شفعه) مضبوطه شوې ده، بِالْخُصُومَةِ عِنْدَ الْقَاضِي.د قاضي په وړاندې خصومت کاوه سره.

حل اللغة:① یحبس:بند کړي② ینفذ:نافذ کیږي ③ تاکدت:مضبوطه شوه④ اداء: ورکول⑤ الخصومة: جګړه



تشریح:- هرکله چي د ثمن حاضرولو نه بغیر خصومت (جګړه) جائز ده... کما مر،، نو مشتري ته حق شته.چه ترکومه پورې شفیع ثمن ادا نکړي.تر هغه وخته پورې دې مبیع ځان سره اوساتي.د ثمن حاصلولو پورې دې مبیع شفیع ته نه حواله کوي.

که څوك دا سوال اوکړي چي د امام محمد رحمه الله په نیز خو د ثمن حاضرولو نه بغیر فیصله جائز نه ده.نو (مبیع) منع کول ولې دي؟ نو د دې ځواب دا دې چي هغوی ثمن حاضرولو ته ضروري وئیلي دي.خو دا مسئله مجتهد فیه ده.نوکه د ثمن حاضرولو نه بغیر قاضي فیصله اوکړله.نو فیصله به نافذ کیږي.که قاضي شفیع ته اووئیل.چه ثمن ادا کړه.بیا هم شفیع تاخیر اوکړو.بیا به هم شفعه نه باطلیږي.ځکه چي د قاضي په وړاندې د خصومت په وجه اوس شفعه مضبوطه شوه.نو اوس به دا نه باطلیږي.

## شفیع د بائع سره کله مخاصمت کولې شي؟

قَالَ امام قدوري رحمه الله فرمانیلي دي. (وَإِنْ أَحْضَرَ الشَّفِيعُ الْبَائِعَ او که شفیع (حاکم سره) بائع حاضر کړو. ،وَالْمَبِيعُ فِي يَدِهِ حالانکه مبیع د بائع په قبضه کي دي. فَلَهُ أَنْ يُخَاصِمَهُ فِي الشُّفْعَةِ،نو شفیع ته حق شته.چه هغه د شفعې په اړه کي بائع سره مخاصمت اوکړي. لِأَنَّ الْيَدَ لَهُ ځکه چي د هغه قبضه ده. وَهِيَ يَدٌ مُسْتَحِقَّةٌ) او دا قبضه مستحقه ده. وَلَا يَسْمَعُ الْقَاضِي الْبَيِّنَةَ او قاضي به ګواهان نه آوري. حَتَّى يَحْضُرَ الْمُشْتَرِي تردې چي مشتري حاضر شي. فَيَفْسَخُ الْبَيْعَ بِمَشْهَدٍ مِنْهُ بیا به قاضي د مشتري په موجودګۍ کي بیع فسخ کوي. وَيَقْضِي بِالشُّفْعَةِ عَلَى الْبَائِعِ او د شفعې فیصله به بائع باندې کوي. وَيَجْعَلُ الْعُهْدَةَ عَلَيْهِ،او ذمه داري به هم هغه ته ورسپاري. لِأَنَّ الْمِلْكَ لِلْمُشْتَرِي ځکه چي ملکیت د مشتري دې. وَالْيَدُ لِلْبَائِعِ،او قبضه د بائع ده. وَالْقَاضِي يَقْضِي بِهِمَا لِلشَّفِيعِ او قاضي شفیع لپاره ددې دواړو فیصله کوي فَلَا بُدَّ مِنْ حُضُورِهِمَا، نو د دواړو موجود کیدل ضروري دي.

حل اللغة:① اي یخاصم:چه جګړه اوکړي ② ینفسخ:فسخ کیږي③ حضور:حاضریدل④ لابد: ضروري دي»

تشریح:- که مبیع تر اوسه پورې د بائع په قبضه کي وي.نو شفیع لپاره جائز دي.چه بائع سره خصومت اوکړي.او هم دا د قاضي وړاندې حاضر کړي.خو چونکه ملیکت د مشتري دې.په دې وجه ترکومه پورې چي هغه مجلس ته رانشي.قاضي به ګواهان نه اوري.بلکه د هغه (مشتري) د راتلو نه روسته به ئې اوري.بیا به د مشتري په وړاندې بیع فسخ کوي.او د شفعې فیصله به کوي.او په ذکر شوی صورت کي به فیصله په بائع وي.او هم هغه به ددې ذمه دار وي.بهرحال د بائع او مشتري دواړو حاضریدل ضروري دي.وجه ددې دا ده.چه د قاضي فیصله دا ثابتوي.چه شفیع لپاره ملیکت هم وي.او قبضه هم وي.حالانکه قبضه د بائع ده.او ملك د مشتري دې.که په دوی دواړو کي د یوکس په غیرموجودګۍ کي فیصله اوکړې شي.نو ،، قضاء علی الغائب،، به لازمیږي.او دا جائز نه ده.

فائده* ،،قبضه مستحقه،، یعني ،،قبضه معتبره،، د مالکانو د قبضې په شان یعني د مودع او مستعیر قبضه نه ده.،،مشهد،، مصدر میمي دې.د شهود او حضور په معنی کي دې.ذمه داري سپارلو ته وائي.یعني که په دې (مبیع) کي د چا استحقاق ثابت شي.نو د ثمن ضمان به په بائع وي.ځکه چي ثمن باندې قبضه کونکې هم هغه دې.

## شفیع د بائع سره کله مخاصمت نشي کولې؟

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الدَّارُ قَدْ قُبِضَتْ په خلاف ددې صورت کله چي په کور باندې قبضه شوې وي. حَيْثُ لَا يُعْتَبَرُ حُضُورُ الْبَائِعِ په دې حیثیت سره چي د بائع حاضریدل معتبر نه وي. لِأَنَّهُ صَارَ أَجْنَبِيًّا ځکه چي هغه اجنبي شو. إِذْ لَا يَبْقَى لَهُ يَدٌ وَلَا مِلْكٌ چي نه دهغه قبضه شته،او نه ملك.

تشریح:- په مخکنۍ مسئله کي شفیع ته حق وو.چه بائع سره مخاصمت اوکړي.خو دا صرف هغه وخت دې.چه

مبیع دهغه په قبضه کي وی.گنی که مبیع د مشتری په قبضه کي دي.نو بائع بالکل اجنبی دي.نه د هغه ملکیت پاته دي.او نه قبضه پاته ده.نو لکه ځنګه چي هغه سره مخاصمت نشی کیدي.دغه ډول مشتری باندي د قبضي کاوه لپاره د بائع حاضریدو اړتیا نشته.او په مخکنۍ مسئله کي بائع سره د مشتری د حاضریدو اړتیا د هغه د ملکیت په وجه وو.او دلته (قبضه او ملکیت) دواړه نشته.

### د قاضي په مجلس کښي د مشتري حاضري ولې ضروري ده؟

وَقَوْلُهٗ او د امام قدوری رحمة الله علیه قول فَيَفْسَخُ الْبَيْعَ بِمَشْهَدٍ مِنْهُ اِشَارَةٌ اِلٰى عِلَّةٍ أُخْرٰى،، فیفسخ البیع بمشهد منه،، اشاره ده. دوهم علت اړخ ته، وَهِيَ أَنَّ الْبَيْعَ فِي حَقِّ الْمُشْتَرِي اِذَا كَانَ يَنْفَسِخُ او هغه دا دي.چه بیع د مشتری په حق کي کله چي فسخ شی لَابُدَّ مِنْ حُضُوْرِهٖ نو د هغه حاضریدل ضروری دی لِيَقْضِيَ بِالْفَسْخِ عَلَيْهِ چي په هغه باندي فیصله اوکړي شی.

تشریح:- په متن کي د امام قدوری رحمة الله علیه دا قول راغلي وو.﴿فیفسخ....الخ﴾ نو مرغینانی رحمة الله علیه فرمائی.چه دا د مشتری د حاضرولو دوهم علت اړخ ته اشاره ده.یعنی د مشتری حاضریدل ضروری دی.ځکه چي ددي دوي (دوه) علتونه دی.یو هغه کوم چي وړاندي تیر شوي دي.چه ملکیت د مشتری دي.او قبضه د بائع ده.او قاضی به ددي دواړو فیصله د شفیع په حق کي کوی.نو ددوی دواړو حاضریدل ضروری دی.او دوهم علت دا دي.چه د قاضی فیصلي سره د مشتری په حق کي بیع فسخ کیږي.په نورو الفاظو کي داسي چي د مشتری په خلاف به فیصله کیږي.نو که هغه موجود نه وی.نو ،، قضاء علی الغائب،، لازمیږي.او دا جائز نه ده.په دي وجه د هغه حاضریدل ضروری دی.

### چه په بیع فسخ کولو سره شفعه ختمیږي نو بیا شفیع ته شفعه ولې ملاویږي؟

ثُمَّ وَجْهُ هٰذَا الْفَسْخِ الْمَذْكُوْرِ بیا ددي مذکوره فسخ وجه دا ده. أَنْ يَنْفَسِخَ فِي حَقِّ الْاِضَافَةِ چي د مشتری په اړخ د اضافت په حق کي فسخ اوشی. لِامْتِنَاعِ قَبْضِ الْمُشْتَرِي بِالْأَخْذِ بِالشُّفْعَةِ په شفعه کي د اخستلو په وجه، د مشتری د قبضي ممتنع کیدو په وجه، وَهُوَ يُوْجِبُ الْفَسْخَ او دا (ممتنع کیدل) فسخ واجبوی. اِلَّا أَنَّهٗ يَبْقٰى أَصْلُ الْبَيْعِ لِ خو تحقیق دا دي.چه اصل بیع به پاته وی تَعَذُّرِ انْفِسَاخِهٖ ددي د فسخ کاوه د متعذر کیدو په وجه، لِأَنَّ الشُّفْعَةَ بِنَاءٌ عَلَيْهِ ځکه چي شفعه هم په دي مبنی ده. وَلٰكِنَّهٗ تَتَحَوَّلُ الصَّفْقَةُ اِلَيْهِ خو معامله به شفیع اړخ ته ورګرځولي شی. وَيَصِيْرُ او داسي به ګرځی. كَأَنَّهٗ هُوَ الْمُشْتَرِي مِنْهُ کویا چي شفیع د بائع نه اخستونکي دي. فَلِهٰذَا يَرْجِعُ بِالْعُهْدَةِ عَلَى الْبَائِعِ په دي وجه به ذمه داری بائع اړخ ته راجع کیږي.

تشریح:- که څوك اعتراض اوکړی چي د شفعي د ثبوت مدار په بیع باندي دي. لکه ځنګه چي وړاندي دا خبره راغلي ده.او دلته بیع فسخ اوګرځولي شوه.نو د شفعي بنا (بنیاد) اونړولي شو.نو بیا شفیع ته شفعه ملاویدل پکار نه ده؟ نو ددي خواب دا دي چي بیع به بالکلیه نه فسخ کیږي.بلکه د مشتری په حق کي به فسخ کیږي.ځکه چي هرکله شفیع دا په شفعه کي اخستل غواړی.نو بیا د مشتری قبضه ممنوع اوګرځیدله .یعنی دمشتری په حق کي د بیع مقصد ثابت نشو.حالانکه د هر کار یو مقصد وی.نوهرکله چي دا مقصد پوره نشو.نو بیع د مشتری په حق کي فسخ کول لازم شو.خو چونکه شریعت شفیع ته د شفعي حق ورکړي دي.په دي وجه د اصل عقد بیع بقاء هم ضروری ده.نو د بائع ایجاب پاته اوساتلي شو.او د بائع نه براه راست (بغیر واسطي) شفیع اخستونکي اوګرځولي شو.ګنی ددي نه بغیر به د سره شفعه هم نه ملاویږي.په دي وجه ئي اوونیل.چه اصل بیع موجود ده.خو د عقد نسبت بدل شو.د مشتری په ځائي شفیع اړخ ته اوشو.هم دا وجه ده.چه د عقد ذمه واری په بائع باندي اچولي شوي ده.

### د مشتری د ملکیت او قبضي په صورت کښي به شفیع،مبیع د مشتری نه وصولوي



بِخِلَافِ مَا په خلاف ددي صورت اِذَا قَبَضَهُ الْمُشْتَرِي کله چي مشتری په دي باندي قبضه کړي وی. فَأَخَذَهٗ مِنْ يَدِهٖ نو اخلی به شفیع مبیع، د مشتری د قبضي نه، حَيْثُ تَكُوْنُ الْعُهْدَةُ عَلَيْهِ په دي حیثیت سره چي وی به ذمه داری په مشتری باندي، لِأَنَّهٗ مَلَكَهٗ بِالْقَبْضِ ځکه چي د قبضي په وجه دهغه ملکیت پوره شو. وَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ امْتَنَعَ قَبْضُ الْمُشْتَرِي او په ړومبی صورت کي دمشتری قبضه ممتنع شوه. وَأَنَّهٗ يُوْجِبُ الْفَسْخَ او دا (ممتنع کیدل) فسخ کول غواړی وَقَدْ طَوَّلْنَا الْكَلَامَ فِيْهِ فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهٰى بِتَوْفِيْقِ اللّٰهِ تَعَالٰى او موږ په دي سلسله کي اوږد کلام د الله تعالی په توفیق سره ،،کفایة المنتهی،، کي کړي دي.

حل اللغة* ① العهدة:ذمه واری ② امتنع:منع دي ③ طولنا:موږ اوږد کړي دي

تشریح:- مذکوره تفصیلات هغه وخت وو.کله چي مبیع د بائع په قبضه کي وی.او که د مشتری په قبضه کي وی.نو اوس ملکیت او قبضه دواړه هم دده دی.نو په دي وخت به شفیع مبیع، د مشتری نه اخلی.او ذمه داری به هم په مشتری وی.په ړومبی صورت کي د قبضي ممنوع کیدو په وجه د مشتری په حق کي فسخ ضروری شوي وه.دلته داسي نه ده.بیا مرغینانی رحمة الله علیه اوفرمائیل.چه په مذکوره فیصله کي تفصیل سره کلام زموږ په کتاب ،،کفایة المنتهی،، کي ذکر دي.

### وکیل بالشراء د شفیع مقابل دي

قَالَ امام قدوری رحمة الله علیه اوفرمائیل. وَمَنِ اشْتَرٰى دَارًا لِغَيْرِهٖ اوچا چي واخستلو یو کور د خپل ځان نه علاوه دپاره، فَهُوَ الْخَصْمُ لِلشَّفِيْعِ نو هم دي به د شفیع خصم وی. لِأَنَّهٗ هُوَ الْعَاقِدُ ځکه چي عاقد هم دي دي. وَالْأَخْذُ بِالشُّفْعَةِ مِنْ حُقُوْقِ الْعَقْدِ او په شفعه کي اخستل د عقد د حقوقو څخه دي. فَيَتَوَجَّهُ عَلَيْهِ.نو دا حق به مشتری باندي متوجه وی. قَالَ امام قدوری رحمة الله علیه اوفرمائیل. اِلَّا أَنْ يُسَلِّمَهَا اِلَى الْمُوَكِّلِ خو دا چي وکیل دا کور موکل ته اوسپاری. لِأَنَّهٗ لَمْ يَبْقَ لَهٗ يَدٌ ځکه چي هغه لپاره نه قبضه پاته پاتي شوه. وَلَا مِلْكٌ اونه ملکیت (پاتي شو). فَيَكُوْنُ الْخَصْمُ هُوَ الْمُوَكِّلُ نو خصم به موکل وی. وَهٰذَا، لِأَنَّ الْوَكِيْلَ كَالْبَائِعِ مِنَ الْمُوَكِّلِ اودا ځکه چي وکیل داسي دي.لکه د موکل په لاس خرخونکي، عَلٰى مَا عُرِفَ لکه ځنګه چي معلومه ده فَتَسْلِيْمُهٗ اِلَيْهِ نو د وکیل موکل اړخ ته سپارل داسي دی كَتَسْلِيْمِ الْبَائِعِ اِلَى الْمُشْتَرِي.لکه د بائع مشتری ته سپارل ،فَتَصِيْرُ الْخُصُوْمَةُ مَعَهٗ نو خصومت به موکل سره وی.

حل اللغة* ① دار:کور ② العاقد:عقد کونکي ③ ید:قبضه ④ ان یسلم:چه اوسپاری﴾

تشریح:- اصول دا دي.چه په بیع کي وکیل اړخ ته حقوق د عقد راجع وی.نوکه یوکس د بل چا وکیل جوړ شو.او کور ئي واخستلو.او تر اوسه پوري ئي موکل ته حواله نکړو.نو شفیع وکیل سره خصومت کولي شی.او شفعه اخستي شی.ځکه چي شفعه کي اخستل هم د عقد بیع یو حق دي.او حقوق وکیل اړخ ته راجع کیږي.البته که وکیل موکل ته سپارلي دي.نو آوس به مخاصمت وکیل سره نه کیږي.ځکه چي نه دهغه قبضه پاتي شوه.اونه ملکیت پاتي شو.ځکه چي وکیل او موکل ، د بائع او مشتری په درجه کي دی.نوکوم حکم چي هلته کي وو.هم هغه به په وکیل او موکل کي وی.

اِلَّا أَنَّهٗ مَعَ ذٰلِكَ قَائِمٌ مَقَامَ الْمُوَكِّلِ خو هغه (وکیل) د موکل قائم مقام دي. فَيُكْتَفٰى بِحُضُوْرِهٖ فِي الْخُصُوْمَةِ قَبْلَ التَّسْلِيْمِ نو د سپارلو نه مخکي خصومت کي دده په حاضریدو باندي به اکتفاء کولي شی. وَكَذَا اِذَا كَانَ الْبَائِعُ وَكِيْلَ الْغَائِبِ او هم دغه ډول کله چي بائع د غائب وکیل وی. فَلِلشَّفِيْعِ أَنْ يَأْخُذَهَا مِنْهُ نو شفیع لپاره حق شته.چه کور د بائع نه واخلی. اِذَا كَانَتْ فِي يَدِهٖ کله چي د هغه په قبضه کي وی. لِأَنَّهٗ عَاقِدٌ ځکه چي هغه عاقد دي. وَكَذَا اِذَا كَانَ الْبَائِعُ وَصِيًّا لِمَيِّتٍ او هم دغه ډول کله چي بائع د مړی وصی وی. فِيْمَا يَجُوْزُ بَيْعُهٗ د هغه څیزونو په سلسله کي چرته چي دده بیع جائز ده. لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړي دي.

**تشريح:** كه څوك سوال اوكړي چې هركله چې وكيل د بائع په درجه كي دې.نو د بائع په صورت كي خو د مشتري حاضريدل ضروري وو.آيا وكيل سره د مؤكل حاضري هم ضروري ده.او كه نه ده.نو وكيل او مؤكل د بائع په د رجه كي څنګه شو؟

**خواب:** بائع د مشتري نائب نه وو.او وكيل د خپل مؤكل نائب دې.اوهركله چې نائب موجود دی.نو د اصل د حاضريدو څه اړتيا دې؟ په دې وجه دواړو كي توپير اوشو.كه مشتري وكيل وی.بيا هم دا حكم دې.اوكه بائع وكيل وی.بيا هم دا حكم دې.چه شفيع د بائع د وكيل نه شفعه طلب كړی.تركومه پورې چې دا د هغه په قبضه كي دې.ګنی د مشتري نه دې طلب كړی.او د وصی هم دا حكم دې.چه هركله وصی خرڅ كړو.او تر اوسه پورې مبيع دده په قبضه كي دې.نو شفيع د وصی سره مخاصمت كولې شی.

**تنبيه:** وصي چا ته وائی؟ «الوصی شرعاً من يقام لأجل الحفظ و التصرف فی مال الرجل و أطفاله بعد الموت والفرق بين الوصی و القيم أن الوصی يفوّض إليه الحفظ و التصرف و القيّم يفوّض إليه الحفظ دون التصرف «كذا فی قواعد الفقه ص»» بعضو خايونو كي د وصی تصرف جائز نه دې.مثلاً د پنځه ويشتو زرو شئ په يو زر كي خرڅ كړی.دغه ډول كه وارثان بالغ وی.نو بيا به هم د وصی بيع جائز نه وی.كه په مړی باندې پور نه وی.نو مرغينانی رحمه الله ..فيما يجوز بيعه.. ونيلو سره دا خودلی دی.چه وصی د بائع په درجه كي وی.چرته چې دده تصرف جائز وی.

## د شفيع لپاره د فيصلې په صورت كښې به دده لپاره خيار روْيت وي اوكه نه؟

**قَالَ** امام قدوري رحمه الله فرمائيلی دی **وَإِذَا قَضَى الْقَاضِي لِلشَّفِيعِ بِالدَّارِ** اوكله چې شفيع لپاره د كور فيصله اوكړې شوه. **وَلَمْ يَكُنْ رَآهَا** حالانكه هغه دا كتلې نه وو. **فَلَهُ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ** نو شفيع لپاره خيار روْيت شته. **وَإِنْ وَجَدَ بِهَا عَيْبًا** او كه هغه په دې كور كي عيب اوموم. **فَلَهُ أَنْ يَرُدَّهَا** نو هغه لپاره ددې د واپس كاوه حق شته. **وَإِنْ كَانَ الْمُشْتَرِي شَرَطَ الْبَرَاءَةَ مِنْهُ** اګرچه مشتري د عيب نه د براءت شرط لګولې وی. **لِأَنَّ الْأَخْذَ بِالشُّفْعَةِ بِمَنْزِلَةِ الشِّرَاءِ** خكه چې شفعه كي اخستل،د اخستلو په درجه كي دی. **أَلَا يَرَى أَنَّهُ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ** آيا نه ګورې، چې دا .. مبادلة المال بالمال.. ده. **فَيَثْبُتُ فِيهِ الْخِيَارَانِ** نو په دې (شفعه كي اخستلو) كي به خيار (د روْيت او عيب دواړه) ثابتيږی. **كَمَا فِي الشِّرَاءِ** لكه څنګه چې شراء كي (ثابتيږی). **وَلَا يَسْقُطُ بِشَرْطِ الْبَرَاءَةِ مِنَ الْمُشْتَرِي** او د مشتري د براءت شرط لګولو سره به خيار نه ساقطيږی. **وَلَا بِرُؤْيَتِهِ** او نه د مشتري په كتلو سره (خيار ساقطيږی)، **لِأَنَّهُ لَيْسَ بِنَائِبٍ عَنْهُ** خكه چې مشتري د شفيع نائب نه دې. **فَلَا يَمْلِكُ** نو مشتري به مالك نه وی. **إِسْقَاطَهُ** د شفيع د خيار ساقطولو

**حل اللغة:** ① **وجد:** مومی ② **ثبت:** ثابتيږی ③ **يسقط:** ساقطيږی ④ **روية:** ليدل ⑤ **اسقاط:** ساقطول»

**تشريح:** لكه څنګه چې بيع كي خيار روْيت اوخيار عيب ملاويږی.نو په شفعه كي به هم ملاويږی.خكه چې شفيع ګويا دا د مشتري نه اخلی.نو د اخستلو احكام به دلته كي جاری كيږی.كه په اخستلو كي بائع د عيب نه د براءت شرط اولګوی.بيا هم خيار عيب نه ساقطيږی.دغه ډول به دلته كي هم وی.

كه څوك دا سوال اوكړی چې خيار روْيت ملاويدل پكار نه دی.كله چې مشتري دا كتلې وی.او اخستې نې وی؟نو خواب دا دې چې د مشتري روْيت به د شفيع روْيت نه وی.خكه چې مشتري د شفيع نائب يا د هغه وكيل نه دې.نو مشتري به (په كتلو سره) د شفيع خيار نه باطلوی.

## فصل في الاختلاف

**تشريح:** په دې فصل كي به هغه مسئلې بيانولې شی.كومې چې هغه وخت مخې ته راخی.كله چې د مشتري (دا) فصل د اختلاف (په بيان كي) دې.



او شفيع، يا شفيع او بائع يا بائع او مشتري په مينځ كي اختلاف پيدا شی.

## د ثمن په مقدار كښې د شفيع او مشتري د اختلاف مسئله

**قَالَ** امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. **وَإِنِ اخْتَلَفَ الشَّفِيعُ وَالْمُشْتَرِي فِي الثَّمَنِ** اوكه شفيع او مشتري په ثمن كي اختلاف اوكړی. **فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي** نو قول به د مشتري معتبر وی. **لِأَنَّ الشَّفِيعَ يَدَّعِي اسْتِحْقَاقَ الدَّارِ عَلَيْهِ** خكه چې شفيع د كور د استحقاق په ده (مشتري) باندې دعوه كوی. **عِنْدَ نَقْدِ الْأَقَلِّ** د كم ادا كاوه په صورت كي، **وَهُوَ يُنْكِرُ** او مشتري منكر دې. **وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ مَعَ يَمِينِهِ** او قول د منكر معتبر وی. سره د هغه د قسم نه، **وَلَا يَتَحَالَفَانِ** او دواړه به قسم نه خوری. **لِأَنَّ الشَّفِيعَ إِنْ كَانَ يَدَّعِي عَلَيْهِ اسْتِحْقَاقَ الدَّارِ** خكه چې شفيع اګرچه په هغه باندې د كور د استحقاق دعوه كوی. **فَالْمُشْتَرِي لَا يَدَّعِي عَلَيْهِ شَيْئًا** نو مشتري خو په شفيع باندې د څه شئ دعوه نه كوی. **لِتَخَيُّرِهِ** د شفيع د اختيار مند كيدو په وجه، **بَيْنَ التَّرْكِ وَالْأَخْذِ** پريخودو او اخستلو په مينځ كي، **وَلَا نَصَّ هَاهُنَا** او دلته هيڅ نص نشته، **فَلَا يَتَحَالَفَانِ**.نو دواړه به قسم نه خوری.

**حل اللغة:** ① **استحقاق:** طلب دحقداريدو ② **المنكر:** انكاركونكې ③ **يتحالفان:** دواړه قسمونه خوری ④ **الترك:** پريخودل ⑤ **الاخذ:** اغستل»

**تشريح:** صورت دمسئلې دا دې چې د مشتري او شفيع په مينځ كي د ثمن د مقدار په اړه كي اختلاف پيدا شی.مشتري دا وائی.چه ما دا كور په دوې (دوه) زره (درهمو) اخستې دې.او شفيع وائی.چه تا په يو زر (درهمو) اخستې دې.نو د چا قول به معتبر وی؟ نو وې ونيل.چه د مشتري قول به معتبر وی.خكه اصول دا مقرر دې.چه مدعی فريضه ده.ګواهان قائمول، او د مدعی عليه فريضه ده.د مدعی (د ګواهانو نه) د عاجز كيدو په صورت كي قسم خوړل.نو دلته مدعی شفيع دې.او مدعی عليه مشتري دې.نو يا خو دې شفيع ګواهان راولی.ګنی سره د قسم څخه به د مشتري قول معتبر وی.

كه څوك تپو اوكړی چې مدعی شفيع ولې دې؟ نو څواب دا دې چې مدعی هغې ته وائی.چه هغه پخپلې دعوې سره په بل فريق باندې څه لازم كړی.او كله چې موږ غور اوكړو.نو دا وصف په شفيع كي ملاو شو.چه هغه په مشتري باندې دا لازموی.چه هغه په كم ثمن كي دا كور ماته راكړی.او دا زما حق دې.خو مشتري په شفيع باندې هيڅ نه لازموی.خكه شفيع ته اختيار شته.كه غواړی.شفعه دې واخلی.كه غواړی نه دې اختلی.په دې وجه ونيلی شوی دی.چه مدعی شفيع دې.اومشتري مدعی عليه او منكر دی.

كه يو څوك پوښتنه اوكړی چې هركله چې په دوی كي هيڅ يو كس سره ګواهان نشته.نو لكه څنګه چې بائع او مشتري نه په داسې موقعه باندې قسم اخستلې شی.دغه ډول دې د مشتري او شفيع نه هم قسم واخستلې شی؟ نو څواب دا دې چې د دواړو نه قسم اخستل، د دواړو د انكار په صورت كي كيږی.د بائع او مشتري په صورت كي د دواړو انكار موجود دې.او دلته صرف مشتري انكار كوی.او شفيع دعوه كړی.انكار نه كوی.نو بيا دا د بائع او مشتري په مسئله باندې څنګه قياس كولې شی.حالانكه نص صرف د بائع او مشتري په سلسله كي وارد شوې دې.او دا د شرع د مورد په درجه كي نه دې.په دې وجه موږ د دواړو نه قسم اخستل اختيار نكړل.بلكه د مشتري قول مو معتبر منلې دې.

## كه شفيع او مشتري دواړه ګواهان قائم لړی نو څه حكم دې؟

**قَالَ** امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. **وَلَوْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ** اوكه (مشتري او شفيع) دواړو بينه قائم كړل. **فَالْبَيِّنَةُ لِلشَّفِيعِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ**[1] نو د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمه الله په نيز به د شفيع ګواهان معتبر وی.

---

[1] القول الراجح هوهذا قول الطرفين . رحمهما الله كذا فی الخانية (۴۵۳/۴) ونصب الرأية (۲۴۷/۵) والدرالمختار (۱۱۶/۵) نقلاًعن القول الراجح (۲۷۲/۲)

تشریح:- د طرفینو رحمهما الله مسلك۞ په ړومبی صورت کي د مشتری قول معتبر وو.خو که دواړو ګواهان قائم کړل.نو د طرفینو رحمهما الله په نیز به د شفیع ګواهان معتبر وی.او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز به د مشتری ګواهان معتبر وی.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: الْبَيِّنَةُ بَيِّنَةُ الْمُشْتَرِي او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی.چه د مشتری ګواهان به معتبر وی. لِأَنَّهَا أَكْثَرُ إِثْبَاتًا خکه چي دا ( د مشتری ګواهان) زیات دی په اعتبار د ثابتولو،

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله د امام ابویوسف رحمه الله یو دلیل او بعضي شواهد ( تائیدات) پیش کوی.چه د ګواهانو کار دا دي.چه کوم شی ثابت شوي نه وی.هغه ثابت کړی.په داسي صورت کي ددي لحاظ ساتلي کیږی.او په کوم کي د اثبات اړخ زیات وی.د هغي اعتبار کولي شی.او دا خبره د مشتری په ګواهانو کي شته.خکه چي هغوی د زیادت ثابتونکی دی.نو د هغوی اعتبار به کولي شی.

فَصَارَ نو داسي شو كَبَيِّنَةِ الْبَائِعِ وَالْوَكِيلِ وَالْمُشْتَرِي مِنَ الْعَدُوِّ .لکه د بائع او وکیل (ګواهان) او د دښمن نه د اخستونکی ګواهان.

تشریح:- په دې باندي دري شواهد پیش کوی① په بائع او مشتری کي د ثمن په اړه کي اختلاف اوشو.او دواړو ګواهان قائم کړل.نو بالاتفاق هلته د بائع ګواهان معتبر کیږی.خکه چي هغه د زیاتو ثابتونکی دی.دغه ډول دلته کي د مشتری ګواهان قبلول پکار دی.② په وکیل او مؤکل کي د ثمن په مقدار کي اختلاف اوشو.نو د وکیل ګواهان به معتبر وی.خکه چي هغوی د زیادت ثابتونکی دی.دغه ډول دلته کي هم کیدل پکار دی.③د دارالاسلام نه د یو مسلمان غلام، د دارالحرب کافرانو اونیولو.او بوئي تللو.بیا زموږ یو مسلمان سوداګر امان واخستلو.او هلته ( دارالحرب ته) لاړو.او هم داغلام ئي واخستلو.او رائي وستلو.نو شریعت د مخکني مالك ( هغه مسلمان کوم چي مخکي ددې غلام مالك وو) او د دارالحرب نه اخستونکي او راوستونکي ( سوداګر) دواړو رعایت ساتلي دي.که مخکني مالك غواړی.نو خپل هم دا غلام ددې تاجر نه په هغه مقدار ( او قیمت) اخستلي شی.په خومره چي هغه په دارالحرب کي اخستي او راوستي دې.اوس په دې مقدار کي د دواړو اختلاف شو.او دواړو ګواهان قائم کړل.نو تاجر یعنی د دښمنانو نه د اخستونکی او راوستونکی ګواهان به معتبر وی.دغه ډول دلته کي هم د مشتری ګواهان معتبر ګرخول پکار دی.

**د طرفینو رحمهما الله دلیل**

وَلَهُمَا او د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دي. أَنَّهُ لَا تَنَافِي بَيْنَهُمَا چي ددوی دواړو په مینځ کي هیڅ منافات نشته. فَيُجْعَلُ كَأَنَّ الْمَوْجُودَ بَيْعَانِ نو داسي به ګرخولي شی.ګویا موجود دوي (دوه) بیعي دی. وَلِلشَّفِيعِ أَنْ يَأْخُذَ بِأَيِّهِمَا شَاءَ او شفیع لپاره حق شته.چه په دې دواړو کي د کوم په بدله کي چي غواړی. وادې خلی.

تشریح:- ددې خائې نه د طرفینو رحمهما الله دلیل دې.چه د شفیع ګواهان معتبر دی.د مشتری نه دی.اګرچه د شفیع ګواهان د یو زر ( درهمو) ګواهی ورکوی.او د مشتری ( ګواهان) د دوو زرو ( درهمو ګواهی ورکوی ).ددې باوجو ددوی دواړو په مینځ کي هیڅ تعارض نشته.بلکه تطبیق ممکن دې.چه مخکي د بائع او مشتری په مینځ کي په دوي (دوه) زره کي معامله ( او عقد) شوي وو.او بیا بائع زر ( درهم) کم کړي وی.یا ئي دوباره په دوهم ځل په یو زر ( درهمو) بیع کړي وی.نو هرکله چي دوي (دوه) بیعي دلته منلي کیداي شی.او شفیع ته دا اختیار شته.چه په کومه کي هغه ته نفع ده.هغه صورت دې اختیار کړی.نو هغه ته اختیار شته.چه دکوم بیع په سبب سره غواړی.دا کور دې په شفعه کي واخلی.

وَهَذَا بِخِلَافِ الْبَائِعِ مَعَ الْمُشْتَرِي او دا حکم د بائع اومشتری په خپل مینځ کي د اختلاف خلاف دي. لِأَنَّهُ لَا يَتَوَالَى بَيْنَهُمَا عَقْدَانِ خکه چي د دوی دواړو په مینځ کي دوي (دوه) عقدونه متوالی ( برابر) نشی کیدي. إِلَّا بِانْفِسَاخِ الْأَوَّلِ خو د ړومبی فسخ کیدو سره، وَهَاهُنَا الْفَسْخُ لَا يَظْهَرُ او دلته به فسخ نه ښکاره کیږی فِي حَقِّ الشَّفِيعِ د



شفیع په حق کي.

که څوك دا اعتراض اوکړی چي لکه څنګه چي تاسو دا تاویل کړي دي.او د شفیع ګواهان دې معتبر ګرخولي دی.دغه ډول که د بائع او مشتری په مینځ کي اختلاف پیدا شي.نو هلته هم د مشتری د ګواهانو اعتبار کول پکار دی.خو هلته تاسو د امام ابویوسف رحمه الله د قول مطابق د بائع ګواهان معتبر ګرخولی دی؟ نو خواب دا دې چي د شفیع په حق کي دوي (دوه) متوالی عقدونه په مذکوره طریقه چلیدې شی.او د بائع او مشتری په حق کي د دوهم عقد جاری کیدو لپاره د ړومبی فسخ کول ضروری دی.په دې وجه موږ دا تاویل هلته جاری نکړو.او په ړومبی صورت کي د فسخ ښکاره کیدل به د عاقدینو په مینځ کي وی.د شفیع په حق کي به نه وی.په دې وجه دا تاویل اوچلیدو. لنډیز دکلام دا چي د بائع او مشتری مسئله، د مشتری او شفیع په مسئله باندي قیاس کول، قیاس مع الفارق دې.خکه چي د دواړو په مینځ کي مناسبت نشته.دمشتری او شفیع مسئله داسي ده.لکه څنګه چي د آقا او غلام مسئله ده.چه غلام وائی.مولا ونیلی وو.که ته زر روپۍ ادا کړي.نو ته آزاد یي.او مولا وائی.چه ما داسي ونیلی وو.که ته دوي (دوه) زره روپۍ راکړي.نو ته آزاد یي.نو موږ په دې دواړو کي تطبیق اوکړو.او موږ اوونیل.چه غلام په دوی دواړو کي کوم مقدار هم ادا کړو.نو هغه به آزادیږی.هم دا حال د شفیع هم دې.په ﴿مجمع الانهر ص ج﴾ باندي دی. ﴿ولأنه يمكن صدق البينتين بجريان العقد مرتين فيجعلان موجودين فالشفيع يأخذ بأيهما شاء﴾

**په یو مثال سره د امام ابویوسف رحمه الله د دلیل جواب**

وَهُوَ التَّخْرِيجُ لِبَيِّنَةِ الْوَكِيلِ او هم دا تخریج دې د وکیل د ګواهانو، لِأَنَّهُ كَالْبَائِعِ خکه چي وکیل د بائع پشان دې. وَالْمُوَكِّلُ كَالْمُشْتَرِي مِنْهُ، او مؤکل د وکیل نه د اخستونکی پشان دې.

تشریح:- ددې خائې نه حضرت مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه موږ امام ابویوسف رحمه الله ته خواب ورکاوه کي کوم تقریر د بائع او مشتری په اختلاف کي کړي دي.بالکل هم هغه تقریر د وکیل او مؤکل په اختلاف کي دې.یعنی لکه څنګه چي د بائع او مشتری د اختلاف په صورت کي تطبیق ممکن نه دې.د ذکر شوي وجې مطابق، د غه شان د وکیل او مؤکل د اختلاف په صورت کي هم تطبیق ممکن نه دې.خو دا چي ړومبی عقد فسخ اومنلي شی.او د مشتری او شفیع په اختلاف کي تطبیق ممکن دې.خکه چي د فسخ ښکاره کیدل به د شفیع په حق کي نه وی. لنډیز د کلام داچه د بائع او مشتری په صورت کي چي لکه څنګه د بائع ګواهان معتبر وو.دغه ډول به د وکیل او مؤکل په صورت کي د وکیل ګواهان معتبر وی.خو د مشتری او شفیع په صورت کي به د شفیع بینه معتبر وی.او شفیع به په دوی دواړو باندي قیاس کول صحیح نه وی.

هم دا مضمون مرغینانی رحمه الله په ،، وهو التخريج...إلخ،، سره بیان کړي دې.یعنی هم هغه مذکوره تقریر راویستل پکار دی.او مخرج (راویستونکي) دې.د هغه مسئلي لپاره کوم چي د وکیل ګواهانو سره متعلق دې.خکه وکیل داسي دې لکه بائع، او مؤکل داسي دې لکه مشتری.

كَيْفَ او څنګه کیداي شی وَأَنَّهَا مَمْنُوعَةٌ .حالانکه دا ( د وکیل ګواهان د مشتری په ګواهانو باندي قیاس کول) ممنوع دی. عَلَى مَا رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ د هغه روایت مطابق کوم چي د امام محمد رحمه الله نه نقل دي.

حل اللغة① ممنوعة:منع شوي

تشریح:- په دې عبارت سره فرمائی.چه تر اوسه پوري موږ کوم تقریر کړي دې.دا خو د ظاهرالروایة مطابق دې.چه په دې کي د وکیل د ګواهانو اعتبار کړي شوي دې.ګنی ابن سماعه د امام محمد رحمه الله نه روایت کړي دې.چه د وکیل او مؤکل د اختلاف په صورت کي به د مؤکل ګواهان معتبر وی.د وکیل ګواهان به معتبر نه وی.نو که ددې روایت اعتبار اوکړي شی.بیا خو د امام ابویوسف رحمه الله د وکیل والا مسئله په استشهاد (او تائید) کي پیش کول صحیح نه دی.هم دا ئي اوفرمائیل.چه دا قیاس څنګه ( صحیح) کیداي شی.حالانکه د

امام محمد رحمه الله د روایت مطابق دا ممنوع دی.

## د امام ابویوسف رحمه الله د دریم استشهاد جواب

وَأَمَّا الْمُشْتَرِي مِنَ الْعَدُوِّ او بهرحال د دښمن نه اخستونکې، فَقُلْنَا ذُكِرَ فِي السِّيَرِ الْكَبِيرِ نو موږ وايو. په سیر کبیر کې ذکر دی. أَنَّ الْبَيِّنَةَ بَيِّنَةُ الْمَالِكِ الْقَدِيمِ چې د مخکنی مالك ګواهان به معتبر وی. ،،فَلَنَا أَنْ نَمْنَعَ نو زموږ لپاره حق شته.چه موږ انکار اوکړو. (وَبَعْدَ التَّسْلِيمِ نَقُولُ او د منلو نه روستو به موږ وايو لَا يَصِحُّ الثَّانِي هُنَالِكَ.چه هلته به دوهم عقد صحیح نه وی. :إِلَّا بِفَسْخِ الْأَوَّلِ خو د ړومبی په فسخ کاوه سره،أَمَّا هَاهُنَا فَبِخِلَافِهِ) بهرحال دلته د هغې خلاف دي.

حل اللغة: ① المكلك القديم پخواني ملك② التسليم:منل③ يصح:صحيح كيږي④ نمنع:منع كړو﴿

تشریح:- امام ابویوسف رحمه الله پخپل قول باندې درې شواهد پیش کړی وو.په هغې کې د دوو ځواب ورکړې شوي دې.دا د دریم (شاهد) ځواب دې.چه تاسو فرمائیلی وو.چه د ،، مشتری من العدو،، ( یعنی د مسلمان تاجر په دارالحرب کې دښمن نه اخستل) او د مخکنی مالك د اختلاف په صورت کې به د مشتری قول معتبر وی.حالانکه امام محمد رحمه الله په سیر کبیر کې فرمائیلی دی.چه په مذکوره صورت کې به د مخکنی مالك قول معتبر وی.نو موږ ته حق شته.چه دا عرض کړو.چه دا مسئله په استشهاد کې پیش کول ګټور نه دی.ځکه په داسې مقام کې داسې جزئیه پیش کولې شی.کوم چې د خصم په نیز منلې ( او قبلولې) شی.او که موږ ئې اومنو.چه د ،، مشتری من العدو،، قول به معتبر وی.بیا به هم موږ دا عرض کړو.چه ددې وجه هم هغه ده.کومه چې تیره شوې ده.یعنی د دواړو په مینځ کې د تطبیق صورت نشته.علاوه ددې نه چې ړومبې عقد فسخ اومنلې شی.

او د مشتری او شفیع والا مسئله ددې نه جلا ده.چه هلته به د شفیع په حق کې د فسخ ظهور نه کیږی.لنډیز د کلام دا چې دمشتری او شفیع په مسئله باندې دوی دریو واړه نه د شواهد ( او تائید) په لحاظ سره پیش کولې شی.او نه په دې باندې د مشتری او شفیع مسئله قیاس کولې شی.د هغه وجوهاتو په وجه کوم چې ذکر شو.

وَلِأَنَّ بَيِّنَةَ الشَّفِيعِ مُلْزِمَةٌ او ځکه چې د شفیع ګواهان لازمونکی دی. وَبَيِّنَةَ الْمُشْتَرِي غَيْرُ مُلْزِمَةٍ او د مشتری ګواهان لازمونکی نه دی. وَالْبَيِّنَاتُ لِلْإِلْزَامِ او ګواهان د لازمولو لپاره دی.

تشریح:- بیا د طرفینو رحمهما الله د اړخه عقلی دلیل پیش شوې دې.د هغې حاصل دا دې.چه د ګواهانو کار لازمول دی.نو د چا په ګواهانو کې چې لازمول وی.د هغه ګواهان به معتبر وی.اوس موږ اوکتل.چه لازمول د شفیع په ګواهانو کې دی.د مشتری په ګواهانو کې نه دی.ځکه که مشتری په دوو زرو باندې بیع ثابته کړله.نو شفیع دا کولې شی.چه دې شفعه پریږدی.مشتری په ده باندې هیڅ نه لازموی.او که شفیع په زر ( درهمو باندې بیع ثابته کړی.نو په مشتری به دا لازمه وی.چه کور هم په دې قیمت باندې ورکړی.نو معلومه شوه.چه لازمونکی د شفیع ګواهان دی.د مشتری نه دی.نو کوم چې لازمونکی وی.د هغه اعتبار به کولې شی.

## د ثمن په مقدار کښې د بائع او مشتری د اختلاف مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. وَإِذَا ادَّعَى الْمُشْتَرِي ثَمَنًا او کله چې مشتری د ثمن دعوه اوکړله. وَادَّعَى الْبَائِعُ أَقَلَّ مِنْهُ و بائع د هغې نه د کمو دعوه اوکړله. وَلَمْ يَقْبِضِ الثَّمَنَ حالانکه بائع په ثمن باندې قبضه نه ده کړې. أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِمَا قَالَهُ الْبَائِعُ نو شفیع به کور هم په دې مقدار سره اخلی.کوم چې بائع وائی. وَكَانَ ذَلِكَ حَطًّا عَنِ الْمُشْتَرِي) و دا به د مشتری ( د ذمې) نه کمول وی. وَهَذَا لِأَنَّ الْأَمْرَ إِنْ كَانَ عَلَى مَا قَالَ الْبَائِعُ او دا





ځکه که خبره هم داسې وی.کومه چې بائع وائی. ،فَقَدْ وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ بِهِ نو شفعه به هم په دې مقدار سره ثابته وی. وَإِنْ كَانَ عَلَى مَا قَالَ الْمُشْتَرِي او که خبره هم داسې وی.کومه چې مشتری وائی. ،فَقَدْ حَطَّ الْبَائِعُ بَعْضَ الثَّمَنِ نو بائع د ثمن بعض مقدار کم کړې دې. وَهَذَا الْحَطُّ يَظْهَرُ فِي حَقِّ الشَّفِيعِ او دا کمی به د شفیع په حق کې ښکاره کیږی. ،عَلَى مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى د هغه تفصیل مطابق کوم چې به موږ انشاءالله بیان کړو.

حل اللغة: ① ادعی:دعوی اوکړه② حط:کمول یا کمیدل③ نبین:موږ بیان کړو﴿

تشریح:- تر اوسه پورې بائع په ثمن باندې قبضه نه ده کړې.او بائع په زر روپې خرڅول بیانوی.او مشتری په دوې (دوه) زره روپې ښائی.نو داسې به ګڼړلې شی.چه شفیع څه ثمن کم کړو.او دا کمی به د شفیع په حق کې هم ښکاره کیږی.نو شفیع به د بائع د قول اعتبار کوی.او د ثمن په کم مقدار باندې به مشفوعه کور اخلی.ځکه چې حقیقت کې یا بائع په حقه دې.یا مشتری په حقه دې.په ړومبی صورت کې خو د بائع قول معتبر منلو کې هیڅ کلام نشته.او په دوهم صورت کې به دا په ثمن کمولو باندې محمول کولې شی.نو په دواړو صورتونو کې به د بائع د قول اعتبار کولې شی.

وَلِأَنَّ التَّمَلُّكَ عَلَى الْبَائِعِ بِإِيجَابِهِ او ځکه چې بائع باندې ملك کیدل د هغه د ایجاب په وجه دی. فَكَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ فِي مِقْدَارِ الثَّمَنِ مَا بَقِيَتْ مُطَالَبَتُهُ نو ترکومه پورې چې د هغه مطالبه پاته ده.د ثمن په مقدار کې به د هغه قول معتبر وی. فَيَأْخُذُ الشَّفِيعُ بِقَوْلِهِ نو شفیع به د بائع د قول مطابق اخلی.

تشریح:- داعقلی دلیل دې چې شفیع ته د شفعې ملاویدو وجه د بائع ایجاب دې.یعنی د بائع د ایجاب په وجه شفیع ته حق د تملك حاصل شوې دې.نوهرکله چې خبره هم دا ده.نوترکومه پورې چې د بائع ( د ثمن ) مطالبه پاته ده.هم دده قول به معتبر وی.

## د ثمن په مقدار کښې د بائع او مشتری د اختلاف دوهم صورت

قَالَ اوفرمائیل. وَلَوِ ادَّعَى الْبَائِعُ الْأَكْثَرَ اوکه بائع د اکثر ( ثمن) دعوه اوکړی. يَتَحَالَفَانِ وَيَتَرَادَّانِ نو دواړه به قسم خوری.او عقد دې واپس کړی. وَأَيُّهُمَا نَكَلَ او په دوی دواړو کې چې کوم یو کس د قسم نه انکار اوکړو. ظَهَرَ أَنَّ الثَّمَنَ مَا يَقُولُهُ الْآخَرُ نو دا خبره به ښکاره شی.چه ثمن هغه دې.کوم چې دوهم کس وائی. ، فَيَأْخُذُهَا الشَّفِيعُ بِذَلِكَ نو شفیع به دا کور هم په هغه مقدار اخلی.

تشریح:- که په بائع او مشتری کې د ثمن په مقدار کې اختلاف اوشو.او مبیع اوسه پورې د بائع په قبضه کې دې.او بائع زیات ثمن ښائی.او مشتری کم ښائی.نو چا سره چې ګواهان وی.هغه دې ګواهان پیش کړی.که په دواړو کې یوکس هم ګواهان پیش نکړل.نو دواړو څخه به قسم اخستلې شی.اوس دوې (دوه) صورتونه دی. یا به خو یوکس د قسم نه انکار کوی.یا به دواړه قسم خوری.که ړومبې صورت دې.نو چا چې د قسم نه انکار کړې دې.د هغه د مخالف د خبرې به اعتبار کولې شی.او د ثمن دغه مقدار دې ورکړی.او شفیع دې کور واخلی.

وَإِنْ حَلَفَا او که دواړو قسم اوخوړلو. يَفْسَخُ الْقَاضِي الْبَيْعَ عَلَى مَا عُرِفَ نو د معلومې طریقې مطابق دې قاضی بیع فسخ کړی. وَيَأْخُذُهَا الشَّفِيعُ بِقَوْلِ الْبَائِعِ) او شفیع به دا کور د بائع د قول مطابق اخلی. لِأَنَّ فَسْخَ الْبَيْعِ لَا يُوجِبُ بُطْلَانَ حَقِّ الشَّفِيعِ ځکه چې د بیع فسخ د شفیع د حق بطلان نه واجبوی.

تشریح:- اوکه دواړو قسم اوخوړلو.نو قاضی دې د بائع او مشتری په مینځ کې بیع فسخ کړی.هرکله چې بیع د عاقدینو په مینځ کې فسخ شو.نو صرف د بائع قول معتبر پاتې شو.او شفیع به د ثمن هغه مقدار ورکوی.کوم چې بائع ښائی.او دا کور به اخلی.او په عاقدینو کې د بیع فسخ کیدل، د شفیع حق نه باطلوی.لکه څنګه چې وړاندې تیر شوی دی.

**که بائع په ثمن باندې قبضه اوکړله نو هغه پشان د اجنبي دې**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. وَإِنْ كَانَ قَبَضَ الثَّمَنَ او که بائع په ثمن باندې قبضه کړې وی. أَخَذَ بِمَا قَالَ الْمُشْتَرِي إِنْ شَاءَ نو شفیع به هغه مقدار سره (کور) اخلی. کوم چې مشتری ښائی. که غواړی. وَلَمْ يَلْتَفِتْ إِلَى قَوْلِ الْبَائِعِ او د بائع قول اړخ ته به التفات نشی کولې، لِأَنَّهُ لَمَّا اسْتَوْفَى الثَّمَنَ ځکه چې هرکله هغه ثمن وصول کړې دې. انْتَهَى حُكْمُ الْعَقْدِ نو د عقد حکم پوره شو، وَخَرَجَ هُوَ مِنَ الْبَيْنِ او بائع د مینځ نه اووتلو. وَصَارَ هُوَ كَالْأَجْنَبِيِّ او د اجنبی پشان شو. وَبَقِيَ الِاخْتِلَافُ بَيْنَ الْمُشْتَرِي وَالشَّفِيعِ او اختلاف پاته پاتې شو. د مشتری او شفیع په مینځ کې، وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او موږ دا بیان کړې دې.

**حل اللغة:** ① **لم يلتفت**: نه به شی کتلې ② **استوفى**: پوره وصول کړلو ③ **الاجنبى**: پردې ④ **انتهى**: ختم شو.

تشریح:- تراوسه پورې چې کوم کلام (او تقریر) شوې وو. په هغه صورت کې وو. چه بائع په ثمن باندې قبضه نه وی کړې. او که بائع په ثمن باندې قبضه کړې ده. نو اوس هغه د اجنبی پشان شو. او د مینځ نه بالکل اووتلو. بلکه اوس خو اختلاف د مشتری او شفیع په مینځ کې پاته پاتې شو. او وړاندې مسئله تیره شوې ده. چه کله د مشتری او شفیع په مینځ کې اختلاف وی. نو د مشتری قول به معتبر وی. نو که په مذکوره صورت کې شفیع اخستل غواړی. نو د مشتری د قول مطابق ثمن ادا کاوه سره اخستلې شی.

**که په ثمن باندې قبضه واضحه نه وی نو څه حکم دې؟**

وَلَوْ كَانَ نَقْدُ الثَّمَنِ غَيْرَ ظَاهِرٍ او که د ثمن ادا کول ښکاره نه وی. فَقَالَ الْبَائِعُ بِعْتُ الدَّارَ بِأَلْفٍ نو بائع اووئیل. چه ما په یو زر روپۍ سره خرڅ کړې دې. وَقَبَضْتُ الثَّمَنَ او ما په ثمن باندې قبضه اوکړله يَأْخُذُهَا الشَّفِيعُ بِأَلْفٍ نو شفیع به کور په زر (روشیدې) اخلی. لِأَنَّهُ لَمَّا بَدَأَ بِالْإِقْرَارِ بِالْبَيْعِ ځکه چې هرکله بائع د بیع په اقرار سره پیل اوکړله. تَعَلَّقَتِ الشُّفْعَةُ بِهِ، نو دې اقرار سره شفعه متعلق شوه. فَبِقَوْلِهِ بَعْدَ ذَلِكَ قَبَضْتُ الثَّمَنَ يُرِيدُ إِسْقَاطَ حَقِّ الشَّفِيعِ بیا هغه ددې نه روسته د خپل قول ،، قبضت الثمن،، په وجه د شفیع دحق ساقطولو اراده کوی. فَيُرَدُّ عَلَيْهِ نو دده دا اراده به هم په ده باندې واپس کولې شی. وَلَوْ قَالَ قَبَضْتُ الثَّمَنَ او که بائع اووئیل. چه ما په ثمن باندې قبضه اوکړله. وَهُوَ أَلْفٌ او هغه زر روپۍ دی. لَمْ يُلْتَفَتْ إِلَى قَوْلِهِ نو د بائع د قول اړخ ته به توجه نشی کولې. لِأَنَّ بِالْأَوَّلِ وَهُوَ الْإِقْرَارُ بِقَبْضِ الثَّمَنِ خَرَجَ مِنَ الْبَيْنِ ځکه چې هغه د پیل نه وو او هغه په ثمن قبض کاوه باندې اقرار دې. د مینځ نه اووتلو، وَسَقَطَ اعْتِبَارُ قَوْلِهِ فِي مِقْدَارِ الثَّمَنِ او د ثمن د مقدار په سلسله کې دده د قول اعتبار ساقط شو.

**تشریح:**- بائع په ثمن باندې قبضه کړې ده. او که نه؟ دا خبره ښکاره نشوه. اوس بائع دوې (دوه) خبرې کوی. او د دواړو حکم جلا جلا دې. په ړومبۍ خبره کې دده اعتبار شوې دې. او په دوهم کې نه دې شوې. په ړومبۍ خبره کې هغه اجنبی نه دې شمار کړې شوې. او په دویمه کې اجنبی شمار کړې شوې دې. په ړومبۍ خبره کې هغه د پیل نه د بیع اقرار کړې دې. بیا ئې په ثمن باندې د قبضې اقرار کړې دې. او په دویمه کې د سره په ثمن د قبضې اقرار دې. نو په ړومبۍ خبره کې چې هرکله هغه د بیع اقرار اوکړو. نو ګویا دا اقرار ئې اوکړو. چه په مبیع کې د شفیع حق دې. بیا هم ددې خبرې په آخر کې ئې په ثمن د قبضې اقرار اوکړو. چه په دې سره بائع دا وئیل غواړی. چه زه د مینځ نه خارج یم. زما د قول اعتبار به نه کیږی. نو ګویا د شفیع حق ساقطول غواړی. نو دده دا اراده به د بائع په خوله باندې ور غورځولې شی. اوشفیع ته به شفعه ملاویږی. او د ثمن هغه مقدار به ادا کولې شی. کوم چې بائع وئیلې دې.

او دویمه خبره کې بائع د پیل نه د قبضې اقرار کاوه سره دا ښکاره کړله. چه زه د مینځ نه خارج یم. په دې اړه کې به زما د قول او فعل هیڅ اعتبار نه کیږی. نو دده په کلام کې د حق د اقرار صورت د سره پیدا نشو. نو په دې صورت کې به د بائع دقول اعتبار نه کیږی. او د ثمن د مقدار په اړه کې به دده قول نشی قبلولې.



خو دا تقریر هغه وخت دې. کله چې مبیع د بائع په قبضه کې نه وی. ګنی که مبیع د بائع په قبضه کې وی. او هغه په خپل اقرار کې صرف په ثمن باندې قبضه کاوه باندې اکتفاء کړې وی. او داسې ئې وئیلې وی. چه دا (ثمن) دوې (دوه) زره روپۍ دی. نو د بائع قول به معتبر وی. ځکه چې په دې صورت کې به د شفیع تملك په بائع باندې وی. نو د بائع قول به معتبر وی. ځکه چې دلته بائع اجنبی نه دې. ځکه چې دده قبضه موجود ده. اګرچه ملکیت نشته.

## فصل فيما يوخذ به المشفوع

ژباړه:- (دا) فصل د هغه شئ (په بیان کې) دې چه د هغې په ذریعه مشفوع واخستلې شی.

**تشریح:**- هرکله چې مرغینانی رحمه الله د مشفوع احکام بیان کړل. نو اوس به د مشفوع به احکام بیانوی. او مشفوع به ثمن دې. مشفوع چونکه اصل دې. او ثمن تابع دې. په دې وجه اصل مقدم او تابع مؤخر کړې شوې دې.

**د مشتری نه ثمن کمول به د شفیع نه هم ساقطول وی**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. (وَإِذَا حَطَّ الْبَائِعُ عَنِ الْمُشْتَرِي بَعْضَ الثَّمَنِ) و کله چې بائع د مشتری نه څه ثمن کم کړو. يَسْقُطُ ذَلِكَ عَنِ الشَّفِيعِ نو هغه به د شفیع لپاره ساقطیږی. وَإِنْ حَطَّ جَمِيعَ الثَّمَنِ او که بائع واړه ثمن کم کړو. (لَمْ يَسْقُطْ عَنِ الشَّفِيعِ) نو دا کمی به په شفیع باندې نه ساقطیږی. لِأَنَّ حَطَّ الْبَعْضِ يَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ ځکه چې بعض کمول، اصل عقد سره لاحق کیږی. فَيَظْهَرُ فِي حَقِّ الشَّفِيعِ نو دا کمی به د شفیع په حق کې ښکاره کیږی، لِأَنَّ الثَّمَنَ مَا بَقِيَ ځکه چې کوم پاته بچ پاتې شو. هغه ثمن دې. وَكَذَا إِذَا حَطَّ بَعْدَ مَا أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِالثَّمَنِ او هم دغه ډول کله چې بائع کم کړو. روستو ددې نه چې شفیع دا اخستې دي يُحَطُّ عَنِ الشَّفِيعِ. د ثمن په بدله کې به کمولې شی (دا ثمن) د شفیع نه، حَتَّى يَرْجِعَ عَلَيْهِ بِذَلِكَ الْقَدْرِ تر دې چې شفیع به مشتری باندې رجوع کوی. ددې مقدار مطابق، بِخِلَافِ حَطِّ الْكُلِّ په خلاف د ټولو د کمولو، لِأَنَّهُ لَا يَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ بِحَالٍ ځکه چې دا کمی به په هیڅ حال اصل عقد سره نه لاحق کیږی. وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الْبُيُوعِ او موږ دا په کتاب البیوع کې بیان کړې دی.

**حل اللغة:** ① **يظهر**: ښکاره کیږی ② **حط**: کمیدل ③ **الاخذ**: اغستل ④ **يلتحق**: ملحق کیږی ⑤ **جميع**: ټول

**تشریح:**- که بیع اوشوه په دوې (دوه) زره (روپو) باندې. بیا د مشتری نه بائع زر روپۍ کمې کړلې. نو دا کمی به د شفیع په حق کې هم ښکاره کیږی. اوس به دې (شفیع) د دوو زرو (روپو) په ځائې مشتری ته زر روپۍ ورکوی. که شفیع ته د شفعې ملاویدو نه مخکې ئې دا کمی کړې وی. او که د شفعې اخستلو نه روستو ئې کړې وی. په ړومبی صورت کې به شفیع زر روپۍ ورکوی. او په دوهم صورت کې اګرچه پوره دوې (دوه) زره (روشیدې) ورکړې دی. خو دمشتری څخه به زر روپۍ واپس اخلی. خو ددې کمولو دوې (دوه) صورتونه دی.

① د بعضې ثمن مقدار کم کړې شی. ② واړه ثمن کم (ساقط) کړې شی.

دا زموږ تقریر په ړومبی صورت کې دې. چه دلته به کمی اصل عقد سره ملاوولې شی. ځکه چې ددې کمی نه روسته هم ثمن پاته دې. او شفیع د ثمن په بدله کې مشفوع اخلی. او په دوهم صورت کې کمی اصل عقد سره نشی ملاوولې. ځکه چې بیا ثمن پاته نه پاتې کیږی. او شفیع د ثمن نه بغیر د اخستلو حقدار نه دې. نو په دې صورت کې به شفیع باندې هغه پوره مقدار ادا کول لازمی وی. کوم چې اصل عقد کې مقرر شوې وو. بیا مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه موږ د ثمن د کموالی او زیاتوالی مسئله کې په ﴿کتاب البیوع ج﴾ کې تفصیل سره بیان کړې دې.

**د مشتری په ثمن زیاتولو سره شفیع باندې دا زیاتوالې نه لازمیږی**

وَإِنْ زَادَ الْمُشْتَرِي لِلْبَائِعِ او که مشتری د بائع لپاره (ثمن کې) زیاتوالې اوکړو. لَمْ تَلْزَمِ الزِّيَادَةُ فِي حَقِّ الشَّفِيعِ نو د

شفیع په حق کي به دا زیاتوالي نه لازمیږي. اِلَّاَنَّ فِي اعْتِبَارِ الزِّيَادَةِ ضَرَرًا بِالشَّفِيعِ خکه چې د زیاتوالی په اعتبار کاوه کي د شفیع ضرر دي. لِاسْتِحْقَاقِهِ الْأَخْذَ بِمَا دُونَهَا د شفیع د اخستلو د مستحق کیدو په وجه. (ددې زیاتوالی) نه په کم سره (د اخستلو). بِخِلَافِ الْحَطِّ په خلاف د کمولو، اِلَّاَنَّ فِيهِ مَنْفَعَةً لَهُ، وَنَظِيرُ الزِّيَادَةِ خکه چې ددې کي د شفیع منفعت دي.او د زیاتوالی مثال (دا) دي. .اِذَا جَدَّدَ الْعَقْدَ کله چې مشتری د عقد تجدید کړې وی. بِأَكْثَرَ مِنَ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ په زیات (ثمن) سره د ړومبی ثمن نه، لَمْ يَلْزَمِ الشَّفِيعَ نو په شفیع به زیادت نه لازمیږي. حَتَّى كَانَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهَا بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ تردې چې شفیع ته حق شته.چه هغه د کور د مخکنی ثمن په بدله کي واخلی. لِمَا بَيَّنَّا هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې كَذَا هٰذَا.هم هغه شان دا دې.( یعنی د تجدید نه بغیر زیاتوالي)

**حل اللغة**: ① زاد:زیاتی وی ② ضرر:نقصان ③ الاستحقاق:مستحق کیدل

**تشریح**:- د بائع کمی خو شفیع لپاره نافع وه.په دې وجه د هغې اعتبار اوکړې شو.خو که مشتری د بائع لپاره ثمن کي زیادت اوکړي.نو دا به شفیع لپاره مضر جوړیږي.په دې وجه به ددې اعتبار نشی کولې. خکه چې شفیع د مخکنی ثمن په عوض ددې د اخستلو مستحق شوې وو.بیا ددې زیاتوالی دوې (دوه) صورتونه دی. ① ړومبې عقد پخپل حال قائم وی.او په هغې کي ثمن زیات کړې شی.② د عقد تجدید اوکړې شی.او په دې کي د ړومبی ثمن نه زیات ثمن مقرر کړې شی.نو په آخری صورت کي به هم شفیع باندې دا زیاتوالي نه لازمیږي.دغه ډول به د ړومبی صورت والا زیاتوالي هم شفیع باندې نه لازمیږي.

**د سامان،یا د کیلی یا وزنی خیز په بدله کښې د کور اخستلو په صورت کښې به شفیع څه ادا کوی؟**

قَالَ امام قدوری رحمة الله علیه اوفرمائیل. وَمَنِ اشْتَرَى دَارًا بِعَرَضٍ او چا چې یو کور واخستلو.د څه سامان په بدله کي ، .أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِقِيمَتِهِ نو شفیع به دا کور د هغې د قیمت په بدله کي اخلی لِأَنَّهُ مِنْ ذَوَاتِ الْقِيَمِ خکه چې دا د ذوات الامثال (د قیمت والا خیزونو) خنې دی. وَإِنِ اشْتَرَاهَا بِمَكِيلٍ أَوْ مَوْزُونٍ او که کور ئې د څه مکیلی یا موزونی شئ په بدله کي واخستلو. أَخَذَهَا بِمِثْلِهِ نوشفیع به هغه د هغې د مثل په بدله کي اخلی. لِأَنَّهُمَا مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ خکه چې دا دواړه د ذوات الامثال خنې دی. وَهٰذَا لِأَنَّ الشَّرْعَ أَثْبَتَ لِلشَّفِيعِ وِلَايَةَ التَّمَلُّكِ عَلَى الْمُشْتَرِي او دا خکه چې شریعت شفیع لپاره مشتری باندې د تملك ولایت ثابت کړې دې بِمِثْلِ مَا تَمَلَّكَهُ.سره، چې په کوم سره مشتری مالك شوې دې.نو د هلاك شوی په مثل د ممکن په اندازه به ددې رعایت کولې شی. د هغې په مثل

**حل اللغة**: ① عرض:قیمتی سامان چې هغه مثلی نه وی.لکه غلام وغیره.② ذوات الامثال: چې بغیر د څه تفاوت (توپیر) نه ددې مثل په بازار کي ملاو شی.اوکه تفاوت وی.خو دا عرف کي قابل نه شمارلې کیږي.بیا به هم دې ته مثلی ونیلې شی.③ ذوات القیم چې په بازارانو کي ددې مثل بیانه موندې شی.عددی ④ متقارب: چې ددې د افرادو او آحادو په مینځ کي قیمت کي تفاوت نه وی⑤ الاتلاف:هلاکول⑥ یراعی:خیال ساتلې شی.

**تشریح**:- مشتری کور د څه شئ په بدله کي اخستې دې.که د ثمن په بدله کي دې.نو ددې تفصیل خو تیر شو. اوکه د سامان په بدله کي دې.یعنی د سرو زرو او سپینو زرو نه علاوه د بل څه سامان په بدله کي دې.نو ددې سامان دوې (دوه) صورتونه دی.① دا سامان د ذوات القیم خنې دې.② او که د ذوات الامثال خنې دې. په ړومبی صورت کي به شفیع ددې سامان قیمت ورکوی.او دا کور به اخلی.او په دوهم صورت کي به ددې مثل ورکوی.خکه چې شریعت شفیع دا حق ورکړې دې.چه هغه د مشتری د ملکیت د هغه د رضامندئ نه بغیر مالك شی.خو هغه چې د کوم شئ په بدله کي ملکیت حاصل کړې دې.هم هغه شئ هغه ته ملاویدل



پکار دي.نو ترکومه پورې چې کیدای شی.د مثل ور کاوه پوره رعایت (او لحاظ) ساتل پکار دی.نوکه په مثل صوری ور کاوه باندې قدرت وی.نو مثل صوری دې ورکړي.گنی مثل معنوی دې ورکړي.د مثل صوری مطلب مِثل دې.یعنی په ذوات الامثال کي ، او د مثل معنوی مطلب قیمت دې.یعنی ذوات القیم کي ،که یوکس د چا سامان ضائع کړي.هلته هم دا حکم دې.

وَالْعَدَدِيُّ الْمُتَقَارِبُ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ او عددی متقارب د ذوات الامثال خنې دی. وَإِنْ بَاعَ عَقَارًا بِعَقَارٍ او که مخکه ئې د زمکې په بدله کي خرڅه کړله. أَخَذَ الشَّفِيعُ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِقِيمَةِ الْآخَرِ نو اخلی به شفیع په دې دواړو کي هر یو د دوهم د قیمت په بدله کي ، لِأَنَّهُ بَدَلُهُ خکه چې دا (په دې دواړو کي هر یو) ددې (دویم) بدله ده. ..وَهُوَ ذَوَاتُ الْقِيَمِ او هغه د ذوات القیم خنې دی فَيَأْخُذُهُ بِقِيمَتِهِ نو شفیع به دا ددې د قیمت په بدله کي اخلی.

**تشریح**:- دلته دا بیان کوی چې عددی متقارب په ذوات الامثال کي شمار کړې شوې دې.که یوکس خپله مخکه خرڅه کړله.او د هغې په بدله کي ئې خپله مخکه ورکړله.او ددې دواړو زمکو شفیع شته.نو هغوی به څه قیمت ورکوی.او دا مخکه به اخلی؟ نو وې وئیل.چه د بائع د زمکې شفیع به ددې په بدله کي د مشتری د زمکې قیمت ورکوی.او د مشتری د زمکې شفیع به ددې په بدله کي د بائع د زمکې قیمت ورکوی.خکه چې مخکه د ذوات القیم خنې ده.په دې وجه به ددې قیمت ورکوی.او هر شفیع به دا اخلی.

**په پور سره د اخستلو په صورت کښې شفیع لپاره څه حکم دې؟**

قَالَ امام قدوری رحمة الله علیه اوفرمائیل. وَإِذَا بَاعَ بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ او کله ئې چې خرڅ کړو، پور ثمن سره، فَلِلشَّفِيعِ الْخِيَارُ، إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِثَمَنٍ حَالٍّ نو شفیع ته اختیار شته.چه دا په نقد ثمن سره واخلی. ،وَإِنْ شَاءَ صَبَرَ او که غواړي.نو صبر دې اوکړي. حَتَّى يَنْقَضِيَ الْأَجَلُ تردې چې موده تیره شی. ثُمَّ يَأْخُذُهَا بیا دې شفیع دا واخلی. ، وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهَا فِي الْحَالِ بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ او شفیع ته دا حق نشته.چه هغه دا په پور ثمن سره فی الحال واخلی.

**تشریح**:- بائع خپل کور مشتری باندې مثلاً په دوې (دوه) زره روپۍ خرڅ کړو.او د ثمن ادا کول ئې پور مقرر کړل. شفیع د شفعې دعوه داخل کړله.

اوس سوال دا دې.چه شفیع به دا اخلی.په دوې (دوه) زره روشیدې، خو ادا کول به اوس (فی الحال) لازم وی.یا د ادا کاوه هغه وخت متعین دې.کوم چې د بائع او مشتری په مینځ کي مقرر شوې دې؟ نو جمهورو احنافوپه نیز ده ته دواړه قسمه اختیار دې که فی الحال ورکوی او که په نیټه ورکوی.

، وَقَالَ زُفَرُ رحمة الله علیه او امام زفر رحمة الله علیه فرمائیلی دی لَهُ ذٰلِكَ دده (شفیع) لپاره دا (په پور ثمن سره د اخستلو حق) ده. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ فِي الْقَدِيمِ او هم دا د امام شافعی رحمة الله علیه مخکنې قول دې. اِلَّاَنَّ كَوْنَهُ مُؤَجَّلًا وَصْفٌ فِي الثَّمَنِ خکه چې د ثمن پور کیدل د ثمن یو وصف دې. كَالزِّيَافَةِ وَالْأَخْذُ بِالشُّفْعَةِ بِهِ لکه کوټه کیدل،او په شفعه کي اخستل د ثمن په بدله کي دی. ،فَيَأْخُذُ بِأَصْلِهِ وَوَصْفِهِ نو شفیع به مبیع اخلی.د ثمن اصل او ددې په وصف سره: كَمَا فِي الزُّيُوفِ لکه څنگه چې کوټه دراهمو کي دی.

**حل اللغة**: ① موجل: په نیټه ② الزیافة: (ۀ بدله گړه) کوټه توب

**تشریح**:- په زیر بحث مسئله کي د امام زفر او امام شافعی رحمهما الله مخکنې قول دا دې.چه د شفیع په حق کي هم ثمن پور دې.نو ادا کول به فی الحال نه وی.بلکه په معین وخت به کیږي.او دوی فرمائی.چه لکه څنگه کوټه کیدل د دراهمو وصف دې.دغه ډول دلته کي اجل (نیټه دار او پور کیدل) د ثمن وصف دې.نو که بائع د کوټه دراهمو په بدله کي کور خرڅ کړې دې.نو شفیع لپاره هم حق شته.چه هغه هم دومره کوټه دراهم ورکړي.او کور واخلی.دغه ډول به دلته کي هم شفیع ته حق وی.چه د ثمن مؤجل (نیټه دار) په بدله کي کور

واخلي. لنډيز د كلام دا چې دوى نيټه وار (او قرض) كيدل د ثمن وصف ګرځولې دې. او وصف د موصوف تابع وى. نو هر كله چې ثمن په شفيع باندې واجب شو. نو سره د وصف به وى.؛

## د احنافو دليل

> وَلَنَا أَنَّ الْأَجَلَ إِنَّمَا يَثْبُتُ بِالشَّرْطِ او زموږ دليل دا دې. چه نيټه وار كيدل شرط سره ثابتيږى. وَلَا شَرْطَ فِيمَا بَيْنَ الشَّفِيعِ وَالْبَائِعِ أَوِ الْمُبْتَاعِ او د شفيع او بائع يا د مشترى په مينځ كې هيڅ شرط نشته. ،وَلَيْسَ الرِّضَا بِهِ فِي حَقِّ الْمُشْتَرِي رِضًا بِهِ فِي حَقِّ الشَّفِيعِ او نه دى راضى كيدل په دې (پور ثمن) سره، د مشترى په حق كې راضى كيدل په دې (پور ثمن) سره، د شفيع په حق كي ، لِتَفَاوُتِ النَّاسِ فِي الْمَلَاءَةِ، د خلګو د مختلف كيدو په وجه، په مالدارئ كي ،

**حل اللغة:** ① المبتاع: كوم شئ چې خرڅولې شى ② تفاوت: فرق ③ الملاءة: مالدارى

**تشريح:-** دا زموږ دليل دې. چه اجل (نيټه وار او پور كيدل) وصف نه دې. دا خو شرط سره ثابتيږى. او شرط د بائع او مشترى په مينځ كي دې. د شفيع او بائع، يا د شفيع او مشترى په مينځ كي نه دې. او بائع چې په پور ور كاوه باندې د مشترى نه راضى شو. ددې نه دا نه لازميږى. چه شفيع ته هم په پور ور كاوه باندې راضى شو. څكه چې د خلګو حالات مختلف دى. چه څوك اخلاقى وى. او څوك بد اخلاقه وى. څوك توانګر دې. او څوك غريب دې. د ړومبى نه وصولول آسان دى. او د دوهم نه مشكل دى.

> وَلَيْسَ الْأَجَلُ وَصْفَ الثَّمَنِ او نه دې پور كيدل د ثمن وصف، ،لِأَنَّهُ حَقُّ الْمُشْتَرِي څكه چې پور كيدل د مشترى حق دې. وَلَوْ كَانَ وَصْفًا لَهُ او كه پور كيدل د ثمن وصف وې، لَتَبِعَهُ .نو وصف به د ثمن تابع وې. فَيَكُونُ حَقًّا لِلْبَائِعِ كَالثَّمَنِ نو دا به د بائع حق وود ثمن په شان. وَصَارَ او دا داسې شوه كَمَا إِذَا اشْتَرَى شَيْئًا بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ .لكه چې يو شئ ئې واخستلو. په نيټه دار ثمن سره، ثُمَّ وَلَّاهُ غَيْرَهُ نو بيا ئې بيع توليه اوكړله. د هغې خپل غير سره، لَا يَثْبُتُ نو نيټه وار كيدل به نه ثابتيږى الْأَجَلُ إِلَّا بِالذِّكْرِ .خو په ذكر كاوه سره، كَذَا هٰذَا دغه ډول دا هم ده.

**تشريح:-** په دې عبارت سره دامام زفر او امام شافعى رحمهما الله ددې قول رد دې چې نيټه وار كيدل د ثمن وصف دې؟ محترما كه دا د ثمن وصف وې. نو دا به هم د بائع حق وو. لكه څنګه چې ثمن د بائع حق دې. حالانكه معامله دا ده. چه ثمن د بائع حق دې. او نيټه وار كيدل د مشترى حق دې. معلومه شوه. چه دې ته د ثمن وصف ونيل صحيح نه دى. او ددې مثال بعينه داسې اوګڼئ. چه يوكس د بل كس نه څه شئ پور واخستلو. او بيا ئې بيع توليه اوكړله. او دا ئې خرڅ كړو. نو دلته به ثمن نقد وى. او د مشترى د اخستلو څخه به دا نه لازميږى. چه هغه دې هم خپل مشترى ته په قرضو باندې خرڅ كړى. دغه ډول د شفعې په مسئله هم پوهه شئ.

## د شفيع د نقدو اخستلو په صورت كښې مشترى نه ثمن ساقطيږى

> ثُمَّ إِنْ أَخَذَهَا بِثَمَنٍ حَالٍّ مِنَ الْبَائِعِ بيا كه شفيع دا كور د بائع نه په نقد ثمن باندې واخستلو. سَقَطَ الثَّمَنُ عَنِ الْمُشْتَرِي نو د مشترى ذمې څخه به ثمن ساقطيږى. لِمَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ د هغه دليل په وجه، كوم چې موږ وړاندې بيان كړې دې. ،وَإِنْ أَخَذَهَا مِنَ الْمُشْتَرِي او كه دا مشترى واخستلو. رَجَعَ الْبَائِعُ عَلَى الْمُشْتَرِي بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ نو بائع به مشترى باندې رجوع كوى. په نيټه دار ثمن سره، كَمَا كَانَ لكه څنګه چې (مخكې) وو. ،لِأَنَّ الشَّرْطَ الَّذِي جَرَى بَيْنَهُمَا څكه هغه شرط كوم چې ددوى دواړو په مينځ كي جارى شوې وو لَمْ يَبْطُلْ بِأَخْذِ الشَّفِيعِ هغه د شفيع د اخستلو په وجه باطل شوې نه وو. فَبَقِيَ مُوجِبُهُ نو د هغې حكم پاته دې فَصَارَ .نو داسې شوه كَمَا إِذَا بَاعَهُ لكه چې كله ئې خرڅ كړو بِثَمَنٍ حَالٍّ ..مبيع په نقد ثمن سره، وَقَدِ اشْتَرَاهُ مُؤَجَّلًا، حالانكه دا ئې پور اخستې وو.

**تشريح:-** كله چې شفيع دا كور په نقد قيمت سره اخلي. نو دوې (دوه) صورتونه دى. ① يا به ئې د بائع نه اخلي.



② يا به ئې د مشترى نه اخلي. كه د بائع نه ئې واخستلو. نو د مشترى په ذمه چې د بائع كوم ثمن وو. هغه د مشترى د ذمې نه ساقط شو. د تير شوى دليل په وجه، چې بيع د مشترى په حق كې فسخ شوه. او اوس شفيع د مشترى قائم مقام جوړ شوې دې. او د عقد فسخ كاوه سره ثمن ساقطيږى. او كه د مشترى نه ئې واخستلو. نو د مشترى په ذمه چې كوم ثمن وو. هغه به پخپل حال پر. پاتې وى. څكه چې د كور په شفعه كې د تللو په وجه به مخكنې شرط نه باطليږى. نو ددې حكم به پخپل حال پاته پاتې وى. او ددې په مثال داسې پوهه شئ. چه يوكس يو شئ پور واخستلو. او هغه ئې په نغدو خرڅ كړو. نو په نغدو خرڅولو په وجه پور ختم نشو. بلكه هغه پخپل حال پاته پاتې دې. دغه ډول دلته كې هم دې.

> وَإِنِ اخْتَارَ الِانْتِظَارَ او كه شفيع انتظار اختيار كړو. لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته ددې حق شته. ،لِأَنَّ لَهُ أَنْ لَا يَلْتَزِمَ زِيَادَةَ الضَّرَرِ مِنْ حَيْثُ النَّقْدِيَّةُ چې د نقد ور كاوه په حيثيت سره د ضرر د زياتوالى التزام اونكړى.

**حل اللغة:** ① اختار: غوره كړو ② يلزم: لازميږى ③ النقدية: نغد؛

**تشريح:-** مرغينانى رحمه الله بيا يوه مسئله بيان كړله. چه شفيع غواړى. چه كله موده تيره شى. هغه وخت به ثمن وركړم. او كور به واخلم. نو شفيع داسې كولې شى. شفيع نشى مجبوره كولې. چه اوس ثمن وركړه. او دا واخله. څكه كه شفيع باندې اوس دا لازم كړې شى. نو هغه ته به ضرر ملاو شى. څكه چې كور به هغه ته د هغې په قيمت ملاويږى. كله چې موده تيره شى. نو هغه ته به اوس د نغدو ور كاوه د ضرر نه ساتنه ملاو شى. تردې وخته پورې هغه دا خپل رقم په بل ځائې كې استعمالولې شى. او فائده اخستلې شى. په دې وجه به فى الفور اختسل په ده نه لازميږى. بلكه هغه ته به اختيار وى. كه غواړى. اوس دې واخلي. خو ثمن به نغد وى. يا دې د نيټې تيريدو انتظار اوكړى..

## د عبارت وضاحت او د امام ابويوسف رحمه الله مسلك

> وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ وَإِنْ شَاءَ صَبَرَ حَتَّى يَنْقَضِيَ الْأَجَلُ او په كتاب د امام قدورى رحمه الله قول «وإن شاء صبر حتى ينقض الأجل» مُرَادُهُ الصَّبْرُ عَنِ الْأَخْذِ ددې نه مراد اخستلو نه صبر كول دى. أَمَّا الطَّلَبُ عَلَيْهِ فِي الْحَالِ بهرحال طلب فى الحال دې. حَتَّى لَوْ سَكَتَ عَنْهُ تردې كه هغه د طلب نه سكوت اوكړو. ،بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله[1] نو د هغه شفعه به باطليږى. د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله په نيز،

**تشريح:-** مرغينانى رحمه الله فرمائى. چه په متن كي راغلى وو. «وإن شاء صبر حتى ينقض الأجل....» د دې مطلب دا وانخلئ. چه شفيع ته حق شته. چه د مودې تيريدو پورې د شفعې طلب كاوه نه صبر اوكړى. بلكه طلب خو به په علم كيدو سره كول لازم وى. ګنى د طرفينو رحمهما الله په نيز به شفعه باطليږى.

> خِلَافًا لِقَوْلِ أَبِي يُوسُفَ الْآخِرِ، په خلاف د امام ابويوسف رحمه الله د آخرى قول،

**تشريح:-** البته د امام ابويوسف رحمه الله آخرى قول دې. چه شفعه به نه باطليږى. امام ابويوسف رحمه الله به مخكې هم دا فرمائيل. كوم چې طرفين رحمهما الله فرمائى. بلكه مطلب دا دې. چه د اخستلو نه صبر كولې شى. پاتې شو طلب، نو دا به فى الحال كول لازم وى. د امام قدورى رحمه الله د قول تشريح پوره شوه. اوس د دواړو فريقو دلائل واورئ.

③ دامام ابويوسف رحمه الله دليل علامه مرغينانى رحمه الله نه دې بيان كړې خو د هغوى دليل دا دې چې طلب د شفعې په اصل كې مقصود نه دې. بلكه اخستل مقصود دى. او هغه په اخستلو باندې فى الحال قادر نه دې. نو بيا اوس دده په طلب كاوه سره هيڅ فائده نشته. نو فى الحال به دده سكوت د اعراض (يعنى د نه

---

[1] القول الراجح هو هذا قول الطرفين . رحمهما الله كذا فى البحر (٢٤٥/٨) وردالمحتار (١٦٣/٥) وملتقى الأبحر(١١٠/٤) نقلاًعن القول الراجح (٢٧٣/٢)_

اخستلو) دليل نه جوړيږي.

لِأَنَّ حَقَّ الشُّفْعَةِ إِنَّمَا يَثْبُتُ بِالْبَيْعِ، ځکه چې د شفعې حق بيع سره ثابتيږي وَالْأَخْذُ يَتَرَاخَى عَنِ الطَّلَبِ، او اخستل د طلب نه روستو کيږي. وَهُوَ مُتَمَكِّنٌ مِنَ الْأَخْذِ فِي الْحَالِ او هغه په في الحال اخستلو باندې قادر دې بِأَنْ يُؤَدِّيَ الثَّمَنَ حَالًا په دې طريقه چې ثمن نقد ادا کړي. فَيُشْتَرَطُ الطَّلَبُ عِنْدَ الْعِلْمِ بِالْبَيْعِ نو د بيع د علم په وخت طلب شرط دې.

حل اللغة: ① يتراخى: روستو کيږي ② متمكن: قدرت لرونکې

تشريح:- دا د طرفينو رحمهما الله دليل دې چې دا خبره خو مسلم (او منلې شوې) ده. چه په بيع کاوه سره فوراً شفعه کې طلب واجبيږي. پاتې شوه مسئله د اخستلو، نو په طلب او اخستلو کې فصل (او جدائي) راځي. چه ددې ډير زيات شواهد (او تائيدات) ملاويږي. بهرحال که دا اومنلې شي. چه اخستل د شفعې اصلي مقصود دې. نو شفيع ئې في الحال هم اخستلې شي. نغد ثمن دې ادا کړي. او واديخلي. دا خو شفيع د ضرر نه د بچ کاوه په وجه في الحال اخستل په ده باندې لازم نکړې شو. نو هرکله چې هغه في الحال اخستلو باندې قادر دې. نو د مخکې پشان به طلب في الحال لازم وي. يعني د بيع علم کيدو سره فوراً د شفعې طلب کول شرط دی. کنی د اعراض دليل موجود کيدو په وجه به شفعه باطليږي.

### د شرابو يا خنزير په بدله کښې د کور اخستلو په صورت کښې ذمي شفيع لپاره څه حکم دې؟

قَالَ (وَإِنِ اشْتَرَى ذِمِّيٌّ بِخَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ دَارًا) و کله ئې چې واخستلو د ذمي نه د شراب يا خنزير په بدله کې کور، وَشَفِيعُهَا ذِمِّيٌّ او ددې کور شفيع ذمي دې. أَخَذَهَا بِمِثْلِ الْخَمْرِ وَقِيمَةِ الْخِنْزِيرِ) نو دا به د شرابو په مثل او د خنزير د قيمت په بدله کې اخلي. لِأَنَّ هَذَا الْبَيْعَ مَقْضِيٌّ بِالصِّحَّةِ ځکه چې دا عقد فيصله کړې شوې دې. ددې د صحت، فِيمَا بَيْنَهُمْ ددې په مينځ کې، وَحَقُّ الشُّفْعَةِ يَعُمُّ الْمُسْلِمَ وَالذِّمِّيَّ او د شفعې حق عام دې. مسلمان او ذمي ته، وَالْخَمْرُ لَهُمْ كَالْخَلِّ لَنَا او شراب ددوی لپاره داسې دې. لکه زموږ لپاره چې سرکه ده. ، وَالْخِنْزِيرُ كَالشَّاةِ او خنزير ددوی لپاره داسې دې. لکه (زموږ دپاره) چيلئ، فَيَأْخُذُ فِي الْأَوَّلِ بِالْمِثْلِ نو اخلي به شفيع دا په ړومبی صورت کې د مثل په بدله کې، وَالثَّانِي بِالْقِيمَةِ او په دوهم صورت کې د قيمت په بدله کې،

حل اللغة: ① مقضى: هغه شئ چې فيصله په کې شوې وی ② الشاة: ګډه ③ الخل: سرکه

تشريح:- د يو ذمي کور دې. چه دا بل ذمي د شرابو يا خنزير په بدله کې واخستلو. او د کور شفيع هم ذمي دې. او شفعه د مسلمان او ذمي ټولو لپاره عام ده. او د ذميانو لپاره د شرابو حکم زموږ لپاره د سرکې د حکم پشان دې. او هغوی لپاره د خنزير حکم زموږ لپاره د وزه د حکم پشان دې. بهرحال ذمي شفيع به د شرابو په صورت کې د شرابو مثل ورکوی. او دا کور به اخلي. او د خنزير په صورت کې به د خنزير قيمت ورکوی او کور به اخلي. ځکه چې شراب د ذوات الامثال څخې دی. او خنزير د ذوات القيم څخې دې. او په ړومبی کې مثل او دوهم کې د قيمت حکم دې.

### که شفيع مسلمان وښو د شرابو او خنزير قيمت به ورکوی

قَالَ (وَإِنْ كَانَ شَفِيعُهَا مُسْلِمًا) وکه د کور شفيع مسلمان وی. (أَخَذَهَا بِقِيمَةِ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ) نو شفيع به دا د شرابو او خنزير د قيمت په بدله کې اخلي. أَمَّا الْخِنْزِيرُ فَظَاهِرٌ بهرحال خنزير نو دا خو ښکاره دې. ، وَكَذَا الْخَمْرُ او هم دغه ډول شراب دی. لِامْتِنَاعِ التَّسَلُّمِ وَالتَّسْلِيمِ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ فَالْتَحَقَ بِغَيْرِ الْمِثْلِيِّ د سپارلو او قبضه کاوه د ممتنع کيدو په وجه د مسلمان په حق کې.

تشريح:- که ددې کور شفيع مسلمان وی. نو هغه ته به هم شفعه ملاويږي. خو هغه به په دواړو صورتونو کې د شرابو يا خنزير قيمت ورکوی. پاتې شو خنزير کې قيمت ورکول، نو دا خو ښکاره ده. او پاتې شوه مسئله د



شرابو، نو چونکه مسلمان نه په شرابو قبضه کولې شي. او نه بل ته ورکولې شي. نو د مسلمان په حق کې شراب د غير مثلي په حکم کې دی. نو شراب غير مثلي شو. او په غيرمثلي کې قيمت ورکولې شي. په دې وجه به دې کې هم قيمت ورکولې شي.

### که د ذکر شوی کور شفيع مسلمان او ذمي وښو څه حکم دې؟

وَإِنْ كَانَ شَفِيعُهَا مُسْلِمًا وَذِمِّيًّا او که ددې شفيع مسلمان او ذمي وی. أَخَذَ الْمُسْلِمُ نِصْفَهَا بِنِصْفِ قِيمَةِ الْخَمْرِ نو مسلمان به ددې نصف د شرابو د قيمت په بدله کې اخلي. وَالذِّمِّيُّ نِصْفَهَا بِنِصْفِ مِثْلِ الْخَمْرِ او ذمي به ددې نصف د شرابو د نصف په بدله کې اخلي. اعْتِبَارًا لِلْبَعْضِ بِالْكُلِّ بعض په کل باندې قياس کاوه سره. فَلَوْ أَسْلَمَ الذِّمِّيُّ أَخَذَهَا بِنِصْفِ قِيمَةِ الْخَمْرِ نو که ذمي مسلمان شو. نو اخلي به دا (کور) د شرابو د قيمت د نصف په بدله کې لِعَجْزِهِ عَنْ تَمْلِيكِ الْخَمْرِ دده د عاجز کيدو په وجه، د شرابو د مالك جوړولو نه، وَبِالْإِسْلَامِ يَتَأَكَّدُ حَقُّهُ او د اسلام په وجه دده حق مؤکد کيږي. لَا أَنْ يَبْطُلَ دا نه چې باطل شي.

تشريح:- که هم ددې مذکوره کور شفيع مسلمان او ذمي دواړه وی. نو اوس څه حکم دې؟ نو ځواب ئې ورکړو. چه لکه څنګه په دوی دواړو کې د هر يو حکم د جلا جلا په صورت کې وو. دغه ډول اوس (د يو ځائې کيدو په صورت کې) هم دې. يعني مسلمان به ددې کور نصف برخه اخلي. او په بدله کې به د شرابو د قيمت نصف ادا کوی. ځکه چې مسلمان د خپل اسلام په وجه د شرابو ور کاوه نه عاجز دې. او ذمي به ددې کور نصف اخلي. او هم ددې پشان د شرابو نصف به ورکوی. ځکه چې د کل شفعې اخستلو په صورت کې هم دا حکم وو. د بعض (شفعې) په صورت کې به هم دا حکم وی.

او که د مسلمان انډيوال ذمي هم مسلمان شو. نو بيا ددې هم دا حکم دې. کوم چې د مسلمان بيانولې شي. يعني هغه به هم دا د شرابو د قيمت د نصف په بدله کې اخلي. ځکه چې هغه شراب نشي ورکولې. او د اسلام په وجه د هغه حق باطل نشو. بلکه نور هم مضبوط شو. او د شرابو ور کاوه ګنجائش نشته. نو هم هغه صورت به متعين وی. کوم چې موږ بيان کړو. يعني د شرابو د قيمت نصف به ورکوی.

فَصَارَ كَمَا إِذَا اشْتَرَاهَا بِكُرٍّ مِنْ رُطَبٍ نو داسې شی. لکه چې کله ئې اخستې وی. دا د يو کُر کجورو په بدله کې، فَحَضَرَ الشَّفِيعُ بَعْدَ انْقِطَاعِهِ بيا شفيع حاضر شو. د کجورو د منقطع کيدو نه پس، يَأْخُذُ بِقِيمَةِ الرُّطَبِ نو اخلي به هغه دا د کجورو د قيمت په بدله کې كَذَا هَذَا، دغه ډول دا هم دې.

حل اللغة: ① بكر: ډيرې ② انقطاع: کټ کيدل ③ الرطب: تازه قجورې

تشريح:- په دې عبارت سره فرمائي. که مشتری د يو کُر کجورو په بدله کې کور واخستلو. او شفيع چې کله د سفر نه راغې. دغه وخت کجورې د بازار نه منقطع شوې. يعني ګويا شفيع د کجورو ور کاوه نه عاجز شو. نو بيا به شفيع ددې کجورو په بدله کې کور په شفعه کې اخلي. دغه ډول دلته هم دې.

تنبيه: کُر يوه پيمانه ده. چه دا د دولس وسقو (برابر) وی. او يو وسق پنځه منه او دوې (دوه) نيم کلو وی. نو د کُر وزن شپيته منه او لس کم سل کلو شو. يعني څليريشت زنبيل (کونټل) لس کم سل کلو شو.

## فصل

(دا) فصل دې.

تشريح:- په مشفوع کې عدم تغير (او تبديل) اصل دې. او زيادت او نقصان سره تغير که د مشتری په فعل سره شوې وی. او که د بل چا په فعل سره شوې وی. دا عارضي شئ دې. په دې وجه ئې دا په جلا فصل کې بيان کړو. او د تفسير په صورت کې څه احکام دی. هغه ئې دلته بيان کړل.

### که مشتری په مشفوعه کور کښې څه تعمير اوکړی نو شفيع لپاره څه حکم دې؟

). قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. (وَإِذَابَنَى الْمُشْتَرِي) وكله چې مشتري كور جوړ كړو فِيهَا أَوْغَرَسَ .يا ئې ونې اولګولې. ثُمَّ قُضِيَ لِلشَّفِيعِ بِالشُّفْعَةِ بيا شفيع لپاره د شفعې فيصله اوكړې شوه. فَهُوَ بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِالثَّمَنِ نو شفيع اختيار سره دې. كه غواړي. دا مځكه دې د ثمن په بدله كې واخلي. وَقِيمَةِ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ او آبادي او ونې دې د قيمت په بدله (كې واخلي) وَإِنْ شَاءَ كَلَّفَ الْمُشْتَرِيَ قَلْعَهُ) وكه غواړي. مشترې دې ددې د اوښكلو مكلف كړي.

حل اللغة: ① غرس: بوټې اوكرل ② البناء: آبادي ③ القلع: ويستل، ختمول

تشريح:- مشتري كور واخستلو. په دې كې ئې آبادي جوړه كړله. يا ئې باغ اولګولو. بيا شفيع لپاره قاضي د شفعې فيصله وركړله. نو په ظاهرالرواية كې اوس شفيع لپاره دوې (دوه) حكمونه دي: ① كه هغه غواړي. نو ددې زمكې ثمن او د آبادۍ او ونو قيمت دې وركړي. او دا دې واخلي. ② اوكه غواړي. نو مشتري ته دې اووائي. چه خپله آبادي دې ورانه كړه. او ونې دې اوباسه.

## د امام ابويوسف رحمه الله نقطه نظر

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دي. أَنَّهُ لَا يُكَلَّفُ الْقَلْعَ چې مشتري به د اوښكلو مكلف نشي جوړولې. وَيُخَيَّرُ بَيْنَ أَنْ يَأْخُذَ بِالثَّمَنِ وَقِيمَةِ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ وَبَيْنَ أَنْ يَتْرُكَ، او ده (شفيع) ته به اختيار وركولې شي. په مينځ ددې كې چې په ثمن او د آبادۍ او ونو د قيمت په بدله كې ئې واخله. او په دې مينځ كې چې پريږده.

تشريح:- دا د امام ابويوسف رحمه الله قول نقل كړې شوې دې. چه مشتري ته به د اوښكلو تكليف نشي وركولې. بلكه شفيع ته به صرف دوې (دوه) اختياره ملاويږي. ① د آبادۍ او ونو قيمت وركړي. او د زمكې ثمن وركړي. او مشفوع (كور) واخلي. ② شفع پريږدي.

وَبِهِ قَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او هم دا امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دي. إِلَّا أَنَّ عِنْدَهُ لَهُ خو ددوی په نيز شفيع ته اختيار دې، أَنْ يَقْلَعَ وَيُعْطِيَ قِيمَةَ الْبِنَاءِ. چه اوباسي. او د آبادۍ د نقصان قيمت ادا كړي.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرماني. چه د امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې. خو ددوی او د امام ابويوسف رحمه الله په قول كې لږ توپير دې. يعنې د امام ابويوسف رحمه الله خو دوې (دوه) قوله دي. او د امام شافعي رحمه الله درې قوله دي: ① ثمن وركړي. او د آبادۍ قيمت ادا كړي. او مځكه واخلي. ② شفعه پريږدي. ③ مشتري ته د خپلې آبادۍ ورانولو تكليف وركړي. او د ورانولو په وجه چې دهغه په ماليت كې كومه كمي راغلې ده. دغه نقصان ادا كړي. په «إلا أن عنده أن يقلع ويعطي قيمته البناء» سره مرغيناني رحمه الله هم دا فرمائيلي دي.

## د امام ابويوسف رحمه الله دليل

لِأَبِي يُوسُفَ رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې. أَنَّهُ مُحِقٌّ فِي الْبِنَاءِ چې مشتري په آبادۍ (جوړولو) كې په حقه دې. لِأَنَّهُ بَنَاهُ عَلَى أَنَّ الدَّارَ مِلْكُهُ ځكه چې هغه كور ځكه چې جوړ كړو. چه كور دده ملكيت دې. وَالتَّكْلِيفُ بِالْقَلْعِ او د اوښكلو تكليف وركول، مِنْ أَحْكَامِ الْعُدْوَانِ د ظلم د احكامو څنې دې.

حل اللغة: ① العدوان: ظلم، زياتې ② الدار: كور

تشريح:- امام ابويوسف رحمه الله په دليل پيش كاوه كې فرماني. چه مشتري په ظلم سره آبادي نه ده جوړه كړې. بلكه پخپل ملك كې ئې كړې دې. نو مشتري په دې تصرف كې په حقه دې. بيا هغه ته د اوښكلو حكم وركول ظلم او زياتې دې.

صَارَ او داسې شوه كَالْمَوْهُوبِ لَهُ وَالْمُشْتَرِي شِرَاءً فَاسِدًا، لكه موهوب له او لكه هغه څيز، كوم چې شراء فاسد



سره اخستلې شوې وي. وَكَمَا إِذَا زَرَعَ الْمُشْتَرِي او لكه كله چې مشتري فصل كرلې وي. فَإِنَّهُ لَا يُكَلَّفُ الْقَلْعَ نو دې (په دوی كې به څوك هم) د اوښكلو مكلف نشي جوړولې.

تشريح:- په دې عبارت كې علامه مرغيناني د امام ابويوسف رحمه الله د اړخه په خپله مدعی باندې درې شواهد پيش كړي دي: ① كه واهب يوه مځكه چاته هبه كړله. او موهب له (چاته چې هبه كړې شوې ده) په دې (مځكه) كور جوړ كړو. اوس واهب غواړي. چه د هغه كور وران كړم. او مځكه واپس واخلم. نو واهب ته دا اختيار نشته. دغه ډول به دلته كې هم وي. ② مشتري يوه مځكه په شراء فاسد سره واخستله. او بيا ئې په دې باندې كور جوړ كړو. اوس بائع غواړي. چه كور ورانوم. او مځكه واپس اخلم. نو بائع ته ددې حق نشته. دغه ډول به دلته شفيع ته د ورانولو حق نه وي. ③ مشتري مځكه واخستله. او په دې كې ئې فصل اوكرلو. فصل ولاړ دې. چه ددې زمكې په اړه كې قاضي د شفيع په حق كې فيصله وركړله. اوس شفيع غواړي. چه دده فصل كټ كړم. او په مځكه باندې قبضه اوكړم. نو شفيع ته به دا حق نه وي. دغه ډول به د آبادۍ وغيره ورانولو حق هم نه وي.

## شفيع لپاره قيمت سره اخستلو كښې نقصان نشته

وَهَذَا لِأَنَّ فِي إِيجَابِ الْأَخْذِ بِالْقِيمَةِ دَفْعَ أَعْلَى الضَّرَرَيْنِ او دا ځكه چې د قيمت په بدله كې د اخستلو په واجب كاوه كې په دوې (دوه) ضررونو كې غټ (ضرر) لرې كول دي. بِتَحَمُّلِ الْأَدْنَى فَيُصَارُ إِلَيْهِ كم (ضرر) برداشت كاوه سره، نوهم دې اړخ ته به رجوع كولې شي.

حل اللغة: ① اعلى: زيات ② ايجاب: واجبول ③ يتحمل: برداشت كوي ④ الادنى: معمولي، كم

تشريح:- او امام ابويوسف رحمه الله فرماني. كه مشتري ته اووئيلې شي. چه آبادي (ورانه كړه) او ونې اوباسه. نو د هغوی قوی ضرر دې. او سخت نقصان دې. او كه شفيع ته اووئيلې شي. چه دا د قيمت په بدله كې واخله. نو معمولي نقصان دې. چه هغه اخستل نه غواړي. خو وركولې شي. نو د هغه نه چې كوم قيمت اخستلې شي. هغه به مفتو كې نشي اخستلې. بلكه د هغې بدل ،، آبادي او ونې،، موجود دي. بهرحال د مشتري ضرر زيات دې. او د شفيع كم دې. او اصول دا مقرر دې. چه د غټ نقصان لرې كاوه لپاره معمولي نقصان برداشت كولې شي. نو هم دا طريقه به دلته كې اختيارولې شي. چه د مشتري د سخت ضرر نه بچ كاوه لپاره به شفيع ته وئيلې شي. چه ددې قيمت ادا كړه. او دا واخله.

## د ظاهرالرواية دليل

وَوَجْهُ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د ظاهرالرواية دليل دا دې. أَنَّهُ بَنَى فِي مَحَلٍّ تَعَلَّقَ بِهِ حَقٌّ مُتَأَكِّدٌ چه مشتري په داسې ځائې كې آبادي جوړه كړې ده. چه هغې سره د غير (اجنبی كس) مضبوط حق متعلق دې. لِلْغَيْرِ ظاهرالرواية مِنْ غَيْرِ تَسْلِيطٍ مِنْ جِهَةِ مَنْ لَهُ الْحَقُّ د حقدار د اړخه د مقررولو (او مسلط كولو) نه بغير فَيُنْقَضُ نو دا به ورانولې شي.

تشريح:- مرغيناني رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله د دلائلو نه د فراغت نه روسته دلته د ظاهرالرواية دليل بيانوی. چه اصول دا دې. كه په يو شئ كې د چا حق وي. او حقدار څوك مسلط (مقرر) كړې نه وي. چه په دې كې څه تصرف اوكړي. او څوك (پخپله) تصرف اوكړي. نو د هغه تصرف ماتولې شي. هركله چې دا اصول مقرر دې. نو اوس اوګورئ. چه دا د شفيع حق دې. او شفيع مشتري ته حكم نه دې وركړې. چه دلته كور جوړ كړي. او هغه جوړ كړو. نو ددې قاعدې مطابق به د هغې د ورانولو حكم وركولې شي.

كَالرَّاهِنِ إِذَا بَنَى فِي الْمَرْهُونِ لكه راهن كله چې هغه په مرهون كې كور جوړ كړي. وَهَذَا لِأَنَّ حَقَّهُ أَقْوَى مِنْ حَقِّ الْمُشْتَرِي او ځكه چې دهغه حق د مشتري د حق نه زيات مضبوط دې. لِأَنَّهُ يَتَقَدَّمُ عَلَيْهِ ځكه چې شفيع مشتري باندې وړاندې دې. وَهَذَا يَنْقُضُ بَيْعَهُ وَهِبَتَهُ وَغَيْرَهُ مِنْ تَصَرُّفَاتِهِ او په دې وجه د هغه بيع، او هبه او د هغه نور تصرفات ماتولې شي.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله ددې مثال بیانوي چې دا داسې دې کله چې راهن په مرهون کې کور جوړ کړو. اګرچه مرهون د راهن ملکیت دې. او په دې کې د مرتهن حق متعلق دې. نو ددې حق د متعلق کیدو په وجه د راهن تصرف ماتولې شي. دغه ډول به دلته کې هم ماتولې شي. ولې به ماتولې شي؟ ځکه چې شفیع وړاندې دې. او دده حق د مشتري د حق نه مضبوط دې. هرکله چې خبره داسې ده. نو که مشتري دا خرڅ کړو. یا ئې هبه کړو. یا ئې بل څه تصرف اوکړو. نو دا به ماتولې شي.

## په هبه او شراء فاسد کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله مسلک

بِخِلَافِ الْهِبَةِ وَالشِّرَاءِ الْفَاسِدِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله په خلاف د هبې او شراءِ فاسد په نیز د امام ابوحنیفه رحمه الله، لِأَنَّهُ حَصَلَ ځکه چې دا حاصل شوې دې. بتسليط من جهة من له الحق د حقدار د اړخه د مقرر کاوه په وجه، بِتَسْلِيطٍ مِنْ جِهَةِ مَنْ لَهُ الْحَقُّ، وَلِأَنَّ حَقَّ الِاسْتِرْدَادِ فِيهِمَا ضَعِيفٌ او ځکه چې په دې (هبه او شراءِ فاسد) دواړو کې د واپس کاوه حق کمزورې دې.

حل اللغة: ① تسلیط: مقرر کول ② جهة: طرف ③ الاسترداد: طلب د واپس کولو ④ ضعیف: کمزورې

تشریح:- امام ابویوسف رحمه الله د شفعې مسئله په هبه باندې قیاس کړې وه. نو ددې ځواب ئې ورکړو. چه دا قیاس مع الفارق دې. ځکه چې په هبه کې خو موهوب له د واهب د اړخه په تصرف کاوه باندې مقرر وو. او مشتري د شفیع د اړخه مقرر نه وو. نو بیا به قیاس څنګه صحیح وي. اوهم دغه ډول په شراءِ فاسد کې مشتري د بائع د اړخه تصرفاتو باندې مقرر وو. په خلاف د مشتري او د شفیع،

د.. عند أبي حنيفة رحمه الله...... قید ولې دې؟ ځکه چې د واپسئ حق نه کیدل په شراءِ فاسد کې د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې. ګنې صاحبین رحمهما الله فرمائي. چه په شراءِ فاسد کې کله چې مشتري په اخستې شوې مځکه باندې کور جوړ کړو. نو بائع ته د واپس اخستلو حق شته.

بهرحال شفعه په دې دواړو (هبه او شراءِ فاسد) باندې قیاس کول صحیح نه دی. د پورته ذکر شوی دلیل په وجه، او ددې دلیل په وجه چې په هبه او شراءِ فاسد کې د واپس اخستلو حق کمزورې دې. او په شفعه کې په هر صورت کې مشتري نه واپس اخستل صحیح دی. بهرحال په هبه او شراءِ فاسد کې د کور جوړولو نه روستو حق د واپس اخستلو پاته نه پاتې کیږي. او په شفعه کې پاتې کیږي. نو هرکله چې واپس اخستل د شفیع حق دی. نو په ده باندې د قیمت واجب کاوه څه معنی ده.

وَهَذَا لَا يَبْقَى بَعْدَ الْبِنَاءِ او په دې وجه به دا حق د آبادئ نه روسته پاته نه پاتې کیږي. وَهَذَا الْحَقُّ يَبْقَى او دا حق (شفعه) به پاته پاتې کیږي. فَلَا مَعْنَى لِإِيجَابِ الْقِيمَةِ نو د قیمت د وجوب هیڅ مطلب نشته كَمَا فِي الِاسْتِحْقَاقِ لکه څنګه چې د استحقاق په صورت کې دی.

تشریح:- د دې وضاحت به داسې وی چې لکه چې یوکس یو ځائې (مځکه) واخستله. او په دې ئې کور جوړ کړو. او یوکس دعوه اوکړله. چه ددې زمکې مالك زه یم. قاضي د مستحق لپاره فیصله اوکړله. نو مستحق به دا مځکه اخلي. او د مشتري عمارت به ورانه وي. او په مستحق به هیڅ ضمان یا هیڅ قیمت واجب نه وي. البته مشتري ته حق شته. چه هغه بائع اړخ ته رجوع اوکړي. اوخپل ثمن او قیمت د ابادئ بائع نه واپس واخلي.

## د امام ابویوسف رحمه الله د قیاس جواب

وَالزَّرْعُ يُقْلَعُ قِيَاسًا او فصل به اوبښکلې شي. په اعتبار د قیاس سره، لِأَنَّ لَهُ نِهَايَةً مَعْلُومَةً ځکه چې د فصل انتهاء معلومه ده. وَإِنَّمَا لَا يُقْلَعُ اسْتِحْسَانًا او استحساناً به نشي اوبښکلې. وَيَبْقَى بِالْأَجْرِ او دا به پاته ساتلې شي. اجرت سره وَلَيْسَ فِيهِ كَثِيرُ ضَرَرٍ او په دې کې زیات ضرر نشته.

تشریح:- امام ابویوسف رحمه الله شفعه په فصل باندې قیاس کړې وه. نو د هغې ځواب ئې ورکړو. چه دا قیاس



صحیح نه دې. ځکه چې د فصل په سلسله کې خو قیاس دا وائي. چه اوبښکلې به شي. او د استحسان تقاضه دا ده. چه اوبښکلې به نشي. ځکه چې د فصل موده معلومه ده. او د آبادئ او باغونو انتهاء معلومه نه ده. نو هرکله چې معلومه ده. چه فصل به مثلاً یوه میاشت روسته کټ کولې شي. او مشتري نه د یو میاشت اجرت او کرائي اخستلې کیداې شي. نو په دې کې دشفیع څه زیات نقصان نشته. نو بهرحال آبادی او باغ په فصل باندې قیاس کول صحیح نه دی.

## د کور او د وونو کوم قیمت معتبر دې؟

وَإِنْ أَخَذَ بِالْقِيمَةِ شفیع دا (ابادی) د قیمت په بدله کې واخستله. يُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ مَقْلُوعًا نو ددې د اوبښکلی شوی قیمت اعتبار به کولې شي. كَمَا بَيَّنَّاهُ فِي الْغَصْبِ لکه څنګه چې موږ په کتاب الغصب کې بیان کړی دی.

تشریح:- که شفیع اختیار کړل. چه زه ددې د آبادئ او ونو قیمت ورکوم. نو فرمائي. چه د ولاړ کور او ولاړو ونو د قیمت اعتبار به نه کیږي. بلکه که دا آبادی ورانه کړې شي. او دا ونې اوبښکلې شي. دغه وخت چې ددې کوم قیمت وي. شفیع به دغه اومره قیمت ادا کوي.

## د شفیع د اخستلو نه روستو ځول مستحق راوځنو څه حکم دې؟

وَلَوْ أَخَذَهَا الشَّفِيعُ فَبَنَى فِيهَا او که واخستله دا مځکه شفیع، بیا ئې په دې کې آبادی اوکړله. أَوْ غَرَسَ ثُمَّ اسْتُحِقَّتْ یائې ونې اولګولې. بیا دا مځکه مستحق اوختله. رَجَعَ بِالثَّمَنِ نو شفیع به ثمن واپس اخلي. لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ أَنَّهُ أَخَذَهُ بِغَيْرِ حَقٍّ که دا خبره ښکاره شوه. چه هغه دا د حق نه بغیر اخستې ده. وَلَا يَرْجِعُ بِقِيمَةِ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ او رجوع به نه کوی (شفیع) د آبادئ او ونو د قیمت په سلسله کې، لَا عَلَى الْبَائِعِ إِنْ أَخَذَهَا مِنْهُ نه په بائع باندې که هغه دا د بائع نه اخستې وی وَلَا عَلَى الْمُشْتَرِي إِنْ أَخَذَهَا مِنْهُ، او نه (به رجوع کوی) په مشتري باندې، که هغه د مشتري نه اخستې وی.

تشریح:- مشفوعه مځکه شفیع واخستله. په دې کې ئې کور جوړ کړو. یا ئې باغ اولګولو. اوس یوکس ددې زمکې د استحقاق دعوه اوکړله. او قاضي د مستحق لپاره فیصله اوکړله. نو مځکه به د مستحق وی. او شفیع ته به وئیلې شي. چه خپله آبادی ورانه کړه. یا ونې اوباسه. او یوئې سه. د آبادئ قیمت یا ددې د ورانولو نقصان به هغه ته نه ملاویږي. بلکه هغه ته به صرف ثمن ملاویږي. چه دا به د بائع نه د اخستلو په صورت کې بائع ادا کوی. او د مشتري نه د اخستلو په صورت کې به ئې مشتري ادا کوی. او شفیع ته به د آبادئ وغیره قیمت نه د مستحق د اړخه ملاویږي. او نه به د بائع د اړخه ملاویږي.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَرْجِعُ او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی. چه شفیع به رجوع کوی. لِأَنَّهُ مُتَمَلِّكٌ عَلَيْهِ ځکه چې شفیع مالك شوې دې. فَنَزَلَا مَنْزِلَةَ الْبَائِعِ وَالْمُشْتَرِي په دې (مځکه)، نو راکوزولې به شی دوی دواړه د بائع او مشتري په درجه کې،

تشریح:- په دې مسئله کې امام ابویوسف رحمه الله فرمائي. چه شفیع به خپل نقصان د بائع یا مشتري نه پوره کوی. یعنی که بائع نه د اخستلو په صورت کې به نقصان د بائع نه وصولوی. او د مشتري نه د اخستلو په صورت کې به نقصان د مشتري نه وصولوی. ځکه چې شفیع په دوی دواړو کې د یو نه ملکیت حاصل کړې دې. نو شفیع او د چا نه چې شفیع اخستې ده. دوی دواړه به د بائع او مشتري په درجه کې راکوزولې شي. او مشتري به د مبیع د استحقاق په صورت کې بائع اړخ ته رجوع کوی. نو هم دغه ډول به شفیع هم رجوع کوی.

وَالْفَرْقُ عَلَى مَا هُوَ الْمَشْهُورُ او توپیر د هغه روایت مطابق کوم چې مشهور دې. أَنَّ الْمُشْتَرِيَ مَغْرُورٌ مِنْ جِهَةِ الْبَائِعِ دا دې. چه مشتري ته دهوکه ورکړې شوې ده. د بائع د اړخه وَمُسَلَّطٌ عَلَيْهِ مِنْ جِهَتِهِ، او مقرر شوې دې. په دې باندې د بائع د طرفه، وَلَا غُرُورَ وَلَا تَسْلِيطَ فِي حَقِّ الشَّفِيعِ او دهوکه او مقررول نشته د شفیع په حق کې د مشتري د

طرفه، مِنَ الْمُشْتَرِي لِأَنَّهُ مَجْبُورٌ عَلَيْهِ ځکه چې مشتري مجبور دې په دې (شفعه ورکولو) باندې.

حل اللغة: ① مغرور: دهوكه وركړې شوي ② تسليط: مقرر كول

تشريح:- په دې عبارت کي د دواړو په مينځ کي توپير دا دې .چه د بائع او مشتري په مسئله کي بائع مشتري ته دهوکه ورکړې ده.او بائع مشتري په دې باندې تصرف کاوه باندې مقرر کړې وو.په دې وجه به بائع اړخ ته رجوع کوی.خو د شفيع په مسئله کي شفيع ته مشتري هيڅ دهوکه نه ده ورکړې.او نه مشتري شفيع مقرر کړې دې.بلکه مشتري خو مجبوراً دا ځمکه شفيع ته حواله کړې ده.په دې وجه ړومبی صورت کي رجوع صحيح ده.او په دوهم صورت کي صحيح نه ده.

## د كور ورانيدو،يا د آبادئ خرابيدو په صورت کښې شفيع لپاره څکم دی ؟

قَالَ امام قدوری رحمة الله عليه اوفرمائيل. وَإِذَا انْهَدَمَتِ الدَّارُ او هرکله چې کور وران شو. أَوِ احْتَرَقَ بِنَاؤُهَا يا ددې آبادی اوسوزيدله. أَوْ جَفَّ شَجَرُ الْبُسْتَانِ بِغَيْرِ فِعْلِ أَحَدٍ يا د باغ ونې اوچې شوې. د چا د فعل نه بغير، فَالشَّفِيعُ بِالْخِيَارِ نو شفيع ته اختيار دې. إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِجَمِيعِ الثَّمَنِ که غواړی.دا دې واخلی.په پوره ثمن سره، لِأَنَّ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ تَابِعٌ ځکه چې آبادی او ونې تابع دی. حَتَّى دَخَلَا فِي الْبَيْعِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ تردې چې د ذکر نه بغير بيع کي داخليږي. فَلَا يُقَابِلُهُمَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ مَا لَمْ يَصِرْ مَقْصُودًا نو ددې په مقابله کي به هيڅ ثمن نه راځی.ترکومه پورې چې مقصود نه وی وَلِهَذَا جَازَ بَيْعُهَا مُرَابَحَةً بِكُلِّ الثَّمَنِ فِي هَذِهِ الصُّورَةِ او هم په دې وجه جائز دی خرڅول ددې د مرابحۀ په طريقه، په پوره ثمن سره، په دې صورت کي ،

حل اللغة: ① انهدمت: اونوړيدو ② الدار: كور ③ احترق: اوسوزيدو ④ جف: اوچه شوه ⑤ شجر: وونه ⑥ بستان: باغ ⑦ الغرس: د ونې كرل ⑧ مرابحة: په گټه

تشريح:- وړاندې د دې بيان شوې دې چې وصف د موصوف تابع دې.او دا اصول مقرر دې. چې ترکومه پورې وصف مقصود جوړ نشی.د وصف په مقابله کي به ثمن نه راځی.يعنی د وصف په زياتوالی سره به ثمن کي زياتوالي نه راځی.او د وصف په کموالی سره به ثمن کي کمې نه راځی.او په آبادئ کي اور لګيدو سره ددې سوزيدل، او د آبادئ غورزيدل، يا د باغ د ونو اوچيدل، دا د کور او باغ اوصاف دی.ځکه چې دا د کور او باغ تابع دی.او په ديرش بيګه (يعنی اتيا مرلې) ځمکه کي د پنځلسو ډوبيدل (او غرقيدل) يعنی په درياب کي ملاويدل، دا د وصف کمې نه دې.بلکه د اصل او ذات کمې دې.ځکه چې د زمکې په ذات کي کمې واقع شوې دې.بهرحال ړومبې تابع دې.او په دوهم صورت کي پنځلس بيګه (څلويښت مرلې) ځمکه د نورې پنځلس بيګه زمکې تابع نه ده.د ړومبی د وصف کيدو دليل دا دې.که يوکس کور واخستلو.او د عمارت نې په دې کي هيڅ ذکر اونکړو.بيا به هم عمارت په بيع کي داخل وی.دغه ډول د زمکې اخستلو کي به ونې داخل وی.معلومه شوه چې دا اوصاف دی.

ړومبې صورت د مسئلې دا دې که مشتري کور يا باغ واخستلو.او دا کور وران شو.يا دا اوسوزيدو.يا باغ وو.چه د هغې ونې اوچې شوې.او شفيع دلته د شفعې دعوه کړې وه.نو اوس شفيع ته دوې (دوه) اختياره دی ① که اخستل غواړی.نو پوره ثمن ادات کاوه سره دا دا مذکوره مبيع اخستلې شی.ځکه که هغه د خپل مال په بدله کي دکور مالك جوړ نشی.نو دا دهغه حق دې.② که شفعه دې پريږدی.ځکه چې دا مذکوره واړه شيان اوصاف دی.او ترکومه پورې چې اوصاف مقصود نه وی.نو په دې کي کمې زياتی سره ثمن کي کمې زياتې نه راځی.او په ثمن کي د کمی نه کيدو ښکاره دليل دا دې.که شفيع دا ځمکه هم په دې حالت کي خرڅوی. يعنی بيع مرابحه کول اوغواړی.نو د بيان نه بغير پوره ثمن سره بيع مرابحه کولې شی.او دا ښکاره ثبوت دې. چې په ثمن کي به کمې نه کيږی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا غَرِقَ نِصْفُ الْأَرْضِ په خلا نيمه برخه غرقه شی. حَيْثُ يَأْخُذُ الْبَاقِي بِحِصَّتِهِ په دې حيثيت سره چې شفيع



پاته ددې د برخې (حصې) په عوض اخستلې شی. لِأَنَّ الْفَائِتَ بَعْضُ الْأَصْلِ ځکه چې کومه (حصه) فوت شوې ده.هغه د اصل بعضې برخه ده. قَالَ امام قدوری رحمة الله عليه فرمائی. وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ اوکه غواړی.پرې دې دې. لِأَنَّ لَهُ أَنْ يَمْتَنِعَ عَنْ تَمَلُّكِ الدَّارِ بِمَالِهِ ځکه شفيع ته حق شته.چه هغه منع شی د خپل مال په بدله کي کور د مالك کيدو نه.

حل اللغة: ① غرق: په اوبه کي غرق شو ② الفائت: ضائع شوې ③ ترك: پريښودلو ④ تملك: مالك جوړيدل

تشريح:- په دې عبارت کي بل صورت بيانوی اوفرمائی که د زمکې څه برخه ماته شوه.او په درياب کي غرقه شوه.نو چونکه دا په اصل کي کمې کيږی.په دې وجه دې دلته شفيع دومره رقم په ثمن کي کم کړی.څومره چې ځمکه کمه شوه.په مذکوره مثال کي به نيم ثمن کمولې شی.ځکه چې اصل کي (نيمه کمې واقع) شوې ده.خو دا واړه تفصيلات هغه وخت دی.کله چې دا توپير اوکمی د څه آسمانی آفت په وجه شوې وی.په دې کي د چا د کار او عمل دخل نه وی.او که د چا په فعل سره داسې شوې وی.نو حکم دا دې.کوم چې امام قدوری رحمة الله عليه بيانوی.

## مشتري آبادي ورانه کړي نو شفيع لپاره څه حکم دی ؟

قَالَ امام قدوری رحمة الله عليه اوفرمائيل. وَإِنْ نَقَضَ الْمُشْتَرِي الْبِنَاءَ اوکه مشتري آبادی ورانه کړله. قِيلَ لِلشَّفِيعِ نو شفيع ته به وئيلې شی. إِنْ شِئْتَ فَخُذِ الْعَرْصَةَ بِحِصَّتِهَا ،که ته غواړې.نو خالی ځائې (ځمکه) ددې د برخې (حصې) په بدله کي واخله. وَإِنْ شِئْتَ فَدَعْ اوکه غواړې.نو پريږده. لِأَنَّهُ صَارَ مَقْصُودًا بِالْإِتْلَافِ ځکه چې دا په ضائع کاوه سره مقصود شو. فَيُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ نو ددې په مقابله کي به ثمن راځی. بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د ړومبی صورت، لِأَنَّ الْهَلَاكَ بِآفَةٍ سَمَاوِيَّةٍ ځکه چې هلاکت د آسمانی آفت په وجه سره شوې دې. (وَلَيْسَ لِلشَّفِيعِ أَنْ يَأْخُذَ النَّقْضَ) او شفيع ته دا حق نشته.چه ملبه واخلی. لِأَنَّهُ صَارَ مَفْصُولًا ځکه چې دا جلا شوې دې فَلَمْ يَبْقَ تَبَعًا نو تابع پاته پاتې نشو.

حل اللغة: ① العرصة: ميدان، خالی ځمکه ② الاتلاف: هلاکول ③ آفة: مصيبت ④ مفصول: جلا شوې

تشريح:- که مشتري پخپله خپل فعل سره عمارت مات کړو.نو اوس عمارت مقصود شو.ځکه چې مشتري د عمارت ماتولو قصد کړې دې.نو اوس به د وصف په مقابله کي ثمن راځی.بهرحال که مشتري عمارت مات کړو.نو شفيع ته اوس دوې (دوه) اختياره دی ① که غواړی.شفعه دې پريږدی. ② اوکه اخستل غواړی.نو د عمارت نه علاوه ددې ځائې او زمکې چې کوم قيمت جوړيږی.د هغې په بدله کي شفيع دا اخستلې شی.بهرحال هرکله چې د ثمن څه برخه ساقط کړې شوه.نو اوس شفيع غواړی.چه دکور ملبه او متيرئيل واخلی.حالانکه هرکله چې دا د کور نه جلا کړې شو.نو ملبه اوس د جلا کيدو په وجه د تابع جوړيدو نه خارج شو.نودکورچه کومه ملبه ده.شفيع دا اخستل غواړی.نو نشی اخستلې.

## په ځمکه کښې شفيع لپاره د وونو او ميوو حکم

قَالَ امام قدوری رحمة الله عليه اوفرمائيل. (وَمَنِ ابْتَاعَ أَرْضًا وَعَلَى نَخْلِهَا ثَمَرٌ) او چا چې ځمکه واخستله.او د هغې په ونو باندې ميوه ده. أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِثَمَرِهَا) نو شفيع به دا سره دهغې د ميوو اخلی. وَمَعْنَاهُ إِذَا ذَكَرَ الثَّمَرَ فِي الْبَيْعِ اوددې مطلب دا دې.کله چې په بيع کي دميوو ذکر اوکړې شی. لِأَنَّهُ لَا يَدْخُلُ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ ځکه چې ميوې (په بيع کي) د ذکر نه بغير نه داخليږی.

حل اللغة: ① نخل: د قجورو ونه ② تمر: دقجورې ميوه ③ ارض: ځمکه

تشريح:- مشتري يوه ځمکه واخستله.چه هغې کي څه ونې دی.او په دې ونو کي ميوې هم لګيدلې دی.نو دا ميوې به شفيع اخلی.او که نه؟ نو امام قدوری رحمة الله عليه اوفرمائيل.چه اخلی به.يعنی ميوې به د شفيع وی.په دې

باندې مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل.چه د امام قدوري رحمه الله مطلب دا دې.چه ( اخلی به خو چې ) کله په بيع کې د
مېوو ذکر شوې وی.ځکه چې د ذکر نه بغير مېوې په بيع کې نه داخلېږی.

وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرَهُ اسْتِحْسَانٌ او دا کوم چې امام قدوري رحمه الله ذکر کړی دی.استحسان دی. وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَأْخُذُهُ او
قياس کې دادی.چه مېوې به نه اخلی. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتَبَعٍ ځکه چې دا تابع نه دی. أَلَا يَرَى أَنَّهُ لَا يَدْخُلُ فِي الْبَيْعِ مِنْ غَيْرِ
ذِكْرٍ آيا دا خبره نه کتلې کيږی.چه دا د ذکر نه بغير بيع کې نه داخلېږی. فَأَشْبَهَ الْمَتَاعَ فِي الدَّارِ نو دکور د
سامان مشابه شو.

**تشريح:**- اودا کومه مسئله چې ذکر شوې ده.دا د استحسان په بنا (بنياد) ده.ګنی د قياس تقاضه خو دا ده.چه
شفيع ته مېوې ملاو نشی.ځکه چې مېوې د ونو او زمکې تابع نه دی.او د نه تابع کيدو دليل دا دې.چه
مېوې د ذکر نه بغير بيع کې نه داخلېږی.نو ددې مثال داسې شو.لکه په کور کې ايخودې شوې سامان،
لکه چې يوکس کور خرڅ کړو.او په دې کې فريج او د ګيس چولها وغيره ايخودې شوی دی.نو دا به په بيع
کې داخل نه وی.

وَجْهُ الْاسْتِحْسَانِ د استحسان دليل دا دې. أَنَّهُ بِاعْتِبَارِ الْاِتِّصَالِ صَارَ تَبَعًا لِلْعَقَارِ چې مېوې د متصل کيدو په
اعتبار سره د زمکې تابع شوې. كَالْبِنَاءِ فِي الدَّارِ، وَمَا كَانَ مُرَكَّبًا فِيهِ فَيَأْخُذُهُ الشَّفِيعُ لکه په کور کې عمارت
او لکه هغه څيزکوم چې کور کې لګيدلې دې.شفيع هغه اخلی.

**تشريح:**- دا استحسان دليل دا دی.چه مېوې د متصل کيدو په اعتبار سره د زمکې تابع دی.لکه څنګه چې
آبادی د کور تابع وی.او هم دغه ډول هغه سامان کوم چې کور کې لګولې شی.لکه کړکۍ ، دروازې او
الماری او جنګلې وغيره، چې دا واړه په بيع کې داخلېږی.
که څوک دا اعتراض اوکړی چې د« مجمع الانهرص ج» نه هم دا خبره معلومېږی.چه د استحسان په
صورت کې هم دا ضروری ده.چه په بيع کې ددې ذکر راغلې وی.نو بيا د استحسان او قياس ذکر کاوه نه څه
فائده ده؟ نو ددې ځواب دا دې چې چونکه مېوې د منقوله څيزونو څنې دی.چه په دې کې شفعه نه
چليږی.په دې وجه د قياس تقاضه دا وه.چه شفيع ته ملاو نشی.نو دا ئې بيان کړل.چه دلته قياس پريښودې
شوې دې.او په استحسان باندې عمل شوې دې.او د مذکوره اعتراض دا ځواب ورکړې شوې دې.چه مېوې
اګرچه د منقوله څيزونو څنې دی.خو دلته د غير منقوله شئ تابع دی.چه هغې کې شفعه چليږی.په دې وجه
تابع د متبوع په حکم کې اخستلو سره د متصل کيدو په شرط سره د غير منقول په حکم کې اخستې شوې
دې.او په دې کې شفعه جاری کړې شوې ده.

① فائده* مېوې د استحسان په طورد اخستلو مسئله دلته بيان شوې ده.اوپه دې کې دا هم بيان شوی
دی.چه کله په عقد بيع کې ددې شرط لګولې شوې وی.په ښکاره دا اشکال کيږی.چه کله استحساناً مېوې
يو ځاې شوې دی.نو بيا خو د شرط نه بغير هم ملاوول پکار دی؟

② فائده* علامه عينی په حواله د شرح الكافی فرمائی.چه دلته درې صورتونه دی① مېوې د عقد په وخت
موجود وی.② د عقد نه روستو د قبضه نه مخکې پيدا شوې وی.③ د قبضې نه روسته پيدا شوې وی.په
ړومبی صورت کې به ثمن د مېوو په اندازه ساقطيږی.که مېوې د مشتری فعل سره ختم شوې وی.اوکه د
آسمانی آفت په وجه هلاك شوې وی.او په دوهم صورت کې که د مشتری د فعل دخل وی.نو ثمن به
ساقطيږی.او که د آسمانی آفت په وجه شوې وی.نو ثمن به نه ساقطيږی.او په دريم صورت کې به مطلقاً ثمن
نه داخلېږی.

### د مشتری د قبضې نه روسته مېوې راغلې دنو شفيع لپاره ددې څه حکم دې ؟

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. ﴿وَكَذٰلِكَ إِنِ ابْتَاعَهَا﴾ او هم دغه ډول که اخستې ئې وی دا ( مځکه )،



وَلَيْسَ فِي النَّخِيلِ ثَمَرٌ او د کجورو په ونو باندې مېوې نه وې. فَأَثْمَرَ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي بيا د مشتری په قبضه کې
مېوې پيدا شوې. يَعْنِي يَأْخُذُهُ الشَّفِيعُ يعنی مشتری به دا اخلی. لِأَنَّهُ مَبِيعٌ تَبَعًا ځکه چې مېوې تبعاً مبيع دې. لِأَنَّ
الْبَيْعَ سَرَى إِلَيْهِ عَلَى مَا عُرِفَ ځکه چې دې اړخ ته بيع خوره ( متعدی) شوې ده فِي وَلَدِ الْمَبِيعِ.لکه د مبيع په بچی
کې.

**تشريح:**- يعنی په مخکنۍ مسئله کې مېوې د اخستلو په وخت موجود دی.او په دې دويمه مسئله کې د
اخستلو په وخت مېوې نشته.بلکه د مشتری په قبضه کې د تللو نه روسته مېوې پيدا شوی دی.نو کوم حکم
چې د مخکنۍ مسئلې وو.اوس هم هغه حکم دې.يعنی شفيع به مېوې اخلی.ځکه چې روستو پيدا شوې
مېوې به تبعاً مبيع وی.لکه د مبيع په بچی کې هم داسې کيږی.مثلاً يوکس ميښه واخستله.او د قبضې نه
مخکې دا لنګه شوه.نو ددې بچې هم په بيع کې داخليږی.او د مشتری مملوك وی.دغه ډول به مېوې تابع
وی.او په بيع کې به داخل وی.

### د مېوو شوکولو نه روستو د مشتری د قبضې او مېوو حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. فَإِنْ جَذَّهُ الْمُشْتَرِي نوکه مېوې مشتری اوشوکولې. ثُمَّ جَاءَ الشَّفِيعُ بيا شفيع
راغې. لَا يَأْخُذُ الثَّمَرَ فِي الْفَصْلَيْنِ جَمِيعًا نو په دواړو صورتونو کې به مېوې نه اخلی. لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ تَبَعًا لِلْعَقَارِ وَقْتَ
الْأَخْذِ ځکه چې د مېوو اخستلو په وخت د زمکې تابع پاتې نشوې. حَيْثُ صَارَ مَفْصُولًا عَنْهُ په دې حيثيت سره چې
دا د زمکې نه جلا کړې شوی دی فَلَا يَأْخُذُهُ.نو شفيع به دا نه اخلی.

**حل اللغة*:** ① **جد:**اوشکولې ② **العقار:**مځکه ③ **مفصول:**جدا شوې ④ **ياخذ:**اخلی

**تشريح:**- دا مذکوره واړه تفصيلات هغه وخت وو.چه مېوې په ونو کې موجود وی.ګنی که مشتری د شفيع د
قابض کيدو نه مخکې مېوې اوشوکولې.نو بيا به شفيع د مېوو اخستلو حقدار نه وی.که د اخستلو په وخت
مېوې موجود وی.اوکه موجود نه وی.بلکه د مشتری په قبضه کې د راتلو په وخت راغلی وی. ولې؟ ځکه
چې کوم وخت شفيع مځکه اخلی.دغه وخت مېوې د زمکې نه جلاً دی.نو اوس مېوې د زمکې تابع جوړول
مشکل دی. لنډيز د کلام دا چې مېوې به شفيع ته به هيڅ صورت کې نه ملاويږی.پاتې شوه دا مسئله چې د
مېوو شو کاوه په وجه به په ثمن کې څه کمې کولای شی اوکه نه؟ نو په دې کې تفصيل دې.فرمائی.

### که مېوې په عقد کښې داخل وې نو ددې د قيمت په اندازه به شفيع نه کمولې شی

قَالَ فِي الْكِتَابِ امام قدوري رحمه الله په کتاب(مختصر القدوری)کې فرمائيلی دی. ﴿وَإِنْ جَذَّهُ الْمُشْتَرِي سَقَطَ عَنِ
الشَّفِيعِ حِصَّتُهُ نوکه مېوې مشتری اوشو کولې.نو د شفيع څخه به د مېوو برخه ساقطيږی. قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
مرغيناني رحمه الله فرمائی. ﴿وَهٰذَا جَوَابُ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ﴾ چې دا د ړومبی صورت ځواب دې. لِأَنَّهُ دَخَلَ فِي الْبَيْعِ مَقْصُودًا
ځکه چې مېوې مقصود جوړې شوې دی.او په بيع کې داخلې شوې دی. فَيُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ نو ددې په
مقابله کې به څه ( حصه) ثمن راځی. أَمَّا فِي الْفَصْلِ الثَّانِي يَأْخُذُ مَا سِوَى الثَّمَرِ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ بهرحال په دوهم صورت
کې به شفيع د مېوو نه علاوه د پوره ثمن په بدله کې اخلی لِأَنَّ الثَّمَرَ لَمْ يَكُنْ مَوْجُودًا عِنْدَ الْعَقْدِ فَلَا يَكُونُ مَبِيعًا
ځکه چې د عقد په وخت مېوې موجود نه وې.نو دا به مبيع نه وی. إِلَّا تَبَعًا فَلَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ وَاللهُ أَعْلَمُ خو
تبعاً، نو ددې په مقابله کې به ثمن نه راځی.والله اعلم.

**تشريح:**- کله چې د عقد په وخت مېوې موجود وې.نو مېوې هم په بيع کې مقصود وې.نوکه مشتری په دې
صورت کې مېوې شوکولې وی.نو د مېوو د قيمت په اندازه به ثمن کې کمې کولې شی.اوکه د عقد په وخت
مېوې نه وې.او روستو راغلې وی.او مشتری شوکولې وی.نو اوس به شفيع ته نه مېوې ملاويږی.او نه به د
ثمن نه څه ( حصه) کمولې شی.ځکه چې هرکله د عقد په وخت ( مېوې) د سره موجود نه وې.نو دا مقصود

بالبيع جوړې نشوې.بلكه خالص تابع شوې.نو ددې په مقابله كې به ثمن نه راځي.

مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه امام قدوري رحمه الله مطلقاً دا فرمائيلي دى.كه مشتري ميوې اوشوكولې.نو د ثمن برخه هم ددې په اندازه ساقطه شوه.د امام قدوري رحمه الله دا كلام تفصيل غواړي.او تفصيل هغه دې.كوم چې موږ بيان كړو.يعني دا د ړومبى صورت خواب دې.ګنى په دوهم صورت كې به ثمن نه كميږي.

## باب ما تجب فيه الشفعة وما لا تجب

ژباړه:- (دا) باب د هغه څيزونو (په بيان كې) دې.په كومو كې چې شفعه ثابتيږي.او په كومو كې نه ثابتيږي.

تشريح:- هركله چې مرغيناني رحمه الله وړاندې د شفعې ثبوت اجمال سره ذكركړو.نو اوس د هغې تفصيل احكام بيانوي. په دې باب كې به بيانوي.چه په كومو څيزونو كې به شفعه ملاويږي.او په كومو كې به نه ملاويږي.

### په كومه مځكه كښې د شفعې حق حاصليږي او په كومه كښې نه حاصليږي؟

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. (اَلشُّفْعَةُ وَاجِبَةٌ فِي الْعَقَارِ) شفعه ثابت ده.په مځكه كې ، (وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا يُقْسَمُ) اګرچه دا د هغه څيزونو څنې وى.چه د هغې ويش نشى كيدې. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمائي. لَا شُفْعَةَ فِيمَا لَا يُقْسَمُ په هغه شئ كې شفعه نشته.د كوم چې ويش نشى كيدې. لِأَنَّ الشُّفْعَةَ إِنَّمَا وَجَبَتْ دَفْعًا لِمُؤْنَةِ الْقِسْمَةِ،ځكه چې شفعه د ويش تكليف لرې كاوه په غرض سره ثابتيږي. وَهٰذَا لَا يَتَحَقَّقُ فِيمَا لَا يُقْسَمُ او دا خبره نه ثابتيږي.په هغه شئ كې د كوم چې ويش نشى كيداې وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {اَلشُّفْعَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ عَقَارٍ أَوْ رَبْعٍ} (1) او زموږ دليل د نبى كريم ﷺ فرمان دې.شفعه په هر شئ كې ده كه مځكه وى.او كه كور وى. إِلَى غَيْرِ ذٰلِكَ مِنَ الْعُمُومَاتِ ددې نه علاوه عموماتو كې ، وَلِأَنَّ الشُّفْعَةَ سَبَبُهَا الْاِتِّصَالُ فِي الْمِلْكِ او ځكه چې شفعه، ددې سبب په ملك كې متصل كيدل دى. ،وَالْحِكْمَةُ دَفْعُ ضَرَرِ سُوْءِ الْجِوَارِ عَلٰى مَا مَرَّ او حكمت د ګاونډ د بدئ ضرر لرې كول دى.د هغه تفصيل مطابق كوم چې تير شو. وَأَنَّهُ يَنْتَظِمُ الْقِسْمَيْنِ مَا يُقْسَمُ وَمَا لَا يُقْسَمُ او دا خبره دواړه قسمونو ته ګډ ده.هغې ته كوم چې د ويش قابل وى.او كوم چې د ويش قابل نه وى هغې ته هم (ګډ ده). وَهُوَ الْحَمَّامُ وَالرَّحَى وَالْبِئْرُ وَالطَّرِيقُ او هغه (كوم چې د ويش قابل نه وى لكه) غسل خانه، د اوبو جرنده، او څاه او لاره ده.

حل اللغة* ① دفعاً: لپاره د لرې كولو ② مونة: مشقت ③ ربع: كور ④ الجوار: ګاونډيتوب ⑤ الاتصال: جختوالې ⑥ ينتظم: شامليږى ⑦ الحمام: دګرمو اوبو غسل خانه ⑧ البئر: څاه ⑨ الطريق: لار

تشريح:- ددې ځاې نه دا خبره بيان كړې شوې ده.چه مځكه كې شفعه واجبيږي.په دې باندې دواړه فريقه متفق دى.بيا ددې زمكې دوې (دوه) صورتونه دى① چې دا د ويش قابله وى.مثلاً د څلور سوو ګزو پلاټ دې.چه نيم په نيمه ويش كړې شو② دا چې د ويش قابل نه وى.مثلاً يوه تنګه غسل خانه ده.چه ددې ويش اوكړې شى.نو د چا په حق كې هم دا د انتفاع قابل نه پاتې كيږي.دغه ډول تنګ وړوكې كوهې، او دغه ډول تنګه لاره ده.او هم دغه ډول د اوبو جرنده ده.هركله چې د زمكې دوې (دوه) صورتونه معلوم شو.نو اوس واورئ.چه په دوهم صورت كې د حنفيه او امام شافعي رحمه الله اختلاف دې.زموږ په نيز به په دې كې شفعه ملاويږي.او د امام شافعي رحمه الله په نيز به شفعه نه ملاويږي.

1) قال الزيلعي رحمه الله روى إسحاق بن راهويه رحمه الله في مسنده ....عن ابن عباس رضي الله عنهما عن رسول الله ﷺ قال الشريک شفيع والشفعة في كل شئ إنتهى وروى الطحاوي في تهذيب الآثار (وهو في في شرح الآثار للطحاوي رحمه الله (۲۶۸\۱۲) حدثنا .... ابن عباس رضي الله عنهما قال مضى رسول الله ﷺ بالشفعة في كل شئ (نصب:۴۳۶\۴)_



وړاندې تير شوى دى.چه د امام شافعي رحمه الله په نيز د شفعې علت د ويش د تكليف نه بچ كول دى.او هركله چې دا شئ د سره د ويش قابل نه دې.نو د ويش د تكليف نه د بچ كاوه څه مطلب؟ په دې وجه هغوى د شفعې نه انكار اوكړو.او د حنفيانو په نيز د شفعې علت د ملك اتصال كيدل دى.او هغه دلته هم موجود دې.نو شفعه به ملاويږي.ځكه چې د شفعې علت د بد عمله ګاونډى ضرر لرې كول دى.او دا حكمت په دواړو صورتونو كې متحقق (او ثابت) دې.او دلته چې كوم حديث پيش كړې شوې دې.هغې سره د حنفيانو تائيد كيږي. ځكه دې كې فرمائيلي شوى دى.چه هره مځكه او كور شفعه ده.ددې عموم دا بنائي.چه په مځكه كې د ويش قابل او د ويش غير قابل كيدو لحاظ نشته.

### په سامانونو او كشتو كښې د شفعې حكم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. (وَلَا شُفْعَةَ فِي الْعُرُوضِ وَالسُّفُنِ) په سامانونو اوكشتوكې شفعه نشته. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا شُفْعَةَ إِلَّا فِي رَبْعٍ أَوْ حَائِطٍ} (1) د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه،، شفعه نشته خو په كور يا په ديوال كې وَهُوَ حُجَّةٌ عَلٰى مَالِكٍ فِي إِيجَابِهَا فِي السُّفُنِ او دا حديث حجت دې.د امام مالك رحمه الله په خلاف، د دې (د شفعې) په واجبولو كې په كشتو كې ، وَلِأَنَّ الشُّفْعَةَ إِنَّمَا وَجَبَتْ لِدَفْعِ ضَرَرِ سُوْءِ الْجِوَارِ عَلَى الدَّوَامِ او ځكه چې شفعه هميشه لپاره د ګاونډى د بدئ ضرر لرې كاوه لپاره ثابت شوې ده. ،وَالْمِلْكُ فِي الْمَنْقُولِ لَا يَدُومُ حَسَبَ دَوَامِهِ فِي الْعَقَارِ او په منقول شئ كې هميشه سره ملكيت نه وى.په مځكه كې د ملك د هميشوالى په طريقه باندې، فَلَا يُلْحَقُ بِهِ نو منقول به غيرمنقول سره نشى متعلق كولې. وَفِي بَعْضِ نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ وَلَا شُفْعَةَ فِي الْبِنَاءِ وَالنَّخْلِ إِذَا بِيعَتْ دُونَ الْعَرْصَةِ او د مختصر القدوري په بعضو نسخو كې دى. «ولا شفعة في البناء و النخل إذا بيعت دون العرصة»،، شفعه نشته په آبادئ او ونو كې ،كله چې د زمكې نه بغير خرڅ كړې شى،، وَهُوَ صَحِيحٌ مَذْكُورٌ فِي الْأَصْلِ او دا خبره صحيح ده.په مبسوط كې ذكر دى. ،لِأَنَّهُ لَا قَرَارَ ځكه چې دې كې چا لپاره قائموالې (او هميشوالې) نشته. لَهُ فَكَانَ نَقْلِيًّا نو دا به نقل كونكې شئ وى.

حل اللغة* ① العروص، سامان ② السفن: جمع د سفينة كښتئ ③ الدوام: هميشه لپاره ④ العقار: مځكه ⑤ سوء الجوار: بد ګاونډيتوب.

تشريح:- شفعې لپاره دا اصول مقرر دې.چه دا په غيرمنقوله څيزونو كې چليږي.لكه مځكه او باغونه وغيره، او په غير منقوله څيزونو كې نه چليږي.ځكه چې دې كې د شفعې علت نه موندلې كيږي.او هغه (علت) هميشه لپاره متصل كيدل او قائم كيدل دى.او په غير منقول كې اتصال نشته.لكه څنګه چې ښكاره ده.او د حديث نه هم ددې تائيد كيږي.كوم چې په كتاب كې ذكر دې.امام مالك رحمه الله په كشتو كې د شفعې قائل دې.خو مذكوره حديث ددوى خلاف حجت دې.كه يوسړې صرف آبادى او ونې خرڅې كړي.او په كومه مځكه كې چې دا (ابادى او ونې) دى.دا (مځكه) خرڅه نكړي.نو شفعه به نه ملاويږي.ځكه چې دې څيزونو كې قائم پاتې كيدل (او هميشوالې) نشته.نو دا به د منقوله څيزونو څنې وى.چه په دې كې شفعه نه جارى كيږي.

وَهٰذَا بِخِلَافِ الْعُلْوِ او دا د بالاخانې (پورتنى چت) په خلاف دې. حَيْثُ يُسْتَحَقُّ بِالشُّفْعَةِ په دې حيثيت سره چې په دې كې به د شفعې استحقاق وى. وَيُسْتَحَقُّ بِهِ الشُّفْعَةُ فِي السُّفْلِ او ددې په وجه به د شفعې استحقاق وى.په لاندينى منزل (كور) كې ، وَإِذَا لَمْ يَكُنْ طَرِيقُ الْعُلْوِ فِيهِ كله چې د بالاخانې لاره په لاندينى چت كې نه وى. لِأَنَّهُ بِمَا لَهُ مِنْ حَقِّ الْقَرَارِ ځكه چې دې سبب سره چې،، بالاخانې لپاره حق د قائم والى دې ،اَلْتَحَقَ بِالْعَقَارِ،، دا زمكې سره لاحق شو.

1) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه البزار في مسنده)-

**حل اللغة:** ① **العلو:** د کور پورته منزل، بالاخانه ② **القرار:** قائم

**تشریح:-** دا عبارت په اصل کې د یو تقدیري سوال ځواب کیداې شي هغه دا چې که یو کس د بالاخانې مالک دې. او بل څوک د لاندینی چت مالك دې. نو پورتنی چت (بالاخانې) والا سره چونکه مځکه نشته. نو پکار دا ده. چه دا منقول او منلې شی. او په دې کې شفعه جاري نکړې شي. حالانکه په دې کې شفعه ملاویږي؟ نو علامه مرغینانی رحمه الله فرمایي چې د بالاخانې په وجه به شفعه ملاویږي. او بالاخانه به هم شفعه ورکولې شي. ځکه چې بالاخانې ته قائم والې حاصل دې. لکه څنګه چې نن سهار په ښاریو کې ددې زیات رواج دې. نو په دې کې د قائم پاتې کیدو د حق موجود کیدو په وجه به دا د زمکې په درجه کې شمارلې شي. او په دې کې به شفعه جاري کولې شي. که لاندینی چت خرڅ شو. پورتنی چت والا به په دې کې شفعه کوي. د متصل کیدو په وجه، یعنی د ګاونډ توب په وجه، او که د پورتنی چت لاره په لاندینی کور کې وي. نو بیا به بالاخانې والا ته د مبیع په حقوقو کې د شریکیدو په وجه شفعه ملاویږي.

**ذمي لپاره د شفعې حق شته او که نه؟**

قال امام قدوري رحمه الله او فرمائیل. (وَالْمُسْلِمُ وَالذِّمِّيُّ فِي الشُّفْعَةِ سَوَاءٌ) لِلْعُمُومَاتِ او مسلمان او ذمي په شفعه کې برابر دي. د (روایاتو د) عموماتو په وجه، وَلِأَنَّهُمَا يَسْتَوِيَانِ فِي السَّبَبِ وَالْحِكْمَةِ او ځکه چې دا دواړه په سبب او حکمت کې برابر دي. فَيَسْتَوِيَانِ فِي الِاسْتِحْقَاقِ نو په استحقاق کې به هم برابر وي.

**تشریح:-** شفعه چې لکه څنګه مسلمان ته ملاویږي. ذمي ته به هم ملاویږي. ځکه چې روایاتو کې عموم دې. چه په دې کې د مسلمانانو تخصیص نشته. او هرکله چې سبب او حکمت موجود دې. نو بیا شفعه هم ملاویدل پکار دي. یعنی هرکله چې د قائم پاتې کیدو اتصال موجود دې. او د ګاونډي د ضرر لرې کاوه حکمت موجود دې. چه په دې کې مسلمان او ذمي کې هیڅ توپیر نشته. نو بیا به په استحقاق کې هم توپیر نه وي.

وَلِهَذَا يَسْتَوِي فِيهِ الذَّكَرُ وَالْأُنْثَى وَالصَّغِيرُ وَالْكَبِيرُ وَالْبَاغِي وَالْعَادِلُ وَالْحُرُّ وَالْعَبْدُ او هم په دې وجه شفعه کې سړې او ښځه، او وړوکې او غټ، باغي (بدکرداره) او عادل، آزاد او غلام برابر دي. إِذَا كَانَ مَأْذُونًا أَوْ مُكَاتَبًا کله چې غلام ماذون وي. یا مکاتب وي.

**حل اللغة:** ① **یستوی:** برابر دي ② **الصغیر:** ورکوټې ③ **الکبیر:** غټ، بالغ ④ **الحر:** ازاد ⑤ **العبد:** غلام

**تشریح:-** هم دا وجه ده. چه لکه څنګه شفعه سړي ته ملاویږي. ښځې ته به ملاویږي. او لکه څنګه چې غټ ته ملاویږي. بچي ته به هم ملاویږي. او لکه څنګه چې عادل ته ملاویږي. باغي (او نافرمانه) ته به هم ملاویږي. او لکه څنګه چې آزاد ته ملاویږي. غلام ته به هم ملاویږي. خو غلام ته به هغه وخت شفعه ملاویږي. کله چې په ده کې د اخستلو او خرڅولو اهلیت موجود وي. او دا به هغه وخت وي. کله چې دې ماذون فی التجارة وي. یا مکاتب وي. د حق پرست امام اطاعت کونکی ته عادل او دده نه بغاوت کونکی ته باغي واني.

**په عوض کښې ملاویدونکې مځکه کښې د شفعې حق شته او که نه؟**

قال امام قدوري رحمه الله فرمائیلی دي. (وَإِذَا مَلَكَ الْعَقَارَ بِعِوَضٍ هُوَ مَالٌ) او کله چې مشتري د زمکې مالك جوړ شو. په داسې عوض سره چې هغه مال دې. (وَجَبَتْ فِيهِ الشُّفْعَةُ) نو په دې مځکه کې به شفعه ثابتیږي. لِأَنَّهُ أَمْكَنَ مُرَاعَاةُ شَرْطِ الشَّرْعِ فِيهِ ځکه چې دې کې د شریعت د شرط رعایت ممکن دې. وَهُوَ التَّمَلُّكُ بِمِثْلِ مَا تَمَلَّكَ بِهِ الْمُشْتَرِي او هغه مالك کیدل دي. د هغه شي د مثل په بدله کې، د کوم په ذریعه چې مشتري مالك شوې دې. صُورَةً أَوْ قِيمَةً که دا مثل د صورت په اعتبار سره وي. او که د قیمت په اعتبار سره وي عَلَى مَا مَرَّ. د هغه تفصیل مطابق کوم چې تیر شو.



**تشریح:-** شفعه بیع سره ثابتیږي. نو بیع کیدل پکار دي. یا داسې شي (کیدل پکار دي) چې په هغې کې د زمکې په بدله کې مالي معاوضه ورکړې شوې وي. ګنی شفعه به نه ثابتیږي. ځکه چې دلته شریعت دا شرط لګولې دې. چه مشتري د کوم مال په بدله کې مالك جوړ شوې دې. شفیع به هم د هغې مثل ادا کوي. او ددې مالك به جوړیږي. دا بله خبره ده. چه بیا په مثل کې عموم دې. که دا عوض د ذوات القیم څنې وي. نو ددې عوض مثل به د هغې قیمت وي. او که د ذوات الامثال څنې دې. نو ددې مثل به د هغې پشان هغه شي وي. کوم چې عرف کې د هغې مثل شمارلې کیږي. ګنی که مشتري د مالي عوض نه بغیر مالك جوړ شي. نو شرط او نه موندې شو. نو شفعه به نه جاري کیږي.

**په کومو کورونو کښې د شفعې حق نه حاصلیږي؟**

قال امام قدوري رحمه الله او فرمائیل. (وَلَا شُفْعَةَ فِي الدَّارِ الَّتِي يَتَزَوَّجُ الرَّجُلُ عَلَيْهَا) و په هغه کور کې شفعه نشته. په کوم کې چې سړې نکاح کوي. أَوْ يُخَالِعُ الْمَرْأَةَ بِهَا یا د کوم په ذریعه چې ښځه خلع کوي. أَوْ يَسْتَأْجِرُ بِهَا دَارًا یا د کوم په ذریعه چې سړې کور أَوْ غَيْرَهَا یا ددې نه علاوه اجاره باندې اخلي. أَوْ يُصَالِحُ بِهَا عَنْ دَمِ عَمْدٍ یا د کوم په ذریعه چې د قتل عمد نه مصالحت کوي. أَوْ يُعْتِقُ عَلَيْهَا عَبْدًا) یا په کوم باندې چې غلام آزاد وي. لِأَنَّ الشُّفْعَةَ عِنْدَنَا إِنَّمَا تَجِبُ فِي مُبَادَلَةِ الْمَالِ بِالْمَالِ ځکه چې شفعه زمونږ په نیز د مبادلة المال په صورت کې ثابتیږي. لِمَا بَيَّنَّا هغه دلیل په وجه، کوم چې مونږ بیان کړې دې. وَهَذِهِ الْأَعْوَاضُ لَيْسَتْ بِأَمْوَالٍ او دا عوضونه مالونه نه دي. فَإِيجَابُ الشُّفْعَةِ فِيهَا نو په دې کې شفعه ثابتول، خِلَافُ الْمَشْرُوعِ وَقَلْبُ الْمَوْضُوعِ به خلاف مشروع او قلب موضوع وي.

**حل اللغة:** ① **یتزوج:** واده کوي ② **یخلع:** خلع کوي ③ **الاعواض:** جمع د عوض، بدله ④ **قلب:** اوړیدل ⑤ **الموضوع:** مقصود

**تشریح:-** وړاندې په رومبنۍ مسئله کې دا اصول تیر شوې دې. چه کوم ځائې د مال تبادله مال سره وي. هلته به شفعه ملاویږي. چه شفیع مثل صوري یا مثل د قیمت ورکړې شي. او چرته چې مبادلة المال بالمال نه ورکولې کیږي. هلته به شفعه نه وي. ځکه چې دې کې موضوع التیه کول او د مشروع امر خلاف کول لازمیږي. ځکه چې شفعه مشروع شوې ده. په مبادلة المال بالمال کې، او د شفعې مشروعیت موضوع ده. په مبادلة المال بالمال کې، نو امام قدوري رحمه الله دلته پنځه داسې جزئیات بیان کړي دي. چه په دې کې د مبادلة المال بالمال نه کیدو په وجه به شفعه نه ملاویږي. ① یو سړي د نکاح په وخت مره یو کور مقرر کړو. نو په دې کې به شفعه نه ملاویږي. ځکه چې د کور عوض محترم بضع ده. چه دا متقوم مال نه دې. ② ښځه د کور په بدله خپل میړه سره خلع اوکړې. نو شفعه به نه ملاویږي. ځکه چې دلته هم د کور عوض د خپلې بضعې خلاصی ده. چه دا مال نه دې. ③ یو کس د خپل کور په بدله کې یو کور یا بل څه شي کرایه باندې واخستلو. نو په دې صورت کې به شفعه نه ملاویږي. ځکه چې کور یا د بل څه شي منافع مال نه دې. ④ په یو کس باندې قصاص واجب وو. هغه د مقتول وارثانو سره د یو کور په بدله کې مصالحت اوکړو. نو شفعه به نه ملاویږي. ځکه چې قصاص مال نه دې. ⑤ یو کس خپل غلام ته اووئیل. چه فلانې کور ماته راکړه. او ته آزاد ئې. هغه دا کور ورکړو. نو په دې کې به شفعه نه وي. ځکه چې آزادي مال نه دې.

**په مذکوره کورونو کښې د امام شافعي رحمه الله نقطهٔ نظر**

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رحمه الله او د امام شافعي رحمه الله په نیز تَجِبُ فِيهَا الشُّفْعَةُ په دې کې شفعه ثابتیږي. لِأَنَّ هَذِهِ الْأَعْوَاضَ مُتَقَوِّمَةٌ عِنْدَهُ ځکه چې ددوی په نیز دا عوضونه قیمتي دي. فَأَمْكَنَ الْأَخْذُ بِقِيمَتِهَا إِنْ تَعَذَّرَ بِمِثْلِهَا نو ددې قیمت اخستل به ممکن وي. که ددې په مثل سره اخستل متعذر شي. كَمَا فِي الْبَيْعِ بِالْعَرْضِ، بِخِلَافِ الْهِبَةِ لکه په بیع کې د سامان په عوض سره، په خلاف د هبې، لِأَنَّهُ لَا عِوَضَ فِيهَا رَأْسًا ځکه چې په دې کې بالکل عوض نشته.

تشريح:- حنفيانو مذكوره شيان قيمتي مال نه دي ګڼړلي.په دې وجه ئې انكار اوكړو.او امام شافعي رحمه الله دا شيان متقوم مال ګڼړلي دي.په دې وجه دوی په دې ټولو څيزونو كې د شفعې قائل دی.او فرمايي .چه لكه څنګه د سامان په بدله كي د بيع په صورت كې د مثل صورې په ځائې قيمت واجبيږی.دغه ډول په دې څيزونو كي كه مثل متعذر دې.نو قيمت خو واجب كيداې شی.نو د بيع بالعوض په مثل به په دې كې هم شفعه ثابتيږی.البته كه يوكس چا ته يوكور هبه كړو.نو په دې كي به دامام شافعي رحمه الله په نيز هم شفعه نه وی.ځكه چې دې كي بالكل ( دسره) عوض نشته.چه ددې د تقوم او عدم تقوم په اړه كې بحث اوكړې شی.

وَقَوْلُهُ يَتَأَتَّى او د امام شافعي رحمه الله دا قول به برابرې خوری. فِيمَا إِذَا جَعَلَ شِقْصًا مِنْ دَارٍ مَهْرًا أَوْ مَا يُضَاهِيهِ په هغه ورت كې كله چې ميړه ګرخولې وی.د كور بعض برخه مهر،يا ددې مشابه، لِأَنَّهُ لَا شُفْعَةَ عِنْدَهُ إِلَّا فِيهِ ځكه چې شفعه نشته ددوی په نيز مګر په دې كې .

حل اللغة ① يتاتى:موافق كيږی،صادقيږی ② شقص: حصه③ يضاهي:مشابه

تشريح:- په دې عبارت سره علامه مرغيناني رحمه الله دا بيانوی چې د امام شافعي رحمه الله په نيز صرف شريك ته شفعه ملاويږی.نو ددوی په نيز به دلته دا مثال هغه وخت صحيح كيږی.چه مثلاً د ميړه يو مشترك كور دې.هغه خپله برخه په مهر كې وركړله.يا ئې د بل څه شی په عوض وركړله.نو دوهم شريك ته به په دې كې شركت نشته.نو د امام شافعي رحمه الله په نيز به په دې كي شفعه نه وی.

## د امام شافعي رحمه الله د مستدلاتو جواب

وَنَحْنُ نَقُولُ او موږ وايو إِنَّ تَقَوُّمَ مَنَافِعِ الْبُضْعِ فِي النِّكَاحِ وَغَيْرِهَا بِعَقْدِ الْإِجَارَةِ ضَرُورِيٌّ .چه په نكاح كې د بضع د منافع قيمتي كيدل، او د بضع د منافعو نه علاوه نه قيمتي كيدل، د عقد اجاره په وجه د اړتيا په لحاظ سره دی. فَلَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ الشُّفْعَةِ نو دا متقوم كيدل به د شفعې په حق كې نه ښكاره كيږی.

تشريح:- امام شافعي رحمه الله مذكوره شيان قيمتي شمار كړی دی.او موږ دا قيمتي نه دی شمار كړی.اوس پاتې شوه دا مسئله چې تاسو خو بضع د دخول په حالت كې متقوم شمار كړې ده.په دې وجه ددې په مقابله كې مهر واجبيږی.او داسې منافع په عقداجاره كې قيمتي شمار كړې شوی دی.په دې وجه د منافعو په بدله كې مال وی.نو ددې وجه دا ده.چه دا شيان په حقيقت كې مال نه دې.په داسې قسمه ځايونو كې د اړتيا په وجه دا قيمتي شمار كړې شوی دی.او ،، اَلضرورة تتقدر بقدر الضرورة،، منلې شوې قاعده ده.نو دا به د اړتيا په وجه د شفعې د تقوم په حق كې نه ښكاره كيږی.او ددې په وجه به شفعه نه ثابتيږی.

وَكَذَا الدَّمُ وَالْعِتْقُ غَيْرُ مُتَقَوِّمٍ او هم دغه ډول وينه ( قتل) او آزادی متقوم نه دی. لِأَنَّ الْقِيمَةَ مَا يَقُومُ مَقَامَ غَيْرِهِ فِي الْمَعْنَى الْخَاصِّ الْمَطْلُوبِ ځكه قيمت هغه شئ دې.چه هغه په دې خاص معنى كې ،،كومه چې مقصود ده،، د خپل غير قائم مقام شی. وَلَا يَتَحَقَّقُ فِيهِمَا او دا خبره په دې دواړو كې ثابت نه ده.

تشريح:- دغه ډول وينه ( قتل) او ازادی هم قيمتي نه دی.ځكه د قيمت تعريف په دې دواړو باندې نه صادقيږی .ځكه قيمت هغه شئ ته وائی.كوم چې مقصود خاصه معنى كې د دوهم نائب او قائم مقام جوړيدې شی. او آزادی او قتل داسې نه دی.نو ددې په وجه به هم شفعه نه ثابتيږی.

وَعَلَى هَذَا إِذَا تَزَوَّجَهَا بِغَيْرِ مَهْرٍ او هم دغه ډول كله چې سړی ښځې سره د مهر نه بغير نكاح اوكړله. ثُمَّ فَرَضَ لَهَا الدَّارَ مَهْرًا بيا ئې هغې لپاره په مهر كې كور مقرر كړو لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ ځكه چې دا دهغې په درجه كې دې الْمَفْرُوضِ فِي الْعَقْدِ كوم چې په عقد كې مقرر كړې شوې وی فِي كَوْنِهِ مُقَابَلًا بِالْبُضْعِ ..د هغې د بضعې مقابل كيدو كې ،

تشريح:- اوكه يوكس د مهر نه بغير يوې ښځې سره نكاح اوكړله.او د نكاح نه روسته ئې مهر كې يوكور هغه



لپاره متعين كړو.نو دا تعين به داسې ګڼړلې شی.ګويا چې عقد په نكاح كې متعين كړې شوې دې.نو په دواړو صورتونو كې به شفعه نه ثابتيږی .ځكه چې په عقد كې مقرر كړې شوې چې لكه څنګه د بضع بدل دې.نو د عقد نه روستو مقرر شوې به هم د بضع بدل وی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهَا په خلاف ددې صورت كله چې سړی په ښځه باندې كور خرڅ كړې وی ، بِمَهْرِ الْمِثْلِ أَوْ بِالْمُسَمَّى .په مهرمثل سره،يا د مهرمسمى په بدله كې لِأَنَّهُ مُبَادَلَةُ مَالٍ بِمَالٍ ځكه چې دا مال سره دمال تبادله ده.

تشريح:- خوكه يوكس په مهر كې مثلا زر روپئ مقرر كړلې.يا ئې هيڅ مقرر نكړل.او په دې صورت كې مهر مثل واجب شو.بيا ميړه ددې د مهر مثل يا د مهر مسمى په بدله كې په هغې يو كور خرڅ كړو.نو په دې كور كې به شفعه وی.ځكه چې دلته د بيع معنى موجود كيدو په وجه مبادلة المال بالمال اوموندې شو.

## د مصالحت نه روستو د شفعې حق چاته حاصليږی؟

وَلَوْ تَزَوَّجَهَا عَلَى دَارٍ عَلَى أَنْ تَرُدَّ عَلَيْهِ أَلْفًا اوكه نكاح ئې اوكړله.ښځې سره په يو كور باندې په دې شرط، چې ښځه به ده ته زر روپئ واپس وركوی. فَلَا شُفْعَةَ فِي جَمِيعِ الدَّارِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله [1] نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د كور په هيڅ برخه كې شفعه نشته.

تشريح:- يو سړی ديوې ښځې سره نكاح اوكړله.او په مهر كې ئې يو كور مقرر كړو.او ور سره ئې دا شرط هم اولګولو.چه په مهر كې به دا پوره كور خو ملاويږی.خو ښځه به ماته يو زر روپئ واپس كوی.نو په دې صورت كې شفعه شته اوكه نه؟ وړاندې دا خبره تيره شوې ده.چه د حنفيانو په نيز داسې كور كې شفعه نه وی.كوم چې مهر كې وركړې شی.خو دلته د تبادلې څه شكل جوړ شوې دې.په دې وجه دې مسئله كې د امام ابوحنيفه رحمه الله

وَقَالَا:او صاحبين رحمهما الله فرمايي تَجِبُ فِي حِصَّةِ الْأَلْفِ .چه د زر( روپو) په برخه كې به شفعه وی. لِأَنَّهُ مُبَادَلَةٌ مَالِيَّةٌ فِي حَقِّهِ ځكه چې دده ( خاوند) په حق كې مبادله مالی شته.

تشريح:- اودصاحبينو رحمهما الله اختلاف شو.صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه دا مسئله منو.چه د مهر والا په كور كې شفعه نه وی.خو دلته دوې (دوه) صورتونه دی① د كور څه برخه ګويا ميړه په مهر كې وركړې ده.او په دې كې شفعه نه وی.② او دكور څه برخه ئې په زر روپئ كې خرڅه كړې ده.او په دې صورت كې شفعه وی.نو موږ اووئيل.چه په دومره برخه كې به شفعه وی.كوم ځائې پورې چې د زر روپو ماليت دې.ځكه چې دا مبادلة المال بالمال ده.چه په دې كې شفعه وی.

وَهُوَ يَقُولُ او امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی مَعْنَى الْبَيْعِ فِيهِ تَابِعٌ .چه په دې كې د بيع معنى تابع ده. . وَلِهَذَا يَنْعَقِدُ بِلَفْظِ النِّكَاحِ او په دې وجه دا بيع په لفظ د نكاح سره منعقد كيږی. وَلَا يَفْسُدُ بِشَرْطِ النِّكَاحِ فِيهِ، او په دې كې د نكاح شرط لګولو سره ( بيع) نه فاسديږی. وَلَا شُفْعَةَ فِي الْأَصْلِ او په اصل ( نكاح) كې شفعه نشته كَذَا فِي التَّبَعِ نو هم دغه ډول به په تابع ( بيع) كې ( هم شفعه نه وی).

تشريح:- امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل.چه دلته به دكور په يوه برخه كې هم شفعه نه ملاويږی.حالانكه دلته خو د سره بيع نشته؟ نوددې ځواب دا دې چې دلته بيع هم شته.اونكاح هم شته.خو نكاح مقصود اصلی ده.او بيع محض تابع ده.په دې وجه به صرف د متبوع اعتبار نه كيږی.او شفعه به نه ثابتيږی.
اوپاته پاتې شوه دا خبره چې بيع تابع ده نو ددې وضاحت داسې دې چې كه دلته بيع مقصود وه.نو بيا به په

---

[1] القول الراجح هوهذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار (١٦٧/٥) ومتلقى (١١٤/٤) وهندية (١٦٢/٥) نقلاً عن القول الراجح (٢٧٤/٢)_

لفظ د نکاح سره نه معقد کیدله.ځکه چې سبب ونیلو سره مسبب مراد اخستل صحیح دی.او مسبب ونیلو سره سبب مراد اخستل صحیح نه دی.بیع سره نکاح منعقد کیږی.خو په نکاح سره بیع نه منعقد کیږی.په آزادئ سره به طلاق واقع کیږی.خو طلاق سره به آزادی نه ثابتیږی.بهرحال ددې بیع په لفظ د نکاح سره منعقد کیدل، ددې خبرې ښکاره دلیل دې.چه بیع دلته تابع ده. او دا هم سنلې شوې ده.چه بیع په شروط فاسده سره فاسدیږی.خو نکاح په شروط فاسده سره نه فاسدیږی.که دا بیع شمار کړې شی.نو بیا په بیع کې د نکاح شرط لګول شرط فاسد دې.چه په دې سره بیع فاسدیږی.حالانکه دا بیع د نکاح په شرط سره نه فاسدیږی.ددې نه هم معلومه شوه.چه بیع دلته تابع ده.هرکله چې په دې تقریر سره دا خبره معلومه شوه.چه دلته نکاح اصل او بیع تابع ده.نو هرکله چې نکاح یعنی اصل کې شفعه نشته.نو دلته به بیع کې چې دا تابع ده.شفعه نه وی.

وَلِأَنَّ الشُّفْعَةَ شُرِعَتْ فِي الْمُبَادَلَةِ الْمَالِيَّةِ الْمَقْصُودَةِ او ځکه چې شفعه په دې مالی مبادله کې مشروع شوې ده.کومه چې مقصود وی. حَتَّى أَنَّ الْمُضَارِبَ إِذَا بَاعَ دَارًا تردې چې مضارب کله کور خرڅ کړو وَفِيهَا رِبْحٌ او په دې کې نفع شته. لَا يَسْتَحِقُّ رَبُّ الْمَالِ الشُّفْعَةَ فِي حِصَّةِ الرِّبْحِ نو رب المال به د نفع په برخه کې د شفعې مستحق نه وی. لِكَوْنِهِ تَابِعًا فِيهَا په دې کې د نفع د تابع کیدو په وجه.

تشریح:- بیا دوهم اصول دا دې.چه شفعه په هغه مالی مبادله کې ثابتیږی.چرته چې مالی مبادله مقصود وی.او دلته نکاح مقصود ده.مالی مبادله مقصود نه ده.لکه څنګه چې مذکوره تقریر سره معلومه شوه.آیا ددې څه مثال پیش کولې شي؟ آو، رب المال مضارب ته زر روپۍ تجارت لپاره ورکړلې.هغه تجارت اوکړو.او د زر روپو نفع اوشوه.بیا مضارب په دوې (دوه) زره کې یو کور واخستلو.اوس ئې هغه خرڅ کړو.رب المال ته حق د شفعې رسیدو. هغه په کور کې د شفعې دعوه اوکړله.نو آیا رب المال ته به شفعه ملاویږی؟ خواب ئې ورکړو.چه نه به ملاویږی.ولې؟ ځکه چې رب المال د مؤکل په درجه کې دې.او مضارب وکیل دې.او د وکیل بیع د مؤکل بیع وی.نو دا داسې شوه.لکه چې مالك ئې پخپله خرڅ کړی.او پخپله د شفعې دعوه اوکړی.

که څوك دا پوښتنه اوکړی چې په دې کې چې د زر روپو کومه نفع ده.په دې کې خو مضارب وکیل، او رب المال مؤکل ګرځول پکار نه دی.او نیم کور کوم چې د نفعې برخه ده.رب المال ته هغې کې شفعه ملاویدل پکار دی؟ نو خواب دا دې چې شفعه به نه ملاویږی.ځکه چې دلته نفع مقصود نه ده.بلکه مقصود مال مضاربت دې.بهرحال دلته تابع د متبوع په درجه کې نه ایخودې کیږی.او شفعه نشی جاری کولې.دغه ډول په مذکوره مسئله کې هم د تابع یعنی د بیع اعتبار اونکړې شو.بلکه د متبوع یعنی د نکاح اعتبار کړې شوې دی.

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائیل. (فَإِنْ صَالَحَ عَلَيْهَا بِإِقْرَارٍ وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ) نو که دکور متعلق اقرار سره مصالحت اوکړی.نو شفعه به ثابتیږی. (أَوْ يُصَالِحُ عَلَيْهَا بِإِنْكَارٍ) یا ده د کور متعلق مصالحت کړې وی.انکار سره.

رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: حضرت مرغینانی رحمه الله فرمائی. هَكَذَا ذُكِرَ فِي أَكْثَرِ نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ، چې د امام قدوری رحمه الله په اکثرو نسخو کې هم دغه ډول مذکور دی. وَالصَّحِيحُ أَوْ يُصَالِحُ عَنْهَا بِإِنْكَارٍ مَكَانَ قَوْلِهِ أَوْ يُصَالِحُ عَلَيْهَا او صحیح ،،یصالح عنها بالکار،، دی.دده د قول ،،یصالح علیها،، په ځائې. لِأَنَّهُ إِذَا صَالَحَ عَنْهَا بِإِنْكَارٍ ځکه چې هرکله هغه د کور په اړه کې انکار سره مصالحت اوکړو. بَقِيَ الدَّارُ فِي يَدِهِ نو کور دَ هغه په قبضه کې پاتې شو. فَهُوَ يَزْعُمُ أَنَّهَا لَمْ تَزَلْ عَنْ مِلْكِهِ، نو هغه دا ګمان کوی.چه کور دهغه د ملکیت نه زائل شوی نه دی. وَكَذَا إِذَا صَالَحَ عَنْهَا بِسُكُوتٍ او هم دغه ډول کله چې هغه سکوت سره (بغیر د څه اقرار او انکار نه) دکور په اړه کې صلح اوکړله. لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنَّهُ بَذَلَ الْمَالَ افْتِدَاءً لِيَمِينِهِ وَقَطْعًا لِشَغَبِ خَصْمِهِ ځکه احتمال شته.چه هغه مال خرچ کړې وی.د خپل قسم په فدیه



کې ،او د خپل خصم د شور او چغو ختمولو دپاره، كَمَا إِذَا أَنْكَرَ صَرِيحًا لکه څنګه چې کله هغه صراحةً سره انکار کړې وی. بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَنْهَا بِإِقْرَارٍ په خلاف ددې صورت کله هغه دکور په اړه کې اقرار سره مصالحت کړې وی. لِأَنَّهُ مُعْتَرِفٌ بِالْمِلْكِ لِلْمُدَّعِي ځکه چې هغه مدعی لپاره د ملکیت اقرار کونکې دې. وَإِنَّمَا اسْتَفَادَهُ بِالصُّلْحِ او هغه دا ملکیت د صلح په ذریعه حاصل کړې دې. فَكَانَ مُبَادَلَةً مَالِيَّةً نو دا مالی مبادله شوه. أَمَّا إِذَا صَالَحَ عَلَيْهَا بِإِقْرَارٍ أَوْ سُكُوتٍ أَوْ إِنْكَارٍ کله چې ده مصالحت کړې وی.په کور ورکولو، اقرار سره، یا سکوت، یا انکار سره، وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ نو په دې ټولو صورتونو کې به شفعه ثابتیږی. لِأَنَّهُ أَخَذَهَا عِوَضًا عَنْ حَقِّهِ فِي زَعْمِهِ ځکه چې ده کور د خپل ګمان مطابق د خپل حق په عوض کې اخستې دې. إِذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ جِنْسِهِ کله چې دا دحق د جنس څنې نه وی فَيُعَامَلُ بِزَعْمِهِ بهرحال . نو دده د ګمان مطابق به معامله کولې شی.

حل اللغة: ① یزعم: ګمان کوی ② بذل: خرچ کړو ③ استفاد: حاصل شو ④ سکوت: چپوالې

تشریح:- صورت دمسئلې دا دې چې الطاف الرحمن په برهان باندې دعوه اوکړله.چه په کوم کور کې برهان مقیم دې (اوسیږی).دا زما دې.دا په غلطه طریقه په دې باندې قابض دې.برهان د جګړې نه د بچ کیدو لپاره زر روپۍ مطیع الرحمن ته ورکړلې.او مصالحت ئې اوکړو.او دواړه راضی شو.او جګړه ختمه شوه.اوس ناظم په دغه کور کې د شفعې دعوه اوکړله.په کوم کور کې چې برهان اوسیږی.او دکوم متعلق چې ده یو زر روپۍ ورکړلې.او مصالحت ئې اوکړو.نو اوس سوال دا دې.چه ناظم ته به شفعه ملاویږی.اوکه نه؟ نو دلته ددې دوې (دوه) ځوابونه ورکړې شوی دی.چه ددې حاصل دا دې.چه ددې مدار د مصالحت په کیفیت باندې دې.چه ددې درې صورتونه دی

① برهان اقرار کړې وی.چه آو کور د الطاف الرحمن دې.او بیا ئې په زر روپۍ باندې مصالحت کړې وی.نو په دې صورت کې به ناظم ته شفعه ملاویږی.ځکه چې دا ښکاره بیع ده.او دا ښکاره ده.چه ملك د مدعی وو.مدعی علیه د زر روپو په بدله کې ملك حاصل کړې دې.② برهان د مدعی د ملکیت انکار اوکړو.خو بیا هم دجګړې د شر لرې کاوه لپاره ئې زر روپۍ ورکړې.او مصالحت ئې اوکړو.نو اوس به شفعه نه ثابتیږی. ځکه برهان دا وائی.چه ددې کور د مخکې نه زه مالك راروان یم.نو د بیع معنی او نه مونډې شوه.

③ برهان دده د ملکیت نه اقرار کړې وی.او نه ئې انکار کړې وی.نو اوس به هم شفعه نه وی.ځکه دې کې احتمال شته.چه ده زر روپۍ ځکه ورکړې وی.که مدعی ګواهان پیش نکړل.نو ما له به قسم خوړل ضروری وی. او شریف خلګ د خپل وس مطابق د قسم خوړلو نه ځان ساتی.اګرچه د رشتیاو قسم ولې نه وی.او دا احتمال هم شته.چه ده د جګړې ختمولو لپاره زر روپۍ ورکړې وی.ځکه چې شریف خلګ د جګړې نه پخپل وس سره ځان ساتی.بهرحال دده زر روپۍ ورکول، او مصالحت کول، ددې خبرې دلیل نه دې.چه ده د مدعی د ملکیت اقرار اوکړو.نو دا به د انکار په درجه کې وی.او شفعه به نه ثابتیږی.مسئله پوره شوه.

② دویمه مسئله د زید او د عمرو د یو شیٔ متعلق جګړه ده.زید وائی.چه زما شیٔ دې.او عمرو په دې باندې قابض دې.اوس عمرو د زید سره مصالحت اوکړو.او په مصالحت کې ئې زید ته خپل کور ورکړو.نو اوس به په دې کور کې شفعه وی اوکه نه؟ نو ددې ځواب ئې ورکړو.چه دلته دوې (دوه) صورتونه دی.① جګړه د بل شیٔ په اړه کې ده.او مصالحت ئې په کور ور کاوه سره کړې دې.نو ښکاره ده.چه دا کور د زید د حق عوض دې.نو مالی مبادله اومونډې شوه.نو شفعه به ثابت وی.② هم ددې کور په اړه کې جګړه ده.نو عمرو زید ته هم دا کور ورکړو.او مصالحت ئې اوکړو.نو اوس د بیع معنی او نه مونډې شوه.نو شفعه به هم نه وی.حاصل د کلام دا چې دلته د شفعې د ثبوت مدار د زید په ګمان باندې دې.که هغه کور د خپل حق د جنس څنې او نه ګڼړی.نو شفعه شته.ګنی نشته.دویمه مسئله ختمه شوه.

تنبیه: د ،،یصالح عنها،، مطلب دا وی.چه د کور په اړه کې جګړه ده.او بل یو شیٔ ئې ورکړو.او مصالحت ئې اوکړو.او د ،،یصالح علیها،، مطلب دا دې.چه هم دا کور ئې په مصالحت کې ورکړې وی.نو په دې باندې

مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل.چه د قدوري په اکثرو نسخو کي عبارت ،، أويصالح عليها،، دې.حالانکه ،،أويصالح عنها،، کيدل پکار دی.ګني دمسئلې نوعيت به بدليږي.لکه څنګه چې ښکاره ده.

**په مهر کښې ملاويدونکې کور کښې د شفعې حق شته اوکه نه؟**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. (وَلَا شُفْعَةَ فِي هِبَةٍ) لِمَا ذَكَرْنَا او په هبه کي شفعه نشته.د هغه دليل په وجه کوم چې مونږ ذکر کړې دې. إِلَّا أَنْ تَكُونَ بِعِوَضٍ مَشْرُوطٍ خو دا چې هبه مشروط عوض سره وی ( نو شفعه به هم وی) لِأَنَّهُ بَيْعٌ انْتِهَاءً خکه چې دا د انتهاء په اعتبار سره بيع ده. وَلَا بُدَّ مِنَ الْقَبْضِ او ضروری ده قبضه کيدل، وَأَنْ لَا يَكُونَ الْمَوْهُوبُ وَلَا عِوَضُهُ شَائِعًا او دا چې موهوب او ددې عوض شائع ( غير مقسوم) نه وی. لِأَنَّهُ هِبَةٌ ابْتِدَاءً خکه چې دا د ابتداء په اعتبار سره هبه ده ،وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ فِي كِتَابِ الْهِبَةِ او مونږ دا په کتاب الهبه کي ذکر کړی دی.

**تشريح:-** په هبه کي چونکه مالی مبادله او د بيع معنی نه موندې کيږی.نوکه يوکس زيد ته خپل کور هبه کړو.نو هيڅ چاته په شفعه نه ملاويږی.البته که هبه د عوض په شرط سره وی.نو په دې کي به شفعه ملاويږی.مثلاً زيد خالد ته خپل کور هبه کړو.په دې شرط چې خالد به زيد ته زر روپۍ هبه کوی.نو دا هبه د عوض په شرط سره شوه.او دې ته به د هبې او بيع دواړو درجه ورکولې شی.يعنی وئيلې به شی.چه دا عقد د ابتداء په اعتبار سره هبه ده.او د انتهاء په اعتبار سره بيع ده.او په دې کي به د دواړو لحاظ ساتلې کيږی.يعنی د ابتداء لحاظ به هم ساتلې شی.او د انتهاء لحاظ به هم ساتلې کيږی.نو هرکله چې دا د ابتداء په اعتبار سره هبه شوه.نو په دې باندې به د هبې احکام جاری کيږی.او په هبه کي قبضه شرط ده.او دا شرط دې.چه موهوب او ددې عوض دواړه ويش شوی وی.شائع نه وی.نو ددې دواړو شرطونو موجود کيدل دلته هم ضروری دی.او چونکه دا د انتهاء په اعتبار سره بيع ده.نو په دې به د بيع حکم جاری کيږی.او شفعه به ثابتيږی.هم دا مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه مونږ دا په «کتاب الهبه ج» کي بيان کړې دی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنِ الْعِوَضُ مَشْرُوطًا فِي الْعَقْدِ په خلاف ددې صورت کله چې عوض په عقد کي مشروط نه وی. لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا هِبَةٌ مُطْلَقَةٌ،خکه چې دې دواړو کي هر يو مطلق هبه ده. إِلَّا أَنَّهُ أُثِيبَ مِنْهَا خو دا چې ددې کور عوض ورکړې شوې وی. فَامْتَنَعَ الرُّجُوعُ نو رجوع ممتنع شوه.

**حل اللغة**: (١) اثيب: رسيدل اوشی، (٢) امتنع: منع شو.

**تشريح:-** خوکه هبه کړې شو.خو په عقد کي د عوض شرط او نه لګولې شو.او روستو موهوب له واهب ته ددې عوض ورکړو.نو اوس دا مطلق هبه ده.او په دې کي به شفعه نه جاری کيږی.نه په موهوب کي او نه په عوض کي ، خکه چې دا دواړه هبه وو.خو دومره خبره ده.چه موهوب له ددې عوض ورکړو.چه واهب رجوع اونکړې شی.خکه چې دعوض ور کاوه په صورت کي هبه کي رجوع باطليږی

**په هبه شوې څکه کښې د شفعې حق شته اوکه نه؟**

قال امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. وَمَنْ بَاعَ بِشَرْطِ الْخِيَارِ او چا چې خرڅ کړو.د خيار شرط سره، فَلَا شُفْعَةَ لِلشَّفِيعِ نو شفيع لپاره شفعه نشته. لِأَنَّهُ يَمْنَعُ زَوَالَ الْمِلْكِ عَنِ الْبَائِعِ خکه چې دا ( د بائع خيار) منع کوی.د مالك نه د ملك زوال فَإِنْ أَسْقَطَ الْخِيَارَ وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ نوکه بائع خيار ساقط کړو.نو شفعه به ثابت وی. لِأَنَّهُ زَالَ الْمَانِعُ عَنِ الزَّوَالِ خکه هغه شئ زائل شو.کوم چې دملك زوال منع کونکې وو.

**تشريح:-** د هدايه په دريم ټوك کي تاسو ونيلي دی.که بائع ته خيار وی.نو مبيع د بائع د ملکيت نه نه خارجيږی.اوکه مشتری ته خيار وی.نو مبيع د بائع د ملك نه خارجيږی.بيا د مشتری په ملکيت کي به راځي.او که نه؟ په دې کي د امام ابوحنيفه او صاحبينو رحمهم الله اختلاف دې.بهرحال هرکله چې دا تفصيل معلوم دې.نو



اوس واورئ! بائع يو کور خرڅ کړو.او خپل خان لپاره ئې د خيار شرط اولګولو.نو چونکه مبيع د بائع په ملکيت کي دې.نو اوس به شفيع ته حق د شفعې نه رسيږی.البته کله چې بائع خيار ساقط کړی.او بيع نافذ کړی.نو کوم شئ چې مانع وو.هغه زائل شو.او مبيع د بائع د ملکيت نه اووتلو.نو اوس به شفيع ته شفعه ملاويږی.

وَيُشْتَرَطُ الطَّلَبُ او طلب شرط دې عِنْدَ سُقُوطِ الْخِيَارِ فِي الصَّحِيحِ.د صحيح قول مطابق د خيار د سقوط په وخت، لِأَنَّ الْبَيْعَ يَصِيرُ سَبَبًا خکه چې بيع سبب جوړيږی لِزَوَالِ الْمِلْكِ عِنْدَ ذَلِكَ.د ملك د زوال دغه وخت ( کله چې خيار ساقط شی).

**تشريح:-** پاتې شوه دا مسئله چې د شفيع طلب کوم وخت شرط دې؟ نو ددې خواب دا دې.چه بعضو مشائخو اګرچه د شرط د وجود خيال کاوه سره دا ونيلی دی.چه د بيع په وخت طلب شرط دې.خو مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه دا قول صحيح نه دې.بلکه قول دا دې.چه طلب هغه وخت شرط دې.کله چې بائع خيار ساقط کړی.خکه چې کله بائع خيار ساقط کړی.هم دغه وخت به دا بيع د شفعې سبب جوړيږی.نو د سبب ثابتيدو نه مخکي طلب لغوه دې.

**د مشتري د خيار شرط په صورت کښې د شفعې حق شته**

وقال امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. وَإِنِ اشْتَرَى بِشَرْطِ الْخِيَارِ وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ اوکه مشتری په خيار شرط سره واخستلو.نو شفعه به ثابتيږی. لِأَنَّهُ لَا يَمْنَعُ زَوَالَ الْمِلْكِ عَنِ الْبَائِعِ بِالِاتِّفَاقِ خکه چې دا بالاتفاق د بائع نه د ملك زوال نه منع کوی. وَالشُّفْعَةُ تُبْتَنَى عَلَيْهِ عَلَى مَا مَرَّ،او شفعه د تير شوی تفصيل مطابق هم په دې مبنی ده. وَإِذَا أَخَذَهَا فِي الثُّلُثِ وَجَبَ الْبَيْعُ او کله چې شفيع کور په دريو ورځو کي دننه واخستلو.نو بيع لازم شوه. لِعَجْزِ الْمُشْتَرِي عَنِ الرَّدِّ،د مشتری د رد کاوه نه د عاجز کيدو په وجه، وَلَا خِيَارَ لِلشَّفِيعِ او شفيع لپاره خيار نشته. لِأَنَّهُ يَثْبُتُ بِالشَّرْطِ خکه چې خيار شرط سره ثابتيږی. ،وَهُوَ لِلْمُشْتَرِي دُونَ الشَّفِيعِ او دا مشتری لپاره دې.شفيع لپاره نه دې.

**تشريح:-** په مخکنۍ مسئله کي د بائع د خيار ذکر وو.او په دې کي د مشتری د خيار ذکر دې.او وړاندې معلومه شوې ده.چه د مشتری د خيار په صورت کي د بائع نه ملکيت اوځي.معلومه شوه.چه په دې صورت کي به شفعه ملاويږی.خکه چې د شفعې مدار د بائع د ملکيت زوال باندې دې.بهرحال کله چې مشتری خپل خان لپاره خيار واخستلو.نو هغه ته اختيار شته.چه په دريو ورځو کي دننه که غواړی.نو بيع دې رد کړی.اوکه غواړی.نو بيع دې لازم او نافذ کړی.خو که په دريو ورځو کي دننه شفيع دا کور په شفعه کي واخلی.نو اوس به بيع پخپله لازم وی.خکه چې اوس مشتری د بيع په رد کاوه باندې قادر پاتې نشو.

؟ اوس په دې باندې سوال وارديږی.چه کوم خيار مشتری لپاره دې.دا به د شفيع لپاره هم وی.اوکه نه؟ نو خواب ئې ورکړو.چه نه به وی.خکه چې خيار شرط په شرط لګولو سره ملاويږی.او دا معاهده د بائع او مشتری په مينځ کي شوې ده.د بائع او شفيع په مينځ کښې نه ده شوې.

وَإِنْ بِيعَتْ دَارٌ إِلَى جَنْبِهَا وَالْخِيَارُ لِأَحَدِهِمَا اوکه ددې کور په اړخ ( اړخ) کي يو کور خرڅ کړې شو.او خيار په دوی دواړو کي يوکس لپاره دې. فَلَهُ الْأَخْذُ بِالشُّفْعَةِ نو هغه لپاره شفعه شته. أَمَّا لِلْبَائِعِ فَظَاهِرٌ بهرحال بائع لپاره خو ښکاره ده. لِبَقَاءِ مِلْكِهِ فِي الَّتِي يَشْفَعُ بِهَا د هغه د ملکيت پاته پاتې کيدو په وجه، په هغه کور کي د کوم په ذريعه چې هغه شفعه اخلی. ،وَكَذَا إِذَا كَانَ لِلْمُشْتَرِي او هم دغه ډول ( به شفعه ملاويږی) کله چې ( خيار) مشتری لپاره وی.

**تشريح:-** ددې ځائې نه دويمه مسئله بيانوی.که د کور سره خواکي بل کور خرڅيږی.چه هغې کي بائع يا مشتری ته اختيار شته.نو هغوی لپاره به حق به د شفعې وی.اوکه نه؟ نو وې فرمائيل .چه په دواړو کي د

كوم كس لپاره چې خيار وي.هغه ته به شفعه ملاويږي.پاتې شوه دا خبره چې بائع ته به ولې ملاويږي.نو ددې ځواب ښكاره دې.چه هركله خيار بائع لپاره وي.نو كور د هغه ملكيت دې.نو هغه ته به شفعه ملاويږي.او كه خيار مشتري لپاره وي.نو هغه ته به هم شفعه ملاويږي.په دې باندې مرغيناني رحمه الله فرمائي.

وفيه إشكال أوضحناه في كتاب البيوع فلا نعيده

وَفِيهِ إِشْكَالٌ أَوْضَحْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ او په دې كې يو اشكال دې.چه دا موږ په كتاب البيوع كښې واضح كړې دې فَلَا نُعِيدُهُ.نو موږ به دا دوباره نه ذكر كوو. وَإِذَا أَخَذَهَا او كله چې مشتري دا كور واخستلو، كَانَ إِجَازَةً مِنْهُ لِلْبَيْعِ.نو دا به دده د اړخه د بيع اجازت وي.

**تشريح:-** كوم اشكال ته چې علامه مرغيناني رحمه الله اشاره كړې ده هغه دا دې .چه دا خبره د صاحبينو رحمهما الله مطابق صحيح ده.ځكه چې ددوی په نيز د كور مالك مشتري دې.خو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز اګرچه كور د بائع د ملكيت نه اووتلو.خو د مشتري په ملكيت خو نه دې داخل شوې.او شفعه د ملك په بنا (بنياد) باندې ملاويږي.نو بيا شفيع ته شفعه ولې ملاو شوه؟ دا اشكال دې.

ځواب: ځواب دا دې.چه كله ده په شفعه اخستلو باندې اقدام اوكړو.نو دا اقدام ددې خبرې دليل دې.چه هغه خيار ساقط كړو.او بيع ئې نافذ او لازم كړله.او اوس دده ملكيت ښكاره دې.او دا اشكال او ځواب مرغيناني رحمه الله په هدايه كې نه دې ذكر كړې.شايد په كفاية المنتهى كې ئې بيان كړې وي.

و اذا اخذها.....الخ يعنى كله چې مشتري په شفعه كې كور واخستلو.نو دا د هغه د اړخه د بيع اجازت شو.

بِخِلَافِ مَا په خلاف ددې صورت، إِذَا اشْتَرَاهَا كله چې مشتري دا واخستلو وَلَمْ يَرَهَا.او دا ئې كتلې نه وي. حَيْثُ لَا يَبْطُلُ خِيَارُهُ بِأَخْذِ مَا بِيعَ بِجَنْبِهَا بِالشُّفْعَةِ په دې حيثيت سره چې دده خيار به نه باطليږي.په شفعه كې دهغه كور د اخستلو په وجه، كوم چې ددې په اړخ كې خرڅ كړې شوې دې. لِأَنَّ خِيَارَ الرُّؤْيَةِ لَا يَبْطُلُ بِصَرِيحِ الْإِبْطَالِ ځكه چې خيار رؤيت په ښكاره باطلولو سره نه باطليږي. فَكَيْفَ بِدَلَالَتِهِ نو د ابطال دلالت سره به څنګه باطليږي.

**حل اللغة:** ① جنب:اړخ ② صريح:ښكاره

**تشريح:** البته كه مشتري په شفعه كې كور واخستلو.او اخستې كور ئې كتلې نه وو.اوس ئې هغه اوكتلو.نو هغه ته به خيار رؤيت ملاويږي.او په شفعه كې د كور اخستلو په وجه د هغه خيار رؤيت نه باطليږي.ځكه چې خيار رؤيت خو په صراحت سره باطلولو سره هم نه باطليږي.او په شفعه كې كور اخستل، خو د خيار رؤيت باطلولو دليل دې.نو كوم حق چې صراحت سره باطلولو سره نه باطليږي.هغه به د باطلولو دلالت سره څنګه باطليږي.

ثُمَّ إِذَا حَضَرَ شَفِيعُ الدَّارِ الْأُولَى بيا كله چې د مخكنى كور شفيع حاضر شو. لَهُ أَنْ يَأْخُذَهَا دُونَ الثَّانِيَةِ لِانْعِدَامِ مِلْكِهِ فِي الْأُولَى نو هغه لپاره حق شته.چه مخكنې كور واخلى. دوهم كور به نه اخلى.د شفيع د ملكيت معدوم كيدو په وجه، حِينَ بِيعَتِ الثَّانِيَةُ كله چې دوهم خرڅ كړې شوې وو.

**حل اللغة:** ① انعدام:نشتوالې

**تشريح:-** مشتري په شفعه كې كور واخستلو.اوس د مخكنى كور شفيع راغې.او د شفعې دعوه ئې اوكړله.نو هغه ته به صرف ړومبى كور كې شفعه ملاويږي.په دوهم كې به نه ملاويږي.ځكه چې كوم وخت دوهم كور خرڅ شو.هغه وخت د شفيع ملكيت معدوم وو.نو هغه ته به دوهم كور شفعه كې نه ملاويږي.

## په شراء فاسد سره خرڅ شوى كور كښې د شفعې حكم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. (وَمَنِ ابْتَاعَ دَارًا شِرَاءً فَاسِدًا) و چا چې خرڅ كړو.كور په شراءِ فاسد سره، فَلَا شُفْعَةَ فِيهَا نو په دې كې شفعه نشته. أَمَّا قَبْلَ الْقَبْضِ بهرحال د قبضې نه وړاندې، فَلِعَدَمِ زَوَالِ مِلْكِ الْبَائِعِ نو د



بائع د ملكيت نه زائل كيدو په وجه، وَبَعْدَ الْقَبْضِ او د قبضې نه روسته، لِاحْتِمَالِ الْفَسْخِ، د فسخ د احتمال په وجه، وَحَقُّ الْفَسْخِ ثَابِتٌ بِالشَّرْعِ لِدَفْعِ الْفَسَادِ او د فسخ حق د شريعت نه ثابت دې.د فساد لرې كاوه دپاره، وَفِي إِثْبَاتِ حَقِّ الشُّفْعَةِ تَقْرِيرُ الْفَسَادِ او حق د شفعې ثابتولو كې فساد قائم ساتل دى. فَلَا يَجُوزُ، نو دا (په شفعه كې اخستل) به جائز نه وي.

**تشريح:-** د بيع فاسد بيان په تفصيل سره د هداية په دريم توك كې تير شوې دې.بهرحال كه يوكس په چا باندې خپل كور خرڅ كړو.خو د شرط فاسد لګولو په وجه بيع فاسد شوه.نو اوس به په دې كې شفيع ته شفعه ملاويږي او كه نه؟ نو ځواب ئې وركړو.چه نه ملاويږي. ولې؟ ځكه چې دلته دوې (دوه) صورتونه دى.يا خو مشتري قبضه كړې ده او يا ئې نه ده كړې.كه قبضه ئې نه ده كړې.نو اوس هم دا كور د بائع په ملكيت كې دې.چه دلته به د وړاندې تير شوى اصولو مطابق د سره شفعه نه ملاويږي.او كه مشتري قابض شوې دې.اوس به هم شفعه نه ملاويږي.ځكه چې دلته شريعت دا حكم وركړې دې.چه دا بيع فسخ كړه.چه د بيع د فساد شرط لرې شى.او كه شفعه ئې وركړله.نو فساد به په ځائې د لرې كيدو نور هم پوخ شى.په دې وجه به شفعه نه ملاويږي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْخِيَارُ لِلْمُشْتَرِي فِي الْبَيْعِ الصَّحِيحِ په خلاف ددې كله چې بيع صحيح كې مشتري لپاره خيار وي. لِأَنَّهُ صَارَ أَخَصَّ بِهِ تَصَرُّفًا ځكه چې مشتري مخصوص دې مبيع سره په اعتبار د تصرف، وَفِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ مَمْنُوعٌ عَنْهُ او په بيع فاسد كې مشتري منع كړې شوې دې.د تصرف كاوه نه.

**حل اللغة:** ① اخص تصرفا:خاص تصرف ② ممنوع:منع شوې

**تشريح:-** ددې ځائې نه د اعتراض او ځواب ذكر دې.اعتراض دا دې.چه لكه څنګه په بيع فاسد كې د بيع فسخ كيدو او ماتيدو احتمال شته.د غه شان په بيع صحيح كې چې كله مشتري لپاره خيار وي.بيا هم احتمال شته.چه هغه بيع ماته كړى.او رد ئې كړى.نو لكه څنګه چې د شراءِ فاسد په صورت كې شفعه ورنكړې شوه.د مشتري د خيار په صورت كې هم شفعه ملاويدل پكار نه ده؟ نو ددې ځواب ئې وركړو.چه په دې دواړو كې د زمكې او آسمان توپير دې.ځكه چې بيع صحيح كې مشتري ته په مبيع كې د تصرف كاوه اختيار دې.او په بيع فاسد كې مشتري ته په مبيع كې د تصرف كاوه اختيار نشته.بلكه شريعت مشتري د تصرف كاوه نه منع كړې دې.،، فلا إشكال فيه،،

## د فسخ حق، ختميدو باندې د شفعې حق ملاويږي

قَالَ مرغيناني رحمه الله فرمائيلى دى. فَإِنْ سَقَطَ حَقُّ الْفَسْخِ وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ نو كه د فسخ حق ساقط شو.نو شفعه به ثابت وي. لِزَوَالِ الْمَانِعِ، د مانع د زوال په وجه، وَإِنْ بِيعَتْ دَارٌ بِجَنْبِهَا او كه خرڅ كړې شو يو كور ددې په خواكې وَهِيَ فِي يَدِ الْبَائِعِ بَعْدُ حالانكه دا كور تر اوسه پورې د بائع په قبضه كې دې. فَلَهُ الشُّفْعَةُ لِبَقَاءِ مِلْكِهِ نو دده لپاره شفعه شته.دده د ملكيت پاته پاتې كيدو په وجه،

**حل اللغة:** ① زوال:ختميدل ② المانع:ركاوټ ③ بيعت:خرڅ شو ④ بقاء:پاته پاتې كيدل

**تشريح:-** دا واړه تير شوې تقرير هغه وخت وو.كله چې په بيع فاسد كې د فسخ احتمال وي.اوكه د فسخ احتمال ختم شوې وي.مثلاً په دې طريقه چې مشتري دا كور د بل چا په لاس خرڅ كړې وي.نو اوس به شفيع ته شفعه ملاويږي.ځكه چې كوم مانع وو.هغه زائل شو.اوس دويمه مسئله بيانوى.چه د بيع فاسد په صورت كې مبيع اوس د بائع په قبضه كې دې.اتفاق سره ددې كور په خواكې يو كور خرڅ شو.نو بائع ته به شفعه ملاويږي.ځكه چې كور دده ملكيت دې.

وَإِنْ سَلَّمَهَا إِلَى الْمُشْتَرِي اوكه بائع دا مشتري ته اوسپارلو. فَهُوَ شَفِيعُهَا نو مشتري به ددې شفيع وي. لِأَنَّ الْمِلْكَ لَهُ ځكه چې ملكيت دهغه دې. ثُمَّ إِنْ سَلَّمَ الْبَائِعُ قَبْلَ الْحُكْمِ بِالشُّفْعَةِ لَهُ اوكه بائع كور اوسپارلو.خپل ځان لپاره د

شفعې د حکم نه وړاندې، بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ نو دده شفعه باطله شوه.

تشریح:- البته① كه بائع دا مشتري ته حواله كړې وو.نو شفعه به مشتري ته ملاويږی.ځكه چې اوس دده مالك مشتري دې.② په دوهم صورت كې مبيع د بائع په قبضه كې وو.چه ددې په خواكې كور خرڅ شو.او بايع د شفعې دعوه اوكړله.خو قاضي اوسه پورې د بائع لپاره د شفعې فيصله نه وه كړې.چه بائع مبيع مشتري ته حواله كړو.نو اوس به بائع ته شفعه نه ملاويږی.

كَمَا إِذَا بَاعَ، بِخِلَافِ مَا إِذَا سَلَّمَ بَعْدَهُ لكه كله چې ده خرڅ كړې وی.په خلاف ددې صورت كله ئې چې ددې نه روستو سپارلې وی. لِأَنَّ بَقَاءَ مِلْكِهِ فِي الدَّارِ الَّتِي يَشْفَعُ بِهَا بَعْدَ الْحُكْمِ بِالشُّفْعَةِ لَيْسَ بِشَرْطٍ ځكه چې ددې نه ملكيت پاته پاتې كيدل، په هغه كور كې د كوم په ذريعه چې دې شفعه طلب كوی.د شفعې د حكم نه روستو شرط نه دې. فَبَقِيَتِ الْمَأْخُوذَةُ بِالشُّفْعَةِ عَلَى مِلْكِهِ نو كوم كور چې شفعه كې اخستې شوې دې.هغه به دده په ملكيت باندې پاته پاتې وی.

تشریح:- ددې صورت بعينه داسې دې.چه يو سړی د شفعې دعوه اوكړله.خو اوسه پورې قاضي مدعي لپاره د شفعې فيصله نه وه كړې.چه مدعي خپل دغه كور خرڅ كړو.د كوم په وجه چې هغه د شفعې دعوه كوله.نو د هغه شفعه به باطليږی.دغه ډول به دلته هم شفعه باطليږی.

② البته كه بائع د شفعې دعوه كړې وی.اوقاضي هغه لپاره د شفعې فيصله وركړې وی.او ددې نه روستو بائع مبيع (كور) مشتري ته حواله كړې وی.نو اوس چې كوم كور بائع په شفعه كې اخستې دې.هغه هم دهغه دې.او په دې كې به شفعه نه باطليږی.ځكه دا اصول مقرر دی.چه دكوم كور په وجه ئې شفعه اخستې ده.د قاضي د فيصلې نه روستو هم برابر (مستقل) دده په ملكيت كې پاته پاتې كيدل بالاتفاق شرط نه دی.

وَإِنِ اسْتَرَدَّهَا الْبَائِعُ مِنَ الْمُشْتَرِي اوكه بائع كور مشتري ته واپس كړو قَبْلَ الْحُكْمِ بِالشُّفْعَةِ لَهُ بَطَلَتْ .مشتري لپاره د شفعې د حكم نه مخكې ،نو شفعه به باطليږی. لِانْقِطَاعِ مِلْكِهِ عَنِ الَّتِي يَشْفَعُ بِهَا قَبْلَ الْحُكْمِ بِالشُّفْعَةِ د مشتري د ملكيت منقطع كيدو په وجه، د هغه كور نه،د كوم په ذريعه چې هغه شفعه طلب كوی. د شفعې د حكم نه مخكې ، وَإِنِ اسْتَرَدَّهَا بَعْدَ الْحُكْمِ اوكه بائع كور واپس كړو.د شفعې نه حكم نه روستو، بَقِيَتِ الثَّانِيَةُ عَلَى مِلْكِهِ نو دوهم كور به د مشتري په ملكيت باندې پاته پاتې وی لِمَا بَيَّنَّا .د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

تشریح:- مبيع په بيع فاسد سره د مشتري په قبضه كې تلې وو.او ددې په خواكې چې كوم كور خرڅ شو.مشتري هغې كې د شفعې دعوه اوكړله.او هم په دې حالت كې په بيع كې د فساد په وجه شرعي حكم سره بائع د مشتري نه مبيع واپس واخستلو.نو اوس به شفيع ته شفعه ملاويږی او كه نه؟ نو ځواب ئې دا دې چې كه بائع د مشتري په حق كې د شفعې حكم كيدو نه وړاندې واپس واخستلو.نو مشتري ته به شفعه نه ملاويږی.او كه د شفعې د حكم كيدو نه روستو ئې واپس اخستې وی.نو واپس كول صحيح دی.اوكوم كور چې مشتري په شفعه كې اخستې دې.هغه هم د هغه دې.دليل هم هغه دې.كوم چې د بائع په بيان كې تير شوې دې.

## كه شريكانو مځكه ويش كړله نو د شفعې حق به نه ملاويږی

قَالَ (وَإِذَا اقْتَسَمَ الشُّرَكَاءُ الْعَقَارَ) اوكله چې شريكانو مځكه ويش كړله فَلَا شُفْعَةَ لِجَارِهِمْ بِالْقِسْمَةِ) نو د ويش په وجه ددوی د ګاونډی لپاره شفعه نشته. لِأَنَّ الْقِسْمَةَ فِيهَا مَعْنَى الْإِفْرَازِ ځكه چې تقسيمول،(نو) په دې كې د افراز(يعنی دجدا كيدواو دعين حق اخستلو) معنی ده. وَلِهَذَا يَجْرِي فِيهَا الْجَبْرُ او هم په دې وجه دې كې زبردستي(اومجبوره كول)جاری كيږی ، وَالشُّفْعَةُ مَا شُرِعَتْ او شفعه نه ده مشروع شوې إِلَّا فِي الْمُبَادَلَةِ الْمُطْلَقَةِ ..مگر په مباداله مطلقه كې.



تشریح:- شريكانو خپله مځكه ويش كړله.نو ښكاره ده.چه دا بيع نه ده.او مبادله مالی نه ده.بلكه خپلې برخې (حصې) تقسيمول او جلا جلا كول دی.چه دې ته افراز وئيلې شی.نوكه يو ګاونډی د تقسيمولو په وخت د شفعې دعوه اوكړی.نو هغه ته به شفعه نه ملاويږی.ځكه چې شرط د شفعې نه ده موجود شوې.( چې هغه شرط بيع دې).او په ويش كې د زمكې اوآسمان توپير دې.په بيع كې زبردستي جائز نه دې.بلكه خپل مينځ كې رضامندی شرط ده.او په ويش كې زبردستي جائز ده.يعنی كه په شريكانو كې يو كس د ويش مطالبه اوكړی.او دوهم شريك انكار اوكړی.نو په منكر باندې به زبردستي كولې شی.او هغه به په ويش باندې مجبوره كولې شی.

## د شفيع شفعه پريخودو سره دوباره د شفعې حق نه ملاويږی

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. (وَإِذَا اشْتَرَى دَارًا) اوكله چې مشتري يو كور واخستلو فَسَلَّمَ الشَّفِيعُ الشُّفْعَةَ .نو شفيع د شفعې نه بيزاری (او جدائی) اختيار كړله. ثُمَّ رَدَّهَا الْمُشْتَرِي بِخِيَارِ رُؤْيَةٍ أَوْ شَرْطٍ أَوْ بِعَيْبٍ بِقَضَاءِ قَاضٍ بيا مشتري دا كور د خيار رؤيت يا خيار شرط يا د عيب په وجه د قاضي په فيصلې سره واپس كړو. فَلَا شُفْعَةَ لِلشَّفِيعِ) نو شفيع لپاره شفعه نشته.

تشریح:- زيد د بكر نه يو كور واخستلو.خالد ته حق د شفعې ملاويدو.خو هغه د شفعې اخستلو نه انكار اوكړو.نو اوس دهغه شفعه باطل شوې ده.اوس زيد دا كور واپس كوی.يا د خيار رؤيت په وجه، يا د خيار شرط په وجه، يا دعيب په وجه، او كله ئې چې د عيب په وجه واپس كړو.نو قاضي په فيصلې سره ئې واپس كړې دې.بهرحال كله چې په دې دريو واړو صورتونوكې په يو صورت كې كور مشتري ته واپس راغې.نو خالد بيا د شفعې دعوه اوكړله.يعنی د بكر نه، نوخالد انكار اوكړو.او اوس خالد د زيد نه دا په شفعه كې اخستل غواړی.او دې واپسۍ ته د بيع درجه وركوی.او شفعه طلب كوی.نو آيا خالد ته به شفعه ملاويږی؟

لِأَنَّهُ فَسْخٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځكه چې دا هر اعتبار سره فسخ ده فَعَادَ إِلَى قَدِيمِ مِلْكِهِ نو مبيع واپس شو وَالشُّفْعَةُ فِي إِنْشَاءِ الْعَقْدِ .د بائع مخكنی ملك اړخ ته،او شفعه د عقد د انشاء خنې ده. وَلَا فَرْقَ فِي هَذَا او په دې كې هيڅ توپير نشته ، بَيْنَ الْقَبْضِ وَعَدَمِهِ.د قبضې او د عدم قبضې په مينځ كې .

تشریح:- دليل دا بيانوی چې دا بيع نه ده.بلكه د ړومبی بيع مكمل فسخ كول دی.نو هركله چې شرط مكمل فوت شو.نو د شفعې ملاويدو څه سوال دې.يعنی دلته مبيع اجنبی ته نه دې راغلې.بلكه بائع مخكې هم ددې مالك وو.او اوس هم ددې مالك دې.ګويا چې د بائع په ملك كې استمرار(تسلسل) دې.او د استمرار په صورت كې شفعه نه ملاويږی.او يو شئ پخپل مخكنی حالت باندې د واپس كاوه په صورت كې شفعه نه ملاويږی.بلكه شفعه د عقد د انشاء په صورت كې ملاويږی .او د عقد انشاء دلته نشته.بيا هركله چې مشتري په دې مذكوره صورتونو كې مبيع واپس كړو.نو هم دا حكم دې.كه د قبضې نه ئې مخكې واپس كړی.اوكه د قبضې نه روستو ( يو حكم دې).

## د رد كولو، يا اقاله كولو نه روستو د شفعې حق شته او كه نه؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. (إِنْ رَدَّهَا بِعَيْبٍ اوكه واپس كړو مشتري كور د عيب په وجه، بِغَيْرِ قَضَاءٍ بغير د قاضي د فيصلې نه، أَوْ تَقَايَلَا الْبَيْعَ يا دواړو د بيع اقاله اوكړله فَلِلشَّفِيعِ الشُّفْعَةُ .نو شفيع لپاره شفعه شته.

تشریح:- په مخكنی صورت كې د عيب په وجه واپسی د قاضي په حكم سره وه.دهغې حكم تير شو.او كه د قاضي د فيصلې نه بغير ئې د عيب په وجه مبيع واپس كړو.يا دواړو اقاله كړې وی.نوپه دې دواړو صورتونو كې به شفعه ملاويږی.

لِأَنَّهُ فَسْخٌ فِي حَقِّهِمَا ځكه چې دا ددوی دواړو په حق كې فسخ ده. لِوِلَايَتِهِمَا عَلَى أَنْفُسِهِمَا ددوی دواړو د ولايت په

وجه پخپلو خانونو باندي، وَقَدْ قَصَدَا الْفَسْخَ حالانکه دوی دواړو د فسخ اراده کړې ده وَهُوَ بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ ثَالِثٍ د دريم کس په حق دا جديد بيع ده لِوُجُودِ حَدِّ الْبَيْعِ..د بيع تعريف موجود کيدو په وجه، وَهُوَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ بِالتَّرَاضِي او هغه رضامندئ سره مال سره د مال تبادله ده وَالشَّفِيعُ ثَالِثٌ.او شفيع دريم کس دي.

تشریح:- خکه چي دلته د قاضي حکم نشته.بلکه ددوی دواړو خپل مينځ کي رضامندي ده.او دوی دواړه عاقل بالغ دی.د ولايت اهل دی.پخپل خان باندې دواړو ته ولايت حاصل دې.او دوی دواړو د بيع فسخ کاوه اراده کړې ده.نو ددوی د ذات پورې به ددوی اراده معتبر وی.او ونيلې به شی.چه ددوی دواړو په حق کي دا بيع فسخ کول دی.خو دوی ته پخپل خان باندې ولايت حاصل دې.په شفيع باندې نه دې.نو ددوی اراده به په شفيع باندې نشی ورتپلې.بلکه دا به ونيلې شی.چه ددوی دواړو په حق کي دا فسخ ده.او د دريم کس په حق کي دا بيع جديد ده.او شفيع دريم کس دې.او په بيع ونيلو کي هيڅ حرج (او تنگی) نشته.خکه چې د بيع تعريف موجود دې.يعنی ،، مبادلة المال بالمال بالتراضی،، بهرحال شفيع ته به شفعه ملاويږی.او د اقالې حکم د مخکي نه معلوم شوې دې.چه دا د ددوو عقد کونکو په مينځ کي فسخ او د دريم کس په حق کي بيع جديد ده.

وَمُرَادُهُ الرَّدُّ بِالْعَيْبِ بَعْدَ الْقَبْضِ او دده مراد د عيب په وجه د قبضې نه روستو واپس کول دی. لِأَنَّ قَبْلَهُ فَسْخٌ مِنَ الْأَصْلِ خکه چې د قبضې نه وړاندې د سره فسخ ده وَإِنْ كَانَ بِغَيْرِ قَضَاءٍ گرچه د قاضی د فيصلې نه بغير وی عَلَى مَا عُرِفَ. ا.د هغه تفصيل مطابق کوم چې پيژندلې شوې دې.

تشریح:- خو دا واړه تقرير هغه وخت دې.کله ئې چې د خيار عيب په وجه د قبضې نه روستو واپس کړی.کنی که د قبضې نه وړاندې ئې واپس کړی.نو اوس دا مکمل فسخ ده.او د جديد بيع هيڅ شك په دې کي نشته.نو اوس به شفيع ته شفعه نه ملاويږی.خکه چې د خيار عيب په وجه که د قبضې نه روستو واپسی وی.نو د صفقې نه روستو واپسی ده.چه دا جديد بيع کيداې شی.او د قبضې نه مخکي خو د سره صفقه هم نه ده پوره شوې.نو دا به مجبوراً مکمل فسخ گرخولې شی.مرغينانی رحمة الله عليه د هدايهٔ په دريم ټوك کي هم دا تقرير کړې دې. «لأن الصفقة تم مع خيار العيب بعد القبض وإن كانت لا تم قبله» هم ددې حواله ئې ورکړې ده.او وې فرمائيل.،، علی ما عرف.،

## په ويش کښې او د خيار روئيت په وجه ردکولو کښې شفعه نشته

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ:او په جامع صغير کي دی وَلَا شُفْعَةَ فِي قِسْمَةٍ وَلَا خِيَارِ رُؤْيَةٍ. .او شفعه نشته.په ويش کي ،او نه په خيار روئيت کي وَهُوَ بِكَسْرِ الرَّاءِ، او دا (خيار) د ،،راء،، کسرې سره دې. وَمَعْنَاهُ: ددې معنی ده لَا شُفْعَةَ بِسَبَبِ الرَّدِّ بِخِيَارِ الرُّؤْيَةِ د خيار روئيت په وجه د واپس کاوه په سبب سره شفعه نشته لِمَا بَيَّنَّاهُ..دهغه دليل په وجه کوم چې مونږ بيان کړې دې. وَلَا تَصِحُّ الرِّوَايَةُ بِالْفَتْحِ عَطْفًا عَلَى الشُّفْعَةِ او په ،، تحهٔ،، سره روايت په سشفعه باندې د عطف کاوه صحيح نه دې. لِأَنَّ الرِّوَايَةَ مَحْفُوظَةٌ فِي كِتَابِ الْقِسْمَةِ خکه په مبسوط کتاب القسمة کي محفوظ روايت دې. أَنَّهُ يَثْبُتُ فِي الْقِسْمَةِ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ وَخِيَارُ الشَّرْطِ چې ويش کي خيار روئيت او خيار شرط ثابتيږی.

تشریح:- د متن د مسئلو نه د فراغت نه روسته مرغينانی رحمة الله عليه دلته د جامع صغير يو عبارت نقل کړې دې.او په هغې باندې ئې څه تبصره کړې ده.د جامع صغير عبارت دا دې. «ولا شفعة فی قسمة ولا خيار رؤية» يعنی ،،په ويش او خيار روئيت کي شفعه نشته،، چې ددې بيان اوس تير شو.د خيار عطف په ،، قسمة،، دې او که په ،،شفعه،، باندې دې.په رومبی صورت کي به په ،،راء،، ك سره وی.او په دوهم صورت کي به په ،،راء،، ... حضراتو په دې فتحه ونيلې ده.او په شفعه باندې ئې ددې عطف کړې دې.اوس به ددې ... نه په ويش کي نه شفعه شته.اونه خيار روئيت شته.مرغينانی رحمة الله عليه فرمائی.دا غلط دې.د ... كتاب القسمة روايت ددې خلاف موجود دې.چه په ويش کي شفعه نشته.اونه په خيار روئيت کي



شفعه شته.بهرحال په دې وجه به دا مکسور ونيل ضروری وی.

لِأَنَّهُمَا يَثْبُتَانِ لِخَلَلٍ فِي الرِّضَا خکه چې دا دواړه ثابتيږی په رضامندئ کي د خلل په وجه فِيمَا يَتَعَلَّقُ لُزُومُهُ، په داسې عقد کي چې دهغې لزوم رضامندئ سره متعلق دې. بِالرِّضَا، وَهَذَا الْمَعْنَى مَوْجُودٌ فِي الْقِسْمَةِ، وَاللهُ سُبْحَانَهُ أَعْلَمُ او دا معنی په ويش کي موجود ده.والله سبحانه اعلم.

حل اللغة: ① خلل:رکاوټ ② القسمة:تقسيم.

تشریح:- په ويش کي د خيار روئيت او خيارشرط د ثبوت وجه دليل بيانوی چې د کومو عقدونو لزوم چې رضامندئ باندې وی.چه هم دا رضامندی په صفا طريقه معلومه شی.په دې وجه دا دواړه خياره ملاويږی.او دا وجه په ويش کي هم موجود ده.په دې وجه به دا دواړه خياره ملاويږی.

فائده: د خيار عيب او خيار روئيت او خيار شرط په وجه واپس کول جلا شئ دې.او د واپسئ په وخت د شفيع مطالبه کول جلا مسئله ده.او د چا لپاره چې خيار شرط دې.او په دې موده کي ددې په خوا کي يو کور خرخيږی.او هغه په دې کي د شفعې دعوه اوکړی.نو دا جلا مسئله ده.چه ددې بيان وړاندې تير شوې دې.يو اوده طالب علم د بيداريدو نه روستو مانه هم دا سوال په سبق کي کړې وو.نو ما هم دا خواب ورکړو.

# باب ما تبطل به الشفعة

ژباړه:- (دا) باب د هغه څيزونو (په بيان کي) دې.په کومو سره چې شفعه باطليږی.

تشریح:- دا خبره يقينی ده.چه ثبوت مخکي وی.او بطلان روستو وی.په دې وجه مرغينانی رحمة الله عليه ،، باب ما يثبت به الشفعة،، وړاندې ذکر کړو.او ،، باب ما تبطل به الشفعة،، ئې مؤخر کړو.

## د شفعې باطليدو اسباب، رومبی سبب

قَالَ امام قدوری رحمة الله عليه اوفرمائيل. وَإِذَا تَرَكَ الشَّفِيعُ الْإِشْهَادَ او کله چې شفيع اشهاد (گواهان قائمول) پريښول حِينَ عَلِمَ بِالْبَيْعِ کوم وخت چې هغه ته د بيع علم اوشو وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى ذَلِكَ.. حالانکه هغه په دې قادر وو. بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ لِإِعْرَاضِهِ عَنِ الطَّلَبِ نو دهغه شفعه به باطليږی.د هغه د اعراض کاوه په وجه د طلب نه، وَهَذَا لِأَنَّ الْإِعْرَاضَ او دا (د قدرت شرط لګول) خکه دی إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ حَالَةَ الِاخْتِيَارِ او چې اعراض داختيار په حالت کي ثابتيږی وَهِيَ عِنْدَ الْقُدْرَةِ..او دا (حالت د اختيار) د قدرت په وخت دې.

حل اللغة: ① يتحقق:ثابتيږی ② الاعراض:ډډه کول

تشریح:- د امام قدوری رحمة الله عليه په کلام کي د اشهاد نه مراد طلب د اشهاد او طلب د تقرير نه دې.بلکه طلب مواثبه ده.اوس د عبارت مطلب باندې پوهه شئ.شفيع ته د بيع علم اوشو.او هغه په طلب مواثبه باندې قادر دې.ددې نه عاجز نه وی.ددې باوجود هم هغه طلب مواثبه اونکړله.نو چونکه دا د اعراض دليل دې.په دې وجه د هغه شفعه باطل شوه.

او د «وهو يقدر الخ» قيد ئې خکه لګولې دې چې هرکله شفيع د قدرت باوجود د شفعې طلب پريږدی.نو دغه وخت به اعراض وی.کنی د عجز په صورت کي به د شك په وجه اعراض نه ثابتيږی.او بيا به شفعه نه باطليږی.

## که ګواهان قائمول ئې پريخودل، نو د شفعې حکم

وَكَذَلِكَ إِنْ أَشْهَدَ فِي الْمَجْلِسِ اوهم دغه ډول (شفعه باطليږی) که ده په مجلس کي اشهاد (طلبه مواثبه) اوکړو وَلَمْ يُشْهِدْ عَلَى أَحَدِ الْمُتَبَايِعَيْنِ .او په متبايعينو کي ئې په هيڅ يوکس ګواهان قائم نکړل. وَلَا عِنْدَ الْعَقَارِ وَقَدْ أَوْضَحْنَاهُ فِيمَا تَقَدَّمَ او نه ئې په مخکه (ګواهان قائم کړل).او مونږ ددې وضاحت وړاندې کړې دې.

تشریح:- د طلب د دریو اقسامو بیان وړاندې تیر شوې دې.نو مرغینانی رحمة الله علیه فرمائي.چه د طلب مواثبه نه روستو که ده طلب اشهاد ( گواهان قائمول) پریخودل.بیا به هم شفعه باطلیږي.

**په یو عوض باندې مصالحت کولو باندې شفعه پریخودو سره حق د شفعې ختمیږي**

قَالَ امام قدوری رحمة الله علیه اوفرمائیل. وَاِنْ صَالَحَ مِنْ شُفْعَتِهٖ عَلٰی عِوَضٍ او که پخپلې شفعې سره ئې په یو عوض باندې صلح اوکړله بَطَلَتْ شُفْعَتُهٗ و دده شفعه باطل شوه وَرَدَّ الْعِوَضَ .ن.اوعوض به واپس کوی. لِاَنَّ حَقَّ الشُّفْعَةِ لَيْسَ بِحَقٍّ مُتَقَرِّرٍ فِي الْمَحَلِّ خکه چې حق د شفعې داسې حق نه دې.چه دا په ( محل کې ثابت ( او قائم) وی. بَلْ هُوَ مُجَرَّدُ حَقِّ التَّمَلُّكِ بلکه حق د شفعې خو صرف د مالك جوړیدو حق دې فَلَا يَصِحُّ الْاِعْتِيَاضُ عَنْهُ.نو ددې عوض اخستل به صحیح نه وی.

حل اللغة: ① متقرر:مقررشوې ② الاعتیاض:عوض اخستل ③ مجرد : صرف

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې چې یو شفیع مشتری سره مصالحت اوکړو.چه زه په زر روپۍ خپل حق د شفعې پریږدم.نو مشتری شفیع ته زر روپۍ ورکړې.نو اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل.چه شفعه هم باطل شوه.او کومې زر روپۍ چې ملاو شوی دی.د هغې واپس کول هم ضروری دی.څکه چې دا رشوت دې.او دا حرام دې.ولې؟ څکه چې په حق دشفعې کې شفیع ته دومره حق دې.چه هغه عوض ورکړي.او د مشفوعه کور مالك جوړ شي.یعنی هغه لپاره صرف دمالك جوړیدو حق شته.داسې خبره نه ده.چه په مشفوعه کور کې د شفیع څه داسې حق دې.چه هغه په دې کور کې ثابت شوې وی.په نورو الفاظوکې داسې چې شفیع ددې کور مالك نه دې جوړ شوې.( بلکه) صرف جوړیدې شی.او د مالك جوړیدو نه وړاندې به هغه د څه شئ عوض اخلی.نومعلومه شوه.چه صرف د شفعې د حق عوض اخستل صحیح نه دی.

**چه حق د شفعې په جائز شرط سره ساقطیږي نو په فاسد شرط سره په طریقه اولی باطلیږي**

وَلَا يَتَعَلَّقُ اِسْقَاطُهٗ بِالْجَائِزِ مِنَ الشَّرْطِ اونه متعلق کیږی حق د شفعې ساقطول، جائز شرط سره فَبِالْفَاسِدِ اَوْلٰی ، نو فاسد سره به په درجه اولی ( نه متعلق کیږی). فَيَبْطُلُ الشَّرْطُ نو شرط به باطلیږی وَيَصِحُّ الْاِسْقَاطُ.او اسقاط به صحیح وی.

تشریح:- شرط فاسد هغه دې.په کوم کې چې مال ذکر وی.او په کوم کې چې مال ذکر نه وی.هغه شرط جائز دې.مثلاً شفیع مشتری ته اووئیل.چه ما خپل حق د شفعې ساقط کړو.په دې شرط چې بائع زما نه د ثمن مطالبه اونکړی.نو ښکاره ده.چه کله شفیع مشفوعه کور نه اخلی.نو بائع یا مشتری به د شفیع نه د ثمن مطالبه څنگه کوی؟ لنډیز د کلام دا چې دا شرط جائز دې.اوکه شفیع اووئیل.چه ما خپل حق ساقط کړو.په دې شرط چې ته ما ته زر روپۍ راکړې.نو دا شرط فاسد دې.

نود متن مطلب دا شو چې د شفعې حق ساقطولو هیڅ تعلق شرط سره نشته.که شرط جائز وی.اوکه فاسد وی.بلکه ددې د ساقطولو تعلق د هغه قول سره دې.چه ما خپل حق ساقط کړو.نو مرغینانی رحمة الله علیه وویل.چه هرکله شرط جائز سره د حق شفعې ساقطولو تعلق نشته.نو شرط فاسد سره به په درجه اولی نه وی. بهرحال هرکله ئې چې داسې اوکړل.نو څه به کیږی؟ نو ځواب ئې ورکړو.چه شرط به باطل وی.یعنی عوض واپس کول به لازمی وی.او ساقطول به صحیح وی.یعنی ده چې خپل کوم حق ساقط کړو.هغه خو ساقط شو.خو عوض واپس کول به هم لازمیږی.

**د شفعې حق خرڅولو سره هم حق د شفعې باطلیږي**

وَكَذَا لَوْ بَاعَ شُفْعَتَهٗ بِمَالٍ او هم دغه ډول ( شفعه باطلیږی) که شفیع خپله شفعه خرڅه کړله لِمَا بَيَّنَّا.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې.

تشریح:- یعنی شفیع لپاره چې لکه څنگه عوض اخستلو سره خپل حق ساقطول جائز نه وو.هم دغه ډول که



شفیع خپل حق شفعه د چا په لاس خرڅ کړو.نو اوس به څه کیږی؟ نو وې وئیل.چه دلته به هم هغه مخکنې حکم وی.یعنی شفعه به باطلیږی.او ده چې کوم رقم وصول کړې دې.د هغې واپسی هم ضروری ده.د هغه دلیل په وجه کوم چې تیر شوې دې.

**حق د شفعې په حق د قصاص باندې د قیاس کولو حکم**

بِخِلَافِ الْقِصَاصِ په خلاف د قصاص، لِاَنَّهٗ حَقٌّ مُتَقَرِّرٌ څکه قصاص داسې حق دې.چه دا ثابت دې. وَبِخِلَافِ الطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ او په خلاف د طلاق او آزادئ، لِاَنَّهٗ اعْتِيَاضٌ څکه چې دا عوض اخستل دی عَنْ مِلْكٍ فِي الْمَحَلِّ . په محل کې د ملك نه.

تشریح:- دلته اعتراض واردیدو.چه لکه څنگه حق د شفعې مال نه دې.دغه ډول حق د قصاص هم مال نه دې.نو لکه څنگه چې د حق قصاص عوض اخستل صحیح دی.دغه ډول د حق شفعه عوض اخستل هم صحیح کیدل پکار دی؟ نو ددې ځواب ئې ورکړو.چه حق د شفعې ثابت ( او قائم) حق نه دې.او حق د قصاص ثابت حق دې.او د ثابت حق عوض اخستل صحیح دی.او غیرثابت عوض اخستل صحیح نه دی.د ثابت او غیر ثابت پیژندل داسې دی.چه چرته د مصلحت نه مخکې او روستو په محل کې حکماً توپیر اوشی.هغه ثابت دې.گنی غیر ثابت دې.مثلاً د صلحې نه مخکې قاتل ( مباح الدم) وو.او د صلحې نه روسته په ده کې عصمت(اوحفاظت) پیدا شو.نو چونکه چا لپاره چې قصاص دې.یعنی ولی په قاتل کې عصمت پیدا کړو. په دې وجه د عصمت عوض اخستل هغه لپاره صحیح دی.او په حق شفعه کې مشتری د مبیع مالك شوې دې.د مصالحت نه مخکې هم او د مصالحت نه روستو هم هغه ملکیت قائم دې.معلومه شوه.چه دا حق غیر قائم (او غیرثابت) دې.چه ددې عوض اخستل صحیح نه دی.

دغه ډول که میړه خپلې ښځې ته دمال په بدله طلاق ورکړي.او آقا د مال په بدله کې غلام آزاد کړي.نو دواړه عوض اخستل صحیح دی.او څکه چې دده حق ثابتیدل ښکاره دی.او میړه او آقا دواړو ته په محل کې ملکیت حاصل دې.او ددې خپل ملك عوض اخستل صحیح دی.

وَنَظِيْرُهٗ اِذَا قَالَ لِلْمُخَيَّرَةِ او ددې مثال کله چې میړه مخیره ته اووئیل. اخْتَارِيْنِيْ بِاَلْفٍ چې د زر ( روپو) په بدله کې ما اختیار کړه. اَوْ قَالَ الْعِنِّيْنُ لِامْرَاَتِهٖ اخْتَارِيْ تَرْكَ الْفَسْخِ بِاَلْفٍ یا عنین (نامرد) خپلې ښځې ته اووئیل.چه د زر(روپو) په بدله کې فسخ پریښول اختیار کړه. فَاخْتَارَتْ نو هغې اختیار کړل فَسَقَطَ الْخِيَارُ.نو خیار ساقط شو وَلَا يَثْبُتُ الْعِوَضُ.او عوض به ثابت نه وی.

حل اللغة: ① المخیرة:هغه ښځه چې دطلاق اختیارورته ملاؤ شوې وی ② العنین:نامرده ③ الترك: پریخودل

تشریح:- مرغینانی رحمة الله علیه فرمائي.چه د شفعې د حق دا مثالونه دی.چه دلته عوض نه ثابتیږی.اوخیار هم ساقطیږی.① یو سړی خپلې ښځې ته خیار ورکاوه کې اوفرمائیل.،،إختاری نفسك،، چې ددې تفصیل د هدایهٔ په دریم ټوك کې تیر شوې دې.اوس میړه خطره محسوس کړله.چه چرته ښځه خپل نفس اختیار نکړي.او طلاق بائن واقع نشی.ددې خطرې په لحاظ سره هغه ښځې ته اووئیل.چه د زر ( روپو) په بدله کې ته ما اختیار کړه.ښځې اختیار کړو.نو د ښځې خیار ساقط شو.او زر روپۍ به واجب نه وی.② د عنین ښځې ته اختیار د فسخ ملاویږی.چه ددې تفصیل د هدایهٔ په دریم ټوك کې تیر شوې دې.خو میړه هغې ته اووئیل.چه ته نکاح مه فسخ کوه.او زه به تا ته زر روپۍ درکړم.نو ښځې فسخ پریخوده.اوس هم د ښځې خیار ختم شو.اوعوض هم باطل شو.یعنی دا دواړه مسئلې د حق شفعه مثالونه دی.چه ددې مثال دا دې.چه ،،د دهوبی سپې نه د کور نه د بهر،،

وَالْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ فِيْ هٰذَا بِمَنْزِلَةِ الشُّفْعَةِ فِيْ رِوَايَةٍ او کفالت بالنفس په دې ( باطلیدو او عوض ) سلسله کې د یو روایت مطابق د شفعې په درجه کې دی. وَفِيْ اُخْرٰى: لَا تَبْطُلُ الْكَفَالَةُ او د دوهم روایت مطابق به کفالت نه

باطليږي. وَلَايَجِبُ الْمَالُ او مال به نه واجبيږي. ٥قِيلَ او ونيلی شوی دی ،وَهٰذِهٖ رِوَايَةٌ فِي الشُّفْعَةِ.چه هم دا يو
روايت دی.په شفعه کي ،

تشريح:- يوکس د يو سړی د نفس کفالت اوکړو.چه دې ته کفالت بالنفس وائی.ددې مقصد دا وی.چه کفيل دا
سړې مکفول لـه ته حاضر کړی.بيا کفيـل مکفول لـه تـه اوونيـل.چه تـه زر روپۍ واخلـه.ما د کفالت نـه بری
کړه.هغه اوکړل.اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائيل.چه په دې کي مختلف روايات دی.ديو روايت مطابق خو
دا د شفعي پشان دې.يعنی کفالت به باطل وی.او عوض به واجب نه وی.او د دوهم روايت مطابق به نه مال
واجب وی.او نه به کفالت باطل وی.

### د شفعي د حق مثال

وَقِيلَ او ونيلی شوی دی هِيَ فِي الْكَفَالَةِ خَاصَّةً چې دا روايت صرف په کفالت کي دې وَقَدْ عُرِفَ فِي مَوْضِعِهٖ..او
دا پيژندلې شوې دې.ددې پخپل مقام کي -

حل اللغة: ① عرف: پيژندلې شوې ② موضع:ځائې ،محل

تشريح:- د احنافو بعضو مشائخو فرمائيلی دی.چه داسې نه ده.بلکه دا روايت صرف کفالت سره خاص دې.په
شفعه کي (دا روايت) نشته.بلکه هلته هم هغه اصلی حکم دې.چه عوض هم باطل دې.او شفعه هم باطل
ده.ددې نه روستو مرغينانی رحمه الله اوفرمائيل.چه ددې مسئلې تفصيلات ددې پخپل مقام باندې موجود
دی.يعنی په مبسوط کي .

### د شفيع په مرګ سره حق د شفعي باطلېږي

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. وَإِذَا مَاتَ الشَّفِيعُ او کله چې شفيع مړ شو بَطَلَتْ شُفْعَتُهٗ نو د هغه شفعه باطله
شوه وَقَالَ الشَّافِعِيُّ اوامام شافعی رحمه الله اوفرمائيل رحمه الله تُوْرَثُ عَنْهُ...چه دده د اړخه به ميراث کي تقسيميږي.

تشريح:- يعنی که شفيع مړ شو.او وسه پورې قاضی دده لپاره د شفعي فيصله نه وه کړې.نو دده شفعه به
باطليږي.او د امام شافعی رحمه الله په نيز به دده شفعه په ميراث کي دده وارثانو ته ملاويږي.

### د بيع نه روستو د شفيع په مرګ سره د شفعي حکم

قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ:حضرت مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی. مَعْنَاهُ ددې مطلب دا دې إِذَا مَاتَ کله چې شفيع مړ
شی بَعْدَ الْبَيْعِ قَبْلَ الْقَضَاءِ بِالشُّفْعَةِ د بيع نه روستو،د شفعي د فيصلې نه وړاندې، أَمَّا إِذَا مَاتَ بَعْدَ قَضَاءِ الْقَاضِي
بهرحال کله چې هغه مړشی.روستو د قاضی د فيصلې نه ،قَبْلَ نَقْدِ الثَّمَنِ وَقَبْضِهٖ ،د ثمن ادا کاوه او په مبيع
باندې د قبضې نه مخکې ، فَالْبَيْعُ لَازِمٌ لِوَرَثَتِهٖ نو بيع لازم ده.د شفيع وارثانو دپاره.

تشريح:- مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه د شفيع په مرګ سره به شفعه هغه وخت باطليږي.کله چې شفيع د بيع نه
روستو د قاضی د فيصلې نه مخکې مړ شی.او که د قاضی د فيصلې نـه روستـه مړشی.نو اوس بـه د شفيع
وارثانو ته حق د شفعي ملاويږي.

### په حق د شفعي کښې ميراث جاری کيږي اوکه نه؟

وَهٰذَا نَظِيرُ الْاِخْتِلَافِ فِي خِيَارِ الشَّرْطِ او دا په خيار شرط کي د اختلاف مثال دې. وَقَدْ مَرَّ فِي الْبُيُوعِ او يقيناً چې دا په
بيوع کي تير شوې دې.

تشريح:- يعنی په حق د شفعي کي به ميراث جاری کيږی.اوکه نه؟ دلته اختلاف بالکل داسې دې.کوم چې
کتاب البيوع کي په خيار شرط کي تير شوې دی.چه د امام شافعی رحمه الله په نيز خيارشرط کي ميراث جاری
کيږی.نو په حق د شفعي کي به هم جاری کيږی.او د احنافو په نيز لکه څنګه چې هلته ميراث نه چليږی.دغه
ډول به په حق د شفعي کي هم ميراث نه چليږی.



### په حق د شفعي کښې ميراث جاری کيږي اوکه نه؟

وَلِأَنَّهٗ بِالْمَوْتِ يَزُولُ مِلْكُهٗ عَنْ دَارِهٖ او ځکه چې د مرګ په وجه د شفيع ملکيت د خپل کور نه زائل کيږی. وَيَثْبُتُ
الْمِلْكُ لِلْوَارِثِ بَعْدَ الْبَيْعِ او وارث لپاره ملکيت ثابتيږی.د بيع نه پس، وَقِيَامُهٗ وَقْتَ الْبَيْعِ او (ضروری دی ملکيت)
قائميدل د بيع د وخت نه. وَبَقَاؤُهٗ لِلشَّفِيعِ إِلٰى وَقْتِ الْقَضَاءِ شَرْطًا او ددې پاته پاتې کيدل د شفيع لپاره د قاضی د
فيصلې وخته پورې شرط دې. ٥فَلَا يَسْتَوْجِبُ الشُّفْعَةَ بِدُونِهٖ نو دا به شفعه نه واجبوی.بغير د ملك نه.

حل اللغة: ① لايستوجب: نه واجبيږی ② بدون: بغير

تشريح:- اوس دلته دا سوال پيدا کيږی.چه د شفيع په مرګ سره شفعه ولې باطليږی.نو ددې لپاره په يو اصول
پوهه شئ.شفيع چې دکوم کور په وجه شفعه طلب کړی.نو ضروری ده.چه شفيع د بيع د وخت نه ددې کور
مالك وی.او دا ملکيت کم ازکم د قاضی فيصلې پورې پاته پاتې کيدل پکار دی.نو چونکه د شفيع په مرګ
سره به دده ملکيت زائل کيږی.نو د ملك پاته پاتې کيدل او نه موندې شو.په دې وجه شفعه باطل شوه.او
پاتی شو وارثان، نو اګرچه د قاضی دفيصلې په وخت د هغوی ملکيت موجود دې.خو په وخت د بيع د
هغوی ملکيت نه وو.په دې وجه به وارثانو ته شفعه نه ملاويږی.

### د مشتری په مرګ سره حق د شفعي نه باطلېږي

وَإِنْ مَاتَ الْمُشْتَرِي لَمْ تَبْطُلْ او که مشتری مړ شو.نو شفعه به نه باطليږی. لِأَنَّ الْمُسْتَحِقَّ بَاقٍ وَلَمْ يَتَغَيَّرْ سَبَبُ حَقِّهٖ
ځکه چې مستحق پاته دې.او دده دحق سبب نه دې تبديل شوې. ،وَلَا يُبَاعُ فِي دَيْنِ الْمُشْتَرِي وَوَصِيَّتِهٖ او (مشفوعه
کور) نشی خرڅولې کيدې.د مشتری په پور کي ، او دده په وصيت کي ،

تشريح:- که مشتری مړ شو.نو چونکه مستحق شفيع موجود دې.او د شفعي سبب پيوسته متصل کيدل او
قائم کيدل موجود دی.چه په دې کي هيڅ توپير نه ده شوې.نو دلته به شفعه نه باطليږی.مشتری مړ شو.او
دده په ذمه پور دې.نو دده د پور ادا کاوه لپاره به کور نشی خرڅولې.بلکه کور به شفيع ته ملاويږی.اوکوم
رقم چې د شفيع نه ملاو شی.هغې سره به پور ( د مشتری مړی) ادا کولې شی.
که مشتری وصيت کړې وو.چه زما دومره روپۍ په جمات کي اولګوه.او روپۍ نشته.نو د وصيت پوره کاوه
لپاره به کور نشی خرڅولې.بلکه کور به شفيع ته ملاويږی.او کوم رقم چې د شفيع نه ملاو شی.د فقهی حکم
مطابق به وصيت پوره کولې شی.

وَلَوْ بَاعَهُ الْقَاضِي أَوِ الْوَصِيُّ أَوْ أَوْصَى الْمُشْتَرِي فِيهَا بِوَصِيَّةٍ او که قاضی دا خرڅ کړو.يا وصی (خرڅ کړو) يا مشتری په
دې کي څه وصيت کړې وی. فَلِلشَّفِيعِ أَنْ يُبْطِلَهٗ وَيَأْخُذَ الدَّارَ لِتَقَدُّمِ حَقِّهٖ نو شفيع لپاره حق شته.چه دا باطل کړی.او
کور واخلی.د شفيع د حق د مخکې کيدو په وجه، وَلِهٰذَا يَنْقُضُ تَصَرُّفَهٗ فِي حَيَاتِهٖ او هم په دې وجه ماتولې شی.د
شفيع تصرف دده په ژوند کي .

حل اللغة: ① تقدم:وړاندې والې ② ياخذ:واخلی ③ ينقض:ماتيږی

تشريح:- که قاضی کور خرڅ کړو.يا وصی خرڅ کړو.يا مشتری وصيت کړې وی.چه زما ددې کور نه جمات
جوړ کړئ.په دې ټولو صورتونو کي شفيع دا واړه تصرفات باطلولې شی.او کور اخستلې شی.ځکه چې د
شفيع حق وړاندې دې.او که مشتری پخپله ژوندې وې.نو د هغه تصرف به ماتولی شو.نو دغه ډول به د
قاضی او وصی تصرفات هم ماتولې شی.تردې که مشتری کور خرڅ کړو.ددې نه ئې جمات يا مقبره جوړه
کړله.يا ئې وقف کړو.اوس شفيع ته د بيع علم شوې وی.اوس به هم د مشتری دا واړه تصرفات ماتولې
شی.او دا کور به شفيع ته ملاويږی.او پاتې شوه دا مسئله چې جمات د قيامته پورې جمات وی.دا هغه
وخت دی.کله چې جمات جوړ شوې وی.او دلته دا کور د سره جمات نه دې جوړ شوې.

## د شفیع په کور خرڅولو حق د شفعې ختمي ږي

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. وَإِذَا بَاعَ الشَّفِيعُ مَا يَشْفَعُ بِهِ قَبْلَ أَنْ يُقْضَى لَهُ بِالشُّفْعَةِ او کله چې شفیع هغه کور خرڅ کړو.دکوم په وجه چې هغه شفیع جوړ شوې وو.د هغه لپاره د شفعې فیصله کیدو نه وړاندې، بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ لِزَوَالِ سَبَبِ الِاسْتِحْقَاقِ قَبْلَ التَّمَلُّكِ وَهُوَ الِاتِّصَالُ بِمِلْكِهِ نو د هغه شفعه باطله شوه.د مالك جوړیدو نه وړاندې د استحقاق سبب زائل کیدو په وجه، او هغه د شفیع ملکیت سره اتصال دې.

حل اللغة: ① الاستحقاق مستحق ګرځیدل ② زوال ختمیدل ③ الاتصال متصل کیدل

تشریح:- اوسه پورې شفیع لپاره قاضی د شفعې فیصله نه وه کړې.چه شفیع خپل هغه کور خرڅ کړو.د کوم په وجه چې هغه ته حق د شفعې رسیدو.نو اوس به هغه ته شفعه نه ملاویږي.ځکه چې اوسه پورې مشفوعه کور کې د شفیع ملکیت ثابت شوې نه وو.او کوم استحقاق چې د شفعې سبب وو.هغه هم زائل شو.نو شفعه باطل شوه.ځکه چې سبب د استحقاق هغه پیوسته اتصال او قائم پاتې کیدل وو.چه هغه ختم شوی دی.

وَلِهَذَا يَزُولُ بِهِ او هم په دې وجه به زائل کیږي.حق د شفعې دده نه ( د شفیع د خپل کور د خرڅولو په وجه). وَإِنْ لَمْ يَعْلَمْ بِشِرَاءِ الْمَشْفُوعَةِ اګرچه هغه ته علم نه وي.د مشفوعه کور د اخستلو، كَمَا إِذَا سَلَّمَ صَرِيحًا لکه کله چې شفیع ښکاره سپارلې شوې وي.( یعني د شفعې نه ئې انکار کړې وي).

تشریح:- د شفیع د ګاونډي کور خرڅ شو.خو هغه ته ددې خرڅولو او اخستلو علم اونشو.اوهغه خپل کور خرڅ کړو.اوس دهغه شفعه باطله شوه.او دا بالکل داسې ده.لکه چې مشفوعه کور خرڅ شو.او شفیع ته علم اونشو.او هغه د بیع د علم نه کیدو په وجه د شفعې نه بیزاری اختیار کړې وي.نو بیا هم شفعه باطلیږي.دغه ډول به په تیر شوی مثال کې شفعه باطلیږي.

أَوْ أَبْرَأَ عَنِ الدَّيْنِ یا هغه د پور نه بری کړې وی وَهُوَ لَا يَعْلَمُ بِهِ.حالانکه هغه ته د پور علم نه وی.

تشریح:- په زید د بکر پور دې.او بکر ته ددې علم نشته.او د لاعلمۍ په وجه هغه زید بری کړو.نو بس زید د پور نه بری شو.

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ الشَّفِيعُ دَارَهُ بِشَرْطِ الْخِيَارِ لَهُ او دا د هغه صورت خلاف دې.کله چې شفیع خپل کور خرڅ کړې وی.خپل ځان لپاره د خیار شرط سره، لِأَنَّهُ يَمْنَعُ الزَّوَالَ فَيَبْقَى الِاتِّصَالُ ځکه چې دا زوال منع کوی.نو اتصال پاته دې.

تشریح:- شفیع خپل مذکوره کور خرڅ کړو.خو شفیع خپل ځان لپاره خیار شرط اخستې دې.نو شفیع ته به شفعه ملاویږي.ځکه چې د بائع د خیار په وجه مبیع د بائع د ملکیت نه نه اوځی.نو سبب د استحقاق یعنی اتصال قائم دې.

## د مشتري او د بائع وکیل شفیع جوړیدې شي اوکه نه؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. وَوَكِيلُ الْبَائِعِ إِذَا بَاعَ وَهُوَ الشَّفِيعُ او د بائع وکیل کله چې خرڅ کړي.او هم هغه شفیع وی. فَلَا شُفْعَةَ لَهُ نو هغه لپاره شفعه نشته. وَوَكِيلُ الْمُشْتَرِي إِذَا ابْتَاعَ او د مشتری وکیل چې کله واخلی. فَلَهُ الشُّفْعَةُ نو هغه لپاره شفعه شته.

تشریح:- زیدبکر وکیل جوړ کړو.چه بکر دده کور خرڅ کړي.بکر خرڅ کړو.اتفاق سره شفیع هم بکر دې.نو اوس به بکر ته شفعه نه ملاویږي.او که زید بکر د یوکور اخستلو لپاره وکیل جوړ کړو.اوهغه واخستلو.او اتفاق سره شفیع هم بکر دې.نو په دې صورت کې به بکر ته حق دشفعې ملاویږي.ولې؟ دا وړپسې ددې دلیل راروان دې.



## د شفعې حق چاته حاصليږي او چا ته نه حاصليږي.یوه قاعده کلیه

وَالْأَصْلُ أَنَّ مَنْ بَاعَ أَوْ بِيعَ لَهُ لَا شُفْعَةَ لَهُ او قاعده کلیه دا ده.چا چې خرڅ کړو.یا دچا لپاره چې خرڅ کړې شو.هغه لپاره شفعه نشته. وَمَنِ اشْتَرَى أَوِ ابْتِيعَ لَهُ فَلَهُ الشُّفْعَةُ او چا چې واخستلو.یا دچا لپاره چې واخستلې شو.هغه لپاره شفعه شته. لِأَنَّ الْأَوَّلَ بِأَخْذِ الْمَشْفُوعَةِ يَسْعَى فِي نَقْضِ مَا تَمَّ مِنْ جِهَتِهِ وَهُوَ الْبَيْعُ،ځکه چې ړومبې د مشفوعه اخستلو په وجه د هغه شي د ماتولو کوښښ کوی.کوم چې دهغه د اړخه پوره شوې دې.او هغه بیع ده. « وَالْمُشْتَرِي لَا يَنْقُضُ شِرَاءَهُ بِالْأَخْذِ بِالشُّفْعَةِ او مشتری په شفعه کې د اخستلو په وجه خپل اخستل نه ماتوی. لِأَنَّهُ مِثْلُ الشِّرَاءِ ځکه چې دا ( شفعه کې اخستل) د اخستلو پشان دی.

تشریح:- قاعده کلیه دا ده.چه په ړومبو دواړو صورتونو کې شفعه نشته.او په آخری دوو صورتونو کې شفعه شته.یعنی د بیع په دواړو صورتونو کې شفعه نشته.او د شراء په دواړو صورتونوکې شفعه شته. ولې؟ ځکه که د بیع ( خرڅولو) په دواړو صورتونو کې شفعه ملاو شی.نو داخبره لازمیږي.چه څوك بیع کوی.یا د چا لپاره چې بیع کوی.هم هغه دا ماتوی. ځکه د بیع نتیجه ده ورکول، اود شفعې انجام دې اخستل،او په اخستلو او ور کاوه کې منافات دې.نو په بیع او شفعه کې منافات دې.او د شراء په دواړو صورتونو کې منافات نشته.ځکه د شراء مقصد هم اخستل دی.او د شفعې مقصد هم اخستل دی.نو په شراء او شفعه کې منافات نشته.په دې وجه دا قانون کلي ( قاعده کلیه) مقرر شوه.په نورو الفاظو کې داسې چې شفعه کې اخستل یو قسم شراء ده.او په بیع اوشراء کې منافات دې.نو په بیع او شفعه کې به منافات وی.او په شراء او شفعه کې به منافات نه وی.

په پورتنی عبارت به هله پوهه شئ چې دا زده کړئ چې د بیع او شراء ( د خرڅولو او اخستلو) څلور صورتونه ذکر دی① بیع ② د مالك لپاره بیع ③ شراء ④ مالك لپاره شراء.د ړومبی صورت تفصیل دا دې.چه د بائع وکیل د مؤکل د اړخه جوړ شی.او خرڅ کړي.او دوهم صورت دا دې.چه مضارب هغه کور خرڅ کړي.کوم چې هغه په مال مضاربت سره اخستې وو.او رب المال د هغې شفیع دې.نو رب المال ته به شفعه نه ملاویږي.او دریم صورت دا دې.چه مشتری یو کس د کور اخستلو لپاره وکیل جوړ کړې وی.او څلورم صورت دا دې.چه مضارب په مال د مضاربت سره څه مال اخستې وی.او رب المال د هغې شفیع وی.نو رب المال ته به شفعه ملاویږي.هرکله چې دا څلور واړه صورتونه په ذهن کې کیناستل.نو اوس پوهه شئ.

## د بائع د اړخه د تاوان ذمه واری اخستلو والا پخپله شفیع دې نو د شفعې څه حکم دې؟

وَكَذَلِكَ لَوْ ضَمِنَ الدَّرْكَ عَنِ الْبَائِعِ وَهُوَ الشَّفِيعُ او هم دغه ډول که ضامن شو څوك سړې د بائع د اړخه د تاوان (او نقصان)،او هم دې شفیع دې. فَلَا شُفْعَةَ لَهُ)نو دده لپاره شفعه نشته.

تشریح:- مشتری یو کور اخستل غواړي.خو هغه ته په دې کې څه تردد دې.چه کیداې شی په دې کې څوك د استحقاق دعوه اوکړي.یا بل څوك د تاوان او نقصان په صورت کې رامخکې شی.خو زید د بائع د اړخه ضمانت واخستلو.او مشتری ته ئې اووئیل.چه ته بې فکره شه.وائې خله.که څه د تاوان خبره مخې ته راغله.نو زه دهغې ضامن یم.چه دا کور به تا ته حواله کوم.یا بالفرض که د کور در کاوه نه عاجز شم.نو ددې قیمت به تاته حواله کوم.او اتفاق سره هم دا زید ددې کور شفیع هم دې.نو اوس به زید ته شفعه نه ملاویږي.ځکه چې هم دده د اړخه بیع پوره شوې وه.او هم دده د اړخه به ددې ماتول لازمیږي.

وَكَذَلِكَ إِذَا بَاعَ وَشَرَطَ الْخِيَارَ لِغَيْرِهِ فَأَمْضَى الْمَشْرُوطُ لَهُ الْخِيَارُ الْبَيْعَ وَهُوَ الشَّفِيعُ او هم دغه ډول کله چې بائع خرڅ کړو د ځان نه علاوه دپاره، او د خیار شرط وی.او مشروط له الخیار بیع نافذ کړله.او هم هغه شفیع وی. فَلَا شُفْعَةَ لَهُ نو هغه ته به شفعه نه ملاویږي. لِأَنَّ الْبَيْعَ تَمَّ بِإِمْضَائِهِ،ځکه چې بیع دده د نافذ کاوه په وجه پوره شوې ده. بِخِلَافِ جَانِبِ الْمَشْرُوطِ لَهُ الْخِيَارُ مِنْ جَانِبِ الْمُشْتَرِي په خلاف د مشروط له الخیار د اړخه (اخستل نافذ کول، او دا شرط

لګولي شوې وي) د مشتري د طرفه.

حل اللغة: ① امضو: نافذ کړو ② جانب: اړخ ③ المشتري: غستونکي

تشریح:- یو سړي خپل کور خرڅ کړو. خو هغه د خپل دوست زید لپاره خیار شرط اولګولو. او زید بیع نافذ کړله. اتفاق سره هم دا زید د کور شفیع هم دې. نو اوس به زید ته شفعه نه ملاویږي. د هغه تیر شوی دلیل په وجه. البته که مشتري یو کور واخستلو. او هغه د زید لپاره د خیار شرط اولګولو. او زید اخستل نافذ کړل. او اتفاق سره هم دا زید د کور شفیع هم دې. نو په دې صورت کې به زید ته شفعه ملاویږي. ځکه چې د شراء مسئله ده. او وړاندې تیر شوی دی. چه په شراء او شفعه کې هیڅ منافات نشته. ځکه چې د دواړو مال اخستل دی.

## په زیات قیمت سره د خرڅېدو په وجه د شفعې پرېخودو اعتبار نشته

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل. وَإِذَا بَلَغَ الشَّفِيعَ أَنَّهَا بِيعَتْ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ فَسَلَّمَ او کله چې شفیع ته دا خبر اورسیدو. چه کور په زر درهم کې خرڅ کړې شوې دې. نو هغه بیزاري ښکاره کړله. ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهَا بِيعَتْ بِأَقَلَّ أَوْ بِحِنْطَةٍ أَوْ شَعِيرٍ بیا هغه ته معلومه شوه. چه کور په کم کې خرڅ شوې دې. قِيمَتُهَا أَلْفٌ أَوْ أَكْثَرُ فَتَسْلِيمُهُ بَاطِلٌ وَلَهُ الشُّفْعَةُ یا د غنمو په بدله، یا د اوربشو په بدله خرڅ شوې دې. چه ددې قیمت زر (درهم) یا ددې نه زیات دې. نو دده بیزاري باطل ده. او هغه لپاره شفعه شته.

حل اللغة: ① درهم: روپۍ ② اقل: کم ③ حنطة: غنم ④ شعیر: اوربشې ⑤ تسلیم: سپارل

تشریح:- شفیع ته چا خبر ورکړو. چه کور په زر درهم کې خرڅ شوې دې. حالانکه معامله داسې نه ده. بلکه په حقیقت کې بیع په پنځه سوه درهم کې شوې ده. او په ړومبی خبر اورېدو سره شفیع ثمن زیات ګنړلې وو. نو بیزاري ئې اختیار کړې وه. نو دهغه شفعه به نه باطلیږي. اوکه هغه ته ئې خبر ورکړو. چه کور په زر درهم کې خرڅ شوې دې. حالانکه هغه د غنمو یا اوربشو یا د بل څه مکیلي او موزوني یا عددي متقارب په بدله کې خرڅ شوې دې. خو ددې مکیلي او موزوني یا عددي متقارب قیمت زر درهم دې. او شفیع په ړومبی خبر اورېدو سره د شفعې نه بیزاري اختیار کړې وه. (او د شفعې نه ئې انکار کړې وو). اوس معلومه شوه. چه معامله داسې ده. نو بیا هم ددې بیزاري باطل ده. او دده د شفعې حق پخپل حال قائم دې.

لِأَنَّهُ إِنَّمَا سَلَّمَ لِاسْتِكْثَارِ الثَّمَنِ فِي الْأَوَّلِ ځکه چې هغه ړومبی صورت کې د ثمن د زیاتوالي په وجه بیزاري ښکاره کړې ده. وَلِتَعَذُّرِ الْجِنْسِ الَّذِي بَلَغَهُ وَتَيَسُّرِ مَا بِيعَ بِهِ فِي الثَّانِي او په دوهم صورت کې د هغه جنس د متعذر کیدو په وجه، دکوم چې هغه ته خبر رسیدلې وو. او د هغې د آسان کیدو په وجه دکوم په ذریعه چې بیع شوې ده. إِذِ الْجِنْسُ مُخْتَلِفٌ ځکه چې جنس مختلف دې. وَكَذَا كُلُّ مَكِيلٍ أَوْ مَوْزُونٍ أَوْ عَدَدِيٍّ مُتَقَارِبٍ او هم دغه ډول (حکم دې) د هر مکیلي یا موزوني یا عددي متقارب (چې ددې د احادو او افرادو په مینځ کې قیمت کې تفاوت نه وي).

حل اللغة: ① مکیل: هغه څیزچه پیمانه کولای شی ② موزون: هغه شئ چې په وزن ور کولای شی ③ متقارب: نزدې

تشریح:- ځکه چې هغه ړومبی صورت کې د ثمن د زیاتوالي په وجه بیزاري ښکاره کړې ده. اوپه دوهم صورت کې د بیزارئ وجه دا کیدای شي. چه زر درهم ملاویدل مشکل دی. او غنم او اوربشې وغیره ورکول دده لپاره آسان دی. خاص کر د زمیندارو خلګو لپاره روپۍ ورکول لږ مشکل دی. او غله ورکول آسان دی. او چونکه عددي متقارب د مکیلي او موزوني په درجه کې دی. نو د هغې به هم دا حکم وي.

## د مذکوره مسئلې نور وضاحت

بِخِلَافِ مَا إِذَا عَلِمَ أَنَّهَا بِيعَتْ بِعَرَضٍ قِيمَتُهُ أَلْفٌ أَوْ أَكْثَرُ په خلاف ددې صورت کله چې شفیع ته (روسته) معلومه



شی. چه کور خرڅ شوې دې. د داسې سامان په بدله کې چې دهغې قیمت زر (درهم) یا ددې نه زیات دې. لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِيهِ الْقِيمَةُ وَهِيَ دَرَاهِمُ أَوْ دَنَانِيرُ ځکه چې سامان کې قیمت واجب دې. او قیمت هم دا دراهم او دنانیر دی. اوکه دا خبره ښکاره شوه وَإِنْ بَانَ أَنَّهَا بِيعَتْ بِدَنَانِيرَ قِيمَتُهَا أَلْفٌ. چه کور د دنانیرو په بدله کې خرڅ کړې شوې دې. چه ددې قیمت زر (درهم) دې. فَلَا شُفْعَةَ لَهُ[1] نو شفیع لپاره شفعه نشته. وَكَذَا إِذَا كَانَتْ أَكْثَرَ او هم دغه ډول (حکم دې) کله چې قیمت زیات وي. وَقَالَ زُفَرُ لَهُ الشُّفْعَةُ او فرمائیلي دي امام زفر رحمه الله چه دده لپاره شفعه شته. لِاخْتِلَافِ الْجِنْسِ د جنس د مختلف کیدو په وجه، وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې أَنَّ الْجِنْسَ مُتَّحِدٌ فِي حَقِّ الثَّمَنِيَّةِ. چه د ثمنیت په حق کې جنس متحد دې.

حل اللغة: ① دنانیر: اشرفۍ ② متحد: یو ③ الف: زر

تشریح:- شفیع ته مخکې معلومه شوه. چه کور په زر درهمو خرڅ شوې دې. او هغه د شفعې نه انکار اوکړو. اوس معلومه شوه. چه هغه خو د مکیلي او موزوني نه علاوه د څه سامان په بدله کې خرڅ شوې دې. چه د هغې سامان قیمت د زر درهمو نه زیات دې. نو اوس دده انکار (او بیزاري) صحیح ده. او اوس به هغه ته شفعه نه ملاویږي. ځکه چې زر درهم او هغه سامان د کوم قیمت چې زر درهم وي. د دواړو نتیجه (او انجام) یو دې. ځکه چې د سامان په صورت کې به هم دلته قیمت واجبیږي. او قیمت هم هغه دې. کوم چې ده ته وړاندې معلوم شوې دې. یعنی زر درهم

اوکه شفیع ته مخکې معلومه شوه. چه کور په زر درهم کې خرڅ شوې دې. نو هغه د شفعې نه بیزاري اختیار کړله. بیا روستو معلومه شوه. چه کور د دنانیرو په بدله کې خرڅ شوې دې. چه ددې قیمت زر درهم یا زیات دې. نو د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز به شفعه نه ملاویږي. ځکه چې د ثمنیت په حق کې جنس متحد دې. په دې وجه خو زکاة کې یو د بل سره ملاوولی شی. او امام زفر رحمه الله فرمائیلي دي. چه ددې دواړو په مینځ کې کمې او زیاتې جائز دې. چه دا د جنس مختلف کیدو دلیل دې. او د مختلف جنس حکم وړاندې بیان شوې دې. چه په دې سره شفعه نه ساقطیږي. په «مجمع الانهر صح» باندې دا مسئله په تفصیل سره بیان شوې ده.

## د مشتري شریف یا بدعمله کیدو په وجه د شفعې پرېخودو یا نه پرېخودو مسئله

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل. وَإِذَا قِيلَ لَهُ إِنَّ الْمُشْتَرِيَ فُلَانٌ فَسَلَّمَ الشُّفْعَةَ او کله چې اوونیلی شو شفیع ته، چې مشتري فلانې دې. نو هغه د شفعې نه بیزاري اختیار کړله. ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ غَيْرُهُ بیا معلومه شوه. چه مشتري د هغه نه علاوه دې. فَلَهُ الشُّفْعَةُ لِتَفَاوُتِ الْجِوَارِ نو هغه لپاره شفعه شته. د ګاونډ د مختلف کیدو په وجه، وَلَوْ عَلِمَ أَنَّ الْمُشْتَرِيَ هُوَ مَعَ غَيْرِهِ او که دا خبره معلومه شوه. چه مشتري هم هغه دې. سره د خپل غیر نه، فَلَهُ أَنْ يَأْخُذَ نَصِيبَ غَيْرِهِ نو شفیع لپاره حق شته. چه دهغه دغیر برخه واخلي لِأَنَّ التَّسْلِيمَ لَمْ يُوجَدْ فِي حَقِّهِ ځکه چې د هغه په حق کې بیزاري اونه موندې شوه.

تشریح:- که شفیع ته مخکې معلومه شوه. چه مشتري فلانې کس دې. چه دا ښه (شریف) سړې دې. نو هغه خپل حق د شفعې پرېخودو. بیا معلومه شوه. چه دا خو فلانی بدمعاش اخستې دې. چه هغه به همیشه ما پریشانه کوي. نو شفیع ته به شفعه ملاویږي. ځکه چې په ګاونډي ګاونډي کې توپیر وي. لکه څنګه چې ښکاره ده. اوکه مخکې معلومه شوه. چه مشتري فلانې نیک سړې دې. او روستو پته اولګیده. چه فلانې هم دې. خو دده سره یو بل کس هم دې. او دواړو په شریکه دا کور اخستې دې. نو اوس دا حکم دې. چه دکوم کس په حق

[1] القول الراجح هوهذا قول علماءنا الثلاثة رحمهم الله كذا فى مجمع الأنهر (١٢٠١٤) ونصب (٢٦٠/٥) وردالمحتار (١٧٠/٥) نقلاً عن القول الراجح (٢٧٤/٢)_

کي شفيع بيزاري اختيار کړې ده.د هغه نه دعلاوه کس برخه شفيع په شفعه کي اخستې شي.ځکه چې دده په حق کي بيزاري نه وه.

وَلَوْبَلَغَهُ شِرَاءُ النِّصْفِ او که شفيع ته خبر رسيدلې وي.د نصف برخې (حصې) د اخستلو فَسَلَّمَ ،نو هغه بيزاري اختيار کړې وي. ثُمَّ ظَهَرَ شِرَاءُ الْجَمِيعِ فَلَهُ الشُّفْعَةُ بيا د واړه کور اخستل ښکاره شوي وي.نو هغه لپاره شفعه شته. لِأَنَّ التَّسْلِيمَ لِضَرَرِ الشَّرِكَةِ وَلَا شَرِكَةَ ځکه چې بيزاري ښکاره کول د شرکت د ضرر په وجه وو.او شرکت نشته.

تشريح:- که شفيع ته معلومه شوه.چه فلاني خپل نيم کور خرڅ کړو.نو شفيع د شفعې نه بيزاري ښکاره کړله.ددې نقصان په لحاظ، چې بائع سره به د شرکت ضرر مخې ته راځي.بيا ده ته روستو معلومه شوه.چه دا خبر غلط وو.بلکه بائع خپل پوره کور خرڅ کړې دې.نو دده حق د شفعې قائم دې.ځکه چې دلته د شرکت خبره نشته.او دده بيزاري ښکاره کول صرف د شرکت د ضرر نه بچ کيدو لپاره وو.

وَفِي عَكْسِهِ لَا شُفْعَةَ او ددې په عکس کي شفعه نشته فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ د ظاهرالرواية مطابق، لِأَنَّ التَّسْلِيمَ فِي الْكُلِّ تَسْلِيمٌ فِي أَبْعَاضِهِ ځکه چې واړه کي بيزاري ښکاره کول، ددې په حصو کي هم بيزاري ده.

تشريح:- او که مسئله ددې په عکس وي.يعنی خبر ملاو شو.چه فلاني خپل پوره کور خرڅ کړو.او هغه بيزاري ښکاره کړله.بيا معلومه شوه.چه بعضې برخه ئې خرڅه کړې ده.نو هغه لپاره شفعه نشته.او هم دا ظاهرالرواية دې.ځکه چې هرکله ده په پوره کور کي بيزاري ښکاره کړله.نو ددې ټکړو او برخو کي هم بيزاري ښکاره شوه.البته د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.چه په دې صورت کي په شفعه ملاويږي.

## فصل

ژباړه:- (دا) فصل دې.(د شفعې ساقطولو د حيلو په بيان کي).

تشريح:- ډير ځل شفيع دومره بدمعاش او فاسق وي.چه دده خلګو ته تکليف رسول مشهور او هرچا ته معلوم دې.نو که دلته دده نه د خلاصۍ څه صورت نه وي.نو دده نه د زيات ضرر رسيدو يقين دې.نو په دې فصل کي څه داسې حيلې او تدبيرونه ذکر دی.چه په دې سره د شفيع حق د شفعې باطليږي.

### شفيع سره مولښتي يوګز ځائي نه خرڅولو سره د شفيع شفعه ساقطيږي

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. وَإِذَا بَاعَ دَارًا إِلَّا مِقْدَارَ ذِرَاعٍ مِنْهَا او کله ئې چې خرڅ کړو کور، خو ددې نه د يو ګز په مقدار(ئې خرڅ نکړو) فِي طُولِ الْحَدِّ الَّذِي يَلِي الشَّفِيعَ د هغه پولې (او حد) په اوګدوالی کي کوم چې شفيع سره ملاو شوې دې. فَلَا شُفْعَةَ لَهُ نو هغه لپاره به شفعه نه وي لِانْقِطَاعِ الْجِوَارِ، .د ګاونډ د منقطع کيدو په وجه، وَهَذِهِ حِيلَةٌ او دا (د شفعې ساقطولو) يوه حيله ده.

حل اللغة ① ذراع: ګز ② مقدار: اندازه ③ الانقطاع: ختميدل ④ جوار: ګاونډيتوب

تشريح:- بائع او مشتري چې کوم کور خرڅول غواړي.د هغې په ګاونډ کي ډير بدمعاش سړې آباد دې.که هغه د شفعې دعوه اوکړله.نو ټولو ګاونډيانو ته به تکليف اورسوی.نو بائع له پکار دی.چه خپل واړه کور مشتري باندې خرڅ کړی.خو د کوم اړخه چې دا کور د شفيع کور سره مولښتي (ملاو شوې) دې.د هغه ځائي نه دې د يو ګز په اندازه پوره پوله (حد) پريږدی.يعنی دا دې نه خرڅوی.نو اوس به دا (بدمعاش) ګاونډی په دې کور کي د شفعې مستحق نه وي.ځکه چې څومره برخه خرڅه شوې ده.د هغه برخې (حصې) ده ملکيت سره اتصال نشته.او کله چې بائع پاته د مشتري په لاس خرڅوی.بيا به هم شفيع ته شفعه نه ملاويږي.ځکه چې شفيع صرف ګاونډی دې.او مشتري شريک دې.او وړاندې تير شوی دی.چه شريک په ګاونډی باندې مقدم وي.



وَكَذَا إِذَا وَهَبَ مِنْهُ هَذَا الْمِقْدَارَ او هم دغه ډول (به شفعه نه ملاويږي) کله چې دا (يوګز) مقدار مشتري ته هبه کړې وي وَسَلَّمَهُ إِلَيْهِ او دا مقدار ئې مشتري ته سپارلې وي لِمَا بَيَّنَّا ..د هغه دليل په وجه، کوم چې موږ بيان کړې دې.

تشريح:- دغه ډول دې مذکوره(ديوګز) مقدار مالک مشتري ته هبه کړی.او د مشتري په قبضه کي دې ورکړی.نو په هبه کي شفعه نه ملاويږي.او اتصال هم نشته.بيا دې پاته د مشتري په لاس خرڅ کړی.نو شفيع ته به شفعه نه ملاويږي.ځکه چې شريک د ګاونډی نه مقدم (مخکي) دې.

### نيم کور د ثمن په بدله کښې اخستلونه روسته پاته برخه اخستلو سره د شفعې د سقوط صورت

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. وَإِذَا ابْتَاعَ مِنْهَا سَهْمًا بِثَمَنٍ ثُمَّ ابْتَاعَ بَقِيَّتَهَا او کله ئې چې واخستله د کور يوه برخه د ثمن په بدله کي ،بيا ئې واخستله د کورپاته برخه فَالشُّفْعَةُ لِلْجَارِ فِي السَّهْمِ الْأَوَّلِ دُونَ الثَّانِي نو ګاونډی لپاره په مخکنۍ برخه کي شفعه شته.په دويمه (روستنۍ) برخه کي نشته. لِأَنَّ الشَّفِيعَ جَارٌ فِيهِمَا ځکه چې شفيع خو په دې دواړو کي ګاونډی دې إِلَّا أَنَّ الْمُشْتَرِيَ فِي الثَّانِي شَرِيكٌ .خو مشتري په دويمه برخه کي شريک دې. ،فَيَتَقَدَّمُ عَلَيْهِ نو مشتري (شريک) په ګاونډی باندې وړاندې دې. فَإِنْ أَرَادَ الْحِيلَةَ ابْتَاعَ السَّهْمَ بِالثَّمَنِ نو که اراده اوکړی د حيلې،نو يوه برخه دې د پوره ثمن په بدله کي واخلی ،إِلَّا دِرْهَمًا مَثَلًا وَالْبَاقِي بِالْبَاقِي .علاوه د يو درهم نه،او پاته دې د پاته په بدله کي (واخلی).

حل اللغة ① السهم: حصه ② الحيلة:منصوبۍ ،تدبير،چل

تشريح:- مشتري د يوکور يوه برخه واخستله.بيا ئې په دوهم ځل پاته کور واخستلو.نو اوس شفيع صرف په مخکنۍ برخه کي د شفعې دعوه کولې شي.ځکه چې شفيع خو ددې دواړو (حصو) ګاونډی دې.خو مشتري په دويمه برخه کي شريک دې.او شريک په ګاونډی باندې وړاندې وی.بيا ئې د شفعې ساقطولو ښائسته طريقه بيان کړله.مثلاً د کور قيمت ديرش زره روپۍ دې.نو مشتري د کور يوه برخه په يوکم ديرش زره، نهه سوه او نهه نوی روپۍ کي واخلی.او پاته برخه په يوه روپۍ کي واخلی.نو د پاته د اخستلو په صورت کي به خو شفيع ته شفعه نه ملاويږی.ځکه چې مشتري شريک دې.هغه دده نه مقدم دې.او په ړومبۍ برخه کي به شفيع د شفعې طلب کاوه زړه ورتيا نشی کولې.ګنی مثلاً د پنځو سوو د ماليت به يوکم ديرش زره، نهه سوه او نهه نوی روپۍ ورکوی.نو د شفيع د شر څخه به خلاصې ملاو شی.

### کور د ثمن په بدله کښې اخستلو نه روسته په عوض کښې کپړو ورکولو سره دشفعې د سقوط

وَإِنِ ابْتَاعَهَا بِثَمَنٍ او که کور ئې واخستلو د ثمن په بدله کي ،، ثُمَّ دَفَعَ إِلَيْهِ ثَوْبًا عِوَضًا عَنْهُ بيا ئې بائع ته د ثمن په بدله کي کپړه ورکړله. فَالشُّفْعَةُ بِالثَّمَنِ دُونَ الثَّوْبِ نو شفعه به د ثمن په بدله کي وی.د کپړې په بدله کي به نه وی. لِأَنَّهُ عَقْدٌ آخَرُ، وَالثَّمَنُ هُوَ الْعِوَضُ عَنِ الدَّارِ ځکه چې دا (کپړه ورکول) دوهم عقد دې.او ثمن د کور عوض دې. قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: وَهَذِهِ حِيلَةٌ أُخْرَى حضرت مرغيناني رحمه الله فرمائی.او دا دويمه حيله ده. تَعُمُّ الْجِوَارَ وَالشَّرِكَةَ چې دا ګاونډی او شرکت دواړو ته عام دې فَيُبَاعُ بِأَضْعَافِ قِيمَتِهِ .نو کور به خرڅولې شی.ددې قيمت د څو چنده په بدله کي وَيُعْطَى بِهَا ثَوْبٌ بِقَدْرِ قِيمَتِهِ او د مبيع د قيمت په اندازه به کپړې ورکوی.

حل اللغة ① اضعاف: څوچنده ② ثوب: کالی ③ تعم: شامليږی ④ القدر:اندازه

تشريح:- مثلاً د کور قيمت درې زره درهم دی.او کور د شل زره درهمو په عوض خرڅ کړې شو.او بيا د شل زرو درهمو په بدله کي يو څو جوړه کپړې واخستلې شوې.چه ددې قيمت درې زره درهم دې.نو په دې سره شفعه ساقطيدې شی.ځکه که شفيع شفعه کي کور اخستل غواړی.نو شل زره درهم ور کاوه سره اخستلې شی.د کپړو په بدله کي ئې نشی اخستلې.ځکه چې د کپړو د لين دين مسئله، دا د بائع او مشتري په مينځ

كي جلا عقد دي.اصل عقد سره ددې هيڅ تعلق نشته.نو د كور ثمن شل زره درهم دی.درې زره درهم يا كېږي نه دی.نو په دومره گران اخستلو باندې به زړه ورتيا نشي كولې.او دا حيله به گاونډي او شريك دواړو كي چليږي.او رومبی حيله به صرف گاونډي لپاره وي.

**د مذكوره مشفوعه كور مستحق راوتلو مسئله**

إِلَّا أَنَّهُ خوخبره دا ده لَوِاسْتُحِقَّتِ الْمَشْفُوعَةُ يَبْقٰى كُلُّ الثَّمَنِ عَلٰى مُشْتَرِي الثَّوْبِ. كه مشفوعه كور مستحق ثابت شو.نو دكېږې په اخستونكي (يعنې په بائع) به پوره ثمن پاته پاتې وي. لِقِيَامِ الْبَيْعِ الثَّانِي فَيَتَضَرَّرُ بِهٖ. دويمې بيعې پاته پاتې كيدو په وجه.نو بائع ته به په دې سره ضرر رسيږي. وَالْأَوْجَهُ أَنْ يُبَاعَ بِالدَّرَاهِمِ الثَّمَنُ دِيْنَارًا. او ډيره مناسب خبره دا ده.چه ددې دراهمو په بدله چې كوم ثمن دې.په يو دينار باندې خرڅ كړې شي. حَتّٰى إِذَا اسْتُحِقَّ الْمَشْفُوعُ تردې چې كله مشفوعه كور مستحق ثابت شي يَبْطُلُ الصَّرْفُ.نو بيع صرف به باطل شي. فَيَجِبُ رَدُّ الدِّيْنَارِ نو صرف يو دينار واپس كول به واجب وي لَاغَيْرُ.بل څه به (واپس كول به واجب) نه وي.

تشريح:- مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د مذكوره كېږې والا حيله خو ډيره ښه ده. اوهغه دا ده.كه اتفاق سره په دې كور چا د استحقاق دعوه اوكړله.او دا كور قاضي مستحق ته وركړو.نو د مشتري په قبضه كي چې كوم كور وو.هغه لاړو.مشتري به د بائع نه خپل ثمن واپس اخلي.اوس سوال پيدا كيږي.چه اصل ثمن به واپس اخلي.(يعنې شل زره دراهم) يا به كېږه به واپس اخلي.نو وې ونيل.چه د كور ثمن به واپس اخلي.او ثمن شل زره دې.او پاتې شوه د كېږې مسئله نو دا دوهم عقد وو.چه دا نه دې ختم شوې.بلكه رومبې عقد ختم شوې دې.چه په دې كي چې ثمن شل زره درهم مقرر وو.نو دا پوره ثمن به د بائع په ذمه (مشتري) ته وركول لازمې وي.او دا د بائع په حق كي ډير لوې نقصان دې.چه اخستې ني كېږې وې.او ورئې كړې شل زره روشيدې،نو دا حيله خو ښه وي.خو په دې كي د بائع ددې تاوان خطره ده.

* په دې وجه ښه صورت دا دې.چه كور په شل زره درهم باندې خرڅ كړې.او په درهم او دينار كي د جنس د اختلاف په وجه تفاضل او كمې زياتې جائز دې.نو بيا دې د زر درهمو په بدله كي يو دينار خرڅ كړې شي.او دا به بيع صرف وي.اوس واورئ.كه شفيع اخستل غواړي.نو د شل زره درهمو په بدله كي به ئې اخلي.او كه اتفاق سره كور د بل چا مستحق ثابت شو.نو د بائع په ذمه به صرف يو دينار واپس كول لازمې وي.څكه استحقاق نه دا بنكاره شوه.چه د مشتري په ذمه ثمن نشته..كما هو ظاهر..نو په بائع به ثمن واپس كول هم واجب نه وي.

* اوس پاتې شوه مسئله د بيع صرف، نو بيع صرف شوې دې په شل زره او يو دينار كي ،هغه شل زره رومبې كومې چې د مشتري په ذمه وې.نو گويا بائع مشتري ته هغه وركوي.او مشتري بائع ته يو دينار وركوي.خو په بيع صرف كي د عاقدينو د جدايئ نه وړاندې په دواړو ثمنونو باندې قبضه شرط ده.او دلته قبضه نه ده شوې.بلكه شل زره خو اوسه پورې د مشتري په ذمه وې.چه هغه نه وې ادا شوې.نو بهرحال بيع صرف باطل شو.او په رومبې صورت كي د كېږې بيع قائم وه.او هركله چې بيع صرف باطل شوه.نو اوس به د بائع په ذمه صرف هغه مقدار واپس كول لازمې وي.كوم چې ده ته ملاو شوې دې.او هغه يو دينار دې.په دې سره مار هم مر شو.او ډنډه هم ماته نشوه.يعنې د شفيع د ضرر نه هم ساتنه اوشوه.او د بائع ضرر هم لرې شو.

**شفعه ساقطولو لپاره د حيلې كولو حكم**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. وَلَاتُكْرَهُ الْحِيْلَةُ فِي إِسْقَاطِ الشُّفْعَةِ عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ رحمه الله (١) او د امام ابويوسف رحمه الله په

(١) القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في الدرالمختار (١٧٣/٥) ونتائج الأفكار(١٤٧/٨) نقلاً عن القول الراجح (٢٧٦/٢)_



نيز شفعه ساقطولو كي حيله مكروه نه ده. وَتُكْرَهُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله او د امام محمد رحمه الله په نيز مكروه ده. لِأَنَّ الشُّفْعَةَ إِنَّمَا وَجَبَتْ خكه چې شفعه ثابتيږي لِدَفْعِ الضَّرَرِ .د ضرر لرې كاوه دپاره، وَلَوْأَبَحْنَا الْحِيْلَةَ او كه موږ حيله جائز كړو مَادَفَعْنَاهُ.نو موږ ضرر نشو لرې كولې.

حل اللغة: ① اسقاط:ساقطول ② ابحنا:موږ مباح كړه ③ دفعنا:موږ لرې كړو

تشريح:- حيله اختيارول څنگه دی.په دې كي د امام ابويوسف او د امام محمد رحمهما الله اختلاف دې.امام محمد رحمه الله دې ته مكروه وائي.او امام ابويوسف رحمه الله د كراهت نه بغير جائز گڼړي.امام محمد رحمه الله فرمائي.د شفعې ثبوت ددې لپاره شوې دې.چه د شفيع ضرر لرې كړې شي.او كه موږ حيله اختيار كړو.او دده حق ساقط كړو.نو گويا موږ د خلگو ضرر لرې نكړو.په دې وجه دا فعل مكروه دې.

وَلِأَبِي يُوْسُفَ او د امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې أَنَّهُ مَنَعَ عَنْ إِثْبَاتِ الْحَقِّ.چه دا خو دحق ثابتولو نه منع كول دی. فَلَا يُعَدُّ ضَرَرًا.نو دا به ضرر نه شمارلې كيږي.

تشريح:- دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې كه د شفيع حق ثابتيدو نه روسته دا لرې كولې شو.بيا به خو د شفيع ضرر شمار كيدو.او دلته اوسه پورې د شفيع حق د سره ثابت شوې نه وو.چه دهغې د ثابتيدو امكان ختم كړې شو.نو دا به ضرر او ظلم څنگه وي.

وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الْحِيْلَةُ فِي إِسْقَاطِ الزَّكٰوةِ او هم په دې اختلاف د زكاة ساقطولو حيله ده.

تشريح:- د زكاة په ساقطولو كي حيله اختيارولو كي هم دا اختلاف دې.د امام ابويوسف رحمه الله په نيز مكروه نه دې.او د امام محمد رحمه الله په نيز مكروه دې.په ﴿مجمع الانهر ص ج﴾ باندې دي.چه د شفعې دثبوت نه وړاندې حيله كاوه كي د امام ابويوسف رحمه الله په قول باندې فتوى ده.او د ثبوت نه روستو بالاجماع مكروه ده.بيا فرمائي.چه زما په نيز مختار دا ده.چه په شفعه كي حيله مكروه نه ده.او په زكاة كي مكروه ده.

سوال: آيا د حيلې ساقطولو هم څه حيله شته؟ په ﴿سكب الانهر ص ج﴾ باندې دی. «لا حيلة لإسقاط الحيلة وقد طلبناها كثيراً فلم نجدها»

# مسائل متفرقة

ژباړه:- متفرقې (جلا جلا مسئلې).

تشريح:- دا متفرقې مسئلې دی.چه د ي و خاص عنوان لاندې نه راځي.بلكه ددې بحث بين الاقوامي مسائل وی.د مصنفينو عادت دې.چه داسې مسئلې دكتاب په آخر كي بيانوي.

**پنځو سرو د يوكس نه كور واخستلو يا ددې په عكس كولو سره د شفعې حكم**

قَالَ امام محمد رحمه الله (په جامع صغير كي) اوفرمائيل. وَإِذَا اشْتَرٰى خَمْسَةُ نَفَرٍ دَارًا مِنْ رَجُلٍ او كله چې پنځوسرو ديوسرې يوكور واخستلو. فَلِلشَّفِيْعِ أَنْ يَأْخُذَ نَصِيْبَ أَحَدِهِمْ نو شفيع ته حق شته.چه په دوی كي د يوكس برخه واخلي. وَإِنْ اشْتَرَاهَا رَجُلٌ مِنْ خَمْسَةٍ او كه د پنځو سرو نه يو كور يو سړي واخستلو. أَخَذَهَا كُلَّهَا أَوْتَرَكَهَا نو شفيع دې يا واړه واخلي.يا دې واړه پريږدی. وَالْفَرْقُ أَنَّ فِي الْوَجْهِ الثَّانِي بِأَخْذِ الْبَعْضِ تَتَفَرَّقُ الصَّفْقَةُ عَلَى الْمُشْتَرِي او توپير دا دې.چه په دوهم صورت كي د بعض د اخستلو په وجه مشتري باندې صفقه متفرق شوې ده. فَيَتَضَرَّرُ بِهٖ زِيَادَةَ الضَّرَرِ چې په دې سره به هغه زيات ضرر اوچتوی. وَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ يَقُوْمُ الشَّفِيْعُ مَقَامَ أَحَدِهِمْ او په رومبې صورت كي به شفيع په دوی كي د يوكس قائم مقام وی، فَلَا تَتَفَرَّقُ الصَّفْقَةُ

حل اللغة: ① ياخذ:اخلی ② نفر: نفر ③ الصفقة:معامله، ④ خمسة: پنځه

تشريح:- د صفقې د تفرق صورتونه ممنوع دی لكه څنگه چې د هدايه په مختلفو مقاماتو كي ددې ذكر شوې

دې نوكه يو سړی د پنځو سرو نه يو كور واخستلو.او شفيع غواړی.چه زه د بكر برخه په شفعه كې واخلم.او پاته پريږدم.نو په دې كې د مشتری ضرر دې.ځكه چې هغه ته د دومره ځائې اړتيا وو.كوم چې هغه واخستلو.كه په دې كې يوه برخه شفيع ته ملاو شی.نو مشتری ته به ددې په اندازه بل ځائې كې لټون كول او اخستل پريوځی.چه د هغه اړتيا پوره شی.نو په مشتری باندې تفرق د صفقې لازميږی.چه دا ممنوع ده.نو شفيع ته به ونيلې شی.چه يا خو واړه واخله.يا واړه پريږده. اوكه بائع دكور يو سړې دې.او اخستونكی مثلاً پنځه نفر دی.نو شفيع ته هم دا حق شته.چه پوره كور په شفعه كې واخلی.او دا حق هم شته.چه په دې پنځو كسانو كې د يوكس واخلی.او د هغه قائم مقام شی.ځكه چې دلته تفرق د صفقې نه لازميږی.بلكه خبره چې څنګه وه.هم هغه شان ده.او اخستونكی د مخكې نه متفرق ( او جلا جدا) دی.او په دوی كې د يوكس قائم مقام شفيع جوړ شوې دې.

**په مذكوره صورت كښې د قبضې او عدم قبضې حكم**

**قال** امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل: **وَلَا فَرْقَ فِي هٰذَا بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ قَبْلَ الْقَبْضِ** او هيڅ توپير نشته.په دې كې ددې په مينځ كې كله چې د قبضې نه وړاندې وی **أَوْ بَعْدَهُ هُوَ الصَّحِيحُ**، يا ددې نه روستو وی.هم دا صحيح ده. **إِلَّا أَنَّ قَبْلَ الْقَبْضِ لَا يُمْكِنُهُ أَخْذُ نَصِيبِ أَحَدِهِمْ** خو قبضې نه وړاندې هغه ته په دوی كې د يو برخه اخستل ممكن نه دی **إِذَا نَقَدَ مَا عَلَيْهِ** كله چې هغه ثمن ادا كړی.كوم چې دهغه په ذمه دې **مَا لَمْ يَنْقُدِ الْآخَرُ حِصَّتَهُ**..تركومه پورې چې دوهم كس خپله برخه ادا نكړی. **لَا يُؤَدِّي إِلَى تَفْرِيقِ الْيَدِ عَلَى الْبَائِعِ بِمَنْزِلَةِ أَحَدِ الْمُشْتَرِيَيْنِ**، چې دا په بائع باندې د قبضې تفريق اړخ ته موصل نه وی.په دوې (دوه) اخستونكو كې د يو په درجه كې ، **بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْقَبْضِ** په خلاف د قبضې نه روستو، **لِأَنَّهُ سَقَطَتْ يَدُ الْبَائِعِ** ځكه چې د بائع قبضه ساقط شوې ده ،**وَسَوَاءٌ سَمّٰى لِكُلِّ بَعْضٍ ثَمَنًا**.او برابره ده.كه بائع د هر برخې (حصې) لپاره ثمن متعين كړی. **أَوْ كَانَ الثَّمَنُ جُمْلَةً** اوكه ثمن مجموعی وی. **لِأَنَّ الْعِبْرَةَ فِي هٰذَا لِتَفْرِيقِ الصَّفْقَةِ** ځكه چې دې كې د صفقې د تفرق اعتبار دې ،**لَا لِلثَّمَنِ**.د ثمن د تفرق ( اعتبار) نه دې. **وَهٰهُنَا تَفْرِيعَاتٌ** او دلته بعضې تفريعات دی،**ذَكَرْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهٰى** چه دا موږ په كفاية المنتهى كې ذكر كړې دی.

**تشريح:-** مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه كومه مسئله بيان كړې شوې ده.ددې حكم هم هغه دې.كه مشتری قبضه كړې وی.او كه قبضه ئې نه وی كړې.په دواړو صورتونو كې هيڅ توپير نشته.البته دومره توپير ضرور شته.كه اخستونكی ګڼ وی.او اوسه پورې مبيع باندې اخستونكو قبضه نه وه كړې.چه شفيع په دوی كې د يوكس برخه شفعه كې واخستله.او بائع ته ئې ددې برخې (حصې) ثمن ادا كړو.نو تركومه پورې چې نور شريكان ثمن ادا نكړی.تر هغه وخته پورې بائع ته حق شته.چه دې د هغه برخه شفيع ته حواله نكړی.چه د قبضې د تفريق په اړه كې د بائع ساتنه اوشی.

🖉 لكه مثلاً كه دوې (دوه) اخستونكی وی.هلته هم دا حكم دې.اوكه د مشتری قبضه شوې وی.نو بيا شفيع ثمن ادا كاوه سره خپله برخه قبضه كې راوستلې شی.كه بائع د هرې برخې (حصې) ثمن جلا جلا بيان كړی وی.اوكه د پوره كور ثمن ئې يو ځائې بيان كړې وی.په دواړو صورتونو كې هم دا حكم دې.كه څوك دا پوښتنه اوكړی كه ثمن په يو ځائې ( مجموعی) بيان شوې وی.نو ددې تفرق لازميږی.او تاسو اوفرمائيل.چه دواړو كې هيڅ توپير نشته؟ نوځواب دا دې چې د صفقې د اتحاد اعتبار دې.د ثمن د اتحاد نه دې.نو تفرق د صفقې مضر دې.تفرق د ثمن نه دې.

**د غير منقسم كور اخستلو نه روسته تقسيمول او د شفعې مسئله**

**قَالَ** امام محمد رحمه الله ( په جامع صغير كې ) اوفرمائيل. **وَمَنِ اشْتَرَى نِصْفَ دَارٍ غَيْرِ مَقْسُومٍ فَقَاسَمَهُ الْبَائِعُ** و چا چې واخستلو غير منقسم كور نصف ،بيا هغه سره بائع ويش اوكړو. **أَخَذَ الشَّفِيعُ النِّصْفَ الَّذِي صَارَ لِلْمُشْتَرِي أَوْ يَدَعُ**



نوشفيع هم دا نصف اخستې شی.كوم چې مشتری لپاره شو.يا دې پريږدی . **لِأَنَّ الْقِسْمَةَ مِنْ تَمَامِ الْقَبْضِ** ځكه چې تقسيمول د قبضې د پوره والی ځنې دې **لِمَا فِيهِ مِنْ تَكْمِيلِ الْاِنْتِفَاعِ**.ځكه چې ويش كې د انتفاع پوره والې دې.

**حل اللغة:** ① **تكميل**:پوره كول ② **الانتفاع** :فائده اخستل

**تشريح:-** د زيد يو كور دې.ده دهغې نيمه برخه په بكر خرڅه كړله.او كومه نيمه ئې چې خرڅه كړې ده.هغه ويش شوې نه ده.بيا مشتری او بائع ( يعنی زيد او بكر) ويش اوكړو.نو شفيع ته حق شته.چه كومه برخه په كوم ځائې كې هم د مشتری په برخه كې راغلې ده.هغه په شفعه كې واخلی.يا شفعه پريږدی.كه شفيع دا غواړی.چه دا ويش مات كړم.او زه پخپله بائع سره ويش اوكړم.نوشفيع ته به دا حق نه وی.اګرچه په دې كې د شفيع فائده ده.ځكه چې مخكنۍ عهده د بيع د مشتری په اړخ وه.او اوس به دا بائع اړخ ته راګرځی.او ددې احتمال به پيدا كيږی.چه شفيع ته هغه برخه ملاو شی.كومه چې دده كور سره مولښتې ده.خوڅه اوكړې شی.چه شفيع دا ويش نشی ماتولې.ځكه چې ويش د قبضې پوره والې دې.ځكه چې د ويش نه بغير د منفعت تكميل نشی كيدې.نولكه څنګه چې شفيع ته د قبضې ماتولو حق نشته.دغه ډول به د ويش ماتولو حق هم نه وی.او كه غواړی.صرف هغه برخه اخستې شی.كومه چې د مشتری په ويش كې راغلې ده.

**وَهٰذَا يَتِمُّ الْقَبْضُ بِالْقِسْمَةِ فِي الْهِبَةِ** او هم په دې وجه هبه كې د ويش په وجه قبضه پوره كيږی **وَالشَّفِيعُ لَا يَنْقُضُ الْقَبْضَ**.او شفيع قبضه نشی ماتولې. **وَإِنْ كَانَ لَهُ نَفْعٌ فِيهِ** اګرچه دې كې د شفيع فائده ده **بِعَوْدِ الْعُهْدَةِ عَلَى الْبَائِعِ** .د بيع د عهدې واپس كاوه په وجه په بائع باندې، **فَكَذَا لَا يَنْقُضُ** نو هم دغه ډول به هغه شی نشی ماتولې.،،**مَا هُوَ مِنْ تَمَامِهِ** كوم چې د قبضې پوره والې دې.

**حل اللغة:** ① **عود**:واپس كيدل ② **تمام** :پوره والې ③ **العهدة**: ذمه واری ،

**تشريح:-** په دې عبارت كې په دې باندې نوره رڼا اچوی چې ويش د قبضې پوره والې دې.اوفرمائی كه يوكس خپل غير مقسوم كوړ چا ته هبه كړو.او موهوب ته ئې قبضه وركړله.نو اوسه پورې قبضه نه ده شوې.تر كومه پورې چې ويش اونشی.نو لكه څنګه چې په ويش كې قبضه پوره كيږی.دغه ډول په بيع كې هم ويش د قبضې پوره والې شمارلې كيږی.

**په دوو شريكانو كښې ديو كس په دريم سړی خرڅول او د ويش حكم**

**بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ أَحَدُ الشَّرِيكَيْنِ نَصِيبَهُ مِنَ الدَّارِ الْمُشْتَرَكَةِ** په خلاف ددې صورت كله چې دوو شريكانو كې يوكس د مشترك كور نه خپله برخه خرڅه كړې وی. **وَقَاسَمَ الْمُشْتَرِي** او مشتری ويش اوكړو **الَّذِي لَمْ يَبِعْ حَيْثُ يَكُونُ** هغه كس سره چا چې خپله برخه نه ده خرڅه كړې. **لِلشَّفِيعِ نَقْضُهُ** نو شفيع لپاره به ددې ويش ماتولو حق نه وی. **لِأَنَّ الْعَقْدَ مَا وَقَعَ مَعَ الَّذِي قَاسَمَ** ځكه چې مشتری د چا سره ويش كړې دې.هغه سره عقد نه دې واقع شوې. **فَلَمْ تَكُنِ الْقِسْمَةُ مِنْ تَمَامِ الْقَبْضِ الَّذِي هُوَ حُكْمُ الْعَقْدِ** نودلته ويش د قبضې پوره والې نه دې.هغه قبضه كومه چې د عقد حكم دې. **بَلْ هُوَ تَصَرُّفٌ** بلكه دا ( د مشتری) تصرف دې **بِحُكْمِ الْمِلْكِ** د ملك په حكم سره **فَيَنْقُضُهُ الشَّفِيعُ** نو دا تصرف شفيع ماتولې شی ،**كَمَا يَنْقُضُ بَيْعَهُ وَهِبَتَهُ**. ،.لكه څنګه چې د مشتری بيع او هبه ماتولې شی.

**تشريح:-** ددې صورت دا دې.چه يو شريك خپله برخه خرڅه كړله.او دوهم شريك د شفعې طلب كاوه نه اعراض اوكړو.نو اوس ګاونډی ته شفعه اورسيدله.ګنی د شريك اعراض نه كاوه په صورت كې شريك فی الحقوق او ګاونډی ته شفعه نه ملاويږی.لكه څنګه چې وړاندې ددې تفصيلات تير شوی دی.

🖉 په مخكنی صورت كې مشتری بائع سره ويش كړې وو.چه دهغې د ماتولو شفيع ته حق نه وو وركړې شوې.اوكه ديوكور دوې (دوه) مالكان وی.او په هغوی كې يوكس خپله مشتركه برخه خرڅه كړله.اوس دې مشتری دوهم هغه شريك سره ويش اوكړو.چا چې خپله برخه نه ده خرڅه كړې.نو دا ويش شفيع ماتولې

شی.څکه چې مخکنی صورت کې ويش دقبضې پوره والې دې.څکه چې ويش د بائع سره دې.او دلته د قبضې پوره والې نه دې.څکه چې ويش بائع سره نه دې.بلکه داسې سړی سره دې.چه هغه دعقد بيع د اجنبی پشان دې.بلکه دلته مشتری ويش کړې دې.د ملکيت په حکم سره، يعنی نصف اخستلو سره د هغې مالك شو.اوس په دې کې د خپل ملکيت په وجه تصرف کوی.او دا خبره وړاندې معلومه شوې ده.چه شفيع ته حق شته.چه هغه د خپل مشتری تصرفات ختم کړی.نو شفيع د مشتری بيع اوهبه وغيره ماتولې شی.نو دغه ډول دلته د مشتری ويش ماتولې شی.په خلاف د ړومبی صورت، چې هغې کې د ويش ماتولو حق شفيع ته نه وو.د هغه دليلونو په وجه کوم چې ذکر شوی دی.

**د ويش په وخت دمشتری برخه شفيع سره مولبنتی راووتله نو د شفعې حکم**

ثُمَّ اِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِي الْكِتَابِ يَدُلُّ عَلٰى بيا د ځواب مطلق کيدل په ( جامع صغير) کتاب کې په دې خبره دلالت کوی. أَنَّ الشَّفِيعَ يَأْخُذُ النِّصْفَ چې شفيع هغه برخه اخستې الَّذِي صَارَ لِلْمُشْتَرِي فِي أَيِّ جَانِبٍ كَانَ.کوم چې د مشتری لپاره شوې ده.په کوم طرف چې هم وی.

**تشريح:-** حضرت مرغينانی رحمه الله فرمانی.چه امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې فرمائيلی دی.چه دې کې اطلاق ( عموم) دې.ددې اطلاق نه دا معلوميږی.چه د مشتری نصف که د شفيع دکور په اړخ کې راشی.او که په بل اړخ کې راشی.په دواړو صورتونو کې شفيع دا نصف اخستې شی.

وَهُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله اوهم دا دامام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.،لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ لَا يَمْلِكُ إِبْطَالَ حَقِّهِ بِالْقِسْمَةِ څکه چې مشتری د ويش په وجه دده د حق باطلولو مالك نه دې.

**تشريح:-** او د امام ابويوسف رحمه الله نه هم دا نقل دی.او هم دا مختار ( او راجح) دې.چه د شفيع د حق ابطال لازم نشی.کنی دا کيدای شی.چه بائع او مشتری دواړه اتفاق اوکړی.اوهغه اړخ ته د مشتری برخه مقرر کړی.کوم اړخ ته چې د شفيع کور نشته.نو په دې کې د شفيع د حق ابطال دې.او د اثبات نه روسته د ابطال حق نه وی.او په حيلو کې د اثبات نه وړاندې د اسقاط تدبيرونه وو.د اثبات نه روستو نه وو.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ إِنَّمَا يَأْخُذُهُ إِذَا وَقَعَ فِي جَانِبِ الدَّارِ الَّتِي يُشْفَعُ بِهَا .چه شفيع دا نصف هغه وخت اخستې شی.کله چې دا دده د کور په اړخ کې واقع وی.د کوم په وجه چې دې شفعه اخلی. لِأَنَّهُ لَا يَبْقَى جَارًا څکه چې دا ګاونډی ( شفيع) به پاته نه پاتې کيږی فِيمَا يَقَعُ فِي الْجَانِبِ الْآخَرِ.په دې صورت کې کله چې دا نصف په بل اړخ کې واقع شی.

**تشريح:-** او د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی.که دا نصف د شفيع په حق کې راغې.نو دا به شفيع ته ملاويږی.اوکه په بل اړخ کې راغې.نو بيا به دا شفيع ته نه ملاويږی.څکه چې اوس شفيع ګاونډی پاتې نشو.او هم ددې ګاونډ توب په وجه هغه شفعه حاصلوله.

**دعبد ماذون په کور اخستلو اوخرڅولو کښې مولا ته حق د شفعې شته اوکه نه؟**

قَالَ امام محمد رحمه الله ( په جامع صغير کې ) اوفرمائيل. (وَمَنْ بَاعَ دَارًا وَلَهُ عَبْدٌ مَأْذُونٌ او چا چې کور خرڅ کړو.او دهغه غلام ماذون دې عَلَيْهِ دَيْنٌ .چه په هغه باندې پور دې. فَلَهُ الشُّفْعَةُ نو غلام لپاره به شفعه وی. وَكَذَا إِذَا كَانَ الْعَبْدُ او هم دغه ډول کله چې غلام بائع وی هُوَ الْبَائِعُ فَلِمَوْلَاهُ الشُّفْعَةُ) .نو د هغه د مولا لپاره به شفعه وی. لِأَنَّ الْأَخْذَ بِالشُّفْعَةِ تَمَلُّكٌ بِالثَّمَنِ څکه چې شفعه کې د ثمن په عوض مالك جوړيدل دی فَيَنْزِلُ مَنْزِلَةَ الشِّرَاءِ، .نو دا ( په شفعه کې اخستل) د شراء په درجه کې راکوزولې شی. وَهٰذَا لِأَنَّهُ مُفِيدٌ څکه چې دا بيع مفيد ده.څکه چې غلام د خپلو قرضخواهانو لپاره تصرف کوی. يَتَصَرَّفُ لِلْغُرَمَاءِ، بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ په خلاف ددې صورت کله چې په ده باندې پور نه وی. لِأَنَّهُ لَا يَبِيعُهُ لِمَوْلَاهُ څکه چې غلام دا د خپل مولا لپاره



خرڅوی ،وَلَا شُفْعَةَ لِمَنْ يُبَاعُ لَهُ.او چا لپاره چې خرڅولې شی.هغه لپاره شفعه نه وی.

**حل اللغة** ① **دين:** پور ② **الغرماء:** ،جمع د غريم ،قرضخواه ③ **الاخذ:** اغستل

**تشريح:-** که آقا خپل غلام ته د تجارت اجازت ورکړی.نو د هغه اخستل خرڅول جائز وی.او دې غلام ته غلام ماذون وئيلې شی.بيا ددې تفصيل دا دې.چه کوم څه دده په قبضه کې دی.هغه واړه دده د مولا دی.دده خرڅول او دده اخستل واړه د مولا لپاره دی.اودا هغه وخت دی.کله چې غلام باندې دومره قرضه نه وی.چه هغه دده سټ راګير کړی.

کنی که په ده باندې دومره قرضه وی.چه دده سټ ئې راګير کړې وی.نو په مولا به دا ضروری نه وی.چه هغه دده پور ادا کړی.البته که هغه ئې ادا کړی.نو تيك ده.کنی دا غلام به خرڅولې شی.او د قرضخواهانو قرضه به ادا کولې شی.او په غلام باندې د پور کيدو په صورت کې به دده بيع او شراء مولا لپاره نه وی.بلکه قرضخواهانو لپاره به وی.هرکله چې دا تفصيل په ذهن کې کيناستو.نو اوس واورئ.

ⓐ يو ماذون غلام يوکور د تجارت په غرض سره اخستې دې.اوس هغه دا خرڅوی.او په ددې په ګاونډ کې د آقا کور دې.نو مولا ته به شفعه ملاويږی اوکه نه؟ نو وې فرمائيل.که ماذون غلام قرضدار دې.نو هغه (مولا) ته به شفعه ملاويږی.اوکه قرضدار نه وی.نو شفعه به نه ملاويږی.څکه چې ړومبی صورت کې دده بيع او شراء مولا لپاره نه ده.نو د شفعې نه هيڅ شئ مانع نه دې.او په دوهم صورت کې دده بيع او شراء مولا لپاره وی.په دې وجه به مولا ته شفعه نه ملاويږی.

ⓐ البته د شراء په صورت کې به دوهم صورت کې هم مولا ته شفعه ملاويږی.چه ددې تفصيل وړاندې د قاعدې کليې لاندې تير شوې دې.هلته وئيلی شوی وو.چه د چا لپاره خرڅ کړې شی.هغه لپاره شفعه نشته.او چا لپاره چې واخستلې شی.هغه لپاره شفعه شته.

ⓐ **لان الاخذ بالشفعة.** شفعه کې اخستل دشراء په درجه کې دی.او کله چې غلام باندې پور دده د سټ ( قيمت) نه زياتې وی.دغه وخت غلام او مولا لپاره خپل مينځ کې ( د يو بل نه) اخستل جائز وی.نو دغه ډول په شفعه کې اخستل هم جائز دی.

**د وصی په شفعې پريښودو سره بچی لپاره حق د شفعې وی اوکه نه؟**

قَالَ امام محمد رحمه الله ( په جامع صغير کې ) اوفرمائيل. (وَتَسْلِيمُ الْأَبِ وَالْوَصِيِّ الشُّفْعَةَ عَلَى الصَّغِيرِ جَائِزٌ) و د پلار او د وصی په بچی باندې شفعه سپارل (بيزاری ښکاره کول) جائز دی. عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله د امام ابوحنيفه اوامام ابويوسف رحمهما الله په نيز، (وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ: هُوَ عَلٰى شُفْعَتِهِ إِذَا بَلَغَ) او امام محمد او امام زفر رحمهما الله فرمائيلی دی.چه بچې به پخپله شفعه باندې پاتې وی.کله چې بالغ شی. قَالُوا: وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا بَلَغَهُمَا شِرَاءُ دَارٍ بِجِوَارِ دَارِ الصَّبِيِّ فَلَمْ يَطْلُبَا الشُّفْعَةَ،مشائخو فرمائيلی دی.اوهم په دې اختلاف باندې ( مبنی) دې.کله چې دوی دواړو ته د بچی دکور په ګاونډ کې د کور اخستلو خبر رسيدلې وی.نو هغوشفعه نه وی طلب کړې. وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ تَسْلِيمُ الْوَكِيلِ بِطَلَبِ الشُّفْعَةِ فِي رِوَايَةِ كِتَابِ الْوَكَالَةِ وَهُوَ الصَّحِيحُ او هم په دې اختلاف دې.د شفعې طلب کاوه د وکيل بيزاری ښکاره کول،د مبسوط د كتاب الوكالة مطابق،او هم دا صحيح ده.

**تشريح:-** د بچی‌دمور وفات اوشو.چه د هغې نه ده ته يوکور په ميراث کې ملاوشوې وو.اوس د هغې په ګاونډ کې يوکور خرڅ شو.چه هغې کې بچی ته شفعه رسيږی.خو پلار يا د پلار نه کيدو په صورت کې وصی شفعې نه بيزاری ښکاره کړله.نو دا صحيح ده او که نه؟ نو حضرات شيخينو رحمهما الله دا جائز ګنړلې ده.او امام محمد اوامام زفر رحمهما الله دې ته جائز نه دی وئيلې.بلکه دا ئې معتبر منلې دې.او بچې به د بالغ کيدو نه روستو پخپله شفعه باندې قائم پاتې وی.که دوی دواړو په ښکاره بيزاری اختيار کړې وی.يا ئې دشفعې طلب نه وی‌کړې.دواړو صورتونو کې هم دا اختلاف دې.

ⓐ اوکه يوکس بل څوك د خان لپاره د شفعې طلب کاوه وکيل جوړکړې وی.په هغه کور کې کوم چې دده

ګاونډ كي خرڅ شو.او دغه وكيل دشفعې طلب كاوه په خاني د شفعې نه بيزاري ښكاره كړې وي.نو په دې كي هم دا اختلاف دې.هم دې ته مرغيناني رحمه الله ،، وهو الصحيح،، اوفرمائيل.او دا ئې ځكه اوفرمائيل.چه د هغې روايت ترديد اوشي.په كوم كي چې حضرات طرفينو رحمهما الله ته متفق وئيلې شوي دي.او دامام ابويوسف رحمه الله قول ته ددوى دواړو خلاف وئيلى شوى دى.

## د امام محمد او امام زفر رحمهما الله دليل

لِمُحَمَّدٍ وَزُفَرَ اَنَّهُ حَقٌّ ثَابِتٌ لِلصَّغِيْرِ د امام محمد او امام زفر رحمهما الله دليل دا دې.چه حق د شفعې داسې حق دې چې د بچي لپاره ثابت دې. فَلَا يَمْلِكَانِ اِبْطَالَهُ كَدِيَتِهِ وَقَوَدِهٖ نو دوى دواړه به ددې د ابطال مالكان نه وي.لكه دده د ديت او دده د قصاص (معاف كولو چې مالكان نه دى) ،وَلِاَنَّهُ شُرِعَ لِدَفْعِ الضَّرَرِ فَكَانَ اِبْطَالُهُ اِضْرَارًا بِهٖ او ځكه چې دا حق مشروع شوي دې.د ضرر لرې كاوه دپاره،نو ددې باطلول به بچي ته نقصان رسول وي.

تشريح:- داد امام محمد او امام زفر رحمهما الله دليل دې.چه لكه څنګه پلاراو وصى دبچي ديت او دده قصاص نشي معاف كولي.ځكه چې دا د شريعت د اړخه ثابت حق دې.دغه ډول حق د شفعې هم نشي باطل كولي.او د شفعې د مشروعيت مقصد ضرر دفع كول دى.نو كه دده حق باطل كړې شو.نو د شر دفع كاوه په خانې بچي لپاره ضرر او نقصان رسول دى.نو دوى دواړه به د باطلولو مالكان نه وي.

## د شيخينو رحمهما الله دليل

وَلَهُمَا اَنَّهُ فِيْ مَعْنَى التِّجَارَةِ فَيَمْلِكَانِ تَرْكَهُ او د شيخينو رحمهما الله دليل دا دې.چه دا (په شفعه كي اخستل) دتجارت په درجه كي دى.نو ځكه به دوى دواړه د پريخودو مالكان وي. ،اَلَا تَرٰى اَنَّ مَنْ اَوْجَبَ بَيْعًا لِلصَّبِيِّ صَحَّ رَدُّهٗ مِنَ الْاَبِ وَالْوَصِيِّ آيا ته نه ګورې چې كوم كس د بچي لپاره د بيع ايجاب اوكړو .نو د پلار او وصى دا ايجاب رد كول صحيح دى. وَلِاَنَّهٗ دَائِرٌ بَيْنَ النَّفْعِ وَالضَّرَرِ، وَقَدْ يَكُوْنُ النَّظَرُ فِيْ تَرْكِهٖ لِيَبْقَى الثَّمَنُ عَلٰى مِلْكِهٖ او ځكه چې دا د نفعې اونقصان په مينځ كي واقع دې.او كله شفقت ددې په پريخودو كي وي چه ثمن د بچي په ملكيت باندې پاته پاتې شي. وَالْوِلَايَةُ نَظَرِيَّةٌ فَيَمْلِكَانِهٖ وَسُكُوْتُهُمَا كَاِبْطَالِهِمَا او ولايت نظرى (او د شفقت) دې.نو دوى دواړه به ددې مالكان وي.او ددې دواړو سكوت ددوى د باطلولو پشان دى. لِكَوْنِهٖ دَلِيْلَ الْاِعْرَاضِ ځكه چې دا د اعراض دليل دې. ،،وَهٰذَا اِذَا بِيْعَتْ بِمِثْلِ قِيْمَتِهَا او دا اختلاف هغه وخت دې.كله چې كور ددې د قيمت د مثل په بدله كي خرڅ كړې شي.

حل اللغة: ① دائر: واقع شوي ② النظر: مصلحت،شفقت ③ سكوت: چپوالي

تشريح:- دا د شخينو رحمهما الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه په شفعه كي يو ډول تجارت دې.چه په دې كي نفع او نقصان دواړو احتمال شته.او په بچي باندې ولايت ددې لپاره ملاويږي.چه دده سره د شفقت معامله اوكړې شي.او كله په شفعه پريخودو كي شفقت وي.ځكه چې دلته د مصلحت هم دا تقاضه ده.په دې وجه پلار او وصى ته دا حق حاصل شو.چه هغوى شفعه اخستل پريږدى.او لكه څنګه چې د ښكاره باطلولوحكم دې.د سكوت هم دا حكم دې.ځكه چې سكوت د اعراض دليل دې.نو ګويا په دواړو صورتونو كي اعراض اوموندې شو.په ړومبى كي ښكاره او په دوهم كي دلالتاً.خو ددې حضراتو دا اختلاف هغه وخت دې.كله چې كور په دومره قيمت خرڅ شى.څومره چې ددې ماليت دې.اوكه كمى زياتى سره خرڅ شو.نو ددې حكم روستو راروان دې؛

## د ګران كور خرڅيدو په وجه د وصى د شفعې پريخودو مسئله

فَاِنْ بِيْعَتْ بِاَكْثَرَ مِنْ قِيْمَتِهَا بِمَا لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيْهِ نو كه د خپل قيمت نه زيات سره خرڅ شى.په دومره زياتوالى سره چې خلګ په دې مقدار كي تاوان نه برداشت كوى. قِيْلَ جَازَ التَّسْلِيْمُ بِالْاِجْمَاعِ نو وئيلى شوى دى.چه



بالاجماع بيزاره كيدل جائز دى. لِاَنَّهٗ تَمَحَّضَ نَظَرًا وَقِيْلَ لَا يَصِحُّ بِالْاِتِّفَاقِ ځكه چې دا خالص شفقت دې.او وئيلى شوى دى.چه بالاتفاق بيزارى ښكاره كول صحيح نه دى لِاَنَّهٗ لَا يَمْلِكُ الْاَخْذَ فَلَا يَمْلِكُ التَّسْلِيْمَ كَالْاَجْنَبِيِّ ځكه چې دوى دواړو كي يوكس په شفعه كي د اخستلو مالك نه دې.نو د ور كاوه (شفعې پريخودو) مالك به هم نه وي.د اجنبى پشان،

حل اللغة: ① يتغابن: تاوان كوي ② تمحض: صرف ③ التسليم: سپارل ④ الاجنبى: پردې

تشريح:- كه دكور ماليت مثلاً درې زره دې.او خرڅ شوې دې.په شل زره درهمه، نو د دومره تاوان برداشت كاوه په خلګو كي عادت نشته.او په دوى دواړوكي يو كس شفعه پريخودله.نو اوس څه حكم دې؟ نو مرغيناني رحمه الله فرمائى.چه په دې كي دوې (دوه) قوله دى ① ړومبې قول دا دې چه بالاجماع شفعه سپارل صحيح دى.ځكه چې دا سراسر شفقت دې.② او دوهم قول چې دا اصح ګرځولې شوې دې.دا دې.چه شفعه پريښول صحيح نه دى.بلكه د بچي حق به پخپل حال پاته پاتې وي.دا څه عجيبه منطق دې؟

ځواب: غور اوكړئ.چه شفعه پريښول په شفعه كي د اخستلو فرع ده.يعنى كوم سړې چې د شفعې اخستلو حق لرى.هم هغه د شفعې پريخودو اظهاركولې شى.او دلته د زيات تاوان په وجه هركله چې پلار او وصى ته په شفعه كي د اخستلو اختيار نشته.نو اوس دوى دواړه د اجنبى پشان شو.نو لكه څنګه چې د اجنبى شفعه پريښول نه صحيح كيږى.دغه ډول به د دوى دواړو شفعه سپارل صحيح نه وي.

. وَاِنْ بِيْعَتْ بِاَقَلَّ مِنْ قِيْمَتِهَا مُحَابَاةً كَثِيْرَةً او كه ددې د قيمت نه هم په كم قيمت په ډير زيات رعايت سره خرڅ شوې وي. فَعَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اَنَّهٗ لَا يَصِحُّ التَّسْلِيْمُ مِنْهُمَا نو د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دى.چه ددوى دواړو سپارل (شفعه وركول) صحيح نه دي، اَيْضًا وَلَا رِوَايَةَ عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ او دامام ابويوسف رحمه الله نه هيڅ روايت نشته.والله اعلم.

تشريح:- اوكه دكور ماليت مثلا شل زره دى.او د رعايت او لحاظ په وجه بائع دا په درې زره كي خرڅ كړو.نواوس څه حكم دې؟ نو امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى.چه اوس به دپلار او وصى سپارل صحيح نه وي.ځكه چې دې كي د بچي ښكاره نقصان دې.او امام ابويوسف رحمه الله څه فرمائى؟ نو په دې اړه كي ددوى نه هيڅ روايت نشته.والله اعلم بالصواب.)جارى

# كتاب القسمة

ژباړه:- (دا) كتاب د ويش (په بيان كي) دې.

تشريح:- په كتاب الشفعه او كتاب القسمة كي وجه د مناسبت دا ده.چه لكه څنګه شفيع د مشترى د مال زبردستئ سره مالك كيږى.دغه ډول شريك (په ويش كي بعضو صورتونوكي د مبادلې د معنى موجود كيدو په وجه) د بل شريك د برخې (حصې) مالك كيږى.او چونكه په شفعه كي كلى تمليك دې.او په ويش كي جزئى تمليك دې.نو كلى تمليك چونكه د جزئى تمليك نه مضبوط وي.په دې وجه كتاب الشفعه دكتاب القسمة نه مقدم كړې شوې ده.اوپه شفعه كي د جواز جهت دې.او په ويش كي فى الجمله د وجوب جهت دې.په دې وجه شفعه مقدم كړې شوه.چه د ادنى نه اعلى اړخ ته ترقى وى.

تعريف القسمة: لويديځ كي دى.چه دا د اقتسام اسم دې.او په المعجم الوسيط كي هم دې ته د اقتسام اسم وئيلى شوى دى.او په قاموس كي دى.چه قسمة د ويش اسم دې.خو چونكه د اسم فاعل صيغه قاسم مستقل ده.په دې وجه مناسب دا ده.چه دا د ،، قسم الشئ،، مصدر اوګرځولې شى.لكه څنګه چې قهستانى كي ذكر دى.﴿مجمع الانهر ص۴۶۹ ج۲_ شامى ص ۱۶۰ ج۵﴾

مشروعيتها من القران: د الله تعالى ارشاد دې: ﴿وَاِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ اُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنُ﴾ ﴿وَنَبِّئْهُمْ اَنَّ الْمَآءَ قِسْمَةٌ بَيْنَهُمْ كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ﴾ ﴿لَّهَا شِرْبٌ وَّلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ﴾

**مشروعيتها من السنة**: د سنت نه هم ددې مشروعيت ثابت دې.ځکه چې نبی کریمﷺ میراثونه او غنیمتونه ویش کړي دي.او نبی کریمﷺ د خپلو بیبیانو په مینځ کي وار مقرر کړې وو.او دنبی کریمﷺ ارشاد دې. ﴿أعط كل ذی حق حقه﴾ او ددې په مشروعیت باندې د امت اجماع ده.

**شرطها**: په ویش سره د منفعت نه فوت کیدل، په دې وجه به دکوهی، جرندې او غسل خانې (حمام) ویش نشی کولې.

**سببها**: واړه یا بعضې شریکان دا مطالبه اوکړي.چه موږ ته د خپل حق نه د فائدې حاصلولو داسې حق ملاو شي.چه په دې کي د بل چا شرکت نه وي.نو که شریکان مطالبه اونکړي.نو ویش به صحیح نه وي.

**رکنها**: هغه فعل د کوم په ذریعه چې د برخو په مینځ کي جدائی او توپیر واقع شي.لکه ناپ کول، تلل، پیمانه کول یا شمارل.

**حکمها**: د هر شریك برخه جلا جلا متعین کول.

## په اعیان مشترکه کښې د ویش حکم

| |
|---|
| قال مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل. اَلْقِسْمَةُ فِي الْأَعْيَانِ الْمُشْتَرَكَةِ مَشْرُوعَةٌ په مشترك څیزونوکي ویش مشروع دې. لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بَاشَرَهَا فِي الْمَغَانِمِ وَالْمَوَارِيثِ، وَجَرَى التَّوَارُثُ بِهَا مِنْ غَيْرِ نَكِيرٍ(١) ځکه چې نبی کریمﷺ په غنیمتونو او میراثونو کي ویش کړې دې.او د څه نکیر نه بغیر په دې کي توارث (او رواج) جاری دې. ثُمَّ هِيَ لَا تَعْرَى عَنْ مَعْنَى الْمُبَادَلَةِ بیا ویش د مبادلې معنی نه خالی نه ده لِأَنَّ مَا يَجْتَمِعُ لِأَحَدِهِمَا بَعْضُهُ كَانَ لَهُ وَبَعْضُهُ كَانَ لِصَاحِبِهِ ځکه چې دوو شریکانو کي د یو لپاره کومه برخه جمع شوې ده.په هغې کي بعض خو دهغه وه.او بعضې د هغه د انډیوالان وه. فَهُوَ يَأْخُذُهُ عِوَضًا عَمَّا بَقِيَ مِنْ حَقِّهِ فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ نو هغه دا اخلی.د هغه برخې (حصې) په عوض کي، کومه چې دده د انډیوالان په برخه کي دده حق پاته پاتې کیږي. فَكَانَ مُبَادَلَةً وَإِفْرَازًا، وَالْإِفْرَازُ هُوَ الظَّاهِرُ فِي الْمَكِيلَاتِ وَالْمَوْزُونَاتِ لِعَدَمِ التَّفَاوُتِ نو دا مبادله او افراز (جداکول) شو.او افراز ښکاره دې په مکیلاتو او موزوناتو کي د تفاوت نه کیدو په وجه. |

**حل اللغة**: ① افراز،، وائی.خپل عین حق اخستل،② ،،مبادله،، وائی.د خپل حق سره د بل حق ملاوول.③ **المغانم**: جمع د غنیمت،د کافرانو هغه مالونه کوم چې په جنګ کي مسلمانان حاصل کړي④ **مواریث**: جمع د میراث ده د مړي ترکه .

**تشریح**:- په ویش کي چې څنګه افراز شته.مبادله هم شته.مثلاً زید او بکر دواړو یو کور واخستلو.نو د دواړو ملکیت کي شیوع (شریکوالی) ده.بیا هرکله چې ویش اوشو.نو یو اړخ زید ته ملاو شو.او بل اړخ بکر ته ملاو شو.حالانکه د دواړو ملکیت کي شیوع (برخه داری) وه.کومه برخه چې زید ته ملاو شوه.هغې کي د بکر برخه وه.او د بکر په برخه کي د زید برخه وه.اوس ګویا زید دخپلې برخې (حصې) سره د بکر برخه ملاو کړله.او دده د برخې (حصې) په بدله کي ئې هغه برخه ورکړله.کومه چې د زید د هغه (یعنی د بکر) د اړخ په برخه کي ده.نو دا په دې کي د مبادلې شکل دې.نو په ویش کي د افراز او مبادلې دواړو جهت شته.خو په مکیلاتو او موزوناتو کي افراز زیات دې.او په غیرمثلی څیزونو کي د مبادلې معنی غالبه ده.

## د شریك په غیر موجودګئ کښې د خپل عین حق اخستلو حکم

| |
|---|
| حَتَّى كَانَ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَأْخُذَ نَصِيبَهُ حَالَ غَيْبَةِ صَاحِبِهِ، تردې چې حق به وی په دوی کي د یو دپاره،چه د خپل انډیوالان د غائب کیدو په وخت خپله برخه واخلي. وَلَوِ اشْتَرَيَاهُ فَاقْتَسَمَاهُ اوکه دواړو دا اخستې وي.بیا ئې ویش |

(١) قسمة المواریث ثبت من حدیث أبی موسی الأشعری رضي الله عنه أخرجه البخاری فی الفرائض باب ٨ ومالك فی الرضاع ... واحمد فی المسند(٤٦٤/١)-



| |
|---|
| کړې وي. يَبِيعُ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ مُرَابَحَةً بِنِصْفِ الثَّمَنِ نو په دوی کي یوکس خپله برخه په بیع مرابحه سره خرڅولې شي.د نصف ثمن په بدله کي ،، وَمَعْنَى الْمُبَادَلَةِ هُوَ الظَّاهِرُ فِي الْحَيَوَانَاتِ وَالْعُرُوضِ لِلتَّفَاوُتِ او د مبادلې معنی غالب ده.په څاروو او سامانونو کي ، د تفاوت په وجه، حَتَّى لَا يَكُونَ لِأَحَدِهِمَا أَخْذُ نَصِيبِهِ عِنْدَ غَيْبَةِ الْآخَرِ تردې چې په دوی کښې به یوکس ته حق نه وي.چه د بل کس په غانبوالی کي خپله برخه واخلي. ،،وَلَوِ اشْتَرَيَاهُ فَاقْتَسَمَاهُ اوکه دواړو دا اخستې وي.بیا ئې ویش کړې وي لَا يَبِيعُ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ مُرَابَحَةً بَعْدَ الْقِسْمَةِ نو په دوی کي یوکس د ویش نه روسته د بیع مرابحه په طریقه نشی خرڅولې. |

**حل اللغة**: ① **عروض**: جمع د عرض، سامان ② **التفاوت**: توپیر ③ **مرابحة** : په ګټه

**تشریح**:- چونکه په افراز کي خپل عین حق اخستلې کیږي.او په مبادله کي د خپل حق عوض اخستلې شی.نو د افراز (جلا والی) په صورت کي د شریك په غیر موجودګئ کي هم خپله برخه اخستلې شی.ځکه چې دا خپله برخه اخستل دی.اوکه د افراز په صورت کي چې دا په مثلیاتو کي وي.دوې (دوه) سړي یو ځائې شو.او یو مثلی شئ ئې واخستلو.بیا ئې خپل مینځ کي ویش اوکړو.اوس یو شریك خپله برخه د مرابحه یا تولیه په طریقه خرڅول غواړي.نو دا جائز ده.یعنی د نصف ثمن په بدله،ځکه چې هر یوکس خپل عین حق اخستې دې.کوم چې دوی اخستې وو.نو مذکوره بیع به جائز وي.

او که د مبادله صورت وي.نو چونکه هلته د هر برخه بدل شوې ده.نو کومه ئې چې اخستې وه.هغه خرڅه نکړې شوه.په دې وجه به هلته د بیع مرابحه او تولیه په طریقه باندې د نصف ثمن په بدله کي بیع جائز نه وي.او دغه ډول د خپل شریك په غیر موجودګئ کي خپله برخه نشی اخستې.

فائده: د ،، **ولو اشتریاه** ،، مرجع په رومبی کي مثلی دې.او په دوهم کي غیر مثلی دې...کما هوظاهر..

## په څاروو کښې د ویش مسئله

| |
|---|
| إِلَّا أَنَّهَا إِذَا كَانَتْ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ مګر دا چې کله دا څاروی د یو جنس څنې وي. أَجْبَرَ الْقَاضِي عَلَى الْقِسْمَةِ عِنْدَ طَلَبِ أَحَدِ الشُّرَكَاءِ نو قاضی به په ویش باندې مجبوره وي.په شریکانو کي د یوکس د مطالبې په وخت، لِأَنَّ فِيهِ مَعْنَى الْإِفْرَازِ لِتَقَارُبِ الْمَقَاصِدِ ځکه چې دې کي د افراز معنی ده.د مقاصدو د نژدې نژدې کیدو په وجه. وَالْمُبَادَلَةُ مِمَّا يَجْرِي فِيهِ الْجَبْرُ فیصل ددې ژباړه پاتې ده |

**حل اللغة**: ① **الافراز**: جداوالي② **تقارب**: یوبل ته نزدیکت③ **مقاصد**: جمع دمقصد ،یعنی مطلوب④ **المعادلة** : برابری

**تشریح**:- مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د څاروو په صورت کي ویش د افراز (جلا جلا کیدو) په معنی کي نه دې.بلکه د مبادله په معنی کي دې.خو په دې کي به کتلې شي.چه د مبادله په صورت کي څاروی وغیره د یو جنس دی.او که د مختلف جنسونو دی.د یو جنس مثلاً ټولې وزه دی.یا غویان دی. او مختلف جنس والا مثلاً څه وزه وي،او څه میښې وي،او څه اسونه وي.بیا ددې دواړو صورتونو په ویش کي به لږ توپیر وي.یعنی په رومبی صورت کي که په شریکانو کي یوکس هم د قاضی نه د ویش درخواست اوکړو.او نور شریکان په ویش باندې رضامند نه دی.نو قاضی به هغوی په ویش باندې راضی کوی.او ویش به کوی.ځکه چې دلته د یو جنس کیدو په وجه ددې څاروو مقاصد نژدې نژدې دی.نو په دې کي د افراز معنی موندې شي.او مبادله خو دا د سره نه ده.بهرحال دلته به قاضی زبردستی کوی.ځکه چې داسې مبادله کي زبردستی جاری کیږي.

| |
|---|
| كَمَا فِي قَضَاءِ الدَّيْنِ او مبادله د هغه څیزونو څنې ده.په کوم کي چې زبردستی جاری کیږي.لکه په پور ادا کاوه (کي چې مجبورولې شي) |

**تشریح**:- هم دا وجه ده.چه د پور په ادا کاوه کي زبردستی کول جاری کیږي.حالانکه پور کي مقبوض، عین

دین نه وي.بلکه د هغې بدله وي.اوکه عین دین واجب کړې شي.نو د پور اخستلو فائده به فوت کیږي.نو قاضي قرضدار ګرفتارولې شي.او قید خانه کې ئې اچولې شي.تردې چې هغه خپل مال او سامانونه خرځ کړي.او پور ادا کړي.نو ددې تقریر نه معلومه شوه.چه په مبادله کې زبردستي جاري کیږي.

وَهٰذَا لِأَنَّ أَحَدَهُمْ بِطَلَبِ الْقِسْمَةِ يَسْأَلُ الْقَاضِيَ أَنْ يَخُصَّهُ بِالْاِنْتِفَاعِ بِنَصِيبِهِ او دا ځکه چې په دوی کې یو کس ویش طلب کوي.د قاضي نه دا درخواست کوي.چه دې د خپلې برخې (حصې) سره انتفاع خاص کړي. وَيَمْنَعَ الْغَيْرَ عَنِ الْاِنْتِفَاعِ بِمِلْكِهِ او غیر دده د ملکیت نه د فائدې اخستلو نه منع کړي. «فَيَجِبُ عَلَى الْقَاضِي إِجَابَتُهُ نو قاضي باندې دده درخواست قبلول ضروري دي.

**تشریح:-** دلیل دا دې چې دا شریك د قاضي نه هم درخواست کوي.چه ماته زما د ملك نه د انتفاع خاص حق راکړې شي.او نور خلګ زما د ملك نه د فائدې اخستلو نه منع کړې شي.نو په دې درخواست کې هغه په حقه دې.نو په قاضي ضروري دي.چه دهغه درخواست قبول کړي.او ویش اوکړي.

وَإِنْ كَانَتْ أَجْنَاسًا مُخْتَلِفَةً اوکه څاروی مختلف جنسونه وي. لَا يُجْبِرُ الْقَاضِي عَلَى قِسْمَتِهَا لِتَعَذُّرِ الْمُعَادَلَةِ بِاعْتِبَارِ فُحْشِ التَّفَاوُتِ فِي الْمَقَاصِدِ نو قاضي به ددې په تقسیمولو باندې زبردستي نه کوي.په مقاصدو کې د ډیر زیات توپیر په وجه، د برابرئ د متعذر کیدو په وجه، «وَلَوْ تَرَاضَوْا عَلَيْهَا اوکه دوی واړه په ویش باندې راضي شي. جَازَ لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ نو جائز ده.ځکه چې حق هم ددوی دې.

**تشریح:-** اوکه دوهم صورت وي.چه دا مختلف جنسونه وي.نو بیا به قاضي نور شریکان په ویش کاوه باندې نه مجبوره وي.ځکه چې ددې په مینځ کې د ډیر زیات توپیر کیدو په وجه مساوات او برابري کول مشکل ده.البته که دوی واړه په صورت کې هم ویش باندې راضي شي.نو چونکه حق هم ددوی دې.نو ویش جائز دې.

## قاضي لپاره د تقسیمونکي د مقررولو جواز

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل. (وَيَنْبَغِي لِلْقَاضِي أَنْ يُنَصِّبَ قَاسِمًا يَرْزُقُهُ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ او قاضي لپاره مناسب دي.چه یو کس تقسیمونکې مقرر کړي.چه هغه ته د بیت المال نه روزي ورکوي. لِيَقْسِمَ بَيْنَ النَّاسِ بِغَيْرِ أَجْرٍ) چې هغه د خلګو په مینځ کې د اجرت نه بغیر تقسیمول کوي. لِأَنَّ الْقِسْمَةَ مِنْ جِنْسِ عَمَلِ الْقَضَاءِ ځکه چې تقسیمول د قضاء د عمل جنس ځنې دې. مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ يَتِمُّ بِهِ قَطْعُ الْمُنَازَعَةِ فَأَشْبَهَ رِزْقَ الْقَاضِي په دې حیثیت سره چې جګړه ختمول هم ددې په ذریعه پوره کیږي.نو روزي د تقسیمونکي د قاضي د روزئ مشابه شو. وَلِأَنَّ مَنْفَعَةَ نَصْبِ الْقَاسِمِ تَعُمُّ الْعَامَّةَ اوځکه چې د تقسیمونکي دمقررولو منفعت به عامو خلګو ته رسیږي. ، فَتَكُونَ كِفَايَتُهُ فِي مَالِهِمْ غُرْمًا بِالْغُنْمِ نو دده (د ژوند) کفایت به ددوی په مال کې وي.د منفعت مطابق د تاوان کیدو په وجه.

**حل اللغة:** ① القطع: ختمیدل کټ کیدل ② المنازعة: جګړه ③ غرم: تاوان

**تشریح:-** د قاضي چونکه د قضاء په نورو کارونو کې د مشغولیدو په وجه د خلګو زمکو ناپ کاوه لپاره ګرځیدل مشکل دي.په دې وجه قاضي لپاره جائز دي.چه هغه داسې کس مقرر کړي.چه هغه د خلګو په مینځ کې د اجرت نه بغیر ویش کوي.او هغه ته به د بیت المال نه تنخواه ملاویږي.لکه څنګه چې قاضي ته ملاویږي.ځکه چې ویش هم یو ډول قضاء ده.ځکه چې د خلګو جګړې په مکمل طریقه هغه وخت ختمیږي.چه د فیصلې مطابق ویش هم اوشي.او چونکه د تقسیمونکي فائده به ټولو خلګو ته رسیږي.نو د هغه خرچه هم د عامو خلګو په مالونو کې کیدل پکار دي.او دهغوی مال د بیت المال دې.ځکه چې منفعت په اندازه د ضمان وي.نو چاته چې منفعت (فائده) حاصله شي.هم په هغه باندې د تقسیمونکي د خرچې بوج



اچول پکار دي.

## قاضي لپاره د تقسیمونکي مقررولو دوهم صورت

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل. (فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ نَصَبَ قَاسِمًا يَقْسِمُ بِالْأَجْرِ) نوکه قاضي داسې اونکړي.نو څوك دې تقسیمونکې مقرر کړي.چه هغه اجرت سره ویش کوي. مَعْنَاهُ بِأَجْرٍ عَلَى الْمُتَقَاسِمِينَ ددې مطلب دا دې.هغه اجرت سره کوم چې به تقسیمونکو باندې وي. لِأَنَّ النَّفْعَ لَهُمْ عَلَى الْخُصُوصِ، وَيُقَدِّرُ أَجْرَ مِثْلِهِ ځکه چې نفع خاص کر هغوی لپاره ده.اوقاضي دې ددې په مثل اجرت مقرر کړي. كَيْ لَا يَتَحَكَّمَ بِالزِّيَادَةِ چې هغه زیاتوالي سره زبردستي اونکړي. وَالْأَفْضَلُ أَنْ يَرْزُقَهُ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ او افضل دا دي.چه هغه ته د بیت المال نه خرچه ورکړي. «لِأَنَّهُ أَرْفَقُ بِالنَّاسِ وَأَبْعَدُ عَنِ التُّهْمَةِ ځکه چې دا خلګو لپاره آسانه ده.او د تهمت نه لرې ده.

**حل اللغة:** ① المتقاسمین: خپل مینځ کې تقسمونکي ② ارفق: نرمي ③ ابعد: لرې

**تشریح:-** که قاضي په مذکوره طریقه باندې تقسیمونکې مقرر نکړي.نو بیا دې داسې اوکړي.چه څوك عادل سړې دې ددې کار لپاره مقرر کړي.او اجرت دې دهغه خلګو نه اخلي.د چا ویش چې کوي.ځکه چې دلته مخصوص نفع هم دوی ته رسیږي.نو اجرت به هم دوی ادا کوي.او قاضي دې د هغه اجرت مثلي هم مقرر کړي.ګنې د حکومت د سړي کیدو په وجه به په خلګو ظلم کوي.او د زیات مطالبه به کوي.او خلګ به په ورکولو مجبور وي.خو افضله طریقه هم هغه ده.چه دده تنخواه د بیت المال نه مقرر کړې شي.چه په دې کې خلګو لپاره آسانتیا ده.او د تهمت شبه هم ختمیږي.

## د تقسیمونکي د اوصافو بیان

(وَيَجِبُ أَنْ يَكُونَ عَدْلًا مَأْمُونًا عَالِمًا بِالْقِسْمَةِ) او واجب دي.چه تقسیمونکې عادل وي.امانت دار وي.په ویش پوهیږي. لِأَنَّهُ مِنْ جِنْسِ عَمَلِ الْقَضَاءِ ځکه چې دا د قضاء د کارونو د جنس ځنې دې. وَلِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْقُدْرَةِ وَهِيَ بِالْعِلْمِ اوځکه چې د قدرت کیدل ضروري دي.او قدرت به د علم په ذریعه وي. «وَمِنَ الْاِعْتِمَادِ عَلَى قَوْلِهِ وَهُوَ بِالْأَمَانَةِ او دده په قول باندې اعتماد ضروري دې.او دا به د امانت په ذریعه کیږي.

**تشریح:-** خو په دې زمانه کې قاضي هم بدنیته وي.نو دا کار د بادشاه حواله کول پکار دي.چه هم هغه د هرکس تنخواه مقرر کړي.او قطعي طور باندې داسې اسباب پیدا کړي.چه هغې سره حکام (افسران) د عوامو نه هیڅ رشوت وانخستلې شي.او د مخکې زمانې خلګ به حق پرست وو.خاص کر قاضي به یو متقي، پرهیزګاره سړې وو.او د شریعت حکم به ئې ورکولو.چه د جهنم او د آخرت د عذاب د یرې به ئې رشوت وغیره اړخ ته خیال هم نه کولو.بلکه د شریعت مطابق به ئې په ټولو کارونو کې فیصله کوله.د دغه ډول بادشاهانو او قاضیانو د عدل (او انصاف) په وجه بادشاهئ روښانه وې.او د هغوی د یوې ورځې عدل دعبادت کونکودواړه کال عبادت پورته وو.اواوس دا خبره پاتې نشوه.د دې امله علامه مرغیناني رحمه الله په دې عبارت کې فرمایي چې

په قاضي کې ددې دریو صفاتو کیدل ضروري دي.چه عادل وي.امانت دار وي.او د ویش د مسئلو نه خبر وي.ځکه چې ویش هم یو ډول قضاء ده.نو د قاضي صفات په ده کې هم کیدل پکار دي.او د ویش لپاره په دې باندې قدرت ضروري دې.او قدرت به علم سره راځي.او دده په قول باندې اعتماد ضروري دې.او اعتماد به هغه وخت وي.کله چې دې عادل او امانت دار وي.

## قاضي به په یو تقسیمونکي خلق نه مجبوروي

وَلَا يُجْبِرُ الْقَاضِي النَّاسَ عَلَى قَاسِمٍ وَاحِدٍ) او قاضي دې خلګ په یو تقسیمونکي نه مجبوره وي. مَعْنَاهُ لَا يُجْبِرُهُمْ عَلَى أَنْ يَسْتَأْجِرُوهُ ددې مطلب دا دې.چه هغوی دې نه مجبوره وي.په دې خبره چې هغوی هم دې اجیر مقرر

کړي. لِأَنَّهُ لَاجَبْرَ عَلَى الْعُقُودِ، ځکه چې عقدونو باندې جبر نشي کيدي وَلِأَنَّهُ لَوْتَعَيَّنَ لَتَحَكَّمَ بِالزِّيَادَةِ عَلَى أَجْرِ مِثْلِهِ او ځکه که هم دې متعين کړې شو.نو دې به زبردستي کوی.په زياتوالی سره پخپل اجر مثل باندې.

**حل اللغة:** ① لايجبر: نشي مجبوره کولې ② العقود: جمع د عقد،معامله

**تشريح:-** يعنی قاضی به خلګ نه مجبوره کوی.چه هم په دې تقسيمونکی ويش اوکړی.ځکه چې دا په عقد کاوه باندې زبردستی ده.حالانکه عقدونو کې زبردستی نه چليږی.او که قاضی يوکس متعين کړی.نو هغه به د خلګو نه زيات اجرت اخلی.اودا به ګنړی.چه زما نه علاوه خو بل څوك تقسيمونکې هسې هم نشته.

## پخپل اتفاق او اتحاد سره د تقسيمولو حکم

وَلَوِاصْطَلَحُوا فَاقْتَسَمُوا جَازَ او که شريکان اتفاق اوکړی.نو پخپل مينځ کې ويش اوکړی.نو جائز ده. إِلَّا إِذَا كَانَ فِيهِمْ صَغِيرٌ فَيُحْتَاجُ إِلَى أَمْرِ الْقَاضِي خو کله چې هغوی کې څوك ماشوم وی.نو دقاضی فيصلې ارخ ته به حاجت پيښيږی. لِأَنَّهُ لَاوِلَايَةَ لَهُمْ عَلَيْهِ ځکه چې هغوی (شريکانو) ته ولايت نشته.

**تشريح:-** که شريکان پخپله اتفاق سره ويش کړی.نو جائز ده.خو که په دوی کې څوك ماشوم وی.او د هغه پلار يا وصی نه وی.نو بيا د قاضی دفيصلې حاجت راپيښيږی.ځکه چې شريکانو ته په بچی باندې ولايت نشته.او د قاضی ولايت عام دې.که د ماشوم نائب وی.نو بيا به دقاضی فيصلې ته حاجت نه راپيښيږی.

## د مشترك ويش کونکو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. (وَلَايَتْرُكُ الْقُسَّامَ يَشْتَرِكُونَ) او نه به پريږدی تقسيمونکی، چې هغوی شرکت اوکړی. كَيْ لَاتَصِيرَ الْأُجْرَةُ غَالِيَةً بِتَوَاكُلِهِمْ، چې اجرت اوچت (ګران) نشی.ددوی د اتفاق کاوه په وجه. وَعِنْدَ عَدَمِ الشَّرِكَةِ يَتَبَادَرُ كُلٌّ مِنْهُمْ إِلَيْهِ اود شرکت نه کيدو په وخت به دوی کې هر يو ويش ارخ ته راوړاندې کيږی. خِيفَةَ الْفَوْتِ فَيَرْخُصُ الْأَجْرُ د (اجرت) فوت کيدو په يره،نو اجرت به ارزان وی.

**حل اللغة:** ① غالية: زيات ② تواكل: اتفاق او اتحاد ③ يتبادر: جلتی کوی

**تشريح:-** واړه تقسيمونکی يو ځائې شی.او تقسيمول نه کوی.نو په دوی دې قاضی پابندی اولګوی.ګنی واړه به اتفاق اوکړی.چه دومره اجرت به وی.نو اجرت به ګران شی.او کله چې ددوی شرکت نه وی.نو هر يو به رامنډې وهی.چه چرته بل تقسيمونکی پسې لاړ نشی.نو په طريقه به اجرت کم وی.

فائده* دلته د هدايه په مروجه نسخو کې ،،قال،، دې.د فتح القدير په نسخه کې دلته ،،قال،، نشته.

## د ويش کونکی د اجرت حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَأُجْرَةُ الْقِسْمَةِ عَلَى عَدَدِ الرُّءُوسِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله [1]) او د ويش اجرت به د روؤسو(د ويش کونکو افرادو) دعدد مطابق وی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز،

**تشريح:-** د تقسيمونکی اجرت به په کوم حساب سره ورکولې شی.کله چې ديو کس برخه کمه وی.او د بل زياته وی؟ نو وې فرمائيل.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله نيز چې څومره سړی دی.په هغوی به برابر اجرت وی.د برخو د کمی زياتی لحاظ به نشی کولې.

وَقَالَا عَلَى قَدْرِ الْأَنْصِبَاءِ فرمائيلی دی امام ابويوسف او امام زفر رحمهما الله، چې د برخو د مقدار مطابق به وی. لِأَنَّهُ مُؤْنَةُ الْمِلْكِ فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهِ ځکه چې اجرت د ملکيت مشقت دې.نو اجرت به په اندازه د ملك وی.

**حل اللغة:** ① الانصباء: جمع د نصيب،حصه

[1] القول الراجح هوهذا قول الإمام أبوحنيفة رحمه الله كذا فى الدرالمنتقى (١٢٦/٤) وملتقى الأبحر (١٢٦/٤) وردالمحتار (١٨٠/١٥) ونصب (٢٦٦/٥) نقلاً عن القول الراجح (٢٧٧/٢)_



**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه څومره برخه وی.د هغې مطابق به اجرت وی.ځکه چې اجرت دلته د ملکيت د بار خرڅه ده.نو څومره چې دچا ملکيت وی.هغومره به په هغه اجرت وی.مثلاً په يوکور کې د زيد برخه نيمه ده.او د بکر دريمه برخه ده.او دخالد شپږمه ده.هغوی دا ويش کړو.چه ددې اجرت دولس روپۍ مقرر شو.نو د امام صاحب رحمه الله په نيز هر يو باندې درې درې روپۍ شوې.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز زيد باندې شپږ روشيدې، اوبکر باندې څلور روشيدې، اوخالد باندې دوې (دوه) روپۍ شوې.ځکه چې ملکيت هم په دې حساب سره دې.

كَأُجْرَةِ الْكَيَّالِ وَالْوَزَّانِ وَحَفْرِ الْبِئْرِ الْمُشْتَرَكَةِ وَنَفَقَةِ الْمَمْلُوكِ الْمُشْتَرَكِ لکه د ناپ کونکی او وزن کونکی اجرت او د مشترك کوهی کنستونکی اجرت او د مشترك غلام نفقه (خرڅ خوراکه).

**تشريح:-** بيا صاحبينو رحمهما الله يو څو مثالونه پيش کړی دی.چه په دې کې اجرت په اندازه د ملك دې① کله چې شريکانو څوك اجير جوړ کړو.چه ددوی سامان ناپ کړی.يا ئې اوتلی.نو بالاتفاق به اجرت په اندازه د ملك وی.② مشترك څاه ئې په اجرت باندې اوکنستلو.نو د ملك په اندازه به د کوهی کنستونکی اجرت واجب وی.③ د دوو سړو په مينځ کې يو غلام مشترك دې.چه هغه ته د نفقې اړتيا دې.نو نفقه به په اندازه د ملك واجب وی.

## د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل

لِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ الْأَجْرَ مُقَابَلٌ بِالتَّمْيِيزِ، او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه اجرت د جلا کاوه بدل دې. وَأَنَّهُ لَا يَتَفَاوَتُ، وَرُبَّمَا يَصْعُبُ الْحِسَابُ بِالنَّظَرِ إِلَى الْقَلِيلِ اوجدا کول مختلف نه دی. او بعضې وخت حساب مشکل وی.لږ ارخ ته نظر کاوه سره، وَقَدْ يَنْعَكِسُ الْأَمْرُ اوکله ددې په عکس وی. فَيَتَعَذَّرُ اعْتِبَارُهُ فَيَتَعَلَّقُ الْحُكْمُ بِأَصْلِ التَّمْيِيزِ نو ددې اعتبار متعذر شو.نو حکم به اصل جلا کاوه سره متعلق وی.

**حل اللغة:** ① التمييز: تميز کول توپير کول ② يصعب: ګرانيږی ③ ينعكس: اپوټه کيږی په عکس کيږی ④ التراب: خاوره

**تشريح:-** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل فرمائی.①چه په ويش کې د هريو کس برخه جلا کولې شی.نو لکه څنګه چې لږ د زيات نه جلا کولې شی.هم دغه ډول زيات د لږ نه جلا کولې شی.نو بيا د کم او زيات جلا کول برابر شو.نو اجرت به هم برابر وی.② او دغه ډول کله وړه برخه حساب مشکل جوړه وی.او کله ددې په عکس کيږی.نو اصل مدار په جلا کاوه شو.چه په دې کې توپير نشته.

بِخِلَافِ حَفْرِ الْبِئْرِ لِأَنَّ الْأَجْرَ مُقَابَلٌ بِنَقْلِ التُّرَابِ وَهُوَ يَتَفَاوَتُ په خلاف دکوهی کنستلو، ځکه چې اجرت د خاورې منتقل کاوه بدل دې.او خاوره منتقل کول (د زياتوالی او کموالی په وجه) مختلف وی.

**حل اللغة:** ① حفر: کنستل ② البئر: څاه ③ التراب: خاوره ④ يتفاوت: مختلف کيږی

**تشريح:-** پاتې شوه مسئله د کوهی کنستو نو د هغې خبره جلا ده.ځکه چې هلته اجرت د خاورې راويستلو ورکولې شی.او دلته د لږ او زيات په مينځ کې توپير دې.مثلاً اوبه راو وتلې په شل ګزه باندې، او د يوکس برخه ۳۱۴ ده.او د بل برخه ۱۱۴ ده.نو د يو په ذمه به د پنځلسو ګزونو کنستو اجرت وی.او د بل په ذمه به د پنځو ګزو کنستلو اجرت وی.ځکه ښکاره ده.چه پنځلس ګزه کنستل، د پنځو ګزو کنستلو نه زيات مشکل دی.بهرحال په کوهی کنستلو کې دکموالی او زياتوالی په اعتبار سره فرق دې.نو په اجرت کې به هم توپير وی.په خلاف د مخکنۍ مسئلې چې هلته مقصد جلا کول دی.

## د صاحبينو رحمهما الله د قياس جواب

وَالْكَيْلُ وَالْوَزْنُ إِنْ كَانَ لِلْقِسْمَةِ اوکيل او وزن که د ويش لپاره وی. قِيلَ هُوَ عَلَى الْخِلَافِ ونيلی شوی دی.چه هغه هم په دې اختلاف دی.

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله دا د كيل او وزن په مسئله باندې قياس كړې وو. نو د هغې ځواب ئې وركړو. چه كيل او وزن په دوې (دوه) قسمه دي. د ويش لپاره به وي. يا به د ويش لپاره نه وي. په ړومبۍ صورت كې بيا هم هغه مخكنې اختلاف دې. يعنى د امام صاحب رحمه الله په نيز اجرت د شريكانو د شمير مطابق دې. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز دلته په اندازه د ملك دې. نو په دې مسئله به قياس صحيح نه وي. ځكه چې دا د امام صاحب رحمه الله په نيز مقبول نه ده.

**وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لِلْقِسْمَةِ فَالْأَجْرُ مُقَابَلٌ بِعَمَلِ الْكَيْلِ وَالْوَزْنِ وَهُوَ يَتَفَاوَتُ** او كه د ويش لپاره نه وي. نو اجرت د كيل او وزن د عمل مقابل دې. او دا عمل متفاوت كيږي.

**تشريح:-** او كه كيل او وزن د ويش لپاره نه وي. بلكه د مكيل او موزون مقدار معلومولو لپاره وي. نو بيا به اجرت په اندازه د ملك وي. ځكه چې دلته اجرت د كيل او وزن بدل دې. او په دې كې د كم او زيات په اعتبار سره تفاوت دې. مثلاً زيد او بكر د غلې يو ډيرې واخستلو. د يو برخه ١١٣ ده. او د بل برخه ٢١٣ ده. اوس غواړي چه ددې وزن معلوم كړي. تقسيمول ئې مقصود نه دي. نو اجرت به هم په دې حساب سره وي. په يو به ١١٣ او په دوهم به ٢١٣ وي. په «سكب الانهر ص٤١٩ ج٢ باندې د امام صاحب رحمه الله قول ته صحيح وئيلى شوى دى. او فرمائيلى ئې دي. «لأن المعقود عليه التميز لا غير كما في المضمرات»

## د مطلق په صورت كښې څه حكم دې ؟

**وَهُوَ الْعُذْرُ لَوْ أُطْلِقَ وَلَا يُفَصَّلُ** او هم دا عذر دې. كه مطلق اووئيلې شي. او تفصيل بيان نكړې شي.

**تشريح:-** يعنى كه په كيل كاوه او وزن كاوه باندې د اجرت اخستلو په وخت دا خبره مقرر نشوه. نو اوس به څه كيږي. اجرت به كوم حساب سره واجب وي؟ نو فرمائي. چه دلته دا عذر دې. چه په لړ او زيات كې په ښكاره تفاوت دې. يعنى د زيات مقدار په كيل كې مشقت زيات دې. نو په زياتې برخې (حصې) والا باندې به اجرت زيات وي. نو دا ئې اوفرمائيل. چه د اطلاق يعنى د عدم تفصيل په وخت د ملك په اندازه چې كوم حساب ايخودې شوې دې. هغه د عذر په وجه دې. چه تعين نشته. او په ښكاره عمل كې تفاوت دې. چه دا اجرت كې د تفاوت تقاضه كوي.

## د امام صاحب رحمه الله دوهم روايت

**وَعَنْهُ أَنَّهُ عَلَى الطَّالِبِ دُونَ الْمُمْتَنِعِ** او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې. چه اجرت په طالب باندې دې. په انكار كونكى باندې نه دې. **لِنَفْعِهِ وَمَضَرَّةِ الْمُمْتَنِعِ** د طالب د نفعې په وجه، او د ممتنع د نقصان په وجه.

**حل اللغة:** ① **مضرة:** ضرر، نقصان ② **الممتنع:** ناجائز، منع شوې

**تشريح:-** دا د امام صاحب رحمه الله نه دوهم روايت دې. چه چا مطالبه اوكړله. صرف هغه باندې اجرت واجب دې. او څوك چې د ويش نه منكر دې. هغه باندې واجب نه دې. ځكه چې د طالب خواهش پوره شو. نو د هغه نفع هغه ته اورسيدله. او منكر ته نقصان اورسيدو. نو د منفعت مطابق په طالب باندې تاوان راوستل پكار دى. خو دا په هغه صورت كې كيداې شي. چه بعض نفر د ويش درخواست اوكړي. او بعضې انكار اوكړي. كنى كه واړه درخواست اوكړي. نو بيا به ځواب دا وي. چه اجرت به په ټولو باندې برابر وي. يا به په اندازه د ملك وي... كما مر.. نو لنډيز دا شوه. چه د كيل او وزن په صورت كې د اصح قول مطابق به بالاجماع اجرت په اندازه د برخو وي. «كذا فى سكب الانهر» او د زمكې وغيره په صورت كې د امام صاحب رحمه الله په نيز برابر او د صاحبينو رحمهما الله په نيز په اندازه د حصو.

## د شريكانو د ميراث دعوه. او د قاضى نه د ويش مطالبه كول

**قَالَ** امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل. ..(**وَإِذَا حَضَرَ الشُّرَكَاءُ عِنْدَ الْقَاضِي**) او كله چې قاضى ته شريكان حاضر شي.



**وَفِي أَيْدِيهِمْ دَارٌ أَوْ ضَيْعَةٌ** او ددوى په قبضه كې كور يا مځكه وي **وَادَّعَوْا أَنَّهُمْ وَرِثُوهَا عَنْ فُلَانٍ**. او هغوى دعوه اوكړله. چه هغوى دا د فلانى نه ميراث كې اخستې ده. **لَمْ يَقْسِمْهَا الْقَاضِي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به قاضى دا نه تقسيموى **حَتَّى يُقِيمُوا الْبَيِّنَةَ عَلَى مَوْتِهِ وَعَدَدِ وَرَثَتِهِ** ترڅو چې هغوى دده په مرګ او دده د وارثانو په تعداد باندې ګواهان قائم كړي.

**حل اللغة:** ① **دار:** كور ② **ضيعة:** مځكه ③ **العقار:** مځكه

**تشريح:-** شريكان قاضى ته حاضر شى. او دا دعوه اوكړي. چه دا د فلانى ميراث دې. موږ ته ملاو شوې دې. او د ويش مطالبه اوكړي. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ګواهان قائمول ضرورى دى.

**وَقَالَ** او صاحبين رحمهما الله فرمائى. **صَاحِبَاهُ: يَقْسِمُهَا بِاعْتِرَافِهِمْ** چې دا به ددوى د اقرار مطابق تقسيموى. **وَيَذْكُرُ فِي كِتَابِ الْقِسْمَةِ** او د ويش په رجسټر كې به ئې ليكى **أَنَّهُ قَسَمَهَا بِقَوْلِهِمْ** چه ده دا ددوى د قول مطابق ويش كړې ده.

**تشريح:-** او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به د ګواهانو قائمولو نه بغير ددوى د اقرار مطابق ويش كولې شى. البته قاضى به دا يادداشت لپاره د ويش په رجسټر كې دا ليكى. چه دا ويش ددوى د قول مطابق شوې دې. كه بل څوك شريك راوځى. چه د هغه د نقصان اونشى.

**وَإِنْ كَانَ الْمَالُ الْمُشْتَرَكُ مَا سِوَى الْعَقَارِ** او كه مشترك مال د زمكې نه علاوه (د بل څه منقوله څيز) وى **وَادَّعَوْا أَنَّهُ مِيرَاثٌ**. او هغوى دعوه اوكړي. چه دا ميراث دې **قَسَمَهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا** نو قاضى به ددوى د ټولو د قول مطابق دا تقسيموى.

**تشريح:-** په دې عبارت كې دوهم صورت بيانوى كه د زمكې نه علاوه په منقوله څيزونو كې د يو شئ په اړه كې هم دا دعوه اوكړي. او د ويش مطالبه اوكړي.

**وَلَوِ ادَّعَوْا فِي الْعَقَارِ** او كه هغوى د زمكې په اړه كې دعوه اوكړي **أَنَّهُمُ اشْتَرَوْهُ قَسَمَهُ بَيْنَهُمْ**) چه هغوى دا اخستې ده. نو قاضى به دا ددوى په مينځ كې تقسيموى.

**تشريح:-** په دې عبارت كې دريم صورت بيانوى يعنى مسئله هم د زمكې ده. خو په ميراث كې د ملاويدو دعوه نه وى. بلكه د اخستلو دعوه وى.

نو په آخرى دواړو مسئلو كې زموږ د ثلاثه عالمانو اتفاق دې. چه دوى كې د ګواهانو قائمولو حاجت نشته. بلكه د ګواهانو قائمولو نه بغير به قاضى دا تقسيموى. او ړومبۍ مسئله اختلافى ده.

## د صاحبينو رحمهما الله دليل

**لَهُمَا** د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې **أَنَّ الْيَدَ دَلِيلُ الْمِلْكِ وَالْإِقْرَارَ أَمَارَةُ الصِّدْقِ وَلَا مُنَازِعَ لَهُمْ**. چه قبضه د ملك دليل دې. او اقرار د صدق علامت دې. او ددوى څوك منازع (مقابل) نشته. **فَيَقْسِمُهُ بَيْنَهُمْ** نو قاضى به دا ددوى په مينځ كې تقسيموى. **كَمَا فِي الْمَنْقُولِ الْمَوْرُوثِ وَالْعَقَارِ الْمُشْتَرَى** لكه په موروث منقول كې، او په اخستې شوې مځكه كې، **وَهَذَا لِأَنَّهُ لَا مُنْكِرَ وَلَا بَيِّنَةَ إِلَّا عَلَى الْمُنْكِرِ فَلَا يُفِيدُ** او دا ځكه چې څوك منكر نشته. او ګواهان صرف په منكر باندې قائمولې شى. نو ګواهان قائمول به مفيد نه وى. **إِلَّا أَنَّهُ يَذْكُرُ فِي كِتَابِ الْقِسْمَةِ** خو قاضى به د ويش په رجسټر كې ليكى، **أَنَّهُ قَسَمَهَا بِإِقْرَارِهِمْ**. چه قاضى دا ددوى د اقرار موافق ويش كړې **لِيَقْتَصِرَ عَلَيْهِمْ** چې ويش هم په دوى باندې محدود پاتې شى **وَلَا يَتَعَدَّاهُمْ**. او ددوى نه متعدى نشى.

**حل اللغة:** ① **يقتصر عليهم:** په دوى پورې به خاص وى ② **لا يتعداهم** د دوى څخه به بل چاته تجاوز نه كوى

**تشريح:-** دا د صاحبينو رحمهما الله دليل دې. ددې حاصل دا دې. چه مځكه د شريكانو په قبضه كې ده. چه دا د ملك دليل دې. او ددوى اقرار ددوى د صدق علامت دې. او هيڅ څوك ددوى په دعوه كې مخالف نشته. نو لكه

ځنګه چې په دوهم او دريم صورت كې د ګواهانو قائمولو نه بغير ويش شوې دې.دغه ډول به دلته كې هم كول پكار وى.ځكه چې د ګواهانو قائمولو اړتيا د منكر خلاف راپيښيږى.او دلته څوك منكر نشته.نو ګواهان قائمول به عبث وى.په دې وجه به قاضى د ګواهانو قائمولو نه بغير تقسيموى.خو ويش به په كاغذونو (رجسټر) كې ليكى.چه ما دا ويش ددوى په اقرار باندې كړې دې.چه دا ويش هم ددوى حده پورې محدود پاتې وى.او كه اتفاق سره بل څوك شريك وى.هغوى پورې متعدى نشى.

تنبيه: د ويش دوې (دوه) قسمونه دى(1)ويش بالبينه(2) ويش بالاقرار— ړومبې به غير اړخ ته متعدى وى.او دوهم به غير اړخ ته متعدى نه وى.كه ويش اقرار سره شوې وى.او د مړى ام ولد او دده مدبر د آزادۍ دعوه اوكړله.نو قاضى به ددوى د آزادۍ فيصله نه كوى.تركومه پورې چې دا دواړه د مولا په مرګ باندې ګواهان قائم نكړى.ځكه چې دا ويش بالاقرار دې.چه دا غير اړخ ته نه متعدى كيږى.او كه د ويش بالبينه صورتى وى.او ام ولد او مدبر د آزادۍ دعوه اوكړله.نو قاضى به په دوى باندې د مولا په مرګ باندې ګواهان قائمول نه لازمى كوى.بلكه د ګواهانو قائمولو نه بغير به ددوى د آزادۍ فيصله وركوى.ځكه چې دا ويش غير اړخ ته متعدى كيږى.نو مرغينانى رحمه الله چه دا اوفرمائيل. «ليقتصر عليهم ولا يتعداهم» ددې مطلب هم دا دې.چه دا ويش بالاقرار دې.چه دا هم دوى پورې محدود دې.ددوى نه علاوه پورې نه متعدى كيږى.په دې وجه به قاضى د ويش په كاغذاتو كې درج كوى.چه دا ويش بالاقرار دې.يعنى قسمت بالبينه نه دې.

## د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل

وَلَهُ و د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې أَنَّ يُقَسِّمَ قَضَاءً عَلَى الْمَيِّتِ.چه دا ويش قضاء على الميت دې. إِذِ التَّرِكَةُ مُبْقَاةٌ عَلَى مِلْكِهِ قَبْلَ الْقِسْمَةِ كله چې تركه د ويش نه وړاندې د مړى په ملك باندې پاته پاتې وى. حَتَّى لَوْ حَدَثَتِ الزِّيَادَةُ تردې كه زياتوالې اوموندې شو قَبْلَهَا تُنْفَذُ وَصَايَاهُ فِيهَا وَتُقْضَى دُيُونُهُ مِنْهَا .نو په دې زياتوالى كې به د مړى وصيتونه نافذ كيږى.او په دې سره به دده پور ادا كولې شى. بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْقِسْمَةِ په خلاف د ويش نه روستو، وَإِذَا كَانَتْ قَضَاءً عَلَى الْمَيِّتِ اوهركله چې دا ويش قضاء على الميت دې. ،فَالْإِقْرَارُ لَيْسَ بِحُجَّةٍ عَلَيْهِ نو اقرار به په مړى باندې حجت نه وى ،فَلَا بُدَّ مِنَ الْبَيِّنَةِ.نو د ګواهانو كيدل به ضرورى وى.

**حل اللغة** (1) **تقضى**: ادا كولې به شى (2) **ديون**: جمع د دين ده پور (3) **حجة** :دليل (4) **الميت**: مړې (5) **مبقاة**: پاته پاتې كيدونكې

**تشريح**:- دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه تركومه پورې د مړى تركه ( ميراث) ويش نكړې شى.هغه وخته پورې دا دمړى ملك دې.نو هركله چې دا تر اوسه پورې د مړى ملك شو.نو د قاضى فيصله به قضاء على الميت وى.او چونكه اقرار محدود حجت دې.چه دا په مړى باندې حجت نشى كيدې.په دې وجه به ګواهان قائمول ضرورى وى.چه د هغې په بنا (بنياد) قضاء على الميت اوكړې شى.

(2) او ددې خبرې دليل چې تركه ( ميراث) د ويش نه وړاندې د مړى ملك دې؟ دا دې چې كه مړى چا لپاره د وينځې وصيت كړې وى.او د موصى د مرګ نه روسته د ويش نه وړاندې بچې پيدا شو.نو په دې بچى كې به هم وصيت جارى كيږى.دغه ډول به داسې زياتوالى سره د مړى تركه ادا كولې شى.ددې نه ثابته شوه.چه د ويش نه وړاندې د مړى ملك برقرار ( پاته پاتې) دې.

## د صاحبينو رحمهما الله د دليل جواب

وَهُوَ مُفِيدٌ،اودا( بينه قائمول) مفيد دى. لِأَنَّ بَعْضَ الْوَرَثَةِ يَنْتَصِبُ خَصْمًا عَنِ الْمُوَرِّثِ. ځكه چې بعضې وارثان به د موروث د اړخه خصم مقرروليې شى. وَلَا يَمْتَنِعُ ذَلِكَ او دا ممتنع نه ده بِإِقْرَارِهِ .دده د اقرار په وجه، كَمَا فِي الْوَارِثِ أَوِ الْوَصِيِّ الْمُقِرِّ بِالدَّيْنِ لكه ځنګه چې په وارث يا دده په وصى كې د پور اقرار كونكې وى. فَإِنَّهُ يُقْبَلُ الْبَيِّنَةُ عَلَيْهِ



چې دده ( يعنى د قرضخواه) ګواهان په هغه ( په وارث يا وصى) باندې قبلولې شى مَعَ إِقْرَارِهِ. دهغه ( يعنى د وارث يا وصى) د اقرار باوجود.

**حل اللغة** (1) **ينتصب**: ولاړيږى ،اودريږى (2) **الدين**: پور

**تشريح**:- صاحبينو رحمهما الله فرمائيلى وو.چه دلته ګواهان قائمول مفيد نه دى.بلكه عبث دى.د هغې ځواب وركوى.چه ګواهان قائمول دلته مفيد دى.ځكه چې شريكانو كې به يو كس دلته د مړى نائب جوړولې شى.او دوهم به دهغه خصم جوړولې شى.چه اوس قاضى فيصله اوكړې شى.

(2) او د دواړو داقرار باوجود چې يو په كې خصم جوړولې شى نو ددې مطلب او فائده دا ده چې د اقرار باوجود هم سړې خصم جوړيدې شى.لكه چې د يو مړى څوك وارث يا وصى وى.او چا په مړى باندې د خپل پور دعوه اوكړله.او وارث يا وصى ددې اقرار اوكړو.خو قرضخواه غواړى.چه بيا هم د قاضى په وړاندې خپله دعوه باندې ګواهان پيش كړم.چه خبره نوره هم پخه شى.نو د هغه بينه به قبلولې شى.نو اوګورئ.چه دلته اقرار كونكې وارث يا وصى موجود دې.بيا هم ګواهان قائمول ممتنع نه دى.دغه ډول اګرچه د دواړو وارثانو يوه دعوه او يو اقرار وى.ددې اقرار باوجود خصم جوړول ممتنع نه دى.هركله چې خصم جوړول ممتنع نشو.نو ګواهان قائمول مفيد كيدل ثابت شو.ځكه چې ګواهان د خصم په مقابله كې پيش كولې شى.او دا صورت دلته موجود دې.

## د صاحبينو رحمهما الله د قياس جواب

بِخِلَافِ الْمَنْقُولِ په خلاف د منقول، لِأَنَّ فِي الْقِسْمَةِ نَظَرًا لِلْحَاجَةِ إِلَى الْحِفْظِ ځكه چې ويش كې شفقت دې. ساتنه اړخ ته د حاجت په وجه، أَمَّا الْعَقَارُ فَمُحَصَّنٌ بِنَفْسِهِ، بهرحال مځكه پخپله محفوظه ده. وَلِأَنَّ الْمَنْقُولَ مَضْمُونٌ او ځكه چې منقول مضمون دې عَلَى مَنْ وَقَعَ فِي يَدِهِ، .په هغه كس د چا په قبضه كې چې دا واقع شوې ده. وَلَا كَذَلِكَ الْعَقَارُ عِنْدَهُ او مځكه داسې نه ده.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز.

**تشريح**:- صاحبينو رحمهما الله ړومبې صورت په دوهم او دريم صورت باندې قياس كړې دې.د هغې ځواب وركوى .چه دا قياس صحيح نه دې.ځكه (1) چې په منقول شئ كې د ساتنه حاجت وى.په خلاف د زمكې، ځكه چې دا خو پخپله محفوظه وى.(2) دويمه وجه دا هم ده.چه منقول شئ دچا په قبضه كې راځى.ددې به هغه ضامن وى.نو په دې كې د مړى لپاره شفقت دې.او مځكه چې د چا په قبضه كې وى.هغه به ددې ضامن نه وى.په دې وجه امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل.چه د زمكې غصب نه ثابتيږى .بهرحال ددې بحث نه معلومه شوه.چه د زمكې مسئله په منقول باندې قياس كول صحيح نه دى.

وَبِخِلَافِ الْمُشْتَرِي لِأَنَّ الْمَبِيعَ لَا يَبْقَى عَلَى مِلْكِ الْبَائِعِ او په خلاف د مشترى، ځكه چې مبيع د بائع په ملكيت باندې برقرار(اوباقى) نه پاتې كيږى. وَإِنْ لَمْ يُقْسَمْ اګرچه ويش نكړې شى فَلَمْ تَكُنِ الْقِسْمَةُ قَضَاءً عَلَى الْغَيْرِ.نو ويش قضاء على الغير نشوه.

**تشريح**:- او پاتې شوه د اخستلو مسئله، نو چونكه كله بائع يو شئ خرڅ كړو.نو اوس هغه ددې مالك پاتې نشو. اګرچه اخستونكو پخپل مينځ كې اوسه پورې ويش نه وى كړې.نو دلته به قضاء على الغير نه لازميږى .او په ړومبى صورت كې به قضاء على الميت لازميږى.په دې وجه آخرى دواړه مسئلې په ړومبئ مسئله باندې قياس كول، قياس مع الفارق دې.

## د شريكانو د ملك سبب نه خودلو سره د ويش د مطالبې حكم

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل. كړى وَإِنِ ادَّعَوُا الْمِلْكَ وَلَمْ يَذْكُرُوا كَيْفَ انْتَقَلَ إِلَيْهِمْ او كه دوى د ملك دعوه اوكړله.او دوى دا ذكر نكړل.چه دوى اړخ ته دا ځنګه منتقل شوه. قَسَمَهُ بَيْنَهُمْ نو قاضى به دا ددوى په مينځ كې

تقسيموي. لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي الْقِسْمَةِ قَضَاءٌ عَلَى الْغَيْرِ ځکه چې دې ویش کې قضاء علی الغیر نشته. فَإِنَّهُمْ مَا أَقَرُّوا بِالْمِلْكِ لِغَيْرِهِمْ ځکه چې دوی د ځان نه علاوه لپاره د ملك اقرار نه دې قَالَ: هَذِهِ رِوَايَةُ كِتَابِ الْقِسْمَةِ مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه دا د مبسوط د کتاب القسمت روایت دی.

تشریح:- شریکان قاضي ته حاضر شي. او د ویش دعوه اوکړي. او دا او نه ښائي. چه دا مځکه دوی ته څنګه ملاو شوې ده. نو چونکه دوی د هیڅ چا لپاره د مځکنی ملکیت اقرار نه دې کړې. چه دې سره قضاء علی الغیر لازمیږي. په دې وجه به قاضي ددوی په مینځ کې دا مځکه تقسیموي. اوس مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه دا د مبسوط د کتاب القسمت روایت دې. او د جامع صغیر روایت ددې په عکس دې. چه هغې کې د ګواهانو قائمولونه بغیر ویش ممنوع دې.

## د دوو سړو د زمکې دعوه کول او ګواهانو قائمولو سره د ویش حکم

(وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: او جامع صغیر کې دی. أَرْضٌ ادَّعَاهَا رَجُلَانِ یوه مځکه ده. چه ددې په اړه کې دوو سړو دعوه اوکړله. وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ أَنَّهَا فِي أَيْدِيهِمَا او دوی دواړو ګواهان قائم کړل. او دا ددوی په قبضه کې ده. وَأَرَادَا الْقِسْمَةَ او دواړو د ویش اراده اوکړله. لَمْ يَقْسِمْهَا حَتَّى يُقِيمَا الْبَيِّنَةَ أَنَّهَا لَهُمَا) نو قاضي به دا نه تقسیموي. تردې چې دواړه ګواهان قائم کړي. په دې خبره چې مځکه ددوی دواړو ده. لِاحْتِمَالِ أَنْ يَكُونَ لِغَيْرِهِمَا ددې خبرې د احتمال په وجه چې هغه ددوی نه د غیر کس وی.

تشریح:- د جامع صغیر روایت نه معلومه شوه. چه ګواهان قائمول ضروري دي. اوس روستو مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه دا د چا قول دې. نو فرمائي.

## د مذکوره قول توجیه او د ویش اقسام

ثُمَّ قِيلَ هُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ بیا وئیلی شوی دی. چه دا خاص کر د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې. وَقِيلَ او وئیلی شوی دی قَوْلُ الْكُلِّ وَهُوَ الْأَصَحُّ. چه دا د ټولو قول دې. او هم دا زیاته صحیح ده.

تشریح:- یعنی په جامع صغیر کې چې کوم قول دې. د یو قول مطابق خو دا صرف د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې. او د دوهم قول مطابق دا د ثلاثه عالمانو قول دې. هم دا مرغیناني رحمه الله اصح ګرځولي دې.

لِأَنَّ قِسْمَةَ الْحِفْظِ فِي الْعَقَارِ غَيْرُ مُحْتَاجٍ إِلَيْهِ، ځکه چې مځکه کې حفاظتی ویش کې دې اړخ ته حاجت نشته. وَقِسْمَةُ الْمِلْكِ تَفْتَقِرُ إِلَى قِيَامِهِ او د ملك ویش د ملك قائمولو محتاج دې وَلَا مِلْكَ فَامْتَنَعَ الْجَوَازُ. او ملك نشته. نو جواز ممتنع شو.

تشریح:- په دې عبارت کې د ګواهان قائمولو په اړتیا باندې دلیل بانوی خود دلیل اوریدو نه وړاندې دا زده کړئ چې د ویش دوې (دوه) قسمونه دی ① ویش ددې لپاره کیږي. چه په دې کې دځیز ساتنه وی. دې ته قسمت الحفظ وائي. ② ویش ددې لپاره وی. چه هر یو ته دده ملکیت جلا ملاو شي. اوس اوګورئ. چه د زمکې دا مذکوره ویش که قسمت الحفظ اوګرځولې شي. نو دا هم غلط دی. ځکه چې مځکه خو پخپله محفوظ ده. نو په دې کې د حفاظتي ویش څه مطلب دې. او که دا قسمت الملك اوګرځولې شي. نو ددې لپاره د ملك د ثبوت اړتیا دې. او د ملکیت ثبوت نشته. نو بیا جواز د ویش ممتنع شو.

## د وارثانو په حاضریدو او ګواهانو قائمولو سره د ویش حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل. (وَإِذَا حَضَرَ وَارِثَانِ وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ عَلَى الْوَفَاةِ وَعَدَدِ الْوَرَثَةِ او کله چې دوې (دوه) وارثان حاضر شي. او د وفات او وارثانو په تعداد باندې ګواهان قائم کړي. وَالدَّارُ فِي أَيْدِيهِمَا او کور د هغوی په قبضه کې وی. وَمَعَهُمْ وَارِثٌ غَائِبٌ او هغوی سره څوك غائب وارث وی. قَسَمَهَا الْقَاضِي بِطَلَبِ الْحَاضِرِينَ نو



قاضي به دا د حاضرینو په مطالبه باندې تقسیموي وَيَنْصِبُ وَكِيلًا يَقْبِضُ نَصِيبَ الْغَائِبِ او یو وکیل به مقرر کوي. چه هغه د غائب په برخه باندې قبضه اوکړي.

تشریح:- که دوې (دوه) وارثان حاضر شو. او د مورث په وفات باندې او د وارثانو په تعداد باندې ئې ګواهان قائم کړل. او یو بل وارث هم دې. چه هغه غائب دې. او کور هم ددوی په قبضه کې دې. کوم چې موجود دی. نو قاضي به دا ددوی په مینځ کې ویش کړي. او غائب لپاره به یو وکیل مقرر کړي. چه دې د هغه په برخه باندې قبضه اوکړي.

وَكَذَا لَوْ كَانَ مَكَانَ الْغَائِبِ صَبِيٌّ وهم دغه ډول که د غائب په ځائې بچې وی يُقْسَمُ نو قاضي به ویش کوي. وَيَنْصِبُ وَصِيًّا يَقْبِضُ نَصِيبَهُ). او یو وصي به مقرر کوي. چه هغه به د بچي په برخه باندې قبضه کوي. لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لِلْغَائِبِ وَالصَّغِيرِ ځکه چې دې کې د غائب او صغیر لپاره شفقت دې. وَلَا بُدَّ مِنْ إِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ فِي هَذِهِ الصُّورَةِ عِنْدَهُ أَيْضًا او ضروري دی. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په دې صورت کې هم ګواهان قائمول، خِلَافًا لَهُمَا كَمَا ذَكَرْنَا مِنْ قَبْلُ په خلاف د صاحبینو رحمهما الله لکه څنګه چې مونږ ذکر کړی دی.

تشریح:- او که یو ماشوم وی. نو بیا هم دا حکم دې. او ماشوم لپاره به قاضي یو وصي مقرر کوي. چه هغه به دده په برخه باندې قبضه کوي. ځکه چې دې کې د ټولو رعایت دې. او د غائب او بچي لپاره د شفقت سبب دې. او د ګواهانو قائمولو مخکنې اختلاف کوم چې د امام صاحب او صاحبینو رحمهم الله په مینځ کې وو. هغه دلته هم شته.

## د یو مشتري په غیر موجودګئ کښې قاضي لپاره د ویش حکم

وَلَوْ كَانُوا مُشْتَرِينَ لَمْ يَقْسِمْ مَعَ غَيْبَةِ أَحَدِهِمْ او که دوی اخستونکي وی. نو قاضي به په دوی کې د یو کس په غائب کیدو سره نه تقسیموي. وَالْفَرْقُ أَنَّ مِلْكَ الْوَارِثِ مِلْكُ خِلَافَةٍ او توپیر دا دې. چه د وارث ملك، ملك د خلافت دې. حَتَّى يُرَدَّ بِالْعَيْبِ وَيُرَدَّ عَلَيْهِ بِالْعَيْبِ فِيمَا اشْتَرَاهُ الْمُوَرِّثُ تردې چې هغه به د عیب په وجه واپس کوي. او په هغه به دعیب په وجه واپس کولې شي. په هغه شئ کې کوم چې مورث (مړي) واخستلو. أَوْ بَاعَ وَيَصِيرُ مَغْرُورًا بِشِرَاءِ الْمُوَرِّثِ یا ئې خرڅ کړو. او دا اخستونکې به دهوکه کړې شوې ګرځي. په اخستلو د مورث نه. فَانْتَصَبَ أَحَدُهُمَا خَصْمًا عَنِ الْمَيِّتِ فِيمَا فِي يَدِهِ نو جوړیږي به یو کس ددوی دواړه نه خصم، د مړي د طرفه، د هغه شئ په سلسله کې کوم چې دده په قبضه کې دې. وَالْآخَرُ عَنْ نَفْسِهِ فَصَارَتِ الْقِسْمَةُ قَضَاءً بِحَضْرَةِ الْمُتَخَاصِمِينَ او دوهم به د خپل اړخه (خصم وی). نو شی به دا ویش قضاء (فیصله د قاضي)، د دوو متخاصمینو په موجودګئ کې. أَمَّا الْمِلْكُ الثَّابِتُ بِالشِّرَاءِ بهرحال هغه ملك کوم چې اخستلو سره ثابت دې. مِلْكٌ مُبْتَدَأٌ هغه ملك جدید دې. وَلِهَذَا لَا يُرَدُّ بِالْعَيْبِ عَلَى بَائِعِ بَائِعِهِ او هم په دې وجه به هغه د خپل بائع په بائع باندې نشي واپس کولې. فَلَا يَصْلُحُ الْحَاضِرُ خَصْمًا عَنِ الْغَائِبِ نو حاضر به د غائب د اړخه د خصم جوړیدو صلاحیت نه لري فَوَضَحَ الْفَرْقُ نو توپیر واضح شو.

حل اللغة: ① المغرور: دهوکه ورکړې شوې ② المتخاصمین: دوې (دوه) جګړه کونکی ③ مبتدا: د پیل نه، د اول نه

تشریح:- وړاندې درې مسئلې ذکر شوې وې. چه دهغې تفصیلي بیان تیر شوې دې. بیا په څلورم وار یوه عامه مسئله راغلې وه. چه دا میراث او اخستلو سره مقید نه وه. ددې بیان هم تیر شوې دې. بیا په پنځم وار باندې د میراث ذکر راغلې دې. چه په دې کې یو وارث غائب وو. چه هغې کې د تقسیمولو بیان شوې وو. ⑥ دا شپږمه مسئله ده. ددې تفصیلي بیان دا دې. چه دوې (دوه) نفر قاضي ته حاضر شو. او ددوی په قبضه کې یو کور وغیره دې. دعوه دعوه اوکړله. چه موږ دا کور د فلاني سړي نه اخستې دې. او موږ درې شریکان یو. په موږ کې یو غائب دې. او موږ ویش غواړو. نو آیا قاضي تقسیمولې شي؟ نو وې فرمائیل. که واره

موجود وي.نو قاضي به تقسيمولو.خو دلته به نه تقسيموي.اګرچه حاضر شوی شريکان په اخستلو باندي ګواهان هم قائم کړي.بيا به هم قاضي نه تقسيموي.

که څوك اعتراض اوکړي چې په اولنی صورت کي يعنی کله چې يو وارث غائب وی.نوهلته د ويش کاوه حکم ور کولای شي نو دلته په دې صورت کي د ويش نه انکار ولې کولای شي نو ددې نه ځواب دا دې چې په ړومبی صورت کي په شريکانو کي يوکس دمړی د اړخه خصم مقررولې شي.او دلته د نيابت هيڅ صورت نشته.بائع خو د مينځ نه بالکل خارج شوې دې.اوپه حاضر شريك کي هم دا صلاحيت نشته.چه دې د غائب شريك نائب او خليفه جوړ شي.نو دلته قضاء على الغائب لازميږي.او په ړومبی صورت کي قضاء على الغائب نشته.بلکه د متخاصمينو مخکي قضاء ده.

اوپاتې شوه دا خبرچه وارث د مورث خليفه دې نودا په طريقه چې دا خوښکاره خبره ده.چه د وارث ملکيت دخلافت په طريقه باندې دې.ددې ښکاره دليل دا دې.

① که مورث څه شئ واخستلو.اومړ شو.او وارث په دې کي څه عيب اوموندلو.نو د عيب په وجه دا په بائع باندې واپس کولې شي.② او دغه ډول که مورث څه شئ خرڅ کړو.او هغه وفات شو.او مشتری په دې کي څه عيب اوموندلو.نو په وارث باندې د عيب په وجه واپس کولې شي.③ او هم دغه ډول که مورث يوه وينځه واخستله.او مړ شو.او وارث دا أم ولد جوړه کړله.او بيا يوکس د استحقاق دعوه اوکړله.نو بچې به آزاد وی.او په وارث به د مستحق لپاره د بچی قيمت واجب وی.او د وينځې عقر(مهر)به واجب وی.بيا به وارث د بائع نه د بچی قيمت او د وينځې ثمن واپس اخلی.او عقر(مهر) به واپس نه اخلی.اوکه مورث پخپله ژوندې وې.نو هغه به هم دغه ډول کول.لکه څنګه چې دهغه په غير موجودګئ کي وارث کړی دی.

نو ددې نه معلومه شوه.چه د وارث ملکيت ملك د خلافت دې.نو د ميراث په مسئله کي دا صورت ثابت وو.چه دوی کي يوکس د هغه مال په سلسله کي کوم چې ددوی په قبضه کي دې.د مړی د اړخه خصم مقررکړې شي.او دوهم شريك د خپل اړخه د دوهم په مقابل کي خصم جوړ شي.په دې وجه دا صورت قضاء على الغائب نه جوړيږي.

اود اخستلو په صورت کي به قضاء على الغائب وی.په دې وجه ړومبی صورت جائز دې.او دوهم جائز نه دې.ځکه چې اخستلو کي ملك د خلافت نه وی.بلکه جديد ملك وی.هم دا وجه ده.چه مشتری د عيب په وجه خپل بائع باندې واپس کولې شي.خو د بائع په بائع باندې ئې نشی واپس کولې.په دې وجه موږ په دې دواړو مسئلو کي توپير کړې دې.

(وَإِنْ كَانَ الْعَقَارُ فِي يَدِ الْوَارِثِ الْغَائِبِ أَوْشَيْءٌ مِنْهُ) وكه مځکه يا ددې څه برخه د غائب وارث په قبضه کي وی.نو قاضي به نه تقسيموی. لَمْ يُقْسَمْ، وَكَذَا إِذَا كَانَ فِي يَدِ مُودِعِهِ وهم دغه ډول ( حکم دې) کله چې د غائب د مودع ( امين) سره وی. ،وَكَذَا إِذَا كَانَ فِي يَدِ الصَّغِيرِ) او هم دغه ډول ( ويش به نه کوی) کله چې د ماشوم په قبضه کي وی. لِأَنَّ الْقِسْمَةَ قَضَاءٌ عَلَى الْغَائِبِ وَالصَّغِيرِ ځکه چې ويش قضاء على الغائب او قضاء په خصم نه بغير کوم چې ددوی دواړو د اړخه حاضر وی. بِاسْتِحْقَاقِ يَدِهِمَا مِنْ غَيْرِ خَصْمٍ حَاضِرٍ عَنْهُمَا دهغوی د قبضې د استحقاق په سلسله کي د څه داسې امين د غائب د اړخه خصم نه دې.په هغه شئ کي د کوم چې په غائب باندې استحقاق ثابت کړې شي. وَأَمِينُ الْخَصْمِ لَيْسَ بِخَصْمٍ عَنْهُ فِيمَا يَسْتَحِقُّ عَلَيْهِ او دخصم نه بغير قضاء جائز نه ده. وَالْقَضَاءُ مِنْ غَيْرِ الْخَصْمِ لَا يَجُوزُ او د خصم نه بغير قضاء جائز نه ده. ،وَلَا فَرْقَ فِي هَذَا الْفَصْلِ بَيْنَ إِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ وَعَدَمِهَا هُوَ الصَّحِيحُ او په دې صورت کي هيڅ توپير نشته.په ګواهانو قائمولو او دنه قائمولو په مينځ کي ، هم دا صحيح ده ،كَمَا أُطْلِقَ فِي الْكِتَابِ لکه څنګه چې په کتاب ( جامع صغير) کي مطلق فرمائيلی دی.

**حل اللغة:** ① المودع: امين ② الصغير:ماشوم ورکوټې ③ خصم: جګړه کونکې



**تشريح:-** دا صورت د پنځمې مسئلې تتمه ده.په هغه مسئله کي کله چې مځکه د حاضرينو شريکانو په قبضه کي وه.حکم دا وو.چه ويش به کولې شي.او په تتمه کي ئې اوفرمائيل.که مځکه هم د هغه وارث په قبضه کي ده.کوم چې غائب دې.که ټوله د هغه په قبضه کي وی.او که بعضې وی.يا دهغه غائب وارث مودع (امين) سره وی.يا مځکه د هغه وارث په قبضه کي وی.کوم چې ماشوم دې.نو په دې دريو واړو صورتونو کي که ګواهان قائم شوی وي.اوکه قائم شوې نه وی.بهرحال قاضي به ويش نه کوی.ځکه چې د غائب او ماشوم قبضه ده.حالانکه ددوی هيڅ څوك مقرر شوې نائب او وکيل موجود نه دې.نو که دلته ويش جائز اوګرځولې شي.نو د داسې خصم نه بغير قضاء لازميږي.کوم چې ددوی د اړخه نائب وی.او دا به قضاء على الغائب او په ماشوم باندې قضاء وی.چه دا جائز نه ده.

او د جامع صغير اطلاق نه معلوميږي.چه په ګواهانو قائمولو کي او په نه قائمولو کي دلته هيڅ توپير نشته.او هم دا روايت مرغيناني رحمه الله د مبسوط روايت په مقابله کي صحيح ګرځولې دې.مبسوط کي ئې فرمائيلی دی.چه د ګواهانو قائمولو نه روسته به تقسيمولې شي.

که څوك وواېي که مځکه د غائب يا ماشوم په قبضه کي وی.هلته خو ستاسو مذکوره دليل جاری کيږي.او کله چې غائب يو مودع سره ايخودې وی.نو مذکوره دليل نه جاری کيږي.ځکه چې [illegible] غائب دا ړخه خصم جوړيدې شي؟ نو موږ ځواب ورکوو چې دا مودع او امين د ساتنه ذمه وار دې.که څوك په دې د استحقاق دعوه اوکړي.په دې سلسله کي هغه خصم نشی جوړيدې.ځکه چې دده سره دا وديعت د ساتنه لپاره دې.د داسې خصم جوړيدو لپاره نه دې.چه د غير کس استحقاق ثابت کړي.

## د يو وارث په حاضريدو سره قاضي لپاره د ويش حکم

قَالَ فرمائي. (وَإِنْ حَضَرَ وَارِثٌ وَاحِدٌ لَمْ يُقْسَمْ وکه يو وارث حاضر وی.نو قاضي به ويش نه کوی. وَإِنْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ) اګرچه هغه بينه قائم کړي. لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ حُضُورِ خَصْمَيْنِ ځکه چې د دوو خاصمانو حاضريدل ضروری دی. لِأَنَّ الْوَاحِدَ لَا يَصْلُحُ مُخَاصِمًا ځکه چې يو سړې مخاصِم او مخاصَم وَمُخَاصَمًا، وَكَذَا مُقَاسِمًا وَمُقَاسَمًا او هم دغه ډول د مقاسِم او مقاسَم جوړيدو صلاحيت نه لري. ،بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْحَاضِرُ اثْنَيْنِ عَلَى مَا بَيَّنَّا په خلاف ددې صورت کله چې حاضرشوی دوې (دوه) نفر وی.د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دې.

**حل اللغة:** ① مقاسِم (بالکسر ) اسم فاعل مقاسم ،تقسيمونکې (بالفتح ) اسم مفعول ويش کړې شوې

**تشريح:-** دا هم د مذکوره تتمه جزء دې.که صرف يو وارث حاضر وی.او ګواهان هم قائم کړي.بيا به هم قاضي ويش نه کوی.که مځکه د هغه په قبضه کي وی.او که د غير په قبضه کي وی.ځکه چې فيصلې لپاره کم ازم کم دوې (دوه) شريکان حاضريدل ضروری دی.ځکه دانشی کيدې.چه يو سړې دې مخاصِم هم وی.او مخاصَم هم وی.او هم دې مقاسِم وی.او مقاسَم هم وی.په دې وجه دلته ويش نشی کولې.

## که وارثانو کښې ماشومان هم وی نو قاضي لپاره د ويش حکم

وَلَوْ كَانَ الْحَاضِرُ كَبِيرًا وَصَغِيرًا اوکه حاضر لوئې او ماشوم وی. نَصَبَ الْقَاضِي عَنِ الصَّغِيرِ وَصِيًّا نو قاضي به د ماشوم د اړخه يو وصي مقرر کړي. وَقَسَمَ إِذَا أُقِيمَتِ الْبَيِّنَةُ او ويش دې اوکړي.کله چې ګواهان قائم کړې شوې وی. وَكَذَا إِذَا حَضَرَ وَارِثٌ كَبِيرٌ وَمُوصًى لَهُ بِالثُّلُثِ فِيهَا وَطَلَبَا الْقِسْمَةَ او هم دغه ډول ( حکم دې) کله چې لوئې وارث او هغه کس چا لپاره چې په دې (کور) کي د دريمې برخې (حصې) وصيت کړې شوې وی. وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمِيرَاثِ وَالْوَصِيَّةِ او دواړه په ميراث او وصيت باندې ګواهان قائم کړي. يَقْسِمُهُ)،لِاجْتِمَاعِ الْخَصْمَيْنِ الْكَبِيرِ عَنِ الْمَيِّتِ وَالْمُوصَى لَهُ عَنْ نَفْسِهِ (موصى له) نو قاضي به دا تقسيموی.د دوو خاصمانو د جمع کيدو په وجه، لوئې کس د مړی د اړخه او موصى له (چا لپاره چې وصيت کړې شوې دې) د خپل طرفه، وَكَذَا الْوَصِيُّ عَنِ الصَّبِيِّ او هم دغه ډول به وصي د بچی د اړخه ( مقررولې شي). كَأَنَّهُ حَضَرَ بِنَفْسِهِ بَعْدَ الْبُلُوغِ ګويا چې د بلوغ نه روستو پخپله

حاضر شوې وى .لِقِيَامِهٖ مَقَامَهٗ.وصي د بچي قائم مقام كيدو په وجه.

تشريح:- اوكه دوې (دوه) وارثان حاضر شو.خو په دوې كې يو ماشوم دې.او يو بالغ دې.يا په دوى كې يو بالغ دې. او دوهم هغه كس دې.چا لپاره چې مړى د دريمې برخې (حصې) وصيت كړې دې.نو قاضى به څه كوى؟ نو وې فرمائيل.چه په دې دواړو صورتونو كې به قاضى ويش كوى.خو ګواهان قائمول دواړو كې شرط دى.او په رومبى صورت كې دا هم شرط دې.چه قاضى د بچى د اړخه څوك وصى مقرر كړى.اوس په دواړو صورتونو كې د خاصمانو اجتماع اوشوه.او دا د قضاء لپاره شرط دې.په رومبى صورت كې به بالغ د مړى د اړخه خصم منلې شى.او وصى به د بچى د طرفه، او په دوهم صورت كې به بالغ د مړى د اړخه او موصى له (چا لپاره چې د دريمې برخې (حصې) وصيت كړې شوې دې) به د خپل اړخه (خصم) منلې شى.چونكه وصى د بچى قائم مقام دې.نو د وصى حاضريدل داسې دى.ګويا چې بچې د بالغ كيدو نه روسته پخپله حاضر شوې وى.

## فصل فيما يقسم وما لا يقسم

ژباړه:- (دا)فصل دهغه شيانو(په بيان كې ) دې.كوم چې به تقسيمولې شى.اوكوم چې به نشى تقسيمولې.

تشريح:- د ويش مسئلې په دې دوو خبرو منحصر دى.چه په دې كې بعضې شيان د ويش قابل وى.او بعض د ويش قابل نه وى.نو دهغې بيان دلته ضرورى دې.نو په دې فصل كې دهغې تفصيل بيانولې شى.

**كه د خپلې خپلې حصې نه انتفاع اخستل ممكن وىنو د يوكس په مطالبې به ويش كولاې شى**

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل. (وَإِذَا كَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الشُّرَكَاءِ يَنْتَفِعُ بِنَصِيبِهٖ) وكله چې شريكانو كې هريوكس د خپلې برخې (حصې) نه انتفاع حاصلولې شى. (قَسَمَ بِطَلَبِ أَحَدِهِمْ) نو قاضى به په دوى كې د يوكس په طلب باندې ويش كوى. (اګرچه دوهم انكار كوى). لِأَنَّ الْقِسْمَةَ حَقٌّ لَازِمٌ فِيمَا يَحْتَمِلُهَا خكه ويش په هغه څيزونو كې كوم چې د ويش احتمال لرى لازم حق دې، حَتْمًا عِنْدَ طَلَبِ أَحَدِهِمْ په دوى كې د يوكس په طلب باندې عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ..د هغه تفصيل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

تشريح:- كه د ويش نه روستو هر شريك د خپلې برخې (حصې) نه نفع حاصلولې شى.نو هركله چې شريكانو كې يو كس د ويش مطالبه اوكړله.نو قاضى به ويش كوى.او په دې كې به قاضى لپاره منكر باندې زبردستى جائز وى.خكه وړاندې تير شوى دى.چه كوم شيان د ويش احتمال لرى.هغه كې ويش كول لازمى حق دې.

**په دوو شريكانو كښې د يوكس دكمې حصې په وجه جدا انتفاع نشى كيداې نو د ويش حكم**

(وَإِنْ كَانَ يَنْتَفِعُ أَحَدُهُمْ وَيَسْتَضِرُّ بِهِ الْآخَرُ لِقِلَّةِ نَصِيبِهٖ) اوكه په دوى كې يوكس (دخپلې برخې (حصې) نه ) نفع اخستلې شى.او دوهم كس ته به د خپلې برخې (حصې) د كموالى په وجه ضرر وى. (فَإِنْ طَلَبَ صَاحِبُ الْكَثِيرِ قَسَمَ) نو كه د زياتې برخې (حصې) والا مطالبه اوكړى.نو قاضى به ويش كوى. (وَإِنْ طَلَبَ صَاحِبُ الْقَلِيلِ لَمْ يَقْسِمْ) اوكه د لږې برخې (حصې) والا مطالبه اوكړى.نو قاضى به ويش نه كوې. لِأَنَّ الْأَوَّلَ يَنْتَفِعُ بِهٖ فَيُعْتَبَرُ طَلَبُهٗ خكه چې رومبې به د خپلې برخې (حصې) نه نفع اخلى.نو دهغه طلب به معتبر وى. وَالثَّانِي مُتَعَنِّتٌ فِي طَلَبِهٖ او دوهم پخپل طلب كې بربادى غوښتونكې دې فَلَمْ يُعْتَبَرْ .نو دده طلب به معتبر نه وى.

حل اللغة: ① يستضر: ضرر رسى ② ينتفع: نفع اخلى ③ متعنت: بربادى غوښتونكې ④ اندرج: داخل شو

تشريح:- دوې (دوه) شريكان دى.په دوى كې د يو شريك برخه ډيره كمه ده.چه د ويش نه روستو د كوم نه انتفاع نشى كيدې!او د دوهم برخه زياته ده.چه د ويش نه روستو هم د هغې نه فائده اخستلې شى.او په دوى كې يوكس د ويش مطالبه كوى.نو اوس به قاضى څه كوى؟ نو په دې كې درې قوله دى رومبې قول د امام



قدورى رحمه الله دې.چه طلب كونكې كه د زياتې برخې (حصې) مالك دې.نو ويش به كولې شى.او د كمې برخې (حصې) والا په طلب به ويش نشى كولې.خكه د رومبى طلب معتبر دې.خكه چې دهغه نفع برقرار ده.او د دوهم طلب معتبر نه دې.خكه چې هغه پخپلې بربادئ پسې لګيدلې دې.

وَذَكَرَ الْجَصَّاصُ عَلَى قَلْبِ هٰذَا او جصاص رحمه الله ددې په عكس ذكر كړى دى. لِأَنَّ صَاحِبَ الْكَثِيرِ يُرِيدُ الْإِضْرَارَ بِغَيْرِهٖ خكه چې د زيات مالك خپل غير ته د ضرر رسولو اراده كوى وَالْآخَرُ يَرْضَى بِضَرَرِ نَفْسِهٖ.او دوهم پخپل ضرر باندې راضى دې

تشريح:- دوهم قول د جصاص رحمه الله دې.د رومبى په طلب به ويش نه كيږى.او د دوهم په طلب به ويش كولې شى.د دوهم مطالبه خكه معتبر ده.چه هغه پخپل نقصان راضى دې.او د رومبى طلب خكه معتبر نه دې.چه هغه نورو ته د تكليف وركاوه پسې لګيدلې دې.

تنبيه: دلته كې ئې جصاص وئيلى دى.كوم چې په ابوبكرجصاص رازى رحمه الله سره مشهور دې.او په بعضو نسخو كې خصاف رحمه الله دې.او هم دا صحيح ده.خكه چې دا مذكوره قول د خصاف رحمه الله دې.خو صاحب د مجمع الانهر د امام قدورى رحمه الله دقول نه روسته ليكلى دى. «وهو الأصح هذا قول الخصاف رحمه الله والإمام السرخسى» بيا ئې فرمائيلى دى. «و ذكر الخصاف عكسه» ددې نه معلوميږى.چه مذهب رومبنې دې.او د دوهم هغه ناقل دې.بعضو حضراتو د حاكم شهيد رحمه الله قول ته ترجيح وركړې ده.خو د ترجيح لائق او معتمد عليه قول رومبنې دې.صاحب دهدايه رحمه الله د امام خصاف رحمه الله قول نه دې نقل كړې.دا زموږ د رومبى قول تائيد كوى.چه په دې كې دوې (دوه) قوله دى... فتدبر..

وَذَكَرَ الْحَاكِمُ الشَّهِيدُ فِي مُخْتَصَرِهٖ او حاكم شهيد پخپل مختصر كې ذكر كړى دى أَنَّ أَيَّهُمَا طَلَبَ الْقِسْمَةَ چې په دوى كې څوك هم د ويش مطالبه كوى يَقْسِمُ الْقَاضِي ..نو قاضى په ويش كوى. وَالْوَجْهُ انْدَرَجَ فِيمَا ذَكَرْنَاهُ او وجه هم دا ده.كومه چې هغې كې ليكلې شوې ده.كوم چې موږ ذكر كړې دې. وَالْأَصَحُّ او زيات صحيح هغه دې لِمَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ كوم چې كتاب كې ذكر دې وَهُوَ الْأَوَّلُ..او هغه رومبې قول دې.

تشريح:- دريم قول د حاكم شهيد رحمه الله دې.كوم چې دوى پخپل مختصر كې بيان كړې دې.چه څوك هم د ويش مطالبه اوكړى.نو قاضى به ويش كوى.او وړاندې چې كوم دليل ذكر كړې شوې دې.هغه ددوى دليل هم دې.يعنى د دليل په يوه برخه كې به د رومبې قول دليل كار كوى.او په دويمه برخه كې به د دوهم قول دليل كار كوى.

بيا مرغينانى رحمه الله په دې دريو واړو قولونو كې د امام قدورى رحمه الله قول ته ترجيح وركړې ده.او په «مجمع الانهر ص۷۲ ج۲» باندې په حواله د درر او ذخيره وئيلى شوى دى... وعليه الفتوى..

**د جدا حصې نه د انتفاع نه كيدو باوجود رضامندئ سره د ويش حكم**

(وَإِنْ كَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَسْتَضِرُّ لِصِغَرِهٖ) او كه هر يو ته ضرر وى.د هغه د وړوكوالى په وجه، (لَمْ يَقْسِمْهَا إِلَّا بِتَرَاضِيهِمَا) نو قاضى به دا نه تقسيموى.خو ددوى دواړو رضامندئ سره. لِأَنَّ الْجَبْرَ عَلَى الْقِسْمَةِ لِتَكْمِيلِ الْمَنْفَعَةِ، وَفِي هٰذَا تَفْوِيتُهَا، وَتَجُوزُ بِتَرَاضِيهِمَا خكه چې ويش باندې زبردستى د منفعت د تكميل لپاره دې.او په دې كې د منفعت مضبوطوالې دې.او ددوى دواړو په رضامندئ سره جائز دې. لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمَا وَهُمَا أَعْرَفُ بِشَأْنِهِمَا خكه چې حق ددوى دواړو دې.او دوى دواړه پخپل شان زيات پوهيدونكى دى. أَمَّا الْقَاضِي فَيَعْتَمِدُ الظَّاهِرَ .بهرحال قاضى، نو هغه به په ښكاره باندې اعتماد كوى.

حل اللغة: ① تفويتهما: په ضائع كيدو د دواړو ② تراضيهما: په راضى كيدو د دواړو

تشريح:- يعنى كه ديوكس برخه دومره لږه وى.چه د ويش نه روستو د انتفاع قابل پاتې نشى.نو قاضى هغه

وخت تقسیمولې شي. کله چې دواړه راضي شي. ګني نه به تقسیموي. ځکه د ویش موضوع هم دا وه. چه په دې سره د منفعت تکمیل کیداې شي. او دلته منفعت فوت کول دي. البته که دواړه راضي وي. نو قاضي به ویش کوي. ځکه چې دا ددوی دواړو حق دې. او خپل معاملات او حالات هغوی ښه پیژني. البته د قاضي به په ښکاره باندې اعتماد کول دي. او ښکاره ضرر او نقصان دې. نو د یو په مطالبه باندې به په ښکاره کار اعتبار کوي. او د دواړو مطالبه به د ښکاره بدلونکې وي. ځکه د دواړو رضامندۍ نه دا معلومیږي. چه دې کې څه منفعت وي. علامه زیلعي رحمه الله په تبیین کې فرمائیلي دي. چه قاضي به د دواړو په مطالبه باندې هم ویش نه کوي.

**په منقوله یو جنس څیزونو کښې د شریکانو په مطالبې سره د ویش حکم**

قَالَ امام قدوري رحمه الله او فرمائیل. (وَيُقَسِّمُ الْعُرُوضَ إِذَا كَانَتْ مِنْ صِنْفٍ وَاحِدٍ) او سامانونه به قاضي تقسیموي. (په زبردستۍ سره). کله چې د یو جنس څنې وي. لِأَنَّ عِنْدَ اتِّحَادِ الْجِنْسِ يَتَّحِدُ الْمَقْصُودُ ځکه چې د جنس د اتحاد په وخت مقصود متحد دې. فَيَحْصُلُ التَّعْدِيلُ فِي الْقِسْمَةِ وَالتَّكْمِيلُ فِي الْمَنْفَعَةِ نو په قسمت کې به برابري او منفعت کې به تکمیل حاصلیږي.

**حل اللغة:** (1) **عروض:** سامان (2) **التعدیل:** انصاف کول (3) **التکمیل:** پوره کول

**تشریح:-** په منقول شئ کې شریکانو د قسمت مطالبه اوکړله. او هغه یو جنس دې. مثلاً کپړې دي. نو د جنس د متحد کیدو په وجه به دلته برابري حاصلیږي. او په منفعت کې به تکمیل حاصلیږي. او دا د ویش مقصد او موضوع ده. نو قاضي به تقسیموي. او په دې کې به قاضي لپاره منکر باندې زبردستي جائز وي.

**په دوو جنسونو کښې قاضي لپاره د ویش حکم**

(وَلَا يُقَسِّمُ الْجِنْسَيْنِ بَعْضَهُمَا فِي بَعْضٍ) او قاضي به په دوو جنسونو کې ویش نه کوي. په دې کې بعض په بعضو کې، لِأَنَّهُ لَا اخْتِلَاطَ بَيْنَ الْجِنْسَيْنِ ځکه چې دواړو جنسونو کې ګډوډي نه راځي. فَلَا تَقَعُ الْقِسْمَةُ تَمْيِيزًا نو ویش به جداني نه واقع کیږي. بَلْ تَقَعُ مُعَاوَضَةً بلکه دا به معاوضه (مبادله) واقع کیږي، وَسَبِيلُهَا التَّرَاضِي او معاوضې طریقه خپل مینځ کې رضامندي ده دُونَ جَبْرِ الْقَاضِي د قاضي زبردستي نه ده.

**تشریح:-** په رومبی صورت کې خو قاضي ته د زبردستي کاوه ولایت حاصل دې. خو که دوې (دوه) جنسونه وي. نو بیا قاضي ته ولایت د زبردستۍ نشته. مثلاً اوښان او اسونه وي. نو په دې کې به خو اختلاط (ګډون) نه وي. چه ویش دلته د جلا والي لپاره اوګرخولې شي. بلکه دا به د معاوضې صورت وي. او په معاوضه کې زبردستي نشي کولې. بلکه ددې آسانه طریقه هم دا ده. چه شریکان راضي شي. نو بیا داسې ویش جائز دې.

**قاضي په کومو څیزونو کښې زبردستۍ سره ویش کولای شي او په کومو کښې نشي؟**

(وَيُقَسِّمُ كُلَّ مَكِيلٍ وَمَوْزُونٍ كَثِيرًا أَوْ قَلِيلًا) او قاضي به (زبردستۍ سره) ویش کوي. د هر وزني او کیلي څیز، که زیات وي او که کم وي. وَالْمَعْدُودِ الْمُتَقَارِبِ وَتِبْرِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ او د معدود متقارب، او د سرو زرو او سپینو زرو د ټکرو. وَالْحَدِيدِ وَالنُّحَاسِ وَالْإِبِلِ بِانْفِرَادِهَا وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ او د اوسپنې او تانبې د ټکرو، او یواځې د اوښانو یا غواګانو او چیلو، وَلَا يُقَسِّمُ شَاةً وَبَعِيرًا وَبِرْذَوْنًا وَحِمَارًا او ویش به نه کوي (زبردستۍ سره) د چیلو او د اوښانو یا اسونو او د خرو، وَلَا يُقَسِّمُ الْأَوَانِيَ او ویش به نه کوي د لوخو، لِأَنَّهَا بِاخْتِلَافِ الصَّنْعَةِ الْتَحَقَتْ بِالْأَجْنَاسِ الْمُخْتَلِفَةِ ځکه چې لوخي د صنعت (کاریګرۍ) په وجه مختلف جنسونو سره متعلق دي.

**حل اللغة:** (1) **تبر:** ټوټې (2) **الذهب:** سره زر (3) **الفضة:** سپین زر (4) **الحدید:** اوسپنه (5) **النحاس:** تانبه (6) **الابل:** اوښ (7) **برذون:** اسونه (8) **بعیر:** اوښ (9) **الاواني:** جمع د آنیة: لوخې (10) **الصنعة:** کاریګري

**تشریح:-** دلته مرغیناني رحمه الله بعضې تفریعات بیان کړي دي. چه په کومو څیزونو کې قاضي زبردستۍ سره ویش



کولې شي. او په کومو کې نشي کولې. نو وې فرمائیل چې (1) هر وزني او کیلي شئ که لږ وي او که زیات وي. قاضي ته د ویش د زبردستۍ حق شته. (2) هم دا حال د معدود متقارب دې. (3) او د سرو زرو او سپینو زرو او د اوسپنې او تانبې هم دا حکم دې. ځکه چې مساوات او برابري کیداې شي. (4) یواځې په اوښانو او غواګانو او چیلو کې قاضي ویش کولې شي. ځکه چې ددې په مینځ کې د جنس د اتحاد په وجه تفاوت کم دې. (5) په چیلو، او ښانو، اسونو، او خرو په مینځ کې تفاوت زیات دې. نو دلته قاضي زبردستۍ سره ویش نشي کولې. ځکه چې کله یو اړخ ته اس او بل اړخ ته خر شي. نو په دې کې زیات تفاوت کیدل ښکاره دي. بلکه که دلته ویش کوي. نو ددې طریقه دا ده. چه مخکې دې اسونه ویش کړي. بیا به خره تقسیموي. (6) په لوخو کې هم تفاوت زیات دې. نو لوخي اګرچه یو شئ وي. خو چونکه په دې کې صنعت مختلف دې. او د صعنت (او کاریګرۍ) اختلاف د جنس د اختلاف په درجه کې دې. او مختلف الجنس کې قاضي ته زبردستۍ سره د ویش حق نشته.

**هروي کپړه قاضي زبردستۍ سره تقسیمولې شي**

(وَيُقَسِّمُ الثِّيَابَ الْهَرَوِيَّةَ) او قاضي به تقسیموي. د هروي کپړو لِاتِّحَادِ الصِّنْفِ، د جنس د متحد کیدو په وجه.

**حل اللغة:** (1) **الثیاب:** جمع د ثوب، جامه (2) **الصنف:** ډول

**تشریح:-** په خراسان کې یو ښار دې. دهغې نوم هرات دې. هغې اړخ ته نسبت کاوه سره هروي وئیلې شي. چه "الثیاب الهرویه" یعني هروي کپړې، لکه څنګه چې زموږ علاقو کې وئیلې شي. بنارسي ساړهي وغیره. نو چونکه دلته په صنف کې اتحاد دې. په دې وجه دلته قاضي زبردستۍ سره ویش کولې شي.

**د یوې کپړې د تقسیمولو حکم**

(وَلَا يُقَسِّمُ ثَوْبًا وَاحِدًا) لِاشْتِمَالِ الْقِسْمَةِ عَلَى الضَّرَرِ او قاضي به نه تقسیموي. یوه کپړه، د امله د شاملیدو د ویش نه په ضرر باندې، إِذْ هِيَ لَا تَتَحَقَّقُ ځکه چې ویش به نه ثابتیږي إِلَّا بِالْقَطْعِ. مګر کټ کاوه سره.

**تشریح:-** که یوه کپړه ده. مثلاً کرته (کمیص) دې. یا کوټ دې. یا پائجامه (پرتوګ) دې. نو که دا ویش کړې شي. نو ضرر به وي. ځکه چې ویش لپاره به ددې د کټ کاوه اړتیا راپیښیږي. بیا به دا دهیڅ چا لپاره د فائدې اخستلو قابله نه پاتې کیږي.

**د دوو مختلف قیمت والا کپړو په زبردستۍ د تقسیمولو حکم**

(وَلَا ثَوْبَيْنِ إِذَا اخْتَلَفَتْ قِيمَتُهُمَا) لِمَا بَيَّنَّا، او نه به تقسیموي دوې (دوه) کپړې، کله چې ددې دواړو قیمت مختلف وي. د هغه دلیل په وجه، کوم چې موږ بیان کړې دې. بِخِلَافِ ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ إِذَا جُعِلَ ثَوْبٌ بِثَوْبَيْنِ په خلاف د دریو کپړو، کله چې یوه کپړه د دوو کپړو په بدله کې اوګرخولې شي أَوْ ثَوْبٌ وَرُبُعُ ثَوْبٍ بِثَوْبٍ وَثَلَاثَةِ أَرْبَاعِ ثَوْبٍ یا یوه کپړه او د یوې کپړې څلورمه ۱/۴ د دویمې کپړې، او دویمه د ۳/۴ په بدله کې اونه ګرځولې شي لِأَنَّهُ قِسْمَةُ الْبَعْضِ دُونَ الْبَعْضِ ځکه چې دا د بعضو تقسیمول دي. او د بعضو نه دې وَذَلِكَ جَائِزٌ. او دا جائز دي.

**تشریح:-** که دوې (دوه) کپړې دي. او د دواړو قیمت مختلف دې. هلته هم قاضي په ویش باندې زبردستي نشي کولې. مثلاً یوه کرته ده. او یو کوټ دې. نو دلته هم ویش لپاره د کټ کاوه اړتیا راپیښیږي. او ددې مضر کیدل ښکاره دي. او که کپړې درې دي. او هلته زبردستۍ سره ویش کیدلې شي. مثلاً دوې (دوه) کرتې دي. چه هغه قیمتي دي. او یو کوټ دې. نو کوټ به یوکس ته او دوې (دوه) کرتې به بل کس ته ملاو شي. نو د کټ کاوه حالت به بالکل نه راپیښیږي.

یا یوه کرته او یوه پائجامه ده. او یو کوټ دې. نو د پائجامې او کوټ څلورمه برخه نې یوکس ته ورکړله. او کرته او د کوټ په څلورو برخو کې درې برخې (حصې) نې دوهم کس ته ورکړي. نو په کرته او پائجامه کې

ويش اوشو. كوټ مشترك پاتې شو. نو دا صورت جائز دې. هم دا مرغيناني رحمه الله او فرمائيل. «لأنه قسمة البعض دون البعض و ذالك جائز»

**غلام او جواهرات قاضي په زبردستۍ تقسيمولې شي او كه نه؟**

(وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ لَا يَقْسِمُ الرَّقِيقَ وَالْجَوَاهِرَ) لِتَفَاوُتِهِمَا(¹) او وويل امام ابوحنيفه رحمه الله قاضي به ويش نه كوي د غلام او د هيرو ددوي دواړو د تفاوت په وجه، (وَقَالَا: يَقْسِمُ الرَّقِيقَ) لِاتِّحَادِ الْجِنْسِ او صاحبين رحمهما الله فرمائي. د غلامانو ويش به كوي. د جنس د متحد كيدو په وجه، كَمَا فِي الْإِبِلِ وَالْغَنَمِ وَرَقِيقِ الْمَغْنَمِ لكه په اوښانو، چيلو او د غنيمت په غلامانو كې (چې ويش كولې شي).

**حل اللغة:** ① الرقيق: خالص غلام ② الجواهر: جمع د جوهرة، ملغلره ③ الابل: اوښان ④ الغنم: ګډې

**تشريح:-** په غلامانو كې خپل مينځ كې ډير زيات تفاوت دې. او هم دغه ډول په هيرو كې، نو قاضي به په دې كې زبردستۍ سره ويش نه كوي. خو صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه د غلامانو جنس متحد دې. په دې وجه به ويش كولې شي. په استدلال كې صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دي. چه لكه څنګه په اوښانو او چيلو كې د ډير زيات تفاوت باوجود ويش جائز دې. دغه ډول په غنيمت كې چې كوم غلامان ملاو شي. د هغوي ويش جائز دې. نو دلته به هم غلامانو كې ويش جائز وي.

**د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل**

وَلَهُ أَنَّ التَّفَاوُتَ فِي الْآدَمِيِّ فَاحِشٌ لِتَفَاوُتِ الْمَعَانِي الْبَاطِنَةِ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. چه په سړو كې د باطني معانو د تفاوت په وجه ډير زيات تفاوت دې. فَصَارَ كَالْجِنْسِ الْمُخْتَلِفِ بِخِلَافِ الْحَيَوَانَاتِ نو دا د مختلف جنس پشان شو. په خلاف د ښاروو، لِأَنَّ التَّفَاوُتَ فِيهَا يَقِلُّ عِنْدَ اتِّحَادِ الْجِنْسِ ځكه چې تفاوت په ښاروو كې لږ دې. د جنس د اتحاد په وخت أَلَا تَرَى أَنَّ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى مِنْ بَنِي آدَمَ جِنْسَانِ آيا نه ګورې. چه مذكر او مؤنث په بنيادمو كې دوې (دوه) جنسونه دي. وَمِنَ الْحَيَوَانَاتِ جِنْسٌ وَاحِدٌ او په حيواناتو كې يو جنس دې.

**تشريح:-** دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې. د دې حاصل دا دې. چه د صاحبينو رحمهما الله غلامان په ښاروو باندې قياس كول صحيح نه دي. ځكه چې ښاروو كې د جنس د اتحاد په صورت كې لږ تفاوت دې. او په انسانانو كې د باطني معانو. او باطني كمالاتو د اختلاف په وجه ډير زيات تفاوت دې. هم دا وجه ده. چه فقهاء سړي او ښځې مختلف الجنس شماري. او په ښاروو كې نر او ماده د يو جنس شماري.

**د صاحبينو رحمهما الله د قياس جواب**

بِخِلَافِ الْمَغَانِمِ په خلاف د غنيمتونو، ، لِأَنَّ حَقَّ الْغَانِمِينَ فِي الْمَالِيَّةِ ځكه چې د غنيمت حاصلونكو (مجاهدينو) حق صرف په ماليت كې دې. حَتَّى كَانَ لِلْإِمَامِ بَيْعُهَا وَقِسْمَةُ ثَمَنِهَا تردې چې امام ته حق شته. د غنيمت د خرڅولو او ددې د ثمن تقسيمولو وَهُنَا يَتَعَلَّقُ بِالْعَيْنِ وَالْمَالِيَّةِ جَمِيعًا فَافْتَرَقَا او دلته حق د عين او ماليت دواړو سره متعلق دې. نو دا دواړه جلا جلا شو.

**تشريح:-** صاحبينو رحمهما الله غلام د غنيمت په غلام باندې قياس كړې وو. د هغې ځواب وركړې شو. چه دا قياس هم صحيح نه دې. ځكه چې غنيمت كې د مجاهدينو حق صرف ماليت كې دې. او په مذكوره كې د شريكانو حق عين او ماليت دواړو كې دې. هم دا وجه ده. چه امام ته حق شته. چه د غنيمت غلامان خرڅ كړي. او د هغوي قيمت مجاهدينو كې ويش كړي. او دلته قاضي ته ددې حق نشته. معلومه شوه. چه مذكوره

---

(¹) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر (۱۲۰۱٤) وكنز(ص.۳۵۶) والدرالمحتار (۱۸۳۱۵) نقلاً عن القول ا لراجح (۲۷۸۱۲)_



قياس صحيح نه دې.

**د جواهرو (هيرو) په ويش كښې درې اقوال**

فَأَمَّا الْجَوَاهِرُ فَقَدْ قِيلَ إِذَا اخْتَلَفَ الْجِنْسُ او بهرحال هيرې، نو وئيلې شوي دي. چه كله جنس مختلف وي. وَأَمَّا لَا يَقْسِمُ كَاللَّآلِئِ وَالْيَوَاقِيتِ نو قاضي به ويش نه كوي. لكه غمې، او ياقوت، وَقِيلَ لَا يَقْسِمُ الْكِبَارَ مِنْهَا لِكَثْرَةِ التَّفَاوُتِ، او وئيلې شوي دي. چه په دې كې به دغټو ويش نه كوي. د زيات تفاوت په وجه، وَيَقْسِمُ الصِّغَارَ لِقِلَّةِ التَّفَاوُتِ. او د وړو ويش به كوي. د تفاوت د كموالي په وجه، وَقِيلَ يَجْرِي الْجَوَابُ عَلَى إِطْلَاقِهِ او وئيلې شوي دي. چه ځواب پخپل اطلاق باندې جاري دې. لِأَنَّ جَهَالَةَ الْجَوَاهِرِ أَفْحَشُ مِنْ جَهَالَةِ الرَّقِيقِ ځكه چې د هيرو جهالت ډير زيات دې. أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ تَزَوَّجَ عَلَى لُؤْلُؤَةٍ أَوْ يَاقُوتَةٍ آيا ته نه ګورې. كه نكاح ئې اوكړله په غمې او ياقوتو باندې، أَوْ خَالَعَ عَلَيْهَا لَا تَصِحُّ التَّسْمِيَةُ يا ئې په دې باندې خلع اوكړله. نو تسميه صحيح نه ده. وَتَصِحُّ ذَلِكَ عَلَى عَبْدٍ فَأَوْلَى أَنْ لَا يُجْبَرَ عَلَى الْقِسْمَةِ نو په درجه اولى به دا خبره وي. چه په ويش به زبردستي نشي كولې.

**حل اللغة:** ① اللالى: جمع د لولو، ملغلره ② اليواقيت: جمع د ياقوت يو قيمتي كاڼړې ③ افحش: زيات

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله قول په هيرو كې د ويش نه كاوه بيان كړې دې. اوس دلته درې قوله بيانوي ① كه ددې جنس مختلف وي. نو بيا قاضي زبردستۍ سره ويش نشي كولې. لكه څنګه چې د غمو او ياقوتو جنس مختلف دې. ② په غټو هيرو كې تفاوت زيات دې. او په وړو كې كم دې. نو په ړومبي كې ويش صحيح نه دې. او په دوهم كې جائز دې. ③ مطلقاً جائز نه دې. ځكه چې هيرو كې د مطلق غلامانو نه زيات جهالت دې. او هركله چې غلامانو كې زبردستۍ سره ويش نه كيږي. نو په هيرو كې به په درجه اولى نه وي.

او ددې خبرې دليل چې په هيرو كې تفاوت د غلام دتفاوت نه زيات دې دا دې كه يوكس د يوې ښځې سره نكاح اوكړله. او په مهر كې ئې د ياقوتو يا غمو نوم واخستلو. نو چونكه په دې كې ډير زيات تفاوت دې. په دې وجه به دا تسميه معتبر نه وي. اوكه په غلام ئې نكاح كړې وي. نو دلته كې تسميه صحيح ده. د هدايۀ په دريم ټوك باب المهر كې ددې تفصيلات موجود دي.

**د غسل خانې، كوهي. او د جرندې د ويش مسئله**

قَالَ امام قدوري رحمه الله او فرمائيل. (وَلَا يَقْسِمُ حَمَّامًا وَلَا بِئْرًا، وَلَا رَحًى إِلَّا بِتَرَاضِي الشُّرَكَاءِ) او غسل خانه او څاه او جرنده به نشي تقسيمولې. خو دا چې شريكان راضي شي. (وَكَذَا الْحَائِطُ بَيْنَ الدَّارَيْنِ) او هم دغه ډول هغه ديوال كوم چې د دوو كورونو په مينځ كې وي. لِأَنَّهَا تَشْتَمِلُ عَلَى الضَّرَرِ فِي الطَّرَفَيْنِ ځكه چې دا ويش د دواړو طرفونو ته ګټه دې. «إِذْ لَا يَبْقَى كُلُّ نَصِيبٍ مُنْتَفَعًا بِهِ انْتِفَاعًا مَقْصُودًا ځكه چې پاتې به نه پاتې كيږي. د هر يوكس برخه چې دهغې نه نفع حاصله كړې شي. داسې نفع كومه چې مقصود ده. فَلَا يَقْسِمُ الْقَاضِي بِخِلَافِ التَّرَاضِي لِمَا بَيَّنَّا نو قاضي به ويش نه كوي. په خلاف ذ د رضامندئ (پخپل مينځ كې). د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

**حل اللغة:** ① حمام: د ګرمو اوبو غسل خانه ② بئر: څاه ③ رحى: جرنده

**تشريح:-** كه دا شئ داسې وي. چه دا ويش نه روسته چا لپاره هم قابل د انتفاع پاتې نشي. كوم چې ددې نه مقصود وو. نو دلته به ويش سره ضرر وي. په ديګ وجه قاضي د رضامندئ نه بغير دا نشي تقسيمولې. او په رضامندئ سره ئې تقسيمولې شي. د غسلخانې، كوهي، او جرندې هم دا حال دې.

**په يو بار كښې د مشتركو كورونو د ويش طريقه**

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائيل. (وَإِذَا كَانَتْ دُوْرٌ مُشْتَرَكَةٌ فِي مِصْرٍ وَاحِدٍ) وكله چې په يو ښار كې مشترك كورونه وی. قُسِمَ كُلُّ دَارٍ عَلَى حِدَتِهَا فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله[1] نو د امام ابوحنيفه رحمه الله د قول مطابق به قاضي هر يو كور جلا جلا تقسيموی. وَقَالَا: إِنْ كَانَ الْأَصْلَحُ لَهُمْ قِسْمَةَ بَعْضِهَا فِي بَعْضٍ قَسَمَهَا) او صاحبين رحمهما الله فرمائي. كه شريكانو لپاره په دې كې بعض د بعضو سره ملاوولو كې ويش غوره وی. نو هم دغه ډول دې ويش كړی. وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الْأَقْرِحَةُ الْمُتَفَرِّقَةُ الْمُشْتَرَكَةُ او هم په دې اختلاف جلا جلا مشتركې زمكې دی.

حل اللغة: ① مصر: ښار ② الاقرحة: جمع د قرحة، مځكه ③ السكنى: د استوګنې خانې ④ يفوض: سپاری به

تشريح:- هر كور جلا جلا تقسيمول دا ويش خانله خانله دې. او واړه يو خانې ملاوول او تقسيمول دا ويش د جمعې دې. نو په يو ښار كې مختلف كورونه دی. نو ددې ويش به څنګه كيږی؟ نو وې فرمائيل. چه د امام صاحب رحمه الله په نيز به هر كور جلا جلا تقسيمولې شی. او صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه د قاضي په رائې باندې موقوف ده. كه جلا جلا تقسيمول غوره ګنړی. نو داسې دې اوكړی. او كه يوخائې ملاوول او تقسيمول ددوی لپاره غوره ګنړی. نو دا دې اختيار كړی.

### د صاحبينو رحمهما الله دليل

لَهُمَا أَنَّهَا جِنْسٌ وَاحِدٌ اسْمًا وَصُورَةً، وَنَظَرًا إِلَى أَصْلِ السُّكْنَى د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې. چه (كورونه) د اوسيدو لحاظ كاوه سره د نوم او صورت په اعتبار سره جنس واحد دې. أَجْنَاسٌ مَعْنًى نَظَرًا إِلَى اخْتِلَافِ الْمَقَاصِدِ، وَوُجُوهِ السُّكْنَى او مختلف جنسونه دی. د معنی په اعتبار سره. د مقاصدو اختلاف او د اوسيدو د وجوهو اختلاف ارخ ته نظر كاوه سره، فَيُفَوَّضُ التَّرْجِيحُ إِلَى الْقَاضِي نو ترجيح به د قاضي رائې ارخ ته سپارلې شی.

تشريح:- اوسيدل خو په هر كور كې حاصليدې شی. خو په بعضو كورونو كې چې كوم آرام او راحت ملاويږی. هغه په نورو كې نه ملاويږی. داسې كيږی. او دا وړاندې تير شوی دی. چه د يوجنس شيان به يو خانې ملاوولو سره تقسيميږی. او مختلف جنسونو والا به جلا جلا تقسيميږی. نو صاحبين رحمهما الله فرمايي. چه په كور كې دوې (دوه) جهته دی. د اتحاد د جنس هم، او د اختلاف د جنس هم، نو موږ د دواړو رعايت كاوه سره دا معامله د قاضي رائې باندې پريخودله. هغه د اتحاد جنس اعتبار كاوه سره ويش د جمعې اختيار كړی. نو كولې شی. او د جنس د اختلاف اعتبار كاوه سره جلا جلا ويش اختيار كولې شی. نو هم كولې شی. كه موږ دا اوګورو. چه كورونه صرف په اوسيدو كې واړه برابر دی. او په نوم او صورت كې هم اتحاد شته. نو ددې نه د جنس د اتحاد پته لګی. او كه نورو عوارضو ته اوكتلې شی. نو چونكه په معنی كې تفاوت دې. نو ددې نه د جنس د اختلاف پته لګی. بهرحال موږ د دواړو لحاظ كړې دې.

### د امام صاحب رحمه الله دليل

وَلَهُ أَنَّ الِاعْتِبَارَ لِلْمَعْنَى وَهُوَ الْمَقْصُودُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. چه اعتبار معنی ته دې. او معنی مقصود هم ده. وَيَخْتَلِفُ ذَلِكَ بِاخْتِلَافِ الْبُلْدَانِ وَالْمَحَالِّ وَالْجِيرَانِ او مقصود بدليږی. د ښارونو، محلو، او ګاونډيانو سره، وَالْقُرْبِ إِلَى الْمَسْجِدِ وَالْمَاءِ اخْتِلَافًا فَاحِشًا او د جمات او اوبو نژدې والی سره، په ډير زيات اختلاف فَلَا يُمْكِنُ التَّعْدِيلُ فِي الْقِسْمَةِ نو په ويش كې به برابری ممكن نه وی.

حل اللغة: ① البلدان: جمع د بلد، ښار ② المحال: جمع د محل خانې ③ الجيران: جمع د جار، ګاونډی

تشريح:- د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل بيانه وی. فرمائي. چه ونې شمارل دې مطلب دې. او كه امونه خوړل. يعنی

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في مجمع الأنهر (۱۳۰|٤) وملتقى (۱٤۰|٤) والخانية (۲۱۳|۳) نقلاً عن القول الراجح (۲۷۹|۲)_



صرف د معنی او مقصود اعتبار كيږی. او دا ښكاره ده. چه په مقصدونو كې د ښارونو او محلو بدليدو سره ډير زيات اختلاف پيدا كيږی. دغه ډول د ګاونډيانو په وجه، او د جمات نه د لرې والی او نژدې والی په وجه ډير زيات اختلاف وی. نو هر كله چې خبره دغه ډول ده. نو بيا به يو خائې ملاوولو سره ويش كې برابری نه كيږی. كوم چې د ويش اصلی مقصد دې.

وَلِهَذَا لَا يَجُوزُ التَّوْكِيلُ بِشِرَاءِ دَارٍ او هم په دې وجه به د كورونو په اخستلو كې توكيل جائز نه وی. وَكَذَا لَوْ تَزَوَّجَ عَلَى دَارٍ لَا تَصِحُّ التَّسْمِيَةُ او هم دغه ډول كه په كور نې نكاح اوكړله. نو تسميه به صحيح نه وی. كَمَا هُوَ الْحُكْمُ فِيهِمَا فِي الثَّوْبِ لكه څنګه چې هم دا حكم دې. په دې دواړو (توكيل او نكاح) كې په كپړو كې، بِخِلَافِ الدَّارِ الْوَاحِدَةِ إِذَا اخْتَلَفَتْ بُيُوتُهَا په خلاف د يو كور كله چې ددې كمرې (كوټې) مختلفې وی. لِأَنَّ فِي قِسْمَةِ كُلِّ بَيْتٍ عَلَى حِدَةٍ ضَرَرًا څكه چې د هر يو كور په جلا جلا تقسيمولو كې ضرر دې. فَقُسِمَتِ الدَّارُ قِسْمَةً وَاحِدَةً نو كور به په يو خانې تقسيمولو سره تقسيمولې شی.

تشريح:- په كورونو كې ډير زيات اختلاف دې. نو كه يو كس بل څوك وكيل جوړ كړل. چه زما لپاره يو كور واخله. نو دا وكيل جوړول به صحيح نه وی. دغه ډول كه سړی د نكاح كاوه په وخت د مهر په اړه كې اووئيل. چه يو كور به دركوم. نو دا تسميه به صحيح نه وی. اوكه د كور په خانې دا د وكيل جوړولو او دنكاح مسئله په كپړو كې وی. نو هلته هم دا حكم دې. چه وكيل جوړول صحيح نه دی. او په نكاح كې تسميه صحيح نه ده. څكه چې كپړو كې هم ډير زيات اختلاف دې. البته كه يو كور په دوې (دوه) شريكانو كې مشترك دې. چه په هغې كې ډيرې كوټې (كمرې) دی. نو دلته كه هره اطاق جلا ويش كړې شی. نو نقصان كيدل ښكاره دی. په دې وجه دلته به ويش د جمعې اختيارولې شی. او څه كمرې به يو كس ته، او څه كمرې به بل كس ته وركولې شی.

### په دوو ښارونو كښې د مشتركو كورونو د ويش طريقه

قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: مرغينانی رحمه الله او فرمائيل. تَقْيِيدُ الْوَضْعِ فِي الْكِتَابِ إِشَارَةٌ د مسئلې وضع مقيد كول په كتاب كې دې خبرې ارخ ته اشاره ده. إِلَى أَنَّ الدَّارَيْنِ إِذَا كَانَتَا فِي مِصْرَيْنِ لَا تُجْمَعَانِ فِي الْقِسْمَةِ عِنْدَهُمَا چې دا كورونه كله چې په دوو ښارونو كې وی. نو په ويش كې به جمع نشي كولې. د صاحبينو رحمهما الله په نيز، وَهُوَ رِوَايَةُ هِلَالٍ عَنْهُمَا او هم دا د صاحبينو رحمهما الله نه د هلال رحمه الله روايت دې، وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يُقْسَمُ أَحَدُهُمَا فِي الْأُخْرَى او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی. چه په دې كې به يو د بل سره ملاوولې شی. او تقسيمولې شی.

حل اللغة: ① تقييد: مقيد كول ② بيوت: جمع د بيت، كور ③ الوضع: مقرر كول، كيخول، راوړل

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه د مسئلې په وضع كې امام قدوری رحمه الله د «فی مصر واحد» قيد لګولې دې. ددې نه معلوميږی. كه په دوو ښارونو كې كورونه وی. نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز به هم اوس ويش د جلا والی اختيارولې شی. هلال رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله نه هم دا روايت كړې دې. او د امام محمد رحمه الله دوهم روايت ددې په عكس دې. يعنی په ويش د جمعې سره ويش صحيح دې. صاحب د درمختار فرمائي. «ولو فی مصرين فقولهما كقوله» «اوګوری شامی ص ۱٦٦ ج۵»

### په يوه محله يا يو څو محلو كښې د مشتركو كورونو د ويش طريقه

قال امام قدوری رحمه الله او فرمائيل. . وَالْبُيُوتُ فِي مَحَلَّةٍ أَوْ مَحَالَّ تُقْسَمُ قِسْمَةً وَاحِدَةً او په يوه محله يا په يو څو محلو كې به كمرې په جلا جلا ويش سره تقسيمولې شی لِأَنَّ التَّفَاوُتَ فِيمَا بَيْنَهَا يَسِيرٌ، وَالْمَنَازِلُ الْمُتَلَازِقَةُ كَالْبُيُوتِ وَالْمُتَبَايِنَةُ كَالدُّورِ څكه چې ددې په مينځ كې تفاوت كم دې. او متصل منازل (واړه كورونه) د كمرو پشان دی. او جلا جلا د كورونو پشان دی. لِأَنَّهُ بَيْنَ الدَّارِ وَالْبَيْتِ عَلَى مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ څكه چې منزل (وړوكې كور) د لوئی كور او

كمرو په مينځ كي دي.د هغه تفصيل مطابق كوم چې وړاندې تير شوې دي. فَاَخَذَ شَبَهًا مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ نو منزل په اخلى مشابهت د هر يو نه.

تشريح:- د كور د تفصيلي حكم بيانولو نه روسته فرمائي.چه د كمرو حكم جلا دې.چه په دې كي زيات تفاوت نه وي.نوكه په يوه يا يو څو محلو كي مختلفې كمرې وي.نو واړه په يو خانې ملاوولو سره تقسيمولې شي.اوس پاتې شوه مسئله د منزلونو چې د كور نه وړوكى او د كمرې نه غټ وي.يعنى ددې درجه د كور او كمرې په مينځ كي ده.نو مونږ اووئيل.چه هركله ددې دواړو سره مشابهت دې.نو په حكم كي هم دواړو سره مشابهت كيدل پكار دى.نو مونږ اووئيـل.كه منزلونـه ( واړه كورونـه) متـصل دى.نو ددې حكم د كمرو دې.يعنى ويش د جمعې صحيح دې.او كه جلا جلا دى.نو بيا ددې حكم د كور دې.او ويش د جداوالى اختيارول ضرورى دى.او د دار( لوئې كور)، او منزل ( وړوكې كور) او بيت (كمرې) تفصيل مرغينانى رحمه الله په باب الحقوق د هدايه په دريم ټوك كي كړې دې.علامه شامى رحمه الله فرمائى ﴿اقول و لعل هذه فى زمانهم و إلا فالمنازل و البيوت و لو من دار واحد تتفاوت تفاوتاً فاحشاً فى زماننا....إلخ﴾ ﴿شامى ص ۱۶۶ ج۵﴾

### د كور او زمكې يا د كور او دوكان د ويش طريقه

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل. (وَاِنْ كَانَتْ دَارٌ وَضِيعَةٌ اَوْدَارٌ وَحَانُوتٌ قُسِمَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى حِدَةٍ) لِاخْتِلَافِ الْجِنْسِ كه كور او مځكه يا كور او دوكان وي.نو قاضى به په دې كي هر يو جلا جلا تقسيموى.د جنس د اختلاف په وجه. قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: جَعَلَ الدَّارَ وَالْحَانُوتَ جِنْسَيْنِ مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه امام قدورى رحمه الله كور.او دوكان دوې (دوه) جنسونه ګرځولى دى. وَكَذَا ذَكَرَ الْخَصَّافُ رحمه الله او هم دغه دول خصاف رحمه الله ذكر كړې دى. وَقَالَ فِي اِجَارَاتِ الْاَصْلِ: اِنَّ اِجَارَةَ مَنَافِعِ الدَّارِ بِالْحَانُوتِ لَاتَجُوْزُ او امام محمد رحمه الله په مبسوط په كتاب الاجاره كي فرمائيلى دى.چه د كور د منافعو اجاره د دوكان په بدله كي جائز نه ده. وَهٰذَا يَدُلُّ عَلٰى اَنَّهُمَا جِنْسٌ وَاحِدٌ او دا قول په دې خبره دلالت كوى.چه دا دواړه جنس واحد دې، فَيُجْعَلُ فِي الْمَسْئَلَةِ رِوَايَتَانِ اَوْتُبْتَنٰى حُرْمَةُ الرِّبَا هُنَالِكَ عَلٰى شُبْهَةِ الْمُجَانَسَةِ نو په مسئله كي به دوې (دوه) روايتونه ګرځولې شى.يا هلته د سود د حرمت شبه باندې مبنى ده.

حل اللغة: ① حانوت: دكان

تشريح:- مځكه او كور، دوكان او كور مختلف جنسونه دى.نو ددې ويش به جلا جلا وى.او ددې مختلف جنس والا كيدل امام قدورى او امام خصاف رحمهما الله نقل كړى دى.خو په مبسوط كي يوه جزئيه ده.چه د كور په بدله كي دوكان كرايه باندې اخستل، يعنى كور هم په كرايه باندې وى.او ددې اجرت دوكان وى.نو دا جائز ده.ددې نه معلومه شوه.چه كور او دوكان د يو جنس دى.اوس دوې (دوه) صورتونه دى.يا خو دا اووئيلې شى.چه په دې مسئله كي دوې (دوه) روايتونه دى.يو د جنس د اتحاد، او دوهم اختلاف د جنس، يا بيا داسې اووئيلې شى.چه دى خو دواړه مختلف جنس والا، خو د يو جنس كيدو شبه موجود ده.او د سود په اړخ كي شبه د حقيقت په درجه كي وى.په دې وجه دلته د سود د حرمت په وجه مذكوره اجارې ته نا جائز اووئيلى شو.

او د سود شبه په دې وجه ده چې هركله چې كور او دوكان يو جنس شمارلې شى.نو دلته اګرچه كمې زياتې جائز وى.خو پور نه جائز كيږى.او په اجاره كي منافع په يو خل نه وى.بلكه ګويا پور دې.چه دا په كرار كرار ادا كولې شى.په دې مقام عنايه، نتائج الافكار،او مجمع الانهر كي سوالونه او ځوابونه دى.د چا چې شوق وى.اودې ګورى.

## فصل في كيفية القسمة



ژباړه:- ( دا) فصل د ويش د طريقې ( په بيان) كي دې.

تشريح:- هركله چې مرغينانى رحمه الله دا بيان كړل.چه د كومو څيزونو ويش به كولې شى.او د كومو به نشى كولې.نو اوس د تقسيمولو طريقه بيانوى.په نورو الفاظو كي داسې د ذات او د موصوف د جواز ثابتولو نه روسته د هغې طريقه او صفت بيانوى.او طريقه او صفت د ذات تابع وى.

### د ويش طريقه

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل. (وَيَنْبَغِي لِلْقَاسِمِ اَنْ يُصَوِّرَ مَا يَقْسِمُهُ) او تقسيمونكى لپاره مناسب دى.چه كوم تقسيموى.د هغې نقشه جوړه كړى. لِيُمْكِنَهُ حِفْظُهُ (وَيُعَدِّلَهُ) يَعْنِي يُسَوِّيَهُ عَلٰى سِهَامِ الْقِسْمَةِ چې د هغې ياد ساتل ممكن وى.او دا د ويش په برخو باندې برابر كړى. وَيُرْوٰى يَعْزِلُهُ: اَيْ يَقْطَعُهُ بِالْقِسْمَةِ عَنْ غَيْرِهِ (وَيَذْرَعُهُ) لِيُعْرَفَ قَدْرُهُ او نقل دى.،،ويعزله،، يعنى دا د ويش په ذريعه ددې د غيرنه جلا كړى.او ددې ناپ اوكړى.چه ددې مقدار معلوم شى (وَيُقَوِّمَ الْبِنَاءَ) لِحَاجَتِهِ اِلَيْهِ فِي الْاٰخِرَةِ او د عمارت قيمت اولګوى.هغې ( قيمت) ته د محتاج كيدو په وجه.په آخر كي ، (وَيُفْرِزَ كُلَّ نَصِيْبٍ عَنِ الْبَاقِي بِطَرِيْقِهِ وَشُرْبِهِ) او هره برخه دې د پاته نه جلا كړى.د هغې د لارې او اوبو سره. حَتّٰى لَايَكُوْنَ لِنَصِيْبِ بَعْضِهِمْ بِنَصِيْبِ الْاٰخَرِ تَعَلُّقٌ) تردې چې په دې كي د بعضو د برخې (حصې) د بعضو سره تعلق پاتې نشى. فَتَنْقَطِعَ الْمُنَازَعَةُ وَيَتَحَقَّقَ مَعْنَى الْقِسْمَةِ عَلَى التَّمَامِ نو جګړه به ختمه شى.او د ويش معنى به پوره طريقه باندې ثابته شى.

حل اللغة: ① سهام: حصې ② يذرعه: كرى نې ③ يفرز: جدا كوى ④ المنازعة: جګړه

تشريح:- دا ټولې خبرې د تقسيمونكى د آسانتيا لپاره دى.چه مځكې ددې زمكې نقشه په كاغذ باندې جوړه كړى.چه په ذهن كي وى.او ددې څومره برخه دار دى.د هغې په اعتبار سره د زمكې برخې (حصې) برابرې كړى.او د هغې ناپ اوكړى.چه معلومه شى.چه څومره ده.او چونكه آخر كي قيمت ته هم اړتيا راپيښيدې شى.په دې وجه دې د مځكې نه د عمارت قيمت اولګوى.چه جګړه بالكل ختمه شى.نو كه ممكن وى.د هر يوكس برخه دې سره د لارې او اوبو جلا جلا كړى.

### د زمكې حصې مقررول.نومونه مقررول.بيا قرعه اندازي كول

ثُمَّ يُلَقِّبُ نَصِيْبًا بِالْاَوَّلِ بيا دې نومونه مقرر كړى.د يوې برخې (حصې) ړومبى سره، وَالَّذِي يَلِيْهِ بِالثَّانِي او كومه چې دې سره متصل ده.هغه په دوهم وَالثَّالِثُ عَلٰى هٰذَا او دريم په دې طريقه، ثُمَّ يُخْرِجُ الْقُرْعَةَ، فَمَنْ خَرَجَ اسْمُهُ اَوَّلًا فَلَهُ السَّهْمُ الْاَوَّلُ بيا دې قرعه ( خسنړې) اوباسى.نو د چا نوم چې مخكې راوځى.هغه لپاره ړومبۍ برخه ده. وَمَنْ خَرَجَ ثَانِيًا او دچا چې دوهم راوځى ، فَلَهُ السَّهْمُ الثَّانِي .هغه لپاره دويمه برخه ده.

حل اللغة: ① القرعة: خسنړې

تشريح:- يعنى د زمكې برخې (حصې) دې جوړې كړى.د هغې نومونه دې مقرر كړى.چه دا ړومبۍ برخه ده.او ددې نه روستو والا دويمه ده.او وروسته دريمه ده.بيا دې قرعه اندازى اوكړى.( خسنړې دې اوباسى). نو د چا نوم چې مخكې راوځى.هغه ته دې ړومبۍ برخه وركړى.او د چا چې دوهم خل راوځى.د هغه دويمه برخه ده.او د دريم دريمه برخه ده.

### د ويش كولو قاعده كليه

وَالْاَصْلُ اَنْ يَنْظُرَ فِي ذٰلِكَ اِلٰى اَقَلِّ الْاَنْصِبَاءِ، او قاعده كليه دا ده.چه په دې حصوكي د ټولو نه په كمتر باندې نظر اوكړى. حَتّٰى اِذَا كَانَ الْاَقَلُّ ثُلُثًا جَعَلَهَا اَثْلَاثًا،كله چې ګمه دريمه وى.نو كور دې په دريو برخو كړى. وَاِنْ كَانَ سُدُسًا جَعَلَهَا اَسْدَاسًا او كه شپږمه وى.نو دا دې په شپږو برخو كړى. لِيَتَمَكَّنَ الْقِسْمَةُ، وَقَدْ شَرَحْنَاهُ مُشْبَعًا فِي

كِفَايَةِ الْمُنْتَهٰى بِتَوْفِيقِ اللّٰهِ تَعَالٰى چې ويش ممكن وي.او موږ ددې پوره شرح (تفصيل) د الله تعالى په توفيق سره كفاية المنتهى كي كړې دې.

**حل اللغة:** ① الانصباء: جمع د نصيب برخه ② مشيع: مرونكې

**تشريح:**- اوس دلته دا سوال وو.چه مځكه به په څومره برخو تقسيموی؟ نو دلته ددې ځواب وركوی.او يوه قاعده كليه بيانوی.كه شريكان ډير وي.او ددوی برخې (حصې) برابر وي.نو ويش به د سړو د تعداد مطابق وي...وهو ظاهر.. او كه په برخو كي تفاوت دې.نو كومه برخه چې د ټولو نه وړه ده.هغه واخله.او په دغومره برخو باندې ټوله مځكه ويش كړه.په دې سره به د ټولو حساب راوځي.مثلاً درې شريكان دی.او د ټولو برخه برابر ده.نو په دريو به تقسيمولې شی.اوكه درې شريكان دی.او د يوحصه نصف ده.او د دوهم دريمه برخه ده.او د دريم كس شپږمه ده.نو د زمكې به شپږ برخې (حصې) كولې شی.بيا به ړومبی ته درې برخې (حصې) او دوهم ته دوې (دوه) برخې (حصې) او دريم ته به يوه برخه وركولې شی.دغه ډول څلور شريكان دی.د يو نصف ده.او د دوهم دريمه برخه ده.او د دوو دولسمه برخه ده.نو د زمكې به دولس برخې (حصې) جوړولې شی.آخری دوارو ته به يوه يوه او دوهم ته به څلور برخې (حصې) او ړومبی ته به شپږ برخې (حصې) ملاويږی.مرغينانی رحمه الله فرمانی.چه موږ په دې باندې تفصيلی بحث په كفايت المنتهى كي كړې دې.

## د هرې حصې لاره او اوبه جدا كول

وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ: وَيُفْرِزُ كُلُّ نَصِيبٍ بِطَرِيقِهِ وَشُرْبِهِ بَيَانُ الْأَفْضَلِ او د امام قدوری رحمه الله قول په كتاب كي «ويفرز كل نصيب بطريقه وشربه» د افضليت بيان دې. فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ أَوْلَمْ يُمْكِنْ جَازَ عَلَى مَا نَذْكُرُهُ بِتَفْصِيلِهِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى نو كه قاضی اونكړی.يا ممكن نه وي.نو جائز ده.لكه چې موږ به انشاء الله ددې تفصيل ذكركړو. وَالْقُرْعَةُ لِتَطْيِيبِ الْقُلُوبِ وَإِزَاحَةِ تُهْمَةِ الْمَيْلِ او قرعه (خسنړې) د زړونو تسلئ او د مائل كيدو د تهمت لرې كاوه لپاره دې. حَتّٰى لَوْ عَيَّنَ لِكُلٍّ مِنْهُمْ نَصِيبًا مِنْ غَيْرِ اقْتِرَاعٍ جَازَ ترديې كه قاضی د خسنړې نه بغير د هر يو برخه مقرر كړی.نو جائز ده. لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْقَضَاءِ ځكه چې ويش د قضاء په معنى كي دې. فَيَمْلِكُ الْإِلْزَامَ .نو قاضی به د لازمولو مالك وي.

**حل اللغة:** ① تطييب: خوشحاله كول ② القلوب: جمع د قلب ،زړه ③ اقتراع: خسنړې اچول ④ ميل: ميلان، رغبت

**تشريح:**- يعنی امام قدوری رحمه الله چه كوم دا فرمائيلی دی.چه هره يوه برخه سره د لارې او اوبو جلا كړی.دا د افضليت بيان دې.ګنی كه قاضی داسې اونكړی.يا داسې ممكن نه وي.نو بيا هم جائز ده.او خسنړې اچول څه ضروری نه دی.بلكه د زړونو مطمئن كولو، او ددې تهمت لرې كاوه لپاره دې.چه قاضی د فلانی اړخ داری كړې ده.ګنی كه قاضی د خسنړی نه بغير پخپله برخې (حصې) مقرر كړی.نو كولې شی.ځكه چې قاضی ته ولايت د الزام حاصل دې.او دا هم د قضاء كار دې.اوكه تقسيمونكې وي.نو هغه هم د قاضی نمائنده (نائب) دې.هغه هم برخې (حصې) مقررولې شی.

## په ويش كښې دراهم او دنانير د شريكانو په رضامندئ سره شرې كولاې شي

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. (وَلَا يَدْخُلُ فِي الْقِسْمَةِ الدَّرَاهِمُ وَالدَّنَانِيرُ إِلَّا بِتَرَاضِيهِمْ) په ويش كي دې دراهم او دنانير نه داخلوی.خو د شريكانو په رضامندئ سره لِأَنَّهُ لَا شَرِكَةَ فِي الدَّرَاهِمِ وَالْقِسْمَةُ مِنْ حُقُوقِ الْإِشْتِرَاكِ) ځكه چې دراهمو كي شركت نشته.او ويش د اشتراك د توابعو څنې دې. وَلِأَنَّهُ يَفُوتُ بِهِ التَّعْدِيلُ فِي الْقِسْمَةِ او ځكه چې په دې ويش كي به برابری فوت كيږی. وَأَنَّ أَحَدَهُمَا يَصِلُ إِلٰى عَيْنِ الْعَقَارِ ځكه چې ددې څخه به يو عين زمكې اړخ ته رسيږی وَدَرَاهِمُ الْآخَرِ فِي ذِمَّتِهِ حالانكه د بل دراهم به دده په ذمه وي وَلَعَلَّهَا لَا تُسَلَّمُ لَهُ ..او كيداې



شی چې دراهم هغه ته اونه سپارلې شی.

**تشريح:**- د زمكې په ويش كي به د شريكانو د رضامندئ نه بغير دراهم او دنانير نشی داخلولې.ځكه چې ددوی شركت په مځكه كي دې.په دراهمو كي نه دې.او ويش په هغه شئ كي وي.په كوم كي چې شركت وي.او هغه مځكه ده.او په داسې كاوه سره برابری نشی كيدې.ځكه د چا په برخه كي چې مځكه راغله.نو هغه خو په دې قبضه كونكې شو.او دا قبضه كونكې به چې چاته روپئ وركوی.هغه په ده باندې اوس واجب دی.چه وركړې ئې نه دی.نو برابری چرته پاتې شوه؟

او دا هم كيداې شی.چه نن سهار كوی.او د هغه روپئ هغه ته او نه سپاری.ددې صورت دا دې.چه يوكور د دوو سړو په مينځ كي مشترك دې.په دوی كي يوكس غواړی.چه كوم اړخ ته عمارت زيات دې.هغه زه واخلم.او دوهم ته به زه ددې عوض وركړم.اوس هغه دوهم غواړی.چه زه ددې په عوض كي مځكه اخلم.او دې غواړی.چه قيمت وركوم.نو قاضی زبردستی نشې كولې.او دوهم ته به مځكه وركول لازمی وي.ځكه چې دده شراكت په مځكه او عمارت كي دې.په روپو كي نه دې.خو كوم ځائې چې د روپو او پيسو داخلولو نه بغير لاره نه وي.هلته به مجبوراً داخلولې شی.﴿كذا فی مجمع الأنهر، ص:۴۷۵ج۲﴾

## د عمارت او خالي پلاټ تقسيمولو طريقه

(وَإِذَا كَانَ أَرْضٌ وَبِنَاءٌ) وكله چې مځكه او آبادی وي (فَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَقْسِمُ كُلَّ ذٰلِكَ عَلٰى اعْتِبَارِ الْقِيمَةِ) نو د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.چه هر يو به د قيمت په اعتبار سره تقسيمولې شی. لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُعَادَلَةِ ځكه چې د برابرئ اعتبار ممكن نه دې إِلَّا بِالتَّقْوِيمِ .خو په قيمت لګولو سره.

**تشريح:**- شريكان چې د كومې زمكې ويش غواړی.په هغې كي څه آبادی ده.او څه خالی مځكه ده.نو اوس به قاضی څه كوی؟ نو په دې كي درې قوله دی.① يو د امام ابويوسف رحمه الله قول دې.چه د هر يو به قيمت لګولې شی.او د قيمت په ذريعه به تقسيمولې شی.ځكه چې ددې نه علاوه دلته برابری نشی كيدې.ځكه چې ناپ كاوه سره مځكه او آبادئ كي برابری نه ثابتيږی.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يَقْسِمُ الْأَرْضَ بِالْمِسَاحَةِ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی.چه مځكه به ناپ كاوه سره تقسيمولې شی. لِأَنَّهُ هُوَ الْأَصْلُ فِي الْمَمْسُوحَاتِ، ثُمَّ يَرُدُّ مَنْ وَقَعَ الْبِنَاءُ فِي نَصِيبِهِ ځكه چې د ناپ په څيزونو كي هم دا اصل دې.بيا د چا په برخه كي چې آبادی واقع شوه. أَوْ مَنْ كَانَ نَصِيبُهُ أَجْوَدَ دَرَاهِمَ عَلَى الْآخَرِ حَتّٰى يُسَاوِيَهُ يا د چا برخه چې ډيره ښه وي.هغې دې دوهم كس ته څه دراهم وركړی.ترديې چې هغه دده برابر شی. فَتَدْخُلُ الدَّرَاهِمُ فِي الْقِسْمَةِ ضَرُورَةً كَالْأَخِ لَا وِلَايَةَ لَهُ فِي الْمَالِ نو د اړتيا په بنا (بنياد) به دراهم په ويش كي داخليږی.لكه رور، چې ده ته د خور په مال كي ولايت نشته. ثُمَّ يَمْلِكُ تَسْمِيَةَ الصَّدَاقِ ضَرُورَةَ التَّزْوِيجِ بيا به هم هغه د نكاح د اړتيا په وجه د مهر متعين كاوه مالك وي.

**حل اللغة:** ① المساحة: ناپ پيمائش ② اجود: ښه ③ الصداق: مهر

**تشريح:**- په دې عبارت كي دوهم قول د امام ابوحنيفه رحمه الله قول ذكر كوی.چه ويش به ناپ كاوه سره كيږی.بيا چې د كوم كس برخه ښه (اعلى) وي.يا دچا په برخه كي چې آبادی ده.هغه به دوهم كس ته دغومره دراهم وركوی.چه دواړه برابر شی.

او په ويش كي اګرچه دراهم او دنانير نشی داخلولې؟ خو دلته د اړتيا په بناء سره داخل شوی دی.ددې مثال بالكل داسې دې.لكه څنګه چې رور ته دا ولايت نشته.چه هغه د خور په مال كي تصرف اوكړی.خو كله چې رور ته د نكاح ولايت ملاو شی.نو د اړتيا په بناء به د مهر متعين كاوه حق هم ملاويږی.حالانكه دا مال دی.خو تبعاً د اړتيا په په بنا (بنياد) دا حق ملاو شوې دې.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يَرُدُّ عَلٰى شَرِيكِهِ بِمُقَابَلَةِ الْبِنَاءِ مَا يُسَاوِيهِ مِنَ الْعَرْصَةِ، او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه هغه به پخپل

شريك باندې د آبادۍ په بدله كي دومره غولې (صحن) (انګڼ) واپس كوی.كوم چې د آبادۍ برابر وی. يَفِي فَضْلَ او كله چې څه زياتوالې پاته پاتې شی وَلَمْ يُمْكِنْ تَحْقِيقُ التَّسْوِيَةِ او برابری ثابتول ممكن نه وی وَإِذَا كَانَ لَا تَفِي الْعَرْصَةُ بِقِيمَةِ الْبِنَاءِ ..په دې طريقه چې غولې (صحن) د آبادۍ قيمت پوره نكړې شی. فَحِينَئِذٍ يَرُدُّ لِلْفَضْلِ دَرَاهِمَ نو دغه وخت د.زياتوالی لپاره به څه دراهم واپس كوی. لِأَنَّ الضَّرُورَةَ فِي هَذَا الْقَدْرِ فَلَا يُتْرَكُ الْأَصْلُ إِلَّا بِهَا څكه چې اړتيا په دې مقدار كې دې.نو اصل به نشی پريښودې .خو په دې سره، ،وَهَذَا يُوَافِقُ رِوَايَةَ الْأَصْلِ او دا د مبسوط د روايت مطابق دې.

حل اللغة: ① التسوية: برابری ② العرصة: ميدان، غيراباده مځكه

تشريح:- په دې عبارت كي دريم د.امام محمد رحمه الله قول ذكر كوی چې د چا په برخه كي څومره آبادی راغلې ده.هغه دې د آبادۍ په بدله كي د كور دومره غولې (صحن) (انګڼ) وركړی.چه د آبادۍ د قيمت برابر شی.خوكه غولې (صحن) هم ختم شی.او د برابرۍ هيڅ صورت پاتې نشی.دغه وخت دې د زيادت په اندازه د آبادۍ والا دوهم كس ته دراهم وركړی.څكه قاعده دا ده.چه ..الضرورة تتقدر بقدر الضرورة.، او اړتيا په دومره مقدار كي دې.

**كه د ويش په وخت د لارې او لښتی ذكر نه وی شوې نو اوس به څه كيږي؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. (فَإِنْ قَسَمَ بَيْنَهُمْ وَلِأَحَدِهِمْ مَسِيلٌ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ) نوكه قاضی ددوی په مينځ كي ويش اوكړو.او په دوی كي د يوكس لښتی دې.د بل كس په برخه كي. أَوْ طَرِيقٌ لَمْ يُشْتَرَطْ فِي الْقِسْمَةِ يا لاره ده.چه شرط شوی نه ده په ويش كي. فَإِنْ أَمْكَنَ صَرْفُ الطَّرِيقِ وَالْمَسِيلِ عَنْهُ .نوكه لاره او لښتي ددې (حصې) نه اړول ممكن وی. لَيْسَ لَهُ أَنْ يَسْتَطْرِقَ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ نو هغه ته حق نشته.چه هغه د بل په برخه كي لاره جوړه كړی.او اوبه اوبيوی. لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَحْقِيقُ مَعْنَى الْقِسْمَةِ مِنْ غَيْرِ ضَرَرٍ څكه چې د ويش معنی ثابتول د ضرر نه بغير ممكن دی. (وَإِنْ لَمْ يُمْكِنْ فُسِخَتِ الْقِسْمَةُ) او كه ممكن نه وی.نو ويش به فسخ كولې شی. لِأَنَّ الْقِسْمَةَ مُخْتَلَّةٌ څكه چې ويش مختل (ګډ وډ) دې لِبَقَاءِ الِاخْتِلَاطِ د اختلاط د پاته پاتې كيدو په وجه فَتُسْتَأْنَفُ ..نو ويش به د سره كيږي.

حل اللغة: ① المسيل: د اوبو لاره،لښتې ② يستطرق: لاره جوړول ③ تستانف: د سرنه پيل كيږی

تشريح:- قاضی د شريكانو په مينځ كي ويش اوكړو.او د ويش په وخت ئې د لارې او د لښتی هيڅ ذكر اونكړو.او حال دا دې.چه يو د بل كس په برخه كي تيريږی.او د هغه په برخه كي خپله نالۍ بهيږی.نو اوس به څه كيږی؟ نو وې فرمائيل.چه اوس دوې (دوه) صورتونه دی ① كه هغه خپله لاره او نالۍ خپله برخه كي جوړولې شی.نو بيا اړول ضروری دی.② اوكه نشی جوړولې.يعنی دهغه برخه ددې برداشت نشی كولې.نو بيا به ويش فسخ كولې شی.او دوباره به تقسيمولې شی.څكه چې دې صورت كي د ويش مقصود كوم چې د منفعت پوره والې دې.حاصل نشو.

بِخِلَافِ الْبَيْعِ حَيْثُ لَا يَفْسُدُ فِي هَذِهِ الصُّورَةِ په خلاف د بيع،په دې حيثيت سره چې بيع به په دې صورت كي نه فاسديږی. لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهُ تَمَلُّكُ الْعَيْنِ، وَأَنَّهُ يُجَامِعُ تَعَذُّرَ الِانْتِفَاعِ فِي الْحَالِ څكه چې د بيع مقصود د عين تملك دې.او دا (دعين تملك) فی الحال د نفعې اخستلو عذر سره جمع كيږی. ،أَمَّا الْقِسْمَةُ لِتَكْمِيلِ الْمَنْفَعَةِ بهرحال ويش نو دا د منفعت د تكميل لپاره دې ،وَلَا يَتِمُّ ذَلِكَ إِلَّا بِالطَّرِيقِ .او دا (منفعت) به نه پوره كيږی.خو لارې سره.

تشريح:- اوكه زيد د بكر كور واخستلو.او د بكر په برخه كي د خالد د لاره او لښتې دې.او د خالد برخه ددې برداشت نشی كولې.چه هغه خپله لاره او لښتې په دې كي جوړ كړې شی.نو بيع نه فاسديږی.او وجه د توپير دا ده.چه د بيع مقصود جلا دې.او د ويش مقصود جلا دې.په دې صورت كي ويش فسخ كړې شوې دې.د



ويش منفعت ختميدو په وجه.او بيع به پخپل حال پاته ساتلې شی.ددې د مقصود پاتې كيدو په وجه.څكه چې د بيع مقصود د مبيع مالك جوړيدل دی.او دلته خو انتفاع مختل شوې ده.كه انتفاع فی الحال متعذر شی.نو بيا هم تملك د عين حاصل دې.په دې وجه به بيع نشی فسخ كولې شی.

**كه په ويش كښې د حقوقو ذكر شوې وینو د لارې او لښتی اړولو حكم**

وَلَوْ ذَكَرَ الْحُقُوقَ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ كَذَلِكَ الْجَوَابُ اوكه په رومبي صورت كي د حقوقو ذكركړې شوې وی.نو هم دغه ډول خواب دې. لِأَنَّ مَعْنَى الْقِسْمَةِ الْإِفْرَازُ وَالتَّمْيِيزُ، وَتَمَامُ ذَلِكَ بِأَنْ لَا يَبْقَى لِكُلِّ وَاحِدٍ تَعَلُّقٌ بِنَصِيبِ الْآخَرِ څكه چې د ويش معنی جلا جلا كول او تفريق دې.او د جلا كيدو پوره والې دا دې.چه د هر يوكس د بل برخې (حصې) سره هيڅ تعلق پاته پاتې نشی. وَقَدْ أَمْكَنَ تَحْقِيقُهُ بِصَرْفِ الطَّرِيقِ وَالْمَسِيلِ إِلَى غَيْرِهِ مِنْ غَيْرِ ضَرَرٍ فَيُصَارُ إِلَيْهِ او ددې اثبات ممكن دې.د لارې او لښتې اړولو سره.ددې غير اړخ ته.د ضرر نه بغير نو اړولې به شی هغې اړخ ته، بِخِلَافِ الْبَيْعِ إِذَا ذُكِرَ فِيهِ الْحُقُوقُ حَيْثُ يَدْخُلُ فِيهِ مَا كَانَ لَهُ مِنَ الطَّرِيقِ وَالْمَسِيلِ په خلاف د بيع كله چې حقوق ذكركړې شوی وی.په دې حيثيت سره چې په ويش كي به هغه لاره او لښتې داخل وی.كوم چې دده لپاره دی. لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَحْقِيقُ مَعْنَى الْبَيْعِ څكه چې د بيع د معنی اثبات ممكن دې ،وَهُوَ التَّمْلِيكُ مَعَ بَقَاءِ هَذَا التَّعَلُّقِ بِمِلْكِ غَيْرِهِ .او هغه تمليك دې. سره د پاته پاتې كيدو ددې تعلق د غير ملك سره.

تشريح:- اوكه لاره او لښتې اړول ممكن وی.او په ويش كي دحقوقو ذكر راغلې وی.چه دا برخه ستا لپاره ده. سره ددې د حقوقو، نو اوس هم دا حكم دې.چه لاره او لښتې اړول به ضروری وی.څكه چې ددې نه بغير به د ويش مقصود نه ثابتيږی.اوكه بعينه هم دا صورت په بيع كي وی.نو د لارې او لښتی اړولو اړتيا به نه وی.څكه چې د بيع معنی اوس هم متحقق ده.

ف دا تفصيل د حقوقو په ذكر كاوه كي دې.او كه باقاعده دا شرط اوكړې شو.چه ددې لاره او لښتې به د بل په برخه كي وی.نو دا به پخپل حال ساتلې شی. ﴿قال الشامي أما لو إشترط تركهما حالها فلا تفسخ ويكون له ذالك على ما كان قبل القسمة﴾ ﴿ردالمختار ص:۱۶۷،ج۵﴾

**دوهم صورت**

وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي يَدْخُلُ فِيهَا او په دوهم صورت كي به لښتې او لاره په ويش كي داخلوی. لِأَنَّ الْقِسْمَةَ لِتَكْمِيلِ الْمَنْفَعَةِ څكه چې ويش د منفعت پوره والی لپاره دې وَذَلِكَ بِالطَّرِيقِ وَالْمَسِيلِ .او دا پوره والې به لارې اولښتی سره وی. فَيَدْخُلُ عِنْدَ التَّنْصِيصِ بِاعْتِبَارِهِ،نو دا (لاره او لښتې) به د تصريح په وخت داخل وی.د پوره والی اعتبار كاوه سره. وَفِيهَا مَعْنَى الْإِفْرَازِ او په ويش كي د جلا والی معنی ده وَذَلِكَ بِانْقِطَاعِ التَّعَلُّقِ او جلا والې د تعلق ختميدو سره دې عَلَى مَا ذَكَرْنَا ..د هغه تفصيل په وجه كوم چې موږ ذكر كړې دې. ،فَبِاعْتِبَارِهِ لَا يَدْخُلُ مِنْ غَيْرِ تَنْصِيصٍ نو د جداوالی په اعتبار سره به دا تصريح نه بغير نه داخليږی. بِخِلَافِ الْإِجَارَةِ حَيْثُ يَدْخُلُ فِيهَا بِدُونِ التَّنْصِيصِ په خلاف د اجارې په دې حيثيت سره چې اجاره كي به دا (لاره او لښتې) د تصريح نه بغير نه داخليږی. ،لِأَنَّ كُلَّ الْمَقْصُودِ الِانْتِفَاعُ وَذَلِكَ لَا يَحْصُلُ څكه چې د واړه مقصود انتفاع ده.او دا به نه حاصليږی إلا، إِلَّا بِإِدْخَالِ الشُّرْبِ وَالطَّرِيقِ .خو د اوبو بهيولو او د لارې داخلولو سره. فَيَدْخُلُ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ نو د ذكر نه بغير به دواړه داخليږی.

حل اللغة: ① الافراز: جدا كول ② الانقطاع: ختمول ③ الانتفاع: فائده اخستل ④ تنصيص: صراحت كول ،بيانول

تشريح:- په ويش كي دوې (دوه) جهته دی.يو د منفعت پوره والې دې.او دوهم جداكيدل دی.نو دلته به د دواړو لحاظ ساتلې كيږی.نو موږ اووئيل.كه د حقوقو صراحت كړې شوې وی.او لاره او لښتې اړول ممكن نه وی.نو لاره او لښتې به په ويش كي داخل منلې شی.او د جداوالی اعتبار كاوه سره د صراحت نه بغير به لاره

او لختي په ويش كي نه داخليږي.او ويش به فسخ كولې شي.او دوباره به ويش كولې شي.او هم دا خبره كه اجاره كي وي.چه د لارې او لختي ذكر نه وي راغلې.بيا به هم لاره او لختي په دې كي داخل نه وي.ځكه چې د لارې او لختي نه بغير انتفاع نشي كيدې.او نفع حاصلول د اجارې مقصد دې.

**په لاره پريخودو كښې د شريكانو د اختلاف مسئله**

(وَلَوِ اخْتَلَفُوا فِي رَفْعِ الطَّرِيقِ بَيْنَهُمْ فِي الْقِسْمَةِ) وكه شريكانو اختلاف اوكړو.په لاره پريخودو پخپل مينځ كي په ويش كي ، إِنْ كَانَ يَسْتَقِيمُ لِكُلِّ وَاحِدٍ طَرِيقٌ يَفْتَحُهُ فِي نَصِيبِهِ نو كه د هر يو لپاره لاره كيداې شي.چه دا هغه پخپله برخه كي كلاو كړي. قَسَمَ الْحَاكِمُ مِنْ غَيْرِ طَرِيقٍ يُرْفَعُ لِجَمَاعَتِهِمْ) نو حاكم ويش كولې شي.دهغه لارې نه بغير كومه چې ددوی د جماعت لپاره پريښودې شي لِتَحَقُّقِ الْإِفْرَازِ بِالْكُلِّيَّةِ دُونَهُ .د لارې پريخودو نه بغير په يقيني طور د جداوالی معنی دمتحقق كيدو په وجه.

**حل اللغة:** ① تكميل: پوره كول ② يفتح: كولاؤ كړی ③ طريق: لاره

**تشريح:**- شريكانو پخپل مينځ كي اختلاف اوكړو.چا اوونيل.لاره دې پريښودې شي.او چا انكار اوكړو.نو قاضی دې اوګوري.كه هر يو پخپله برخه كي لاره كلاوولې شي.نو قاضی دې د لارې پريخودو نه بغير ويش اوكړي.ځكه چې هيڅ پريشانی به نه وي.

**كه جلا جلا لاره ممكن نه وينو د مشترك لارې حكم**

(وَإِنْ كَانَ) اوكه دا نشي كيداې لَا يَسْتَقِيمُ ذَلِكَ رَفَعَ طَرِيقًا بَيْنَ جَمَاعَتِهِمْ) .نو قاضی دې ددوی په مينځ كي لاره پريږدي. لِيَتَحَقَّقَ تَكْمِيلُ الْمَنْفَعَةِ فِيمَا وَرَاءَ الطَّرِيقِ چې د لارې نه علاوه كي د منفعت تكميل متحقق شي.

**تشريح:**- د هر شريك برخه داسې نه ده.چه په دې كي لاره كلاو كړې شي.نو بيا دې قاضی مشترك لاره پريږدي.او ګويا ويش د لارې نه علاوه په پاته برخه كي دې.

**د لارې په مقدار كښې د اختلاف مسئله**

(وَلَوِ اخْتَلَفُوا فِي مِقْدَارِهِ) وكه شريكانو اختلاف اوكړو.د لارې په مقدار كي جُعِلَ عَلَى عَرْضِ بَابِ الدَّارِ وَطُولِهِ) ،نو دا به د كور د دروازې په پلن والی او ددې د اوګدوالی مطابق ګرځولې شي. لِأَنَّ الْحَاجَةَ تَنْدَفِعُ بِهِ (وَالطَّرِيقُ عَلَى سِهَامِهِمْ خكه چې حاجت به په دې سره پوره كيږي.او لاره به ددوی د برخو په اندازه وي. كَمَا كَانَ قَبْلَ الْقِسْمَةِ) لكه څنګه چې د ويش نه وړاندې وو. لِأَنَّ الْقِسْمَةَ فِيمَا وَرَاءَ الطَّرِيقِ لَا فِيهِ ځكه چې ويش د لارې نه علاوه كي دې.په لاره كي نه دې. (وَلَوْ شَرَطُوا أَنْ يَكُونَ الطَّرِيقُ بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا جَازَ) او كه دوی شرط اوكړو.چه لاره ددوی په مينځ كي درې برخې (حصې) كړې شي.نو جائز ده. (وَإِنْ كَانَ أَصْلُ الدَّارِ نِصْفَيْنِ) اګرچه اصل كور په دوو برخو كي وي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ عَلَى التَّفَاضُلِ جَائِزَةٌ بِالتَّرَاضِي. ځكه چې كمی زياتی سره ويش رضامندئ سره جائز دې.

**حل اللغة:** ① عرض: پلنوالې ② باب: دروازه ③ الدار: كور ④ الحاجة: اړتيا ⑤ وراء: سوا، زياتی ⑥ طول: اوږدوالې ⑦ سهام: جمعه د سهم، برخه ⑧ التفاضل: زياتی والې

**تشريح:**- په شريكانو كي اختلاف دې.چه لاره څومره پكار ده.نو دكور د دروازې په اندازه دې پريښودې شي.چه ويش د لارې نه علاوه پاته برخو كي دې.په لاره كي نه دې.نو ددوی ملكيت چې پاته برخو كي په اودهر شريك په مخكه كي لاره د هغه د برخې (حصې) په حساب سره پريښودې شي.او داسې به ونيلې كوم اندازه سره دې.دلته به هم هغه اندازه سره وي.البته كه هغوی راضی شي.او كمې زياتې كوی.چه زيد نيمه برخه پريږدي.او خالد دريمه برخه پريږدي.حالانكه د دواړو ملكيت برابر دې.نو جائز دې.ځكه چې دا كمې زياتې رضامندئ سره كيږي.او رضامندئ سره كمې زياتې په ويش كي جائز وي.





فائده: دلته د اوګدوالی نه مراد اوچتوالې دې..يعنی دې كي اختلاف وو.چه كوم خانې پورې لاره اوچته كړې شي.نو په دې صورت كي به قاضی فيصله كوی.چه د لارې د غټ ګيټ اوچت والې دې اوګوري.او ددې مطابق دې د اوچتوالی فيصله اوكړې شي.او په پلن والی كي دې هم ددې ګيټ پلنوالې اوګوري.اوګورئ «درمختار اوشامی ص۱٦۷ج۵»

**په پورتنی چت او لاندينی چت كښې د ويش طريقه**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. (وَإِذَا كَانَ سُفْلٌ لَا عُلُوَّ عَلَيْهِ وَعُلُوٌّ لَا سُفْلَ لَهُ و كله چې لاندينې منزل (كور) وي.چه ددې سربيره بالاخانه نه وي.او بالاخانه وي.چه هغې لپاره لاندې منزل (كور) نه وي. وَسُفْلٌ لَهُ عُلُوٌّ قُوِّمَ كُلُّ وَاحِدٍ عَلَى حِدَتِهِ او دغه ډول لاندې منزل وی.چه هغې لپاره بالاخانه وي.نو د هر يو به جلا قيمت لګولې شي. وَقُسِمَ بِالْقِيمَةِ او د قيمت په ذريعه به ويش كولای شي وَلَا مُعْتَبَرَ بِغَيْرِ ذَلِكَ) .او ددې نه د علاوه اعتبار به نشي كولې.

**تشريح:**- د زيد او عمر اشتراك دې.عنی په ړومبی كور كي زيد او عمر پورتنی منزل كي شريك دی.او لاندينې منزل د بل چا دی.او په دوهم كور كي زيد او عمر په لاندينی منزل كي شريك دی.او پورتنې منزل د بل چا دې.او په دريم كور كي دواړه منزلـه (چتونـه) شريك دی.اوس دوی دواړو د قاضی نه د ويش مطالبه اوكړله.نو قاضی به څه كوی؟

نو امام محمد رحمه الله اوفرمائيل.چه د هر كور دې جلا جلا قيمت اولګولې شي.او د قيمت په اعتبار سره دې ويش كړې شي.او دا د امام محمد رحمه الله قول دې.چه دا مرغينانی اوس بيانوی.او هم په دې فتوی ده.خو دلته ښكاره د عبارت نه دا معلوميږي.چه مطلقاً به د قيمت په اعتبار سره ويش كولې شي.خو په شامی او مجمع الانهر وغيره كي صراحت دې.چه د عمارت قيمت به لګولې شي.او خالص د زمكې او غولې (صحن) قيمت ويش به ګزونو (ناپ كولو) سره كولې شي. «ثم الإختلاف فی الساحة وأما البناء فيقسم بالقيمة إتفاقاً كما فی الجوهرة» شامی ص:۱٦۷ ج۵، سكب الأنهر ص:۳۲۲ ج۲، مجمع الأنهر ص:٤۷٦ ج۲»

**د شيخينو رحمهما الله مسلك**

قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: حضرت مرغينانی رحمه الله وفرمائيل. هَذَا عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ[1] چې دا د امام محمد رحمه الله په نيز دی. وَقَالَ أَبُو حَنِيفَةَ وَأَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ: او امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله فرمائيلی دی يُقْسَمُ بِالذَّرْعِ .چه د ناپ په ذريعه به ويش كولې شي.

**تشريح:**- يعنی د امام محمد رحمه الله په نيز به قيمت سره ويش كولې شي.او د شيخينو رحمهما الله په نيز به ګزونو سره كيږي.

**د امام محمد رحمه الله دليل**

لِمُحَمَّدٍ د امام محمد رحمه الله دليل دا دې أَنَّ السُّفْلَ يَصْلُحُ لِمَا لَا يَصْلُحُ لَهُ الْعُلُوُّ.چه لاندينې منزل د هغې صلاحيت لري.دكوم چې پورتنې منزل نه لري. مِنِ اتِّخَاذِهِ بِئْرَ مَاءٍ أَوْ سِرْدَابًا أَوْ إِصْطَبْلًا أَوْ غَيْرَ ذَلِكَ يعنی هغه له د اوبو څاه جوړول، يا تاخانه ، يا د ځاروو تړلو ځائې يا ددې نه علاوه (نور څه جوړول) فَلَا يَتَحَقَّقُ التَّعْدِيلُ إِلَّا بِالْقِيمَةِ نو برابری به نه متحقق كيږي.خو په قيمت سره.

**تشريح:**- دا د امام محمد رحمه الله دليل دې.چه په لاندينی منزل (كور) كي كوهی جوړيدې شي.تاخانه او اصطبل (د

---

[1] القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا فی بحر(۲۷۹۱۸) ونصب (۲۷۲۱۵) وملتقى الأبحر(۱۳۳۱٤) ومجمع الأنهر (۱۳۳۱٤) نقلاً عن القول الراجح (۲۸۰۱۲)_

خاروو ترلو خانې) جوړولې شی.چه دا په بالاخانه کې نشی جوړیدې.او په ویش کې برابری مقصود ده.او هرکله چې په دې دواړو کې ښکاره تفاوت دې.نو بیا د قیمت نه بغیر برابری نشی کیدې.

**د شیخینو رحمهما الله دلیل**

وَهُمَا يَقُولَانِ إِنَّ الْقِسْمَةَ بِالذَّرْعِ هِيَ الْأَصْلُ او شیخین رحمهما الله فرمائی.چه په ګزونو سره ویش اصل دې. فِي الْمَذْرُوعِ لَا فِي الْقِيمَةِ ځکه چې شرکت په مذروع (ګزونو سره ناپ کیدونکی) کې دې.په قیمت کې نه دې. لِأَنَّ الشَّرِكَةَ فِيهِ فَيُصَارُ إِلَيْهِ مَا أَمْكَنَ نو دې (ګزونو سره ویش) اړخ ته به رجوع کولې شی.څومره چې ممکنه وی. وَالْمُرَاعَى التَّسْوِيَةُ فِي السُّكْنَى لَا فِي الْمَرَافِقِ او د کوم چې لحاظ ساتلې شوې دې.هغه په اوسیدو کې برابری ده.په منافعو کې نه ده. ثُمَّ اخْتَلَفَا فِيمَا بَيْنَهُمَا بیا شیخینو رحمهما الله پخپل مینځ کې اختلاف کړې دې فِي كَيْفِيَّةِ الْقِسْمَةِ بِالذَّرْعِ .د ناپ په ذریعه دویش په طریقه کې.

**حل اللغة:** ① **المذروع:** کوم څه چې په ګز سره ناپ کولای شی ② **المراعی:** لحاظ ساتلې شوې ③ **المرافق:** جمع د مرفق منافع،فائدې

**تشریح:**- وړاندې چې کوم دلیل امام محمد رحمه الله پیش کړې وو.دلته هم هغه دلیل شیخینو رحمهما الله ورکړې دې.چه دلته شراکت په مځکه او آبادئ کې دې.قیمت کې نه دې.او شراکت چې په کوم شئ کې وی.ویش هم د هغې کول پکار دی.او صرف د اوسیدو په لحاظ دواړه منزلونه (کورونه) برابر دی.او په راحت (او آرام) کې د تفاوت لحاظ نه دې ساتلې شوې.بهرحال ویش به ناپ سره کولې شی.په دې کې د شیخینو رحمهما الله اتفاق دې.خو طریقه به کومه اختیارولې شی.په دې کې د دواړو اختلاف دې.

**د امام صاحب رحمه الله په نیز طریقه**

فَقَالَ أَبُو حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائیلی دی ذِرَاعٌ مِنْ سُفْلٍ بِذِرَاعَيْنِ مِنْ عُلْوٍ نو.چه د لاندینی منزل یوګز به د پورتنی منزل د دوو ګزو په بدله کې وی. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی ذِرَاعٌ بِذِرَاعٍ .چه یوګز به د یوګز په بدله کې وی.

**تشریح:**- د امام صاحب رحمه الله په نیز د لاندینی منزل یو ګز به د پورتنی منزل د دوو ګزو برابر وی.او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د هر یو منزل یو ګز به د دوهم منزل د یو ګز برابر وی.

قِيلَ وئیلی شوی دی. أَجَابَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ عَلَى عَادَةِ أَهْلِ عَصْرِهِ چې ځواب ورکړې دې په دوی کې هر یو د خپلې خپلې زمانې، أَوْ أَهْلِ بَلَدِهِ فِي تَفْضِيلِ السُّفْلِ عَلَى الْعُلْوِ وَاسْتِوَائِهِمَا یا د خپل ښار د خلګو د عادت مطابق، پورتنی منزل باندې لاندینی منزل ته په فضیلت ور کاوه او ددې په برابرئ کې ، وَتَفْضِيلِ السُّفْلِ مَرَّةً او کله لاندینی ته فضیلت ورکولو کې وَالْعُلْوِ أُخْرَى او کله پورتنی ته (فضیلت ور کاوه کې)، وَقِيلَ او وئیلی شوی دی هُوَ اخْتِلَافُ مَعْنًى ،.چه دا معنوی اختلاف دې.

**تشریح:**- په دې باندې بعضو حضراتو تبصره کړې ده.چه د ائمه ثلاثه رحمهم الله دا اختلاف حقیقی دې. اوکه لفظی دې.چه دا د زمانو په بدلیدو باندې مبنی دې.نو بعضو وئیلی دی.چه اختلاف حقیقی او معنوی دې.د دلائلو په رڼا کې .چا چې کوم راجح اوګڼړلو.هغې ته ئې ترجیح ورکړله.او د بعضو حضراتو وینا ده.چه هر یو د خپلې زمانې او د خپل ښار د خلګو عادت اوکتلو.د هغې مطابق ئې حکم اوفرمائیلو.مثلاً امام صاحب رحمه الله د کوفې د خلګو دا عادت اوکتلو.چه هغوی لاندینی منزل ته په پورتنی منزل باندې ترجیح ورکوی.نو هغوی ،، ذراع بذراعین،، اوفرمائیل.او امام ابویوسف رحمه الله په بغداد کې د خلګو عادت اوکتلو.چه په دوی دواړو کې مساوات او برابری ګڼړی.نو هغوی ،،ذراع بذراع،، اوفرمائیل.

او امام محمد رحمه الله اوکتل.چه په دې کې د خلګو عادتونه مختلف دی.څه خلګ پورتنی ته ترجیح ورکوی.او



څه خلک لاندینی ته ترجیح ورکوی.خاص کر د موسم د اختلاف په دې کې ډیر زیات دخل دې.نو هغوی د قیمت اعتبار اوکړو.

مرغینانی رحمه الله په «في تفضيل السفل» سره د امام صاحب رحمه الله دلیل اړخ ته «واستوائهما» سره د امام ابویوسف رحمه الله دلیل اړخ ته او په «وتفضيل أسفل مرة والعلو أخرى» سره د امام محمد رحمه الله دلیل اړخ ته اشاره کړې ده.

**د امام صاحب رحمه الله دلیل**

وَوَجْهُ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله د قول دلیل دا دې. أَنَّ مَنْفَعَةَ السُّفْلِ تَرْبُو عَلَى مَنْفَعَةِ الْعُلْوِ بِضِعْفِهِ چې د لاندینی منفعت د پورتنی په منفعت باندې دوچند زیات دې. لِأَنَّهَا تَبْقَى بَعْدَ فَوَاتِ الْعُلْوِ، وَمَنْفَعَةُ الْعُلْوِ لَا تَبْقَى بَعْدَ فِنَاءِ السُّفْلِ ځکه چې د لاندینی منفعت د پورتنی د فوت کیدو نه روسته، پاته پاتې کیږی.او د پورتنی منفعت د لاندینی منزل ختمیدو نه روسته پاته نه پاتې کیږی. وَكَذَا السُّفْلُ فِيهِ مَنْفَعَةُ الْبِنَاءِ وَالسُّكْنَى، وَفِي الْعُلْوِ السُّكْنَى لَا غَيْرُ او هم دغه ډول لاندینې (منزل) په دې باندې د آبادئ او اوسیدو منفعت دې.او په پورتنی منزل کې سکنی ده.بل څه نشته. ،إِذْ لَا يُمْكِنُهُ الْبِنَاءُ عَلَى عُلْوِهِ إِلَّا بِرِضَا صَاحِبِ السُّفْلِ، فَيُعْتَبَرُ ذِرَاعَانِ مِنْهُ بِذِرَاعٍ مِنْ السُّفْلِ ځکه چې هغه ته پخپل پورتنی منزل باندې آبادی ممکن نه ده.خو د لاندینی منزل په رضامندئ سره.نو اعتبار به کولې شی.د پورتنی د دوو ګزو، د لاندینی د یو ګز سره.

**تشریح:**- دا د امام صاحب رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د لاندینی منزل منفعت د پورتنی منزل نه دوچند دې.نو په دې اعتبار سره به ویش هم کولې شی.پاته خبره ښکاره ده.

**د امام ابویوسف رحمه الله دلیل**

وَلِأَبِي يُوسُفَ أَنَّ الْمَقْصُودَ أَصْلُ السُّكْنَى او د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.چه اصل مقصود اوسیدل دی. وَهُمَا يَتَسَاوَيَانِ فِيهِ، وَالْمَنْفَعَتَانِ مُتَمَاثِلَتَانِ او دا (لاندینی او پورتنې منزل) دواړه په اوسیدو کې برابر دی.او دواړه منفعتونه برابر دی. لِأَنَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ځکه چې د امام ابویوسف رحمه الله د اصل مطابق په دې دواړو کې هر یو ته دا حق حاصل دې أَنْ يَفْعَلَ چې هغه کار اوکړی مَا لَا يَضُرُّ بِالْآخَرِ عَلَى أَصْلِهِ ..کوم چې بل کس ته مضر نه وی.

**تشریح:**- دا د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دې.چه د کور مقصود سکنی (د اوسیدو ځائې) دې.او په دې کې پورتنې او لاندینې منزل دواړه برابر دی.او په منفعت کې هم دواړه برابر دی.ځکه چې د امام ابویوسف رحمه الله په نیز هر یو ته حق شته.چه هغه پخپله برخه کې داسې تصرف کولې شی.کوم چې د دوهم لپاره مضر نه وی.نو د پورتنی منزل والا ته به هم حق وی.چه هغه پورته آبادی جوړه کړی.په دې شرط چې مضر نه وی.او د لاندینی منزل والا ته به هم د آبادئ جوړولو حق هغه وخت وی.کله چې دا د پورتنی چت والا لپاره مضر نه وی.ګویا دا اختلاف ددې اصل د اختلاف په وجه دې.

د امام صاحب رحمه الله په نیز دلته د پورتنی منزل مالك ته د تصرف حق نشته.او لاندینی منزل والا ته شته.په دې وجه دوی ،، ذراع بذراعین،، اوفرمائیل.او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز دواړو ته حق شته.په دې وجه دوی ،، ذراع بذراع،، اوفرمائیل.

**د امام محمد رحمه الله دلیل**

وَلِمُحَمَّدٍ أَنَّ الْمَنْفَعَةَ تَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْحَرِّ وَالْبَرْدِ بِالْإِضَافَةِ إِلَيْهِمَا او د امام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چه منفعت بدلیږی.د ګرمئ او یخنئ اختلاف سره،په اضافت کاوه سره دې (لاندینی او پورتنی منزل) دواړو اړخ ته. **فلا يمكن التعديل** نو برابری به ممکن نه وی فَلَا يُمْكِنُ التَّعْدِيلُ إِلَّا بِالْقِيمَةِ، وَالْفَتْوَى الْيَوْمَ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ .خو په قیمت سره.او فتوی

نن سهار د امام محمد رحمه الله په قول ده. رَحِمَهُ اللّٰهُ وَقَوْلُهُ لَا يَفْتَقِرُ إِلَى التَّفْسِيرِ او ددوی قول د تفسیر محتاج نه دي.

تشریح:- گرمئ کي د شپې پورتنۍ منزل ښه معلومیږي. او د غرمې لاندینۍ منزل، او په یخنئ کي د شپې لاندینۍ منزل او په ورځ کي د غرمې د لمر په وجه پورتنۍ منزل ښه معلومیږي. لنډیز د کلام دا چې د موسم د اختلاف په وجه منفعت بدلیږي. نو د قیمت نه بغیر برابري ممکن نه ده. او د امام محمد رحمه الله په قول باندې فتوی ده. او دا قول آسان دی. د تفسیر محتاج نه دی.

## د امام صاحب رحمه الله د قول تفسیر

وَتَفْسِيرُ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ او د امام ابوحنیفه رحمه الله د قول تفسیر کوم چې په مسئله د کتاب کي ذکر دی. دا دی. أَنْ يُجْعَلَ بِمُقَابَلَةِ مِائَةِ ذِرَاعٍ مِنَ الْعُلْوِ الْمُجَرَّدِ ثَلَاثَةٌ وَثَلَاثُونَ وَثُلُثُ ذِرَاعٍ مِنَ الْبَيْتِ الْكَامِلِ چې د پورتنی خالی منزل په مقابله کي د پوره کور ۳۳ گزه او دریمه برخه اوگرځولې شي. لِأَنَّ الْعُلْوَ مِثْلُ نِصْفِ السُّفْلِ فَثَلَاثَةٌ وَثَلَاثُونَ وَثُلُثٌ مِنَ السُّفْلِ سِتَّةٌ وَسِتُّونَ وَثُلُثَانِ مِنَ الْعُلْوِ الْمُجَرَّدِ وَمَعَهُ ثَلَاثَةٌ وَثَلَاثُونَ وَثُلُثُ ذِرَاعٍ مِنَ الْعُلْوِ خکه چې پورتنۍ منزل د لاندینی منزل د نصف پشان دی. نو د لاندینی ۳۳ گزه او دریمه برخه د پورتنی د ۶۶ گزونو او په دریو کي د دوو برخو برابر وي. او ددې سره د (پوره کور) د پورتنی منزل ۳۳ او دریمه برخه دي. فَبَلَغَتْ مِائَةَ ذِرَاعٍ تُسَاوِي مِائَةً مِنَ الْعُلْوِ الْمُجَرَّدِ نو د پوره کور واړه سل گزونو ته اورسیدو. چه دا د مجرد د سلو گزونو برابر دي. وَيُجْعَلُ بِمُقَابَلَةِ مِائَةِ ذِرَاعٍ مِنَ السُّفْلِ الْمُجَرَّدِ مِنَ الْبَيْتِ الْكَامِلِ سِتَّةٌ وَسِتُّونَ وَثُلُثَا ذِرَاعٍ او د لاندینی د خالی منزل سلو گزونو په مقابله کي د پوره کور ۶۶ او دوې (دوه) ثلثه گزونه گرځولې شي لِأَنَّ عُلْوَهُ مِثْلُ نِصْفِ سُفْلِهِ خکه چې ددې پورتنۍ منزل ددې دلاندینی منزل نصف پشان دی، فَبَلَغَتْ مِائَةَ ذِرَاعٍ نو دا واړه گزونه د سلو مقدار ته اورسیدل، كَمَا ذَكَرْنَا. لکه څنگه چې موږ ذکر کړی دی. او پاته تفصیل وړاندې تیر شوې دی.

تشریح:- او د امام ابوحنیفه رحمه الله قول تفسیر غواړي. چونکه ددوی په نیز اصول دا دي. چه یو گز به د دوو گزو په بدله کي وي. نو کله چې یو اړخ ته پورتنی منزل خالی وي. او دوهم اړخ ته پوره کور وي. نو د پوره کور ۳۳ گزه او ۱۱۳ به د پورتنی خالی منزل د سلو گزو برابر وي. خکه چې دواړه پورتنی منزلونه د ۳۳ گزونو او ۱۱۳ گز کي برابر وي. او په پوره کور کي کوم چې لاندینۍ برخه کي ۳۳ گزه او ۱۱۳ گزه دي. ددې دوچند کړئ. چه دا ۶۶ گزونه او ۲۱۳ گزه شو. چه ددې په بدله کي به د پورتنی منزل ۶۶ گزونه او ۲۱۳ گزه وي. ۳۳ گزونه او ۱۱۳ گزه د پورتنی په مقابله کي مخکي گرځولې شوې دي. چه دې سره به برابري کیږي. او که په لاندینی خالی منزل کي سل گزه وي. نو د پوره کور به ددې په مقابله کي ۶۶ گزه او دوې (دوه) ثلثه جوړیږي. یعنی ۶۶ گزونه او ۲۱۳ گزه، خکه چې د دواړو په لاندینۍ برخه کي د ۶۶ گزونو او ۲۱۳ گزو بدل ۶۶ گزونه او ۲۱۳ گزه شو. او په پورتنی پوره کور کي ۶۶ گزونه او ۲۱۳ گزه پاته پاتې شو. نو په لاندینی خالی منزل کي د مذکوره قاعدې مطابق ۶۶ گزونو او ۲۱۳ گزو بدل ۳۳ گزونه او ۱۱۳ گزه شو. نو معلومه شوه. چه د لاندینی منزل سل گزونه د پوره کور د ۶۶ گزونو مقابل جوړیږي.

## د امام ابویوسف رحمه الله د قول تفسیر

وَتَفْسِيرُ قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او د امام ابویوسف رحمه الله د قول تفسیر دا دی أَنْ يُجْعَلَ بِإِزَاءِ خَمْسِينَ ذِرَاعًا مِنَ الْبَيْتِ الْكَامِلِ مِائَةُ ذِرَاعٍ مِنَ السُّفْلِ الْمُجَرَّدِ، وَمِائَةُ ذِرَاعٍ مِنَ الْعُلْوِ الْمُجَرَّدِ، چې د پوره کور پنځوس گزونو په مقابله کي د لاندینی خالی منزل سل گزونه اوگرځولې شي. یا د لاندینی خالی منزل سل گزونه جوړ کړې شي. لِأَنَّ السُّفْلَ وَالْعُلْوَ عِنْدَهُ سَوَاءٌ، خکه چې لاندینۍ او پورتنۍ منزل ددوی په نیز برابر دي. فَخَمْسُونَ ذِرَاعًا مِنَ الْبَيْتِ الْكَامِلِ بِمَنْزِلَةِ مِائَةِ ذِرَاعٍ نو د پوره کور پنځوس گزونه د سلو گزونو په درجه کي اوگرځولې شي. خَمْسُونَ مِنْهَا سُفْلٌ په دې کي پنځوس د لاندینی منزل وَخَمْسُونَ مِنْهَا عُلْوٌ، او پنځوس په دې کي د پورتنی منزل. پاته تفصیلات تیر شوي دي.



تشریح:- او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز تفسیر آسان دي. خکه چې ددوی په نیز حساب ،،ذراع بذراع،، دي. نو ددوی په نیز به د پوره کور پنځوس گزونه د لاندینی خالی منزل د سلوگزونو مقابل وي. او دغه ډول د پوره کور پنځوس گزونه د لاندینی خالی منزل د سلو گزونو برابر وي. هم دا تفسیر مرغینانی رحمه الله پخپلو الفاظو کي داسې بیان کړې دي.

## د ویش نه روستو په شریکانو کښې د اختلاف مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. (وَإِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَقَاسِمُونَ) وکله چې شریکان تقسیمونکی خپل مینځ کي اختلاف اوکړی (وَشَهِدَ الْقَاسِمَانِ) . اودوې (دوه) تقسیمونکی گواهي ورکړی. (قُبِلَتْ شَهَادَتُهُمَا) نو ددوی گواهي به قبلولې شي.

حل اللغة: ① المتقاسمون: جمع د متقاسم، ویش کونکی ② علق: معلق کړو

تشریح:- تقسیمونکو د شریکانو په مینځ کي ویش اوکړو. اوس په شریکانو کي اختلاف شو. په دوی کي یوکس اووئیل. چه زما برخه ما ته نه ده رارسیدلې. حالانکه زما برخه په فلانئ اطاق کي هم وو. او دوې (دوه) تقسیمونکو دا گواهي ورکړله. چه ده خپله برخه اخستې ده. نو آیا ددوی گواهي به قبلولې شي؟ نو امام قدوری رحمه الله مطلقاً اوفرمائیل. چه قبلولې به شي. یعنی په دې کي اختلاف نه دې نقل کړې. ددې نه معلومیږي. چې د امام قدوری رحمه الله په نیز د خصاف رحمه الله قول معتبر دي. چه په دې کي هم اختلاف نه کیدل ذکر دی.

قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: حضرت مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل هٰذَا الَّذِي ذَكَرَهُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ [1]. دا کوم چې امام قدوری رحمه الله ذکر کړی دی. د شیخینو رحمهما الله قول دي. وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا تُقْبَلُ او امام محمد رحمه الله فرمائیلي دی. چه گواهي به نشی قبلولې. وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ أَوَّلًا، وَبِهِ قَالَ الشَّافِعِيُّ او هم دا د امام ابویوسف رحمه الله رومبې قول دې. او هم ددې مطابق امام شافعی رحمه الله فرمائیلي دی. وَذَكَرَ الْخَصَّافُ قَوْلَ مُحَمَّدٍ مَعَ قَوْلِهِمَا او خصاف رحمه الله د امام محمد رحمه الله قول د شیخینو رحمهما الله قول سره ذکرکړې دې، وَقَاسِمَا الْقَاضِي وَغَيْرُهُمَا سَوَاءٌ. او د قاضی د اړخه دوې (دوه) تقسیمونکی او ددې نه علاوه برابر دی.

تشریح:- مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه دا مسئله اختلافی ده. د امام محمد رحمه الله په نیز به گواهي نشی قبلولې. هم دا دامام شافعی رحمه الله قول دې. او د امام ابویوسف رحمه الله رومبې قول هم دا دې. او د شیخینو رحمهما الله مذهب دا دې. چه گواهي به قبلولې شی. تقسیمونکې که د قاضی د اړخه مقرر وی. یا دوی پخپله تقسیمونکی د ویش لپاره په اجرت نیولی وی. دواړه برابر دی. یعنی په دواړو صورتونو کي د تقسیمونکو د گواهئ هم دا حکم دې. کوم چې ذکر دې.

## د امام محمد رحمه الله دلیل

لِمُحَمَّدٍ رحمه الله دامام محمد رحمه الله دلیل دا دې. أَنَّهُمَا شَهِدَا عَلَى فِعْلِ أَنْفُسِهِمَا چې دوی پخپل فعل باندې گواهي ورکړې ده. فَلَا تُقْبَلُ نو دا به نشی قبلولې، كَمَنْ عَلَّقَ عِتْقَ عَبْدِهِ لکه هغه کس چا چې د خپل غلام آزادی د غیر په فعل باندې معلق کړې وی. بِفِعْلِ غَيْرِهِ فَشَهِدَ ذٰلِكَ الْغَيْرُ عَلَى فِعْلِهِ نو دغه غیر پخپل فعل باندې گواهي ورکړله.

حل اللغة: ① مشهود به: په چا چې گواهي ورکړې شی. ② قاسم: ویش کونکې ③ متقاسم: ویش غوښتونکی یعنی شریك. کوم دلیل چې پیش کړې شوې دې. چه د قبضې نه وړاندې رجوع صحیح ده. دا هغه وخت دې. کله چې

[1] القول الراجح هو هذا قول الشيخين كذا فى ملتقى (١٣٣/٤) والدرالمنتقى (١٣٤/٤) والبحر (٢٨١/٨) نقلاً عن القول الراجح (٢٨١/٢)_

تقیسم د شریکانو په رضامندئ سره کیږی.او کله چې ویش کونکې قاضی یا د هغه نائب وی.نو د برخو د اوبکلو نه روستو به شریکانو کې هیڅ چا ته د انکار حق نه وی.

تشریح:- دا د امام محمد رحمه الله دلیل دې.چه دلته تقسیمونکی پخپل فعل باندې ګواهی ورکوی.حالانکه پخپل فعل باندې ګواهی نه قبلیږی.لکه مثلاً زید اووئیل.که خالد نن یوه سیپاره تلاوت اوکړو.نو زما غلام آزاد دی.غلام د خپلې آزادئ دعوه اوکړله.او خالد د یوې سیپارې وئیلو ګواهی ورکړله.چه غلام آزاد شی.نو د خالد ګواهی به معتبر نه وی.ځکه چې هغه پخپل فعل باندې ګواهی ورکړې ده.دغه ډول به دلته هم ګواهی معتبر نه وی.

### د شیخینو رحمهما الله دلیل

وَلَهُمَا أَنَّهُمَا شَهِدَا عَلَى فِعْلِ غَيْرِهِمَا او د شیخینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه تقسیمونکو د خپل غیر په فعل باندې ګواهی ورکړې ده. وَهُوَ الْاِسْتِيفَاءُ وَالْقَبْضُ لَا عَلَى فِعْلِ أَنْفُسِهِمَا او هغه وصولول او قبضه ده.پخپل فعل باندې نه ده. لِأَنَّ فِعْلَهُمَا التَّمْيِيزُ وَلَا حَاجَةَ إِلَى الشَّهَادَةِ عَلَيْهِ،خکه چې ددوی فعل جلا کول دی.چه په دې باندې ګواهئ ته ارتیا نشته. أَوْ لِأَنَّهُ لَا يَصْلُحُ مَشْهُودًا بِهِ او خکه چې جدا کول د مشهودبه جوړیدلو صلاحیت نه لری. لِمَا أَنَّهُ غَيْرُ لَازِمٍ، وَإِنَّمَا يَلْزَمُهُ بِالْقَبْضِ وَالْاِسْتِيفَاءِ خکه چې دا لازم نه دې.اولازم به وی دا (فعل د تقسیمونکی) هغه (هغوی کې هریو کس) ته د قبضې او وصولولونه پس. وَهُوَ فِعْلُ الْغَيْرِ فَتُقْبَلُ او دا (وصولی او قبضه) د غیر فعل دې الشَّهَادَةُ عَلَيْهِ.نو په دې به ګواهی قبلولې شی.

تشریح:- دا د شیخینو رحمهما الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه پخپل فعل باندې ګواهی نشی قبلولې.دا منو.خو دا پخپل فعل باندې ګواهی نه ده.بلکه د غیر په فعل باندې ګواهی ده.ځکه چې د تقسیمونکو کاردهریوحصه جلا جلا کول دی.چه دا هغوی اوکړله.چه په دې کې تقسیمونکو کې د هیڅ چا اختلاف نشته.بلکه اختلاف د خپل حق په وصولولو او په دې باندې قبضه کاوه کې دې.نو د تقسیمونکوګواهی به د غیر په فعل وی.نو معتبر به وی.ځکه چې جدا کیدو باندې ګواهئ ته حاجت نشته.

یا داسې اووایئ:چه په جدایئ کې دا صلاحیت نشته.چه په دې باندې ګواهی ورکړې شی.ځکه چې ګواهی الزام لپاره وی.او په جدایئ کې د قبضې نه وړاندې د ویش کونکو (شریکانو) رجوع جائز ده. ددې نه معلومه شوه.چه د قبضې نه وړاندې جدائی لازم نه ده.نو دا به مشهود به هم نه وی.

### د امام طحاوی رحمه الله نقطهٔ نظر

وَقَالَ الطَّحَاوِيُّ رحمه الله امام طحاوی رحمه الله اوفرمائیل. إِذَا قَسَمَا بِأَجْرٍ کله چې دواړه تقسیمونکی اجرت باندې ویش اوکړی. لَا تُقْبَلُ الشَّهَادَةُ بِالْإِجْمَاعِ نو ګواهی به بالاجماع نه قبلیږی. وَإِلَيْهِ مَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ رحمهم الله او هم دې ارخ ته بعض مشائخ مائل شوی دی. لِأَنَّهُمَا يَدَّعِيَانِ إِيفَاءَ عَمَلٍ اُسْتُؤْجِرَا عَلَيْهِ خکه چې دا دواړه ددې عمل د پوره کیدو دعوه کوی.په کوم چې دوی اجیر جوړ کړې شوی وو. فَكَانَتْ شَهَادَةً صُورَةً وَدَعْوَى مَعْنًى فَلَا تُقْبَلُ نو دا په اعتبار د صورت شهادت دې.او معنوی اعتبار سره دعوه ده.نو دا به نشی قبلولې.

تشریح:- امام طحاوی رحمه الله اوفرمائیل.که تقسیمونکی د ویش لپاره اجیر جوړ کړې شوې وی.نو اوس به ددوی ګواهی نه قبلیږی.ځکه چې دوی پخپلې ګواهئ سره ددې خبرې دعوه کوی.چه د کوم کار لپاره موږ اجیر وو.موږ دا کار پوره کړې دې.نو ددوی دا کار خو صورتاً شهادت دې.خو د معنی په لحاظ سره دا دعوه ده.او اصول دا مقرر دې.چه د مدعی شهادت به معتبر نه وی.نو ددوی ګواهی به هم نه قبلیږی.

### د امام طحاوی رحمه الله په دلیل باندې د صاحب د هدایه رحمه الله نکیر

إِلَّا أَنَّا نَقُولُ: هُمَا لَا يَجُرَّانِ بِهَذِهِ الشَّهَادَةِ إِلَى أَنْفُسِهِمَا مَغْنَمًا خو موږ وایو.چه دا دواړه (ویش کونکی) دې شهادت سره خپل خان ارخ ته څه نفع نه راکاږی. لِاتِّفَاقِ الْخُصُومِ عَلَى إِيفَائِهِمَا الْعَمَلَ الْمُسْتَأْجَرَ عَلَيْهِ د خاصمانو د اتفاق کاوه په



وجه.ددې دواړو په پوره کاوه باندې.هغه عمل په کوم چې دوی اجیر ساتلی شوی وو وَهُوَ التَّمْيِيزُ،او هغه جلا کول دی. وَإِنَّمَا الْاِخْتِلَافُ فِي الْاِسْتِيفَاءِ او اختلاف په وصولولو (قبضه کولو) کې دې ءفَانْتَفَتِ التُّهْمَةُ.نو تهمت لرې شو.

تشریح:- مرغینانی رحمه الله د امام طحاوی رحمه الله په دلیل باندې نکیر کوی.چه او ویش کونکی په ګواهئ ور کاوه سره خپل جیب ګرموی.یا د خپل وخت بچت کوی.حالانکه دټولو شریکانو اتفاق دې.چه هغوی خپل کار پوره کړو.بلکه دلته خو د شریکانو اختلاف په وصولولو (قبضه کولو) کې دې.نو د ویش کونکو نه تهمت لرې شو.په ﴿درمختارص:۱۶۸ ج۵﴾ باندې مطلق وئیلی شوی دی.چه د ویش کونکو ګواهی به قبلولې شی.

### د یو تقسیمونکی ګواهی ورکول

وَلَوْ شَهِدَ قَاسِمٌ وَاحِدٌ او که یوویش کونکی ګواهی ورکړله لَا تُقْبَلُ .نو قبلولې به نشی. لِأَنَّ شَهَادَةَ الْفَرْدِ غَيْرُ مَقْبُولَةٍ عَلَى الْغَيْرِ خکه چې د یو سړی ګواهی په غیر باندې نه قبلیږی. وَلَوْ أَمَرَ الْقَاضِي أَمِينَهُ بِدَفْعِ الْمَالِ إِلَى آخَرَ او که قاضی خپل امین ته دبل کس د مال ور کاوه حکم ورکړو. يُقْبَلُ قَوْلُ الْأَمِينِ فِي دَفْعِ الضَّمَانِ عَنْ نَفْسِهِ نو د امین قول به قبلولې شی.د هغه د ضمان لرې کاوه په سلسله کې ، وَلَا يُقْبَلُ فِي إِلْزَامِ الْآخَرِ او په دوهم باندې د الزام په حق کې به نشی قبلولې. إِذَا كَانَ مُنْكِرًا، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ کله چې هغه منکر وی. والله اعلم.

تشریح:- په شریعت کې د یو سړی ګواهی د بل خلاف حجت نه جوړیږی.نو دا ټوله خبره هغه وخت وه.کله چې ویش کونکی دوې (دوه) نفر وی.او که یو ویش کونکی ګواهی ورکړله.نو بالاتفاق به نشی قبلولې.

قاضی خپل امین ته اووئیل.چه فلانی سړی ته مال ورکړه.اوس امین وائی.چه ما ورکړې دې.او هغه کس انکار کوی.نو د امین قول به قبلولې شی اوکه نه؟ نو وې فرمائیل.چه په دې کې دوې (دوه) جهته دی① د امین قول به نه قبلیږی.نو په امین به ضمان واجب وی.② د امین قول به معتبر وی.نو دا مال به په بل باندې لازم نه وی.ـ نو وې فرمائیل.چه داسې طریقه به اختیارولې شی.چه د دواړو نقصان اونشی.یعنی د امین قول به معتبر وی.خو دومره حده پورې چې په امین باندې ضمان واجب نه دې.اوکه ددې په وجه منکر باندې مال لازم کړې شی.نو الزام مال سره نه ثابتیږی.ځکه چې د امین قول حجت واقعه دې.حجت ملزمه نه دې.

## باب دعوي الغلط في القسمة والاستحقاق فيها

ژباړه:- (دا) باب په ویش کې د غلطئ د دعوې او په ویش کې د استحقاق د دعوې (په بیان کې) دې.

تشریح:کله ویش کونکی ویش اوکړو.اوس که څوک په ویش کې دغلطئ دعوه اوکړی.او په ویش شوی څیزونو کې د یوڅیز ځان لپاره د کیدو دعوه اوکړی.نو ددې به مختلف صورتونه وی.او جلا جلا حکم به وی.چه ددې تفصیل په دې باب کې ذکر کولې شی.

تنبیه۞ ویش اصل دې.او په دې کې د غلطئ او استحقاق دعوه د عوارضو ځنې ده.په دې وجه د عوارضو احکام روستو کړې شوی دی.او د ویش احکام مخکې کړې شو.

### د شریک د غلط ویش دعوه کول

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. وَإِذَا ادَّعَى أَحَدُهُمُ الْغَلَطَ او کله چې په ویش کونکو کې یوکس د غلطئ دعوه اوکړله. وَزَعَمَ أَنَّ مِمَّا أَصَابَهُ شَيْئًا فِي يَدِ صَاحِبِهِ او وې وئیل.چه په دې څیزونو کې کوم چې ده ته رسیدلی دی.یو شئ دده د اندیوالان په قبضه کې دې. وَقَدْ أَشْهَدَ عَلَى نَفْسِهِ بِالْاِسْتِيفَاءِ حالانکه هغه پخپل نفس باندې د وصولولو اقرار کړې وو. لَمْ يُصَدَّقْ عَلَى ذَلِكَ إِلَّا بِبَيِّنَةٍ نو په ده به ددې تصدیق نشی کولې.خو ګواهانو سره. لِأَنَّهُ يَدَّعِي فَسْخَ الْقِسْمَةِ بَعْدَ وُقُوعِهَا خکه چې هغه د ویش واقع کیدو نه روسته ددې د فسخ دعوه کوی فَلَا يُصَدَّقُ إِلَّا

بِحُجَّةٍ.نو دا تصديق به نشي کولې.خو حجت سره.

تشریح:- مثلاً يو کور د دريو سړو په مينځ کي مشترك وو.هغوی ويش اوکړو.او پخپل خپل حق باندې نې قبضه اوکړله.اوس په دوی کي يوکس د غلطۍ دعوه کوی.او وائی.چه فلانۍ اطاق هم زما په برخه کي ده.نو دلته به دوباره ويش نشي کولې.خو مدعی ځخه به د غلطۍ ثابتولو لپاره د بينه قائمولو مطالبه کولې شی.که هغه ګواهان قائم کړل.نو ډيره ښه ده.ګنی دده په مطالبه به قاضی د نورو ګواهانو نه قسم اخلی.هغوی کي يوکس قسم اوخوړلو.او يو انکار اوکړو.نو د مدعی او د منکر برخې (حصې) به يوځائې جمع کولې شی.او ددوی دحصو په اندازه به دوباره تقسيمولې شی.او قسم خوړونکې به د مينځ نه خارجيږی.په «بدائع ص:۲۶ ج۷» باندې دا مسئله په واضحو الفاظو کي تيره شوې ده.

**مدعی ګواهان قائم نکړل نو شريکان به قسم خوري**

فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ بَيِّنَةٌ اسْتَحْلَفَ الشُّرَكَاءَ نو که مدعی لپاره بينه قائم نشي.نوقاضی به شريکانو نه قسم اخلی.(که مدعی مطالبه اوکړی) فَمَنْ نَكَلَ مِنْهُمْ جُمِعَ بَيْنَ نَصِيبِ النَّاكِلِ وَالْمُدَّعِي نو په دوی کي چې کوم يوکس انکار اوکړو.نو د مدعی او منکر په برخو کي دې جمع اوکړی. فَيُقْسَمُ بَيْنَهُمَا عَلَى قَدْرِ أَنْصِبَائِهِمَا نو ددوی په مينځ کي دې ددوی د برخو په اندازه ويش کړی. لِأَنَّ النُّكُولَ حُجَّةٌ فِي حَقِّهِ خَاصَّةً ځکه چې انکار خاص طور باندې د منکر په حق کي حجت دې، فَيُعَامَلَانِ عَلَى زَعْمِهِمَا.نو دواړه به معامله کوی د خپل ګمان مطابق.

حل اللغة* ① نکول: انکار② حجة: دليل ③ زعم: ګمان ،خيال

تشریح:- ددې تشريح د مخکنۍ مسئلې لاندې تيره شوې ده.

**د صاحب د هدايه رحمه الله مسلك چې دعوه به نشي قبلولې**

قَالَ رضی الله عنه حضرت مرغينانی رحمه الله فرمائی. يَنْبَغِي أَنْ لَا تُقْبَلَ دَعْوَاهُ أَصْلًا مناسب دا ده.چه دده دعوه بالکل قبول نکړې شی. لِتَنَاقُضِهِ،دده د تناقض په وجه، وَإِلَيْهِ أَشَارَ مِنْ بَعْدُ او هم دې اړخ ته امام قدوری رحمه الله روستو اشاره کړې ده.

تشریح:- مرغينانی رحمه الله د امام قدوری رحمه الله په قول باندې دا اعتراض کړې دې.چه د ګواهانو قائمولو نه روسته دده قول معتبر منلې شوې وو.حالانکه د ګواهانو قائمولو نه روسته هم دده دعوه قبلول پکار نه دی.ځکه چې دده په دعوه کي تعارض او تناقض دې.ځکه چې مخکي هغه د خپل حق وصولولو اقرار کړې دې.او اوس د خپل حق پاته پاتې کيدو دعوه کوی.چه دا دده د تير شوی اقرار منافی دې.

او وريسې امام قدوری رحمه الله چه په دې قول «وإن قال أصابني إلخ» سره کومه مسئله بيان کړې ده.د هغې نه هم دا خبره ښکاره کيږی.ددې ،، ولم يشهد،، قيد نه ښکاره کيږی.که د استيفاء اقرار نې کړې وی.نو بيا به دعوه نه قبليږی...

**د خصم قول به معتبر وی**

وَإِنْ قَالَ قَدِ اسْتَوْفَيْتُ حَقِّي وَأَخَذْتُ بَعْضَهُ وکه ده اووئيل.چه ما خپل حق وصول کړې وو.او تا د هغې نه څه واخستلو. فَالْقَوْلُ قَوْلُ خَصْمِهِ مَعَ يَمِينِهِ نو سره د قسم ځخه به دده د خصم قول معتبر وی. لِأَنَّهُ يَدَّعِي عَلَيْهِ الْغَصْبَ ځکه چې هغه دده په غصب باندې دعوه کوی وَهُوَ مُنْكِرٌ او هغه منکر دې.

تشریح:- او د منکر قول سره د قسم نه معتبر وی.نو د خصم قول به معتبر نه وی.

**د ويش په ځينې برخه باندې د عدم قبضې دعوه کول**

وَإِنْ قَالَ أَصَابَنِي إِلَى مَوْضِعِ كَذَا فَلَمْ يُسَلِّمْهُ إِلَيَّ وکه ده اووئيل.چه زه نې د فلانی ځائې پورې رسيدلې



وَلَمْ يَشْهَدْ عَلَى نَفْسِهِ بِالِاسْتِيفَاءِ وَكَذَّبَهُ شَرِيكُهُ و هغه پخپل نفس باندې د وصولولو اقرار اونکړو.او د هغه شريك دده تکذيب اوکړو. تَحَالَفَا وَفُسِخَتِ الْقِسْمَةُ نو دواړه به قسم خوری.او ويش به فسخ کولې شی. لِأَنَّ الِاخْتِلَافَ فِي مِقْدَارِ مَا حَصَلَ لَهُ بِالْقِسْمَةِ ځکه چې اختلاف هغه مقدار کي دې.کوم چې دده په تقسم سره حاصل شوې دې. فَصَارَ نَظِيرَ الِاخْتِلَافِ نو دا به دهغه اختلاف مثال وی فِي مِقْدَارِ الْمَبِيعِ کوم چې د مبيع په مقدار کي وی عَلَى مَا ذَكَرْنَا مِنْ أَحْكَامِ التَّحَالُفِ فِيمَا تَقَدَّمَ.د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ وړاندې د تحالف ( د طرفينونه د قسم اخستلو) د احکامو په سلسله کي ذکر کړې دې.

تشریح:- دلته مدعی د قبضې اقرار نه دې کړې.بلکه داسې نې اووئيل.چه زما برخه دهغه ځائې پورې ده.چه دا ماته رانکړې شوه.او دوهم شريك منکر دې.او دې دروغجن کوی.نو چونکه دلته په هغه مقدار کي اختلاف دې.چه دا به ويش سره حاصليږی.نو دا داسې شوه.لکه ځنګه چې بائع او مشتری د مبيع په مقدار کي اختلاف اوکړی.نو په باب التحالف کي د ذکر شوی حکم مطابق لکه ځنګه چې بيع کي د دواړو نه قسم اخستلې شی.او بيع فسخ کولې شی.دلته به هم ويش فسخ کولې شی.

**د شريکانو په قيمت لګولو کښې د اختلاف مسئله**

وَلَوِ اخْتَلَفَا فِي التَّقْوِيمِ اوکه دوی دواړه په قيمت لګولو کي اختلاف اوکړی لَمْ يُلْتَفَتْ إِلَيْهِ .نو دده اړخ ته به توجه نشی کولې لِأَنَّهُ دَعْوَى الْغَبْنِ .ځکه چې دا د غبن ( د ګرانوالی) دعوه ده. وَلَا مُعْتَبَرَ بِهِ فِي الْبَيْعِ او ددې په بيع کي اعتبار نشی کولې فَكَذَا فِي الْقِسْمَةِ .نو دغه ډول به ويش کي هم نه کيږی. لِوُجُودِ التَّرَاضِي خپل مينځ کي د رضامندۍ نه موندلو په وجه، إِلَّا إِذَا كَانَتِ الْقِسْمَةُ بِقَضَاءِ الْقَاضِي خو کله چې ويش د قاضی فيصلې سره وی، وَالْغَبْنُ فَاحِشٌ او غبن فاحش ( ډير زيات ګران والې) وی. (لِأَنَّ تَصَرُّفَهُ مُقَيَّدٌ بِالْعَدْلِ ځکه چې د قاضی تصرف عدل سره مقيد دې.

حل اللغة* ① التقويم: قيمت مقرر کول ② الغبن الفاحش: ډيرزيات ګران

تشریح:- مثلاً د زيد او عمرو په مينځ کي سل وزه مشترك وې.اوس هغوی ويش اوکړو.د هغې قيمت نې اولګولو.نو د زيد په برخه کي پنځه ځلويښت او د عمرو په برخه کي پنځه پنځوس وزه راغلې.اوس زيد وائی.چه قيمت غلط لګولې شوې دې.نو د زيد قول اړخ ته به توجه نه ورکولې کيږی.ځکه چې قيمت لګونکو باندې د غبن الزام لګوی.او ددې خو په بيع کي هم اعتبار نه کيږی.نو په ويش کي به هم نه کيږی.ځکه چې د طرفينو په رضامندۍ سره قيمت لګولې شوې وو.مثلاً په بيع کي معلوم ثمن سره څه واخلی.بيا وائی.چه دې کي غبن دې.نو دده دعوه به نه قبليږی.ځکه چې د دواړو په رضامندۍ سره ثمن مقرر شوې دې.

﴿ دا واړه تفصيل هغه وخت دې.کله چې دوی پخپله ويش اوکړی.او که د قاضی فيصلې سره ويش شوې وی. اوغبن فاحش وی.مثلاً يوه وزه د څليريشتو روپو قيمت وی.ددې قيمت پنځلس سوه روپۍ لګولې شوې وی.نو دلته به دده دعوه قبول نه وی.ځکه چې د قاضی ذمه واری ده.چه د عدل نه کار واخلی.او هرکله چې غبن فاحش ( ډير زيات ګران والې) اوشو.نو معلومه شوه.چه د قاضی فيصله د عدل ( او انصاف) نه ده.نو اوس به دعوه قبول وی.

**د شريکانو پخپل منځ کښې د ويش نه روسته د اختلاف مسئله**

وَلَوِ اقْتَسَمَا دَارًا اوکه دوی (دوه) شريکانو د کور ويش اوکړو. وَأَصَابَ كُلَّ وَاحِدٍ طَائِفَةٌ او هر يو ته يوه يوه برخه اورسيدله. فَادَّعَى أَحَدُهُمْ نو په دوی کي يوکس د يوې کمرې دعوه اوکړله بَيْتًا فِي يَدِ الْآخَرِ .چه دا د دوهم په قبضه کي ده. أَنَّهُ مِمَّا چې دا دهغې ځنې ده أَصَابَهُ بِالْقِسْمَةِ وَأَنْكَرَ الْآخَرُ.کومه چې ما ته ويش سره رسيدلې وه.او

دوهم انكار اوكړو. فَعَلَيْهِ إِقَامَةُ الْبَيِّنَةِ) نو په ده باندې گواهان قائمول دي لِمَا قُلْنَا. د هغه دليل په وجه كوم چې مونږ ذكر كړي دي. وَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ او كه دواړو گواهان قائم كړل يُؤْخَذُ بِبَيِّنَةِ الْمُدَّعِي. نو د مدعي گواهان معتبر وي. لِأَنَّهُ خَارِجٌ ، وَبَيِّنَةُ الْخَارِجِ خكه چې دې خارج دې تَتَرَجَّحُ عَلَى بَيِّنَةِ ذِي الْيَدِ تَحَالَفَا وَتَرَادَّا. ( يعني غير قابض دې).او د خارج گواهان د قبضه كونكي په گواهانو باندې غالب وي. (وَإِنْ كَانَ قَبْلَ الْإِشْهَادِ كه دا د قبضې د اقرار نه مخكې وي. عَلَى الْقَبْضِ وتراداً نو دواړه به قسم خوري.او يو به په دوهم باندې واپس كوي.

تشريح:- دوې (دوه) شريكان دي.هغوى د كور ويش اوكړو.او د كور يوه يوه برخه دواړو ته ملاو شوه.اوس په دوى كې يو كس وائي.چه فلانۍ اطاق هم قيمت كې زما په برخه كې راغلې وه.او دوهم منكر دې.نو څه حكم دې؟ نو وې فرمائيل① د قبضې انكار دې.② د قبضې او وصولولو اقرار دې.ـ په ړومبى صورت كې به دواړه قسم خوري.او ويش به فسخ كولې شي.په دوهم صورت كې د مدعي په ذمه گواهان قائمول دي.خكه چې هغه دويش واقع كيدو نه روسته ددې د فسخ مدعي دې.چه ددې لپاره حجت پكار دې.او هغه گواهان قائمول دي.بهرحال كه ده گواهان قائم كړل.نو ډيره ښه ده.اوكه دواړو گواهان قائم كړل.نو د مدعي گواهان به معتبر وي.خكه چې هغه په دې كور باندې قابض دې.او اصول دا دې.چه د گواهانو مقصد د غير ثابت شوي ثابتول دي.او منكر لپاره قبضه ثابتول دي.او مدعي د قبضې نه بې دخله دې.په دې وجه به د مدعي گواهان معتبر وي.

## د شريكانو په حدونو كښې د اختلاف مسئله

وَكَذَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي الْحُدُودِ اوهم دغه ډول كله چې دواړه په حدونو كې اختلاف كړې وي. وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ او دواړو گواهان قائم كړي وي يُقْضَى نو فيصله به كولاى شي لِكُلِّ وَاحِدٍ بِالْجُزْءِ الَّذِي هُوَ فِي يَدِ صَاحِبِهِ) يو لپاره د هغه جزء كوم چې دده د انډيوالان په قبضه كې دې. لِمَا بَيَّنَّا. هر د هغه دليل په وجه كوم چې مونږ بيان كړې دي. وَإِنْ قَامَتْ لِأَحَدِهِمَا اوكه په دوى دواړو كې يوكس لپاره گواهان قائم شو (بَيِّنَةٌ قُضِيَ لَهُ نو هغه لپاره به فيصله كولاى شي وَإِنْ لَمْ تَقُمْ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا تَحَالَفَا) ..اوكه په دوى دواړو كې چا لپاره هم گواهان قائم نشي، كَمَا فِي الْبَيْعِ نو دواړه به قسم خوري.لكه څنگه چې بيع كې دي.

تشريح:- اوس دوى ويش اوكړو.او ددې نقشې مطابق ويش اوشو.دا په مينځ كې چې كوم خط ( كرخه) ده.دا په دې حد كې داخل دې.او دلته دوې (دوه) كمرې دي.چه ددې شكل مخكې دې.په دې كې په يوه باندې زيد او په دويمې باندې خالد قابض دې.اوس زيد دعوه كوي.چه د خالد په قبضه كې كومه اطاق ده.هغه زما په حد كې داخله ده.يعنى دا زما ده.او خالد دعوه كوي.چه زيد په كومه اطاق قابض دې.هغه زما په حد كې ده.او زما ده.او د هريو كس د دعوې دوهم كس منكر دې.نو اوس به څه كيږي؟ نو وې فرمائيل.چه ددې درې صورتونه دي① په دوى كې يوكس پخپلې دعوې باندې گواهان قائم كړل.نو هم دده په حق كې به فيصله كولې شي.② چا هم گواهان قائم نكړل.نو دواړو څخه به قسم اخستلې شي.او ويش به فسخ كولې شي.③ دواړو گواهان قائم كړل.نو كومه اطاق چې د زيد په قبضه كې ده.هغه به خالد ته وركولې شي.اوكومه چې د خالد په قبضه كې ده.هغه به زيد ته وركولې شي.خكه چې د خارج ( غيرقابض) گواهان د قبضه كونكي په گواهانو باندې غالب وي.لكه څنگه چې وړاندې ذكر شوي دي.

## د مستحق راوتلو مسئله

فَصْلٌ قَالَ (دا) فصل د استحقاق ( په بيان كې ) دې. امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. (وَإِذَا اسْتُحِقَّ بَعْضُ نَصِيبِ



أَحَدِهِمَا) او كله چې په دوى دواړو كې د يوكس معين بعضې برخه مستحقه راوخى. لَمْ تُفْسَخْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ، وَرَجَعَ بِحِصَّةِ ذَلِكَ فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ. (¹) نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به ويش نشي فسخ كولې.او هغه به دخپلې برخې (حصې) په اندازه د خپل انډيوالان په برخه كې رجوع كوي. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ تُفْسَخُ او امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه ويش به فسخ كولې شي. قال رضى الله عنه حضرت مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل ذكر الاختلاف فى استحقاق بعض بعينه.چه امام قدوري رحمه الله په بعض معين كې په استحقاق كې اختلاف ذكر كړې دې. وهكذا ذكر فى الأسرار او هم دغه ډول په اسرار كې ذكر دى والصحيح أن او صحيح دا ده الاختلاف فى استحقاق بعض شائع من نصيب أحدهما..چه اختلاف په دوى دواړو كې د يو په برخه كې بعض شائع ( خور شوى) كې دې. فأما فى استحقاق بعض معين لا تفسخ القسمة بالإجماع نو بهرحال د بعض معين په استحقاق كې به بالاجماع ويش نشي فسخ كولې. ولو استحق بعض شائع فى الكل تفسخ بالاتفاق او كه داسې بعضې (حصه) مستحق ثابت شوه.كومه چې په ټوله ( حصه) كې خوره ده.نو بالاتفاق به ويش فسخ كولې شي. فهذه ثلاثة أوجه نو دا درې صورتونه شو. ولم يذكر قول محمد رحمه الله او امام قدوري رحمه الله د امام محمد رحمه الله قول نه دې ذكر كړې. وذكره أبو سليمان مع أبي يوسف او د امام محمد رحمه الله قول ابوسليمان رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله سره ذكر كړې دې. أَبِي حَنِيفَةَ عَلَى رِوَايَةِ أَبِي حَفْصٍ وَهُوَ الصَّحِيحُ او ابوحفص رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله سره ( ذكر كړې دې).او هم دا زياته صحيح ده.

حل اللغة: ① معين: معلوم ② شائع: خور وور،

تشريح:- د زيد او خالد په مينځ كې پوره كور مشترك وو.چه دا مثلاً درې سوه گزه مربع دې.زيد او خالد ويش اوكړو.نو د زيد په برخه كې د لارې د طرف برخه راغله.چه دا قيمتى وى.بهرحال د زيد سل گزه د خالد د دوو سوو گزو برابر ده.د قيمت او ماليت په اعتبار سره.چه صورت ئې دا دې.

چه دواړه پخپلو خپلو برخو باندې قابض شو.نو ساجد د قاضي په عدالت كې د استحقاق دعوه اوكړله.او په دې ئې گواهان پيش كړل.نو څومره چې دده استحقاق وو.هغه ساجد ته ملاو شو.اوس به د ويش څه حكم وى؟ نو دلته ددې بيان كوي.

① لنډيز د كلام دا چې ددې درې صورتونه دي① ساجد د زيد په برخه كې صرف د يوې كمرې دعوه اوكړى.ددې حاصل دا دې.چه ساجد د زيد په برخه كې په يو معين جزء كې دعوه كړې ده.چه دا ما په مذكوره نقشه كې مستحق (١) سره تعبير كړې دې.② ساجد د زيد په برخه كې د غيرمعين جزء دعوه اوكړى.يعنى اووائى.چه په دې كې زما دريمه برخه ده.يا څلورمه برخه ده.وغيره.دا ما په مذكوره نقشه كې مستحق (٢) ثلث سره تعبير كړې دې.③ ساجد دا دعوه اوكړى.چه په پوره كور كې زما نصف دې.يعنى دده برخه خوره ده.د زيد او خالد دواړو په برخو كې .بهرحال دا درې صورتونه دى.

② د هر يو حكم جلا جلا دې.په ړومبى صورت كې به ويش نه فسخ كيږي.چه په دې د ټولو اتفاق دې. البته ساجد چې څومره برخه د زيد نه اخستې ده.ددې حساب به هغه د خالد سره اوكړى.او د خپل حساب په اندازه به د خالد نه واپس اخلى.او د دوباره ويش حاجت به نه وى.او په دريم صورت كې به بالاتفاق ويش فسخ كولې شي.او دوهم صورت اختلافى دې.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به ويش نه فسخ كيږي.او د ړومبى پشان به زيد د خالد نه د خپل حساب په اندازه واپس اخلى.او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به ويش فسخ كولې شي.او امام محمد رحمه الله د اصح قول مطابق امام صاحب رحمه الله سره دې.دا اصل مسئله او په دې كې د

---

¹) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى (ملتقى الأبحر (١٣٥١٤) ومجمع الأنهر (١٣٥١٤) والدرالمنتقى (١٣٥١٤) وردالمحتار (١٨٧١٥) نقلاً عن القول ا لراجح (٢٨٢١٢)-

اختلاف تفصيل دي.

(۳) خو امام قدوري رحمه الله رومبى صورت ذكر كاوه سره هغه نقل كړل كوم چې دوهم صورت كې دی.نو د امام قدوري رحمه الله دا نقل د حقيقت خلاف دې.او قاضي ابو زيد الدبوسي متوفى سن ۴۳۰هـ پخپل كتاب اشارات كې هم دا غلطي كړې ده.حالانكه اختلاف صرف په دوهم صورت كې دې.

تنبيه① ※ صاحب دهدايه رحمه الله چه د اسرار كومه حواله وركړې ده.دا سهوه ده.ځكه چې اسرار كې دا اختلاف په دوهم صورت كې ذكر دې.په دې وجه ددې مسئلې بيانولو كې لفظ د شائع ډير خله استعمال شوې دې.

تنبيه② ※ صاحب د عنايه رحمه الله د مرغيناني رحمه الله په اعتراض باندې اعتراض كړې دې.او فرمائيلي ئې دی.چه د شيخ رحمه الله په امام قدوري رحمه الله باندې اعتراض بې ځايه دې.ځكه چې د امام قدوري رحمه الله قول په رومبی صورت كې بيانولو كې نص نه دې.ځكه ددوی عبارت دا دې.چه «لو إذا استحق بعض نصيب أحدهما بعينه» نو د ..بعينه.. تعلق كه بعض سره اوتړلې شي.نو دا به د رومبی صورت ترجماني وی.چه په دې كې اختلاف نشته.اوكه د ..نصيب أحدهما.. سره اوتړلې شي.نو اوس به دا د دوهم صورت ترجماني وی.چه په دې كې اختلاف دې.

(۴) په نتائج الافكار وغيره كې صاحب د عنايه رحمه الله ترديد شوې دې.دهغې حاصل دا دې.چه د امام قدوري رحمه الله كلام اگرچه د رومبی صورت بيانولو كې نص نه دې.خو ښكاره هم دا ده.چه دا د رومبی صورت ترجماني ده.نو د شيخ اعتراض صحيح دې.ځكه اصول دا دې.چه په داسې قسمه تركيبونو كې د قيد تعلق مضاف سره وی.مضاف اليه سره نه وی.او تاسيس د تاكيد نه غوره دې.او د صاحب د عنايه رحمه الله د قول مطابق دا تاكيد دې.او په دوهم صورت كې تاسيس دې.بهرحال د صاحب د عنايه رحمه الله اعتراض غلط دې. لنډيز د كلام دا چې دوهم صورت اختلافي دې.اوس دواړه فريقه خپل خپل دليلونه پيش كوی.

## د امام ابويوسف رحمه الله دليل

لأبي يوسف أن باستحقاق بعض شائع ظهر شريك ثالث لهما او د امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه د بعض شائع (غيرمقسوم) د استحقاق په وجه ددې دواړو دريم شريك ښكاره شو. والقسمة بدون رضاه باطلة.او دده د رضامندۍ نه بغير ويش باطل دې. كما إذا استحق بعض شائع في النصيبين لكه څنګه چې په دواړو حصوكې د بعض شائع استحقاق ثابتيږی. وهذا لأن باستحقاق جزء شائع ينعدم معنى القسمة وهو الإفراز او دا ځكه چې د جزء شائع د استحقاق په وجه د ويش معنى معدوم شوه.او هغه جلا جلا كول دی. لأنه يوجب الرجوع چې دا (استحقاق د جزء شائع ) به رجوع واجبوی. بحصته في نصيب الآخر شائعا، بخلاف المعين. د هغه د برخې (حصې) په اندازه، د دوهم په برخه كې ، د شيوع (شريكوالي) په طريقه باندې، په خلاف د معين.

حل اللغة: ① الافراز جلا كول ② الاستحقاق مستحق جوړيدل

تشريح:- دا د امام ابويوسف رحمه الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.كه په دواړو حصوكې د مستحق استحقاق په طريقه د شيوع دې.نو ويش به بالاجماع فسخ كيدو ولې؟ ځكه چې مستحق دريم شريك دې.او د شريك د رضامندۍ نه بغير ويش شوې وو.چه دا د اصول مطابق فسخ كيږی.او بالكل هم دا صورت په جزء شائع كې هم دې.نو دا ويش به هم فسخ كيږی.اوس پاتې شوه دا خبره چې په مقيس او مقيس عليه كې څه مناسبت دې.نو دا مرغيناني رحمه الله په «و هذا لأن... الخ» سره بيان كړې دې.فرمائي چه په مذكوره صورت كې به زيد د خالد په برخه كې خلورمه په طريقه د شيوع (او برخه دارۍ) اخلی.نو د تقسيم معنى يعنى جلا جلا كيدل معدوم شو.نو بيا ويش څنګه پاتې پاتې شو.او په متفق عليه صورت كې چونكه استحقاق په جزء معين كې دې.نو د زيد رجوع به هم په جزء معين كې وی.نو د ويش معنى پاتې ده.په دې وجه به بالاجماع ويش نه فسخ



كيږی.

## د طرفينو رحمهما الله دليل

ولهما او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې.أن معنى الإفراز لا ينعدم باستحقاق جزء شائع في نصيب أحدهما چې د جلا جلا كيدو معنى په دې دواړو كې د يو په برخه كې د جزء د شائع د استحقاق په وجه نه ده معدوم شوې ولهذا جازت القسمة على هذا الوجه في الابتداء او په دې وجه ابتداء كې په دې طريقه باندې ويش جائز دې. بأن كان النصف المقدم مشتركا بينهما وبين ثالث مخكنی نيمه ددې دواړواود دريم كس(مستحق ) په مينځ كې مشترك وی. والنصف المؤخر بينهما (مستحق) لا شركة لغيرهما فيه او دويمه نيمه ددې دواړو په مينځ كې ( مشتركه) وی.چه په دې كې ددوی نه د علاوه شركت نه وی.نو فاقتسما على أن لأحدهما ما لهما من المقدم وربع المؤخر يجوز ددوی دواړو ويش اوكړو.په دې طريقه چې كومه ددوی دواړو لپاره په مخكنۍ ( نيمه) كې ده.او د روستنۍ ( نيمې) څلورمه برخه دوی دواړو كې د يو لپاره ده.نو دا جائز ده. فكذا في الانتهاء نو دغه ډول به په انتهاء كې ( هم جائز وی.) وصار كاستحقاق شيء معين او دا د جزء معين د اسحقاق پشان شو. بخلاف الشائع في النصيبين په خلاف ددې كومه چې په دواړو برخو كې شائع ( خور او غيرمقسوم) وی. لأنه لو بقيت القسمة لتضرر الثالث ځكه كه ويش پاتې شی.نو دريم (مستحق) ته به ضرر وی. بتفرق نصيبه في النصيبين (مستحق)او دده د برخې (حصې) متفرق كيدو په وجه دواړو برخو كې ،، أما ههنا لا ضرر بالمستحق بهرحال دلته د مستحق هيڅ ضرر نشته. فافترقا نو دواړه صورتونه جلا جلا شو.

تشريح:- دا د طرفينو رحمهما الله دليل دې.فرمائي.زيد ، ساجد او خالد په يو كور كې شريك دی.ددې په مخكنۍ برخه كې د زيد ، خالد او ساجد دريو واړو اشتراك دې.او په روستنۍ برخه كې صرف د زيد او خالد اشتراك دې.په دې كې د ساجد هيڅ برخه نشته.اوس زيد او خالد ويش غواړی.چه په دې كې دا فيصله اوشوه.چه په مخكنۍ برخه كې خالد خپله برخه زيد ته وركړله.او زيد ته ئې د روستنۍ برخې (حصې) په ځاې د نصف څلورمه وركړله.نو اوس به صورت دا وی.چه په مخكنۍ نيمه كې زيد او ساجد نيمه په نيمه شريك شو.او په روستنۍ نيمه كې د خالد ۳\۴ او د زيد ۱\۴ شوه.او دا مذكوره ويش بالكل صحيح دې.چه په دې كې د جلا كيدو معنى موجود كيدل ضروری دی.نو هركله چې ابتداء كې دغه ډول ويش كيداې شی.نو كه په ابتداء كې بعينه هم دا صورت راوځی.نو دا به ولې جائز نه وی.او دلته به جلا جلا كيدل ولې زائل كيږی.حالانكه كله چې دلته كې د زيد په برخه كې د ساجد استحقاق په جزء شائع كې ثابت شو.بالكل هم دغه صورت دې.نو معلومه شوه.چه په دې صورت كې د ويش معنى پاته ده.نو بيا به د ويش فسخ كاوه اړتيا نه وی.نو لكه څنګه چې د معين جزء د استحقاق په صورت كې د جلا جلا كيدو معنى موجود ده.دغه ډول دلته هم موجود ده.

كه څوك دا اعتراض اوكړی چې دا صورت خو دواړو برخو كې د استحقاق په صورت كې هم راوځی.نو دا ولې نه دې فسخ كړې شوې؟ نو د دې ځواب دا دې چې دلته د ويش فسخ كاوه اړتيا مستحق د ضرر او نقصان بچ كاوه لپاره دې.ګنی دده برخه به منتشره او جلا جلا شی.څه به په مخكنۍ كې او څه به په روستنۍ كې ملاو شی.او په مذكوره صورت كې د مستحق هيڅ نقصان نشته.په دې وجه دواړو مسئلو كې توپير اوشو.

## د مسئلې اصل صورت

وصورة المسألة: إذا أخذ أحدهما الثلث المقدم من الدار او د مسئلې صورت ( دا دې)كله چې دوی دواړو كې يوكس د كور مخكنۍ دريمه برخه واخستله . والآخر الثلثين من المؤخر وقيمتهما سواء او دوهم كس د روستنۍ دوې (دوه) دريمې برخې (حصې) واخستلې.او ددې دواړو قيمت برابر دې. ثم استحق نصف المقدم بيا د مخكنۍ نصف

مسحق ثابت شو. ،فَعِنْدَهُمَا اِنْ شَاءَ نَقَضَ الْقِسْمَةَ دَفْعًا لِعَيْبِ التَّشْقِيصِ نو د طرفينو رحمهما الله په نيز که هغه ( زيد ) اوغواړي.نو ويش دې مات کړي.د ټکړې ټکړې کيدو د عيب لرې کاوه دپاره. رَجَعَ عَلٰى صَاحِبِهِ بِرُبُعِ مَا فِي يَدِهِ مِنَ الْمُؤَخَّرِ او که غواړي.نو پخپل انډيوالان ( خالد) باندې دې رجوع اوکړي.ددې په څلورمې (حصې) سره، کومه چې دده په قبضه کي ده.يعنی روستنۍ. وَاِنْ شَاءَ،لِاَنَّهُ لَوِ اسْتَحَقَّ كُلَّ الْمُقَدَّمِ رَجَعَ که که د مخکنۍ واړه مستحق راوتلې وې.نو ده به رجوع کوله بِنِصْفِ مَا فِي يَدِهِ.ددې په نصف سره.کومه چې دده ( د خالد) په قبضه کي ده. ،فَاِذَا اسْتَحَقَّ النِّصْفَ نو کله چې نصف مستحق راووتلو . رَجَعَ بِنِصْفِ النِّصْفِ .نو د نصف په نصف سره به رجوع کوی وَهُوَ الرُّبُعُ اعْتِبَارًا لِلْجُزْءِ بِالْكُلِّ او دا څلورمه برخه ده.جزء په کل باندې قياس کاوه سره.

تشریح:- د مسئلې صورت مورِ د فصل په پيل کي بيان کړې دې.صرف دومره خبره ده.چه د امام صاحب رحمه الله په نيز په دې صورت کي چې دا فرمائيلی شوی دی.چه ويش به نشی فسخ کولې.ددې مطلب دا دې.چه فسخ ضروری نه ده.بلکه دا د زيد په اختيار کي ده.که هغه ئې پاته ساتل اوغواړي.نو پاته دې اوساتی.او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز دا فسخ کيږی.د زيد په اختيار کي نه دی.بهرحال د امام صاحب رحمه الله په نيز زيد ته اختيار دې.که غواړي.ويش دې مات کړي.چه دده برخه خوره وره نشی.په مخکنۍ کي نصف، او په روستنۍ کي څلورمه حصه، او که غواړي.نه دې ماتوی.بلکه د خالد نه دې دروستنۍ څلورمه برخه واخلی.خکه مخکنۍ پوره مستحق ثابته شوې وې.نو زيد به د خالد نه د روستنۍ نيمه اخستله.او هرکله چې مخکنۍ نصف مستحق راووتله.نو اوس ښکاره ده.چه د روستنۍ نصف نيمه به ملاويږی.چه دا ربع برخه جوړيږی.يعنی جزء به په کل باندې قياس کولې شی.

## د مخکنۍ حصې د مالك نيمه خرڅولو نه روسته د مستحق راوتلو مسئله

وَلَوْ بَاعَ صَاحِبُ الْمُقَدَّمِ نِصْفَهُ او که د مخکنۍ برخې (حصې) مالك خپله نيمه برخه خرڅه کړله. ثُمَّ اسْتَحَقَّ النِّصْفَ الْبَاقِي شَائِعًا بيا پاته نيمه مستحق راووتله. رَجَعَ نو دا به رجوع کوی بِرُبُعِ مَا فِي يَدِ الْاٰخَرِ عِنْدَهُمَا لِمَا ذَكَرْنَا.دهغې په څلورمې سره.کومه چې د دوهم په قبضه کي ده.د طرفينو رحمهما الله په نيز.د هغه دليل په وجه کوم چې مورِ ذکر کړې دې. وَسَقَطَ خِيَارُهُ بِبَيْعِ الْبَعْضِ او د بعضې د خرڅولو په وجه به دده خيار ساقطيږی.

تشریح:- که زيد د خپلې مخکنۍ برخې (حصې) نه نيمه خرڅه کړله.بيا د پاته نيمې مستحق راووتلو.نو اوس به څه کيږی؟ نو طرفينو رحمهما الله اوفرمائيل.چه زيد به د خالد نه د روستنۍ څلورمه برخه اخلی.او مخکې چې ده ته کوم د ويش ماتولو اختيار وو.هغه ختم شوې دې.خکه چې نصف ئې خرڅ کړې دې.نو اوس صرف هم دا صورت پاته پاتې شو.چه مشتری ته ضرر اونه رسيږی.

## د امام ابويوسف رحمه الله نقطه نظر

وَعِنْدَ اَبِي يُوسُفَ: مَا فِي يَدِ صَاحِبِهِ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز کومه چې دده د انډيوالان په قبضه کي ده.دا د دواړو په مينځ کي نيم په نيمه ده. وَيَضْمَنُ قِيمَةَ نِصْفِ مَا بَاعَ لِصَاحِبِهِ او ( زيد) به ضامن وی.د خپل انډيوالان لپاره د هغه برخې (حصې) د نصف د قيمت کومه چې ده خرڅه کړې ده. لِاَنَّ الْقِسْمَةَ تَنْقَلِبُ فَاسِدَةً عِنْدَهُ خکه چې ويش واپس کيږی.چه فاسد شی.ددوی په نيز. وَالْمَقْبُوضُ بِالْعَقْدِ الْفَاسِدِ مَمْلُوكٌ فَيَنْفُذُ الْبَيْعُ فِيهِ او په کوم شی چې د عقد فاسد په ذريعه قبضه وی.هغه مملوك کيږی.نو په دې کي به بيع نافذ کيږی. وَهُوَ مَضْمُونٌ بِالْقِيمَةِ او دا په قيمت سره مضمون وی فَيَضْمَنُ نِصْفَ نَصِيبِ صَاحِبِهِ.نو دې ( زيد) به ضامن وی.د خپل انډيوالان د برخې (حصې) د نيمې.

تشریح:- د مذکوره بيع په صورت کي د امام ابويوسف رحمه الله په نيز ويش فاسديږی.او لکه څنګه چې په بيع فاسد کي مبيع باندې د قبضې کاوه په وجه مبيع د مشتری مملوك جوړيږی.دغه ډول په فاسد ويش سره هم کيږی.خکه چې ويش کي د بيع پشان د مبادلې معنی موجود ده.نو د زيد بيع نافذ شوه.خو ويش چونکه





فاسد دې.او نصف مبيع واپس نشی اخستلې.نو اوس به زيد ددې نصف مبيع نصف قيمت خالد ته ورکوی.او د خالد په قبضه کي چې کومه روستنۍ برخه ده.هغه به د دواړو په مينځ کي نيم په نيمه وی.

① مسئله: ثمن هغه دې.کوم چې د عقد کونکو په مينځ کي مقرر شی.او قيمت د شی اصل ماليت ته ونيلې شی.نو زيد به دلته د نصف ثمن نه بلکه ددې د قيمت د نصف به ضامن وی.

## د ويش نه روسته ترکه کښې د دين محيط ښکاره کيدو مسئله

قَالَ حضرت مرغينانی رحمه الله اوفرمائيل. (وَلَوْ وَقَعَتِ الْقِسْمَةُ) وکله چې ويش واقع شو. ثُمَّ ظَهَرَ فِي التَّرِكَةِ دَيْنٌ مُحِيطٌ نو بيا په ترکه ( ميراث) کي داسې پور ښکاره شو.چه پور دا راګيرونکې دې. رُدَّتِ الْقِسْمَةُ نو ويش به رد کولې شی. لِاَنَّهُ يَمْنَعُ وُقُوعَ الْمِلْكِ لِلْوَارِثِ خکه چې دا ( قرض) منع کوی.وارث لپاره د ملك واقع کيدل، وَكَذَا اِذَا كَانَ غَيْرَ مُحِيطٍ لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْغُرَمَاءِ بِالتَّرِكَةِ او هم دغه ډول کله چې پور راګيرونکې نه وی.د قرضخواهانو حق ميراث سره د متعلق کيدو په وجه، اِلَّا اِذَا بَقِيَ مِنَ التَّرِكَةِ خو کله چې په ميراث کي دومره مقدار پاته وی.چه دا پور پوره کوی مَا يَفِي بِالدَّيْنِ وَرَاءَ مَا قُسِمَ .د هغه مقدار نه علاوه کوم چې ويش کړې شوې دې.،لِاَنَّهُ لَا حَاجَةَ اِلٰى نَقْضِ الْقِسْمَةِ فِي اِيفَاءِ حَقِّهِمْ خکه چې د قرخواهانو حق پوره کاوه لپاره د ويش ماتولو هيڅ حاجت نشته.

حل اللغة: ① الغرماء: جمع د غريم، قرضخواه ② ترك: ميراث ③ حجة :دليل

تشریح:- مورث ( مالك د مال) وفات شو.څه ترکه ( ميراث) ئې پريخودو.نو مخکې به دده د ميراث نه دده د کفن دفن انتظام کولې شی. دوهم دا که په ده پور وی.نو هغه به پوره کولې شی.دريم داچه د پاته پاتې په دريمه کي به دده وصيت نافذ کولې شی.څلورم دا چې پاته پاتې ميراث به دده د وارثانو په مينځ کي ددوی د برخو په اندازه تقسيمولې شی.دلته به صورت حال دا وی.چه د مورث په مرګ سره وارثانو ترکه ويش کړله.بيا معلومه شوه.چه د مړی په ذمه پور دې.نو پور به پوره ميراث راګيرونکې وی.يا به راګيرونکې نه وی.په دواړو صورتونو کي به ويش رد کولې شی.په ړومبی صورت کي د وارثانو حق ميراث سره د نه متعلق کيدو په وجه، او په دوهم صورت کي ميراث سره د پور خواهانو د حق متعلق کيدو په وجه. البته که په پور کي اوس هم دومره مقدار پاته دې.چه دا ويش شوې نه دې.او دا مقدار د قرضخواهانو پور ادا کولې شی.نو اوس د ويش باطلولو اړتيا نشته.

## د قرضخواهانو برئ کول، يا د وارثانو د خپل مال نه اداکولو سره به ويش نافذ وی

وَلَوْ اَبْرَاَهُ الْغُرَمَاءُ بَعْدَ الْقِسْمَةِ او مړی لره قرضخواهانو بری کړو.د ويش نه روستو، اَوْ اَدَّاهُ الْوَرَثَةُ مِنْ مَالِهِمْ پور وارثانو د خپل مال نه ادا کړو وَالدَّيْنُ مُحِيطٌ اَوْ غَيْرُ مُحِيطٍ جَازَتِ الْقِسْمَةُ.او پور راګيرونکې دې ( ترکې لره) يا راګيرونکې نه دې.نو ويش جائز دې. لِاَنَّ الْمَانِعَ قَدْ زَالَ خکه چې مانع زائل شوې دې.

تشریح:- وارثانو ترکه(ميراث) ويش کړو.او په مړی باندې پور دې.که ( دا پور ميراث) راګيرونکې دې.اوکه نه دې.اوس به صورت دا وی.چه قرضخواهانو د مړی نه پور معاف کړو.يا وارثانو پخپل مال سره پور ادا کړو.نو په دواړو صورتونو کي به ويش جائزوی.خکه چې د ويش دجواز نه کوم شی مانع وو.هغه ميراث سره د قرضخواهانو حق متعلق کيدل وو.او اوس هغه ختم شو.نو ويش به جائز وی.

## په وارثانو کښې د يوکس د پور دعوه کول

وَلَوِ ادَّعٰى اَحَدُ الْمُتَقَاسِمِيْنَ دَيْنًا فِي التَّرِكَةِ او که تقسيمونکو کي يوکس په ترکه کې د پور دعوه اوکړله. صَحَّ دَعْوَاهُ نو دده دعوه صحيح ده. لِاَنَّهُ لَا تَنَاقُضَ خکه چې تناقض نشته.،اِذِ الدَّيْنُ يَتَعَلَّقُ بِالْمَعْنٰى خکه چې دين معنی سره متعلق دې. وَالْقِسْمَةُ تُصَادِفُ الصُّورَةَ او ويش صورت سره ملاويږی.

حل اللغة: ① تناقض: مخالفت، ديوبل خلاف ② تصادف: ملاويدل، مقابله کول

تشريح:- وارثانو ويش پيل کړو. اوس په دوی کي يوکس دعوه اوکړله. چه په مړی باندي زما پنځه زره روپۍ پور
وو. نو دده دعوه به صحيح وی.
که څوك پوښتنه اوکړی چي په ويش پيل کول ددي خبرې دليل دی. چه پور نشته. او اوس د پور دعوه
کوی. نو دده په قول او فعل کي تعارض او تناقض دی. نو دده دعوه صحيح کيدل پکار نه دی؟ نو ځواب دا
دي چي ويش د ترکي صورت سره ملاويږی. او پور د ترکي ماليت سره متعلق کيږی. نو تعارض پاتي نشو. هم
دا وجه ده. که وارثان د قرضخواهانو پور د خپل مال نه ادا کړی. نو صحيح ده. ځکه چي د قرضخواهانو حق
ماليت سره متعلق دی. صورت سره نه دی. او ماليت ادا کړې شوی دی.

## په معين څيز کښي د دعوي حکم

وَلَوِادَّعٰى عَيْنًا بِأَيِّ سَبَبٍ كَانَ اوکه ده د يو معين شئ دعوه اوکړله. که په هر سبب سره وی. لَمْ يُسْمَعْ لِلتَّنَاقُضِ
دده قول به نشی اوريدی. (قبلولی به نشی). د تناقض په وجه، اِذِ الْاِقْدَامُ عَلَى الْقِسْمَةِ اِعْتِرَافٌ بِكَوْنِ الْمَقْسُوْمِ
مُشْتَرَكًا ځکه چي ويش باندي وړاندي وړاندي کيدل اقرار دی د تقسيميدونکی (مال) د مشترك کيدو.
تشريح:- که ده اووئيل. چه په ترکه کي کوم اس دی. دا زما دی. که د وديعت وی. اوکه د اجارې وی. يا د غصب
وغيره وی. په ټولو صورتونو کي به دده قول معتبر وی. ځکه چي دواړه کارونه د ترکي د صورت سره متعلق
دی. نو تعارض موجود دی.
فائده د ويش ماتونکی نور سببونه هم شته. چه هغه مرغينانی رحمه الله نه دی بيان کړی ① وصيت ښکاره
کيدل ② وارث ښکاره کيدل، اوګوری: ﴿بدائع ص: ۳۰ ج۷﴾

# فصل في المهايأة

ژباړه:- (دا) فصل د مهايات (يعنی د نمبروارۍ په بيان کي) دی.
تشريح:- مهايات د مفاعلت او تهايؤ د تفاعل مصدر دی. ددي معنی ده. منافع تقسيمول. کله چي مرغينانی
رحمه الله د اعيانو د ويش نه فارغ شو. نو اوس د اعراض ويش پيل کوی. ځکه چي اعيان د اعراضو فرع ده. دلته
مرغينانی رحمه الله لپاره مناسب وو. چه دا ئې باب سره تعبير کړې وې. ځکه چي وړاندي د «باب دعوی الغلط و
الإستحقاق فيها» کي خبره وه. او د مهايات (نمبروارۍ) تعلق ددي باب سره نه دی. البته دا ځواب ورکولي
شی. چه دا د کتاب القسمة فصل دی. د تير شوی باب (فصل) نه دی.

## د مهايات (نمبروارۍ) تعريف

اَلْمُهَايَأَةُ جَائِزَةٌ اِسْتِحْسَانًا لِلْحَاجَةِ اِلَيْهِ مهايات استحساناً جائز دی. دده اړخ ته د حاجت په وجه، اِذْ قَدْ يَتَعَذَّرُ الْاِجْتِمَاعُ عَلَى
الْاِنْتِفَاعِ فَاَشْبَهَ الْقِسْمَةَ ځکه چي انتفاع باندي اجتماع متعذر کيږی. نو دا د ويش مشابه شو. وَلِهٰذَا يَجْرِي فِيْهِ جَبْرُ
الْقَاضِي او هم په دې وجه دی کي د قاضی د زبردستی جاری کيږی. كَمَا يَجْرِي فِي الْقِسْمَةِ، اِلَّا اَنَّ الْقِسْمَةَ اَقْوٰى مِنْهُ
فِي اسْتِكْمَالِ الْمَنْفَعَةِ لکه څنګه چي ويش کي جاری کيږی. خو ويش د مهايات نه زيات مضبوط دی. د
منفعت په تکميل کي. لِاَنَّهُ جَمْعُ الْمَنَافِعِ فِي زَمَانٍ وَاحِدٍ، ځکه چي ويش په يوه زمانه کي منافع جمع کول دی.
وَالتَّهَايُؤُ جَمْعٌ عَلَى التَّعَاقُبِ. او تهايؤ بلا ناغه جمع کول دی.

حل اللغة: ① الانتفاع: نفع اخستل ② اقوی: زيات قوی ③ استکمال: طلب د کامل کولو ④ التعاقب: بلا ناغه
، يوبل پسي ⑤ الاستناف: د سرنه پيل کول
تشريح:- مخکي دا پيژندل ضروری دی. چه ددې فصل ټولي مسئلي د مبسوط مسئلي دی. چه دا امام محمد
رحمه الله په جامع صغير کي نه دی ذکر کړې. او نه امام قدوری رحمه الله پخپل مختصر کي ذکر کړې دی. او نه صاحب
دهدايه رحمه الله په هداية المبتدی کي ذکر کړی دی. البته دلته د زياتو فائدو په لحاظ سره بيانولي شی. بهرحال د





قياس تقاضت دا ده. چه مهايات جائز نه وی. ځکه چي دې کي د اعيان په ځاني د منافعو ويش د زمان او
مکان په اعتبار سره کيږی. او د يو جنس بل جنس سره د تبادله کيدو په وجه دې کي د سود شبه ده. خو دا
مهايات استحساناً جائز ګرځولي شوی دی. ځکه چي ددې حاجت راپيښيږی. ځکه چي کله اجتماعی
طور باندي انتفاع متعذر کيږی. نو دا د ويش مشابه شو. چه لکه څنګه هلته عين باندي د اجتماع مشکل
کيدو په وجه د عين ويش کولي شی. نو دلته انتفاع باندي د اجتماع په وجه ويش کولي شی. او لکه څنګه
چي د بعضو شريکانو په طلب باندي ويش کي د قاضی زبردستی کول جائز ده. نو دلته به هم د قاضی
زبردستی جائز وی. خو مهايات کي منافع بلا ناغه جمع کولي شی. او په ويش کي په يوه زمانه کي (دننه
جمع کولي شی). نو د ويش منفعت کمال او مبالغه ده. په دې ويش د مهايات نه مضبوط دی.

وَلَوْ طَلَبَ اَحَدُ الشَّرِيْكَيْنِ الْقِسْمَةَ وَالْآخَرُ الْمُهَايَأَةَ يَقْسِمُ الْقَاضِي او هم په دې وجه که شريکانو کي يوکس د ويش
مطالبه اوکړی. او دوهم د مهايات (دعوه اوکړی). نو قاضی به ويش کوی. لِاَنَّهُ اَبْلَغُ فِي التَّكْمِيْلِ ځکه چي ويش
په پوره والی کي زيات بليغ (او اثرناك) دی. وَلَوْ وَقَعَتْ فِيْمَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ ثُمَّ طَلَبَ اَحَدُهُمَا الْقِسْمَةَ او که مهايات په
داسي شئ کي واقع شی. چه هغه د ويش احتمال لری. بيا په دوی دواړو کي يوکس د ويش مطالبه اوکړی.
يَقْسِمُ وَتَبْطُلُ الْمُهَايَأَةُ نو قاضی به ويش کوی. او مهايات به باطليږی. لِاَنَّهُ اَبْلَغُ، وَلَا يَبْطُلُ التَّهَايُؤُ بِمَوْتِ اَحَدِهِمَا وَلَا بِمَوْتِهِمَا
ځکه چي ويش زيات بليغ (او ګټور) دی. او مهايات به نه باطليږی. په دوی دواړو کي د يوکس په مرګ
سره، او د دواړو په مرګ سره به نه باطليږی. لِاَنَّهُ لَوِ انْتَقَضَ ځکه که دا مات شی لَاسْتَأْنَفَهُ الْحَاكِمُ فَلَا فَائِدَةَ فِي
النَّقْضِ ثُمَّ الْاِسْتِئْنَافِ. نو حاکم به دا دوباره د سره کوی. او په ماتولو کي دوباره د سره کاوه کي هيڅ فائده نشته.

تشريح:- هم دا وجه ده. که يو شريك د ويش مطالبه اوکړی. او دوهم د مهايات دعوه اوکړی. نو قاضی به ويش
اختياروی. او کوم شئ چي د ويش قابل دی. چه هغې کي مهايات واقع شوی وو. اوس يو شريك د ويش
مطالبه کوی. نو قاضی به ويش کوی. او مهايات به باطليږی. ځکه چي ويش د مهايات نه مضبوط دی.
او د يو شريك يا د دواړو په مرګ سره به مهايات نه باطليږی. ځکه چي ددې باطلول ګټور نه دی. د
مهايات ثبوت د قرآن نه شوی دی ﴿قَالَ هٰذِهٖ نَاقَةٌ لَّهَا شِرْبٌ وَّلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ﴾ دا دمهايات د جواز ښکاره
دليل دی. ځکه چي قرآن ددې په نقل کاوه سره هيڅ نکير نه دی فرمائيلي. نو د اصول مطابق زموږ په
شريعت کي ددې مشروعيت ثابت شو.

## د مهايات دوهم قسم

وَلَوْ تَهَايَأَ فِي دَارٍ وَاحِدَةٍ اوکه دواړو مهايات اوکړو. په يو کور کي، عَلٰى اَنْ يَسْكُنَ هٰذَا طَائِفَةً وَهٰذَا طَائِفَةً په
دې طريقه چي دې به په دې برخه کي اوسيږی. او دې به په دويمه برخه کي (اوسيږی)، اَوْ هٰذَا عُلْوَهَا وَهٰذَا سُفْلَهَا
جَازَ يا دا به ددې کور په پورتنی منزل کي، او دا به ددې په لاندينی منزل کي (اوسيږی). نو جائز دی. لِاَنَّ
الْقِسْمَةَ عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ جَائِزَةٌ ځکه چي په دې طريقه ويش جائز دی. فَكَذَا الْمُهَايَأَةُ، وَالتَّهَايُؤُ فِي هٰذَا الْوَجْهِ اِفْرَازٌ لِجَمِيْعِ
الْاَنْصِبَاءِ لَا مُبَادَلَةٌ نو هم دغه ډول مهايات او وار مقررول په دې صورت کي د ټولو برخو جلا جلا کول
دی. مبادله نه ده. وَلِهٰذَا لَا يُشْتَرَطُ فِيْهِ التَّاْقِيْتُ او هم په دې وجه دې کي وخت معين کول شرط نه دی.

حل اللغة: ① التاقيت: وخت مقرر کول ② الانصباء: جمع د نصيب، برخه
تشريح:- د مهايات (نمبروارۍ) دوې (دوه) قسمونه دی ① مهايات فی الزمان ② مهايات فی المکان. دا
دوهم قسم دی. چه دواړه په يو وخت کي د يوې يوې برخې (حصې) نه نفع حاصلوی. چه د يو کور په يوه برخه
کي يوکس او په بله برخه کي دوهم کس اوسيږی. يا يوکس پورتنه منزل کي او دوهم لاندې منزل کي
اوسيږی. نو دا جائز دی.
ځکه که په دې طريقه دوی ويش کړې وې. نو ويش به جائز وې. نو مهايات به هم جائز وی. او وړاندې تير

شوی دی.چه ویش کي د جداکیدو او مبادلې دواړو امله شته.چرته جداکیدل راجح دی.او چرته مبادله، مهایات په دې صورت کي مبادله نشته.بلکه افراز (او جلا جلا کیدل) دی.او که مهایات په یو کور کي دواړو زمانو کي اوشی.نو دا مبادله ده.جداکیدل نه دی.ګویا هر یوکس پخپل وار کي د دوهم برخه پور اخلي.بهرحال ذکر شوی صورت ته مبادله نشی وئیلې.ګنی په یو جنس کي به د سود د شبهې په وجه مبادله صحیح نه وه.اوکه دا مبادله وې.نو په دې کي به د وخت تعین ضروری وو.ځکه چې د مبادله په صورت کي د منافعو تملیك بالعوض کیږی.نو دا به د اجارې په درجه کي وو.چه په دې کي د وخت تعین ضروری دی.

### د مهایات (نمبرواری) برخه په کرایه باندې ورکول

وَلِكُلِّ وَاحِدٍ وهریو ته دا حق شته أَنْ يَسْتَغِلَّ مَا أَصَابَهُ بِالْمُهَايَأَةِ شُرِطَ ذٰلِكَ فِي الْعَقْدِ چه په مهایات کي کومه برخه ده ته رسیږی.دا په کرایه باندې ورکړی.که دا په عقد کي شرط شوې وی. أَوْلَمْ يُشْتَرَطْ او که شرط شوې نه وی لِحُدُوثِ الْمَنَافِعِ عَلٰى مِلْكِهٖ.د منافعو د پیدا کیدو په وجه.دده په ملك باندې.

تشریح:- یعنی هریود خپلې برخې (حصې) په کرایه د ور کاوه حق لری.که په عقد کي ددې شرط شوې وی.اوکه نه وی شوې.ځکه چې د منافع د هر یو په ملك باندې جلا جلا پیدا کیږی.بعضو محققینو دلته عاریت اخستو باندې اعتراض کړې دې.اوګورئ: ﴿نتائج الافکارص:۲۸ج۸﴾

### په مشترك غلام کښې د خدمت لپاره د نمبر ورځ مقررول

(وَلَوْ تَهَايَئَا فِي عَبْدٍ وَاحِدٍ عَلٰى أَنْ يَخْدُمَ هٰذَا يَوْمًا وَهٰذَا يَوْمًا جَازَ) اوکه دواړو په یو غلام کي وار مقرر کړو.په دې طریقه، چې دا غلام به یوه ورځ دده او یوه ورځ به دده خدمت کوی.نو دا جائز ده. وَكَذَا هٰذَا فِي الْبَيْتِ الصَّغِيرِ او هم دغه ډول دا (جائز ده) په وړه اطاق کي، (لِأَنَّ الْمُهَايَأَةَ قَدْ تَكُونُ فِي الزَّمَانِ ځکه چې مهایات کله په زمان کي کیږی وَقَدْ تَكُونُ مِنْ حَيْثُ الْمَكَانِ) او کله د مکان په حیثیت سره کیږی وَالْأَوَّلُ مُتَعَيَّنٌ هٰهُنَا..او رومبی دلته متعین دی.

تشریح:- یو غلام دوو شریکانو کي مشترك دې.هغوی دا فیصله اوکړله.چه یوه ورځ به د زید او بله ورځ به د عمروخدمت کوی.نو دا جائز ده.او دا د مهایات فی الزمان صورت دې.په مهایات فی الزمان کي د منافعوحاصلول بلا ناغه کیږی.او په مهایات فی المکان کي په یوځل دواړو ته حاصلیږی.خو په اول کي پوره مملوك کي وی.او په دوهم کي بعضو کي کیږی.

### په مهایات فی الزمان او مهایات فی المکان کښې د اختلاف مسئله

وَلَوِ اخْتَلَفَا فِي التَّهَايُؤِ مِنْ حَيْثُ الزَّمَانِ وَالْمَكَانِ فِي مَحَلٍّ يَحْتَمِلُهُمَا او که دواړو شریکانو د زمان او مکان په حیثیت سره اختلاف اوکړو.په داسې ځائې کي کوم چې ددې دواړو احتمال لری. يَأْمُرُهُمَا الْقَاضِي بِأَنْ يَتَّفِقَا) نو قاضی به دوی ته حکم کوی.چه دواړه اتفاق اوکړی. لِأَنَّ التَّهَايُؤَ فِي الْمَكَانِ أَعْدَلُ وَفِي الزَّمَانِ أَكْمَلُ په دې وجه مهایات فی المکان زیات انصاف والا دې.او فی الزمان زیات کامل دې. فَلَمَّا اخْتَلَفَتِ الْجِهَةُ لَا بُدَّ مِنَ الْاِتِّفَاقِ نو هرکله چې جهت مختلف شو.نو اتفاق ضروری دې. (فَإِنِ اخْتَارَاهُ مِنْ حَيْثُ الزَّمَانِ نوکه دوی دواړه مهایات د زمان په حیثیت سره اختیار کړی يُقْرَعُ فِي الْبِدَايَةِ) نَفْيًا لِلتُّهْمَةِ .نو په پیل کاوه کي دې قرعه واچولې شی.د تهمت د نفی په وجه.

تشریح:- زید وائی.چه موږ مهایات فی المکان کړې وو.او عمرو وائی.چه مهایات فی المکان شوې وو.اوس به قاضی پخپله فیصله نه کوی.بلکه دوی دواړو ته به په یو باندې د اتفاق حکم ورکړی.ځکه چې دواړه قسمونه په مختلفو وجو سره د یو بل نه غوره دی.نو ترجیح ورکول مشکل دی.یعنی زیات عدل او انصاف په مهایات فی المکان کي دې.چه دواړه په یو وخت منافع حاصلوی.او زیات کمال (او پوره والې) په



مهایات فی الزمان کي دې.چه په پوره کور کي پخپل وار کي د نفع اخستلو موقع ملاویږی.نو د اتفاق حکم ضروری شو.بیا دوی دواړو فیصله اوکړله.چه مهایات فی الزمان شو.نو اوس به مخکې والې څوك کوی؟ نو که قاضی د خپل اړخه د یو کس تعین اوکړی.نو په دې کي تهمت دې.په دې وجه دې دواړو کي قرعه واچولې شی.او دچا نوم چې راوخی.د هغه نه دې پیل اوکړې شی.

### په دوو مشترك غلامانو کښې د دواړو د خدمت لپاره د غلام د تعین حکم

وَلَوْ تَهَايَئَا فِي الْعَبْدَيْنِ اوکه دواړو په دوو غلامانو کي مهایات اوکړو عَلٰى أَنْ يَخْدُمَ هٰذَا هٰذَا الْعَبْدُ.په دې طریقه چې دده به دا غلام خدمت کوی. وَالْآخَرُ الْآخَرَ جَازَ عِنْدَهُمَا او ددې بل به دا دویم.نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز جائز دی. لِأَنَّ الْقِسْمَةَ عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ جَائِزَةٌ عِنْدَهُمَا جَبْرًا مِنَ الْقَاضِي وَبِالتَّرَاضِي ځکه چې ددوی په نیز په دې طریقه باندې ویش جائز دې.د قاضی د اړخه د زبردستۍ په طریقه باندې،او په رضامندۍ سره. فَكَذَا الْمُهَايَأَةُ نو هم دغه ډول مهایات دې. وَقِيلَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ لَا يَقْسِمُ الْقَاضِي او وئیلی شوی دی.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په دې طریقه ویش جائز نه دې.. وَهٰكَذَا رُوِيَ عَنْهُ لِأَنَّهُ لَا يَجْرِي فِيهِ الْجَبْرُ عِنْدَهٗ او هم دغه ډول د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی.ځکه چې دې کي به د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز زبردستی نه جاری کیږی. وَالْأَصَحُّ أَنَّهٗ يَقْسِمُ الْقَاضِي عِنْدَهٗ أَيْضًا او زیاته صحیح هم دا ده.چه قاضی به د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز هم ویش کوی. لِأَنَّ الْمَنَافِعَ مِنْ حَيْثُ الْخِدْمَةِ قَلَّمَا تَتَفَاوَتُ ځکه چې منافع د خدمت په حیثیت سره ډیر مختلف وی بِخِلَافِ أَعْيَانِ الرَّقِيقِ.په خلاف د اعیان رقیق (معین غلامانو)، لِأَنَّهَا تَتَفَاوَتُ تَفَاوُتًا فَاحِشًا عَلٰى مَا تَقَدَّمَ ځکه چې دا د تیرشوی تفصیل مطابق په ډیر زیات اختلاف سره مختلف کیږی.

تشریح:- اودامام صاحب رحمه الله نه خصاف رحمه الله هم دا روایت کړې دې.ځکه چې د مخکې پشان دلته هم اختلاف د جنس دې.چه په دې کي د قاضی زبردستی نه چلیږی.خو زیاته صحیح خبره دا ده.چه د امام صاحب رحمه الله په نیز هم مذکوره مهایات جائز دې.

تشریح:- ځکه چې دا مسئله د منافعو ده.او مخکنۍ د اعیان وه.او اعیانو ته هم د زیات تفاوت په وجه مختلف جنس وئیلې شوې وو.خو د منافعو په خدمت کي تفاوت معمولی دې.چه ددې برداشت کولې شی.نو د معمولی تفاوت په وجه منافع متحد الجنس شمار کړې شو.او دا جائز اوګرځولی شو.د امام صاحب او صاحبینو رحمهم الله په اعیان کي اختلاف د هدایۀ په دریم ټوك کي تیر شوې دې.

### په دوو مشترك غلامانو کښې ددوی د نفقې او کپړو د ویش مسئله

وَلَوْ تَهَايَئَا فِيهِمَا اوکه دواړو مهایات اوکړو عَلٰى أَنَّ نَفَقَةَ كُلِّ عَبْدٍ عَلٰى مَنْ يَأْخُذُهٗ جَازَ) اِسْتِحْسَانًا .په دوو غلامانو کي په دې طریقه، چې د هر غلام نفقه په هغه چا ده.څوك چې دا واخلي.نو دا استحساناً جائز ده. لِلْمُسَامَحَةِ فِي إِطْعَامِ الْمَمَالِيكِ غلامانو ته په خوراك ور کاوه کي د شومتیا جاری کیدو په وجه، بِخِلَافِ شَرْطِ الْكِسْوَةِ په خلاف د کپړې ور کاوه د شرط لَا يُسَامَحُ فِيهَا، ځکه چې دې کي شومتیا نشی ښکاره کیدې.

تشریح:- هرکله چې دوې (دوه) غلامان مشترك دی.نو ددوی نفقه او کپړې به په دواړو باندې مشترك واجب وی.خو دواړو شریکانو دا فیصله اوکړله.چه کوم غلام د چا خدمت کوی.هم هغه به هغه ته خوراك ورکوی.او هغه له به کپړې جوړوی.نو اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل.چه د خوراك صورت جائز دې.ځکه ① چې په عامه توګه (عام طور) باندې خوراك کي توپیر کم وی.او په کپړو کي توپیر ډیر زیات وی.نو دا صورت به جائز نه وی. ② دویمه وجه دا ده.چه په خوراك ور کاوه کي سړې په عامه توګه (عام طور) باندې شومتیا نه کار نه اخلي.او په کپړو جوړولو کي د بخل نه کار اخلي. ③ اوهرکله چې کپړه په دوی دواړو باندې په مشترك طریقه باندې واجب ده.نو د داسې کاوه په صورت کي هر یو د خپل اندیوالان نه نیمه کپړه د بل د

نيمي كپړې په بدله كي اخلي.او په دې كښي جهالت دې.په دې وجه به دا جائز نه وي.

تنبيه۞ البته كه د يوې كپړې تعين اوشي.نو استحساناً جائز دې. ﴿فإن وقت شيئاً من الكسوة معروفاً جاز إستحساناً لأن عند ذكر الوصف ينعدم التفاوت أو يقل﴾ ﴿مجمع الانهر ص:۲٧٨ج۲﴾

### دوو كورونو كښي اوسيدو لپاره د يو يو كور د تعين حكم

(وَلَوْتَهَايَئَا) او كه دوارو مهايات اوكړو (فِي دَارَيْنِ عَلَى أَنْ يَسْكُنَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا دَارًا جَازَ) .په دوو كورونو كي په دې طريقه چې په دوى كي به هر يو په يو كور كي اوسيږي.نو جائز ده. (وَيُجْبِرُ الْقَاضِي عَلَيْهِ) او قاضى به په ده باندې زبردستي كوى. وَهَذَا عِنْدَهُمَا ظَاهِرٌ(۱) بهرحال د صاحبينو رحمهما الله په نيز،نو ښكاره ده لِأَنَّ الدَّارَيْنِ عِنْدَهُمَا كَدَارٍ وَاحِدَةٍ. .ځكه چې دوې (دوه) كورونه ددوى په نيز د يو كور پشان دى. وَقَدْ قِيلَ او وئيلى شوى دى ،لَا يُجْبَرُ عِنْدَهُ اعْتِبَارًا بِالْقِسْمَةِ .چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به قاضى زبردستي نه كوي.په ويش باندې قياس كاوه سره. وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دى . أَنَّهُ لَا يَجُوزُ التَّهَايُؤُ فِيهِمَا أَصْلًا بِالْجَبْرِ لِمَا قُلْنَا .چه په دوو كورونو كي مهايات بالكل جائز نه دې.په زبردستۍ سره.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې. لِأَنَّهُ بَيْعُ السُّكْنَى بِالسُّكْنَى او نه خپل مينځ كي رضامندۍ سره ( جائز دې).ځكه چې دا د اوسيدو، د اوسيدو په بدله كي بيع ده. بِخِلَافِ قِسْمَةِ رَقَبَتِهِمَا په خلاف ددوى دوارو د غلام تقسيمولو لِأَنَّ بَيْعَ بَعْضِ أَحَدِهِمَا بِبَعْضِ الْآخَرِ جَائِزٌ ،ځكه چې په دې دوو كورونو كي د يوكور د څه برخي (حصې) بيع د دوهم د بعضې برخې (حصې) په بدله جائز ده. وَجْهُ الظَّاهِرِ د ظاهرالرواية دليل دا دې،. أَنَّ التَّفَاوُتَ يَقِلُّ فِي الْمَنَافِعِ فَيَجُوزُ بِالتَّرَاضِي وَيَجْرِي فِيهِ جَبْرُ الْقَاضِي چې تفاوت په منافعو كي كم وى.نو دا خپل مينځ كي رضامندۍ سره جائز ده.او په دې كي به د قاضي زبردستى جارى كيږى. وَيُعْتَبَرُ إفْرَازًا او دا به جداكيدل ګڼرلې شي. أَمَّا يَكْثُرُ التَّفَاوُتُ فِي أَعْيَانِهِمَا فَاعْتُبِرَ مُبَادَلَةً. بهرحال ددې دوارو په اعيان كي تفاوت زيات وى.نو دا به مبادله شمارلې شي.

تشريح:- د زيد او عمرو په مينځ كي دوې (دوه) كورونه مشترك دى.هغوى دا فيصله اوكړله.چه په يو كي زيد اوسيږى.او په دوهم كي عمرو اوسيږى.نو دا جائز ده.او په دوارو كي د يوكس په طلب باندې به قاضى په دې مهايات باندې زبردستىكوى.په دې كي د ائمه ثلاثه رحمهم الله اتفاق دې.

كه څوك دا سوال اوكړى چې دا خبره خو صرف د صاحبينو رحمهما الله په نيز صحيح كيداې شى.چه هغوى دوو كورونو ته د يو كور درجه وركوى.او په دې كي ويش جائز ګرځوى.لكه څنګه چې د هدايه په دريم جلدكي ددې تفصيل تير شوې دې.خو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا مهايات جائز كيدل پكار نه دى.ځكه چې جلا جلا ويش ددوى په نيز دلته جائز نه دې... كمامر،، نو بيا اتفاق څنګه؟ نو موږ ځواب وركوو چې په مهايات كي منافع حاصلول دى.چه په دې كي تفاوت كم دې.نو خپل مينځ كي رضا مندۍ سره هم جائز دې.او زبردستۍ سره هم.ځكه چې دا د افراز درجه ده.او ددې په ويش كي ډير زيات تفاوت دې.نو هلته دا مبادله ده.او په مبادله كي زبردستى نه جائز كيږى.

۞ ظاهرالرواية هغه دې.كوم چې ذكر شو.يعنى جواز، او نور اقوال په نوادراتو كي نقل دى.په هغې كي يو قول دادې.چه خپل مينځ كي رضامندۍ سره جائز دې.زبردستى جائز نه ده.او هم دا د امام كرخى رحمه الله قول دې.او دوهم قول دا نقل دې.چه دا مهايات د سره جائز نه دې.نه زبردستۍ سره جائز دې.او نه خپل مينځ كي رضامندۍ سره جائز دې.د رومبى دليل ذكركړې شوې دې.او د رضامندۍ دليل دا دې.چه دا د اوسيدو بيع ده.د اوسيدو په بدله كي ، او دا باطل ده.او په ويش كي دكور د بعضې برخې (حصې) بيع د دوهم د بعضې

---

۱) القول الراجح هوهذا قول الصاحبين . رحمهما الله كذا فى الدالمحتار (۱۸۹|۵) والهندية (۲۳۰|۵) والبحر(۲۸۶|٤) نقلاً عن القول جع (۲۸٤|۲)-



په بدله كي ده.اوهغه جائز ده.

### په دوو څاروو سوريدو باندې د نمبروارۍ حكم

(وَفِي الدَّابَّتَيْنِ لَا يَجُوزُ التَّهَايُؤُ عَلَى الرُّكُوبِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله) او په دوو څاروو كي سوريدو باندې مهايات جائز نه دې.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، (وَعِنْدَهُمَا يَجُوزُ) اعْتِبَارًا بِقِسْمَةِ الْأَعْيَانِ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز ويش اعيان باندې قياس كاوه سره جائز دې.

تشريح:- د زيد او عمرو په مينځ كي دوې (دوه) اسونه مشترك دى.هغوى په دې طريقه مهايات اوكړو.چه په يو به زيد سوريږى.او په دوهم باندې به عمرو سوريږى.يا يو اس د دوارو په مينځ كي مشترك دې.او هغوى دا فيصله اوكړله.چه په دې باندې به اته ورځې زيد سوريږى.او اته ورځې به عمرو سوريږى.نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز خو دا صورت جائز دې.او د امام صاحب رحمه الله په نيز جائز نه دې.

۞ صاحبينو رحمهما الله د اعيانو په ويش باندې قياس كاوه سره دې ته جائز وئيلى دى.او د امام صاحب رحمه الله په نيز د اعيانو د ويش هم دا حكم دې...كمامر..

وَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې أَنَّ الِاسْتِعْمَالَ يَتَفَاوَتُ بِتَفَاوُتِ الرَّاكِبِينَ .چه استعمال متفاوت كيږى.د سوريدونكو په تفاوت سره، فَإِنَّهُمْ بَيْنَ حَاذِقٍ وَأَخْرَقَ ځكه چې سوريدونكى د ماهر او بې رائې (ناقابله) په مينځ كي دې. وَالتَّهَايُؤُ فِي الرُّكُوبِ فِي دَابَّةٍ وَاحِدَةٍ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ لِمَا قُلْنَا، بِخِلَافِ الْعَبْدِ او په يوه سوارلۍ كي مهايات هم په دې اختلاف باندې دې.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې. په خلاف د غلام، لِأَنَّهُ يَخْدُمُ بِاخْتِيَارِهِ ځكه چې هغه پخپل اختيار سره خدمت كوى فَلَا يَتَحَمَّلُ زِيَادَةً عَلَى طَاقَتِهِ وَالدَّابَّةُ تَحْمِلُهَا .نو هغه به د خپل توان نه د زيات برداشت نشى كولې.او حيوان (څاروې) د زيات برداشت كوى.

حل اللغة* ① يتفاوت: مختلف كيږى ② الدابة:څاروې ③ الركوب: سوريدل

تشريح:- د امام صاحب رحمه الله دليل دا دې.چه په هر سوريدونكى كي توپير دې.يوكس په سوريدو كي ماهر وى.چه په دې سره اس ته هيڅ نقصان نه رسيږى.او دوهم بالكل ناپوهه او بې رائې (ناقابله) دې.چه په ده سره اس ته نقصان رسيدې شى.البته هم دا صورت كه په يو غلام يا دوو غلامانو كي وى.نو دا د امام صاحب رحمه الله په نيز هم جائز دې.ځكه چې غلام خو د خپل اختيار مالك دې.چه د خپل قدرت نه زياتى بوج به نه اوچتوى.او حيوان (څاروې) د وهلو او ټ كاوه په صورت كي د خپل توان نه زيات برداشت كولې شى.په دې وجه د دوارو په مينځ كي توپير اوشو.

### كور په كرايه باندې چلولو كښي د نمبروارۍ حكم

وَأَمَّا التَّهَايُؤُ فِي الِاسْتِغْلَالِ او بهرحال كرايه باندې وركاوه كي مهايات، يَجُوزُ فِي الدَّارِ الْوَاحِدَةِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ په يو كور كي جائز دې.په ظاهرالرواية كي ، وَفِي الْعَبْدِ الْوَاحِدِ وَالدَّابَّةِ الْوَاحِدَةِ لَا يَجُوزُ او په يو غلام او يو څاروى كي جائز نه دې. وَوَجْهُ الْفَرْقِ هُوَ أَنَّ النَّصِيبَيْنِ يَتَعَاقَبَانِ فِي الِاسْتِيفَاءِ، او وجه د توپير دا ده.چه دواړه برخې (حصې) د وصولولو په اعتبار سره يو بل پسې راځى. وَالِاعْتِدَالُ ثَابِتٌ فِي الْحَالِ او برابرى في الحال ثابته ده. وَالظَّاهِرُ بَقَاؤُهُ فِي الْعَقَارِ او ښكاره په مځكه كي ددې برابرۍ پاته پاتې كيدل دى وَتَغَيُّرُهُ فِي الْحَيَوَانِ .او په څاروو كي ددې بدليدل دى.. لِتَوَالِي أَسْبَابِ التَّغَيُّرِ عَلَيْهِ فَتَفُوتُ الْمُعَادَلَةُ په څاروو كي د اسبابو بدليدل د بلا ناغه راتلو په وجه، نو برابرى به فوت كيږى.

حل اللغة* ① الاستغلال: كرايه باندې وركول ② الدار: كور ③ توالى: بلا ناغه والې

تشريح:- يو كور د زيد او عمرو په مينځ كي مشترك دې.هغوى دا فيصله اوكړله.چه دا به يوه مياشت كرايه باندې زيد چلوى.او يوه مياشت به ئې عمرو چلوى.او ددې كرايه به وصولوى.نو په ظاهرالرواية كي دا

صورت جائز دي.اوكه په يو غلام او يو اس كي هم دا صورت وي.نو بالاتفاق جائز نه دي.ځكه چې هركله دواړه شريكان برابر برابر شريك دي.نو په هرلحاظ سره ددوی د برابرئ خيال ساتل پكار دی.او دا خيال په رومبی صورت كي پاته دي.او په آخرى صورت كي پاته نه پاتې كيږی.ځكه ښكاره هم دا ده.چه د كور اوس كوم حالت دي.په راروانه مياشت كي به هم دا پخپل حال پاته وی.نو برابری ثابته ده.او د غلام او اس په صورت كي ددې هيڅ گارنټی نشته. كيداې شی.چه غلام او اس بيمار شی.يا بله څه خبره پيدا شی.ځكه چې څاروی د بدليدو د سببونو په مينځ كي راگير دی.نو دلته به برابری اونشی.

**كه د يوكس په نمبر كښې كرايه زياته حاصله شوهنو دوهم به هم شريك وي**

وَلَوْزَادَتِ الْغَلَّةُفِي نَوْبَةِ أَحَدِهِمَااوكه كرايه زياته شی.په دوی دواړو كي د يوكس په وار كي ، عَلَيْهَافِي نَوْبَةِ الْآخَرِبه هغه كرايه باندې كومه چې د دوهم په وار كي وه. يَشْتَرِكَانِ فِي الزِّيَادَةِلِيَتَحَقَّقَ التَّعْدِيلُ، نو دوی دواړه به په زياتی كي شريك وی.چه برابری متحقق شی. بِخِلَافِ مَاإِذَاكَانَ التَّهَايُؤُعَلَى الْمَنَافِعِبه خلاف ددې صورت چې مهايات په منافعو باندې وی. فَاسْتَغَلَّ أَحَدُهُمَافِي نَوْبَتِهِ زِيَادَةً،نو په كرايه باندې وركړو، دوی كي يوكس خپل وار په زيات باندې، لِأَنَّ التَّعْدِيلَ فِيمَاوَقَعَ عَلَيْهِ التَّهَايُؤُحَاصِلٌ ځكه چې برابری هغه شئ كي په كوم چې مهايات واقع شوي دي.حاصل شوې ده. وَهُوَالْمَنَافِعُاوهغه منافع دی فَلَاتَضُرُّهُ زِيَادَةُالِاسْتِغْلَالِ مِنْ بَعْدُ.نو هغه ته به ددې نه روسته د كرايه زياته آمدنی نقصان نه وركوی.

**حل اللغة:** ① الغلة: كرايه ② التعديل: برابری

**تشريح:-** د زيداو عمرو په مينځ كي يو كور مشترك دې.هغوی دا فيصله اوكړله.چه يو مياشت لپاره به نې زيد په كرايه باندې وركوی.او د يو مياشت لپاره به نې عمر وركوی.زيد د يو مياشت لپاره په سل روپئ كي كرايه باندې وركړو.او عمرو په دوي (دوه) سوه روپئ باندې وركړو.نو دا زياتی چې كومې سل روپئ دی.هغې كي به دواړه شريك وی.چه برابری اوكړې شی.او كه دا فيصله اوشوه.چه دواړه به بلا ناغه په دې كور كي اوسيږی.او منافع به حاصلوی.بيا دواړو په كرايه باندې اوچلولو.او په كرايه كي كمې زياتې اوشو.نو اوس به په زياتی كي دواړه شريك نه وی.ځكه چې مهايات په منافعو باندې شوې وو.په آمدنئ باندې نه وو شوې.نو د آمدنئ زياتوالې به دلته مضر نه وی.

**د دوو كورونو په كرايه چلولو باندې د نمبروارئ حكم**

وَالتَّهَايُؤُعَلَى الِاسْتِغْلَالِ فِي الدَّارَيْنِ جَائِزٌ أَيْضًافِي ظَاهِرِالرِّوَايَةِ لِمَابَيَّنَّااو په دوو كورونو كي كرايه باندې مهايات په ظاهرالرواية كي جائز دې.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې. وَلَوْفَضَلَ غَلَّةُ أَحَدِهِمَالَا يَشْتَرِكَانِ فِيهِ اوكه په دوی دواړو كي د يوكس كرايه زياته شی.نو په دې كي به دواړه شريك نه وی. بِخِلَافِ الدَّارِالْوَاحِدَةِ.په خلاف د يو كور كي ( د شريكيدو). وَالْفَرْقُ أَنَّ فِي الدَّارَيْنِ مَعْنَى التَّمْيِيزِ،وَالْإِفْرَازُرَاجِحٌ لِاتِّحَادِزَمَانِ الِاسْتِيفَاءِاو توپير دا دې.چه په دواړو كورونو كي د توپير او جلا كيدو معنی راجح ده.د فائدې حاصلولو د زمانې متحد كيدو په وجه، وَفِي الدَّارِالْوَاحِدَةِ يَتَعَاقَبُ الْوُصُولُ فَاعْتُبِرَقَرْضًااو په يو كور كي وصول بلا ناغه دې.نو دا به پور اعتبار كولې شی. وَجُعِلَ كُلُّ وَاحِدٍفِي نَوْبَتِهِ كَالْوَكِيلِ عَنْ صَاحِبِهِاو هر يو به دده په وار كي د خپل انډيوالان د وكيل پشان شمارلې كيږی. فَلِهَذَايَرُدُّعَلَيْهِ حِصَّتَهُ مِنَ الْفَضْلِنو په دې وجه به هغه پخپل انډيوالان باندې د هغه د زياتوالی برخه واپس كوی.

**حل اللغة:** ① الاستيفاء: حاصلول ② الافراز: جلا كول ③ يتعاقب: يوبل پسې راخی ④ الفضل زياتی

**تشريح:-** په مخكنئ مسئله كي مهايات په يو كور كي وو.چه د هغې بيان كړې شوې دې.اوكه مهايات په دوو كورونو كي وی.په دې طريقه چې يو كور زيد ته ملاو شو.چه هغه دا په كرايه باندې چلوی.او دوهم كور [illegible] ته ملاو شو.چه هغه نې په كرايه باندې چلوی.نو په ظاهرالرواية كي په دې تير شوی دليل سره دا هم



جائز دی.په مخكنی صورت او دې كي توپير دا دې.چه په رومبی صورت كي كه د يو كس په وار كي كرايه زياتوی.نو په دې كي به دواړه شريك وی.او په دوهم صورت كي كه يو اړخ ته كرايه زياتوی.نو په زياتوالی كي به شركت نه وی.او په دې دواړو كي د توپير وجه دا ده.چه په دوهم صورت كي د جلا والی او ځانله كيدو معنی راجح ده.ځكه چې د منافعو حاصلولو زمانه يوه ده.او په رومبی صورت كي منافع وصولول يو بل پسې دی.نو دا به پور شمارلې شی.او هر يو به دده په وار كي شمارلې كيږی.چه دې د خپل انډيوالان وكيل دې.او هركله چې وكيل جوړ شو.نو د انډيوالان برخه واپس كول ضروری شو.

**په دوو غلامانو كښې كرايه چلولو باندې د نمبروارئ حكم**

وَكَذَايَجُوزُاو هم دغه ډول نمبرواری جائز ده فِي الْعَبْدَيْنِ عِنْدَهُمَااعْتِبَارًابِالتَّهَايُؤِفِي الْمَنَافِعِ، په دوو غلامانو كي د صاحبينو رحمهما الله په نيز منافعو كي نمبروارئ باندې قياس كاوه سره، وَلَايَجُوزُعِنْدَهُاو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز نه ده. لِأَنَّ التَّفَاوُتَ فِي أَعْيَانِ الرَّقِيقِ أَكْثَرُمِنْهُ مِنْ حَيْثُ الزَّمَانِ فِي الْعَبْدِالْوَاحِدِځكه چې تفاوت په اعيان غلامانو كي زيات دې.ددې تفاوت نه د زمان په حيثيت سره په يو غلام كي ، فَأَوْلَى أَنْ يَمْتَنِعَ الْجَوَازُ،وَالتَّهَايُؤُفِي الْخِدْمَةِ جُوِّزَضَرُورَةًنو دا خبره به په درجه اولی وی.چه جواز ممتنع شی.او په خدمت كي نمبرواری د اړتيا په وجه جائز گرځولې شوې دې. ،وَلَاضَرُورَةَفِي الْغَلَّةِلِإِمْكَانِ قِسْمَتِهَالِكَوْنِهَاعَيْنًااو په كرايه باندې ور كاوه كي هيڅ اړتيا نشته.د آمدنئ د ويش ممكن كيدو په وجه، د آمدنئ د عين كيدو په وجه، وَلِأَنَّ الظَّاهِرَهُوَالتَّسَامُحُ فِي الْخِدْمَةِاو ځكه چې ښكاره دا بې پرواهی ده په خدمت كي ، ،وَالِاسْتِقْصَاءُفِي الِاسْتِغْلَالِاو شومتيا ده په كرايه باندې ور كاوه كي فَلَايَتَقَايَسَانِ، نو دا به په يو بل باندې نشی قياس كولې.

**حل اللغة:** ① التسامح: بې پرواهی ② الاستقصاء: شومتيا ،بخل

**تشريح:-** دوې (دوه) غلامان دی.چه دواړه شريكان يو يو د آمدنئ لپاره واخلی.نو دا طريقه صرف د صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز ده.چه دوی كرايه په منافعو كي نمبروارئ باندې قياس كړې دی.او د امام صاحب رحمه الله په نيز دا مهايات جائز نه دې.ځكه چې يو غلام كي نمبرواری وی.بلا ناغه په آمدنئ كي ، نوهم دا طريقه جائز نه ده.ځكه كيداې شی.چه په يوه مياشت كي هغه دومره اوگټی.چه په دويمه مياشت كي هغه دومره گټه اونكړی.نو ددې تفاوت په وجه هركله يو غلام كي مهايات جائز نه دې.نو په دوو غلامانو كي به په درجه اولی جائز نه وی.ځكه چې دلته تفاوت نور هم زيات دې.ځكه چې دلته اعيان جلا جلا دی.چه په دې كي ښكاره توپير كيدل پكار دی.مرغينانی رحمه الله هم دا مفهوم په قوله لأن التفاوت فى أعيان الرقيق.....إلخ سره بيانوی.

ⓐ كه څوك دا پوښتنه اوكړی چې په منافعو كي وار واری په يو غلام او دوو غلامانو كي جائز گرځولې ده؟ددې څه وجه ده نو موږ وايو چې هلته اړتيا دې.او په آمدنئ كي هيڅ اړتيا نشته.ځكه چې په منافعو نه دې بلكه په يو عين باندې دې.چه دا پخپله تقسيميدې شی.چه هغوی دواړه په مشترك طريقه دا په كرايه باندې وركړی.او كومه كرايه چې اوشی.هغه ويش كړی.او په خدمت كي تفاوت سره سړې د بې پرواهئ نه كار اخلی.خو په آمدنئ كي معامله ددې په په عكس ده.چه دلته د تنگئ او شومتيا نه كار اخستلې شی.په دې وجه د خدمت په صورت باندې كرايه نشی قياس كيدې.

**په دوو څاروو كښې كرايه چلولو باندې د نمبروارئ حكم**

وَلَايَجُوزُفِي الدَّابَّتَيْنِ عِنْدَهُاو ( په آمدنئ كي نمبرواری) د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دوو څاروو كي جائز نه دې. ⑩ا په خلاف د صاحبينو رحمهما الله، خِلَافًا لَهُمَاوَالْوَجْهُ مَابَيَّنَّاهُ فِي الرُّكُوبِاو وجه هم دا ده.كومه چې موږ په ( مسئله د) سوارلئ كي بيان كړې ده.

**تشريح:-** دوې (دوه) اسونه د زيد او عمرو په مينځ كي مشترك دی.چه آمدنئ لپاره مهايات غواړی.نو د

صاحبینو ﷺ په نیز خو جائز دي.خو د امام صاحب رحمه الله په نیز جائز نه دي.او د سوارلئ په مسئله کې چې کوم دلیل بیان کړې شوي دي.هم هغه دلیل دلته کار کولې شي.

## د ونو او چیلو په منافعوکښې د نمبرواریٔ حکم

وَلَوْكَانَ نَخْلٌ أَوْشَجَرٌ أَوْغَنَمٌ بَيْنَ اثْنَيْنِ اوکه د کجورو ونې یا د بل څه ونې وي.یا وزه وي.د دوو سړو په مینځ کې (مشترک وي). فَتَهَايَاعَلَى أَنْ يَأْخُذَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا طَائِفَةً يَسْتَثْمِرُهَا نو هغوی نمبرواري اوکړله، په دې طریقه چې واخلي په دې دواړو کې هر یو، یوه برخه چې په دې سره هغه میوې حاصلې کړي. أَوْيَرْعَاهَا وَيَشْرَبُ أَلْبَانَهَا لَا يَجُوزُ یا دا اوخروی او ددې شیدې اوسکی.نو دا جائز نه ده. لِأَنَّ الْمُهَايَأَةَ فِي الْمَنَافِعِ ضَرُورَةٌ أَنَّهَا لَا تَبْقَى ځکه چې منافعو کې مهایات په دې ارتیا سره ده.چه منافع پاته نه پاتې کیږي. فَيَتَعَذَّرُ قِسْمَتُهَا نو ددې ویش متعذر دي وَهَذِهِ أَعْيَانٌ بَاقِيَةٌ او دا (میوې او شیدې) پاته اعیان دی، تَرِدُ عَلَيْهَا الْقِسْمَةُ عِنْدَ حُصُولِهَا ..چه په دې ددې د حصول په وخت ویش واردیږي.

حل اللغة: ① نخل: دقجورې ونه ② غنم: ګډې ③ البان جمع د لبن،شیدې شودۍ ④ القسمة: ویش

تشریح:- په منافعو کې نمبرواری د ارتیا په وجه ده.چه دا د اعراض کیدو په وجه پاته نه پاتې کیږي.نو ددې ویش متعذر دی.او چرته چې آمدنی د اعیانو ځنې وی.نو په دې محل کې ویش ممکن دي.نو دلته هیڅ عذر نشته.نو دلته به په منافعو کې د نمبرواریٔ صورت جائز نه وی.هرکله چې دا اصول په ذهن کې کیناستل.نو اوس مسئله واوری.

① صورت دمسئلې دا دې چې د زید او عمرو په مینځ کې یو څو ونې او وزه مشترک دی.هغوی دا فیصله اوکړله.چه څه وزه به زید واخلي.او دا دې اوخروی.او ددې شیدې دې اخلي.او څه وزه دې عمر اخلي.او هم دغه ډول په ونو کې ، نو وې فرمائیل چې دا صورت جائز نه دې.ځکه چې دلته د وزه نه شیدې او د ونو نه میوې حاصلیږي.چه دا عرض نه دی.بلکه عین او جوهر دي.چه په دې کې بقاء ده.نو ددې اعیانو ویش کیداې شي.نو بیا به منافعو کې نمبرواری جائز نه وی.

## د مذکوره مسئلې صحیح کولو لپاره حیله

وَالْحِيلَةُ أَنْ يَبِيعَ حِصَّتَهُ مِنَ الْآخَرِ او حیله دا ده.چه خپله برخه د دوهم په لاس وپلوري. ثُمَّ يَشْتَرِي كُلَّهَا بَعْدَ مُضِيِّ نَوْبَتِهِ بیا دا تولة د خپل وار تیریدو نه روسته واخلي. أَوْيَنْتَفِعُ بِاللَّبَنِ بِمِقْدَارٍ مَعْلُومٍ یا د پیو نه په معلومه اندازه نفع حاصلوی. اسْتِقْرَاضًا لِنَصِيبِ صَاحِبِهِ د خپل اندیوالان برخه د پور اخستلو په طریقه، إِذْ قَرْضُ الْمُشَاعِ جَائِزٌ ځکه چې د مشاع (غیر مقسوم) پور جائز دي.والله اعلم بالصواب

حل اللغة: ① استقراض: پور طلبول ② المشاع: خورور

تشریح:- په ونو او چیلو کې نمبرواری جائز نه ده.خو که څوک دا طریقه اختیارول غواړي.نو هغوی لپاره یوه حیله ده.چه د هغې دوې (دوه) طریقې دی ① زید له پکار دی.چه د عمرو په وار کې خپله برخه هم د عمرو په لاس وپلوری.اوس به دا تولة د هغه ملک وی.او نفع اخستل به جائز وی.بیا کله چې دده د وار ختمیدو زمانه راشی.نو هغه دې تولې ونې او وزه د زید په لاس خرڅې کړی.اوس دې هغه ددې نه نفع اخلي.

② زید تولې وزه خپل خان سره اوساتی.او د عمرو د برخې (حصې) شیدې پور واخلي.بیا کله چې د عمرو وار راشی.نو هغه هم داسې اوکړي.نو دلته داسې شیدې پور اخستې شوی دی.چه دا مشاع دی.خو د مشاع پور جائز دي.نو دا حیله به صحیح وی.

① تنبیه: د نمبرواریٔ محل منافع دی.اعیان نه دی.او د نمبرواریٔ صفت دا دې.چه دا عقد غیر لازم دې ..کمامر..«بدائع ص:۳۲ ج۷»

تنبیه: دوې (دوه) وینځې د زید او عمرو په مینځ کې مشترک دی.یوه زید واخستله.او دویمه عمرو خپلو



بچو ته د پیو ور کاوه لپاره واخستله.نو دا جائز دی.ځکه چې د بنیادم شیدې قیمتی نه دی.نو دا منافعو په درجه کې دی.«مجمع الانهر ص:۴۷۹ ج۲»

# کتاب المزارعة

ژباړه:- (دا) کتاب د (زمکې په) کروندې (د ور کاوه د احکامو په بیان کې) دې.

تشریح:- په کتاب القسمت او کتاب المزارعت کې مناسبت ښکاره دې.ځکه چې دې کې هم د زمکې پیدا وار تقسیمولې شی.مزارعت د زرع نه اخستې شوې دې.ددې معنی ده.«القاء الحبّ ونحوه فی الأرض» او مفاعلت کله کله صرف د یوکار لپاره هم استعمالیږی.«مداواة، معالجة» .. فلا إشکال فیه..

## د مزارعت لغوی او شرعی معنی

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائیلی دی الْمُزَارَعَةُ بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ بَاطِلَةٌ چه په دریمه او څلورمه برخه باندې مزارعت (مځکه په کرونده باندې ورکول) باطل دې. اعْلَمْ أَنَّ الْمُزَارَعَةَ لُغَةً: مُفَاعَلَةٌ مِنَ الزَّرْعِ پوهه شه چې مزارعت په اعتبار د لغت د ،، زرع،، نه د مفاعلت (مصدر) دې. وَفِي الشَّرِيعَةِ: هِيَ عَقْدٌ عَلَى الزَّرْعِ بِبَعْضِ الْخَارِجِ او په شریعت کې مزارعت، د پیدا وار په بعضې برخه باندې د زمینداریٔ کاوه عقد کول دی...وَهِيَ فَاسِدَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز فاسد دی. وَقَالَا: هِيَ جَائِزَةٌ (۱) او صاحبین ﷺ فرمائی.چه جائز دی.

تشریح:- امام ابوحنیفه رحمه الله مزارعت (مځکه په کرونده باندې ورکول) فاسد ګرځوی.د دریمې او څلورمې برخې (حصې) قید لګول د عام رواج په وجه دی.

مَارُوِيَ أَنَّ د هغه دلیل په وجه کوم چې نقل دې. {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَامَلَ أَهْلَ خَيْبَرَ چې نبی ﷺ د خیبر خلګو سره معامله اوفرمائیله. عَلَى نِصْفِ مَا يَخْرُجُ مِنْ ثَمَرٍ أَوْزَرْعٍ} (۲) د هغه مقدار په نیمه باندې کومه چې د میوو یا فصل نه پیدا شي.

تشریح:- او د صاحبینو ﷺ په نیز جائز دی. رومبې دلیل کې دوی د نبی کریم ﷺ د فعل نه استدلال کړې دې.چه کله نبی کریم ﷺ خیبر فتح کړو.نو د هغه ځائې یهود ئې د هغوی په مځکه پاته اوساتل.او دا فیصله ئې اوفرمائیله.چه کوم پیدا وار اوشی.د هغې نیم مسلمانانو ته ورکوی.که مزارعت (مځکه په کرونده باندې ورکول) جائز نه وې.نو نبی کریم ﷺ به داسې ولې اختیارول.

تنبیه: امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي.چه په مزارعت کې د زمکې د پیداوار بعضې برخه باندې زمیندار اجیر مقررول دی.او دا نقلاً او عقلاً ممنوع دی.(دلیل نقلی دا دې (چه) په حدیث کې ،، قفیز الطحان ،، نه منع فرمائیلې شوې ده.او مزارعت هم ددې په معنی کې دې.(دلیل عقلی دا دې (چه) په دې کې د اجارې بدل مجهول دې.او د نبی کریم ﷺ عمل د خیبر د خلګو سره جزیه باندې محمول دې.په مزارعت باندې نه دې.خو د امام صاحب رحمه الله قول باندې عمل نه دې شوې.او د امت په دې باندې عمل جاری دې.(چې مځکه په کرونده باندې ورکوی)او هم په دې وجه د صاحبینو ﷺ په قول باندې فتوی ده.،، کما سیأتی ،،

## دصاحبینو دوهم دلیل

(۱) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين. ﷺ كذا فى الكفاية (۳۸۶/۸) وخانية (۲۲۲/۱٤) والدالمحتار (۱۹۳/۱۵) نقلاً عن القول الراجح (۲۸۵/۱۲)_

(۲) من حديث إبن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاري فى الحرث باب ۸ ومسلم فى المساقاة رقم ۱ وأبوداود فى البيوع باب ۳٤ والترمذي فى الأحكام باب ٤۱ وابن ماجه فى الرهون باب ۱٤ والدارمي فى البيوع باب ۷۱ وأحمد فى مسند (۱۷/۲)_

وَلِأَنَّهُ عَقْدُ شَرِكَةٍ بَيْنَ الْمَالِ وَالْعَمَلِ او خكه چې دا (مزارعت) د مال ا و كار په مينځ كې د شركت عقد دې. فَيَجُوزُ اعْتِبَارًا بِالْمُضَارَبَةِ وَالْجَامِعُ دَفْعُ الْحَاجَةِ نو دا عقد به جائز وى. په مضاربت باندې قياس كاوه سره. او جامع حاجت لرې كول دى. فَإِنَّ ذَا الْمَالِ قَدْ لَا يَهْتَدِي إِلَى الْعَمَلِ خكه چې مال والا كله كله د كار ارخ ته لار نه بيا مومى. ،وَالْقَوِيُّ عَلَيْهِ لَا يَجِدُ الْمَالَ او په كار باندې د قادر كيدو مال نه بيا مومى. ،فَمَسَّتِ الْحَاجَةُ نو حاجت راپيښ شو إِلَى انْعِقَادِ هَذَا الْعَقْدِ بَيْنَهُمَا. ددې دوارو په مينځ كې ددې عقد منعقد كيدو ارخ ته.

حل اللغة: ① الانعقاد: منعقد كول، مقرر كول ② مست: پيښ شو ③ العقد: معاهده، معامله، بيع

تشريح:- دا د صاحبينو رحمهما الله دوهم دليل دې. چه لكه څنګه مضاربت جائز دې. مزارعت هم جائز وى. خكه چې مضاربت كې د يوكس مال وى. او د بل كس كار وى. او هم دغه ډول مزارعت كې هم كيږى. او دا په مضاربت باندې د قياس كاوه وجه دا ده. چه خلګو ته ددې عقدونو حاجت دې. چه دا په دوى دوارو كې مشترك دى. نو قياس به صحيح وى. او دليل دحاجت دا دې. چه ډير وخته سرې سره مال وى. خو هغه ته د كار كولو چم ورخى. او دوهم كس له د كار كولو چم ورخى. خو هغه سره مال نشته. نو كه دواړه خپل مينځ كې يو ځانې نكړې شى. نو د يوكس به مال خالى پروت وى. او د بل كس هنر به بې كاره پاتې شى. نو اړتيا دې. چه عقد د مزارعت جائز اوګرځولې شى.

## ديو سوال جواب

بِخِلَافِ دَفْعِ الْغَنَمِ وَالدَّجَاجِ وَدُودِ الْقَزِّ مُعَامَلَةً بِنِصْفِ الزَّوَائِدِ په خلاف د وزه او د چرګانو، او د ريښمو د چينجو وركولو، په زياتى نصف سره معامله كاوه په وخت، لِأَنَّهُ لَا أَثَرَ هُنَاكَ لِلْعَمَلِ فِي تَحْصِيلِهَا خكه چې دلته د زياتو په حاصلولو كې د عمل هيڅ اثر نشته. فَلَمْ تَتَحَقَّقْ شَرِكَةٌ نو دا شركت به نه ثابتيږى.

حل اللغة: ① الغنم: ګډې ② الدجاج: چرګه ③ دود: چينجې ④ القز: ريښم

تشريح:- دا عبارت د يو تقديرى اعتراض ځواب دې هغه دا چې كه يوكس سره وزه ده. او هغه وزه بل كس ته وركړى. چه دا څره وه. او بچې او شيدې به د دواړو په مينځ كې مشترك وى. دغه ډول چرګې دى. چه دا بل كس وى. او دا بل كس ته وركړى. چه ددې ساتنه كوه. او هګۍ او بچى به د دواړو په مينځ كې مشترك وى. يا د ريښمو چينجى وى. نو دې ته هم جائز وئيل پكار دى. چه د يوكس مال دې. او د بل كس كار دې. او كوم ريښم چې تيار شى. هغه به په دواړو كې مشترك وايى؟ حالانكه دې ته تاسو جائز نه وايى؟

نوعلامه مرغيناني رحمه الله ځواب وركوى چې دا اعتراض صحيح نه دې. خكه چې شريعت كې د كار كونكى د كار اثر په زياتى باندې ښكاره كيدل پكار دى. او دلته په پيوو، بچى، هګۍ، او ريښمو كې عمل كونكى هيڅ اونكړل. بلكه دا به د ذكر شوو خاروو فعل شمارلې شى. خكه چې هركله مينځ كې د اختيار مند فاعل فعل حائل شو. نوعمل كونكى ارخ ته اضافت نشى كيدې. په دې وجه به دا د عقد شركت لاندې نه داخليږى.

## دامام ابوحنيفه دليل

وَلَهُ مَا رُوِيَ {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنِ الْمُخَابَرَةِ[1] وَهِيَ الْمُزَارَعَةُ} او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل هغه دې. كوم چې نقل دې. چه نبى ﷺ د مخابره نه منع اوفرمائيله. او دا مزارعت دې. وَلِأَنَّهُ اسْتِئْجَارٌ او خكه چې دا اجير ساتل دى بِبَعْضِ مَا يَخْرُجُ مِنْ عَمَلِهِ فَيَكُونُ فِي مَعْنَى قَفِيزِ الطَّحَّانِ. د هغې پيداوار په بعضې سره، كوم چې دده د عمل نه پيدا شى. نو دا به د قفيزطحان په معنى كې شى. وَلِأَنَّ الْأَجْرَ مَجْهُولٌ أَوْ مَعْدُومٌ او خكه چې اجرت مجهول يا غيرموجود دې، وَكُلُّ ذَلِكَ مُفْسِدٌ. او دا واړه مفسد دى.

1) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه مسلم فى البيوع رقم ۸۳)_



حل اللغة: ① المخابرة: مزارعت ② قفير: پيمانه

تشريح:- دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليلونه دى. اول دليل دا دې چې په حديث كې مزارعت نه منع كړې شوې ده. ﴿نهى النبى ﷺ عن المخابرة﴾ او مخابره او محاقله مزارعت ته وئيلې شى.

شارح د هدايه مولانا محمد يوسف تالونى مدظله العالى فرمائى. دلته د رافع بن خديج رضي الله عنه او د دوو سړو په جګړه باندې غور اونه فرمائيلو. ددوى په ځواب كې نبى كريم ﷺ د مزارعت نه منع فرمائيلې وه. ددې تفصيل د عروه ابن زبير رضي الله عنه په حديث كې دې. په ﴿نصب الرايه ص: ۱۸۰ ج۴﴾ باندې ددې حديث ډير ځوابونه وركړې شوى دى. ① دا د ،، قفيز طحان،، په درجه كې دې. ددې تفصيل دا دې. چه د جرندې والا غنم اوړه كړى. او د غلې والا د اوړه كاوه اجرت هم ددې اوړو نه وركړى. مثلاً لسمه حصه، نو دا جائز نه ده. خكه اصول دا دې. چه اجير كوم كار اوكړى. د هغې مزدورى د هغې نه مقرر نكړې شى. او په مزارعت كې هم دا صورت دې،، قلت ،، د قفيز طحان عدم جواز منصوص عليه دې. او مقيس منصوص عليه نه دې. او د امت په دې باندې عمل جارى دې. او په غير منصوص عليه كې د امت تعامل د جواز دليل دې. ② كه پيداوار وى. نو اجرت مجهول دې. خكه معلومه نه ده. چه څومره پيداوار كيږى. اوكه پيداوار نه وى. نو اجرمت معدوم دې. او د اجرت جهالت يا د اجرت نه كيدل د اجارې مفسد دى.،، قلت ،، دا جهالت په وغيره په مضاربت كې موجود دې. بيا خو دې ته هم ناجائز وئيل پكار دى. او دا په ابتداء كې شركت دې. چه په دې كې مذكوره جهالت وغيره مفسد نه دې.

وَمُعَامَلَةُ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَهْلَ خَيْبَرَ[1] كَانَ خَرَاجَ مُقَاسَمَةٍ او د نبى ﷺ معامله د خيبر خلګو سره هغه د خراج تقسيمول وو بِطَرِيقِ الْمَنِّ وَالصُّلْحِ وَهُوَ جَائِزٌ د احسان او مصالحت په طريقه باندې، وهو جائز. او دا جائز دى.

تشريح:- په دې عبارت كې چې صاحبينو رحمهما الله د خيبر د خلګو د واقعې نه كوم استدلال كړې وو. د هغې ځواب وركوى. چه دا مزارعت نه وو. بلكه خراج تقسيمول وو. او امام ته اختيار دې. چه په خراج موظف او مقاسمت كوم اخستل غواړى. اختيار كړى. او دا نبى كريم ﷺ په دوى باندې احسان اوفرمائيلو. ګنى تول مځكه ئې هم اخستلې شوه. او وخت نه مقررول ددې ښكاره دليل دې. چه دا خراج وو. مزارعت نه وو.

علامه محمد يوسف تالوئى فرمايي چې په خيبر كې د مجاهدينو حاصلول جارى كيدل ددې خبرې دليل دې. چه دا خراج نه وو. بلكه مزارعت وو. او په صحيحينو كې د ابن عمر رضي الله عنهما په روايت سره په دې كې د برخې (حصې) جارى كاوه تصريح ده.

## په مزارعت كښې د امام ابوحنيفه رحمه الله نقطه نظر

وَإِذَا فَسَدَتْ عِنْدَهُ او مزارعت هركله چې دده (امام ابوحنيفه رحمه الله) په نيز فاسد دې. فَإِنْ سَقَى الْأَرْضَ وَكَرَبَهَا وَلَمْ يَخْرُجْ شَيْءٌ مِنْهُ نو كه عامل مځكه اوبه كړله. او په دې كې ئې ګوډ اوكړو. او هيڅ پيداوار اونشو. فَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ نو دده لپاره ده د مثل اجرت دې. لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى إِجَارَةٍ فَاسِدَةٍ خكه چې دا د اجاره فاسده په معنى كې ده. هَذَا إِذَا كَانَ الْبَذْرُ مِنْ قِبَلِ صَاحِبِ الْأَرْضِ او دا هغه وخت دې. كله چې تخم د زمكې د مالك د اړخه وى. وَإِذَا كَانَ الْبَذْرُ مِنْ قِبَلِهِ فَعَلَيْهِ أَجْرُ مِثْلِ الْأَرْضِ او كه تخم د كار كونكى د اړخه وى. نو په ده به د زمكې د مثل اجرت وى. وَالْخَارِجُ فِي الْوَجْهَيْنِ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ او دا پيداوار په دواړو صورتونو كې د تخم والا دې لِأَنَّهُ نَمَاءُ مِلْكِهِ خكه چې دا دده دملك غتيدل دى، وَلِلْآخَرِ الْأَجْرُ. او د دوهم لپاره اجرت دې كما فصلنا. لكه څنګه چې موږ تفصيل بيان كړو.

2) تقدم تخريجه فى الحديث السابق)_

**حل اللغة** ① بذر: تخم

**تشريح:-** د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نيز مزارعت (مځکه په کرونده باندې ورکول) خو فاسدېږي. که دوو سړو عقد مزارعت اوکړو. او زميندار محنت اوکړو. او پيداوار هيڅ اونشو. نو ده ته به اجرت مثل ملاوېږي. ځکه چې دا اجاره فاسده ده. او په اجاره فاسده کې اجير ته اجرت مثل ملاوېږي. نو دلته به هم ملاوېږي. يعنی په دې صورت کې کله چې تخم د زمکې مالك اچولې وي. او که تخم د زميندار وي. نو پيداوار به د زميندار وي. او د زمکې مالك ته به د زمکې کرايه ورکولې شي. لنډيز د کلام داچه تخم د کوم کس وي. پيداوار به هم دهغه وي.

## مفتی به قول

الآنَّ الفَتوٰي عَلٰي قَولِهِمَا خو تحقيق داچه فتوی د صاحبينو رحمهما الله په قول ده. لِحَاجَةِ النَّاسِ اِلَيهَا وَلِظُهُورِ تَعَامُلِ الأُمَّةِ بِهَا مزارعت ارخ ته د خلګو د حاجت په وجه، او په دې د امت د تعامل په وجه، وَالقِيَاسُ يُترَكُ بِالتَّعَامُلِ او د تعامل په وجه قياس پرېښودې شی كَمَا فِي الاِستِصنَاعِ. لکه څنګه چې استصناع کې (پرېښودې شی).

**تشريح:-** ددې تفصيل ښکاره دې. د صاحبينو رحمهما الله په نيز د حديث نه کيدو په وجه د مقابل دليل په قياس سره تعبير کړې شوې دې. استصناع مثلاً يو کاريګر اووئيل. چه زما لپاره پيزار جوړ کړه. په دومره روپو باندې. نو دا جائز ده. حالانکه په دې کې د معدوم بيع ده. چه دا جائز نه ده. خوپه دې باندې د امت عادت جاری دې. چه ددې په وجه قياس پرېښودې شوې دې. دغه ډول به په مزارعت کې هم وي.

## د مزارعت د صحت په اتو شرطونو کښې ړومبې شرط مفتي به قول

ثُمَّ المُزَارَعَةُ لِصِحَّتِهَا بيا مزارعت، ددې د صحت لپاره د هغه کس په قول باندې عَلٰي قَولِ مَن يُجِيزُهَا شُرُوطٌ. څوك چې دا جائز ګڼي. يو څو شرطونه دی. اَحَدُهَا كَونُ الاَرضِ صَالِحَةً لِلزِّرَاعَةِ د هغې نه يو مځکه د کروندې قابل کيدل دی. لِاَنَّ المَقصُودَ لَا يَحصُلُ بِدُونِهِ ځکه چې مقصود به ددې نه بغير نه حاصلېږي.

**تشريح:-** د مزارعت د صحت لپاره اته شرطونه دی. يعنی د هغه خلګو په نيز څوك چې مزارعت ته جائز وائی. د هغوی په نيز هم اته شرطونه دی. ① ړومبې شرط دا دې. چه مځکه د کروندې قابله وي. نو شړلنه مځکه او په کومه مځکه کې چې اوبه ولاړې وي. او بهيږي. (يعنی جبه مځکه) هغې کي هم مزارعت صحيح نه دې.

فائده* امام صاحب رحمة الله عليه د مزارعت نه په سختئ سره منع نه ده فرمائيلې. او په قول د امام محمد رحمة الله عليه امام صاحب رحمة الله عليه مزارعت کې متفرع جزئيات بيان کړی دی. او په شرنبلاليه کې د لنډيز نه نقل دی. چه دا مسئلې امام صاحب رحمة الله عليه متفرع کړی دی. د هغه سړی د قول مطابق څوك چې دا جائز ګرځوی. ځکه امام صاحب ته علم وو. چه خلګ به ددوی په دې قول باندې عمل نه کوی. ﴿شامی ص: ۱۷۴ ج ۵﴾

## دوهم او دريم شرط

وَالثَّانِي او دوهم شرط دا دې اَن يَكُونَ رَبُّ الاَرضِ وَالمُزَارِعُ مِن اَهلِ العَقدِ وَهُوَ لَا يَختَصُّ بِهِ. چه د زمکې مالك او زميندار د عقد د اهل ځنې وي. او دا (د عقد د اهل ځنې کيدل) هم دې عقد سره خاص نه دی. لِاَنَّهُ عَقدٌ مَا لَا يَصِحُّ اِلَّا مِنَ الاَهلِ ځکه چې هيڅ عقد صحيح نه دې. خو د ولايت د اهل نه، وَالثَّالِثُ بَيَانُ المُدَّةِ او دريم شرط موده بيانول دی. لِاَنَّهُ عَقدٌ عَلٰي مَنَافِعِ الاَرضِ ځکه چې دا عقد دې د زمکې په منافعو باندې اَو مَنَافِعِ العَامِلِ وَالمُدَّةُ هِيَ المِعيَارُ لَهَا او موده د منافعو لپاره معيار دی لِيُعلَمَ بِهَا. چه منافع اوپيژندلې شي.

**تشريح:-** دا د دوهم او دريم شرط بيان دې. ② چې عاقدين د عقد اهل کيدل پکار دی. مجنون، پاګل، ماشوم او کم عقل به ددې اهل نه وي. او دا صرف ددې (مزارعت) خصوصيت نه دې. بلکه د هر عقد هم دا حال دې. چه په دې کې عاقدين د اهل ولايت ځنې کيدل پکار دی. ③ او دا شرط هم دې. چه د مودې تعين اوکړې



شی. چه عقد د مزارعت ترکوم وخته پورې دې. چه ددې دليل په متن کې ذکر دې.

فائده* غلام او صبی کله چې ماذون وي. نو دوی عقد مزارعت کولې شي. زمونږ په علاقو کې کروندې لپاره ورکاوه کې موده نه بيانوی. ځکه چې دا پخپله متعين ده. او په داسې صورت کې موده معين کول ضروري نه ده.

## څلورم شرط

وَالرَّابِعُ او څلورم شرط د هغه کس بيان دې بَيَانُ مَن عَلَيهِ البَذرُ قَطعًا لِلمُنَازَعَةِ وَاِعلَامًا لِلمَعقُودِ عَلَيهِ. چه تخم به په چاوی. دجګړې ختمولودپاره، اودمعقود عليه خودلو دپاره، وَهُوَ مَنَافِعُ الاَرضِ او دا (معقود عليه) د زمکې منافع دی اَو مَنَافِعُ العَامِلِ. يا د زميندار (منافع دی).

**حل اللغة*** ① البذر: تخم ② اعلام: بيانول، اعلان کول ③ منافع: جمع د منفعة: فائده

**تشريح:-** ④ څلورم شرط دا دې. چه تخم به څوك اچوی. چه ددې تعين اوشی. چه ختمه شی. او دا معلومه شی. چه معقود عليه څه شئ دې. د زمکې مناف‍ - دی. او که د عمل، يعنی که تخم د کارکونکی وي. نو مطلب به دا وي. چه هغه به د زمکې منافع حاصلوی. او که تخم د زمکې د مالك وي. نو مطلب به دا وي. چه هغه د کارکونکی منافع حاصلوی. بهرحال د معقود عليه تعين لپاره د تخم والا صراحت کول پکار دی.

## پنځم شرط

وَالخَامِسُ او پنځم شرط د هغه سړی د برخې (حصې) بيان دې بَيَانُ نَصِيبِ مَن لَا بَذرَ مِن قِبَلِهِ. د چا د اړخه چې تخم نشته. لِاَنَّهُ يَستَحِقُّهُ عِوَضًا بِالشَّرطِ ځکه چې هغه مستحق وي. ددې دعوض په طور د شرط په وجه. فَلَا بُدَّ اَن يَكُونَ مَعلُومًا نو ضروری ده. چه دا معلوم وي وَمَا لَا يُعلَمُ او کوم شئ چې معلوم نه وي، لَا يُستَحَقُّ شَرطًا بِالعَقدِ. نو د هغې استحقاق به د عقد په وجه شرط نه جوړېږی.

**تشريح:-** ⑤ د چا د اړخه چې تخم نشته. د هغه برخه متعين کول پکار دی. ځکه چې هغه د خپلې برخې (حصې) مستحق د شرط په وجه جوړېږی. نو دهغه برخه متعين کول ضروری دی. ګنی که برخه معلومه نشی. نو بيا به د شرط په وجه استحقاق څنګه ثابتيږی.

فائده* که د تخم والا برخه متعين شی. او د دوهم د برخې (حصې) نه سکوت اوشی. نو بيا هم جائز ده. ځکه چې دا به پخپله دا واضحه کړی. چه د دوهم برخه دومره ده. نو د صاحب نتائج الافکار اعتراض هيڅ حيثيت نه لری. چه د يو تعين ولې شرط دې.

## شپږم شرط

وَالسَّادِسُ او شپږم شرط دا دې اَن يُخَلِّيَ رَبُّ الاَرضِ بَينَهَا وَبَينَ العَامِلِ. چه د زمکې والا د زمکې او کارکونکی په مينځ کې تخليه اوکړی. (دخل اندازی پرېږدی). حَتّٰى لَو شَرَطَ عَمَلَ رَبِّ الاَرضِ يُفسِدُ العَقدَ. تردې که د زمکې والا د کار شرط اولګولې شو. نو عقد به فاسد وي. ) التَّخلِيَةِ د تخليه د فوت کيدو په وجه،

**تشريح:-** ⑥ شپږم شرط دا دې. چه په مځکه کې د زمکې د مالك هيڅ دخل پاتې نشی. تخم که د مالك وي. او که د زميندار وي. او هرهغه شرط کوم چې د زمکې دخل ختم نکړی. هغه به مفسد د عقد وي. نو که په زمکې والا باندې کار شرط وي. نو د هغه دخل اندازی کول پاته دی. نو عقد به فاسد وي. او که په مځکه کې فصل راختلې وي. او دغه وخت کارکونکی ته اوسپارلې شو. نو دا معامله ده. مزارعت (مځکه په کرونده ورکول) نه دی. او که فصل تيار شو. نو چونکه اوس په دې کې دکار کونکی د کار اړتيا پاتې نشو. نو اوس دې ته معامله وئيل هم مشکل دی. ﴿شامی ص: ۱۷۵ ج ۵﴾

(وَالسَّابِعُ الشَّرِكَةُ) او اووم شرط پيداوار کي شرکت دي (فِي الْخَارِجِ بَعْدَ حُصُولِهِ) .په پيداوار کي د حاصليدو نه پس، لِأَنَّهُ يَنْعَقِدُ شَرِكَةً فِي الِانْتِهَاءِ ځکه چې دا عقد شرکت جوړ شوې او منعقد شوې دې.په انتهاء کي ، فَمَا يَقْطَعُ هَذِهِ الشَّرِكَةَ نو کوم شرط چې دا شرکت ختم کړي كَانَ مُفْسِدًا لِلْعَقْدِ .هغه به مفسد دعقد وی.

تشريح:- اووم شرط پيداوار کي د دواړو شريکيدل دی.نو کوم چې دا شرط ختم کړي.هغه به مفسد د عقد وی. مثلاً پيداوار کي ديوکس لس منه او پاته مشترك وی.نو شرکت ختم شو.ځکه کيداې شی چې پيدوار به هم دغومره وی.يا دومره هم نه وی...وسيأتي تفصيله..

(وَالثَّامِنُ بَيَانُ جِنْسِ الْبَذْرِ) .او اتم شرط د تخم جنس بيانول دی لِيَصِيرَ الْأَجْرُ مَعْلُومًا چې اجرت معلوم شی.

تشريح:- اتم شرط دا دې.چه دا متعين شی.چه په مځکه کي څه اوکرلې شی.ځکه چې پيداوار اجرت دې.او د اجرت جنس معلوميدل شرط دی.او بعض شيان زمکې لپاره مضر وی.نو د زمکې مالك به د کوم شئ په کرلو باندې راضی وی.او په کوم شئ به راضی نه وی.نو د مځکي نه معلوميدل شرط دی.دا اتم شرط ختم شو.

## د صاحبينو رحمهما الله په نيز د مزارعت په څلورو شرطونو کښې ړومبې شرط

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. (وَهِيَ عِنْدَهُمَا عَلَى أَرْبَعَةِ أَوْجُهٍ :) او مزارعت د صاحبينو رحمهما الله په نيز څلورو صورتونو باندې دې. إِنْ كَانَتْ الْأَرْضُ وَالْبَذْرُ لِوَاحِدٍ وَالْبَقَرُ وَالْعَمَلُ لِوَاحِدٍ ( په هغې کي ړومبې صورت) که مځکه او تخم د يوکس وی.او غوئې او کار د بل يوکس وی. جَازَتْ الْمُزَارَعَةُ نو مزارعت جائز دې. لِأَنَّ الْبَقَرَ آلَةُ الْعَمَلِ فَصَارَ ځکه چې غوئې د کار آله ده.نو داسې شوه. كَمَا إذَا اسْتَأْجَرَ خَيَّاطًا لکه چې ده درزی اجير جوړ کړو لِيَخِيطَ بِإِبْرَةِ الْخَيَّاطِ .چه هغه ګنډل اوکړي.د درزی په ستن سره.

حل اللغة* ① البقر:غوا ② خياط: درزی ③ ابراة: ستن

تشريح:- ① په څلورو صورتونو کي دا ړومبې صورت دې.چه په دې کي مځکه او تخم د زيد د اړخه وی.او غوئې او کار د عمرو د اړخه وی.نو دا صورت جائز دې.ځکه دا داسې ده.لکه چې درزی اجير مقرر کړي.چه هغه پخپله ستن سره کپړه اوګنډی.دغه ډول دلته هم ده.ځکه چې لکه څنګه ستن د ګنډلو آله ده.دغه ډول غوئې د مزارعت آله ده.

## دوهم صورت

(وَإِنْ كَانَ الْأَرْضُ لِوَاحِدٍ) وکه مځکه د يوکس وی. وَالْعَمَلُ وَالْبَقَرُ وَالْبَذْرُ لِوَاحِدٍ جَازَتْ) او کار او غوئې او تخم د بل اړخه وی.نو جائز ده. لِأَنَّهُ اسْتِئْجَارُ الْأَرْضِ بِبَعْضٍ مَعْلُومٍ مِنْ الْخَارِجِ ځکه چې دا د پيداوار بعض معلومه برخه په بدله کي مځکه په کرايه باندې اخستل دی. فَيَجُوزُ نو دا جائز ده كَمَا إذَا اسْتَأْجَرَهَا لکه چې مځکه نې په اجاره باندې اخستې وی بِدَرَاهِمَ مَعْلُومَةٍ. د متعين دراهمو په بدله.

تشريح:- ② دا دوهم صورت دې.چه په دې کي مځکه د زيد وی.او پاته واړه شيان د عمرو د اړخه وی.نو دا صورت هم جائز دې.ځکه ددې حاصل به دا وی.چه عمرو د زيد مځکه په کرايه باندې اخلی.او اجرت د پيداوار يوه معين برخه مقررول دی.نو دا خو داسې شوه.لکه چې عمرو د زيد مځکه د معين دراهمو په بدله کرايه باندې واخلی.لکه څنګه چې زموږ په علاقو کي رواج دې.چه دې ته په ټيکه ( اجاره) باندې ورکول وائی.او دا جائز ده.نو دا به هم جائز وی.

## دريم صورت

(وَإِنْ كَانَتْ الْأَرْضُ وَالْبَذْرُ وَالْبَقَرُ لِوَاحِدٍ) وکه مځکه او تخم او غوئې د يوکس وی. وَالْعَمَلُ مِنْ آخَرَ جَازَتْ) او کار د دوهم وی.نو جائز ده. لِأَنَّهُ اسْتَأْجَرَهُ لِلْعَمَلِ بِآلَةِ الْمُسْتَأْجِرِ ځکه چې ده ( د زمکې مالك) کارکونکې اجير نيولې دې.د کار لپاره ، د مستاجر په آلې سره، فَصَارَ كَمَا إذَا اسْتَأْجَرَ خَيَّاطًا لِيَخِيطَ ثَوْبَهُ بِإِبْرَتِهِ نو داسې شوه.لکه چې درزی نې اجير اونيولو.چه دده کپړه هم دده په ستن سره اوګنډی. أَوْ طَيَّانًا لِيُطَيِّنَ بِمَرِّهِ يا نې ليوو کونکې اجير اونيولو.چه هغه دده په ګرمالې سره ليوو اوکړي.



حل اللغة* ① ثوب: کالی ② طين: خاوره ③ مرة: ګرماله

حل اللغة* ① طيان: په خټې سره کور ليوو کونکې يعنی ختمار، مر: ګرماله چې په دې سره ليوو کولې شی.

تشريح:- ③ دا دريم صورت دې.چه په دې کي د عمرو کار دې.او پاته واړه شيان د زيد د اړخه دی.دا صورت هم جائز دې.چه ددې حاصل به دا وی.چه زيد عمرو د کار لپاره اجير نيولې دې.دا داسې ده.لکه چې درزی نې اجير اونيولو.چه د مستاجر په مشين سره، يا دده په ستن سره کپړه اوګنډی.يا نې ختمار اجير اونيولو.چه د خټې ليوو اوکړي.او د ليوو کاوه اوزار به مالك ورکوی.

## څلورم شرط

(وَإِنْ كَانَتْ الْأَرْضُ وَالْبَقَرُ لِوَاحِدٍ) وکه وی مځکه او غوئې د يوکس وَالْبَذْرُ وَالْعَمَلُ لِآخَرَ فَهِيَ بَاطِلَةٌ) او کار او تخم د دوهم کس.نو دا باطل ده. وَهَذَا الَّذِي ذَكَرَهُ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ او دا کوم چې امام قدوری رحمه الله ذکرکړی دی.ظاهرالرواية دې. وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَجُوزُ أَيْضًا او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.چه دا هم جائز دی. لِأَنَّهُ لَوْ شَرَطَ الْبَذْرَ وَالْبَقَرَ عَلَيْهِ يَجُوزُ ځکه که په زمکې والا د تخم او غوئی دواړو شرط اولګولې شی.نو جائز ده. فَكَذَا إذَا شُرِطَ وَحْدَهُ وَصَارَ كَجَانِبِ الْعَامِلِ نو هم دغه ډول ( جائز ده) کله چې يواځې (د غوئی) شرط اولګولې شی.او داسې شوه لکه د عامل په طرف، وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ مَنْفَعَةَ الْبَقَرِ لَيْسَتْ مِنْ جِنْسِ مَنْفَعَةِ الْأَرْضِ د ظاهرالرواية دليل دا دې.چه د غوئی منفعت د زمکې د منفعت جنس نه دې. لِأَنَّ مَنْفَعَةَ الْأَرْضِ قُوَّةٌ فِي طَبْعِهَا يَحْصُلُ بِهَا النَّمَاءُ،ځکه چې د زمکې منفعت، ددې په طبيعت کي يو قوت دې.چه په دې سره غټيدل حاصليږی. وَمَنْفَعَةُ الْبَقَرِ صَلَاحِيَةٌ او د غوئی منفعت يو صلاحيت دې. يُقَامُ بِهَا الْعَمَلُ كُلُّ ذَلِكَ بِخَلْقِ اللَّهِ تَعَالَى .چه په دې سره کار قائمولې شی.دا واړه د الله د زيږيدل په وجه دی. فَلَمْ يَتَجَانَسَا نو دا دواړه منفعتونه به د يو جنس څنې نه وی. فَتَعَذَّرَ أَنْ تُجْعَلَ تَابِعَةً لَهَا، بِخِلَافِ جَانِبِ الْعَامِلِ نو متعذر ده.چه د غوئی منفعت د زمکې د منفعت تابع کړې شی.په خلاف د عامل په طرف، لانه ولِأَنَّهُ تَجَانَسَتْ الْمَنْفَعَتَانِ ځکه چې دواړه منفعتونه د يو جنس دی فَجُعِلَتْ تَابِعَةً لِمَنْفَعَةِ الْعَامِلِ .نو د غوئی منفعت به د کارکونکی د منفعت تابع کولې شی.

حل اللغة*. ① النماء: غټيدل منفعت ② جانب: اړخ

تشريح:- دا څلورم صورت دې.چه دا باطل دې.يعنی د زيد د اړخه مځکه او غوئې وی.او د عمرو د اړخه تخم او کار وی.نو دا صورت باطل دې.هم دا ظاهرالرواية دې.او د امام ابويوسف رحمه الله نه په نوادر کي نقل دی.چه دا صورت هم جائز دې.ددوی دليل دا دې.چه لکه څنګه دا صورت وو.چه دا واړه شيان د زمکې والا د اړخه وی.علاوه د کار نه، او دا جائز دې.نو په دې کي د بعضو شرط يواځې اولګولې شی.نو دا به هم جائز وی.او لکه څنګه چې د غويانو منفعت د کارکونکی د منفعت تابع ګرځولې شی.دغه ډول به د غويانو منفعت د زمکې د منفعت تابع کولې شی.او دا صورت به جائز وی.( دا د ظاهرالرواية دليل دې).

دلته مځکي څلور خبرې په ذهن کي کينوی.① مزارعت په پيل کي عقد اجاره ده.او د انتهاء په اعتبار سره شرکت دې.② کوم شئ چې خلاف قياس وی.هغه د شريعت مورد پورې وی. دوهم په دې باندې نشی قياس کيدې.③ د پيداوار د معلومې برخې (حصې) په بدله کي مځکه کرايه باندې اخستل جائز دی.د غويانو په اجاره باندې اخستل جائز نه دی.④ په دوو مختلف جنس والا څيزونو کي يو د بل تابع نشی جوړيدې.د

جنس د اختلاف په صورت کې تابع کول جائز دی.

هرکله چې دا خبرې په ذهن کې کښناستې.نو اوس واورئ،چه په مذکوره صورت کې د شرکت انعقاد نه دې شوې.ځکه ① چې د شرکت انعقاد د غوئی او کارکونکی د منفعت په مینځ کې نه کیږی. حالانکه مزارعت په اعتبار د انتهاء شرکت دې.په دې وجه دا صورت فاسد دې.② عامل دلته مځکه او غویان په کرایه باندې اخستی دی.او دواړه په کرایه باندې اخستل مقصود دی.او اجرت د پیداوار بعضې برخه ده.او دا جائز نه ده. چې غویان په کرایه باندې واخستلې شی.او اجرت د پیداوار بعضې برخه وی.په دې وجه به دا صورت جائز نه وی.

که څوك دا سوال اوکړی چې کارکونکی مځکه په کرایه باندې اخستې ده.او غویان د زمکې تابع دی؟نو ځواب دا دې چې غویان د کارکونکی تابع کیدای شی.خو د زمکې تابع نشی کیدې.ځکه چې د تابع کیدو لپاره اتحاد د جنس پکار دې.او په منافعو د زمکې او په منافعو د غوئی کې اختلاف جنس دې.ځکه چې د زمکې یو منفعت اثبات او د دوهم پرې کول او شلول دی.بیا د یو منفعت د ښاروی دمنفعت په وجه دې.او په بله وجه دې.په دې وجه معلومه شوه.چه دا دواړه مختلف جنسونه دی.چه په دې کې تابع کیدل نشی کیدې.او هرکله چې نشی کیدې.نو شرکت په غوئی سره شو.او دا جائز نه ده.

او د قیاس تقاضا خو دا وه.چه مزارعت جائز نه وی.خو موږ د نص په وجه قیاس پریخودو.او په نص مو عمل اوکړو.خو د نص مورد هغه نور صورتونه دی.دا صورت مورد دنص نه دې.په دې وجه به د قاعدی مطابق دا ناجائز ګرځولې شی.ځکه چې نورو صورتونو باندې دا نشی قیاس کیدې.د کارکونکی او غوئی منفعت یوشان دې.ځکه چې غوئې په مځکه باندې د کار کاوه یوه آله ده.

**پنځم صورت**

وَهَاهُنَا وَجْهَانِ آخَرَانِ لَمْ يَذْكُرْهُمَا: أَحَدُهُمَا او دلته دوې (دوه) صورتونه نور هم دی.چه دا امام قدوری رحمه الله نه دی ذکر کړی. أَنْ يَكُونَ الْبَذْرُ لِأَحَدِهِمَا په هغې کې یو دا دې.چه تخم په دوی دواړو کې د یو وی. وَالْبَقَرُ وَالْعَمَلُ لِآخَرَ فَإِنَّهُ لَا يَجُوزُ او مځکه او غوئې او کار د دوهم وی.او دا جائز نه ده. لِأَنَّهُ يَتِمُّ شَرِكَةٌ بَيْنَ الْبَذْرِ وَالْعَمَلِ ځکه چې دا (عقد) پوره کیږی.شرکت جوړیدو سره د تخم او کار کاوه په مینځ کې ، وَلَمْ يَرِدْ بِهِ الشَّرْعُ حالانکه ددې سره شریعت وارد نه دې.

تشریح:- ⑤ دا پنځم صورت دې.چه دا امام قدوری رحمه الله نه دې ذکرکړې.چه تخم د زید وی.او پاتې واړه هرڅه د عمرو وی.نو دا هم باطل ده.ځکه چې (۱) د شرع د مورد خلاف دې... کمامر.. ② دا شرکت به دتخم او عمل وغیره په مینځ کې وی.او دا جائز نه ده.ځکه چې دواړو کې اختلاف د جنس دې.

**شپږم صورت**

وَالثَّانِي أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَ الْبَذْرِ وَالْبَقَرِ او دوهم صورت دا دې.چه د تخم او غوئی په مینځ کې جمع اوکړې شی. وَأَنَّهُ لَا يَجُوزُ أَيْضًا او دا هم جائز نه دې.ځکه چې دا د انفراد په وخت جائز نه دې. لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ عِنْدَ الْإِنْفِرَادِ فَكَذَا عِنْدَ الْإِجْتِمَاعِ نو هم دغه ډول د اجتماع په وخت (به هم جائز نه وی).

حل اللغة: ① الانفراد: ځانله والې ② الاجتماع: جمع کیدل

تشریح:- ⑥ دا شپږم صورت دې.چه په دې کې د زید غویان او تخم دی.او د عمرو د اړخه مځکه اوکار دې.نو دا صورت هم باطل دې.ځکه چې د یو اړخه صرف تخم وی.او پاتې د دوهم اړخه وی.دا صورت جائز نه دې.او د یو اړخه غوئې او د دوهم اړخه پاتې واړه شیان وی.نو دا هم جائز نه دې.نو په دې صورت کې ددې دواړو اجتماع ده.او کوم شئ چې د انفراد په صورت کې مفسد وی.هغه به د اجتماع په صورت کې هم مفسد وی.

**په فاسد صورتونو کښې به پیداوار د چا وی**



وَالْخَارِجُ فِي الْوَجْهَيْنِ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ فِي رِوَايَةٍ او پیداوار په دواړو صورتونو کې د یو روایت مطابق د تخم والا وی. اعْتِبَارًا بِسَائِرِ الْمُزَارَعَاتِ الْفَاسِدَةِ په ټولو فاسدو مزارعتونو باندې قیاس کاوه سره، وَفِي رِوَايَةٍ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ او د یو روایت مطابق د زمکی والا لپاره دې. وَيَصِيرُ مُسْتَقْرِضًا لِلْبَذْرِ قَابِضًا لَهُ او ګرځی به هغه د تخم پور اخستونکې،په داسې حال کې چې هغه به په تخم باندې قبضه کونکې وی. لِاتِّصَالِهِ بِأَرْضِهِ تخم د متصل کیدو په وجه، دې زمکې سره.

حل اللغة: ① مستقرض: پور اخستونکې ② اتصال: متصل کیدل جختیدل ③ سائر: واړه

تشریح:- په کومو صورتونو کې چې مزارعت فاسد دې.هغې کې به پیداوار دچا وی.نو مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.چه په دې کې دوې (دوه) روایتونه دی.① رومبې روایت دا دې.چه د تخم د کوم کس وی.پیداوار به هم د هغه وی.ځکه چې د فاسد مزارعتونو په ټولو صورتونو کې هم دا حکم دې.نو دلته به داسې وی.② او دوهم روایت دا دې.چه پیداوار به د زمکې والا وی.او د زمکې والا د تخم والا نه تخم پور اخستې دې.

که څوك دا اعتراض اوکړی چې د پور لپاره ضروری ده.چه پور اخستونکې په دې باندې قبضه اوکړی.او دلته قبضه نشته؟ نوددې ځواب دا دې چې هرکله چې تخم د زمکې والا زمکې سره متصل شو.نو دا د زمکې والا قبضه شوه.دا دواړه روایتونه صدرالشهید رحمه الله ذکرکړی دی.

علامه محمد یوسف تالوی مدظله فرمایي په شامی، درمختار، بدائع، مجمع الانهر وغیره کې دوهم روایت ملاو نشو.بلکه ټولو کتابونو کې دا حکم بیان شوې دې.چه په فاسد مزارعت کې به پیداوار د تخم والا وی.بیا که تخم والا د زمکې والا وی.نو کارکونکی ته به دده د عمل اجرت ملاویږی.او که (د تخم والا) کارکونکې دې.نو د زمکې والا ته به دده زمکې اجرت ملاویږی.

**د دوو تفریعاتو ذکر**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. (وَلَا تَصِحُّ الْمُزَارَعَةُ إِلَّا عَلَى مُدَّةٍ مَعْلُومَةٍ) او مزارعت صحیح نه دې.خو په معلومه موده باندې، لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې. (وَأَنْ يَكُونَ الْخَارِجُ شَائِعًا بَيْنَهُمَا) تَحْقِيقًا لِمَعْنَى الشَّرِكَةِ او دا چې پیداوار د دواړو په مینځ کې په طریقه د شیوع (او برخه داری) وی.د شرکت معنی ثابتولو دپاره. (فَإِنْ شَرَطَا لِأَحَدِهِمَا قُفْزَانًا مُسَمَّاةً فَهِيَ بَاطِلَةٌ) نوکه دوی دواړو پخپلو کې یوکس لپاره د یو څو مقرر قفیزونو شرط اولګولو.نو مزارعت باطل دې. لِأَنَّ بِهِ تَنْقَطِعُ الشَّرِكَةُ ځکه چې دې شرط سره شرکت منقطع کیږی. لِأَنَّ الْأَرْضَ عَسَاهَا لَا تُخْرِجُ إِلَّا هَذَا الْقَدْرَ، فَصَارَ كَاشْتِرَاطِ دَرَاهِمَ مَعْدُودَةٍ لِأَحَدِهِمَا فِي الْمُضَارَبَةِ فیصل ددې ژباړه پاتې ده

حل اللغة: ① قفزان: د قفیز جمع د اتوهك یوه پیمانه ② عسی: نزدې ده ③ مسماة: نامداره شوې

تشریح:- د مزارعت د جواز اته شرطونه وړاندې ذکر شوی دی.چه دا مرغینانی رحمه الله ذکرکړی دی. اوس به بعضې تفریعات ذکرکوی.چه د هغې نه دلته دوې (دوه) ذکرکوی:① د مودې بیانولو نه بغیر مزارعت صحیح نه دې.چه ددې دلیل او تفصیلی بیان تیر شوې دې.② چونکه مزارعت انتهاء کې شرکت دې.نو کوم شرط چې شرکت ختم کړی.دا شرط به مفسد د مزارعت هم وی.د شرکت د تقاضه دا ده.چه پیداوار په دوی دواړو کې مشترك وی.او دا اشتراك په طریقه د شیوع وی.نو که دا شرط اوکړې شو.چه په دوی کې یوکس ته مثلاً د لسو زنبیلو (کونټلو) ور کاوه نه روسته چې کوم بچ پاتې شی.هغې کې د دواړو اشتراك دې.نو شیوع اونه مونډې شو.او شرکت ختم شو.نو په دې صورت کې به مزارعت فاسد وی.او دا بعینه هم هغه صورت دې.لکه چې مضاربت کې دا شرط کړې شوې وی.چه د نفعې څخه به یو زر د زید وی.او پاتې به په دواړو کې مشترك وی.دا شرط مفسد د مضاربت دې.دغه ډول مذکوره شرط هم مفسد د مزارعت دې.

**هغه شرط مفسد د زراعت دې کوم چې شیوع ختموی**

وَكَذَا إِذَا شَرَطَا أَنْ يَرْفَعَ صَاحِبُ الْبَذْرِ بَذْرَهُ او هم دغه ډول (باطل دي) كله چې دواړو شرط كړي وي. چه تخم والا به خپل تخم اخلي. وَيَكُونَ الْبَاقِي بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ او پاته به ددوی دواړو په مينځ كي نيم په نيمه وي. لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى قَطْعِ الشَّرِكَةِ فِي بَعْضٍ مُعَيَّنٍ (متعدی) څكه چې دا شرط په بعض معين كي شركت ختمولو اړخ ته (متعدی) دی. أَوْ فِي جَمِيعِهِ بِأَنْ لَمْ تُخْرِجْ إِلَّا قَدْرَ الْبَذْرِ فَصَارَ كَمَا إِذَا شَرَطَا رَفْعَ الْخَرَاجِ، وَالْأَرْضُ خَرَاجِيَّةٌ يا په واړه پيداوار كي (هم دا شرط شراكت ختمولو اړخ ته مفضی دی). په دې طريقه چې د زمكې څخه به نه پيدا كيږي. خو د تخم په اندازه، وَأَنْ يَكُونَ الْبَاقِي بَيْنَهُمَا لِأَنَّهُ مُعَيَّنٌ او دا داسې شوه. لكه چې دواړو شرط كړي وي. د خراج د اوچتولو، حالانكه مځكه خراجي وي. بِخِلَافِ مَا إِذَا شَرَطَ صَاحِبُ الْبَذْرِ عُشْرَ الْخَارِجِ لِنَفْسِهِ او دا چې وي. پاته ددوی دواړو په مينځ كي (مشترك) څكه چې معين دی، په خلاف ددې صورت كله چې تخم والا د خان لپاره د پيداوار د عشر شرط لگولي وي. أَوْ لِلْآخَرِ وَالْبَاقِي بَيْنَهُمَا يا د دوهم لپاره (ئې دا شرط لگولي وي). او پاته ددوی دواړو په مينځ كي (مشترك وي). لِأَنَّهُ مُعَيَّنٌ مُشَاعٌ فَلَا يُؤَدِّي إِلَى قَطْعِ الشَّرِكَةِ څكه چې دا معين مشاع ده. نو دا به د شركت ختمولو اړخ ته مودی نه وي. كَمَا إِذَا شَرَطَا رَفْعَ الْعُشْرِ، لكه چې دواړو د عشر د اوچتولو شرط كړي وي، وَقِسْمَةُ الْبَاقِي بَيْنَهُمَا وَالْأَرْضُ عُشْرِيَّةٌ. او پاته پخپل مينځ كي د تقسيمولو، حالانكه مځكه عشري ده.

حل اللغة: ① القطع: كټ كيدل ② مشاع: خوروور ③ قسمة ،ويش

تشريح:- هر هغه شرط مفسد د مزارعت وي. چه دا شيوع (برخه داری) ختم كړي. نو د تخم والا اووئيل. چه زه به مځكي د پيداوار نه د خپل تخم په مقدار اخلم. بيا به پاته د دواړو په مينځ كي نيم په نيمه تقسيموليږ شي. نو دا شرط مفسد د مزارعت دی. څكه كه پيداوار د تخم نه زيات اوشو. نو د تخم په اندازه شركت ختم شو. او دا مفسد دی. او كه د تخم نه زيات پيداوار اونشو. نو شركت بالكل ختم شو. او دا هم مفسد دی. او دا بالكل داسې ده. چه دا مځكه خراجي وي. چه ددې د كال مثلاً لس منه غله مقرر ده. اوس دوی دواړو عقد مزارعت اوكړو چه مځكي به د خراج پيداوار اوباسو. بيا به پاته نيم په نيمه تقسيمه وو. نو دا جائز نه ده. څكه چې بعضې معين يا په كل كي شركت ختم شو. بعينه هم دا صورت په ړومبی شرط كي دی. البته كه دا شرط وي. چه په دوی كي به يوكس ته مځكي د پيداوار عشر وركولې شي. بيا به پاته د دواړو په مينځ كي نيم په نيمه تقسيموليږ شي. نو دا صورت جائز دی. څكه چې دی كي بعض معين مشاع ده. نو كوم شرط چې د مشاع دی. هغه پاته پاتې دی. نو شركت ختم نشو. او دا بالكل داسې ده. كله چې مځكه عشري وي. او دا شرط اوكړې شو. چه د پيداوار عشر به اوبنكلې شي. او پاته به تقسيموليږ شي. نو دا جائز دی. څكه چې شيوع پخپل حال پاته ده. دغه ډول كه د عشر شرط عاقدينو كي يوكس لپاره وي. نو دا هم جائز دی.

**د متعين حصې پيداوار څان لپاره شرط كولو سره د مزارعت حكم**

قال امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. قَالَ وَكَذَا إِذَا شَرَطَا مَا عَلَى الْمَاذِيَانَاتِ وَالسَّوَاقِي او هم دغه ډول (مزارعت باطل دی) كه دوی شرط كړي وي. د هغه پيداوار كوم چې په نالو او لختو باندې وي. مَعْنَاهُ لِأَحَدِهِمَا يعنی په دوی دواړو كي يوكس دپاره، لِأَنَّهُ إِذَا شَرَطَ لِأَحَدِهِمَا زَرْعَ مَوْضِعٍ مُعَيَّنٍ څكه چې هركله دوی دواړو كي يو لپاره د معين خانې د فصل شرط لگولې شوې وي. أَفْضَى ذَلِكَ إِلَى قَطْعِ الشَّرِكَةِ نو دا به د شركت ختمولو اړخ ته مفضی وي. لِأَنَّهُ لَعَلَّهُ لَا يَخْرُجُ إِلَّا مِنْ ذَلِكَ الْمَوْضِعِ څكه كيداې شي. چه د زمكې ددې خانې نه علاوه پيداوار اونشي. وَعَلَى هَذَا إِذَا شَرَطَ لِأَحَدِهِمَا او هم په دې طريقه كله چې دوی دواړو كي هغه پيداوار شرط وي. مَا يَخْرُجُ مِنْ نَاحِيَةٍ مُعَيَّنَةٍ كوم چې د يو معين گوټ نه پيدا شوې وي، وَلِلْآخَرِ مَا يَخْرُجُ مِنْ نَاحِيَةٍ أُخْرَى. او د دوهم لپاره هغه وي. كوم چې په دوهم گوټ كي پيدا شي.

حل اللغة: ① د ساقية جمع وړوكي نهر ② موضع: خانې ③ ناحية: گوټ ④ معينة: معلوم



تشريح:- كه يوكس دا شرط اولگولو. چه كوم پيداوارد نالو (لختو) سره نژدې وي. هغه به زما وي. او پاته به د دوهم وي. يا د پتمی ددې گوټ پيداوار زما او د دوهم گوټ پيداوار به د دوهم وي. نو دا شرطونه شركت ختمونكی دی. په دې وجه به دې صورتونو كي مزارعت باطل وي.

ⓐ ماذيانات او سواقی: نالئ او لختی، گويا دواړه مترادف الفاظ دی...وفيه أقوال أخر..

**يو لپاره د غلې او دوهم لپاره د بوسو شرط كولو سره د مزارعت حكم**

وَكَذَا إِذَا شَرَطَ لِأَحَدِهِمَا التِّبْنَ او هم دغه ډول (مزارعت فاسد دی). كله چې دوی كي يوكس لپاره د بوسو شرط وي. وَلِلْآخَرِ الْحَبَّ او دوهم لپاره د غلې، لِأَنَّهُ عَسَى أَنْ يُصِيبَهُ آفَةٌ څكه كيداې شي. چه دې ته څه آفت اورسيږي. فَلَا يَنْعَقِدُ الْحَبُّ وَلَا يَخْرُجُ إِلَّا التِّبْنُ نو دانه اونشي. او د بوسو نه علاوه هيڅ اونه خيجي.

حل اللغة: ① الحب: دانه ② التبن: بوسه ③ تصيب: رسيږي

تشريح:- كه دا شرط وي. چه يوكس ته غله او دوهم ته به بوسه ملاويږي. نو چونكه شركت نشته. په دې وجه مزارعت فاسد دی. او ددې وجه ښكاره ده.

**بوسه نيم په نيمه او دانه معين د يوكس لپاره شرط كولو سره د مزارعت حكم**

وَكَذَا إِذَا شَرَطَا التِّبْنَ نِصْفَيْنِ او هم دغه ډول (باطل دی مزارعت) كله چې د بوسو شرط لگولې شوې وي. نيم په نيمه، وَالْحَبَّ لِأَحَدِهِمَا بِعَيْنِهِ) او دانه معين كړی په دوی كي يوكس لپاره لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى قَطْعِ الشَّرِكَةِ څكه چې دا د شركت ختمولو اړخ ته متعدی دی فِيمَا هُوَ الْمَقْصُودُ هغه شئ كي كوم چې مقصود دی وَهُوَ الْحَبُّ..او هغه دانه ده.

تشريح:- اوكه دواړو دا شرط اوكړو. چه بوسه به نيم په نيمه وي. او غله به په دوی كي د يوكس وي. نو دا شرط فاسد دی. چه دا به عقد فاسد كوی. څكه كه اصل مقصود غله ده. بوسه نه دی. او په غله كي شركت نشته.

**غله نيم په نيمه او د بوسو ذكر نه كولو سره د مزارعت حكم**

وَلَوْ شَرَطَا الْحَبَّ نِصْفَيْنِ اوكه دواړو شرط اوكړو د دانې نيم په نيمه، وَلَمْ يَتَعَرَّضَا لِلتِّبْنِ صَحَّتْ) او د بوسو ئې هيڅ ذكر اونكړو. نو مزارعت صحيح دی. لِاشْتِرَاطِهِمَا الشَّرِكَةَ فِيمَا هُوَ الْمَقْصُودُ، ددوی دواړو د شرط كاوه په وجه، د شركت هغه شئ كي كوم چې مقصود دی. (ثُمَّ التِّبْنُ يَكُونُ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ) بيا به بوسه د تخم والا وي. لِأَنَّهُ نَمَاءُ بَذْرِهِ وَفِي حَقِّهِ لَا يَحْتَاجُ إِلَى الشَّرْطِ. وَالْمُفْسِدُ هُوَ الشَّرْطُ، وَهَذَا سُكُوتٌ عَنْهُ. څكه چې دا د هغه په ملك كي زياتيدل دی. او دده په حق كي د شرط حاجت نشته. او فاسدونكې هغه شرط دی. او دا ددې (بوسو) نه چوپوالې ده. وَقَالَ مَشَايِخُ بَلْخٍ رَحِمَهُمُ اللَّهُ: التِّبْنُ بَيْنَهُمَا أَيْضًا اعْتِبَارًا لِلْعُرْفِ او مشائخو د بلخ فرمائيلی دی. چه بوسه به هم ددوی دواړو په مينځ كي (مشتركه) وي. د عرف اعتبار كاوه سره، فِيمَا لَمْ يَنُصَّ عَلَيْهِ الْمُتَعَاقِدَانِ، په هغه څيز كي په كوم چې عاقدينو صراحت نه دی كړی. وَلِأَنَّهُ تَبَعٌ لِلْحَبِّ او څكه چې بوسه د دانو تابع دی وَالتَّبَعُ يَقُومُ او تابع قائم مقام وي بِشَرْطِ الْأَصْلِ..د اصل د شرط مطابق.

تشريح:- عاقدينو د غلې د دواړو په مينځ كي د مشترك كيدو شرط اوكړو. او د بوسو ئې هيڅ ذكراونكړو. نو چونكه اصل مقصود دا غله ده. او په دې كي شركت شته. نو مزارعت به صحيح وي. اوس به دا سوال وي. چه بوسه به چاته ملاويږي. نو وې فرمائيل. چه دې كي دوې (دوه) قوله دی① د تخم والا ته به ملاويږي. څكه چې دا دده د ملك زياتوالې دی،،، كما هو ظاهر،،② دعرف اعتبار كاوه سره به بوسه هم مشترك وي. او چونكه دانه اصل ده. او بوسه تابع دی. او د تابع هغه حكم وي. كوم چې د اصل وي. نو بوسه به هم مشترك وي.

ⓐ و فی حق لا يحتاج....الخ يعنی د تخم والا په حق كي د بوسو د ثبوت لپاره د شرط حاجت نشته. او په كومو صورتونو كي چې مزارعت فاسديږي. هغه د شرط په وجه كيږي. او دلته خو د سره شرط نشته. بلكه سكوت (

اوچوپ والي ) دي.او سكوت مفسد نه دي.هغه بله خبره ده.كه دلته شرط شوي وي.نو بيا به هم فساد نه وو... كماسيأتي..

## غله نيم په نيمه او تخم والا لپاره د بوسو شرط كولو حكم

(وَلَوْشَرَطَاالْحَبَّ نِصْفَيْنِ) وكه دواړو د دانې نيم په نيمه شرط اولګولو. (وَالتِّبْنَ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ صَحَّتْ) او د بوسو تخم والا لپاره ( شرط اوكړو).نو مزارعت صحيح دې. لِأَنَّهُ حُكْمُ الْعَقْدِ خكه چې دا د عقد حكم دې (وَإِنْ شَرَطَاالتِّبْنَ لِلْآخَرِ) و كه دوى دواړو د بوسو شرط د دوهم ( د تخم والا نه د علاوه) لپاره اوكړو (فَسَدَتْ).نو مزارعت به فاسد وى. لِأَنَّهُ شَرْطٌ خكه چې دا شرط داسې شرط دې يُؤَدِّي إِلَى قَطْعِ الشَّرِكَةِ چې دا به د شركت ختمولو اړخ ته اورسوى بِأَنْ لَايَخْرُجَ إِلَّا التِّبْنُ.. په دې طريقه چې د بوسو نه علاوه به پيدا نشي.

**تشريح:-** يعنى كه دا فيصله اوشوه.چه غله به مشترك وى.او بوسه به دتخم والا وى.نو چونكه دا شرط د عقد د مقتضاء خلاف نه دې.بلكه عين مطابق دې.په دې وجه دا مزارعت صحيح دې.اوكه د بوسو شرط ئې د بل لپاره اولګولو.نو اوس به مزارعت فاسد وى.خكه چې شرط د عقد د تقاضې خلاف دې.

قَالَ (وَإِذَاصَحَّتِ الْمُزَارَعَةُ فَالْخَارِجُ عَلَى الشَّرْطِ) او د تخم والا نه د علاوه استحقاق د شرط په وجه سره وى.

**تشريح:-** د تخم والا د بوسو مستحق شى.نو د شرط نه بغير هم كيداې شى... كمامر..او دوهم د بوسو مستحق صرف د شرط په وجه كيداې شى.او چونكه دا شرط د عقد د تقاضې خلاف دې.په دې وجه شرط فاسد دې.خكه چې دې سره شركت ختميږى.او شركت ختميدل مفسد د مزارعت دى.

## د پيداوار تقسيمولو مسئله

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل. لِصِحَّةِ الْاِلْتِزَامِ او هركله چې مزارعت صحيح شو. فَالْخَارِجُ عَلَى الشَّرْطِ لِصِحَّةِ الْاِلْتِزَامِ نو پيداوار د شرط مطابق دې.د التزام صحيح كيدو په وجه، (وَإِنْ لَمْ تُخْرِجِ الْأَرْضُ شَيْئًا فَلَاشَيْءَ لِلْعَامِلِ) اوكه زمكې هيڅ پيداوار اونكړو.نو كاركونكى لپاره هيڅ نشته. لِأَنَّهُ يَسْتَحِقُّهُ شَرِكَةً خكه چې كاركونكې ددې په اعتبار د شركت مستحق كيږى وَلَاشَرِكَةَ فِي غَيْرِالْخَارِجِ.اود پيداوار نه علاوه كې شركت نشته. وَإِنْ كَانَتْ إِجَارَةً فَالْأَجْرُ مُسَمًّى اوكه دا اجاره وى.نو اجرت متعين دې ،فَلَايَسْتَحِقُّ غَيْرَهُ .نو دې به د غيرمسمى مستحق نه وى. ،بِخِلَافِ مَا إِذَافَسَدَتْ په خلاف ددې صورت كله چې مزارعت فاسد شى. لِأَنَّ أَجْرَ الْمِثْلِ فِي الذِّمَّةِ خكه چې د مثل اجرت په ذمه كې وى. ،وَلَا تَفُوتُ الذِّمَّةُ بِعَدَمِ الْخَارِجِ او د پيداوار په نه كيدو سره به ذمه نه فوت كيږى.

**تشريح:-** كله چې عاقدينو عقد اوكړو.او دواړو د شرط مطابق عمل درامد پيل كړو.نو اوس به دوې (دوه) صورتونه وى① پيداوار به كيږى. په دې صورت كې به د شرط مطابق ويش كولې شى.② يا به په څه وجه هيڅ ( پيداوار) نه كيږى.ــ په دې صورت كې به كاركونكى ته هيڅ اجرت نه ملاويږى.خكه چې دده شركت په پيداوار كې وو.او پيداوار اونشو.

؟ او كه دا اووئيلې شى.چه مزارعت ابتداء كې اجاره ده.نو كاركونكى ته اجرت ملاويدل پكار دى؟ نو ددې ځواب نې وركړو.كه اجاره اومنلې شى.نو اجرت متعين وو.هم دا به ملاويدو.او دا د پيداوار نه كيدو په وجه ملاو نشو.او د بل څه دې مستحق نه دې.

؟ كه څوك دا اعتراض اوكړى چې په مزارعت فاسده كې خو په هرصورت كې اجرت مثل ملاويږى؟ نو ځواب دا دې چې دلته اجرت د پيداوار يوه برخه ده.چه دا د پيداوار نه كيدو په وجه نشى وركولې.او په مزارعت فاسده كې په ذمه اجرت واجب وى.او كوم شئ چې په ذمه واجب وى.هغه د پيداوار نه كيدو په وجه ختم نشو.په دې وجه هلته اجرت بهرحال ملاويږى.



## د مزارعت فاسد كيدو په صورت كښې د پيداوار حكم

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل. (وَإِذَافَسَدَتْ) او هركله چې مزارعت فاسد شو (فَالْخَارِجُ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ) نو پيداوار به دتخم والا ته ملاويږى. لِأَنَّهُ نَمَاءُ مِلْكِهِ خكه چې دا دده دملك زياتوالې دې وَاسْتِحْقَاقُ الْأَجْرِ بِالتَّسْمِيَةِ.او د دوهم استحقاق د تسميه ( مقررولو) په وجه وى. وَقَدْفَسَدَتْ او تسميه فاسد شوه، فَبَقِيَ النَّمَاءُ كُلُّهُ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ.نو زياتيدل واړه په ټوله د تخم والا لپاره پاته پاتې شوه.

**تشريح:-** كه مزارعت فاسد شى.نو واړه پيداوار به هغه ته ملاويږى.د چا چې تخم وو.بيا به دوهم ته د عامل كيدو په صورت كې د كار مثلى اجرت او دمالك كيدو په صورت كې د زمكې مثلى اجرت ملاويږى .خكه چې تخم دكوم كس نه دې.هغه ته چې د پيداوار نه كوم څه ملاويږى.هغه د شرط په وجه ملاويږى.او شرط فاسد دې.نو اوس به په تخم باندې مدار وى.

## چه تخم د زمكې د مالك وى‌نو كاركونكې لپاره به اجرت مثل وى

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل. (وَلَوْكَانَ الْبَذْرُمِنْ قِبَلِ رَبِّ الْأَرْضِ) وكه تخم د زمكې دمالك د اړخه وى. (فَلِلْعَامِلِ أَجْرُمِثْلِهِ) لَا يُزَادُ عَلَى مِقْدَارِمَاشَرَطَ لَهُ مِنَ الْخَارِجِ) نو عامل لپاره دده دمثل اجرت دې.چه دا به په هغه مقدار باندې نشى زياتولې.كوم چې عامل لپاره شرط كړې شوې وى. لِأَنَّهُ رَضِيَ بِسُقُوطِ الزِّيَادَةِ، وَهَذَاعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ رحمهما الله (١) خكه چې دا ( عامل) راضى شوې دې.د زياتوالى ساقطيدو سره، او دا د امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله په نيز دى. (وَقَالَ مُحَمَّدٌ: او امام محمد رحمه الله فرمائيلى دى لَهُ أَجْرُمِثْلِهِ بَالِغًا مَابَلَغَ، .چه دده لپاره دده د مثل اجرت دې.په داسې حال كې چې دا رسيدونكې وى. تركومه پورې چې رسيږى. لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى مَنَافِعَهُ بِعَقْدٍفَاسِدٍفَتَجِبُ عَلَيْهِ قِيمَتُهَا خكه چې ده ( د زمكې مالك) د عقد فاسد په ذريعه د كاركونكى منافع حاصل كړى دى.نو په ده ( د زمكې په مالك) به د منافعو قيمت واجب وى. إِذْلَامِثْلَ لَهَا) خكه چې منافعو لپاره مثل نشته وَقَدْمَرَّفِي الْإِجَارَاتِ.او دا په كتاب الاجارات كې تير شوى دى. (وَإِنْ كَانَ الْبَذْرُمِنْ قِبَلِ الْعَامِلِ) او كه تخم د عامل د اړخه وى. (فَلِصَاحِبِ الْأَرْضِ أَجْرُمِثْلِ أَرْضِهِ) نو د زمكې والا لپاره به دده د زمكې اجرت وى. لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى مَنَافِعَ الْأَرْضِ بِعَقْدٍفَاسِدٍفَيَجِبُ رَدُّهَا خكه چې كاركونكى د عقد فاسد په ذريعه د زمكې منافع حاصل كړى دى.نو دزمكې منافع واپس كول ضرورى دى. وَقَدْتَعَذَّرَ. وَلَامِثْلَ لَهَا او دا متعذر دې.او دمنافعو هيڅ مثل نشته فَيَجِبُ رَدُّقِيمَتِهَا.نو د منافعو قيمت به واجب وى. وَهَلْ يُزَادُعَلَى مَاشَرَطَ لَهُ مِنَ الْخَارِجِ؟ او آيا دا قيمت به د پيداوار د شرط نه زياتولې شى؟. فَهُوَعَلَى الْخِلَافِ الَّذِي ذَكَرْنَاهُ نو دا هم په هغه اختلاف ( مبنى) دې.كوم چې موږ ذكركړې دې.

**حل اللغة*** ① استوفى: حاصل كړو ② منافع: جمع د منفعت، فائده ③ ارض: مځكه

**تشريح:-** مسئله واضحه ده.ددې نه وړاندې هم بيان شوې دې.صرف دومره خبره ده.چه په دواړو صورتونو كې د شيخينو رحمهما الله او د امام محمد رحمه الله په مينځ كې اختلاف دې.چه اجرت مثلى د شرط نه زياتول جائز دى اوكه نه؟ امام محمد رحمه الله د رومبى قائل دې ( يعنى زياتول جائز دى).او شيخين رحمهما الله د دوهم ( قائل دى.چه د اجرت مثلى څخه به نشى زياتولې).د شيخينو رحمهما الله استدلال دا دې.چه هغه پخپل حق ساقطولو باندې پخپله راضى دې.ګنى هغه به د پيداوار په كم مقدار باندې نه راضى كيدو.او د امام محمد رحمه الله د استدلال حاصل دا دې.چه دلته د منافعو واپسى متعذر ده.نو ددې قيمت واپس كول ضرورى دى.كه ( قيمت) كم وى.او كه

---

(١) القول الراجح هو هذا قول الشيخين . رحمهما الله كذا فى ملتقى (١٤٤١٤) وردالمحتار (١٩٦١٥) ومجمع الأنهر (١٤٤١٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٨١٢)-

زيات وي.

### مځکه او غوئي د مالك وي او پاته کار د عامل وي نو د مزارعت حکم

وَلَوْجَمَعَ بَيْنَ الْأَرْضِ وَالْبَقَرِ او که د زمکې او غويانو په مينځ کې جمع اوکړې شوه. حَتّٰى فَسَدَتِ الْمُزَارَعَةُ تردې چې مزارعت فاسد شو فَعَلَى الْعَامِلِ أَجْرُمِثْلِ الْأَرْضِ وَالْبَقَرِ نو په عامل باندې د زمکې او غويانو د مثل اجرت دې. هُوَالصَّحِيحُ هم دا صحيح ده. وَأَنَّ لَهُ مَدْخَلًا فِي الْإِجَارَةِ ځکه چې دده لپاره اجاره کې دخل دې، إِجَارَةٌ مَعْنًى او مزارعت معناً اجاره ده.

تشریح:- وړاندې مسئله تيره شوې ده. چه کله د مالك مځکه او غويان وي. او پاته کار د عامل وي. نو مزارعت فاسد دې. چه ددې دليل تير شوې دې. بهرحال دا مزارعت فاسد دې. او پيداوار د عامل لپاره دې. ځکه چې تخم دده وو. نو اوس چې عامل ځنګه د زمکې اجرت ورکوی. د غويانو اجرت ورکول به هم لازم وی. ځکه چې غويان هم اجاره باندې ورکولې شی. او مزارعت معناً اجاره ده. نو د غويانو اجرت به هم ورکولې شی.

### په مزارعت فاسده کښې زمکې والا د تخم په وجه د ټول پيداوار مالك کيږي

وَإِذَااسْتَحَقَّ رَبُّ الْأَرْضِ الْخَارِجَ لِبَذْرِهِ فِي الْمُزَارَعَةِ الْفَاسِدَةِ او کله چې په مزارعت فاسده کې د خپل تخم په وجه د زمکې والا د پيداوار مستحق شوې وی. طَابَ لَهُ جَمِيعُهُ نو هغه لپاره واړه پيداوار حلال دی. لِأَنَّ النَّمَاءَ حَصَلَ فِي أَرْضٍ مَمْلُوكَةٍ لَهُ ځکه چې زياتيدل دده په مملوکه مځکه کې حاصل شوې دی. وَإِنِ اسْتَحَقَّهُ الْعَامِلُ او که د پيداوار مستحق عامل جوړ شوې وی أَخَذَ قَدْرَ بَذْرِهِ وَقَدْرَ أَجْرِ الْأَرْضِ وَتَصَدَّقَ بِالْفَضْلِ نو هغه به د خپل تخم او زمکې د اجرت په اندازه اخلی. او زيات به صدقه (خيرات) کوی. لِأَنَّ النَّمَاءَ يَحْصُلُ مِنَ الْبَذْرِ وَيَخْرُجُ مِنَ الْأَرْضِ ځکه چې زياتوالې د تخم نه حاصل شوې دې. او دا د زمکې نه حاصل شوې دې. وَفَسَادُ الْمِلْكِ فِي مَنَافِعِ الْأَرْضِ او په منافع د مځکه کې د ملك فساد او په ملك کې چټلې پيدا کوی، أَوْجَبَ خُبْثًا فِيهِ. فَمَا سَلِمَ لَهُ بِعِوَضٍ طَابَ لَهُ نو دده لپاره چې د عوض کوم بدل سپارلې شوې دې. هغه دده لپاره حلال دې وَمَا لَاعِوَضَ لَهُ تَصَدَّقَ بِهِ او د کوم چې عوض نه وی. هغه به دې صدقه کوی.

حل اللغة: ① الفضل: زياتی ② النماء: پيداوار، محصولات

تشریح:- په مزارعت فاسده کې کله چې د زمکې دمالك د تخم وی. نو واړه پيداوار به دهغه وی. او هغه لپاره به واړه پيداوار حلال هم وی. ځکه چې مځکه هم د هغه ده. او تخم هم د هغه دې. نو زياتوالې واړه د هغه د تخم او زمکې نه حاصل شوې دې. او هرکله چې تخم د عامل وی. نو واړه پيداوار به هغه ته ملاويږی. خو ديانتاً به هغه ته داحکم ورکولې شی. چه کوم دده د تخم او زمکې د اجرت په اندازه پيداوار دې. هغه دده لپاره حلال دې. او کوم چې ددې نه زياتی دې. هغه حلال نه دې. بلکه هغه به صدقه کوی. ځکه چې دا اګرچه دده د تخم زياتوالې دې. خو د تخم دا زياتوالې د زمکې په ذريعه پيدا شوې دې. چه دا د بل ملك دې. د مزارعت صحيح کيدو په صورت کې د زمکې منافع حلال وو. خو دلته د عقد د فساد په وجه د زمکې په منافعو کې فساد پيدا شو. چه دې سره په ملك کې فساد پيدا شو. نو کوم چې عوض سره دده په ملك کې راشی. هغه خو دده لپاره حلال دې. اوکوم چې د عوض نه بغير وی. د هغې صدقه کول ضروری دی.

### په متعاقدينو کښې د يوکس د مزارعت نه د منع کيدو مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائيل. (وَإِذَاعُقِدَتِ الْمُزَارَعَةُ) او کله چې د مزارعت عقد اوشو فَامْتَنَعَ صَاحِبُ الْبَذْرِ مِنَ الْعَمَلِ نو د تخم والا د کار نه منع شو لَمْ يُجْبَرْعَلَيْهِ) ..اوس به هغه په دې باندې نشی مبجوره کولې. لِأَنَّهُ لَايُمْكِنُهُ الْمُضِيُّ فِي الْعَقْدِ إِلَّا بِضَرَرٍ يَلْزَمُهُ ځکه چې دده به عقد کې تيريدل ممکن نه دی. خو په داسې ضررسره چې به ده ته لازم وی. فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا إِذَااسْتَأْجَرَ أَجِيرًا لکه چې يو اجير ئې په اجرت باندې اونيولو. لِيَهْدِمَ

---



دَارَهُ. چه دهغه کور اوغورځوی (او بیامنع شو، نو دې نشی مجبوره کولې)

حل اللغة: ① امتنع: منع شو ② المضی: تيريدل ③ يهدم: نوړوی ④ دار: کور

تشریح:- د مزارعت معامله د معاقدينو په مينځ کې اوشوه. اوس په دوی کې يوکس ددې دپوره کاوه نه منع کيږی. نو قاضی به دې مجبوره کوی. او که نه؟ نو وې فرمائيل. که د تخم والا منع شی. نو هغه به نشی مجبوره کولې. ځکه چې منافع خو روستو حاصليږی. او فی الحال د هغه نقصان دې. چه تخم به مځکه کې ملاوول وی. نو په دې به نشی مجبوره کولې. او دا بالکل داسې ده. لکه چې يوسړی يوکس اجير کړو. چه دده کور اوغورځوی. خو بيا د کور والا منع شو. نو حاکم هغه نشی مجبوره کولې.

(وَإِنِ امْتَنَعَ) اوکه منع شو الَّذِي لَيْسَ مِنْ قِبَلِهِ الْبَذْرُ هغه کس د چا د اړخه چې تخم نشته أَجْبَرَهُ الْحَاكِمُ عَلَى الْعَمَلِ) .. نو حاکم به هغه په کار باندې مجبوروی. لِأَنَّهُ لَايَلْحَقُهُ بِالْوَفَاءِ بِالْعَقْدِ ضَرَرٌ ځکه چې هغه ته به دعقد پوره کاوه په وجه هيڅ ضرر نه لاحق وَالْعَقْدُ لَازِمٌ او عقد لازم دې بِمَنْزِلَةِ الْإِجَارَةِ .. د اجارې په درجه کې،

تشریح:- او که د کار نه هغه کس منع شی. د چا چې تخم نه دې. نو حاکم به هغه په کار باندې مجبوره کوی. ځکه چې د عقد پوره کاوه په وجه هغه ته هيڅ نقصان نه رسيږی. او دده د اړخه عقد هم لازم دې. نو دا داجارې په درجه کې دې. لکه ځنګه چې دا لازميږی. مزارعت هم لازميږی.

إِلَّاإِذَاكَانَ عُذْرٌ کله چې داسې عذر وی يُفْسَخُ بِهِ الْإِجَارَةُ چې دهغې په وجه اجاره فسخ کولای شی فَيُفْسَخُ بِهِ الْمُزَارَعَةُ .. نو ددې په وجه به مزارعت فسخ کولې شی.

تشریح:- البته بعضې عذرونه داسې دی. چه دهغې په وجه اجاره فسخ کولې شی. لکه مرض چې ددې په وجه کارکول بنديږی. او لکه دومره پور کيدل، چې د زمکې خرڅولو نه بغير خلاصې نه وی. نو ددې عذرونو په وجه اجاره فسخ کولې شی. نو ددې عذرونو په وجه به مزارعت هم فسخ کولې شی.

### په عقد مزارعت کښې د زمکې والا د تخم اچولو نه د منع کيدو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائيل. (وَلَوِامْتَنَعَ رَبُّ الْأَرْضِ) و که د زمکې والا منع شو وَالْبَذْرُ مِنْ قِبَلِهِ او تخم دده د اړخه دې. وَقَدْ كَرَبَ الْمُزَارِعُ الْأَرْضَ فَلَاشَيْءَ لَهُ فِي عَمَلِ الْكِرَابِ) او زميدار مځکه ګوډ (نيوې) کړله. د هغه د ګوډ به هيڅ نه ملاويږی. قِيلَ هَذَافِي الْحُكْمِ، فَأَمَّا فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى وئيلی شوی دی. چه دا ځواب په حکم د قضاء کې دې. بهرحال په ﴿فيما بينه و بين الله﴾ يَلْزَمُهُ اسْتِرْضَاءُ الْعَامِلِ د زمکې مالك له د عامل راضی کول لازم دی لِأَنَّهُ غَرَّهُ فِي ذَلِكَ. ځکه چې د زمکې والا، عامل ته په دې سلسله کې دهوکه ورکړې ده.

حل اللغة: ① استرضاء: راضی کول ② غر: دهوکه ③ امتنع: منع شو

تشریح:- عقد مزارعت شوې وو. او تخم د زمکې دمالك وو. خو هغه د تخم اچولو نه منع شو. نو د حکم مطابق هغه نشی مجبوره کولې. خو عامل چې د زمکې کوم ګوډ (نيوې) کړې ده. لختی وغيره ئې ټيك کړی دی. نو آيا عامل ته به ددې اجرت ملاويږی اوکه نه؟ نو وې فرمائيل. چه نه به ملاويږی. نو دا خو د قضاء د حکم ځواب دې. البته ديانتاً به د زمکې د مالك فريضه دا وی. چه هغه عامل خوشحاله کړی. ځکه چې د زمکې مالك هغه ته دهوکه ورکړې ده.

### په متعاقدينو کښې د يوکس د مرګ حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائيل. (وَإِذَامَاتَ أَحَدُ الْمُتَعَاقِدَيْنِ بَطَلَتِ الْمُزَارَعَةُ) اوکله چې متعاقدينو کې يوکس مړ شی. نو مزارعت به باطل وی اعْتِبَارًا بِالْإِجَارَةِ په اجاره باندې قياس کاوه سره، وَقَدْ مَرَّ الْوَجْهُ فِي الْإِجَارَاتِ. او وجه په اجارات کې تيره شوې ده.

تشریح:- که په اجاره کې عاقدينو کې يوکس مړ شی. اجاره فاسديږی. نو کله چې مزارعت کې يوکس مړ شی. او

فصل ( تخم) نه دي کرلې شوې.نو مزارعت به هم باطل وی.چه ددې وجه په کتاب الاجارات کې ذکر شوې ده.

**د دریو کالو په مزارعت کښې د ړومبي کال د فصل په منځ کښې د زمکې والا مړ کیدو مسئله**

فَلَوْ كَانَ دَفَعَهَا فِي ثَلَاثِ سِنِينَ فَلَمَّا نَبَتَ الزَّرْعُ فِي السَّنَةِ الْأُولَى نو که مځکه ئې د دریو کالو لپاره ورکړله.نو کله چې په ړومبي کال کې فصل زرغون شو. وَلَمْ يَسْتَحْصِدِ الزَّرْعُ حَتَّى مَاتَ رَبُّ الْأَرْضِ تُرِكَ الْأَرْضُ فِي يَدِ الْمُزَارِعِ او کټ نکړې شو.تردې چې د زمکې مالك مړ شو.نو مځکه به د زمیدار په لاس کې پریښودې شی. حَتَّى يَسْتَحْصِدَ الزَّرْعُ وَيُقَسَّمَ عَلَى الشَّرْطِ تردې پورې چې فصل کټ کړې شی.او دا به د شرط مطابق تقسیمولې شی. وَتُنْتَقَضُ الْمُزَارَعَةُ فِيمَا بَقِيَ مِنَ السَّنَتَيْنِ او په پاته دوو کالوکې به مزارعت ماتیږی. لِأَنَّ فِي إِبْقَاءِ الْعَقْدِ فِي السَّنَةِ الْأُولَى مُرَاعَاةً لِلْحَقَّيْنِ ځکه چې په ړومبي کال کې د عقد په پاته ساتلو کې د دواړو رعایت دې. بِخِلَافِ السَّنَةِ الثَّانِيَةِ وَالثَّالِثَةِ په خلاف د دوهم او دریم کال ،لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ ضَرَرٌ بِالْعَامِلِ ، ځکه چې دې کې عامل ته هیڅ نقصان نشته. ،فَيُحَافَظُ فِيهِمَا عَلَى الْقِيَاسِ نو په دې کې به په قیاس باندې محافظت کولې شی.

**حل اللغة:** ① **یستحصد:** ریبل ② **السنتین:** جمع د **سنة:** کال ③ **مراعاة:** خیال ساتل ④ **یحافظ:** حافظت کوی

**تشریح:-** مځکه ئې مزارعت باندې دریو کالو لپاره ورکړله.اوس ړومبي کال دې.فصل خو راختلې دې.خو کټ شوې نه دې.او هم په دې کال کې د زمکې مالك مړ شو.نو د فصل کټ کاوه پورې به مځکه د زمیدار په قبضه کې پریښودې شی.او پیداوار به د شرط مطابق تقسیمولې شی.ځکه که فوراً ( فی الحال) مزارعت فسخ کړې شی.نو د زمیدار نقصان دې.البته په پاته دوو کالوکې د زمیدار هیڅ نقصان نشته.نو په دې کې به د قیاس مطابق مزارعت فسخ کولې شی.

**په ړومبي کال د زمکې ګوډ کولو او لختو جوړولو نه روسته د زمکې د مالك مړ کیدو مسئله**

وَلَوْ مَاتَ رَبُّ الْأَرْضِ قَبْلَ الزِّرَاعَةِ او که د زمکې مالك د کروندې نه مخکې مړ شی. بَعْدَ مَا كَرَبَ الْأَرْضَ وَحَفَرَ الْأَنْهَارَ ددې نه روستو چې دا مځکه ګوډ شوه.او لختې او کنستلې شو. انْتَقَضَتِ الْمُزَارَعَةُ نو مزارعت به ماتیږی.ځکه چې دې کې د زمیدار دمال باطلول نشته. لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ إِبْطَالُ مَالٍ عَلَى الْمُزَارِعِ (وَلَا شَيْءَ لِلْعَامِلِ بِمُقَابَلَةِ مَا عَمِلَ او عامل لپاره به د عمل په مقابله کې هیڅ شئ نه وی لِمَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى.لکه چې مونږ به انشاء الله بیان کړو.

**تشریح:-** عامل د زمکې ګوډ اوکړو.او لختې وغیره ئې تیار کړل.اوس د فصل کرلو وخت نه وو راغلې.چه د زمکې مالك مړشو.نو مزارعت به ختمیږی.او عامل چې کوم محنت کړې دې.هغه ته به ددې اجرت نه ملاویږی. چې ددې دلیل اوس راروان دې.

**د پور په وجه د زمکې والا لپاره مجبوراً د زمکې د خرڅولو حکم**

(وَإِذَا فُسِخَتِ الْمُزَارَعَةُ بِدَيْنٍ فَادِحٍ او کله چې د ډیر پور په وجه مزارعت ختم کړې شو. لَحِقَ صَاحِبَ الْأَرْضِ فَاحْتَاجَ إِلَى بَيْعِهَا جَازَ) رخه کړله.نو جائز ده كَمَا فِي الْإِجَارَةِ.لکه څنګه چې اجاره کې ( په پور کې خرڅولې شی). وَلَيْسَ لِلْعَامِلِ او عامل ته داحق نشته أَنْ يُطَالِبَهُ بِمَا كَرَبَ الْأَرْضَ وَحَفَرَ الْأَنْهَارَ بِشَيْءٍ) چه هغه د زمکې ګوډ کاوه او لختو کنستلو په بدله څه عوض اوغواړی. لِأَنَّ الْمَنَافِعَ إِنَّمَا تَتَقَوَّمُ بِالْعَقْدِ وَهُوَ إِنَّمَا قُوِّمَ بِالْخَارِجِ ځکه چې منافع د عقد په وجه قیمتی وی.او د منافعو قیمت پیداوار سره لګولې شوې دې. فَإِذَا انْعَدَمَ الْخَارِجُ نو هرکله چې پیداوار موجود نشو لَمْ يَجِبْ شَيْءٌ.نو هیڅ به واجب نه وی.



**حل اللغة:** ① **دین:** قرض ② **قادح:** ډیر،زیات ③ **تتقوم:** قیمت لګولې شی ④ **انعدم:** نشت شو

**تشریح:-** په زمکې والا باندې دومره قرضه راواوړیده.چه د زمکې خرڅولو نه بغیر هیڅ لاره نشته.نو هغه لپاره مځکه خرڅول جائز دی.په اجاره کې هم او مزارعت کې هم،خو عامل (زمیدار) چې کوم لختې جوړ کړې دی.او مځکه ئې ګوډ کړې ده.نو آیا ددې اجرت به ملاویږی اوکه نه؟ نو وې فرمائیل.چه نه به ملاویږی.ځکه چې دلته عقد کې د منافعو قیمت پیداوار مقرر کړې شوې وو.او د پیداوار وجود نشته.نوهیڅ به واجب نه وی.

**د فصل په منځ کښې د پور په وجه زمکې والا لپاره مجبوراً د زمکې د خرڅولو مسئله**

وَلَوْ نَبَتَ الزَّرْعُ او که فصل زرغون شو وَلَمْ يُسْتَحْصَدْ .او کټ نه ړې شو. لَمْ تُبَعِ الْأَرْضُ فِي الدَّيْنِ حَتَّى يُسْتَحْصَدَ الزَّرْعُ) نو په پور کې به مځکه نشی خرڅولې.تردې چې فصل کټ کړې شی. لِأَنَّ فِي الْبَيْعِ إِبْطَالَ حَقِّ الْمُزَارِعِ، وَالتَّأْخِيرُ أَهْوَنُ مِنَ الْإِبْطَالِ ځکه چې خرڅولو کې د زمیدار حق باطل دی.او روستو کول د باطلولو نه آسان دی. (وَيُخْرِجُهُ الْقَاضِي مِنَ الْحَبْسِ او قاضې به د زمکې مالك د قیدخانې نه راوباسي إِنْ كَانَ حَبَسَهُ بِالدَّيْنِ .که هغه ئې د پور په وجه قید کړې وی. لِأَنَّهُ لَمَّا امْتَنَعَ بَيْعُ الْأَرْضِ لَمْ يَكُنْ هُوَ ظَالِمًا وَالْحَبْسُ جَزَاءُ الظُّلْمِ) ځکه چې هرکله د زمکې بیع ممتنع شوه.نو هغه ظالم نشو.او قید د ظلم سزا ده.

**حل اللغة:** ① **یستحصد:** ریبی،کټ کوی ② **ابطال:** باطلول ③ **التاخیر:** روستوالې ④ **الحبس:** بندیز

**تشریح:-** په زمکې والا باندې پور دې.چه ددې په وجه مځکه خرڅول ضروری دی.خو فصل زرغون شوې دې.نو د فصل کټ کاوه پورې به خرڅول روستو کولې شی.چه د زمیدار حق باطل نشی.او د حق باطلولو نه د قرضخواه حق اداکول روستو کول آسان دی.کله چې یو قرضدار پور ادا نکړی.نو قاضی قرضدار په قید کې اچوی.نو قاضی د زمکې مالك هم قیدخانه کې اچولې دې.خو هرکله چې اوس د زمکې بیع منع ده.نو د زمکې مالك ظالم نشو.او قید د ظلم بدله ده.نو قاضی له پکار دی.که د زمکې مالك ئې ګرفتار کړې وی.نو هغه دې ازاد کړی.

**د کچه فصل په منځ کښې د مزارعت د مودې ختمیدو مسئله**

قَالَ امام قدوری رحمة الله علیه اوفرمائیل. (وَإِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْمُزَارَعَةِ وَالزَّرْعُ لَمْ يُدْرِكْ و کله چې د مزارعت موده ختمه شوه.او فصل نه دې پوخ شوې. كَانَ عَلَى الْمُزَارِعِ أَجْرُ مِثْلِ نَصِيبِهِ مِنَ الْأَرْضِ إِلَى أَنْ يُسْتَحْصَدَ نو په زمیدار به د کټ کاوه پورې په مځکه کې د خپلې برخې (حصې) په مثل اجرت وی. وَالنَّفَقَةُ عَلَى الزَّرْعِ عَلَيْهِمَا عَلَى مِقْدَارِ حُقُوقِهِمَا) او د فصل خرچ به په دوی دواړو د خپلو حقوقو په اندازه وی. مَعْنَاهُ حَتَّى يُسْتَحْصَدَ ددې مطلب دا دې.تردې چې فصل کټ کړې شی. ،لِأَنَّ فِي تَبْقِيَةِ الزَّرْعِ بِأَجْرِ الْمِثْلِ تَعْدِيلَ النَّظَرِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځکه چې فصل د اجر مثل په بدله پاته ساتلو کې د دواړو طرفو نه د شفقت برابری ده. فَيُصَارُ إِلَيْهِ، وَإِنَّمَا كَانَ الْعَمَلُ عَلَيْهِمَا نو هم دې اړخ ته به رجوع کولې شی. اوکار به په دواړو وی. لِأَنَّ الْعَقْدَ قَدِ انْتَهَى بِانْتِهَاءِ الْمُدَّةِ وَهَذَا عَمَلٌ فِي الْمَالِ الْمُشْتَرَكِ ځکه چې عقد د مودې ختمیدو په وجه ختم شو.او بهرحال مشترك کې عمل دې. وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتَ رَبُّ الْأَرْضِ وَالزَّرْعُ بَقْلٌ او دا د هغې صورت خلاف دې.کله چې د زمکې مالك مړشی.او فصل کچه وی. حَيْثُ يَكُونُ الْعَمَلُ فِيهِ عَلَى الْعَامِلِ په دې حیثیت سره چې دې کې کار په عامل (زمیدار) باندې وی. ،لِأَنَّ هُنَاكَ أَبْقَيْنَا الْعَقْدَ فِي مُدَّتِهِ وَالْعَقْدُ يَسْتَدْعِي الْعَمَلَ ځکه چې هلته مونږ د عقد مودې پورې عقد پاته اوساتلو.او عقد په عامل باندې د کار تقاضه کوی. عَلَى الْعَامِلِ، أَمَّا هَاهُنَا الْعَقْدُ قَدِ انْتَهَى فَلَمْ يَكُنْ هَذَا إِبْقَاءَ ذَلِكَ الْعَقْدِ فَلَمْ يَخْتَصَّ الْعَامِلُ بِوُجُوبِ الْعَمَلِ عَلَيْهِ بهرحال دلته عقد ختم شو.نو دا به عقد پاته ساتل نه وی.نو عامل به پخپل خان باندې د عمل د وجوب لپاره خاص نه وی. (فَإِنْ أَنْفَقَ أَحَدُهُمَا بِغَيْرِ إِذْنِ صَاحِبِهِ وَأَمْرِ الْقَاضِي نوکه په دوی

دوارو کي يوکس بغير د خپل انډيوالان (شريکوال) د اجازت نه او بغير د حکم د قاضي نه خرج اوکړو. فَهُوَ مُتَطَوِّعٌ لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَيْهِ نو دې متبرع (احسان کونکې) دې. ځکه چې ده ته پخپل انډيوالان باندې ولايت نشته.

حل اللغة: ① تبقية: پاته پاتې کول ② انتهاء: ختميدل ③ المدة: موده ④ متطوع: احسان کونکې

تشريح:- موده د مزارعت ختمه شوه. او فصل کچه دې. نو داسې طريقه باندې عمل اوکړې شو. چه نه د زمکې مالك ته نقصان وي. او نه زميدار ته. نو وې فرمائيل. چه د فصل پخيدو پورې به دا په مځکه کې ساتلې شي. خو دومره ورځو پورې چې د زمکې ځومره کرايه جوړيږي. نو دا کرايه به عامل د خپلې برخې (حصې) په اندازه ادا کوي مثلاً په نيمه باندې معامله شوې وه. او پنځه ويشت بيګه (تقريبا ۶۵ مرلې) مځکه ده. چه ددې دوو مياشتو پورې اجرت (۲۵۰۰) روپۍ دې. نو عامل به (۱۲۵۰) روپۍ د زمکې مالك ته ورکوي. خو عقد د مزارعت ختم شوې دې. او دا د دوارو مشترك مال دې. نو د خپلې برخې (حصې) په اندازه به د خرچې او کار دواړه ذمه دار وي.

که څوك دا سوال اوکړي که د زمکې مالك مړ شي. او فصل کچه وي. نو دلته خوکار د عامل په ذمه دې نو دلته کار به دواړو ولې وي؟ نو ځواب دا دې چې د زمکې د مالك د مرګ په صورت کې مزارعت پاته ساتلې شوې دې. او په مزارعتونو کې کار د عامل په ذمه وي. او دلته مزارعت فاسد شو. او دا مال مشترك پاته پاتې شو. چه ددې ساتنه به په دواړو لازم وي. که په دوی کې يوکس د خپل انډيوالان د اجازت نه بغير، او د قاضي د حکم نه بغير په فصل باندې څه خرج اوکړو. نو چونکه يو انډيوالان ته په بل انډيوالان باندې ولايت حاصل نه دې. په دې وجه به دې احسان کونکې شمارلې کيږي. او د دوهم (شريکوال) نه د واپس اخستلو اجازت به نه وي.

### د زمکې والا لپاره د کچه فصل اخستلو حکم

وَلَوْ أَرَادَ رَبُّ الْأَرْضِ أَنْ يَأْخُذَ الزَّرْعَ بَقْلًا که د زمکې مالك د کچه فصل اخستلو اراده اوکړه. لَمْ يَكُنْ لَهُ ذَٰلِكَ نو هغه ته به ددې حق نه وي. لِأَنَّ فِيهِ إِضْرَارًا بِالْمُزَارِعِ، ځکه چې دې کې د زميدار نقصان دې. (وَلَوْ أَرَادَ الْمُزَارِعُ) أَنْ يَأْخُذَهُ بَقْلًا قِيلَ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ اقْلَعِ الزَّرْعَ او که زميدار ددې د کچه اخستلو اراده اوکړله. نو د زمکې مالك ته به ونيلې شي. چه مځکه واړه وه. فَيَكُونُ بَيْنَكُمَا نو شي به دا ستاسو دواړو په مينځ کې، أَوْ أَعْطِهِ قِيمَةَ نَصِيبِهِ يا زميدار ته دهغه د برخې (حصې) قيمت ورکړه. أَوْ أَنْفِقْ أَنْتَ عَلَى الزَّرْعِ يا ته په فصل باندې خرج کوه. وَارْجِعْ بِمَا تُنْفِقُهُ فِي حِصَّتِهِ او کوم چې دهغه په برخه کې خرج کيږي هغه واپس اخله. لِأَنَّ الْمُزَارِعَ لَمَّا امْتَنَعَ مِنَ الْعَمَلِ لَا يُجْبَرُ عَلَيْهِ ځکه چې زميدار کله د کار کاوه نه منع شو نو هغه به په کار باندې نشي مجبوره کولې. لِأَنَّ إِبْقَاءَ الْعَقْدِ بَعْدَ وُجُودِ الْمُنْهِي نَظَرٌ لَهُ ځکه چې عقد پاته ساتل، دعقد پوره کونکی شي د موجود کيدو نه روسته د زميدار د شفقت لپاره وو. وَقَدْ تَرَكَ النَّظَرَ لِنَفْسِهِ او هغه پخپله خان لپاره شفقت پريخودو وَرَبُّ الْأَرْضِ مُخَيَّرٌ بَيْنَ هَٰذِهِ الْخِيَارَاتِ او د زمکې مالك ددې اختياراتو په مينځ کې اختيارمند دې. لِأَنَّ بِكُلِّ ذَٰلِكَ يَسْتَدْفِعُ الضَّرَرَ ځکه چې هغه په دې کې د هر يو په ذريعه ضرر لرې کوي.

حل اللغة: ① يستدفع: طلب د لرې کولو، دفع کاوه ② ابقاء: پاته پاتې کول ③ النظر: شفقت،

تشريح:- د زمکې والا غواړي. چه فصل کچه کټ کړي او ويش کړې شي. نو هغه ته به ددې حق نه وي. ځکه چې دې کې د زميدار ښکاره نقصان دې. او که زميدار د کچه اخستلو اراده لري. نو د زمکې مالك ته به درې اختيارونه وي. کوم چې غواړي. اختيار دې کړي ① که د زميدار د خوښې مطابق کچه تقسيمول غواړي. نو کولې شي. ② دغه وخت چې د کچه فصل کوم قيمت وي. د زمکې مالك زميدار ته د هغه د برخې (حصې) قيمت ورکړي. او واړه فصل دې پخپله ساتي. ③ د زمکې مالك دې په فصل باندې د خپل اړخه خرج اوکړي. او د



خرچې کومه برخه چې د زميدار په برخه کې راځي. هغه دې د پيداوار نه وصول کړي. او پاته دې زميدار ته ورکړي.

دا معلومه شوې ده. چه کله عامل د کار نه منع شي. نو بيا به هغه باندې زبردستي نشي کولې. ځکه چې کوم خاني موږ عقد پاته پاتې کيدل اختيار کړي دي. هغه د زميدار د رعايت لپاره اختيار کړي دي. حالانکه د عقد ختمونکې شيان موجود دي. او کله چې زميدار پخپله خپل لحاظ نه ساتي. نو بل څوك څه کولې شي. بهرحال د زميدار حکم هم دا دې. کوم چې ذکر شو. او د زمکې مالك ته مذکوره درې اختياره دي. چه هغه کوم يو غواړي. خپل ضرر دې لرې کړي.

### د فصل په منځ کښې د زميدار مړ کيدو مسئله

وَلَوْ مَاتَ الْمُزَارِعُ بَعْدَ نَبَاتِ الزَّرْعِ او که د فصل راختلو نه روسته زميدار مړ شو. فَقَالَتْ وَرَثَتُهُ نو دهغه وارثانو اووئيل نَحْنُ نَعْمَلُ إِلَى أَنْ يُسْتَحْصَدَ الزَّرْعُ چې موږ به فصل کټ کيدو پورې کار کوو وَأَبَى رَبُّ الْأَرْضِ .. او د زمکې مالك انکار اوکړو. فَلَهُمْ ذَٰلِكَ نو وارثانو لپاره به د کار حق وي. لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ عَلَى رَبِّ الْأَرْضِ ځکه چې د زمکې د مالك هيڅ ضرر نشته (وَلَا أَجْرَ لَهُمْ بِمَا عَمِلُوا) او وارثانو لپاره به د هغوی د کار په وجه هيڅ اجرت نه وي. لِأَنَّا أَبْقَيْنَا الْعَقْدَ نَظَرًا لَهُمْ، فَإِنْ أَرَادُوا قَلْعَ الزَّرْعِ ځکه چې موږ عقد د هغوی د شفقت په لحاظ ساتلې دې. نو که وارثانو د فصل اوبنکلو اراده اوکړله. لَمْ يُجْبَرُوا عَلَى الْعَمَلِ لِمَا بَيَّنَّا نو په کار به نشي مجبوره کولې. د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې. وَالْمَالِكُ عَلَى الْخِيَارَاتِ الثَّلَاثِ او مالك ته به درې اختيارونه وي. لِمَا بَيَّنَّا. د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې.

حل اللغة: ① قلع: د زمکې نه راوبنکل ② الزرع: فصل ③ الخيارات: جمع د خيار، اختيار

تشريح:- فصل زرغون شو. او زميدار وفات شو. اوس د زميدار وارثانو اووئيل. چه موږ به کار کوو. نو هغوی ته به د کار حق وي. او د زمکې مالك ته به د منع کاوه حق نه وي. ځکه چې دې کې د زمکې دمالك هيڅ نقصان نشته. البته که هغوی اووائي. چه موږ ته به زموږ د کار مزدوري راکوي. نو دوی ته به هيڅ مزدوري نه ورکولې کيږي. بلکه ددوی مزدوري هغه ده. کومه چې د پيداوار نه هغوی ته ملاو شي. که وارثان دا وائي. چه فصل کچه کټ کړې شي. نو اوس هم هغه حکم دې. کوم چې وړاندې ذکر شو. کله چې د زميدار هم دا مطالبه وي. يعنې د زمکې مالك ته به مذکوره درې اختياره ملاويږي. چه ددې دليلونه ذکر شوي دي.

### د کټ کولو، درمن ته د راوړلو، د ترېشر کولو وغيره د اجرت مسئله

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. (وَكَذَٰلِكَ أُجْرَةُ الْحَصَادِ وَالرِّفَاعِ وَالدِّيَاسِ وَالتَّذْرِيَةِ عَلَيْهِمَا بِالْحِصَصِ) او هم دغه ډول د کټ کولو، او درمن ته د راوړلو، او د غوبل کاوه او بادولو اجرت به په دوی دواړو باندې د برخو په اندازه وي. فَإِنْ شَرَطَاهُ فِي الْمُزَارَعَةِ عَلَى الْعَامِلِ فَسَدَتْ نو که ددې ټولو څيزونو شرط په مزارعت کې دوی دواړو په عامل باندې اوکړو. نو مزارعت فاسد دې. وَهَٰذَا الْحُكْمُ لَيْسَ بِمُخْتَصٍّ بِمَا ذُكِرَ مِنَ الصُّورَةِ او دا حکم هغه صورت لپاره مخصوص نه دې. کوم صورت چې ذکر شو. وَهُوَ انْقِضَاءُ الْمُدَّةِ وَالزَّرْعُ لَمْ يُدْرِكْ او هغه د مودې ختميدل دی. او فصل پوخ شوې نه وي. بَلْ هُوَ عَامٌّ فِي جَمِيعِ الْمُزَارَعَاتِ ابلکه دا په ټولو مزارعتونو عام دې. وَوَجْهُ ذَٰلِكَ أَنَّ الْعَقْدَ يَتَنَاهَى بِتَنَاهِي الزَّرْعِ لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ او ددې وجه دا ده. چه په فصل پخيدو سره عقد ختميږي. د مقصود حاصليدو په وجه. فَيَبْقَى مَالٌ مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا نو ددوی دواړو په مينځ کې مشترك مال پاته پاتې شو وَلَا عَقْدَ او هيڅ عقد نشته. فَيَجِبُ مُؤْنَتُهُ عَلَيْهِمَا . نو ددې عقد به په دوی دواړو باندې وي.

حل اللغة: ① الحصاد: پرې کول ② الرفاع: درمن ته اوړل ③ الدياس: غوبل کول ④ التذرية: باد ورکول ⑤ انقضاء: پوره کيدل ⑥ يتناهي: پوره کيږي ⑦ مونة: مشقت

**تشريح:-** كله چې فصل پوخ شو.او تيار شو.نو د مزارعت مقصود پوره شو.نو مزارعت ختم شو.او هركله چې مزارعت ختم شو.نو بيا كار او خرچه په دواړو باندې وي.نو د فصل كټ كاوه اجرت به د دواړو په ذمه وي.او بيا دا درمن ته راوړل به هم د دواړو كار وي.كه پخپله ئې راوړي.اوكه په مزدورانو ئې راوړي.او بيا د غوبل كاوه اجرت به هم د دواړو په ذمه وي.نن سهار خو د غوبل كاوه رواج ختم شو.بلكه مشين سره كټ كولې شي. (لكه تريشر) چې په دې كې بوسه جلا اوځي.او غله صفا جلا اوځي.بهرحال كه غله صفا نه وي.او ددې د بادولو اړتيا راپيښ شي.نو دا به هم ددوی دواړو په ذمه وي.او كه په عقد كې دا شرط اولګولې شي.چه پرې كول وغيره واړه كار د عامل په ذمه وي.نو دا شرط عقد مزارعت فاسدونكې دې.

**په عقد كښې د عقد د مقتضاء خلاف شرط لګولو حكم**

**وَإِذَا شَرَطَا فِي الْعَقْدِ ذَٰلِكَ وَلَا يَقْتَضِيهِ** اوكله چې عقد كې دا مشروط وي.حالانكه عقد ددې تقاضه نه كوي. **لِأَحَدِهِمَا يَفْسُدُ الْعَقْدُ** او په دې كې دوی دواړو كې يو لپاره منفعت دې.نو دا شرط به عقد فاسدوي. **وَفِيهِ مَنْفَعَةُ الْحَمْلِ أَوِ الطَّحْنِ عَلَى الْعَامِلِ** لكه د بارولو او راوړلو شرط، يا د اوړه كاوه شرط عامل باندې، **وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَجُوزُ** او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.چه دا جائز دی. **إِذَا شَرَطَ ذَٰلِكَ عَلَى الْعَامِلِ لِلتَّعَامُلِ اعْتِبَارًا بِالْاِسْتِصْنَاعِ** كله چې عامل باندې ددې شرط اولګولې شي.د تعامل (رواج) په وجه، په استصناع باندې قياس كاوه سره، **.وَهُوَ اخْتِيَارُ مَشَايِخِ بَلْخٍ** او هم دا د بلخ د مشائخو مختار (قول) دې **قَالَ شَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرْخَسِيُّ** شمس الائمه سرخسي رحمه الله فرمائي.: **هَٰذَا هُوَ الْأَصَحُّ فِي دِيَارِنَا**.چه زموږ په علاقو كې هم دا زياته صحيح ده.

**حل اللغة:** ① **حمل:** بار، پيټي ② **الطحن:** د غنمو يا جوارو نه اوړه جوړول ③ **استصناع:** د يو شي جوړول ، هنر

**تشريح:-** كله چې عقد كې داسې شرط اوكړې شي.كوم چې د عقد د تقاضې خلاف وي.او په دې كې عاقدينو كې د يوكس فائده وي.نو داسې شرط مفسد د عقد وي.نوكه دلته دا شرط اوكړې شو.چه مذكوره عامل به واړه كار كوي. (كټ كول، او بارول، راوړل وغيره) نو مزارعت به فاسد وي.لكه دا شرط لګول چې غله به عامل باروی.او د دوهم (شريكوال) خائې ته به ئې راوړي.يا به دا اوړه كوي.او د زمكې مالك ته به ئې حواله كوي.يعنى دا شرط هم د عقد مزارعت مفسد دې.دا كوم چې ذكر شو.ظاهرالروايت دې.

ⓐ علامه شامي په حواله د خانيه فرمائيلي دی.چه دا هغه وخت دې.كله چې عامل باندې ددې شرط لګولې شوې وي.كنې (كله چې شرط نه وي نو) بيا به ذكر شوی امور دواړو باندې لازم وي.او نصر بن يحى او محمد بن مسلم رحمه الله فرمائي.چه شرط وي اوكه نه وي.بهرحال دا واړه كارونه به د عامل په ذمه وي.د عرف (او رواج) په وجه، امام سرخسي رحمه الله دا هم صحيح ګرځولې دې.

ⓑ حضرت امام ابويوسف رحمه الله د عام رواج په وجه استصناع (سائى او ايډوانس وركول او جوړولو) باندې قياس كاوه سره دا جائز ګرځولې دې.او مشائخو د بلخ هم دا اختيار كړې دې.او شمس الائمه سرخسي رحمه الله هم دا زيات صحيح ګرځولې دې.او د امام ابويوسف رحمه الله په قول باندې فتوى ده.اوګورئ ﴿مجمع الانهر ص:٤٨٢ج٢ ،سكب الانهر ص٤٢٧ج٢ ،شامى ص:١٧٩ج٥﴾

**د ذكر شوو مسئلو خلاصه**

**فَالْحَاصِلُ أَنَّ مَا كَانَ مِنْ عَمَلٍ قَبْلَ الْإِدْرَاكِ** نو حاصل دا دې.چه كوم كار د فصل پخيدو نه وړاندې وي. **كَالسَّقْيِ وَالْحِفْظِ فَهُوَ عَلَى الْعَامِلِ** لكه اوبه كول، او ساتنه كول، دا خو د عامل په ذمه دې. **،وَمَا كَانَ مِنْهُ بَعْدَ الْإِدْرَاكِ قَبْلَ الْقِسْمَةِ** او كوم كار چې د پخيدو نه روسته وي.د ويش نه وړاندې، **فَهُوَ عَلَيْهِمَا فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ** هغه په ظاهرالرواية كې په دواړو باندې دی **كَالْحَصَادِ وَالدِّيَاسِ وَأَشْبَاهِهِمَا عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ** .لكه كټ كول، او غوبل كول، او ددې پشان، د هغه تفصيل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې. **،وَمَا كَانَ بَعْدَ الْقِسْمَةِ فَهُوَ عَلَيْهِمَا** او كوم كار چې د ويش نه روستو وي.هغه په دوی دواړو باندې دې. **وَالْمُعَامَلَةُ عَلَى قِيَاسِ هَٰذَا مَا كَانَ قَبْلَ إِدْرَاكِ الثَّمَرِ**



**مِنَ السَّقْيِ** او مساقات هم په دې قياس باندې دې.كوم كار چې د ميوو پخيدو نه وړاندې وي.يعنى اوبه كول، **وَالتَّلْقِيحِ وَالتَّلْقِيحِ وَالْحِفْظِ فَهُوَ عَلَى الْعَامِلِ** او په ماده بوټو باندې د نر بوټو غوټۍ لګول (قلمى كول)، او ساتنه كول، هغه عامل باندې دی. **،وَمَا كَانَ بَعْدَ الْإِدْرَاكِ كَالْجِدَادِ وَالْحِفْظِ فَهُوَ عَلَيْهِمَا** او كوم كار چې د پخيدو نه روستو وي.لكه ميوې شوكول، او ساتنه كول، هغه په دوی دواړو باندې دې. **،وَلَوْ شَرَطَ الْجِدَادَ عَلَى الْعَامِلِ لَا يَجُوزُ بِالْإِتِّفَاقِ** اوكه د شو كاوه شرط عامل باندې لګولې شوې وي.نو دا بالاتفاق جائز نه دې. **لِأَنَّهُ لَا عُرْفَ فِيهِ ،وَمَا كَانَ بَعْدَ الْقِسْمَةِ فَهُوَ عَلَيْهِمَا** او كوم كار چې د ويش نه روسته وي.هغه په دوی دواړو باندې دې. **لِأَنَّهُ مَالٌ مُشْتَرَكٌ وَلَا عَقْدَ** خكه چې دا مشترك مال دې.او هيڅ عقد نشته. **،وَلَوْ شَرَطَ الْحَصَادَ فِي الزَّرْعِ عَلَى رَبِّ الْأَرْضِ** او كه په فصل كې د كټ كاوه شرط د زمكې په مالك لګولې شوې وي **لَا يَجُوزُ بِالْإِجْمَاعِ** نو دا بالاجماع جائز نه دې **لِعَدَمِ الْعُرْفِ فِيهِ**.په دې كې د عرف (او رواج) نه كيدو په وجه.

**حل اللغة:** ① **تلقيح:** قلمى كول يعنى د نر كجورې غوټۍ په ماده كجوره كې لګول ② **ادراک:** پخيدل ③ **التلقيح:** قلم لګول يعنى چې د نربوټى تيغه د ښځې بوټى په تيغه كې اولګوی ④ **الجداد:** ميوه شوكول ⑤ **الحصاد:** پرې كول

**تشريح:-** كومې مسئلې چې وړاندې ذكر شوی دی.دلته مرغيناني رحمه الله د هغې حاصل او لنډيز بيانوي.چه مزارعت وي.اوكه مساقات وي (يعنى باغونه په ساتنه او ساتنه باندې وركول) ددې دواړو مشترك حكم دا دې.چه په فصل او ميوو كې به د پخيدو نه مخكې كار د عامل په ذمه وي.او د پخيدو نه روستو او د ويش نه روسته كار به په ظاهرالرواية كې د دواړو په ذمه وي.

① فائده: كه د كټ كاوه شرط د عامل په ذمه وي.نو د مفتى به قول په اعتبار سره دا مزارعت جائز دې.خوكه په مساقات كې د ميوو شو كاوه شرط عامل باندې لګولې شوې وي.نو چونكه په دې كې عرف او عام عادت نشته.نو دا شرط به بالاتفاق جائز نه وي.

② فائده: كه په مزارعت كې د كټ كاوه شرط د زمكې په مالك باندې لګولې شوې وي.نو بالاجماع جائز نه دې.خكه چې ددې رواج نشته.

ⓐ كه څوك دا سوال اوكړي چې مرغيناني رحمه الله د ويش نه روسته مال ته مشترك مال وئيلى دی.حالانكه اشتراك نشته؟نوځواب دا دې چې په اعتبار د ماكان عليه (او مجموعې) ئې دې ته مشترك وئيلى دی.چه دا د مجاز مرسل په ځليريشتو علاقو كې يوه علاقه ده.د ويش نه روسته هم ټوله مجموعه ددوی دواړو ده.لكه په يوه مځكه كې د يو څو سړو جلا جلا معين برخې (حصې) وي.بيا هم هغوی ته دا وئيلې شي.چه دوی واړه په دې مځكه كې شريك دی.

**د كچه فصل كټ كولو او د ميوو شوكولو كار به د چا په ذمه وي؟**

**وَلَوْ أَرَادَا فَصْلَ الْقَصِيلِ** اوكه دوی دواړو اراده اوكړله.د كچه فصل كټ كولو، **أَوْ جَدَّ التَّمْرِ بُسْرًا** يا د كچه (نيم پخته) كجورو شوكولو، **أَوِ الْتِقَاطَ الرُّطَبِ** يا د پخو كجورو راټولولو **فَذَٰلِكَ عَلَيْهِمَا** ،نو دا كار به په دوی دواړو باندې وي. **لِأَنَّهُمَا أَنْهَيَا الْعَقْدَ لَمَّا عَزَمَا عَلَى الْفَصْلِ وَالْجِدَادِ بُسْرًا** خكه چې دوی دواړو عقد ختم كړو.كله چې دوی د كچه فصل كټ كاوه او د نيم پخته كجورو شو كاوه اراده اوكړله. **فَصَارَ** نو داسې شوه **كَمَا بَعْدَ الْإِدْرَاكِ**.لكه د پخولو نه پس.والله اعلم.

**حل اللغة:** ① **قصل:** كچه فصل ② **بسر:** كچه، نيم پخته ③ **الادراک:** پخيدل

**تشريح:-** د فصل او ميوو پخيدو نه روستو كار د دواړو په ذمه وي.، كما مر، ، خو كه دوی د پخيدو نه مخكې فصل پرې كول اوغوښتل.يا ئې كچه ميوې شوكول اوغوښتل.نو اوس به كار څوك كوي؟ نو وې فرمائيل.چه كوم حكم د پخيدو نه روستو وي.هم هغه حكم به دلته كې هم وي.يعنى دا كارونه (شوكول ،

پرې كول وغيره) به د دواړو په ذمه وي.ځكه چې كله دوی دا اراده اوكړله.نو ګويا عقد مزارعت او مساقات ختم شو.لكه څنګه چې د پخيدو نه روستو ختميږي.او د عقد ختميدو نه روستو كار د دواړو په ذمه وي.نو دلته به هم د دواړو په ذمه وي.

# كتاب المساقاة

ژباړه:- (دا) كتاب د مساقات (په بيان كي) دي.

تشريح:- ونې په ساتنه (او ساتنه) ور كاوه ته مساقات وائي.مثلاً باغ ئې اولګولو.او يوكس ته ئې حواله كړو.چه ته ددې ساتنه كوه.او ددې اوبه خور كوه.بيا كله چې دا ميوې اوكړي.نو موږ دواړه به په دې كي شريك يو.يا باغ د مخكي نه موجود دې.د فصل راتلو پورې ئې دا په ساتنه باندې وركړو.دې مساقات ته معاملت هم وائي.د مزارعت او مساقات په منځ كي مناسبت ښكاره دې.بيا د مساقات د جواز قائل ډير عالمان دي.او د حديث نه هم ددې ثبوت شته.ددې باوجود مزارعت په دې وجه مخكي كړې شوې دې.چه ددې حاجت زيات دې.او په دې كي احكام فرعيه زيات دي.

**په مساقات كښې د امام ابوحنيفه رحمه الله نقطه نظر**

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ الْمُسَاقَاةُ بِجُزْءٍ مِنَ الثَّمَرِ بَاطِلَةٌ امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل.د ميوو په جزء (شائع) سره مساقات باطل دي. وَقَالَا جَائِزَةٌ إِذَا ذَكَرَ مُدَّةً مَعْلُومَةً او صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه كله معلومه موده ذكركړې شي. وَسَمَّى جُزْءًا مِنَ الثَّمَرِ مُشَاعًا (١)او د ميوو يو جزء په طريقه د شيوع (شريكوالی) معين كړې شي.(نو جائز دې.) وَالْمُسَاقَاةُ: هِيَ الْمُعَامَلَةُ او مساقات په ونو كي معامله كول دي وَالْكَلَامُ فِيهَا كَالْكَلَامِ فِي الْمُزَارَعَةِ او په مساقات كي كلام په مزارعت كي د كلام پشان دې.

حل اللغة: (١) مشاع: خورووَر ناقابل تقسيم.

تشريح:- د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز كه مساقات كي د ميوو جزء شائع هم معين كړې شي.بيا هم باطل دې.يعنی امام ابوحنيفه رحمه الله مساقات باطل ګرځوي.او صاحبين رحمهما الله دا جائز ګرځوي.او هم دا مفتی به قول دې.خو د صاحبينو رحمهما الله په نيز ددې په جواز كي بعضې شرطونه دي.شرطونه هم هغه دي.كوم چې مزارعت كي ذكر شوی دي.البته مساقات په څلورو څيزونو كي د مزارعت نه جلا دې(١) په مزارعت كي بعضو صورتونو كي د كار كاوه نه د منع كيدو په وجه زبردستی نشی كولې.او په مساقات كي منع كيدونكی باندې زبردستی كولې شی.(٢) كه په مساقات كي موده ختمه شی.نو د اجرت نه بغير به ميوې په ونو باندې ساتلې شی.او عامل به كار كوي.او ده به د كار جلا څه اجرت نه ملاويږي.په خلاف د مزارعت.(٣) كه په مساقات كي باغ دچا مستحق ثابت شی.نو عامل ته به اجرت مثليه وركولې شی.او په مزارعت كي به د فصل قيمت وركولې شی.(٤) مساقات كي استحساناً موده بيانول شرط نه دي.(درمختار)

علامه شامی رحمه الله فرمائي.ددې وجه دا ده.چه د ميوو پخيدو معلوم وخت دې.په خلاف د كروندې، البته كه د فصل وخت هم معلوم وي.نو هغه هم د مودې بيانولو نه بغير جائز دې.او فتوی هم په دې باندې ده.معلومه شوه.چه په دې اعتبار سره مزارعت او مساقات كي هيڅ توپير نشته.﴿شامی ص:١٨٢ج٥﴾

**په مساقات كښې د امام شافعي رحمه الله نقطه نظر او دليل**

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: الْمُعَامَلَةُ جَائِزَةٌ،او امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه مساقات جائز دي. وَلَا تَجُوزُ الْمُزَارَعَةُ او

(١) القول الراجح هوهذا قول الصاحبين . رحمهما الله كذافی مجمع الأنهر (١٤٨\١٤) والهندية (٢٧٨\٥) نقلاً عن القول الراجح (٢٨٦\٢)-



مزارعت جائز نه دې. إِلَّا تَبَعًا لِلْمُعَامَلَةِ خو د مساقات تابع كاوه سره.

تشريح:- دا پوره عبارت د امام شافعي رحمه الله د مسلك او دليل بيانولو لپاره دې.هغوی فرمائي.چه مزارعت جائز نه دې.او مساقات جائز دې.البته كه مزارعت د مساقات تابع شی.نو د تابع كيدو په وجه مزارعت هم جائز دې.مثلاً يو باغ دې.چه ددې په دوو برخو كي ونې دي.او په يوه برخه كي خالي مځكه پرته ده.نو عامل ته د باغ سره دغه مځكه هم وركړي.چه په دې كي فصل كره.نو جائز ده.ګنی مستقل مزارعت جائز نه دې.

قَالَ لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي هَذَا الْمُضَارَبَةُ ځكه چې اصل په دې كي مضاربت دې دې وَالْمُعَامَلَةُ أَشْبَهُ بِهَا .او مساقات ددې زيات مشابه دې. لِأَنَّ فِيهِ شَرِكَةً فِي الزِّيَادَةِ ځكه چې مساقات كي په زياتوالی كي شركت دُونَ الْأَصْلِ.په اصل كي نه دې

تشريح:- اوس امام شافعي رحمه الله دليل بيانوي.چه مضاربت بالاتفاق جائز دې.اوس په دې دواړو كي چې مضاربت سره د كوم مشابهت زيات وي.هغه به جائز وي.او كله چې موږ غور اوكړو.نو معلومه شوه.چه مضاربت سره د مساقات زيات مشابهت دې.ولې؟ ځكه چې مضاربت كي راس المال كي د مضارب هيڅ څوك شريك نه وي.بلكه نفع وي.او هم دا حال په مساقات كي دې.چه د عامل هيڅ شركت په راس المال يعنی كي نه وي.بلكه په ميوو كي شركت وي.او مزارعت ددې په عكس دې.چه هلته تخم كي شركت وي.تردې كه د تخم والا دا شرط اولګوی.چه زه به مخكي د تخم په مقدار د پيداوار نه اخلم.نو مزارعت فاسديږي.نو ثابته شوه.چه مضاربت سره د مساقات زيات جوړ دې.نو موږ مساقات ته جائز اووئيل.او مزارعت ته ناجائز.

وَفِي الْمُزَارَعَةِ لَوْ شَرَطَا الشَّرِكَةَ فِي الرِّبْحِ دُونَ الْبَذْرِ او په مزارعت كي كه په نفع كي د شركت شرط اوكړې شی.په تخم كي اونكړې شی بِأَنْ شَرَطَا رَفْعَهُ مِنْ رَأْسِ الْخَارِجِ تَفْسُدُ.په دې طريقه چې د پيداوار د سر (او مجموعې) نه د تخم اخستلو شرط اوكړې شی.نو عقد مزارعت فاسديږي فَجَعَلْنَا الْمُعَامَلَةَ أَصْلًا نو موږ مساقات اصل اوګرځولو. وَجَوَّزْنَا الْمُزَارَعَةَ تَبَعًا لَهَا كَالشِّرْبِ فِي بَيْعِ الْأَرْضِ او مزارعت مو د مساقات تابع جوړ كړو.او جائز مو اوګرځولو.لكه د زمكې په بيع كي اوبه خور، وَالْمَنْقُولِ فِي وَقْفِ الْعَقَارِ او د زمكې په وقف كي د منقول (وقف جائز دې).

تشريح:- البته د تابع كاوه په طريقه مزارعت جائز دې.او د استقلال او تابع كاوه په اعتبار سره ډير وختونه احكامو كي تفاوت وي.لكه د اوبه خور بيع مستقله جائز نه ده.خود زمكې تابع كاوه سره (د اوبه خور بيع) جائز ده.دغه ډول د منقول وقف مستقل جائز نه ده.خو د زمكې تابع كاوه سره جائز ده.لكه چې غسل خانه ئې وقف كړله.نو ددې سره ددې د لوټو وغيره وقف هم جائز دې.

وَشَرْطُ الْمُدَّةِ قِيَاسٌ فِيهَا او په مساقات كي د مودې شرط قياس دې. لِأَنَّهَا إِجَارَةٌ مَعْنًى ځكه چې مساقات معنی اجاره ده. فِي الْمُزَارَعَةِ. لكه په مزارعت كي، وَفِي الِاسْتِحْسَانِ: إِذَا لَمْ يُبَيِّنِ الْمُدَّةَ يَجُوزُ او په استحسان كي كله چې موده بيان نكړې شی.نو مساقات جائز دې وَيَقَعُ عَلَى أَوَّلِ ثَمَرٍ يَخْرُجُ.او دا عقد به په دې مخكنو ميوو باندې واقع كيږي.كومې چې پيدا شی. لِأَنَّ الثَّمَرَ لِإِدْرَاكِهَا وَقْتٌ ځكه چې ميوې ددې د پخيدو يو معلوم وخت دې. وَقَلَّمَا يَتَفَاوَتُ او تفاوت كم وي وَيَدْخُلُ فِيمَا مَا هُوَ الْمُتَيَقَّنُ.او په مساقات كي به هغه ميوې داخل وي.كومې چې يقيني وي.

حل اللغة: (١) الادراک: پخيدل،(٢) المتيقن: يقيني(٣) ثمر: ميوه

تشريح:- مرغينانی رحمه الله فرمائي.د قياس قاضه دا وه.چه په مساقات كي هم موده بيانول ضروري شی.لكه څنګه چې مزارعت كي شرط دې.ځكه لكه څنګه چې مزارعت ابتداء كي اجاره ده.دغه ډول مساقات هم ابتداء كي اجاره ده.خو په مساقات كي د استحسان په وجه قياس پريښودې شوې دې.او د مودې بيانولو نه بغير مساقات جائز اوګرځولې شو.ځكه چې د ميوو پخيدو وخت معلوم او مشهور دې.په خلاف د فصل، او

کله چې موده بیان نکړې شي.نو عقد به په مخکنو میوو باندې واقع کیږي.خکه چې مخکنۍ میوې یقیني دي. ﴿وبینا القول المفتی به في الزراعة﴾

## مساقات لپاره موده شرط ده او که نه؟

وَإِدْرَاكُ الْبَذْرِ فِي أُصُولِ الرَّطْبَةِ فِي هَذَا بِمَنْزِلَةِ إِدْرَاكِ الثِّمَارِ او د ګندنې په جرړو کې د تخم پخیدل، د میوو پخیدو په درجه کې دی. لِأَنَّ لَهُ نِهَايَةً مَعْلُومَةً خکه چې ددې لپاره انتهاء معلومه ده فَلَا يُشْتَرَطُ بَيَانُ الْمُدَّةِ نو د مودې بیان شرط نه دې. بِخِلَافِ الزَّرْعِ لِأَنَّ ابْتِدَاءَهُ يَخْتَلِفُ كَثِيرًا په خلاف د فصل، خکه چې ددې ابتداء ډیره مختلف کیږي. خَرِيفًا وَصَيْفًا وَرَبِيعًا، وَالِانْتِهَاءُ بِنَاءٌ عَلَيْهِ فَتَدْخُلُهُ الْجَهَالَةُ د خزان او ګرمۍ او بهار (سپرلی) په اعتبار سره.او انتهاء په ابتداء باندې مبنی ده.نو په فصل کې به جهالت داخلیږي.

**حل اللغة**: ① **خريف**: د خزان موسم، یعنی کله چې د ونو نه پاڼې غورځیږي.چه دا د ګرمۍ او یخنۍ په منځ کې موسم وی. ② **صيف**: د ګرمۍ موسم، **ربيع**: د بهار (سپرلی) موسم، ③ **بذر**: تخم ④ **الوطبة**: ګندنه

**تشریح**:- د، رطب، ژباړه دلته ګندنې سره شوې ده.چه دا یوه ګیا ده.خو په ﴿سکب الانهر ص: ۴۲۹ ج ۲﴾ کې دی.(و فی الرطبی، و هی بلغی، مصر البرسیم) یعنی، ، رطبه، ،هغه دې.کوم ته چې موږ برسیم وایو.(او په پښتو کې ورته ګندنه ونیلې شي... از مترجم).او دا هغه ګیا ده.چه د یخنۍ په موسم کې وی.او د بوسو یا اګوې (یوډول دخوراك شئ دې) سره یو ځائې خوړلې شي.چه دا د اوګې مشابه دی.دا دواړه کټ کولې شي.او د ګرمۍ پیل کیدو پورې دا بار بار کټ کولې شي.او زمیدار آخری ریبل د تخم لپاره پریږدی.چه دا زموږ په فصلونو کې عام کولې شي.

❁ اوس واورئ چې مرغینانی رحمه الله څه فرمائی.د ګندنې یا اوګې چې کله آخری لو (کټ کول) پاتې شو.نو د زمکې مالك یو زمیدار ته اوونیل.چه ته ددې ګندنې او اوګې ساتنه کوه.تردې چې تخم راشی.او کوم تخم چې اوشی.هغه به زما او ستا په منځ کې مشترك وی.نو د مودې بیانولو نه بغیر دا عقد جائز دې. خکه چې لکه څنګه د میوو پخیدو وخت معلوم دې.دغه ډول د ګندنې او اوګې د تخم وخت معلوم دې.په دې وجه به موده بیانول شرط نه وی.او د فصل مسئله ددې خلاف دې.خکه چې فصل کې په پیل کې زیات اختلاف وی.او کله چې پیل کې اختلاف وی.نو په انتهاء کې به ضرور اختلاف وی.نو دلته موده مجهول ده.په دې وجه فصل کې موده بیانول شرط دی.

**فائده**: وړاندې بیان شوی دی.چه زموږ په کلو کې د فصل ابتداء او انتهاء معلوم ده.نو د مودې بیانولو نه بغیر به د مزارعت د جواز فتوی ورکول جائز وی.

## ونه د مودې بیانولو نه بغیر په حفاظت باندې ورکول

هُوَ بِخِلَافِ مَا إِذَا دَفَعَ إِلَيْهِ غَرْسًا قَدْ عَلِقَ او په خلاف ددې صورت کله ئې چې عامل ته یوه ونه ورکړې وی.چه دا مضبوطه شوه. وَلَمْ يَبْلُغِ الثَّمَرَ مُعَامَلَةً بَاشَدٍ حَيْثُ لَا يَجُوزُ او د میوو ور کاوه حد ته او نه رسیدله.په معامله باندې ورکول په دې حیثیت سره جائز نه دی. إِلَّا بِبَيَانِ الْمُدَّةِ خو د مودې بیانولو سره. لِأَنَّهُ يَتَفَاوَتُ بِقُوَّةِ الْأَرَاضِي وَضَعْفِهَا تَفَاوُتًا فَاحِشًا خکه چې دا متفاوت وی.فاحش تفاوت سره، د زمکو د توان او کمزورۍ په اعتبار سره.

**حل اللغة**: ① **غرس**: د کر وونه ② **الاراضی**: جمع دارض، مځکه ③ **المدة**: موده

**تشریح**:- یو سړی یوه ونه اولګوله.او دا ئې بل چا ته حواله کړله.چه هغه ددې ساتنه او خدمت اوکړی.او د دې نه چې کومې میوې اوشی.هغه به د دواړو په منځ کې نیم په نیمه وی.نو دا عقد فاسد دې.خکه چې بعضې مځکه طاقتوره وی.که په دې کې دا ونه لګولې شوې وه.نو په دوو کالو کې به ئې میوه ورکړې وه.او بعضې کمزورې وی.چه په دې مځکه کې کرلو سره به اووه کالو کې میوې راځی.نو د مودې بیانولو نه بغیر په دې کې ډیر زیات جهالت دې.په دې وجه به د مودې بیانولو نه بغیر دا عقد فاسد وی



## دکجورې ونه یا ګندنه د مودې بیانولو نه بغیر حفاظت باندې د ورکولو حکم

وَبِخِلَافِ مَا إِذَا دَفَعَ نَخِيلًا او په خلاف ددې کله ئې چې ورکړله دکجورو ونه أَوْ أُصُولَ رَطْبَةٍ یا د ګندنې جرړې په دې شرط، عَلَى أَنْ يَقُومَ عَلَيْهَا چې هغه ددې ساتنه اوکړي. أَوْ أَطْلَقَ فِي الرَّطْبَةِ یا ئې ګندنې کې مطلق اوونیل تَفْسُدُ الْمُعَامَلَةُ نو معامله به فاسد وی لِأَنَّهُ لَيْسَ لِذَلِكَ نِهَايَةٌ مَعْلُومَةٌ خکه چې ددې لپاره معلومه انتهاء نشته لِأَنَّهَا تَنْمُو مَا تُرِكَتْ فِي الْأَرْضِ .خکه چې دا (ګندنا) غټیږي.تر کومه پورې چې په مځکه کې پریښودې شی فَجُهِلَتِ الْمُدَّةُ نو موده به مجهوله وی

**حل اللغة**: ① **تنمو**: غټیږي ② **نخل**: قجوره

**تشریح**:- په ړومبۍ مسئله کې د ګندنې جرړې (چې ددې نه مراد آخری لو دې) ور کاوه ته د مودې بیانولو نه بغیر جائز ونیلی دی.او دې ته فاسد وائی.وجه د توپیر دا ده.چه مخکې ئې د تخم حاصلیدو پورې ورکړې وه. چې ددې وخت معلوم دې.او دلته مراد دا دې.چه تر هغه وخته پورې به ددې ساتنه کوی.چه ددې جرړې راختل ختم شی.بلکه جرړې ئې اوچې شي.نو د اوچیدو او راختلو موده معلومه نه ده.بلکه مځکه کې چې دا کوم وخته پورې وی.راختل به جاری وی.او اوچیدل به نه ثابتیږي.نو موده مجهول ده.په دې وحه د مودې بیانولو نه بغیر به دا معامله جائز نه وی.یا ئې دده سره د راختلو د ختمیدو او اوچیدو شرط اونه لګولو.بلکه مطلقاً ئې آخری لو پورې ورکړو.نو بیا هم دا حکم دې.چه عقد فاسد دې.او ړومبی صورت ته ئې جائز خکه ونیلی وو.چه هلته هغه د تخم پخیدو قید لګولې وو.چه ددې وخت معلوم دې.

❁ خو دا کوم دلیل چې بیان کړې شوې دې.صرف د ګندنې په جرړوکې جاری کیدای شی.د کجورې په ونه کې نه چلیږي.په دې وجه بعضو شارحینو ونیلی دی.چه مرغینانی رحمه الله د کجورې د ونې دلیل نه دې بیان کړې.لکه څنګه چې صاحب د عنایه رحمه الله فرمائیلی دی.

❁ مذکوره دلیل د دواړو کیدای شی.او مطلب به دا وی.چه د کجورو ونه ئې ورکړله.او وې ونیل. چې ددې ساتنه اوکړه.او دا عقد به زموږ او ستا په منځ کې هغه وخته پورې وی.ترکومه پورې چې دا کجوره اوچه نشی.نو دا عقد فاسد دې.خکه چې ددې موده مجهوله ده.البته که د کجورې په ونه کې ئې مطلق اوونیل.او د اوچیدو وغیره شرط ئې او نه لګولو.نو دا عقد به صحیح وی.او د مخکې پشان به په ړومبو میوو باندې دا عقد واقع کیږي.خو د ګندانې او اوګې د اطلاق په صورت کې به هم فساد وی.خکه چې دلته انتهاء معلومه نه ده.

❁ په ړومبی او دوهم صورت کې د توپیر مدار د انتهاء په علم او عدم علم باندې دې.هلته انتهاء معلومه ده.نو هغې ته ئې جائز اوونیل.او دلته انتهاء معلومه نه ده.په دې وجه ئې دې ته فاسد اوونیل.نوکه ده د کجورې ونه یا ګندنا عامل (ساتنه کونکی) ته حواله کړله.او هغه د ددې د جرړو اوچیدو پورې شرط اونه لګولو.او د میوو راتلو او د تخم راتلو وخت معلوم دې.نو دا عقد جائز دې.او که د تخم راتلو وخت معلوم نه وی.نو بیا به عقد فاسد وی.﴿شامی ص: ۱۸۳ ج ۵﴾ خو دوی په ړومبی لو (د کټ کاوه وخت) راتلو باندې عقد واقع کړې دې.اوګورئ: ﴿مجمع الانهر ص: ۴۸۶ ج ۲﴾

❁ علامه کاسانی رحمه الله فرمائی. ﴿ولو دفع أرضاً ليزرع فيها الرطاب أو دفع أرضاً فيها أصول رطبة ثابتة ولم يسم المدة فإن كان شيئاً ليس لابتداء نباته ولا لانتهاء جذه وقت معلوم، فالمعاملة فاسدة، وإن كان وقت جذه معلوماً يجوز، ويقع على الجذة الأولى كما في الشجرة التمرة﴾ ﴿بدائع ص: ۱۸۶ ج ۶﴾ دا عبارت بالکل ښکاره دې.چه د جواز او عدم جواز مدار د نهایت په علم او عدم علم باندې دې. لنډیز د کلام دا چې د مرغینانی رحمه الله کلام صفا نه دې.بلکه کلام کې ئې مشکلات دی.او د بدائع عبارت بالکل واضح دې.

## د شیوع په طریقه د یو جزء متعین کول شرط دی

قال **وَيُشْتَرَطُ تَسْمِيَةُ الْجُزْءِ مُشَاعًا** او د شیوع (شریکوالي) په طریقه د یو جزء مقررول شرط دی. **لِمَا بَيَّنَّا فِي الْمُزَارَعَةِ** هغه دلیل په وجه کوم چې موږ مزارعت کې بیان کړې دي **إِذْ شَرْطُ جُزْءٍ مُعَيَّنٍ يَقْطَعُ الشَّرِكَةَ** ځکه چې د معین جزء شرط شرکت ختم کړو

**تشریح:-** په مزارعت کې تیر شوی دی. چه پیداوار د شیوع په طریقه دواړو کې مشترك کیدل پکار دی. دلته هم دا شرط دې. ګنی که د یو لپاره دا شرط کړې شی. چه د میوو نه یو زنبیل (کونټل) به ده ته ملاویږي. او پاته به د دواړو په منځ کې مشترك وی. نو دا شرط فاسد دې. چه دا به عقد فاسدوی. ځکه چې شرکت ختم شوې دې.

## د داسې مودې بیانولو حکم چې هغې کښې میوې نه راځي

**فَإِنْ سَمَّيَا فِي الْمُعَامَلَةِ وَقْتًا** او که دوی دواړو مساقات کې داسې وخت مقرر کړو **يُعْلَمُ أَنَّهُ لَا يَخْرُجُ الثَّمَرُ فِيهَا** چې معلومه ده. چه په دې موده کې میوې نه راځي. **فَسَدَتِ الْمُعَامَلَةُ** نو معامله به فاسده وی. **لِفَوَاتِ الْمَقْصُودِ** د مقصود فوت کیدو په وجه، **وَهُوَ الشَّرِكَةُ فِي الْخَارِجِ** او دا په میوو کې شرکت دې.

**تشریح:-** د مساقات مقصود میوې دی. نو کله نې چې دومره موده مقرر کړله. چه په دې کې میوې نه راتګ یقینی دی. نو مقصود به نه حاصلیږي. نو عقد به فاسد وی.

## احتمالی مودې بیانولو سره د مساقات حکم

**وَلَوْ سَمَّيَا مُدَّةً** او که داسې موده نې مقرر کړله **قَدْ يَبْلُغُ الثَّمَرُ فِيهَا** چې په دې کې کله میوې راځي **وَقَدْ يَتَأَخَّرُ عَنْهَا جَازَتْ**.. او کله ددې مودې نه روستو کیږي. نو مساقات جائز دې. **لِأَنَّا لَا نَتَيَقَّنُ بِفَوَاتِ الْمَقْصُودِ** ځکه چې موږ د مقصود فوت کیدو یقین نه کوو.

**تشریح:-** که دومره موده نې بیان کړله. چه په دې موده کې کله میوې راځي. او کله نه راځي. نو چونکه د مقصود فوت کیدو یقین نشته. په دې وجه به اوس د عقد د فساد حکم نه جاری کیږي. بلکه ددې حکم دا دې. کوم چې راروان دې.

## په مقرره وخت یا د مقرر وخت نه روستو د میوو راتلو مسئله

**ثُمَّ لَوْ خَرَجَ فِي الْوَقْتِ الْمُسَمَّى** نو که په مقرر وخت کې میوې راوځي **فَهُوَ عَلَى الشَّرِكَةِ** نو میوې په شرکت (قائم) دی **لِصِحَّةِ الْعَقْدِ** د عقد صحیح کیدو په وجه **وَإِنْ تَأَخَّرَ** او که (په دې موده کې) د میوو راتګ روستو شی. **فَلِلْعَامِلِ أَجْرُ الْمِثْلِ** نو عامل لپاره اجرمثل دې. **لِفَسَادِ الْعَقْدِ** دعقد د فساد په وجه، **لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ الْخَطَأُ فِي الْمُدَّةِ الْمُسَمَّاةِ** ځکه چې مقرره موده کې خطاء ښکاره شوه **فَصَارَ كَمَا إِذَا عَلِمَ ذَلِكَ فِي الِابْتِدَاءِ** نو داسې شوه. لکه چې ددې (میوو نه راتګ) په ابتداء کې معلومه شی

**تشریح:-** کومه موده چې مقرر وه. که په دې کې میوې راغلې. نو عقد صحیح دې. او میوې به د شرط مطابق په دوی دواړو کې مشترك وی. او که میوې رانغلې. نو عقد فاسد شو. او اوس به عامل ته اجرت مثل ملاویږي. ځکه که د پیل نه دومره موده مقرر شوې وه. چه په دې کې میوې نه راتګ یقینی دی. نو هلته عقد فاسدیږي. نو هرکله چې په مقرره موده کې میوې رانغلې. نو داهم داسې شوه. چه دومره موده نې مقرر کړې ده. چه په دې کې میوې نه راځي. نودا هم فاسد شو.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَخْرُجْ أَصْلًا** په خلاف ددې صورت کله چې میوې بالکل راونځي **لِأَنَّ الذَّهَابَ بِآفَةٍ** ځکه چې د میوو نه راتګ، د څه آفت په وجه دی **فَلَا يَتَبَيَّنُ فَسَادُ الْمُدَّةِ** نو د مودې فساد ښکاره نشو **فَيَبْقَى الْعَقْدُ صَحِيحًا** نو عقد پاتې شو. په داسې حال کې چې صحیح دې **وَلَا شَيْءَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ** او هیڅ شئ نشته په دوی کې



یوکس لپاره پخپل اندیوالان باندې.

**تشریح:-** البته که بالکل میوې رانشی. نو دا ددې خبرې علامت دې. چه موده صحیح ده. خو څه آفت راغلې دې. چه ددې په وجه میوې رانغلې. نو دلته به عقد صحیح وی. او هرکله چې عقد صحیح دې. نو عامل ته به څه اجر هم نه ملاویږي.

## په کجورو، ونو، انګورو او سبزیانو کښې د مساقات حکم

قال امام قدوری رحمه الله او فرمائیل **وَتَجُوزُ الْمُسَاقَاةُ فِي النَّخْلِ وَالشَّجَرِ** او مساقات جائز دې په کجورو او نورو ونو کې، **وَالْكَرْمِ وَالرِّطَابِ وَأُصُولِ الْبَاذِنْجَانِ** او په انګورو او سبزیانو کې او د باټنګړو په ونو کې

**حل اللغة:** ① النخل: قجوره ② الشجر: وونه ③ الكرم: انګور ④ الرطاب: سبزیاني ⑤ الباذنجان: باټنګړ

**تشریح:-** په باغونو کې که دکجورو وونې وی. یا د بل څه شئ وی. یا د انګورو وی. یا د سبزیانو او باټنګړو وغیره وی. په دې (ټولو) کې مساقات جائز دې.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** او امام شافعی رحمه الله په قول جدید کې فرمایي **فِي الْجَدِيدِ لَا تَجُوزُ إِلَّا فِي الْكَرْمِ وَالنَّخْلِ** چې جائز نه دې مګر په کجورو کې **لِأَنَّ جَوَازَهَا بِالْأَثَرِ** ځکه چې د مساقات جواز په حدیث سره دې **وَقَدْ خَصَّهُمَا** حالانکه حدیث دا دواړه (کجورې او انګور) خاص کړی دی **وَهُوَ حَدِيثُ خَيْبَرَ** او هغه د خیبر حدیث دې

**تشریح:-** د امام شافعی رحمه الله جدید قول دا دې. چه مساقات صرف په انګورو او کجورو کې جائز دې. ځکه چې د مساقات جواز په حدیث سره ثابت دې. او هغه د خیبر حدیث دې. او حدیث مساقات په انګورو او کجورو کې خاص کړې دی. نو په نورو څیزونو کې به مساقات جائز نه وی.

**وَلَنَا أَنَّ الْجَوَازَ لِلْحَاجَةِ** او زموږ دلیل دا دې. چه جواز د حاجت په وجه دې **وَقَدْ عَمَّتْ** او حاجت عام دې. **وَأَثَرُ خَيْبَرَ لَا يَخُصُّهُمَا** او د خیبر حدیث دا دواړه نه خاص کوی **لِأَنَّ أَهْلَهَا كَانُوا يَعْمَلُونَ فِي الْأَشْجَارِ وَالرِّطَابِ أَيْضًا** ځکه چې د خیبر خلګو به په ونو او سبزیانو کې معامله کوله. **كَانَ كَمَا زَعَمَ** او که خبره داسې وی. لکه څنګه چې امام شافعی رحمه الله ګمان کړې دې **فَالْأَصْلُ فِي النُّصُوصِ أَنْ تَكُونَ مَعْلُولَةً عَلَى أَصْلِهِ** نو اصل په نصوصو کې دا دې. چه دا معلوم (بالعلت) وی. خاص کر د امام شافعی رحمه الله په اصل باندې.

**تشریح:-** زموږ دلیل دا دې. چه د مساقات جواز د حاجت او اړتیا په وجه دې. او حاجت لکه څنګه چې په دې دواړو کې دې. په پاته ونو او سبزیانو کې هم دې. او د امام شافعی رحمه الله د خیبر حدیث په دې دواړو کې خاص کول د فکر مقام دې. ځکه چې هغوی به لکه څنګه په دې دواړو ونو کې معامله کوله. دغه ډول به ئې په نورو ونو او سبزیانو کې هم کوله. او که اومنلې شی. چه ددوی معامله هم په دې دواړو کې وه. نو بیا سوال کیږي. چه ددې جواز علت څه وو؟ ځکه چې نصوصو کې اصل هم دا دې. چه دا معلول وی. خاص کر د امام شافعی رحمه الله په نیز، او هرکله چې دا نص معلول دې. نو دا علت به حاجت لپاره راوځي. او حاجت عام دې. په دې دواړو کې او ددې نه په علاوه کې هم.

## د عذر نه بغیر د عامل اوښکلو حکم

**وَلَيْسَ لِصَاحِبِ الْكَرْمِ** او د انګورو د باغ مالك لپاره دا حق نشته **أَنْ يُخْرِجَ الْعَامِلَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ**. چه هغه د عذر نه بغیر عامل اوباسی **لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ عَلَيْهِ فِي الْوَفَاءِ بِالْعَقْدِ** ځکه چې د عقد په پوره کاوه کې په ده باندې هیڅ ضرر نشته **وَكَذَا لَيْسَ لِلْعَامِلِ أَنْ يَتْرُكَ الْعَمَلَ بِغَيْرِ عُذْرٍ** او هم دغه ډول عامل ته حق نشته. چه هغه د عذر نه بغیر کار پریږدی **بِخِلَافِ الْمُزَارَعَةِ بِالْإِضَافَةِ إِلَى صَاحِبِ الْبَذْرِ** په خلاف د مزارعت، چې د تخم والا اړخ ته نسبت اوکړې شی **عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ** هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ وړاندې بیان کړې دې.

**تشریح:-** که څه عذر نه وی. نو باغ والا دې عامل نه اوباسی. ځکه چې عقد پوره کاوه کې د مالك هیڅ نقصان

نشته.دغه ډول که څه عذر نه وي.نو عامل دې کار نه پرېږدي.البته مزارعت کې تخم والا باندې زبردستي نه وه.چه ددې تفصيل تير شوې دې.

**عامل ته څه خيز ورکول پکار دي او د څه خيز مستحق دې ؟**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل فَإِنْ دَفَعَ نَخْلًا فِيهِ تَمْرٌ مُسَاقَاةً نوکه د مساقات په طور ئې د کجوري داسې ونه وکړله.چه هغې کې کجورې وي وَالتَّمْرُ يَزِيدُ بِالْعَمَلِ او کجورې په عمل ( د عامل) سره غټيږي جَازَ نوجائز ده وَإِنْ كَانَتْ قَدْ انْتَهَتْ اوکه دا انتهاء ته رسيدلې دي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه ده وَكَذَا عَلَى هَذَا او هم دغه ډول په دې قياس دي إِذَا دَفَعَ الزَّرْعَ وَهُوَ بَقْلٌ جَازَ کله ئې چې فصل ورکړو.او دا کچه دې.نوجائز دې وَلَوْ اسْتَحْصَدَ وَأَدْرَكَ اوکه دا د کټ کاوه قابل وي.او پوخ شو لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي لِأَنَّ الْعَامِلَ إِنَّمَا يَسْتَحِقُّ بِالْعَمَلِ ځکه چې عامل د کار په وجه مستحق کيږي وَلَا أَثَرَ لِلْعَمَلِ بَعْدَ التَّنَاهِي وَالْإِدْرَاكِ او د پوره کيدو او پخيدو نه روسته د کار هيڅ اثر نشته فَلَوْ جَوَّزْنَاهُ نو که دا موږ جائز اوګرځوو لَكَانَ اسْتِحْقَاقًا بِغَيْرِ عَمَلٍ نو دا د عمل نه بغير استحقاق وي وَلَمْ يَرِدْ بِهِ الشَّرْعُ حالانکه شريعت دې سره نه دې وارد شوې

**حل اللغة:** ① بقل: کچه ② استحصد: اوريبل، کټ کړل ③ التناهي: ختميدل ④ الادراک: پخيدل

**تشريح:-** عامل ته د خپل کار ميوه ( منافع) ملاويږي.نو ضروري ده.چه پيداوار کې د عامل د عمل څه دخل وي.او دلته به دخل نه وي.نو عقد به فاسد وي.په باغ کې ميوې راغلې.او څومره چې غټيدل وو. هغومره غټې شوې.او اوس د باغ مالك دا عامل ته حواله کول غواړي.نو جائز به نه وي.

بِخِلَافِ مَا قَبْلَ ذَلِكَ په خلاف ددې حالت کوم چې ددې نه وړاندې دي لِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ إِلَى الْعَمَلِ کار اړخ ته د حاجت متحقق کيدو په وجه

**تشريح:-** البته که ميوې پوره شوې نه وي.بلکه د عامل کار سره اوس هم غټيدل کيداې شي.نوجائز ده.هم دا حکم د فصل دې.که د ميوو پوره کيدو او پوخ والي باوجود دې ته جائز اوونيلې شي.نو د عامل استحقاق به د عمل نه بغير وي.حالانکه دا د شرع د مورد خلاف دې.

**په فاسد مساقات کښې د عامل د اجرت مسئله**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل وَإِذَا فَسَدَتِ الْمُسَاقَاةُ و هرکله چې مساقات فاسد شي فَلِلْعَامِلِ أَجْرُ مِثْلِهِ نو عامل لپاره دده د مثل اجرت دې لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْإِجَارَةِ الْفَاسِدَةِ ځکه چې دا د اجاره فاسده په معنى کې ده وَصَارَ كَالْمُزَارَعَةِ إِذَا فَسَدَتْ.....او مساقات د مزارعت پشان شو.کله چې مزارعت فاسد شي.

**تشريح:-** لکه څنګه چې اجاره فاسده کې اجير ته دده د اجرت مثل ملاويږي.دغه ډول به مساقاتِ فاسده کې هم عامل ته اجرتِ مثل ملاويږي.ځکه چې مساقات د اجارې په معنى کې ده.او د مزارعتِ فاسده هم دا حکم دې.

**په عاقدينو کښې د يوکس په مرګ سره د مساقات حکم**

قَالُوا امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل تَبْطُلُ الْمُسَاقَاةُ بِالْمَوْتِ او مساقات مرګ سره باطليږي لِأَنَّهَا فِي مَعْنَى الْإِجَارَةِ ځکه چې مساقات د اجارې په درجه کې دي وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِيهَا او موږ دا په اجارات کې بيان کړې دي

**تشريح:-** لکه څنګه چې د عاقدينو په مرګ سره اجاره فاسديږي.دغه ډول به مساقات هم فاسديږي.ځکه چې مساقات د اجارې په معنى کې دې.او اجاره ولې فاسديږي؟ دا مرغيناني رحمه الله په کتاب الاجارات کې بيان کړې دي.

**د زمکې د مالك مړکيدو سره د ميوو د مساقات حکم**



فَإِنْ مَاتَ رَبُّ الْأَرْضِ نوکه د زمکې مالك مړ شو وَالْخَارِجُ بُسْرٌ و پيداوار ( ميوې) نيم پخته دي فَلِلْعَامِلِ أَنْ يَقُومَ عَلَيْهِ نو عامل له پکار دي.چه هغه د ميوو ساتنه ( او ساتنه) اوکړي كَمَا كَانَ يَقُومُ قَبْلَ ذَلِكَ لکه څنګه ئې چې ددې نه مخکې کوو إِلَى أَنْ يُدْرِكَ الثَّمَرُ تردې چې کجورې پخې شي وَإِنْ كَرِهَ ذَلِكَ وَرَثَةُ رَبِّ الْأَرْضِ اګرچه د زمکې وارثان دا ناخوښه کړي اسْتِحْسَانًا ( دا حکم) استحساناً فَيَبْقَى الْعَقْدُ نو عقد به پاته پاتې وي دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ د عامل نه ضرر لرې کاوه لپاره وَلَا ضَرَرَ فِيهِ عَلَى الْآخَرِ او په دې کې د دوهم هيڅ ضرر نشته.

**تشريح:-** د زمکې مالك مړ شو.نو عامل دې د مخکې پشان اوس هم ساتنه کوي.يعنې استحساناً عقد پاته دې.چه په دواړو کې د هيڅ يو کس نقصان اونشي.

**چه د زمکې مالك مړشي نو د عامل د ضرر غوښتلو حکم**

وَلَوْ الْتَزَمَ الْعَامِلُ الضَّرَرَ اوکه عامل د ضرر التزام اوکړو يَتَخَيَّرُ وَرَثَةُ الْآخَرِ نو د دوهم وارثان به اختيار مند وي بَيْنَ أَنْ يَقْسِمُوا الْبُسْرَ عَلَى الشَّرْطِ ددې په منځ کې چې کچه ( نيم پخته ميوې ) د شرط مطابق ويش کړي وَبَيْنَ أَنْ يُعْطُوهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ مِنَ الْبُسْرِ او ددې په منځ کې چې هغه ته د کچه نه دهغه دحصې قيمت ورکړي وَبَيْنَ أَنْ يُنْفِقُوا عَلَى الْبُسْرِ و ددې په منځ کې چې دوي په کچه باندې خرچه اوکړي حَتَّى يَبْلُغَ فَيَرْجِعُوا بِذَلِكَ فِي حِصَّةِ الْعَامِلِ مِنَ الثَّمَرِ تردې چې دا پخې شي.نو ددې ( خرچې) مطابق د کجورو نه د عامل په برخه کې واپس واخلي. لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ إِلْحَاقُ ځکه چې عامل ته حق نشته الضَّرَرِ بِهِمْ د زمکې د مالك وارثانو ته د نقصان ورکولو وَقَدْ بَيَّنَّا نَظِيرَهُ فِي الْمُزَارَعَةِ او موږ ددې مثال په مزارعت کې بيان کړې دې.

**حل اللغة:** ① يتخير: اختيارور کولاى شي ② يقتسموا: چې ويش اوکړي ③ البسر: کچه

**تشريح:-** که عامل غواړي.چه نيم پخته (کچه) ويش کړې شي.نو په دې کې د زمکې د مالك د وارثانو نقصان دې.ځکه چې دلته به د زمکې مالك ته هم هغه درې اختياره ملاويږي.کوم چې د زمکې مالك ته ملاويږي.چه دا مرغيناني رحمه الله بيان کړل.او په مزارعت کې ئې هم وړاندې بيان کړې دي.او د عبارت نه هم ښکاره معلوميږي.

**د عامل مړ کيدو سره دده وارثان دده قائم مقام دي**

وَلَوْ مَاتَ الْعَامِلُ اوکه عامل مړشي فَلِوَرَثَتِهِ نو د عامل وارثانو له پکار دي أَنْ يَقُومُوا عَلَيْهِ چې هغوي ددې ساتنه کوي وَإِنْ كَرِهَ رَبُّ الْأَرْضِ اګرچه د زمکې مالك ناخوښه ګڼړي. لِأَنَّ فِيهِ النَّظَرَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځکه چې دې کې د دواړو لپاره شفقت ( او سهولت) دې.

**تشريح:-** د عامل د مرګ نه روسته به دهغه وارثان ددې ساتنه کوي.ځکه چې دې کې د عامل د وارثانو او د زمکې د مالك د دواړو فائده ده.

**د زمکې د مالك د نقصان په صورت کښې ده ته درې اختياره دي**

قَالَ فَإِنْ أَرَادُوا أَنْ يَصْرِمُوهُ بُسْرًا نو که د عامل وارثانو د ميوو په کچه حالت کې د شو کاوه اراده اوکړله كَانَ صَاحِبُ الْأَرْضِ بَيْنَ الْخِيَارَاتِ الثَّلَاثَةِ نو مالك د زمکې به د دريو اختياراتو په منځ کې وي. الَّتِي بَيَّنَّاهَا چې دا موږ بيان کړي دي.

**حل اللغة:** ① ان يصرموا: صيغه دجمع واحد ئې يصرم دې په معنى د شوکول ده

**تشريح:-** ځکه که د عامل وارثانو ته د کچه ميوو شو کاوه اجازت ملاو شي.نو د زمکې د مالك نقصان دې.ځکه چې هم هغه درې اختياره به د زمکې مالك ته ملاويږي.د کوم چې بار بار ذکر شوې دې.

**كه عامل او د زمكې مالك دواړه مړه شي نو څه حكم دې ؟**

وَإِنْ مَاتَا جَمِيعًا اوكه دوى ( عامل او د زمكې مالك) دواړه مړه شي فَالْخِيَارُ لِوَرَثَةِ الْعَامِلِ نو اختيار د عامل وارثانو ته دې لِقِيَامِهِمْ مَقَامَهُ د هغوى د عامل قائم مقام كيدو په وجه وَهَذَا خِلَافَةٌ فِي حَقٍّ مَالِيٍّ او دا په مالى حق كې خلافت ( او نيابت) دې وَهُوَ تَرْكُ الثِّمَارِ عَلَى الْأَشْجَارِ او دا مالى حق په ونو باندې ميوې پريښول دى. إِلَى وَقْتِ الْإِدْرَاكِ يعنى د پخيدو پورې لَا أَنْ يَكُونَ وَارِثُهُ فِي الْخِيَارِ دا خبره نه ده. چه دا په اختيار كې وراثت دې

تشريح:- كه عامل او د زمكې مالك دواړه مړه شى. نو د عامل وارثانو ته اختيار دې. چه هغوى پخپل حال كار اوكړى. او دا اختيار هم شته. چه كار پريږدى. كله چې دوى كار كول اختيار كړى. نو د زمكې مالك ته به هم هغه ذكر شوى درې اختياره ملاويږى.

﴿ كه څوك دا اعتراض اوكړى چې تاسو خو هرځائې كې فرمايئ: چه خيار چونكه عرض دې. په دې وجه دا ميراث كې نه تقسيميږى. حالاتكه دلته تاسو خيار د هغه وارثانو ته وركړو. او تاسو اوفرمائيل. چه د عامل وارثانو ته اختيار دې. نو دلته دا اختيار ميراث كې څنګه ملاو شو؟ نوموړ خواب وركوو چې دا په ميراث كې ملاو شوې خيار نه دې. بلكه په مالى حق كې وارث دمورث قائم مقام وى. د ميراث تقسيمولو احوال ددې شاهد ( او مؤيد) دى. او دا مالى حق په ونو باندې د ميوو پريښول دى. ( تردې چې پخې شى). نو وارثان په يو مالى حق كې د مورث نائب او قائم مقام وى. خيار دوى ته په ميراث كې نه دې ملاو شوې.

**كه د عامل وارثان د قائم مقام كيدو نه انكار اوكړى نو څه حكم دې ؟**

فَإِنْ أَبَى وَرَثَةُ الْعَامِلِ أَنْ يَقُومُوا عَلَيْهِ نو كه د عامل وارثانو ددې د ساتنه كاوه نه انكار اوكړو كَانَ الْخِيَارُ فِي ذَلِكَ لِوَرَثَةِ رَبِّ الْأَرْضِ نو په دې كې به خيار د زمكې د مالك وارثانو ته وى عَلَى مَا وَصَفْنَا د هغه تفصيل مطابق كوم چې موږ بيان كړې دې

تشريح:- ددې تشريح تيره شوې ده.

**كه د مزارعت موده ختمه شاو فصل كچه وى نو څه حكم دې ؟**

قَالَ وَإِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْمُعَامَلَةِ او كله چې د معاملې موده تيره شوه وَالْخَارِجُ بُسْرٌ أَخْضَرُ او ميوې كچه دى. چه دا شنې دى فَهَذَا وَالْأَوَّلُ سَوَاءٌ نو دا او رومبى برابر دى وَلِلْعَامِلِ او عامل لپاره دا حق شته أَنْ يَقُومَ عَلَيْهَا چې هغه ددې پالنه ( او حفاظت) اوكړى إِلَى أَنْ يُدْرِكَ تردې چې ميوې پخې شى لَكِنْ بِغَيْرِ أَجْرٍ خو د اجرت نه بغير ( به ساتنه كوى). لِأَنَّ الشَّجَرَ لَا يَجُوزُ اسْتِئْجَارُهُ ځكه چې ونه ، دا په اجاره باندې اخستل جائز نه دى. بِخِلَافِ الْمُزَارَعَةِ فِي هَذَا په خلاف د مزارعت، په دې ( مودې تيريدو په صورت) كې ، لِأَنَّ الْأَرْضَ يَجُوزُ اسْتِئْجَارُهَا ځكه چې مځكه ، ددې په اجاره باندې اخستل جائز دى وَكَذَلِكَ الْعَمَلُ كُلُّهُ عَلَى الْعَامِلِ هَاهُنَا او دغه ډول به عمل واړه په تولو عامل باندې وى وَفِي الْمُزَارَعَةِ فِي هَذَا عَلَيْهِمَا او په مزارعت كې به په دې صورت كې دواړو باندې وى لِأَنَّهُ لَمَّا وَجَبَ أَجْرُ مِثْلِ الْأَرْضِ بَعْدَ انْتِهَاءِ الْمُدَّةِ عَلَى الْعَامِلِ ځكه چې هركله عامل باندې د مودې ختميدو نه روسته د زمكې مثل اجر واجب شو. لَا يَسْتَحِقُّ عَلَيْهِ الْعَمَلَ نو په عامل به د كار استحقاق نه وى وَهَاهُنَا لَا أَجْرَ او دلته هيڅ اجرت نشته ،. فَجَازَ نو جائز ده أَنْ يَسْتَحِقَّ الْعَمَلَ چې په عامل باندې دكار استحقاق اوشى كَمَا يَسْتَحِقُّ لكه څنګه چې استحقاق وو قَبْلَ انْتِهَائِهَا د مودې ختميدو نه وړاندې.

تشريح:- كه په مزارعت كې موده ختمه شى. او فصل كچه وى. نو عامل ته د خپلې برخې (حصې) اجرت وركول لازمى وى. او كار په دواړو باندې وى. ځكه چې د ونو اجاره جائز نه ده. او هركله چې عامل باندې اجرت واجب نه دې. نو د زمكې د مالك په ذمه به كار نه وى. بلكه عامل به هم هغه شان كار كوى. لكه څنګه ئې چې د مودې ختميدو نه وړاندې كولو.



لنډيز د كلام دا چې چرته عامل باندې اجرت نشته. هلته كار د هغه په ذمه دې. او چرته چې اجرت شته. هلته به كار په دواړو وى. يواځې په عامل به نه وى.

**د عقد مزارعت فسخ كولو عذرونه.**

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل. وَتُفْسَخُ بِالْأَعْذَارِ او مساقات فسخ كولې شى. د عذرونو په وجه، لِمَا بَيَّنَّا فِي الْإِجَارَاتِ، د هغه دليل په وجه كوم چې موږ په اجارات كې بيان كړې دې. وَقَدْ بَيَّنَّا وُجُوهَ الْعُذْرِ فِيهَا. او موږ د عذر قسمونه په اجارات كې بيان كړى دى وَمِنْ جُمْلَتِهَا أَنْ يَكُونَ الْعَامِلُ سَارِقًا . او د هغې ټولو نه بعضې دا دى. چه عامل غل وى يُخَافُ عَلَيْهِ سَرِقَةُ السَّعَفِ وَالثَّمَرِ قَبْلَ الْإِدْرَاكِ . چه هغه باندې د باغ خانښونه او د پخيدو نه وړاندې د ميوو پټولو يره ده. لِأَنَّهُ يُلْزِمُ صَاحِبَ الْأَرْضِ ضَرَرًا لَمْ يَلْتَزِمْهُ ځكه چې د زمكې مالك ته داسې ضرر لازميږى. د كوم چې ده التزام نه دې كړې فَتُفْسَخُ بِهِ نو ددې عذر په وجه عقد فسخ كولاى شى وَمِنْهَا مَرَضُ الْعَامِلِ او هم ددې عذرونو نه بعضې د عامل ناروغى (ناروغى (بيمارى)) ده إِذَا كَانَ يُضْعِفُهُ عَنِ الْعَمَلِ كله چې دا هغه لره د كار نه كمزورې كړى. لِأَنَّ فِي إِلْزَامِهِ اسْتِئْجَارَ الْأُجَرَاءِ زِيَادَةَ ضَرَرٍ عَلَيْهِ ځكه چې هغه باندې لازمولو كې مزمهال په كرايه باندې راوستل هغه باندې زيات ضرر دې، وَلَمْ يَلْتَزِمْهُ حالاتكه هغه التزام نه دې كړې. فَيُجْعَلُ ذَلِكَ عُذْرًا نو دا به عذر ګرځولې شى

حل اللغة: ﴿ ۱ ﴾ الزام: لازمول ﴿ ۲ ﴾ تفسخ: فسخ كيږى ﴿ ۳ ﴾ الاعذار: جمع د عذر ﴿ ۴ ﴾ السعف: دباغ خانښونه ﴿ ۵ ﴾ الادراك: د ميوې پخيدل

تشريح:- كه يو عذر د عقد مانع وى. نو لكه څنګه چې ( د عذر په وجه) عقد اجاره فسخ كولې شى. مساقات به هم فسخ كولې شى. مثلاً ﴿ ۱ ﴾ عامل غل وى. يره ده. چه ټولې ميوې او د باغ لرګى به كورته يوسى. ﴿ ۲ ﴾ يا عامل دومره بيمار شو. چه كار نشى كولې. نو عقد مساقات فسخ كولې شى.

كه څوك ووايي چې هركله عامل دا كولې شى. چه مزدورانو باندې كار اوكړى. نو بيا عذر څنګه شو؟ نو موږ خواب وركوو چې عقد كې هغه ددې التزام نه دې كړې. نو دا به په هغه ضرر اچول وى.

وَلَوْ أَرَادَ الْعَامِلُ تَرْكَ ذَلِكَ الْعَمَلِ او كه عامل ددې كار پريخودو اراده اوكړله هَلْ يَكُونُ عُذْرًا نو آيا دا به عذر وى؟ فِيهِ رِوَايَتَانِ نو په دې كې دوې (دوه) روايتونه دى وَتَأْوِيلُ إِحْدَاهُمَا او په دې دواړو كې د يو تاويل دا دې. أَنْ يَشْتَرِطَ الْعَمَلَ بِيَدِهِ چې د عامل په لاس كار شرط وى.. فَيَكُونُ عُذْرًا مِنْ جِهَتِهِ نو دا به ده د اړخه عذر وى.

تشريح:- عامل د خپل كار پريخودو اراده اوكړله. نو آيا دا به عذر شمارلې شى؟ نو په دې كې دوې (دوه) روايتونه دى. ﴿ ۱ ﴾ يو دا چې عذر نه دې. او په عامل به كار كاوه لپاره زبردستى كولې شى. ﴿ ۲ ﴾ او دوهم روايت دا دې. چه عذر به شمارلې شى. خو ددې مطلب دا دې. چه دا فيصله شوې وى. چه عامل به پخپل لاس سره كار كوى. نو هله به دا عذر شمارلې كيږى. ګنى د نورو په ذريعه كار كولې شى. نو بيا به دا عذر نه شمارلې كيږى.

**مځكه د ونو او ميوو لګولو لپاره په دې شرط وركول چې مځكه او ميوې به نيم په نيمه وى**

قَالَ وَمَنْ دَفَعَ أَرْضًا بَيْضَاءَ او چا چې خالى مځكه وركړله إِلَى رَجُلٍ سِنِينَ مَعْلُومَةً يو سړى ته د يو څو معلومو كلونو دپاره، يَغْرِسُ فِيهَا شَجَرًا چې هغه په دې كې ونې اولګوى عَلَى أَنْ تَكُونَ الْأَرْضُ وَالشَّجَرُ بَيْنَ رَبِّ الْأَرْضِ وَالْغَارِسِ نِصْفَيْنِ په دې شرط چې وى به مځكه او ونې د رب المال او د ونو لګونكى په منځ كې نيم په نيمه، لَمْ يَجُزْ ذَلِكَ لِاشْتِرَاطِ الشَّرِكَةِ نو دا جائز نه ده. د شركت مشروط كيدو په وجه فِيمَا كَانَ حَاصِلًا قَبْلَ الشَّرِكَةِ هغه شئ كې كوم چې د شركت نه وړاندې حاصل دي لَا بِعَمَلِهِ چې دعامل عمل سره نه دي

حل اللغة: ﴿ ۱ ﴾ الغارس: د ونې لګونكې ﴿ ۲ ﴾ سنين: جمع دسنة ده، كال ﴿ ۳ ﴾ البستان: باغ ﴿ ۴ ﴾ تقويم: قيمت لګول

**تشريح:-** د شركت مقصد دا وي.چه كوم شئ اوس حاصل نه دې.هغه حاصل كړې شي.او د مخكې نه د حاصل شوې شئ لپاره شركت نشي كولې.او چرته چې داسې صورت پيدا شي.نو عقد ته فاسد وئيلې شي. وړاندې تير شوې دې.چه قفيزالطحان نا جائز دې.چه ددې ثبوت په نص سره دې.نو كوم شئ چې د قفيزالطحان په درجه كې راځي.هغې ته به هم فاسد وئيلې شي.هركله چې دا تفصيلات په ذهن كې كيناستل.نو اوس واورئ.چه د زمكې مالك يو سړي ته د يو څو كلونو لپاره خپله مځكه وركړله.چه دغه سړې په دې كې ونې اولګوي.بيا به مځكه او ونې د زمكې د مالك او د عامل (چا چې ونې لګولې دي) په منځ كې نيم په نيمه وي.نو دا صورت جائز نه دې ولې؟ ځكه چې په داسې شئ كې د شركت شرط دې.چه هغه د شركت نه وړاندې موجود دې.يعنى مځكه چې په دې كې د عامل د عمل هيڅ دخل نشته.او دا د قفيزالطحان په معنى كې هم دې.ځكه چې دلته ګويا د زمكې مالك عامل اجير جوړ كړو.د هغه شئ په بدله كې كوم چې دده عمل سره حاصل شي.ددې د بعضې په بدله كې او هغه نيم باغ دې.نو هركله چې دا د قفيزالطحان په درجه كې شو.نو عقد فاسد دې.

**وَجَمِيعُ الثَّمَرِ وَالْغَرْسِ لِرَبِّ الْأَرْضِ** او ټولې ميوې او ونې به د زمكې د مالك وي **وَلِلْغَارِسِ قِيمَةُ غَرْسِهِ وَأَجْرُ مِثْلِهِ** او ونو لګونكى ته به د هغه د ونو قيمت او د هغې د مثل اجرت ملاويږي **فِيمَا عَمِلَ** د هغه كار كوم چې ده كړې دې **لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى قَفِيزِ الطَّحَّانِ** ځكه چې د قفيزالطحان په معنى كې دې **إِذْ هُوَ اسْتِئْجَارٌ** ځكه چې دا په اجاره باندې اخستل دي **بِبَعْضِ مَا يَخْرُجُ مِنْ عَمَلِهِ** د بعضې هغه شئ په بدله كې كوم چې دده په عمل سره شوې وي **وَهُوَ نِصْفُ الْبُسْتَانِ** او هغه د باغ نيمه ده **فَيَفْسُدُ** نو عقد به فاسد وي **وَتَعَذَّرَ رَدُّ الْغِرَاسِ** او د ونو واپس كول متعذر دي **لِاتِّصَالِهَا بِالْأَرْضِ** د هغې د زمكې سره د متصل كيدو په وجه، **فَيَجِبُ قِيمَتُهَا** نو د هغې قيمت واپس كول ضروري دي، **وَأَجْرُ مِثْلِهِ** او دهغې دمثل اجرت،

**تشريح:-** ټولې ونې او د هغې ميوې به د زمكې د مالك وي.او ونو لګونكى ته به د هغه د ونو قيمت او دهغې اجرت مثل ملاويږي.كومې ونې چې هغه لګولى دي.د هغې به څو قيمت وي.او هغه چې كوم كار كړې دې.د هغې به اجرت مثل ملاويږي.ځكه چې دلته عقد فاسد دې.اصل حكم دا كيدل پكار وو.چه ونې لګونكې خپلې ونې اوباسي.خو چونكه د زمكې والا زمكې سره متصل شوې دي.په دې وجه د ونو واپس كول متعذر دي.په دې وجه ددې قيمت واپس كول ضروري دي.

**لِأَنَّهُ لَا يَدْخُلُ فِي قِيمَةِ الْغِرَاسِ** ځكه چې اجر مثل به د ونو په قيمت كې داخل نه وي **لِتَقَوُّمِهَا بِنَفْسِهَا** او د ونو پخپله د قيمتي كيدو په وجه،

**تشريح:-** ونې پخپله قائم دي.جوهر دي.متقوم دي.او كار عرض دې.پخپله متقوم نه دې.بلكه عقد سره متقوم جوړيږي.په دې وجه به اجرمثل د ونو لاندې داخل نه وي.بلكه دده ونې جلا وې.او كار جلا وو.نو د ونو قيمت به جلا وي.او د كار قيمت به جلا وي.

**وَفِي تَخْرِيجِهَا طَرِيقٌ آخَرُ** او ددې مسئلې په تخريج كې دويمه طريقه ده **بَيَّنَّاهُ فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهَى**، چې دا موږ په كفاية المنتهى كې بيان كړې ده

**تشريح:-** ددې مسئلې د تخريج يوه طريقه بله هم ده.په نورو الفاظو كې داسې چې ددې مسئلې د فساد دليل بل هم شته. لنډيز د كلام دا چې عقد مذكوره فاسد دې.چه ددې دليل بيان شوې دې.چه دا عقد د قفيزالطحان په درجه كې دې.په دې وجه فاسد دې.او شيخ په كفاية المنتهى كې د دې دوهم دليل بيان كړې دې.چه د هغې حاصل د اجرت جهالت دې.او ددې جهالت په وجه عقد فاسد دې.يعنى د زمكې مالك د نيمې زمكې په بدله هغه نيمې ونې د عامل نه واخستلې.كومې چې به هغه لګوي.او ثمن مجهول دې.ځكه چې ونې اوس د معدوم (غيرموجود) كيدو په وجه مجهول دي.په دې وجه عقد فاسد دې.



**وَهٰذَا أَصَحُّهُمَا وَاللّٰهُ أَعْلَمُ** او دا په دې دواړو كې زياته صحيح ده.والله اعلم.

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله فرمائى.چه په دې دواړو دليلونو كې دا دليل مضبوط دې.كوم چې هدايه كې ذكر دې. په عنايه وغيره كې ددې تفصيل موجود دې.او په نتائج الافكار كې په دې باندې اعتراض شوې دې. اوګورئ: ﴿نتائج ص: ٥٠،ج٨﴾

# كتابُ الذبائح

ژباړه:- (دا) كتاب د ذبيحو (په بيان كې) دې.

**تشريح:-** په مساقات كې چې كوم شئ فى الحال قابل د خوراك نه دې.دغه ډول ذبيحو كې دى.بلكه دواړه په انجام كې د انتفاع قابل جوړيږي.ذبائح د ذبيحې جمع ده.او ذبيحه هغې ته وائي.كوم چې ذبح كړې شي.او ،،ذبح،، مصدر دې.په معنى د ذبح كولو، او د مرئ د رګونو كټ كولو، او ،،ذكاة،، ددې لغوى معنى د طهارت ده. او مراد ذبح كول دى.

### د غوښې د حلت او طهارت لپاره ذبح شرط ده

قَالَ مرغيناني فرمايي **الذَّكَاةُ شَرْطُ حِلِّ الذَّبِيحَةِ** ذكاة (ذبح) د ذبيحې د حلاليدو شرط دې ، **لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ﴾** د الله تعالى د فرمان ﴿إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ﴾ ﴿المائده:٣﴾ په وجه **وَلِأَنَّ بِهَا يَتَمَيَّزُ الدَّمُ النَّجِسُ مِنَ اللَّحْمِ الطَّاهِرِ** او ځكه چې ذكاة سره نا پاكه وينه د پاكې غوښې نه جلا كيږي.

**حل اللغة:** ① **الدم:** وينه ② **اللحم:** غوښه ③ **تنبئ:** خبر وركوى ④ **اليبس:** اوچيدل

**تشريح:-** ذبح كاوه سره نا پاكه وينه اوځى.او غوښه پاته پاتې كيږي.چه دا پاكه وي.نو د غوښې حلت او پاكوالى لپاره ذبح شرط ده.چه ددې دليل د الله تعالى فرمان ﴿إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ﴾ ﴿المائده:٣﴾ دې.

**وَكَمَا يَثْبُتُ بِهِ الْحِلُّ** او لكه څنګه چې ذكاة سره حلت ثابتيږي **يَثْبُتُ بِهِ الطَّهَارَةُ فِي الْمَأْكُولِ وَغَيْرِهِ** دغه ډول په دې سره پاكوالى ثابتيږي.په ماكول او غير ماكول كې . **فَإِنَّهَا تُنْبِئُ عَنْهَا** . **وَمِنْهَا** ځكه چې ذكاة د پاكوالى خبر وركوى **قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ (ذَكَاةُ الْأَرْضِ يُبْسُهَا)** [1] او په دې كې د نبى كريم ﷺ فرمان دې.د زمكې پاكى ددې اوچيدل دى.

**تشريح:-** د ذبحې نه چې لكه څنګه حلت ثابتيږي.پاكوالى هم ثابتيږي.نو په ذبحې وغيره سره به د شير وغيره غوښه هم پاكيږي.اګرچه حلاليږي نه.او د ذكاة د پاكوالى په معنى كې كيدل حديث نه ثابتيږي.لكه ﴿ذكاة الأرض يبسها﴾ په دې حديث كې ذكاة د پاكوالى په معنى كې دې.كوم حديث چې دلته پيش شوې دې.دا د نبى كريم ﷺ كلام نه دې.بلكه د محمد بن الحنفيه رحمه الله كلام دې.﴿كذا قال العينى﴾

### د ذبح اختيارى او د ذبح اضطرارى بيان

**وَهِيَ اخْتِيَارِيَّةٌ** او دا (ذكاة) اختيارى دې **كَالْجُرْحِ فِيمَا بَيْنَ اللَّبَّةِ وَاللَّحْيَيْنِ** لكه د لبه (د سينې پورتنى حصه) او ژامو په منځ كې زخم كول ، **وَاضْطِرَارِيَّةٌ وَهِيَ الْجُرْحُ فِي أَيِّ مَوْضِعٍ كَانَ مِنَ الْبَدَنِ** او اضطرارى دې.او دا د بدن په څه برخه كې زخم لګول دى.

**حل اللغة:** ① **لبة:** سينه، د سينې غاړه، ② **الوسع:** توان ③ **اضطرارية:** غيراختيارى ④ **لحيين:** د لحية تثنيه ده.په معنى د ژامې، نو د ذبح كاوه ځائې د سينې او دواړو ژامو په منځ كې برخه ده.چه دا په خلګو كې مشهوره ده.هم دا مرغيناني رحمه الله په ﴿ما بين اللبة واللحيين﴾ سره تعبير كړې دې.

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله فرمائى.چه د ذكاة دوې (دوه) قسمونه دى ① ذكاة اختيارى ② ذكاة اضطرارى.- د

---

[1] تقديم تخريجه فى باب الانجاس

ذکاة اختیاری مقام مرئ ده.او د ذکاة اضطراری لپاره هیڅ ځاني مقرر نه دي.بلکه په کوم ځائي هم چي زخم اولګی.کافی ده.ځکه چي دلته لاچاری ده.چه حیوان (څاروي) اوتختیدو.نو په کوم ځاني هم غشي اولګی.کافی ده.خو اصل ذکاة اختیاری دي.

وَالثَّانِي كَالْبَدَلِ عَنِ الْأَوَّلِ او دوهم د رومبی د بدل مثل دي لِأَنَّهُ لَا يُصَارُ إِلَيْهِ ځکه چي دي ارخ ته به رجوع نشي کولي إِلَّا عِنْدَ الْعَجْزِ عَنِ الْأَوَّلِ خود رومبی نه د عاجز کیدو په وخت.، وَهَذِهِ آيَةُ الْبَدَلِيَّةِ او دا د بدل کیدو علامت دي وَهَذَا لِأَنَّ الْأَوَّلَ أَعْمَلُ فِي إِخْرَاجِ الدَّمِ او دا ځکه چي رومبي په وینه ویستلو کي زیات موثر دي وَالثَّانِي أَقْصَرُ فِيهِ او دوهم په دي کي قاصر دي فَاكْتَفَى بِهِ عِنْدَ الْعَجْزِ عَنِ الْأَوَّلِ..نو په دوهم به اکتفاء کولي شی.د رومبی نه د عاجز کیدو په وخت ،إِذِ التَّكْلِيفُ بِحَسَبِ الْوُسْعِ ځکه چي تکلیف د توان په اندازه وی

تشریح:- او ذکاة اضطراری د رومبي بدل دي.او په بدل باندي اکتفاء هغه وخت جائز ده.چه دا حاصل نکري شی.نو اوس د ﴿لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ په لحاظ د توان مطابق به دي مکلف جوړولي شی.

### د ذبحي بعض شرطونه

وَمِنْ شَرْطِهِ او د ذبح د شرطونو څخني دا دي أَنْ يَكُونَ الذَّابِحُ صَاحِبَ مِلَّةِ التَّوْحِيدِ چي ذبح کونکي د توحید دین والا وی إِمَّا اعْتِقَادًا یا د اعتقاد په اعتبار سره كَالْمُسْلِمِ لکه مسلمان أَوْ دَعْوَى كَالْكِتَابِيِّ یا د دعوي په اعتبار سره لکه کتابی وَأَنْ يَكُونَ حَلَالًا خَارِجَ الْحَرَمِ (او شرط دا دي چه) ذبح کونکي حلال وی د حرم نه بهر وی عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى د هغه تفصیل مطابق کوم چي به موږ انشاءالله بیان کړو.

تشریح:- دا د ذبح شرط دي.چه ذبح کونکي مسلمان وی.یا کتابی وی.او حلال وی.محرم نه وی.او د حرم نه بهر وی.ګنی حرم کي به د ښکاره ذبح جائز نه وی.او د محرم ذبیحه به حلال نه وی.کله چي هغه ښکاره ذبح کړی.مسلمان د اعتقاد په لحاظ سره د توحید دین والا دي.او کتابی ددي دعویدار دي.،، کما هو ظاهر،،

### د مسلمان او کتابی ذبیحه حلال ده

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَذَبِيحَةُ الْمُسْلِمِ وَالْكِتَابِيِّ حَلَالٌ او د مسلمان او کتابی ذبیحه حلال ده لِمَا تَلَوْنَا.د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ تلاوت کړي دي وَلِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَكُمْ} او د الله تعالی د فرمان (او د هغه خلګو خوراك چا ته چي کتاب ورکړي شوي دي ستاسو لپاره حلال ده) په وجه. وَيَحِلُّ او ذبیحه به حلال وی إِذَا كَانَ يَعْقِلُ التَّسْمِيَةَ کله چي ذبح کونکي په تسمیه پوهیږی وَيَضْبِطُ او په اوداج (د مرئ د رګونو) کټ کاوه باندي طریقه (او قدرت) وی وَالذَّبِيحَةَ او ذبح کاوه باندي ماشوم وی أَوْ مَجْنُونًا یا لیوني وی أَوِ امْرَأَةً یا ښځه وی وَإِنْ كَانَ صَبِيًّا اګرچه

تشریح:- د مسلمان او کتابی ذبیحه حلال ده.د وړاندي ذکر شوی دلیل په وجه، او په آیت کي طعام نه مراد ذبیحه ده.که ذبح کونکي سړي وی.اوکه ښځه وی.بچي وی.او که لیوني وی.واړه جائز دی.بس دا خبره ضروری ده.چه ذبح کونکي پخپل ځان کي دري صفتونه ګوری.① په تسمیه پوهیږی.② د ذبح د مقام نه خبر وی.
③ کوم رګونه چي په ذبح کي کټ کولي شي.د هغي نه خبر وی.

أَمَّا إِذَا كَانَ لَا يَضْبِطُ بهرحال کله چي ضابطه نه وی وَلَا يَعْقِلُ التَّسْمِيَةَ او نه تسمیه وی الذَّبِيحَةَ او په ذبح پوهیږی وَلَا يَحِلُّ نو حلال به نه وی لِأَنَّ التَّسْمِيَةَ عَلَى الذَّبِيحَةِ شَرْطٌ بِالنَّصِّ ځکه چي د نص په وجه ذبیحه باندي تسمیه شرط ده وَذَلِكَ بِالْقَصْدِ او دا به قصد وی وَصِحَّةُ الْقَصْدِ او د ارادي صحت به د هغه څیزونو څخني وی بِمَا ذَكَرْنَا. کوم چي موږ ذکر کړی دی وَالْأَقْلَفُ وَالْمَخْتُونُ سَوَاءٌ او غیر مختون (نا سنته) او مختون دواړه برابر دی لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په



وجه کوم چي موږ ذکر کړي دي وَإِطْلَاقُ الْكِتَابِيِّ يَنْتَظِمُ الْكِتَابِيَّ وَالذِّمِّيَّ وَالْحَرْبِيَّ وَالْعَرَبِيَّ وَالتَّغْلِبِيَّ او د کتابی اطلاق په کتابی، ذمی، او حربی، او عربی او تغلبی ته ګډ دي.لِأَنَّ الشَّرْطَ قِيَامُ الْمِلَّةِ ځکه چي شرط د ملت قیام دي عَلَى مَا مَرَّ د هغه تفصیل موافق کوم چي تیر شوي دي.

تشریح:- نو که ضبط نه وی یا په تسمیه نه پوهیدونو ذبح به جائز نه وی ځکه که دا صفات نه وی.نو په ارادي سره به تسمیه باندي څنګه قادر وی.حالانکه په نص سره ذبیحه باندي تسمیه وئیل شرط دی.مختون او غیر مختون برابر دی.ځکه چي مدار په ختنه کیدو یا نه کیدو باندي نه دي.بلکه په اسلام یا کتابی کیدو باندي دي.،، کما مر،، بیا په کتابی کي هر ډول کتابی مراد دي.که د دارالاسلام اوسیدونکي وی.او که د دارالحرب،که عربی وی او که تغلبی وغیره وی.ځکه چي اصل شرط د توحید د دین قیام دي.که اعتقاداً وی.او که د دعوي په طور وی.

### د مجوسي د ذبیحي حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَلَا تُؤْكَلُ ذَبِيحَةُ الْمَجُوسِيِّ او د مجوسی ذبیحه به نشی خوړلي شو لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه سُنُّوا بِهِمْ سُنَّةَ أَهْلِ الْكِتَابِ طریقه اختیار کړئ مجوسی سره د کتابیانو طریقه غَيْرَ نَاكِحِي نِسَائِهِمْ په داسي حال کي چي نکاح کونکي نه یئ د هغوی ښځو سره، وَلَا آكِلِي ذَبَائِحِهِمْ(¹) او نه خوړونکی یئ د هغوی د ذبیحو،، وَلِأَنَّهُ لَا يَدَّعِي التَّوْحِيدَ او ځکه چي مجوسی د توحید دعویدار نه دي.فَانْعَدَمَتِ الْمِلَّةُ نو دین معدوم اعْتِقَادًا وَدَعْوَى د اعتقاد او دعوي دواړو په اعتبار سره.

تشریح:- آتش پرست چونکه توحید پریخودونکی دی.نو د هغه ذبیحه به حلال نه وی.او ددي حدیث نه هم دا خبره ثابته ده.ددي حاصل دا دي.چه لکه څنګه کتابیانو ته د جزیة ادا کاوه په وجه امان ملاویږی.هغوی ته به هم ملاویږی.فرق دا دي.چه د کتابیانو ښځو سره نکاح جائز ده.د مجوسی ښځو سره جائز نه ده.او د کتابیانو ذبیحه حلال ده.د مجوسی نه ده.

### د مرتد د ذبیحي حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَالْمُرْتَدُّ و خوړلي به نشی د مرتد ذبیحه، لِأَنَّهُ لَا مِلَّةَ لَهُ ځکه چي د هغه هیڅ دین نشته فَإِنَّهُ لَا يُقَرُّ عَلَيْهِ ځکه چي هغه به پخپل حال نشی ساتلي د هغه په دین باندي عَلَى مَا انْتَقَلَ إِلَيْهِ کوم ارخ ته چي هغه اوختي دي

تشریح:- مرتد به پخپل حال پاته نشی ساتلي.نو د هغه هیڅ دین نشته.نو د هغه ذبیحه هم حلال نه ده.

بخلاف الكتابي، په خلاف د کتابی، إذا تحول إلى غير دينه کله چي هغه واوختو.د خپل دین نه علاوه ارخ ته.لأنه يقر عليه عندنا ځکه چي هغه زموږ په نیز هغي باندي پاته ساتلي شی فيعتبر ما هو عليه عند الذبح نو اعتبار به کولای شی د هغه حالت، په کوم چي هغه د ذبح په وخت دي لا ما قبله ددي نه د وړاندي (اعتبار) به نشی ساتلي قال امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل والوثني و خوړلي به نشی د بت پرست ذبیحه ځکه چي هغه د دین اعتقاد نه لري.

تشریح:- البته که کتابی دوهم دین اختیار کړی.نو هغه به په هغه دین قائم ساتلي شی.کوم ارخ ته چي اوختي دي.اوس به کتلي شی.چه د ذبح په وخت هغه په کوم دین دي.که په داسي دین باندي دي.چه د هغه ذبیحه

---

¹) قال الزيلعي رحمه الله غريب بهذا للفظ وأخرجه عبدالرزاق وابن أبي شيبة في مصنفيهما عن قيس بن مسلم عن الحسن بن محمد بن علي أن النبي ﷺ كتب إلى مجوس هجر يعرض عليهم الإسلام فمن أسلم قبل منه ومن لم يسلم ضربت عليه الجزيرة غيرناكحي نسائهم ولاآكلي ذبائحهم إنتهى (نصب:۱۱\۴۷۴)_

حلال ده.نو د هغه ذبیحه به حلال وی.اوکه په داسې دین باندې دې.چه د هغه ذبیحه حلال نه ده.نو دهغه ذبیحه به حلال نه وی.مثلاً یو یهودی وو.نصرانی شو.نو دهغه ذبیحه حلال ده.اوکه مجوسی (آتش پرست) شو.نو د هغه ذبیحه به حلال نه وی. لنډیز د کلام دا چې په وخت د ذبح هغه په کوم حال دې.د هغه حال اعتبار به کولې شی.د بت پرستو ذبیحه هم حلال نه ده.خکه چې د هغوی هیڅ دین نشته.

## په حالت د احرام یا په حرم کښې د ښکار ذبح کولو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. وَالْمُحْرِمُ او خوړلې به نشی د محرم ذبیحه، يَعْنِي مِنَ الصَّيْدِ یعنی د ښکار نه وَكَذَا لَا يُؤْكَلُ او هم دغه ډول خوړلې به نشی هغه ښکار مَا ذُبِحَ فِي الْحَرَمِ مِنَ الصَّيْدِ کوم چې حرم کې ذبح کړې شوې وی وَالْإِطْلَاقُ فِي الْمُحْرِمِ يَنْتَظِمُ الْحِلَّ وَالْحَرَمَ، او په محرم کې اطلاق حل او حرم دواړو ته ګډ دې وَالذَّبْحُ فِي الْحَرَمِ يَسْتَوِي فِيهِ الْحَلَالُ وَالْمُحْرِمُ او ذبح په حرم کې، په دې کې حلال او محرم دواړه برابر دی وَهَذَا لِأَنَّ الذَّكَاةَ فِعْلٌ مَشْرُوعٌ او دا خکه چې ذکاة مشروع فعل دې وَهَذَا الصَّنِيعُ مُحَرَّمٌ فَلَمْ تَكُنْ ذَكَاةً، او دا طریقه حرام ده.نو دا به ذکاة نه وی بِخِلَافِ مَا إِذَا ذَبَحَ الْمُحْرِمُ غَيْرَ الصَّيْدِ. په خلاف ددې صورت کله چې محرم د ښکار نه علاوه ذبح کړو أَوْ ذَبَحَ فِي الْحَرَمِ غَيْرَ الصَّيْدِ یا په حرم کې د ښکار نه علاوه ذبح کړې شوې وی صَحَّ نو صحیح ده لِأَنَّهُ فِعْلٌ مَشْرُوعٌ خکه چې دا فعل مشروع دې، إِذِ الْحَرَمُ لَا يُؤَمِّنُ الشَّاةَ خکه چې حرم وزه ته امن نه ورکوی وَكَذَا لَا يَحْرُمُ ذَبْحُهُ عَلَى الْمُحْرِمِ او هم دغه ډول محرم باندې ددې ذبح حرام نه ده.

تشریح:- په حرم شریف کې د وزه وغیره ذبح جائز ده.د ښکار ذبح کول جائز نه دی.دغه ډول محرم وزه وغیره ذبح کولې شی.ښکار نشی ذبح کولې.که محرم په حرم کې وی.اوکه په حِل کې وی. ذکاة یو مشروع فعل دې.او په حرم کې ښکار.ذبح کول، یا د محرم ښکار ذبح کول ممنوع فعل دې.حرام دې.نو دا ذبح به ذکاة نه وی.

## د قصداً بسم الله پریخودونکې د ذبیحې حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِنْ تَرَكَ الذَّابِحُ التَّسْمِيَةَ عَمْدًا اوکه ذبح کونکې قصداً تسمیه (بسم الله) پریخودله فَالذَّبِيحَةُ مَيْتَةٌ نو ذبیحه مرږکې ده لَا تُؤْكَلُ خوړلې به نشی وَإِنْ تَرَكَهَا نَاسِيًا اوکه تسمیه ئې په هیره پریخودله أُكِلَ نو خوړلې به شی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ او امام شافعی رحمه الله اوفرمائیل أُكِلَ فِي الْوَجْهَيْنِ چې په دواړو صورتونو کې به خوړلې شی وَقَالَ مَالِكٌ: او امام مالک رحمه الله اوفرمائیل :. لَا تُؤْكَلُ فِي الْوَجْهَيْنِ په دواړو صورتونو کې به نشی خوړلې وَالْمُسْلِمُ وَالْكِتَابِيُّ فِي تَرْكِ التَّسْمِيَةِ سَوَاءٌ او مسلمان اوکتابی په تسمیه پریخودو کې برابر دی.

تشریح:- په ذبیحه باندې تسمیه ونیل ضروری دی.امام مالک رحمه الله فرمائی.که په هیره یا قصد سره ئې تسمیه پریښودې وی.نو ذبیحه به حلال نه وی.او امام شافعی رحمه الله بالکل ددې عکس فرمائی.یعنی که قصداً ئې پرېږدی او که په هیره، دواړو صورتونو کې ذبیحه حلال ده.حنفیان په منځ منځ کې دی. فرمائی.که په هیره ئې پرېږدی.نو ذبیحه حلال ده.اوکه قصداً ئې پرېږدی.نو ذبیحه مرږکې او حرام ده.دا به نه خوړلې کیږی.ددې حضراتو دا اختلاف لکه څنګه چې مسلمان کې دې.دغه ډول کتابی کې هم دې. هم دا مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل. او مسلمان او کتابی په تسمیه پریخودو کې برابر دی.

وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا تَرَكَ التَّسْمِيَةَ عِنْدَ إِرْسَالِ الْبَازِي وَالْكَلْبِ وَعِنْدَ الرَّمْيِ او هم په دې اختلاف (مبنی) دې.کله ئې چې تسمیه پریښودې وی د باز او سپی پریخودو په وخت او د غشی ویشتلو په وخت.

تشریح:- که یوکس دغشی ویشتلو په وخت،یا په ښکار باندې د باز او سپی پریخودو په وخت تسمیه پریخودله. اوس هم دا اختلاف دې.یعنی زموږ په نیز که په هیره ئې پریښودې وی.او ښکار ئې اونیولو.په



داسې حال کې چې هغه مړ شوې دې.نو حلال دې.اوکه قصداً ئې تسمیه پریښودې وی.نو حلال نه دې.د امام شافعی رحمه الله په نیز دواړو صورتونو کې حلال دې.د امام مالک رحمه الله په نیز دواړو صورتونو کې حلال نه دې.

## د امام شافعی رحمه الله نقطه نظر

وَهَذَا الْقَوْلُ مِنَ الشَّافِعِيِّ مُخَالِفٌ لِلْإِجْمَاعِ او د امام شافعی رحمه الله دا قول د اجماع خلاف دې فَإِنَّهُ لَا خِلَافَ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَهُ خکه چې د امام شافعی رحمه الله نه وړاندې خلګو کې هیڅ اختلاف نشته. فِي حُرْمَةِ مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا د تسمیه قصداً پریخودونکی په حرمت کې، وَإِنَّمَا الْخِلَافُ بَيْنَهُمْ فِي مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ نَاسِيًا. د هغوی په منځ کې اختلاف په هیره تسمیه پریخودو کې دننه دې فَمِنْ مَذْهَبِ ابْنِ عُمَرَ رضی الله عنه نو د ابن عمر رضی الله عنهما مذهب دا دی أَنَّهُ يَحْرُمُ چې دا حرام دې وَمِنْ مَذْهَبِ عَلِيٍّ وَابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه او د حضرت علی او ابن عباس رضی الله عنه مذهب دا دې أَنَّهُ يَحِلُّ چې دا حلال دې بِخِلَافِ مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا، په خلاف د قصداً تسمیه پریخودو، وَلِهَذَا قَالَ أَبُو يُوسُفَ وَالْمَشَايِخُ رَحِمَهُمُ اللَّهُ: او هم په دې وجه امام ابویوسف او مشائخو رحمهم الله اوفرمائیل إِنَّ مَتْرُوكَ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا لَا يَسَعُ فِيهِ الِاجْتِهَادُ چې په قصد سره تسمیه پریخودو کې د اجتهاد ګنجائش نشته وَلَوْ قَضَى الْقَاضِي بِجَوَازِ بَيْعِهِ او که قاضی ددې (قصداً تسمیه پریښودې شوی د بیع) د جواز فیصله ورکړله، لَا يَنْفُذُ نو دا به نافذ نه وی، لِكَوْنِهِ مُخَالِفًا لِلْإِجْمَاعِ ددې فیصلې د اجماع مخالف کیدو په وجه.

تشریح:- صحابه کرام رضی الله عنهم او تابعین رحمهم الله واړه متفق دی.چه په کوم باندې قصداً تسمیه پریښودې شوې وی. نو هغه حرام دې.البته که هغه په هیره پریښودې وی.نو په دې کې اختلاف دې.حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دې ته حرام وائی.او حضرت علی او حضرت ابن عباس رضی الله عنه دې ته حلال وائی.چونکه د قصداً تسمیه پریښودې شوی حرمت اجماعی دې.نو په دې کې اجتهاد هم نشی کیدې.یعنی دا مسئله مجتهد فیه نه ده.نو که قاضی هم ددې د بیع د جواز فیصله ورکړی.نو چونکه دا فیصله د اجماع مخالف ده.په دې وجه به دا فیصله نافذ نه وی.ددې تقریر نه معلومه شوه.چه د امام شافعی رحمه الله دا قول د اجماع خلاف دې.

## د امام شافعی رحمه الله دلیل

لَهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ امام شافعی رحمه الله دلیل د نبی ﷺ دا فرمان دې الْمُسْلِمُ يَذْبَحُ عَلَى اسْمِ اللَّهِ تَعَالَى چې مسلمان د الله تعالی په نوم باندې ذبح کوی. سَمَّى أَوْ لَمْ يُسَمِّ[1] که تسمیه اووائی.اوکه اونه وائی

تشریح:- دا د امام شافعی رحمه الله دلیل دې.(1) حدیث: مسلمان د الله تعالی په نوم باندې ذبح کوی.که تسمیه اووائی.او که اونه وائی.حدیث مطلق دې.د قصد او هیرې هیڅ تفصیل په دې کې نشته.

وَلِأَنَّ التَّسْمِيَةَ لَوْ كَانَتْ شَرْطًا لِلْحِلِّ خکه که تسمیه د حلت شرط وې لَمَا سَقَطَتْ بِعُذْرِ النِّسْيَانِ نو تسمیه هیریدل به د عذر نه نه ساقطیدل كَالطَّهَارَةِ فِي بَابِ الصَّلَاةِ، لکه څنګه چې د لمونځ په اړه کې پاکوالې دې وَلَوْ كَانَتْ شَرْطًا اوکه تسمیه شرط وی فَالْمِلَّةُ أُقِيمَتْ مَقَامَهَا نو دین د تسمیه قائم مقام ګرځولې شی. كَمَا فِي النَّاسِي لکه د هیرونکی کې،

تشریح:- عقلی دلیل: که تاسو تسمیه ته شرط وایئ.نو بیا به د اودس په درجه کې وی.چه اودس که قصداً پرېږدی اوکه په هیره، دواړو صورتونو کې لمونځ نه کیږی.خکه چې "اذا فات الشرط فات المشروط" قاعده کلیه ده.حالانکه د هیریدو په صورت کې د تسمیه پریخودو په وجه ذبیحه ته حلال وایئ.ددې نه معلومه شوه.چه دا شرط نه دې.او هرکله چې شرط نه دې.نوکه قصداً پریښودې شی.نو ذبیحه به مرږکې نه وی.او

[1] قال الزيلعي رحمه الله غريب بهذا اللفظ وفي منعناه أحاديث ثم أخرج عدة أحاديث منها حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه الدارقطني في سننه (٢٩٦\٤) نصب: ٤٦٧\٤)_

امام شافعي رحمه الله فرمائي. كه بالفرض تسميه شرط اومنلې شي.نو لكه څنګه چې د هيريدو په صورت كې ملتِ توحيد د تسميه قائم مقام ګرځولې شي.نو د قصداً په صورت كې به هم ملتِ توحيد د تسميه قائم مقام وي.

## د احنافو رحمهم الله دليل

وَلَنَا الْكِتَابُ او زموږ دليل كتاب دې وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالَى او دا د الله تعالى فرمان دې ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ الْآيَة﴾ او مه خورئ د هغه ځناورو نه په كومو چې د الله تعالى نوم ذكر نكړې شي،، ﴿الانعام:۱۴۱﴾ نَهْيٌ دا نهي ده وَهُوَ لِلتَّحْرِيمِ او دا د تحريم دليل دې وَالْإِجْمَاعُ او زموږ دليل اجماع ده وَهُوَ مَا بَيَّنَّا او دا هغه دې.كوم چې موږ بيان كړې دي

تشريح:- دا زموږ درې دليلونه دي.① كتاب الله: د الله تعالى ارشاد دې. ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ﴾ يعني،، په كومو ذبيحو چې تسميه اونه وئيلې شوه.هغه مه خورئ. ﴿وَلَا تَأْكُلُوا﴾ د نهي صيغه ده.چه دا تحريم لپاره ده.معلومه شوه.چه د قصداً تسميه پريښودې شوى خوراك حرام دې.② اجماع د امت: يعنى د امام شافعي رحمه الله نه وړاندې واړه امت ددې په حرمت باندې متفق دي.

وَالسُّنَّةُ او حديث دې وَهُوَ حَدِيثُ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ الطَّائِيِّ رضي الله عنه او دا د عدى ابن حاتم طائى رضي الله عنه حديث دې فَإِنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَالَ فِي آخِرِهِ چې په دې كې نبى كريم ﷺ ددې په آخر كې فرمائيلې دي. فَإِنَّكَ إِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلَى كَلْبِكَ چې تا پخپل سپي باندې تسميه وئيلې ده وَلَمْ تُسَمِّ عَلَى كَلْبِ غَيْرِكَ(¹) او د خپل سپى نه په علاوه باندې دې تسميه نه ده وئيلې عَلَّلَ الْحُرْمَةَ بِتَرْكِ التَّسْمِيَةِ رسول الله ﷺ د حرمت علت تسميه پريښول ګرځولى دى.

تشريح:- حضرت عدى ابن حاتم رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوكړو.چه ډير ځل زه پخپل ښكار باندې خپل سپې پريږدم.نو زما سپى سره بل سپې شريكيږي.اوس دا معلومه نه ده.چه كوم يو سپى ښكار نيولې دې.نو آيا زه دا خورم؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل.چه تا پخپل سپى باندې تسميه وئيلې ده.په دوهم دې نه ده وئيلې.يعنى ددې خوراك حرام دې .او د حرمت علت تسميه پريښول دى.معلومه شوه.چه قصداً تسميه پريښول د ذبيحې د حرمت موجب دى.

## د امام مالك رحمه الله نقطه نظر

وَمَالِكٌ او امام مالك رحمه الله استدلال كوى يَحْتَجُّ بِظَاهِرِ مَا ذَكَرْنَا،د هغه دليلونو نه كوم چې موږ ذكركړې دى إِذْ لَا فَصْلَ فِيهِ ځكه چې دې كې هيڅ تفصيل نشته وَلَكِنَّا نَقُولُ فِي اعْتِبَارِ ذَلِكَ مِنَ الْحَرَجِ خو موږ وايو.چه ددې په اعتبار كاوه سره هغه حرج ( او تنكسيا) ده مَا لَا يَخْفَى چې پټه نه ده لِأَنَّ الْإِنْسَانَ كَثِيرُ النِّسْيَانِ ځكه چې انسان ډير زيات هيرونكې دې ،وَالْحَرَجُ مَدْفُوعٌ او حرج لرې كړې شوې دې

تشريح:- امام مالك رحمه الله فرمائي.چه تاسو كوم آيت او حديث پيش كړې دې.د هغې نه ښكاره دا معلوميږي .كه تسميه او نه وئيلې شي.كه په قصد سره وى.اوكه په هيره وى.نو ذبيحه حرام ده.خوړلې به نشى.ځكه چې دې كې د قصد او هيرې هيڅ تفصيل نشته.موږ وايو.كه د هيريدو عذر، عذر اونه شمارلې شي.نو ډير زيات تكليف ( او تنګى) به لازم شي.حالانكه شريعت تكليف لرې كوى.او انسان ډير زيات هيرونكې دې. نو بيا به ډير زيات نقصان لازم شي.لكه څنګه چې ښكاره ده.

وَالسَّمْعُ غَيْرُ مُجْرًى عَلَى ظَاهِرِهِ او دليل نقلى پخپل ظاهر باندې نه دې جارى شوې ،إِذْ لَوْ أُرِيدَ بِهِ ځكه كه ددې نه ظاهر

---

(¹) من حديث عدي بن حاتم رضي الله عنه أخرجه البخاري في الوضوء باب ۳۳ ومسلم في الصيد رقم ٤م ۳ وأبوداود في الأضاحي باب ۲۲ والترمذي في الصيد باب ۶ والنسائي في الصيد باب ۲ والدارمي في الصيد باب ۱)_



مراد وې لَجَرَتِ الْمُحَاجَّةُ نو په سلفو كې به محاجه ( مباحثه) جارى شوې وه وَظَهَرَ الْانْقِيَادُ او ( د مقابل اړخه به) قبلول ښكاره شوې وو وَارْتَفَعَ الْخِلَافُ فِي الصَّدْرِ الْأَوَّلِ او په مخكې زمانه كې به اختلاف لرې شوې وې.

تشريح:- كه د آيت ظاهرى معنى مراد وې.نو په صحابو رضي الله عنهم كې چې كوم حضرات په هيره د تسميه پريښودې شوى د حرمت قائل وو.هغوى به په نورو حضراتو ددې آيت نه دليل نيولې وو.او چونكه دا نص قطعى دې.دوهم (مقابل) ددې نه انكار نشى كولې.نو منلې به ئې وو.او جګړه به د صحابو رضي الله عنهم په زمانه كې ختمه شوې وه.معلومه شوه.چه آيت نه ظاهرى معنى مراد نه ده.

## د امام شافعي رحمه الله د استدلال جواب

وَالْإِقَامَةُ فِي حَقِّ النَّاسِي او قائمول ( دين د تسميه په ځائې) په حق د هيرونكى كې ، وَهُوَ مَعْذُورٌ حالانكه هغه معذور دې. لَا يَدُلُّ عَلَيْهَا فِي حَقِّ الْعَامِدِ ودلالت نه كوى قائمولو باندې د عامد ( قصداً پريخودونكى) په حق كې لَا عُذْرَ حالانكه هيڅ عذر نشته ،وَمَا رَوَاهُ او كوم چې امام شافعي رحمه الله روايت كړې دې مَحْمُولٌ عَلَى حَالَةِ النِّسْيَانِ هغه د نسيان په حالت باندې محمول دې.

تشريح:- امام شافعي رحمه الله فرمائيلى وو.چه لكه څنګه د هيرولو په صورت كې ملتِ توحيد د تسميه قائم مقام ګرځولې شوې دې.دغه ډول د عمد په صورت كې ملتِ توحيد د تسميه قائم مقام وى.نو ددې خواب دا دې.چه هيرونكې خو معذور دې.او عامد معذور نه دې.او مذكوره قائم مقام كول د عذر په وجه وو.نو چرته چې عذر نشته.هلته به نيابت هم نه وى.او امام شافعي رحمه الله چه كوم دليل ذكركړې وو.يعنى حديث،هغه د نسان په حالت باندې محمول دې.ولې؟ د اجماع دليل سره.

## په ذبح اختيارى كښې به د ذبحې په وخت بسم الله وئيلې شي

ثُمَّ التَّسْمِيَةُ فِي ذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ تُشْتَرَطُ عِنْدَ الذَّبْحِ بيا تسميه ذكاة اختيارى كې د ذبح په وخت شرط ده وَهِيَ عَلَى الْمَذْبُوحِ او دا تسميه به په مذبوح وى وَفِي الصَّيْدِ تُشْتَرَطُ عِنْدَ الْإِرْسَالِ وَالرَّمْيِ او په ښكار كې د ليګلو او ويشتلو په وخت شرط ده وَهِيَ عَلَى الْآلَةِ او دا تسميه به په آله وى لِأَنَّ الْمَقْدُورَ لَهُ فِي الْأَوَّلِ الذَّبْحُ ځكه چې مقدور عليه ( د كوم چې ده ته قدرت حاصل دې) په رومبى كې ذبح ده. وَفِي الثَّانِي الرَّمْيُ وَالْإِرْسَالُ او په دوهم صورت كې ويشتل او پريښول دى دُونَ الْإِصَابَةِ ښكار نيول نه دى فَتُشْتَرَطُ عِنْدَ فِعْلٍ يَقْدِرُ عَلَيْهِ نو تسميه به د داسې فعل په وخت شرط وى په كوم باندې چې هغه قدرت لرى.

تشريح:- د ذكاة دوې (دوه) قسمونه اختيارى او اضطرارى وړاندې تير شوى دى.او دا هم مسلم ده.چه انسان د قدرت په اندازه مكلف وى.نو اوس فرمائي.چه په ذكاة اختيارى كې به تسميه د ذبح په وخت وئيلې شى.او فرمائى.چه مقام د تسميهٔ مذبوح دې.او په ذكاة اضطرارى كې به د غشى غورځولو په وخت، يا د سپى يا باز پريخودو په وخت به تسميه وئيلې شى.يعنى دلته محل د تسميې آله ده.مذبوح نه دې.او هم دا د قدرت تقاضه ده.ځكه چې رومبى صورت كې ده ته په ذبح باندې قدرت شته.او په دوهم صورت كې ده ته مذبوح باندې قدرت نشته.يعنى په ښكار باندې قدرت نشته.صرف په غشى غورځولو،ساو د سپى او باز پريخودو باندې قدرت شته.د ښكار په نيولو باندې نشته.

حَتَّى إِذَا أَضْجَعَ شَاةً تردې چې كله ده يوه وزه سملوله وَسَمَّى او تسميه ئې اووئيله فَذَبَحَ غَيْرَهَا بِتِلْكَ التَّسْمِيَةِ بيا ئې په دې تسميه سره ددې نه علاوه ذبح كړله لَا يَجُوزُ نو جائز نه ده وَلَوْ رَمَى إِلَى صَيْدٍ او كه ښكار اړخ ته ئې غشې اوويشتلو وَسَمَّى او تسميه ئې اووئيله وَأَصَابَ غَيْرَهُ او ددې نه غير ( بل ښكار) ته اولګيدو حَلَّ نو حلال دې وَكَذَا فِي الْإِرْسَالِ او هم دغه ډول ( د سپى او باز) په پريخودو كې وَلَوْ أَضْجَعَ شَاةً او كه وزه ئې سملوله وَسَمَّى او تسميه ئې اووئيله ثُمَّ رَمَى بِالشَّفْرَةِ .بيا ئې چاړه اوغورځوله .وَذَبَحَ بِالْأُخْرَى او ذبح ئې كړله. په بلې چاړې سره أُكِلَ نو خوړلې

به شي.( يعنی حلال ده)

تشريح:- هرکله چې دا اصول مقرر شو.چه ړومبی کې محل د تسمية مذبوح دې.او په دوهم کې آله ده.نو بيا په دې باندې يو څو جزئيات متفرع کيږي.

① په سپي او باز کې به هم دا حکم وی.يعنی تسميه ئې اوونيله.او په يو ښکار ئې پريخودل.او دې بل ښکار اونيولو.نو حلال دې.② چيلئ د ذبح لپاره سملوله.او تسميه ئې اوونيله.بيا چې په لاس کې کومه چاړه وه.هغه ئې اوغورځوله.او په بل چاړه باندې ئې ذبح کړله.نو جائز ده.ځکه چې محل د تسمية مذبوح دې.او مذبوح هم هغه دی.په کوم ئې چې تسميه ونيلې ده.

وَلَوْ سَمَّى عَلَى سَهْمٍ او که په غشی ئې تسميه اوونيله ثُمَّ رَمَى بِغَيْرِهِ صَيْدًا .بيا ئې اوغورځولو بل غشې ښکار ارخ ته لَا يُؤْكَلُ نو خوړلې به نشي.

تشريح:- په يو غشی ئې تسميه اوونيله.بيا ئې دا غشې کيخودو.او دوهم غشې ئې په ښکار اوغورځولو.نو حلال به نه وی.ځکه په کوم غشی ئې چې مر کړې دې.په هغې ئې تسميه نه ده ونيلې.

**د ذبح په وخت د الله تعالی نوم سره د غيرالله د نوم ملاوولو متعلق ړومبۍ مسئله**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی وَيُكْرَهُ أَنْ يَذْكُرَ مَعَ اسْمِ اللَّهِ تَعَالَى شَيْئًا غَيْرَهُ .او مکروه ده.چه د الله نوم سره دده نه علاوه بل شی ذکر کړی وَأَنْ يَقُولَ عِنْدَ الذَّبْحِ: او مکروه ده دا چې هغه د ذبح په وخت ووايي اللَّهُمَّ تَقَبَّلْ مِنْ فُلَانٍ) ای الله ا د فلانی د اړخه ئې قبول کړه وَهَذِهِ ثَلَاثُ مَسَائِلَ او دا درې مسئلې دی إِحْدَاهَا په دې کې يوه دا ده :أَنْ يَذْكُرَ مَوْصُولًا لَا مَعْطُوفًا چې دا موصولاً ذکر کړی.معطوف ئې نکړی فَيُكْرَهُ نو دا مکروه ده وَلَا تَحْرُمُ الذَّبِيحَةُ.او ذبيحه حرام نه ده وَهُوَ الْمُرَادُ بِمَا قَالَ.او امام محمد رحمه الله چه کوم فرمائيلی دی.( په متن کې) د هغې نه هم دا مراد دې

تشريح:- امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې فرمائيلی دی.چه د الله نوم سره بل څوک ذکرکول مکروه دی.او د ذبح په وخت داسې ونيل مکروه دی.چه ﴿ اللهم تقبل من فلان ﴾ په دې باندې مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه دلته درې مسئلې دی.① د دوهم کس ذکر اوکړې شی.خو د عطف په طريقه باندې نه، بلکه د وصل او ملاپ په طريقه باندې د عطف نه بغير، نو دا مکروه دی.خو ذبيحه به حلال وی.او د امام محمد رحمه الله د خپل مذکوره فرمان نه هم دا مراد دې.

وَنَظِيرُهُ أَنْ يَقُولَ: بِاسْمِ اللَّهِ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ او ددې مثال دا دې.چه دا اووائی.،، بسم الله محمد رسول الله ،، ( يعنی دا مکروه دی حرام نه دی) لِأَنَّ الشَّرِكَةَ لَمْ تُوجَدْ ځکه چې شرکت او نه موندې شو فَلَمْ يَكُنِ الذَّبْحُ وَاقِعًا لَهُ نو ذبح به د نبی کريم ﷺ لپاره نه واقع کيږی إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ خو دا مکروه دی لِوُجُودِ الْقِرَانِ صُورَةً صورتاً د يو ځائې موجود کيدو په وجه.. فَيُتَصَوَّرُ بِصُورَةِ الْمُحَرَّمِ نو دا به د حرام په صورت کې متشکل کيږی.

تشريح:- ددې ړومبی صورت مثال دا دې.چه ذبح کونکې اووائی.چه ﴿ بسم الله محمد رسول الله ﴾ نو دا مکروه دی.او ذبيحه حلاله ده.د حلال کيدو دليل دا دې.چه دلته نبی کريم ﷺ شريک نه دې جوړ شوې.که شريك جوړول مقصود وې.نو بيا به ،، محمد ،، مجرور وو.بهرحال هرکله چې دې کې شرکت او نه موندې شو.نو ذبح د رسول الله ﷺ لپاره نشوه.او د مکروه کيدو دليل دا دې.چه دلته صورتاً د الله نوم سره د غير يوځائې کول او ملاپ دې.نو د احتياط تقاضه د حرمت ده.په دې وجه دا مکروه تحريمی ګرځولې شوې دې.چه دا به د حرام په شکل کې متشکل کيږی.

**دويمه مسئله**

وَالثَّانِيَةُ او دويمه مسئله دا ده أَنْ يَذْكُرَ مَوْصُولًا عَلَى وَجْهِ الْعَطْفِ وَالشَّرِكَةِ چې موصولاً د عطف او شرکت په



طريقه ( د غيں) ذکر اوکړی بِأَنْ يَقُولَ: بِاسْمِ اللَّهِ وَاسْمِ فُلَانٍ په دې طريقه چې اووائی. ﴿ بسم الله واسم فلان ﴾ ، أَوْ يَقُولَ: بِاسْمِ اللَّهِ وَفُلَانٍ. أَوْ بِاسْمِ اللَّهِ وَمُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ يا اووائی. ﴿ بسم الله و فلان ، يا بسم الله و محمد رسول الله ﴾ بِكَسْرِ الدَّالِ د دال کسرې سره، فَتَحْرُمُ الذَّبِيحَةُ نو ذبيحه حرام ده لِأَنَّهُ أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ ځکه چې په دې باندې د غيرالله نوم اخستې شوې دې

تشريح:- دا په ذکر شوو دريو مسئلو کې دويمه مسئله ده.چه په دې کې د غيرالله ذکر د الله نوم سره اوکړې شی.او عطف سره اوکړې شی.چه ددې مثالونه ښکاره دی.چه په دې ټولو مثالونو کې د الله نوم سره دوهم شريك کړې شوې دې.نو په دې صورت کې ذبيحه حرام ده.

**دريمه مسئله**

وَالثَّالِثَةُ او دريمه مسئله دا ده أَنْ يَقُولَ مَفْصُولًا عَنْهُ چې هغه د الله تعالی د ذکر نه جلا ووايي صُورَةً وَمَعْنًى د صورت او معنی دواړو اعتبار سره بِأَنْ يَقُولَ قَبْلَ التَّسْمِيَةِ په دې طريقه چې دې اووائی.د تسميه نه وړاندې وَقَبْلَ أَنْ يُضْجِعَ الذَّبِيحَةَ او د ذبيحې د سملولو نه وړاندې، أَوْ بَعْدَهُ يا ددې نه روستو وَهَذَا لَا بَأْسَ بِهِ او دا هغه صورت دې.چه په دې کې هيڅ جرم نشته لِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ په دې وجه چې د نبی کريم ﷺ نه نقل دی. أَنَّهُ قَالَ بَعْدَ الذَّبْحِ اللَّهُمَّ تَقَبَّلْ هَذِهِ عَنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ ﷺ چې نبی کريم ﷺ د ذبح نه روسته اوفرمائيل.ای الله! دا قبوله کړه د محمد ﷺ د امت د طرفه، مِمَّنْ شَهِدَ لَكَ بِالْوَحْدَانِيَّةِ د هغه خلګو د اړخه چاچه ستا لپاره د وحدانيت ګواهی ورکړې وی،وَلِي بِالْبَلَاغِ(١)او زما لپاره د رسولو،

تشريح:- دا په ذکر شوو دريو مسئلو کې دريمه مسئله ده.او دا صورت جائز دې.په دې کې دغير ذکر خو کيږی.خو دالله سره يوځائې نه کيږی.بلکه جلا کيږی.يعنی ذبح کونکې د تسميه نه وړاندې يا د سملولو نه روستو، يا ددې نه روستو اووائی.چه ای الله! دا قربانی د فلانی د اړخه قبوله کړه.نو دا جائز ده.او په دې کې د شرکت هيڅ شبه نشته.او د مذکوره حديث نه ددې تائيد کيږی.چه ددې تفسير واضح دې.

**ذکر خالص شرط دې**

وَالشَّرْطُ هُوَ الذِّكْرُ الْخَالِصُ او شرط هغه ذکر خالص دې الْمُجَرَّدُ چې خالی وی؛ د خپل سوال او غرض نه عَلَى مَا قَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لکه څنګه چې ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل جَرِّدُوا التَّسْمِيَةَ چې تسميه خالی کړه حَتَّى لَوْ قَالَ عِنْدَ الذَّبْحِ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي تردې چې د ذبح په وخت ،، اللهم اغفرلی ،، اووائی لَا يَحِلُّ نو حلال به نه وی لِأَنَّهُ دُعَاءٌ وَسُؤَالٌ ځکه چې دا دعا اوسوال دې ،وَلَوْ قَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ أَوْ سُبْحَانَ اللَّهِ،او که ده اوونيل،،، الحمد لله،، يا ،، سبحان الله،، اللَّهُ يُرِيدُ التَّسْمِيَةَ په داسې حال کې چې هغه په دې سره د تسميه اراده کوی.حَلَّ نو حلال ده وَلَوْ عَطَسَ عِنْدَ الذَّبْحِ او که ده ته د ذبح په وخت پرنجې راغې فَقَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ نو ده اوونيل،،، الحمد لله،، لَا يَحِلُّ فِي أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ.نو حلال به نه وی.په دوو روايتونو کې د اصح روايت مطابق لِأَنَّهُ يُرِيدُ بِهِ الْحَمْدَ عَلَى نِعَمِهِ ځکه چې هغه په دې سره دالله تعالی په نعمت باندې د الله تعالی د حمد اراده کوی دُونَ التَّسْمِيَةِ د تسميه اراده نه کوی

تشريح:- د دريو مسئلو نه د فراغت نه روسته اوس مرغينانی رحمه الله د تسميه شرط ښائی.چه اوس خالص ذکرکيدل ضروری دې.چه په دې کې د خپل غرض او سوال ملاپ نه وی.ګنی ذبيحه به حلال نه وی.نو په ﴿ أللهم اغفرلی ﴾ سره به حلال نه وی.ځکه چې دا دعا او سوال دې.البته که د تسميه په اراده سره ده ،، الحمد لله،، يا ،، سبحان الله،، اووئيل.نو ذبيحه به حلال وی.ځکه چې دا خالص ذکر دې.اوکه پرنجې راغې.چه په دې ده ،، ولحمد لله،، اووئيل.نو د اصح روايت مطابق به ذبيحه حلال نه وی.ځکه ښکاره هم دا ده.چه دده

---

١ - من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه مسلم فى الأضاحى باب ٣وأحمدفى المسند(٦/٧٨)-

اراده د تسمیه نه ده. بلکه دي د الله تعالی په نعمت باندې د هغه شکریه ادا کوي.

وَمَا تَدَاوَلَتْهُ الْأَلْسُنُ عِنْدَ الذَّبْحِ او د ذبح په وخت چې کوم د خلګو په ژبه کوم رواج دې هغه دده قول ،، بسم الله و الله اکبر ،، دې مَنْقُوْلٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ (١) نو دا د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه منقول دې. قَوْلُهُ تَعَالٰى الله تعالی د قول ﴿فِیْ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَافَّ﴾ (الحج:٣٦) وَهُوَ قَوْلُهُ بِاسْمِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ او فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَافَّ (الحج:٣٦) په تفسیر کې.

تشریح:- د ذبح په وخت د خلګو په ژبو باندې د «بسم الله و الله اکبر» وئیلو رواج دې. نو په دې اړه کې مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل. چه د مذکوره آیت په تفسیر کې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه هم دا منقول دی. خو د محققینو حضراتو په نیز د واو نه بغیر ،، الله اکبر،، وئیلو مستحب دی.،، کما فی الزیلعی،،

## د ذبح مقام

قَالَ وَالذَّبْحُ بَيْنَ الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ وویل امام قدوری رحمه الله او ذبح د حلق او سینې په منځ کې ده وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: لَا بَأْسَ بِالذَّبْحِ او په جامع صغیر کې دی. چه هیڅ باك (جرم) نشته په ذبح کې فِي الْحَلْقِ كُلِّهِ په پوره حلق کې وَسَطِهِ ددې په منځ کې ، وَأَعْلَاهُ او په پورتنۍ برخه کې ، وَأَسْفَلِهِ او په لاندینۍ برخه کې ، وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او اصل کې دې کې د نبی کریم ﷺ فرمان دې الذَّكَاةُ مَا بَيْنَ اللَّبَّةِ وَاللَّحْيَيْنِ (٢) چې ذکاة (ذبح) د سینې او دواړو ژامو په منځ کې دې. وَلِأَنَّهُ مَجْمَعُ الْمَجْرَى وَالْعُرُوقِ او څکه چې حلق د نالو (ترټرو) او رګونو راجمع کونکې دې. فَيَحْصُلُ بِالْفِعْلِ فِيهِ إِنْهَارُ الدَّمِ عَلَى أَبْلَغِ الْوُجُوهِ نو په دې (مرکز) کې کار کاوه سره په کامله طریقه باندې وینه راوتل حاصلیږي ، فَكَانَ حُكْمُ الْكُلِّ سَوَاءً. نو د ټولو حکم به برابر وی.

حل اللغة: ① مجری: د جاری کیدو ځائې، چه ددې ژباړه نالۍ (ترټرو) سره شوې ده. او په حلق کې یوه نالۍ هغه ده. په کومه کې چې خوراك ځي. او یوه نالۍ هغه ده. په کومې چې ساه اخستې شی. ② العروق: جمع د عرق، رګ ③ اللحیین: دواړه جامې ④ اللبة: سینه

تشریح:- دا مسئله وړاندې تیره شوې ده. او د حدیث نه واضحه ده. دلته صرف دومره خبره د تشریح قابل ده. چې د حلق هره یوه برخه وی. که پورتنۍ وی او که د منځ یا لاندینۍ وی. که د هر ځائې نه ذبح کړې شی. برابر ده. څکه چې اصل مقصد وینه د غوښې نه جلا کول دی. او دا مقصد د هرځائې نه پوره کیږی.

## په ذبح کښې کوم کوم رګونه کټ کول ضروری دی؟

قَالَ وَالْعُرُوقُ الَّتِي تُقْطَعُ فِي الذَّكَاةِ أَرْبَعَةٌ: امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. او هغه رګونه کوم چې ذبح کې کټ کولې شی. څلور دی. الْحُلْقُومُ، وَالْمَرِيءُ، وَالْوَدَجَانِ) حلقوم (د ساه نالۍ)، نرخره (د خوراك داخلیدو ترټرو) او دواړه اوداج (د سټ دننه اړخ ته دوې (دوه) رګونه) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَفْرِ الْأَوْدَاجَ بِمَا شِئْتَ(٣)، د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه ،، چې په کوم شئ سره غواړې رګونه کټ کړه،، وَهِيَ اسْمُ جَمْعٍ او دا (اوداج لفظ) اسم جمع ده.

---

(١) أخرجه الحاكم فى المستدرک (٣٨٩\٢)_

(٢) من حديث أبى هريرة ﷺ أخرجه الدارقطنى فى سننه وابوداو فى الأضاحى باب ١٥ رقم ٢٨٢٤ والنسائى فى الضحايا رقم ٤٠٩٩ وابن ماجه فى الذبائح باب ٥ رقم ٣١٧٧)_

(٣) غربه الزيلعى رحمه الله ثم قال وروى ابن أبى شيبه فى مصنفه....عن رافع بن خديج رضى الله عنه قال سألت رسول عن الذبح بالسطية، فقال كل ماأفرى الأفرى الأوداج ، الاسناأوظفراً (ذكره الهيثمى فى مجمع الزوائد(٤/٣٤) وعزاه للطبرانى (نصب : ٤/ ٤٧٢) -



وَأَقَلُّهُ الثَّلَاثُ او ددې اقل مقدار درې دی. فَيَتَنَاوَلُ الْمَرِيءَ وَالْوَدَجَيْنِ نو دا به ګډ وی. مرئ او دواړو رګونو ته شاملیږی

حل اللغة: ① الحلقوم: د ساه نالۍ ② المرئ: مرئ ③ الودجان: د سټ دننه اړخ ته دوې (دوه) رګونه ④ یتناول:

تشریح:- په ذبح کې چې کوم رګونه کټ کولې شی. هغه څلور دی ① حلقوم ② مرئ ③ اوداج.- حلقوم ددې اصل حلق دې. په دې کې واو او میم زیات کړې شوې دې. نو حلقوم شو. د ساه نالۍ ته حلقوم وائی.

مرئ: هغه نالۍ کومه کې چې خوراك او اوبه ځي. ودجان: د ودج تثنیه ده. دا د سټ په دننه برخه کې دوې (دوه) رګونه وی. او حلقوم او مرئ ددې دواړو په منځ کې وی. اردو کې مرئ ته نرخره (او په پښتو کې ورته ترټرو) وائی. بهرحال دا څلور رګونه دی. چه په ذبح کې کټ کولې شی.

⁋ اوس ئې ددې په ثبوت کې یو حدیث پیش کړو. «أفر الأوداج بماشئت» دا د اوداج جمع ده. چه ددې اقل فرد درې دی. نو په دې کې نرخره او ودجان (د سټ دننه دوې (دوه) رګونه) داخل دی. او چونکه دا درې واړه د حلقوم کټ کاوه نه بغیر نشی کټ کیدې. نو په طریقه د اقتضاء حلقوم هم داخل شو. او په دې طریقه واړه رګونه څلور شو.

وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ فِي الِاكْتِفَاءِ بِالْحُلْقُومِ وَالْمَرِيءِ . او دا حدیث حجت دې. د امام شافعی رحمه الله په خلاف په حلقوم او مرئ باندې اکتفاء کاوه کې إِلَّا أَنَّهُ لَا يُمْكِنُ قَطْعُ هَذِهِ الثَّلَاثَةِ خو ددې دریو واړو پرې کول ممکن نه دی. إِلَّا بِقَطْعِ الْحُلْقُومِ خو د حلقوم کټ کاوه سره. فَيَثْبُتُ قَطْعُ الْحُلْقُومِ بِاقْتِضَائِهِ، نو حلقوم پرې کول به ددې حدیث د اقتضاء نه ثابتیږی. وَبِظَاهِرِ مَا ذَكَرْنَا او د هغې د ظاهر نه کوم چې موږ ذکرکړې دې يَحْتَجُّ مَالِكٌ رحمه الله. امام مالك رحمه الله استدلال کوی وَلَا يَجُوزُ الْأَكْثَرُ مِنْهَا. او هغه په دې کې اکثر جائز نه ګڼړی. بَلْ يُشْتَرَطُ قَطْعُ جَمِيعِهَا بلکه ددې ټولو پرې کول شرط دی. وَعِنْدَنَا إِنْ قَطَعَهَا حَلَّ الْأَكْلُ او زموږ په نیز که دا واړه ئې کټ کړل. نو خوړل حلال شو

تشریح:- هرکله چې د حدیث نه څلور رګونه ثابت شو. نو دا حدیث به د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت وی. څکه هغوی اوفرمائیل. چه د حلقوم او مرئ په کټ کاوه باندې اکتفاء جائز ده. څکه چې ددې دواړو د کټ کاوه نه روسته څاروې ژوندی نه پاتې کیږی.

⁋ نو امام شافعی رحمه الله په دوو باندې اکتفاء کاوه ته جائز وئیلی دی. او امام مالك رحمه الله د مذکوره حدیث ظاهر نه استدلال کړې دې. او د څلورو واړو کټ کاوه ئې ضروری ګرځولی دی. او فرمائی. که یو رګ پاتې شو. نو ذبیحه به حلال نه وی.

وَإِنْ قَطَعَ أَكْثَرَهَا او که په دې کې ئې اکثر کټ کړل. فَكَذَلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله. (١) نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز هم دغه ډول ده وَقَالَا . او صاحبین رحمهما الله فرمائی. لَا بُدَّ مِنْ قَطْعِ الْحُلْقُومِ وَالْمَرِيءِ وَأَحَدِ الْوَدَجَيْنِ چې په حلقوم او مرئ او دواړو رګونو کې د یو پرې کول ضروری دی.

تشریح:- پاتې شوه د حنفیانو مسئله، نو تردې ځائې اتفاق دې. چه په دې څلورو کې دریو باندې اکتفاء جائز ده. بیا دا درې کوم کوم دی. په دې کې د امام ابوحنیفه او صاحبینو رحمهم الله اختلاف دې. امام صاحب رحمه الله فرمائی. «لا علی التعین» چې کوم درې هم کټ کړې شو. نو ذبیحه به حلال وی. او صاحبین رحمهما الله فرمائی. چه حلقوم او مرئ پرې کول ضروری دی. البته ودجان کې که په یو باندې اکتفاء اوکړې شی. نو غوره ده.

## په دریو رګونو کټ کولو باندې اکتفاء جائز ده اوکه نه؟

قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: حضرت مرغینانی رحمه الله فرمائی هَكَذَا ذَكَرَ الْقُدُورِيُّ الِاخْتِلَافَ فِي مُخْتَصَرِهِ هم دغه ډول امام قدوری

---

(١) القول الراجح هوهذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى رد المحتار (٥٢٠٧) وخلاصة الفتاوى (٣٠٦\٤) والبحر (٣١٠\٨)-

رحمه الله پخپل مختصر کي اختلاف ذکر کړي دي وَالْمَشْهُوْرُ فِي كُتُبِ مَشَايِخِنَا رَحِمَهُمُ اللهُ او زموږ د مشائخو په کتابونو کي مشهور دي أَنَّ هٰذَا قَوْلُ أَبِي يُوْسُفَ وَحْدَهٗ چي دا لفظ د امام ابویوسف رحمه الله قول دي.

تشریح:- مرغینانی رحمه الله فرمائي.چه امام قدوری رحمه الله پخپل مختصر کي هم دا اختلاف ذکرکړي دي.کوم چي موږ نقل کړي دي.خو د مشائخو په کتابونوکي مشهورتیا سره دا منقول دي.چه په دې کي صرف د امام صاحب او د امام ابویوسف رحمه الله اختلاف دي.یعنی امام صاحب رحمه الله په دریو باندي اکتفاء ته جائز وائي.خو په دې شرط چي په ودجان کي یو باندي اکتفاء اوکړې شي.او پاته واړه کټ کړې شي.او امام صاحب رحمه الله مطلقاً دریو باندي اکتفاء جائز ګرځوي.یعنی په دې کي د امام محمد رحمه الله قول ذکر نه دي.

## په ذبحه کښي د رګونو د نیمي حصي کټ کولو حکم

وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ او امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي فرمائیلی دی إِنْ قَطَعَ نِصْفَ الْحُلْقُوْمِ وَنِصْفَ الْأَوْدَاجِ او که ده د حلقوم نیمه برخه کټ کړله او د اوداج (د سټ دننه رګونو) نیمه برخه ئې کټ کړله: لَمْ يُؤْكَلْ نو خوړلي به نشي( حرام دي).

تشریح:- امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي دا فرمائیلی دی.کوم چي ذکر دې.ددې مطلب دا دې.چه په ذکر شوو رګونو کي ئې هر یو کټ کړو.خو نیم نیم ئې کټ کړو.نو حلال به نه وی.اوکه اکثر ئې کټ کړو. نو حلال به وی.او د اکثر پرې کول د ذبیحي مړکیدو نه وړاندې کیدل پکار دی.

وَإِنْ قَطَعَ أَكْثَرَ الْأَوْدَاجِ وَالْحُلْقُوْمِ اوکه اکثره برخه ئې کټ کړله په اوداج او حلقوم کي قَبْلَ أَنْ يَمُوْتَ د مړکیدو نه وړاندې، أُكِلَ نو خوړلي به شي ( حلال دي). ..وَلَمْ يَحْكِ خِلَافًا او اختلاف ئې نه دې نقل کړې فَاخْتَلَفَتِ الرِّوَايَةُ فِيْهِ او په دې کي روایات مختلف دي

تشریح:- او امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي په دې اړه کي هیڅ اختلاف نه دې نقل کړې.حالانکه ددې مسئلې په حکم کي روایات مختلف دی.اوس به مرغینانی رحمه الله د مذکوره تفصیلاتو حاصل بیانوی.

## په رګونو کټ کولو کښي د امامانو د اختلاف حاصل

فَالْحَاصِلُ نو حاصل دا دې أَنَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ إِذَا قَطَعَ الثَّلَاثَ: چي د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز کله ئې چي درې کټ کړل أَيَّ ثَلَاثٍ كَانَ چي کوم درې هم وی يَحِلُّ نو حلال به وی وَبِهٖ كَانَ يَقُوْلُ أَبُوْ يُوْسُفَ أَوَّلًا او هم دا به مخکي امام ابویوسف رحمه الله فرمائیل ثُمَّ رَجَعَ إِلٰى بیا ئې هغي ( قول) اړخ ته رجوع اوکړله مَا ذَكَرْنَا کوم چي موږ ذکرکړې دې.

تشریح:- ددې تفصیل لنډیز دا ده.چه د امام صاحب رحمه الله مذهب دا دې.چه په څلورو واړو رګونوکي د څه تعین نه بغیر کوم درې هم چي کټ کړې شي.نو صحیح ده.او ذبیحه حلال ده.او د امام ابویوسف رحمه الله هم دا دې.بیا امام ابویوسف رحمه الله هغه قول اختیار کړو.کوم چي ذکر شو.یعنی حلقوم او مرئ او په دوو اوداجو کي د یو پرې کول ضروری دی.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ او د امام محمد رحمه الله نه نقل دې أَنَّهٗ يُعْتَبَرُ أَكْثَرُ كُلِّ فَرْدٍ چي د هر فرد ( یعنی د هر رګ) اکثره برخه معتبر ده وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او هم دا د امام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دې لِأَنَّ كُلَّ فَرْدٍ مِنْهَا أَصْلٌ بِنَفْسِهٖ.څکه چي دې کي هر فرد پخپله اصل دې لِانْفِصَالِهٖ هر یو د جلا جلا کیدو په وجه، عَنْ غَيْرِهٖ د خپل غیر نه وَلِوُرُوْدِ الْأَمْرِ بِفَرْيِهٖ او د حکم وارد کیدو په وجه د هر یو دکټ کولو فَيُعْتَبَرُ أَكْثَرُ كُلِّ فَرْدٍ مِنْهَا نو په دې کي به د هر فرد اکثره برخه معتبر وی.

حل اللغة: ① الانفصال: جداوالي ② فریه: پرې کول

تشریح:- د امام محمد رحمه الله مذهب دا دې.چه څلور واړه به کټ کولې شی.البته که ددې څلور واړو اکثره برخه کټ شوه. نو کافی ده.پوره پرې کول ضروری نه دی.څکه چي څلور واړه رګونه جلا جلا دی.د یو بل نه جلا



دی.نوهر یو به اصل شمارلې شی.نو د هر یو پرې کول به ضروری وی.او چونکه حکم د نص (کوم چي وړاندې ذکر شوې دې) د هر یو د پرې کول وراد شوې دې.(لکه څنګه چي موږ ددې وضاحت کړې دې).نو د هر یو اکثره برخه پرې کول ضروری دی.څکه چي اکثر د کل قائم مقام کولې شی.په ﴿مجمع الانهر ص:۴۹۲ج۲﴾ باندې مسئله هم دا شان ذکر ده.اوکومه چي امام قدوری رحمه الله ذکرکړې ده.دا ئې ،، قیل ،، سره ذکرکړې ده.

## د امام ابویوسف رحمه الله دلیل

وَلِأَبِي يُوْسُفَ او د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې أَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنْ قَطْعِ الْوَدَجَيْنِ إِنْهَارُ الدَّمِ چي مقصود د دواړو اوداجو( د سټ دننه رګونو) کټ کاوه سره وینه تویول دی. فَيَنُوْبُ أَحَدُهُمَا عَنِ الْآخَرِ نو په دې دواړو کي به یو د بل نیابت کوی.إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَجْرَى الدَّمِ څکه چي دې دواړو کي هر یو د وینې جاری کیدو ځاني دې

حل اللغة: ① انهارالدم: د وینې تویول ② مجری العلف: دګیاه لاره ③ مجری النفس: دساه لاره

تشریح:- دا د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دې.ددې لنډیز دا ده.چه حلقوم او نرخره به د یو بل نیابت نه کوی.څکه چي دې دواړوکي یوه د خوراك او اوبو نالئ ده.او بله د ساه اخستلو ده.خو په دواړو اوداجو کي وینه ده.نوکه په یو باندې اکتفاء اوکړې شي.نو جائز ده.څکه چي وینه به اوس هم اوځي.صرف دومره خبره ده.چه لږ وخت روستو به اوځي.او د دواړو کټ کاوه په صورت کي زر اوځي.

أَمَّا الْحُلْقُوْمُ فَيُخَالِفُ الْمَرِيْءَ بهرحال حلقوم ( د ساه نالئ) ، د نرخره ( د خوراك داخلیدو ترتړو) ، مخالف فَإِنَّهٗ مَجْرَى الْعَلَفِ وَالْمَاءِ څکه چي حلقوم د ګیا او اوبو نالئ ده وَالْمَرِيْءُ مَجْرَى النَّفَسِ او نرخره د ساه اخستلو نالئ ده فَلَا بُدَّ مِنْ قَطْعِهِمَا نو ددې دواړو پرې کول ضروری دی.

تشریح:- دلته حلقوم ته د ګیا او اوبو نالئ وئیلې شوې ده.او مرئ ته د ساه اخستلو، حالانکه مسئله ددې په عکس ده.

وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ أَنَّ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې الْأَكْثَرُ يَقُوْمُ مَقَامَ الْكُلِّ فِي كَثِيْرٍ مِنَ الْأَحْكَامِ چي په ډیرو احکامو کي اکثر د کل قائم مقام وی وَأَيَّ ثَلَاثٍ قَطَعَهَا او کوم درې چي ده کټ کړی دی ، فَقَدْ قَطَعَ الْأَكْثَرَ مِنْهَا نو ده په څلورو کي اکثر کټ کړل وَمَا هُوَ الْمَقْصُوْدُ او کوم چي مقصود دې يَحْصُلُ بِهَا هغه به د دریو په کټ کاوه سره حاصل شی هُوَ إِنْهَارُ الدَّمِ الْمَسْفُوْحِ او دا ( مقصود) بهیدونکې وینه اوبښکل دی وَالتَّوْحِيَةُ فِي إِخْرَاجِ الرُّوْحِ او د ساه په اوبښکلو کي جلتی کول دی لِأَنَّهٗ لَا يَحْيَا څکه چي حیوان (څاروی) به ژوندې نه پاتې کیږی ،لِأَنَّهٗ بَعْدَ قَطْعِ مَجْرَى النَّفَسِ أَوِ الطَّعَامِ د ساه یا د خوراك نالئ کټ کاوه نه روسته وَيَخْرُجُ الدَّمُ بِقَطْعِ أَحَدِ الْوَدَجَيْنِ او په دواړو اوداجو ( د سټ دننه اړخ ته رګونو) کي د یو په کټ کاوه سره به وینه اوځی ،فَيُكْتَفٰى بِهٖ نو په دې به اکتفاء کولای شی تَحَرُّزًا عَنْ زِيَادَةِ التَّعْذِيْبِ د زیات عذاب نه د بچ کیدو دپاره،

حل اللغة: ① الدم المسفوح: روانه وینه ② التوحیه: جلتی کول ③ الودجین: د سټ اړخ ته دوې (دوه) رګونه

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَطَعَ النِّصْفَ په خلاف ددې صورت کله چي ده نیم کټ کړی وی ( یعنی دوې (دوه) رګونه) لِأَنَّ الْأَكْثَرَ بَاقٍ څکه چي اکثر پاته دی فَكَأَنَّهٗ لَمْ يَقْطَعْ شَيْئًا نو ګویا چي ده هیڅ کټ نکړل احْتِيَاطًا لِجَانِبِ الْحُرْمَةِ د حرمت د اړخ په وجه د احتیاط په لحاظ سره

تشریح:- دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دی.چه په ډیرو احکامو کي اکثر د کل قائم مقام ګرځولې شی.او د څه تعین نه بغیر چي کوم درې رګونه کټ کړې شو.نو اکثر کټ شو.او مقصود وینه اوبښکل دی.او دا چي روح زر اوځی.او دا مقصد حاصل دې.څکه چي هرکله چي د ګیا یا ساه نالئ کټ شوه.نو اوس به حیوان (څاروی) ژوندې نه پاتې کیږی.او په دواړو اوداجو کي چي کوم یو کټ شو.نو وینه به تولـه اوځی.نو په دریو باندې

اكتفاء جائز ده.چه ځاروی ته زيات تکليف او نه رسيږی.

تشريح:- البته که څلورو کي دوي (دوه) رګونه کټ کړی.نو اوس به ذبيحه حلال نه وی.ځکه چې اکثر ئې کټ نکړل.نوګويا چې ده هيڅ کټ نکړل.

که څوك دا سوال اوکړی چې د هيڅ نه کټ کاوه څه مطلب دې؟ حالانکه دلته خو نيم رګونه کټ شوی دی.نو دځواب دا دې چې دلتـه دوي (دوه) املـه جمع دی.يـو د حلت، او يـو د حرمـت، او د حرمت اړخ تـه ترجيح ورکړې شوې ده.په دې وجه ئې د حرمت اړخ ته ترجيح ور کاوه ته اوفرمائيل.چه هيڅ ئې نه دی کټ کړی.

فائده• د امام ابويوسف رحمه الله قول احوط معلوميږی.ځکه چې وينه او روح اوبښکل مقصود نه دی.تردې چې د وزه دوي (دوه) ټکړې کاوه سره هم دا مقصود حاصليدې شی.بلکه ذکاة شرعی مقصود دې.اوهغه اوداج (کټ کول) دی.او په اوداجو کي د غالب والی په وجه څلور واړه داخل دی. [م] کما صرح فی الدر المختار [م] نو غوره دا ده.چه څلور واړه کټ کړې شی.خوکه په دريو باندې اكتفاء اوکړې شوه.(نو هم جائز ده) په حلقوم او مرئ کي د مخالفت په وجه، دا به جلا جلا اعتبار کولې شی.اوپه اوداجو کي يو د بل نيابت کولې شی.

او امام صاحب رحمه الله چه کومه کليه پيش کړې ده.چه اکثر لپاره د کل حکم دې.نو دا څه قاعده کليه نه ده.ګنی د سورۀ فاتحه په اووه آيتونو کي په پنځو باندې اكتفاء جائز کيدل پکار دی.حالانکه سهواً په داسې کاوه سره سجده سهوه لازميږی.بهرحال چرته چې دليل نه وی.هلته اکثر د کل قائم مقام نشی کيدې.

### په کومو څيزونو سره ذبح کول صحيح دي؟

| |
|---|
| قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل وَيَجُوزُ الذَّبْحُ بِالظُّفُرِ او جائز ده ذبح کول په نوکانو وَالسِّنِّ وَالْقَرْنِ او غاښونو، او ښکرو سره إِذَا كَانَ مَنْزُوعًا کله چې دا جلا جلا وی. حَتَّى لَا يَكُونَ بِأَكْلِهِ بَأْسٌ ، تردې چې ددې په خوراك کي هيڅ باك نشته إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ هَذَا الذَّبْحُ ،.خو دا ذبح مکروه ده |

حل اللغة• ① الظفر:نوك ② السن: غاښ ③ القرن: ښکر④ منزوع: ويستلې شوې ﴿

تشريح:- ځاروې په کومو څيزونو ذبح کول جائز دی.او په کومو سره نه دی.دلته به هغه بيانولې شی.که د ځاروی ښکر د ځاروی نه جلا وی.او دومره تيره وی.چه کټ کولې شی.او دغه ډول غاښ او نوك کله چې جدا وی.او اوداج کټ کولې شی.نو بيا به په دې سره ذبح کول جائز وی.او ذبيحه به حلال وی.او ددې خوراك به مباح وی.دا زموږ مذهب دې.

| |
|---|
| وَقَالَ الشَّافِعِي او امام شافعی رحمه الله فرمائيلی دی الْمَذْبُوحُ مَيْتَةٌ چې مذبوح مردار دې قَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کريم ﷺ د فرمان په وجه كُلُّ مَا أَنْهَرَ الدَّمَ چې هغه ځاروی خورئ د کومو چې وينه اوبښکلې شوې وی وَأَفْرَى الْأَوْدَاجَ او اوداج کټ کړې شوې وی وَمَا خَلَا الظُّفُرَ وَالسِّنَّ علاوه د نوکانو او غاښونو نه فَإِنَّهُمَا مُدَى الْحَبَشَةِ ( ) ځکه چې دا د حبشيانو چاړه ده وَلِأَنَّهُ فِعْلٌ غَيْرُ مَشْرُوعٍ او ځکه چې دا (نوکانو وغيره سره ذبح کول) غير مشروع فعل دې فَلَا يَكُونُ ذَكَاةً نو دا به ذکاة نه وی كَمَا إِذَا ذَبَحَ بِغَيْرِ الْمَنْزُوعِ لکه چې په په غير منزوع (چې جدا شوی نه وی) سره ئې ذبح کړې وی |

حل اللغة• ① المذبوح: ذبح شوې ② مدی: چاړه ③ افری الاوداج: کټ کړه رګونه ﴿

---

(١) قال الزيلعی رحمه الله هذا الحديث مختصر من حديثين أحدهما ما رواه ابن ابی شيبة فی مصنفه من حديث رافع بن خديج الذی تقدم تخريجه والثانی أيضاً حديث رافع بن خديج ﷺ قال كنا مع النبی ﷺ فی سفر فقلت يا رسول الله ﷺ إنا نكون فی المغازی فلا تكون معنا مدی فقال: ما أنهر الدم وذكراسم الله عليه فكلوا ما لم يكن سناً أو ظفراً وسأحدثكم عن ذلك أما السن العظم وأما الظفر فمدی الحبشة(وأخرجه أبوداود فی الضحايا باب ١٤ رقم ٢٨٢١) نصب الرأية:٤٧٢١٤)_



تشريح:- او امام شافعی رحمه الله داسې مذبوح مردار ګڼړی.په کوم چې امام شافعی رحمه الله دوې (دوه) دليلونه بيان کړی دی.رومبې حديث دې.او دوهم عقلی دليل دې.حديث خو ښکاره دې.او دليل عقلی دا دې.چه په نوك وغيره سره ذبح کول مشروع نه دی.نو بيا به دا طريقه ذکاة نه جوړيږی.لکه کله چې نوکان وغيره جلا نه وی.او په دې سره ذبح کړې شی.نو حلال نه دې.

### د احنافو دليل

| |
|---|
| وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زموږ دليل د نبی کريم ﷺ فرمان دې أَنْهِرِ الدَّمَ بِمَا شِئْتَ چې ،، ته وينه اوبهيه وه په کوم شئ چې غواړې () وَيُرْوَى أَفْرِ الْأَوْدَاجَ بِمَا شِئْتَ او نقل دی.چه ،، اوداج کټ کړه په کوم شئ چې غواړې،، |

تشريح:- زمـوږ دليـل دې.چـه پـه دې کي دوې (دوه) روايتونـه ذکر دی.چه دې کي عموم دې.يعنی د وينې ويستلو حکم دې.که په هره طريقه اوځی.

| |
|---|
| وَمَا رَوَاهُ او کوم روايت چې امام شافعی رحمه الله روايت کړې دې. مَحْمُولٌ عَلَى غَيْرِ الْمَنْزُوعِ هغه په غير منزوع (چه جلا کړې شوې نه وی) باندې محمول دې فَإِنَّ الْحَبَشَةَ كَانُوا يَفْعَلُونَ ذَلِكَ ځکه چې حبشانو خلګو به دغه ډول کول وَلِأَنَّهُ آلَةٌ جَارِحَةٌ او ځکه چې دا زخم کونکې آله ده. فَيَحْصُلُ بِهِ مَا هُوَ الْمَقْصُودُ نو کوم چې مقصود دې هغه به په دې سره حاصليږی وَهُوَ إِخْرَاجُ الدَّمِ او هغه وينه اوبښکل دی وَصَارَ كَالْحَجَرِ وَالْحَدِيدِ او د کاڼې او اوسپنې پشان شو. |

حل اللغة• ① اخراج: راويستل ② حجر:کاڼې ③ الحديد: اوسپنه ④ جارحة: زخم کونکې

تشريح:- پاتې شو هغه حديث دکوم نه چې امام شافعی رحمه الله استدلال کړې دې.نو هغه په غير منزوع باندې محمول دې.ځکه چې حبشيانو به په نوکانو او غاښونو سره ذبح کوله.او په غاښونو او نوکانو وغيره سره مقصود حاصليږی.نو دا دواړه د اوسپنې او کاڼې پشان شو.

| |
|---|
| بِخِلَافِ غَيْرِ الْمَنْزُوعِ په خلاف د غير منزوع، . لِأَنَّهُ يَقْتُلُ بِالثِّقَلِ ځکه چې قاتل به بوج سره قتلوی فَيَكُونُ فِي مَعْنَى الْمُنْخَنِقَةِ نو دا د منخنقة (مرئ خفه کړې شوې) په معنی کي شو وَإِنَّمَا يُكْرَهُ او دا مکروه دې لِأَنَّ فِيهِ اسْتِعْمَالَ جُزْءِ الْآدَمِيِّ ځکه چې دې کي د سړی جزء استعماليږی وَلِأَنَّ فِيهِ إِعْسَارًا عَلَى الْحَيَوَانِ او ځکه چې دې کي په ځاروی باندې سختی ده وَقَدْ أُمِرْنَا فِيهِ بِالْإِحْسَانِ حالانکه موږ ته د ځاروی په ذبح کاوه کي د احسان کاوه حکم راکړې شوې دې. |

حل اللغة• ① اعسار:ګرانوالې،سختی ② الاحسان: خيګړه

تشريح:- په خلاف د دې که نوکان وغيره جلا نه وی.نو بيا به ذبيحه حلال نه وی.ځکه چې دلته ذبحه کونکې پخپل بوج سره قتلوی.نو بيا به دا ذبحه د منخنقه (مرئ خفه کړې شوې) په معنی کي وی. او دليل د کراهت دا دې.چه په دې کي د سړی جزء استعماليږی.چه په دې کي د انسان اهانت (او سپکوالې) دې.او په دې کي ځاروو باندې سختی کيږی.حالانکه دوی سره د احسان او نيکئ کاوه حکم ورکړې شوې دې.

### د نل (بانړس) په پوست ،بکره، او د غاښونو او نوکانو والا څيز سره د ذبح کولو حکم

| |
|---|
| قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَيَجُوزُ الذَّبْحُ او ذبح جائز ده بِاللِّيطَةِ وَالْمَرْوَةِ د بانړس په پوست (چې دا تيره وی) او بکړې (سپين کاڼې چې دا تيره وی) سره وَكُلِّ شَيْءٍ أَنْهَرَ الدَّمَ او په هر داسې شئ سره چې دا وينه اوبهيه وی إِلَّا السِّنَّ الْقَائِمَ وَالظُّفُرَ الْقَائِمَ علاوه د لګيدلی غاښ او لګيدلی نوك فَإِنَّ الْمَذْبُوحَ بِهِمَا نو کوم چې دې دواړو سره ذبح کړې شی مَيْتَةٌ هغه مردار دې لِمَا بَيَّنَّاهُ هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې. |

حل اللغة• ① دالليطة: دبانړس پوست ② ميتة: مړزګې ﴿

---

(١) من حديث عدی بن حاتم ﷺ أخرجه النسائی فی السنن الكبری (١٥٣١٣) رقم ٤٨١٦)_

**تشریح:-** هر هغه شئ کوم چې وینه اوبهیه وی.هغې سره ذبح جائز ده.که هغه د بانړس پوست وی.او که کانړي وی.چه دا تیره وی.البته هغه نوك او غابښ کوم چې لګیدلي دي.هغې سره ذبح جائز نه ده.بلکه ذبیحه به مړزګي وی.ځکه چې دې صورت کي به حیوان (څاروې) بوج سره مړ کیږي.نو د منخنقه ( مړئ خفه کړي شوي) په درجه کي به وی.

وَنَصَّ مُحَمَّدٌ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي صراحت کړي دي عَلَى أَنَّهَا مَيْتَةٌ په دې خبره چې دا مردار دي لِأَنَّهُ وَجَدَ فِيهِ نَصًّا ځکه چې دوی به په دې کي هیڅ نص نه وی موندلي وَمَا لَمْ يَجِدْ فِيهِ نَصًّا او په کوم کي چې نص او نه مومی يَحْتَاطُ فِي ذَلِكَ نو هغې کي احتیاط کوی فَيَقُولُ فِي الْحِلِّ لَا بَأْسَ بِهِ نو د حلت په صورت کي ،، لا بئس ،، وائی. وَفِي الْحُرْمَةِ يَقُولُ او په حرمت کي وائی ،يُكْرَهُ أَوْ لَمْ يُؤْكَلْ چې ،،مکروه دي،،یا ،، خوړلي به نشي

**تشریح:-** او د امام محمد رحمه الله عادت دا دې.چه چرته هغوی ته نص ملاو نشي.نو احتیاط نه کار اخلي.او د حرمت په صورت کي ،،یکره،، یا ،،لم یؤکل،، وائی.او د حلت په صورت کي ،،لا باس به،، وائی.خو د لګیدلی نوك او غابښ په اړه کي دوی په جامع صغیر کي دا صراحت کړې دې.چه ذبیحه مړزګي ده.چه دا ددې خبرې دلیل دې.چه هغوی به په دې اړه کي نص نه وی موندلي.

### د ذبح مستحبات

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يُحِدَّ الذَّابِحُ شَفْرَتَهُ او مستحب دی.چه ذبحه کونکې خپله چاړه تیزه کړی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه چې إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى كَتَبَ الْإِحْسَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ بیشکه الله تعالی په هر شئ باندې احسان کول فرض کړي دي فَإِذَا قَتَلْتُمْ نو کله چې تاسو قتلوئ فَأَحْسِنُوا الْقِتْلَةَ نو په ښه طریقه قتلوئ وَإِذَا ذَبَحْتُمْ او کله چې تاسو ذبح کوئ فَأَحْسِنُوا الذِّبْحَةَ نو په ښه طریقه ذبحه کوئ،، وَلْيُحِدَّ أَحَدُكُمْ شَفْرَتَهُ او پکاره ده.چه تاسو کي هر یوکس چاړه تیره کړئ ،وَلْيُرِحْ ذَبِيحَتَهُ(١) او خپلې ذبیحې ته آرام اورسوئ.

**حل اللغة:** ① شفرة: چاړه ② القتلة: ذبح ③ لیرح: د راحة نه دې په معنی د آرام ❁

**تشریح:-** چاړه تیره کول مستحب دی.او مستحب دی.چه د څاروی سملولو نه وړاندې چاړه تیره کړی.چه ددې دلیل دا دواړه حدیثونه دی.کوم چې کتاب کي ذکر دی.چه ددې تفسیر واضح دې.

وَيُكْرَهُ او مکروه دی أَنْ يُضْجِعَهَا چې ذبحه سملوی ثُمَّ يُحِدَّ الشَّفْرَةَ بیا چاړه تیره کړی لِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په دې وجه چې د نبی کریم ﷺ نه نقل دی أَنَّهُ رَأَى رَجُلًا چې نبی کریم ﷺ یو سړې اوکتلو أَضْجَعَ شَاةً چې هغه وزه سملوله وَهُوَ يُحِدُّ شَفْرَتَهُ او هغه خپله چاړه تیره کوله فَقَالَ:نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل لَقَدْ أَرَدْتَ أَنْ تُمِيتَهَا مَوْتَاتٍ تا اراده کړې ده.چه دې په ګڼړو مرګونو سره مړ کړې هَلَّا حَدَدْتَهَا قَبْلَ أَنْ تُضْجِعَهَا دده د سملولو نه وړاندې تا چاړه ولې تیره نکړله؟ (١)

**تشریح:-** د ژباړې نه مطلب واضح دې مزید تشریح ته احتیاج نشته

### د ذبح مکروهات

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ بَلَغَ بِالسِّكِّينِ النُّخَاعَ او چا چې چاړه حرام مغز پورې اورسوله أَوْ قَطَعَ الرَّأْسَ یا ئې سر کټ کړو كُرِهَ لَهُ ذَلِكَ نو دا دده لپاره مکروه دی وَتُؤْكَلُ ذَبِيحَتُهُ او دده ذبیحه به خوړلې شي

---

١ - من حدیث شدادبن اوس رضی الله عنه أخرجه مسلم فی الصیدرقم ٥٧ وأبوداودفی الأضاحی باب ١١ رقم ٢٨١٥والترمذی فی الدیات باب ١٤والنسائي فی الضحایاباب ٢٢ وابن فی الذبائح باب ٣ والدارمی فی الأضاحی باب ١٠-
من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه الحاکم فی المستدرک فی الضحایا (نصب:٤٧٥\٤)_



وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ: قَطَعَ مَكَانَ بَلَغَ او په بعضو نسخو کي د ،،بلغ ،، په ځائې ،،قطع،، دې وَالنُّخَاعُ عِرْقٌ أَبْيَضُ فِي عَظْمِ الرَّقَبَةِ او حرام مغز د سټ په هډوکی کي یو سپین رګ دې أَمَّا الْكَرَاهَةُ بهرحال کراهت فَلِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نو په دې وجه دې.چه د نبی کریم ﷺ نه نقل دی. أَنَّهُ نَهَى أَنْ تُنْخَعَ الشَّاةُ چې دوی ﷺ په وزه کي حرام مغز پورې رسیدل منع کړی دی إِذَا ذُبِحَتْ(١) کله چې دا ذبح کړې شي وَتَفْسِيرُهُ مَا ذَكَرْنَاهُ او ددې تفسیر هم هغه دې.کوم چې موږ ذکر کړې دي وَقِيلَ او ویلي شوی دی مَعْنَاهُ: أَنْ يَمُدَّ رَأْسَهُ چې د نخاع معنی دا ده.چه د مذبوح سر راښکلې شي حَتَّى يَظْهَرَ مَذْبَحُهُ .تردې چې ددې مذبح ( د ذبح کاوه ځائې) ښکاره شي ،وَقِيلَ او ویلي شوی دی أَنْ يَكْسِرَ عُنُقَهُ ( ددې تفسیر دا دې) چې دده سټ جلا کړې شي قَبْلَ أَنْ يَسْكُنَ مِنَ الِاضْطِرَابِ ددې نه وړاندې چې هغه د حرکت نه په سکون کي شي وَكُلُّ ذَلِكَ مَكْرُوهٌ او دا ټولې خبرې مکروه دی ،وَهَذَا لِأَنَّ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ وَفِي قَطْعِ الرَّأْسِ زِيَادَةَ تَعْذِيبِ الْحَيَوَانِ بِلَا فَائِدَةٍ او دا ځکه چې په دې ټولو خبرو کي او په سر کټ کاوه کي څاروو ته بې فائدې زیات تکلیف ورکول دی وَهُوَ مَنْهِيٌّ عَنْهُ(٢) او دا منهی عنه دې.( یعنی ددې نه منع کړې شوې ده وَالْحَاصِلُ او قاعده کلیه دا ده أَنَّ مَا فِيهِ زِيَادَةُ إِيلَامٍ چې هر هغه کار په کوم کي چې زیات تکلیف ورکول وی لَا يَحْتَاجُ إِلَيْهِ فِي الذَّكَاةِ چې دې اړخ ته په ذکاة کي هیڅ حاجت نه وی مَكْرُوهٌ. نو هغه مکروه دي وَيُكْرَهُ أَنْ يَجُرَّ مَا يُرِيدُ ذَبْحَهُ او مکروه دی دا چې راکاږی هغه وزه د کوم د ذبح کولو چې اراده کوی بِرِجْلِهِ إِلَى الْمَذْبَحِ .د هغې نه پښو نه مذبح اړخ ته ( کوم ځائې چې حلالولې شي) وَأَنْ تُنْخَعَ الشَّاةُ او ( مکروه دی) دا چې د وزه سر جلا کړې شي قَبْلَ أَنْ تَبْرُدَ ددې نه وړاندې چې دا یخه شي .:يَعْنِي تَسْكُنَ مِنَ الِاضْطِرَابِ یعنی د حرکت نه په سکون کي راشی وَبَعْدَهُ لَا أَلَمَ او ددې نه روسته هیڅ تکلیف نشته فَلَا يُكْرَهُ النَّخْعُ وَالسَّلْخُ نو سر جلا کول او څرمن اوښکل، هیڅ به مکروه نه وی الا ،إِلَّا أَنَّ الْكَرَاهَةَ لِمَعْنًى زَائِدٍ خو دا چې کراهت د یو زیاتې معنی په وجه دي وَهُوَ زِيَادَةُ الْأَلَمِ قَبْلَ الذَّبْحِ أَوْ بَعْدَهُ او هغه د ذبح نه مخکي یا د ذبح نه روسته د تکلیف زیاتوالې دې فَلَا يُوجِبُ التَّحْرِيمَ نو دا به حرمت نه واجبوی وَلِهَذَا قَالَ په دې وجه امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل: تُؤْكَلُ ذَبِيحَتُهُ "توکل ذبیحته" یعنی ،، دده ذبیحه به خوړلې شي،،

**حل اللغة:** ① السکین: چاړه ② المخاع: حرام مغز ③ ابیض: سپین ④ الرقبة: سټ ⑤ الاضطراب: حرکت کول ⑥ تعذیب: عذاب ورکول ⑦ یمد: راکاږی ⑧ یکسر:ماتوی ⑨ ایلام: تکلیف ⑩ السلخ: د څرمن ویستل

**تشریح:-** هر هغه کار چې ددې په ذبحه کي اړتیا نه وی.او ددې نه مذبوح ته تکلیف اورسیږی.هغه مکروه دې.خو ذبیحه به حلال وی.چونکه دلته خرابی په نفس ذبح کي نه ده.بلکه د یو زیاتی معنی په وجه خرابی راغلې ده.او دا بې وجه ( بې فائدې) تکلیف ورکول دی.نو دا به د ذبیحه حرمت نه ثابتوی.بلکه ذبیحه حلال ده.البته دا فعل مکروه دې.

❁ هغه کوم افعال دی.چه مکروه دی؟ ① حرام مغز پورې د ذبح کاوه په وخت کټ کول.② سر راښکل چې د مذبوح د ذبح کاوه ځائې ښکاره شي.③ د یخیدو نه وړاندې سټ جلا کړې شي.④ پښې نیول او د ذبح کاوه ځائې پورې راوستل.⑤ د یخیدو ( او حرکت ختمیدو) نه وړاندې څرمن اوښکل.ــ ړومبی درې واړه د حرام مغز په تفسیر کي بیان کړې شوی دی.

### د سټ د اړخه د وزه ذبح کولو حکم

---

١ - تقدم تخریجه فی النفقات)
٢) قال الزیلعی رحمه الله غریب وبمعناه ما رواه الطبرانی فی معجمه ...عن ابن عباس رضی الله عنهما أن النبی ﷺ نهی عن ا لذبیحة أن تفرس (نصب:٤٧٦\٤)_

قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی فَإِنْ ذَبَحَ الشَّاةَ او که وزه ئې ذبح کړله مِنْ قَفَاهَا دَ دی د سټ نه فَبَقِيَتْ حَيَّةً نو هغه ژوندۍ پاته پاتې شوه. حَتّٰى قَطَعَ الْعُرُوقَ تردې چې واړه رګونه کټ کړې شو حَلَّ نو حلال ده لِتَحَقُّقِ الْمَوْتِ د مرګ متحقق کیدو په وجه ، بِمَا هُوَ ذَكَاةٌ په هغه شئ سره چې هغه ذکاة دې وَتُكْرَهُ او دا مکروه دي لِأَنَّ فِيهِ زِيَادَةَ الْأَلَمِ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ په دې وجه چې په دې کې د ارتیا نه بغیر زیات تکلیف ورکول دی، فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا إِذَا جَرَحَهَا لکه چې دا ئې زخمی کړې وی ثُمَّ قَطَعَ الْأَوْدَاجَ بیا ئې رګونه کټ کړې وی وَإِنْ مَاتَتْ قَبْلَ قَطْعِ الْعُرُوقِ او که دا د رګونو کټ کاوه نه مخکې مړه لَمْ تُؤْكَلْ نو خوړلې به نشی لِوُجُودِ الْمَوْتِ د مرګ موجود کیدو په وجه مَا لَيْسَ بِذَكَاةٍ فِيهَا په هغه شئ سره چې دا په وزه کې ذکاة نه دې

**حل اللغة:** ① شاة: ګډه ② العروق: جمع د عرق، رګ ③ اوداج: سټ ارخ ته تلونکی رګونه ④ ذکاة: ذبح ﴾

**تشریح:-** که وزه ئې د سټ د شا ارخه ذبح کړله.نو اوس به دا کتلې شی.چه د ذبح د رګونو کټ کاوه پورې دا ژوندۍ ده.او که ددې نه وړاندې مړه شوه.په ړومبی صورت کې دا حلاله ده.او په دوهم صورت کې حلاله نه ده.البته په دواړو صورتونو کې دا فعل مکروه دې.ځکه چې دا د ارتیا نه بغیر زیات تکلیف ورکول دی.

## په کومو خاروو کښې به ذبح اختیاری وي اوپه کومو کښې اضطراري؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَا اسْتَأْنَسَ مِنَ الصَّيْدِ او کوم ښکار چې اموخته (او بلدی) شو فَذَكَاتُهُ الذَّبْحُ نو ددې ذکاة ذبح ده وَمَا تَوَحَّشَ مِنَ النَّعَمِ او کوم چې د خاروو نه وحشی (ځنګلی) شو فَذَكَاتُهُ الْعَقْرُ نو د هغې ذکاة اِندام کټ کول، وَالْجَرْحُ او زخمی کول دی لِأَنَّ ذَكَاةَ الِاضْطِرَارِ إِنَّمَا يُصَارُ إِلَيْهِ ذکاة اضطراری، دې ارخ ته رجوع کولای شی عِنْدَ الْعَجْزِ عَنْ ذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ د ذکاة اختیاری نه د عاجز کیدو په وخت، عَلٰى مَا مَرَّ د هغه تفصیل مطابق کوم چې تیر شو وَالْعَجْزُ مُتَحَقِّقٌ او عاجزی متحقق ده فِي الْوَجْهِ الثَّانِي په دوهم صورت کې دُونَ الْأَوَّلِ په ړومبی صورت کې نه ده.

**حل اللغة:** ① استانس: اموخته وی ② توحش: نفرت کوی ③ العقر: اندام ګټ کول ④ الجرح: زخم ﴾

**تشریح:-** وړاندې بیان شوی دی.چه د ذکاة دوې (دوه) قسمونه دی① اضطراری ② اختیاری.- دا دواړه کوم ځائې کې مشروع دی.دا هم معلومه شوې ده.اوس دا ښائی.چه ساتلې شوې حیوان (څاروې) میښه وغیره،خو دا اوتختیدله.او وحشی (ځنګلی) شوه.نو اوس دلته ذکاة اضطراری جائز ده.او که وحشی حیوان (څاروې) د ساتلو په وجه عادت شو.نو اوس به دلته د ذکاة اختیاری نه کار اخستلې شی.

## که په کوهی کښې غورځیدو سره د ذبح اختیاری نه عاجز شی نو څه حکم دې؟

وَكَذَا مَا تَرَدّٰى مِنَ النَّعَمِ فِي بِئْرٍ او هم دغه ډول کوم حیوان (څاروې) چې په کوهی کې اوغورځیدو وَوَقَعَ الْعَجْزُ عَنْ ذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ او د ذکاة اختیاری نه عاجزی واقع شوه (نو ذکاة اضطراری جائز ده) لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې.وَقَالَ مَالِكٌ :او امام مالك رحمه الله فرمائیلی دی لَا يَحِلُّ بِذَكَاةِ الِاضْطِرَارِ فِي الْوَجْهَيْنِ چې په دواړو صورتونو کې به د ذکاة اضطراری په وجه حلال نه وی لِأَنَّ ذٰلِكَ نَادِرٌ ځکه چې دا نا آشنا دی.

**حل اللغة:** ① تردی: غورزیدل ② بئر: څاه ③ الاضطرار:غیراختیاری ④ نادر: ناشنا ،کله کله ﴾

**تشریح:-** صورت د مسئلې دا دې چې اوبښ یا بل څه حیوان (څاروې) په کوهی کې پریوتلو.نو اوس د ذکاة اختیاری نه عاجزی واقع شوه.نو ذکاة اضطراری جائز شوه.خو امام مالك رحمه الله فرمائی.چه دا صورت وی.او که مخکنې، چې د کور ساتلې شوې حیوان (څاروې) وحشی شی.په دواړو صورتونو کې ذکاة اضطراری جائز نه ده.ځکه چې داسې کیدل شاذ او نادر (نا آشنا) دی.او په نادر باندې د احکامو بنا (بنیاد) نه ایخودې کیږی.



وَنَحْنُ نَقُولُ او موږ وایو. الْمُعْتَبَرُ حَقِيقَةُ الْعَجْزِ چې معتبر دا عجز متحقق کیدل دی وَقَدْ تَحَقَّقَ او دا عجز متحقق (او ثابت) دې : فَيُصَارُ إِلَى الْبَدَلِ نو بدل ارخ ته به رجوع کولای شی ،كَيْفَ ځنګه کیدای شی وَأَنَا لَا نُسَلِّمُ النُّدْرَةَ حالانکه موږ نا آشنا کیدل نه منو بَلْ هُوَ غَالِبٌ بلکه دا خو غالب دی. (یعنی اکثر واقع کیږی).

**تشریح:-** موږ وایو جائز دی.او دلیل دا دې.چه ذکاة اضطراری د ذکاة اختیاری بدل دې.چه کله د ذکاة اختیاری نه عجز واقع شی.نو د دوهم نه کار اخستلې شی.او دلته عاجزی ثابت ده.نو بدل ارخ ته به رجوع کولې شی.او پاتې شو د امام مالك رحمه الله دا فرمائیل چې دا نا آشنا دی.دا موږ نه منو.بلکه دا خو اکثر کیږی.

## ساتونکي خاروي چې ځنګلي شي نو د ذبح اضطراري حکم

وَفِي الْكِتَابِ أَطْلَقَ او په کتاب د قدوری کې مطلق فرمائیلی دی فِيمَا تَوَحَّشَ مِنَ النَّعَمِ هغه خاروو په اړه کې کوم چې وحشی شی وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّ او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی الشَّاةَ إِذَا نَدَّتْ فِي الصَّحْرَاءِ چې وزه کله ځنګل ته اوتختی فَذَكَاتُهَا الْعَقْرُ نو ددې ذکاة زخمی کول دی وَإِنْ نَدَّتْ فِي الْمِصْرِ او که په ښار کې اوتختی لَا يَحِلُّ بِالْعَقْرِ نو دا به په زخمی کاوه سره نه حلالیږی. لِأَنَّهَا لَا تَدْفَعُ عَنْ نَفْسِهَا ځکه چې دا د خپل نفس نه بچ کول نشی کولې فَيُمْكِنُ أَخْذُهَا فِي الْمِصْرِ نو د دې په ښار کې نیول ممکن دی فَلَا عَجْزَ نو عجز نشته وَالْمِصْرُ وَغَيْرُهُ سَوَاءٌ فِي الْبَقَرِ وَالْبَعِيرِ او ښار او غیرښار په غوا او اوبښ کې برابر دی لِأَنَّهُمَا يَدْفَعَانِ عَنْ أَنْفُسِهِمَا ځکه چې دا دواړه د خپل نفس نه مدافعت کولای شی فَلَا يُقْدَرُ عَلٰى أَخْذِهِمَا نو څوك به ددې په نیولو قادر نه وی وَإِنْ نَدَّا فِي الْمِصْرِ اګرچه دا دواړه په ښار کې اوتختی، فَيَتَحَقَّقُ الْعَجْزُ نو عجز متحقق کیږی.

**حل اللغة:** ① توحش:نفرت کوی ،ویریږی ② الصحراء: میدان،بیابان ③ ندت: اوتختی ④ البقر:غواه ⑤ البعیر: اوبښ ﴾

**تشریح:-** امام قدوری رحمه الله په دې کې تفصیل نه دې بیان کړې.بلکه مطلقاً ئې دا اوفرمائیل.چه کله دکور ساتلې شوې حیوان (څاروې) ځنګلی شی.(اویریږی او اوتختی) نو ذکاة اضطراری جائز دې.خو امام محمد رحمه الله په دې کې تفصیل بیان کړې دې.چه په غوا او اوبښ کې دا حکم مطلق دې.یعنی هلته د ښار او ځنګل دواړو حکم یو دې.خو د وزه حکم په ځنګل کې هم دا دې.خو په ښار کې دا نه دې.چه ښار کې ذکاة اضطراری جائز نه ده.ځکه چې د وزه نیول آسان دی.بیا هغه د خپلې کمزورۍ په وجه د ځان نه دفع کول هم نشی کولې.البته په ځنګل کې دا کیدای شی.چه دا په یو جهاړه (ګنړو بوټو) کې پټ شی.او ملاو نشی.او غائبه شی.نو په دې صورت کې به د ذکاة اضطراری اجازت وی. او میښه، غوا او اوبښ په دفع کاوه باندې قادر دی.نو ددې حکم په ځنګل او ښار کې برابر دې.

وَالصِّيَالُ كَالنَّدِّ او چور کول د تختیدو پشان دی. إِذَا كَانَ لَا يَقْدِرُ عَلٰى أَخْذِهِ کله چې هغه ددې په نیولو باندې قادر نه وی حَتّٰى لَوْ قَتَلَهُ الْمَصُولُ عَلَيْهِ تردې که دا قتل کړه هغه کس په چا چې چور شوې ده وَهُوَ يُرِيدُ الذَّكَاةَ حالانکه هغه د ذکاة اراده کوی حَلَّ أَكْلُهُ نو ددې خوړل حلال دی.

**حل اللغة:** ① الصیال: چور کونکې ② الند: تختیدونکې ③ المصول:چه په چا چور شوې وی ﴾

**تشریح:-** که میښې او اوبښ په چا چور اوکړله.نو ددې حکم هم هغه دې.کوم چې د تختیدو دې.نوکه دې په چا چور اوکړله.نو هغه دا قتل کړله.او هغه د ذکاة په ارادې سره قتل کړې وی.نو ذکاة اوشو.او ددې خوراك حلال شو. البته که حیوان (څاروې) د بل چا وو.نو په ده به ددې د قیمت ضمان واجب وی.او ذبیحه به حلال وی.چه ددې خوراك جائز دې.

## په اوبښ کښې نحر،او غوا اووزه کښې ذبح مستحب ده

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَالْمُسْتَحَبُّ فِي الْإِبِلِ النَّحْرُ او په اوبښ کې نحر مستحب دې فَإِنْ ذَبَحَهَا نوکه دا

ني ذبح كړو **جَازَ** ... نو جائز دى، **وَيُكْرَهُ** او مكروه دى **وَالْمُسْتَحَبُّ فِي الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ الذَّبْحُ** او مستحب په غوا او وزه كي ذبح ده **فَإِنْ نَحَرَهُمَا** نو كه دا دواړه ئي نحر كړل **جَازَ** نو جائز دى **وَيُكْرَهُ** او مكروه دى.

**تشريح:-** د نحر او ذبح تفصيل وړاندې تير شوي دي.اوس فرمائي.چه وزه وى.اوكه اوښ يا غوا وى په هر يو كي ذبح او نحر جائزدي.او ذبيحه حلال ده.خو په اوښ كي نحر مستحب او ذبح مكروه ده.او په وزه او غوا كي ذبح مستحب او نحر مكروه ده.

**أَمَّا الْاِسْتِحْبَابُ فَلِمُوَافَقَةِ السُّنَّةِ الْمُتَوَارَثَةِ**(۱) په دې كي استحباب د متوارث (او جاري) سنت نه د مخالفت په وجه دي **وَلِاجْتِمَاعِ الْعُرُوقِ فِيهَا فِي الْمَنْحَرِ** او په اوښ كي د رګونو جمع كيدو په وجه منحر (خائې د نحر) كي **وَفِيهِمَا فِي الْمَذْبَحِ** او په غوا او وزه كي په مذبح (خائې د ذبح) كي **وَالْكَرَاهَةُ لِمُخَالَفَةِ السُّنَّةِ** او كراهت د سنت نه د مخالفت په وجه دي **وَهِيَ لِمَعْنًى فِي غَيْرِهِ** او دا كراهت د داسې معنى په وجه دي **فِي غَيْرِهِ** كوم چي د ذبح نه علاوه كي دي **فَلَا تَمْنَعُ الْجَوَازَ وَالْحِلَّ** نو دا كراهت به جواز او حلت نه منع كوى **خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ مَالِكٌ إِنَّهُ لَا يَحِلُّ** په خلاف ددې كوم چي امام مالك رحمه الله فرمائي.چه دا به حلال نه وى.

**تشريح:-** وجه داستحباب دا ده.چه دا متوارث سنت دي.او په اوښ كي د ټولو رګونو اجتماع په منحر كي ده.او په غوا او وزه كي (د رګونو اجتماع) مذبح (په خائې د ذبح) كي ده.او د مخكي پشان به دا كراهت حلت او جواز نه منع كوى.

## د ذبح كولو نه روسته د خيټي د مړ بچي حكم

**قَالَ** امام قدورى رحمه الله او فرمائيل **وَمَنْ نَحَرَ نَاقَةً** او چا چي اوښه نحر كړله **أَوْ ذَبَحَ بَقَرَةً** يا ئي غوا ذبح كړله **فَوَجَدَ فِي بَطْنِهَا جَنِينًا مَيِّتًا لَمْ يُؤْكَلْ** نو وى موندلو ددې په نس كي مړ بچي نو خوړلي به نشى **أَشْعَرَ** كه ددې ايخته راختلي وى **أَوْ لَمْ يُشْعِرْ** او كه نه وى راختلي **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله(۲) او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دى **وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالْحَسَنِ بْنِ زِيَادٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ** او هم دا د امام زفر او امام حسن ابن زياد رحمهما الله قول دي.

**حل اللغة:** ① نحر: د اوښ ذبح كول ② بطن: خيټه

**تشريح:-** اوښه يا غوا وغيره ذبح كړي شوه.او ددې د خيټي نه مړ شوى بچي راو وتلو.نو ددې څه حكم دي؟ نو وي فرمائيل.چه د امام ابوحنيفه، امام زفر او د امام حسن بن زياد رحمهم الله مذهب دا دي.چه دا به خوړلي نشى.كه ددې ايخته راختلي وى.او كه نه وى راختلي.او كه زيږيدل كي پوره وى.او كه پوره نه وى.په ټولو صورتونو كي هم دا حكم دى.

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللَّهُ** او فرمائيلي دى امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله **إِذَا تَمَّ خَلْقُهُ** چي كله ددې زيږيدل پوره شوى وى **أُكِلَ** نو خوړلي به شى **وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ** رحمه الله او هم دا د امام شافعى رحمه الله قول دي.

**تشريح:-** د امام شافعى او صاحبينو رحمهم الله قول دا دي.چه كله دا زيږيدل كي پوره شوى وى.نو خوړلي به شى.ګني خوړلي به نشى.

## د صاحبينو او د امام شافعى رحمهم الله دليل

(۱) تقدم تخريجه الحج.

(۲) القول الراجح هذا قول ابى حنيفة كذا فى الدرالمنتقى (۱۶۰/۴) والبحرالرائق (۳۱۲/۸) والجوهرة النيرة (۲۷۸/۲) نقلاً عن القول الراجح (۲۸۹/۲) ورد المحتار (۲۱۴/۴)



**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ذَكَاةُ الْجَنِينِ** د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه **ذَكَاةُ أُمِّهِ** چي د جنين (د خيټي د بچي) ذكاة ذكاة أمه(۱) ددې د مور ذكاة دي.

**حل اللغة:** ① الجنين: په رحم كي دننه بچي ② ذكاة: ذبح

**تشريح:-** دا د صاحبينو او د امام شافعى رحمهم الله نقلي دليل دا دي.چه د نبى كريم ﷺ ارشاد دي.چه ،، د مور ذكاة د جنين ذكاة دي ،، ددې حديث نه معلومه شوه.چه مور ذبح كول، دا د بچى ذبح كول دى.نو بيا به ددې خوراك جائز وى.

**وَلِأَنَّهُ جُزْءٌ مِنَ الْأُمِّ حَقِيقَةً** او خكه چي د جنين (د خيټي بچي) حقيقت كي د مور جزء دي **لِأَنَّهُ مُتَّصِلٌ بِهَا** خكه چي جنين مور سره متصل دي **حَتَّى يُفْصَلَ بِالْمِقْرَاضِ** تردې چي جدا كولي شى.(د مور نه) د قينچئ په ذريعه **وَيَتَغَذَّى بِغِذَائِهَا** او جنين غذا حاصلوى، د مور د غذا نه، **وَيَتَنَفَّسُ بِتَنَفُّسِهَا** او ساه اخلى د مور په ساه اخستلو سره

**حل اللغة:** ① المقراض: قينچي ② يتغذى، غذا خورى ③ يتنفس: ساه اخلى

**تشريح:-** په دې عبارت كي عقلي دليل بيانوى.چه جنين حقيقتاً هم او حكماً هم، د مور جزء دي.هركله چي دا هر اعتبار سره د مور جزء دي.نو د مور ذكاة د جنين ذكاة كيدل پكار دى.حقيقتاً د جزء كيدو دليل دا دي.چه جنين مور سره متصل دي.اوكه دا جلا كول وى.نو د مور نوم وغيره كټ كاوه سره به جلا كولي شى.او د مور د غذا نه دا غذا حاصلوى.د مور په ساه اخستلو سره دا ساه اخلى.ددې ټولو خبرو نه معلومه شوه.چه جنين د حقيقت په اعتبار سره د مور جزء دي.

**وَكَذَا حُكْمًا** او هم دغه ډول (جنين د مور جزء دي) دحكم په اعتبار سره **حَتَّى يَدْخُلَ** تردې چي جنين داخليږى **فِي الْبَيْعِ الْوَارِدِ عَلَى الْأُمِّ** هغه بيع كي كوم چي په مور باندې وارديدونكي وى **وَيُعْتَقُ بِإِعْتَاقِهَا** او جنين آزاديږى.د مور په آزادولو سره **وَإِذَا كَانَ جُزْءًا مِنْهَا** ... او هركله چي جنين د مور جزء دي **فَالْجُرْحُ فِي الْأُمِّ ذَكَاةٌ لَهُ** نو په مور كي زخم كول به د جنين ذكاة وى **عِنْدَ الْعَجْزِ عَنْ ذَكَاتِهِ** جنين د ذكاة نه د عاجز كيدو په وخت **كَمَا فِي الصَّيْدِ** لكه په ښكار كي.

**تشريح:-** حكماً د مور د جزء كيدو دليل دا دي.چه كله مور خرڅولي شى.نو په دې كي جنين هم داخليږى.او كله چي مور آزادولي شى.نو جنين هم آزاديږى.بهرحال هركله چي جنين د مور جزء اوګرځيدو.نو د مور ذكاة د جنين ذكاة كيدل پكار دى.او دا داسې ده.لكه څنګه چي ښكار كي د ذكاة اختيارى نه د عاجز كيدو په وجه د ذكاة اضطرارى نه كار اخستلي شى.دغه ډول دلته هم د جنين د ذكاة نه عجز دي.نو ددې د مور په ذكاة باندې به اكتفاء كولي شى.دا د صاحبينو او امام شافعى رحمهم الله دليل بيان كړي شو

## د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل

**وَلَهُ** او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي **أَنَّهُ أَصْلٌ فِي الْحَيَاةِ** چي جنين په ژوند كي اصل دي **حَتَّى تُتَصَوَّرَ حَيَاتُهُ** تردې چي د جنين ژوند مقصود دي **بَعْدَ مَوْتِهَا** د مور د مرګ نه روستو، **وَعِنْدَ ذَلِكَ يُفْرَدُ بِالذَّكَاةِ** او دغه وخت به ذكاة جلا راوستلي شى

**تشريح:-** دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دي.چه جنين پخپل ژوند كي مستقل دي.هم دا وجه ده.چه د مور د مرګ نه روستو د جنين ژوند متصور (او منلي شوي) دي.بلكه داسې واقع شوى دى.لكه څنګه چي امام

(۱) من حديث أبي سعيد الخدرى رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى الضحايا باب ۱۸ رقم ۲۸۲۸ والبيهقى فى السنن الكبرى (۹/ ۶۵۶۱) رقم ۱۹۴۸۸ـ

طحاوي رحمه الله سره دا واقعه پيښه شوې وه.يعنى امام طحاوي رحمه الله چې پيدا شونو مور ني د دوى په ولادت كي شهيده شوه.هركله چې د جنين مستقل كيدل ثابت شو.نو ددې به جلا ذكاة كول ضروري وي.

وَلِهٰذَا يُفْرَدُ بِإِيجَابِ الْغُرَّةِ او هم په دې وجه جلا راوستلې شى غره واجبول وَيُعْتَقُ بِإِعْتَاقٍ او جنين آزاديږي په داسې آزادولو سره، مُضَافٍ إِلَيْهِ كوم چې جنين اړخ ته مضاف وى ،وَتَصِحُّ الْوَصِيَّةُ لَهُ وَبِهِ او صحيح دې وصيت جنين دپاره، او په ده ( جنين ) سره،

**حل اللغة**: ① يفرد:خانله كيږى ② الغرة: تاوان ③ اعتاق: آزادول ﴿

**تشريح**:- كه په دوو ښځو كي مثلاً جګړه اوشوه.او يوې بله په نس په لته اووهله.او كومه ښځه نې چې نس كي په لته وهونكي ښځه به يوه غره واجب وى.يعنى يو غلام يا وينځه به واجب وى.چه ددې قيمت پنځه سوه ردرهم كيدل پكار دي.،، و سيجئ تفصيله فى الجنايات ،، نو صرف د جنين په وجه د غرې وجوب ددې خبرې دليل دې.چه دا يو مستقل شئ دي.

② كه مولا اووئيل.چه ما دا بچې آزاد كړو.كوم چې ددې وينځې په نس كي دې.نو يواځې بچې به آزاد وى.دا هم د مستقل كيدلو دليل دې.

③ يو كس وصيت اوكړو.چه ددې ښځې په نس كي چې كوم بچې دې.هغه ته زما د مال نه دومره مال وركړه.نو وصيت صحيح دې.دغه ډول كه وصيت نې اوكړو.چه زما د اسپې په نس كي چې كوم بچې دې.دا فلانى ته وركړئ.نو وصيت صحيح دې.نو دا دواړه مسئلې په دې خبره دلالت كوى.چه په جنين كي استقلال دې.

وَهُوَ حَيَوَانٌ دَمَوِيٌّ او دا يو دموى حيوان دې وَمَا هُوَ الْمَقْصُودُ مِنَ الذَّكَاةِ او څه چې د ذكاة نه مقصود دې وَهُوَ الْمُمَيِّزُ بَيْنَ الدَّمِ وَاللَّحْمِ او هغه د وينې او غوښې په منځ كي جدائى ده لَا يَتَحَصَّلُ بِجَرْحِ الْأُمِّ دا به نه حاصليږى.د مور په زخمى كاوه سره إِذْ هُوَ لَيْسَ بِسَبَبٍ لِخُرُوجِ الدَّمِ عَنْهُ ځكه چې دا ( مور زخمى كول) د جنين د وينې اوښكلو سبب نه دې فَلَا يُجْعَلُ نو جنين به نشى تابع كولې «تَبَعًا فِي حَقِّهِ» وينې د ويستلو په حق كي.

**تشريح**:- او جنين داسې حيوان (څاروى) دې.چه په ده كي وينه ده.او د ذكاة مقصد دا وى.چه وينه او غوښه جلا جلا شى.او ښكاره ده.چه د مور په زخم سره د بچى وينه نه اوخى.نو بيا د وينې وتلو په حق كي بچى د مور څنګه تابع كيداې شى؟ ددې ټولو دليلونو نه معلومه شوه.چه د مور ذكاة د بچى ذكاة نشى كيدې.

**د صاحبينو او د امام شافعي رحمهم الله د قياس جواب**

بِخِلَافِ الْجَرْحِ فِي الصَّيْدِ په خلاف په ښكار كي د زخم لګولو لِأَنَّهُ سَبَبٌ لِخُرُوجِهِ ځكه چې دا ددې د وينې ايستلو سبب دې نَاقِصًا د نقصان په طريقه فَيُقَامُ مَقَامَ الْكَامِلِ فِيهِ نو په ښكار كي به ناقص د كل ( كامل) په ځاې ايخودې شى عِنْدَ التَّعَذُّرِ ،.د تعذر په وخت،

**تشريح**:- كه څوك دا ووايې چې تاسو جنين په ښكار باندې قياس كړې دې.دا قياس صحيح نه دې.ځكه چې ښكار كي خو د ذكاة اضطرارى په وجه څه وينه اوخى.اګرچه ټوله وينه اونخى.نو د تعذر په وجه ناقص د كامل قائم مقام ګرځولې شى.او پاتې شو جنين، نو په دې كي خو وينه بالكل نه اوخى.ځكه ښكاره ده.چه د مور د وينې وتلو په وجه به ددې ( جنين) وينه نه اوخى.نه ناقصه او نه كامله، نو بيا به دا په ښكار باندې قياس كول صحيح نه وى.

وَإِنَّمَا يَدْخُلُ فِي الْبَيْعِ او جنين بيع كي داخليږى تَحَرِّيًا لِلْجَوَازِ د بيع د جواز طلب كاوه په وجه ګڼى لَا يَفْسُدُ بِاسْتِثْنَائِهِ چې بيع فاسده نشى.د جنين د استثناء په وجه،

**تشريح**:- كه څوك دا ووايې ستاسو دا وينا چې جنين د مور په بيع كي داخليږى.حالانكه دا د جزء كيدو دليل دې؟ نو ددې ځواب وركوى.چه موږ وړاندې د استقلال دليلونه پيش كړى دى.او پاتې شو بيع كي د جنين داخليدل، نو دا د جزئيت په وجه نه دى.بلكه بيع د فساد نه د بچ كاوه په وجه دې.ځكه كه د بيع نه د جنين استثناء اوكړې شى.نو بيع فاسد ده.



وَيُعْتَقُ بِإِعْتَاقِهَا او جنين آزاديږى د مور په آزادولو سره ګڼى لَا يَنْفَصِلُ مِنَ الْحُرَّةِ وَلَدٌ رَقِيقٌ چې جدا نشى د آزادې نه غلام بچې،

**تشريح**:- او جنين چې د مور د آزادئ په وجه آزاديږى.نو دا د جزئيت په وجه باندې نه دى.بلكه په دې وجه دى.چه د آزادې نه غلام بچې پيدا نشى.ګنى داسې به شى.چه د آم په ونه كي امرود راشى.بهرحال ددې ټولو ذكر شوو دليلونو په وجه،او د احتياط اړخ ته ترجيح ور كاوه سره موږ اووئيل.چه جنين به په دې صورت كي نشى خوړلې.

تنبيه: د امام ابوحنيفه رحمه الله د اړخه د مذكوره حديث ځواب نه دې وركړې شوې.د هغې ځواب دا وركيداې شى.چه حديث تشبيه باندې محمول دې.يعنى لكه څنګه چې د مور ذكاة دې.دغه ډول د جنين ذكاة دې.مثلاً بچې د خيټې نه ژوندې راووتلو.نو دا به هم د مور پشان ذبح كولې شى.او خوړلې به شى.او د حلت او حرمت اجتماع ده.چه په دې كي حرمت ته ترجيح وركولې شى.او د يو نفس ذكاة د دوو نفسونو ذكاة څنګه كيداې شى.او صحيح قول د امام صاحب رحمه الله دې.،، كذا فى المضمرات،، اوګورئ: ﴿مكب الانهر ص:۴۳۵ج۲﴾

## فصل فيما يحل أكله وما لا يحل

ژباړه:- ( دا) فصل د هغه څاروو ( په بيان كي ) دې.د كومو خوراك چې حلال دې.او د كومو حلال نه دې.

**د كومو څاروو او مارغانو خوراك حلال دې ؟**

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل وَلَا يَجُوزُ أَكْلُ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ او جائز نه دى په درنده ګانو كي ذوناب (په غاښونو سره ښكار كونكى) خوړل وَلَا ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطُّيُورِ او نه په مارغانو كي ذومخلب (په پنجو سره ښكار كونكې د) خوړل لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى ځكه چې نبى كريم ﷺ منع فرمائيلې ده.عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطُّيُورِ وَكُلِّ ذِي نَابٍ (¹) د هرقسمه ذى مخلب مارغانو نه،او د هرقسمه ذى ناب د درنده ګانو نه،

**حل اللغة**: ① ناب: هغه غاښ دې.چه دا پورته او لاندې مخكى څلورو غاښونو ( رباعياتو) سره ملاو شوى وى.چه دې ته داړه وائى.او مخلب پنجه، خو مراد دا دې.كوم چې موږ ذكركړې دې.چه كوم په خوله او پنجو سره ښكار مړ كوى.② الطيور:جمع د طير:پرندئ، چوغكه ③ مخلب: مخوكه ﴿

**تشريح**:- په څناورو كي بعضې څلور پښو والا دى.او بعضې الوتونكى څناور دى.بيا په دې دواړو كي بعضې داسې دى.چه دا نور څناور ماتوى.او خورى.او بعضې داسې نه دى.لكه كونتره، او كوركوړه وغيره چې مارغان دى.خو درندې نه دى.اولكه ميښې او غواګانې اوښ وغيره چې څلورو پښو والا دى.خو درندې نه دى.او لكه شير،پړانګ، پيشو، لومبړه، زمرې وغيره څلورو پښو والا دى.او ماتونكى درندې دى.او دغه ډول باخه، باز،او كارګه (كارغه) وغيره مارغان دى.خو پخپلو پښو سره ښكاره مړ كوى.او شلوى.او خورى.نو دا د مارغانو نه درندې دى.بهرحال درنده كه څلورو پښو والا وى.يا مارغه وى.ددې خوراك حرام دى.

وَقَوْلُهُ او د نبى كريم ﷺ فرمان مِنَ السِّبَاعِ ذُكِرَ عَقِيبَ النَّوْعَيْنِ من السباع،، د دواړو نوع نه روسته ذكر دې فَيَنْصَرِفُ إِلَيْهِمَا نو دا به دواړو اړخ ته ګرځى فَيَتَنَاوَلُ سِبَاعَ الطُّيُورِ وَالْبَهَائِمِ نو دا په ګډ وى.په مارغانو او څناورو كي درنده

¹) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه مسلم فى الصيد والذبائح رقم ۱۶)۔

گانو ته **لِأَكْلِ مَالَهُ مِخْلَبٌ أَوْنَابٌ** هغه تولو ته به (شامل) نه وي. كوم لپاره چې غابنونه يا پنجه وي **وَالسَّبُعُ كُلُّ** او درنده هرهغه خناور دي. **مُخْتَطِفٍ مُنْتَهِبٍ جَارِحٍ قَاتِلٍ عَادٍ** چې دا غوټه كونكې، لوټ مار كونكې، زخمي كونكې، قتلونكې، چور كونكې وي **عَادَةً** په اعتبار د عادت.

**حل اللغة:** ① **مختطف:** تختونكې ② **منتهب:** لوټ كونكې ③ **جارح:** زخم كونكې﴾

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله فرماني. چه په ذكر شوي حديث كي ،، من السباع ،، د ،، ذي مخلب ،، او ،، ذي ناب ،، نه روستو راغلي دي. نو ،،سباع ،، به ،، ذي مخلب ،، او ،، ذي ناب ،، دواړو ته گډ وي. يعني په سباع كي درنده گان هم داخل دي. او مارغان هم. هرهغه خناور چې دهغې ناب (غابښ) وي. او مخلب (پنجه) وي. د هغې په سباع كي شامليدل ضروري نه دي. بلكه ضروري دا ده. چه دا شلونكې وي. يعني په سباع درندې تعريف اوگرو. چه كوم غټه كونكې وي. د هغې تعلق كه مارغانو سره وي. او كه څلورو پښو والا سره دي. او لوټ كونكې وي. نوكه شير صوفي جوړ شي. او چور نه كوي. نو اوس هم هغه درنده دي. څكه چې دده په عادت كي دا مذكوره صفات گډ دي. ،، كما مر ،، بيا ئې د

### د انسان خوړلو د حرمت وجه

**وَمَعْنَى التَّحْرِيمِ وَاللهُ أَعْلَمُ كَرَامَةُ بَنِي آدَمَ** او د تحريم د وجو نه والله اعلم د بنيادم كرامت دي **كَيْ لَا يَعْدُوَ شَيْءٌ مِنْ هَذِهِ الْأَوْصَافِ الذَّمِيمَةِ إِلَيْهِمْ** چې ددې ناكاره صفتونو نه څه صفت انسانانو اړخ ته متعدی نشي **بِالْأَكْلِ** ددې په خوړلو سره.

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرماني. چه د درنده گانو د حراموالو وجه كيداې شي دا وي. چه په دوي كي خباثت او شرارت دي. كه دا حلال كړې شوې وي. نو انسان چې اشرف المخلوقات دي. دا به ئې خوړل. او په دوي كي به هم ددوی ناكاره خصلتونه پيدا شوی وو. چه دا د انسان د شرافت خلاف وو. په دې وجه دا حرام اوگرځولی شو. چه د انسان شرافت ته نقصان او نه رسيږي.

**وَيَدْخُلُ فِيهِ الضَّبُعُ وَالثَّعْلَبُ** او په درنده گانو كي كوړ او لومبړه داخل ده **فَيَكُونُ الْحَدِيثُ حُجَّةً عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ** نو حديث به د امام شافعي رحمه الله خلاف حجت وي **فِي إِبَاحَتِهِمَا** ددې دواړو په جائز گرځولو كي **وَالْفِيلُ ذُو نَابٍ** او هاتهي ذوناب (غابښونو والا) دي **فَيُكْرَهُ** نو مكروه دي **وَالْيَرْبُوعُ وَابْنُ عِرْسٍ مِنَ السِّبَاعِ** او ځنگلي مږه او نولي د هغه درنده گانو څني دي **الْهَوَامِّ** كوم چې په مځكه باندې خوځيږي **وَكَرِهُوا** او فقها و مكروه گرځولي دي **أَكْلَ الرَّخَمِ وَالْبُغَاثِ** كنجي او بغاث (د كنجي نه وړوكي چټل خور (مردار خور) مارغه)، خوړل **لِأَنَّهُمَا يَأْكُلَانِ الْجِيَفَ** څكه چې دا دواړه چټلې خوري.

**حل اللغة:** ① **الضبع:** كوړ ② **الثعلب:** لومبړ ③ **الفيل:** هاتي ④ **اليربوع:** ځنگلي مږه، ⑤ **ابن عرس:** نولي، ⑥ **الهوام:** حشرات الارض ⑦ **الرخم:** كنجي ⑧ **البغاث:** وړوكي چټل خور (مردار خور) مارغه ⑨ **الجيف:** مرږكي

**تشريح:-** او په درنده گانو كي كوړ او لومبړه هم داخل ده. او امام شافعي رحمه الله دا دواړه حلال گرځولي دي. حالانكه حديث كي د درنده نه منع فرمائيلي شوې ده. او دا هم درنده دي. نو معلومه شوه. چه مذكوره حديث د امام شافعي رحمه الله خلاف حجت دي. هاتهي هم ذو ناب (غابښونو والا) دي. او د درنده گانو واړه صفتونه په ده كي موجود دي. البته هغه مږ كاوه سره نه خوري. نو ددې (هاتهي) خوړل به مكروه تحريمي وي. او ځنگلي مږه او نولي هم درنده دي. خو دا داسې درنده دي. چه دا په مځكه كي سوړه جوړوي او اوسيږي. او گنجي چې دې ته كر چپه هم وائي. خو دا مكروه تحريمي دي. او ددې په شكل كې ددې نه وړوكي بل خناور دي. چه هغې ته بغاث وائي. ددې هم دا حكم دي. څكه چې دا دواړه چټلې خوري.

### د فصل د كارگه (كارغه) خوړلو حكم



**قَالَ** امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل **وَلَا بَأْسَ بِغُرَابِ الزَّرْعِ** او د فصل په كارگه (كارغه) كي هيڅ حرج نشته **لِأَنَّهُ يَأْكُلُ الْحَبَّ وَلَا يَأْكُلُ الْجِيَفَ** څكه چې دا دانه خوري. او چټلې نه خوري **وَلَيْسَ مِنْ سِبَاعِ الطَّيْرِ** او دا په مارغانو كي د شلونكو نه نه دي.

**تشريح:-** كوم كارگه (كارغه) چې د فصل دانې خوري. او چټلې نه خوري. د هغې په خوړلو كي هيڅ باك نشته. څكه چې دا چټلې هم نه خوري. او په درنده گانو كي هم نه شمارلې كيږي.

**فائده:** كارغان په درې قسمه دي ① كوم چې صرف دانې خوري. او دا مكروه نه دي. ② كوم چې صرف چټلې خوري. او دا مكروه دي. ③ كوم چې كله دانې خوري. او كله چټلې خوري. دا د امام صاحب رحمه الله په نيز مكروه نه دي. او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز مكروه دي. ﴿كذا في مجمع الانهر ص: ٤٩٥، ج٢﴾ په حضرت مولانا رشيد احمد گنگوهي رحمه الله باندې چې كومو خلگو د غراب (كارغه) د حلت په مسئله كي اعتراض كړې دي. هغوی د احنافو امامانو د اقوالو نه ناخبره دي.

### د ابقع او غداف (كارغانو) خوړلو حكم

**قَالَ** امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل **وَلَا يُؤْكَلُ الْأَبْقَعُ** او ابقع (تور او سپين كارغه) به نشي خوړلې **الَّذِي يَأْكُلُ الْجِيَفَ** كوم چې چټلې خوري، **وَكَذَا الْغُدَافُ** او هم دغه ډول غداف دي.

**حل اللغة:** ① **الغداف:** يو ډول كارگه (كارغه) دي. چه دا د سختې گرمۍ په زمانه كي راځي. ② **الابقع:** تور او سپين كارگه (كارغه)

**تشريح:-** ،،ابقع،، هغه كارگه (كارغه) كوم تور او سپين وي. يعني ديسي كارغه، چې ددې د سټ رنگ د پښو په نسبت سپين وي. گويا چې دا د ذكر شوو دريو اقسامونو نه د يو ډول بيان دي. ،،غداف،، هم يو ډول كارگه (كارغه) دي. چه دا د سختې گرمۍ په زمانه كي راځي. او په قول د ابن فارس غټ، دروند، د غټو پښو والا وي. چونكه دا هم چټلې خوري. نو ددې خوراك به هم د ابقع (تور اوسپين كارغه) پشان مكروه وي.

### د عقعق (كاغې) خوړلو حكم

**وَقَالَ أَبُو حَنِيفَةَ رحمه الله:** امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل **لَا بَأْسَ بِأَكْلِ الْعَقْعَقِ** چې د عقعق (كاغې) په خوراك كي هيڅ باك نشته **لِأَنَّهُ يَخْلِطُ** څكه چې دا خلط كوي (يعني پاك او چټلې دواړه خوري). **فَأَشْبَهَ الدَّجَاجَةَ** نو دا به د چرگې پشان وي. **وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ** او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی **أَنَّهُ يُكْرَهُ** چې دا مكروه دي. **لِأَنَّ غَالِبَ أَكْلِهِ الْجِيَفُ** څكه چې ددې غالب (اكثر) خوراك ناپاكي ده.

**حل اللغة:** ① **العقعق:** كاغه ② **يخلط:** گډون كوني يعني پاك او گند دواړه خوري ③ **الدجاجة:** چرگه ④ **الجيف:** مرداره﴾

**تشريح:-** علامه طحطاوی رحمه الله دې ته عقعق په وزن د جعفر وئيلي دي. چه دا د كوترې برابر د كارگه (كارغه) په شكل د اوگدې لكۍ تور او سپين يو مارغه دي. په قاموس كي ليكلي دي. عقعق په وزن د ،،قنفذ،، ابلق (تور او سپين) مارغه دي. چه ددې په آواز كي عين او قاف معلوميږي. دا هغه دي. كوم ته چې زموږ په علاقو كي مهوكها (او په پښتو كي ورته كاغه) وائی. او هم دې ته زموږ په كلو (هندوستان) كي ،،هوكهه،، وائی. بهرحال امام صاحب رحمه الله دا د چرگې په حكم كي گرځولي دي. او ددې خوراك ئې جائز گرځولي دي. امام ابويوسف رحمه الله دې ته مكروه وئيلي دي. څكه چې په عامه توگه (عام طور) باندې (اكثر) چټلې خوري.

### د كومو خاروو خوراك مكروه دې ؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَيُكْرَهُ أَكْلُ الضَّبُعِ وَالضَّبِّ وَالسُّلَحْفَاةِ وَالزُّنْبُورِ وَالْحَشَرَاتِ كُلِّهَا او کوړ او سمساره او کشور او مچۍ او واړه په مځکه باندې توخیدونکی ( خونیدونکی) خناور ( چینجي وغیره) مکروه دی أَمَّا الضَّبُعُ فَلِمَا ذَكَرْنَا بهرحال کوک، هغه دلیل سره کوم چې موږ ذکر کړی دی ، وَأَمَّا الضَّبُّ او بهرحال سمساره، فَلِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَائِشَةَ عَنْ أَكْلِهِ (١) کله چې هغوی د نبی کریم ﷺ نه ددې دخوراك په اړه کې سوال کړې وو. خکه چې نبی کریم ﷺ منع فرمائیلې وه حضرت عائشه حِينَ سَأَلَتْهُ عَنْ

حل اللغة* ① الضبع: کوړ ② الضب: سمساره ③ السلحفاة: کشور ④ الزنبور: مچۍ

تشریح:- کوړ ( غوښه خوړونکې خناور)، سمساره، مچۍ او د ټولو حشرات الارض خوراك مکروه دې.د کوړ د کراهت دلیل وړاندې تیر شوې دې.خکه چې دا درنده دې.او د درنده ګانو د خوراك عدم جواز وړاندې سره د دلیل نه ذکر شوې دې.د سمساره د کراهت دلیل دا دې.چه حضرت عائشه رضی الله عنها د نبی کریم ﷺ نه د سمساره دخوراك په اړه کې پوښتنه اوکړو.نو نبی کریم ﷺ منع اوفرمائیله.

وَهِيَ حُجَّةٌ او دا حدیث حجت دې عَلَى الشَّافِعِيِّ فِي إِبَاحَتِهِ،د امام شافعی رحمه الله په خلاف د سمسارې په جائز ګرخولو کې وَالزُّنْبُورُ مِنَ الْمُؤْذِيَاتِ او مچۍ د ضرر رسونکو څخه دې وَالسُّلَحْفَاةُ مِنْ خَبَائِثِ الْحَشَرَاتِ او کشور د خبائث الحشرات نه دی وَلِهَذَا لَا يَجِبُ عَلَى الْمُحْرِمِ بِقَتْلِهِ شَيْءٌ او هم په دې وجه محرم باندې ددې په قتلولو کې هیڅ نه واجبیږي وَإِنَّمَا تُكْرَهُ الْحَشَرَاتُ كُلُّهَا او واړه حشرات الارض مکروه دی اسْتِدْلَالًا بِالضَّبِّ د سمساره نه استدلال کاوه سره لِأَنَّهُ مِنْهَا خکه چې سمساره د حشرات الارض څخه دې.

تشریح:- امام شافعی رحمه الله سمساره جائز ګرخوی.نو مذکوره حدیث ددوی خلاف حجت دې.او مچۍ د ضرر رسونکوی څخه دې.په دې وجه به ددې خوراك مکروه دی.او کشور د خبائثو څخه ده.او خبائث ( ګنده شیان «خیزونه») په نص د قرآن حرام دی.که محرم په حالت د احرام کې کشور قتل کړی.نو په ده باندې هیڅ سزا نشته.دا ددې د خبائثو څخه کیدو دلیل دې.د ټولو حشرات الارض مکروه کیدو دلیل دا دې.چه سمساره مکروه دې.او سمساره د حشرات الارض څخه دې.نو د پاته حشراتو به هم دا حکم وی.

### د ساتلو شوو خرو او خچرو غوښه خوړل حرام ده

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَلَا يَجُوزُ أَكْلُ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ وَالْبِغَالِ او د ساتلو شوو خرو او خچرو خوراك جائز نه دې لِمَا رَوَى خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دې وجه چې حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه روایت کړې دې أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهَى عَنْ لُحُومِ الْخَيْلِ وَالْبِغَالِ وَالْحَمِيرِ (٢) چې نبی کریم ﷺ د اسونو او خچرو او خرو د غوښو نه منع فرمائیلې ده وَعَنْ عَلِيٍّ رضی الله عنه او د حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دې أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَهْدَرَ الْمُتْعَةَ (٣) چې نبی کریم ﷺ د خیبر په ورخ متعه باطل ګرخولې ده وَحَرَّمَ لُحُومَ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ يَوْمَ خَيْبَرَ او د ساتلو شوو خرو غوښې ئې حرام اوګرخولې.

حل اللغة* ① الحمر: جمع دحمار، خر ② البغال: جمع د بغل، قچر ③ الخیل: اسونه ④ اهدر: عبث کړې وه، باطل کړې وه

تشریح:- د ساتلو شوو خرو او خچرو غوښه خوړل جائز نه ده.په دې کې د حضرت خالد بن ولید او حضرت علی رضی الله عنهما حدیث پیش کړې شوې دې.چه په دې کې د ممانعت صراحت دې.

(١) أخرجه أبوداودفی الأطعمة باب ٢٧ رقم ٣٧٩٦)_

(٢) من حديث خالد بن وليد رضی الله عنه أخرجه أبوداود فی الأطعمة باب ٣٢ رقم ٣٨٠٦ وابن ماجه فی الذبائح باب ١٤ رقم ٣١٩٨ والنسائی فی الصيد باب ٣٠ رقم ٤٣٣١)_

(٣) أخرجه البخاری فی المغازی باب ٤٠رقم ٤٢١٩ ومسلم فی الصيدوالذبائح رقم ٣٦)



### د اس د غوښې حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَيُكْرَهُ لَحْمُ الْفَرَسِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د اس غوښه مکروه ده وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ او هم دا د امام مالك رحمه الله قول دې وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمُ اللَّهُ: رحمهم الله (١) او فرمائیلی دی امام ابویوسف او امام محمد او امام شافعی رحمهم الله .لَا بَأْسَ بِأَكْلِهِ چې ددې په خوراك کې هیڅ باك نشته لِحَدِيثِ جَابِرٍ رضی الله عنه د حضرت جابر رضی الله عنه د حدیث په وجه، دوی فرمایي أَنَّهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ ﷺ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ وَأَذِنَ فِي لُحُومِ الْخَيْلِ يَوْمَ خَيْبَرَ چې رسول الله ﷺ د خیبر په ورخ د ساتلو شوو خرو د غوښو نه منع اوفرمائیله (٢) او د اسونو د غوښو ئې اجازت ورکړو.

حل اللغة* ① الفرس: اس ② الاهلية: په کور کې پاللې شوې ③ لحوم: جمع د لحم، غوښه

تشریح:- د امام صاحب رحمه الله په نیز د اسونو غوښه مکروه ده.او د صاحبینو او امام شافعی رحمهم الله په نیز جائز ده.دې حضراتو د حضرت جابر رضی الله عنه د ذکر شوی حدیث نه استدلال کړې دې.چه ددې تفسیر ښکاره دې.

### د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ قَوْلُهُ تَعَالَى او دامام ابو حنیفه رحمه الله دلیل د الله تعالی فرمان ﴿ وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً ﴾ {وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً} ﴿النحل: ١﴾ دې. خَرَجَ مَخْرَجَ الْإِمْتِنَانِ دا فرمان د احسان کاوه په موقع وارد شوې دې وَالْأَكْلُ مِنْ أَعْلَى مَنَافِعِهَا او خوراك ددې اعلی منفعت دې وَالْحَكِيمُ لَا يَتْرُكُ الْإِمْتِنَانَ بِأَعْلَى النِّعَمِ او حکیم به په اعلی نعمت سره احسان کول نه پریږدی وَيَمْتَنُّ بِأَدْنَاهَا او په معمولی منفعت سره به احسان کوی ( دا د حکیم شان نه دې). وَلِأَنَّهُ آلَةُ إِرْهَابِ الْعَدُوِّ او خکه چې اس د دښمن مرعوب کاوه آله ده، فَيُكْرَهُ أَكْلُهُ احْتِرَامًا لَهُ نو د اس د احترام په وجه به ددې خوراك مکروه وی وَلِهَذَا يُضْرَبُ لَهُ بِسَهْمٍ فِي الْغَنِيمَةِ او په دې وجه د اس لپاره غنیمت کې برخه لګولې شی وَلِأَنَّ فِي إِبَاحَتِهِ تَقْلِيلَ آلَةِ الْجِهَادِ او خکه چې ددې په جائز ګرخولو کې آله د جهاد کمول دی

حل اللغة* ① الامتنان: احسان ② منافع: جمع د منفعة فائده ③ ادنی: معمولی ④ ارهاب: ویرول ⑤ العدو: دښمن ⑥ السهم: غنبې ⑦ تقلیل: کمول

تشریح:- امام ابوحنیفه رحمه الله ① د آیت نه استدلال کړې دې.آیت دا دې. ﴿وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً﴾ او الله تعالی اسونه او خچر او خره پیدا کړی دی.چه تاسو په دې باندې سواره شئ.او د ښائست دپاره،، نو الله تعالی په دې آیت کې بنده ګانو باندې خپل احسان زباتی.نو که ددې خوراك جائز وې.نو خوراك دټولو نه اعلی منفعت دې.نو بیا به ددې ضرور ارشاد فرمائیلو.یعنی الله تعالی به فرمائیلی وو.چه موږ دا پیدا کړل.چه تاسو دا خورئ.او الله حکیم ذات دې.او حکیم چې کله احسان زباتی.نو لوئې نعمت نه پریښولو او وړوکی نعمت سره احسان نه زباتی.نو ددې آیت نه معلومه شوه.چه د اس غوښه به نشی خوړلې.

② او اس سره په دښمن رعب اچولې شی.نو بیا به احتراماً ددې خوراك مکروه وی.او په دې وجه چې اس د دښمن مرعوب کاوه آله ده.نو ددې لپاره د مال غنیمت نه برخه مقرر شوې ده.چه ددې تفصیل د هدایة په دریم توك کې ذکر دې.③ اوکه دا جائز اوګرخولې شی.نو د جهاد آله کمول به لازمیږي.په دې وجه هم ددې خوراك مکروه ذې.

(١) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين. رحمهما الله كذا فی ردالمحتار (٢١٤\٥) والدر المنتقى (١٦١\٤) ومجمع الأنهر (١٦٢\٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٩٠\١٢)-

(٢) أخرجه البخاری فی المغازی باب ٤٠ رقم ٤٢١٩ ومسلم فی الصيد والذبائح رقم ٣٦)_

وَحَدِيثُ جَابِرٍ او د حضرت جابر ﷺ حديث مُعَارَضٌ بِحَدِيثِ خَالِدٍ ﷺ (١) د حضرت خالد ﷺ د حديث معارض دې وَالتَّرْجِيحُ لِلْمُحَرِّمِ او ترجيح محرم ته وي.

تشريح:- كه څوك دا اعتراض اوكړي چې د حضرت جابر ﷺ د حديث نه د اس د غوښې جواز ثابت دې نو كراهت څنګه دې؟ نو ددې ځواب دا وركوى چې د حضرت خالد بن وليد ﷺ په حديث كې حرمت ښكاره دې.نو په دې دواړو حديثونو كې تعارض شو.او كله چې په حلال اوحرام كې تعارض وي.نو حرام ته ترجيح وركولې شي.نو د حضرت خالد ﷺ حديث چونكه محرم دې.په دې وجه به دې ته ترجيح وركولې شي.

قِيلَ: بيا ونيلى شوى دى ثُمَّ الْكَرَاهَةُ عِنْدَهُ كَرَاهَةُ تَحْرِيمٍ چې كراهت د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز كراهت تحريمى دې وَقِيلَ او ونيلى شوى دى كَرَاهَةُ تَنْزِيهٍ چې كراهت تنزيهى دې وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ.او ړومبې زيات صحيح دې وَأَمَّا لَبَنُهُ او بهرحال د اسپې شيدې فَقَدْ قِيلَ ونيلى شوى دى لَا بَأْسَ بِهِ چې په، نو دې كې هيڅ باك نشته.؛ لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي شُرْبِهِ تَقْلِيلُ آلَةِ الْجِهَادِ څكه چې ددې په څښلو كې د جهاد د آلې كمول نشته.

تشريح:- بيا د امام صاحب رحمه الله په نيز كراهت تحريمى دې.او كه تنزيهى دې.نو دواړه قوله شته.خو كراهت تحريمى زيات صحيح دې.پاتې شو د اسپې شيدې ، نو په دې كې د جهاد په آله كې هيڅ كمې نه لازميږي.نو دا جائز دي.په ﴿سكب الانهر ص: ۴۳۶،ج۲﴾ باندې ددې زيات تفصيل موجود دې.چه په دې كې مفتى به قول كراهت تنزيهى نقل كړې دې.

**د سويه ( خرګوش) خوړلو حكم**

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل (وَلَا بَأْسَ بِأَكْلِ الْأَرْنَبِ) او په سويه خوړلو كې هيڅ باك نشته لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَكَلَ مِنْهُ څكه چې نبى كريم ﷺ ددې نه خوړلې ده حِينَ أُهْدِيَ إِلَيْهِ مَشْوِيًّا كله چې دا نبى كريم ﷺ ته اورته كړې شوې پيش كړې شوه وَأَمَرَ أَصْحَابَهُ بِالْأَكْلِ مِنْهُ (٢) او خپلو اصحابو ﷺ ته ئې ددې د خوراك حكم اوفرمائيلو وَلِأَنَّهُ لَيْسَ مِنَ السِّبَاعِ او څكه چې دا د درنده ګانو نه نه دې وَلَا مِنْ أَكَلَةِ الْجِيَفِ او نه د ګندګى خوړونكو څنې دي فَأَشْبَهَ الظَّبْيَ نو د اوسئ مشابه شوه.

حل اللغة: ① الارنب: سويه ② مشوى: وريته شوې ③ الجيف: مرزګي ④ الظبى: اوسئ﴾

تشريح:- سويه خوړل جائز دى.څكه د ذكر شوى حديث نه معلومه شوه.چه نبى كريم ﷺ پخپله هم اوخوړله.او خپلو اصحابو ﷺ ته ئې د خوراك حكم اوفرمائيلو.او دا نه درنده ده.او نه چټلې خورى.نو دا د اوسئ مشابه شوه.

**په ذبح سره د كومو ځناورو غوښه او څرمن پاكيږي او د كومو نه پاكيږي؟**

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل وَإِذَا ذُبِحَ او كله چې هغه ځناور ذبح كړې شو مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ د كوم غوښه چې نشى خوړلې طَهُرَ جِلْدُهُ وَلَحْمُهُ نو ددې څمره او غوښه به پاكيږي إِلَّا الْآدَمِيَّ وَالْخِنْزِيرَ خو سړې ( بنيادم) او خنزير (

(١) يشيرالى حديث خالد ﷺ الذى تقدم تخريجه)_

(٢) قال الزيلعى رحمه الله كانهما حديثان فالأول ...عن أنس ﷺ قال نفجنا أرنباً بمرالظهران فسعى القوم فلغبوا فأدركتها فأخذتها فأتيت بها أباطلحة فذبحها وبعث بوركها إلى رسول الله ﷺ أوقال فخذيها فقبله قلت وأكل منه؟ قا ل أكل منه ثم قال بعد قبله أخرجه البخارى فى الهبة باب ۵ ومسلم فى الصيد والذبائح رقم ۵۳ والترمذى فى الأطعمة باب ۳۲ والنسائى فى الصيد باب ۲۵ وابن ماجه فى الصيد باب ۱۷) وفى حديث أبى هريرة ﷺ قال جاء أعرابى إلى رسو ل الله ﷺ بأرنب قد شواها فوضعها بين يديه فأمسك رسول الله ﷺ فلم ياكل وأمرالقوم أن ياكلوا قال الزيلعى رحمه الله أخرجه النسائى (نصب: ۴۸۸\۴)_



ددې نه مستثنى دى)، فَإِنَّ الذَّكَاةَ لَا تَعْمَلُ فِيهِمَا څكه چې ذكاة به په دې دواړو كې اثر نه كوى أَمَّا الْآدَمِيُّ بهرحال سړې فَلِحُرْمَتِهِ وَكَرَامَتِهِ نو دده د احترام او شرافت په وجه وَالْخِنْزِيرُ لِنَجَاسَتِهِ او خنزير ددې د نا پاك كيدو په وجه، كَمَا فِي الدِّبَاغِ لكه څنګه چې دباغت ( رنګ كولو) كې دى.

حل اللغة: ① جلد: څرمن ② الدباغ: رنګ كول﴾

تشريح:- ذكاة سره چې لكه څنګه په ماكول اللحم ځناورو كې غوښه حلاليږي.په غير ماكول اللحم ځناورو كې غوښه او څمره پاكيږي.اګرچه غوښه نه حلاليږي.څكه چې ذكاة شرعى سره بهيدونكې وينه او نجس رطوبات خارجيږي.نو غوښه پاكيږي.البته د سړى او خنزير څمره نه دباغت ( رنګ كولو) سره پاكيږي.او نه ذكاة سره،

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعى رحمه الله فرمائيلى دى الذَّكَاةُ لَا تُؤَثِّرُ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ چې ذكاة به په دې ټولو كې اثر نه كوى لِأَنَّهُ لَا تُؤَثِّرُ فِي إِبَاحَةِ اللَّحْمِ أَصْلًا څكه چې ذكاة اصالتاً د غوښې په اباحت كې اثر كوى وَفِي طَهَارَتِهِ وَطَهَارَةِ الْجِلْدِ تَبَعًا او د غوښې په پاكوالى او د څمړې په پاكوالى كې تبعاً ( نه كوى)، وَلَا تَبَعَ بِدُونِ الْأَصْلِ او د اصل نه بغير تابع كيدل نشته وَصَارَ او داسې شوه. كَذَبْحِ الْمَجُوسِيِّ لكه د مجوسى ذبح،

تشريح:- د امام شافعى رحمه الله نه نقل دى.چه په غير ماكول اللحم كې به ذكاة اثر نه كوى.څكه چې ذكاة اصل كې غوښه حلالوى.بيا ددې په واسطه غوښه او څمره پاكيږي.او دلته اصل ( حلت دغوښې) مقصود دې.نو تابع ( پاكوالې د غوښې او څمړې) به د متبوع ( حلت د غوښې) نه بغير نه ثابتيږي.او دا خو د مجوسى د ذبح پشان شو.چه دې سره حلت نه ثابتيږي.نو پاكوالې به هم نه ثابتيږي.

وَلَنَا او زموږ دليل دا دې أَنَّ الذَّكَاةَ مُؤَثِّرَةٌ فِي إِزَالَةِ الرُّطُوبَاتِ وَالدِّمَاءِ السَّيَّالَةِ چې ذكاة د رطوباتو ( د ګنده اوبو) په زائل كاوه كې ، او د بهيدونكې وينې په ايستلو كې اثر كوى وَهِيَ النَّجِسَةُ او نا پاك هم دا دى دُونَ ذَاتِ الْجِلْدِ وَاللَّحْمِ څمره او د غوښې ذات ( ناپاك) نه دې ، فَإِذَا زَالَتْ نو هركله چې رطوبت زائل شو طَهُرَ نو غوښه پاكه شوه كَمَا فِي الدِّبَاغِ. لكه څنګه چې دباغت ( رنګ كولو) كې دى وَهَذَا الْحُكْمُ مَقْصُودٌ فِي الْجِلْدِ او دا ( پاكوالې) په څمره كې مقصود حكم دې كَالتَّنَاوُلِ فِي اللَّحْمِ لكه څنګه چې غوښه كې خوړل ( مقصود دى).
وَفِعْلُ الْمَجُوسِيِّ إِمَاتَةٌ فِي الشَّرْعِ او د مجوسى فعل شريعت كې مړ كول دى فَلَا بُدَّ مِنَ الدِّبَاغِ نو دباغت ضرورى دې وَكَمَا يَطْهُرُ لَحْمُهُ او لكه څنګه چې ددې غوښه پاكيږي ، يَطْهُرُ شَحْمُهُ ددې وازګه هم پاكيږي حَتَّى لَوْ وَقَعَ فِي الْمَاءِ الْقَلِيلِ تردې كه وازګه په كمو اوبو كې اوغورځيږي لَا يُفْسِدُهُ نو دا به نه نا پاكه كوى ، خِلَافًا لَهُ امام شافعى رحمه الله اختلاف دې.

حل اللغة: ① شحم: وازګه ② تناول: شامليږي ③ لحم: غوښه﴾

تشريح:- زموږ دليل دا دې.چه د ناپاكئ او رطوباتو ( او ګنده اوبو) په وتلو سره غوښه او څمره پاكه شوه.لكه څنګه چې دباغت سره څمره پاكيږي.او د څمړې پاكوالې پخپله مقصود دې.لكه څنګه چې غوښه كې خوړل مقصود دى.او د مجوسى په فعل باندې قياس صحيح نه دې.چه ذكاة د مجوسى په شريعت كې اچول دى.نو د مجوسى فعل سره به پاكوالې نه راځى.بلكه پاكوالى لپاره به دباغت ضرورى وى.او هركله چې غوښه پاكه شوه.نو وازګه هم پاكه شوه.

وَهَلْ يَجُوزُ الْإِنْتِفَاعُ بِهِ فِي غَيْرِ الْأَكْلِ او آيا د خوراك نه په علاوه كې ددې نه انتفاع جائز ده قِيلَ: لَا يَجُوزُ نو ونيلى شوى دى.چه جائز نه ده اعْتِبَارًا بِالْأَكْلِ په خوراك باندې قياس كاوه سره، وَقِيلَ او ونيلى شوى دى يَجُوزُ جائز ده كَالزَّيْتِ لكه د زيتون تيل إِذَا خَالَطَهُ وَدَكُ الْمَيْتَةِ كله چې په دې كې د مردارې وازګه ملاو شى وَالزَّيْتُ غَالِبٌ او د زيتون تيل غالب وى لَا يُؤْكَلُ نو خوړلې به نشى. وَيُنْتَفَعُ بِهِ فِي غَيْرِ الْأَكْلِ او د خوراك نه په علاوه كې به ددې

نه نفع اخستلې شي.

حل اللغة* ① الزيت: د زيتون تيل ② ودک: وازګه﴾

تشريح:- بيا پاتې شوه دا مسئله، چې د وازګې د خوراك نه علاوه نورو منافعو کې استعمال څنګه دې. نو په دې کې دوې (دوه) قوله دی. ① عدم جواز ② جواز، لکه مثلاً که د زيتونو په تيلو کې نا پاکی اوغورځيږي. نو د خوراك نه علاوه کې ددې استعمال جائز دې.

**د اوبو په ځناورو کښې د کومو ځناورو خوراك حلال دې ؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائيل وَلَايُؤْكَلُ مِنْ حَيَوَانِ الْمَاءِ إِلَّا السَّمَكَ او د اوبو په ځناورو کې د کب نه علاوه به هيڅ نه خوړلې کيږی وَقَالَ مَالِكٌ وَجَمَاعَةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ بِإِطْلَاقِ جَمِيعِ او د امام مالك رحمه الله او د اهل علمو يو جماعت د هغې ټولو ځناورو د جواز قائل دی مَا فِي الْبَحْرِ کوم چې درياب کې دی. وَاسْتَثْنَى بَعْضُهُمُ الْخِنْزِيرَ وَالْكَلْبَ وَالْإِنْسَانَ او په دوی کې بعضو د خنزير او سپی او د انسان استثناء کړې ده.

حل اللغة* ① السمک: کب ② الكلب: سپی﴾

تشريح:- د حنفيانو په نيز د درياب په ځناورو کې صرف کب جائز دې. نور هيڅ جائز نه دی. او امام مالك، ابن ابی ليلی او اصحاب الظواهر او د امام شافعی رحمه الله په يو قول کې د درياب هر ځناور حلال دې. اګرچه دا د درياب خنزير، او سپې، او انسان ولې نه وی.

وَعَنِ الشَّافِعِيِّ او د او په خوراك او بيع کې يو (شان) اختلاف دې. امام شافعی رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ أَطْلَقَ ذَلِكَ كُلَّهُ چې دوی دا واړه جائز ګرځولی دی، وَالْخِلَافُ فِي الْأَكْلِ وَالْبَيْعِ وَاحِدٌ فيصل ددې ژباړه پاتې ده

تشريح:- د امام شافعی رحمه الله يو قول دا دې. چه واړه ځناور حلال دی. خو دريابی خنزير او سپې او انسان جائز نه دې. هم دا د ليث رحمه الله قول دې. او د امام شافعی رحمه الله دريم قول دا دې. چه د چنګوښه نه علاوه واړه ځناور حلال دی.

**د فريق مخالف دليل**

لَهُمْ ددوی ټولو دليل قَوْلُهُ تَعَالَى د الله تعالى فرمان ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ﴾ المائده:۶۹﴾ دې مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ د تفصيل نه بغير

تشريح:- دا د فريق مخالف دليل دې. چه دا په دريو اجزاو باندې مشتمل دې. ① آيت ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ﴾ ستاسو لپاره د درياب ښکار حلال کړې شوې دې. په دې کې تفصيل نشته. چه کوم يو حلال کړې شوې دې. او کوم يو نه دې. نو معلومه شوه. چه مطلقاً د درياب ښکار حلال دې. نو په دې کې واړه ځناور حلال شو.

تشريح:- دا زموږ دليل دې. چه په دې کې يو آيت او دوې (دوه) حديثونه دی. بيا د فريق مخالف د مستدلاتو ځواب دې. ② آيت ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ﴾ نو معلومه شوه. چه خبائث حرام دی. او د کب نه علاوه چې څومره هم دريابی ځناور دی. واړه خبيث دی. د ټولو په طبعيت کې خباثت (او ګنده توب) دې.

، وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي الْبَحْرِ او د درياب په اړه کې د نبی کريم ﷺ فرمان دې {هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ چې ،، ددې اوبه پاکونکې دی وَالْحِلُّ مَيْتَتُهُ (۱). او ددې مردار حلال دې ،، وَلِأَنَّهُ لَا دَمَ فِي هَذِهِ الْأَشْيَاءِ او ځکه چې په دې ځيزونو کې وينه نه وی إِذِ الدَّمَوِيُّ لَا يَسْكُنُ الْمَاءَ ځکه چې وينې والا په اوبو کې نشی اوسيدې وَالْمُحَرَّمُ هُوَ الدَّمُ او حرامونکې هغه وينه ده فَأَشْبَهَ السَّمَكَ*....نو دا واړه د کب مشابه شو.

(۱) تقدم تخريجه فى الطهارة)_



تشريح:- د درياب اوبه ښه پاکونکې دی. او ددې مردار حلال دې. ددې حديث نه هم معلومه شوه. چه د درياب مردار حلال دې. نو مذکوره واړه دريابی ځناور به حلال وی. ② اصل حرامونکې شی هغه وينه ده. او د درياب په ځناورو کې وينه نه وی. ځکه که دې کې وينه وې. نو دا به په اوبو کې هميشه نه اوسيدل. نو دا به د کب په حکم کې وی. بيا چا چې خوراك ته جائز ونيلی دی. هغوی بيع ته هم جائز ونيلی دی. نو په بيع کې به هم دا مذکوره اختلاف جاری کيږی.

**د احنافو دليل**

قُلْنَا: قَوْلُهُ تَعَالَى او زموږ دليل د الله تعالى فرمان دې {وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ} وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ الاعراف:۱۵۷﴾ او حراموی. هغه په دوی باندې ګنده (پليت شيان (ځيزونه)) وَمَا سِوَى السَّمَكِ خَبِيثٌ او د کب نه علاوه واړه خبائث دی.

وَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنْ دَوَاءٍ او نبی کريم ﷺ د داسې دوايئ نه منع فرمائيلې ده يُتَّخَذُ فِيهِ الضِّفْدَعُ (۱) چه په هغې کې چنګوښه اچولې شوې وی وَنَهَى *..او منع نې فرمائيلې ده عَنْ بَيْعِ السَّرَطَانِ (۲) د کونی کبر د خرڅولو نه،

حل اللغة* ① دواء: دوائی ② الضفدع: چنګوښه ③ السرطان: کونکی کبر﴾

تشريح:- په کومه دوائی کې چې چنګوښه اچولې شوې وی. د داسې دوائی نه رسول الله ﷺ منع فرمائيلې ده. که چندځ جائز وې. نو د دوائی به نې منع نه فرمائيله. دوهم حديث: په حديث کې د سرطان (کونی کبر) د بيع نه ممانعت فرمائيلې شوې دې. او وړاندې معلومه شوې ده. چه د بيع او خوړلو حکم يو دې.

وَالصَّيْدُ الْمَذْكُورُ او هغه ښکار کوم چې ذکر دې فِيمَا تَلَا په هغه آيت کې کوم چې فريق مخالف تلاوت کړو مَحْمُولٌ عَلَى الِاصْطِيَادِ او دا په ښکار کاوه باندې محمول دې وَهُوَ مُبَاحٌ او ښکار کول د هغې هم جائز دې فِيمَا لَا يَحِلُّ کوم چې حلال نه دې.

تشريح:- فريق مخالف چې د کوم آيت نه استدلال کړې دې. په هغې کې د ښکار، او د ښکار کاوه معنی ده. او مطلب دا دې. چه په درياب کې ښکار کول حلال دی. او ښکار د هغه ځناورو هم جائز دې. کوم چې حلال نه دی. نو ددې نه استدلال کامل نه دې.

وَالْمَيْتَةُ الْمَذْكُورَةُ او هغه ،، ميتته ،، (مرداره) کومه چې ذکر ده فِيمَا رَوَى په هغه حديث کې کوم چې فريق مخالف روايت کړې دې مَحْمُولَةٌ عَلَى السَّمَكِ دا په کب باندې محمول دې وَهُوَ حَلَالٌ او کب حلال دې مُسْتَثْنًى مِنْ ذَلِكَ چې دا د ټولو مردارو نه مستثنی دې لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کريم ﷺ د فرمان په وجه چې أُحِلَّتْ لَنَا مَيْتَتَانِ وَدَمَانِ زموږ لپاره دوې (دوه) مردارې او دوې (دوه) وينې حلال کړې شوی دی أَمَّا الْمَيْتَتَانِ فَالسَّمَكُ وَالْجَرَادُ بهرحال دوې (دوه) مردارې نو دا کب ملخ دې ،وَأَمَّا الدَّمَانِ فَالْكَبِدُ وَالطِّحَالُ (۳) او بهرحال دوې (دوه) وينې نو

(۱) من حديث عبدالرحمن بن عثمان القرشى أن طبيباً سأل رسول الله ﷺ عن الضفدع يجعلها فى دواء فنهى عن قتلها) أخرجه أبوداود فى الطب باب ۱۱ وأحمد فى المسند(۴۵۳\۳) والحاكم فى المستدرک (۴۴۵\۴) والنسائى فى الصيد باب ۳۶ رقم ۴۰۶۲)_

(۲) قال الزيلعى رحمه الله غريب جداً (نصب: ۴۹۱\۴)_

(۳) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه ابن ماجه فى الصيد والذبائح باب ۹ رقم ۳۲۱۸ وأحمد المسند(۹۷\۲) والدارقطنى فى سننه (۲۷۲\۴) والبيهقى فى السنن الكبرى (۱۲\۱۰) رقم ۱۹۶۹۷)

دا كليجه (زړه) او توري دي.

**حل اللغة:** ① **الميتة:** مردار ② **السمک:** كب ③ **الجراد:** ملخ ④ **الكبد:** كليجي ⑤ **الطحال:** توره﴾

**تشريح:-** فريق مخالف چې د كوم حديث نه استدلال كړې دې.هغې كې د مردار نه مراد كب دې.او كب حلال دې.يعني د درياب په ټولو مردارو كې صرف كب حلال دې.ددې څه دليل دې.چه كب مردار دې؟ حديث كې دی.چه زمونږ لپاره دوې (دوه) مردارې حلال دی.او دوې (دوه) وينې حلال دی.او د مردار نه مراد كب او ملخ دې.او د وينې نه مراد زړه او توري دي.نو ددې حديث نه مطلب دا شو.چه كب مردار دې.بيا هم حلال دې.دا نې په ،، والحل ميتة ،، سره تعبير كړو.

## پخپل مرګ د مړ شوي كب حكم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَيُكْرَهُ أَكْلُ الطَّافِي مِنْهُ او په كبانو كې طافي (كوم چې مړ شی.او التهٔ شی) مكروه دي وَقَالَ مَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمَا اللَّهُ او امام مالك او امام شافعي رحمهما الله فرمايي لَا بَأْسَ بِهِ چې په دې كې هيڅ باك نشته لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا د هغه حديث د مطلق كيدو په وجه، كوم چې مونږ روايت كړې دې وَلِأَنَّ مَيْتَةَ الْبَحْرِ مَوْصُوفَةٌ بِالْحِلِّ بِالْحَدِيثِ او ځكه چې د درياب مردار د حديث په وجه حلت سره موصوف دې.

**تشريح:-** هر ډول كب حلال دې.كه ژوندې وی.او كه مړ وی.البته كوم كب چې پخپله د څه آفت او مصيبت نه بغير مړ شی.او په درياب كې التهٔ شی.چه نس نې پورته شی.او شا نې لاندې شی.چه دې ته طافی وائی.دا مكروه تحريمي دې.امام مالك او امام شافعي رحمهما الله دا هم حلال ګرځولې دې.او په دليل كې نې هغه مخكنې حديث پيش كړې دې. ﴿و الحل ميتته﴾ نو هركله چې د درياب مردار حلال دې.نو طافی (پخپل مرګ مړ شوی) هم د درياب مردار دې.

وَلَنَا او زمونږ دليل هغه حديث دې مَا رَوَى جَابِرٌ رضي الله عنه كوم چې حضرت جابر رضي الله عنه روايت كړې دې عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ هغه فرمائی.چه نبی كريم ﷺ اوفرمائيل. أَنَّهُ قَالَ مَا نَضَبَ عَنْهُ الْمَاءُ كوم كب نه چې اوبه اوچې شوې وی فَكُلُوا نو ته هغه اوخوره. وَمَا لَفَظَهُ الْمَاءُ او كوم چې درياب راوغورځولو فَكُلُوا هغه خوره وَمَا طَفَا او كوم چې التهٔ شو فَلَا تَأْكُلُوا (١) نو هغه مه خوره، وَعَنْ جَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ مِثْلُ مَذْهَبِنَا (٢) او د صحابو رضي الله عنهم د يو جماعت نه زمونږ د مذهب پشان نقل دی.

**حل اللغة:** ① **الفظ:** ويشتل ② **نضب:** راپورته كړو ③ **طفا:** التهٔ كړو﴾

**تشريح:-** زمونږ دليل د حضرت جابر رضي الله عنه هغه حديث دې.كوم چې دلته مذكور دې.يعني په كوم درياب كې چې اوبه اوچې شی.اود اوبو اوچيدو په وجه كب مړ شی.نو ددې خوراك حلال دې.او كه د درياب په اوبو كې تيزه څپه راغله.چه ددې د حركت په وجه كب د درياب نه بهر راوغورځيدو.او مړ شو.نو حلال دې.ځكه چې دا مرګ د آفت په وجه دې.خو كوم چې طافی وی.د هغې خوراك حلال نه دې.د صحابو رضي الله عنهم يو جماعت هم ددې قائل دی.

وَمَيْتَةُ الْبَحْرِ او درياب مردار هغه دې مَا لَفَظَهُ الْبَحْرُ كوم چې درياب راغورځولې وی لِيَكُونَ مَوْتُهُ مُضَافًا إِلَى الْبَحْرِ چه ددې مرګ درياب اړخ ته مضاف كړې شی لَا مَا مَاتَ فِيهِ مِنْ غَيْرِ آفَةٍ هغه نه دې.كوم چې په درياب

---

(١) - قال الزيلعي رحمه الله غريب بهذا اللفظ وأخرج أبوداود (أى فى الأطعمة باب ٣٥ رقم ٣٨١٥) عن جابر رضي الله عنه أن رسول الله ﷺ قال ما ألقاه البحر أو جزر عنه فكلوه وما مات فيه وطفا فلا تأكلواه (نصب:٤٩٢)_

(٢) قال الزيلعي رحمه الله أخرج ابن أبى شيبة فى مصنفه فى الصيد عن جابربن عبدالله ،وعلى وابن عباس رضي الله عنهم ذلک (نصب: ٤\٤٩٥)_



كې د څه افت نه بغير مړ شي (يعني طافی).

**تشريح:-** او په ﴿الحل ميتته﴾ سره استدلال كامل نه دې.بلكه هغه كب د كوم مرګ چې درياب اړخ ته منسوب او مضاف وی.هغې ته به د درياب مردار وئيلې شی.يعني كوم چې درياب بهر ته راوغورځولو.نو هغې ته حديث كې حلال وئيلی شوی دی.او دې ته مونږ هم حلال وايو.

## كب سره د ځېلو ټولو اقسامو حلال دې .او د امام مالك رحمه الله نقطه نظر

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَلَا بَأْسَ بِأَكْلِ الْجِرِّيثِ وَالْمَارْمَاهِي وَأَنْوَاعِ السَّمَكِ وَالْجَرَادِ بِلَا ذَكَاةٍ) او جريث (يو ډول كب دې) مار مهې او د كب د ټولو اقسامو او د ملخ په خوراك كې هيڅ باك نشته وَقَالَ مَالِكٌ او امام مالك رحمه الله فرمائيلی دی لَا يَحِلُّ الْجَرَادُ چې ملخ به حلال نه وی إِلَّا أَنْ يَقْطَعَ الْآخِذُ رَأْسَهُ مګر دا چې نيونكې ددې سر كټ كړی أَوْ يَشْوِيَهُ او وريت نې كړی: لِأَنَّهُ صَيْدُ الْبَرِّ، ځكه چې دا د اوچې ښكار دې وَلِهَذَا يَجِبُ عَلَى الْمُحْرِمِ بِقَتْلِهِ جَزَاءٌ او هم په دې وجه محرم باندې ددې په قتل سره داسې جزاء واجب ده. يَلِيقُ بِهِ كومه چې ددې لائق وی فَلَا يَحِلُّ نو ملخ به حلال نه وی إِلَّا بِالْقَتْلِ خو په قتل سره كَمَا فِي سَائِرِهِ لكه څنګه چې د اوچې په ټولو ځناورو كې (د قتلولو يعنی د ذبح حكم دې. وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا او حجت د امام مالك رحمه الله خلاف هغه حديث دې.كوم چې مونږ روايت كړې دې.

**حل اللغة:** دكب په قسمونو كې يو جريث (يو ډول كب دې) دې.چه دا تور وی.او يو مارمهې دې.چه دې ته بام وائی.چه دا د مار مشابه وی.

**تشريح:-** كه هر ډول كب وی.او ملخ دواړه د ذكاة (ذبح) نه بغير خوړلو كې هيڅ باك نشته.خو امام مالك رحمه الله فرمائی.چه ملخ ذبح كول ضروری دی.يعنې دا چې ددې سر جلا كړې شی.ځكه چې ملخ د اوچې ځناور دې.او د اوچې په ټولو ځناورو كې ذكاة ضروری دې.نو په ملخ كې به هم وی.او چونكه ملخ د اوچې ځناور دې.په دې وجه كه محرم ملخ قتل كړی.نو په ده به جزاء واجب وی.لكه څنګه چې په سپګه كې جزاء واجبيږی.چه څومره غواړی.صدقه دې اوكړی.خو مونږ وايو .چه حديث كې راغلی دی.چه ﴿أحلت لنا ميتتان﴾ په دې كې كب او ملخ دواړه داخل دی.نو لكه څنګه چې كب د ذكاة نه بغير خوړل جائز دی.دغه ډول به ملخ هم د ذكاة نه بغير خوړل جائز وی.

## مُلخ كه ژوندی وی اوكه مړ حلال دی

وَسُئِلَ او پوښتنه اوكړې شو عَلِيٌّ رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه نه عَنِ الْجَرَادِ ملخ په اړه كې يَأْخُذُهُ الرَّجُلُ مِنَ الْأَرْضِ چې دا يو سړې د زمكې نه راونيسی وَفِيهَا الْمَيِّتُ وَغَيْرُهُ او په دې كې بعضې مړه شوی وی او بعضې ددې نه علاوه دی. (يعنی ژوندی دی) فَقَالَ :نو حضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل كُلْهُ كُلَّهُ (١) دا واړه خوری وَهَذَا عُدَّ مِنْ فَصَاحَتِهِ او دا د حضرت علي رضي الله عنه په فصاحت كې شمار كړې شوې دې وَدَلَّ عَلَى إِبَاحَتِهِ او دا ارشاد دلالت كوی.د ملخ په اباحت (جواز) باندې، وَإِنْ مَاتَ حَتْفَ أَنْفِهِ، اګرچه دا پخپل مرګ مړ شوې وی بِخِلَافِ السَّمَكِ په خلاف د كب إِذَا مَاتَ مِنْ غَيْرِ آفَةٍ كله چې دا د آفت نه بغير (پخپل مرګ) مړ شی، لِأَنَّا خَصَّصْنَاهُ ځكه چې مونږ د كب تخصيص اوكړو بِالنَّصِّ الْوَارِدِ د هغه نص په وجه كوم چې وارد شوې دې فِي الطَّافِي د طافی په اړه كې.

**حل اللغة:** ① **الطافي:** هغه كب كوم چې اوبه راغورځولې وی﴾

---

(١) قال الزيلعي رحمه الله غريب بهذا اللفظ وروى عبدالرزاق فى مصنفه ...عن علي رضي الله عنه قال الحيتان والجراد ذكى كله (نصب: ٤\٤٩٥)_

**تشريح:-** ملخ كه ژوندي وي.اوكه مړ وي.واړه حلال دي.او د كب هم دا حكم دې.صرف طافي (پخپل مرګ مړ شوې) ددې حكم نه مستثنی دې.چه دا حلال دې.د «والحل ميتته» تقاضه خو دا وه.چه طافي هم حلال وي.په نورو الفاظو كي داسې چې پخپل مرګ مړ شوې هم حلال وي.لكه څنګه چې مړ شوې ملخ حلال دې.خو څه اوكړو.چه د ملخ په اړه كي هيڅ نص نشته.او د كب په اړه كي د حضرت جابر﷜ حديث تير شوې دې.چه په هغې كي د طافي نه منع فرمائيلې شوې ده.ددې مجبورۍ په وجه موږ له په كب كي تخصيص كول لازمي شو.او نص صرف د طافي په اړه كي وارد دې.نو دې ته موږ مكروه اوونيل.او پاته ټولو ته مو حلال اوونيل.

❀ د حضرت علي﷜ نه دهغه ملخانو په اړه كي پوښتنه اوكړې شوه.چه په دې كي بعضې مړه شوي وي.او بعضې ژوندي وي.نو هغوی اوفرمائيل.،، كله كله ،،دا واړه خورئ.نو ددوی دا فرمان په اباحت باندې دلالت كوي.اګر چې دا پخپله مړ شوې وي.او دا جمله د حضرت علي﷜ په فصاحت كي شمار كړې شوې ده.څكه چې دوې (دوه) د يو شكل جملې ئې اوفرمائيلې.او معنی ئې جلا جلا ده.

### د كب په اړه كښې قاعده كليه

**ثُمَّ الأَصْلُ فِي السَّمَكِ عِنْدَنَا** بيا زموږ په نيز د كب په اړه كي قاعده كليه دا ده **أَنَّهُ إِذَا مَاتَ بِآفَةٍ** چې كله دا په څه آفت سره مړ شي **يَحِلُّ كَالْمَأْخُوذِ** نو حلال دې.لكه هغه (كب) كوم چې نيولې شوی وي **وَإِذَا مَاتَ حَتْفَ أَنْفِهِ مِنْ غَيْرِ آفَةٍ** او كله چې د څه آفت نه بغير پخپل مرګ مړ شي **لَا يَحِلُّ كَالطَّافِي** نو هغه حلال نه دې.لكه طافي، **وَتَنْسَحِبُ عَلَيْهِ فُرُوعٌ كَثِيرَةٌ** او هم په دې قاعده باندې ډير فروع متفرع كيږي، **بَيَّنَّاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهَى** چې دا موږ په كفاية المنتهی كي بيان كړې دي **وَعِنْدَ التَّأَمُّلِ يَقِفُ الْمُبَرِّزُ عَلَيْهَا** او خبريدې شي ددې فروعو نه هغه كس چې هغه اوچت وي.د سوچ په وخت، **مِنْهَا إِذَا قَطَعَ بَعْضَهَا** ددې فروعو څخه يو دا دې.چه كله د كب بعضې برخه كټ كړې شوه **فَمَاتَ** نو هغه مړ شو **يَحِلُّ أَكْلُ مَا أُبِينَ وَمَا بَقِيَ** نو كومه ټكړه چې جدا كړې شوې ده.هغه او كومه چې پاتې شوې ده.هغه (يعني ټوله) حلال ده **لِأَنَّ مَوْتَهُ بِآفَةٍ** څكه چې ددې (كب) مرګ د آفت په وجه دې **وَمَا أُبِينَ مِنَ الْحَيِّ** او كومه ټكړه چې د ژوندي (خناور) نه جلا كړې شي **وَإِنْ كَانَ مَيِّتًا فَمَيْتَتُهُ حَلَالٌ** اګرچه دا مردار ده.نو د درياب مردار حلال دې.. **فِي الْمَوْتِ بِالْحَرِّ وَالْبَرْدِ رِوَايَتَانِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ** او د ګرمۍ اويخنۍ نه مړ كيدو كي دوې (دوه) روايتونه دي.والله اعلم بالصواب

**حل اللغة:** ① **حتف انفه:** په خپل مرګ مړ كيدونكې ② **تنسحب:** مرتب كيږي، مستنبط كيږي.

**تشريح:-** د كب په اړه كي دا قاعده كليه ده.چه كله دا په څه آفت سره مړ شي.نو دا به حلال وي.اوكه د څه آفت نه بغير مړ شي.نو دا به حلال نه وي.رومبې لكه مثلاً هغه كب كوم چې ښكاري اونيولو (نو حلال دې).او دوهم لكه طافي، (او دا) مكروه دې.بيا مرغيناني ﷫ فرمائي.چه دا داسې قاعده كليه ده.چه په دې باندې ډير فروعات متفرع كيږي.چه دا پوهه سړې پخپله راوښكلې شي.مثلاً د يو كب نه څه ټكړه جلا كړې شوه.چه په دې سره هغه مړ شو.نو دا مرګ د آفت په وجه دې.نو كب هم حلال دې.او دا ټكړه هم حلال ده.كب حلال ولې دې؟ نو دا ښكاره ده.او ټكړه اګرچه د ژوندي شي ټكړه ده.چه دا حلال نه وي.بلكه مړزګي وي.خو چونكه دا د كب ټكړه ده.چه دا د درياب خناور دې.او د درياب مردار حلال دې.كوم كب چې د سختې ګرمۍ يا د يخنۍ په وجه مړ شو.په دې كي دوې (دوه) قوله دي.يو د جواز او دوهم د عدم جواز، خو مختار رومبې (قول) دې.

## كتاب الأضحية

زباړه:- (دا) كتاب د قربانۍ (د احكامو په بيان كي) دې.

**تشريح:-** د لفظ ،، ډضحيه ،، تحقيق په ذبح او قربانۍ كي د عموم خصوص مطلق نسبت دې.رومبې عام او



دوهم خاص دې.لكه حيوان او انسان، او د عام نه روسته د خاص ذكر كول زيات مناسب دی.څكه چې عام د خاص جزء وي.مثلاً حيوان د انسان جزء دې.څكه چې د انسان ماهيت حيوان ناطق دې.او جزء طبعاً مقدم وي.نو وضعاً هم جزء مقدم كړې شوې دې.

❀ ،، **الاضحية** ،، اصل كي د ،، **افعولة** ،، په وزن باندې ،، **اضحوية** ،، وو.په علم الصيغه كي د ذكر شوې څوارلسم وار قاعدې مطابق ،، ډضحيی ،، شو.د لغت په اعتبار سره ،، ډضحيی ،، هغه څاروی ته ونيلې شي.كوم چې د قربانۍ په ورځو كي ذبح كړې شي.يعنی دا «تسمية الشئ باسم وقته» د قبيل نه دې.

اوشريعت كي د ،، **اضحية** ،، تعريف دا دې. «ذبح حيوانٍ مخصوصٍ بنية القربة في وقت مخصوصٍ»

**د قربانۍ سبب او ركن❀** د قربانۍ سبب وخت دې.يعنی ايام نحر (د قربانۍ ورځې) او په قول د بعضو راس (نصاب) دې.او ددې ركن داسې حيوان (څاروې) ذبح كول دی.د كوم ذبح كول چې دلته جائز دی.،، كما سيئتی ،، نو چرګه وغيره دلته ذبح كول د مجوسيانو سره د مشابهت په وجه مكروه دی.او ددې حكم دنيا كي د واجب د ذمه دارۍ نه وتل دی.او په آخرت كي د صحيح نيت په شرط د الله تعالی په فضل ثواب حاصلول دی.

**د قربانۍ شرطونه❀** ① اسلام ② مقيم كيدل ③ دومره مالداره كيدل چې ددې په وجه صدقة فطر واجب شي.په نورو الفاظو كي داسې چې د قربانۍ وجوب د صدقة فطر پشان د ممكن قدرت په وجه دې.د قدرت مي سره په وجه نه دې.،، والتفصيل فی درس الحسامی ،،

### د قربانۍ حكم.چه دا په چا.كله او د كوم اړخه واجب ده

امام قدوري ﷫ اوفرمائيل **الأُضْحِيَةُ وَاجِبَةٌ** چې قرباني كول واجب دي **عَلَى كُلِّ حُرٍّ مُسْلِمٍ** په هر يو داسې آزاد باندې چې هغه مسلمان وي، **مُقِيمٍ مُوسِرٍ** مقيم وي، توانګر وي **فِي يَوْمِ الأَضْحَى** په يوم الاضحی (ورځ د لوئې اختر) كي **عَنْ نَفْسِهِ** د خپل اړخه **وَعَنْ وَلَدِهِ الصِّغَارِ** او د خپلو وړو بچو د طرفه، **أَمَّا الْوُجُوبُ** بهرحال وجوب **فَقَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ وَزُفَرَ وَالْحَسَنِ** نو (دا) د امام ابوحنيفه او امام محمد او امام زفر او د حسن ﷭ قول دي **وَإِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمُ اللَّهُ** ﷭ [1] او په دوو روايتونو كي يو روايت د امام ابويوسف ﷫ دې **وَعَنْهُ** او د امام ابويوسف ﷫ نه دوهم روايت دې **أَنَّهَا سُنَّةٌ** چې دا سنت دې **ذَكَرَهُ فِي الْجَوَامِعِ** چې دا امام ابويوسف ﷫ (پخپل كتاب) جوامع كي ذكر كړې دې **وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ** او هم دا د امام شافعي ﷫ قول دې. **وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ** او امام طحاوي ﷫ ذكر كړې دی **أَنَّ عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَاجِبَةٌ** چې د امام ابوحنيفه ﷫ د قول مطابق واجب ده **وَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ**.او د امام ابويوسف اوامام محمد ﷭ په نيز سنت مؤكده ده .،،، **وَهَكَذَا ذَكَرَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ الِاخْتِلَافَ** او هم دغه ډول بعضو مشائخو اختلاف ذكر كړې دې.

**تشريح:-** رومبې بحث* قرباني د امام ابوحنيفه او امام محمد او امام زفر او د حسن بن زياد ﷭ په نيز واجب ده.او د امام ابويوسف ﷫ هم يو روايت دا دې.او د امام شافعي ﷫ په نيز او د امام ابويوسف ﷫ د دوهم روايت مطابق (كوم چې دوی په جوامع كي ذكر كړې دې دا دې چه) قرباني سنت ده.بعضو مشائخو اختلاف ذكر كړې دې.خو امام طحاوي ﷫ او بعضو نورو مشائخو داسې ذكر كړې دی.چه د امام ابوحنيفه ﷫ په نيز واجب ده.او د صاحبينو ﷭ په نيز سنت مؤكده ده.بهرحال فتوی د قربانۍ په وجوب ده.نو دلته دوې (دوه)

---

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفه ﷫ كذا فی الخانية (۳۲۸/۴) وردالمحتار (۲۲۰/۵) والبحر (۳۱۴/۴) نقلاً عن القول الراجح (۲۹۲/۲)_

قوله شو.① سنت ② وجوب اوس مرغيناني رحمه الله د هر فريق دليلونه پيش كوي.مخكي د سنت د قائلينو دليلونه ذكر كوي.بيا د قائلينو د وجوب، لكه فرمائي.

## د قربانۍ د سنت كيدو د قائلينو دوې (دوه) دليلونه

وَجْهُ السُّنَّةِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ (قربانۍ)سنت دليل د نبي كريم ﷺ دا فرمان دې مَنْ أَرَادَ خوك چې اراده اوكړي أَنْ يُضَحِّيَ مِنْكُمْ په تاسو كې د قربانۍ كاوه فَلَا يَأْخُذَنَّ مِنْ شَعْرِهِ وَأَظْفَارِهِ شَيْئًا (١) نو هغه دې نه كټ كوي د خپلو ايختو او نوكانو نه هيڅ شئ وَالتَّعْلِيقُ بِالْإِرَادَةِ يُنَافِي الْوُجُوبَ او اراده باندې معلق كول د وجوب منافي دي

تشريح:- د سنت د قائلينو مرغيناني رحمه الله دوې (دوه) دليلونه ذكر كړي دي.يو نقلي او دوهم عقلي.

دليل نقلي• دا حديث ذكر شوې دې.چه په دې كې فرمائيلي شوي دي.چه كوم كس د قربانۍ اراده اوكړي. نو خپل ايخته وغيره دې نه كټ كوي.نو قرباني ئې په اراده باندې معلق كړې ده.او دا دجوب الفاظ نه دي.

وَلَأَنَّهَا لَوْ كَانَتْ وَاجِبَةً عَلَى الْمُقِيمِ او څكه كه قرباني مقيم باندې واجب وې لَوَجَبَتْ عَلَى الْمُسَافِرِ نو دا به په مسافر هم واجب وه. لِأَنَّهُمَا لَا يَخْتَلِفَانِ فِي الْوَظَائِفِ الْمَالِيَّةِ كَالزَّكَاةِ څكه چې دا دواړه د مال په وظائفو (مالي عبادت) كې نه مختلف كيږي وَصَارَ كَالْعَتِيرَةِ او دا د عتيره پشان شو.

تشريح:- دليل عقلي په مالي عبادتونو كې مقيم او مسافر وي.حالانكه مسافر باندې قرباني واجب نه ده.نو معلومه شوه.چه په مقيم باندې هم واجب نه ده.ګني د دواړوحكم مختلف كيدل به لازم شي.لكه څنګه چې زكاة مالي عباد دې.لكه څنګه چې مقيم باندې واجب دې.دغه ډول مسافر باندې هم واجب ده.او لكه څنګه چې عتيره مسافر باندې واجب نه ده.نو مقيم باندې هم واجب نه ده.

ℓ زكاة كې مساوات وجوب كې دې.او عتيره كې مساوات عدم وجوب كې دې.نو په قربانۍ كې هم مساوات كيدل پكار دي.او دا به په دې طريقه وي.چه دواړو كه دې (قربانۍ) ته سنت اوونيلې شي.په دې طريقه نه چې مقيم باندې واجب او مسافر باندې غير واجب وي.

## د قربانۍ د وجوب دليل

وَوَجْهُ الْوُجُوبِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وجوب دليل د نبي كريم ﷺ فرمان دې مَنْ وَجَدَ سَعَةً خوك چې وس (قدرت د مال) بيا مومي وَلَمْ يُضَحِّ..او قرباني اونكړي فَلَا يَقْرَبَنَّ مُصَلَّانَا (٢) نو هغه دې زموږ عيدګاه ته نژدې نه راځي وَمِثْلُ هَذَا الْوَعِيدِ لَا يَلْحَقُ بِتَرْكِ او ددې وعيد پشان نه متعلق كيږي. غَيْرِ الْوَاجِبِ په غير واجب پريخودو سره،

تشريح:- دا د وجوب د قائلينو دليل دې.په دې كې يو حديث دې.او عقلي دليل دې.او په مسافر باندې د نه واجبيدو وجه ذكر ده.حديث دا دې.چا ته چې د قربانۍ قدرت وي.بيا هم قرباني اونكړي.نو هغه دې زموږ عيدګاه ته نژدې نه راځي.دا ډير سخت وعيد دې.چه دا د واجب په پريخودو كې وارد كيداې شي.نو ددې نه د قربانۍ وجوب ثابت شو.

وَلِأَنَّهَا قُرْبَةٌ او څكه چې دا داسې قربت (او نزديكت) دې يُضَافُ إِلَيْهَا وَقْتُهَا چې دې اړخ ته دده وخت (لفظ د يوم) مضاف كيږي يُقَالُ يَوْمُ الْأَضْحَى، وَذَلِكَ يُؤْذِنُ بِالْوُجُوبِ ونيلې شي. ،،يوم الاضحى ،، او دا د وجوب خبر وركوي لِأَنَّ الْإِضَافَةَ لِلِاخْتِصَاصِ څكه چې اضافت اختصاص لپاره دې .وَهُوَ بِالْوُجُودِ او اختصاص به وجوب

---

(١) من حديث ام سلمة (رض) أخرجه مسلم فى الأضاحى رقم ٤١ والترمذى فى الأضاحى باب ٢٢ وأبوداود فى الأضاحى باب ٢ والنسائى فى الضحايا باب . وابن ماجه فى الأضاحى باب ١١)_

(٢) من حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه أبن ماجه فى الأضاحى باب ٢ رقم ٣١٢٣) وأحمد فى المسند(٣٢١\٢) والدارقطنى فى سننه (٥٤٥\٢) والحاكم فى المستدرك (٣٨٩\٢)_



سره وي وَالْوُجُوبُ هُوَ الْمُفْضِي إِلَى الْوُجُودِ او وجوب وجود ته رسونكې دې، ظَاهِرًا بِالنَّظَرِ إِلَى الْجِنْسِ په اعتبار د ظاهر سره، چې اوكتلې شي جنس (د مكلفينو) ته.

تشريح:- عقلي دليل• اضافت سره ،، يوم الاضحى ،، ونيلې شي.يعني قربانۍ اړخ ته د قربانۍ د وخت اضافت كولې شي.او دا اضافت اختصاص لپاره دې.يعني دا مختص ده.قربانۍ سره، او اختصاص به هغه وخت ثابتيږي.كله چې د قربانۍ وجود وي.او كيداې شي چې د سنت په صورت كې واړه متكلفين په قربانۍ باندې اتفاق اوكړي.( چې دا مرغيناني رحمه الله په جنس مكلفين سره تعبير كړې دې) نو وجود د قربانۍ لپاره وجوب ضروري دې.چه اختصاص ثابت شي.لكه يوم الجمعه، وقت الظهر، شهر رمضان كې هم دا خبره ده.

غَيْرَ أَنَّ الْأَدَاءَ يَخْتَصُّ علاوه ددې خبرې نه چې اداء مختص ده بِأَسْبَابٍ يَشُقُّ عَلَى الْمُسَافِرِ اسْتِحْضَارُهَا.داسې اسبابو (او څيزونو) سره چې مسافر باندې ددې حاضرول سخت (مشكل) دي وَيَفُوتُ بِمُضِيِّ الْوَقْتِ او دا په وخت تيريدو سره فوت كيږي فَلَا تَجِبُ عَلَيْهِ بِمَنْزِلَةِ الْجُمُعَةِ نو په مسافر به واجب نه وي.د جمعې په درجه كې.

تشريح:- په مسافر باندې د نه واجبيدو وجه دا ده.چه قربانۍ لپاره د بعضو څيزونو موجود كيدو اړتيا وي.او مسافر ته ددې اسبابو حاصلول اكثر ګران پريوځي.او د قربانۍ مخصوص ورځې دي.اوكه دا ورځې تيرې شي.نو قرباني فوت كيږي.نو موږ په جمعه باندې قياس كاوه سره مسافر باندې قرباني واجب نكړله.لكه څنګه چې مسافر باندې لمونځ د جمعې واجب نه دې.

## د فريق مخالف د حديث جواب

وَالْمُرَادُ بِالْإِرَادَةِ فِيمَا رُوِيَ (١) او مراد د ارادې نه په هغه حديث كې كوم چې روايت كړې شوې دې. وَاللَّهُ أَعْلَمُ مَا هُوَ ضِدُّ السَّهْوِ والله اعلم هغه دې.كوم چې د سهو ضد دې لَا التَّخْيِيرُ اختيار وركول نه دي وَالْعَتِيرَةُ مَنْسُوخَةٌ او عتيره، او دا به هغه وزه وه وَهِيَ شَاةٌ تُقَامُ فِي رَجَبٍ كومه چې به رجب كې ذبح كولې شوه. عَلَى مَا قِيلَ لكه څنګه چې ونيلى شوي دي.

تشريح:- دا د فريق مخالف روايت شوي حديث څواب دې.چه دلته ارادې نه مراد دغه نه دې.كوم چې تاسو ګنړلې دې.چه اختيار وركول مقصود دي.چه قرباني اوكړله.يا ئې پريږده.بلكه اراده په معنى د قصد ده.يعني څوك چې ددې واجب ادا كاوه قصد لري.نو هغه له دا كول پكار دي.چه ايخته وغيره نه كټ كوي .او دا داسې ده.لكه ﷺ من أراده الصلاة فليتوضأ ، ومن أراده الجمعة فليغتسل ﷺ نو په لفظ د ارادې سره سنت كيدو باندې استدلال صحيح نه دې.

ℓ پاتې شوه عتيره باندې قياس كول نو دا هم د اصول خلاف دې.څكه چې دا منسوخ ده.او په منسوخ باندې حكم مطلوب نشي قياس كيدې.

تنبيه◉ د عتيره په تعريف كې مختلف اقوال دي.يو دغه كوم چې ذكر شو.او دوهم دا چې د اوښې كوم رومبې بچې وو.هغه به ئې ذبح كولو.وغيره وغيره.

## د قربانۍ شرطونه

وَإِنَّمَا اخْتَصَّ الْوُجُوبُ بِالْحُرِّيَّةِ او وجوب مختص دې آزادۍ سره لِأَنَّهَا وَظِيفَةٌ مَالِيَّةٌ څكه چې قرباني يوه مالي وظيفه ده لَا تَتَأَدَّى إِلَّا بِالْمِلْكِ چې دا نه اداكيږي.مګر ملك سره وَالْمَالِكُ هُوَ الْحُرُّ؛او مالك هم دا آزاد وي وَبِالْإِسْلَامِ او وجوب مختص دې.اسلام سره، لِكَوْنِهَا قُرْبَةً د قربانۍ د قربت كيدو په وجه، ،وَبِالْإِقَامَةِ او وجوب مختص

---

(١) كما فى حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه البخارى فى العقيقة باب ٣ ومسلم فى الأضاحى رقم ٣٨ وأبوداود فى الأضاحى باب ١١ والترمذى فى الأضاحى باب ١٥ والنسائى فى الفزع باب ١ وابن ماجه فى الذبائح باب ٢ )_

دي.مقيم کيدو سره لِمَا بَيَّنَّا، وَالْيَسَارِ لِمَا رَوَيْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړي دي مِنْ اشْتِرَاطِ السَّعَةِ او وجوب مختص دي. مالدارئ سره، دهغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړي دي.يعني د مالدارئ شرط کيدل،

**حل اللغة:** ① اليسار:مالدارى ② قربة: عبادت ③ السعة: قدرت، وس ،مالدارى

**تشريح:-** د دوهم او دريم بحث تفصيل امام قدورى رحمه الله چه کوم شرطونه بيان کړى وو.د هغې بيان دې.
① رومبې شرط آزاد کيدل دى.ددې وجه دا ده.چه قربانئ لپاره ملك پکار دې.او په غلام کې د مالك کيدو صلاحيت نشته.بلکه دا مملوك دې.يعنى مالك کيدل صرف آزاد لپاره مخصوص دى. ② دوهم شرط مسلمان کيدل دى.ځکه چې قربانى قربت دې.او کافر د قرباتو ادا کاوه اهل نه دې. ③ دريم شرط مقيد کيدل دى.چه ددې دليل وړاندې بيان شوې دې.يعنى غير أن الأداء يختص بأسباب يشق....إلخ ④ څلورم شرط توانګر کيدل دى. چې دا وړاندې ذکر شوى حديث نه معلوميږى.يعنى من وجد سعة....إلخ ⑤ پنځم شرط د قربانئ وخت کيدل دى.يعنى ايام نحر( د قربانئ ورځې) ځکه چې قربانى هم دې ورځو سره مخصوص ده.

وَمِقْدَارُهُ او د مالدارئ مقدار هغه دې مَا يَجِبُ بِهِ صَدَقَةُ الْفِطْرِ کوم سره چې صدقهٔ فطر واجبيږى وَقَدْ مَرَّ فِي الصَّوْمِ او تحقيق چې دا په کتاب الصوم کې تير شوى دى ،وَبِالْوَقْتِ يعنى په باب صدقة الفطر کې ) او وجوب مختص دې.وخت سره وَهُوَ يَوْمُ الْأَضْحَى او هغه يوم الاضحى ده لِأَنَّهَا مُخْتَصَّةٌ بِهِ ځکه چې قربانى مختص ده دې (وخت) سره، وَسَنُبَيِّنُ مِقْدَارَهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او موږ به نژدې بيان کړو.د وخت مقدار که الله اوغوښتل.

**تشريح:-** دلته دومره مالدارى شرط ده.لکه څومره چې صدقهٔ فطر کې ده.يعنى د نصاب په مقدار مال کيدل خو شرط دى.خو ددې نامى ( زياتيدونکې) کيدل او په دې باندې کال تيريدل ضرورى نه دى.که دده سره دوې (دوه) کورونه دى.او په يو کې دې اوسيږى.او دوهم دده د اړتيا نه زيات دى.او ددې قيمت د نصاب په مقدار دې.نو په ده به ددې په وجه زکاة واجب نه وى.ځکه چې دا مال نامى نه دې.البته قربانى او صدقهٔ فطر (سرسايه) به واجب وى.په نورو الفاظو کې داسې چې د صدقهٔ فطر او قربانئ وجوب او د حج وجوب د قدرتِ ممکنه په وجه دې.او د زکاة وغيره وجوب د قدرتِ مي سره په وجه دې.

**فائده:** زميدار سره دوې (دوه) غويان دى.چه په دې سره هغه ايوه (او ماله) کوى.اګرچه ايوه واړه کال نه وى.بلکه مخصوص موسم کې وى.ددې باوجود به هم دا غويان په حوائج اصليه کې داخل وى.او ددې په وجه به په ده قربانى واجب نه وى.،، والناس عنه غافلون ،،

## قربانئ د کوم کوم کس د اړخه واجبده؟

وَيَجِبُ عَنْ نَفْسِهِ او قربانى واجب ده.د خپل طرفه. لِأَنَّهُ أَصْلٌ ځکه چې انسان اصل دې فِي الْوُجُوبِ عَلَيْهِ په خپل ځان خباندې د وجوب په سلسله کې عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ دهغه تفصيل مطابق کوم چې موږ (په باب د صدقة الفطر کې ) بيان کړې دې وَعَنْ وَلَدِهِ الصَّغِيرِ او قربانى واجب ده.د خپل وړوکى بچى د طرفه. لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى نَفْسِهِ.. ځکه چې دا ( وړوکې بچې) دسړى د نفس په درجه کې دې ،فَيَلْحَقُ بِهِ نو دا بچې به هم دده سره متعلق وى كَمَا فِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ په لکه څنګه چې صدقهٔ فطر کې ( متعلق دې). وَهَذِهِ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي

---

[1] - كما فى حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه البخارى فى العقيقة باب ۳ ومسلم فى الأضاحى رقم ۳۸ وأبوداود فى الأضاحى باب ۱۱ والترمذى فى الأضاحى باب ۱۵ والنسائى فى الفزع باب ۱ وابن ماجه فى الذبائح باب ۲)_



حَنِيفَةَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د حسن رحمه الله روايت دې وَرُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ لَا يَجِبُ عَنْ وَلَدِهِ او نقل دى.د امام ابوحنيفه رحمه الله نه، چې قربانى واجب نه ده.د خپل بچى د اړخه وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ او هم دا ظاهرالرواية دي بِخِلَافِ صَدَقَةِ الْفِطْرِ په خلاف د صدقهٔ فطر لِأَنَّ السَّبَبَ هُنَاكَ ځکه چې سبب هلته داسې راس ( ذات او اصل) دې. رَأْسٌ يَمُونُهُ چې د هغې دې د نفقې ذمه دار دې وَيَلِي عَلَيْهِ او په هغه باندې ولايت لرى وَهُمَا مَوْجُودَانِ فِي الصَّغِيرِ او دا دواړه خبرې ( مؤونت او ولايت) موجود دى.په وړوکى ( ماشوم) کې وَهَذِهِ قُرْبَةٌ مَحْضَةٌ ، او دا ( قربانى) خالص قربت دې وَالْأَصْلُ فِي الْقُرَبِ او د اصل قرباتو څنې دا دې أَنْ لَا يَجِبَ عَلَى الْغَيْرِ بِسَبَبِ الْغَيْرِ چې دا په غير باندې د غير په سبب سره نه واجبيږى ،. وَلِهَذَا لَا يَجِبُ عَنْ عَبْدِهِ او هم په دې وجه قربانى نه واجبيږى د خپل غلام د طرفه.. وَإِنْ كَانَ يَجِبُ عَنْهُ صَدَقَةُ فِطْرِهِ اګرچه د غلام د اړخه صدقهٔ فطر واجبيږى.

**تشريح:-** د څلورم بحث تفصيل چې قربانى د کوم کوم کس د اړخه واجب ده.نو وې فرمائيل.چه د خپل اړخه واجب ده.او د خپل وړوکى اولاد د اړخه واجب ده.لکه څنګه چې صدقهٔ فطر د خپل اړخه او د خپل وړوکى اولاد د اړخه واجبيږى.دلته د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه دى.يو د حسن رحمه الله روايت دې.کوم چې ذکر دې.او دوهم روايت ظاهرالروايت دې.او هغه دا دې.چه د بچى د اړخه قربانى واجب نه ده.او ددې روايت مطابق په صدقهٔ فطر او قربانئ کې توپير دې.چه د قربانى سبب د مؤونت او ولايت وجوب دې.يعنى د هرهغه کس د اړخه به صدقهٔ فطر واجب وى.د چا د نفقې چې دې ذمه دار وى.او هغه باندې ولايت لرى.او په بچى کې دا تولې خبرې موجود دى.او دغلام هم دا حال دې.نو دده د اړخه صدقهٔ فطر واجبيږى.پاتې شوه د قربانئ مسئله، نو دا يو خالص قربت دې.او د قرباتو قاعده دا ده.چه په يوکس باندې د بل کس په وجه نه واجبيږى.دا واړه تفصيل هغه وخت دې.کله چې بچى سره مال نه وى.او که دده سره مال وى.نو ددې تفصيل دا دې.کوم چې اوس راروان دې.فرمائى.

## که بچى سره مال وى نو قربانى واجب ده اوکه نه؟

وَإِنْ كَانَ لِلصَّغِيرِ مَالٌ اوکه صغير سره مال وى يُضَحِّي عَنْهُ أَبُوهُ أَوْ وَصِيُّهُ مِنْ مَالِهِ نو دده د اړخه دې دده پلار يا دده وصى د بچى د مال نه قربانى اوکړى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ د امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله په نيز، وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمُ اللَّهُ:او فرمائيلى دى امام محمد او امام زفر او امام شافعى رحمهم الله يُضَحِّي مِنْ مَالِ نَفْسِهِ چې د خپل مال نه دې قربانى اوکړى لَا مِنْ مَالِ الصَّغِيرِ،[1] د بچى دمال نه دې نه کوى فَالْخِلَافُ فِي هَذَا كَالْخِلَافِ فِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ نو اختلاف په دې کې د صدقهٔ فطر د اختلاف پشان دې

**تشريح:-** که د بچى مال وى.نو د شيخينو رحمهما الله په نيز دې د بچى د مال نه قربانى اوکړې شى.او امام محمد او امام زفر او امام شافعى رحمهم الله فرمائى.چه دخپل مال نه دې قربانى اوکړى.د بچى د مال نه دې نه کوى.لکه څنګه چې په صدقهٔ فطر کې اختلاف دې.دغه ډول دلته هم دې.يعنى که د بچى سره مال دې. نو د شيخينو رحمهما الله په نيز د بچى د مال نه صدقهٔ فطر ادا کول جائز دى.او د امام محمد رحمه الله په نيز جائزنه دى.نو هم دا اختلاف په قربانئ کې هم دې.

وَقِيلَ او وئيلى شوى دى لَا تَجُوزُ التَّضْحِيَةُ مِنْ مَالِ الصَّغِيرِ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا چه د ټولو په قول کې د بچى د مال نه قربانى کول جائز نه دى لِأَنَّ هَذِهِ الْقُرْبَةَ تَتَأَدَّى بِالْإِرَاقَةِ ځکه چې قربت خو په وينې توييولو سره ادا کيږى ، وَالصَّدَقَةُ بَعْدَهَا تَطَوُّعٌ او ددې نه روسته صدقهٔ يو تطوع ( نفل ) دې وَلَا يَجُوزُ ذَلِكَ نو دا تطوع به جائز نه وى مِنْ

---

[1] القول الراجح هوهذا قول محمد وزفر . رحمهما الله كذا فى ردالمحتار (۲۲۳/۵) والدرالمنتقى (۱۶۷/۴) والخانية (۳۲۹/۴) نقلاً عن القول الراجح (۲۹۴/۲)-

مَالِ الصَّغِيرِ بچي د مال نه، وَلَا يُمْكِنُهُ أَنْ يَأْكُلَ كُلَّهُ، او ممكن ده. بچي لره چې هغه ټوله غوښه اوخوري.

تشريح:- په مبسوط او كافي كي ذكر دي. چه د صغير دمال نه د چا په نيز هم قرباني جائز نه ده. ځكه چي قرباني كي دوې (دوه) مقصدونه دي ① وينه تويول چې ددې انجام هلاكول دي. ② د غوښې خيرات كول، حالانكه پلار نه د بچي مال ضائع كاوه مالك دې. او نه دده مال صدقه كولې شي. او دا نا ممكن ده. چه بچي ټوله غوښه اوخوري.

وَالْأَصَحُّ او زياته صحيح دا ده أَنْ يُضَحِّيَ مِنْ مَالِهِ. چه د بچي د مال نه قرباني اوكړې شي وَيَأْكُلَ مِنْهُ مَا أَمْكَنَهُ او ددې نه بچې دومره اوخوري. څومره خوراك چې ممكن وو وَيَبْتَاعَ بِمَا بَقِيَ او په پاته پاتې سره داسې شئ واخستلې شي مَا يُنْتَفَعُ بِعَيْنِهِ چې ددې د عين نه نفع واخستلې شي

تشريح:- مرغيناني رحمه الله فرمائي. اصح دا ده. چه د بچي د مال نه قرباني اوكړې شي. او بچې چې څومره غوښه خوړلې شي. هغه دې اوخوري. او پاته دې د داسې شئ په بدله كي خرڅ كړې شي. چه د هغې عين پاته پاتې شي. چه بچې د هغې نه نفع اخلي. لكه صندخ، كټ، ډولچه، مشك وغيره.

### د قربانۍ كوم ښاروې د څومره كسانو د اړخه كافي دي ؟

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل وَيَذْبَحُ او سړې دې ذبح كړي عَنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ شَاةً په دوی ( يعنى د خپل خان او پخپل اولاد) كي د هر يو د اړخه يو وزه أَوْ يَذْبَحُ بَقَرَةً يا دې ذبح كړي يوه غوا أَوْ بَدَنَةً عَنْ سَبْعَةٍ يا يو اوښ د اووه كسانو د اړخه وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا تَجُوزَ او قياس دا دې. چه جائز نه وي. ( غوا او اوښ إِلَّا عَنْ وَاحِدٍ خو د يوكس د اړخه، لِأَنَّ الْإِرَاقَةَ وَاحِدَةٌ ځكه چې وينه بهيول يو دى وَهِيَ الْقُرْبَةُ إِلَّا أَنَّا تَرَكْنَاهُ بِالْأَثَرِ خو موږ د اثر په وجه قياس پريښودې دې وَهُوَ مَا رُوِيَ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او اثر هغه دې. كوم چې د حضرت جابر رضي الله عنه نه نقل دې أَنَّهُ قَالَ چې دوی اوفرمائيل. چه نَحَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ([1]) موږ قرباني كړله غوا د اووه كسانو د اړخه وَالْبَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ، او اوښ د اووه كسانو د اړخه وَلَا نَصَّ فِي الشَّاةِ، او د وزه په اړه كي هيڅ نص نشته. فَبَقِيَ عَلَى أَصْلِ الْقِيَاسِ نو وزه پخپل قياس پاته پاتې شوه.

حل اللغة: ① بدنة: د بدنة اطلاق په غوا اوښ وغيره باندې كيږي په كوم كي چې اووه نفر شريې كيداې شي

تشريح:- د وزه قرباني صرف د يوكس د اړخه كيداې شي. او غټو ښاروو لكه د غوا او اوښ وغيره د اووه كسانو د اړخه كيداې شي. اګرچه د قياس تقاضه په غټ ښاروی كي دا وه. چه صرف د يو كس د اړخه وي. ځكه چې دا هم يو نفس دې. او وينه تويول هم دواړو كي يو دى. زيات نه دى. او وينه تويول قربت دې. خو موږ د حضرت جابر رضي الله عنه د حديث په وجه قياس پريښودې دې. حديث هغه دې. كوم چې ذكر دې. او حديث صرف د غټو ښاروو په اړه كي دې. نو وزه د قياس مطابق پاتې شوه. ځكه چې ددې په اړه كي هيڅ نص نشته.

### د اووه كسانو نه د كمو د اړخه د غټ ښاروی قرباني كولو حكم

وَتَجُوزُ عَنْ سِتَّةٍ أَوْ خَمْسَةٍ أَوْ ثَلَاثَةٍ او جائز ده دا (غوا او اوښ) د پنځو يا شپږو يا ددريو كسانو د طرفه، ذَكَرَهُ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي الْأَصْلِ دا امام محمد رحمه الله په مبسوط كي ذكر كړې دى، لِأَنَّهُ لَمَّا جَازَ عَنِ السَّبْعَةِ ځكه چې هركله دا جائز ده د اووه كسانو د اړخه فَعَمَّنْ دُونَهُمْ أَوْلَى نو د اووه نه د كمو كسانو د اړخه به په درجه اولی ( جائز وي وَلَا تَجُوزُ عَنْ ثَمَانِيَةٍ او جائز نه ده د اتو كسانو د اړخه أَخْذًا بِالْقِيَاسِ قياس باندې عمل كاوه سره، فِيمَا لَا نَصَّ فِيهِ په هغه

[1] - أخرجه مسلم فى الحج رقم ١٣٨ وأبوداود فى الأضاحى باب ٢ والترمذى فى الحج باب ٦٦ وابن ماجه فى الأضاحى باب ٥ والدارمى فى الأضاحى باب ٥ ومالك فى الضحايا رقم ٩)_



اړه كي د كوم په سلسله كي چې نص نشته وَكَذَا إِذَا كَانَ نَصِيبُ أَحَدِهِمْ أَقَلَّ مِنَ السُّبُعِ او هم دغه ډول كله چې دوی كي د يوكس برخه د اوومې برخې (حصې) نه كمه وي وَلَا تَجُوزُ عَنِ الْكُلِّ نو د ټولو د اړخه به جائز نه وي لِانْعِدَامِ وَصْفِ الْقُرْبَةِ فِي الْبَعْضِ په بعضو كي د قربت وصف د معدوم كيدو په وجه، وَسَنُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى او موږ به دا انشاءالله نژدې بيان كړو.

تشريح:- په غټو ښاروو كي د اووه سړو شركت جائز دې. او كه ددې نه كم وي. نو په درجه اولى جائز دې. نو شرط دا دې. چه د هيڅ يوكس برخه د اوومې برخې (حصې) نه كمه نه وي. ګني بيا به د هيڅ يوكس قرباني جائز نه وي. ځكه چې وصف د قربت موجود نه دې. نو په يوه غوا كي كه اته نفر شريك شو. نو د هيڅ يوكس قرباني به جائز نه وي.

### د امام مالك رحمه الله نقطه نظر

وَقَالَ مَالِكٌ: تَجُوزُ عَنْ أَهْلِ بَيْتٍ وَاحِدٍ او امام مالك رحمه الله فرمائيلى دی. جائز ده. د يوكور د خلكو د اړخه وَإِنْ كَانُوا أَكْثَرَ مِنْ سَبْعَةٍ، اګرچه دوی د اووه نه زيات وي وَلَا تَجُوزُ عَنْ أَهْلِ بَيْتَيْنِ، ، او د دوو كورو د اړخه جائز نه ده وَإِنْ كَانُوا أَقَلَّ مِنْهَا اګرچه دوی د اووه نه كم وي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبى كريم صلى الله عليه وسلم د فرمان په وجه چې عَلَى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ فِي كُلِّ عَامٍ أَضْحَاةٌ وَعَتِيرَةٌ([1]) په هر كور والا باندې هر كال قرباني او عتيره ده،، قُلْنَا: الْمُرَادُ مِنْهُ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ قَيِّمُ أَهْلِ الْبَيْتِ، نو موږ وايو. چه مراد ددې نه ،، والله اعلم،، د كور د خلكو انتظام كونكې دې لِأَنَّ الْيَسَارَ لَهُ ځكه چې مالدارى هم دده لپاره ده يُؤَيِّدُهُ مَا يُرْوَى تائيد كوی ددې هغه حديث كوم چې نقل دې عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ فِي كُلِّ عَامٍ أَضْحَاةٌ وَعَتِيرَةٌ([2]) چه هر مسلمان باندې هر كال كي يوه قرباني او عتيره ده

حل اللغة: ① عام: كال ② اضحاة: جمع د اضحية، قرباني ③ اليسار: مالدارى

تشريح:- د امام مالك رحمه الله مذهب دا دې. چه يوه غوا د يوكور د اړخه قرباني كيداې شي. اګرچه ددې كور خلګ د اووه نه زيات وي. او يوه غوا د دوو كورونو د اړخه نشي كيدې. اګرچه دوی د اووه نه كم وي. او د هغه حديث نه استدلال كوی. كوم چې دلته ذكر دې. يو خو دا حديث متكلم فيه دې. او كه ثابت شي. نو بيا هم مرغيناني رحمه الله دا ځواب وركړې دې. چه د كور منتظم ( سرپرست) مراد دې. او قرباني به صرف دده د اړخه وي. ځكه چې په ده واجب ده. ځكه چې هم دې مالداره دې. ددې نور هم مختلف ځوابونه وركړې شوي دي.

وَلَوْ كَانَتِ الْبَدَنَةُ بَيْنَ اثْنَيْنِ نِصْفَيْنِ او كه اوښ د دوو سړو په منځ كي نيم په نيمه وي. تَجُوزُ فِي الْأَصَحِّ نو د اصح قول مطابق جائز ده. لِأَنَّهُ لَمَّا جَازَ ثَلَاثَةُ الْأَسْبَاعِ ځكه چې هركله اووه كي درې برخې (حصې) جائز دى جَازَ نِصْفُ السُّبُعِ تَبَعًا لَهُ. نو ددې په تابع كيدو كي د اوومې برخې (حصې) نصف به جائز وي

تشريح:- په نوازل كي دى. چه د قاضى احمد بن محمد رحمه الله نه د يو اوښ په اړه كي پوښتنه اوكړې شو. چه دا دوو كسانو په منځ كي نيم په نيمه دې. او دواړو ددې قرباني اوكړله. نو دا قرباني جائز شوه. او كه نه؟ نو قاضى صاحب ځواب وركړو. چه قرباني به جائز نه وي. ځكه چې د هر شريك په برخه كي درې نيمې برخې (حصې) شوې. او نيمه برخه د قربانۍ د اړخه نشي كيدې. نو هركله چې په نيمه برخه كي قرباني جائز نشوه. نو په پاته كي به هم جائز نه وي. صاحب دهدايه رحمه الله په دې باندې اوفرمائيل. چه اصح قول دا دې. چه قرباني جائز ده. فقيه ابوالليث او صدرالشهيد رحمهما الله هم دا اختيار كړې دې. وجه دا ده. چه نيمه برخه كه خانله وي. نو

[1]) من حديث حبيب بن مخنف بن سليم رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى الأضاحى باب ٦ رقم ٢٧٨٨ والترمذى فى الأضاحى باب ١٨ والنسائى فى الفرع والعتيرة رقم ٣٩٤٠ وابن ماجه فى الأضاحى باب ٢ رقم ٣١٢٥)_

[2]) قال الزيلعى رحمه الله رواية غريبة وجهل من استشهد بحديث مخنف بن سليم المتقدم(نصب: ٥٠٢\٤)_

په دې سره قرباني نه جائز کيږي.او دلته درې نیمې برخې (حصې) دي.او درې برخې (حصې) د قربانۍ لپاره کافي دي.نو دا نیمه به د هغې تابع کیږي.او جائز به وي.او ډیر داسې شیان شته.چه دا قصداً ( جدا) نه ثابتیږي.خو ضمناً او تابع کیدو سره ثابتیږي.

## په شریکانو کښې د ویش طریقه

وَإِذَا جَازَ عَلَى الشَّرِكَةِ او کله چې قرباني د شرکت په طریقه وي فَقِسْمَةُ اللَّحْمِ بِالْوَزْنِ نو د غوښې ویش به وزن سره وي لِأَنَّهُ مَوْزُونٌ ځکه چې غوښه وزني ده ،وَلَوِ اقْتَسَمُوا جُزَافًا او که دوی اندازې سره ویش کړله لَا يَجُوزُ نو جائز نه ده إِلَّا إِذَا كَانَ مَعَهُ شَيْءٌ مِنَ الْأَكَارِعِ وَالْ ټوك كه غوښې سره څه پښې او څرمنه وي. اعْتِبَارًا بِالْبَيْعِ خو په بیع باندې قیاس کاوه سره.

**حل اللغة:** ① **لحم**: غوښه ② **جزاف**: اندازه ،تخمینا ③ **الاكارع**: پښې ④ **الجلد**: څرمن﴾

**تشريح:-** کله چې قربانۍ کې شرکت وي.نو د غوښې ویش به وزن سره وي.یعنی تللې به شي.ګنی اندازې سره تقسیمول جائز نه دي.البته که یو اړخ ته پښې او سر او څرمنه وغیره وي.نو اوس اندازې سره تقسیمولې شي. او دا بالکل داسې ده.چه د غوښې بیع، غوښه د غوښې په بدله کې کمی زیاتی سره جائز نه ده.خو که یو اړخ ته غوښې سره پښې وغیره وي.نو اوس کمی زیاتی سره بیع جائز ده.

## د ځان لپاره اخستې غاروي کښې د نورو شپږو کسانو شریکولو حکم

قَالَ وَلَوِ اشْتَرَى بَقَرَةً او که غوا نې واخستله يُرِيدُ أَنْ يُضَحِّيَ بِهَا عَنْ نَفْسِهِ په داسې حال کې چې دې اراده کوی.ددې د خپل اړخه د قرباني کولو اشْتَرَكَ فِيهَا سِتَّةً مَعَهُ نو په دې کې نې خان سره شپږ نفر شریك کړل لَمْ جَازَ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً جائز دي.

**تشريح:-** قربانۍ لپاره نې غوا واخستله.او دا اراده نې وه.چه دا به د خپل اړخه قرباني کوم.بیا نې په دې شپږ نور هم شریك کړل.نو استحساناً دا جائز دي.

وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوزُ او په قیاس کې جائز نه دي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې لِأَنَّهُ أَعَدَّهَا لِلْقُرْبَةِ ځکه چې ده دا د قربت لپاره حاصله کړې ده فَيَمْتَنِعُ عَنْ بَيْعِهَا تَمَوُّلًا .نو د تمول ( یعنی مال حاصلولو) لپاره به دې د خرڅولو نه منع کولای شي ،وَالِاشْتِرَاكُ هَذِهِ صِفَتُهُ او د شرې کاوه هم دا صفت دې

**تشريح:-** او قیاساً جائز نه دي.د قیاس دلیل دا دې.چه دا په قربت کې د تمول ( مالداره کیدو) صورت دې.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ دلیل د استحسان دا دې أَنَّهُ قَدْ يَجِدُ بَقَرَةً سَمِينَةً چې سړې کله غټه سربه غوا بیامومي يَشْتَرِيهَا نو دا اخلی وَلَا يَظْفَرُ بِالشُّرَكَاءِ وَقْتَ الْبَيْعِ او د اخستلو په وخت دې په شریکانو باندې نه کامیابه کیږي وَإِنَّمَا يَطْلُبُهُمْ بَعْدَهُ او دا ( شریکان) روسته لټون کوی ،فَكَانَتِ الْحَاجَةُ إِلَيْهِ مَاسَّةً نو دې اړخ ته به حاجت راپیښیږي فَجَوَّزْنَاهُ دَفْعًا لِلْحَرَجِ نو موږ دا د حرج ( تنګسیا) لرې کاوه لپاره جائز اوګرځولو وَقَدْ أَمْكَنَ او دا ( حرج لرې کول) ممکن دی لِأَنَّ بِالشِّرَاءِ لِلتَّضْحِيَةِ لَا يَمْتَنِعُ الْبَيْعُ ځکه چې قربانۍ لپاره د اخستلونه خرڅول ممتنع نه دی وَالْأَحْسَنُ او غوره هم دا ده أَنْ يَفْعَلَ ذَلِكَ قَبْلَ الشِّرَاءِ چې هغه ددې د اخستلو نه وړاندې دا ( شریکان جمع کول) اوکړي لِيَكُونَ أَبْعَدَ عَنِ الْخِلَافِ، وَعَنْ صُورَةِ الرُّجُوعِ فِي الْقُرْبَةِ چې اختلاف نه او قربت کې د رجوع صورت نه لرې شي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يُكْرَهُ الِاشْتِرَاكُ بَعْدَ الشِّرَاءِ او د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی.چه د اخستلو نه روستو شریکول مکروه دی لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې.

**حل اللغة:** ① **سمينة**: څربه ② **الظفر**: کامیابی﴾

**تشريح:-** او د استحسان دلیل اړتیا دې.او قربانۍ لپاره اخستلو نه خرڅول نه ممتنع کیږي.بلکه جائز ده.چه کوم توانګر غوا قربانۍ لپاره واخستله.دا وپلوري . اوبله واخلی.او قربانۍ نې کړي.بهرحال غوره هم دا



ده.چه د شراء نه وړاندې شریکول اوکړي.چه هیڅ اختلاف پاتې نشي.او نه په قربت کې د رجوع صورت پیدا شي.

① نن سهار خلګ ډیر داسې کوي.چه کټې ( د میښې نر بچې ) نې واخستلو.مثلاً په څلور سوه روشیدې، او شپږ سړي نې په دې کې شریك کړل.د اتو سوو روپو په حساب سزه،نو دا جائز نه ده.بلکه ضروري ده.چه نفع وانخلي.او که ( نفع) اخستل غواړي.نو په دې کې دې خپله برخه نه لګوي.او خلګ د خپل جهالت په وجه ددې نه ناخبره دي.دوی خبرول ضروري دي.

② د اصول تقاضه دا ده.که فقیر د قربانۍ په ورځو کې د اضحیه ( قربانۍ) په نیت غوا واخستله.او بیا بل څوك شریك کړي.نوشرکت به جائز نه وي.او د توانګر ( لپاره شریکول) جائز دي.خو دا مکروه دي.﴿و ډلیه ډشار الشامی فی رد المختارص:۲۰۱،ج۵﴾

## په مسافر او غریب باندې قرباني واجب نه ده

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائیل وَلَيْسَ عَلَى الْفَقِيرِ وَالْمُسَافِرِ أُضْحِيَةٌ او په فقیر او مسافر باندې قرباني نشته لِمَا بَيَّنَّا هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ كَانَا لَا يُضَحِّيَانِ إِذَا كَانَا مُسَافِرَيْنِ[1] او حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما چې به کله مسافر شو.نو قرباني به نې نه کوله وَلَيْسَ عَلَى او د حضرت علی رضي الله عنه نه نقل دی. وَعَنْ عَلِيٍّ: الْمُسَافِرِ جُمُعَةٌ وَلَا أُضْحِيَةٌ چې په مسافر نه جمعه شته.او نه قرباني.

**تشريح:-** په مسافر او غریب باندې د قربانۍ د عدم وجوب دلیل وړاندې تیر شوې دې.کوم حدیث چې مرغینانی رحمه الله نقل کړې دې.دا نه ملاویږي.بلکه دا ملاویږي.چه حضرات شیخینو رضي الله عنهما به بعضې خل مطلقاً قرباني پریخودله.په دې یره چې خلګ دا فرض او نه ګڼړي.

## د قربانۍ وخت او ورځې

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائیل وَوَقْتُ الْأُضْحِيَةِ يَدْخُلُ او د قربانۍ وخت داخلیږي بِطُلُوعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ د یوم النحر ( د قربانۍ د ورځې) د فجر (سحر) راختلو نه إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجُوزُ لِأَهْلِ الْأَمْصَارِ الذَّبْحُ، خو دا چې د ښار خلګو لپاره ذبح جائز نه ده حَتَّى يُصَلِّيَ الْإِمَامُ الْعِيدَ تردې چې امام د اختر لمونځ اوکړي فَأَمَّا أَهْلُ السَّوَادِ نو بهرحال دکلو خلګ فَيَذْبَحُونَ بَعْدَ الْفَجْرِ نو هغوی دې ذبح کوی د سهار نه روستو،

**حل اللغة:** ① **السواد**: کلي والی ② **الامصار**: جمع د مصر،ښار﴾

**تشريح:-** ایام نحر ( د قربانۍ ورځې) درې دی.(۱۰،۱۱،۱۲) خو د ښار خلګو لپاره د اختر لمانځه نه وړاندې قربانی کول جائز نه دی.البته کوم ځائې چې د جمعې او اخترونو لمونځ مشروع ( روا) نه دې.هغوی د قربانۍ په ورځ د صبح صادق ( سحر) نه روسته ذبح کولې شي.

## د احادیثو نه ثبوت

وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او اصل په دې کې د نبی کریم ﷺ فرمان دې مَنْ ذَبَحَ شَاةً قَبْلَ الصَّلَاةِ چې کوم کس ذبح کړل.د اختر د لمونځ نه وړاندې فَلْيُعِدْ ذَبِيحَتَهُ نو هغه دې د خپلې ذبیحې ( قربانۍ) اعاده اوکړي وَمَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلَاةِ او کوم کس چې ذبح کړل.د اختر د لمونځ نه روستو ،فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهُ نو د هغه قرباني کامله شوه وَأَصَابَ

---

[1] - قال الزيلعي رحمه الله رواية غريبة وجهل من استشهد بحديث مخنف بن سليم المتقدم(نصب:۴\۵۰۲)_

سُنَّةُ الْمُسْلِمِيْنَ (١) او هغه د مسلمانانو سنت ته اورسيدو وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ او نبی کريم ﷺ اوفرمائيل اِنَّ أَوَّلَ نُسُكِنَا فِي هٰذَا الْيَوْمِ الصَّلٰوةُ زمونږ رومبي عمل نن ورځ لمونځ دې ثُمَّ الْأُضْحِيَةُ (٢) بيا قرباني ده.

تشريح:- ددې حديثونو نه معلومه شوه.چه قرباني به د لمونځ نه روستو وی.لکه څنګه چې د وترو وخت د ماسخوتن وخت دې.خو وتر د ماسخوتن لمانځه نه روستو کول واجب دی.

**د کلو د خلقو لپاره د قربانۍ وخت**

غَيْرَ أَنَّ هٰذَا الشَّرْطَ فِي حَقِّ علاوه ددې خبرې نه چې دا شرط دهغه سړی په حق کي دې مَنْ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ په چا چې د اختر لمونځ وی وَهُوَ الْمِصْرِيُّ دُوْنَ أَهْلِ السَّوَادِ او هغه ښاري دې.د کلی والا نه دې لِأَنَّ التَّأْخِيْرَ لِاحْتِمَالِ التَّشَاغُلِ بِهٖ عَنِ الصَّلٰوةِ او خکه چې روستو کول د قربانۍ د لمونځ نه د مشغوله کيدو د احتمال په وجه دې.د ذبح په وجه وَلَا مَعْنٰى لِلتَّأْخِيْرِ فِي حَقِّ الْقَرَوِيِّ او د کلی والا په حق کي د تاخير هيڅ مطلب نشته وَلَا صَلٰوةَ عَلَيْهِ حالانکه هغه باندې لمونځ نشته وَمَا رَوَيْنَاهُ حُجَّةٌ او کوم حديث چې مونږ روايت کړې دې.هغه حجت دې عَلٰى مَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ د امام مالك او امام شافعي رحمهما الله په خلاف فِي نَفْيِهِمَا الْجَوَازَ د جواز د نفی په اړه کي ، بَعْدَ الصَّلٰوةِ قَبْلَ نَحْرِ الْإِمَامِ لمونځ نه روستو د امام د قربانۍ نه وړاندې.

حل اللغة: ① القروی: کلی والی ② التشاغل: مشغولتيا

تشريح:- قرباني د لمونځ نه روستو کول صرف په ښار والا باندې واجب دی.په کلی والا باندې واجب نه دی. خکه چې د قربانۍ روستو کاوه وجوب ددې لپاره دې.چه په قربانۍ کي د مشغوليدو په وجه د لمونځ نه غفلت اونشی.او په چا چې لمونځ نه وی.هلته دا مطلب هم موجود نه دې.نو په هغه به تاخير واجب نه وی.

امام مالك او امام شافعي رحمهما الله فرمائي.چه قرباني به د لمونځ نه روستو هم هغه وخت جائز وی.کله چې امام مخکي قرباني اوکړی.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه مونږ کوم حديث ذکرکړې دې.په دې کي د امام د قربانۍ هيڅ ذکر نشته.بلکه د لمونځ ذکر دې.نو دا حديث ددوی دواړو په خلاف حجت دې.

تنبيه ① د کلو نه هغه کلی مراد دی.چرته چې د جمعې او اخترونو لمونځ جائز نه دې.او په کومو کلو کي چې جائز دی.هغه د ښار په حکم کي دی.

تنبيه ② ذبح د امام، د امام مالك رحمه الله په نيز شرط دی.د امام شافعي رحمه الله په نيز شرط نه دی. البته د امام شافعي رحمه الله په نيز د امام د خطبې نه فارغ کيدل شرط دی.نو په دې اعتبار سره به مذکوره حديث د امام شافعي رحمه الله خلاف حجت وی.په دې اعتبار سره نه کوم چې مرغيناني رحمه الله ذکرکړې دې. البته امام محمد رحمه الله د امام مالك رحمه الله سره دې. ﴿کذا في مجمع الانهر ص:۴۹۹،ج۲﴾

**د قربانۍ لپاره مقام معتبر دې**

ثُمَّ الْمُعْتَبَرُ فِيْ ذٰلِكَ مَكَانُ الْأُضْحِيَةِ بيا معتبر په دې سلسله کي د قربانۍ ځاني دې حَتّٰى لَوْ كَانَتْ فِي السَّوَادِ تر دې که قرباني په کلی کي وی وَالْمُضَحِّيْ فِي الْمِصْرِ او قرباني کونکې په ښار کي وی يَجُوْزُ نو جائز ده كَمَا انْشَقَّ الْفَجْرُ چې څنګه سهار (د صبح صادق رڼا) اوچوی، وَلَوْ كَانَ عَلَى الْعَكْسِ او ددې په عکس وی لَا يَجُوْزُ نو جائز نه ده، إِلَّا بَعْدَ الصَّلٰوةِ خو د لمونځ نه روستو وَحِيْلَةُ الْمِصْرِيِّ إِذَا أَرَادَ التَّعْجِيْلَ او ښاری لپاره حيله کله چې دې د جلتی اراده کوی.دا ده أَنْ يَبْعَثَ بِهَا إِلٰى خَارِجِ الْمِصْرِ چې هغه قرباني د ښار نه بهر اوليکی فَيُضَحِّيْ بِهَا نو دا قرباني کولې شي. كَمَا طَلَعَ الْفَجْرُ چې څنګه سهار راوخيجي.

---

(١) من حديث براء بن عازب رضي الله عنه قال الزيلعي رحمه الله أخرجه البخاري ومسلم (نصب: ٥٠٣\٤)_

(٢) من حديث براء بن عازب رضي الله عنه أخرجه البخاري في العيدين باب ٨ ومسلم في الأضاحي رقم ٧ والنسائي في العيدين باب ٨)



تشريح:- بيا په دې اړه کي د قربانۍ د څاروی اعتبار دې.د قرباني کونکی نه دې.په نورو الفاظو کي داسې چې د محل اعتبار دې.د فاعل نه دې.يعنی که محل (قرباني) په کلی کي دې.نو د لمونځ نه وړاندې قرباني جائز ده.که مالك په هرځائې کي وی.اوکه محل په ښار کي دې.نو قرباني به د لمونځ نه روسته کيږی.د قربانۍ مالك که هرځائې کي وی.که ښارې دا غواړی.چه قرباني زر اوشی.نو ددې حيله دا ده.چه د قربانۍ حيوان (څاروې) د ښار نه بهر اوليکی.نو هلته د سهار صادق نه روسته قرباني کولې شي.

**په قربانۍ کښې د مقام معتبر کيدو وجه**

لِأَنَّهَا تُشْبِهُ الزَّكٰوةَ او دا خکه چې قرباني د زکاة مشابه ده مِنْ حَيْثُ أَنَّهَا تَسْقُطُ په دې حيثيت سره، چې قرباني ساقطيږی بِهَلَاكِ الْمَالِ د مال دهلاکيدو په وجه، قَبْلَ مُضِيِّ أَيَّامِ النَّحْرِ د قربانۍ د ورځو تيريدو نه وړاندې، كَالزَّكٰوةِ لکه څنګه چې د زکاة (سقوط) دې بِهَلَاكِ النِّصَابِ د نصاب هلاکيدو په وجه، فَيُعْتَبَرُ فِي الصَّرْفِ مَكَانُ الْمَحَلِّ نو اعتبار به کولې شی.په قربانۍ ادا کاوه کي د محل د ځائې لَا مَكَانُ الْفَاعِلِ د فاعل د ځائې به نشی کولې اعْتِبَارًا بِهَا په زکاة باندې قياس کاوه سره بِخِلَافِ صَدَقَةِ الْفِطْرِ په خلاف د صدقهٔ فطر، لِأَنَّهَا لَا تَسْقُطُ خکه چې صدقهٔ فطر نه ساقطيږی بِهَلَاكِ الْمَالِ د مال هلاکيدو په وجه، بَعْدَ مَا طَلَعَ الْفَجْرُ مِنْ يَوْمِ الْفِطْرِ. د يوم فطر (د وړوکی اختر ورځ) راختلو نه روستو.

تشريح:- د قربانۍ وجوب اګرچه د ممکنه قدرت په وجه دې.او هم دغه ډول د صدقهٔ فطر دې.او د زکاة وجوب د قدرت مي سره (مالدارۍ) په وجه دې.خو په يو اعتبار سره د زکاة مشابه قرباني ده.صدقهٔ فطر نه ده.نو ددې مشابهت په وجه قربانۍ کي د محل اعتبار شوې دې.لکه څنګه چې زکاة کي د محل اعتبار دې.او په صدقهٔ فطر کي د فاعل اعتبار دې.

تفصيل ددې اجمال دا دې.چه د مال هلاکيدو په وجه د زکاة وجوب ساقطيږی.او دغه ډول که د قربانۍ ورځې اوس پاته دی.ختمې شوې نه دی.او مال هلاك شو.نو د قربانۍ وجوب ساقط شو.البته که د قربانۍ ورځې تيرې شی.او قرباني ئې اونکړله.او اوس مال هلاك شو.نو وجوب پخپل حال پاته دې.نو په دې اعتبار سره قرباني د زکاة مشابه ده.او په زکاة کي د محل اعتبار دې.د فاعل نه دې.يعنی مال چې چرته دې.د هغه ځائې فقيرانو ته دې ورکړې شی.د هغه ځائې فقيرانو ته نه کوم ځائې چې مالك دې.نو دغه ډول په قربانۍ کي ونيلی شوی دی.چه د محل اعتبار به وی.د فاعل به نه وی.البته که د وړوکی اختر په ورځ د سهار صادق راختلو نه روسته مال هلاك شو.نو د صدقهٔ فطر وجوب پخپل حال پاته پاتې دې.نو د هغې زکاة سره مشابهت نشته.نو په صدقهٔ فطر کي د فاعل اعتبار دې.د محل نه دې.نو اداکونکې چې هر ځائې وی.صدقهٔ فطر به ادا کوئ.بچی او غلام وغيره چې کوم ځائې دی.ددې اعتبار به نه وی.

**په جمات کښې د اختر مونځ اونشو او عيدګاه کښې نه دې شوې نو د قربانۍ حکم**

وَلَوْ ضَحّٰى اوکه قرباني ئې اوکړله بَعْدَ مَا صَلّٰى أَهْلُ الْمَسْجِدِ روستو ددې نه چې د جمات خلګو لمونځ اوکړو وَلَمْ يُصَلِّ أَهْلُ الْجَبَّانَةِ او د عيدګاه خلګو لمونځ نه دې کړې أَجْزَأَهُ اسْتِحْسَانًا نو هغه ته به دا استحسانًا کفايت کوی لِأَنَّهَا صَلٰوةٌ مُعْتَبَرَةٌ خکه چې دا معتبر لمونځ دې حَتّٰى لَوِ اكْتَفَوْا بِهَا تر دې که خلګ هم په دې باندې اکتفاء اوکړی جَزَأَتْهُمْ نو لمونځ به ددوی نه معتبر وی وَكَذَا عَلٰى عَكْسِهٖ او هم دغه ډول حکم دې چې ددې په عکس وی وَقِيْلَ هُوَ جَائِزٌ او ونيلی شوی دی.چه دا جائز دې قِيَاسًا وَاسْتِحْسَانًا قياسًا او استحسانًا (دواړو اعتبارو سره).

حل اللغة: ① اهل الجبانة: د عيدګاه خلګ

تشريح:- اوس په عيدګاه کي لمونځ نه دې شوې.او په جمات کي اوشو.نو قرباني به جائز وی.دا استحسان دې.خکه چې دا معتبر لمونځ دې.اوکه ددې په عکس وی.نو دا به په درجه اولی جائز وی.او په قول د بعضو دا قياسًا او استحسانًا هر اعتبار سره جائز دې.

## د قربانۍ ورځې

قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائی وَهِيَ جَائِزَةٌ فِي ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ او قرباني جائز ده درې ورځو کي يَوْمُ النَّحْرِ په يوم نحر ( د قربانۍ په ورځ) کي وَيَوْمَانِ بَعْدَهُ او ددې نه روستو دوو ورځو کي ،

تشريح:- د قربانۍ ورځې درې دی.(۱۰،۱۱،۱۲) او د تشريق ورځې درې ورځې دی.(۱۱،۱۲،۱۳)

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمائی ، ، ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ بَعْدَهُ د يوم نحر نه روستو دريو ورځو پورې ( جائز ده). لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کريم ﷺ د فرمان په وجه چې أَيَّامُ التَّشْرِيقِ كُلُّهَا أَيَّامُ ذَبْحٍ[1] د تشريق ورځې واړه په ټوله د ذبح ورځې دی

تشريح:- امام شافعی رحمه الله د تشريق ورځې د قربانۍ ورځې ګڼړي.او د دې حديث نه دوی استدلال کړې دې.خو دا حديث د خپل ضعف په وجه د استدلال قابل نه دې.د حنفيانو په نيز د قربانۍ ورځې درې دی.او ديارلسمه ورځ اګرچه دا د تشريق ورځ ده.خو د قربانۍ ورځ نه ده.

وَلَنَا او زموږ دليل هغه دې مَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ وَعَلِيٍّ وَابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهم کوم چې د حضرت عمر،حضرت علی،او دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه نقل دې أَنَّهُمْ قَالُوا: دوی فرمائيلی دی أَيَّامُ النَّحْرِ ثَلَاثَةٌ چې د قربانۍ ورځې درې دی أَفْضَلُهَا أَوَّلُهَا[2] په دې کي افضله ړومبۍ ورځ ده. وَقَدْ قَالُوهُ سَمَاعًا او يقيناً هغوی دا خبره په اوريدو سره کړې ده لِأَنَّ الرَّأْيَ لَا يَهْتَدِي إِلَى الْمَقَادِيرِ ځکه چې رائې مقدارونو (او اندازو) ارخ ته لاره نه بنائی وَفِي الْأَخْبَارِ تَعَارُضٌ او په اخبارو کي تعارض دې ، فَأَخَذْنَا بِالْمُتَيَقَّنِ وَهُوَ الْأَقَلُّ.نو موږ متيقن واخستلو.او هغه اقل دې.

حل اللغة* ① المقادير:جمع د مقدار② الاخبار:جمع د خبر③ المتقين: يقيني»

تشريح:- زموږ دليل د حضرت عمر،حضرت علی،او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه حديث دې.چه «أيام النحر ثلاثة أيام أفضلها أولها» او دا داسې شئ دې.چه دلته قياسی پابندئ کار نه کوی.نو معلومه شوه.چه دې حضراتو کوم څه فرمائيلی دی.د نبی کريم ﷺ نه ئې اوريدلی دی.نو فرمائيلی ئې دی.يعنی دا په سماع باندې محمول ده.او د تعارض په وخت کم اخستل غوره وی.ځکه چې دا يقينی وی.

وَأَفْضَلُهَا أَوَّلُهَا او په دې کي غوره په دې کي ړومبۍ ورځ ده.. كَمَا قَالُوا لکه څنګه چې دې ( دريو صحابو) حضراتو فرمائيلی دی وَلِأَنَّ فِيهِ مُسَارَعَةً إِلَى أَدَاءِ الْقُرْبَةِ او ځکه چې په دې کي د قربت ادا کاوه ارخ ته مخکي کيدل دی وَهُوَ الْأَصْلُ إِلَّا لِمُعَارِضٍ او هم دا اصل دې.خو د يو معارض په وجه،

تشريح:- ړومبۍ ورځ غوره ده.ددې يو دليل خو هم دغه دې.کوم چې دغه حضراتو فرمائيلې دې.او دوهم دليل دا دې.چه عباداتو کي اصل دا دې.چه دا په ړومبی وخت کي ادا کړې شی.البته که څه معارض وی.نو بله خبره ده.او مسارعت ( نيکئ ته ور اوړاندې کيدل) هم په دې کي دی.چه په ړومبی وخت يعنی په ړومبۍ ورځ کي قربانی اوکړې شی.

فائده* په ( لمونځ د) سهار او ماپښين (ماسپخين) کي تاخير د معارض په وجه دې.لکه «أسفروا بالفجر فإنه

[1]) من حديث مطعم بن جبير رضي الله عنه قال الزيلعی رحمه الله أخرجه أحمد فی مسنده وابن حبان فی صحيحه فی النوع الثالث والأربعين (نصب:٥٠٤\٤)_

[2] – قال الزيلعی رحمه الله غريب جداً وتقدم نحوه فی الحج فی الحديث الرابع والستين وروی مالک فی الموطاء عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما أنه كان يقول الأضحی يومان بعديوم الأضحی إنتهی وقال مالک أنه بلغه أن علی بن أبی طالب رضي الله عنه كان يقول مثل ذلک(نصب:٥٠٥\٤)_



أعظم للأجر» او لکه «أبردوا بالظهر فإن شدة الحر من فيح جهنم»

## په شپه کښې د ذبح کولو حکم

وَيَجُوزُ الذَّبْحُ او ذبح جائز ده. فِي لَيَالِيهَا ددې ورځو په شپو کي ، إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ لِاحْتِمَالِ الْغَلَطِ فِي ظُلْمَةِ اللَّيْلِ خو دا مکروه ده.د شپې په چاغه کي د غلطئ د احتمال په وجه، وَأَيَّامُ النَّحْرِ ثَلَاثَةٌ او ورځې د قربانۍ درې دی وَأَيَّامُ التَّشْرِيقِ ثَلَاثَةٌ او ورځې د تشريق درې ورځې دی وَالْكُلُّ يَمْضِي بِأَرْبَعَةٍ او ټولې تيريږی په څلورمې سره فَأَوَّلُهَا نَحْرٌ په دې کي ړومبۍ ( ورځ د) نحر ده.بل څه نه دی. وَالْأَخِيرُ تَشْرِيقٌ او ددې آخری ( ورځ د) تشريق ده.بل څه نه ده «لَا غَيْرُ وَالْمُتَوَسِّطَانِ نَحْرٌ وَتَشْرِيقٌ او دواړه منځنۍ (ورځې د) نحر اوتشريق دی.

تشريح:- لکه څنګه چې د قربانۍ په ورځو کي قربانی جائز ده.ددې په شپو کي هم جائز ده.خو مکروه ده. ځکه په شپه کي د تيارې په وجه د غلطئ احتمال دې.لسم تاريخ ( د لونې اختر ړومبۍ ورځ) صرف د قربانۍ ورځ ده.او ديارلسم ( تاريخ) صرف د تشريق ورځ ده.او ۱۱،۱۲ ( منځنۍ دوې (دوه) ورځې) د قربانۍ هم دی.او د تشريق هم دی.، ، كما لا يخفى، ،

## قربانی د صدقې نه افضله ده

وَالتَّضْحِيَةُ فِيهَا او په ورځ د قربانو کي قربانی کول أَفْضَلُ مِنَ التَّصَدُّقِ بِثَمَنِ الْأُضْحِيَّةِ د قربانۍ د قيمت په اندازه صدقه کاوه نه افضل دی لِأَنَّهَا تَقَعُ وَاجِبَةً ځکه چې قربانی به يا واجب واقع کيږی أَوْ سُنَّةً يا سنت ( بناء بر اختلاف) وَالتَّصَدُّقُ تَطَوُّعٌ مَحْضٌ او صدقه کول صرف صدقه ده فَتُفَضَّلُ عَلَيْهِ نو دا ( قربانی کول) به افضله وی په هغې ( صدقې ) باندې، لِأَنَّهَا تَفُوتُ او ځکه چې قربانی فوت کيږی بِفَوَاتِ وَقْتِهَا ددې د وخت فوت کيدو سره، «وَالصَّدَقَةُ يُؤْتَى بِهَا فِي الْأَوْقَاتِ كُلِّهَا او صدقه ادا کولې شی.په ټولو وختونو کي ، فَنَزَلَتْ مَنْزِلَةَ الطَّوَافِ وَالصَّلَاةِ نو راکوځولې به شی قربانی د لمونځ او د طواف په درجه کي فِي حَقِّ الْآفَاقِيِّ په حق د آفاقی ( د مکې نه بهر اوسيدونکی) کي.

حل اللغة* ① الآفاقي: دمکې نه بهر اوسيدونکې»

تشريح:- په ظاهرالرواية کي قربانی واجب ده.او په قول د صاحبينو رحمهما الله سنت ده.او صدقه خالص تطوع او نفل دې.او واجب او سنت د نفل نه اوچت وی.نو په ورځو د قربانۍ کي قربانی افضل ده.د قربانۍ د قيمت صدقه کاوه نه،د ذکر شوی دليل په وجه، او صدقه چې کله غواړې.کولې شې.او قربانۍ لپاره هم دا مخصوص ورځې دی.نو ددې مسئله داسې شوه.لکه څنګه چې د آفاقی ( د مکې نه بهر اوسيدونکی) په حق کي د طواف او نفلی لمونځ مسئله ده.چه طواف افضل دې.ځکه چې طواف خو صرف هم دلته کولې شی.او لمونځ چې هندوستان ( يعنی خپل وطن ته ) لاړ شی.نو هم چې څومره غواړې.کولې شی.

## د قربانۍ واجبيدو باوجود ئې قربانی اونړله نو څه حکم دې ؟

وَلَوْ لَمْ يُضَحِّ او که قربانی ئې اونکړله حَتَّى مَضَتْ أَيَّامُ النَّحْرِ تر دې چې د قربانۍ ورځې تيرې شوې إِنْ كَانَ أَوْجَبَ عَلَى نَفْسِهِ نو که ده پخپل ځان باندې قربانی واجب کړې وی أَوْ كَانَ فَقِيرًا يا دې غريب وی وَقَدِ اشْتَرَى الْأُضْحِيَّةَ او ده قربانی اخستې وی تَصَدَّقَ بِهَا حَيَّةً نو هغه دې دا صدقه کړی.په ژوندونی وَإِنْ كَانَ غَنِيًّا او که توانګر وی أَوْ لَمْ يَشْتَرِ او که نه وی اخستې لِأَنَّهَا تَصَدَّقَ بِقِيمَةِ شَاةٍ د وزه قيمت دې صدقه کړی اشْتَرَى که قربانی ئې اخستې وی أَوْ لَمْ يَشْتَرِ واجِبَةٌ عَلَى الْغَنِيِّ ځکه چې قربانی په توانګر واجب ده وَتَجِبُ عَلَى الْفَقِيرِ بِالشِّرَاءِ او په غريب باندې اخستلو سره واجبيږی بِنِيَّةِ التَّضْحِيَةِ عِنْدَنَا د قربانۍ په نيت سره زموږ په نيز فَإِذَا فَاتَ الْوَقْتُ نو کله چې وخت فوت شو فَإِذَا وَجَبَ عَلَيْهِ التَّصَدُّقُ نو په ده باندې صدقه کول واجب دی إِخْرَاجًا لَهُ عَنِ الْعُهْدَةِ خپل ځان د ذمه دارئ د اوښکلو لپاره كَالْجُمُعَةِ لکه څنګه چې جمعه ده. تُقْضَى بَعْدَ فَوَاتِهَا ظُهْرًا چې ددې د فوت کاوه نه روستو (لمونځ د) ماپښين

(ماسپخين) قضاء راوړلي شي وَالصَّوْمِ بَعْدَ الْعَجْزِ فِدْيَةٌ او د روژې قضاء راوړلي شي د عجز نه روسته فدية سره.

حل اللغة: ① العهدة: ذمه واري.

تشريح:- مالدار باندې د خپلې مالدارئ په وجه قرباني واجب ده.او په غريب هغه وخت واجب ده چه هغه په ورځو د قربانئ کي په نيت د قربانئ، د قربانئ حيوان (څاروې) واخلي.يا څوك د قربانئ نذر اوكړي.نو په هغه هم واجب ده.بهرحال قرباني واجب وه.او د قربانئ ورځې تيرې شوې.او هغه قرباني اونكړله.نو اوس به څه كوي.نو وې فرمائيل.كه توانګر دې.نو د يوې وزه قيمت دې صدقه كړي.او كه فقير او غريب دې.نو د ژوندئ وزه صدقه كول ضروري دى.ځكه چې قرباني په دوى واجب وه.او اوس د قربانئ وخت ختم شو.نو اوس ددې نه علاوه بله لار نشته.لكه څنګه چې د جمعې نه روسته د ماپښين (ماسپخين) ( مونځ) قضاء راوړلي شي.او د روژې فوت كاوه نه روستو د عاجزئ په وخت فديه واجبيږي.

تنبيه① د قربانو په ورځو کي ئې ژوندئ وزه صدقه كړله.نو دويمه قرباني به واجب وي.ځكه چې په ده باندې وينه تويول واجب دى. ﴿شامی ص:۲۰۳،ج۵﴾

تنبيه② غريب چې كله د قربانئ حيوان (څاروې) په نيت د قربانئ، د قربانئ په ورځو کي واخلي.نو قرباني به واجب وي.ګني د قربانئ د ورځو نه وړاندې اخستلو کي به واجب نه وي. ﴿شامی ص:۲۰۴،ج۵﴾ اوموږ په دې باندې ،،احكام قرباني،، ( كتاب) کي تفصيل سره بحث كړې دې.

## د کومو عیبدارو څاروو قرباني جائز نه ده؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائيل وَلَا يُضَحِّي بِالْعَمْيَاءِ وَالْعَوْرَاءِ چې قرباني به نه كوى.د ړندو،او نه د كاڼرا( چې په يو سترګه ړوند وى)، وَالْعَرْجَاءِ الَّتِي لَا تَمْشِي إِلَى الْمَنْسِكِ و نه د هغه ګوډ، كوم چې مذبح ( ځائې د حلالې) ته نشي تللې وَلَا الْعَجْفَاءِ او نه د ډير كمزور ( او ټپ څاروى). لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کريم ﷺ د فرمان په وجه، لَا تُجْزِئُ فِي الضَّحَايَا أَرْبَعَةٌ:په قربانو کي څلور څاروى جائز نه دى الْعَوْرَاءُ الْبَيِّنُ عَوَرُهَا هغه كاڼرا (چغوت) چې دده كاڼراتوب ښكاره وى وَالْعَرْجَاءُ الْبَيِّنُ عَرَجُهَا او هغه ګوډ چې دده ګوډ كيدل ښكاره وى وَالْمَرِيضَةُ الْبَيِّنُ مَرَضُهَا او هغه بيمار چې دده مرض ښكاره وى دې وَالْعَجْفَاءُ الَّتِي لَا تُنْقِي (1)او هغه كمزور چې دده سرب كيدل نه كيږي قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائيلي دى وَلَا تُجْزِئُ مَقْطُوعَةُ الْأُذُنِ وَالذَّنَبِ او جائز نه ده غوږ او لكئ كټ شوې أَمَّا الْأُذُنُ بهرحال غوږ فَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نو د نبی کريم ﷺ د فرمان په وجه اسْتَشْرِفُوا الْعَيْنَ وَالْأُذُنَ (2) چې سترګه او غوږ ښه ګورئ أَيْ اُطْلُبُوا سَلَامَتَهُمَا يعنى ددې دواړو سلامتيا ګورئ وَأَمَّا الذَّنَبُ او بهرحال لكئ فَلِأَنَّهُ عُضْوٌ كَامِلٌ نو ځكه چې دا يو كامل اندام دې ..مَقْصُودٌ...چه دا مقصود فَصَارَ كَالْأُذُنِ نو دا د غوږ پشان شو.

حل اللغة: ① العمياء: ړنده ② العوراء: كاڼرئ ،چه يوه سترګه ئې كتل نه كوى ③ العرجاء: ګوډ ④ المنسک: قربانګاه ⑤ العجفاء: ډيره كمزورې ،ټپه ⑥ الاذن: غوږ ⑦ الذنب: لكئ ⑧ استشرفوا: ښه اوګورئ ⑨ العين: سترګه ⑩ البين: ښكاره.

تشريح:- قاعده دا ده.چه د معمولي عيب نه خو حيوان (څاروې) خالى نه وى.نو ددې نه خالى كيدل شرط نه دى. البته د زيات عيب نه خالى وى.نو ددې نه خالى كيدل شرط دى.پاته خبرې ښكاره دى.

---

1 - من حديث براء بن عازب رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الأضاحي باب ۶ رقم ۲۸۰۲ والترمذی فی الأضاحی باب ۶۵ والنسائی فی الضحايا باب ۵ وابن ماجه في الأضاحي باب ۸ رقم ۳۱۴۴ ومالک فی الضحيا رقم ۱)_

2 - من حديث علي رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الأضاحي باب ۶ رقم ۲۸۰۴ والترمذی فی الأضاحی باب ۶ والنسائی فی الضحايا رقم ۴۳۷۲ وابن ماجه في الأضاحي باب ۸ رقم ۳۱۴۲)_



## څومره مقدار به عيب شمارلې شي؟

قَالَ امام قدورى رحمه الله او فرمائيل وَلَا الَّتِي ذَهَبَ أَكْثَرُ أُذُنِهَا وَذَنَبِهَا و جائز دې هغه حيوان (څاروې) چې دده د غوږ او لكئ زياته برخه ختم شوې وى، وَإِنْ بَقِيَ أَكْثَرُ الْأُذُنِ وَالذَّنَبِ و كه د غوږ او لكئ زياته برخه پاته وى جَازَ لِأَنَّ لِلْأَكْثَرِ حُكْمَ الْكُلِّ بَقَاءً وَذَهَابًا نو جائز ده ځكه چې د پاته پاتې او د ختم شوى په اعتبار سره اكثر لپاره د كل حكم دې وَلِأَنَّ الْعَيْبَ الْيَسِيرَ لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ او معمولي عيب، ددې نه بچ كيدل ممكن نه دى فَجُعِلَ عَفْوًا نو دا به معاف ګرځولې شي.

حل اللغة: ① ذهاب: تلل ② التحرز: ځان ژغورل ③ اليسير: كم ،معمولى.

تشريح:- د معمولي عيب نه بچ كيدل مشكل دى.خو د زيات عيب نه بچ كيدل آسان دى.نوكه عيب لږ دې.نو معاف دې.اوكه عيب زيات دې.نو دا معاف نه دې.او ددې قرباني به جائز نه وى.بيا په لږ او ډير كي حد د جدايئ ( او توپير ) څه دې؟ نو په دې کي مختلف روايات دى.د امام ابوحنيفه رحمه الله نه په دې سلسله کي څلور روايات دى.چه دا اوس راروان دى.
په پاته پاتې شوى او ختم شوى کي د اكثر حكم د كل پشان دې.چه كه اكثره برخه پاته ده.نو ګويا كل پاته دې.او قرباني جائز ده.اوكه اكثره برخه ختمه شوه.نو ګويا كل ختم شو.او قرباني به جائز نه وى.

## د اكثر مقدار په سلسله كښې د فقهاو اقوال

وَاخْتَلَفَتِ الرِّوَايَةُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ فِي مِقْدَارِ الْأَكْثَرِ او د اكثر مقدار په سلسله کي د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت مختلف دى؟..فَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ عَنْهُ:نو په جامع صغير کي د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دى وَإِنْ قُطِعَ مِنَ الذَّنَبِ أَوِ الْأُذُنِ أَوِ الْعَيْنِ أَوِ الْأَلْيَةِ الثُّلُثُ أَوْ أَقَلُّ اوكه لكئ يا غوږ يا سترګه يا د كناتى دريمه برخه يا ددې نه كمه كټ كړې شوه أَجْزَأَهُ، نو ده لپاره به كفايت كوى وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ اوكه زياته ( كټ شوې) وى لَمْ يُجْزِهِ نو ده لپاره به كفايت نه كوى لِأَنَّ الثُّلُثَ تَنْفُذُ فِيهِ الْوَصِيَّةُ مِنْ غَيْرِ رِضَا الْوَرَثَةِ ځكه چې دريمه ( حصه) کي د وارثانو د رضامندئ نه بغير وصيت نافذ كيږي فَاعْتُبِرَ قَلِيلًا نو دا قليل شمار كړې شوې دې وَفِيمَا زَادَ لَا تَنْفُذُ او د دريمې نه په زيات کي وصيت نشي نافذ كولې إِلَّا بِرِضَاهُمْ خو د وارثانو رضامندئ سره فَاعْتُبِرَ كَثِيرًا نو دا كثير شمار كړې شوې دې، وَيُرْوَى عَنْهُ الرُّبُعُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه څلورمه برخه نقل ده لِأَنَّهُ يَحْكِي حِكَايَةَ الْكَمَالِ ځكه چې څلورمه د كمال حكايت بيانوى عَلَى مَا مَرَّ فِي الصَّلَاةِ د هغه تفصيل مطابق كوم چې په كتاب الصلاة کي تير شوې دې وَيُرْوَى الثُّلُثُ او دريمه نقل ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کريم ﷺ د فرمان په وجه فِي حَدِيثِ الْوَصِيَّةِ د وصيت په حديث کي الثُّلُثُ د دريمې وصت كوئ وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ ،(1)و دريمه هم زياته ده.

حل اللغة: ① الالية: كوناتې.

تشريح:- د قليل او كثير په اړه کي د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايات منقول دى.د هغې تفصيل دا دې ① دريمه او ددې نه كم قليل دې.چه دا به معاف وى.② څلورمه هم كثير ده.ځكه چې ډيرو احكامو کي څلورمې ته دكل درجه وركړې شوې ده.③ دريمه هم زياته ده.نوكه دريمه برخه كټ شوې وى.نو چونكه دا كثير ده.په دې وجه به قرباني جائز نه وى.- حضرت سعد بن وقاص رضي الله عنه وصيت كول اوغوښتل.نو نبی کريم ﷺ منع كړو.تردې چې د دريمې پورې خبره راورسيدله . نو په دې باندې نبی کريم ﷺ اجازت وركړو.او دا الفاظ ئې ارشاد اوفرمائيل. ﴿الثلث و الثلث كثير﴾ يعنى آو د دريمې وصيت اوكړه.خو دريمه هم زياته ده.بهرحال دلته دريمې ته زياته وئيلې شوې ده.

---

1 - من حديث سعد بن أبي وقاص رضي الله عنه أخرجه الأئمة الستة في كتبهم (نصب:۴/۵۰۷)_

## د صاحبينو رحمهما الله نقطه نظر

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ او فرمائیلي دي امام ابویوسف او امام محمد اِذَا بَقِيَ الْاَكْثَرُ مِنَ النِّصْفِ کله چې د نیمې نه زیاته پاته وي اَجْزَأَهُ (۱) نو ده لپاره به کفایت کوي. اِعْتِبَارًا لِلْحَقِيْقَةِ د حقیقت اعتبار کاوه سره، عَلٰى مَا تَقَدَّمَ فِي الصَّلٰوةِ د هغه تفصیل مطابق کوم چې په کتاب الصلاة کې تیر شوي دي وَهُوَ اخْتِيَارُ الْفَقِيْهِ اَبِي اللَّيْثِ او هم دا د فقیه ابوالليث رحمه الله مختار دي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلي دي أَخْبَرْتُ بِقَوْلِيْ أَبَا حَنِيْفَةَ چې ما د خپل قول امام ابوحنيفه رحمه الله ته خبر ورکړو، فَقَالَ نو وې فرمائيل. قَوْلِيْ هُوَ قَوْلُكَ چې زما قول هغه ستا قول دې قِيْلَ وئیلي شوي دي: هُوَ رُجُوْعٌ مِنْهُ اِلٰى قَوْلِ اَبِيْ يُوْسُفَ، چې دا رجوع ده. د امام ابوحنيفه رحمه الله قول ارخ ته وَقِيْلَ او وئیلي شوي دي مَعْنَاهُ قَوْلِيْ قَرِيْبٌ مِنْ قَوْلِكَ د دې مطلب دا دې، چه زما قول ستا قول ته نژدې دې فِيْ كَوْنِ النِّصْفِ مَانِعًا رِوَايَتَانِ عَنْهُمَا او د نصف مانع کیدو کې د صاحبینو رحمهما الله دوې (دوه) روایتونه دي. وَكَمَا فِي انْكِشَافِ الْعُضْوِ عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ لکه څنګه چې د امام ابویوسف رحمه الله نه د اندام په کلاویدو کې رانقل دي.

تشریح:- دې ته د صاحبینو رحمهما الله قول اووایئ. یا د امام صاحب رحمه الله څلورم روایت، چه د حقیقت اعتبار دې. او کله چې د نصف نه زیات پاته دې. نو اکثر پاته دې. او که د نصف نه زیات ختم شي. نو اکثر ختم دې. د فقیه ابو الليث سمرقندي رحمه الله هم دا مختار دې. امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلي دي. چه ما د دې خپل قول امام صاحب رحمه الله ته خبر ورکړو. نو هغوی دا جمله ارشاد اوفرمائیله چې «قولي هو قولك»،، زما قول هغه هم ستا قول دې،، عالمانو ددې دوې (دوه) مطلبونه اوبښکلي دي. یو دا چې امام صاحب رحمه الله د خپل قول نه د امام ابویوسف رحمه الله قول ارخ ته رجوع کړې ده. او دوهم مطلب دا دې. چه زما او ستا قول کې ډیر توپیر نشته. بلکه دواړه نژدې نژدې دي.

او که نصف ختم شي. نو اوس د صاحبینو رحمهما الله نه دوې (دوه) روایتونه دي. لکه څنګه چې د امام ابویوسف رحمه الله نه د اندام په اړه کې دلته دوې (دوه) روایتونه دي: ① قرباني جائز ده. ځکه چې ختمیدونکې برخه اکثر نه ده.

② قرباني جائز نه ده. ځکه چې ختمیدونکې برخه قلیل نه ده. په ،، باب شرائط الصلاة،، کې دا بحث تیر شوې دې.

فائده* علامه شامي په «ردالمختار ص: ۲۰۶، ج۵» باندې دریمه او ددې نه کمې ته قلیل وئیلي دي. او ددې نه زیات ته ئې کثیر وئیلي دي. او بیا ئې فرمائیلي دي.،، وعلیه الفتوی،، په «سکب الانهر ص: ۴۴۱، ج۵» باندې یوځل وئیلي دي. چه د اکثر په پاته پاتې کیدو باندې به اکتفاء کولې شي. او وئیلي ئې دي.،، وعليه الفتوى ،، او بیا ئې په حواله د ،، شرح الكنز لربن السلطان،، وئیلي دي. «الثلث وما دونه قليل وما زاد عليه كثير هو الصحيح وعليه الفتوى»

## په سترګه د عیب معلومولو طریقه

ثُمَّ مَعْرِفَةُ الْمِقْدَارِ فِيْ غَيْرِ الْعَيْنِ مُتَيَسِّرٌ بیا د سترګې نه علاوه کې مقدار پیژندل آسان دي وَفِي الْعَيْنِ قَالُوْا او د سترګې په اړه کې عالمانو فرمائیلي دي تُكْرَدُ الْعَيْنُ الْمَعِيْبَةُ چې عیب داره سترګه اوتړلې شي: بَعْدَ أَنْ لَا تَعْتَلِفَ الشَّاةُ يَوْمًا أَوْ يَوْمَيْنِ او روستو ددې نه چې وزه یوه یا دوې (دوه) ورځو پورې ګیا اونخوري ثُمَّ يُقَرَّبُ الْعَلَفُ اِلَيْهَا قَلِيْلًا قَلِيْلًا بیا په کرار کرار (مزه مزه) دې ته ګیا نژدې کړې شي. فَإِذَا رَأَتْهُ مِنْ مَوْضِعٍ نو کله چې وزه دې

(۱) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في ردالمحتار (۲۲۹/۵) والهندية (۲۹۸/۵) والخانية (۳۳۳/٤) والدرالمنتقى (۱۷۲/٤) ومجمع الأنهر (۱۷۸/٤) نقلاً عن القول الراجح (۲۹۵/۲)-



ته د لرې ځاې نه اوګوري، أُعْلِمَ عَلٰى ذٰلِكَ الْمَكَانِ نو په دې ځاې دې نښان اولګولې شي ثُمَّ تُكْرَدُ عَيْنُهَا الصَّحِيْحَةُ بیا ددې صحیح سترګه اوتړلې شي وَقُرِّبَ اِلَيْهَا الْعَلَفُ قَلِيْلًا قَلِيْلًا او دې ارخ ته په کرار کرار (مزه مزه) ګیا نژدې کړې شي حَتّٰى اِذَا رَأَتْهُ مِنْ مَكَانٍ تردې چې کله ګیا د یو ځاې نه دې ته ښکاره شي أُعْلِمَ عَلَيْهِ نو په دغه ځاې نښان اولګولې شي.

حل اللغة* ① متيسر: آسان ② تشد: اوتړلې شي ③ تعتلف: ګیاه خوري ④ موضع: ځاې»

تشریح:- وزه یوه یا دوې (دوه) ورځې اوږې اوساته. بیا چې کومه سترګه ددې خرابه ده. هغه اوتړه. او ټیک سترګه ئې ښکاره کړه. اوس ددې ارخ ته ګیا ور نژدې کړه. نو اوګوره. چه د کوم ځاې دې دا اوکتله. نو دغه ځاې کې نښان اولګوه. بیا یوه سترګه ښکاره کړه. او دویمه سترګه اوتړه. بیا د دغه ځاې نه ګیا په کرار کرار (مزه مزه) دې ته را نژدې کوه. اوس اوګوره. چه کوم ځاې ئې اوکتله. هلته نښان اولګوه.

ثُمَّ يُنْظَرُ اِلٰى تَفَاوُتِ مَا بَيْنَهُمَا نو ددې په منځ کې دې توپیر ارخ ته اوکتلې شي. فَإِنْ كَانَ ثُلُثًا نو که دریمه برخه وي. فَالذَّاهِبُ الثُّلُثُ نو ختمیدونکې برخه دریمه ده وَإِنْ كَانَ نِصْفًا او که د نیمې توپیر دې فَالنِّصْفُ نو ختمیدونکې برخه نیمه ده.

تشریح:- اوس په دې دواړو ځایونو کې اوګوره. چې څومره توپیر دې. مثلاً په رومبي ځل کې دې د دریو ګزونو په فاصله کې کتلې وه. او په دوهم ځل ئې د یو ګز په فاصله کې کتلې ده. نو په دې دواړو کې دریمه برخه فرق شو. نو معلومه شوه. چه د عیب دارې سترګې دوې (دوه) برخې (حصې) نظر ختم شوې دې. او که په رومبي ځل ئې درې ګزه فاصلې نه کتلې ده. او په دوهم ځل ئې د یو نیم ګز فاصلې نه کتلې ده. نو معلومه شوه. چه نیم نظر (بیناني) ئې ختم شوې دې.

## که ښکرې بالکل نه وي یا مات شوي وي نو د قربانۍ حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله فرمائیلي دي وَيَجُوْزُ أَنْ يُضَحِّيَ بِالْجَمَّاءِ او د جماء قرباني جائز ده وَهِيَ الَّتِيْ لَا قَرْنَ لَهَا او دا هغه ده. چه ددې ښکر نه وي لِأَنَّ الْقَرْنَ لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ مَقْصُوْدٌ ځکه چې ښکرې، ددې سره هیڅ مقصود متعلق نشته. وَكَذَا مَكْسُوْرَةُ الْقَرْنِ او دغه ډول ښکرې ماتې شوې لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دي.

حل اللغة* ① الجماء: بې ښکرو ② قرن: ښکر»

تشریح:- ښکرې ئې بالکل نه وي. یا ماتیدل، د قربانۍ د جواز لپاره مانع نه دي. البته که ښکرې د جرړې نه اوځي. چه د ماتیدو اثر د ننه پورې اورسیږي. نو ددې قرباني به جائز نه وي. «شامي ص: ۲۰۵، ج۵»

## د خصي د قربانۍ حکم

وَالْخَصِيُّ او د خصي قرباني جائز ده. وَلِأَنَّ لَحْمَهَا أَطْيَبُ ځکه چې ددې غوښه خوږه (ترسکونه) وي وَقَدْ صَحَّ او دا خبره د صحت درجې پورې رسیدلې ده أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم ضَحّٰى بِكَبْشَيْنِ چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم د دوو ګډانو قرباني اوکړله أَمْلَحَيْنِ چې دا تور او سپین وو. (برګې) مَوْجُوْءَيْنِ (۱) چې دا دواړه خصي وو.

تشریح:- تفسیر د ژباړې نه واضح دې.

## د لیوني خاروي قرباني کولو حکم

وَالثَّوْلَاءُ وَهِيَ الْمَجْنُوْنَةُ او د ثولاء یعني د لیوني قرباني جائز ده قِيْلَ او وئیلي شوي دي، وَهٰذَا اِذَا كَانَتْ تَعْتَلِفُ چې دا هغه وخت دې. کله چې دا ګیا خوري لِأَنَّهُ لَا يُخِلُّ بِالْمَقْصُوْدِ ځکه چې دا په مقصود کې مخل نه دې أَمَّا اِذَا كَانَتْ

(۱) من حديث عائشة وأبي هريرة رضي الله عنهما أخرجه ابن ماجه في سننه في الأضاحي باب ۱ رقم ۳۱۲۲ وأحمد في المسند (۲۲۰۱۶)_

لاتعتلف بهرحال كله چې دا ګيا نه خوري.( يعنى څرن نه كوي)، فلاتجزئه نو ده لپاره به كفايت نه كوي والجرباء اذا كانت سمينة او جرباء ( خاربښتى ) كه سربه وى چاغ جاز نو جائز ده لان الجرب في الجلد ال ټوك څكه چې خاربښ په څرمن كي دي ولانقصان في اللحم او په غوښه كي هيڅ نقصان نشته وان كانت مهزولة او كه خاربښتى كمزوري شى لايجوز نو جائز نه ده لان الجرب في اللحم څكه چې خاربښ په غوښه كي دي فانتقص نو نقصان پيدا شو

**حل اللغة** ① **الثولاء:** ليوني ② **الجرباء:** خاربښتى، چې ښارښ وى پرې ③ **سمينة:** څربه ④ **مهزولة:** ټپه ،كمزورې، لاغره﴾

**تشريح:-** څاروى خو غير ذوى العقول وى.نو دلته د ليونتوب نه مراد هسې بيسه اخوا ديخوا تختى راتختى.نو كه ګيا خوري.نو ددې قرباني جائز ده.ګنى نه ده.او كه خاربښ دې.نو دوې (دوه) صورتونه دى.چه دې خاربښ سره بدن كمزورې شوې دې.او كه نه؟ كه كمزورې شوې دې.نو معلومه شوه.چه خاربښ په غوښه كي هم دې.نو جائز نه ده.او كه بدن كمزورې شوې نه دې.نو معلومه شوه.چه خاربښ په څرمنه كي دې.نو ددې قرباني جائز ده.

## د كوم څاروى چې غاښ نه وي د هغې د قربانۍ حكم

واما الهتماء وهي او بهرحال هتماء او دا هغه دې.التي لااسنان لها چې ددې غاښونه نه وى فعن ابي يوسف انه نو د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى يعتبر في الاسنان الكثرة والقلة چې هغه په غاښونو كي د كثرت او قلت اعتبار كوى وعنه ان بقي مايمكنه الاعتلاف به چې په كومو سره څرن ممكن وى ،اجزأه نو ده لپاره به كفايت كوى لحصول المقصود د مقصود حاصليدو په وجه والسكاء وهي التي ،او سكاء او دا هغه ده لااذن لها خلقة چې ددې مورزاده (پيدائشى) غوږونه نه وى لاتجوز،جائز نه ده لان مقطوع اكثر الاذن اذا كان لايجوز نو د كومې چې غوږونه نه وى هغه جائز نه وى.فعديم الاذن اولى چې غوږونه نه وى هغه به په درجه اولى جائز نه وى

**تشريح:-** او د كوم چې غاښونه نه وى.د هغې قرباني جائز نه ده.خو په دې كي دوې (دوه) قوله دى:① اكثر پاته پاتې كيدل كافى دى.② ګيا خوړل كافى ده.او ددې قرباني جائز ده.او كه مورزاده (پيدائشى) غوږونه ني نه وى.نو ددې قرباني جائز نه ده.څكه چې كله د اكثر غوږونو كټ كيدو په وجه قرباني جائز نه ده.نو بالكل د معدوم كيدو په صورت كي به په درجه اولى جائز نه وى.البته كه غوږونه واړه واړه وى.نو ددې قرباني جائز ده.

## كه د اخستلونه روسته عيب پيدا شي نو څه حكم دې ؟

وهذا الذي ذكرنا او دا تفصيل كوم چې موږ ذكركړې دې اذا كانت هذه العيوب قائمة وقت الشراء هغه وخت دې.كله چې دا عيبونه د اخستلو په وخت موجود وى ،ولو اشتراها سليمة او كه دا ني صحيح سلامت واخستله ثم تعيبت بعيب بيا دا په داسې عيب سره عيبداره شوه مانع چې دا د قربانۍ نه مانع دې ان كان غنيا نو كه دې توانګر دې عليه غيرها نو په ده باندې ددې نه علاوه دې ،وان فقيرا تجزئه هذه او كه دې غريب دې.نو ده ته به هم دا كفايت كوى.

**تشريح:-** فرمائى.چه دا تفصيل هغه وخت دې.كله چې د اخستلو په وخت دا عيب موجود وى.او صحيح سلامت ني واخستلو.او بيا داسې عيب پيدا شو.چه ددې په وجه دده قرباني جائز پاتې نشوه.نو ددې حكم دا دې.كه دې توانګر دې.نو په ده باندې دوهم حيوان (څاروې) اخستل ضرورى دى.اوكه غريب دې.نو هم دا دې قرباني كړي.

لان الوجوب على الغني بالشرع ابتداء څكه چې توانګر باندې د پيل نه وجوب دې.د شريعت په وجه لابالشراء د اخستلو په وجه نه دې فلم تتعين به،نو هم دا وزه د وجوب لپاره متعين نه ده. وعلى الفقير بشرائه بنية الاضحية او په



غريب باندې ( وجوب) د قربانۍ په نيت د اخستلو په وجه دې فتعينت نو هم دا وزه متعين شوه.

**تشريح:-** او د توپير وجه دا ده.چه په توانګر د مالدارۍ په وجه قرباني واجبيږي.د اخستلو په وجه نه واجبيږي.نو اخستې شوې وزه د توانګر د قربانۍ لپاره متعين نه ده.او په غريب باندې د قربانۍ په نيت سره د اخستلو په وجه واجبيږي.نو اخستې شوې قربانۍ لپاره به متعين كيږي.

ولايجب عليه ضمان نقصانه او په غريب باندې ددې د نقصان ضمان واجب نه دې كمافي نصاب الزكاة لكه څنګه چې د زكاة په نصاب كي دى

**تشريح:-** په دې څاروى كي چې كوم نقصان پيدا شوې دې.نو آيا په غريب به د كمي تاوان واجب وى؟ نو وې فرمائيل.چه نه واجبيږي.لكه مثلاً يوكس سره اتيا زره روپۍ وې.چه په دې باندې د كال تيريدو په وجه زكاة واجب شو.او اوس ده زكاة ادا كړې نه وو.چه ددې نه څلوېښت زره هلاكې شوې.نو دې به صرف د پاته پاتې زكاة وركوى.او د هلاك شوو به دې ضامن نه وى.دغه ډول دلته هم دې.

## مذكوره قاعده

وعن هذا الاصل قالوا:او هم ددې قاعدې مطابق فقهاو فرمائيلى دى اذا ماتت المشتراة للتضحية: چې كله د قربانۍ اخستې شوې حيوان (څاروې) مړ شى على الموسر مكانها اخرى نو په توانګر باندې ددې په ځاى دوهم (اخستل واجب) دى ولاشئ على الفقير او په غريب باندې هيڅ نشته ولو ضلت او سرقت او كه دا ورك شو.يا پټ كړې شو فاشترى اخرى .بيا ده بل واخستلو ثم ظهرت الاولى في ايام النحر بيا د قربانۍ په ورځو كي ړومبې ملاو شو على الموسر ذبح احداهما نو په توانګر باندې په دې كي يو ذبح كول واجب دى وعلى الفقير ذبحهما او په غريب باندې ددې دواړو ذبح كول واجب دى.

**تشريح:-** وجه هم دغه ده.كومه چې ذكر شوه.يعنى په توانګر باندې صرف يوه قرباني واجب ده.د مالدارۍ په وجه، چې دا د اخستلو په وجه نه متعين كيږي.او په غريب باندې قربانى د اخستلو په وجه ده.نو څومره چې اخلى.هغومره قربانيانې به واجبيږي.

## كه د ذبح په وخت عيب پيدا شي نو څه حكم دې ؟

ولو اضجعها او كه ده حيوان (څاروې) سملولو فاضطربت نو دا ګډ وډ ( په غوبل) شو فانكسرت رجلها نو ددې خپه ماته شوه فذبحها نو هغه دا ذبح كړله اجزأه استحسانا عندنا نو دا استحساناً زموږ په نيز جائز دى خلافا لزفر والشافعي رحمهما الله د امام زفر او امام شافعى رحمه الله اختلاف دې لان حالة الذبح ومقدماته ملحقة بالذبح څكه چې د ذبح حالت او ددې مقدمات ( مخكنى حالات) ذبح سره متعلق دى فكانه حصل به نو ګويا چې عيب د ذبح په وجه حاصل شوې دې.اعتبارا وحكما د قياس او شريعت په اعتبار سره وكذا لو تعيبت او كه دا عيبدار شوې دې في هذه الحالة هم په دې حالت كي فانفلتت بيا دې ټوپ كړل او اوتختيدو ثم اخذت من فوره... بيا هم په دې وخت دا اونيولې شو وكذا بعد فوره او هم دغه ډول د فوراً نه لږ روستو عند محمد[1] د امام محمد رحمه الله په نيز خلافا لابي يوسف په خلاف د امام ابويوسف رحمه الله لانه حصل بمقدمات الذبح څكه چې دا حاصل شوې دې.د ذبح مقدماتو ( د مخكنى حالاتو) سره،

**حل اللغة** ① **اضطربت:** غوبل ،سركشى ② **انكسرت:** ماته شوه ③ **انفلتت:** ټوپ اووهل ④ **فور:** دستى﴾

**تشريح:-** وړاندينى حالات د ذبحې سره متعلق دى.نو كه د ذبح كاوه په وخت په دې كي څه نقصان او عيب پيدا

[1] القول الراجح هوهذا قول محمد رحمه الله كذا فى الدرالمنتقى (١٧٣\٤) والبحر (٣٢٤\٨) والهندية (٢٩٩\٥) وردالمحتار (٢٢٩\٥) نقلاً عن القول الراجح (٢٩٥\٢)-

شو.نو دا عيب به د قربانۍ جواز منع كونكي نه وي.كه د قربانۍ حيوان (څاروي) ئې ذبح كاوه لپاره سملولو. او ذبح كول ئې پيل كړل.او هغې ټوپ كړل.او اوتختيدو.نوكه فوراً يا لږه شيبه روسته دا اونيولې شوه.نو ددې قرباني جائز ده.البته كه دا غائب شوه.او ده اراده اوكړله.چه دوهم حيوان (څاروی) به ذبح كوم.نو بيا به احتياطاً د ملاويدو نه روسته هم ددې ذبح كول كافی نه وي.( بلكه د مذكوره عيب په وجه به دوهم حيوان (څاروی) به اخلی).

## قربانۍ لپاره درې څاروی دی

قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائيلی دی وَالْأُضْحِيَّةُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ او قربانی به د اوښ، غوا او وزه وي لِأَنَّهَا عُرِفَتْ شَرْعًا خكه چې قربانی شرعاً معلوم شوې ده وَلَمْ تُنْقَلِ التَّضْحِيَةُ بِغَيْرِهَا مِنَ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَلَا مِنَ الصَّحَابَةِ[1] او ددې نه د علاوه قربانی د نبی كريم ﷺ او د صحابه كرامو رضی الله عنهم نه را نقل نه ده.

تشريح:- د قربانۍ لپاره صرف دا درې څاروی مخصوص دی ① اوښ ② غوا، غوئې، ميښه ③ چيلۍ، ګډه او ګډ ـ خكه چې ددې نه د علاوه قربانی منقول نه ده.

## د ګډو او چيلو د "جذع" او د پاته څاروو د "ثنی" قربانی جائز ده

قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائيلی دی وَيُجْزِءُ مِنْ ذٰلِكَ كُلِّهِ الثَّنِيُّ فَصَاعِدًا او په دې ټولو كې ثنی يا ددې نه زيات كافی دی إِلَّا الضَّأْنَ علاوه د ګډې نه فَإِنَّ الْجَذَعَ مِنْهُ يُجْزِءُ خكه چې ددې جذع كافی ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبی كريم ﷺ د فرمان په وجه، ضَحُّوا بِالثَّنَايَا چې د دريو وارو قربانی كوئ إِلَّا أَنْ يُعْسِرَ عَلَى أَحَدِكُمْ خو دا چې دا په تاسو كې په چا باندې ګران وی فَلْيَذْبَحِ الْجَذَعَ مِنَ الضَّأْنِ[2] نو د ګډو جذع ذبح كوئ.وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نِعْمَتِ الْأُضْحِيَّةُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ[3] او فرمائيلی دی نبی كريم ﷺ چې د ګډو جذع قربانی كول غوره قربانی ده.

حل اللغة ① جذع: د ګډې يا وزه هغه بچې چې د شپږو مياشتو شوې وي. ② ثنی: د ګډې يا وزه هغه بچې كوم چې د يو كال وي.او د غوا او ميښې هغه بچې كوم چې د دوو كالو وي.او د اوښې هغه بچې كوم چې د پنځو كالو وي.

تشريح:- په قربانۍ كې دې دريو وارو كې ثنی جائز ده.يعنی وزه د يو كال، غوئې د دوو كالو،او اوښ د پنځو كالو.البته چې ګډه يا وزه كله چې د شپږو مياشتو وي.او سربه وي.چه دا د يو كال د ګډ برابر معلوميږي.نوددې قربانی جائز ده.د ميښې او غوا يو جنس دې.قربانی د ساتلی شوی څاروی وي.د وحشی (ځنګلی څاروی) نه وي.خوكه بچې د دواړو وي.نو دمور تابع به وي.كه پلار زمرې اومور وزه وي. نو ددې بچې قربانی جائز ده.

قَالُوا فقهاو فرمائيلی دی وَهٰذَا إِذَا كَانَتْ عَظِيمَةً او دا هغه وخت دی.كله چې جذع غټه او سربه وي بِحَيْثُ لَوْ خُلِطَتْ بِالثُّنْيَانِ په دې حيثيت سره، كه ثنيو سره ملاو كړې شی يَشْتَبِهُ عَلَى النَّاظِرِ مِنْ بَعِيدٍ نو د لرې نه كتونكی باندې مشتبه كيږي وَالْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ او د ګډو جذع د فقهاو په مذهب كې دا دې مَا تَمَّتْ لَهُ سِتَّةُ أَشْهُرٍ فِي مَذْهَبِ الْفُقَهَاءِ چې

---

[1] قال الزيلعی رحمه الله أما الإبل ففی مسلم فی حديث جابر الطويل أن النبی ﷺ نحر بيده يوم النحر ثلاثا وستين بدنة وأما لبقر ففی الصحيحين عن جابر وعائشة رضی الله عنهما أن النبی ﷺ ضحی عن نسائه بالبقر وأما لغنم ففی الصحيحين أيضاً عن أنس رضی الله عنه ضحی بكبشين أملحين فلم ينقل خلافه (نصب: ٥٠٩\٤)_

[2] من حديث جابر رضی الله عنه أخرجه مسلم فی الأضاحی باب ١٣ وأبوداود فی الأضاحی باب ٤ والنسائی فی الضحايا باب ١٣ وابن ماجه فی الأضاحی باب ٧)_

[3] من حديث أبی هريرة رضی الله عنه أخرجه الترمذی فی الأضاحی باب ٧ وأحمد سفی المسند(٢\٤٤٥)_



ددې لپاره شپږ مياشتې پوره شوې وي وَذَكَرَ الزَّعْفَرَانِيُّ أَنَّهُ او زعفرانی رحمه الله ذكر كړی دی ابْنُ سَبْعَةِ أَشْهُرٍ چې جذع د اووه مياشتو بچې دې. وَالثَّنِيُّ مِنْهَا وَمِنَ الْمَعْزِ سَنَةٌ او د ګډو او چيلو ثنی د يو كال بچې دې وَمِنَ الْبَقَرِ ابْنُ سَنَتَيْنِ او په غوا كې د دوو كالو بچې وَمِنَ الْإِبِلِ ابْنُ خَمْسِ سِنِينَ.او په اوښ كې د پنځو كالو بچې دې. وَيَدْخُلُ فِي الْبَقَرِ الْجَامُوسُ او غوا په ميښه كې داخل ده لِأَنَّهُ مِنْ جِنْسِهِ خكه چې دا ددې د جنس څنې دې وَالْمَوْلُودُ بَيْنَ الْأَهْلِيِّ وَالْوَحْشِيِّ او كوم بچې چې د ساتلی شوی او وحشی (ځنګلی) په منځ كې پيدا شوې وي يَتْبَعُ الْأُمَّ نو دا به د مور تابع وي لِأَنَّهَا هِيَ الْأَصْلُ فِي التَّبَعِيَّةِ خكه چې تابع كاوه كې مور اصل ده حَتّٰى إِذَا نَزَا الذِّئْبُ عَلَى الشَّاةِ تردې كه زمرې په وزه باندې اوختلو يُضَحّٰى بِالْوَلَدِ نو بچې به قربانی كولې شی.

حل اللغة ① جاموس: ګاميښه (ميخه) ② البقرة: غوا ③ الاهلی: كورنی ④ الوحشی: ځنګلی ⑤ نزا: چور اوكړله ⑥ الذئب: شرموښ.

تشريح:- د جذع تفسير كې د فقهاو د مذهب قيد ددې لپاره دې.چه په لغت كې جذع هغې ته وائی.كوم چې د پوره يو كال وي.زعفرانی رحمه الله د حسن بن احمد بن مالك ابو عبدالله الفقيه الزعفرانی دې.دا جامع صغير مرتب دې.او ددوی يو كتاب ،، كتاب الاضاحی،، دې.په هغې كې دوی دا فرمائيلی دی.

## د قربانۍ په اووه شريكانو كښې د يوكس د مركيدو مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَإِذَا اشْتَرٰى سَبْعَةٌ بَقَرَةً او كله چې اووه سړو يوه غوا واخستله لِيُضَحُّوا بِهَا چې ددې قربانی اوكړی فَمَاتَ أَحَدُهُمْ قَبْلَ النَّحْرِ بيا د ذبح نه وړاندې په دوی كې يوكس مړ شو وَقَالَتِ الْوَرَثَةُ و وارثانو اووئيل اذْبَحُوهَا عَنْهُ وَعَنْكُمْ چې تاسو دا دخپل او مړی د اړخه ذبح كړئ أَجْزَأَهُمْ نو دوی له كافی ده وَإِنْ كَانَ شَرِيكُ السِّتَّةِ نَصْرَانِيًّا وكه د شپږو شريك نصرانی وي أَوْ رَجُلًا يا داسې سړې وي يُرِيدُ اللَّحْمَ چې هغه د غوښې اراده كوی لَمْ يُجْزِءْ عَنْ وَاحِدٍ مِنْهُمْ نو په دوی كې د هيڅ چا د اړخه جائز نه ده وَوَجْهُهُ او ددې وجه دا ده أَنَّ الْبَقَرَةَ تَجُوزُ عَنْ سَبْعَةٍ چې غوا د اووه كسانو د اړخه كافی كيږي وَلٰكِنْ مِنْ شَرْطِهِ أَنْ خو ددې شرط دا دې يَكُونَ قَصْدُ الْكُلِّ الْقُرْبَةَ چې د ټولو اراده د قربت (ثواب) وي وَإِنِ اخْتَلَفَتْ جِهَاتُهَا اګرچه د قربت جهات ( اطراف) مختلف وي كَالْأُضْحِيَّةِ وَالْقِرَانِ وَالْمُتْعَةِ لكه قربانی او دم قران او دم تمتع، عِنْدَنَا زمونږ په نيز لِاتِّحَادِ الْمَقْصُودِ مقصود د متحد كيدو په وجه وَهُوَ الْقُرْبَةُ او هغه قربت دې وَقَدْ وُجِدَ هٰذَا الشَّرْطُ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ او دا شرط په ړومبی صورت كې موجود دې. لِأَنَّ التَّضْحِيَةَ عَنِ الْغَيْرِ عُرِفَتْ خكه چې د غير د اړخه قربانی ( وړاندې) معلومه شوې ده قُرْبَةً: په دې حال كې چې دا قربت دې أَلَا تَرٰى آيا ته نه ګورې أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ضَحّٰى عَنْ أُمَّتِهِ[1] چې نبی كريم ﷺ د خپل امت د اړخه قربانی كړې ده عَلٰى مَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ د هغه روايت مطابق كوم چې مونږ وړاندې روايت كړې دې وَلَمْ يُوجَدْ فِي الْوَجْهِ الثَّانِي او دا شرط په دوهم صورت كې موجود نه دې لِأَنَّ النَّصْرَانِيَّ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهَا خكه چې نصرانی د قربت اهل نه دې، وَكَذَا قَصْدُ اللَّحْمِ يُنَافِيهَا او هم دغه ډول د غوښې اراده د قربت منافی ده،. وَإِذَا لَمْ يَقَعِ الْبَعْضُ قُرْبَةً او كله چې بعض قربت واقع نشو. وَالْإِرَاقَةُ لَا تَتَجَزَّأُ فِي حَقِّ الْقُرْبَةِ حالانكه وينه تويول د قربت په حق كې نه ټكړې كيږي لَمْ يَقَعِ الْكُلُّ أَيْضًا نو په ټولو كې به هم قربت نه واقع كيږي فَامْتَنَعَ الْجَوَازُ نو جواز د قربانۍ ممتنع شو وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرَهُ اسْتِحْسَانٌ او دا كوم چې امام محمد رحمه الله ذكر كړې دې.استحسان دې.

حل اللغة ① الاراقة: تويول ② تتجزأ: تقسيميږي ③ القربة: عبادت.

تشريح:- د قربانۍ لپاره ضروری ده.چه دا پوره قربت واقع وي.ګنی ( شريكانو كې به) د يوكس قربانی به هم جائز نه وي.نوكه د يوكس قصد غوښه خوړل وي.نو د هيڅ يوكس قربانی به جائز نه وي.دغه ډول كه يو

---

[1] تقدم تخريجه فی الحج وغيره)

شریکوال هم نصراني وي.نو چونکه هغه د قربت اهل نه دې.نو د هیڅ یوکس قرباني به جائز نه وي.او د قربت په حق کې وینه تویول نه ټکړې کیږي.نو که ددې بعضې برخه قربت نه وي.نو بیا به یوه برخه هم قربت نه وي.بهرحال د قربت نیت ضروري دې.اوکه د قربت جهات بدل شي.نو هیڅ باك نشته.نوکه یوکس د قربانۍ نیت اوکړو.او دوهم کس د دم قران، او دریم د دم تمتع نیت اوکړو.نو جائز ده.ځکه چې قربت کې واړه متحد دي.او د غیر د اړخه قرباني هم قربت دې.لکه څنګه چې د نبي کریمﷺ عمل په دې دلالت کوي.نو معلومه شوه.چه د مړي د اړخه دده وارثانو شریکانو ته د قربانۍ اجازت ورکړو.نو قرباني جائز ده.خو دا حکم استحسان دې.او د قیاس تقاضه دا ده.چه اوس هم قرباني جائز نه وي.فرمائي.

### د قياس تقاضه دا ده،چه قربانۍ اوس هم جائز نه وي

وَالْقِيَاسُ أَنْ لَايَجُوْزَاو قیاس دا دې.چه جائز نه وي وَهُوَرِوَايَةٌاو هم دا یو روایت دې.عَنْ أَبِي يُوْسُفَد امام ابویوسف رحمه الله نه لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ بِالْإِتْلَافِځکه چې دا هلاکاوه سره تبرع ده فَلَايَجُوْزُعَنْ غَيْرِهٖچې دا د خپل ځان نه د علاوه د اړخه جائز نه ده كَالْإِعْتَاقِ عَنِ الْمَيِّتِلکه دمړي د اړخه د آزادول

**حل اللغة:** ① **الاتلاف:** هلاکول ② **تبرع:** احسان ③ **اعتاق:** آزادول ④ **التصدق:** صدقه کول ⑤ **الولاء:** چې ازاد شوې غلام مړ شي نو دهغه ترکه او میراث»

**تشریح:-** د قیاس تقاضه خو دا ده.چه د وارثانو د اجازت باوجود به دا قرباني صحیح نه وي.او د امام ابویوسف رحمه الله یو روایت هم دا دې.ځکه چې د مړي د مرګ نه روسته دده دحصې مالك وارث شو.بیا د وارث د قربانۍ اجازت ورکول په هلاکاوه سره احسان دې.یعني داسې نفلي کار دې.چه دا د مال ضائع کاوه په ذریعه حاصلیږي.او په هلاکاوه باندې احسان د بل د اړخه جائز نه وي.لکه د مړي داړخه آزادول هم جائز نه دي.او وجه هم دا ده.چه په دې کې هلاکاوه سره احسان دې.خو موږ په استحسان باندې عمل اوکړو.

لَكِنَّانَقُوْلُخو موږ وایو الْقُرْبَةُقَدْتَقَعُ عَنِ الْمَيِّتِ چې د مړي د اړخه کله قربت واقع کیږي كَالتَّصَدُّقِ..لکه صدقه کول،

**تشریح:-** او د استحسان دلیل دا دې.چه د مړي د اړخه هم قربت واقع کیږي.لکه څنګه چې د مړي د اړخه صدقه کول، او د مړي د اړخه حج کول دي.ځکه چې وارثانو ته حق شته.چه هغوی د مړي د اړخه د ثواب کار اوکړي. نو ددوی په اجازت سره د مړي برخه هم د نورو شریکانو د برخو په شان قربت شو.نو قرباني به جائز وي.

بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِپه خلاف د آزادولو لِأَنَّ فِيْهِ إِلْزَامَ الْوَلَاءِعَلَى الْمَيِّتِځکه چې دې کې په مړي باندې ولاء لازمول دي

**تشریح:-** پاتې شوه د مړي د اړخه د آزادولو مسئله، نو ددې د عدم جواز وجه دا ده.چه ولاء د آزادونکي لپاره وي.او په مړي کې د مالك جوړیدو اهلیت ختم شوې دې.نو په دې کې چونکه په مړي باندې ولاء لازمول لازمیږي.په دې وجه دا جائز نه ده.او په قربانۍ کې مړي باندې هیڅ لازم نه دي.په دې وجه ددې په جواز کې هیڅ کلام نشته.

### په شريكانو كښې د صغير او د ام ولد شريكيدو مسئله

فَلَوْذَبَحُوْهَاعَنْ صَغِيْرٍفِي الْوَرَثَةِاوکه ذبح ئې کړله دا د هغه بچي د اړخه کوم چې وارثانو کې دې أَوْأُمِّ وَلَدٍ أَدَّهٗ قُرْبَةٌ یا د ام ولد د اړخه جَازَلِمَا بَيَّنَّانو جائز ده.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې وَلَوْمَاتَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ اوکه په شریکانو کې یو مړ شو وَذَبَحَهَا الْبَاقُوْنَ بِغَيْرِإِذْنِ الْوَرَثَةِ قُرْبَةٌنو پاته خلګو دا د وارثانو د اجازت نه بغیر ذبح کړو لَاتُجْزِيْهِمْنو ده له به کافي نه وي لِأَنَّهُ لَمْ يَقَعْ بَعْضُهَاځکه چې ددې بعضې برخه قربت نه دې نو هغه قربت واقع شوې وَفِيْمَاتَقَدَّمَ وُجِدَ الْإِذْنُ مِنَ الْوَرَثَةِاو وړاندې د وارثانو د اړخه اجازت موندې شوې وو، فَكَانَ قُرْبَةٌ واقع شوې وو.



**تشریح:-** که په شریکانو کې څوك صغیر یا ام ولد وي.چه د هغه د اړخه د صغیر پلار یا د ام ولد آقا قرباني اوکړله.یا ئې اجازت ورکړو.نو قرباني جائز ده.یعني ددې دواړو د قربانۍ په ځاروو کې شرکت وو.بیا ددوی مرګ واقع شو.او پلار یا آقا اجازت ورکړو.نو قرباني جائز ده.ځکه چې بچې یا ام ولد کله چې دا مسلمان وي.د قربت او د ثواب لائق او اهل دي.او که په ړومبي صورت کې د وارثانو د اجازت نه بغیر شریکانو قرباني اوکړله.نو د هیڅ چا قرباني جائز نشوه.ځکه چې د عدم اجازت په وجه قربت موجود نه دې.شارحینو هم دغه ډول لیکلي دي..، فتدبر،،

### د قربانۍ د غوښې پخپله خوړل،یا په خلقو خوړل،یا د اوچولو حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله فرمائیلي دي وَيَأْكُلُ مِنْ لَحْمِ الْأُضْحِيَةِو اودې خوري د قربانۍ د غوښې نه وَيُطْعِمُ الْأَغْنِيَاءَ وَالْفُقَرَاءَوَيَدَّخِرُ او خوراك دې اوکړي.په مالدارو اوغریبانانو، لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُوَالسَّلَامُ كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ أَكْلِ لُحُوْمِ الْأَضَاحِيِ د نبي کریمﷺ د فرمان په وجه، چې ما به تاسو د قربانۍ د غوښو نه منع کولې فَكُلُوْامِنْهَا(¹)نو د دې نه خوري وَادَّخِرُوْا. او ذخیره کوئ ( ایږدئ). وَمَتٰى جَازَأَكْلُهٗاوهرکله چې ددې خوراك جائز دې وَهُوَغَنِيٌّ حالانکه هغه توانګر دې جَازَأَنْ يُؤْكِلَهٗ غَنِيًّانوجائز دی دا چې دا په توانګر اوخوري.

**تشریح:-** یعني پخپله خوړل او په بل خوړل، او اوچول ( او ساتل) واړه جائز دي.

### د دريمې حصې صدقه كول مستحب دي

قَالَ وَيُسْتَحَبُّ أَنْ لَايَنْقُصَ الصَّدَقَةَو مستحب دی چې صدقه کمه نکړي. عَنِ الثُّلُثِد دریمې برخې (حصې) نه، لِأَنَّ الْجِهَاتِ ثَلَاثَةٌ:ځکه چې جهات درې دی الْأَكْلُ وَالْإِدِّخَارُلِمَا رَوَيْنَاخوړل، او جمع کول،د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړې دې ،وَالْإِطْعَامُ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰىاو په خوړل د الله تعالی د فرمان په وجه ﴿وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ﴾ ﴿الحج:۳٦﴾ چې قانع (فقیر) او معتر( سوال کونکي) باندې خوراك اوکړئ فَانْقَسَمَ عَلَيْهِمْ أَثْلَاثًا نو تقسیمیږي به دا ( د قربانۍ غوښه په) دې جهاتو کې ، په دریو برخو کې

**حل اللغة:** ① **الادخار:** ذخیره کول ② **الاطعام:** په بل چا باندې خوراك کول»

**تشریح:-** د دریمې برخې (حصې) صدقه کول مستحب دی.ځکه چې دلته درې اړخه دی.① پخپله خوړل ② په بل خوړل ③ ایخودل.ـ نو د هر اړخ په برخه کې دریمه راغله.نو صدقه دې د دریمې نه نه کمه وي.قانع صبر کونکې،څوك چې په نورو خلګو خپل اړتیا نه ښکاره کوي.معتر: بې صبره،کوم چې په نورو پورې اینخلي.او د غوښتلو عادت ئې وي.

### د قربانۍ د څرمنې حكم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَيَتَصَدَّقُ بِجِلْدِهَاو صدقه دې کړي د قربانۍ څرمن لِأَنَّهٗ جُزْءٌ مِنْهَاځکه چې څرمنه د قربانۍ جزء دې أَوْيَعْمَلُ مِنْهُ آلَةًیا دې د څرمنې نه داسې شئ جوړ کړي تُسْتَعْمَلُ فِي الْبَيْتِکوم چې په کور کې استعمال کړې شي كَالنِّطَعِ وَالْجِرَابِ وَالْغِرْبَالِلکه دسترخوان، او تهیلۍ، او غلبیل وَنَحْوِهَا، او ددې پشان، لِأَنَّ الْإِنْتِفَاعَ بِهٖ غَيْرُ مُحَرَّمٍځکه چې څرمنې نه نفع اخستل حرام نه دی وَلَابَأْسَ بِأَنْ يَشْتَرِيَ بِهٖاو هیڅ باك نشته.چه د څرمنې په بدله کې هغه شئ واخلي.مَا يُنْتَفَعُ بِعَيْنِهٖ فِي الْبَيْتِکوم نه چې په کور کې ددې دعین نه نفع واخستلې شي مَعَ بَقَائِهٖ د.ددې شئ د پاته پاتې کیدو سره سره، اسْتِحْسَانًادا حکم په طریقه د استحسان دې وَذٰلِكَ .او دا د هغې پشان دې

[1]) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه مسلم فى الأضاحى رقم ۲۹)_ ۱)

مِثْلُ مَاذَكَرْنَاکوم چې موږ ذکر کړې دي.( یعنی غلبیل او دسترخوان وغیره سره دې بدل کړي)

**حل اللغة:** ① **جلد**: څرمن ② **النطع**: دسترخوان ③ **الجراب**: تهیلۍ ④ **الغربال**: غلبیل﴾

**تشریح:**- د خپلې قربانۍ څرمن پخپله کور کي ایخودل، او فائده اخستل جائز دی. خو غوره دا ده. چه صدقه کړې شي. بهرحال پخپله هم فائده اخستل جائز دی. او د څرمنې په بدله کي داسې شئ هم اخستلې شي. کوم چي د څرمنې پشان وی. چه ددې څیزونو پاته ساتلو سره سره ددې نه فائده اخستلې شي. لکه کټ، او صندخ او مصلی ( جا نماز) وغیره. البته که د روپو پیسو په بدله کي ئې څرمن خرڅه کړله. یا ئې د داسې شئ په بدله کي ( خرڅه کړله). چه دهغې نه هغه وخت نفع اخستلې شي. چه دغه شئ ختم شي. نو اوس به د څرمن قیمت صدقه کول واجب وی. او په دې باب کي چي کوم حکم د څرمن دي. هم هغه د غوښې دي.

لِأَنَّ لِلْبَدَلِ حُكْمَ الْمُبْدَلِ خکه چې بدل لپاره د مبدل حکم دي وَلَايَشْتَرِي بِهِ مَالَايَنْتَفِعُ بِهِ. او اخلی به نه څرمن سره هغه شئ چې دې سره نفع وانخستلې شی إِلَّابَعْدَاسْتِهْلَاكِهِ خو ددې د هلاکاوه ( ورانولو) نه پس، كَالْخَلِّ وَالْأَبَازِيرِ لکه سرکه، او مصالحې، اعْتِبَارًابِالْبَيْعِ بِالدَّرَاهِمِ دراهمو په بدله بیع باندې قیاس کاوه سره،

**حل اللغة:** ① **استهلاک**: هلاکول ② **الخل**: سرکه ③ **الابازیر**: مصالحې﴾

**تشریح:**- کوم چې د مبدل حکم وی. هم هغه د بدل حکم وی. مبدل څرمن ده. او بدل هغه دې. کوم چې د څرمن په بدله کي واخستلې شي.

وَالْمَعْنَى فِيهِ او وجه دا ده. أَنَّهُ تَصَرَّفَ عَلَى قَصْدِ التَّمَوُّلِ چې دا د تمول ( مال حاصلولو) قصد سره تصرف دي وَاللَّحْمُ بِمَنْزِلَةِ الْجِلْدِ فِي الصَّحِيحِ. او غوښه د څرمنې په درجه کي ده. د صحیح قول مطابق فَلَوْبَاعَ الْجِلْدَ أَوِاللَّحْمَ بِالدَّرَاهِمِ او که څرمن او دراهم ئې د دراهمو په بدل خرڅ کړل أَوْبِمَالَايَنْتَفِعُ بِهِ یا ئې د داسې شئ په بدله ( خرڅ کړل) چې هغې نه نفع نشی اخستلې إِلَّابَعْدَاسْتِهْلَاكِهِ خو د هغې د هلاکاوه نه روسته تَصَدَّقَ بِثَمَنِهِ، نو د څرمنې قیمت دې صدقه کړي.

**حل اللغة:** ① **تمول**: مال حاصلول ② **ثمن**: قیمت ③ **الجلد**: څرمن ④ **اللحم**: غوښه﴾

**تشریح:**- کله ئې چې د دراهمو په بدله څرمن خرڅه کړله. یا ئې د داسې شئ په بدله کي خرڅه کړله. چه د هغې نه انتفاع دهغې د هلاکاوه نه روسته کیدای شی. نو دا دده داسې تصرف دې. چه په دې کي د تمول ( مالداره کیدو) قصد او اراده ده. حالانکه قربت کي د تمول قصد جائز نه دې. او کله چې ده داسې اوکړل. نو د هغې قیمت صدقه کول واجب شو.

لِأَنَّ الْقُرْبَةَ انْتَقَلَتْ إِلَى بَدَلِهِ خکه چې قربت د هغې بدل ارخ ته منتقل شوې دي.

**تشریح:**- یعنی قربانی کونکې د تمول ارادې سره د بدل مالك نشي کیدې. نو اوس دلته صرف د قربت جهت پاته پاتې شو. او ددې قربت طریقه صرف دا ده. چه ددې صدقه اوکړې شي. هم دا مرغینانی رحمه الله پخپلو دې الفاظو سره تعبیر کړې دي. ﴿لأن القربة إنتقلت إلى بدله﴾.

### د قربانۍ د څرمنې خرڅولو حکم

وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبی کریم ﷺ فرمان مَنْ بَاعَ جِلْدَ أُضْحِيَّتِهِ چا چې د خپلې قربانۍ څرمن خرڅه کړله. فَلَا أُضْحِيَّةَ لَهُ[1]. نو د هغه قربانی نشته، يُفِيدُ كَرَاهَةَ الْبَيْعِ لَهُ د بیع د کراهت فائده ورکوی أَمَّا الْبَيْعُ جَائِزٌ بهرحال بیع جائز ده لِقِيَامِ الْمِلْكِ د ملك قائمیدو په وجه، وَالْقُدْرَةِ عَلَى التَّسْلِيمِ او په سپارلو باندې د قدرت په وجه قَالَ وَلَايُعْطِي

[1] من حدیث أبی هریرة رضی الله عنه أخرجه الحاکم فی المستدرک فی تفسیر سورة الحج (۳۸۹\۲)_



اووم توك أَجْرَةَ الْجَزَّارِ مِنَ الْأُضْحِيَّةِ او قربانی کونکې به د قربانۍ نه قصاب ته مزدوری نه ورکوی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه لِعَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت علی رضی الله عنه ته چې تَصَدَّقْ بِجِلَالِهَا وَخِطَامِهَا د قربانۍ کته او ددې واګې صدقه کړه وَلَاتُعْطِ أَجْرَ الْجَزَّارِ مِنْهَا شَيْئًا [1]او ددې څخه به هیڅ څه قصاب ته په مزدورۍ کي نه ورکوې، وَالنَّهْيُ عَنْهُ نَهْيٌ عَنِ الْبَيْعِ أَيْضًا او نهی ددې ( اجرت کي د ورکولو) نه د بیع نه هم نهی ده لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْبَيْعِ. ،..خکه چې دا ( اجرت کي ورکول ) د بیع په درجه کي دی

**حل اللغة:** ① **الجزار**: قصاب ② **التسلیم**: سپارل ③ **جلال**: کته ④ **خطام**: واهګې﴾

**تشریح:**- دلته یو اعتراض واردیدو. چه په حدیث کي خو د څرمنې خرڅولو په جواز باندې سخت وعید واردیدو. او تا اوونیل. چه بیع جائز ده. چه ددې تفصیل اوس ذکر شو. نو وې فرمائیل. چه ددې حدیث مطلب دا نه دی. چه بیع هم جائز نه ده. بلکه مطلب دا دې. چه بیع کي کراهت دې. او د بیع د جواز دلیل دا دې. چې د قربانۍ کونکی ملکیت موجود دې. او د مبیع په سپارلو باندې هم ده ته قدرت حاصل دې. نو بیع جائز ده. بهرحال بیع کي کراهت دې. اوکه بیع اوشی. نو د تیرشوی بیان مطابق به ددې قیمت صدقه کول واجب وی. هرکله چې بیع مکروه ده. نو قصاب ته په مزدورۍ کي څرمن ورکول هم مکروه دی. خکه چې دا هم د بیع په درجه کي دی.

وَيُكْرَهُ او مکروه دی أَنْ يَجُزَّ صُوفَ أُضْحِيَّتِهِ دا چې دې د خپلې قربانۍ وړۍ کټ کړی وَيَنْتَفِعَ بِهِ قَبْلَ أَنْ يَذْبَحَهَا ..او ددې نه نفع واخلي. ددې د ذبح کاوه نه وړاندې لِأَنَّهُ الْتَزَمَ إِقَامَةَ الْقُرْبَةِ خکه چې ده د قربت په قائمولو کي التزام کړې دي بِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا د قربانۍ په ټولو اجزاو سره، بِخِلَافِ مَابَعْدَ الذَّبْحِ په خلاف د ذبح نه د روستو ( استعمالولو ،لِأَنَّهُ أُقِيمَتِ الْقُرْبَةُ بِهَا، خکه چې قربانۍ سره قربت قائم کړې شوې دي كَمَا فِي الْهَدْيِ لکه څنګه چې هدی ( کي هم دا حکم دي وَيُكْرَهُ أَنْ يَحْلُبَ لَبَنَهَا او مکروه دی. چه ددې شیدې اولوشی فَيَنْتَفِعَ بِهِ نو ددې نه نفع واخلی كَمَا فِي الصُّوفِ لکه څنګه چې وړۍ کي ( حکم دې).

**حل اللغة:** ① **صوف**: وړۍ ② **یحلب**: لوشی ③ **لبن**: شیدې ،شوده﴾

**تشریح:**- د قربانۍ نه وړاندې ددې وړۍ کټ کول، او ددې نه نفع اخستل مکروه دی. البته د قربانۍ نه روستو جائز دی. خکه چې اوس قربت ادا شوې دې. او د پیو لوشلو هم دا حکم دې.

### قربانی پخپله ذبح کول افضل دی

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَالْأَفْضَلُ او غوره دا ده أَنْ يَذْبَحَ أُضْحِيَّتَهُ بِيَدِهِ چې خپله قربانی پخپل لاس ذبح کړی إِنْ كَانَ يُحْسِنُ الذَّبْحَ که دې بنه ذبح کاوه باندې پوهیږی وَإِنْ كَانَ لَايُحْسِنُهُ او که دې بنه ذبح کول نشی کولې فَالْأَفْضَلُ أَنْ يَسْتَعِينَ بِغَيْرِهِ نو افضل دا دی. چه د خان نه د علاوه دې کومك واخلی وَإِذَا اسْتَعَانَ بِغَيْرِهِ ذَنْبٌ او کله چې ده د غیر نه کومك واخستلو يَنْبَغِي أَنْ يَشْهَدَهَا بِنَفْسِهِ نو مناسب دا ده. چه هلته دې پخپله حاضر شی ،لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه، لِفَاطِمَةَ قُومِي فَاشْهَدِي أُضْحِيَّتَكِ حضرت فاطمې رضی الله عنها ته چې اودریږه. خپلې قربانۍ سره حاضره شه فَإِنَّهُ يُغْفَرُ لَكِ بِأَوَّلِ قَطْرَةٍ مِنْ دَمِهَا كُلُّ ذَنْبٍ[2] خکه. چه ددې د وینې ړومبی څاسکی سره به ستا هره ګناه معاف کولای شی

**حل اللغة:** ① **ید**: لاس ② **قطرة**: څاڅکې ③ **دم**: وینه ④ **ذنب**: ګناه﴾

[1] قال الزیلعی رحمه الله أخرجه الجماعة إلا الترمذی (نصب: ۵۱\۴)_

[2] من حدیث عمران رضی الله عنه أخرجه الحاکم فی المستدرک (۲۲۲\۴)_

تشریح:- که پخپله ذبح کاوه باندې پوهیږي.نو پخپله دې ذبح کړي.اوکه نه پوهیږي.نو د بل نه دې کومك حاصل کړي.خو افضل هم دا ده.چه پخپله هلته حاضر وي.لکه څنګه چې د مذکوره حدیث نه ثابته ده.

## په کتابي سره د ذبح کولو حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَيُكْرَهُ أَنْ يَذْبَحَهَا الْكِتَابِيُّ او مکروه دي.چه قرباني کتابي ذبح کړي لِأَنَّهُ عَمَلٌ هُوَ قُرْبَةٌ خکه چې ذبح داسې عمل دې.چه قربت دې وَهُوَ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهَا او کتابي د قربت اهل نه دې فَلَوْ أَمَرَهُ او که هغه ته ئې حکم اوکړو . فَذَبَحَ نو هغه ذبح کړو جَازَ نو جائز ده. لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الذَّكَاةِ، خکه چې کتابي د ذکاة د اهل څنې دې وَالْقُرْبَةُ أُقِيمَتْ بِإِنَابَتِهِ وَنِيَّتِهِ او قربت قائم شوې دې د مسلم په نیابت سره، او دده په نیت کاوه سره،

تشریح:- د کتابي ذبیحه اګرچه حلاله ده.خو په ده باندې ذبح کول مکروه دي.خکه چې دا یو قربت دې.او کتابي د قربت اهل نه دې.بهرحال که مسلمان کتابي ته قربانۍ ذبح کاوه حکم ورکړو.نو قرباني به جائز نه وي.خکه چې مسلمان دې نائب جوړ کړي دي.او مسلمان د قربت نیت کړې دي.نو دده نیت کافي دي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَمَرَ الْمَجُوسِيَّ په خلاف ددې کله ئې چې مجوسي ته حکم ورکړې وي لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ الذَّكَاةِ خکه چې مجوسي د ذکاة د اهل څنې نه دې إِفْسَادًا فَكَانَ نو دا افساد (فاسدول) شو.

تشریح:- اوکه مسلمان مجوسي ته د ذبح حکم ورکړو.نو چونکه مجوسي د ذکاة اهل نه دې.نو قرباني به جائز نه وي.خکه چې دا ذکاة نه دې.بلکه افساد دې.خو چونکه دا افساد د مالك په حکم دې.په دې وجه به مجوسي باندې ضمان واجب نه وي.

## په غلطۍ سره د یو بل د قربانۍ ذبح کولو حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا غَلِطَ رَجُلَانِ اوکله چې دوو سړو غلطي اوکړله فَذَبَحَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أُضْحِيَّةَ الْآخَرِ نو ذبح کړله په دوی دواړو کې هریوډبل قرباني أَجْزَأَ عَنْهُمَا نو دا ددوی دواړو د اړخه کافي ده وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِمَا او په دوی دواړو باندې ضمان نشته وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دې، وَأَصْلُ هَذَا او ددې اصل دا دې أَنَّ مَنْ ذَبَحَ أُضْحِيَّةَ غَيْرِهِ چې کوم کس د خان نه د علاوه قرباني ذبح کړي بِغَيْرِ إِذْنِهِ د هغه د اجازت نه بغیر لَا يَحِلُّ لَهُ ذَلِكَ ،نو دا دده لپاره حلال نه ده وَهُوَ ضَامِنٌ لِقِيمَتِهَا.او هغه ددې د قیمت ضامن کیږي.

تشریح:- دوو سړو د قربانۍ لپاره خپله خپله وزه اخستې وې.بیا په ذبح کاوه کې غلطي واقع شوه.زید د خالد وزه ذبح کړله.او خالد د زید ،نو اوس څه حکم دې؟ نو په دې کې د استحسان او قیاس تعارض دې.

وَلَا يُجْزِئُهُ عَنِ الْأُضْحِيَّةِ فِي الْقِيَاسِ او د قیاس مطابق به دا ده ته د قربانۍ نه کافي کیږي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې وَفِي الِاسْتِحْسَانِ يَجُوزُ او په استحسان کې جائز ده وَلَا ضَمَانَ عَلَى الذَّابِحِ او په ذبح کونکي باندې ضمان نشته وَهُوَ قَوْلُنَا او هم دا زمونږ قول دې.

تشریح:- قیاس غواړي.چه د هیڅ یوکس قرباني جائز نه وي.او هر یو باندې ضمان واجب وي.او هم دا د امام زفر رحمه الله مذهب دې.او استحسان غواړي.چه د هر یو قرباني جائز وي.اوپه هیڅ یوکس باندې ضمان واجب نه وي.او هم دا زمونږ مذهب دې.

وَجْهُ الْقِيَاسِ د قیاس دلیل دا دې أَنَّهُ ذَبَحَ شَاةَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ چې ده ذبح کړې ده د خان د علاوه چیلۍ، دهغه د حکم نه بغیر فَيَضْمَنُ ،نو ذبح کونکې به ضامن وي كَمَا إِذَا ذَبَحَ شَاةً اشْتَرَاهَا الْقَصَّابُ لکه کله ئې چې ذبح کړې وي هغه چیلۍ، چې دا قصاب اخستې ده.



تشریح:- د قیاس دلیل دا دې.چه کله یو کس دچا وزه د هغه د اجازت نه بغیر ذبح کړي.نو ذبح کونکې به ضامن وي.لکه مثلاً یو قصاب یوه وزه واخستله.چه په یوه موقع دا ذبح کړي.او غوښه ئې وپلوري .او بل چا دا ذبح کړله.نو په ذبح کونکي باندې ضمان واجبیږي.دغه ډول دلته هم هر یو باندې ضمان واجبیدل پکار دي.

## استحساني دلیل

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ د استحسان دلیل دا دې أَنَّهَا تَعَيَّنَتْ لِلذَّبْحِ چې قرباني د ذبح کاوه لپاره متعین ده لِتَعَيُّنِهَا لِلْأُضْحِيَّةِ د قربانۍ لپاره متعین کاوه په وجه، حَتَّى وَجَبَ عَلَيْهِ أَنْ يُضَحِّيَ بِهَا بِعَيْنِهَا فِي أَيَّامِ النَّحْرِ. تردې چې په مالك باندې واجب ده.چه هغه بعینه هم دا د قربانۍ په ورځو کې قرباني کړي. وَيُكْرَهُ أَنْ يُبْدِلَ بِهَا غَيْرَهَا او مکروه ده. چې هغه ددې په ذریعه ددې نه علاوه سره بدله کړي فَصَارَ الْمَالِكُ مُسْتَعِينًا نو شو مالك کومك غوښتونکې، بِكُلِّ مَنْ يَكُونُ أَهْلًا لِلذَّبْحِ دهر هغه سړي نه چې هغه د ذبح اهل وي آذِنًا لَهُ دَلَالَةً دلالتاً هغه ته اجازت ورکونکې وي لِأَنَّهَا تَفُوتُ خکه چې قرباني به فوت کیږي بِمُضِيِّ هَذِهِ الْأَيَّامِ ددې ورځو (د قربانۍ) تیریدو سره وَعَسَاهُ يَعْجِزُ عَنْ إِقَامَتِهَا بِعَوَارِضَ او کیداې شي، چې دې د څه عوارضو په وجه د قربانۍ کاوه نه عاجز شي فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا إِذَا ذَبَحَ لکه کله ئې چې ذبح کړې وي، شَاةً شَدَّ الْقَصَّابُ رِجْلَهَا هغه وزه چې قصاب دهغې پښې تړلې وي.

تشریح:- مونږ په استحسان باندې عمل کاوه سره قرباني جائز کړې ده.او ضمان مو نه دې واجب کړې.دا استحساني دلیل دې.حاصل د دلیل دا دې.چه په دې کې هره یوه وزه دکوم کار لپاره متعین وه.هغه کار اوشو.یعنی دا وزه قربانۍ کې د ذبح کاوه لپاره متعین وې.او دواړه په قربانۍ کې ذبح کړې شوې.خکه چې کومه وزه وغیره قربانۍ لپاره متعین وي.نوپه دې کې ګویا مالك دلالتاً د هر هغه کس نه کومك غواړي.کوم چې د ذبح کاوه طریقه پیژني.او د ذبح اهل وي.او ګویا دلالتاً هر داسې سړي ته دې د ذبح کاوه اجازت ورکوي.خکه دا خبره فیصله شوې ده.چه د قربانۍ ورځو تیریدو سره قرباني فوت کیږي .او ډیر وخته داسې کیږي.چه سړې پخپله د قربانۍ کاوه نه عاجز کیږي.نوهغه له د نورو نه کومك اخستل ضروري وي.نو د مذکوره حکم بالکل داسې شو.لکه چې یو قصاب د وزه پښې اوتړلې.او د ذبح تیاري ئې اوکړله.چه بل کس تسمیه سره په دې باندې چاړه راښکله.نو په دې چاړې راښکونکي باندې به ضمان واجب نه وي.خکه چې دا خو د قصاب ( ذبح کاوه دپاره) معین شوه.دغه ډول به دلته هم په زید او خالد کې په هیڅ یوکس باندې ضمان واجب نه وي.او د هر یوکس قرباني به صحیح وي.

- کله چې یو غریب د قربانۍ په نیت یو حیوان (څاروې) واخستلو.نو په ده واجب دی.چه دا ذبح کړي.او دغه ډول که یوکس پخپل خان قرباني واجب کړله.یعنی د قربانۍ نذر ( منخته) ئې اوکړو.او ددې لپاره ئې څه حیوان (څاروې) واخستلو.نو دا نذر کونکې که مالداره وي.اوکه غریب وي.په ده واجب دی.چه هم دا وزه ذبح کړي.
- اوکه توانګر د قربانۍ لپاره یوه وزه واخستله.نو په ده باندې واجب د اخستلو په وجه نه دی.بلکه د مالدارۍ په وجه دی.نو په ده اګرچه واجب نه دی.چه هم دا اخستې شوې وزه ذبح کړي.خو بدلول هم مکروه دی.مرغیناني رحمه الله رومبی دواړه صورتونه په «حتی وجب علیه أن یضحی.....إلخ» سره او دریم صورت په «و یکره أن یبدل بها غیرها» سره بیان کړې دي.

## د یو سوال جواب

فَإِنْ قِيلَ نوکه اعتراض اوکړې شي يَفُوتُهُ أَمْرٌ مُسْتَحَبٌّ وَجه په دې سره یو مستحب امر فوت کیږي :هُوَ أَنْ يَذْبَحَهَا بِنَفْسِهِ او هغه دا دې.چه هغه دې پخپله ذبح کړي أَوْ يَشْهَدَ الذَّبْحَ یا د ذبح په وخت حاضر وي فَلَا يَرْضَى بِهِ نو هغه به

په دې سره نه راضي کيږي.

تشريح:- دا يو اعتراض دې.چه تا اوفرمائيل.چه د هر يو قرباني به جائز وي.حالانكه دلته د مالك نه راضي كيدل ښكاره دى.ځكه چې دې سره يو مستحب كار پريښودې شى.اوهغه پخپله ذبح كول دى.اوكه ددې نه عاجز وى.نو د ذبح په وخت هلته پخپله حاضريدل دى.اوهغه په دې دواړوكي يو كار هم اونكړې شو.نو معلومه شوه.چه هغه به راضى نه وى.نو بيا به قربانى جائزنه وى.

قُلْنَا موږ ځواب وركوو يَحْصُلُ لَهُ بِهِ مُسْتَحَبَّانِ آخَرَانِ چې دده لپاره نور دوې (دوه) مستحب حاصليږى صَيْرُورَتُهُ مُضَحِّيًا لِمَا عَيَّنَهُ جوړيدل دده قربانى كونكې د هغه څاروى، كوم چې ده متعين كړې دې، وَكَوْنُهُ مُعَجِّلًا بِهِ فَيَرْتَضِيهِ او دده په ذبح كې جلتى كونكې،نو هغه به په دې سره راضى وى.

تشريح:- ددې ځواب ئې وركړو.چه أو دا صحيح ده.خو د يو مستحب پريخودو سره ده ته دوې (دوه) مستحب حاصليږى.① د قربانئ لپاره چې كومه وزه متعين شوې وه.د هغې قربانى اوكړې شوه.او دا بهرحال مستحب دى.② د واجب په ادا كاوه كې جلتى كول، او جلتوالې اوشو.او دا مستحب دى.هركله چې دوې (دوه) مستحب ده ته حاصل شو.نو هغه به په منډه راضى كيږى.

## څلور مسئلې چې په دې كښې استحسان باندې عمل كولاې شي

وَلِعُلَمَائِنَا رَحِمَهُمُ اللهُ مِنْ هَذَا الْجِنْسِ مَسَائِلُ اسْتِحْسَانِيَّةٌ او زموږ عالمانو رحمهم الله لپاره ددې جنس استحسانى مسئلې دى وَهِيَ أَنَّ مَنْ طَبَخَ لَحْمَ غَيْرِهِ او هغه دا دى.چه چا پخه كړله د ځان نه د علاوه غوښه أَوْطَحَنَ حِنْطَتَهُ يا ئې اوړه كړل د هغه غنم، أَوْرَفَعَ جَرَّتَهُ يا ئې اوچت كړو د هغه چاټى فَانْكَسَرَتْ نو دا ماته شوه أَوْحَمَلَ عَلَى دَابَّتِهِ فَعَطِبَتْ يا ئې بار راوړو د هغه په څاروى باندې نو دا حيوان (څاروې) هلاك شو كُلُّ ذَلِكَ بِغَيْرِ أَمْرِ الْمَالِكِ دا واړه كارونه دمالك د اجازت نه بغير اوشو يَكُونُ ضَامِنًا،....نو هغه به ضامن وى.

حل اللغة: ① طبخ: پخه كړله ② طحن: اوړه كړل ③ حنطة: غنم ④ دابة: حيوان (څاروې) ⑤ ضامن: تاوانى ﴾

تشريح:- دلته مرغينانى رحمه الله څلور داسې مسئلې پيش كوى.چه په دې كې زموږ عالمانو په استحسان باندې عمل كړې دې.او قياس ئې پريښودې دې.اوهغه څلور مسئلې دا دى① زيد د يوكس غوښه اوچته كړله.او پخه ئې كړله.نو زيد به ضامن وى.② زيد د خالد غنم اوچت كړل.او اوړه ئې كړل.نو زيد به ضامن وى. ③ زيد د خالد د سركې نه ډكه چاټئ اوچته كړله.چه په دې سره دا ماته شوه.نو په زيد به ضمان واجب وى. ④ زيد د خالد په اس باندې د هغه بوج بار كړو.چه دې سره اس مړ شو.نو په زيد به ضمان واجب وى.ځكه چې دې ټولو صورتونو كې خالد زيد ته اجازت نه دې وركړې.بلكه هغه دا كارونه پخپله پوره كړل.چه ددې په وجه دخالد نقصان اوشو.نو په زيد به ضمان واجب وى.خوكه اجازت وى.نو بيا به حكم بل شان وى.چه دا مرغينانى رحمه الله روستو بيانوى.لكه چې فرمائى.

## استحسانا د عدم ضمان صورتونه

وَلَوْوَضَعَ الْمَالِكُ اللَّحْمَ فِي الْقِدْرِ او كه مالك غوښه په كټوئ كې كيخودله وَالْقِدْرَ عَلَى الْكَانُونِ او كټوئ ئې په چولها (نغرى) باندې (كيخودله). وَالْحَطَبَ تَحْتَهُ او ددې لاندې ئې خاشى (خشاك) (كيخودو). أَوْجَعَلَ الْحِنْطَةَ فِي الدَّوْرَقِ يا مالك غنم په پيك (د ميچن په ټوكرئ) كې كيخودل وَرَبَطَ الدَّابَّةَ عَلَيْهِ او حيوان (څاروې) ئې په دې پيك باندې اوتړلو أَوْرَفَعَ الْجَرَّةَ يا مالك چاټئ اوچته كړله وَأَمَالَهَا إِلَى نَفْسِهِ او دا ئې خپل ځان اړخ ته راكږه كړله أَوْ حَمَّلَ عَلَى دَابَّتِهِ يا مالك پخپل څاروى باندې بوج بار كړو فَسَقَطَ فِي الطَّرِيقِ نو هغه په لاره كې پريوتلو، فَأَوْقَدَ هُوَ النَّارَ فِيهِ نو هغه په دې (نغرى) كې اور بل كړو، وَطَبَخَهُ نو غوښه ئې پخه كړله أَوْسَاقَ الدَّابَّةَ يا ئې حيوان (څاروې) اوشړلو، فَطَحَنَهَا، نوغنم ئې اوړه كړل أَوْأَعَانَهُ عَلَى رَفْعِ الْجَرَّةِ يا ئې دده كومك اوكړو.په چاټئ اوچتولو باندې



فَانْكَسَرَتْ فِيمَا بَيْنَهُمَا نو دا چاټئ ددوى دواړو په منځ كې ماته شوه. أَوْحَمَلَ عَلَى دَابَّتِهِ يا هغه بوج په خپل څاروى باندې كيخودو مَا سَقَطَ كوم چې غورځيدلې وو فَعَطِبَتْ نو حيوان (څاروې) هلاك شو، لَايَكُونُ ضَامِنًا فِي هَذِهِ الصُّوَرِ كُلِّهَا اسْتِحْسَانًا نو په دې ټولو صورتونو كې به هغه استحسانا ضامن نه وى لِوُجُودِ الْإِذْنِ دَلَالَةً دلالتا د اجازت موجود كيدو په وجه

حل اللغة: ① القدر: كټوئ ② الكانون: ديګدان (نغرې)، چولهه ③ الحنطة: غنم ④ الحطب: خشاك، لرګى ⑤ عطبت: چيندك وهل ،ټوكر وهل ⑥ دورق: (پيك) دا يو ګول صندخ شان وى.چه دا د ميچن سربيره لګيدلې وى.په دې كې غله پخپله ميچن ته ورځى ⑦ الجرة: چاټئ ﴾

تشريح:- په مخكې زمانه كې به ميچن غوښى وغيره باندې چلولې شو.او اوس خو بجلئ سره چلولې شى.بهرحال حكم د دواړو يو دې.په مخكنى څلورو صورتونو كې ئې وئيلى وو.چه د اجازت نه كيدو په وجه ضمان واجب دې.خو په دې صورتونو كې چونكه دلالتا اجازت ملاو شوې دې.په دې وجه به هيڅ صورت كې ضمان واجب نه وى.

① مالك غوښه په كټوئ كې واچوله.او په چولها (نغرى) باندې ئې كيخوده.او په چولها كې ئې لرګى او خاشى (خشاك) وغيره كيخودل.نو دا ددې خبرې دليل دې.چه هغه دا پخول غواړى.نو زيد په دې كې ماچس (تيلې) اووهلو (اور ئې اولګولو) او غوښه ئې پخه كړله.نو په زيد به ضمان واجب نه وى.دلالتا د اجازت موجود كيدو په وجه.② مالك په دورق (ټوكرئ) كې غنم واچول.زيد بټن اووهله.چه په دې سره ميچن (د اوړو مشين) چالو شو.او غنم اوړه شو.نو زيد به ضامن نه وى.ځكه چې دلالتا اجازت موجود دې.③ مالك خپله چاټئ اوچتول اوغوښتل.او دا ئې خپل ځان اړخ ته اوچتولو لپاره راكږه كړله.زيد كومك اوكړو.چه چاټئ اوچته كړې.اتفاق سره دا چاټئ ماته شوه.نو په زيد به ضمان واجب نه وى.ځكه چې دلالتا اجازت موجود دې.④ مالك پخپل اس باندې بوج بار كړو.اتفاق سره دا بوج لاره كې پريوتلو.نو زيد دا غورځيدلې بوج په اس باندې كيخودو. اتفاق سره دا اس مړ شو.نو په زيد به ضمان واجب نه وى.ځكه چې دلالتا اجازت موجود دې.او دا حكم استحسان دې.

## د مذكوره مسئلې وضاحت

إِذَا ثَبَتَ هَذَا هركله چې دا خبره ثابته شوه فَنَقُولُ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ نو موږ د كتاب په مسئله كې وايو: ذَبَحَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أُضْحِيَّةَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ صَرِيحًا چې په دوى دواړو كې هر يوكس د ځان نه د علاوه قربانى دهغه د ښكاره اجازت نه بغير ذبح كړې ده فَهِيَ خِلَافِيَّةُ زُفَرَ بِعَيْنِهَا نو دا بعينه د امام زفر رحمه الله اختلافى مسئله ده وَتَتَأَتَّى فِيهَا الْقِيَاسُ وَالِاسْتِحْسَانُ او په دې كې به قياس او استحسان جارى كيږى كَمَا ذَكَرْنَا.....لكه څنګه چې موږ ذكر كړى دى.

تشريح:- مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه هركله دا څلور واړه استحسانى مسئلې معلومې شوې.نو د قدورى كتاب مسئله پيژندل آسان شو.ځكه چې هغې كې هم زيد د خالد وزه د ښكاره اجازت نه بغير ذبح كړې ده.البته دلالتا اجازت موجود دې.نو په دې كې به هم هغه حكم وى.كوم چې ذكر شوې دې. يعنى د قياس تقاضه به بل شان وى.لكه څنګه چې د امام زفر رحمه الله قول دې.او د استحسان تقاضه بل شان ده.چه ددې تفصيل تير شو.

## په غلطئ سره د يو بل قربانى ذبح كولو نه روسته د خوراك نه وړاندې څه حكم دې ؟

فَيَأْخُذُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَسْلُوخَةً مِنْ صَاحِبِهِ نو اخلى به په دوى كې هريو د خپل انډيوالان نه خپله څرمن اوښكلې شوې وزه وَلَا يُضَمِّنُهُ او انډيوال به ضامن نه ګرځوى، لِأَنَّهُ وَكِيلُهُ فِيمَا فَعَلَ دَلَالَةً ځكه چې هغه دلالتا پخپل كار كې دده وكيل دې.

**حل اللغة:** ① مسلوخة: څرمن ويستلې شوې حيوان (څاروې) ﴾

**تشريح:-** بهرحال استحساناً قرباني جائز شوه.خو اوس څه حكم دې؟ نو وې فرمائيل.چه دوى دواړو اوس غوښه نه ده خوړلې.بلكه دواړو څرمن اوښكلې ده.او معلومه شوه.چه صورتِ حال داسې دى.نو حكم دا دې.چه زيد دې د خالد نه خپله وزه واخلى.او خالد دې د زيد نه خپله وزه واخلى.مسلوخه دكوم نه چې څرمن اوښكلې شوې وى.يعنى په كوم حال چې ده.هم په دې حال دې واخلى.او هيڅ يو به د بل نه ضمان نه اخلى.ځكه چې دوى كې هر يوكس پخپل كار كې د دوهم وكيل دې.او په وكيل باندې ضمان نه وى.

**په غلطۍ سره د يو بل قرباني ذبح كولو نه روسته د خوراك نه روسته څه حكم دې ؟**

فَإِذَا كَانَا قَدْ أَكَلَا نو كه دواړو اوخوړله ثُمَّ عَلِمَا بيا معلومه شوه فَلْيُحَلِّلْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا صَاحِبَهُ نو بايد ده (پكار ده) چې حلال كړى.په دوى دواړو كې هر يو د خپل انډيوالان لپاره يُجْزِيهِمَا او دا به دوى دواړو له كافى (جائز) كيږى وَلِأَنَّهُ لَوْ أَطْعَمَهُ فِي الِابْتِدَاءِ ځكه كه هغه په پيل كې په هغه خوړلې وې يَجُوزُ نو جائز وه. وَإِنْ كَانَ غَنِيًّا اګرچه هغه توانګر وى ،فَكَذَا لَهُ أَنْ يُحَلِّلَهُ فِي الِانْتِهَاءِ ،...نو هم دغه ډول هغه لپاره حق شته.چه هغه دا په انتهاء كې حلال كړى.

**تشريح:-** كه خوړلې شوې نه وى.نو ددې حكم وړاندې تير شو.اوكه دواړو خوړلې وى.نو دواړو له پكار دى.چه خپل منځ كې ئې يو بل لپاره حلال كړى.او بس، قرباني به صحيح وى.ځكه كه په پيل كې د قربانۍ غوښه توانګر ته خوړلې شوې وې.نو جائز به وه.نوكه په آخر كې توانګر لپاره دا حلال كړې شى.نو جائز به وى.

**د دواړو د جګړې په صورت كښې څه حكم دې ؟**

وَإِنْ تَشَاحَّا اوكه دواړه جګړه اوكړى فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو په دوى كې هر يو ته حق شته أَنْ يُضَمِّنَ صَاحِبَهُ قِيمَةَ لَحْمِهِ چې خپل انډيوال د خپلې غوښې ضامن جوړ كړى ثُمَّ يَتَصَدَّقُ بِتِلْكَ الْقِيمَةِ بيا به دا قيمت صدقه كوى لِأَنَّهَا بَدَلٌ عَنِ اللَّحْمِ ځكه چې دا د غوښې بدل دې فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا لَوْ بَاعَ أُضْحِيَّتَهُ لكه چې د خپلې قربانۍ غوښه ئې خرڅه كړې وى وَهَذَا لِأَنَّ التَّضْحِيَةَ لَمَّا وَقَعَتْ عَنْ صَاحِبِهِ او دا ځكه چې قرباني هركله دده د انډيوالان د اړخه واقع شوه كَانَ اللَّحْمُ لَهُ نو غوښه دده د انډيوالان شوه

**حل اللغة:** ① تشاحا: دوې (دوه) كسانو جګړه اوكړله ② يتصدق: صدقه به كوى ﴾

**تشريح:-** د زيد او خالد په منځ كې جګړه ده.زيد وائى.چه زما د قربانۍ غوښه ښه وه.او خالد وائى.چه زما د قربانۍ غوښه زياته قيمتى وه.نو اوس به څه كيږى؟ نو وې فرمائيل.چه زيد دې د خالد نه د خپلې قربانۍ د غوښې قيمت وصول كړى.او خالد دې د زيد نه د خپلې قربانۍ د غوښې قيمت وصول كړى.خو دا دغوښې د بيع په درجه كې دى.او ددې حكم وړاندې تير شوې دې.چه د قيمت صدقه كول واجب دى.دلته به هم دغه حكم وى.چه زيد او خالد دواړه به د خپلې قربانۍ د غوښې قيمت صدقه كوى.

وَمَنْ أَتْلَفَ لَحْمَ أُضْحِيَّةِ غَيْرِهِ اوچا چې ضائع كړله.د خپل ځان نه د علاوه غوښه كَانَ الْحُكْمُ مَا ذَكَرْنَاهُ، نو حكم هم دا وى.كوم چې موږ ذكركړو

**حل اللغة:** ① اتلف: هلاك كړه﴾

**تشريح:-** او كوم كس چې دچا د قربانۍ غوښه ضائع كړى.ددې هم دغه حكم دې.او دلته هم دغه ډول شوى دى.چه كله زيد د خالد وزه ذبح كړله.نو قرباني د خالد شوه.او د خالد د قربانۍ غوښه زيد اوخوړله.او ضائع ئې كړله. نو په زيد به ضمان واجب وى.

**د غصب شوې وزه قرباني كولو مسئله**

وَمَنْ غَصَبَ شَاةً او كوم كس چې وزه غصب كړله فَضَحَّى بيا ئې دهغې قرباني اوكړله بِهَا ضَمِنَ قِيمَتَهَا نو ددې د



قيمت به ضامن وى وَجَازَ عَنْ أُضْحِيَّتِهِ .او دا دده د قربانۍ د اړخه جائز ده لِأَنَّهُ مَلَكَهَا بِسَابِقِ الْغَصْبِ ځكه چې دا (غاصب) د تير شوى غصب په وجه ددې مالك شوې دې.

**تشريح:-** وديعت او امانت د امين د ملكيت سبب نه دې.او غصب د غاصب د ملكيت سبب جوړيږى.اګرچه دې د بدلينو د اجتماع د استحالې په وجه جوړيږى.خو بهرحال غصب دملك سبب دې.او د قربانۍ د جواز لپاره ضرورى ده.چه د ذبح نه وړاندې قرباني كونكې ددې مالك وى.نو كوم كس چې د چا قرباني غصب كړله.او ددې قرباني ئې اوكړله.نو قرباني به جائز وى.او په غاصب ضمان واجب دې.يعنى ددې وزه قيمت دې اصل مالك ته وركړى.ځكه چې دلته د ذبح نه وړاندې د تير شوى غصب په وجه ذبح كونكې ددې مالك وو.نو قرباني به صحيح وى.

بِخِلَافِ مَا لَوْ أَوْدَعَ شَاةً په خلاف ددې صورت كله چې ده يوه وزه وديعت كيخودله فَضَحَّى بِهَا نو ددې قرباني ئې اوكړله لِأَنَّهُ يُضَمِّنُهُ بِالذَّبْحِ ځكه چې موده د ذبح په جه ددې ضامن جوړيږى فَلَمْ يَثْبُتِ الْمِلْكُ لَهُ نو مودع لپاره به ملكيت نه ثابتيږى إِلَّا بَعْدَ الذَّبْحِ، وَاَللَّهُ أَعْلَمُ خو د ذبح نه روستو.والله اعلم بالصواب

**تشريح:-** او كه د يوكس سره يوه وزه وديعت كيخودې شوه.او هغه ددې قرباني اوكړله.نو قرباني جائز نه ده. ځكه چې ضمان خو دلته هم واجب دې.خو دا ضمان د وديعت د وجوب په وجه نه دې.بلكه د ذبح په وجه ضمان واجب دې.نو معلومه شوه.چه امين ددې مالك د ذبح نه روستو جوړ شوې دې.او د قربانۍ د جواز لپاره ضرورى ده.چه د ذبح نه وړاندې مالك وى.په دې وجه د وديعت په صورت كې قرباني جائز نه ده.

# كتاب الكراهية

ژباړه:- (دا) كتاب د كراهيت (د احكامو په بيان كې) دې.

**تشريح:-** مرغينانى رحمه الله د ،،كتاب الاضحيه،، نه روستو ،،كتاب الكراهية،، بيان كړو.ځكه چې د ړومبى كتاب ډيرې مسئلې داسې وې.چه هغې كې د كراهيت حكم بيان كړې شوې دې.لكه په شپه كې قرباني كول،او د قربانۍ شيدې لوشل، يا ددې وړۍ پرې كول وغيره،نو په دې كې د كراهت تفصيلى بيان دې.. هكذا قالو،، خو علامه عينى رحمه الله دا وجه رد كړې ده.او فرمائيلى ئې دى.چه داسې خو په واړه كتاب كې شوى دى.دا څه ،،كتاب الاضحيه،، سره خاص خو نه دې.بلكه غوره وجه دا ده.چه د ذبيحو او قربانۍ مسئلې په عامه توګه (عام طور) باندې د آثارو او رواياتو نه ثابت دى.دغه ډول د كراهيت مسئلې په عامه توګه (عام طور) باندې د سنت او آثار نه ثابت دى.

✿ صاحب دهدايه رحمه الله دا مسئلې په ،، كتاب الكراهية،، سره بيان كړى دى.اګرچه په دې كې د غير مكروه بيان هم دې.ځكه چې د مكروه نه د ځان ساتلو د وجوب په وجه ددې بيان ضرورى دې.امام قدورى رحمه الله دې ته د ،،كتاب الخطر والاباحة،، عنوان وركړې دې.دا ډير ښه عنوان دې.ځكه چې خطر په معنى د منع سره دې.او اباحه په معنى د اطلاق او جواز دې.په دې كې به هغه مسئلې بيانولې شى.كوم چې ممنوع او مباح دى.او بعضې حضراتو دې ته د ،،كتاب الاستحسان،، عنوان وركړې دې.ځكه چې دې كې دهغه څيزونو بيان دې.كوم چې شريعت مستحسن يا قبيح شماركړى دى.

✿ او بعضو حضراتو دې ته د ،،كتاب الزهد والورع،، عنوان وركړې دې.ځكه چې دې كې ډيرې مسئلې داسې دى.د كومو چې شريعت اجازت وركړې دې.خو د زهد اوتقوى تقاضه دا ده.چه دا پريښودې شى.په تحفه او خانيه كې د ،، كتاب الخطر والاباحة،، عنوان دې.په جامع صغير او هدايه كې د كراهيت او مبسوط او ذخيره كې د استحسان عنوان دې.

**د مكروه نه څه مراد دې ؟**

قَالَ مرغيناني رحمة الله عليه اوفرمائيل تَكَلَّمُوا فِي مَعْنَى الْمَكْرُوهِ .فقهاو د مكروه په معنى كي كلام كړي دي. وَالْمَرْوِيُّ عَنْ مُحَمَّدٍ نَصًّا او صراحتاً د امام محمد رحمة الله عليه نه نقل دى أَنَّ كُلَّ مَكْرُوهٍ حَرَامٌ هغه دا دي.چه هر مكروه حرام دي. إِلَّا أَنَّهُ لَمَّا لَمْ يَجِدْ فِيهِ نَصًّا قَاطِعًا خو كله چې هغوى په دې كي هيڅ قطعى نص اونه موندلو. لَمْ يُطْلِقْ عَلَيْهِ لَفْظَ الْحَرَامِ نو هغوى په دې باندې لفظ د حرام اونه ونيلو. وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله او د امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله نه نقل دى. أَنَّهُ إِلَى الْحَرَامِ أَقْرَبُ، چې مكروه حرامو ته زيات نژدې دي. وَهُوَ يَشْتَمِلُ عَلَى فُصُولٍ او دا كتاب په يو څو فصلونو باندې مشتمل دې مِنْهَا فَصْلٌ فِي الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ () هم په دغه فصلونوكي يو فصل د خوراك او څكاك په بيان كي دي.

حل اللغة: ① الاكل: خوړل ② الشرب: څښل

تشريح:- د امام محمد رحمة الله عليه په نيز مكروه نه حرام مراد كيږي.خو كله چې امام محمد رحمة الله عليه ته په دې كي هيڅ نص قطعى ملاو نشو.نو هغوى دا د حرامو په ځاى مكروه سره تعبير كوى.او د شيخينو رحمهما الله په نيز د مكروه نه مراد مكروه تحريمى دې.

## د خرې غوښه او شيدې او د اوښ متيازې مكروه دي

قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ فرمائيلى دى امام ابوحنيفه رحمة الله عليه يُكْرَهُ لُحُومُ الْأُتُنِ وَأَلْبَانُهَا وَأَبْوَالُ الْإِبِلِ ،د خرو غوښه او ددې شيدې او د اوښانو بولې مكروه دى.

حل اللغة: ① لحوم: جمع د لحم، غوښه ② الاتن: جمع د اتان، خر ③ البان: جمع د لبن، شيدې ④ ابوال: جمع د بول، بولې ⑤ الابل: اوښ

تشريح:- د خر او خرې غوښه مكروه ده.يعنى مكروه تحريمى ده.او د خرې شيدې هم مكروه دى.او دغه ډول د اوښ بولې هم ( مكروه) دى.او د كراهت په درجه كي د امامانو اختلاف دې.امام صاحب رحمة الله عليه دا حرام ګرځولى دى.ځكه چې متيازو كي اصل حرمت دې.او پاتې شوه د اصحاب عرينه د واقعې نه استدلال كول،نو دا صحيح نه دې.ځكه چې هلته نبى كريم ﷺ ته ددوى د شفاء ( صحت) علم د وحى په ذريعه شوې وو.نو ددوى نه د علاوه په حق كي به د حرمت حكم پخپل حال پاته پاتې وى.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: رحمهما الله او امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله فرمائيلى دى. لَا بَأْسَ بِأَبْوَالِ الْإِبِلِ چې د اوښانو په بيو كي هيڅ باك نشته. وَتَأْوِيلُ قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ او د امام ابويوسف رحمة الله عليه د قول تاويل دا دې. أَنَّهُ لَا بَأْسَ بِهَا لِلتَّدَاوِي(۲) چې دې كي دوائى لپاره ( استعمال كي ) هيڅ باك نشته. وَقَدْ بَيَّنَّا هَذِهِ الْجُمْلَةَ فِيمَا تَقَدَّمَ فِي الصَّلَاةِ وَالذَّبَائِحِ او موږ دا واړه وړاندې په ،،كتاب الصلاة،، او ،، ذبائح،، كي بيان كړي دى. فَلَا نُعِيدُهَا نو موږ ددې دوباره ذكر نه كوو. وَاللَّبَنُ مُتَوَلِّدٌ مِنَ اللَّحْمِ او شيدې د غوښې نه پيدا كيږى فَأَخَذَ حُكْمَهُ ..نو اخلى به شيدې حكم د غوښې.

حل اللغة: ① التداوى: دوائى كول ② الذبائح: جمع د ذبيحة، هغه حيوان (څاروې) چې ذبح كولاى شى

ديورتنې حديث نه استدلال كاوه سره امام ابويوسف رحمة الله عليه فرمائيلى دى.چه د دوائى لپاره حلال دى.او د امام محمد رحمة الله عليه په نيز مطلقاً حلال دى.ځكه كه دا حلال نه وې.نو په دې سره به دوائى او علاج هم صحيح نه

[1]) القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار (۲۳۷\۵) ومجمع الأنهر (۱۷۷\۴) والدرالمنتقى (۱۷۸\۴) نقلاً عن القول الراجح (۲۹۷\۲)-

[2]) القول الراجح هو هذا قول أبى يوسف رحمة الله عليه مرذكرمراجعه فى مسلة التداوى بلحرم فى المټوك الأول فإن كنت تريد التفصيل فعليك بالمراجعة نقلاً عن القول الراجح (۲۹۸\۲)-



وو.ځكه حديث كي دى. لم يجعل شفاءكم فيما حرم عليكم مرغيناني رحمة الله عليه پخپله دا مسئله په كتاب الصلاة او كتاب الذبائح كي بيان كړې ده.
پاته پاتې شوه دا خبره چې په كتاب الذبائح كي خود پيو ذكر نه دې راغلې نو په هغې باندې څنګه حواله وركوى نو موږ وايو چې شيدې د غوښې نه پيدا كيږى نو چې كوم حكم د غوښې وى هغه به د پيو هم وى لكه څنګه ليارې د غوښې نه پيدا كيږى نو چې كوم حكم د غوښې وى هغه حكم د ليارو يعنى د جوتې هم وى.

## د سرو زرو او سپينو زرو په لوخو كښې د خوراك څكاك حكم

قَالَ امام قدورى رحمة الله عليه اوفرمائيل. وَلَا يَجُوزُ الْأَكْلُ وَالشُّرْبُ او جائز نه دې خوراك او څكاك وَالِادِّهَانُ وَالتَّطَيُّبُ او تيل لګول،او خوشبو لګول فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ د سرو زرو او سپينو زرو په لوخو كي لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ د سړو او ښځو لپاره لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي الَّذِي يَشْرَبُ فِي إِنَاءِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ إِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِي بَطْنِهِ نَارَ جَهَنَّمَ(۱)، د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه د هغه سړى په اړه كي څوك چې څښل كوى.د سرو زرو اوسپينو زرو په لوخو كي ، چې هغه پخپله نس كي د جهنم اور اچوى وَأُتِيَ أَبُو هُرَيْرَةَ رضي الله عنه بِشَرَابٍ فِي إِنَاءِ فِضَّةٍ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه ته سپينوزرو په لوخي كي اوبه وركړې شوې. فَلَمْ يَقْبَلْهُ نو هغوى دا قبول نكړلې وَقَالَ .او داسې ئې اوفرمائيل. نَهَانَا عَنْهُ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ(۲) چې موږه ددې نه رسول الله ﷺ منع كړى يو . وَإِذَا ثَبَتَ هَذَا فِي الشُّرْبِ.او هركله چې دا ( ممانعت ) په څښلو كي ثابت شو فَكَذَا فِي الِادِّهَانِ وَنَحْوِهِ.نو هم دغه ډول په تيلو لګولو او ددې په مثل كي ( هم ممانعت) دې. لِأَنَّهُ فِي مَعْنَاهُ ځكه چې دا د څښلو په معنى كي دى. وَلِأَنَّهُ تَشَبُّهٌ بِزِيِّ الْمُشْرِكِينَ او ځكه چې دا د مشركانو هيئت سره تشبيه ده وَتَنَعُّمٌ بِنَعِيمِ الْمُتْرَفِينَ وَالْمُسْرِفِينَ او عيش حاصلول دى.د متكبرو خلګ و، او د فضول خرچى كونكو د عيش حاصلولو پشان.

حل اللغة: ① الادهان: غوړول ② التطييب: خوشبويه كول ③ أنية: لوښې ④ الذهب: سره زر ⑤ الفضة: سين زر ⑥ يجرجر: اچوى ⑦ بطن: نس ⑧ زى المشركين: د مشركانوهيئت ،وضع قطع ⑨ المترفين: جمع د مترف،عشرت كونكې ⑩ المسرفين: جمع د مسرف،اسراف كونكې

تشريح:- د سرو زرو او سپينو زرو په لوخوكي خوړل، او څښل او په نورو څيزونو كي استعمالول حرام دى.د سړو لپاره هم او د ښځو لپاره هم، دهغه دوو حديثونو په وجه كوم چې دلته ذكر دى.او دا د مشركانو اتباع ده.او د تكبر كونكو او رياكارى كونكو تابع دارى كول دى.

## په دې حكم كښې ښځې او سړى برابر دى

وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: او امام محمد رحمة الله عليه په جامع صغير كي ونيلى دى. يُكْرَهُ چې مكروه دى. وَمُرَادُهُ التَّحْرِيمُ او ددوى مراد تحريم دې. وَيَسْتَوِي فِيهِ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ لِعُمُومِ النَّهْيِ او په دې كي ښځې او سړى برابر دى.د نهى د

[1]) من حديث أم سلمة رضي الله عنها أخرجه البخارى فى الأشربة با ب۲۸ ومسلم فى اللباس رقم ۱ وأبن ماجه فى الأشربة باب ۱۷ والدارمى فى الأشربة باب ۲۵ ومالک فى صفة النبى ﷺ رقم ۱۱)_

[2]) قال الزيلعى رحمة الله عليه غريب من حديث أبى هريرة رضي الله عنه وهوفى الكتب الستة عن حذيفة من رواية عبدالرحمن بن أبى ليلى قال إستسقى حذيفة رضي الله عنه فسقاه مجوسى فى إناء من فضة فقال إنى سمعت رسول الله ﷺ يقول:لاتلبسوا الحريرولاالديباج ولا تشربوا فى آنية الذهب والفضة ولا تأكلوا فى صحافها فإنها لهم فى الدنيا ولكم فى الآخرة (أخرجه البخارى فى الأشربة باب ۲۹ ومسلم فى اللباس رقم ۵ وأبوداود فى ا لأشربة باب ۱۷ والترمذى فى الأشربة باب ۱۰ والنسائى فى الزينة باب ۸۷ وابن ماجه فى الأشربة باب ۱۷) (نصب: ۵۱\۴)

عموم په وجه وَكَذٰلِكَ الْأَكْلُ بِمِلْعَقَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْاِكْتِحَالُ بِمِيلِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، او هم دغه ډول د سرو زرو او سپینو زرو چمچې (قاشوغې) او د سرو زرو او سپینو زرو سلایانو سره رانجه لګول، وَكَذَا مَا أَشْبَهَ ذٰلِكَ او هم دغه ډول کوم چې ددې مشابه دی، كَالْمُكْحُلَةِ وَالْمِرْآةِ وَغَيْرِهِمَا لِمَا ذَكَرْنَا لکه سرمه داني (رانجړومه) او آئینه او ددې نه علاوه د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړې دي

**حل اللغة:** ① **الرجال:** جمع د رجل، سړي ② **النساء:** ښځې ③ **يستوي:** برابرې دی ④ **ملعقة:** قاشوغه، چمچه ⑤ **الاكتحال:** رانجه اچول ⑥ **ميل:** سلئ ⑦ **مكحلة:** رانجړومه (سرمه دانه) ⑧ **المرآة:** شیشه

**تشريح:-** دلته امام قدوري رحمه الله ،،ولا يجوز،، وئیلی دی. او په جامع صغیر کې ،،ویكره،، دې. خو د دواړو مراد یو دې. ځکه چې امام محمد رحمه الله د مکروه نه تحریم مراد اخلی،، کما مر،، او د ممانعت حدیثونه سړو او ښځو ټولو ته عام دی. ځکه چې دې حکم کې سړی او ښځې دواړه برابر دی. او هم ددې دلیلونو نه دا معلومه شوه. چه د سرو زرو او سپینو زرو د چمچې (قاشوغې)، او سلائی، او د سرمه دانئ (رانجړومې) او د شیشې د ټولو هم دا حکم دې.

## د سیکې، شیشې، او د عقیق د لوښو استعمالولو حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله او فرمائیل. وَلَا بَأْسَ بِاسْتِعْمَالِ آنِيَةِ الرَّصَاصِ وَالزُّجَاجِ وَالْبِلَّوْرِ وَالْعَقِيقِ او هیڅ باك نشته. د سیکې (سیسې) په لوښو کې، او د کانچ (شیشې) په لوښو کې او د بلور (یو ډول شیشه) او د عقیق (په لوښو کې) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: او امام شافعي رحمه الله فرمائیلي دي. يُكْرَهُ مکروه دی. لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ فِي التَّفَاخُرِ بِهِ ځکه چې دا د تفاخر (او تکبر) په اړه کې د سرو زرو او سپینو زرو پشان دی. قُلْنَا: لَيْسَ كَذٰلِكَ موږ وایو. چه داسې نه ده.. لِأَنَّهُ مَا كَانَ مِنْ عَادَتِهِمُ التَّفَاخُرُ بِغَيْرِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ ځکه چې د مشرکانو عادت د سرو زر او سپینوزرو نه په علاوه کې د تفاخر نه وو.

**حل اللغة:** ① **آنية:** لوښې ② **الرصاص:** سیکه ③ **الزجاج:** هنداره ④ **البلور:** د شیشې یو ډول دې ⑤ **عقيق:** دا هم د شیشې یو ډول دې

**تشريح:-** دا ذکر شوی واړه لوخی زموږ په نیز استعمالول جائز دی. او امام شافعي رحمه الله ددې استعمال مکروه ګرځولې دې. او مدار هم په دې دې. چه امام شافعي رحمه الله دا اوګڼل. چه ددې په ذریعه تفاخر کولې شي. او موږ ګڼرو. چه ددې په وجه تفاخر نشي کولې.

## د سپینو زرو لګولی شوی لوښو، ګدئ، کټ، او کرسئ استعمالولو حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله او فرمائیل. وَيَجُوزُ الشُّرْبُ فِي الْإِنَاءِ الْمُفَضَّضِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (1) او جائز دی څښل په داسې لوښو کې، چې دهغې په غاړو باندې سپین زر لګولې شوې وی. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز وَالرُّكُوبُ عَلَى السَّرْجِ الْمُفَضَّضِ او سوریدل په داسې ګدئ باندې، چې هغې ته سپین زر لګیدلی وی وَالْجُلُوسُ عَلَى الْكُرْسِيِّ الْمُفَضَّضِ او کښینستل په داسې کرئ باندې چې هغې کې سپین زر لګیدلې وی وَالسَّرِيرِ الْمُفَضَّضِ ،.او په داسې کټ باندې، چې هغې کې سپین زر لګیدلی وی. إِذَا كَانَ يَتَّقِي مَوْضِعَ الْفِضَّةِ کله چې دې د سپینو زرو د ځائې نه ځان ساتی. وَمَعْنَاهُ: يَتَّقِي مَوْضِعَ الْفَمِ او ددې مطلب دا دې. چه بچ کیږی د خولې د ځائې نه (یعنی دې ته خوله نه لګه وی).، وَقِيلَ او وئیلی شوی دی هٰذَا وَمَوْضِعُ الْيَدِ فِي الْأَخْذِ وَفِي السَّرِيرِ وَالسَّرْجِ مَوْضِعُ الْجُلُوسِ

(1) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى خانية (۳۷۰۱۴) كنز (۳۶۷) هندية (۳۳۴۱۵) نقلاً عن القول الراجح (۲۹۹۱۲)-



چې دا (د خولې ځائې) او په نیولو کې د لاس ځائې، او په کټ او ګدئ کې د کیناستلو د ځائې نه بچ کیږی.

**حل اللغة:** ① **المفضض:** لګولې شوې، ② **السرج:** ګدئ ③ **الجلوس:** ناسته ④ **السرير:** کټ ⑤ **موضع:** ځائې ⑥ **الفم:** خوله ⑦ **اليد:** لاس

**تشريح:-** مفضض: په کوم چې سپین زر خیجولې شوې وی. یعنی ددې په غاړو باندې سپین زر لګولی شوی وی. حضرت امام صاحب رحمه الله فرمائی. چه کله خالص د سپینو زرو لوخې نه وی. بلکه لوخې یا د استعمال آله د بل څه شئ ده. او ددې په غاړو باندې سپین زر خیجولې شوې وی. نو ددې استعمال جائز دې. په دې شرط چې د سپینو زرو د ځائې نه پرهیز کوی. یعنی که د څښلو لوخې دې. نو د سپینو زرو ځائې ته خوله نه لګوی. بلکه بل ځائې ته خوله لګوی. دغه ډول که په ګدئ باندې سپین زر اولګولی شو. نو د سپینو زرو په ځائې باندې نه کینی. په بل ځائې باندې کینی. نو دا جائز ده. دغه ډول که په یوه کرسئ باندې سپین زر خیجولې شوې وی. یا په کټ باندې، نو دواړو صورتونو کې د سپینو زرو په ځائې باندې نه کینی. نو جائز ده.

## د امام ابویوسف او امام محمد رحمهما الله مسلك

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يُكْرَهُ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی. مکروه دی. ذٰلِكَ وَقَوْلُ مُحَمَّدٍ او د امام محمد رحمه الله قول نقل شوې دې يُرْوَى مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنیفه رحمه الله سره وَيُرْوَى مَعَ أَبِي يُوسُفَ. ،او نقل دې د امام ابویوسف رحمه الله سره.

**تشريح:-** دا ذکر شوی واړه صورتونه امام صاحب رحمه الله جائز ګرځولی دی. او امام ابویوسف رحمه الله مکروه ګرځوی. او پاتې شوه مسئله د امام محمد رحمه الله نو په دې کې دوې (دوه) قوله دی. ① بعض حضراتو روایت کړې دې. چه دوی د امام صاحب رحمه الله سره دې. او ددې دحلت قائل دې. ② او بعضو حضراتو فرمائیلی دی. چه دوی د امام ابویوسف رحمه الله سره دې. او ددې د کراهت قائل دې.

## د سرو زرو یا سپینو زرو لګولی شوو لوښو، کرسئ او توري وغیره د استعمالولو حکم

وَعَلَى هٰذَا او هم په دې اختلاف (بناء) دی الْخِلَافِ هٰذَا الْإِنَاءُ الْمُضَبَّبُ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ هغه لوخی په کومو چې د سرو زرو او سپینو زرو پاڼره لګولی شوی وی. وَالْكُرْسِيُّ الْمُضَبَّبُ بِهِمَا او هغه کرسئ چې ددې دواړو پاڼره لګولی شوی وی. وكذا إذا جعل ذلك فى السيف والمشحذ وحلقة المرآة او هم دغه ډول کله چې دا توره یا سوان (د چاړې تیره کاوه آله) او د شیشې په الغه (لاسکی) کې لګیدلې وی. أَوْ جَعَلَ الْمُصْحَفَ مُذَهَّبًا أَوْ مُفَضَّضًا یا قرآن ته سره زر یا سپین زر لګیدلې وی. وَكَذَا الِاخْتِلَافُ فِي اللِّجَامِ وَالرِّكَابِ وَالثَّفَرِ إِذَا كَانَ مُفَضَّضًا او هم دغه ډول اختلاف دې په واګو، او د سور د پښو ایخودو ځائې او په دمچی (د خاروی د لکئ لاندې د کټې پټه) کې، کله چې دې ته سپین زر لګیدلې وی.، وَكَذَا الثَّوْبُ فِيهِ كِتَابَةٌ بِذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ عَلَى هٰذَا او هم دغه ډول هغه کپړه په کومه کې چې د سرو زرو یا سپینو زرو کتابت وی. په دې اختلاف باندې دې.

**حل اللغة:** ① **مشحذ:** سوان ② **مراة:** هغه ائینه چې مخ په کې ګوری ③ **لجام:** واګې ④ **الثفر:** د زین د شاه اړخ تسمه ⑤ **الكرسى المضبب:** هغه کرسئ چې سره او سپین زر پرې لګولې شوې وی

**تشريح:-** یعنی سره زر لګولې شوې وی. یا سپین زر لګولې شوی وی. بیا که دا لوخی وی. اوکه کرسئ وی. یا سوان د شیشې لاستې وی. که واګې وی. یا رکاب (سور د پښو ایخودو ځائې) وی. یا دمچی یا کپړه وی. چه په دې کې د سروزرو یا د سپینو زرو کتابت شوې وی. په دې ټولو صورتونو کې هم دا اختلاف دې. کوم چې ذکر شوې دې. نو مسئله هم دغه ده. نو وړاندې ئې سپین زر استعمال کړی وو. او اوس ئې د سرو زرو یا سپینو زرو پاڼره استعمال کړې ده. او مضبب د مشدود (ترلی شوی) په معنی دې. کله چې غالبښ په سرو یا

سپينو زرو سره اوتړلې شي.نو دې ته وائي. مُضَبَّب أسنانه بالفضة إذا شدّها بها لو يدېږ په نورو الفاظ کې داسې چې دا د مضبوطوالي لپاره وي.او مفضض (سپين زر خيجول) د ښائست او ډول لپاره وي.

## د امام صاحب او صاحبينو رحمهم الله د اختلاف مقام

وَهٰذَا الِاخْتِلَافُ او دا اختلاف په هغه کې دې فِيمَا يَخْلُصُ.کوم چې جدا کيداې شي فَأَمَّا التَّمْوِيهُ الَّذِي لَا يَخْلُصُ فَلَا بَأْسَ بِهِ بِالْإِجْمَاعِ بهرحال هغه کاريګرى چې نشي جلا کيدې. نو په دې کې بالاجماع باك نشته لَهُمَا د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې أَنَّ مُسْتَعْمِلَ جُزْءٍ مِنَ الْإِنَاءِ مُسْتَعْمِلٌ جَمِيعَ الْأَجْزَاءِ فَيُكْرَهُ چې د لوخى جزء استعمالونکې هغه د ټولو اجزاو استعمالونکې دې.نو دا مکروه دى،، كَمَا إِذَا اسْتَعْمَلَ مَوْضِعَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ لکه کله چې هغه د سرو او سپينو زرو ځائې استعمال کړى.

**حل اللغة*** ① **يخلص**:جدا كيږى ② **التمويه**:كاريګرى ،نقش ونګار ③ **الاجزاء**:جمع د جزء ،حصه

**تشريح**:- د صاحبينو رحمهما الله او د امام ابوحنيفه رحمه الله اختلاف صرف په دې صورت کې دې.چه سپين زر او سره زرجدا كيداې شي.او كه داسې كاريګرى او نقش نګارى شوې وي.چه د سرو زرو او سپينو زرو اوبه ئې ورکړې وي.چه دا جلا کيداې نشي.نو ددې استعمال بالاجماع جائز دې.د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه د لوخو د بعضو اجزاو استعمال ګويا دټولو اجزاو استعمال دې.نو لکه څنګه چې د سرو زرو او سپينو زرو د ځائې استعمالول مکروه دى.دا به هم دغه ډول مکروه وي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.أَنَّ ذٰلِكَ تَابِعٌ چې دا تابع دې.وَلَا مُعْتَبَرَ بِالتَّوَابِعِ او د توابعو اعتبار نشي کولې.فَلَا يُكْرَهُ نو دا به مکروه نه وي. كَالْجُبَّةِ الْمَكْفُوفَةِ بِالْحَرِيرِ لکه هغه چوغه چې ددې سنجاف (جهالر) د ريښمو وي.وَالْعَلَمِ فِي الثَّوْبِ وَمِسْمَارِ الذَّهَبِ فِي الْفَصِّ او په کپړې کې نقش ونګار او په غموکې د سرو زرو ميخونه وي.

**حل اللغة*** ① **التوابع**:جمع د تابع، ② **الجبة**: چوغه ③ **المكفوفة**: جهالر ④ **الحرير**: ريښم ⑤ **مسمار**: ميخونه ⑥ **الفص**: غمې

**تشريح**:- او امام صاحب رحمه الله فرمائي.چه د توابعو اعتبار نشي کولې.او دلته چې کوم سره زر او سپين زر لګولى شوى دى.دا واړه تابع دى.نو دا به مکروه نه وي.لکه کله چې د چوغې جهالر د ريښمو وي.او هم دغه ډول که د ريښمو نه په کپړه کې نقش ونګار اوکړې شي.نو دا مکروه نه ده.او هم دغه ډول که د ګتمې په غمى کې د سرو زرو ميخ وي.نو دا هم د تابع کيدو په وجه مکروه نه دې.

## د مجوسي مزدور يا نوکر د خبر حکم

قَالَ فرمائيلى دى امام محمد رحمه الله (په جامع صغير کې)، مَنْ أَرْسَلَ أَجِيرًا لَهُ مَجُوسِيًّا أَوْ خَادِمًا فَاشْتَرَى لَحْمًا او کوم کس چې اوليګلو خپل مجوسي ملازم يا نوکر نو هغه واخستله غوښه، وَقَالَ اشْتَرَيْتُهُ مِنْ يَهُودِيٍّ أَوْ نَصْرَانِيٍّ أَوْ مُسْلِمٍ نو وې وئيل.چه ما دا د يهودى يا نصرانى نه يا مسلمان نه اخستې ده وَسِعَهُ أَكْلُهُ نو مالك ته ددې د خوړلو ګنجائش (اجازت) شته.

**تشريح**:- وړاندې تير شوى دى.چه د کتابيانو ذبيحه جائز ده.نو که مجوسي خادم يا ملازم د بازار نه غوښه واخستله.او دا وائي.چه د مسلمان يا يو يهودى يا نصرانى نه مې اخستې ده.نو ددې خوراك جائز دې.

لِأَنَّ قَوْلَ الْكَافِرِ مَقْبُولٌ فِي الْمُعَامَلَاتِ ځکه چې د کافر قول معاملاتو کې قبول دې.لِأَنَّهُ خَبَرٌ صَحِيحٌ ځکه چې دا خبر صحيح دې. لِصُدُورِهِ عَنْ عَقْلٍ وَدِينٍ يَعْتَقِدُ فِيهِ حُرْمَةَ الْكَذِبِ ددې د صادر کيدو په وجه د عقل نه.او دهغه دين نه په کوم کې چې د حرمت اعتقاد کولې شي.وَالْحَاجَةُ مَاسَّةٌ إِلَى قَبُولِهِ الْمُعَامَلَاتِ او حاجت ددې د قبلولو اړخ ته



رابيښيرى لِكَثْرَةِ وُقُوعِ د معاملاتو د زياتو واقع كيدو په وجه.

**تشريح**:- دليل دا دې چې دا د يهودى وغيره نه د اخستلو خبر دې.چه دا يوه معامله ده.دا په قصد سره د حلت او حرمت خبر نه دې.چه دا په ديانات کې شمار کړې شي.او په معاملاتو کې د کافر قول قبليږي.ځکه چې دا مجوسي هم عقل لرى.او ښکاره هم دا ده.چه هرکله دې عاقل دې.نو د رشتياو خبر به ورکوى.او پخپل اعتبار سره دې يو دين اړخ ته منسوب دې.اګرچه دغه دين زموږ په نيز باطل دې.او د دين وئيلو مستحق نه دې.بهرحال هرکله چې هغه د خپل اعتقاد مطابق يو دين اړخ ته منسوب دې.نو هغه به دروغ نه وائي.ځکه چې دروغ حرام دى.او معاملات ډير زيات دى.نو په معاملاتو کې د کافر قول قبلول ضرورى دى.

## د پورتنۍ مسئلې الټه صورت

وَإِنْ كَانَ غَيْرَ ذٰلِكَ او که وى هغه کس (چا چې غوښه اخستې ده يعنى خادم) ددې (کتابيانو يا مسلمان) نه علاوه لَمْ يَسَعْهُ نو مالك ته ګنجائش نشته أَنْ يَأْكُلَ مِنْهُ چه هغه ددې نه اوخورى.مَعْنَاهُ: إِذَا كَانَ ذَبِيحَةَ غَيْرِ الْكِتَابِيِّ وَالْمُسْلِمِ کله چې دا د مسلمان او کتابى نه د علاوه ذبيحه وي.

**تشريح**:- يعنى که مجوسي نوکر يا خادم خبر ورکړو.چه ما دا غوښه د يو مجوسي (آتش پرست) د دوکان نه اخستې ده.نو ده لپاره خوراك حلال نه دې.

لِأَنَّهُ لَمَّا قُبِلَ قَوْلُهُ فِي الْحِلِّ ځکه چې هرکله د هغه قول په حلت کې قبول کړې شوې دې أَوْلَى أَنْ يُقْبَلَ فِي الْحُرْمَةِ نو په درجه اولى دا خبره ده.چه په حرمت کې قبول کړې شي.

**تشريح**:- دليل دا دې چې اوس ښکاره هم دا ده.چه دا د مجوسي ذبيحه ده.او کله چې په ړومبئ مسئله کې د حلت په سلسله کې دده قول قبول شو.نو په حرمت کې په درجۀ اولى قبلول پکار دى.ځکه چې حرمت کې د زيات احتياط اړتيا وي.

## په هديه او اجازت کښې د غلام، وينځې او د بچي د خبر حکم

قَالَ امام قدورى رحمه الله فرمائيلى دى يَجُوزُ أَنْ يُقْبَلَ فِي الْهَدِيَّةِ وَالْإِذْنِ قَوْلُ الْعَبْدِ وَالْجَارِيَةِ وَالصَّبِيِّ او جائز دې په هديه، او اجازت کې د غلام او وينځې او د بچى قول، وَلِأَنَّ الْهَدَايَا تُبْعَثُ عَادَةً عَلَى أَيْدِي هٰؤُلَاءِ ځکه چې هديې په عامه توګه (عام طور) باندې ددوى په لاسونو ليګلې شي وَكَذَا لَا يُمْكِنُهُمْ او هم دغه ډول ممکن نه ده اسْتِصْحَابُ الشُّهُودِ عَلَى الْإِذْنِ دوى لپاره اجازت باندې ګواهان ځان سره انډيوالان کول عِنْدَ الضَّرْبِ فِي الْأَرْضِ وَالْمُبَايَعَةِ فِي السُّوقِ. ، په مځکه کې د تللو په وخت،او په بازار کې د اخستلو او خرڅولو په وخت (چې هر وخت ځان سره ګواهان اوساتى). فَلَوْ لَمْ يُقْبَلْ قَوْلُهُمْ نو که ددوى قول قبول نه وى يُؤَدِّي إِلَى الْحَرَجِ نو مفضى الى الحرج به وى.

**حل اللغة*** ① **الهدية**: ډالئ ② **الجارية**: وينځه ③ **الصبي**: ماشوم ④ **استصحاب**: انډيوالان کول ⑤ **السوق**: بازار

**تشريح**:- که بچي يا غلام يا وينځه هديه راوړى.چه زما پلار يا زما مالك راليګلې ده.يا دوى په دوکان کې څه سامان اخستلو لپاره ځى.او وائى.چه موږ ته د اخستلو او خرڅولو اجازت دې.نو ددوى قول به قبلولې شي.ځکه چې عادت (او رواج) هم دا دې.چه هديه هم ددوى په لاسونو ليګلې شي.او دا ممکن نه ده.چه دوى هر وخت د اجازت ګواهان ځان سره تړلى ګرځوى.نو که ددوى قول معتبر نه وى.نو ډيره زياته تنګسيا به لازمه شي.

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: او په جامع صغير کې دى.إِذَا قَالَتْ جَارِيَةٌ لِرَجُلٍ چې کله وينځې يو سړى ته اووئيل.بَعَثَنِي مَوْلَايَ إِلَيْكَ هَدِيَّةً چې زه زما آقا تا ته هديه راليګلې يم وَسِعَهُ نو هغه ته ګنجائش شته أَنْ يَأْخُذَهَا .چه دا (غلام) اوساتى.لِأَنَّهُ لَا فَرْقَ ځکه چې هيڅ توپير نشته بَيْنَ مَا إِذَا أَخْبَرَتْ بِإِهْدَاءِ الْمَوْلَى غَيْرَهَا دې په منځ کې کله چې دې

خبر ورکړي.د مولا د هديې کولو، دخان د علاوه أَوْنَفْسَهُ يا د خپل خان لِمَاقُلْنَا، د هغه دليل په وجه کوم چې مونږ بيان کړې دي.

**حل اللغة:** ① الاهداء: هديه کول

**تشريح:-** امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې فرمائيلي دي.چه يوه وينځه يو سړي ته اووائي.چه زما مولا زه تا ته هديه راليګلې يم.نو د وينځې قول به قبول وي.او ددې ساتل به جائز وي.دليل هم هغه دې.کوم چې اوس ذکر شو.او په دې کې هيڅ توپير نشته.چه مولا په هديه کې بل څه شئ اوليګي.يا پخپله وينځه اوليګي.

## په دياناتو او معاملاتو کښې د فاسق د قول حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. وَيُقْبَلُ فِي الْمُعَامَلَاتِ قَوْلُ الْفَاسِقِ او په معاملاتو کې به د فاسق قول قبلولې شي وَلَايُقْبَلُ فِي الدِّيَانَاتِ إِلَّاقَوْلُ الْعَدْلِ او په دياناتو کې به نشي قبلولې.خو د عادل ( مسلمان) قول. وَوَجْهُ الْفَرْقِ او وجه د توپير دا ده.أَنَّ الْمُعَامَلَاتِ يَكْثُرُوُجُودُهَافِيمَابَيْنَ أَجْنَاسِ النَّاسِ چې په معاملاتو کې ددې وجود زيات وي.د مختلف قسمه خلګو په منځ کې فَلَوْشَرَطْنَاشَرْطًازَائِدًا که مونږ څه زياتی شرط اولګوو ،.يُؤَدِّي إِلَى الْحَرَجِ نو دا به مفضی الی الحرج وي.

**حل اللغة:** ① الحرج: تکليف ② اجناس: جمع د جنس

**تشريح:-** زده کړه دا خبره چې معاملات په درې قسمه دي ① په کومو کې چې الزام نه وي.لکه مضاربات او د تجارت اجازت، نوپه دې ډول کې صرف عقل کافی دې.عدالت وغيره شرط نه دې.② په کومو کې چې خالص الزام وي.لکه هغه حقوق په کومو کې چې خصومات جاري کيږي.نو په دې ډول کې د شهادت د ولو شرطونو کيدل ضروري دي.③ په کومو کې چې من وجه الزام وي.او من وجه نه وي.لکه وکيل معزول کول، او په ماذون باندې پابندی يعنی حجر چې په دې کې هم وکيل باندې الزام دې.چه د معزول کاوه نه روستو هغه د اخستلو پخپله ذمه دار دې.او د حجر ( بنديز) نه روسته د عقد فاسدولو الزام دې.او د الزام وجه دا ده.چه موکل او مولا خالص پخپل حق کې تصرف کوي.نو په دې اعتبار سره د اذن (اجازت) پشان شو.په دې ډول کې د امام صاحب رحمه الله په نيز عدد د شهادت يا عدالت ضروري دې. لنډيز د کلام دا چې دلته د معاملاتو نه رومبی ډول معاملات مراد دي.

اوس د متن مسئلې ته راشه هغه دا چې په دياناتو کې به صرف د داسې مسلمان قول معتبر وي.چه هغه عادل وي.او د معاملاتو (يعنی هغه معاملاتو په کومو کې چې الزام نه وي.ګنې د نورو معاملاتو دا حکم نه دې) واقع کيدل د مختلف قسمه خلګو په منځ کې کيږي.نو که په دې کې د عدالت شرط اولګولې شي.نو ډير زيات حرج به لازم شي.

فَيُقْبَلُ قَوْلُ الْوَاحِدِفِيهَانو په معاملاتو کې به د يوسړي قول قبلولې شي.عَدْلًا كَانَ أَوْفَاسِقًا كَافِرًا أَوْمُسْلِمًاعَبْدًاأَوْحُرًّا ذَكَرًاأَوْأُنْثَى که عادل وي اوکه فاسق وي.کافر وي اوکه مسلمان وي، غلام وي اوکه آزاد وي، سړې وي اوکه ښځه وي دَفْعًالِلْحَرَجِ.د حرج لرې کاوه په غرض سره.

**تشريح:-** په دې وجه دا حکم ورکړې شوې دې.چه د فاسق قول به هم معاملاتو کې معتبر وي.نو هرکله چې خبره هم داسې ده.نو عادل او فاسق،کافر او مسلمان، غلام او آزاد، سړې او ښځه واړه برابر دي.او د ټولو قول به معتبر وي.

## وجه د فرق

أَمَّاالدِّيَانَاتُ فَلَايَكْثُرُوُقُوعُهَاحَسْبَ وُقُوعِ الْمُعَامَلَاتِ بهرحال ديانات، ددې واقع کيدل د معاملاتو واقع کيدو پشان



زيات نه دي فَجَازَأَنْ يُشْتَرَطَ فِيهَازِيَادَةُشَرْطٍ نو جائز دی.چه په دياناتو کې زيات شرط اولګولې شي.،فَلَايُقْبَلُ فِيهَاإِلَّا قَوْلُ الْمُسْلِمِ الْعَدْلِ نو په دياناتو کې به نشي قبلولې.خو د مسلمان عادل قول لِأَنَّ الْفَاسِقَ مُتَّهَمٌ ځکه چې فاسق خو متهم دې ،وَالْكَافِرَلَايَلْتَزِمُ الْحُكْمَ او کافر دحکم پخپله التزام نه کوی فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُلْزِمَ الْمُسْلِمَ نو هغه ته دا حق نشته.چه په مسلمان باندې لازم کړی بِخِلَافِ الْمُعَامَلَاتِ په خلاف د معاملاتو، لِأَنَّ الْكَافِرَلَايُمْكِنُهُ الْمُقَامُ فِي دِيَارِنَا إِلَّابِالْمُعَامَلَةِ ځکه چې کافر، ممکن نه ده هغه ته زمونږ په وطن کې اوسيدل، خو د معاملې په ذريعه،،وَلَايَتَهَيَّأُلَهُ الْمُعَامَلَةُ او معامله به هغه لپاره ملاو نشی.،إِلَّابَعْدَقَبُولِ قَوْلِهِ فِيهَاخو په معامله کې د هغه د قول قبلولو نه پس، فَكَانَ فِيهِ ضَرُورَةٌنو په دې کې اړتيا دې.نو دده قول به قبلولې شی

**حل اللغة:** ① ديار: جمع د دار، کور ② مقام: استوګن ③ ولا يتهيا: نه آسانيږي، نه ملاوېږي

**تشريح:-** ديانات دومره زيات نه واقع کيږي. (د دياناتو نه خالص ديانات مراد دي.ضمنی ديانات مراد نه دي.او هغه ديانات مراد نه دي.کوم چې د ملك زوال ته متضمن وي)لکه څومره چې معاملات واقع کيږي.نوکه په دياناتو کې زيات شرطونه اولګولې شي.نو په دې کې به هيڅ باك نه وي.نو په دياناتو کې به صرف د مسلمان عادل قول معتبر وي.د فاسق او کافر به ( معتبر) نه وي.ځکه چې فاسق خو پخپله د خپلو دروغو وئيلو په وجه متهم دې.نو په دې خبرکې هم هغه دروغ وئيلې شي.او کافر چې هرکله پخپله د حکم التزام نشي کولې.نو په مسلمان باندې به هم ده ته د لازمولو هيڅ حق نه وي.البته د معاملاتو مسئله بل شان ده.ځکه چې کافر هرکله زمونږ په دارالاسلام کې پاتې شوې دې.او په معاملاتو کې دده قول قبول نه وي.نو هغه به دلته څنګه پاتې کيداې شي.ځکه چې هرکله هغه هيڅ معامله نشي کولې.نو خپل ضروريات به د کوم ځائې نه پوره کوي.نو بهرحال په دې کې اړتيا دې.په دې وجه معاملاتو کې د فاسقانو، فاجرانو قول معتبر دې.

## د مستور الحال د قول حکم

وَلَايُقْبَلُ فِيهَاقَوْلُ الْمَسْتُورِاو د مستور الحال قول به نشي فِي ظَاهِرِالرِّوَايَةِقبلولې.په ظاهرالروايه کې وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ يُقْبَلُ قَوْلُهُ فِيهَا چې په دياناتو کې به دده قول قبلولې شی جَرْيًاعَلَى مَذْهَبِهِ په قياس کاوه سره دده په هغه مذهب.أَنَّهُ يَجُوزُالْقَضَاءُ ، چې دده په قول باندې فيصله جائز ده.

**تشريح:-** کوم سړې چې مستورالحال وي.يعنی د هغه د عادل کيدو او فاسق کيدو معلومات نه وي.نو ظاهر الروايه دا دې.چه په دياناتو کې به دده قول معتبر نه وي.او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دا دې. چې دده قول به قبول وي.ځکه امام صاحب رحمه الله فرمائی.که قاضی د مستورالحال په قول باندې فيصله اوکړله.نو جائز ده.کله چې خصم په دې کې طعن اونکړي.

وَفِي ظَاهِرِالرِّوَايَةِهُوَوَالْفَاسِقُ فِيهِ سَوَاءٌاو په ظاهرالروايه کې دا ( مستورالحال) او فاسق برابر دی.حَتَّى يُعْتَبَرَفِيهِمَا أَكْبَرُالرَّأْيِ. تردې چې په دې دواړو کې به د غالب د ګمان اعتبار کولې شی.

**تشريح:-** او په ظاهرالروايه کې مستورالحال او فاسق دواړه برابر دی.نو په دوی دواړو کې به د لوئې رائې يعنی د غالب رائې اعتبار کولې شی.نو که غالب رائې ددوی د صدق وی.نو ددوی قول به قبلولې شی.ګنی نه به شی قبلولې.لکه مثلاً دوی د اوبو د نجاست ( پليتئ) خبر ورکړی.نو په دې کې به په غالب رائې باندې عمل کولې شی.

## په دياناتو کښې د عادل غلام، آزاد او وينځې قول معتبر دې

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. وَيُقْبَلُ فِيهَاقَوْلُ الْعَبْدِوَالْحُرِّوَالْأَمَةِإِذَاكَانُواعُدُولًا او په دياناتو کې به د غلام او آزاد او وينځې قول قبلولې شی.کله چې دوی عادل وي.لِأَنَّ عِنْدَالْعَدَالَةِالصِّدْقُ رَاجِحٌ وَالْقَبُولُ لِرُجْحَانِهِ ځکه چې د

عدالت په وخت صدق راجح دي.د صادق قول د راجح كيدو په وجه فَمِنَ الْمُعَامَلَاتِ مَا ذَكَرْنَاهُ نو په معاملاتو كي بعضې خو هغه دي.كوم چې موږ ذكركړي دي،وَمِنْهَا التَّوْكِيلُ او هم ددې نه توكيل ( وكيل مقررول) دي.

تشريح:- د عدالت په وخت د سړي رشتيا راجح كيږي.او د عادل قول ځكه معتبر وي.چه په ده كي د رشتياو رجحان غالب وي.او د معاملاتو تفصيل موږ په حواله د شامي ذكر كړې دي.

**د اوبو د ناپاكئ په اړه كښې د عادل مسلمان د خبر حكم**

وَمِنَ الدِّيَانَاتِ الْإِخْبَارُ بِنَجَاسَةِ الْمَاءِ او په دياناتو كي د اوبو د نجاست خبر وركول دي حَتَّى إِذَا أَخْبَرَهُ مُسْلِمٌ مَرْضِيٌّ تردې چي كله ده ته يو خوښ ( عادل) مسلمان خبر وركړې وي لَمْ يَتَوَضَّأْ بِهِ وَيَتَيَمَّمُ نو په دې سره به اودس نه كوي.او تيمم به كوي.

تشريح:- يو سړي خبر وركړو.چه دا اوبه ناپاكې دي.نو كه هغه عادل مسلمان دې.نو دده قول به معتبر وي.او په دې اوبو سره به اودس جائز نه وي.بلكه تيمم دې اوكړي.او لمونځ دې اوكړي.

وَلَوْ كَانَ الْمُخْبِرُ فَاسِقًا أَوْ مَسْتُورًا او كه خبر وركونكې مستورالحال يا فاسق وي تَحَرَّى، نو تحري دې اوكړي فَإِنْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ صَادِقٌ نوكه دده غالب ګمان دا وي.چه دې رشتونې دې يَتَيَمَّمُ وَلَا يَتَوَضَّأُ بِهِ نو تيمم دې اوكړي.او په دې سره دې اودس نه كوي وَإِنْ أَرَاقَ الْمَاءَ ثُمَّ تَيَمَّمَ او كه هغه اوبه توئې كړي ( واړوي).بيا تيمم اوكړي كَانَ أَحْوَطَ نو دا احوط دي.

حل اللغة: ① مستور: پټ ② صادق: رښتوني ③ اراق: توئې كړي ④ احوط: زيات احتياط﴾

تشريح:- اوكه خبر وركونكې فاسق وي.يا مستورالحال وي.نو اوس دې تحري اوكړي.د تحري نه روسته كه غالب ګمان دا وي.چه دې رشتونې دې.نو بيا دې اودس نه كوي.بلكه تيمم دې اوكړي.او د ټولو نه ښه صورت دا دې.چه اوبه دې اوغورځوي. او بيا دې تيمم اوكړي.چه د سره اشكال ختم شي.

**په عادل كيدو سره د كذب احتمال ساقطيږي**

وَمَعَ الْعَدَالَةِ يَسْقُطُ احْتِمَالُ الْكَذِبِ او عادل كيدو سره د دروغو احتمال ساقطيږي فَلَا مَعْنَى لِلِاحْتِيَاطِ بِالْإِرَاقَةِ نو احتياطاً د اوبو غورځولو هيڅ مطلب نشته. أَمَّا التَّحَرِّي فَمُجَرَّدُ ظَنٍّ بهرحال تحري نو دا خو صرف يو ګمان دې.وَلَوْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ كَاذِبٌ اوكه غالب ګمان دا وي.چه دا دروغجن دې يَتَوَضَّأُ بِهِ وَلَا يَتَيَمَّمُ نو په دې سره دې اودس اوكړي.او تيمم دې نه كوي ،هرچه لِتَرَجُّحِ جَانِبِ الْكَذِبِ بِالتَّحَرِّي د تحري په وجه د دروغو اړخ د راجح كيدو په وجه.

حل اللغة: ① التحري: سوچ،فكر ② الكذب: دروغ ③ ترجح: ترجيح﴾

تشريح:- په مستورالحال كي اوبو غورځولو كي احتياط وو.او كله چي خبر وركونكې عادل دې.نو هلته د دروغو احتمال نشته.نو هلته اوبه غورځول فضول دي.او د اوبو غورځولو نه بغير تيمم جائز دې.او د تحري درجه د عدالت د درجې پشان نه ده.بلكه تحري كي صرف يو ګمان وي.په دې وجه دې كي احتياطاً اوبه غورځول احوط ګرځولې شوې دي.اوكه د خبر وركونكي په اړه كي غالب ګمان دا وي.چه دا دروغجن دې.نو دده قول اړخ ته به توجه نشي وركولې.او په دې اوبو سره به اودس كولې شي.او تيمم به نه كوي.ځكه چې د تحري په وجه د دروغو اړخ دروند شو.

**كه په خبر كښې د دروغو غالب ګمان وي نو د اودس نه روستو احتياطاً تيمم پكار دي**

وَهَذَا جَوَابُ الْحُكْمِ او دا ( اودس كول او تيمم نه كول) دحكم ځواب دي فَأَمَّا فِي الِاحْتِيَاطِ فَيَتَيَمَّمُ بَعْدَ الْوُضُوءِ نو بهرحال احتياط كي دي د اودس نه روستو تيمم اوكړي .لِمَا قُلْنَا ..د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دي وَمِنْهَا الْحِلُّ وَالْحُرْمَةُ او د دياناتو ځنې حلت او حرمت دي.إِذَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ زَوَالُ الْمِلْكِ كله چې په دې كي د ملك زوال



نه وي وَفِيهَا تَفَاصِيلُ وَتَفْرِيعَاتٌ او په دې كي بعضې تفصيلات او تفريعات دي ذَكَرْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهَى چې دا موږ په كفاية المنتهى كي ذكركړي دي.

تشريح:- يعنى كوم ځائې چې موږ دا اوونيل.كه د خبر وركونكي په اړه كي غالب ګمان دا.دې.چه دا دروغجن دې.نو اودس دې اوكړي.او تيمم دې نه كوي.نو دا د شرعي حكم بيان دې.خو احتياط په دې كي دا دې.چه مخكي دې اودس اوكړي.او روستو دې تيمم اوكړي.ځكه چي تحري خو صرف يو ګمان دې.چه په دې كي د خطاء احتمال شته.او په دې دياناتو كي حلت او حرمت دې.كله چې په دې كي د ملك زوال نه وي.چه ددې تفصيلات مرغيناني رحمه الله په كفاية المنتهى كي بيان كړي دي.موږ وړاندې په حواله د شامي ددې تفصيل نقل كړې دې.

**د داسې دعوت څه حكم دې چې هغې كښې ګاني بجاني يا بل څه لهو لعب هم وي؟**

قال امام محمد رحمه الله ( په جامع صغيركي) فرمائيلي دي وَمَنْ دُعِيَ إِلَى وَلِيمَةٍ أَوْ طَعَامٍ او چاته چې د وليمې يا د بل څه خوراك دعوت وركړې شو. فَوَجَدَ ثَمَّةَ لَعِبًا أَوْ غِنَاءً نو هغه هلته لهولعب يا ګانې بجانې اوموندلې فَلَا بَأْسَ نو هيڅ باك نشته بِأَنْ يَقْعُدَ وَيَأْكُلَ .چه كښيني او اوخوري قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ رحمه الله امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائيلي ابْتُلِيتُ بِهَذَا مَرَّةً زه يو ځل په دې كي راګير شوم فَصَبَرْتُ .نو ما صبر اوكړو.

حل اللغة: ① وليمة: د وادۀ ډوډئ ② يقعد: كښيني﴾

تشريح:- په وليمه يا بل څه دعوت كي راوغوښتلې شوې.او هلته لاړې نو اودې كتل.چه ګانې بجانې پيل دي.يا د شرع خلاف لهو لعب دي.نو وې فرمائيل.چه كښينستل او په خوراك كاوه كي هيڅ باك نشته. حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله هم يو ځل په دې كې راګير شوې وو.نو دوى اوفرمائيل.چه ما صبر اوكړو. يعنى كيناستم.او خوراك مي اوخوړلو.

لِأَنَّ إِجَابَةَ الدَّعْوَةِ سُنَّةٌ او دا ځكه چې دعوت قبلول سنت دي قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مَنْ لَمْ يُجِبِ الدَّعْوَةَ فرمائيلي دي نبى كريم ﷺ ،، چاچه دعوت قبول نكړو فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ[1] نوهغه د ابوالقاسم( محمد رسول الله ﷺ ) نافرمانى اوكړله فَلَا يَتْرُكُهَا نو دعوت مه پريږدئ.لِمَا اقْتَرَنَ بِهَا مِنَ الْبِدْعَةِ مِنْ غَيْرِهِ په دې وجه چې دې سره ددې نه د علاوه اړخه بدعت ملاو شوې دي.

حل اللغة: ① سنة: كال ② عصى: نافرمانى اوكړه ③ اقترنت: ملاؤ شو﴾

تشريح:- او ددې وجه دا ده.چه دعوت قبلول سنت دي.لكه چې حديث كي دي.چه كوم كس دعوت قبول نكړي.هغه زما نا فرمانى اوكړله.نوكه ستا نه علاوه څوك په حرام كارئ او بدعاتو كي بوخت دې.نو د هغه په وجه به دعوت نشي پريخودلې.

كَصَلَاةِ الْجِنَازَةِ وَاجِبَةُ الْإِقَامَةِ لكه ( مثلاً) لمونځ د جنازې قائمول واجب دي وَإِنْ حَضَرَتْهَا نِيَاحَةٌ اګرچه په دې كي ژړاګانې وي فَإِنْ قَدَرَ عَلَى الْمَنْعِ نوكه دې په منع كاوه باندې قادر دې مَنَعَهُمْ .نو دا دې منع كړي.وَإِنْ لَمْ يَقْدِرْ او كه قادر نه وي ،يَصْبِرُ.نو صبر دې اوكړي

تشريح:- لكه ځنګه چې د جنازې د لمانځه حال دې.چه ددې كول ضروري دي.كه هلته بعضې خلګ په

[1])قال الزيلعي رحمه الله أخرج مسلم بمعناه الصحيح في النكاح (أي على رقم ١١٠) عن ثابت بن عياض الأعرج على أبي هريرة رضي الله عنه أن النبي ﷺ قال شر الطعام طعام الوليمة يمنعها من يأتيها ويدعى إليها من يأبها ومن لم يجب الدعوة فقد عصى الله ورسوله (وكذا رواه البخاري في النكاح باب ٧٢ وأبوداود في الأطعمة باب ١ رقم ٣٧٤٢ وابن ماجه في النكاح باب ٢٥ رقم ١٩١٣ والدارمي في الأطعمة باب ٢٨ ) (نصب:٥٢٠١٤)

ژړاګانو او چغو کې بوخت وي.بیا به هم لمونځ کولې شي.نو دغه ډول به دلته هم وي.کله چې دې په دعوت کې لاړلو.او دا منظر ئې اوکتلو.نو که ددې په منع کاوه باندې قادر وي.نو منع دې کړي.ګنې صبر دې اوکړي.

### په مقتدا او غیر مقتدا کښې وجه د فرق

وَهٰذَا إِذَا لَمْ يَكُنْ مُقْتَدًى بِهٖ او دا حکم هغه دې.چه دې مقتدی (پیشوا) نه وي فَإِنْ كَانَ مُقْتَدًى نو که دې مقتدا (امام) وي وَلَمْ يَقْدِرْ عَلٰى مَنْعِهِمْ او ددې په منع کاوه باندې قادر نه وي يَخْرُجُ وَلَا يَقْعُدُ نو اودې خي.او نه دې کینی.

تشریح:- دا د صبر کاوه حکم د هغه خلګو لپاره دې.څوك چې د قوم پیشوا (امام) نه وي.ګنې که دا عالمان وي.

لِأَنَّ فِي ذٰلِكَ شَيْنَ الدِّيْنِ ځکه چې دې کې په دین عیب لګول دی وَفَتْحَ بَابِ الْمَعْصِيَةِ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ او په مسلمانانو د ګناه دروازه کلاوول دی وَالْمَحْكِيُّ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فِي الْكِتَابِ او کوم چې په کتاب کې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی كَانَ قَبْلَ أَنْ يَصِيْرَ مُقْتَدًى بِهٖ هغه ددوی د مقتدا جوړیدو نه وړاندې دی.

حل اللغة* ① شین: سپیرة والې ② باب: دروازه》

تشریح:- اوکه دوی په منع کاوه باندې قادر نه وي.نو هلته دې نه کینی.ځکه چې دې سره به د دین او علم بدنامی کیږي.او عام خلګ چې دوی اوګوری.نو ددوی په کتلو سره به نور خلګ هم په عامه توګه (عام طور) باندې په دې کې بوخت شي.او پاتې شوه د امام صاحب رحمه الله واقعه نو هغه د پیشوا جوړیدو نه د وړاندې (واقعه) ده.

### که لغویات په دسترخوان وي نو څه حکم دې؟

وَلَوْ كَانَ ذٰلِكَ عَلَى الْمَائِدَةِ اوکه دا (ګانې بجانې وغیره) په دسترخوان باندې وي لَا يَنْبَغِيْ أَنْ يَقْعُدَ نو مناسب نه ده.دا چې دې کښینی،وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُقْتَدًى اګرچه دې پیشوا نه وي لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى د الله تعالى ددې فرمان په وجه 《 {فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ فَلَا تَقْعُدْ الخ} 》《الانعام:٦٧》 (وَهٰذَا كُلُّهٗ بَعْدَ الْحُضُوْرِ او دا د واړه دحاضریدو نه روسته دی.

حل اللغة* ① المائدة: درستخوان》

تشریح:- اوکه دا واړه عبثیات (لغویات) په دسترخوان وي.نو اګرچه دې پیشوا (مقتدا) هم نه وي.بیا دې هم هلته نه کینی.چه په دې باندې د الله تعالى قول لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى 《 فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ 》 دلالت کوي.

وَلَوْ عَلِمَ قَبْلَ الْحُضُوْرِ او که دې پوهه شي.پخپله دحاضریدو نه مخکې لَا يَحْضُرُ نو نه دې حاضریږي. لِأَنَّهٗ لَمْ يَلْزَمْهُ حَقُّ الدَّعْوَةِ ځکه چې ده ته حق د دعوت لازم نه دې، بِخِلَافِ مَا إِذَا هَجَمَ عَلَيْهِ په خلاف ددې صورت کله چې په ده باندې اچانك لهو لعب راغلې وي. لِأَنَّهٗ قَدْ لَزِمَهٗ ځکه چې ده ته حق د دعوت لازم شو، وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى أَنَّ الْمَلَاهِيَ كُلَّهَا حَرَامٌ او مسئله دلالت کوي.په دې خبره چې واړه ملاهي (لهو لعب) حرام دی حَتَّى التَّغَنِّيْ بِضَرْبِ الْقَضِيْبِ تردې چې شپیلۍ سره ګانا ونیل (هم حرام دی) وَكَذَا قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اُبْتُلِيْتُ او دغه ډول د امام ابوحنیفه رحمه الله قول،، ابتلیت ...، لِأَنَّ الْاِبْتِلَاءَ بِالْمُحَرَّمِ يَكُوْنُ ځکه چې ابتلاء (راګیریدل) حرام سره شوی دی.

حل اللغة* ① الهجم: اچانك، ناڅاپه ② الملاهي: لهوولعب ③ التغني: سندره ونیل ④ القضیب: شپیلۍ》

تشریح:- او دا ټوله خبره هغه وخت ده.چه ده د حاضریدونه وړاندې معلومه نه وي.ګنې که د وړاندې نه معلومه وي.نو بیا هلته حاضریدل جائز نه دی.بهرحال دا مسئله په دې دلالت کوي.چه دا واړه لهو او لعب حرام دی.او ګانې بجانې حرام دی.په شپیلۍ سره او باجې سره ګانا ونیل هم حرام دی.او د امام صاحب



رحمه الله دا فرمائیل چې زه یو ځل اخته شوم.دا هم په دې دلالت کوي.چه دا واړه لهو او لعب حرام دی.ځکه چې ابتلاء په حرام باندې ونیلې شي.

تنبیه ◉ 《لم یلزمه حق الدعوة》 ده ته حق د دعوت لازم نه دې.یعنی دعوت قبلول لازم نه دی.ځکه چې د دعوت قبلول هغه وخت لازمیږي.کله چې دعوت د سنت په طریقه وي.او د حاضریدو نه روستو د حاضریدو په وجه حق د دعوت لازم شو.نو دې به د علم نه کیدو په وجه معذور شمارلې کیږي. 《کذا قال العینی رحمه الله فی البنایه》

## فصل في اللبس

(دا) فصل د اغوستلو (په بیان کې) دې.

تشریح:- په دې فصل کې به مرغینانی رحمه الله د لباس په اړه کې بحث کوي.ددې لنډیز دا ده.چه سړو لپاره ریښم جائز نه دی.البته د ښځو لپاره جائز دې.د هغه حدیثونو په وجه کوم چې ذکر شو.

### د سړو او ښځو لپاره د ریښمو اغوستلو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائیل لَا يَحِلُّ لِلرِّجَالِ لُبْسُ الْحَرِيْرِ چې سړو لپاره ریښم اغوستل حلال نه دی وَيَحِلُّ لِلنِّسَاءِ ښځو لپاره حلال دی لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهٰى عَنْ لُبْسِ الْحَرِيْرِ وَالدِّيْبَاجِ ځکه چې نبی کریم ﷺ د ریښمو او دیباج (خالص ریښم) اغوستلو نه منع فرمائیلې ده إِنَّمَا يَلْبَسُهٗ مَنْ لَا خَلَاقَ لَهٗ فِي الْآخِرَةِ [1] او وې فرمائیل چې ،، دا هغه کس اغوندی.د چا چې آخرت کې هیڅ برخه نه وي.،،

حل اللغة* ① الحریر: نری ریښم ② الدیباج: غټ ریښم ③ خلاق: حصه》

تشریح:- مسئله ښکاره ده اشکال په کې نشته.

وَإِنَّمَا حَلَّ لِلنِّسَاءِ بِحَدِيْثٍ آخَرَ او حلال دې لپاره د ښځو د بل حدیث په وجه وَهُوَ مَا رَوَاهُ عِدَّةٌ مِنَ الصَّحَابَةِ او دا هغه حدیث دې.کوم چې ډیر صحابو رضی الله عنهم روایت کړې دې مِنْهُمْ عَلِيٌّ رضی الله عنه هم په دوی کې حضرت علی رضی الله عنه دې. أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ خَرَجَ وَبِإِحْدٰى يَدَيْهِ حَرِيْرٌ وَبِالْأُخْرٰى ذَهَبٌ .. چې نبی کریم ﷺ بهر ته تشریف راوړو.او ددوی ﷺ په یو لاس کې ریښم او په دوهم لاس کې سره زر وو وَقَالَ: هٰذَانِ مُحَرَّمَانِ عَلٰى ذُكُوْرِ أُمَّتِيْ حَلَالٌ لِإِنَاثِهِمْ [2] او وې فرمائیل.چه دا دواړه د امت په سړو باندې حرام دی.ددوی ښځو لپاره حلال دی، وَيُرْوٰى حِلٌّ لِإِنَاثِهِمْ. او په یو روایت کې (د حلال په ځائې) ،، حل لإناثهم ،، دې.

تشریح:- مسئله ښکاره ده اشکال په کې نشته.

### د معاف د کم مقدار اندازه

[1] قال الزيلعى رحمه الله هما حديثان فالأول أخرجه الجماعة عن حذيفة رضی الله عنه الذى تقدم تخريجه عن قريب وأما الثانى فأخرجه البخارى فى الجمعة باب ٧ ومسلم فى اللباس رقم ٦ وأبوداود فى الصلاة باب ٢١٣ والنسائى فى الجمعة باب ١١ ومالك فى اللباس رقم ١٨) من حديث عبدالله بن عمر رضی الله عنهما أن عمربن الخطاب رضی الله عنه رأى حلة عندباب المسجد فقال يا رسوالله لواشتريت هذه فلبستها يوم الجمعة وللوفد إذا قدموا عليك فقال رسول الله ﷺ إنما يلبس الحرير فى الدنيا من لا خلاق له فى الآخرة ثم جاء رسول الله ﷺ منها حلل فأعطى عمر منها حلة فقال عمر رضی الله عنه يا رسول الله كسوتنيها وقد قلت ما قلت؟ فقال رسول الله ﷺ إنى لم اكسكها لتلبسها فكساها عمر أخا له مشركاً (نصب:٥٢١\٤)

[2] - أخرجه البخارى فى الجنائزباب ٢ ومسلم اللباس رقم ٢ والترمذى فى الأدب باب ٤٥)

قَالَ إِلَّا أَنَّ الْقَلِيلَ عَفْوٌ خو قليل معاف دي وَهُوَ مِقْدَارُ ثَلَاثَةِ أَصَابِعَ أَوْ أَرْبَعَةٍ او دا د دريو يا څلورو ګوتو مقدار دي كَالْأَعْلَامِ وَالْمَكْفُوفِ بِالْحَرِيرِ لكه ( بوټي ( نقش ونګار) يا د ريښمو جهالر ( غاړې)، لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ په دې وجه چې نبی کريمﷺ منع فرمائيلې ده.د ريښمو د اغوستلو نه، إِلَّا مَوْضِعَ إِصْبَعَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةٍ أَوْ أَرْبَعَةٍ () أَرَادَ الْأَعْلَامَ خو د دوو يا دريو يا څلورو ګوتو په مقدار،نبی کريمﷺ د بوټو ( منقش کپړې) اراده اوفرمائيله وَعَنْهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبی کريمﷺ په اړه کې رانقل دی أَنَّهُ كَانَ يَلْبَسُ جُبَّةً مَكْفُوفَةً بِالْحَرِيرِ () چه هغویﷺ به داسې چوغه اغوستله.چه ددې جهالر به د ريښمو وو.

**حل اللغة:** ① اصابع: جمع اصبع ،ګوته ② موضع : ځاې ③ جبة: چوغه ④ مكفوفة: جهالرﻪ ا ⑤ ديباج : د ريښمو هغه کپړه چې ددې تانا (بوده، نيغ تارونه) او بانا ( تنسته، پراته تارونه) د ريښمو وی.

**تشريح:**- ريښم اغوستل حرام دی.خو قليل مقدار معاف دي.او قليل مقدار درې څلور ګوتې دی.لکه نقش ونګار يا د ريښمو جهالر چې ددې دليل دا دوې (دوه) حديثونه دی.کوم چې دلته نقل دی.

**تنبيه** ① دومره کپړه اغوستل چې دا عورت پټ کړی.او ګرمی او يخنی لرې کړی.فرض ده.او غوره دا ده.چه د مالوچو وی.ځکه چې د تکبر نه لرې ده.او غوره دا ده.چه نه زياته ښه وی.او نه بالکل معمولی وی.او د ارتيا په اندازه مستحب ده.او د ښانست لپاره ښه کپړه مباح ده.او تکبر لپاره مکروه ده.او مستحب ده.چه کپړه سپينه يا توره وی.او سره مکروه ده.

### د ريښمو په تکيه او په دې باندې د اوده کيدو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. وَلَا بَأْسَ بِتَوَسُّدِهِ وَالنَّوْمِ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ .او هيڅ باك نشته.د ريښمو تکيه لګولو کې ، او په دې باندې اوده کيدو کې ، د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. وَقَالَا: يُكْرَهُ او صاحبين رحمهما الله فرمائی.مکروه دی وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ ذَكَرَ قَوْلَ مُحَمَّدٍ وَحْدَهُ او په جامع صغير کې يواځې د امام محمد رحمه الله قول ذکر دې وَلَمْ يَذْكُرْ قَوْلَ أَبِي يُوسُفَ او د امام ابويوسف رحمه الله قول ذکر نه دې وَإِنَّمَا ذَكَرَهُ الْقُدُورِيُّ وَغَيْرُهُ مِنَ الْمَشَايِخِ .او دا امام قدوری رحمه الله او دده نه علاوه مشائخو ذکرکړې دې. وَكَذَا الِاخْتِلَافُ فِي سِتْرِ الْحَرِيرِ وَتَعْلِيقِهِ عَلَى الْأَبْوَابِ هم دغه ډول اختلاف دې.د ريښمو په پرده کې ،او ددې په دروازه باندې رازوړندولو کې لَهُمَا الْعُمُومَاتُ د صاحبينو رحمهما الله دليلونه عام ( مطلق) روايات دی ،وَلِأَنَّهُ مِنْ زِيِّ الْأَكَاسِرَةِ وَالْجَبَابِرَةِ او ځکه چې دا د عجمو بادشاهانو او متکبرينو طريقه ده وَالتَّشَبُّهُ بِهِمْ حَرَامٌ او ددوی سره تشبه حرام ده وَقَالَ عُمَرُ ... إِيَّاكُمْ وَزِيَّ الْأَعَاجِمِ ([3]) او فرمائيلی دی حضرت عمر رضي الله عنه ،، خپل ځان بچ کړئ د عجميانو د طريقو نه،،

**حل اللغة:** ① اكاسرة: د کسری جمع عجمو د فارس ملك بادشاه ② جبابرة: د جبار جمع ده. په معنی د متکبر ③ ستر: پرده ④ تعليق: ځوړندول ⑤ زی: ډول او طريقه،

**تشريح:**- د امام صاحب رحمه الله په نيز د ريښمو په تکيه لګولو کې او په داسې تکيه باندې اوده کيدوکې هيڅ باك نشته.او دغه ډول دا په ديوال باندې اچولو کې هيڅ باك نشته.او دغه ډول په دروازه باندې راځوړندولو کې هيڅ باك نشته.امام محمد رحمه الله دې ته مکروه ونيلی دی.امام قدوری رحمه الله وغيره مشائخو امام ابويوسف رحمه الله د امام محمد رحمه الله سره ذکر کړې دې.او په جامع صغير کې د امام ابويوسف رحمه الله قول ذکر نه دې.
بهرحال په قول د امام قدوری رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله دليل د ذکر شوو احاديثو عموم دې. كما هو ظاهر وفيه

[1]) من حديث عمربن الخطاب رضي الله عنه أخرجه مسلم فی اللباس والزينة رقم ۱۵)_
[2] - من حديث أسماء بنت أبی بكر رضي الله عنهما أخرجه مسلم فی اللباس رقم ۱۰ وأبوداود فی الباس باب ۹ وأحمدفی ا لمسند(۳۴۸\۶)
[3]) أخرجه ابن حبان فی صحيحه فی النوع التاسع من القسم الرابع من حديث شعبة عن قتادة رضي الله عنه (نصب:۵۲۵\۴)_



بحث فی النتائج او په دې وجه هم ( مکروه دی).چه دا د عجمو باشاهانو او متکبرينو طريقه ده.او ددوی سره تشبيه حرام ده.او د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه فرمان دې.چه د عجميانو طريقه اختيارولونه خپل ځانونه بچ کړئ.

### د امام صاحب رحمه الله دليل

وَلَهُ مَا رُوِيَ او د امام صاحب رحمه الله دليل هغه دې.کوم چې نقل دې أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جَلَسَ عَلَى مِرْفَقَةِ حَرِيرٍ ([1]) چې نبی کريمﷺ د ريښمو په تکيه باندې کيناستلو وَقَدْ كَانَ عَلَى بِسَاطِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه مِرْفَقَةُ حَرِيرٍ او ځکه چې او د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په تولائی به د ريښمو تکيه پرته وه وَلِأَنَّ الْقَلِيلَ مِنَ الْمَلْبُوسِ مُبَاحٌ او ځکه چې د اغوستې شوې نه قليل ( معمولی شان) جائز دې كَالْأَعْلَامِ لکه ( بوټی ( نقش ونګار) فَكَذَا الْقَلِيلُ مِنَ اللُّبْسِ وَالِاسْتِعْمَالِ نو هم دغه ډول قليل اغوستل او استعمال ( جائز دې). وَالْجَامِعُ كَوْنُهُ نَمُوذَجًا او جامع ددې نمونه کيدل دی ،عَلَى مَا عُرِفَ.د هغه تفصيل مطابق کوم چې معلوم شوې دې.

**حل اللغة:** ① مرفق: تکيه ② الاعلام: بوټی ③ نموذج: نمونه

**تشريح:**- د امام صاحب رحمه الله د اړخه دوې (دوه) حديثونه پيش کړې شوې دی.ړومبې حديث نه ملاويږی.بهرحال د قليل استعمال جائز معلوميږی.که ملبوس (اغوستې شوې) جوړ کړې شوې وی.لکه په بوټو کې ،يا په اغوستلو او استعمال کې .لکه په تکيه او غوړولو ( تولائی وغيره) کې ، چې نمونه وی.يعنی چې جنت کې به د ريښمو لباس ملاويږی.نو قليل په دې وجه جائز دې.چه ددې د خوند سره آشناشی.او د آخرت کاميابئ حاصلولو کې بوخت شی.
نو دلته سوال کيدو.چه قليل ملبوس (اغوستې شوې) جائز دې.خو قليل اغوستل او استعمال ولې جائز دې.او دوهم په ړومبی باندې ولې قياس کړې شوې دې.چه علت جامعه موجود نه دې؟ نو ددې ځواب نې ورکړو.چه علت جامعه موجود دې.او هغه ددې دواړو نمونه کيدل دی.

**تنبيه** ① اکثرو مشائخو د صاحبينو رحمهما الله قول اختيار کړې دې.او هم دا صحيح ده.﴿سکب الانهر ص:۴۵۷،ج۲﴾ علامه شامی په ﴿ردالمختار ص:۲۲۶،ج۵﴾ باندې دا بحث نقل کړې دې.او فرمائيلی نې دی.چه دا تصحيح د معتبرو متونو او شروحو خلاف ده.

**تنبيه** ② صاحب د مجمع او صاحب د منظومه او امام قدوری رحمه الله امام ابويوسف رحمه الله د امام محمد رحمه الله سره بيان کړې دې.او په جامع صغير کې د امام صاحب او امام محمد رحمهما الله اختلاف ذکر دې.او فقيه ابوالليث رحمه الله ذکرکړی دی.چه امام ابويوسف رحمه الله د امام صاحب رحمه الله سره دې.﴿مجمع الانهر ص:۵۱۴،ج۲﴾

### د صاحبينو رحمهما الله په نيز حالت د جنګ مستثنی دې

قَالَ وَلَا بَأْسَ بِلُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ فِي الْحَرْبِ عِنْدَهُمَا او په جنګ کې د صاحبينو رحمهما الله په نيز په ريښمو او ديباج ( چې تنسته او بوده ئې دواړه د ريښمو وی) اغوستوکې هيڅ باك نشته لِمَا رَوَى الشَّعْبِيُّ په دې وجه چې شعبی روايت کړې دې أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَخَّصَ فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ فِي الْحَرْبِ ([2]) چې نبی کريمﷺ اجازت ورکړې دې.په جنګ کې د ريښمو او ديبا اغوستلو وَلِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً او ځکه چې په دې کې اړتيا دې فَإِنَّ الْخَالِصَ مِنْهُ أَدْفَعُ لِمَعَرَّةِ السِّلَاحِ ځکه چې خالص ريښم زيات کومك کونکی دی وَأَهْيَبُ او زيات هيبت اچونکی دی فِي عَيْنِ الْعَدُوِّ لِبَرِيقِهِ.د خپل چمك په وجه د دښمن په سترګوکې.

**حل اللغة:** ① الديباج: غټ ريښم ② الحرب: جنګ ③ معركة: جنګ ④ اهيب: هيبت ناك ⑤ عدو: دښمن

[1]) قال الزيلعی رحمه الله غريب جداً)_
[2] - من حديث حكيم بن عمير رضي الله عنه أخرجه ابن عدی فی الكامل فی ضفعاء ا لرجال (۲۵۰۱۵)

**تشریح:-** د صاحبینو رحمهما الله په نیز په جنګ کې د ریښمو په اغوستو کې هیڅ باك نشته.ددې حدیث په وجه، او په دې وجه هم چې دې کې اړتیا دې.ځکه چې خالص ریښم د وسلې سختی لرې کوی.او دښمن مرعوب کوی.

## د امام صاحب رحمه الله نقطه نظر

**وَيُكْرَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ** او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مکروه دې. **لِأَنَّهُ لَا فَصْلَ فِيْمَا رَوَيْنَاهُ** ځکه چې هیڅ تفصیل نشته.هغه حدیثونو کې کوم چې موږ روایت کړی دی **وَالضَّرُوْرَةُ انْدَفَعَتْ بِالْمَخْلُوْطِ** او اړتیا په ګډشوی سره پوره شو **وَهُوَ الَّذِيْ لُحْمَتُهُ حَرِيْرٌ وَسَدَاهُ غَيْرُ ذٰلِكَ**، او ګډشوی هغه دې.چه د هغې بانا (تنسته) د ریښمو وی.او ددې تانا (بوده) ددې نه د علاوه (بل څه شئ) وی **وَالْمَحْظُوْرُ لَا يُسْتَبَاحُ إِلَّا لِضَرُوْرَةٍ** او کوم شئ چې ممنوع وی.هغه مباح نه وی.مګر د اړتیا لپاره **وَمَا رَوَاهُ** او کوم چې شعبی روایت کړې دې، **مَحْمُوْلٌ عَلَى الْمَخْلُوْطِ**.هغه په ګډشوی باندې مخلوط محمول دې.

**حل اللغة:** ① المخلوط: ګډوډ ② لحمة: تانا (تنسته) ③ سدا: بوده ④ المحظور: ناجائز

**تشریح:-** امام ابوحنیفه رحمه الله خالص ریښم اغوستل په جنګ کې هم مکروه ګرځوی.ځکه چې ددې په ممانعت کې کوم احادیث وړاندې ذکر شوی دی.هغې کې د جنګ او غیر جنګ تفصیل نشته.البته تاسو به دا وایئ چې په دې کې اړتیا دې.نو موږ وایو.چه اړتیا خو په ګډشوی سره پوره کیدای شی.او د ګډشوی نه مراد دا دې.چه ددې بانا د ریښمو وی.او تانا د مالوچو یا د وړئ وغیره وی.ځکه که تانا د ریښمو وی.او بانا د مالوچو وی.نو بیا د اړتیا نه بغیر هم ددې استعمال جائز دې. او تاسو ته معلومه ده.چه کوم شئ د اړتیا په وجه ثابتیږی.هغه په اندازه د اړتیا ثابتیږی.او اړتیا په ګډشوی سره پوره شو.نو د.غیرمخلوط (چې ګډشوی نه وی) جواز پخپل حال باندې پاته پاتې شو.او د عامر بن شرجیل الشعبی رضي الله عنه روایت په مخلوط (ګډشوی) باندې محمول دې،، فلايصح الإستدلال به

تنبیه① ❁ شیعه د آل محمد ﷺ لپاره ریښم حلال ګرځوی.او زموږ په نیز دا قول باطل دې.

تنبیه② ❁ چې د کوم لباس تانا د ریښمو او بانا د مالوچو یا د وړئ وغیره وی.نو ددې استعمال جائز دې.په جنګ کې هم اوهسې هم، او که بانا د ریښمو وی.او تانا د مالوچو وغیره وی.نو په جنګ کې ددې اغوستل جائز دی.او ددې نه په علاوه کې مکروه دی.ځکه چې د کپړې د تنسته اودلو په وجه کپړه جوړیږی.او د اودلو مدار په بانړ (تنسته) باندې دې.نو په دې وجه دا اصل ګرځولې شوې دې،،، وسیأتی،،

تنبیه③ ❁ کله چې فوجیان د جنګ تیاری کوی.نو په ریښمو اغوستلو کې هیڅ باك نشته.اګرچه اوس دښمن حاضر شوې نه وی.خو په دې کې به لمونځ نه کوی.البته که د دښمن یره وی.نو په دې کې لمونځ هم کولې شی.

## د هغه کپړې حکم چې تانا ئې د ریښمو وی او بانا ئې د د ریښمو نه وی

**قَالَ** امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی **وَلَا بَأْسَ بِلُبْسِ مَا سَدَاهُ حَرِيْرٌ وَلُحْمَتُهُ غَيْرُ حَرِيْرٍ** او هیڅ باك نشته.په داسې کپړه اغوستلو کې، چې ددې تانا د ریښمو او ددې بانا د ریښمو نه د علاوه وی **كَالْقُطْنِ** لکه د مالوچو او وړئ (چې ریښم ور سره ګډ وی) په جنګ کې **وَغَيْرِهِ** و ددې نه په علاوه کې **وَالْخَزِّ فِي الْحَرْبِ** **لِأَنَّ الصَّحَابَةَ كَانُوْا يَلْبَسُوْنَ الْخَزَّ**(١) ځکه چې صحابو رضي الله عنهم به خز (د وړئ او ریښمو جوړه شوې کپړه) اغوستلو **وَالْخَزُّ مُسَدًّى بِالْحَرِيْرِ** او د خز تانا به د ریښمو وه **وَلِأَنَّ الثَّوْبَ إِنَّمَا يَصِيْرُ ثَوْبًا بِالنَّسْجِ** ځکه چې کپړه د پروت تار اودلو په وجه

١ - قال الزيلعي رحمه الله فيه أثار منها نقل عمل عمران بن الحصين وأنس بن مالك وغيرهما رضي الله عنهم (نصب: ٥٢٧\٤)



کپړه جوړیږی **وَالنَّسْجُ بِاللُّحْمَةِ** او اودل د بانړ په وجه کیږی **فَكَانَتْ هِيَ الْمُعْتَبَرَةُ دُوْنَ السَّدٰى** نو بانا به معتبر وی.تانا به نه وی.

**حل اللغة:** ① الخز: د وړئ اوریښمو جوړه شوې کپړه ② النسج: اودل ③ السدی: بانا ④ القطن: مالوچ

**تشریح:-** مسئله واضح ده.دا مونږه اوس ذکرکړې ده.خز: د یو دریابی ځناور د ایختو (وړئ) نه جوړه شوې کپړه،مسدی درسداء نه د اسم مفعول صیغه ده.په معنی د تانا اودل،سدی: بانا (تنسته، ملاست تارونه) لحمة: تانا (بوده، ولاړ تارونه)

## د امام ابویوسف رحمه الله نقطه نظر

**وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ** رحمه الله او فرمائیلی دی امام ابویوسف رحمه الله **أَكْرَهُ ثَوْبَ الْقَزِّ يَكُوْنُ بَيْنَ الْفَرْوِ وَالظِّهَارَةِ** قزه مکروه ګنړم د ریښمو کپړې چې وی د استر او ابرې په منځ کې ولا ړری **وَلَا أَرٰى بِحَشْوِ الْقَزِّ بَأْسًا** او هیڅ باك نه ګنړم.د ریښمو په ډکاوه کې **لِأَنَّ الثَّوْبَ مَلْبُوْسٌ** ځکه چې کپړه اغوستې شی **وَالْحَشْوُ غَيْرُ مَلْبُوْسٍ**.او ډکون نشی اغوستې.

**حل اللغة:** ① القز: د ریښمو کپړه ② الفرو: استر ③ الحشو: ډکول

**تشریح:-** که د ریښمو کپړه وی.او دا ابرې (پوښ) یا استر سره ملاو کړې شی.نو بهرحال دا کپړه ده.او کپړه ملبوس (اغوستې شوې) وی.نو دا امام ابویوسف رحمه الله مکروه ګنړی.اوکه کچه ریښم د مالوچو پشان په ګدئ یا تکیه (بالخت) وغیره کې ډك کړې شی.نو په دې کې هیڅ باك نشته.ځکه چې کپړه اغوستې شی.او ډکون نشی اغوستلې.

## که بانا د ریښمو او تانا د ریښمو نه وی نوځه حکم دې ؟

**قَالَ** امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی **وَمَا كَانَ لُحْمَتُهُ حَرِيْرًا وَسَدَاهُ غَيْرُ حَرِيْرٍ** و هغه کپړه دکومې چې بانا د ریښمو او ددې تانا د ریښمو نه علاوه وی **لَا بَأْسَ** نو په دې کې هیڅ باك نشته **بِهِ فِي الْحَرْبِ لِلضَّرُوْرَةِ** په جنګ کې (اغوستلو کې) د اړتیا په وجه **وَيُكْرَهُ فِيْ غَيْرِهِ لِانْعِدَامِهَا** او ددې نه په علاوه کې مکروه دې.د اړتیا نه کیدو په وجه **وَالْاِعْتِبَارُ لِلُّحْمَةِ** او اعتبار د بانړ (تنسته تارونو) دې **عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ** هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دې.

**تشریح:-** ددې وضاحت تیر شوې دې.

## سړو لپاره په سرو زرو سره ښائست جوړول جائز نه دې

**قَالَ** امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل **وَلَا يَجُوْزُ لِلرِّجَالِ التَّحَلِّيْ بِالذَّهَبِ** و سړو لپاره په سرو زرو سره ښائست کول جائز نه دی **لِمَا رَوَيْنَاهُ** هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړې دې **وَلَا بِالْفِضَّةِ** و نه په سپینو زرو سره **لِأَنَّهَا فِيْ مَعْنَاهُ** ځکه چې سپین زر د سرو زرو په معنی کې دی **إِلَّا بِالْخَاتَمِ وَالْمِنْطَقَةِ وَحِلْيَةِ السَّيْفِ مِنَ الْفِضَّةِ تَحْقِيْقًا لِمَعْنَى النَّمُوْذَجِ** خو د ګتمې او ملابند او د توړې زیور سره، سپینو زرو سره د نمونې معنی ثابتولو لپاره **وَالْفِضَّةُ أَغْنَتْ عَنِ الذَّهَبِ** او سپین زر سره مستثنی کړل **إِذْ هُمَا مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ**.ځکه چې دا دواړه د یو جنس ځنې دی **كَيْفَ** د

سپينو زرو ګتمه وغيره به ولې جائز نه وی.وقد جاء في اباحة ذلك آثار.(١) چې ددې د جواز په سلسله کې آثار وارد دی.

**حل اللغة:** ① **التحلي:** ښائست ② **الخاتم:** انګشتری ③ **السيف:** توره ④ **النموذج:** نمونه

**تشريح:-** د سړو لپاره د سرو زرو او سپينو زرو زيور جائز نه دی.د هغه احاديثو په وجه کوم چې تير شوی دی.او په دغه رواياتو کې اګرچه صرف د سرو زرو ذکردې.خو سپين زر هم ددې د جنس ځنې دې.په دې وجه به د سپينو زرو هم دا حکم وی.البته د سپينو زرو ګتمه او د سپينو زرو ملا بند (کمربند) او د سپينو زرو هغه زيور کوم چې په توره باندې اوخيجولې شی.نو جائز دی.د نمونې په غرض سره چې ددې بيان تير شوی دی.او دا د نمونې معنی په سپينو زرو سره پوره شوه.نو د سرو زرو د ګتمې وغيره اجازت به نه وی.او د سپينو زرو ګتمه وغيره ځکه جائز ده.چه ددې په جواز کې ډير آثار رانقل دی.نبی کريم ﷺ هم د سپينو زرو ګتمه جوړه کړې وه.او د ګتمې او ملابند او د تورې په اړه کې روايات ذکر دی. اوګورئ: ﴿نصب الرايه ص:٢٣٢،ج٤﴾

## د سپينو زرو،د کاڼي،اوسپنې ،او د پيتلو د ګتمې اچولو حکم

وفي الجامع الصغير او په جامع صغير کې دی ولا يتختم الا بالفضة او ګتمه به نشی اغوستلې.مګر د سپينو زرو، وهذا نص على أن التختم بالحجر والحديد والصفر حرام او نص دې په دې خبره چې د کاڼي او اوسپنې او د پيتلو ګتمه اغوستل حرام دی ورأى رسول الله عليه الصلاة والسلام على رجل خاتم صفر او نبی کريم ﷺ په يو سړی باندې د پيتلو ګتمه اوليدله. فقال: مالي أجد منك رائحة الأصنام(٢) نو وې فرمائيل.چه ماله څه شوی دی چې زه ستا نه د بتانو بوئی محسوسوم ورأى على آخر خاتم حديد او په يو بل سړی باندې ئې د اوسپنې ګتمه اوليدله فقال: مالي أرى عليك حلية أهل النار نو وې فرمائيل.چه ماله څه شوی دی.چه زه په تا باندې د جهنميانو زيور ګورم ومن الناس او په خلګو کې بعضې هغه دی.من أطلق الحجر الذي يقال له يشب چې هغوی دهغه کاڼي اجازت ورکړې دې.چه هغې ته يشب وائی (قيمتی کاڼړې دې).لأنه ليس بحجر ځکه چې دا کاڼړې نه دې إذ ليس له ثقل الحجر ځکه چې ددې کاڼړی بوج نشته ،،وإطلاق الجواب في الكتاب يدل على تحريمه او په کتاب کې د خواب مطلق کيدل دلالت کوی ددې په حرمت باندې.

**حل اللغة:** ① **الحجر:** کاڼړې ② **الحديد:** اوسپنه ③ **الصفر:** پيتل ④ **رائحة:** بوئی ⑤ **الاصنام:** بت ⑥ **حلية:** کالی ⑦ **ثقل:** درونددوالې﴾

**تشريح:-** په جامع صغير کې فرمائيلی شوی دی.چه صرف د سپينو زرو ګتمه به اغوستې شی.نو ددې نه معلومه شوه.چه د کاڼړی او اوسپنې او د پيتلو وغيره ګتمه حرام ده.لکه څنګه چې دهغه رواياتو نه معلومه

(١) قال الزيلعي رحمه الله أم الحخام فأخرج الأيمة الستة في كتبهم عن .. أنس بن مالك ﷺ أن رسو ل الله ﷺ إتخذ خاتماً من فضة له فص حبشي ونقش فيه محمد رسول الله أخرجه البخاري في اللباس باب ٤٧ رقم ٥٨٦٨ ومسلم في اللباس رقم ٦٢ وأبوداود في الخاتم باب١ رقم ٤٢١٦ والترمذي في اللباس باب ١٥ والنسائي في الزينة باب ٤٧ وابن ماجه في اللباس باب ٣٩ وأما أحاديث السيف فعن أنس ﷺ قال كانت قبيعة سيف رسول الله ﷺ فضة (أخرجه أبوداود في الجهاد باب ٦٤ رقم ٢٥٨٣) والترمذي في الجهاد باب ١٦ رقم ١٦٩١) وكذا نقل آثاراً في جوازها(نصب:٥٣١\٤)_

(٢) من حديث عبدالله بن بريدة عن أبيه أخرجه أبوداود في الخاتم باب ٤ رقم ٤٢٢٣ والترمذي في اللباس باب ٤٣ والنسائي في الزينة باب ٤٦ )_

(٣) قال الزيلعي رحمه الله بعد تخريج الحديث السابق ليس كذالک بل هو رجل واحد كما ه في الحديث أي الحديث السابق (نصب:٥٣٤\٤)_



شوه.کوم چې دلته ذکر دی.يو کاڼړې دې.چه هغې ته يشب وائی.بعضې فقهاو ددې اجازت ورکړې دې.ځکه چې دا سپک دې.او د کاڼړی پشان درونددوالې په دې کې نشته.نو ګويا چې دا کاڼړې نه دې.خو امام محمد رحمه الله مطلق فرمائيلی دی.چه «ولا يتختم إلا بالفضة» ددې اطلاق نه معلوميږی.چه د يشب ګتمه هم حرام ده.

تنبيه ① ۞ بعضو حضراتو د سرو زرو، او کاڼړی، او د اوسپنې ګتمه جائز ګرځولې ده.قهستاني په حواله د تمرتاشی دا ذکر کړی دی.،، قلت ،، خو په دې به اعتماد نشی کولې.﴿سکب الانهر ص: ٤٦٠،ج٢﴾ نو د صاحب د عين الهدايه رحمه الله دا فرمائيل.چه د مترجم په نيز جواز باندې فتوی ورکول غوره دی. محل د فکر او بې دليله دی.،، فتدبر،،

تنبيه ② ۞ يشب په حقيقت کې کاڼړې نه دې.نو په دې کې هيڅ باک نشته.،، وهو الأصح ،، اوګورئ ﴿شامی ص:٢٥٩،ج٥﴾

## د سرو زرو ګتمه سړو لپاره حرام د

والتختم بالذهب على الرجال حرام لما روينا او سړو لپاره د سرو زرو ګتمه اغوستل حرام دی.د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړې دې وعن علي رضي الله عنه او د حضرت علي ﷺ نه نقل دی أن النبي عليه الصلاة والسلام نهى چې نبی کريم ﷺ منع فرمائيلې ده عن التختم بالذهب(١) .د سرو زرو ګتمې اغوستلو نه

**تشريح:-** د سرو زرو ګتمه سړو دپاره حرام ده.ښځو لپاره حلال ده.،، کمامر،، د هغه حديث په وجه کوم چې متن کې ذکر شوې دې.او په ګتمه کې اصل حرمت دې.او کوم ځائې چې اجازت ملاو شوې دې.دا د اړتيا په وجه ملاو شوې دې.يعنی د مهر ضرورت، يا د نمونې ضروت وی. او «الضرورة تتقدر بقدر الضرورة» منلې شوې قاعده ده.او دا اړتيا په سپينوزرو سره پوره کيږی.

ولأن الأصل فيه التحريم او ځکه چې ګتمې اچولو کې اصل تحريم دې والإباحة ضرورة الختم أو النموذج او جواز د مهر يا د نمونې د اړتيا په وجه دې وقد اندفعت بالأدنى او ادنی اړتيا پوره شو وهو الفضة او ادنی دا سپين زر دی والحلقة هي المعتبرة او الغه معتبر ده لأن قوام الخاتم بها ځکه چې د سپينوزرو مضبوطی حلقې سره کيږی ولا معتبر بالفص اودغمی اعتبار نشی کولې حتى يجوز أن يكون من حجر تردې چې غمې د کاڼړی جائز دې ويجعل الفص إلى باطن كفه او غمې به د خپل تلی دننه اړخ ته کوی بخلاف النسوان په خلاف د ښځو لأنه تزين في حقهن ځکه چې ګتمه اچول د هغوی په حق کې ښائست جوړولول دی.

**حل اللغة:** ① **الفص:** غمې ② **حجر:** کاڼړې ③ **نسوان:** ښځې﴾

**تشريح:-** په ګتمه کې اصل ددې الغه ده.ځکه چې د ګتمې مضبوطی په حلقې سره وی.په غمی سره نه وی.نو که د ګتمې الغه د سپينو زرو وی.او غمې ئې کاڼړی.نو جائز دې.سړې چې کله ګتمه اغوندی.نو غمې دې د تلی دننه اړخ ته کوی.شا اړخ ته دې نه کوی.ځکه چې مقصد مهر (لګول) دې، يا نمونه ده.ښائست جوړول نه دی.او ښځې دې بهر ساتی.ځکه چې ددوی مقصد ښائست حاصلول دی.او ښائست شا اړخ ته ساتلو کې دې.

## قاضی او بادشاه يا عامو خلقو لپاره د ګتمې اچولو حکم

(١) من حديث علي بن أبي طالب ﷺ أخرجه مسلم في اللباس والزينة رقم ٢٩ وأبوداود في اللباس باب ٨ رقم ٤٠٤٤ والترمذي في اللباس باب ١٣ رقم ١٧٣٧)_

وَأَمَّا يَخْتِمُ الْقَاضِي وَالسُّلْطَانُ لِحَاجَتِهِ إِلَى الْخَتْمِ او گتمه دې قاضي او بادشاه اغوندي. د هغوی د محتاج کيدو په وجه، مهر لګولو اړخ ته وَأَمَّا غَيْرُهُمَا نو بهر حال ددوی دواړو نه علاوه فَالْأَفْضَلُ أَنْ يَتْرُكَهُ لِعَدَمِ الْحَاجَةِ الَيهِ نو افضل دا دی. چه پریږدی. دې اړخ ته د حاجت نه کيدو په وجه.

تشریح:- سرو لپاره د سپینو زرو گتمه اچول جائز دی. خو چا ته چې اړتیا نه وي. نو ددې پرېښول غوره دی.

تنبیه① ۞ گتمه دې په چپه لاس کي اغوندي. ځکه چې ښی لاس کي اغوستل، د روافضو شعار جوړ شوی دې. نو ددې نه بچ کيدل واجب دی. ګنی که د روافضو شعار نه وي. نو افضل راسته لاس وو. ﴿والبسط فی سکب الأنهر ص: ۳۶۰، ج۲﴾

تنبیه② ۞ بعضو حضراتو د اړتیا نه بغیر گتمه اچول مکروه ګرځولی دی. خو د انصاف خبره دا ده. چه مکروه نه ده. البته د اړتیا نه بغیر ددې پرېښول افضل دی. اوګورئ: ﴿شامی ص: ۲۳۱، ج۵﴾

**د سرو زروکوم میخ چې غمی کښې ټکوالې شی دهغې حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی. وَلَا بَأْسَ و هیڅ باك نشته بِمِسْمَارِ الذَّهَبِ يُجْعَلُ فِي حَجَرِ الْفَصِّ أَيْ فِي ثُقْبِهِ، د سرو په میخ کي، چه دا اوټکوالې شی. د غمی په سوره کي لِأَنَّهُ تَابِعٌ كَالْعَلَمِ فِي الثَّوْبِ ځکه چې دا (د میخ) تابع دې. لکه ځنګه چې کپړه کي نقش ونګار (تابع دې). فَلَا يُعَدُّ لَابِسًا لَهُ. نو دې به د سرو زرو اغوستونکي نه شمارلې کیږی.

حل اللغة۞ ① مسمار: میخ ② ثقب: سورې ③ ثوب: جامه﴾

تشریح:- وړاندې تیر شوی دی. چه حکم په متبوع باندې لګی. په تابع باندې نه لګی. نوکه په غمی کي د سرو زرو میخ اوټکوالې شی. نو په دې کي هیڅ باك نشته.

**غاښونو ته د سرو زرو یا د سپینو زرو د خول اچولو حکم**

قَالَ فرمائیلی دی امام محمد رحمه الله وَلَا تُشَدُّ الْأَسْنَانُ بِالذَّهَبِ[1] او غاښونو ته به د سرو زرو خول (توشیدې) نشی اچولې او (په وخت د اړتیا به) د سپینو زرو خول اچولې شی رحمه الله او دا شیء د امام ابوحنیفه رحمه الله په مسلك کي دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله او د امام صاحب شاګر امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی لَا بَأْسَ بِالذَّهَبِ أَيْضًا چې د سروزرو خول اچولو کي هم باك نشته وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ مِثْلُ قَوْلِ كُلٍّ مِنْهُمَا او د امام ابویوسف رحمه الله په نیزهم دا خبره صحیح ده لَهُمَا أَنَّ عَرْفَجَةَ بْنَ أَسْعَدَ الْكِنَانِيَّ أُصِيبَ أَنْفُهُ يَوْمَ الْكُلَابِ او د عرفجه بن اسد الکنانی پوزې ته چې د یوم الکلاب په ورځ کوم تکلیف اورسیدو فَاتَّخَذَ أَنْفًا مِنْ فِضَّةٍ فَأَنْتَنَ نوهغوی د سپینو زرو پزه جوړه کړله .....فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بِأَنْ يَتَّخِذَ أَنْفًا مِنْ ذَهَبٍ[2] او رسول الله ﷺ هغوی ته د سرو زرو د پوزې اچولو اجازت ورکړو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دا دې أَنَّ الْأَصْلَ فِيهِ التَّحْرِيمُ چې اصل په دې (سره زرو) کي حرمت دې وَالْإِبَاحَةُ لِلضَّرُورَةِ او اجازت د اړتیا په وجه دې وَقَدِ انْدَفَعَتْ بِالْفِضَّةِ او دا (ضرورت) په سپینو زرو سره پوره شو وَهِيَ الْأَدْنَى او دا ادنی (کم) دې فَبَقِيَ الذَّهَبُ عَلَى التَّحْرِيمِ نو سره زر په حرمت باندې پاته پاتی شو. وَالضَّرُورَةُ

---

[1] القول الراجح هوهذا قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی الخانية (۳۷۱\۱٤) وملتقی الأبحر (۱۹۶\۱٤) وردالمحتار (۲۵۵\۵) نقلاً عن القول الراجح (۳۰۱\۱۲)-

[2] -من حديث عبدالرحمن طرفة أن جده عرفجة الحديث أخرجه أبوداود فی الخاتم باب ۷ رقم ٤۲۳۲ والترمذی فی اللباس باب ۳۱ والنسائی فی الزينة باب ٤۱ رقم ٤۷۶۷)



فِيمَا رُوِيَ لَمْ تَنْدَفِعْ فِي الْأَنْفِ دُونَهُ حَيْثُ أَنْتَنَ او اړتیا په هغه کي (حدیث کي) کوم چې روایت کړې شو. ددې (سرو زرو) نه په کم کي نه دې پوره شوې. ځکه چې دې بدبوئی کوله.

حل اللغة۞ ① الاسنان: جمع د سن، غاښ ② انف: پزه ③ انتن: بدبویه

تشریح:- ددې نه دا استنباط کیدای شی. چه د سرو زرو مصنوعی پزه جوړول جائز دی. خو دا په هغه صورت کي دی. چه د سپینو زرو پزه د اعلی معیار نشی جوړیدې. یا څوك کاریګر (ډاکټر وغیره) موجود نه وی. که ملاو شی. نو د سرو زرو عدم جواز به پخپل حال پاته پاتې وی.

تنبیه① ۞ په سرو زرو سره به غاښ نشی تړلې. خو پزه به ترې نه جوړولې شی. ﴿درمختار ص: ۲۳۱، ج۵﴾

تنبیه② ۞ کلاب: د کوفي او بصرې په منځ کي یو ډګر دې. چه هلته د عربو په منځ کي یو عظیم جنګ واقع شوې وو. د بعثت نه پنځه کاله وړاندې دلته جنګ واقع شوې وو. چه دا په عربو کي (په یوم الکلاب سره) مشهور دې. په دې کي د حضرت عرفجه بن اسعد کنانی رضی الله عنه پزه ماته شوې وه.

**د ماشومانو لپاره د ریښمو او سرو زرو اچولو حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی وَيُكْرَهُ أَنْ يَلْبَسَ الذُّكُورُ مِنَ الصِّبْيَانِ الذَّهَبَ وَالْحَرِيرَ و مکروه دی. هلکانو ته سره زر، او ریښم اغوستول، لِأَنَّ التَّحْرِيمَ لَمَّا ثَبَتَ فِي حَقِّ الذُّكُورِ وَحَرُمَ اللُّبْسُ ځکه چې تحریم هرکله د سړو په حق کي ثابت شو. او اغوستل حرام شو حَرُمَ الْإِلْبَاسُ نو اغوستول حرام شو كَالْخَمْرِ لَمَّا حَرُمَ شُرْبُهَا لکه شراب کله چې ددې څښل حرام شو حَرُمَ سَقْيُهَا نو ددې څکول هم حرام شو.

تشریح:- لکه ځنګه چې سره زر او ریښم سړو لره اغوستل حرام دی. د غه ډول وړو هلکانو ته اغوستول هم حرام دی. لکه ځنګه چې شراب څښل حرام دی. نو څکول هم حرام دی.

**د ضرورت په وجه لاس کښې رومال یا تولیه نیول جائز دی**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی وَتُكْرَهُ الْخِرْقَةُ الَّتِي تُحْمَلُ و مکروه ده د کپړې هغه ټکړه کومه چې خان سره ساتلې شی فَيُمْسَحُ بِهَا الْعَرَقُ نو په دې سره خوله اوچه وی لِأَنَّهُ نَوْعُ تَجَبُّرٍ وَتَكَبُّرٍ ځکه چې دا د غرور او تکبر یو ډول دی وَكَذَا الَّتِي يُمْسَحُ بِهَا الْوُضُوءُ و هم دغه ډول هغه کپړه په کومې سره چې د اودس اوبه اوچولې شی أَوْ يُمْتَخَطُ بِهَا و په کومې سره چې پزه صفا کولای شی وَقِيلَ إِذَا كَانَ عَنْ حَاجَةٍ لَا يُكْرَهُ او وئیلی شوی دی. کله چې د اړتیا په وجه وی. نو مکروه نه دی وَهُوَ الصَّحِيحُ او هم دا صحیح ده وَإِنَّمَا يُكْرَهُ إِذَا كَانَ عَنْ تَكَبُّرٍ وَتَجَبُّرٍ او مکروه هغه وخت دی. کله چې تکبر او غرور سره وی وَصَارَ كَالتَّرَبُّعِ فِي الْجُلُوسِ او شو دا په پړلتی سره د کیناستلو پشان، وَلَا بَأْسَ و هیڅ باك نشته بِأَنْ يَرْبِطَ الرَّجُلُ فِي أُصْبُعِهِ أَوْ خَاتَمِهِ الْخَيْطَ لِلْحَاجَةِ. چه سړې پخپله ګوته کي یا په ګتمه کي د څه اړتیا په وجه تار اوتړی وَيُسَمَّى ذَلِكَ الرَّتَمُ وَالرَّتِيمَةُ او ددې نوم رتم یا رتیم ایخودې شی.

حل اللغة۞ ① الخرقة: د کپړې ټکړه ② یمتخط: پزه سوړوی ③ تجبر: تکبر کول ④ اصبع: ګوته ⑤ الخیط: تار﴾

تشریح:- د خلګو عادت دې. چه رومال یا دست مال، یا تولیه خان سره ساتی. چه په دې سره خولې اوچه وی. او د اودس اوبه اوچه وی. او پزه صفاکوی. دا امام محمد رحمه الله مکروه ګرځوی. خو د بعضو فقهاو قول دا دې. چه کله دا د تکبر په وجه نه وی. نو مکروه نه دی. مرغینانی رحمه الله دا صحیح ګرځوی. نو ددې مثال داسې دې. لکه په په پړلته کیناستل، چه که د تکبر په وجه وی. نو مکروه دی. او که د اړتیا په وجه وی. نو مکروه نه دی.

وَكَانَ ذَلِكَ مِنْ عَادَةِ الْعَرَبِ او دا به د عربو عادت وو قَالَ قَائِلُهُمْ او وئیلو په دوی کي یو ویونکی (دا) شعر لَا يَنْفَعَنَّكَ الْيَوْمَ إِنْ هَمَّتْ بِهِمْ هیڅ چرې به نفع در نه کی (نکړی) تا ته نن، که ښځو سړو سره اراده کړې وی كَثْرَةُ مَا

تُوصِي وَتَعْقَادُالرَّتَمِ ستا زيات وصيت کول، او تار تړل، ، وَقَدْرُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَمَرَبَعْضَ أَصْحَابِهِ بِذٰلِكَ(۱) او دا چې نقل دي.چه نبي كريم ﷺ خپلو بعضو صحابو ته ددې حكم اوفرمائيلو وَلِأَنَّهُ لَيْسَ بِعَبَثٍ او ځكه چې دا عيب نه دې لِمَافِيهِ مِنَ الْغَرَضِ الصَّحِيحِ .په دې وجه چې په دې کي صحيح غرض دې وَهُوَالتَّذَكُّرُعِنْدَالنِّسْيَانِ او دا يادول دي.دهيريدو په وخت.

**حل اللغة:** ① النسيان: هيره ﴾

**تشريح:-** په مذکوره شعر کي رتم په معنى د تار استعمال شوې دې.او ،، تعقاد،، مصدر دې.د تفعال په وزن باندې، د تړلو په معنى دې.او د شعر مطلب دا دې.چه کله ښځه پاکدامنه نه وي.بلکه بدمعاشه وي.نو دې ته زيات وصيتونه کول او ددې په ګوته کي تار تړل هيڅ فائده نه ورکوي.بلکه هغه به خو بدمعاشي کوي.البته که دا نيکه او صالحه ده.نو بيا ددې هم اړتيا نشته.هغه به د خپل شرافت په وجه ددې خرافاتو نه خان بچ کوي.

تنبيه① ❁ که رومال وغيره د تکبر په وجه وي.نو مکروه دې.او قيمتي کپړه ساتل د کبر (لويي) دليل دې. ﴿پورتنئ حواله﴾

تنبيه② ❁ علامه شامي رحمه الله دلته د نيکانو او صالحانو په قبر باندې پټو (څادر) وغيره اچول جائز ګرځولي دي.

❁ دا د علامه شامي رحمه الله تسامح ده.او دلته بدعت سينه پرخپاره شوې (خور شوې) دې.نو ددې نه خو خلګ منع کول ضروري دي.د عربو د خلګو عادت وو.چه د يو شئ يادولو لپاره به ئې په ګوته يا ګتمه کي تار تړلو. بلکه هندوستان کي هم بعضي بوډاګان کتلې شوی دي.چه هم دا عمل کوي.او دې تار ته رتم يا رتيم وائي.نو وې فرمائيل. چې دا جائز دي.او نبي كريم ﷺ بعضو صحابو ته ددې حكم اوفرمائيلو.خو دا روايت ملاو نشو.بلکه ددې خبرې واړه روايات ضعيف دي.بهرحال دا عبث (فضول) کار نه دې.او عبث حرام دې.بلکه ددې يو صحيح مقصد دې.او هغه د هيريدو په وخت يادول دي.نو جائز دي.

تنبيه③ ❁ د مسلمانو د تعامل (رواج) په وجه متاخرينو (عالمانو) عدم کراهت ته ترجيح ورکړې ده.او د صحابو او تابعينو رحمهم الله يو جماعت د اودس نه روستو د رومال استعمالولو اجازت ورکړې دې. اوګورئ: ﴿شامي ص:۲۳۲،ج۵﴾

## فصل في الوطي والنظر والمس

(دا) فصل د وطي او نظر او لاس اوړلو (بيان کي) دې.

**تشريح:-** په دې فصل کي مرغيناني رحمه الله د کتلو او لاس لګولو او د عزل احکام بيانوي.ښکاره هم دا ده.چه د مرغيناني رحمه الله مراد د وطي نه عزل دې.ګني په دې کي د وطي ذکر نشته.او چونکه د عزل ذکر روستو دې.په دې وجه ددې ذکر روستو کول مناسب وو.

### د پردئ ښځې مخ او تلو ته د کتلو حکم

قَالَ فصل: امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل وَلَايَجُوزُأَنْ يَنْظُرَالرَّجُلُ إِلَى الْأَجْنَبِيَّةِ إِلَّا وَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا او جائز نه ده.دا چې اوګوري سړې پردئ ښځې اړخ ته، خو د هغې مخ او د هغې دواړه تلو ته لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَلَايُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ وَلَايُبْدِينَ الخ

---

(۱) قال الزيلعي رحمه الله غريب وفيه أحاديث عن النبي ﷺ نفسه أنه كان يربط في إصبعه خيطاً ليذكر به الحاجة فروى أبويعلى الموصلي في مسنده من حديث سالم بن عبدالله الأعلى أبي الفيض، عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما أن النبي ﷺ كان إذا أشفق من الحاجة أن ينساها ربط في إصبعه خيطاً ليذكرها (نصب: ۵۳۸۱٤



إِلَّا مَاظَهَرَمِنْهَا د الله تعالى د فرمان ﴿وَلَايُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَاظَهَرَمِنْهَا﴾ ﴿النور: ۳۱﴾ قَالَ عَلِيٌّ وَابْنُ عَبَّاسٍ مَاظَهَرَمِنْهَا الْكُحْلُ وَالْخَاتَمُ(۱) په وجه، حضرت علي او ابن عباس رضي الله عنه فرمائيلي دي.چه ﴿مَاظَهَرَمِنْهَا﴾ رانجه او ګتمه ده وَالْمُرَادُمَوْضِعُهُمَا او مراد ددې دواړو خايونه دي وهوالوجه والكف او دا مخ او تلې دې ځکه ځنګه چې مراد هغه زينت سره کوم چې ذکر دې . خايونه د زينت دي.

**حل اللغة:** ① الكحل: رانجه يعنې سترګې ② الخاتم: انګشتري يعنې ګوتې ③ الوجه: مخ ④ الكف: ورغوي﴾

**تشريح:-** سړي د څه اړتيا نه بغير د پردئ ښځې بدن اوګوري.جائز نه ده.علاوه د مخ نه او تلي نه.د الله تعالى ددې فرمان ﴿وَلَايُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَاظَهَرَمِنْهَا﴾ سره دوې (دوه) خبرې معلومې شوې.① خايونه د زينت پټ ساتي.② مخ او تلي ښکاره کول جائز دي.حضرت علي او حضرت ابن عباس رضي الله عنه ددې آيت په تفسير کي فرمائي.چه د ﴿ظَهَرَمِنْهَا﴾ نه مراد رانجه او ګتمه ده.او د مجاز مرسل د ځليريشت علاقو نه يوه علاقه د حاليت او محليت هم ده.يعني حال ونيل او محل مراد اخستل، او محل ونيلو نه حال مراد اخستل.نو دلته حال ونيلي شوې دې.او محل مراد اخستې شوې دې.يعني رانجو سره سترګې او دا په مخ کي وي. نو د رانجو نه مراد مخ دې.او د ګتمې نه مراد ګوته ده.او دا په تلي کي وي.نو د ﴿ظَهَرَمِنْهَا﴾ نه مخ او تلي مراد دي.او دغه ډول آيت کي د زينت نه مراد د زينت خايونه دي.د علاقې د حاليت په وجه، او په خايونو د زينت کي د مخ او تلي نه علاوه واړه بدن داخل دې.

### د مخ او تلي ښکاره کولو عقلي دليل

وَلِأَنَّ فِي إِبْدَاءِالْوَجْهِ وَالْكَفِّ ضَرُورَةً او ځکه چې د مخ او تلي په ښکاره کاوه کي اړتيا دې لِحَاجَتِهَا إِلَى الْمُعَامَلَةِ مَعَ الرِّجَالِ أَخْذًاوَإِعْطَاءً وَغَيْرَ ذٰلِكَ. ،(د څه څيز) اخستلو او ورکاوه او ددې نه د علاوه په اعتبار سره ، ښځې د محتاجه کيدو په وجه، سړو سره د معاملې اړخ ته وَهٰذَاتَنْصِيصٌ عَلَى أَنَّهُ لَايُبَاحُ النَّظَرُ إِلَى قَدَمِهَا او دا تصريح ده. په دې خبره چې ددې پښو اړخ ته کتل جائز نه دي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دي أَنَّهُ يُبَاحُ چې دا جائز دي لِأَنَّ فِيهِ بَعْضَ الضَّرُورَةِ ځکه چې دې کي بعضې اړتيا دې وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دي.. أَنَّهُ يُبَاحُ النَّظَرُ إِلَى ذِرَاعِهَا أَيْضًا چې د ښځو متو اړخ ته کتل جائز دي لِأَنَّهُ قد يبدو منها عادة، ځکه چې د ښځو متې کله د عادت په وجه ښکاره کيږي.

**حل اللغة:** ① ذراع: مټ ② ابداء: ښکاره کول ③ اعطاء: ورکول ④ تنصيص: صراحت﴾

**تشريح:-** دلته د مخ او تلي د ښکاره کاوه په جواز باندې عقلي دليل بيانوي.چه دې کي اړتيا دې.ځکه چې ښځو ته کله کله سړو سره په معاملاتو کي د اخستلو خرڅولو اړتيا راپيښيږي.د امام قدوري رحمه الله د تصريح نه دا خبره معلوميږي.چه د پردئ ښځې پښو اړخ ته کتل جائز نه دي.او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دي.چه جائز دي.ځکه چې ددې اړتيا هم راپيښيږي.چه ښځه کله کله څي.نو پښې ابلې پښې وي.يا چپلې وي.خو موزې ور سره نه وي.او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دي.چه د ښځې متو اړخ ته کتل هم جائز دي.ځکه چې ډوډئ پخولو کي او په کپړو وينځلو کي کله کله متې هم ښکاره کيږي.نو ګويا په دې کي هم اړتيا دې.

تنبيه ❁ دا حکم د سلفو (مقدمينو) په زمانه کي وو.او زموږ په زمانه کي به ددې ښځو د مخ کتلو نه منع کولې شي.او د والوالجيه په كتاب الايمان کي دي.چه دا مکروه دي.او شهوت سره حرام دي.لکه ځنګه چې په نادرة الفتاوى کي دي. ﴿سکب الانهر ص:۴۶،ج۲﴾

### د پردئ ښځې مخ کتل کله جائز دي؟

---

(۱) أماالرواية عن ابن عباس رضي الله عنهما فأخرجه الطبراني في تفسيره (نصب: ۵۹۳٤۱)_

قَالَ امام قدوری رحمة الله علیه اوفرمائیل. فَإِنْ كَانَ لَايَأْمَنُ الشَّهْوَةَ نو که دې د شهوت نه په امن کې نه وی وَجْهِهَا اِلَّا لِحَاجَةٍ نو نه به ګوری د ښځې مخ اړخ ته، خو د څه حاجت په وجه لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه، مَنْ نَظَرَ اِلَى مَحَاسِنِ امْرَأَةٍ اَجْنَبِيَّةٍ عَنْ شَهْوَةٍ کوم کس چې اوکتل د یوې پردۍ ښځې د ښائست خایونو اړخ ته په شهوت سره صُبَّ فِي عَيْنَيْهِ الْآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ (¹) نو د قیامت په ورځ به د هغه په سترګو کې سیسه (قلعی) اچولې شی فَإِذَا خَافَ الشَّهْوَةَ نو که وی یره د شهوت ته لَمْ يَنْظُرْ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ نو د حاجت نه بغیر به نه ګوری تَحَرُّزًا عَنِ الْمُحَرَّمِ. د حرامو نه بچ کیدو سره وَقَوْلُهُ لَا يَأْمَنُ يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ لَا يُبَاحُ او د امام قدوری رحمة الله علیه .. لا یأمن .. په دې خبره دلالت کوی. چه کتل جائز نه دی إِذَا شَكَّ فِي الْاِشْتِهَاءِ کله چې دې په کتلو کې شك اوکړی كَمَا إِذَا عَلِمَ لکه کله چې ده ته (د شهوت) یقین وی. أَوْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ ذٰلِكَ. یا دا دده غالب ګمان وی.

**حل اللغة:** ① **الصب:** اچول ② **محاسن:** د ښائست خایونه ③ **الأنک:** قلعی ④ **تحرز:** خان ژغورل

**تشریح:-** وړاندې نې چې کوم حکم بیان کړې وو. چه د پردۍ ښځې مخ او تلی کتل جائز دی. کله چې شهوت نه وی. او که شهوت وی. نو جائز نه دی. البته که څه اړتیا وی. نو کتلې شی. اګرچه شهوت وی. او اړتیا دا چې مثلاً ښځه باندې ګواهی ورکول وی. یا هغې سره د نکاح اراده وی. یا وینځه ده. چه ددې د اخستلو اراده وی.

اګرچه چې احقر شاه فیصل په المراة الصافیه کې د امام زیلعی رحمة الله علیه نه د حدیث ضعف نقل کړو خو نور صحیح حدیثونه په رعید کې وارد دی. که په کتلو کې د شهوت یره (یعنی ظن غالب) وی. بیا به هم د حاجت (او ضرورت) نه بغیر نه ګوری. چه د حرام نه بچ شی. امام قدوری رحمة الله علیه فرمائیلی دی. کله چې د شهوت په امن کې نه وی. نو نه به ګوری. ددې نه دا خبره معلومه شوه. چه که ده ته د شهوت شك وی. بیا هم کتل جائز نه دی. لکه څنګه چې د یقین او غالب ګمان په صورت کې جائز نه دی.

## د پردۍ ښځې مخ او تلی ته لاس اوړل کله جائز دی؟

وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَمَسَّ وَجْهَهَا او حلال نه دی سړی لپاره دا چې لاس یوسی د ښځې مخ ته وَلَا كَفَّيْهَا. او نه ددې تلی ته وَإِنْ كَانَ يَأْمَنُ الشَّهْوَةَ اګرچه هغه د شهوت نه په امن کې وی لِقِيَامِ الْمُحَرَّمِ. د محرم قائم مقام کیدو په وجه وَانْعِدَامِ الضَّرُورَةِ وَالْبَلْوَى او د اړتیا او د عموم بلوی (عام ابتلاء) نه کیدو په وجه بِخِلَافِ النَّظَرِ په خلاف د کتلو لِأَنَّ فِيهِ بَلْوَى خکه چې دې کې ابتلاء عام ده وَالْمُحَرَّمُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او حرامونکې د نبی کریم ﷺ دا فرمان دې مَنْ مَسَّ كَفَّ امْرَأَةٍ کوم کس چې لاس یوړلو یوې ښځې ته لَيْسَ مِنْهَا بِسَبِيلٍ حالانکه سړی لپاره شرعاً په دې کې هیڅ لاره نشته وُضِعَ عَلَى كَفِّهِ جَمْرَةٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ نو دده په لاس به د قیامت په ورځ انګار (سروټکه) ایخودې شي () وَهٰذَا إِذَا كَانَتْ شَابَّةً تُشْتَهَى او دا هغه وخت دی. کله چې دا خوانه ښځه وی. چه ددې شهوت کولای شی أَمَّا إِذَا كَانَتْ عَجُوزًا لَا تُشْتَهَى بهرحال کله چې دا بوډۍ وی. چه ددې شهوت نشی کولې، فَلَا بَأْسَ بِمُصَافَحَتِهَا وَمَسِّ يَدِهَا نو ددې سره مصافحه کاوه کې او ددې لاس سره په لاس لګولو کې هیڅ باك نشته، لِانْعِدَامِ خَوْفِ الْفِتْنَةِ د فتنې یره نه کیدو په وجه.

**اللغة:** ① **البلوی:** ابتلاء، امتحان ② **جمرة:** سکروټکه ③ **مصافحه:** لاس ملاوهل ④ **عجوز:** بوډۍ

**تشریح:-** که شهوت نه وی. نو د ښځې مخ او ددې لاس کتل جائز دی. خو لاس لګول جائز نه دی. اګرچه شهوت

¹- قال الزيلعى رحمه الله غريب والمعروف من إستمع إلى حديث قوم وهم له كارهون أو يفرون منه صب فى أذنيه الآنک يوم القايمة أخرجه البخارى فى صحيحه فى كتاب التعبير (نصب:٥٤٠١٤)

²) قال الزيلعى رحمه الله غريب (نصب:٥٤٠١٤)_



هم نه وی. ولې؟ خکه چې اړتیا نشته. او په دې کې ابتلاء عام نه ده. او په کتلو کې اړتیا هم شته. او بلوی هم شته. او دلته داسې نص هم موجود دې. چه دا د لاس لګولو په حرمت باندې دلالت کوی. او حرامونکې نص دا حدیث دې. چه کوم کس داسې ښځې ته لاس اولګولو. چه دې ته لاس لګول شرعاً جائز نه دی (یعنی دا نه دده ښځه ده او نه وینځه ده) نو د قیامت په ورځ به دده په لاس باندې انګار (سروټکه) ایخودې شی. او دا د لاس لګولو حرمت هغه وخت دې. کله چې دا پردۍ ښځه خوانه وی. چه دې اړخ ته طبیعت مائل کیږی. خو که دا بوډۍ وی. یعنی داسې چیچړه وی. چه دې اړخ ته د طبیعت میلان نه کیږی. نو ددې سره مصافحه کاوه او ددې لاس سره په لاس لګولو کې هیڅ باك نشته. خکه چې د فتنې یره نشته.

## بوډۍ ښځې سره د مصافحې کولو. او لاس اوړلو حکم

وَقَدْ رُوِيَ او نقل دی أَنَّ أَبَا بَكْرٍ رضی الله عنه كَانَ يَدْخُلُ بَعْضَ الْقَبَائِلِ الَّتِي كَانَ مُسْتَرْضَعًا فِيهِمْ چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه به بعضو هغه قبیلو ته تشریف اوړلو. په کومو کې چې دوی ﷺ شیدې څکلی وو. وَكَانَ يُصَافِحُ الْعَجَائِزَ () او د بوډۍ ګانو ښځو سره به نې مصافحه کوله وَعَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الزُّبَيْرِ رضی الله عنه اسْتَأْجَرَ عَجُوزًا لِتُمَرِّضَهُ، او حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه یوه بوډۍ ښځه نوکره ساتلې وه. چه دده بیمار پرسی (خدمت) کوی وَكَانَتْ تَغْمِزُ رِجْلَيْهِ او هغې به دده پښې زورلې (چاپې به نې کوله). وَتَفْلِي رَأْسَهُ (²) او دده په سرکې به نې سپګې کتلې وَكَذَا إِذَا كَانَ شَيْخًا يَأْمَنُ عَلَى نَفْسِهِ او هم دغه ډول (حلال دی). کله چې سړې دومره بوډا وی. چه هغه پخپل نفس باندې په امن کې وی وَعَلَيْهَا لِمَا قُلْنَا او په ښځه باندې په امن کې وی. د هغه دلیل په وجه، کوم چې موږ بیان کړې دې. (یعنی د فتنې یره نشته) فَإِنْ كَانَ لَا يَأْمَنُ عَلَيْهَا او که په ښځه باندې امن نه وی لَا تَحِلُّ مُصَافَحَتُهَا نو هغې سره مصافحه حلال نه ده، لِمَا فِيهِ مِنَ التَّعْرِيضِ لِلْفِتْنَةِ.. په دې وجه چې په دې کې فتنه باندې پیش کول دی.

**حل اللغة:** ① **تغمز:** زور کاوه چاپی کولو ② **شیخ:** ډیربوډا ③ **التعریض:** وړاندې کیدل ﴿

**تشریح:-** که ښځه دومره بوډۍ وی. چه د دواړو طرفو د فتنې یره نه وی. نو مصافحه کول، او ددې لاس ته لاس اوړل جائز دی. لکه څنګه چې د حضرت ابوبکر صدیق او د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما د فعل نه معلومه شوه. که سړې بوډا وی. او ښځه خوانه وی. خو د دواړو طرفو نه امن وی. نو لاس لګول جائز دی. او مصافحه جائز ده. خکه چې دلته هم د فتنې یره نشته. او که ښځه په امن کې نه وی. نو چونکه په دې کې غیر په فتنه باندې پیش کول دی. نو دا حلال نه ده.

## ماشومې ته کتل او دې ته د لاس لګولو حکم

وَالصَّغِيرَةُ إِذَا كَانَتْ لَا تُشْتَهَى او صغیره (ماشومه) کله چې دا د شهوت لائقه نه وی يُبَاحُ مَسُّهَا دې ته لاس لګول حلال دی وَالنَّظَرُ إِلَيْهَا او هغې اړخ ته کتل (حلال دی) لِعَدَمِ خَوْفِ الْفِتْنَةِ د فتنې د یرې نه کیدو په وجه.

**تشریح:-** که وړه ماشومه ده. چه دا اوسه پورې لا د شهوت حد ته نه ده رسیدلې. نو دې ته په کتلو او دې ته په لاس اوړلو کې چونکه د فتنې یره نشته. نو دا واړه جائز دی. علامه شامی په ﴿ردالمختار ص:۲۳۵، ج۵﴾ باندې په دې باندې بحث کړې دې.

قَالَ امام قدوری رحمة الله علیه اوفرمائیل وَيَجُوزُ لِلْقَاضِي إِذَا أَرَادَ أَنْ يَحْكُمَ عَلَيْهَا وجائز ده قاضی دپاره، کله چې هغه اراده اوکړی په ښځه باندې د فیصلې کولو وَلِلشَّاهِدِ إِذَا أَرَادَ أَدَاءَ الشَّهَادَةِ عَلَيْهَا او ګواه لپاره کله چې هغه په ښځه باندې د ګواهۍ ور کاوه اراده اوکړی النَّظَرُ إِلَى وَجْهِهَا د ښځې مخ ته کتل وَإِنْ خَافَ أَنْ يَشْتَهِيَ لِلْحَاجَةِ إِلَى إِحْيَاءِ

¹) قال الزيلعى رحمه الله غريب أيضاً (نصب:٥٤١١٤)_

²) قال الزيلعى رحمه الله غريب أيضاً (نصب:٥٤١١٤)_

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. فَإِنْ كَانَ لَايَأْمَنُ الشَّهْوَةَ نو که دې د شهوت نه په امن کې نه وي لَايَنْظُرُ إِلَى وَجْهِهَا إِلَّا لِحَاجَةٍ نو نه به ګوري د ښځې مخ اړخ ته، خو د څه حاجت په وجه لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه، مَنْ نَظَرَ إِلَى مَحَاسِنِ امْرَأَةٍ أَجْنَبِيَّةٍ عَنْ شَهْوَةٍ کوم کس چې اوکتل د یوې پردۍ ښځې د ښائست خایونو اړخ ته په شهوت سره صُبَّ فِي عَيْنَيْهِ الْآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ() نو د قیامت په ورځ به د هغه په سترګو کې سیسه ( قلعي) اچولې شي فَإِذَا خَافَ الشَّهْوَةَ نو که وي یره د شهوته لَمْ يَنْظُرْ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ نو د حاجت نه بغیر به نه ګوري تَحَرُّزًا عَنِ الْمُحَرَّمِ. د حرامو نه بچ کیدو سره وَقَوْلُهُ لَايَأْمَنُ يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ لَايَأْمَنُ او د امام قدوری رحمه الله .. لا یأمن .. په دې خبره دلالت کوي. چه کتل جائز نه دي إِذَا شَكَّ فِي الْإِشْتِهَاءِ کله چې دې په کتلو کې شک اوکړي كَمَا إِذَا عَلِمَ لكه چې ده ته ( د شهوت) یقین وي. أَوْكَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ ذَلِكَ. یا دا دده غالب ګمان وي.

**حل اللغة:** ① **الصب:** اچول ② **محاسن:** د ښائست خایونه ③ **الآنك:** قلعي ④ **تحرز:** ځان ژغورل

**تشریح:-** وړاندې نې چې کوم حکم بیان کړې وو. چه د پردۍ ښځې مخ او تلی کتل جائز دي. کله چې شهوت نه وي. اوکه شهوت وي. نو جائز نه دی. البته که څه اړتیا وي. نو کتلې شي. اګرچه شهوت وي. او اړتیا دا چې مثلاً ښځه باندې ګواهي ورکول وي. یا هغې سره د نکاح اراده وي. نو دا هغه وخت ده. چه ددې د اخستلو اراده وي.

اګرچه چې احقر شاه فیصل په المراة الصافیه کې د امام زیلعی رحمه الله نه د حدیث ضعف نقل کړو خو نور صحیح حدیثونه په وعید کې وارد دي. که په کتلو کې د شهوت یره ( یعنی ظن غالب) وي. بیا به هم د حاجت ( او ضرورت) نه بغیر نه ګوري. چه د حرام نه بچ شي. امام قدوری رحمه الله فرمائیلي دي. کله چې د شهوت په امن کې نه وي. نو نه به ګوري. ددې نه دا خبره معلومه شوه. چه که ده ته د شهوت شک وي. بیا هم کتل جائز نه دي. لکه څنګه چې د یقین او غالب ګمان په صورت کې جائز نه دي.

### د پردۍ ښځې مخ او تلی ته لاس اوړل کله جائز دي؟

وَلَايَحِلُّ لَهُ أَنْ يَمَسَّ وَجْهَهَا او حلال نه دی سړي لپاره دا چې لاس یوسي د ښځې مخ ته وَلَا كَفَّيْهَا. او نه ددې تلی ته وَإِنْ كَانَ يَأْمَنُ الشَّهْوَةَ اګرچه هغه د شهوت نه په امن کې وي لِقِيَامِ الْمُحَرَّمِ. د محرم قائم مقام کیدو په وجه وَانْعِدَامِ الضَّرُورَةِ وَالْبَلْوَى او د اړتیا او د عموم بلوی ( عام ابتلاء) نه کیدو په وجه بِخِلَافِ النَّظَرِ په خلاف د کتلو لِأَنَّ فِيهِ بَلْوَى څکه چې دې کې ابتلاء عام ده وَالْمُحَرَّمُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او حرامونکې د نبی کریم ﷺ دا فرمان دې مَنْ مَسَّ كَفَّ امْرَأَةٍ کوم کس چې لاس یوړلو یوې ښځې ته لَيْسَ مِنْهَا بِسَبِيلٍ حالانکه سړي لپاره شرعاً په دې کې هیڅ لاره نشته وُضِعَ عَلَى كَفِّهِ جَمْرَةٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ نو دده په لاس به د قیامت په ورځ انګار ( سروټکه) ایخودې شي () وَهَذَا إِذَا كَانَتْ شَابَّةً تُشْتَهَى او دا هغه وخت دی. کله چې دا ځوانه ښځه وي. چه ددې شهوت کولای شي أَمَّا إِذَا كَانَتْ عَجُوزًا لَاتُشْتَهَى بهرحال کله چې دا بوډۍ وي. چه ددې شهوت نشي کولې، فَلَا بَأْسَ بِمُصَافَحَتِهَا وَمَسِّ يَدِهَا نو ددې سره مصافحه کاوه کې او ددې لاس سره په لاس لګولو کې هیڅ باک نشته، لِانْعِدَامِ خَوْفِ الْفِتْنَةِ د فتنې یره نه کیدو په وجه.

**اللغة:** ① **البلوی:** ابتلاء، امتحان ② **جمرة:** سکروټکه ③ **مصافحه:** لاس ملاوهل ④ **عجوز:** بوډۍ

**تشریح:-** که شهوت نه وي. نو د ښځې مخ او ددې لاس کتل جائز دي. خو لاس لګول جائز نه دي. اګرچه شهوت

[1]- قال الزيلعي رحمه الله غريب والمعروف من إستمع إلى حديث قوم وهم له كارهون أو يفرون منه صب فى أذنيه الآنك يوم القايمة أخرجه البخاري في صحيحه فى كتاب التعبير (نصب:٤/١٤٠٥)

[2]) قال الزيلعي رحمه الله غريب (نصب:٤/١٤٠٥)_



هم نه وي. ولې؟ څکه چې اړتیا نشته. او په دې کې ابتلاء عام نه ده. او په کتلو کې اړتیا هم شته. او بلوی هم شته. او دلته داسې نص هم موجود دې. چه دا د لاس لګولو په حرمت باندې دلالت کوي. او حرامونکې نص دا حدیث دې. چه کوم کس داسې ښځې ته لاس اولګولو. چه دې ته لاس لګول شرعاً جائز نه دي ( یعنی دا نه دده ښځه ده او نه وینځه ده) نو د قیامت په ورځ به دده په لاس باندې انګار ( سروټکه) ایخودې شي. او دا د لاس لګولو حرمت هغه وخت دې. کله چې دا پردۍ ښځه ځوانه وي. چه دې اړخ ته طبیعت مائل کیږي. خو که دا بوډۍ وي. یعنی داسې چیچړه وي. چه دې اړخ ته د طبیعت میلان نه کیږي. نو ددې سره مصافحه کاوه او ددې لاس سره په لاس لګولو کې هیڅ باک نشته. څکه چې د فتنې یره نشته.

### بوډۍ ښځې سره د مصافحې کولو او لاس اوړلو حکم

وَقَدْ رُوِيَ او نقل دی أَنَّ أَبَابَكْرٍ رضي الله عنه كَانَ يَدْخُلُ بَعْضَ الْقَبَائِلِ الَّتِي كَانَ مُسْتَرْضَعًا فِيهِمْ چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه به بعضو هغه قبیلو ته تشریف اوړلو. په کومو کې چې دوی ﷺ شیدې څکلی وو. وَكَانَ يُصَافِحُ الْعَجَائِزَ() او د بوډۍ ګانو ښځو سره به نې مصافحه کوله وَعَبْدُ اللهِ بْنُ الزُّبَيْرِ رضي الله عنه اسْتَأْجَرَ عَجُوزًا لِتُمَرِّضَهُ او حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه یوه بوډۍ ښځه نوکره ساتلې وه. چه دده بیمار پرسی ( خدمت) کوي وَكَانَتْ تَغْمِزُ رِجْلَيْهِ او هغې به دده پښې زورلې ( چاپی به نې کوله). وَتُفَلِّي رَأْسَهُ() او دده په سرکې به نې سپګې کتلې وَكَذَا إِذَا كَانَ شَيْخًا يَأْمَنُ عَلَى نَفْسِهِ او هم دغه ډول ( حلال دی). کله چې سړې دومره بوډا وي. چه هغه پخپل نفس باندې په امن کې وي وَعَلَيْهَا لِمَا قُلْنَا او په ښځه باندې په امن کې وي. د هغه دلیل په وجه، کوم چې مونږ بیان کړې دې. ( یعنی د فتنې یره نشته) فَإِنْ كَانَ لَايَأْمَنُ عَلَيْهَا او که په ښځه باندې امن نه وي لَاتَحِلُّ مُصَافَحَتُهَا نو هغې سره مصافحه حلال نه ده لِمَا فِيهِ مِنَ التَّعْرِيضِ لِلْفِتْنَةِ.. په دې وجه چې په دې کې فتنه باندې پیش کول دي.

**حل اللغة:** ① **تغمز:** زور کاوه چاپی کولو ② **شیخ:** ډیربوډا ③ **التعریض:** وړاندې کیدل

**تشریح:-** که ښځه دومره بوډۍ وي. چه د دواړو طرفو د فتنې یره نه وي. نو مصافحه کول، او ددې لاس ته لاس اوړل جائز دي. لکه څنګه چې د حضرت ابوبکر صدیق او د حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنهما د فعل نه معلومه شوه. که سړې بوډا وي. او ښځه ځوانه وي. خو د دواړو طرفو نه امن وي. نو لاس لګول جائز دي. او مصافحه جائز ده. څکه چې دلته هم د فتنې یره نشته. او که ښځه په امن کې نه وي. نو چونکه په دې کې غیر په فتنه باندې پیش کول دي. نو دا حلال نه ده.

### ماشومې ته کتل او دې ته د لاس لګولو حکم

وَالصَّغِيرَةُ إِذَا كَانَتْ لَاتُشْتَهَى و صغیره ( ماشومه) کله چې دا د شهوت لائقه نه وي يُبَاحُ مَسُّهَا دې ته لاس لګول حلال دی وَالنَّظَرُ إِلَيْهَا او هغې اړخ ته کتل (حلال دی) لِعَدَمِ خَوْفِ الْفِتْنَةِ د فتنې د یرې نه کیدو په وجه.

**تشریح:-** که وړه ماشومه ده. چه دا اوسه پورې لا د شهوت حد ته نه ده رسیدلې. نو دې ته په کتلو او دې ته په لاس اوړلو کې چونکه د فتنې یره نشته. نو دا واړه جائز دي. علامه شامي په ﴿ردالمختار ص:۲۳۵، ج۵﴾ باندې په دې باندې بحث کړې دي.

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَيَجُوزُ لِلْقَاضِي إِذَا أَرَادَ أَنْ يَحْكُمَ عَلَيْهَا وجائز ده قاضي دپاره، کله چې هغه اراده اوکړي په ښځه باندې د فیصلې کولو وَلِلشَّاهِدِ إِذَا أَرَادَ أَدَاءَ الشَّهَادَةِ عَلَيْهَا و ګواه لپاره کله چې هغه په ښځه باندې د ګواهۍ ور کاوه اراده اوکړي النَّظَرُ إِلَى وَجْهِهَا د ښځې مخ ته کتل وَإِنْ خَافَ أَنْ يَشْتَهِيَ لِلْحَاجَةِ إِلَى إِحْيَاءِ

[1]) قال الزيلعي رحمه الله غريب أيضاً (نصب:٤/١٤٥)_

[2]) قال الزيلعي رحمه الله غريب أيضاً (نصب:٤/١٤٥)_

حُقُوقِ النَّاسِ بِوَاسِطَةِ الْقَضَاءِ وَأَدَاءِ الشَّهَادَةِ اګرچه د شهادت يره كوي.په فيصلې او شهادت ادا كاوه سره د خلګو د حقوقو ژوندي كاوه اړخ ته د حاجت په وجه وَلَكِنْ يَنْبَغِي أَنْ يَقْصِدَ بِهِ أَدَاءَ الشَّهَادَةِ أَوِ الْحُكْمَ عَلَيْهَا خو مناسب دا ده.چه ددې په ذريعه د شهادت ادا كاوه يا په ښځه باندې د فيصلې كاوه اراده اوكړي لَا قَضَاءَ الشَّهْوَةِ د شهوت پوره كاوه اراده اونكړي تَحَرُّزًا عَمَّا يُمْكِنُهُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ د هغه شئ نه بچ كيدو سره د كوم نه چې بچ كيدل ممكن دي وَهُوَ قَصْدُ الْقَبِيحِ او هغه (دكوم نه چې بچ كيدل ممكن دي) د بدئ (ګناه) قصد دې.

**تشريح:-** قاضي او ګواه ته د فيصلې او شهادت ادا كاوه لپاره دښځې مخ ته كتل جائز دي.اګرچه د شهوت يره وي.بيا هم (جائز دي)ځكه كه هغه د شهادت د يرې په وجه د كتلو نه منع شي.نو فيصله به څنګه كوي.او حقوق ضائع شي.او د خلګو د حقوقو ژوندي كاوه اړتيا دې.نو كتل به جائز وي.خو دوي دواړه دې د شهوت پوره كاوه قصد نه كوي.بلكه د فيصلې او شهادت ادا كاوه قصد دې اوكړي.ځكه چې نيت خو صحيح كيداې شي.نو د كوم شئ نه چې بچ كيدل ممكن دي.د هغې نه بچ كيدل به ضروري وي.او د بد قصد نه بچ كيدل ممكن دي.

وَأَمَّا النَّظَرُ لِتَحَمُّلِ الشَّهَادَةِ إِذَا اشْتَهَى او بهرحال د شهادت پورته كاوه لپاره كتل كله چې شهوت نه وي ونيلى شوي دي.چه (دا) مباح (جائز) دي قِيلَ يُبَاحُ وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ لَا يُبَاحُ او اصح دا ده.چه مباح نه دي لِأَنَّهُ يُوجَدُ مَنْ لَا يَشْتَهِي ځكه چې داسې سړې ملاويدې شي.چه هغه ته شهوت نه وي.فَلَا ضَرُورَةَ بِخِلَافِ حَالَةِ الْأَدَاءِ نو هيڅ اړتيا نشته.په خلاف د ادا كاوه دحالت.

**تشريح:-** بيا يو د شهادت تحمل دې.او يو اداء (د شهادت) ده.كه د ادا كاوه په وخت شهوت وي.بيا به هم دې شهادت وركوي.او كتل به جائز وي.ځكه چې دلته ادا كاوه لپاره هم دا متعين ده.ځكه چې تحمل د شهادت هم ده كړې وو.نو دا عذر دې.اوكه د شهادت د تحمل په وخت شهوت وي.نو هلته كتل څنګه دي؟ نو په دې كې دوې (دوه) اقواله دي① يو دا چې كتل جائز دي② او دوهم قول او هم دا اصح دې.چه كتل جائز نه دي.ځكه داسې سړې ملاويدې شي.چه هغه تحمل د شهادت اوكړي.او په هغه كې شهوت نه وي.په ﴿ درمختار ص:۲۳۷،ج۵﴾ باندې هم دا ذكر دي.چه د شهوت په وخت د شهادت په تحمل كې كتل جائز نه دي.

وَمَنْ أَرَادَ أَنْ يَتَزَوَّجَ امْرَأَةً او كوم كس چې يوې ښځې سره د نكاح اراده اوكړله فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهَا نو هغې اړخ ته په كتلو كې هيڅ باك نشته وَإِنْ عَلِمَ اګرچه هغه ته ددې خبرې يقين وي أَنَّهُ يَشْتَهِيهَا .چه هغه ته به ددې شهوت نه وي.

**تشريح:-** كومې ښځې سره چې نكاح كول غواړي.هغې ته كتل جائز دي.اګرچه د شهوت خطره وي.ځكه چې دده مقصود شهوت پوره كول نه دي.بلكه سنت باندې عمل كول دي.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِيهِ أَبْصِرْهَا د نبي كريمﷺ د فرمان په وجه په دې اړه كې چې دې ته اوګوره. فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا (¹) نو دا زياته مناسب ده.چه ستاسو دواړو په منځ كې موافقت پيدا كړې شي وَلِأَنَّ مَقْصُودَهُ إِقَامَةُ السُّنَّةِ ځكه چې دده مقصود سنت ادا كول دي لَا قَضَاءُ الشَّهْوَةِ.شهوت پوره كول نه دي.

**حل اللغة:** ① ابصر:وې ګوره ② احرى:زياته لائقه ده ③ يودم: هميشه والې﴾

---

(¹) من حديث مغيرة بن شعبة ﷺ أخرجه الترمذى فى النكاح باب ۵ والنسائى فى النكاح باب ۱۷ وابن ماجه فى النكاح باب ۹ والدارمى فى النكاح باب ۵)_



**تشريح:-** ځكه چې داسې موقع باندې د نبي كريمﷺ د اړخه د كتلو حكم صادر شوې دې.ارشاد دې. «أبصرها فإنه أحرى أن يؤدم بينكما» (رواه الترمذى و النسائى و إبن ماجه) ځكه چې كتلو سره به دا معلومه شي.چه دواړو كې موافقت شته.اوكه نشته؟ ګنى ډير خل د ښځې او ميړه په منځ كې د موافقت نه كيدو په وجه خبره دكوم خاني نه كوم خانې ته رسيږي.(يعنى دښمنى پيدا كيږي).د ادم او ايدام معنى اصلاح او موافقت ده.

### ډاكټر لپاره د ښځې د مرض ځاى كتلو حكم

وَيَجُوزُ لِلطَّبِيبِ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَوْضِعِ الْمَرَضِ مِنْهَا لِلضَّرُورَةِ او جائز ده ډاكټر لپاره دا چې اوګورى دښځې د مرض ځايونو اړخ ته د اړتيا په وجه وَيَنْبَغِي أَنْ يُعَلِّمَ امْرَأَةً مُدَاوَاتَهَا او مناسب دا ده.چه يوې ښځې ته ددې علاج اوښائى لِأَنَّ نَظَرَ الْجِنْسِ إِلَى الْجِنْسِ أَسْهَلُ ځكه چې د يوجنس بل جنس اړخ ته كتل آسان دي فَإِنْ لَمْ يَقْدِرُوا نو كه دا (د ښځې كور والا) په دې قادر نه وي.(چې پخپله ددې علاج اوكړي يَسْتُرُ كُلَّ عُضْوٍ مِنْهَا سِوَى مَوْضِعِ الْمَرَضِ ثُمَّ يَنْظُرُ نو د ښځې هر اندام دې پټ كړې شي.د مرض د ځاني نه علاوه، بيا دې ډاكټر اوګوري وَيَغُضُّ بَصَرَهُ مَا اسْتَطَاعَ او د كوم ځانې پورې چې كيداې شي.خپل نظر دې لاندې ساتى لِأَنَّ مَا ثَبَتَ بِالضَّرُورَةِ ځكه چې كوم شئ د اړتيا په وجه ثابتيږي يَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهَا هغه د اړتيا مقداره پورې ثابت وي.

**تشريح:-** كه ښځه بيماره وي.او مرض په نازك (خطرناك) ځاني باندې وي.نو ډاكټر لپاره جائز دي.چه صرف د مرض ځاني اوګوري.او ددې علاج اوكړي.ځكه چې دا جواز د اړتيا په وجه دې.نو د اړتيا په اندازه به ثابت وي.او غوره داده.چه سړې پخپله علاج اونكړي.بلكه يوې ښځې ته اوښائي.اوهغه دا كار پوره كړي.ځكه چې اګرچه ښځې لپاره هم جائز نه ده.چه هغه د يوې ښځې شرمګاه يا عورت اوګوري .بهرحال د جنس، جنس اړخ ته كتل بيا هم معمولي دي.خو كه څوك ښځه داسې ملاو نشي.نو بيا دې واړه بدن پټ كړې شي.او صرف هغه ځاني دې ډاكټر اوګوري.كوم ځاني چې مرض دې.

وَصَارَ كَنَظَرِ الْخَافِضَةِ وَالْخَتَّانِ او دا (د ډاكټر كتل) د خافظه (ختنه كونكې ښځې) او د ختنه كونكى د كتلو پشان شو وَكَذَا يَجُوزُ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَى مَوْضِعِ الِاحْتِقَانِ مِنَ الرَّجُلِ او هم دغه ډول جائز دي.سړى لپاره د سړى د حقنې كاوه ځاني كتل لِأَنَّهُ مُدَاوَاةٌ ځكه چې احتقان (حقنه كول) علاج دې فَيَجُوزُ لِلْمَرَضِ او احتقان د مرض په وجه جائز دې وَكَذَا لِلْهُزَالِ الْفَاحِشِ او هم دغه ډول د ډير كمزورى لپاره جائز دى عَلَى مَا رُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ لكه څنګه چې د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى. لِأَنَّهُ أَمَارَةُ الْمَرَضِ ځكه چې دا (ډيره كمزورى) د مرض علامت دې.

**تشريح:-** ددې نظيردا دې چې د ښځو ختنه كونكې ښځه او د سړو ختنه كونكې سړې به صرف د ختنه كاوه ځاني ګوري.پاته به نه ګوري.هم دغه ډول د ډاكټر حكم دې.او هم دغه ډول كه د اړتيا په وجه او د سختې كمزورئ (تپ والى) په وجه د حقنې كاوه اړتيا وي.نو حقنه كونكې سړې به د حقنه كاوه ځاني ګوري.ځكه چې حقنه كول هم يوعلاج دې.چه دا د بعضو مرضونو لپاره ضروري دې.او په بعضو كې ګټور دې.او په بعضو كې توان وركوي.

تنبيه① ۞ په ﴿سكب الانهر ص:۴٦۲،ج۲﴾ باندې دي.چه ختنه كول عذر نه دې.ځكه چې بالغ خپله ختنه پخپله كولې شي.يا دې نكاح اوكړي.او پخپله ښځه دې خپله ختنه اوكړي.يا دې وينځه واخلى.او په هغې دې خپله ختنه اوكړي.،، قلت ،، دغه ډول د ښځو په حق كې هم هيڅ عذر نه دې.ځكه چې ددوى په حق كې دا صرف اعزاز دې.سنت نه دې.د علامه عيني رحمه الله دا فرمائيل چې د سړو او ښځو دواړو لپاره ددې پريښول جائز نه دى.تسامح ده.اوګورئ: ﴿ شامى ص:۲۳۷،ج۵﴾

تنبيه② ۞ ختنه كول سړو لپاره سنت مؤكده دې.او د شعائر اسلام څخې دې.او ختنه كول د ښځو لپاره د مرتبې او اعزاز شئ دې.نو بهرحال د سړو او ښځو ختنه كاوه په اړه كې خافظه لپاره او ختنه كونكى لپاره

شرمگاه کتل جائز دی.خکه چې دا یو ډول اړتیا دې.نو هم دا حال به د ډاکټر د کتلو هم وی.،، فتدبر فيه.،

تنبیه② ۞ که حقنه دځه مرض په وجه نه وی.بلکه منفعت لپاره کوی.چه په جماع باندې قوت حاصل شی.نو دا زموږ په نیز حلال نه دی.،، كمافي الذخيره.،،﴿شامي ص:۲۳۷،ج۵﴾

تنبیه③ ۞ احتقان په کناتو ( دبر) کې دوائی داخلولو سره د ردی فضلاتو ( گندگی) اوښکل دی.

## سړی لپاره د سړی څومره بدن کتل جائز دی؟

قَالَ امام قدوری رحمة الله اوفرمائیل وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنَ الرَّجُلِ اِلٰى جَمِيعِ بَدَنِهِ اِلَّا مَا بَيْنَ سُرَّتِهِ اِلٰى رُكْبَتِهِ او کوری دې سړې د سړی واړه بدن اړخ ته،خو کومه چې دده د نوم ؛ منځ نه د کونډو پورې ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه عَوْرَةُ الرَّجُلِ مَا بَيْنَ سُرَّتِهِ اِلٰى رُكْبَتِهِ د سړی عورت ( ستر) هغه دې.کوم چې دده د نوم دمنځ نه دده د کونډو پورې دې وَيُرْوٰى مَا دُونَ سُرَّتِهِ او نقل دی.چه کوم چې دده د نوم د لاندې دې حَتّٰى يُجَاوِزَ رُكْبَتَهُ تردې چې دده د کونډو نه زیاتی شی وَبِهٰذَا ثَبَتَ او په دې (دوهم روایت) سره دا خبره ثابته شوه أَنَّ السُّرَّةَ لَيْسَتْ بِعَوْرَةٍ چې نوم عورت نه دې خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ أَبُو عِصْمَةَ وَالشَّافِعِيُّ .په خلاف د ابوعصمه او امام شافعی رحمهما الله وَالرُّكْبَةُ عَوْرَةٌ او گونډئ عورت دې.

حل اللغة: ① سرة: نوم ② رکبة: پنډئ﴾

تشريح:- د سړی عورت د نوم د لاندې نه د کنډو پورې دې.یعنی کنډئ په عورت کې داخل ده.او نوم داخل نه دې.ابوعصمه او امام شافعی رحمهما الله نوم ته عورت وائی.

خِلَافًا لِمَا قَالَهُ الشَّافِعِيُّ په خلاف د امام شافعی رحمة الله وَالْفَخِذُ عَوْرَةٌ او ورون ( ورون ) عورت دې. خِلَافًا لِأَصْحَابِ الظَّوَاهِرِ په خلاف د ظواهرو وَمَا دُونَ السُّرَّةِ اِلٰى مَنْبَتِ الشَّعْرِ عَوْرَةٌ او کومه برخه چې د نوم لاندې ده.د ایختو راختلو ځائې پورې.دا عورت دې خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ الْاِمَامُ أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ الْكَمَارِيُّ مُعْتَمِدًا فِيهِ الْعَادَةَ په خلاف د امام ابوبکر محمد بن الفضل الکماری رحمة الله فرمائی.په داسې حال کې چې هغه په دې کې عادت باندې اعتماد کوی.«لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِهَا مَعَ النَّصِّ بِخِلَافِهِ خکه چې د عادت اعتبار به نشی کولې.ددې په خلاف د نص کیدو باوجود.

حل اللغة: ① الفخذ:ورون ② الشعر:ویخته﴾

تشريح:- امام شافعی رحمة الله گونډئ ته عورت نه وائی.او اهل ظواهر رون ته عورت نه وائی.او امام ابوبکر محمد بن فضل الکماری رحمة الله د نوم لاندینۍ برخې (حصې) ته هم عورت نه وائی.او هغه وائی.چه په خلکو کې ددې د کلاوولو عادت دې.مرغینانی رحمة الله خواب ورکړو.چه عادت هغه وخت مخصص کیداې شی.کله چې د هغې خلاف نص موجود نه وی.او دلته ددې په خلاف نص موجود دې.

## گوناټې عورت (شرمگاه) دې اوکه نه؟

وَقَدْ رَوٰى أَبُوهُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَنَّهُ قَالَ الرُّكْبَةُ مِنَ الْعَوْرَةِ [1] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه د نبی کریم ﷺ نه روایت کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه گونډئ عورت دې وَأَبْدَى الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا سُرَّتَهُ فَقَبَّلَهَا أَبُوهُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ [2] او کولاو کړو حسن بن علی رضي الله عنهما خپل نوم نو هغه حضرت

---

[1] قال الزيلعي رحمة الله غريب من حديث أبي هريرة رضي الله عنه وتقدم في شروط الصلاة من حديث علي رضي الله عنه عندالدارقطني وفيه ضعف (نصب:۵٤۳\٤)_

[2] من أثر عميربن إسحاق أخرجه أحمد في مسنده وابن حبان في صحيحه والبيهقي في سننه (نصب:۵٤۳\٤)_



ابوهریره رضي الله عنه ښکل کړو وَقَالَ لِجَرْهَدٍ وَارِ فَخِذَكَ اونبی کریم ﷺ جرهد رضي الله عنه ته اوفرمائیل.چه خپل رون پټ کړه أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ الْفَخِذَ عَوْرَةٌ [1] آیا تا ته معلومه نه ده.چه رون عورت دې.

تشريح:- کنډئ عورت دې.په دې باندې حضرت مرغینانی رحمة الله د حضرت ابوهریره رضي الله عنه حدیث پیش کړو.کوم چې کتاب کې ذکر دې.نوم عورت نه دې.په دې باندې ئې د حضرت ابوهریره رضي الله عنه فعل پیش کړو.کوم چې په کتاب کې ذکر دې.رون عورت دې.په دې باندې ئې هغه حدیث پیش کړو.په کوم کې چې حضرت جرهد رضي الله عنه مخاطب دې.چه دا د اصحاب صفه ځنې دې.دوی رضي الله عنه خپل رون ښکاره کړې وو.او ناست وو.نو نبی کریم ﷺ دا ارشاد فرمائیلې وو.

وَلِأَنَّ الرُّكْبَةَ مُلْتَقٰى عَظْمِ الْفَخِذِ وَالسَّاقِ او خکه چې گونډئ د رون او د لینگئ د هډوکی ملاویدو ځائې دې فَاجْتَمَعَ الْمُحَرَّمُ وَالْمُبِيحُ نو محرم اومبیع جمع شو وَفِي مِثْلِهِ يَغْلِبُ الْمُحَرَّمُ او ددې په مثل کې محرم غالب وی.

حل اللغة: ① ملتقی:ځائې د ملاویدو ② عظم: هډوکې ③ الساق: کونډئ﴾

تشريح:- دکنډئ د عورت کیدو عقلی دلیل دا دې.چه په کنډئ کې د رون او د لینگئ د دواړو د هډوکو اجتماع ده.د رون د هډوکی تقاضه دا ده.چه کنډئ عورت وی.او د لینگئ د هډوکی تقاضه دا ده.چه کنډئ عورت نه وی.نو د حلال او حرام اجتماع اوشوه.یا داسې اووایئ. چې د مبیح او محرم اجتماع اوشوه.نو محرم ته ترجیح ورکړې شوه.او دې ته عورت اووئیلې شو.

وَحُكْمُ الْعَوْرَةِ فِي الرُّكْبَةِ أَخَفُّ او د عورت حکم په کنډئ کې معمولی دې مِنْهُ فِي الْفَخِذِ.د هغې حکم نه کوم چې په رون کې دې وَفِي الْفَخِذِ أَخَفُّ مِنْهُ فِي السَّوْأَةِ، او په رون کې معمولی دې.د هغې حکم نه کوم چې شرمگاه کې دې حَتّٰى أَنَّ كَاشِفَ الرُّكْبَةِ يُنْكَرُ عَلَيْهِ بِرِفْقٍ تردې چې د گونډئ کلاوولو والا باندې به نرمۍ سره نکیر کولای شی وَكَاشِفَ الْفَخِذِ يُعَنَّفُ عَلَيْهِ او د رون کلاوولو والا باندې به سختی کولای شی ،وَكَاشِفَ السَّوْءَةِ يُؤَدَّبُ او د شرمگاه کلاوولو والا ته به سزا ور کولای شی إِنْ لَجَّ که هغه کلك شی.

حل اللغة: ① السوءة: شرمگاه ② کاشف:ښکاره کونکې ③ یعنف:سختی کولې شی﴾

تشريح:- بیا کنډئ او رون، او شرمگاه عورت دی.خو د ټولو نه زیاته سختی په شرمگاه کې ده.او په رون کې ددې نه کمه ده.او په کنډئ کې د ټولو نه کمه ده.هم دا وجه ده.چه کوم کس کنډئ ښکاره کړی. هغه باندې به نرمۍ سره نکیر کولې شی.اوځوك چې رون کلاو کړی.په هغه به سختۍ سره او ځوك چې شرمگاه ښکاره کړی.د هغه به تادیب کولې شی.که په دې باندې کلك شی.او که نه منی.نو ښه وهل ( سزا) به ورکولې شی.

## سړی لپاره د سړی څومره بدن ته لاس اوړل جائز دی؟

وَمَا يُبَاحُ النَّظَرُ إِلَيْهِ لِلرَّجُلِ مِنَ الرَّجُلِ يُبَاحُ الْمَسُّ او سړی لپاره چې د سړی کوم اندام ته کتل جائز دی.هغې ته لاس اوړل جائز دی لِأَنَّهُمَا فِيمَا لَيْسَ بِعَوْرَةٍ سَوَاءٌ خکه چې دا(کتل او لاس اوړل) دواړه په هغه اندام کې کوم چې عورت نه دې.برابر دی

تشريح:- د سړی د بدن کومه برخه کتل چې جائز دی.هغې ته لاس لگول هم جائز دی.ځکه چې کوم اندام په عورت کې داخل نه دې.هغې ته لاس اوړل او کتل برابر دی.

تنبیه① ۞ خوی لپاره جائز دی.چه د خدمت په غرض سره د خپلې مور شا او اوږو باندې زور اوکړی.د کپړې دپاسه،﴿ فتاوی هندیه ص:۳۲۸،ج۵﴾ د کپړې سربیره رون باندې زور کول ( چاپی کول) جائز دی.،،

---

[1] من حديث زرعة بن عبدالرحمن بن جرهد عن أبيه رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الحمام باب ۱ رقم ٤۰۱٤ والترمذي في الأدب باب ٤۰ رقم ۲۷۹۵)_

كذا قال الفقيه ابو جعفر ..﴿فتاوى هنديه ص:٣٢٨،ج٥﴾

تنبيه② ۞ بعضو حضراتو وئيلى دى.چه دجماع په وخت د ښځې شرمګاه كتل غوره دى.چه په لذت كې اضافه اوشى.او بعضو وئيلى دى.چه دا نسيان (هيره) پيدا كوى.په دې وجه كتل پكار نه دى.﴿مجمع الانهر ص: ٥١٨،ج٢﴾

تنبيه③ ۞ كومه ښځه چې د سړى شرمګاه ته لاس يوسى.او سړى د ښځې شرمګاه ته لاس اولګوى.چه د سړى اله متحرك شى.نو آيا په دې كې څه باك شته؟ امام صاحب رحمه الله فرمائيلى دى.چه په دې كې هيڅ باك نشته.او ماته اميد دې.چه په دې كې به اجر ملاويږى.. كذا فى الخلاصه ..﴿فتاوى هنديه ص:٣٢٨،ج٥﴾

تنبيه④ ۞ جماع لپاره د ښځې په برېنډولو كې هيڅ باك نشته.﴿ فتاوى هنديه ص:٣٢٨،ج٥﴾

تنبيه⑤ ۞ كه رون باندې زور اوكړې شى.او په منځ كې پيړ پاې كالى (پرتوګ) (كپړه) حائل وى.نو جائز ده... كذا قال العينى.. په ﴿سكب الانهر ص:٤٦٣،ج٢﴾ باندې دى. ﴿وجاز غمز فخذه فوق إزار كشف وإلا لا والأحوط تركه﴾.

تنبيه⑥ ۞ كوم هلك چې ښائسته وى.نوهغه د ښځو په حكم كې دې.هغه ارخ ته شهوت سره كتل جائز نه دى.البته د شهوت نه بغير كتل او خلوت جائز دې.په دې وجه هغه ته د پردې حكم نه دې وركړې شوې.﴿ فتاوى هنديه ص: ٣٣٠،ج٥﴾

## ښځې لپاره د سړى څومره بدن كتل جائز دى

قَالَ امام قدورى رحمه الله فرمائيل وَيَجُوزُ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَنْظُرَ مِنَ الرَّجُلِ إِلَى مَا يَنْظُرُ الرَّجُلُ إِلَيْهِ مِنْهُ او جائز ده ښځې دپاره، چې دا ګورى د سړى هغه بدن كوم چې نور سړى كتلې شى إِذَا أَمِنَتِ الشَّهْوَةَ كله چې ښځه د شهوت نه په امن وى وجه لِاسْتِوَاءِ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ د سړى او ښځې د برابر كېدو په فِي النَّظَرِ إِلَى مَا لَيْسَ بِعَوْرَةٍ. كَالثِّيَابِ وَالدَّوَابِّ ، د هغه شئ په كتلو كې كوم چې عورت نه دې كالثياب والدواب لكه كپړې او څاروى (سوارلى).

تشريح:- د سړى د بدن كومه برخه چې نور سړى كتلې شى.هغه ښځه هم كتلې شى.يعنى دده نس او شا په دې شرط چې شهوت نه وى.څكه چې كومه برخه عورت نه دې.هغې كې سړې او ښځه برابر دى.لكه څنګه چې د سوارلو او كپړو حكم دې.چه دا عورت نه دې.نو سړې د ښځې كپړې او سورالئ كتلې شى.او ښځه د سړى سوارلئ او كپړې كتلې شى.

## ښځې لپاره د پردى سړى د څېټې او شا كتلو حكم

وَفِي كِتَابِ الْخُنْثَى مِنَ الْأَصْلِ او د مبسوط په كتاب الخنثى كې دى أَنَّ نَظَرَ الْمَرْأَةِ إِلَى الرَّجُلِ الْأَجْنَبِيِّ بِمَنْزِلَةِ نَظَرِ الرَّجُلِ إِلَى مَحَارِمِهِ چې د ښځې كتل پردى سړى ارخ ته، دسړى د كتلو په درجه كې دى.خپلو محارمو ارخ ته، لِأَنَّ النَّظَرَ إِلَى خِلَافِ الْجِنْسِ أَغْلَظُ څكه چې خلاف جنس ارخ ته كتل سخت دى.

حل اللغة° ① الاجنبى: پردې ② محارم: جمع د محرم،هغه څوك چې نكاح ور سره نه كيږى ③ اغلظ: زيات سخت

تشريح:- دلته يوه مسئله هغه ده.كومه چې امام قدورى رحمه الله ذكر كړې ده.چه په وړاندې تيره شوې ده.خود مبسوط په كتاب الخنثى كې مسئله په دې طريقه بيان شوې ده.چه لكه څنګه سړى لپاره جائز نه دى.چه د خپلو محارمو نس يا شا اوګورى.دغه ډول ښځې لپاره جائز نه دى.چه هغه د پردى سړى نس يا شا اوګورى.او دليل ئې دا بيان كړې دې.چه خلاف جنس ارخ ته كتل زيات خطرناك دى.جنس ارخ ته د كتلو په مقابله كې .. كماهو ظاهر..



فَإِنْ كَانَ فِي قَلْبِهَا شَهْوَةٌ نو كه د ښځې په زړه كې شهوت وى أَوْ أَكْبَرُ رَأْيِهَا أَنَّهَا تَشْتَهِي يا دده غالب ګمان وى.چه شهوت به اوشى أَوْ شَكَّتْ فِي ذٰلِكَ يا هغه شك اوكړى.په دې كې يُسْتَحَبُّ لَهَا أَنْ تَغُضَّ بَصَرَهَا تغض بصرها نو دده لپاره مستحب دى.چه خپل نظر بند كړى.

حل اللغة° ① قلب: زړه ② تشتهى: اشتهاه كيږى

تشريح:- خو دا تفصيل هغه وخت دې.كله چې ښځه د شهوت نه په امن كې وى.ګنى كه ددې په زړه كې شهوت وى.يا د شهوت غالب ګمان وى.يا د شهوت شك وى.نو ددې لپاره نه كتل مستحب دى.يعنى حرام نه دى.اوكه په سړى كې دا حالت وى.نو دده لپاره كتل حرام دى.چه ددې مرغينانى رحمه الله وړاندې دليل بيانوى.

## سړى لپاره د پردۍ ښځې د شا او څېټې كتلو حكم

وَلَوْ كَانَ النَّاظِرُ هُوَ الرَّجُلُ إِلَيْهَا او كه ښځې ارخ ته سړې كتونكې وى وَهُوَ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ او سړې په دې صفت وى (يعنى ده ته شهوت وى). لَمْ يَنْظُرْ نو هغه به نه ګورى ،وَهٰذَا إِشَارَةٌ إِلَى التَّحْرِيمِ او دا اشاره ده حرمت ارخ ته.

تشريح:- د نه كتلو استحباب د ښځې په حق كې دې.او د سړى په حق كې عدم جواز دې.

## وجه د فرق

وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ الشَّهْوَةَ عَلَيْهِنَّ غَالِبَةٌ او وجه د توپير دا ده.چه په ښځو باندې شهوت غالب دې وَهُوَ كَالْمُتَحَقِّقِ اعْتِبَارًا او د اعتبار په لحاظ غالب پشان د متحقق دې فَإِذَا اشْتَهَى الرَّجُلُ نو كله چې سړى ته شهوت كيږى كَانَتِ الشَّهْوَةُ مَوْجُودَةً فِي الْجَانِبَيْنِ نوشهوت د دواړو ارخه موجود شو وَلَا كَذٰلِكَ إِذَا اشْتَهَتِ الْمَرْأَةُ او نشته داسې كله چې ښځې ته شهوت وى لِأَنَّ الشَّهْوَةَ غَيْرُ مَوْجُودَةٍ فِي جَانِبِهِ حَقِيقَةً وَاعْتِبَارًا څكه چې شهوت د سړى په ارخ كې نه په لحاظ د حقيقت دې.اونه په لحاظ د اعتبار سره فَكَانَتْ مِنْ جَانِبٍ وَاحِدٍ نو شهوت به په يو ارخ كې وى وَالْمُتَحَقِّقُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ فِي او كوم شهوت چې د دواړو طرفونو نه ثابت شوې دې الْإِفْضَاءِ إِلَى الْمُحَرَّمِ أَقْوٰى .هغه حرام پورې رسولو كې زيات مضبوط دې مِنَ الْمُتَحَقِّقِ فِي جَانِبٍ وَاحِدٍ.د هغه شهوت نه كوم چې د يو ارخه دې.

تشريح:- په ښځو كې شهوت غالب وى.نو اعتبارى او حكمى لحاظ سره به شهوت په دوى باندې هر وخت موجود منلې شى.او په سړى كې شهوت غالب نه وى.نو تركومه پورې چې په ده كې حقيقتاً شهوت موجود نه وى.نو په ده كې به اعتبارى او حكمى لحاظ سره شهوت نه منلې كيږى.هركله چې خبره داسې ده.نو كه په ښځه كې شهوت وى.نو دده لپاره نه كتل مستحب دى.حرام نه دى.څكه چې سړى كې شهوت نشته.نو د ښځې شهوت د حرام كېدو ارخ ته مضبوطه ذريعه نه ده.

اوكه سړى ته شهوت وى.نو هغه لپاره ښځې ارخ ته كتل حرام دى.څكه چې ښځه كې خو شهوت شته.او په ښځه كې حكمى او اعتبارى لحاظ سره هر وخت شهوت موجود دې.نو اوس د دواړو طرفو نه شهوت موجود شو.نو د دواړو طرفو نه شهوت د حرام پورې رسولو قوى ذريعه ده.په دې وجه دا حرام دې.او رومبې نه دې.

نكته۞ ددې راز دا دې.چه سړې توان ور دې.او فاعل دې.او د ښځې شهوت مغلوب دې.او منفعله ده.نو دا به مغلوبه شى.او د سړى په دام كې به راشى.په خلاف د ښځې د شهوت، چې ددې د فاعله نه كېدو په وجه ددې شهوت فضول دې.څكه چې سړې فاعل دې.او غالب دې.د هغه شهوت نشته.

## ښځې لپاره د ښځې څومره بدن كتل جائز دى؟

قَالَ امام قدورى رحمه الله فرمائيلى دى وَتَنْظُرُ الْمَرْأَةُ مِنَ الْمَرْأَةِ إِلَى مَا يَجُوزُ لِلرَّجُلِ او ګورې دې ښځه د بلې ښځې هغه ځائې كوم چې جائز دې.سړى دپاره، أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهِ مِنَ الرَّجُلِ لِوُجُودِ الْمُجَانَسَةِ، وَانْعِدَامِ الشَّهْوَةِ غَالِبًا چې

اوګوري هغې ارخ ته.سړي سره د مجانست موجود کیدو په وجه.او د شهوت نه کیدو په وجه غالباً كَمَا فِي نَظْرِ الرَّجُلِ إِلَى الرَّجُلِ لکه څنګه چې د سړي بل سړي ته په کتلو کې دی وَكَذَا الضَّرُورَةُ قَدْ تَحَقَّقَتْ او هم دغه ډول ارتیا ثابت دې ،إِلَى الِانْكِشَافِ فِيمَا بَيْنَهُنَّ .ددوی په منځ کې ښکاره کاوه ارخ ته

**تشریح:**- سړې چې د بل سړي څومره برخه کتلې شي.دغومره یوه ښځه د بلې ښځې کتلې شي.ځکه چې دا د یوجنس دی.او په عامه توګه (عام طور) باندې شهوت نه کیږي.لکه د یو سړي بل سړي ته په کتلو کې ،او په دې وجه هم چې ښځې د دومره بدن د ښکاره کاوه په غسل خانه وغیره کې ارتیا محسوسوی.نو ددې به اجازت وی.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دې أَنَّ نَظَرَ الْمَرْأَةِ إِلَى الْمَرْأَةِ كَنَظَرِ الرَّجُلِ إِلَى مَحَارِمِهِ چې د ښځې بلې ښځې ارخ ته کتل د سړي د کتلو پشان دی.خپلو محارمو ارخ ته بِخِلَافِ نَظَرِهَا إِلَى الرَّجُلِ په خلاف د ښځې د کتلو سړي ارخ ته أَنَّ الرِّجَالَ يَحْتَاجُونَ إِلَى زِيَادَةِ الِانْكِشَافِ لِ ځکه چې سړې د ښکاره کاوه زیات محتاج دي لِلِاشْتِغَالِ بِالْأَعْمَالِ .په کارونو کې د مشغوله کیدو په وجه ،،وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او ړومبې زیات صحیح دې.

**تشریح:**- د حضرت امام صاحب رحمه الله نه روایت دې.چه د ښځو پخپل منځ کې ( د کتلو حکم) داسې دې.لکه څنګه چې د سړي حکم دې.د خپلو محارمو په اړه کې ،یعنی د شا او اوګو کتل جائز نه دی.البته ښځه د سړي شا او اوګې کتلې شي.ځکه چې سړې په کارونو کې د مشغولیدو په وجه د زیات ښکاره کاوه محتاج دې.خو ړومبې قول زیات صحیح دې.یعنی ښځې لپاره جواز شته، چې هغه د بلې ښځې اوګې او شا اوګوري.

## سړي لپاره د خپلې وینځې او ښځې د شرمګاه کتلو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائیلي دی وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ أَمَتِهِ الَّتِي تَحِلُّ لَهُ او سړې کتلې شی د خپلې هغه وینځې ته کومه چې دده لپاره حلال ده وَزَوْجَتِهِ إِلَى فَرْجِهَا او د خپلې ښځې نه ددې شرمګاه ارخ ته وَهَذَا إِطْلَاقٌ فِي النَّظَرِ إِلَى سَائِرِ بَدَنِهَا عَنْ شَهْوَةٍ وَغَيْرِ شَهْوَةٍ او دا اجازت دې ددې د پوره بدن کتلو په شهوت سره، او د شهوت نه بغیر وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او اصل په دې کې د نبی کریم ﷺ فرمان دې. غُضَّ بَصَرَكَ إِلَّا عَنْ أَمَتِكَ وَامْرَأَتِكَ [1] چې خپل نظر کښته کوه.مګر د خپلې وینځې نه، او د خپلې ښځې نه وَلِأَنَّ مَا فَوْقَ ذَلِكَ مِنَ الْمَسِّ وَالْغَشَيَانِ مُبَاحٌ او ځکه چې کوم شئ ددې نه زیات دې.یعنی لاس اوړل او جماع، (دا) جائز دی فَالنَّظَرُ أَوْلَى نو کتل په درجه اولیٰ ( جائز) دی إِلَّا أَنَّ الْأَوْلَى أَنْ لَا يَنْظُرَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا إِلَى عَوْرَةِ صَاحِبِهِ خو غوره دا ده.چه په دوی کې هر یو د خپل انډیوالان عورت ارخ ته اونه ګوري ،لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ أَهْلَهُ چې کله په تاسو کې یوکس خپلې ښځې له راشي فَلْيَسْتَتِرْ مَا اسْتَطَاعَ نو ترکومه پورې چې کیدای شي.عورت دې پټ کړي وَلَا يَتَجَرَّدَانِ تَجَرُّدَ الْعِيرِ او د اوښ پشان دې دواړه نه بربنډیږي [2] وَلِأَنَّ ذَلِكَ يُورِثُ النِّسْيَانَ لِوُرُودِ الْأَثَرِ او ځکه چې دا ( شرمګاه ارخ ته کتل) نسیان ( هیره) پیدا کوی.د اثر واردیدو په وجه وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنه يَقُولُ او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمایې الْأَوْلَى چې غوره دا ده.چه اوګوري. أَنْ يَنْظُرَ لِيَكُونَ أَبْلَغَ فِي تَحْصِيلِ مَعْنَى اللَّذَّةِ چې شی دا زیات رسونکې د لذت معنی حاصلولو کې

[1] من حديث بهز بن حكيم عن أبيه عن جده معاوية بن حيدة رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الحمام باب ٢ رقم ٤٠١٧ والترمذي في الأدب باب ٢٢ رقم ٢٧٦٩ وابن ماجه في النكاح باب ٢٨ رقم ١٩٢٠ والنسائي في السنن الكبرى (٣١٣/٥) رقم ٨٩٧٢)_

[2] من حديث عتبة بن عبدالسلمي رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه في النكاح باب ٢٨ رقم ١٩٢١)_



**حل اللغة:** ① **غض**: بنده کړه ② **المسيس**: دلاس اوړل ③ **الغشيان**: جماع کول ④ **يستتر**: پټیږي ⑤ **يتجردان**: تثنیه د يتجرد، بربنډ کیږي ،د جامو نه خالی کیږي ⑥ **البعير**: اوښ ⑦ **اللذة**: خوند

**تشریح:**- سړې د خپلې ښځې او هغه وینځې واړه بدن کتلې شي.کومه چې دده لپاره حلال ده.که شهوت وی.اوکه نه وی.ځکه چې هرکله لاس لګول او وطی کول جائز دی.نو بیا به کتل په درجه اولی جائز وي.خو بهرحال د ښځې نه کتل غوره دی.د هغه حدیث په وجه کوم چې دلته ذکر دې.خو د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه د ښځې د کتلو فضیلت رانقل دې.ځکه چې دا د زیات لذت سبب دې.

تنبیه ① د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د اثر په اړه کې علامه زیلعی رحمه الله فرمائی،، قلت غريب جداً،، او علامه عینی رحمه الله فرمائی.چه دا د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه بالکل ثابت نه دې.نه په صحیح سند سره اونه په ضعیف سند سره.

## سړې د خپلو محارمو ښځو کوم اندامونه کتلې شي اوکوم نشي کتلې ؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ ذَوَاتِ مَحَارِمِهِ إِلَى الْوَجْهِ وَالرَّأْسِ وَالصَّدْرِ وَالسَّاقَيْنِ وَالْعَضُدَيْنِ و سړې دې ګوري د محارمو نه مخ، او سر، اوسینې، او لینګئ ،او متو ارخ ته وَلَا يَنْظُرُ إِلَى ظَهْرِهَا وَبَطْنِهَا وَفَخِذِهَا او نه دې ګوري د هغې شا او نس او ددې رون ارخ ته وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى او اصل په دې کې د الله تعالی فرمان دې وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ } الْآيَةَ او نه دې ښکاره کوی خپل زینت ( ښائست )، خو خپلو خاوندانو ته ،، {النور: ٣١} {وَالْمُرَادُ وَاللَّهُ أَعْلَمُ مَوَاضِعُ الزِّينَةِ او مراد ،، والله أعلم ،، د زینت ځایونه دی وَهِيَ مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ او دا هغه دی.کوم چې موږ په کتاب کې ذکرکړي دی وَيَدْخُلُ فِي ذَلِكَ السَّاعِدُ وَالْأُذُنُ وَالْعُنُقُ وَالْقَدَمُ او په دې کې مړوند ، او غوږونه، او مرئ او پښې داخل دی لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ مَوْضِعُ الزِّينَةِ، بِخِلَافِ الظَّهْرِ وَالْبَطْنِ وَالْفَخِذِ ځکه چې دا واړه د زینت ځائې دې.په خلاف د شا او خیټې او رون ،لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ مَوَاضِعِ الزِّينَةِ ځکه چې دا د زینت ځایونه دی.

**حل اللغة:** ① **الوجه**: مخ ② **الصدر**: سینه ③ **الساقين**: تثنیه د ساق: لینګئ ④ **العضدين**: تثنیه د عضد: مټ ⑤ **ظهر**: شاه ⑥ **بطن**: ګېډه ⑦ **بعول**: جمع د بعل، میړه ⑧ **الساعد**: مړوند ⑨ **العنق**: څټ ⑩ **الفخذ**: ورون ﴾

**تشریح:**- کومې ښځې چې د سړي ذی رحم محرم دی.د هغوی مخ، سر، سینه، لینګئ او متې کتلې شي.او نس او شا او رون نشی کتلې.ځکه چې دې ذکر شوی آیت کې خپلو محارمو لپاره د زینت ښکاره کاوه اجازت ورکړې شوې دې.او د زینت نه مراد ځایونه د زینت دی.او دا هم هغه ځایونه دی.کوم چې ذکر دی. او په دې کې مړوند، مرئ، غوږونه، او پښې داخل دی.ځکه چې دا واړه د زینت ځایونه دی.لکه څنګه چې په دې ټولو ځایونو کې د زیوراتو وغیره اغوستلو عام عادت دې.البته اوګې، شا او رون د زینت ځایونه نه دی.نو ددې د ښکاره کاوه اجازت به نه ملاویږي.

## د محارمو د کتلو عقلی دلیلونه

وَلِأَنَّ الْبَعْضَ يَدْخُلُ عَلَى الْبَعْضِ مِنْ غَيْرِ اسْتِئْذَانٍ وَاحْتِشَامٍ او ځکه چې بعضې په بعضو باندې بغیر د اجازت نه او بغیر د شرم اوحیا داخلیږي. وَالْمَرْأَةُ فِي بَيْتِهَا فِي ثِيَابِ مِهْنَتِهَا عَادَةً او ښځه په عامه توګه (عام طور) باندې په کور کې د کار کاوه په کپړو کې اوسیږي فَلَوْ حَرُمَ النَّظَرُ إِلَى هَذِهِ الْمَوَاضِعِ نو که دې ځایونو ارخ ته کتل حرام اوګرځولې شی أَدَّى إِلَى الْحَرَجِ نو دا به حرج ارخ ته مفضی وی وَكَذَا الرَّغْبَةُ تَقِلُّ لِلْحُرْمَةِ الْمُؤَبَّدَةِ او دغه ډول د حرمت مؤبده په وجه رغبت کم وی فَقَلَّمَا تُشْتَهَى ، بِخِلَافِ مَا وَرَاءَهَا نوشهوت کم وی.په خلاف د هغه اندامونو،کوم چې ددې نه علاوه دی.( یعنی خیټه، شا او رون). لِأَنَّهَا لَا تَنْكَشِفُ عَادَةً ځکه چې دا عادتاً نشی کلاوولې وَالْمَحْرَمُ مَنْ لَا يَجُوزُ الْمُنَاكَحَةُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا عَلَى التَّأْبِيدِ او محرم هغه دې.چه د هغه او ددې ښځې په منځ کې همیشه نکاح کول

اوګوري هغې ارخ ته.سړي سره د مجانست موجود کيدو په وجه.او د شهوت نه کيدو په وجه غالباً كَمَا فِي نَظَرِ الرَّجُلِ إِلَى الرَّجُلِ لکه څنګه چې د سړي بل سړي ته په کتلو کې دی وَكَذَا الضَّرُورَةُ قَدْ تَحَقَّقَتْ او هم دغه ډول اړتيا ثابت دي ،إِلَى الانْكِشَافِ فِيمَا بَيْنَهُنَّ.ددوی په منځ کې ښکاره کاوه ارخ ته

تشريح:- سړي چې د بل سړي څومره برخه کتلې شي.دغومره يوه ښځه د بلې ښځې کتلې شي.ځکه چې دا د يوجنس دي.او په عامه توګه (عام طور) باندې شهوت نه کيږي.لکه د يو سړي بل سړي ته په کتلو کې ،او په دې وجه هم چې ښځې د دومره بدن د ښکاره کاوه په غسل خانه وغيره کې اړتيا محسوسوی.نو ددې به اجازت وي.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دي أَنَّ نَظَرَ الْمَرْأَةِ إِلَى الْمَرْأَةِ كَنَظَرِ الرَّجُلِ إِلَى مَحَارِمِهِ چې د ښځې بلې ښځې ارخ ته کتل د سړي د کتلو پشان دی.خپلو محارمو ارخ ته بِخِلَافِ نَظَرِهَا إِلَى الرَّجُلِ په خلاف د ښځې د کتلو سړي ارخ ته أَنَّ الرِّجَالَ يَحْتَاجُونَ إِلَى زِيَادَةِ الانْكِشَافِ لِ ځکه چې سړي د ښکاره کاوه زيات محتاج دي لِلاشْتِغَالِ بِالأَعْمَالِ.په کارونو کې د مشغوله کيدو په وجه ،،.وَالأَوَّلُ أَصَحُّ او ړومبې زيات صحيح دي.

تشريح:- د حضرت امام صاحب رحمه الله نه روايت دي.چه د ښځو پخپل منځ کې (د کتلو حکم) داسې دي.لکه څنګه چې د سړي حکم دي.د خپلو محارمو په اړه کې ،يعنی د شا او اوګو کتل جائز نه دی.البته ښځه د دې.خو ړومبې قول زيات صحيح دي.يعنی ښځې لپاره جواز شته، چې هغه د بلې ښځې اوګې او شا اوګوري.

## سړي لپاره د خپلې وينځې او ښځې د شرمګاه کتلو حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله فرمانيلی دی وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ أَمَتِهِ الَّتِي تَحِلُّ لَهُ او سړې کتلې شي د خپلې هغه وينځې ته کومه چې دده لپاره حلال ده وَزَوْجَتِهِ إِلَى فَرْجِهَا او د خپلې ښځې نه ددې شرمګاه ارخ ته وَهَذَا إِطْلَاقٌ فِي النَّظَرِ إِلَى سَائِرِ بَدَنِهِمَا عَنْ شَهْوَةٍ وَغَيْرِ شَهْوَةٍ او دا اجازت دې ددې د پوره بدن کتلو په شهوت سره، او د شهوت نه بغير وَالأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او اصل په دې کې د نبی کريم ﷺ فرمان دي .غُضَّ بَصَرَكَ إِلَّا عَنْ أَمَتِكَ وَامْرَأَتِكَ[1] چې خپل نظر کښته کوه.مګر د خپلې وينځې نه، او د خپلې ښځې نه وَلأَنَّ مَا فَوْقَ ذَلِكَ مِنَ الْمَسِّ وَالْغَشَيَانِ مُبَاحٌ او ځکه چې کوم شی ددې نه زيات دي.يعنی لاس اوړل او جماع، (دا) جائز دی فَالنَّظَرُ أَوْلَى نو کتل په درجه اولی (جائز) دی إِلَّا أَنَّ الأَوْلَى أَنْ لَا يَنْظُرَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا إِلَى عَوْرَةِ صَاحِبِهِ خو غوره دا ده.چه په دوی کې هر يو د خپل انډيوالان عورت ارخ ته اونه ګوري ،لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کريم ﷺ د فرمان په وجه إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ أَهْلَهُ چې کله په تاسو کې يوکس خپلې ښځې له راشی فَلْيَسْتَتِرْ مَا اسْتَطَاعَ نو ترکومه پورې چې کيدای شي.عورت دې پټ کړی وَلَا يَتَجَرَّدَانِ تَجَرُّدَ الْعِيرِ او د اوښ پشان دې دواړه نه بربنډيږی[2] وَلأَنَّ ذَلِكَ يُورِثُ النِّسْيَانَ لِوُرُودِ الأَثَرِ او ځکه چې دا (شرمګاه ارخ ته کتل) نسيان (هيره) پيدا کوی.د اثر وارديدو په وجه وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما يَقُولُ او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي الأَوْلَى چې غوره دا ده.چه اوګوری.أَنْ يَنْظُرَ لِيَكُونَ أَبْلَغَ فِي تَحْصِيلِ مَعْنَى اللَّذَّةِ چې شی دا زيات رسونکې د لذت معنی حاصلولو کې

[1]) من حديث بهزبن حكيم عن أبيه عن جده معاوية بن حيدة رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى الحمام باب ۲ رقم ٤٠١٧ والترمذى فى الأدب باب ۲۲ رقم ۲۷٦۹ وابن ماجه فى النكاح باب ۲۸ رقم ۱۹۲۰ والنسائى فى السنن الكبرى (۳۱۳۱۵) رقم ۸۹۷۲)_

[2]) من حديث عتبة بن عبدالسلمى رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه فى النكاح باب ۲۸ رقم ۱۹۲۱)_



حل اللغة: ① غض: ښنده کړه ② المسيس: دلاس اوړل ③ الغشيان: جماع کول ④ يستتر: پټيږی ⑤ يتجردان: تثنيه د يتجرد، بربنډ کيږی ،د جامو نه خالی کيږی ⑥ البعير: اوښ ⑦ اللذة: خوند

تشريح:- سړې د خپلې ښځې او هغه وينځې واړه بدن کتلې شی.کومه چې دده لپاره حلال ده.که شهوت وی.اوکه نه وی.ځکه چې هرکله لاس لګول او وطی کول جائز دی.نو بيا به کتل په درجه اولی جائز وی.خو بهرحال د ښځې نه کتل غوره دی.د هغه حديث په وجه کوم چې دلته ذکر دې.خو د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه د ښځې د کتلو فضيلت رانقل دې.ځکه چې دا د زيات لذت سبب دې.

تنبيه① ۞ د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د اثر په اړه کې علامه زيلعی رحمه الله فرمائی،، قلت غريب جداً،،او علامه عينی رحمه الله فرمائی.چه دا د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه بالکل ثابت نه دې.نه په صحيح سند سره اونه په ضعيف سند سره.

## سړې د خپلو محارمو ښځو کوم اندامونه کتلې شي اوکوم نشي کتلې ؟

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ ذَوَاتِ مَحَارِمِهِ إِلَى الْوَجْهِ وَالرَّأْسِ وَالصَّدْرِ وَالسَّاقَيْنِ وَالْعَضُدَيْنِ او سړې دې ګوری د محارمو نه مخ، او سر، اوسينې، او لينګئ ،او متو ارخ ته وَلَا يَنْظُرُ إِلَى ظَهْرِهَا وَبَطْنِهَا وَفَخِذِهَا او نه دې ګوری د هغې شا او نس او ددې رون ارخ ته وَالأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى او اصل په دې کې د الله تعالی فرمان دې وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ} الآيَة او نه دې ښکاره کوی خپل زينت (ښائست)، خو خپلو خاوندانو ته ،،﴿النور: ۳۱﴾ {وَالْمُرَادُ وَاللَّهُ أَعْلَمُ مَوَاضِعُ الزِّينَةِ او مراد ،،والله أعلم،، د زينت ځايونه دی وَهِيَ مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ او دا هغه دی.کوم چې موږ په کتاب کې ذکرکړي دی وَيَدْخُلُ فِي ذَلِكَ السَّاعِدُ وَالأُذُنُ وَالْعُنُقُ وَالْقَدَمُ او په دې کې مړوند ، او غوږونه، او مرئ او پښې داخل دی لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ مَوْضِعُ الزِّينَةِ، بِخِلَافِ الظَّهْرِ وَالْبَطْنِ وَالْفَخِذِ ځکه چې دا واړه د زينت ځائې دې.په خلاف د شا او خيټې او رون ،لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ مَوَاضِعِ الزِّينَةِ ځکه چې دا د زينت ځايونه دی.

حل اللغة: ① الوجه: مخ ② الصدر: سينه ③ الساقين:تثنيه د ساق: لينګئ ④ العضدين: تثنيه د عضد: مټ ⑤ ظهر:شاه ⑥ بطن: ګېس ⑦ بعول: جمع د بعل، ميړه ⑧ الساعد:مړوند ⑨العنق: څټ ⑩ الفخذ: ورون﴾

تشريح:- کومې ښځې چې د سړي ذی رحم محرم دی.د هغوی مخ، سر، سينه، لينګئ او متې کتلې شی.او نس او شا او رون نشی کتلې.ځکه چې دې ذکر شوی آيت کې خپلو محارمو لپاره د زينت ښکاره کاوه اجازت ورکړې شوې دې.او د زينت نه مراد ځايونه د زينت دی.او دا هم هغه ځايونه دی.کوم چې ذکر دی. او په دې کې مړوند، مرئ، غوږونه، او پښې داخل دی.ځکه چې دا واړه د زينت ځايونه دی.لکه څنګه چې په دې ټولو ځايونو کې د زيوراتو وغيره اغوستلو عام عادت دې.البته اوګې، شا او رون د زينت ځايونه نه دی.نو ددې د ښکاره کاوه اجازت به نه ملاويږی.

## د محارمو د کتلو عقلی دليلونه

وَلأَنَّ الْبَعْضَ يَدْخُلُ عَلَى الْبَعْضِ مِنْ غَيْرِ اسْتِئْذَانٍ وَاحْتِشَامٍ او ځکه چې بعضې په بعضو باندې بغير د اجازت نه او بغير د شرم اوحيا داخليږی.وَالْمَرْأَةُ فِي بَيْتِهَا فِي ثِيَابِ مِهْنَتِهَا عَادَةً او ښځه په عامه توګه (عام طور) باندې په کور کې د کار کاوه په کپړو کې اوسيږی فَلَوْ حَرُمَ النَّظَرُ إِلَى هَذِهِ الْمَوَاضِعِ نوکه دې ځايونو ارخ ته کتل حرام اوګرځولې شی أَدَّى إِلَى الْحَرَجِ نو دا به حرج ارخ ته مفضی وی وَكَذَا الرَّغْبَةُ تَقِلُّ لِلْحُرْمَةِ الْمُؤَبَّدَةِ او دغه ډول د حرمت مؤبده په وجه رغبت کم وی فَقَلَّمَا تُشْتَهَى، بِخِلَافِ مَا وَرَاءَهَا نوشهوت کم وی.په خلاف د هغه اندامونو،کوم چې ددې نه علاوه دی.( يعنی خيټه، شا او رون). لِأَنَّهَا لَا تَنْكَشِفُ عَادَةً ځکه چې دا عادتاً نشی کلاوولې وَالْمَحْرَمُ مَنْ لَا يَجُوزُ الْمُنَاكَحَةُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا عَلَى التَّأْبِيدِ او محرم هغه دې.چه د هغه او ددې ښځې په منځ کې هميشه نکاح کول

جائز نه وی بِنَسَبٍ كَانَ أَوْبِسَبَبٍ كه د نسب په وجه وی.او كه د سبب په وجه وی كَالرَّضَاعِ وَالْمُصَاهَرَةِ لِوُجُودِ الْمَعْنَيَيْنِ فِيهِ لكه د پيو خښلو ،او د مصاهرت ( زوم كيدو) په وجه،د دواړو معانو ( يعنى د اړتيا او كم رغبت) موجودكيدو په وجه، په دې ( سبب) كي سَوَاءٌ كَانَتِ الْمُصَاهَرَةُ بِنِكَاحٍ او مصاهرت كه د نكاح په وجه وی وَأَوْ بِسِفَاحٍ او كه د زنا په وجه وی ،،، فِي الْأَصَحِّ لِمَا بَيَّنَّا..د اصح قول مطابق د هغه دليل په وجه، كوم چې موږ بيان كړي دي( يعنى د مفضى الى الحرج كيدو او دكم رغبت كيدو په وجه).

حل اللغة: ① احتشام: شرم او حيا ② ثياب:جمع د ثوب: كالى ③ المصاهرة:سخر گي: ④ سفاح: زنا ⑤ مهنة: مزدوري، د كور كار﴾

تشريح:- دا محارمو ته دكتلو عقلى دليل دي.① چې داسې رشته داران بې اجازته د يو بل كورونو ته ورځى نو كه دې خاپونو ته كتل حرام شوي وې.نو ډير حرج ( او تنگى) به لازم شوې وو.② او د هميشوالى د حرمت په وجه رغبت كم وى.البته ددې نه علاوه نور ځايونه مثلاً خيټه، اوګې او رون، دې ته به كتل جائز نه وی.ځكه چې ددې د ښكاره كاوه عادت نشته.③ او د زينت د ځايونو نه علاوه قرآن اجازت نه دې وركړې.او دا د زينت ځايونه نه دی.،، كما مر،،

ⓐ محرم هغه وی.چه ددې سړی او ښځې په منځ كي نكاح نه جائز كيږی.كه دا رشته د نسب وی.اوكه د سبب وی.او د سبب نه مراد رضاعت او مصاهرت ( زوم جوړيدل) دې.ځكه چې دلته هم اړتيا دې.او د رعبت كموالي دې.بيا كه مصاهرت د نكاح په وجه قائم شوې وی.اوكه د زنا په وجه، د ذكر شوی دليل په وجه.

نكته① ⓐ مرغينانی رحمه الله د فى الاصح قيد ځكه لګولي دې.چه په دې كي د بعضو مشائخو اختلاف دې.دوی فرمائى.چه د زنا نه ثابتيدونكې مصاهرت په وجه كتل او لاس لګول به جائز نه وی.ځكه چې دلته د مصاهرت ثبوت د عقوبت ( او سزا) په طريقه دې.د نعمت په طريقه نه دې.او هركله چې دده خيانت يو ځل ښكاره شو.نو په ده باندې دوباره اعتماد نشی كيدې.خو اصح دا ده.چه په دې كي هيڅ باك نشته.

### د خپلو محارمو د بدن كومو ځايونو ته لاس اوړل جائز دی

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَلَابَأْسَ او هيڅ باك نشته بِأَنْ يَمَسَّ مَا جَازَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهِ مِنْهَا چې دې لاس اولګوی د محارمو هغه برخې (حصې) ته كومې برخې (حصې) ته چې كتل جائز دی لِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ إِلَى ذَلِكَ فِي الْمُسَافَرَةِ د حاجت متحقق كيدو په وجه.دې اړخ ته په سفر كاوه كي وَقِلَّةِ الشَّهْوَةِ لِلْمَحْرَمِيَّةِ او د محرميت په وجه د شهوت د كموالى په وجه بِخِلَافِ وَجْهِ الْأَجْنَبِيَّةِ وَكَفَّيْهَا حَيْثُ لَا يُبَاحُ الْمَسُّ په خلاف د پردۍ ښځې د مخ او د هغې د لاس، دې حيثيت سره چې لاس اوړل جائز نه دی ،وَإِنْ أُبِيحَ النَّظَرُ اګرچه كتل جائز ګرځولی شوی دی ،لِأَنَّ الشَّهْوَةَ مُتَكَامِلَةٌ ځكه چې شهوت كامل دې.

تشريح:- د خپلو محارمو څومره بدن كتل چې جائز دی.هغې ته لاس لګول هم جائز دی.ځكه چې د محرميت رشتې په وجه شهوت كم دې.او د سفر كاوه په حالت كي د لاس لګولو اړتيا راپيښيږی.البته د پردۍ ښځې مخ او لاس كتل جائز وو.خو لاس اوړل جائز نه دی.ځكه چې هلته شهوت كامل دې.

إِلَّا إِذَا كَانَ يَخَافُ عَلَيْهَا أَوْعَلَى نَفْسِهِ الشَّهْوَةَ خو كله چې محرم پخپل ځان يا په ښځه باندې د شهوت يره اوكړی فَحِينَئِذٍ لَا يَنْظُرُ نو دغه وخت دې نه ګوری وَلَا يَمَسُّ.او نه دې لاس لګوی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه الْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ وَزِنَاهُمَا النَّظَرُ وچه دواړه سترګې زنا كوی.او ددې زنا كتل دی الْيَدَانِ تَزْنِيَانِ وَزِنَاهُمَا الْبَطْشُ (١) او دواړه لاسونه زنا كوی.او ددې زنا نيول دی ،وَحُرْمَةُ الزِّنَا بِذَوَاتِ الْمَحَارِمِ أَغْلَظُ او د زنا حرمت

(١) من حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه مسلم فى القدر رقم ٢١ وأبوداود فى النكاح باب ٤٣ رقم ٢١٥٣)_



محارمو سره زيات سخت دې فَيُجْتَنَبُ نوهغه دې بچ شی.

حل اللغة: ① العينان: تثنيه د عين ،سترګه ② اليدان: تثنيه د يد،لاس ③ البطش: نيول ④ اغلظ: زياته سخته﴾

تشريح:- خوكه محرم ته پخپل ځان يا په ښځه باندې د شهوت يره وی.نو د لاس لګولو او كتلو نه دې ځان اوساتی.هسې نه چې دا مفضى الى الزنا شی.او محارمو سره زنا ډيره سخته ده.او د بدكاره فطرت كوږوالې دې.او دا حديث هم دلته ذكر دې.چه په دې كي نيول او كتل هم حكماً زنا ګرځولې شوې ده.

تنبيه ⓐ «و حرمة الزنا.... الخ» د حديث ټكړه نه ده.بلكه حديث د «البطش» پورې دې.چه دا په بخاری او مسلم كي موجود دې.

### محارمو سره د سفر او خلوت حكم

وَلَابَأْسَ بِالْخَلْوَةِ وَالْمُسَافَرَةِ بِهِنَّ او هيڅ باك نشته.محارمو سره په خلوت كي ، او په سفر كاوه كي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه لَا تُسَافِرُ الْمَرْأَةُ فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا إِلَّا وَمَعَهَا زَوْجُهَا (١) ډو ذو رحم محرم منها چې ،، سفر دې نه كوی ښځه د دريو ورځو او دريو شپو نه زيات (يعنى د شرعى سفر مقدار د مسافه هم دا دې).خو ددې سره ددې ميړه يا ددې ذو رحم محرم وی أَوْذُورَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهَا وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه چې أَلَا لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ لَيْسَ مِنْهَا بِسَبِيلٍ. هيڅ سړې خلوت نه كوی.د يوې ښځې سره چې ددې سره د خلوت هيڅ لاره نه وی فَإِنَّ ثَالِثَهُمَا الشَّيْطَانُ وَالْمُرَادُ إِذَا لَمْ يَكُنْ مَحْرَمًا (٢) نو په دوی كي دريم شيطان وی والمراد إذا لم يكن محرما او مراد ( دا دې) كله چې دا محرم نه وی.

حل اللغة: ① لايخلون: نه ځانله كيږی ② زوج: ميړه ③ ثالث: دريمګړې﴾

تشريح:- خپلو محارمو سره سفر هم جائز دې.او خلوت هم،د ړومبی حديث نه د سفر جواز معلوم شو.او د دوهم حديث نه د خلوت جواز معلوم شو.ځكه چې دلته د «ليس منها بسبيل» نه مراد دا دې.چه كله دا محرم نه وی.نوكه محرم وی.نو بيا دا حكم نه دې.يعنى خلوت جائز دې.ړومبې حديث په مسلم كي دې.او دوهم په نسائى او ترمذی كي دې.

### په سفر كښې د ضرورت په وخت سوارلۍ باندې د محارمو د سوارولو حكم

فَإِنِ احْتَاجَتْ إِلَى الْإِرْكَابِ وَالْإِنْزَالِ نو كه دا ( محرمه ښځه) محتاجه وی سوارولو يا راكوزولو ته فَلَابَأْسَ بِأَنْ يَمَسَّهَا نو هيڅ باك نشته چې دې ته لاس اولګوی مِنْ وَرَاءِ ثِيَابِهَا.ددې د كپړو د پاسه وَيَأْخُذَ ظَهْرَهَا وَبَطْنَهَا دُونَ مَا تَحْتَهُمَا او اونيسی ددې شا او ددې خيټه،هغه برخه نه كومه چې ددې دواړو لاندې ده إِذَا أَمِنَا الشَّهْوَةَ (دا حكم دې) كله چې دوی دواړه د شهوت نه په امن كي وی فَإِنْ خَافَهَا عَلَى نَفْسِهِ أَوْعَلَيْهَا تَيَقُّنًا أَوْظَنًّا أَوْشَكًّا نو كه سړې پخپل نفس باندې د شهوت يا په ښځه باندې يره ( د شهوت) كوی.د يقين، يا ګمان، يا د شك په اعتبار سره فَلْيَجْتَنِبْ ذَلِكَ نو ددې نه د بچ شی بِجَهْدِهِ، د خپل كوښښ مطابق ثُمَّ إِنْ أَمْكَنَهَا الرُّكُوبُ بِنَفْسِهَا بيا كه ممكن وی ښځې ته پخپله سواريدل يَمْتَنِعُ عَنْ ذَلِكَ أَصْلًا نو سړې دې د هغې نه بالكل منع شی.( يعنى ددې د سوارولو نه).وَإِنْ لَمْ يُمْكِنْهَا او كه دې ته سواريدل ممكن نه وی يَتَكَلَّفُ بِالثِّيَابِ كَيْ لَا تُصِيبَهُ حَرَارَةُ عُضْوِهَا نو هغې دې كپړو سره تكلف اوكړی.چه ده ته د هغې د اندام ګرمانش اونه رسيږی وَإِنْ لَمْ يَجِدِ الثِّيَابَ او كه هغه كپړې اونه مومی ،،، يَدْفَعُ الشَّهْوَةَ عَنْ قَلْبِهِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ نو شهوت دې د خپل زړه نه په اندازه د امكان لرې كړی.

(١) من حديث أبى سعيد الخدرى رضي الله عنه أخرجه مسلم فى الحج رقم ٤١٦)-

(٢) قال الزيلعى رحمه الله غريب بهذا اللفظ ثم ذكرعدة أحاديث منها حديث عمر رضي الله عنه ألا لا يخلون رجل بامرأة إلا كان ثالثهما الشيطان أخرجه الترمذی فى الفتن باب ٧ والنسائى فى السنن الكبرى (٣٨٩١٥) رقم ٩٢٢٥)_

**حل اللغة:** ① **الاركاب:** سورول ② **الانزال:** کوزول ③ **ظهر:** شاه ④ **بطن:** نس ⑤ **حرارة:** ګرموالي ⑥ **قلب:** زړه

**تشريح:-** په سفر کاوه کي د خپلې ذی رحم محرم ښځې د سوارولو او راکوزولو اړتیا راپیښ شو.نو د کپړو سربېره ئې خیجولې شی.او راکوزولې شی.یعنی نس او شا اونیسی.او د خیټې نه لاندې کوناتی به نه نیسی. او دا حکم د شهوت نه د امن په وخت دې.ګنی که د شهوت یقین، یا ګمان، یا شك وی.نو تر کومه پورې چې کیدای شی.پخپله دې نه خیجوی.بلکه که ښځې له پخپله ختل ممکن وی.نوهغه دې پخپله خیجی.اوکه دا ممکن نه وی.نو پخپلو لاسونو کي دې کپړو راتاو کړی.بیا دې دا اوخیجوی.چه دهغې د بدن ګرمی ده ته راو نه رسیږی.اوکه دلته کپړې ملاو شی.نو د مجبورئ په وجه دې هغه سواره کړی.او د امکان په اندازه دې د خپل زړه نه شهوت لرې کړی.

### د بل کس د وینځې دغومره حصې کتلو ګنجائش شته؟

> قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل **وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ مَمْلُوكَةِ غَيْرِهِ إِلَى مَا يَجُوزُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهِ مِنْ ذَوَاتِ مَحَارِمِهِ** او ګوری دې سړې د پردئ وینځې هغه ځائې ته کوم ځائې ته چې دې کتلې شی.د خپلو محارمو نه **لِأَنَّهَا تَخْرُجُ لِحَوَائِجِ مَوْلَاهَا** ځکه چې وینځه اوځی.د خپل مولا حاجتونو لپاره **وَتَخْدُمُ أَضْيَافَهُ** او ده د میلمنو خدمت کوی **وَهِيَ فِي ثِيَابِ مِهْنَتِهَا**،او هغه د خپل خدمت په کپړو کي وی **فَصَارَ حَالُهَا خَارِجَ الْبَيْتِ فِي حَقِّ الْأَجَانِبِ كَحَالِ الْمَرْأَةِ** نو ګویا ددې حال د کور نه بهر د پردو خلګو په حق کي پشان د حال د هغه ښځې دې. **دَاخِلَهُ فِي حَقِّ مَحَارِمِهِ الْأَقَارِبِ**(کوم چې) په کور کي د محارمو په حق کي دې.

**حل اللغة:** ① **تخدم:** خدمت کوی ② **الحوائج:** جمع د **حاجة:** ضرورت ③ **اضياف:** جمع د **ضيف:** میلمه

**تشريح:-** سړې چې د خپل ذی رحم محرم ښځو څومره بدن کتلې شی.دغومره بدن د پردئ وینځې کتلې شی. ځکه چې دا وینځه د خپل مولا په کار (خدمت) کي بهر ته اوځی.او د خپل مولا د میلمنو خدمت کوی.او هغه د خپل کار په کپړو کي وی.نو لکه څنګه چې د محارمو په حق کي د آزادې ښځې حال دې، په کور کي دننه اوسیدو سره، هم دغه حال د وینځې د کور نه بهر دې.

### د حضرت عمر رضی الله عنه اثر

> وَكَانَ عُمَرُ رضی الله عنه **إِذَا رَأَى جَارِيَةً مُتَقَنِّعَةً** او وو حضرت عمر رضی الله عنه چې کله به ئې یوه وینځه اوکتله.چه پټو (څادر) به اچولې وو **عَلَاهَا بِالدُّرَّةِ** نو په هغې به ئې دره (کوړه) اوچتوله **وَقَالَ** او فرمائیل به ئې **أَلْقِي عَنْكِ الْخِمَارَ يَا دَفَارُ** چې ګندې! خپل پټو (څادر) لرې کړه **أَتَتَشَبَّهِينَ بِالْحَرَائِرِ** [1] آیا ته آزادو ښځو سره مشابهت اختیارې؟

**حل اللغة:** ① **جارية:** وینځه ② **متقنعة:** په پټو (څادر) کي خان پټونکې ③ **الخمار:** پړونې ④ **الحرائر:** جمع د **حرة:** اصیله ښځه ⑤ **دفار:** فتنې کي اچونکې

**تشريح:-** د حضرت عمر رضی الله عنه دا اثر ملاو نشو.البته په نورو الفاظو کي امام بیهقی رحمه الله ددې تخریج کړې دې.درة کوړه، جمع ئې درر ده.دفار مبنی علی الکسر دې.د دفر نه ماخوذ دې.په معنی د فتنې او فساد، نو دلته په معنی د ګنده دې.

### د وینځې خیټه یا شا کتل جائز نه دی

[1] قال الزيلعي رحمه الله غريب وأخرج البيهقي (أی فی السنن الكبرى (۳۲۰۱۲) رقم ۳۲۲۱)عن نافع أن صفية بنت أبي عبيد رضي الله عنها حدثته قالت خرجت إمرأة مختمرة متجلبية فقال عمر رضی الله عنه من هذه المرأة فقيل له جارية فلان رجل من بنيه فأرسل إلى حفصة رضي الله عنها فقال ما حملك على أن تخمرى هذه الأمة وتجلببتها حتى هممت أن أقع بها لا أحسبها إلا من المحصنات ؟ لاتشبهوا الأماء بالمحصنات (نصب:۵۵٤١٤)_



> **وَلَا يَحِلُّ النَّظَرُ إِلَى بَطْنِهَا وَظَهْرِهَا** او حلال نه دی د وینځې خیټې او ددې شا ته کتل **خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ** رحمه الله په خلاف ددې کوم چې محمد بن مقاتل رحمه الله فرمائیلی دی **أَنَّهُ يُبَاحُ إِلَّا إِلَى مَا دُونَ السُّرَّةِ إِلَى الرُّكْبَةِ** چې جائز دی.خو هغه برخې (حصې) ارخ ته (جائز نه دی) کومه چې د نوم نه لاندې ده د کنډو پورې **لِأَنَّهُ لَا ضَرُورَةَ** ځکه چې هیڅ اړتیا نشته **كَمَا فِي الْمَحَارِمِ** لکه په محارمو کي چې (اړتیا نشته). **بَلْ أَوْلَى لِقِلَّةِ الشَّهْوَةِ فِيهِنَّ** بلکه ددې نه هم زیات په محارمو کي د شهوت د قلت په وجه **وَكَمَالِهَا فِي الْإِمَاءِ** او په دوو وینځو کي د شهوت د کمال په وجه **وَلَفْظَةُ الْمَمْلُوكَةِ تَنْتَظِمُ الْمُدَبَّرَةَ وَالْمُكَاتَبَةَ وَأُمَّ الْوَلَدِ** او لفظ د مملوکه ګډ دې مدبرة، مکاتبې او ام ولد ته **لِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ** د حاجت ثابتیدو په وجه

**حل اللغة:** ① **السرة:** نوم ② **الركبة:** لینګئ ③ **الاماء:** جمع د امة، وینځه

**تشريح:-** د پردئ وینځې نس او شا کتل جائز نه دی.محمد بن مقاتل رحمه الله فرمائی. د پردئ وینځې نس او شا کتل جائز دی.یعنی ددې عورت د سړو (د عورت) پشان دې.چه د نوم نه لاندې کونډو پورې کتل نا جائز دی.او پاته جائز دې.او دوی د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د قول نه استدلال کړې دې.دوی فرمائیلی دی.چه کوم کس د وینځې اخستلو اراده اوکړی.نو د کمربند ترلو د ځائې نه علاوه نور ځایونه کتلې شی.خو موږ وایو.چه ددې (پردئ وینځې) نس او شا وغیره کتل جائزنه دی.ځکه چې محارمو کي د شهوت کموالې دې.او په وینځو کي پوره شهوت دې.بیا کوم چې دا حکم بیان کړې شوې دې.چه دا د مطلق وینځې حکم دې.دغه ډول دا د مکاتبة، مدبرې او د ام ولد حکم دې.ځکه چې لفظ د مملوکه ټولو ته ګډ دې.او په دې ټولو کي هم دا حاجت دې.کوم چې د وینځې په کتلو کي دې.

> **وَالْمُسْتَسْعَاةُ كَالْمُكَاتَبَةِ** او مستسعاة پشان د مکاتبې ده **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ عَلَى مَا عُرِفَ**.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د هغه تفصیل مطابق کوم چې معلوم شوې دې.

**حل اللغة:** ① چې کله آقا د وینځې څه آزاده کړله.نوهم دغومره برخه آزاده شوه.او د خپل قیمت په پاته برخه کي به دا مزدوری کوی.او خپل مولا ته به ورکوی.نودې ته مستسعاة وائی.

**تشريح:-** مستسعاة تاسو د حل اللغة په ضمن کي اوپیژندله نو کوم حکم چې د مکاتبې دې.هم دا ددې هم دې.او دا تفصیل د امام صاحب رحمه الله د مذهب مطابق دې. او د صاحبینو رحمهما الله په نیز د بعض آزادول د واړه آزادول دی.

### د پردو وینځو سره د خلوت او سفرکولو حکم

> **وَأَمَّا الْخَلْوَةُ بِهَا وَالْمُسَافَرَةُ مَعَهَا** او بهر حال (د پردو) وینځو سره خلوت او ددوی سره سفر کول **فَقَدْ قِيلَ يُبَاحُ** نو ونیلی شوی دی.چه جائز دې **كَمَا فِي الْمَحَارِمِ**.لکه څنګه چې محارمو کي (جائز دې). **وَقَدْ قِيلَ لَا يُبَاحُ** او ونیلې شوی دی.چه جائز نه دې **لِعَدَمِ الضَّرُورَةِ**.په دوی کي د اړتیا نه کیدو په وجه **فِيهِنَّ**، **وَفِي الْإِرْكَابِ وَالْإِنْزَالِ اعْتَبَرَ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ الضَّرُورَةَ** او په سوارولو او راکوزولو کي امام محمد رحمه الله په مبسوط کي د سخت اړتیا اعتبار کړې دې **فِيهِنَّ** .د وینځو په سلسله کي **وَفِي ذَوَاتِ الْمَحَارِمِ مُجَرَّدَ الْحَاجَةِ** او په محارمو کي به صرف حاجت وی.

**تشريح:-** د پردو وینځو سره خلوت او سفر کول بعضو جائز ګرځولی دی.او بعضو ناجائز وئیلی دی.رومبئ ډلې په محارمو باندې قیاس کړې دې.او دویمې ډلې د اړتیا نه کیدو لحاظ کړې دې.اوس پاتې شو د دې وینځو (په سوارلو باندې) د خیجولو او کوزولو ضرورت،نو امام محمد رحمه الله په مبسوط کي د اړتیا لحاظ کړې دې.یعنی که اړتیا وی.چه دوی پخپله نشی ختلې.یا ختلې شی.خو په تکلیف سره.او دوی ته په دې سره ضرر رسیدې شی.نو اوس اړتیا دې.نو خیجولې شی.نو د اړتیا نه مراد هغه دې.چه ددې نه بغیر خلاصې نه وی.او

د حاجت مطلب دا دې.چه د سواريدو هيڅ اړتيا نشته.بيا هم تلل غواړي.مثلاً د خپل فصل كتلو دپاره، نو په محارمو كي امام محمد رحمه الله د حاجت اعتبار كړې دې.او په دې كي ئې خيجول او كوزول جائز ګرځولي دی.خوكه وينځه د اړتيا نه بغير سواريدل غواړي.نو اړتيا نشته.نو سوارول او راكوزول به جائز نه وي.

**د وينځې اخستلو لپاره لاس لګول هم جائز دی**

قَالَ امام قدوري رحمه الله فرمائيلي دی **وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَمَسَّ ذٰلِكَ إِذَا أَرَادَ الشِّرَاءَ** او هيڅ باك نشته.ده ته لاس لګول (هغه ځايونوته د كوموكتل چې جائز دی) كله چې دې د اخستلو اراده كوي. **وَإِنْ خَافَ أَنْ يَشْتَهِيَ** اګرچه دې د شهوت يره لری **كَذَا ذَكَرَهُ فِي الْمُخْتَصَرِ** هم دغه ډول مختصر كي ذكر دی **وَأَطْلَقَ أَيْضًا فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ** او امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي مطلق فرمائيلي دی، **وَلَمْ يُفَصِّلْ** او تفصيل ئې نه دې كړې.

**تشريح:-** او امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي مطلق فرمائيلي دی.چه د اخستلو په وخت وينځې ته لاس لګول جائز دی.او د شهوت كيدو او نه كيدوئې هيڅ تفصيل نه دې بيان كړې.او امام قدوري رحمه الله فرمائيلي دی.چه د شهوت باوجود هم لاس لګول جائز دی.

قَالَ مَشَايِخُنَا رَحِمَهُمُ اللّٰهُ: زمونږ مشائخو فرمائيلي دی **يُبَاحُ النَّظَرُ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ وَإِنِ اشْتَهٰى** چې په دې حالت (د شراء) كي كتل جائز دی.اګرچه شهوت وي **لِلضَّرُورَةِ** د حاجت په وجه **وَلَا يُبَاحُ الْمَسُّ إِذَا اشْتَهٰى** او لاس لګول جائز نه دی.كله چې شهوت وی **أَوْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ ذٰلِكَ** يا ده ته ددې غالب ګمان وی **لِأَنَّهُ نَوْعُ اسْتِمْتَاعٍ** ځكه چې دا د استمتاع (فائدې اخستلو) يو ډول دې،، **وَفِي غَيْرِ حَالَةِ الشِّرَاءِ يُبَاحُ النَّظَرُ وَالْمَسُّ بِشَرْطِ عَدَمِ الشَّهْوَةِ** او د اخستلو دحالت نه علاوه كي كتل او لاس لګول جائز دی.د شهوت نه كيدو شرط سره.

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه زمونږ مشائخو دا فرمائيلي دی.كه شهوت وي.يا د شهوت غالب ګمان وي.نو بيا لاس لګول جائز نه دی.ځكه چې شهوت سره لاس لګول معنا جماع ده.چه ددې اجازت نشته.البته شهوت سره كتل جماع نه ده.نو د ړومبی (لاس لګولو) اجازت نشته.او د دوهم (دكتلو) اجازت دې.او كه د اخستلو اراده نه وی.نو لاس لګول او كتل به هله جائز وی.چه شهوت نه وی.

مسئله: د اړتيا په وجه لاس لګول جائز دی.چه دده د بدن نرمی معلومه شوی.او دا صحيح غرض دې.بعضو حضراتو وئيلی دی.كه شهوت وی.نو زمونږ په زمانه كي لاس لګولو ته جائز نشی وئيلې.اوپه ،، اختيار شرح مختار ،، كي هم په دې جزم ښكاره كړې دې.

**د بالغې وينځې صرف په پرتوګ كښې د پيولو (بوتللو) حكم**

قَالَ امام محمد رحمه الله (په جامع صغير كي) فرمائيلي دی **وَإِذَا حَاضَتِ الْأَمَةُ** او كله چې وينځه بالغه شی **لَمْ تُعْرَضْ فِي إِزَارٍ وَاحِدٍ** نو په يو پاې كالی (پرتوګ) كي به نشی پيش كولې **وَمَعْنَاهُ بَلَغَتْ** او ددې (حاضت) معنی د بلغت (بالغ كيدو) ده **وَهٰذَا مُوَافِقٌ لِمَا بَيَّنَّا** او دا د هغه دليل په وجه دی.كوم چې مونږ بيان كړې دی، **أَنَّ الظَّهْرَ وَالْبَطْنَ مِنْهَا عَوْرَةٌ** چې ددې شا او نس عورت دې **وَعَنْ مُحَمَّدٍ** رحمه الله او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی **أَنَّهَا إِذَا كَانَتْ تُشْتَهٰى وَيُجَامَعُ مِثْلُهَا** چې وينځه كله د شهوت قابله وی.او ددې پشان سره جماع كولای شی **فَهِيَ كَالْبَالِغَةِ** نو دا د بالغې پشان ده. **لَا تُعْرَضُ فِي إِزَارٍ وَاحِدٍ لِوُجُودِ الْاشْتِهَاءِ.** د شهوت موجود كيدو په وجه به دا په يو پاې كالی (پرتوګ) كي نشی پيش كولې.

**حل اللغة:** ① ازار: لنګ ② الامة: وينځه ③ البطن: نس ④ الاشتهاء: د شهوت شوق ؎

**تشريح:-** د وينځې نس او شا عورت دې.نو كله چې دا بالغه شی.نو په پاې كالی (پرتوګ) كي به نشی بوتللې.بلكه په دې باندې به قميص اچوی.چه ددې نس او شا پټه شی.يعنی صرف په دې يوه كپړه كي به ئې نه بوځی.چه په دې سره صرف د نوم نه لاندې كونډو پورې پټه



شوه وی.او پاته بدن ئې ښكاره وی.او كله چې داد جماع قابله شوه.نو دا د بالغې په حكم كي دې.تفصيل لپاره اوګوری: ﴿ شامی ص: ۲۳۶، ج۵ ﴾

**خصي لپاره پردئ ښځې طرف ته دكتلو حكم**

قَالَ امام قدوري رحمه الله او فرمائيلي **وَالْخَصِيُّ فِي النَّظَرِ إِلَى الْأَجْنَبِيَّةِ كَالْفَحْلِ** او خصی (چې هګۍ ئې ټكولې شوې وی) پردئ ښځې اړخ ته په كتلو كي دنر پشان دې **لِقَوْلِ عَائِشَةَ رضي الله عنها** د حضرت عائشې رضي الله عنها د فرمان په وجه: **الْخِصَاءُ مُثْلَةٌ**[1] چې خصی كول مُثله كول دی **فَلَا يُبِيحُ مَا كَانَ حَرَامًا قَبْلَهُ** نو دا (خصی كول) به هغه شئ نه جائز كوی.كوم چې ددې (خصی كيدو) نه وړاندې حرام وو **وَلِأَنَّهُ فَحْلٌ يُجَامِعُ** او ځكه چې دا داسې نر دې.چه دا جماع كوی **وَكَذَا الْمَجْبُوبُ** او هم دغه ډول (حكم دې د) مقطوع الذكر (اندام مخصوصه پريكړې شوې)، **لِأَنَّهُ يَسْحَقُ وَيُنْزِلُ** ځكه چې دې سولوی.او انزال كوی.، **وَكَذَا الْمُخَنَّثُ فِي الرَّدِيءِ مِنَ الْأَفْعَالِ** او هم دغه ډول بدكار مخنث (هيجړا)، **لِأَنَّهُ فَحْلٌ فَاسِقٌ** ځكه چې دې فاسق نر دې **وَالْحَاصِلُ أَنَّهُ يُؤْخَذُ فِيهِ بِمُحْكَمِ كِتَابِ اللّٰهِ** او حاصل دا دې.چه په دې اړه كي به د الله تعالی محكم كتاب اخستلې شی **الْمُنَزَّلِ فِيهِ** .كوم چې په دې اړه كي نازل دې.، **وَالطِّفْلُ الصَّغِيرُ مُسْتَثْنًى بِالنَّصِّ** او وړوكې ماشوم د نص په وجه مستثنی دې.

**حل اللغة:** ① الخصي: هغه ځوك چې هګۍ ئې ټكولې شوې وی ② المجبوب: چې ذكر ئې كټ شوې وی ③ فحل: نر ④ المخنث: هيجړا

**تشريح:-** پردئ ښځې ته په كتلو كي چې كوم حكم د نر دې.هم هغه د خصی دې.د حضرت عائشې رضي الله عنها فرمان په دې دلالت كوی.چه دا مثله كول دی.نو دا جائز نه دی.نو ددې ناكاره فعل په وجه هغه كار نشی جائز كيدې.كوم چې ددې نه وړاندې حرام دې.او خصی هم نر دې.جماع كولې شی.او هم دا د مجبوب يعنی د مقطوع الذكر حكم دې.ځكه چې دې هم په موګلو موګلو سره منی خارجولې شی.او كوم چې بدكاره مخنث (هيجړا) وی.يعنی هغه چې دځان نه ئې ښځه جوړه كړې وی.دا هم د نر په حكم كي دې.البته دا فاسق نر دې.

**والحاصل**....**الخ** ددې مطلب دا دې.چه د مذكوره مسئلې سره دوې (دوه) آيتونه متعلق دی ① ﴿ **قُلْ لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ** ﴾ ② ﴿ **أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ** ﴾ ړومبی آيت محكم دې.چه په دې كي عامو مؤمنانو لپاره حكم دې.چه دوی خپل نظرونه كښته ساتی.او دوهم آيت متشابه دې. چې په دې كي تاويلات واقع شوی دی.او يو تاويل دا راوځی.چه د هيجړا ، ذكر پرې كړې شوی، او خصی لپاره د ماشومانوپشان پردئ ښځې ته كتل جائز دی.خو چونكه دا آيت متشابه دې.او قاعده ده.چه كله په محكم او متشابه كي تعارض وی.نو محكم ته به ترجيح وركولې شی.نو ددې تولو به دا حكم وی.چه پردئ ښځې ته كتل حلال نه دی.په خلاف د ماشوم، چې دده استثناء په نص كي موجود ده.د الله تعالی فرمان دې. ﴿ **وَأَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلٰى عَوْرٰتِ النِّسَاءِ** ﴾ ، و فيه تفصيل فی العينی ،،

**غلام لپاره خپله مالكه كتل جائز نه دی**

قَالَ امام قدوري رحمه الله فرمائيلي دی **وَلَا يَجُوزُ لِلْمَمْلُوكِ** و غلام لپاره جائز نه **أَنْ يَنْظُرَ مِنْ سَيِّدَتِهِ** .دا چې اوګوری خپلې مالكې ته **إِلَّا مَا يَجُوزُ لِلْأَجْنَبِيِّ النَّظَرُ إِلَيْهِ مِنْهَا** مګر دومره برخه چې ددې ځومره برخه چې پردې سړې كتلې شی.

[1]) قال الزيلعی رحمه الله غريب وأخرج ابن أبی شيبة فی مصفنه عن ابن عباس رضي الله عنهما ..قال خصاء البهائم مثلة ثم تلا (ولآمرنهم فليغرن خلق الله) (نصب: ٥٥٤\١٤)_

**تشريح:-** غلام د خپلې مالکې صرف دومره بدن کتلې شي.لکه څومره چې بل اجنبي سړې کتلې شي.خکه چې رشته د محرميت نشته.بلکه في الجمله غلام ددې سره د نکاح صلاحيت لرلې شي.چه هغه آزاد کړي.نو نکاح به جائز وي.او شهوت هم پوره دې.او غلام داسې نر دې.چه دې نه محرم دې.او نه ميړه دې.او دلته ارتيا هم نشته.خکه چې غلام خو دکور نه د بهر کار کوي.نو بيا د داخليدو ارتيا نشته.

**وَقَالَ مَالِكٌ** او امام مالک رحمة الله فرمائيلي دی **هُوَكَالْمَحْرَمِ** چې غلام د محرم پشان دې **وَهُوَاَحَدُقَوْلَيِ الشَّافِعِي لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى اَوْمَامَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ** او هم دا د امام شافعي رحمة الله په دوو قولونوکې يو قول دې.د الله تعالى د فرمان ﴿**اَوْ مَامَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ**﴾ په وجه، ﴿النور:٢١﴾ **وَلِاَنَّ الْحَاجَةَ مُتَحَقِّقَةٌ** او خکه چې حاجت متحقق دې **لِدُخُوْلِهٖ عَلَيْهَا مِنْ غَيْرِ اِسْتِئْذَانٍ**.د غلام داخليدو په وجه، مالکې باندې بغير د اجازت نه.

**تشريح:-** د امام مالک مسلک او دليلونه۞ امام مالک رحمة الله فرمانی.او هم دا د امام شافعي رحمة الله په دوو قولو کې يو قول دې.چه غلام د محرم پشان دې.چه په دې باندې دوی دوې (دوه) دليلونه پيش کړي دی.يو دا چې دلته ارتيا دې.چه غلام د اجازت نه بغير مالکې له ورخی.او دوهم دليل د الله تعالى فرمان ﴿**اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ**﴾ دې.چه ددې دامطلب دې.چه د فلانی فلانی لپاره زينت ښکاره کول جائز دی.او د خپلو غلامانو دپاره، نو ددې نه حواز معلوم شو.

**وَلَنَا** او زمونږ دليل دا دې **اَنَّهٗ فَحْلٌ غَيْرُمَحْرَمٍ** چې غلام داسې نر دې.چه دا غير محرم دې **وَلَازَوْجٍ** او ميړه نه دې **وَالشَّهْوَةُ مُتَحَقِّقَةٌ لِجَوَازِالنِّكَاحِ فِي الْجُمْلَةِ** او شهوت ثابت دې.في الجمله د نکاح جائز کيدو په وجه **وَالْحَاجَةُ قَاصِرَةٌ** او حاجت قاصر دې **لِاَنَّهٗ يَعْمَلُ خَارِجَ الْبَيْتِ** خکه چې غلام د کور نه د بهر کار کوی **وَالْمُرَادُبِالنَّصِّ الْاِمَاءُ** او مراد د نص نه وينځې دی **قَالَ سَعِيْدٌوَالْحَسَنُ وَغَيْرُهُمَا** فرمائيلي دی سعيد او حسن رحمهما الله او ددوی دواړو نه علاوه **لَاتَغُرَّنَّكُمْ سُوْرَةُ النُّوْرِ** چې تاسو سورۀ نور په دهوکه کې وانه چوی، **فَاِنَّهَا فِي الْاِنَاثِ دُوْنَ الذُّكُوْرِ** (۱) خکه چې دا د ښځو په اړه کې دې.د سړو په اړه کې نه دې.

**تشريح:-** د امام شافعي رحمة الله د دليل ځواب۞ مرغيناني رحمة الله د ړومبی دليل ځواب ورکړې دې.چه حاجت قاصره دې.خکه چې غلام د کور نه بهر کار کوی.او د آيت ځواب ئې دا ورکړو.چه ښځې د خپلو وينځو په وړاندې خپل زينت ښکاره کولې شي.د غلامانو په وړاندې نشي ښکاره کولې.يعنی اګرچه په ﴿**اَوْمَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ**﴾ کې ،،ما،، عام دې.چه دا غلام او وينځې دواړو ته ګډ دې.خو ددې نه دلته صرف وينځې مراد دی.لکه څنګه چې حضرت سعيد بن جبير او حسن بصري رحمهما الله غيره فرمائيلي دی.چه تاسو خلګ د سورۀ نور ددې آيت نه دهوکه نشئ.يعنی دا عام مه ګڼرئ.بلکه دا خو صرف د ښځو په حق کې دې.د سړو په حق کې نه دې.يعنی صرف وينځې مراد دی.غلامان مراد نه دی.دا د مرغيناني رحمة الله د تفصيل حاصل دې.

مسئله۞ غلام د خپلې مالکې صرف مخ او لاس کتلې شي.البته د هغې د اجازت نه بغير هغې ته ورتلې شي.او هغې سره سفر نشی کولې.﴿درمختار على هامش ردّ المختار ص:٢٣٦،ج٥﴾

**د وينځې او ښځې نه عزل لپاره د اجازت حکم**

**قَالَ** امام قدوري رحمة الله او فرمائيل اوفرمائيل **وَيَعْزِلُ عَنْ اَمَتِهٖ بِغَيْرِاِذْنِهَا** او عزل کولې شي.خپلې وينځې سره بغير دهغې اجازت نه **وَلَايَعْزِلُ عَنْ زَوْجَتِهٖ** او عزل به نه کوی.خپلې ښځې سره **اِلَّابِاِذْنِهَا** خو دهغې په اجازت

---

(۱) قال الزيلعي رحمة الله غريب بهذا اللفظ وبمعناه ما رواه ابن ابي شيبة في مصنفه في كتاب النكاح ...عن سعيدبن المسيب رحمة الله قال لا تغرنكم الآية ﴿إلا ما ملكت أيمانكم﴾ إنما عنى به الإماء ولم يعن به العبيد(نصب:٥٥٤\١٤)_



سره (کولې شي). **لِاَنَّهٗ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ نَهٰى عَنِ الْعَزْلِ عَنِ الْحُرَّةِ اِلَّابِاِذْنِهَا** (۱) خکه چې نبي کريم ﷺ آزادې سره د عزل کاوه نه منع فرمائيلې ده.خو د هغې په اجازت سره **وَقَالَ لِمَوْلٰى اَمَةٍ**: او وينځې مولا ته ئې، **اِعْزِلْ عَنْهَا اِنْ شِئْتَ** (۲) که ته غواړې.نو ددې سره عزل کوه.

**حل اللغة:** ① **العزل:** چې کله انزال کيږی نوذکر د فرج نه راوباسی اوبهر انزال اوکړی﴾

**تشريح:-** که خپلې ښځې سره عزل کول اوغواړي.نو ددې د اجازت نه بغير نشي کولې.او خپلې وينځې سره د هغې د اجازت نه بغير عزل جائز دې.په ړومبی حديث کې آزادې ښځې سره د عزل ممانعت دې.او په دوهم کې وينځې سره د عزل اجازت دې.

**وَلِاَنَّ الْوَطْءَ حَقُّ الْحُرَّةِ** او خکه چې وطی د آزادې حق دې **قَضَاءً لِلشَّهْوَةِ**.د شهوت پوره کاوه لپاره **وَتَحْصِيْلًا لِلْوَلَدِ** او د بچی حاصلولو لپاره **وَلِهٰذَا تُخَيَّرُ فِي الْجَبِّ وَالْعُنَّةِ**،او په دې وجه هغې ته اختيار ورکولې شي.د مجبوب (ذکر پريکړې شوی) او عنين (نامرد) په اړه کې **وَلَاحَقَّ لِلْاَمَةِ فِي الْوَطْءِ** او په وطی کې د وينځې هيڅ حق نشته **فَلِهٰذَا لَايَنْقُصُ حَقُّ الْحُرَّةِ بِغَيْرِاِذْنِهَا** نو په دې وجه ميړه د آزادې حق نشی کمولې.د هغې د اجازت نه بغير **وَيَسْتَبِدُّ بِهٖ الْمَوْلٰى** او مولا عزل سره يواځې دې **وَلَوْكَانَ تَحْتَهٗ اَمَةُ غَيْرِهٖ** او که دده لاندې (په نکاح کې) د بل چا وينځه وی **فَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي النِّكَاحِ** نو دا موږ په کتاب النکاح کې ذکرکړی دی.

**حل اللغة:** ① **الجب:** مقطوع الذکر② **العنين:** نامرده ③ **تحصيل:** لپاره د حاصلولو﴾

**تشريح:-** او د وينځې هيڅ حق په وطی کې نشته.نه هغې ته د وطی د مطالبې حق شته.نو بيا به مولا د عزل په اړه کې مستقل او خانله وی.او د آزادې ښځې حق دې.په دې وجه هغه د وطی مطالبه کولې شي.د شهوت پوره کاوه لپاره هم،او د بچی حاصلولو لپاره هم، نو هرکله چې ددې (آزادې) حق دې.نو ميړه ته به حق نه وي،چه ددې د اجازت نه بغير ددې په حق کې نقصان اوکړی.د آزادې ښځې ددې حق په وجه دې ته اختيار ملاويږی.کله چې ددې ميړه مقطوع الذکر يا عنين (نامرد) وی.د وينځې په اړه کې دا (د وينځې د حق نه کيدو) خبره هغه وخت ده.کله چې دا دده وينځه وی.ګنی که د بل يوکس وينځې سره ئې نکاح کړې وی.نو مرغيناني رحمة الله فرمائی.چه ددې حکم موږ په کتاب النکاح کې بيان کړې دې.

## فَصْلٌ فِي الْاِسْتِبْرَاءِ وَغَيْرِهٖ

**ژباړه:-** (دا)فصل د استبراء او ددې د علاوه (په بيان کې) دې.

**تشريح:-** د استبراء معنی ده براءت طلب کول، او صفائی طلب کول، مراد دا دې.چه د يو حيض نه صفائی اوکړی.يعنی مثلاً اخستې شوې وينځې سره هغه وخته پورې وطی اونکړی.ترکومه پورې چې يو حيض ،، رانشی.خکه کيداې شی.چه ددې په رحم کې د مخکنی آقا نطفه وی.چه په دې سره به د اوبو (منی) اختلاط (او ګډون) لازم شی.او د نسبونو اختلاط به لازم شی.او په حامله کې به حقيقتاً اختلاط وی.او په غير حامله کې د اختلاط وهم دې.بيا د استبراء حکم په طريقه د استحباب دې.او مشتری لپاره په طريقه د وجوب دې.چه ددې وجوهات او تفصيلات راروان دی.د ،،وغيره،، نه مراد د مصافحې او معانقې او ښکلولو احکام دی.

---

(۱) من حديث عمربن الخطاب رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه في النكاح باب ٣ وأحمد في المسند(٣١\١) والبيهقي في السنن الكبرى (٣٧٦\٧) رقم ١٤٣٢٤)_

(۲) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه مسلم في الطلاق رقم ٢٤ وأبوداود في النكاح با ب٤٨ وأحمد في المسند(٣١٢\٣)_

## د اخستي وينځي سره د وطي حكم

قَالَ فرمائيلي دي (امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي) وَمَنْ اشْتَرَى جَارِيَةً او چا چي واخستله يوه وينځه فَإِنَّهُ لَا يَقْرَبُهَا نو هغه به ددې سره وطى نه وَلَا يَلْمِسُهَا او نه به دې ته لاس لګوى وَلَا يُقَبِّلُهَا او نه به تري كوكي اخلى وَلَا يَنْظُرُ إِلَى فَرْجِهَا بِشَهْوَةٍ او نه په ددې شرمګاه اړخ ته شهوت سره ګورى حَتَّى يَسْتَبْرِئَهَا تردې پورې چي د هغي استبراء اوكړى وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او اصل په دې كي فرمان د نبى كريم ﷺ دي فِي سَبَايَا أَوْطَاسٍ د اوطاس ګرفتارو شوو وينځو په اړه كي أَلَا لَا تُوطَأُ الْحَبَالَى خبرشئ چي د حاملو ښځو سره به وطى نه كوئ حَتَّى يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ تردې چي هغوى خپل حمل اوغورځوى وَلَا الْحَيَالَى او نه د غير حمل والا سره حَتَّى يُسْتَبْرَأْنَ بِحَيْضَةٍ(١) تردې پورې چي هغوى استبراء اوكړى په يو حيض سره.

**حل اللغة:** ① حبالى: د حبلى جمع ده. اميدواره ښځه ② حيالى: د حائل جمع هغه ښځي چي حمل ني نه وى شوي ③ اوطاس: هغه ځاني چرته چي د حنين مشهور جنګ شوي وو.

**تشريح:** - دا په جامع صغير كي د امام محمد رحمه الله فرمان دي. ددې حاصل دا دي. چه تركومه پوري اخستي شوي وينځي ته يو حيض رانشي. ترهغي پوري به ددې سره وطى نشى كولي. او د وطى د دواعي څخه به هم ځان ساتي. او دليل ددې دا هغه حديث دي. كوم چي نبى كريم ﷺ په غزوهٔ حنين كي ارشاد فرمائيلي دي. چي كومي ښځي ګرفتاري كړي شوي دى. په هغي كي چي كومي حاملي دى. هغي سره به وطى نشى كولي. تر كومه پوري چي بچي اونشي. او كومي چي بغير حمل والا دى. هغوى سره به وطى نشى كولي. تركومه پوري چي يو حيض رانشي.

## په آقا استبراء واجب دهاو په ګرفتاره شوي وينځه كښي د استبراء حكم

أَفَادَ وُجُوبَ الْاسْتِبْرَاءِ عَلَى الْمَوْلَى دې حديث فائده وركړله. مولا باندې د استبراء د وجوب وَدَلَّ عَلَى السَّبَبِ فِي الْمَسْبِيَّةِ او دلالت ني اوكړو په هغه سبب كوم چي (ګرفتاره شوي (وينځه) كي دي وَهُوَ اسْتِحْدَاثُ الْمِلْكِ وَالْيَدِ او دا سبب د ملك او قبضي استحداث (جديد كيدل) دي لِأَنَّهُ هُوَ الْمَوْجُودُ فِي مَوْرِدِ النَّصِّ څكه چي دا (استحداث) په مورد د نص كي موجود دي وَهَذَا لِأَنَّ الْحِكْمَةَ فِيهِ التَّعَرُّفُ عَنْ بَرَاءَةِ الرَّحِمِ صِيَانَةً لِلْمِيَاهِ الْمُحْتَرَمَةِ عَنِ الْاخْتِلَاطِ او دا (د استبراء وجوب) څكه دي. چه حكمت په دې كي د رحم براءت پيژندل دى. د محترمو اوبو بچ كاوه په غرض سره، د اختلاط نه وَالْأَنْسَابِ عَنِ الْاشْتِبَاهِ او د نسبونو بچ كاوه په غرض سره د اشتباه نه وَذَلِكَ عِنْدَ حَقِيقَةِ الشُّغْلِ أَوْ تَوَهُّمِ الشُّغْلِ بِمَاءٍ مُحْتَرَمٍ او دا بچ كول د حقيقي شغل يا د شغل د توهم په وخت دى. د محترمو اوبو سره وَهُوَ أَنْ يَكُونَ الْوَلَدُ ثَابِتَ النَّسَبِ او دا (محترم اوبه) دا دى. چه بچي ثابت النسب وى.

**حل اللغة:** ① الاستبراء: طلب د پاكوالي د رحم د حمل ② صيانة: حفاظت.

**تشريح:** - مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه ددې حديث نه دوې (دوه) خبري معلومي شوي ① په آقا باندي استبراء واجب ده. ② په ګرفتاره شوي وينځه كي د استبراء د وجوب سبب استحداث (نوى كيدل) د ملك دي. نو دا سبب چي كوم ځاني وى. دا حكم به هلته وى. او د استبراء د وجوب حكمت دا دي. چه په رحم كي د اوبو اختلاط اونشي. او په نسبونو كي اشتباه اونشي. او د محترمو اوبو نه مراد دا دي. چه دا د زنا اوبه نه وى. په نورو الفاظوكي داسي چي كله بچي ثابت النسب وى. دغه وخت به اوبه محترم شمارلي شي. د حمل په صورت كي به حقيقتاً به رحم په دوو اوبو سره بوخت شي. او د حمل نه كيدو په صورت كي د مشغوليدو وهم

(١) من حديث الخدرى رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى النكاح باب ٤٤ رقم ٢١٥٧) والحاكم فى المستدرك (١٩٥/٢) والبيهقى فى السنن الكبرى (٢٠٨/٩) رقم ١٨٢٩٧)_



دي.

## استبراء په مشترى وى په بائع نه وى

وَيَجِبُ عَلَى الْمُشْتَرِي لَا عَلَى الْبَائِعِ په مشترى واجب ده. په بائع نه ده لِأَنَّ الْعِلَّةَ الْحَقِيقِيَّةَ إِرَادَةُ الْوَطْءِ څكه چي حقيقي علت د وطى اراده ده وَالْمُشْتَرِي هُوَ الَّذِي يُرِيدُهُ دُونَ الْبَائِعِ او مشترى د وطى اراده كوى. بائع نه كوى فَيَجِبُ عَلَيْهِ، غَيْرَ أَنَّ الْإِرَادَةَ أَمْرٌ مُبْطَنٌ نو په مشترى واجب ده. علاوه ددې خبري نه چي اراده يو پټ شئ دي فَيُدَارُ الْحُكْمُ عَلَى دَلِيلِهَا نو د حكم مدار به د ارادې په دليل باندې وى وَهُوَ التَّمَكُّنُ مِنَ الْوَطْءِ او دا په وطى باندې قدرت وَالتَّمَكُّنُ إِنَّمَا يَثْبُتُ بِالْمِلْكِ وَالْيَدِ او قدرت ثابتيږى. په ملك او قبضي سره فَانْتَصَبَ سَبَبًا نو هم دا به سبب جوړيږى. او قائميږى وَأُدِيرَ الْحُكْمُ عَلَيْهِ تَيْسِيرًا او د سهولت په غرض سره به قدرت باندې د حكم مدار وى "" فَكَانَ السَّبَبُ اسْتِحْدَاثَ مِلْكِ الرَّقَبَةِ الْمُؤَكَّدِ بِالْيَدِ نو وى به استحداث د ملك رقبه، هغه سبب كوم چي قبضي سره مؤكد وى.

**حل اللغة:** ① مبطن: پټ ② التمكن: قدرت ③ تيسيرا: لپاره د آسانتيا ④ استحداث: پيدا كول د ملك.

**تشريح:** - او استبراء په مشترى واجب ده. په بائع نه ده. څكه چي د استبراء د وجوب علت د وطى اراده كول دى. او د وطى اراده د مشترى ده. د بائع نه ده. نو وجوب د استبراء به په مشترى وى. په بائع به نه وى. خو د وطى اراده يو مخفى او پټ شئ دې. نو د حكم مدار به د ارادې په دليل باندې وى. او د ارادې دليل په وطى باندې قدرت دې. او د ملك او قبضي حاصليدو سره وطى باندې قدرت ثابت شو. نو په وطى باندې قدرت به سبب ګرځولي شي. او په دې به د حكم مدار ايخودې شي.

## د استبراء د وجوب نور اسباب

وَتَعَدَّى الْحُكْمُ إِلَى سَائِرِ أَسْبَابِ الْمِلْكِ او حكم به متعدى كيږى د ملك ټولو سببونو اړخ ته كَالشِّرَاءِ وَالْهِبَةِ وَالْوَصِيَّةِ وَالْمِيرَاثِ وَالْخُلْعِ وَالْكِتَابَةِ وَغَيْرِ ذَلِكَ لكه اخستل، او هبه، او وصيت او ميراث او خلع او كتابت او ددې نه علاوه

**تشريح:** - كله چي وړاندې په مورد د نص كي د استبراء د وجوب سبب د ملك او قبضي استحداث ثابت شو. نو دا سبب چي كوم كوم ځائي هم موجود كيږى. هلته به د استبراء د وجوب حكم لګولي شي. نو په اخستلو، او هبه، او وصيت، او ميراث، او خلع، او كتابت، او صدقه (وغيره) ټولو كي به هم دا حكم وى. د خلع مطلب دا دي. چه ښځي ميړه ته په خلع كي خپله وينځه وركړله. نو په ميړه باندې استبراء واجب ده. د كتابت مطلب دا دي. چه مولا خپل غلام ته اووئيل. چه يوه وينځه واخله. ماته راكړه. نو زه به تا آزاد كړم. نو په مولا باندې استبراء واجب ده. دغه ډول كه په فقير باندې يوه وينځه صدقه كړي شوه. نو فقير لپاره جائز نه دى. چه د استبراء نه وړاندې ددې سره وطى اوكړى. كه د بچي وينځه ني واخستله. يعنى د بچي پلار د خوى وينځه واخستله. حالانكه ښكاره ده. چه بچي وطى نشي كولي. او نه د بچي پلار لپاره ددې سره وطى كول حلال وو. ددې باوجود هم مشترى ته وجوباً حكم وركولي شي. چه مخكي ددې استبراء اوكړى. بيا ددې سره وطى اوكړى. څكه چي سبب يعنى استبراء د ملك او قبضي موجود دي.

وَكَذَا يَجِبُ او هم دغه ډول استبراء واجب ده. عَلَى الْمُشْتَرِي په هغه سړي كوم چي اخستونكې دي مِنْ مَالِ الصَّبِيِّ د بچي د مال نه، وَمِنَ الْمَرْأَةِ او د ښځي نه وَالْمَمْلُوكِ او د مملوك نه، وَمِمَّنْ لَا يَحِلُّ لَهُ وَطْؤُهَا او د هغه سړي نه چي هغه لپاره ددې سره وطى حلال نه ده

**تشريح:** - دغه ډول كه د يوې ښځي وينځه ني واخستله. اوس هم دا حكم دي. هم ددې مذكوره دليل په وجه. دغه ډول كه يو غلام ماذون له فى التجارت وى. او هغه يوه وينځه اخستي وى. نو هغه له دې وينځي سره وطى كول جائز نه ده. او كه په غلام ماذون باندې قرضه وى. چه دې څكه چي دا وينځه دده مملوك نه ده.

پور دده سټ راګير کړي وي.نو مولا لپاره هم ددې وينځې سره وطی کول حلال نه دی.بهرحال بيا دا وينځه ددې غلام نه دده مولا واخستله.نومولا لپاره دا جائز نه ده.چه د استبراء نه وړاندې ددې سره وطی اوکړي. د هغه دليل په وجه کوم چې وړاندې بيان شوې دې.

وَكَذَا إِذَا كَانَتِ الْمُشْتَرَاةُ بِكْرًا او دغه ډول کله چې اخستې شوې وينځه باکره وي لَمْ تُوطَأْ لِتَحَقُّقِ السَّبَبِ وطی به نشی کولې.د سبب متحقق کيدو په وجه وَإِدَارَةِ الْأَحْكَامِ عَلَى الْأَسْبَابِ دُونَ الْحِكَمِ لِبُطُونِهَا او د احکامو مدار په اسبابو باندې دې.په حکمتونو باندې نه دې.د حکمتونو د پټوالی په وجه فَيُعْتَبَرُ تَحَقُّقُ السَّبَبِ نو د سبب ثبوت به معتبر وی عِنْدَ تَوَهُّمِ الشُّغْلِ کله چې د مشغوليدو توهم وی.

**تشريح:-** دغه ډول که د يوکس په ملك کې دده رضاعی خور وی.چه ددې سره وطی کول حلال نه دی.بيا هغه دا خرڅه کړله.نو مشتری لپاره د استبراء نه وړاندې وطی کول جائز نه دی.د تير شوی دليل په وجه،يو سړی يوه وينځه واخستله.چه دا اوس لا باکره ده.ددې هم دا حکم دې.چه د استبراء نه وړاندې وطی جائز نه ده.ځکه چې سبب استحداث د ملك او قبضې ثابت دې.او د احکامو مدار په اسبابو وی.په حکمتونو باندې نه وی.ځکه چې حکمت خو يو پټ شئ دې.نو هرکله چې سبب اوموندې شو.او د بوخت کيدو وهم شته.نو حکم به ثابت وی.

## په مذکوره علت باندې متفرع جزئيات

وَكَذَا لَا يُجْتَزَأُ بِالْحَيْضَةِ الَّتِي اشْتَرَاهَا فِي أَثْنَائِهَا او هم دغه ډول به اکتفاء نشی کولې په هغه حيض د کوم په منځ کې چې دا اخستې شوې ده وَلَا بِالْحَيْضَةِ الَّتِي حَاضَتْهَا بَعْدَ الشِّرَاءِ أَوْ غَيْرِهِ مِنْ أَسْبَابِ الْمِلْكِ قَبْلَ الْقَبْضِ او نه په هغه حيض ( اکتفاء جائز ده).کوم چې د اخستلو يا ددې نه د علاوه ( بل کوم سبب) نه روستو،د قبضې نه وړاندې راغلې وي.د اسبابو د ملك څخې وَلَا بِالْوِلَادَةِ الْحَاصِلَةِ بَعْدَهَا قَبْلَ الْقَبْضِ او اکتفاء به نشی کولې هغه دلالت باندې کوم چې د اسبابو نه روستو دقبضې نه وړاندې حاصل شوې وی خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ په خلاف د امام ابويوسف رحمه الله لِأَنَّ السَّبَبَ اسْتِحْدَاثُ الْمِلْكِ وَالْيَدِ ځکه چې سبب د ملك او د قبضې استحداث دې ،وَالْحُكْمُ لَا يَسْبِقُ السَّبَبَ او حکم د سبب نه نه وړاندې کيږي.

**تشريح:-** د ملك او قبضې د استحداث نه روسته په يو حيض سره استبراء واجب ده.په دې باندې بعضې جزئيات متفرع کيږي① کله نې چې وينځه واخستله.نو دا په حيض کې وه.نو دا حيض د ملك اود قبضې د استحداث نه روستو نه دې راغلې.بلکه ددې پيل د وړاندې نه شوې ده.نو په دې حيض به بس والې نشی کولې.بلکه ددې نه روسته دوهم حيض سره به استبراء واجب وی.② د اخستلو يا د بل څه اسبابو د ملك نه روسته حيض راغلې دې.خو تر اوسه پورې قبضه نه وه شوې.نو دا حيض کافی نه دې.بلکه دوهم حيض سره استبراء واجب ده.ځکه چې سبب ثبوت د ملك او قبضې دواړه دی.نو د قبضې نه بغير سبب کامل نشو.نو اوس به سبب او حکم هم نه ثابتيږي.③ د ملك د اسبابو نه روستو د وينځې بچې اوشو.خو تر اوسه پورې قبضه نه وه شوې.نو دا ولادت کافی نه دې.بلکه ددې نه روستو حيض سره استبراء واجب ده.په دې کې امام ابويوسف رحمه الله فرمائی.چه هرکله دا معلومه شوه.چه رحم يقيناً فارغ شوې دې.نو په دې باندې اکتفاء جائز ده.لکه مثلاً که د دخول نه وړاندې نې طلاق ورکړې وی.نو ددې په وجه عدت واجب نه دې.نو دلته استبراء کيدل پکار نه دی.خو زموږ دليل هم هغه دې.کوم چې بار بار تير شوې دې. چې د استبراء د وجوب سبب د ملك او قبضې استحداث دی.او حکم د سبب نه روستو راځی.د سبب نه مخکې نه راځی.

وَكَذَا لَا يُجْتَزَأُ او هم دغه ډول به اکتفاء نشی کولې بِالْحَاصِلِ قَبْلَ الْإِجَازَةِ فِي بَيْعِ الْفُضُولِيِّ په هغه حيض کوم چې د اجازت نه وړاندې راغلې دې.د فضولی په بيع کې وَإِنْ كَانَتْ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي که دا وينځه د مشتری په قبضه کې وی وَلَا او اکتفاء به نشی کولې بِالْحَاصِلِ بَعْدَ الْقَبْضِ فِي الشِّرَاءِ الْفَاسِدِ په هغه حيض باندې، کوم چې راغلې دې د قبضې نه روسته په شراء فاسد کې ،قَبْلَ أَنْ يَشْتَرِيَهَا شِرَاءً صَحِيحًا ، ددې نه وړاندې چې هغه دا په شراءِ صحيحه سره واخلی لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دی



**تشريح:-** ④ يو فضولی د يوکس لپاره وينځه واخستله.نو دا بيع د اصيل په اجازت باندې موقوف ده.اوسه پورې اصيل اجازت نه وو ورکړې.چه وينځې ته حيض راغې.نو دا حيض کافی نه دی.هم د دغه تير شوی دليل په وجه،اوکه دا وينځه د مخکې نه داصيل په قبضه کې وی.بيا هم دا حکم دې. ځکه چې دا قبضه يا د امانت وه.او يا د اجازت وغيره وه.⑤ زيد يوه وينځه په شراءِ فاسد سره واخستله.او هغې ته حيض راغې.بيا زيد د سره شراءِ صحيحه سره دا وينځه واخستله.نو ړومبې حيض کافی نه دې.بلکه دوهم حيض سره استبراء واجب ده.د تير شوی دليل په وجه.

## په مشترك وينځه کښې د استبراء حکم

وَيَجِبُ او استبراء واجب ده فِي جَارِيَةٍ لِلْمُشْتَرِي فِيهَا شِقْصٌ په هغه وينځه کې ،چه په هغې کې دمشتری برخه وی فَاشْتَرَى الْبَاقِيَ بيا هغه پاته واخلی لِأَنَّ السَّبَبَ قَدْ تَمَّ الْآنَ ځکه چې سبب اوس پوره شو وَالْحُكْمُ يُضَافُ إِلَى تَمَامِ الْعِلَّةِ او د حکم اضافت پوره علت اړخ ته کيږي ،وَيُجْتَزَأُ بِالْحَيْضَةِ الَّتِي حَاضَتْهَا بَعْدَ الْقَبْضِ او اکتفاء به کولې شی.په هغه حيض کوم چې وينځې ته راغلې دې د قبضې نه روسته وَهِيَ مَجُوسِيَّةٌ أَوْ مُكَاتَبَةٌ بِأَنْ كَاتَبَهَا بَعْدَ الشِّرَاءِ حالانکه دا مجوسيه ده.يا مکاتبه ده.په دې طريقه چې دا مولا مکاتبه جوړه کړې وی د شراءِ فاسد نه روسته ،ثُمَّ أَسْلَمَتِ الْمَجُوسِيَّةُ أَوْ عَجَزَتِ الْمُكَاتَبَةُ لِوُجُودِهَا بَعْدَ السَّبَبِ بيا مجوسنړه ( آتش پرسته) مسلمانه شوه.يا مکاتبه عاجزه شوه.د حيض موجود کيدو نه په وجه د سبب نه روستو وَهُوَ اسْتِحْدَاثُ الْمِلْكِ وَالْيَدِ او سبب د ملك او قبضې استحداث دې إِذْ هُوَ مُقْتَضٍ لِلْحِلِّ ځکه چې سبب دعلت تقاضه کوی وَالْحُرْمَةُ لِمَانِعٍ.او حرمت د يو مانع په وجه دې كَمَا فِي حَالَةِ الْحَيْضِ لکه څنګه چې د حيض په حالت کې دی

**حل اللغة:** ① شقص: برخه ② يجتزأ: اکفتاء کولای شی ③ مقتض: تقاضا کونکې دې

**تشريح:-** که په وينځه کې د زيد څه برخه وی.نو اوس زيد لپاره جائز نه ده.چه ددې سره وطی اوکړي.ځکه چې اوس سبب کامل نه دې.بيا زيد پاته هم واخستله.نو اوس سبب پوره شو.نو ددې نه روستو حيض سره استبراء واجب ده.ددې نه وړاندې چې کوم حيض تير شوې دې.هغې سره به استبراء نه حاصليږي.
④ زيد يوه وينځه واخستله.چه دا مجوسنړه ( آتش پرسته) ده.بيا هغې ته حيض راغې.چه دا مسلمانه شوه.نوکوم حيض چې تير شوې دې.د هغې سره استبراء اوشوه.ځکه چې دا حيض د ملك او د يد د استحداث نه روسته راغلې دې.دا بله خبره ده.چه ددې د مجوسی کيدو په دده لپاره ددې سره وطی جائز نه وه.لکه څنګه چې خپلې ښځې سره د حيض په حالت کې وطی جائز نه ده.نو استحداث د ملك او يد وطی حلالونکې دې.خو دلته د يو مانع په وجه حلت نه وو شوې. اوس هغه مانع زائل شو.او هغه مسلمانه شوه.نو اوس به وطی جائز وی.دغه ډول زيد يوه وينځه واخستله.او دا ئې مکاتبه کړله.په دې مهال دې ته حيض راغې. بيا دې د بدل کتابت ادا کاوه نه خپله عاجزی ښکاره کړله.او عقد کتابت ئې فسخ کړو.نو مولا لپاره جائز دی.چه ددې سره وطی اوکړي.او نوې استبراء اونکړي.ځکه چې کوم حيض د مکاتبه کيدو په صورت کې راغلې دې.هغه د ملك او قبضې د استحداث نه روستو راغلې دی.نو د يو مانع په وجه وطی حلاله نه وه.او هغه ددې مکاتبه کيدل وو.اوس هغه مانع زائل شو.او وطی جائز شوه. لنډيز د کلام دا چې د مکاتبې او مجوسنړې په دې اړه کې يو حکم دې.

## د تختيدلې وينځې په واپس راتلو د استبراء حکم

**وَلَا يَجِبُ الْاِسْتِبْرَاءُ** او استبراء واجب نه ده **اِذَا رَجَعَتِ الْاٰبِقَةُ** کله چې تختيدلې وينځه واپس راشي **اَوْ رُدَّتِ الْمَغْصُوْبَةُ** يا غصب کړې شوې وينځه واپس کړې شي **اَوِ الْمُؤَاجَرَةُ** يا په اجرت باندې ورکړې شوې وينځه واپس کړې شي **اَوْ فُكَّتِ الْمَرْهُوْنَةُ** يا مرهونه وينځه را لنډيز کړې شي **لِانْعِدَامِ السَّبَبِ**.د سبب نه کيدو په وجه **وَهُوَ اسْتِحْدَاثُ الْمِلْكِ وَالْيَدِ** او سبب هغه د ملك او قبضې استحداث دې **وَهُوَ السَّبَبُ الْمُتَعَيَّنُ** او دا سبب متعين دې **فَاُدِيْرَ الْحُكْمُ عَلَيْهِ وُجُوْدًا وَعَدَمًا** نو حکم به هم په دې دائر کولې شي.د وجود او عدم په اعتبار سره **وَلَهَا نَظَائِرُ كَثِيْرَةٌ** او ددې ډير مثالونه دی، **كَتَبْنَاهَا فِيْ كِفَايَةِ الْمُنْتَهٰى**.چه دا موږ په کفاية المنتهى کې بيان کړی دی.

**حل اللغة:** ① الأبقة: تختيدونکې وينځه ② المواجرة: په اجرت ورکړې شوې وينځه ③ فكت: را لنډيز شوه﴾

**تشريح:-** يوه وينځه تختيدلې وه.بيا واپس خپل مولا ته راغله.نو اګرچه احتمال شته.چه چا ددې سره وطي کړې وي.ددې باوجود به هم استبراء واجب نه وي.يوکس د بل چا وينځه غصب کړله.او بيا ئې واپس ورکړله.نو اګرچه احتمال شته.چه غاصب يا بل چا ددې وينځې سره وطي کړې وي.ددې باوجود مولا باندې استبراء واجب نه ده.يوکس خپله وينځه بل چا ته په اجاره باندې ورکړله.بيا مستاجر دا واپس کړله.نو اګرچه احتمال شته.چه مستاجر دې وينځې سره حرام وطي کړې وي.ددې باوجود مولا باندې استبراء واجب نه ده.يو کس خپله وينځه ګانړه کيخودله.بيا ئې پور ادا کړو.او ګانړه وينځه ئې را لنډيز کړله.نو اګرچه په دې کې احتمال شته.چه د چا سره ايخودې شوې وه.هغه ددې سره وطي کړې وي.ددې باوجود مولا باندې استبراء واجب نه ده.ځکه چې د استبراء سبب صرف يو متعين دې.چه هغه استحداث د ملك او قبضې دې.او دا دلته مقصود دې.ځکه چې هغه د مخکې دده په ملکيت کې ده.نو سبب اونه موندې شو.نو حکم به هم نه موجود کيږي.ځکه چې کله سبب وي.نو حکم به وي.او کله چې سبب نه وي.نو حکم به هم نه وي.هم دا مرغيناني رحمه الله ﴿فأدير الحکم عليه وجوداً و عدماً﴾ سره تعبير کړې دې.

## د استبراء نه وړاندې د وطي او د وطي د دواعي حکم

**وَاِذَا ثَبَتَ وُجُوْبُ الْاِسْتِبْرَاءِ** او کله چې د استبراء وجوب ثابت شو او وطي حرامه شوه **حَرُمَ الدَّوَاعِيْ** نو دواعي د وطي به هم حرام وی **لِاِفْضَائِهَا اِلَيْهِ** امله د رسولو ددې ( دواعي) وطي اړخ ته **اَوْ لِاحْتِمَالِ وُقُوْعِهَا** يا د وطي واقع کيدو د احتمال په وجه.**فِيْ غَيْرِ الْمِلْكِ عَلٰى اعْتِبَارِ ظُهُوْرِ الْحَبَلِ وَدَعْوَةِ الْبَائِعِ**، په غير ملك کې د حمل ښکاره کيدو په اعتبار سره، او د بائع د دعوې په اعتبار سره.

**تشريح:-** په مذکوره صورتونو کې مولا باندې استبراء واجب ده.او وطي حرام ده.نو دواعي د وطي به هم حرام وی.ځکه چې دواعي د وطي، وطي ته رسونکی دی.او احتمال شته.چه د وطي دواعي د غير په ملك کې واقع شي.په دې طريقه چې د وينځې حمل ښکاره شي.او بائع ددې د حمل په اړه کې دعوه اوکړي.چه زما دې.نو دا وينځه به د بائع ام ولد وی.چه ددې بيع جائز نه ده.نو بيع به فسخ وی.نو معلومه شوه.چه کوم دواعي د وطي موجود شوی وو.هغه د غير په ملك کې واقع شوی وو.په دې وجه دلته وطي سره سره د وطي د دواعي نه هم منع کړې شوې ده.

## حائضې سره د وطي د دواعي حکم

**بِخِلَافِ الْحَائِضِ حَيْثُ** په خلاف د حائضې په دې حيثيت سره **لَا تَحْرُمُ الدَّوَاعِيْ فِيْهَا**، چې په حيض کې دواعي د وطي حرام نه دی.**لِاَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ الْوُقُوْعَ فِيْ غَيْرِ الْمِلْكِ** ځکه چې د غير په ملك کې د واقع کيدو احتمال نشته **وَلِاَنَّهُ زَمَانُ نَفْرَةٍ** او ځکه چې دا د نفرت زمانه ده **فَالْاِطْلَاقُ فِي الدَّوَاعِيْ لَا يُفْضِيْ اِلَى الْوَطْءِ** نو د دواعي جواز به وطي اړخ ته بوتلونکې نه وی **وَالرَّغْبَةُ فِي الْمُشْتَرَاةِ قَبْلَ الدُّخُوْلِ اَصْدَقُ الرَّغَبَاتِ** او په اخستې شوې وينځه کې د دخول نه وړاندې رشتونې رغبت دې، **فَتُفْضِيْ اِلَيْهِ** نو دواعي به وطي اړخ ته رسونکی وی.



**حل اللغة:** ① الدواعي: اسباب د وطي ② الرغبات: جمع د رغبت، شوق﴾

**تشريح:-** که څوك ووايي چې هرکله د وطي حرام کيدو په وجه دواعي د وطي حرام دی.نو په حالت د حيض کې وطي کول حرام دی.خو دواعي د وطي حرام نه دی.نو ددې ځواب ئې ورکړو.چه دلته په دواعي ښځې سره دا احتمال نشته.چه دا د غير په ملك کې واقع شي.په خلاف د ړومبی ( صورت) ،،کمامر،، او په حالت د حيض د نفرت زمانه ده.نو دلته د دواعي جواز وطي اړخ ته بوتلونکې نه دې.په خلاف د اخستې شوې ( وينځې) چې په دې کې د دخول نه وړاندې رشتونې شوق وی.نو په دې کې به د دواعي جواز وطي اړخ ته رسونکې وی.

## ګرفتارې وينځې سره د وطي د دواعي حکم

**وَلَمْ يَذْكُرِ الدَّوَاعِيْ فِي الْمَسْبِيَّةِ** او د ګرفتارې شوې ( وينځې) په اړه کې ( په ظاهرالرواية کې ) نه دی ذکرشوی **وَعَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّهَا لَا تَحْرُمُ** او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه دواعي حرام نه دې.**لِاَنَّهَا لَا يَحْتَمِلُ وُقُوْعُهَا فِيْ غَيْرِ الْمِلْكِ** ځکه چې ددې په غير ملك کې د واقع کيدو احتمال نشته **لِاَنَّهُ لَوْ ظَهَرَ بِهَا حَبَلٌ** ځکه که ددې حمل ښکاره شو **لَا تَصِحُّ دَعْوَةُ الْحَرْبِيِّ** نو د حربی دعوه صحيح نه ده.،**بِخِلَافِ الْمُشْتَرَاةِ عَلٰى مَا بَيَّنَّا** په خلاف د اخستې شوې وينځې، د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې.

**تشريح:-** کومه ښځه چې ګرفتاره کړې شوه.او دا د يو مجاهد په برخه کې راغله.نو د استبراء نه وړاندې ددې سره وطي کول جائز نه دی.خو د وطي د دواعي څه حکم دې؟ په دې اړه کې ظاهرالرواية کې هيڅ نه دی ذکر شوی.خو په نوادر کې د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه دواعي حرام نه دی.ځکه چې دلته د وطي په دواعي کې دا احتمال نشته.چه دا د غير په ملك کې واقع شي.ځکه که دلته حمل هم ښکاره شي.نو ددې د حربی ميړه دعوه به نشي قبلولې.او په اخستې شوې وينځه کې به د بائع دعوه اوريدې شي.او قبلولې به شي.،،کما مر،،

## د حاملې استبراء وضع د حمل ده

**وَالْاِسْتِبْرَاءُ فِي الْحَامِلِ بِوَضْعِ الْحَمْلِ** او په حامله کې به استبراء په وضع د حمل سره کيږي.**لِمَا رَوَيْنَا** د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې.**وَفِيْ ذَوَاتِ الْاَشْهُرِ بِالشَّهْرِ** او په مياشتو والو کې به مياشتو سره کيږي.**لِاَنَّهُ اُقِيْمَ فِيْ حَقِّهِنَّ مَقَامَ الْحَيْضِ** ځکه چې مياشت ددوی په حق کې د حيض قائم مقام ده **كَمَا فِي الْمُعْتَدَّةِ** لکه څنګه چې معتده کې ( په مياشتو سره کولې شی).

**تشريح:-** د کومې وينځې چې حمل دې.ددې استبراء به وضع د حمل سره کيږي.ددې دليل وړاندې روايت کړې شوې حديث دې.يعنى ﴿الا لا توطأ الحبالى حتى يضعن حملهن ولا الحيالى حتى يستبرئن بحيضة﴾ او کومه چې ماشومه يا آئسه ( چې ډيره بوډۍ) وی.د هغې استبراء به په يو مياشت سره کولې شی.ځکه چې ددوی په حق کې مياشت د حيض قائم مقام ده.لکه مثلاً هغه ښځه کومه چې د طلاق عدت تيره وی.او هغې ته حيض نه راځی.نو هغه په مياشتو سره عدت تيره وی.دغه ډول به دلته کې هم کيږي.

## د استبراء په مهال د حيض راتلو مسئله

**وَاِذَا حَاضَتْ فِيْ اَثْنَائِهِ** او کله چې د مياشت په منځ کې دې ته حيض راشي **بَطَلَ الْاِسْتِبْرَاءُ بِالْاَيَّامِ** نو ورځو سره استبراء باطله شوه.**لِلْقُدْرَةِ عَلَى الْاَصْلِ قَبْلَ حُصُوْلِ الْمَقْصُوْدِ بِالْبَدَلِ** په اصل باندې د قدرت په وجه، د بدل په ذريعه د مقصود حاصلولو نه وړاندې **كَمَا فِي الْمُعْتَدَّةِ** لکه په معتده ښځه کې **فَاِنِ ارْتَفَعَ حَيْضُهَا** نو که ددې حيض بند شی ( يعنى اوګد شی) **تَرَكَهَا** نو دا دې پريږدی.( وطي دې ور سره نه کوی). **حَتّٰى اِذَا تَبَيَّنَ اَنْ لَيْسَتْ**

بِحَامِلٍ ترديږ چې کله دا ښکاره شي.چه دا حامله نه ده وَقَعَ عَلَيْهَا نو ددې سره دې وطی اوکړي. وَلَيْسَ فِيهِ تَقْدِيرٌ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او په دې کې ظاهرالرواية کې هيڅ اندازه ( مقرر مقدار) نشته.

**حل اللغة:** ① اثناء: مينځ ، مهال ② الايام: جمع د يوم ورځ ③ حامل: اميدواره ﴾

**تشريح:-** کومې وينځې ته چې حيض نه راتلو.او په مياشت سره ئې استبراء کوله.چه په منځ کې دې ته اتفاقاً حيض راغلو.نو اوس به استبراء حيض سره کيږي.او ورځو سره چې ده کومه استبراء کړې ده.هغه باطل شوه.ځکه چې هرکله بدل سره د مقصود حاصلولو نه وړاندې وړاندې، اصل باندې قدرت راشي.نو هلته هم دا حکم وي.نوبه ښځه کې هم دا حکم دې.چه ښځې په مياشتو سره عدت تيرولو.چه دعدت په منځ کې دې ته حيض راغې.نو اوس به عدت حيض سره تيرول واجب وي.

﴿ پاته پاتې شوه هغه وينځه چې حيض ئې نه راځي) نو ددې سره به وطی نه کوي.البته کله چې ښکاره شي.چه ددې حمل نشته.نو اوس ددې سره وطی کولې شي.اوس پاتې شوه دا خبره چې دا به په څومره موده کې ښکاره کيږي.نو په ظاهرالرواية کې ددې هيڅ تعين نشته.

**د ممتدالطهر ښځه به کومې پورې د وطی نه ځان ساتي؟**

وَقِيلَ يَتَبَيَّنُ بِشَهْرَيْنِ أَوْثَلَاثَةٍ او وئيلی شوی دی.چه په دوو يا دريو مياشتو کې به ښکاره کيږي وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشَرَةُ أَيَّامٍ او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.په څلورو مياشتو او لسو ورځو کې ( به ښکاره کيږي) وَعَنْهُ او هم ددوی ( د امام محمد رحمه الله) نه نقل دی شَهْرَانِ وَخَمْسَةُ أَيَّامٍ اعْتِبَارًا بِعِدَّةِ الْحُرَّةِ وَالْأَمَةِ فِي الْوَفَاةِ دوې (دوه) مياشتې او پنځه ورځې،د آزادې يا د وينځې په عدت باندې قياس کاوه سره، په وفات کې وَعَنْ زُفَرَ رحمه الله سَنَتَانِ او د امام زفر رحمه الله نه نقل دی.دوې (دوه) کاله. وَهُوَرِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او هم دا يو روايت دې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه.

**تشريح:-** کومه وينځه چې ممتدالطهر ده.( چې حيض ئې نه راځي).د هغې ښځه به کومه پورې د وطی نه ځان ساتي. نو دلته په هغې کې مرغيناني رحمه الله څلور قوله نقل کړي دی.① دبعضو مشائخو قول دې.چه دوې (دوه) يا درې مياشتو پورې دې منع شي.ځکه چې دومره موده کې به دا خبره ښکاره شي.چه دا حامله نه ده.ګنی که حمل ئې وې.نو نس به ئې پړسيدلې وه.او په سينو ( تئينو) کې به ئې شيدې راغلی وو.② څلور مياشتې اولس ورځې ( دې منع شي).ځکه چې دا د آزادې د وفات عدت دې.③ دوې (دوه) مياشتې او پنځه ورځې ( دې منع شي).ځکه چې دا د وينځې د عدت وفات دې.④ د امام زفر رحمه الله قول دې چې دوې (دوه) کاله ( دې منع شي).ځکه چې دومره مودې پورې بچې په نس کې پاتې کيداې شي.ددې نه زيات نشي پاتې کيدې.

مفتی به قول: صاحب د سکب الانهر په دې کې اته اقواله ذکر کړی دی او بيا ئې فرمائيلی دی چې.په دې کې احوط د دوو کالو قول دې.او آسان د دوو مياشتو او پنځو ورځو قول دې. وعليه الفتوى كما فى الكافى....إلخ او درمختار او ﴿شامی ص: ۲۴۰،ج۵﴾ باندې وئيلی دی... وبه يفتى.. ﴿سکب الانهر ص: ۴۷۱،ج۲﴾

**د استبراء ساقطولو لپاره د حيلې حکم**

قَالَ حضرت مرغيناني رحمه الله فرمائی وَلَا بَأْسَ بِالْاِحْتِيَالِ لِإِسْقَاطِ الْاِسْتِبْرَاءِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ [2] او د استبراء

[1] القول الراجح هوهذا قول محمد فى الرواية الثانية كذا فى الدرالمحتار (۲۶۵۱۵) ونصب (۲۳۱۶) ومجمع الأنهر (۲۰۸۱٤) والدرالمنتقى (۲۰۸۱٤) نقلاً عن القول الراجح (۳۰۲۱۲)۔

[2] القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله وقد مر بيان هذه المسئلة فى باب ما تبطل به الشفعة كذا فى القول ا الراجح (۳۰۲۱۲)۔



ساقطولو لپاره په حيلې کاوه کې هيڅ باک نشته.د امام ابويوسف رحمه الله په نيز خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ د امام محمد رحمه الله اختلاف دې وَقَدْ ذَكَرْنَا الْوَجْهَيْنِ فِي الشُّفْعَةِ. او موږ دواړه امله په شفعه کې ذکر کړی دی وَالْمَأْخُوذُ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ فِيمَا إِذَا عَلِمَ أَنَّ الْبَائِعَ لَمْ يَقْرَبْهَا فِي طُهْرِهَا ذَلِكَ او د امام ابويوسف رحمه الله قول لائق د عمل دې.په دې صورت کې کله چې معلومه شي.چه بائع ددې سره وطی نه ده کړې.په دې طهر کې ،وَقَوْلُ مُحَمَّدٍ فِيمَا إِذَا قَرِبَهَا او د امام محمد رحمه الله قول ( لائق دعمل) دې.په هغه صورت کې کله ئې چې ددې سره وطی کړې وي.

**حل اللغة:** ① الاحتيال: حيله جوړول ② اسقاط: ساقطول ③ الاستبراء: طلب د براءت د رحم د حمل نه ﴾

**تشريح:-** د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د استبراء ساقطولو حيله کې هيڅ باک نشته.او د امام محمد رحمه الله په نيز جائز نه دې.مرغيناني رحمه الله فرمائی.چه موږ په کتاب الشفعه کې د دواړو دليلونه بيان کړی دی.بيا مرغيناني رحمه الله فرمائی.که دا خبره معلومه شي.چه بائع ددې وينځې سره په دې طهر کې وطی نه ده کړې.نو د امام ابويوسف رحمه الله قول به اخستلې شي.ګنی ( که وطی ئې ور سره کړې وی نو) د امام محمد رحمه الله قول ( به اخستې شی). په ﴿ مجمع الانهر ص: ۵۲۳،ج۲﴾ باندې دی.چه په دې تفصيل به فتوی ورکولې شي.

**رومبۍ حيله**

وَالْحِيلَةُ إِذَا لَمْ يَكُنْ تَحْتَ الْمُشْتَرِي حُرَّةٌ او حيله، کله چې د مشتری لاندې ( په نکاح کې) آزاده ښځه نه وی أَنْ يَتَزَوَّجَهَا قَبْلَ الشِّرَاءِ دا ده.چه هغه ددې وينځې سره د اخستلو نه وړاندې نکاح اوکړي ثُمَّ يَشْتَرِيهَا بيا دا واخلي.

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله دلته دوې (دوه) حيلې بيان کړی دی.دا رومبۍ حيله ده.که د مشتری په نکاح کې هيڅ آزاده ښځه نه وی.نو ده له پکار دی.چه دې مخکې ددې وينځې سره نکاح اوکړي.بيا دا واخلي.اخستلو سره نکاح ختمه شوه.او استبراء به واجب نه وی.ځکه چې د خپلې منکوحې اخستلو سره استبراء نه واجبيږي.او په نکاح کې د آزادې قيد ددې لپاره لګولې شوې دې.که په نکاح کې آزاده وی.نو بيا وينځې سره نکاح جائز نه ده.دغه ډول که دده په نکاح کې څلور وينځې وی.بيا به هم دا حيله ګټوره نه وی.ځکه چې دې وينځې سره به نکاح جائز نه وی.

**دويمه حيله**

وَلَوْكَانَتْ او که ( دده په نکاح کې آزاده ښځه) وی فَالْحِيلَةُ أَنْ يُزَوِّجَهَا الْبَائِعُ قَبْلَ الشِّرَاءِ نو حيله دا ده.چه بائع د ( دمشتری د) اخستلو نه وړاندې ددې نکاح اوکړي أَوِالْمُشْتَرِي قَبْلَ الْقَبْضِ مِمَّنْ يُوثَقُ بِهِ يا مشتری ( ددې نکاح اوکړي) د قبضې نه وړاندې، د هغه سړی سره چې په هغه اعتماد کيداې شی ثُمَّ يَشْتَرِيهَا وَيَقْبِضَهَا بيا مشتری دا واخلی.او قبضه ئې کړی.( په رومبی صورت کې). ثُمَّ يُطَلِّقَ الزَّوْجُ يا په دې قبضه اوکړي ( په دوهم صورت کې ).بيا ميړه دې ته طلاق ورکړی لِأَنَّ عِنْدَ وُجُودِ السَّبَبِ وَهُوَاسْتِحْدَاثُ الْمِلْكِ الْمُؤَكَّدِ بِالْقَبْضِ ځکه چې د سبب موجود کيدو په وخت او دا ( سبب ) د هغه ملك استحداث دې.کوم چې قبضې سره مؤکد دې إِذَا لَمْ يَكُنْ فَرْجُهَا حَلَالًا کله چې شرمګاه دده لپاره حلال نه وو لَهُ لَا يَجِبُ الْاِسْتِبْرَاءُ نو استبراء به واجب نه وی وَإِنْ حَلَّ بَعْدَ ذَلِكَ اګرچه ددې نه روستو حلال شو.؛لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ أَوَانُ وُجُودِ السَّبَبِ ځکه چې معتبر دسبب موجود کيدو وخت دې.

**حل اللغة:** ① يزوج: واده اوکړي ② يوثق: اعتماد کولای شی ③ استحداث: پيدا کول ④ اوان: وختونه ﴾

**تشريح:-** دا دويمه حيله ده.چه په کوم سړی باندې اعتماد وی.چه هغه به دې ته طلاق ورکړي.او ددې سره به وطی نه کوی.نو بائع ( د مشتری) د اخستلو نه وړاندې هغه سره ددې نکاح اوکړي.يا مشتری د قبضې نه وړاندې هغه سره ددې نکاح اوکړي.نو په دې دواړو صورتونو کې د ملك او قبضې د استحداث په وخت مشتری لپاره ددې شرمګاه حلال نه ده.نو په مشتری به استبراء هم واجب نه وی.بيا ددې ميړه دې ته طلاق ورکړي.چونکه طلاق قبل الدخول دې.په دې وجه به عدت هم واجب نه وی.اونه به په مولا استبراء واجب

وی.خکه چې د ملك او قبضې د استحداث په وخت د شرمګاه نه حلالیدو په وجه استبراء واجب شوې نه وه.او اوس به خکه واجب نه وی.چه دې وخت د ملك او قبضې استحداث نشته.

كَمَا إِذَا كَانَتْ مُعْتَدَّةَ الْغَيْرِ لکه کله چې دا د غیر معتده وی.

**تشریح:-** په دې متن کې د ذکرشوې مسئلې مثال بیانوی.چه یوکس یوه وینځه واخستله.چه دا د یوکس منکوحه وه.او ددې میړه دې ته طلاق ورکړې وو.چه د هغې دې عدت تیرولو.چه مولا دا خرڅه کړله.نو مشتری به ددې سره وطی نه کوی.تر کومه پورې چې ددې عدت تیر نشی.بیا د عدت تیریدو نه روستو آیا مشتری باندې ددې استبراء واجب ده او که نه؟ نو وې فرمائیل چې واجب نه ده.خکه چې کوم وخت نې وینځه اخستې وه.هغه وخت د وینځې شرمګاه دده لپاره حلال نه وو.او کله چې حلال شوې دې.دغه وخت د ملك او قبضې استحداث نه وو.

### د کفاره ظهار ادا کونکې لپاره خپلې بنځې سره د وطی او د وطی د دواعی حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی وَلَا يَقْرَبُ الْمُظَاهِرُ او ظهار کونکې به جماع نه کوی وَلَا يَلْمِسُ اونه به لاس لګوی وَلَا يُقَبِّلُ اونه کوکئ اخلی وَلَا يَنْظُرُ إِلَى فَرْجِهَا بِشَهْوَةٍ اونه به شهوت سره دهغې شرمګاه ارخ ته ګوری حَتَّى يُكَفِّرَ تردې چې کفاره ادا کړی لِأَنَّهُ لَمَّا حَرُمَ الْوَطْءُ إِلَى أَنْ يُكَفِّرَ خکه چې د کفارې ور کاوه پورې هرکله وطی حرام ده حَرُمَ الدَّوَاعِي لِلْإِفْضَاءِ إِلَيْهِ نو دواعی ( د وطی) هم حرام دی. (ددې دواعی) وطی پورې د رسولو په وجه لِأَنَّ الْأَصْلَ أَنَّ سَبَبَ الْحَرَامِ حَرَامٌ خکه قاعده کلیه دا ده.چه د حرام سبب حرام دې. كَمَا فِي الْاِعْتِكَافِ وَالْإِحْرَامِ وَفِي الْمَنْكُوحَةِ إِذَا وُطِئَتْ بِشُبْهَةٍ لکه څنګه چې اعتکاف کې او احرام کې او منکوحه کې چې دې سره په شبهې سره وطی شوې وی.

**تشریح:-** کوم سړی چې خپلې بنځې سره ظهار کړې دې.نو د کفاره ور کاوه نه وړاندې ظهار کونکې ته جائز نه دی.چه هغه ددې بنځې سره وطی اوکړی.دغه ډول به دواعی د وطی هم واړه په تولـه حرام وی.چه دواعی مفضی الی الوطی جوړ نشی.او قاعده کلیه دا ده.چه د حرام سبب هم حرام وی.نو هرکله چې وطی حرام ده.نو ددې دواعی به هم حرام وی.لکه څنګه چې اعتکاف کې وطی حرام ده.نو دواعی د وطی به هم حرام وی.او په حالت د احرام کې محرم لپاره وطی حلال نه ده.نو دواعی د وطی به هم حلال نه وی.اوکه د یوکس بنځې سره په څه شبه کې وطی اوکړې شوه.یعنی خپله بنځه یا خپله وینځه نې اوګنړله.( او وطی نې ور سره اوکړله).نو دا به عدت تیره وی.او د عدت تیریدو نه وړاندې به ددې میړه ددې سره وطی نه کوی.او نه دواعی د وطی حلال دی.

### یو سوال او د هغې جواب

بِخِلَافِ حَالَةِ الْحَيْضِ وَالصَّوْمِ په خلاف د حالت د حیض او روژې لِأَنَّ الْحَيْضَ يَمْتَدُّ شَطْرَ عُمْرِهَا خکه چې حیض ممتد کیږی ( اوګدیږی).ددې د عمر په منځ کې اوالصَّوْمَ يَمْتَدُّ شَهْرًا فَرْضًا او روژه اوګدیږی.یو میاشت پورې د فرض په طور وَأَكْثَرَ الْعُمْرِ نَفْلًا اود عمر په اکثره برخه کې نفلی طور باندې فَفِي الْمَنْعِ عَنْهَا بَعْضُ الْحَرَجِ نو د دواعی نه په منع کاوه کې هیڅ باك نشته وَلَا كَذَلِكَ مَا عَدَدْنَاهَا لِقُصُورِ مُدَدِهَا او کوم چې موږ شمار کړی دی.هغه داسې نه دی.ددې د مودو کمیدو په وجه وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ او دا خبره د صحت درجې ته



رسیدلې ده.چه نبی کریم ﷺ به د روژې په حالت کې کوکئ اخستله يُقَبِّلُ وَهُوَ صَائِمٌ(۱) وَيُضَاجِعُ نِسَاءَهُ او خپلو بیبیانو سره به سملاستلو ، وَهُنَّ حُيَّضٌ(۲).حالانکه هغوی به حیض والا وې.

**حل اللغة:** ① **شطر:** نیم ② **یمتد:** اوږدیږی ③ **الحرج:** تکلیف ④ **یضاجع:** همبستری کوله.

**تشریح:-** دلته دا سوال کیږی.چه هرکله قاعده کلیه دا ده.چه د حرام سبب هم حرام وی.نو بیا په حالت د حیض کې او په روژه کې وطی حرام ده.خو دواعی د وطی حرام نه دی؟ نو وې فرمائیل.چه حیض کم یا زیات بنځې ته د عمر په نیمه برخه کې راځی.او هم دغه ډول د روژې موده که دا فرض وی.نو یوه میاشت ده.او که نفلی وی.نو د عمر زیاته برخه ده.نوکه دلته د دواعی نه منع کړې شوې وه.نو ډیر زیات حرج ( تنګی) به لازم شوې وه.او په ړومبی صورت کې دا خبره نه ده.خکه چې ددې مودې کمې دی.او په حدیث کې هم راغلی دی.چه نبی کریم ﷺ به د روژې په حالت کې کوکئ اخستله.اوبه حالت د حیض کې به ازواج مطهرات ( پاکو بیبیانو سره سملاستلو.

### د دوو مملوکو خویندو نه کوکئ اخستو سره دواړو سره د وطی دواعی هم حرامیږی

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی وَمَنْ لَهُ أَمَتَانِ أُخْتَانِ چې دچا دوې (دوه) وینځې وی.دواړه خویندې وی فَقَبَّلَهُمَا بِشَهْوَةٍ نو ده ددې دواړو په شهوت سره کوکئ واخستله فَإِنَّهُ لَا يُجَامِعُ وَاحِدَةً مِنْهُمَا نو دې به دوی دواړو کې یو سره هم جماع نه کوی وَلَا يُقَبِّلُهَا او نه به د یوې کسې نه کوکئ اخلی وَلَا يَمَسُّهَا بِشَهْوَةٍ او نه به هغې ته لاس لګوی وَلَا يَنْظُرُ إِلَى فَرْجِهَا بِشَهْوَةٍ او نه به ددې شرمګاه ته ګوری حَتَّى يَمْلِكَ فَرْجَ الْأُخْرَى غَيْرُهُ بِمِلْكٍ تردې چې مالك جوړ کړی.د دویمې د فرج ( شرمګاه) د ځان نه علاوه ملك سره أَوْ نِكَاحٍ یا نکاح سره أَوْ يُعْتِقَهَا یا دا آزاده کړی.

**تشریح:-** دوې (دوه) خویندې په نکاح کې جمع کول په نص د قرآن حرام دی.د نکاح اعتبار سره هم،او د وطی اعتبار سره هم،او شهوت سره کوکئ آخستل وغیره هم د وطی په حکم کې دی.نو هرکله چې د یوکس په ملك کې دوې (دوه) داسې وینځې وی.چه دا خپل منځ کې خویندې وی.او مولا ددوی دواړو په شهوت سره کوکئ واخستله.نو اوس دې په دوی دواړو کې جمع کونکې شو.نو اوس به دې په دوئ دواړو کې یو سره هم وطی نشی کولې.او نه شهوت سره کوکئ اخستلې شی.او نه لاس لګولې شی.او نه د یوې کسې شرمګاه اړخ ته په شهوت سره کتلې شی.البته که دی د یوې وینځې د فرج بل څوك مالك جوړ کړی، یا د یوې نکاح اوکړی.یا یوه آزاده کړی.نو دویمې سره وطی کولې شی.

### دوې (دوه) مملوکه خویندې په وطی سره جمع کول جائز نه دی

وَأَصْلُ هَذَا او ددې اصل دا دې أَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ الْمَمْلُوكَتَيْنِ چې داسې دوو خویندو کې جمع کول،چه دا دواړه مملوکې وی لَا يَجُوزُ وَطْئًا لِإِطْلَاقِ په اعتبار د وطی جائز نه دی قَوْلِهِ تَعَالَى د الله تعالی د فرمان ﴿وَأَنْ تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ﴾ ﴿النساء:۲۳﴾ د اطلاق په وجه

**تشریح:-** اوس د مذکوره مسئلې دلیل بیانوی.چه د الله تعالی فرمان ﴿وَأَنْ تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ﴾

---

(۱) من حدیث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخاری فی الصوم باب ۲۳ ومسلم فی الصیام رقم ۶۴ وأبوداود فی الصوم باب ۳۳ والترمذی فی الصوم باب ۳۱)_

(۲) من حدیث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخاری فی الحیض باب ۶ ومسلم فی الحیض رقم ۱ وأبوداود فی الطهارة باب ۱۰۶ والترمذی فی الطهارة باب ۹۹ وابن ماجه فی الطهارة باب ۱۲۱ )_

﴿النساء:۲۳﴾ مطلق دي.چه په دې كي دواړو خويندو سره نكاح كول هم ګډ دى.او دوې (دوه) مملوكه وينځې په وطى كې جمع كول هم داخل دى.

وَلَا يُعَارَضُ او معارضه به نشى كولې بِقَوْلِهِ تَعَالَى أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ د الله تعالى د ﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ ﴿النساء:۳﴾ سره ،لِأَنَّ التَّرْجِيحَ لِلْمُحَرِّمِ ځكه چې ترجيح محرم ته وى.

تشريح:- په تيره مسئله يو اعتراض وارد شو.چه په ﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ ﴿النساء:۳﴾ كي عموم دې.كه هرڅومره وينځې وى.هغوى سره وطى وغيره كول حلال دى.نو په دواړو آيتونو كي تعارض شو.په ړومبى سره حرمت او په دوهم سره حلت ثابتيږى.نو مرغيناني رحمه الله ځواب وركړو.چه په دې كي هيڅ تعارض نشته.بلكه تعارض په دوو برابر ځيزونو كي وى.او دلته تعارض نشته.ځكه چې برابرى نشته.ځكه اصول دا دې.ځكه چې محرم ته په مبيح باندې ترجيح وى.او په ړومبى كي اطلاق او په دوهم كي عموم دې.او په مطلق او عام كي معارضه نه وى.او په ﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ كي رضاعى خور،اومور، او مجوسنړه وينځه هم داخل ده.حالانكه په اتفاق حرام دى.نو معلومه شوه.چه ﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ عام نه دې.بلكه مخصوص منه البعض دې.نو په ړومبى آيت سره دوو وينځو سره وطى كول به هم په دې سره خاص كولې شى. لنډيز د كلام دا چې آيت نه ثابته شوه.چه دوې (دوه) خويندې لكه څنګه په نكاح كي جمع كول حرام دى.دغه ډول دملك په طور وطى كي جمع كول هم حرام دى.

## دواړه مملوكه وينځې په دواعى د وطى كښې هم جمع كول جائز نه دى

وَكَذَا لَا يَجُوزُ الْجَمْعُ بَيْنَهُمَا فِي الدَّوَاعِي لِإِطْلَاقِ النَّصِّ او هم دغه ډول جائز نه دى.ددوى دواړو په منځ كي دواعى (د وطى) كي جمع كول،د نص د مطلق كيدو په وجه وَلِأَنَّ الدَّوَاعِيَ إِلَى الْوَطْءِ بِمَنْزِلَةِ الْوَطْءِ فِي التَّحْرِيمِ او ځكه چې دواعى الى الوطى په تحريم كي د وطى په درجه كي دى عَلَى مَا مَهَّدْنَاهُ مِنْ قَبْلُ لكه څنګه چې موږ وړاندې وضاحت سره بيان كړى دى فَإِذَا قَبَّلَهُمَا نو هركله چې ده د دواړو نه كوكې واخستله فَكَأَنَّهُ وَطِئَهُمَا نو ګويا دوى دواړو سره ئې وطى اوكړله وَلَوْ وَطِئَهُمَا او كه هغه دوى دواړو سره وطى اوكړى فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُجَامِعَ إِحْدَاهُمَا نو دده لپاره جائز نه ده.چه هغه په دوى كي يوكس سره جماع اوكړى وَلَا أَنْ يَأْتِيَ بِالدَّوَاعِي فِيهِمَا او نه په دوى دواړو كي دواعى سره راتګ اوكړى فَكَذَا إِذَا قَبَّلَهُمَا نو بس دغه ډول (حرام دى) كله ئې چې د دوى دواړو كوكې واخستله ،،،،وَكَذَا إِذَا مَسَّهُمَا بِشَهْوَةٍ او هم دغه ډول (حكم دې) كله ئې چې دوى دواړه په شهوت سره مس كړل أَوْ نَظَرَ إِلَى فَرْجِهِمَا بِشَهْوَةٍ لِمَا بَيَّنَّا يا ئې د دوى دواړو شرمګاه اړخ ته شهوت سره اوكتل.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې إِلَّا أَنْ يَمْلِكَ فَرْجَ الْأُخْرَى غَيْرَهُ بِمِلْكٍ خو دا چې هغه مالك جوړ كړى.د دويمې د فرج د ځان نه علاوه (بل څوك) د ملك په ذريعه أَوْ نِكَاحٍ يا د نكاح په ذريعه أَوْ يُعْتِقَهَا يا دا ازاد كړى ،لِأَنَّهُ لَمَّا حَرُمَ عَلَيْهِ فَرْجُهَا ځكه چې كله په هغه باندې شرمګاه حرام كړې شو لَمْ يَبْقَ جَامِعًا نو دا جمع كونكې پاته پاتې نشو.

تشريح:- بيا هركله چې مذكوره نص مطلق دې.نو لكه څنګه چې نكاح كي دوې (دوه) خويندې جمع كول حرام دى. او دوې (دوه) مملوكه خويندې په وطى كي جمع كول حرام دى.دغه ډول د نص د اطلاق په وجه دوې (دوه) خويندې په دواعى د وطى كي جمع كول هم حرام دى.ځكه چې دواعى د وطى د وطى په درجه كي دى.چه ددې تفصيل تير شوې دې.نو كوكې اخستل د وطى په درجه كي شو.او كه مولا دواړو سره وطى كړې وه.نو هم به دا حكم وو.خه چې په دوى كي به ئې يوې سره هم وطى نشوه كولې.او نه به ئې دواعى د وطى كولې شو.نو د دواړو كوكې اخستلو نه روسته به هم دا حكم وى.چه اوس دواړو سره وطى او دواعى د وطى حرام دى.البته كه په دوى كي يوه د بل كس په ملك كي وركړى.چه يا ئې وپلورى ،يا ئې هبه يا صدقه



كړى.يا په دوى كي د يوې نكاح اوكړى.يا يوه ازاده كړى.نو اوس به دويمه وطى حلال وى.ځكه چې هركله يوه حرامه شوه.نو هغه د وطى په وجه د دوو خويندو جمع كونكې نشو.

## د ملك نه مراد ملك يمين دى

وَقَوْلُهُ بِمِلْكٍ أَرَادَ بِهِ مِلْكَ يَمِينٍ او د امام محمد رحمه الله قول ،، بملك ،، اراده كړې ده دوى په دې سره د ملك يمين فَيَنْتَظِمُ نو دا ګډ دې التَّمْلِيكَ بِسَائِرِ أَسْبَابِهِ مالك جوړولو ته، د ملك ټولو اسبابو سره .بَيْعًا أَوْ غَيْرَهُ ، كه بيع وى اوكه ددې نه علاوه وى وَتَمْلِيكُ الشِّقْصِ فِيهِ كَتَمْلِيكِ الْكُلِّ او د يوې برخې (حصې) مالك جوړول، په دې كي د واړه مالك جوړولو پشان دى ،لِأَنَّ الْوَطْءَ يَحْرُمُ بِهِ ځكه چې وطى ددې په ذريعه حراميږى،مِنْ إِحْدَاهُمَا ،وَكَذَا إِعْتَاقُ الْبَعْضِ كَالْإِعْتَاقِ فِي هَذَا لِثُبُوتِ حُرْمَةِ الْوَطْءِ بِذَلِكَ كُلِّهِ او دغه ډول په دوى دواړو كي د يوكس بعضې برخه آزادول ددې د كل آزادولو پشان دى

حل اللغة① ينتظم: شامليږى ② الشقص: برخه ③ اعتاق: آزادول ﴾

تشريح:- امام محمد رحمه الله چه كوم ،، بملك ،، فرمائيلى دى.ددې نه مراد دا دې.چه بل څوك د هغه وينځې مالك شى.چه دا ئې ملك يمين سره تعبير كړې دې.نو د ملك چې څومره هم اسباب دى.په دې كي چې كومه طريقه هم اختيار كړې شى.ټولې برابر دى.يعنى بيع وى، يا هبه وى، يا صدقه وى.يا خلع وى.كومه وينځه چې د دوو سړو په منځ كي مشترك وى.نو په دوى دواړو كي يوكس لپاره هم ددې سره وطى كول حلال نه دى.نوكه مولا په دوى دواړو وينځو كي د يوې د بعضې برخې (حصې) مالك جوړ كړى.نو چونكه اوس دا په مالك باندې حرامه شوه.نو اوس ددې خور سره وطى او دواعى د وطى حلال دى.دغه ډول كه د يوې بعضې برخه ئې آزاده كړې وى.نو بيا هم ددې دويمې خور سره وطى او دواعى د وطى حلال دى.

وَكَذَا إِعْتَاقُ الْبَعْضِ كَالْإِعْتَاقِ او دغه ډول كتابت د آزادئ پشان دې فِي هَذَا لِثُبُوتِ حُرْمَةِ الْوَطْءِ بِذَلِكَ كُلِّهِ په دې سلسله كي د وطى دحرمت ثابتيدو په وجه، په دې ټولو كي .

تشريح:- او دغه ډول كه يوه ئې مكاتبه كړې وى.نو بيا هم دا حكم دې.ځكه چې دې ټولو صورتونو كي حرمت ثابتيږى.او هركله چې حرمت ثابت شو.نو ددې خور سره وطى كاوه سره دوو خويندو كي جمع كول نه لازميږى.

## د يوې وينځې رهن ايخودو يا په اجارې سره يا مدبر كولو سره دويمه نه جائز كيږى

وَيَرْهَنُ إِحْدَاهُمَا او په دوى دواړو كي د يوې په رهن ايخودو سره وَإِجَارَتُهَا وَتَدْبِيرُهَا لَا يُحِلُّ الْأُخْرَى، او يوه په اجاره باندې وركاوه سره، او د يوې په مدبره جوړولو سره دويمه نه حلاليږى ،أَلَا يُرَى أَنَّهَا لَا تَخْرُجُ بِهَا عَنْ مِلْكِهِ ځكه چې دا ( وينځه) ددې افعالو په وجه دده دملكيت نه نه ده خارجه شوې.

تشريح:- كه مولا په دوى دواړو كي يوه وينځه ګانړه كيخودله.نو چونكه مرهونه دمولا د ملك نه خارجه نشوه. په دې وجه به دويمه وينځه حلال نه وى.دغه ډول كه يوه ئې په اجاره باندې وركړله.نو دا هم د مولا د ملكيت نه خارجه نشوه.نو دويمې خور سره وطى حلال نشوه.دغه ډول كه يوه ئې مدبره جوړه كړې وى. نو چونكه مدبره د مولا د ملك نه خارجه نشوه.نو ددې خور سره به وطى حلال نه وى.

## په نكاح فاسد كولو سره دويمه وينځه جائز كيږى

وَقَوْلُهُ أَوْ نِكَاحٍ أَرَادَ بِهِ النِّكَاحَ الصَّحِيحَ او د امام محمد رحمه الله قول ،، أو نكاح ،، په دې سره دوى د نكاح صحيح اراده كړې ده أَمَّا إِذَا زَوَّجَ إِحْدَاهُمَا نِكَاحًا فَاسِدًا بهرحال كله چې مولا په دوى كي د يوې نكاح اوكړله.په نكاح فاسد سره لَا يُبَاحُ لَهُ وَطْءُ الْأُخْرَى نو دده لپاره دويمې سره وطى كول مباح نه دى إِلَّا أَنْ يَدْخُلَ الزَّوْجُ بِهَا فِيهِ خو دا چې

میره ددې سره په نکاح فاسد کي وطی اوکړی **اِلَّا أَنَّهُ يَجِبُ الْعِدَّةُ عَلَيْهَا** ځکه چې په دې به عدت واجب وی **وَالْعِدَّةُ كَالنِّكَاحِ الصَّحِيحِ فِي التَّحْرِيمِ** او د تحریم په سلسله کي عدت د نکاح صحیح پشان ده **وَلَوْ وَطِئَ إِحْدَاهُمَا** او که په دواړو کي یوې سره ده وطی اوکړله **حَلَّ لَهُ وَطْءُ الْمَوْطُوءَةِ دُونَ الْأُخْرَىٰ** نو دده لپاره موطوءة (وطی کړې شوې وینځې) سره وطی حلال ده.دویمې سره نه ده **لِأَنَّهُ يَصِيرُ جَامِعًا بِوَطْءِ الْأُخْرَىٰ** ځکه چې دې به دویمې سره وطی کاوه سره جمع کونکې وی.،، **لَا بِوَطْءِ الْمَوْطُوءَةِ** د موطوءة وطی کاوه سره به (جمع کونکې) نه وی.

**تشریح:-** په متن کي چې د امام محمد رحمه الله قول ،، أو نكاح ،، راغلې وو.مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه ددې نه مراد نکاح صحیح ده.اوکه مولا د یوې وینځې نکاح دویمې سره کړې وی.خو دا نکاح فاسد وی.نو مولا لپاره ددې خور سره وطی کول حلال نه دی.البته که میره په نکاح فاسد کي ددې سره وطی کړې وی.نو اوس به مولا لپاره دویمه وینځه حلال وی.ځکه چې د دخول په وجه په هغې باندې عدت واجب شو.او هرکله چې عدت واجب شو.نو معتده پخپل مولا باندې حرامه شوه.او هرکله چې دغه حرامه شوه.نو اوس ددې خور سره وطی کول حلال شو.په نورو الفاظو کي داسې چې په کومه طریقه نکاح صحیح سره مولا لپاره حرمت ثابتیږی.دغه ډول عدت سره هم حرمت ثابتیږی.اوکه مولا صرف یوې سره وطی کړې وی.نو بس هم دې سره به وطی کوی.دویمې سره به نه کوی.ځکه چې دوو خویندو کي جمع کول دویمې وینځې سره وطی کاوه سره لازمیږی.موطوءه سره باربار وطی کاوه سره جمع بين الاختين نه لازمیږی.

**وَكُلُّ امْرَأَتَيْنِ لَا يَجُوزُ الْجَمْعُ بَيْنَهُمَا نِكَاحًا** او هر داسې دوې (دوه) ښځې چې ددوی په منځ کي نکاح کي جمع کول جائز نه وی **فِيمَا ذَكَرْنَاهُ** .دوی په دې دواړو صورتونو کي کوم چې موږ ذکرکړل **بِمَنْزِلَةِ الْأُخْتَيْنِ** د دوو خویندو په درجه کي دی.

**تشریح:-** داسې دوې (دوه) ښځې چې ددوی په یوه نکاح کي جمع کول جائز نه دی.دغه ډول مولا دوې (دوه) وینځې هم په وطی کي نشی جمع کولې.مثلاً ترور او خورزه، ترور او وریره، خویندې په نکاح کي نشی جمع کولې.دغه ډول که دا د مولا په ملك کي جمع شی.نو دواړو سره وطی او دواعی نشی کولې.

مسئله: په نکاح فاسد کي د دخول نه روسته د عدت د وجوب په وجه مولا لپاره دویمې وینځې سره وطی کول حلال شو.خو کله چې ددې عدت تیر شی.نو حرمت به راواپس کیږی.او دا حرمت به پخپل حال پاته پاتې وی.ترکومه پورې چې ددې نکاح وغیره چا سره اونکړی.دغه ډول که مولا په دوی کي د یوې نکاح اوکړله.بیا میره هغې ته طلاق ورکړو.او دهغې عدت تیر شو.نو مخکنې حرمت به واپس راځی.نو مولا به په دوی دواړو کي یوې سره هم وطی نشی کولې.تردې چې یوه وپلوری .یا ئې نکاح اوکړی.اوګورئ: ﴿شامی ص:۲۴۳،ج۵﴾

## سړی لپاره د سړی خوله،لاس یا د بل څه څیز ښکلولو او د معانقې حکم

**قَالَ** امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي فرمائیلی دی **وَيُكْرَهُ أَنْ يُقَبِّلَ الرَّجُلُ فَمَ الرَّجُلِ** او مکروه دی.چه سړې د بل سړی د خولې نه کوکئ واخلی **أَوْ يَدَهُ أَوْ شَيْئًا مِنْهُ أَوْ يُعَانِقَهُ** .یا دده د لاس نه ، یا دده د یوې برخې (حصې) نه ، یا هغه سره معانقه اوکړی **وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ أَنَّ هَذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** او طحاوی رحمه الله ذکرکړی دی.چه دا د امام ابوحنیفه او د امام محمد رحمهما الله قول دې **وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ** او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی **لَا بَأْسَ بِالتَّقْبِيلِ وَالْمُعَانَقَةِ** چې په کوکئ اخستلو او معانقه کاوه کي هیڅ باك نشته **لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ** ﷺ



**عَانَقَ جَعْفَرًا** رضي الله عنه په دې وجه چې نبی کریم ﷺ د حضرت جعفر رضي الله عنه سره معانقه اوکړله **حِينَ قَدِمَ مِنَ الْحَبَشَةِ** ..کله چې هغه د حبشې نه راغې.. **وَقَبَّلَ بَيْنَ عَيْنَيْهِ**[1] او ددوی رضي الله عنه د دواړو سترګو د منځ نه ئې کوکئ واخستله.

**حل اللغة:** ① يقبل: ښکلول ② فم: خوله ③ عانق: غاړه ملاوهل﴾

**تشریح:-** امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه یو سړې د بل سړی کوکئ واخلی.یا دده لاس یا بل اندام ښکل کړی.نو مکروه دی.او هم دغه ډول معانقه کول هم مکروه دی.خو په شرح معانی الاثار کي امام طحاوی رحمه الله فرمائیلی دی.چه د کراهت حکم د طرفینو رحمهما الله قول دې.او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز جائز ده.د امام ابویوسف رحمه الله دلیل ړومبې حدیث دې.چه نبی کریم ﷺ د حضرت جعفر طیار رضي الله عنه سره معانقه اوکړله.کله هغه د حبشې نه تشریف راوړو.او دده د سترګو د منځ کوکئ ئې واخستله.نو ددې حدیث نه ددې دواړو جواز ثابت شو.

**وَلَهُمَا مَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ** ﷺ او د طرفینو رحمهما الله دلیل هغه حدیث دې.کوم چې نقل دې **نَهَىٰ عَنِ الْمُكَامَعَةِ** چې نبی کریم ﷺ د مکامعت نه منع فرمائیلې ده **وَهِيَ الْمُعَانَقَةُ** او مکامعت دا معانقه ده **وَعَنِ الْمُكَاعَمَةِ** او د مکاعمت نه ئې منع فرمائیلې ده **وَهِيَ التَّقْبِيلُ**[2] او مکامعت کوکئ اخستل دی **وَمَا رَوَاهُ**[3] **مَحْمُولٌ عَلَىٰ مَا قَبْلَ التَّحْرِيمِ** او کوم حدیث چې د امام ابویوسف رحمه الله روایت کړې دې.هغه د حرمت نه وړاندې باندې محمول دې **قَالُوا: الْخِلَافُ فِي الْمُعَانَقَةِ فِي إِزَارٍ وَاحِدٍ** بیا مشائخو فرمائیلی دی.چه په یو لنګ (پرتوګ) کي معانقه کاوه کي اختلاف دې، **أَمَّا إِذَا كَانَ عَلَيْهِ قَمِيصٌ أَوْ جُبَّةٌ** بهرحال کله چې ددې سربیره کمیص وی.یا چوغه وی **فَلَا بَأْسَ بِهَا بِالْإِجْمَاعِ** نو په معانقه کاوه کي بالاجماع هیڅ باك نشته ،، **وَهُوَ الصَّحِيحُ** او هم دا صحیح ده.

**حل اللغة:** ① المكامعة: غاړه ملاوهل ② ازار: لنګ ③ جبة: چغه﴾

**تشریح:-** د طرفینو رحمهما الله دلیل دوهم حدیث دې.چه په دې کي نبی کریم ﷺ د معانقې او ښکلولو نه منع فرمائیلې ده.او طرفینو رحمهما الله د امام ابویوسف رحمه الله د حدیث دا ځواب ورکړې دې.چه دغه حکم منسوخ دې.او دا حکم د حرمت نه وړاندې وو.خو مشائخو دا تحقیق فرمائیلې دې.چه دا اختلاف هغه صورت کي دې.کله چې په یو پټو (څادر) کي معانقه اوکړې شی.مثلاً صرف یو لنګ اوتړی.چه دا صرف د نوم نه لاندې کونډو پورې عورت پټوی.خو که پورته کرته ( کمیص) یا چوغه وغیره وی.نو بیا بالاتفاق معانقه جائز ده.مرغینانی رحمه الله دا تحقیق صحیح ګرځوی

تنبیه① د یو عالم او نیك عمله صالح سړی لاس ښکلول، د تبرك په طریقه جائز دی.دغه ډول د دینداره عادل بادشاه د مخ نه کوکئ اخستل جائز دی.او بعضو حضراتو وئیلی دی.چه سنت دی.او شر نبلالی رحمه الله فرمائیلی دی.چه د احادیثو فائده سنتیت یا جواز دې.چه دې اړخ ته علامه عینی رحمه الله اشاره فرمائیلې ده.﴿شامی ص:۲۴۵،ج۵﴾

تنبیه② سړې د سړی، یا ښځه د ښځې کوکئ واخلی.د ملاقات یا رخصت کیدو په وخت، که په شهوت سره وی.نو مکروه تحریمی ده.اوکه د اکرام او اعزاز په غرض سره وی.نو جائز ده.لکه د یو فقیه ( عالم) د مخ نه کوکئ اخستل.﴿درمختار،شامی ص:۳۴۴،ج۵﴾

③تنبیه لکه څنګه چې د بعضو جاهلانو عادت دې.چه د ملاقات په وخت خپل لاسونه ښکلوی.ددې

---

[1] الخلاف فى المعانقة فى إزار واحد أما إذا كان عليه قميص أو جبة فلا بأس بها بالإجماع كذا فى نصب الراية(۶/۲۳) والعناية (۵۱۸) نقلاً عن القول الراجح (۳۰۳/۲)_

[2] من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الحاكم فى المستدرك (۳۱۹/۱۱)_

[3] من حديث أبى ريحانة رضي الله عنه أخرجه ابن أبى شيبة فى مصنفه فى النكاح قاله الزيلعى رحمه الله (نصب: ۵۶۳/۴)_

اجازت نشته.او دغه ډول د بل لاس مچی کول کله چې هغه عادل يا عالم نه وی.مکروه دی.﴿درمختار ص:۲۴۵،ج۵﴾

④تنبيه ۞ د غيرعادل او بې علمه سړی د کوکۍ اخستلو اجازت نشته.په حواله د مجتبی او په حواله د محيط، که دده د اسلام تعظيم او اکرام مقصود وی.نو جائز ده.او که دنيا حاصلول مقصود وی.نو مکروه (تحريمی) دی.﴿درمختار ص:۲۴۵،ج۵﴾

⑤تنبيه ۞ د راتلونکی په تعظيم کې ودريدل مندوب (او مستحسن) دی.دغه ډول که څوك د تعظيم قابل سړی مخې ته راشی.او هغه د قرآن په تلاوت کې بوخت وی.نو تعظيماً دې اودريږی.اوګورئ :﴿شامی ص:۲۴۵﴾

⑥تنبيه ۞ د عالمانو او حاکمانو وغيره مخې ته مځکه مچی کول حرام دی.او ددې کونکې، او په دې سره راضی کيدونکې دواړه ګنهګار دی.ځکه چې دا د بتانو د عبادت مشابه دی.﴿درمختار ص:۲۴۶،ج۵﴾

⑦تنبيه ۞ خپل خان لپاره د خلګو ودريدل خوښول مکروه دی.او که د خوښۍ نه بغير خلګ اودريږی.نو مکروه نه دی.﴿پورتنۍ حواله﴾

⑧تنبيه ۞ د سفيان ثوری رحمه الله فرمان دې.چه د عالم او عادل بادشاه لاس مچی کول سنت دی.﴿مجمع الانهر ص:۵۲۰،ج۲

## د مصافحه کولو حکم

قَالَ وَلَابَأسَ بِالْمُصَافَحَةِ او په مصافحه کاوه کې هيڅ باك نشته لِأَنَّهُ هُوَ الْمُتَوَارَثُ ځکه چې دا متوارث (او جاری) دې وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبی کريم ﷺ فرمانيلی دی مَنْ صَافَحَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ وَحَرَّكَ يَدَهُ تَنَاثَرَتْ ذُنُوبُهُ (۱) چا چې مصافحه اوکړله.د خپل مسلمان رور سره، او د هغه لاس ته ئې حرکت ورکړو.نو دده ګناهونه به اورجيږی.

حل اللغة: ① المتوارث: جاری ،په رواج کې راروان ② صافح: لاس ملاؤ کړلو ③ تناثرت: رجيږی ﴾

تشريح:- په مصافحه کاوه کې هيڅ باك نشته.ځکه چې دا خو د مخکې نه سنت دې.چه په دې باندې توارث (او عادت) راروان دی.او د ذکر شوی حديث نه ددې فضيلت ثابتيږی.نور هم ډير حديثونه ددې په فضيلت باندې دلالت کوی.دا حديث د حذيفه بن اليمان دې.چه دا طبرانی روايت کړې دې.خو په هغې کې لاس ته د حرکت ورکاوه ذکر نشته.بلکه د هغې الفاظ دا دی. «ان المؤمن إذا لقى المؤمن فسلّم عليه و أخذه بيده فصافحه تناثرت خطاياهما كما يتناثر ورق الشجر» ﴿نصب الرايه ص:۲۰۹،ج۴﴾

①تنبيه ۞ د مازيګر لمانځه نه پس،او د سحرلمانځه نه روستو او د جمعې او د اخترونو لمانځه نه روسته د مصافحې رواج بدعت دې.چه ددې نه بچ کيدل واجب دی.اوګورئ: ﴿سکب الانهر ص:۴۲۷،ج۲،شامی ص:۲۴۴،ج۵﴾

②تنبيه ۞ مصافحه په دواړو لاسونو مسنون ده.﴿مجمع الانهر ص:۵۲۰،ج۲﴾

③تنبيه ۞ مصافحه دا ده.چه مخ ، مخ ته مخکی کړی.او د لاس تلې د بل کس د لاس تلی سره ملاو کړې شی.صرف ګوتې نيول مصافحه نه ده.په خلاف د روافضو، اوسنت دا دی.چه مصافحه په دواړو لاسونو سره وی.او په منځ کې هيڅ کپړه وغيره حائل نه وی.او ملاقات د سلام نه روسته وی.او په مصافحه کې بته ګوته اونيسی.ځکه چې دې کې يو رګ دې.چه ددې په زورلو سره محبت پيدا کيږی.

## د پائخانې د خاشړو او د سوټو د بيع حکم

(۱) من حديث حذيفة بن اليمان رضي الله عنه أخرجه الطبرانى فى معجم الوسيط ذكره الهيثمى فى مجمع الزوائد (۳۶۱۸)_



فَصْلٌ فِي الْبَيْعِ (دا) فصل د بيع (په بيان کې) دې قَالَ امام محمد رحمه الله فرمانيلی دی وَلَابَأسَ بِبَيْعِ السِّرْقِينِ او هيڅ باك نشته.د سوټو په بيع کې، وَيُكْرَهُ بَيْعُ الْعَذِرَةِ او د پائخانې بيع مکروه ده.

حل اللغة ① السرقين: د غوا ميخو سوټې ② العذرة: پاخانه ﴾

تشريح:- د پائخانې بيع مکروه ده.ځکه چې دا دنجس العين کيدو سره سره خاورې، يا ايرې او سرې وغيره سره ملاوولې شی.او په زمکو کې (د فصل غټوالی دپاره) اچولې شی.او د خاشړو او سوټو وغيره بيع جائز ده.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ او امام شافعی رحمه الله فرمانيلی دی لَايَجُوزُ بَيْعُ السِّرْقِينِ أَيْضًا چې د سوټو بيع هم جائز نه ده لِأَنَّهُ نَجِسُ الْعَيْنِ ځکه چې دا نجس العين دې فَشَابَهُ الْعَذِرَةَ نو دا د پائخانې مشابه شوه وَجِلْدُ الْمَيْتَةِ قَبْلَ الدِّبَاغِ او د مردار د څرمنې مشابه شوه د دباغت (رنګ ورکولو) نه وړاندې،

تشريح:- د امام شافعی رحمه الله مسلك ۞ او امام شافعی رحمه الله دا هم ناجائز شمار کړی دی.دوی سوټې په پائخانه باندې او د دباغت نه وړاندې د مردار په څرمن باندې قياس کړې دې.

وَلَنَا أَنَّهُ مُنْتَفَعٌ بِهِ او زمونږ دليل دا دې.چه ددې نه نفع اخستلې شی لِأَنَّهُ يُلْقَى فِي الْأَرَاضِي لِاسْتِكْثَارِ الرِّيعِ ځکه چې دا په زمکو کې اچولې شی.د پيداوار غټولو لپاره فَكَانَ مَالًا نو دا مال شو وَالْمَالُ مَحَلٌّ لِلْبَيْعِ او مال د بيع محل دې.بِخِلَافِ الْعَذِرَةِ په خلاف د پائخانه لِأَنَّهُ لَايُنْتَفَعُ بِهَا إِلَّا مَخْلُوطًا ځکه چې ددې نه نفع اخستلې شی.په داسې حال کې چې دا مخلوط وی وَيَجُوزُ بَيْعُ الْمَخْلُوطِ او د مخلوط بيع جائز دې هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ مُحَمَّدٍ وَهُوَ الصَّحِيحُ هم دا نقل دی د امام محمد رحمه الله نه، او هم دا صحيح ده وَكَذَا يَجُوزُ الْإِنْتِفَاعُ بِالْمَخْلُوطِ لَا بِغَيْرِ الْمَخْلُوطِ فِي الصَّحِيحِ او هم دغه ډول د مخلوط نه نفع اخستل جائز دی.د غير مخلوط نه جائز نه دی.د صحيح قول مطابق «۱»..وَالْمَخْلُوطُ بِمَنْزِلَةِ زَيْتٍ خَالَطَتْهُ النَّجَاسَةُ او مخلوط د زيتون د تيلو پشان دی.چه دې سره نجاست ملاو شوی وی.

حل اللغة ① الاراضی:جمع د ارض،مځکه ② المخلوط:ګډوډ :العذرة:غټ بول ﴾

تشريح:- زمونږ دليل دا دې.چه دا مال دې.او خالص مال دې.چه دا زمکې ته د توان ور کاوه لپاره په مځکه کې اچولې شی.او هرمال محل د بيع دې.په دې وجه به د خاشړو او سوټو وغيره بيع جائز وی.او د پائخانې نه نفع حاصلولې شی.کله چې دا مخلوط وی.او د مخلوط بيع جائز دې.لکه څنګه چې د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.او هم دا صحيح هم دې.او د مخلوط پائخانې حکم داسې دې.لکه چې په د زيتون په تيلو کې نجاست ملاو شوی وی.چه ددې نه نفع اخستل جائز دی.نو ددې بيع به هم جائز وی.

## په معاملاتو کښې د يوسړی قول قبلولې شی په دې قاعده متفرع مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې فرمانيلی دی وَمَنْ عَلِمَ بِجَارِيَةٍ أَنَّهَا لِرَجُلٍ او څوك چې پيژنی يوه وينځه چې دا د فلانی سړی ده فَرَأَى آخَرَ يَبِيعُهَا بيا ئې بل څوك اوکتلو.چه هغه دا (وينځه) خرڅوی وَقَالَ وَكَّلَنِي صَاحِبُهَا بِبَيْعِهَا او هغه اووئيل.چه زه ددې مالك ددې د خرڅولو وکيل جو کړې يم. فَإِنَّهُ يَسَعُهُ أَنْ يَبْتَاعَهَا وَيَطَأَهَا نو ده ته ګنجائش (او اجازت) شته.چه دا واخلی.او ددې سره وطی اوکړی لِأَنَّهُ أَخْبَرَ بِخَبَرٍ صَحِيحٍ لَامُنَازِعَ لَهُ ځکه چې هغه داسې صحيح خبر ورکړې دې.چه ددې هيڅ معارض نشته وَقَوْلُ الْوَاحِدِ فِي الْمُعَامَلَاتِ مَقْبُولٌ عَلَى أَيِّ وَصْفٍ كَانَ لِمَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ او د يوسړی قول په معاملاتو کې قبلولې شی.که په هر صفت سره وی.د هغه دليل په وجه کوم چې وړاندې تير شوې دې «.وَكَذَا إِذَا قَالَ اشْتَرَيْتُهَا مِنْهُ أَوْوَهَبَهَا لِي أَوْتَصَدَّقَ بِهَا عَلَيَّ لِمَا قُلْنَا او هم دغه ډول کله چې ده اووئيل.چه ما دا دده نه اخستې ده.يا هغه دا ما ته هبه کړې ده.يا هغه دا په ما باندې صدقه کړې ده.د هغه دليل په وجه کوم چې مونږ بيان کړې دې

**تشريح:-** وړاندې تير شوي دي.چه په معاملاتو كي د يو سړي قول قبلولې شي.نو دده هوښيار، عاقل كيدل كافي دي.كه دا سړې وي.او كه ښځه وي.مسلمان وي اوكه كافر وي.عادل وي او كه فاسق وي.نو كله نې چې اوكتل.چه زيد په منډئى كي يوه وينځه خرڅوي.او عمرو پيژني چې دا وينځه د خالد ده.خو زيد وائي.چه خالد زه ددې د خرڅولو وكيل جوړ كړې يم.يا وائي.چه ما د خالد نه دا اخستې ده.يا وائي.چه خالد دا ماته هبه كړې ده.يا ني په صدقه كي راكړې ده.نو په دې ټولو صورتونو كي عمرو لپاره جائز ده.چه د زيد په خبره باندې اعتماد اوكړي.او وينځه واخلي.او ددې سره وطي اوكړي.ځكه چې دا خبر وركونكې عقل او دين لري.چه په دې كي دروغ وئيل حرام دي.نو دا خبر صحيح دې.او ددې څه معارض هم نشته.او دا معامله ده.چه په دې كي د يو سړي قول مقبول دې.

**كه ثقه نه وي خو غالب ګمان دده د رشتينوالي وي نو قول به معتبر وي**

وَهٰذَا او دا ( دده قول قبلول) هغه وخت دي إِذَا كَانَ ثِقَةً كله چې دا ثقه وي وَكَذَا إِذَا كَانَ غَيْرَ ثِقَةٍ او هم دغه ډول كله چې دا ثقه نه وي وَأَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ صَادِقٌ او دده غالب ګمان دا وي.چه دې رشتونې دې. لِأَنَّ عَدَالَةَ الْمُخْبِرِ فِي الْمُعَامَلَاتِ غَيْرُ لَازِمَةٍ لِلْحَاجَةِ عَلَى مَا مَرَّ ځكه چې معاملاتو كي د خبر وركونكي عادل كيدل لازم نه دي.د حاجت په وجه، د هغه تفصيل په وجه كوم چې تير شوې دې

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه دا مذكوره تفصيل هغه وخت دې.كله چې خبر وركونكې ثقه وي.اوكه دې ثقه نه وي.خو د عمرو غالب ګمان دا دې.چه زيد رشتونې دې.اوس به هم دده قول قبلولې شي.ځكه دا تير شوي دي.چه په معاملاتو كي د خبر وركونكي عادل كيدل لازم او شرط نه دي.نو توپير دا شو.چه د ثقه كيدو په صورت كي دده قول معتبر دې.او د غيرثقه كيدو په صورت كي د تحري نه روسته ( دده قول معتبر دې) كله چې دده د رشتينوالي غالب ګمان وي.

**كه غالب ګمان دده د دروغجن كيدو وي نو قول به متبر نه وي**

وَإِنْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ كَاذِبٌ اوكه دده غالب ګمان دا وي.چه دې دروغجن دې لَمْ يَسَعْ لَهُ أَنْ يَتَعَرَّضَ لِشَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ نو دده لپاره ګنجائش نشته.چه په دې كي د يو شئ سره تعرض ( اوكار) اوساتي؛ لِأَنَّ أَكْبَرَ الرَّأْيِ يُقَامُ مَقَامَ الْيَقِينِ ځكه چې غالب ګمان د يقين قائم مقام وي.

**تشريح:-** كه خبر وركونكې عادل ثقه نه دې.نو بيا مشتري لپاره د تحري حكم دې.د تحري نه روستو دده غالب ګمان دا شو.چه دې دروغ وائي.نو چونكه ظن غالب د يقين قائم مقام وي.په دې وجه دده لپاره دا جائز نه ده.چه هغه دا وينځه واخلي.او ددې سره وطي اوكړي.

**مشتري لپاره د قبضې والا د قول قبلولو حكم**

وَكَذَا إِذَا لَمْ يَعْلَمْ او هم دغه ډول كله چې ده ته پته نه وي أَنَّهَا لِفُلَانٍ چې دا وينځه د فلانى وَلٰكِنْ أَخْبَرَهُ صَاحِبُ الْيَدِ أَنَّهَا لِفُلَانٍ خو د قبضې والا ده ته خبر وركړو.چه دا د فلانى ده وَأَنَّهُ وَكَّلَهُ بِبَيْعِهَا او هغه دې د خرڅولو وكيل جوړ كړې دې أَوْ اشْتَرَاهَا مِنْهُ يا ده ( يعنى ما) دا د هغه نه اخستې ده وَالْمُخْبِرُ ثِقَةٌ او خبر وركونكې ثقه دې قُبِلَ قَوْلُهُ نو دده قول به قبلولې شى وَإِنْ لَمْ يَكُنْ ثِقَةً او كه ثقه نه وي يُعْتَبَرُ أَكْبَرُ رَأْيِهِ نو د غالب ګمان اعتبار به كولاى شي؛؛ لِأَنَّ إِخْبَارَهُ حُجَّةٌ فِي حَقِّهِ ځكه چې دده خبر وركول پخپل حق كي حجت دې.

**تشريح:-** مشتري ته هيڅ معلومه نه ده.چه وينځه د چا ده.د قبضې والا ( بائع) اووئيل.چه د خالد ده.او هغه زه ددې د خرڅولو وكيل كړې يم.يا ( ني اووئيل چې) ما دا د خالد نه اخستې ده.نوكه خبر وركونكې ثقه دې.نو دده قول به قبلولې شي.اوكه ثقه نه وي.نو د تيرشوي پشان به د غالب ګمان اعتبار كولې شي.

اوكه څوك دا ووايي چې دلته دغالب ګمان اعتبار ولې شوې دې نو ددې ځواب دا دې چې خبر وركونكى



چې د خپل ځان په اړه كي كوم خبر وركړې دې.چه زه ددې مالك نه يم.بلكه ددې مالك خالد دې.دده دا خبر معتبر دې.خو دخالد په اړه كي چې ده كوم خبر وركړو.چه خالد زه ددې د خرڅولو وكيل جوړ كړې يم.نو دا خبر حجت نه دې.په دې وجه موږ د غالب ګمان اعتبار كړې دې.هم دا مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل.چه دده خبر دځان په حق كي حجت دې.

**د مشتري د پيژندلو په صورت كښې د وينځې اخستلو حكم**

وَإِنْ لَمْ يُخْبِرْهُ صَاحِبُ الْيَدِ بِشَيْءٍ اوكه ده ته د قبضې والا هيڅ خبر ورنكړو فَإِنْ كَانَ عَرَفَهَا لِلْأَوَّلِ لَمْ يَشْتَرِهَا نو كه دې دا وينځه پيژني.د ړومبى ( خالد ) دپاره، نو دا دې نه اخلي حَتّٰى يَعْلَمَ انْتِقَالَهَا إِلٰى مِلْكِ الثَّانِي تردې پورې چې ده ته دوهم ملك اړخ ته منتقل كيدل معلوم شي لِأَنَّ يَدَ الْأَوَّلِ دَلِيلُ مِلْكِهِ ځكه چې د ړومبى قبضه دهغه د ملك دليل دې وَإِنْ كَانَ لَا يَعْرِفُ ذٰلِكَ او كه دې دا نه پيژني لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَهَا نو دده لپاره جائز دى.چه دا واخلي وَإِنْ كَانَ ذُو الْيَدِ فَاسِقًا اګرچه د قبضې والا فاسق وي لِأَنَّ يَدَ الْفَاسِقِ دَلِيلُ الْمِلْكِ فِي حَقِّ الْفَاسِقِ وَالْعَدْلِ ځكه چې د فاسق قبضه د ملك دليل دې.د فاسق او عادل په حق كي وَلَمْ يُعَارِضْهُ مُعَارِضٌ او دده هيڅ معارض نشته.؛؛؛ وَلَا مُعْتَبَرَ بِأَكْبَرِ الرَّأْيِ عِنْدَ وُجُودِ الدَّلِيلِ الظَّاهِرِ او د ښكاره دليل موجود كيدو په وخت د غالب ګمان اعتبار نشي كولې

**تشريح:-** بائع هيڅ خبر ورنكړو.خو مشتري ته معلومه ده.چه دا وينځه د خالد ده.نو تركومه پورې چې مشتري ته دا خبره ښكاره نشي.چه خالد له د بائع د اړخه دا وينځه څنګه ( په كوم سبب ) راغله.نو دا دې نه اخلي.ځكه چې هركله په دې باندې مخكې د خالد قبضه وه.نو دا ددې خبرې دليل وو.چه خالد ددې مالك دې.نو د دوهم كس په ملك كي راتګ و لپاره څه سبب پكار دې.اوكه مشتري ته هم معلومه نه وي.او نه بائع خبر وركړې وي.نو مشتري دا اخستلې شي.اګرچه بائع ( قبضې والا) فاسق هم وي.ځكه چې د تصرف كونكى قبضه ددې خبرې دليل دې.چه هم دې ددې مالك دې.كه هغه فاسق وي.اوكه عادل وي.او نه څوك ددې معارض شته.

اوكه څوك دا ووايي چې دلته دغالب ګمان اعتبار ولې شوې دې نو ددې ځواب دا دې چې ددې نه مضبوط دليل، چې ورته دليل ظاهر وائى.هغه موجود دې.يعنى قبضه چې د ملك دليل دې.موجود دې.نو د غالب ګمان به هيڅ اعتبار نه وي.

﴿لأن يد الفاسق.....إلخ﴾ د عبارت نه ښكاره دا معلوميږي.چه هركله د فاسق قبضه ده.نودا دملك دليل دې.كه اخستونكې عادل وي.اوكه فاسق وي.خو دلته د مقام ( او محل) تقاضه دا ده.چه قبضه د فاسق وي اوكه د عادل وي.دا د ملك دليل دې.په دې وجه علامه عينى رحمه الله وئيلي دي.چه عبارت داسې كيدل پكار وو.﴿لأن يد المتصرف دليل الملك فى حق الفاسق والعادل﴾

**كه مبيع داسې څيز وي چه بائع سره ددې كيدل مشكل وي نو نه اخستل مستحب دي**

إِلَّا أَنْ يَكُونَ مِثْلُهُ لَا يَمْلِكُ مِثْلَ ذٰلِكَ خو دا چې دده ( بائع ) پشان ددې په مثل مالك كيداې نشي فَحِينَئِذٍ يُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ يَتَنَزَّهَ نو دغه وخت هغه لپاره مستحب دى. ه ددې نه پرهيز اوكړي وَمَعَ ذٰلِكَ لَوْ اشْتَرَاهَا او كه ددې باوجود نې دا واخستلو ؛؛ يُرْجَى أَنْ يَكُونَ فِي سَعَةٍ مِنْ ذٰلِكَ لِاعْتِمَادِهِ الدَّلِيلَ الشَّرْعِيَّ نو اميد كيداې شي.چه هغه ددې په ګنجائش كي دې.دده د اعتماد په وجه په شرعى دليل باندې.

**تشريح:-** البته كه مبيع داسې وي.چه داسې مبيع كيدل دده لپاره مشكل وي.مثلاً قيمتى غمي دې.چه يو غريب سړې نې خرڅوي.يا څوك جاهل بن جاهل يو عربى كتاب خرڅوي.نو ښكاره دا د غلا دليل دې.نو داسې وخت مستحب دا دى.چه وانخلي.ځكه چې احتياط هم په دې كي دې.البته كه ددې باوجود نې واخستلو.نو په دې كي، د اخستلو ګنجائش شته.ځكه چې ده په دليل شرعى باندې اعتماد اوكړو.او شرعى

دليل قبضه ده.

## د غلام يا وينځې د ورځې خرڅولو په صورت كښې د اخستلو حكم

وَإِنْ كَانَ الَّذِي أَتَاهُ بِهَا عَبْدًا أَوْ أَمَةً كس اوكه وى هغه چا چې ده له ( وينځه يا غلام ) راوستې دې. غلام يا وينځه وى لَمْ يَقْبَلْهَا وَلَمْ يَشْتَرِهَا نو دا به نه قبلوى. او نه به دا اخلى حَتَّى يَسْأَلَ تر دې چې پوښتنه اوكړى لِأَنَّ الْمَمْلُوكَ لَا مِلْكَ لَهُ ( ځكه چې مملوك، دده لپاره هيڅ ملك نشته فَيَعْلَمُ أَنَّ الْمِلْكَ فِيهَا لِغَيْرِهِ نو دا خبره معلومه شوه. چه ملك په دې كې دده نه د علاوه دې فَإِنْ أَخْبَرَهُ أَنَّ مَوْلَاهُ أَذِنَ لَهُ نوكه ده ته هغه ( غلام يا وينځې) خبر وركړو. چه دده مولا ده ته ددې اجازت وركړې دې وَهُوَ ثِقَةٌ او هغه ثقه وى قُبِلَ نو ( دا قول) قبول دې وَإِنْ لَمْ يَكُنْ ثِقَةً اوكه ثقه نه وى يُعْتَبَرُ أَكْبَرُ الرَّأْيِ نو د غالب گمان اعتبار به كولاى شى وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ رَأْيٌ اوكه دده هيڅ رائې نه وى لَمْ يَشْتَرِهَا لِقِيَامِ الْحَاجِرِ فَلَا بُدَّ مِنْ دَلِيلٍ نو دا دې نه اخلى. د مانع قائم كيدو په وجه، نو د يو دليل كيدل ضروري دى.

حل اللغة ① الحاجر: مانع، ركاوټ

تشريح:- يو غلام يا وينځه د خرڅولو لپاره وينځه راوړى. نو دا خبره ښكاره ده. چه مملوك خو ددې وينځې مالك نشى كيدې. بلكه دا د بل چا ملكيت دې. نو د تحقيق نه بغير به هيڅ تصرف نشى كولې. نو دا دې نه اخلى. او نه دې د تحقيق نه بغير هديه كې قبلوى. البته په پوښتنه كولو، كه ده اووئيل. چه زما مولا ما ته ددې تصرف اجازت راكړې دې. او خبر وركونكې ثقه دې. نو دده قول په قبول وى. اوكه ثقه نه وى. نو د غالب گمان اعتبار به كولې شى. اوكه د مشترى هيڅ رائې مقرر شوې نه ده. بلكه سراسر شك او وهم دې. نو بيا دې نه اخلى. ځكه چې مانع موجود دې. او هغه د بائع غلام كيدل دى. نو تركومه پورې چې هيڅ دليل ملاو نشى. نه دې اخلى. او دليل د غريب د ثقه كيدو په صورت كې دده خبر دې. او د ثقه نه كيدو په صورت كې ظن غالب دې.

## د غائب ميړه د مړ كيدو خبر، يا دهغه د اړخه د طلاق خبر، يا د طلاق تحرير پيش كولو مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير كې فرمائيلى دى وَلَوْ أَنَّ امْرَأَةً أَخْبَرَهَا ثِقَةٌ أَنَّ زَوْجَهَا الْغَائِبَ مَاتَ عَنْهَا كه يوې ښځې ته يو ثقه خبر وركړو. چه ددې غائب ميړه مړ شو أَوْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا يا نې دې ته درې طلاقونه وركړى دى، أَوْ كَانَ غَيْرَ ثِقَةٍ يا هغه غيرثقه وى وَأَتَاهَا بِكِتَابٍ مِنْ زَوْجِهَا بِالطَّلَاقِ او هغه دې له د ميړه خط د طلاق په سلسله كې راوړو (طلاق نامه)، وَلَا تَدْرِي أَنَّهُ كِتَابُهُ أَمْ لَا او ښځه نه پوهيږى چې دا دهغه ( ددې دخاوند) خط دې اوكه نه دې، إِلَّا أَنَّ أَكْبَرَ رَأْيِهَا أَنَّهُ حَقٌّ خو ددې غالب گمان دا دې. چه دا رشتيا دى يَعْنِي بَعْدَ التَّحَرِّي. يعنى د تحرى نه روسته فَلَا بَأْسَ بِأَنْ تَعْتَدَّ نو هيڅ باك نشته. چه دا ښځه عدت تير كړى ثُمَّ تَتَزَوَّجَ. بيا نكاح اوكړى لِأَنَّ الْقَاطِعَ طَارِئٌ ځكه چې نكاح قاطع طارى دې، وَلَا مُنَازِعَ. او هيڅ معارض نشته.

حل اللغة ① ثقة: قابل اعتماد ② زوج: خاوند ③ منازع: جګړه كونكې ④ طارئ: عارضى

تشريح:- د يوې ښځې ميړه غائب دې. يو ثقه هغې ته خبر وركړو. چه ستا ميړه وفات شو. يا هغه تا ته درې طلاقونه دركړل. يا هغه پخپله ثقه نه دې. خو هغه د ميړه د اړخه د طلاق نامې خط ښځې ته پيش كړو. او ښځه دا نه پوهيږى. چه دا دهغه خط دې. اوكه نه دې. خو د تحرى نه روستو ددې ظن غالب دا شو. چه خبر وركونكې رشتونې دې. نو ددې لپاره جائز دى. چه د هغه په خبره اعتماد اوكړى. او عدت تير كړى. او خپله دويمه نكاح اوكړى. ولې؟ ځكه چې دهغه د خبرې څوك معارض نشته. او دا قاطع طارى دې. مقارن نه دې.

قوله لان القاطع زده كړه دا خبره چې قاطع په دوې (دوه) قسمه وى ① طارى ② مقارن،ـ د طارى مطلب دا دې. چه دا قاطع ( ختمونكې) د مخكې نه نه دې. روستو پيدا شوې دې. او د مقارن مطلب دا دې. چه قاطع د عقد د مخكې نه موجود دې. گويا عقد د سره فاسد دې. او اصول دا مقرر دې. چه په قاطع طارى كې د يو ثقه



قول معتبر وى. يا د غيرثقه معتبر وى. كله چې غالب گمان سره دده تائيد اوشى. او په قاطع مقارن كې نصاب د شهادت سره د عادل كيدو ضرورى دى. گنى د يو سړى قول به په دې كې معتبر نه وى.

## د ښځې وينا چې ميړه طلاق راكړې دې او عدت تير شوې دې نو د نكاح حكم

وَكَذَا لَوْ قَالَتْ او هم دغه ډول كه ښځې اووئيل. لِرَجُلٍ طَلَّقَنِي زَوْجِي يو سړى ته، چې زما ميړه ماته طلاق راكړو وَانْقَضَتْ عِدَّتِي او زما عدت تير شو فَلَا بَأْسَ نو هيڅ باك نشته أَنْ يَتَزَوَّجَهَا. چه هغه دده سره نكاح اوكړى.

تشريح:- ځكه چې هيڅ معارض نشته. خو ددې دا حكم هغه وخت دې. كله چې دده ظن غالب دا وى. چه دا رشتونې ده. ( محمد يوسف غفرله)

## د ښځې د قول چې معارض نه وى نو ددې حكم

وَكَذَا إِذَا قَالَتِ الْمُطَلَّقَةُ الثَّلَاثَ او هم دغه ډول كله چې مطلقه ثلاثه اووئيل انْقَضَتْ عِدَّتِي. چه زما عدت تير شو وَتَزَوَّجْتُ بِزَوْجٍ آخَرَ او ما د دوهم ميړه سره نكاح اوكړله وَدَخَلَ بِي او هغه زما سره دخول اوكړو ثُمَّ طَلَّقَنِي وَانْقَضَتْ عِدَّتِي بيا ئې ماته طلاق راكړو. او زما عدت تير شو، فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَتَزَوَّجَهَا الزَّوْجُ الْأَوَّلُ نو هيڅ باك نشته. چه ددې سره ړومبې ميړه نكاح اوكړى.

تشريح:- ځكه چې دلته هم ددې د خبر هيڅ معارض، او مقابل نشته.

وَكَذَا لَوْ قَالَتْ جَارِيَةٌ او هم دغه ډول كه وينځې اووئيل كُنْتُ أَمَةً لِفُلَانٍ چې زه د فلانى وينځه ووم فَأَعْتَقَنِي هغه زه آزاده كړم، لِأَنَّ الْقَاطِعَ طَارِئٌ ځكه چې قاطع د غلامئ طارى دې.

تشريح:- وينځه وائى. چه زه د فلانى وينځه ووم. خو هغه زه آزاده كړم. نو ددې قول به معتبر وى. او ددې سره نكاح كول به جائز وى. ځكه چې دلته قاطع د غلامئ طارى دې. مقارن نه دې. او ددې حكم وړاندې معلوم شوې دې.

## ميړه ته ددې خبر وركولو حكم چې دده ښځه دده رضاعى خور ده

وَلَوْ أَخْبَرَهَا مُخْبِرٌ أَنَّ أَصْلَ النِّكَاحِ كَانَ فَاسِدًا او كه يوې ښځې ته يو خبر وركونكى خبر وركړو. چه اصل نكاح فاسد وه أَوْ كَانَ الزَّوْجُ حِينَ تَزَوَّجَهَا مُرْتَدًّا يا ميړه مرتد وو. كله چې هغه ددې سره نكاح كړې وه أَوْ أَخَاهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ يا ددې رضاعى رور وو لَمْ يُقْبَلْ قَوْلُهُ نو د خبر وركونكى قول به نشى قبلولې حَتَّى يَشْهَدَ بِذَلِكَ رَجُلَانِ أَوْ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ تردې چې ددې دوې (دوه) سړى يا يو سړې او دوې (دوه) ښځې گواهى وركړى وَكَذَا إِذَا أَخْبَرَهُ مُخْبِرٌ أَنَّكَ تَزَوَّجْتَهَا او هم دغه ډول ( حكم دې). كله چې سړى ته چا خبر وركړو. چه تا ددې ښځې سره نكاح كړې وه وَهِيَ مُرْتَدَّةٌ حالانكه دا مرتده وه أَوْ أُخْتُكَ مِنَ الرَّضَاعَةِ يا ستا رضاعى خور وه لَمْ يَتَزَوَّجْ بِأُخْتِهَا نو سړې به نكاح نه كوى. ددې د خور سره أَوْ أَرْبَعٍ سِوَاهَا او نه څلورو سره ددې نه علاوه سره، ( يعنى ددې قول به قبول نه وى). حَتَّى يَشْهَدَ بِذَلِكَ عَدْلَانِ تردې چې شهادت وركړى. ددې دوې (دوه) عادلان لِأَنَّهُ أَخْبَرَ بِفَسَادٍ مُقَارِنٍ ځكه چې ده د فساد مقارن خبر وركړو وَالْإِقْدَامُ عَلَى الْعَقْدِ او په عقد باندې اقدام ددې په صحت باندې يَدُلُّ عَلَى صِحَّتِهِ وَإِنْكَارِ فَسَادِهِ، او ددې د فساد په انكار باندې دلالت كوى. فَثَبَتَ الْمُنَازِعُ بِالظَّاهِرِ نو په ښكاره طور به منازع ( مقابل) ثابت وى.

حل اللغة ① اخ: ورور ② مقارن: مولبنتى (پيوست) ③ المنازع: جګړه كونكې، فريق دوم

تشريح:- په دې ټولو صورتونو كې قاطع د نكاح طارى نه دې. بلكه قاطع مقارن دې. چه ددې اصول تير شوې دې. يعنى په دې كې نصاب د شهادت سره د عادل كيدو شرط دې. نو تركومه پورې چې دوې (دوه) عادلان سړى يا يو عادل سړې او دوې (دوه) عادلانې ښځې په دې خبره گواهى ورنكړى. تر هغه وخته پورې به ددوى

قول قبول نه وی.او نه به دې قول اړخ ته توجه كولې شی.او دلته منازع او معارض هم موجود دې.ځكه كه داسې خبره وې.نو په نكاح باندې به اقدام څنګه كيداې شو.بلكه دا اقدام ( نكاح كول) په دې خبره دلالت كوی.چه نكاح صحيح ده.او فساد منتفی دې.او خبر وركونكی دا وئيل غواړی.چه د سره فساد دې.يعنی فساد مقارن دې.نو نصاب د شهادت سره د عال كيدو نه شرط دې.

**قوله لم يتزوّج باختها..... الخ** ځكه كه د خبر وركونكی خبره معتبر وې.نو نكاح به د سره ختميدله.بيا به ددې د خور سره نكاح كاوه كي هيڅ باك نه وې.دغه ډول كه خبر معتبر وې.نو ددې نه علاوه څلورو سره نكاح به جائز وې.خو ( دا خبر) معتبر نه دې.نو ددې نه علاوه څلورو سره نكاح نشی كولې.بلكه دريو سره كولې شی.

## ميړه ته ددې خبر وركولو حكم چې دده ښځه دده رضاعی خور ده

| |
|---|
| بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الْمَنْكُوحَةُ صَغِيرَةً په خلاف ددې صورت كله چې منكوحه ماشومه وی فَأَخْبَرَ الزَّوْجَ أَنَّهَا ارْتَضَعَتْ مِنْ أُمِّهِ أَوْ أُخْتِهِ نو ميړه ته خبر وركړې شو.چه دې ( منكوحې ماشومې) شيدې څكلی دی.دده (خاوند) د مور، يا خور حَيْثُ يُقْبَلُ قَوْلُ الْوَاحِدِ فِيهِ نو په دې كي به د يوكس قول قبلولې شی ،لِأَنَّ الْقَاطِعَ طَارِئٌ ځكه چې قاطع د نكاح طاری دی ،وَالْإِقْدَامُ الْأَوَّلُ لَا يَدُلُّ عَلَى انْعِدَامِهِ او مخكنې اقدام په پيو نه ور كاوه باندې دلالت نه كوی فَلَمْ يَثْبُتِ الْمُنَازِعُ نو منازع ثابت نشو فَافْتَرَقَا نو دا دواړه جلا جلا شو ،وَعَلَى هَذَا الْحَرْفِ يَدُورُ الْفَرْقُ او هم په دې نكته به توپير دائر كولې شی. |

**تشريح:-** د يو سړی منكوحه شيدې څكونكی ماشومه ده. ميړه ته يو كس خبر وركړو.چه ستا ښځې ستا د مور يا خور شيدې څكلی دی.نو په دې كي به د يوكس قول معتبر وی.ځكه چې دلته قاطع د نكاح طاری دی.او په ړومبی صورت كي مقارن دې.،،كما هو ظاهر،، نو دلته هيڅ معارض او مقابل نشته.په خلاف د ړومبی صورت، چې هلته معارض موجود وو.او دلته په عقد د نكاح باندې وړاندې كيدل هم د پيو نه ښنلو دليل نه دې.ځكه چې دا خو روستو په وجود كي راغلی دی.د نكاح په وخت شيدې وركول نه وو.بيا چرته چې قاطع طاری وی.په دې كي به د يو قول معتبر وی.او چرته چې مقارن وی.په دې كي نصاب د شهادت لازمی دې.هم دا مرغينانی رحمه الله په ﴿و على هذا الحرف يدور الفرق﴾ سره تعبير كړې دې.

## د ماشومې وينځې غټيدو نه روسته د ازادئ دعوه كول

| |
|---|
| وَلَوْ كَانَتْ جَارِيَةً صَغِيرَةً او كه وړه ( ماشومه) وينځه داسې وی لَا تُعَبِّرُ عَنْ نَفْسِهَا فِي يَدِ رَجُلٍ چې دا د خپل نفس نه تعبير نشی كولې.د يو سړی په قبضه كي وی يَدَّعِي أَنَّهَا لَهُ چې هغه دا دعوه كوی.چه دا وينځه ده فَلَمَّا كَبُرَتْ نو كله چې دا وينځه غټه شوه لَقِيَهَا رَجُلٌ فِي بَلَدٍ آخَرَ نو هغې ته يو سړې ملاو شو.په بل ښار كي فَقَالَتْ أَنَا حُرَّةُ الْأَصْلِ نو دې اووئيل.چه زه د اصل نه آزاده يم لَمْ يَسَعْهُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا نو دغه سړی ته دا ګنجائش نشته.چه هغه ددې سره نكاح اوكړی لِتَحَقُّقِ الْمُنَازِعِ.د مقابل متحقق كيدو په وجه وَهُوَ ذُو الْيَدِ او هغه قبضې والا دې بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ.په خلاف دهغه صورت كوم چې وړاندې تير ش. |

**تشريح:-** كه د يوكس د قول معارض وی.نو دا قول به قبول نه وی.نو يوه داسې وړه وينځه د يوكس په قبضه كي ده.چه دا وينځه د خپل نفس وضاحت نشی كولې.او دا سړې وائی.چه دا زما وينځه ده.بيا هركله چې دا وينځه غټه شوه.نو يو سړې په بل ښار كي ملاو شو.او دې وينځه هغه ته اووئيل.چه زه خو د مخكې نه (په اصل كي) آزاده يم.نو ددې وينځې قول به معتبر نه وی.ځكه چې قبضه او ( د قبضې والا) قول ددې معارض موجود دې.( په خلاف د تير شوی صورت)،او كله چې وينځې اووئيل.چه زه د فلانی وينځه ووم.هغه زه آزاده كړم.نو ددې قول به قبلولې شی.ځكه چې هيڅ معارض موجود نه دې.او دلته معارض موجود دې.نو په دې دواړو مسئلو كي توپير واضح شو.



## شراب د مسلمانو په حق كښې مال متقوم نه دې او ذميانو په حق كښې دې متفرع مسئله

| |
|---|
| قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي فرمائيلی دی وَإِذَا بَاعَ الْمُسْلِمُ خَمْرًا او كله چې مسلمان شراب خرڅ كړل وَأَخَذَ ثَمَنَهَا او ددې ثمن ئې واخستل وَعَلَيْهِ دَيْنٌ او په ده باندې پور شته فَإِنَّهُ يُكْرَهُ لِصَاحِبِ الدَّيْنِ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ نو د پور والا ( قرضخواه) لپاره مكروه دی.چه دده نه دا واخلی وَإِنْ كَانَ الْبَائِعُ نَصْرَانِيًّا او كه بائع نصرانی وی فَلَا بَأْسَ بِهِ نو په دې كي هيڅ باك نشته ،وَالْفَرْقُ أَنَّ الْبَيْعَ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ قَدْ بَطَلَ او توپير دا دې.چه بيع په ړومبی صورت كي باطل شوه ،لِأَنَّ الْخَمْرَ لَيْسَ بِمَالٍ مُتَقَوِّمٍ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ ځكه چې شراب د مسلمان په حق كي مال متقوم نه دې فَبَقِيَ الثَّمَنُ عَلَى مِلْكِ الْمُشْتَرِي نو ثمن د مشتری په ملك باندې پاته پاتې شو فَلَا يَحِلُّ أَخْذُهُ مِنَ الْبَائِعِ نو بائع نه ددې اخستل حلال نه دی وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي صَحَّ الْبَيْعُ او په دوهم صورت كي بيع صحيح ده ،لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ فِي حَقِّ الذِّمِّيِّ ځكه چې دا د ذمی په حق كي مال متقوم دې فَمَلَكَهُ الْبَائِعُ نو بائع ددې مالك شو .فَيَحِلُّ الْأَخْذُ مِنْهُ نو دده نه اخستل حلال شو. |

**تشريح:-** د مسلمان په حق كي شراب مال متقوم نه دې.او د ذميانو په حق كي مال متقوم دې.نو كه د يو مسلمان په چا باندې پور وی.او هغه شراب خرڅ كړی.او دده پور ادا كوی.نو اوس دوې (دوه) صورتونه دی.① دا بائع مسلمان دې. ② اوكه ذمی دې_ كه ذمی دې.نو چونكه هغه ددې مالك شوې دې.نو هغه ته اخستلو كي هيڅ باك نشته.اوكه مسلمان دې.نو اخستل حلال نه دی.ځكه چې مسلمان پخپله ددې مالك نه دې جوړ شوې.بلكه ددې مالك خو مشتری دې.په دې وجه اخستل حلال نه دی.

## په غله او د څاروو په خوراكه كښې د احتكار( ستور كولو) حكم

| |
|---|
| قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَيُكْرَهُ الِاحْتِكَارُ فِي أَقْوَاتِ الْآدَمِيِّينَ وَالْبَهَائِمِ احتكار ( غله د ګران والی په انتظار كي جمع ساتل) مكروه دی.د انسانانو په غذاګانو كي ، او د څاروو په غذاګانو كي إِذَا كَانَ ذَلِكَ فِي بَلَدٍ يَضُرُّ الِاحْتِكَارُ بِأَهْلِهِ كله چې دا په داسې ښار كي وی.چه احتكار ددې د اوسيدونكو لپاره مضر وی وَكَذَلِكَ التَّلَقِّي او هم دغه ډول تلقی ( مكروه تحريمی دې)، فَأَمَّا إِذَا كَانَ لَا يَضُرُّ نو بهرحال كله چې احتكار مضر نه وی فَلَا بَأْسَ بِهِ نو په دې كي هيڅ باك نشته وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او دليل په دې كي د نبی كريم ﷺ فرمان دې الْجَالِبُ مَرْزُوقٌ چې جالب ( د بهر نه غله راوړونكې او په ښار كي خرڅونكی) مرزوق دې. وَالْمُحْتَكِرُ مَلْعُونٌ (')او محتكر ( جمع ساتونكې) ملعون دې. |

**حل اللغة:** ① **الاحتكار:** د ګران والی لپاره غله ذخيره كول ② **بلد:** ښار③ **التلقی:** د ښار نه بهر د هغه قافلې خلګ ول سره ملاويدل كوم خلګ چې غله او ميوې ښاريو ته راوړی.او هغوی ( د ښار سوداګر) د ښار نه بهر دا غله واخلی.

**تشريح:-** د مذكوره حديث په ابن ماجه كي دې.چه په دې كي د جالب نه مراد هغه سړې دې.كوم چې د بهر نه غله واخلی.او ښار ته ئې راوړی.او خرڅه ئې كړی.نو دا مرزوق دې.ځكه چې خلګو ته په دې سره نفع رسيږی.هغه ته به د مسلمانانو د دعا بركات رسيږی.او محتكر هغه دې.كوم كس چې غله ددې لپاره اخلی.چه دا به ځان سره جمع ساتم.( يعنی ستهور كوم)او په دې سره خلګو ته ضرر رسيږی.

ملعون په دوې (دوه) قسمه وی① د الله تعالی د رحمت نه لرې كيدل.او دا ډول صرف كافرانو سره خاص

---

(') من حديث عمربن الخطاب رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه فی التجارات باب ۶ رقم ۲۱۵۳) ومسلم فی التوبة رقم ۵۳ وأبوداود فی الجهاد باب ۱۶ وأحمد فی المسند(۴۵۹\۳)_

دي.⑥ د نیکانو او صالحانو د مرتبې نه لرې کیدل،او دلته هم دا معنی مراد ده.ځکه چې د حق پرستو په
نیز بنده د ګناه کبیره په وجه د ایمان نه نه خارجیږي.

وَلِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْعَامَّةِ او ځکه چې دې غذاګانو سره د عامو خلګو حق متعلق شوې دې وَفِي الِامْتِنَاعِ عَنِ الْبَيْعِ
إِبْطَالُ حَقِّهِمْ وَتَضْيِيقُ الْأَمْرِ عَلَيْهِمْ او د خرڅولو نه په منع کاوه کې د هغوی د حق باطلول،او هغوی باندې
معامله تنګول دي فَيُكْرَهُ نو دا مکروه دې إِذَا كَانَ يَضُرُّ بِهِمْ ذَلِكَ.کله چې دا ددوی لپاره مضر وي ،بِأَنْ
كَانَتِ الْبَلْدَةُ صَغِيرَةً په دې طریقه چې ښار وړوکې وي بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَضُرَّ بِأَنْ كَانَ الْمِصْرُ كَبِيرًا په خلاف ددې
صورت کله چې مضر نه وي.په دې طریقه چې ښار لوئې وي ،لِأَنَّهُ حَابِسٌ مِلْكَهُ ځکه چې دې خپل ملك منع
کونکې دې ،مِنْ غَيْرِ إِضْرَارٍ بِغَيْرِهِ د خان نه علاوه ته د نقصان رسولو نه بغیر.

حل اللغة:① الامتناع: منع کول ② ابطال: باطلول ③ حابس: بندونکې

تشریح:- دوهم عقلی دلیل دا دې دې چې دې سره د خلګو حق متعلق شوې دې.نو ددې په نه خرڅولو سره د
عوامو حق باطلول او دوی پریشانه کول دي.نو د ضرر په صورت کې دا مکروه دي.اوکه په څه وجه ضرر نه
متعلق کیږي.نو مکروه نه دې.ځکه چې مالك خپل ملکیت منع کړې ( او جمع ساتلې) دې.چه ددې هغه ته
حق شته.او چاته د نقصان رسولو نه بغیر ئې منع کړې دې.یاد ساتئ چې احتکار چې کله د ښار د خلګو
لپاره مضر وي.نو مکروه تحریمی دې.اوکه د ښار خلګو له مضر نه وي.نو مکروه نه دې.

### د تلقي جلب حکم

وَكَذَلِكَ التَّلَقِّي عَلَى هَذَا التَّفْصِيلِ او هم دغه ډول تلقی په دې تفصیل باندې ( مکروه) دې لِأَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهَى
عَنْ تَلَقِّي الْجَلَبِ (١) وَعَنْ تَلَقِّي الرُّكْبَانِ (٢) ځکه چې نبی کریم ﷺ د تلقی جلب او قافلې سره د ملاویدو نه منع
فرمائیلې ده قَالُوا مشائخو فرمائیلی دي هَذَا إِذَا دا هغه وخت دې لَمْ يُلَبِّسِ الْمُتَلَقِّي عَلَى التُّجَّارِ سِعْرَ الْبَلْدَةِ..کله
چې متلقی په سوداګرو باندې د ښار نرخ پټ نه کې (نکړي) فَإِنْ لَبَّسَ فَهُوَ مَكْرُوهٌ نوکه ده پټ اوساتلو.نو دا
مکروه ده فِي الْوَجْهَيْنِ په دواړه صورتونو کې .،لِأَنَّهُ غَادِرٌ بِهِمْ ځکه چې دا دوی ته دهوکه ورکول دي.

تشریح:- په احتکار کې چې کوم تفصیل دې.هم هغه په تلقی جلب کې هم دې.که دا تلقی دښار خلګو لپاره
مضر وي.نو مکروه دې.ګنی ( که مضر نه وي نو مکروه) نه دې.او د کراهت دلیل دا حدیث دې.کوم چې
دلته ذکردې.مشائخو فرمائیلی دي.چه دا مذکوره تفصیل هغه وخت دې.کله چې متلقی په سوداګرو باندې
د ښار نرخ پټ اونه ساتی.اوکه نرخ یو وي.او دوی دهوکه ورکړي.او کم نرخ کې ئې واخلی.نو دا په هر صورت
مکروه دې.ځکه چې اوس متلقی دهوکه باز دې.
مرغینانی رحمه الله چه کوم حدیث نقل کړې دې.دا په اصل کې دوې (دوه) حدیثونه دي.رومبې حدیث «نهی عن
تلق الجلب» دا جلا دې.چه ددې تخریج مسلم کړې ده.او «نهی عن تلق الرکبان» جدا دې.دا متفق علیه
دې.او مطلب د دواړو یو دې.

### احتکار په کومو څیزونو کښې جائز دې ؟

---

(١) - من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه مسلم فى البيوع رقم ١٦) حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه مسلم فى البيوع رقم ١٧)_

(٢) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه مسلم فى البيوع رقم ١٧)_



وَتَخْصِيصُ الِاحْتِكَارِ بِالْأَقْوَاتِ كَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالتِّبْنِ وَالْقَتِّ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ (١) او احتکار خاص کول غذاګانو سره
لکه غنم، او اوربشې او بوسه او قروت( اسپست، دا) د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ كُلُّ مَا
أَضَرَّ بِالْعَامَّةِ حَبْسُهُ فَهُوَ احْتِكَارٌ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دي.هرهغه شئ چې د هغې منع کول عوامو لپاره مضر
وي.هغه احتکار دې وَإِنْ كَانَ ذَهَبًا أَوْ فِضَّةً أَوْ ثَوْبًا اګرچه دا سره زر وي.یا سپین زر یا کپړه وي وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ
قَالَ لَا احْتِكَارَ فِي الثِّيَابِ او د امام محمد رحمه الله نه نقل دي.دوی فرمائیلی دي.چه کپړو کې احتکار نشته فَأَبُو
يُوسُفَ اعْتَبَرَ حَقِيقَةَ الضَّرَرِ د حقیقی ضرر اعتبار کړې دې إِذْ هُوَ الْمُؤَثِّرُ فِي الْكَرَاهَةِ ځکه چې کراهت کې هم دا موثر دې
وَأَبُو حَنِيفَةَ اعْتَبَرَ الضَّرَرَ او امام ابوحنیفه رحمه الله د هغه ضرر معتبر کړې دې ،الْمَعْهُودَ الْمُتَعَارَفَ.کوم چې عادت او
مشهور وي.

حل اللغة:① الاقوات: غزائی شیان ② الحنطة: غنم ③ الشعير: اوربشه ④ التبن: بوسه ⑤ الثياب: جمع د ثوب
کالی ⑥ المعهود: مقرر،معلوم

تشریح:- احتکار صرف د انسانانو او څناورو په غذا کې کیږي.دا د امام صاحب رحمه الله فرمان دې.او د امام
ابویوسف رحمه الله فرمان دا دې.چه د کوم شئ په منع کاوه سره هم عوام ته ضرر ملاویږي.نو دا احتکار دې.که
هغه هر یو وي.د امام محمد رحمه الله فرمان دا دې.چه په کپړوکې احتکار نشته.ځکه چې د بدن توان په غذا سره
دې.کپړو سره نه دې. لنډیز د کلام دا چې امام ابویوسف رحمه الله د حقیقی ضرر اعتبار کړې دې.که په هر یو شئ
کې وي.او امام صاحب د عادت او رواج اعتبار کړې دې.او ضرر د عادت او رواج غذاګانو په منع کاوه کې
دې.

### د احتکار متحقق کیدو لپاره څومره موده شرط ده؟

ثُمَّ الْمُدَّةُ إِذَا قَصُرَتْ بیا موده کله چې کمه وي لَا يَكُونُ احْتِكَارًا لِعَدَمِ الضَّرَرِ نو احتکار به نه وي.د ضرر نه کیدو په
وجه وَإِذَا طَالَتْ او کله چې موده اوږده وي يَكُونُ احْتِكَارًا مَكْرُوهًا لِتَحَقُّقِ الضَّرَرِ نو دا احتکار به مکروه وي.د
ضرر متحقق کیدو په وجه،

تشریح:- که د یو څو ورځو لپاره ئې غله اوساتله.نو دې ته به احتکار نشي وئیلې.ځکه چې یو څو ورځې په
تللو او نرخ وغیره کاوه کې هم خرچ کیږي.اوکه زیاتې مودې پورې ئې اوساتلو.نو مکروه به وي.او دې ته به
احتکار وئیلې شي.بیا سوال کیږي.چه څومره موده به اوږده او څومره به کمه شمارلې کیږي.نو فرمایي چې

### د مودې په اوږدوالي کښې او کموالي کښې اقوال فقهاء

ثُمَّ قِيلَ: هِيَ مُقَدَّرَةٌ بِأَرْبَعِينَ يَوْمًا لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بیا وئیلی شوي دي.چه اوږده موده څلوېښت ورځو سره
مقدر ده.د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه مَنِ احْتَكَرَ طَعَامًا أَرْبَعِينَ لَيْلَةً چې چا څلوېښتو شپو پورې غله اوساتله
فَقَدْ بَرِئَ مِنَ اللَّهِ وَبَرِئَ اللَّهُ مِنْهُ (٢) نو هغه د الله تعالی نه برې شو وَقِيلَ بِالشَّهْرِ او وئیلی شوي دي.چه اوږده موده یو
میاشت سره اندازه شوې ده لِأَنَّ مَا دُونَهُ قَلِيلٌ عَاجِلٌ ځکه چې کوم مقدار د یو میاشت نه کم وي.هغه قلیل
او عاجل دې ،وَالشَّهْرُ وَمَا فَوْقَهُ كَثِيرٌ آجِلٌ او یوه میاشت او ددې نه زیاته کثیر او اجل دې ،وَقَدْ مَرَّ فِي غَيْرِ مَوْضِعٍ او دا
تیر شوي دي.په ډیرو ځایونو کې.

---

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى الكفاية (٤٩١١٨) وردالمحتار (٢٨٢١٥) نقلاً عن القول الراجح
(٣٠٤١٢)-

(٢) - من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخارى فى البيوع باب ٦٨ رقم ٢١٥٨ ومسلم فى البيوع رقم ١١)

تشریح:- بعضو حضراتو اوګده موده څلویښت ورځې شمار کړي دي.او بعضو حضراتو یوه میاشت (اوګده موده شمار کړې ده).د یوې میاشتې خبره په مختلفو ځایونو کې تیره شوې ده.او د څلویښتو ورځو خبره د مذکوره حدیث نه ثابت شوې ده.چه په دې کې د څلویښتو ورځو پورې د غلې ساتلو (او احتکار کولو) ممانعت دې.او دا امام احمد وغیره روایت کړې دې.

**احتکار کونکې به کله ګنهګار وي؟**

يَقَعُ التَّفَاوُتُ فِي الْمَأْثَمِ بَيْنَ أَنْ يَتَرَبَّصَ الْعِزَّةَ وَبَيْنَ أَنْ يَتَرَبَّصَ الْ کاختی (قحط) وَالْعِيَاذُ بِاللّٰهِ او په ګناه کې به تفاوت واقع کیږي.ددې په منځ کې چې دې د ګرانوالي انتظار اوکړي.،والعیاذ بالله،،او ددې په منځ کې چې د کاختی (قحط) انتظار اوکړي.،،والعیاذ بالله وَقِيلَ او وئیلې شوي دي الْمُدَّةُ لِلْمُعَاقَبَةِ فِي الدُّنْيَا چه موده خو په دنیاکې د سزا ور کاوه لپاره ده وَأَمَّا يَأْثَمُ بهرحال دې به ګنهګار وي وَإِنْ قَلَّتِ الْمُدَّةُ اګرچه موده کمه وي..وَالْحَاصِلُ أَنَّ التِّجَارَةَ فِي الطَّعَامِ غَيْرُ مَحْمُودَةٍ او حاصل دا دې.چه د غلې تجارت خوښ عمل نه دې

حل اللغة: ① التاثم: ګناه ② یتربص: انتظار کوي ③ المعاقبة: عذاب﴾

تشریح:- کوم کس چې غله ددې لپاره بنده ساتي.چه ګراني شي.نو بیا به ئې راوباسم.او کوم کس ئې چې ددې لپاره بنده ساتي.چه کله کاختی (قحط) شي.نو هغه وخت به ئې راوباسم.چه زیاته فائده حاصله کړم.نو دواړه ګنهګار دي.خو دوهم زیات ګنهګار دې.او بعضو حضراتو وئیلي دي.چه موده صرف ددې لپاره ده.چه په دې موده کې ده ته سزا ورکړې شي.پاتې شوه مسئله د ګناه، نو دا په هرحال کې ده.او ددې حاصل دا شو.چه دغلې تجارت خوښ عمل نه دې.

① مسئله: د طرفینو رحمهما الله په نیز احتکار غذاګانو سره مقید دې.او هم په دې فتوی ده. ﴿شامي ص:۲۵۵،ج۵﴾

② مسئله: د غلې تجارت هغه وخت خوښ عمل نه دې.کله چې ددې اراده د احتکار وي.کله چې د احتکار اراده نه وي.نو خوښ عمل دې.ځکه چې کاسب (کارکونکې) د الله دوست دې. ﴿سکب الانهر ص:۴۷۸،ج۲﴾

③ مسئله: احتکار هغه وخت مکروه دې.کله چې دا دعوام لپاره مضر وي.،، و به یفتی.،، ﴿کذا في سکب الانهر ص:۴۷۷،ج۲﴾

**د خپلې زمکې د غلې احتکار کولو حکم**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَمَنِ احْتَكَرَ غَلَّةَ ضَيْعَتِهِ او چا چې د خپلې زمکې غله بنده اوساتله أَوْ مَا جَلَبَهُ مِنْ بَلَدٍ آخَرَ یا کومه غله چې ده دبل ښار نه راوړلې ده.(او هغه ئې بنده اوساتله). فَلَيْسَ بِمُحْتَكِرٍ نو دې محتکر (جمع کونکې نه دې .أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّهِ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ حَقُّ الْعَامَّةِ بهرحال ځکه چې دا خالص دده حق دې.چه ددې سره د عامو خلګو حق نه متعلق کیږي، أَلَا تَرَى أَنَّ لَهُ أَنْ لَا يَزْرَعَ آیا تاسو نه ګورئ چه دده لپاره حق شته.چه دې پخپله مځکه کې کرونده اونکړي، فَكَذٰلِكَ لَهُ أَنْ لَا يَبِيعَ نو دغه ډول دده لپاره حق شته.چه (غله هم) خرڅه نکړي.

حل اللغة: ① ضیعة: مځکه ② بلد: ښار﴾

تشریح:- کوم کس چې دخپلې زمکې غله بنده اوساتي.نو دې به احتکار کونکې نه شمارلې کیږي.ځکه چې دا خالص دده حق دې.چه په دې کې دعامو خلګو حق نه متعلق شوې.ځکه که ده پخپله مځکه کې غله نه کرله.نو ده ته حق وو.دغه ډول ده ته د نه خرڅولو هم حق شته.

**کوم احتکار مکروه دې او کوم نه دې؟**



وَأَمَّا الثَّانِي فَالْمَذْكُورُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ بهرحال او دوهم نو کوم چې ذکر دې.دا د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې لِأَنَّ حَقَّ الْعَامَّةِ إِنَّمَا يَتَعَلَّقُ بِمَا جُمِعَ فِي الْمِصْرِ ځکه چې د عامو خلګو حق دې غلې سره متعلق وي.کوم چې ښار کې جمع کړې شي وَجُلِبَ إِلَى فِنَائِهَا او کوم چې د ښار په احاطه کې راوړلې شي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يُكْرَهُ الْإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلي دي.چه مکروه دي.د هغه حدیث د مطلق کیدو په وجه کوم چې موږ روایت کړې دې وَقَالَ مُحَمَّدٌ: كُلُّ مَا يُجْلَبُ مِنْهُ إِلَى الْمِصْرِ فِي الْغَالِبِ او امام محمد رحمه الله فرمائیلي دي.چه هغه ځائې چې د هغې نه په عامه توګه (عام طور) باندې ښار ته غله راوړلې شي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ فِنَاءِ الْمِصْرِ هغه د ښار د احاطې په درجه کې دې. يَحْرُمُ الْاِحْتِكَارُ فِيهِ لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْعَامَّةِ بِهِ په دې کې احتکار حرام دې.ددې سره د عامو خلګو دحق متعلق کیدو په وجه بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْبَلَدُ بَعِيدًا په خلاف ددې صورت کله چې ښار لرې وي،لَمْ تَجْرِ الْعَادَةُ بِالْحَمْلِ مِنْهُ إِلَى الْمِصْرِ چه په دې ځائې کې ښار کې د غلې راوړلو عادت جاري نه وي لِأَنَّهُ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ حَقُّ الْعَامَّةِ ځکه چې ددې سره د عامو خلګو حق نه دې متعلق شوې.

حل اللغة: ① جلب: راوړل ،یعنی کومه غله چې د بهر نه ښار ته راوړې شي ② الحمل: بارکول﴾

تشریح:- کومه غله چې ښار ته دبل ځائې نه راوړلې شي.او هلته راوړلو سره خرڅولې شي.او څوک دا واخلي.او بنده ئې اوساتي.نو دا مکروه دي.او که د بل یو ښار نه ئې راوړلي.او جمع ئې کړي.نو دا دامام صاحب رحمه الله په نیز احتکار نه دې.او امام محمد رحمه الله فرمائیلي دي.هغه ښار د کوم ځائې نه چې په دې ښار کې په عامه توګه (عام طور) سره غله راوړلې شي.نو دهغه ځائې نه راوړل، او جمع کول به هم مکروه نه وي.ځکه چې د ښار هغه اطراف د کوم ځائې نه چې د غلې راوړلو عادت دې.د ښار د احاطې په درجه کې دي.البته که څوک د لرې لرې علاقو نه غله راوړي.او جمع ئې کړي.چه د دغه ځایونو نه دې ښار ته د غلې راوړلو عادت نه دې.نو دا د امام محمد رحمه الله په نیز هم مکروه نه دي.ځکه چې دې غلې سره د عامو خلګو حق نه دې متعلق شوې.او امام ابویوسف رحمه الله مطلقاً جمع کول مکروه ګرځولي دي.ځکه چې حدیث ﴿المحتکر ملعون﴾ مطلق دې.نو په دې کې درې قوله دي.کوم چې ذکر شو.

تنبیه: په دې درېو واړو کې د امام محمد رحمه الله قول مختار دې. ﴿سکب الانهر ص:۴۷۸،ج۲؛ درمختار ص:۲۵۶،ج۵﴾

**بادشاه لپاره د څیزونو نرخونو مقررولو حکم**

قَالَ امام قدوري رحمه الله فرمائیلي دي وَلَا يَنْبَغِي لِلسُّلْطَانِ أَنْ يُسَعِّرَ عَلَى النَّاسِ او بادشاه لپاره مناسب نه دي.چه په خلګو باندې نرخ مقرر کړي. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبي کریم ﷺ د فرمان په وجه لَا تُسَعِّرُوا چې تاسو نرخ مه مقرر کوئ فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمُسَعِّرُ الله تعالی نرخ مقرر کونکې دې الْقَابِضُ الْبَاسِطُ الرَّازِقُ[1] تنګی او فراخی ورکونکې رزاق دې وَلِأَنَّ الثَّمَنَ حَقُّ الْعَاقِدِ او ځکه چې ثمن د عقد کونکی حق دې فَإِلَيْهِ تَقْدِيرُهُ نو هم دده اړخ ته د نرخ مقررول (تعین) دې فَلَا يَنْبَغِي لِلْإِمَامِ أَنْ يَتَعَرَّضَ لِحَقِّهِ نو بادشاه لپاره مناسب نه دي.چه هغه د عقد کونکی حق سره کار اولري إِلَّا إِذَا تَعَلَّقَ بِهِ دَفْعُ ضَرَرِ الْعَامَّةِ خو کله چې نرخ مقررولو سره متعلق شي د خلګو ضرر لرې کول، عَلَى مَا نُبَيِّنُ ، د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دې.

حل اللغة: ① المسعر: ګراني راوستونکې ② السلطان: بادشاه ③ القابض: بندونکې﴾

تشریح:- بادشاه دې کنټرول ریټ نه مقرر کوي.ځکه چې الله تعالی دیو کس نه بل ته روزي ورکونکې دې.او

[1]) من حدیث انس رضي الله عنه أخرجه أبوداؤد في البیوع باب ۴۹ رقم ۲۹۴۵ والترمذي في البیوع باب ۷۳ وابن ماجه في التجارات باب ۲۷ رقم ۱۳۳۶)_

ثمن د عاقد حق دی.نو بادشاه لپاره مناسب نه دی.چه د بل کس په حق کي دخل اوکړی.خو اوس تفصیل راروان دی.چه که د کنټرول ریټ نه بغیر د عوامو ضرر نشی لرې کیدی.نو په بادشاه واجب دی.چه کنټرول ریټ مقرر کړی.چه د مسلمانانو د حقوقو ساتنه اوشی.

## قاضي ته د احتکار شکايت کولو مسئله

**وَإِذَا رُفِعَ إِلَى الْقَاضِي هٰذَا الْأَمْرُ** او کله چې قاضي اړخ ته دا معامله پيش کړې شوه.(يعنى هغه ته دا شکايت اورلاندې کړې شو.چه فلانی جمع کول کوی). **يَأْمُرُ الْمُحْتَكِرَ** قاضي دې محتکر ته حکم اوکړی **بِبَيْعِ مَا فَضَلَ عَنْ قُوتِهِ وَقُوتِ أَهْلِهِ عَلَى اعْتِبَارِ السَّعَةِ فِي ذٰلِكَ** نو. او دده د اهل غلې د خرڅولو، کومه چې دده د روزۍ نه زياته وی.په دې سلسله کي د فراخۍ په اعتبار سره **وَيَنْهَاهُ عَنِ الِاحْتِكَارِ** او هغه دې د احتکار نه منع کړی **فَإِنْ رُفِعَ إِلَيْهِ مَرَّةً أُخْرَى** نو که دا معامله دوباره (قاضي ته) وړاندې کړې شوه.(يعنى دوباره بيا دا شکايت اوکړې شو). **حَبَسَهُ** نو قاضي دې هغه په قيد کي واچوی **وَعَزَّرَهُ** ...او د هغه تعزير دې اوکړی **عَلَى مَا يَرَى زَجْرًا لَهُ**.څومره چې مناسب ګڼړی.هغه ته د زجر (زورنې ورکولو) لپاره **وَدَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنِ النَّاسِ** او د خلګو د ضرر لرې کاوه دپاره.

**حل اللغة** ① **السعة**: مالداری،فراخی ② **حبس**: بندول ③ **عزر**: تعزير اوکړو ④ **زجر**: زورنه ورکول﴾

**تشريح:-** قاضي ته اووئيلی شو.چه فلانې سړې احتکار کوی.نو قاضي دې هغه پوهه کړی.او ورته دې اووائی.چه په څومره فراخۍ سره ستا او ستا د اهل وعيال لپاره کافي وی.هغومره خان سره اوساته.او پاته خرڅه کړه.خو که هغه منع نشي.(او غله جمع کوی).او دوباره هم دا شکايت قاضي ته اورسيدو.نو قاضي دې هغه ګرفتار کړی.او په قيدخانه کي دې واچوی.او څومره چې مناسب ګڼړی.دغومره دې ده له سزا ورکړی.چه ده لره زجر (او زورنه) وی.او د خلګو ضرر لرې شی.

## قاضي نرخ کله مقررولې شي؟

**فَإِنْ كَانَ أَرْبَابُ الطَّعَامِ يَتَحَكَّمُونَ وَيَتَعَدَّوْنَ عَنِ الْقِيمَةِ تَعَدِّيًا فَاحِشًا** نو که د غلې مالکان تحکم (او زبردستی) کوی.او ظلم (زياتې) کوی.د قيمت نه ډير زيات زياتوالی سره **وَعَجَزَ الْقَاضِي عَنْ صِيَانَةِ حُقُوقِ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا بِالتَّسْعِيرِ** او قاضي عاجزه شی د مسلمانانو د حقوقو د ساتنه نه، خو په نرخ مقررولو سره، **فَحِينَئِذٍ لَا بَأْسَ بِهِ بِمَشُورَةٍ مِنْ أَهْلِ الرَّأْيِ وَالْبَصِيرَةِ** نو دغه وخت په نرخ مقررولو کي هيڅ باک نشته.د رائې د خاوندانو او د بصيرت د خلګو په مشوره سره

**حل اللغة** ① **يتعدون**: جمع د يتعدی،تجاوز کونکې ② **صيانة**: ساتنه ③ **التسعير**: ګرانول﴾

**تشريح:-** کوم خلګ چې غلې خرڅوی.لکه څنګه چې زموږ په وطن کي سوداګران چې په خلګو باندې ظلم او ستم باندې کلک ولاړ دی.او د کنټرول ريټ نه بغير د خلګو د حقوقو ساتنه مشکل دې.نو دغه وخت په کنټرول ريټ مقررولو کي هيڅ باک نشته.بلکه قاضي دې داسې اوکړی.چه خلګ د ظلم او ستم نه محفوظ شی.خو قاضي له پکار دی.چه په هره زمانه کي د پوهو خلګو سره مشوره اوکړی.چه څه ريټ مقرر کړې شی.کومو خلګو ته چې د غلې په معامله کي مهارت او تجربه وی.چه دواړه فريقه (د غنمو سوداګر او عوام) د نقصان نه محفوظ شی.

## د قاضي د حکم خلاف ورزی کول او ددې حکم

**فَإِذَا فَعَلَ ذٰلِكَ** نو که قاضي داسې اوکړل.(يعنى کنټرول ريټ نې مقرر کړو). **وَتَعَدَّى رَجُلٌ عَنْ ذٰلِكَ** او يوکس ددې نه زياتې اوکړو **وَبَاعَ بِأَكْثَرَ مِنْهُ** او ددې نه نې په زيات (نرخ) سره خرڅ کړو **أَجَازَهُ الْقَاضِي** نو قاضي به دا بيع جائز ګرځوی.(يعنى دا به نه ماته وی). **وَهٰذَا ظَاهِرٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمة الله عليه او دا د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نيز ښکاره



دې **لِأَنَّهُ لَا يَرَى الْحَجْرَ عَلَى الْحُرِّ** ځکه چې دوی په آزاد باندې حجر (بندېز) جائز نه ګڼړی **وَكَذَا عِنْدَهُمَا** او هم دغه ډول د صاحبينو رحمهما الله په نيز(هم جائز نه دی) ،،، **إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْحَجْرُ عَلَى قَوْمٍ بِأَعْيَانِهِمْ** خو دا چې حجر په يو معين قوم باندې وی.

**حل اللغة** ① **الحجر**: بنديز ② **اعيان**: جمع دمعين، معلوم﴾

**تشريح:-** قاضي چې کوم ريټ (نرخ) مقرر کړې دې.که يوکس بدمعاشی اوکړله.او ددې نه نې په زيات نرخ سره خرڅ کړو.نو څه حکم دې؟ نو ځواب نې ورکړو.چه بالاتفاق به دا بيع جائز وی.او قاضي به دا بيع نه ماته وی.ولې؟ ځکه چې د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نيز په آزاد باندې حجر جائز نه دې.نو هغه محجور نشو.بلکه خود مختار دې.او د مختار تصرف جائز وی.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز ځکه (جائز نه دې).چه ددوی په نيز حجر اګرچه جائز دې.خو شرط دا دې.چه په چا حجر عائد کيږی.هغه مجهول نه وی.بلکه معين وی.او دلته معين نه دی.بلکه مجهول دې.په دې وجه دا حجر نه دې.نو دې محجور نشو.بلکه اختيار مند دې.نو دده تصرف به نافذ وی.البته که د غلې خرڅولو څه معين قوم وی.نو په دوی به حجر د صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز او صحيح وی.بيا په ددوی په نيز د هغه ريټ نه په زيات باندې (خرڅول) جائز نه وی.کوم چې قاضي مقرر کړې دې.

**وَمَنْ بَاعَ** او چا چې خرڅ کړو **مِنْهُمْ بِمَا قَدَّرَهُ الْإِمَامُ** ددوی نه په هغه نرخ سره کوم چې امام (قاضي) مقرر کړې دې **صَحَّ** نو صحيح ده **لِأَنَّهُ غَيْرُ مُكْرَهٍ عَلَى الْبَيْعِ**،ځکه چې هغه په بيع باندې نه دې مجبوره کړې شوې

**تشريح:-** قاضي چې کوم نرخ مقرر کړې دې.که يوکس هم په دې نرخ باندې خرڅ کړی.نو بيع جائز ده.ځکه چې دې په خرڅولو باندې نه دې مجبوره کړې شوې.بلکه په دې مجبوره کړې شوې دې.چه کله نې خرڅوی.نو هم په دې نرخ به نې خرڅوی.نو دا په بيع باندې اکراه نه ده.(بلکه په نرخ باندې اکراه ده).په دې وجه بيع جائز ده.

**هَلْ يَبِيعُ الْقَاضِي عَلَى الْمُحْتَكِرِ طَعَامَهُ مِنْ غَيْرِ** او آيا قاضي د محتکر غله خرڅولې شی **رِضَاهُ**.د هغه د رضامندۍ نه بغير **قيل هو على الاختلاف الذي عرف في بيع مال المديون** وئيلی شوی دی.چه دا هم په هغه اختلاف دې.کوم چې پيژندلې شوې دې.د قرضدار په مال خرڅولو کي **وقيل** او وئيلی شوی دی **يبيع بالاتفاق**.چه بالاتفاق خرڅولې شی **لأن أبا حنيفة** رحمة الله عليه **يري الحجر لدفع ضرر عام** ځکه چې امام ابوحنيفه رحمة الله عليه د عام ضرر لرې کاوه لپاره حجر جائز ګڼړی **وهذا كذلك**.او دا هم دغه ډول ده.

**تشريح:-** کله چې محتکر دخپلې غلې خرڅولو نه انکار اوکړی.نو آيا قاضي د هغه د رضامندۍ نه بغير د هغه غله خرڅولې شی.نو د يو قول مطابق په دې کي اختلاف دې.يعنى د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نيز نشی خرڅولې.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز خرڅولې شی.او دا اختلاف داسې دې.لکه چې يو قرضدار وی.او د هغه په ذمه د نورو (قرضخواهانو) پور وی.او هغه سره مال وی.چه ددې په خرڅولو هغه خپل پور ادا کولې شی.خو هغه خپل مال نه خرڅوی.او پور نه ادا کوی.نو د امام صاحب رحمة الله عليه په نيز به قاضي د قرضدار مال نه خرڅوی.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به نې خرڅوی.نو هم دغه اختلاف دلته هم دې.

او دوهم قول دلته دا دی.چه قاضي بالاتفاق د داسې محتکر غله دده د رضامندۍ نه بغير خرڅولې شی.ځکه چې امام صاحب رحمة الله عليه د عام ضرر لرې کاوه لپاره حجر جائز ګڼړی.او دلته چې کوم حجر دې.په دې کي هم عام ضرر دې.لکه څنګه چې قاضي لپاره جائز دی.چه هغه په جاهل طبيب او ډاکټر باندې پابندی اولګوی.چه عام ضرر لرې کړې شی.

① مسئله• که محتکر خپله غله نه خرڅوی.نو قاضي دې بالاتفاق د هغه غله وپلوری.﴿سکب الانهر ص:۴۷۷،ج۲﴾

④ مسئله * د ظلم او زياتي په وخت قاضي باندې ريټ ( نرخ) مقررول واجب دى. ﴿شامي ص: ٢٥۶، ج۵﴾

③ مسئله * د تجاوز فاحش ( د ډير ګرانوالی) نه مراد دا دې. چه په دوچند قيمت باندې ئې خرڅ كړي. ﴿شامي ص: ٢٥۶، ج۵﴾

④ مسئله * د ارتيا نه بغير نرخ مقررول مكروه دى. ﴿شامي ص: ٢٥۶، ج۵﴾

## د جنګ په ورځو کښې وسله خرڅول مكروه دي

قَالَ. امام قدوري رحمه الله او فرمائيل وَيُكْرَهُ بَيْعُ السِّلَاحِ فِي أَيَّامِ الْفِتْنَةِ چې د فتنې ( فساد ) په وخت وسله خرڅول مكروه دی مَعْنَاهُ مِمَّنْ يُعْرَفُ أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْفِتْنَةِ ددې مطلب دا دې. چه د هغه سړي په لاس چې د هغه په اړه کي معلومه ده. چه دا د فتنې والا خني دي لِأَنَّهُ تَسْبِيبٌ إِلَى الْمَعْصِيَةِ خكه چې دا ( د فسادى په لاس وسله خرڅول) د ګناه په سبب باندې اخته کول دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي السِّيَرِ او دا موږ په كتاب السير کي بيان کړي دی وَإِنْ كَانَ لَا يُعْرَفُ أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْفِتْنَةِ او که دده په اړه کي معلومه نه وی. چه دې د فسادیانو خني دې، لَا بَأْسَ بِذَلِكَ نو په دې ( خرڅولو) کي هيڅ باك نشته لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ خکه احتمال شته أَنْ لَا يَسْتَعْمِلَهُ فِي الْفِتْنَةِ. چه هغه دا په فتنه کي استعمال نکړي، فَلَا يُكْرَهُ بِالشَّكِّ نو دا به د شك په وجه مكروه نه وي.

تشريح:- كله چې بعضو خلګو د عادل امام په اړه کي دده خلاف بغاوت راپورته كړو. نو په داسې ورځو کي د فسادیانو او باغیانو په لاس وسله خرڅول مكروه دی. خو كله چې دا معلومات وی. چه دې د باغيانو خني دې. خکه چې دا په ګناه باندې امداد كول دی. او د الله تعالى فرمان دې ﴿وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾ او که دا معلومه نه وی. چه دې د باغيانو خني دې. نو بيا دده په لاس وسله خرڅولو کي هيڅ باك نشته. خکه کيدای شی. چه هغه دا په فتنه کي استعمال نکړی. نو مقابل اړخ ته صرف شك دې. او د شك په بنا (بنياد) به بيع ته مكروه نشی ونيلې. دا مسئله د ﴿هداية په دوهم جلد﴾ کي تيره شوې ده.

## د انګورو شيره خرڅول جائز دي

قَالَ امام قدوري رحمه الله او فرمائيل کي وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ الْعَصِيرِ او د انګورو په شيرې خرڅولو کي هيڅ باك نشته مِمَّنْ يَعْلَمُ د هغه سړي په لاس چې د هغه په اړه کي معلومه وی أَنَّهُ يَتَّخِذُهُ خَمْرًا چه هغه به ددې نه شراب جوړه وی لِأَنَّ الْمَعْصِيَةَ لَا تُقَامُ بِعَيْنِهِ بَلْ بَعْدَ تَغْيِيرِهِ خکه چې ګناه عين شيرې (كهل) سره نشی قائميدې. بلكه ددې د بدليدو نه روسته بِخِلَافِ بَيْعِ السِّلَاحِ فِي أَيَّامِ الْفِتْنَةِ په خلاف د وسلې خرڅولو د فتنې په زمانه، لِأَنَّ الْمَعْصِيَةَ تَقُومُ بِعَيْنِهِ خکه چې ګناه عين وسلې سره قائميږی

حل اللغة ① العصير: دانګورو جوس ② المعصية: ګناه ③ السلاح: وسله ﴾

تشريح:- د يو سړي په اړه کي دا معلومه ده. چه هغه به د انګورو د شيرې نه شراب جوړه وی. ددې باوجود هم د هغه په لاس د انګورو شيره خرڅول جائز دی. خکه چې ګناه شرابو سره متعلق ده. او شراب به ددې د بدلولو نه روسته جوړيږی. په خلاف د وسلې، خکه چې ګناه وسلې سره د بدلولو نه بغير قائميږی. په دې وجه د فتنې په ورځو کي د وسلې بيع مكروه ده. او د انګورو د شيرې بيع جائز ده.

مسئله ۞ امرد ( بې ګيرې ) غلام د يو داسې سړي په لاس خرڅول مكروه دی. چه دهغه په اړه کي معلومه ده. چه هغه به دده سره لواطت کوی. تفصيل لپاره اوګورئ: ﴿شامي ص: ٢٥٠، ج۵﴾

## مجوسيانو ته د آتش كده جوړولو لپاره خپل كور په كرايه د وركولو حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کي فرمائيلی وَمَنْ أَجَرَ بَيْتًا او چا چې کور په کرايه باندې ورکړو لِيُتَّخَذَ فِيهِ بَيْتُ نَارٍ أَوْ كَنِيسَةٌ چې په دې کي (د مجوسيانو آتش كده يا د يهوديانو عبادت خانه، يا د نصارى ګرجه



جوړه کړې شی أَوْ بِيعَةٌ أَوْ يُبَاعُ فِيهِ الْخَمْرُ بِالسَّوَادِ يا به په دې کي شراب خرڅولې شی. په کلی کي فَلَا بَأْسَ بِهِ نو په دې کي هيڅ باك نشته وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی وَقَالَا: لَا يَنْبَغِي فرمائی. چه مناسب نه ده أَنْ يُكْرِيَهُ لِشَيْءٍ مِنْ ذَلِكَ([1]) او صاحبين رحمهما الله. دا چې کور په دې د يو خيز لپاره په کرايه باندې ورکړی، لِأَنَّهُ إِعَانَةٌ عَلَى الْمَعْصِيَةِ خکه چې ګناه باندې کومك كول دی.

حل اللغة ① كنيسة: دمجوسيانو آتش كده يعنى چې د اوز عبادت په کي کوی ② السواد: کلې ③ اعانة: کومك

تشريح:- يو مسلمان خپل کور په کرايه باندې ورکړو. چه مجوسيان په دې کي خپل آتش كده جوړه کړی. يا په دې کي يهوديان عبادت خانه جوړه کړی. يا نصارى په دې کي خپله ګرجه جوړه کړی. يا په دې کي د شرابو اډه جوړه کړې شی. او دا واړه شيان په کلی کي وی. په ښار کي نه وی. نو د امام صاحب رحمه الله په نيز هيڅ باك نشته. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز چونکه دا په ګناه باندې امداد دې. په دې وجه جائز نه دې.

## د امام صاحب رحمه الله دليل

وَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې أَنَّ الْإِجَارَةَ تَرِدُ عَلَى مَنْفَعَةِ الْبَيْتِ. چه اجاره د کور په منفعت باندې واقع شوې ده وَلِهَذَا تَجِبُ الْأُجْرَةُ بِمُجَرَّدِ التَّسْلِيمِ او هم په دې وجه صرف په سپارلو سره اجرت واجبيږی وَلَا مَعْصِيَةَ فِيهِ او په کرايه باندې ور کاوه کي هيڅ ګناه نشته، وَإِنَّمَا الْمَعْصِيَةُ بِفِعْلِ الْمُسْتَأْجِرِ او ګناه د مستاجر د فعل خني ده وَهُوَ مُخْتَارٌ فِيهِ او مستاجر په دې کي اختيار مند دې، فَقَطَعَ نِسْبَتَهُ عَنْهُ نو د فعل نسبت به کرايه باندې ورکونکی نه منقطع کيږی.

تشريح:- دا د امام صاحب رحمه الله دليل دې. چه اجاره د کور په منفعت باندې وارد شوې ده. په ذکر شوو امورو باندې نه ده ( واقع شوې ). او ددې دليل دا دې. كه دغه خلګو په ذکر شوی شيان په کور کي دننه جوړ نکړل. بيا به هم په کورو سپارلو سره کرايه پيل کيږی. نو معلومه شوه چې د کور په کرايه ور کاوه کي هيڅ ګناه نشته. بلكه ګناه د مستاجر په فعل کي ده. او مستاجر پخپله مختار فاعل دې. نو کوم شئ چې د مختار فاعل اثر دې. د هغې نسبت بل اړخ ته نشی کولې. لکه څنګه چې اصول مقرر دې.

اعتراض ۞ خو په دې دليل کي دا شبه ده. چه د باغی په لاس وسله خرڅولو کي او په دې کي هيڅ توپير نشته. خکه چې د ګناه قيام لکه څنګه چې د وسلې په خرڅولو کي ده. دغه ډول دلته هم دې.. فتدبر.. او امام زيلعي رحمه الله د امرد ( بې ګيرې هلك) بيع مذكوره سړی سره جائز ګرخولې ده... وفيه ما فيه فتدبر..

## د کلی د قيد لګولو حكم

وَإِنَّمَا قَيَّدَهُ بِالسَّوَادِ او امام محمد رحمه الله دا مقيد کړې دې د کلی سره لِأَنَّهُمْ لَا يُمَكَّنُونَ مِنِ اتِّخَاذِ الْبِيَعِ وَالْكَنَائِسِ وَإِظْهَارِ بَيْعِ الْخُمُورِ وَالْخَنَازِيرِ فِي الْأَمْصَارِ خکه چې ذمی خلګو ته به قدرت نشی ورکولې، د ګرجاګر او عبادت خانې جوړولو او د شرابو او خنزير ښکاره کاوه په ښارونو کي لِظُهُورِ شَعَائِرِ الْإِسْلَامِ فِيهَا په دې کي د اسلام د شعائرو ښکاره کيدو په وجه بِخِلَافِ السَّوَادِ په خلاف د کلو قَالُوا: مشائخو رحمهم الله فرمائيلی دی هَذَا كَانَ فِي سَوَادِ الْكُوفَةِ، چه دې د کوفې په کلو کي وو لِأَنَّ غَالِبَ أَهْلِهَا أَهْلُ الذِّمَّةِ خکه چې ددې زيات تر اوسيدونکی ذمی خلګ وو فَأَمَّا فِي سَوَادِنَا بهرحال زموږ په کلو کي فَأَعْلَامُ الْإِسْلَامِ فِيهَا ظَاهِرَةٌ نو په دې کي شعائر د اسلام ښکاره دی فَلَا يُمَكَّنُونَ فِيهَا أَيْضًا نو ذمی خلګو ته به په دې کلو کي هم قدرت نشی ورکولې.. وَهُوَ الْأَصَحُّ او هم دا اصح ده.

حل اللغة ① السواد: کلې ② بيع: ګرجې ③ كنائس: جمع د كنيسة، عبادت خانه ﴾

تشريح:- په متن کي چې کوم دا فرمائيلی شوی دی. که دا مذكوره کارونه په کلی کي وی. نو هيڅ باك نشته. نو

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في خلاصة (٣٤۶/٤) ور المحتار (٢٧٨/٥) نقلاً عن القول الراجح (٣٠٥/٢)-

د كلي قيد ئي ولې لګولې دې؟ نو وې فرمائيل.چه دا ځكه چې په ښارونو كې د اسلام د شعائرو رواج دې.او ددې اوچت شان دې.نو په ښارونو كې به د كفر د شعائرو اجازت نه وي.خو دا هغه وخت د كوفې د كلو خبره وه.چه د هغې اكثر اوسيدونكي ذميان وو.خو د كوفې نه علاوه په نورو علاقو كې په دې خبره كې ښارونه او كلي برابر دی.ځكه چې شعائر د اسلام په ښارونو او كلو كې عام (مروج) دی.

### ذمي لپاره په اجرت باندې د شرابو اوچتولو حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير كې فرمائيلي دی **وَمَنْ حَمَلَ لِذِمِّيٍّ خَمْرًا** او كوم كس چې د ذمي شراب اوچت (بار) كړل **فَإِنَّهُ يَطِيبُ لَهُ الْأَجْرُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دده لپاره اجرت حلال دې **وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ يُكْرَهُ لَهُ ذَلِكَ** او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دی.دده لپاره دا مكروه دی **لِأَنَّهُ إِعَانَةٌ عَلَى الْمَعْصِيَةِ** ځكه چې دا په ګناه باندې كومك دې **وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ لَعَنَ فِي الْخَمْرِ عَشْرًا** او دا خبره د صحت درجې ته رسيدلې ده.چه نبی كريم ﷺ د شرابو په اړه كې لسو سړو باندې لعنت فرمائيلي دې **حَامِلَهَا** ددې اوچتونكی باندې **وَالْمَحْمُولَ إِلَيْهِ**.([1]) او چا اړخ ته چې اوچت كړې شي.په هغه باندې **لَهُ أَنَّ الْمَعْصِيَةَ فِي شُرْبِهَا** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه ګناه د شرابو په څښلو كې ده **وَهُوَ فِعْلُ فَاعِلٍ مُخْتَارٍ** او څښل دا مختار فاعل فعل دې **وَلَيْسَ الشُّرْبُ مِنْ ضَرُورَاتِ الْحَمْلِ** او څښل د اوچتونكی د لوازماتو څخې نه دی **وَلَا يُقْصَدُ بِهِ** او اوچتونكې د څكونكی قصد نه كوی **وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ** او حديث محمول دې.**عَلَى الْحَمْلِ الْمَقْرُونِ بِقَصْدِ الْمَعْصِيَةِ** په داسې اوچتونكی باندې، كوم چې د ګناه ارادې سره ملاو شوې وي.

**تشريح:**- يو مسلمان د يو ذمي شراب اوچت كړي.او روان شي.چه مزدوري ملاو شي.نو امام صاحب رحمه الله اجرت حلال ګڼړي.او صاحبينو رحمهما الله دده په ګناه باندې د كومك كاوه په وجه مكروه ګڼړلې دې.او په حديث كې د شرابو په اړه كې چې په كومو لسو كسانو باندې لعنت دې.د هغوی نه يو اوچتونكې او يو هغه كس دې.چا اړخ ته اوچت كړې شي.نو د حديث نه كراهت ثابت دې.

امام صاحب رحمه الله فرماني.① چې ګناه په شرابو څښلو كې ده.او شراب څښل دا د يو مختار فعل دې.نو د قاعدې مطابق د څښلو نسبت غير اړخ ته نشی كيدې.② او د اوچتولو د لوازماتو څخې څښل نه دی.③ او ددې اوچتونكی مقصد څښل هم نه دی.او په حديث كې چې كوم لعنت دې.نو په دې كې د حامل (اوچتونكی) نه مراد داسې حامل دې.كوم چې د ګناه په ارادې سره اوچت كړې.يعنی دده مقصد څښل يا په څكول وي.

**تضعيف دليل الامام رحمه الله:** د امام صاحب رحمه الله دليل عليل (كمزورې) دې.ځكه چې ګناه صرف په څښلو كې منحصر كول مشكل دی.ګنی شراب جوړول هم نا جائز كيدل پكار نه دی.ځكه چې ګناه خو څښل دی.او په منځ كې د مختار فاعل فعل حائل دې.بهرحال د صاحبينو رحمهما الله قول راجح دې.او د امام صاحب رحمه الله قول آسان (او سهولت) دې.او ښكاره دې.

### په مكه كښې د خپلو كورونو يا زمكې خرڅولو حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير كې فرمائيلي دی **وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ بِنَاءِ بُيُوتِ مَكَّةَ** او د مكې په آبادئ

[1]) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه أبوداود فی الأشربة باب ٢ رقم ٣٦٧٤ وأحمد فی المسند(٩٧\٢) والحاكم فی المستدرک (١٤٤\٤)_



خرڅولو كې هيڅ باك نشته **وَيُكْرَهُ بَيْعُ أَرْضِهَا** او ددې مځكه خرڅول مكروه دی **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی **وَقَالَا: لَا بَأْسَ بِبَيْعِ أَرْضِهَا أَيْضًا**([1]) او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دی.چه د مكې په مځكه خرڅولو كې هم هيڅ باك نشته **وَهَذَا رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** او هم دا يو روايت دې د امام ابوحنيفه **لِأَنَّهَا مَمْلُوكَةٌ لَهُمْ لِظُهُورِ الِاخْتِصَاصِ الشَّرْعِيِّ بِهَا** ځكه چې د مكې مځكه د مكې د خلګو مملوك ده.د شرعی اختصاص ښكاره كيدو په وجه، ددې زمكې سره..**فَصَارَ كَالْبِنَاءِ** نو دا د عمارت (آبادئ) پشان شوه.

**حل اللغة:** ① **بيوت:** جمع د بيت، كور ② **البناء:** آبادې

**تشريح:**- په مكه شريفه كې د خپلو كورو عمارت خرڅول بالاتفاق جائز دی.ځكه چې دا د جوړونكی ملكيت دې. پاتې شوه مسئله د زمكې، نو دا مختلف فيه ده.امام صاحب رحمه الله دا مكروه ګرځولی دی.او صاحبينو رحمهما الله دا جائز ګرځولې ده.د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه واړه شرعی امور په زمكو كې ښكاره كيږي.نو كه څوك مړ شی.نو په دې كې بالاتفاق ميراث جاری كيږي.او د ميراث په څيزونو كې بالاتفاق ويش جاری كيږي.نو د بيع اختصاص به هم ښكاره كيږي.او د زمكې بيع به د آبادئ د بيع پشان جائز وي.

### د امام صاحب رحمه الله دليل

**لِأَبِي حَنِيفَةَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل د نبی كريم ﷺ فرمان دې **وَأَلَا إِنَّ مَكَّةَ حَرَامٌ** چې خبر شئ:مكه حرام ده **لَا تُبَاعُ رِبَاعُهَا وَلَا تُورَثُ**([2]).ددې د زمكې احاطه به نشی خرڅولې.او نه به په ميراث كې تقسيمولې شی **وَلِأَنَّهَا حُرَّةٌ مُحْتَرَمَةٌ** او ځكه چې د مكې مځكه آزاده ده.محترم ده **لِأَنَّهَا فِنَاءُ الْكَعْبَةِ** ځكه چې دا د كعبې احاطه ده **وَقَدْ ظَهَرَ آيَةُ أَثَرِ التَّعْظِيمِ فِيهَا** او يقيناً نښانه د اثر د تعظيم په دې كې ښكاره شوې دی **حَتَّى لَا يُنَفَّرَ صَيْدُهَا** تردې چې ددې ښكار به نشی ترولی **وَلَا يُخْتَلَى خَلَاهَا وَلَا يُعْضَدُ شَوْكُهَا**.او نه به ددې ګيا كټ كولې شی.او نه به ددې ازغی كټ كولای شی **فَكَذَا فِي حَقِّ الْبَيْعِ** نو هم دغه ډول (تعظيم اثر به ښكاره كيږي) د (زمكې) بيع په اړه كې **بِخِلَافِ الْبِنَاءِ** په خلاف د آبادئ.**لِأَنَّهُ خَالِصُ مِلْكِ الْبَانِي** ځكه چې دا خالص د بانی (بنا (بنياد) ايخودونكی) ملكيت دې.

**حل اللغة:** ① **محترمة:** معزز ② **فناء:** احاطه ③ **خلال:** ګياه ④ **يعضد:** شوكولې ⑤ **شوك:** ازغی ⑥ **البانی:** بنا (بنياد) كيخودنكې

**تشريح:**- دا د امام صاحب رحمه الله دليل دې.چه په دې كې يو حديث پيش كړې شوې دې.كوم چې متن كې ذكر دې. دوهم دليل عقلی دې.چه د بيت الله د وقف كيدو په وجه جائز نه ده.او مكه د كعبې احاطه ده.نو ددې بيع به هم جائز نه وي.بيا په كومه طريقه چې كعبه محترم ده.دغه ډول پوره مكه بلكه پوره حرم محترم دې.د مذكوره حديث نه ددې محترم كيدل ثابتيږي.نو دا حرمت او تعظيم به د بيع په حق كې هم ښكاره كيږي.

**وَيُكْرَهُ إِجَارَتُهَا أَيْضًا** او د مكې مځكه په اجاره باندې وركول هم مكروه دی **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ**.د نبی كريم ﷺ د فرمان په وجه، **مَنْ آجَرَ أَرْضَ مَكَّةَ** چې چا د مكې مځكه په كرايه باندې وركړله **فَكَأَنَّمَا أَكَلَ الرِّبَا**

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين . رحمهما الله كذا فی مجمع الأنهر(٢١٢\٤) وردالمحتار (٢٧٨\٥) وتبيين الحقائق (٢٩\٦)

نقلاً عن القول الراجح (٣٠٧\٢)-

[2]) من حديث عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما أخرجه الدارقطنی فی سننه (٥٨\٣) رقم ٢٢٧ ومستدرک الحاكم (٥٣\٢)_

نو ګویا هغه سود اوخوړلو ()وَلِأَنَّ أَرَاضِي مَكَّةَ تُسَمَّى السَّوَائِبَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ او ځکه چې د مکې د زمکې نوم به د نبي کریم ﷺ په زمانه کې سوائب ایخودې شو مَنْ احْتَاجَ إِلَيْهَا سَكَنَهَا چې څوك به دې ارخ ته محتاج وو هغه به په دې کې اوسیدو وَمَنْ اسْتَغْنَى عَنْهَا او څوك به چې ددې نه بې حاجته وو أَسْكَنَ غَيْرَهُ (). هغه به د خان نه علاوه (بل څوك) په دې کې اوسول.

تشریح:- د مکې مځکه په اجاره باندې ورکول هم مکروه دی. د هغه حدیث په وجه کوم چې کتاب کې ذکر شوې دې او عقلي دلیل دا دې چه د مکې د زمکې نوم به د نبي کریم ﷺ په زمانه کې سوائب وو. یعنی چې په دې باندې د هیڅ چا ولایت حاصل نه وی. چا ته چې اړتیا وی په دې کې دې اوسیږی. او چا ته چې اړتیا نه وی. هغه دې پریږدی چه بل څوك (اړتیا منند) په دې کې اوسیږی.

① مسئله: د صاحب دهدایه رحمه الله یو کتاب دې ،، مختارات النوازل ،، په دې کې هغوی فرمائیلي دی چه د مکې د عمارت بیع او ددې په خرخولو کې هیڅ باك نشته. «درمختار ص: ۵۲۵، ج ۵» .. قلت .. نو د سکب الانهر جزئیه به د زمکې د اجارې په کراهت باندې محمول کولې شي.

② مسئله: د صاحبینو رحمهما الله په نیز د مکې د زمکې بیع جائز ده. او په خلګو کې د څه نکیر نه بغیر د مکې د زمکو او کورونو خرخولو تعامل (عادت) جاري دې او تعامل قوي دلیل دې او د امام صاحب رحمه الله هم یو روایت دا دې علامه عیني رحمه الله په شرح کنز کې ونیلی دی. «و به یفتی و كذا في مجمع الأنهر ص: ۵۲۳، ج ۲، و سکب الأنهر ص: ۳۶۷، ج ۲»

③ مسئله: بهرحال د مکې مځکه په کرایه باندې ورکول، نو دا فقهاو د څه اختلاف ذکر کاوه نه بغیر مکروه ګرځولی دی او د څه امله بیانولو نه بغیر نې روښې نه جائز او اجارې نه مکروه ونیلی دی. «سکب الانهر ص: ۴۷۶، ج ۲»

**دوکاندار سره درهم ایښودل او د خپلې خوښې څیزونو اخستلو معامله کول**

وَمَنْ وَضَعَ دِرْهَمًا عِنْدَ بَقَّالٍ يَأْخُذُ مِنْهُ مَا شَاءَ او کوم کس چې یو دوکاندار سره یو درهم کیخودو. چه دده نه څه غواړی اخلی به يُكْرَهُ لَهُ ذَلِكَ نو دا دده لپاره مکروه دی «لِأَنَّهُ مَلَّكَهُ قَرْضًا جَرَّ بِهِ نَفْعًا» ځکه چې ده (ایخودونکی) هغه (دونکاندار) مالك جوړ کړې دې. د پور په طور. چې په دې سره ده نفع حاصل کړله وَهُوَ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ مَا شَاءَ حَالًا او نفع دا ده چه دې په هغې سره څه غواړی وخت په وخت به اخلی وَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنْ قَرْضٍ جَرَّ نَفْعًا او رسول الله ﷺ ددا سې پور نه منع فرمائیلې ده چه نفع راکاږی [illegible] فَيَنْبَغِي أَنْ يَسْتَوْدِعَهُ ثُمَّ يَأْخُذَ مِنْهُ مَا شَاءَ جُزْءًا فَجُزْءًا مناسب دا ده چه دا ودیعت کیږدی او بیا چې دده نه کوم څه غواړی لږ لږ اخلی وَدِيعَةً ځکه چې دا ودیعت دې وَلَيْسَ بِقَرْضٍ پور نه دې حَتَّى لَوْ هَلَكَ او پور نه دې تردې که درهم هلاك شو ،، لَا شَيْءَ عَلَى الْآخِذِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ نو په اخستونکی باندې هیڅ نشته والله اعلم

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې چه د یوسړی سره یو درهم دې او هغه نه دا پره ده چه دا به خرج شي. او بیا به په ضروریاتو کې راګیر شي نو ده چې د کوم دوکاندار نه مالګه، مرچکې وغیره اخستلو هغه سره نې دا درهم کیخودو چه د هغه نه لږ لږ سامان اخلی نو دا مکروه دی ځکه چې دده دا درهم دوکاندار سره پور دې. او داسې پور دې چه په دې سره دې نفع حاصلوی او نفع دا ده چه دې نې په لږه لږه اخلی نو بهرحال دا

() قال الزیلعي رحمه الله غریب بهذا اللفظ وروى محمد بن الحسن في كتاب الآثار ... عن عبدالله بن عمر عن النبي ﷺ قال من أكل من أجور بيوت مكة فإنما يأكل نارا)_
() من أثر علقمة بن نضلة أخرجه ابن ماجه في سننه رقم (۳۱۰۷) وكذا رواه ابن أبي شيبة في مصنفه والدارقطني في سننه)_



نفع ده. او په حدیث کې د داسې پور نه منع شوې ده. په کوم سره چې نفع حاصلیږی. په دې وجه دا صورت مکروه دې. او غوره دا ده. چه دا درهم ودیعت کیږدی. بیا دا په لږه لږه اخلی. نو اوس به دا مکروه نه وی. ځکه چې اوس دا امانت دې. پور نه دې. خو اوس دوکاندار لپاره په دې درهم کې تصرف کول جائز نه دی. اوکه د تصرف نه بغیر دا درهم دکاندار سره هلاك شي. نو په هغه باندې ضمان واجب نه دې. ځکه چې د امانت ضمان نه واجبیږی. البته د پور ضمان واجبیږی.

تنبیه ① : بقال: سبزی خرڅونکې، خو بیا دا عام شو. او د مصالحې وغیره خرڅونکی ته هم بقال اوونیلې شو. چه دې ته د شام د خلګو په ژبه کې قاضي او د مصر د خلګو په ژبه کې زیات وائی. (او په پښتو کې ورته د سبزیٔ والا وائی).

تنبیه ② : دلته د مرغیناني رحمه الله په عبارت کې د پور صراحت نشته. بلکه ،، عند بقال ،، ددې په ودیعت کیدو باندې دلالت کوی. ځکه چې ،، عند ،، د ودیعت لپاره استعمالیږی. نو بیا به دا په پور باندې څنګه محمول کولې شي؟ نو ددې وجه دا ده. چه دده قول «يأخذ من ما شاء» د شرط په درجه کې دې. یعنی په دې شرط نې کیخودو. چه څه غواړی. اخلی به. اوکه د شرط نه نې بغیر ایخودې وو. او بیا ئې په لږه لږه اخستلو. نو ودیعت به وو.

## مسائل متفرقة

ژباړه:- (دا) متفرقې مسئلې دی.

تشریح:- ددې عنوان لاندې مختلف قسمه مسئلې راجمع کولې شي.

**قرآن کښې د تعشیر او نقطو لګولو حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلې دی وَيُكْرَهُ التَّعْشِيرُ او تعشیر (په لسم آیت باندې علامت لګول) وَالنَّقْطُ فِي الْمُصْحَفِ لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ او په قران کې نقطې لګول مکروه دی. د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د قول په وجه جَرِّدُوا الْقُرْآنَ چې قرآن د نورو څیزونو نه خالي کړئ وَيُرْوَى: جَرِّدُوا الْمَصَاحِفَ() او روایت کړې شوې دې. مصحفونه د نورو څیزونونه خالي کړئ وَفِي التَّعْشِيرِ وَالنَّقْطِ تَرْكُ التَّجْرِيدِ او په تعشیر او نقطو لګولو کې تجرید (خالي ساتل) پرېښول دی وَلِأَنَّ التَّعْشِيرَ يُخِلُّ بِحِفْظِ الْآيِ ځکه چې تعشیر د ایاتونو په حفظ کاوه کې مخل دی وَالنَّقْطُ بِحِفْظِ الْإِعْرَابِ اتِّكَالًا عَلَيْهِ او نقطې لګول د اعرابو په حفظ کاوه کې مخل دی. په دې باندې د اعتماد کاوه په وجه.. فَيُكْرَهُ نو دا مکروه ده .قَالُوا فِي زَمَانِنَا لَا بُدَّ لِلْعَجَمِ مِنْ دَلَالَةٍ مشانخو فرمائیلې دی. چه زموږ په زمانه کې عجمو لپاره یو علامت او دلالت کیدل ضروري دی فَتَرْكُ ذَلِكَ إِخْلَالٌ بِالْحِفْظِ نو ددې پرېښول حفظ کاوه کې مخل دی. وَهِجْرَانٌ لِلْقُرْآنِ فَيَكُونُ حَسَنًا او قرآن پرېښول دی. نو دا به حسن وی.

حل اللغة: ① التعشیر: په لسم آیت باندې نښانه لګول ② هجران: پرېښول ③ اخلال: خلل پیدا کول.

تشریح:- تعشیر: په هر لسم آیت باندې نښان لګول، نقطه: نقطې لګول، تجرید: خالي کول یعنی د قرآن نه علاوه (نور هیڅ) او نه لیکلې شي. مطلب دا دې چه حدیث کې حکم ورکړې شوې دې. چه قرآن د غیر قرآن نه خالي کړئ په دې وجه آمین هم نشی لیکلې. نو په قران باندې نقطې او اعراب لګول، دغه ډول په هر لسم آیات باندې نښان لګول، او لکه مقررول، واړه مکروه دی. ځکه چې د تجرید (خالي کولو) منافي دی. او تعشیر او نقطې به په آیاتونو یادولو کې مخل وی. او په اعراب یادولو کې به مخل وی. ځکه چې واړه خلګ به په لیکلی شوی باندې اعتماد کوی. او یادول به پرېږدی. خو مشانخو فرمائیلی دی. چه زموږ په زمانه کې

() أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه قاله الزيلعي رحمه الله (نصب: ۵۷۹\۴)_

نو ګویا هغه سود اوخوړلو ()وَلِأَنَّ أَرَاضِي مَكَّةَ تُسَمَّى السَّوَائِبَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ او ځکه چې د مکې د زمکې نوم به د نبی کریمﷺ په زمانه کې سوائب ایخودې شو مَنْ احْتَاجَ إِلَيْهَا سَكَنَهَا چې څوك به دې اړخ ته محتاج وو.هغه به په دې کې اوسیدو وَمَنْ اسْتَغْنَى عَنْهَا او څوك به چې ددې نه بې حاجته وو أَسْكَنَ غَيْرَهُ().هغه به د خان نه علاوه ( بل څوك) په دې کې اوسول.

تشریح:- د مکې مخکه په اجاره باندې ورکول هم مکروه دی.د هغه حدیث په وجه کوم چې کتاب کې ذکر شوي دي.او عقلی دلیل دا دې.چه د مکې د زمکې نوم به د نبی کریمﷺ په زمانه کې سوائب وو.یعنی چې په دې باندې د هیڅ چا ولایت حاصل نه وی.چا ته چې اړتیا وی.په دې کې دې اوسیږی.او چا ته چې اړتیا نه وی.هغه دې پریږدی.چه بل څوك ( اړتیا مند) په دې کې اوسیږی.

① مسئله: د صاحب دهدایه رحمه الله يو كتاب دې ،، مختارات النوازل ،، په دې کې هغوی فرمائیلی دی.چه د مکې د عمارت بیع او ددې په خرڅولو کې هیڅ باك نشته.﴿درمختار ص:۵۲۵،ج۵﴾ ،، قتلت ،، نو د سکب الانهر جزئیه به د زمکې د اجارې په کراهت باندې محمول کولې شی.

② مسئله: د صاحبینو رحمهما الله په نیز د مکې د زمکې بیع جائز ده.او په خلګو کې د څه نکیر نه بغیر د مکې د زمکو او کورونو خرڅولو تعامل ( عادت) جاری دې.او تعامل قوی دلیل دې.او د امام صاحب رحمه الله هم یو روایت دا دې.علامه عینی رحمه الله په شرح کنز کې ونیلی دی. ﴿وبه يفتى وكذا فى﴾ ﴿مجمع الأنهر ص:۵۲۴،ج۲؛ وسكب الأنهر ص: ۳۶۷،ج۲﴾

③ مسئله: بهرحال د مکې مخکه په کرایه باندې ورکول، نودا فقهاو د څه اختلاف ذکر کاوه نه بغیر مکروه ګرځولی دی.او دځه امله بیانولو نه بغیر نې ړومبی ته جائز او اجارې ته مکروه ونیلی دی.﴿سکب الانهر ص: ۴۷۶،ج۲﴾

**دوكاندار سره درهم ايخودل او د خپلې خوښې څيزونو اخستلو معامله كول**

وَمَنْ وَضَعَ دِرْهَمًا عِنْدَ بَقَّالٍ يَأْخُذُ مِنْهُ مَا شَاءَ او کوم کس چې یو دوکاندار سره یو درهم کیخودو.چه دده نه څه غواړی.اخلی به يُكْرَهُ لَهُ ذَلِكَ نو دا دده لپاره مکروه دی؛لِأَنَّهُ مَلَّكَهُ قَرْضًا جَرَّ بِهِ نَفْعًا ځکه چې ده ( ایخودونکی) هغه ( دونکاندار) مالك جوړ کړې دې. د پور په طور، چې په دې سره ده نفع حاصل کړله وَهُوَ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ مَا شَاءَ حَالًا فَحَالًا او نفع دا ده.چه دې په هغې سره څه غواړی.وخت په وخت به اخلی وَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنْ قَرْضٍ جَرَّ نَفْعًا او رسول اللهﷺ دداسې پور نه منع فرمائیلې ده.چه [illegible] يَنْبَغِي أَنْ يَسْتَوْدِعَهُ مناسب دا ده.چه دا ودیعت کیږدی ثُمَّ يَأْخُذَ مِنْهُ مَا شَاءَ جُزْءًا فَجُزْءًا بیا چې دده نه کوم څه غواړی.لږ لږ اخلی؛لِأَنَّهُ وَدِيعَةٌ ځکه چې دا ودیعت دې وَلَيْسَ بِـ پور ،حَتَّى لَوْ هَلَكَ او پور نه دې.تردې که درهم هلاك شو ،،لَا شَيْءَ عَلَى الْآخِذِ،وَاللَّهُ أَعْلَمُ نو په اخستونکی باندې هیڅ نشته.والله اعلم.

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه د یوسړی سره یو درهم دې.او هغه ته دا یره ده.چه دا به خرچ شی.او بیا به په ضروریاتو کې راګیر شی.نو ده چې د کوم دوکاندار نه مالګه، مرچکې وغیره اخستلو.هغه سره ئې دا درهم کیخودو.چه د هغه نه لږ لږ سامان اخلی.نو دا مکروه دی.ځکه چې دده دا درهم دوکاندار سره پور دې.او داسې پور دې.چه په دې سره دې نفع حاصلوی.او نفع دا ده.چه دې ئې په لږه لږه اخلی.نو بهرحال دا

[1]) قال الزيلعي رحمه الله غريب بهذا اللفظ وری محمد بن الحسن فى كتاب الآثار...عن عبدالله بن عمر عن النبىﷺ قال من أكل من أجور بيوت مكة فإنما يأكل ناراً)_
من أثر علقة بن نضلة أخرجه ابن ماجه فى سننه رقم ۳۱۰۷) وكذا رواه ابن أبى شيبة فى مصنفه والدارقطنى فى سننه)_



نفع ده.او په حدیث کې د داسې پور نه منع شوې ده.په کوم سره چې نفع حاصلیږی.په دې وجه دا صورت مکروه دې.او غوره دا ده.چه دا درهم ودیعت کیږدی.بیا دا په لږه لږه اخلی.نو اوس به دا مکروه نه وی.ځکه چې اوس دا امانت دې. پور نه دې.خو اوس دوکاندار لپاره په دې درهم کې تصرف کول جائز نه دی.اوکه د تصرف نه بغیر دا درهم دکاندار سره هلاك شی.نو په هغه باندې ضمان واجب نه دې.ځکه چې د امانت ضمان نه واجبیږی.البته د پور ضمان واجبیږی.

تنبیه① بقال: سبزی خرڅونکې، خو بیا دا عام شو.او د مصالحې وغیره خرڅونکی ته هم بقال اوونیلې شو.چه دې ته د شام د خلګو په ژبه کې قاضی او د مصر د خلګو په ژبه کې زیات وائی.( او په پښتو کې ورته د سبزئ والا وائی).

تنبیه② دلته د مرغینانی رحمه الله په عبارت کې د پور صراحت نشته.بلکه ،، عند بقال ،، ددې په ودیعت کیدو باندې دلالت کوی.ځکه چې ،،عند،، د ودیعت لپاره استعمالیږی.نو بیا به دا په پور باندې څنګه محمول کولې شی؟ نو ددې وجه دا ده.چه دده قول ﴿يأخذ من ما شاء﴾ د شرط په درجه کې دې. یعنی په دې شرط نې کیخودو.چه څه غواړی.اخلی به.اوکه د شرط نه نې بغیر ایخودې وو.او بیا ئې په لږه لږه اخستلو.نو ودیعت به وو.

## مسائل متفرقة

ژباړه:- ( دا) متفرقې مسئلې دی.

تشریح:- ددې عنوان لاندې مختلف قسمه مسئلې راجمع کولې شی.

**قرآن کښې د تعشیر او نقطو لګولو حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی وَيُكْرَهُ التَّعْشِيرُ او تعشیر ( په لسم آیت باندې علامت لګول) وَالنَّقْطُ فِي الْمُصْحَفِ لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه او په قران کې نقطې لګول مکروه دی.د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د قول په وجه جَرِّدُوا الْقُرْآنَ چې قرآن د نورو څیزونو نه خالی کړئ وَيُرْوَى: جَرِّدُوا الْمَصَاحِفَ([1]) او روایت کړې شوې دې.مصحفونه د نورو څیزونونه خالی کړئ وَفِي التَّعْشِيرِ وَالنَّقْطِ تَرْكُ التَّجْرِيدِ او په تعشیر او نقطو لګولو کې تجرید ( خالی ساتل) پریښول دی وَلِأَنَّ التَّعْشِيرَ يُخِلُّ بِحِفْظِ الْآيِ ځکه چې تعشیر د ایاتونو په حفظ کاوه کې مخل دی وَالنَّقْطُ بِحِفْظِ الْإِعْرَابِ اتِّكَالًا عَلَيْهِ او نقطې لګول د اعرابو په حفظ کاوه کې مخل دی.په دې باندې د اعتماد کاوه په وجه.. فَيُكْرَهُ نو دا مکروه ده .قَالُوا فِي زَمَانِنَا لَا بُدَّ لِلْعَجَمِ مِنْ دَلَالَةٍ مشائخو فرمائیلی دی.چه زموږ په زمانه کې عجمو لپاره یو علامت او دلالت کیدل ضروری دی فَتَرْكُ ذَلِكَ إِخْلَالٌ بِالْحِفْظِ نو ددې پریښول حفظ کاوه کې مخل دی. وَهِجْرَانٌ لِلْقُرْآنِ فَيَكُونُ حَسَنًا او قرآن پریښول دی.نو دا به حسن وی.

حل اللغة: ① التعشیر: په لسم آیت باندې نښانه لګول ② هجران: پریښول ③ اخلال: خلل پیدا کول﴾

تشریح:- تعشیر: په هر لسم آیت باندې نشان لګول، نقطه : نقطې لګول، تجرید: خالی کول یعنی د قرآن نه علاوه ( نور هیڅ ) او نه لیکلې شی.مطلب دا دې.چه حدیث کې حکم ورکړې شوې دې.چه قرآن د غیر قرآن نه خالی کړئ.په دې وجه آمین هم نشی لیکلې.نو په قران باندې نقطې او اعراب لګول، دغه ډول په هر لسم آیات باندې نشان لګول، او لکه مقررول، واړه مکروه دی.ځکه چې د تجرید ( خالی کولو) منافی دی.او تعشیر او نقطې به په آیاتونو یادولو کې مخل وی.او په اعراب یادولو کې به مخل وی.ځکه چې واړه خلګ به په لیکلی شوی باندې اعتماد کوی.او یادول به پریږدی.خو مشائخو فرمائیلی دی.چه زموږ په زمانه کې

[1]) أخرجه ابن أبى شيبة فى مصنفه قاله الزيلعى رحمه الله (نصب: ۵۷۹\۴)_

عجميانو لپاره د اعراب او نقطو لګول ضروري دی. ګنې دوې نه بغير به اونشي وئيلې. نو ددوی په حق کې د اعراب وغيره کيدل ضروري دی. ګنې هغوی به بالکل قرآن پرېږدی. په دې وجه اعراب وغيره خوښ ګنړی شوی دی. لنډيز دکلام دا چې دا بدعتِ حسنه دې.

مسئله: ممانعت د قرآن د نزول زمانې پورې مخصوص دې. او ددوی لپاره د اعراب نه بغير وئيل آسان وو. نو ددوی په حق کې تعشير او نقطې لګول د آياتونو حفظ کاوه او د اعرابو په يادولو کې مخل وو. او زموږ په زمانه کې دا خبره نشته. بلکه دا مستحسن ده. او د زمانې او د مکان په اختلاف سره احکام مختلف کيږی. ﴿کذا فی مجمع الانهر ص: ۵۳۰، ج۵ ؛ و البسط فی الشامی ص: ۲۴۷، ج۵﴾

## د مصحفونو ښائسته کولو حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. **وَلَا بَأسَ بِتَحْلِيَةِ الْمُصْحَفِ** او په قرآن ښائسته کاوه کې هيڅ باك نشته **لِمَا فِيهِ مِنْ تَعْظِيمِهِ** خکه چې په دې کې د قران تعظيم دې **وَصَارَ كَنَقْشِ الْمَسْجِدِ وَتَزْيِينِهِ بِمَاءِ الذَّهَبِ** او دا داسې شوه. لکه جمات د سرو زرو په اوبو سره نقشدار او ښائسته کول. **وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ** او موږ دا وړاندې ذکر کړی دی.

حل اللغة: ① تحلية: ښائسته کول ② تزيين: مزين کول }

تشريح:- قرآن کريم په زيوراتو سره ښائسته کول جائز دی. لکه څنګه چې جمات د سرو زرو په اوبو سره ښائسته کول جائز دی. او مرغيناني رحمه الله دا د هدايه په ړومبی توك کې هم بيان کړی دی. خو دا ښائسته کول د جمات په مال سره کول پکار نه دی. بلکه متولی دې پخپل مال سره اوکړی. که د جمات په مال سره ئې اوکړی. نو متولی به ضامن وی.

## ذميانو لپاره په جمات کښې د داخليدو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې فرمائيلی دی **لَا بَأْسَ بِأَنْ يَدْخُلَ أَهْلُ الذِّمَّةِ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ** او هيڅ باك نشته په دې خبره کې چې ذمی خلګ مسجد حرام کې داخل شی. **قَالَ الشَّافِعِيُّ يُكْرَهُ ذَلِكَ**: او امام شافعی رحمه الله فرمائيلی دی. چه دا مکروه دی **وَقَالَ مَالِكٌ يُكْرَهُ فِي كُلِّ مَسْجِدٍ**. او امام مالك رحمه الله فرمائيلی دی. په هر جمات کې مکروه دی **لِلشَّافِعِيِّ قَوْلُهُ تَعَالَى** د امام شافعی رحمه الله دليل د الله تعالی فرمان دې **إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ** چې مشرکان ناپاك دی **فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَذَا** نو ددې کال نه روسته دې دوی مسجد حرام کې نه داخليږی. ﴿التوبه: ۲۸﴾ **وَلِأَنَّ الْكَافِرَ لَا يَخْلُو عَنْ جَنَابَةٍ** او خکه چې کافر د جنابت نه خالی نه دې **لِأَنَّهُ لَا يَغْتَسِلُ** خکه چې هغوی داسې غسل نه کوی **اغْتِسَالًا يُخْرِجُهُ عَنْهَا**. چه دا هغوی د جنابت دغسل نه اوباسی **وَالْجُنُبُ يُجَنَّبُ الْمَسْجِدَ** او جنبې د جمات نه لرې کولای شی **وَبِهَذَا يَحْتَجُّ مَالِكٌ**، او هم په دې دليل امام مالك رحمه الله احتجاج کړې دې **وَالتَّعْلِيلُ بِالنَّجَاسَةِ عَامٌّ** او علت بيانول نجاست سره عام دی، **فَيَنْتَظِمُ الْمَسَاجِدَ كُلَّهَا** نو دا تولو جماتونو ته ګډ دې.

حل اللغة: ① جناية: ګناه ② ينتظم: شامليږی ③ نجس: پليت﴾

تشريح:- په مسجد حرام او نورو جماتونو کې د کافرانو داخليدل د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دی. امام مالك رحمه الله فرمائی. چه په يو جمات کې هم د کافرانو داخليدل جائز نه دی. امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه په مسجد حرام کې د کافرانو دخول جائز نه دې. او په جماتونو کې جائز ې. دوی د قرآن مذکوره آيت نه استدلال کړې دې. او کافر د جنابت په حالت کې دې. خکه چې د هغه غسل هغه د جنابت نه نه اوباسی. نو لکه څنګه چې د جنبی داخليدل په مسجد حرام کې جائز نه دې. دغه ډول د ذمی دخول به هم جائز نه وی. خو د امام شافعی رحمه الله دا دليل کمزورې دې. خکه چې هرکله ذمی د جنابت په حالت کې دې. نو بيا په مسجد حرام کې داخليدل ممنوع او په نورو جماتونو کې داخليدو ته جائز ولې فرمائی؟ هم ددې دليل نه امام مالك رحمه الله استدلال کړې دې. او فرمائيلی ئې دی. چه هرکله د کافرانو ناپاك کيدل ثابت شو. نو د ناپاك داخليدل په



هيڅ جمات کې جائز نه دی. او هم دا ددوی مذهب دې.

## د احنافو دليل

وَلَنَا او زموږ دليل هغه ( حديث ) دې **مَا رُوِيَ**. کوم چې رانقل دې **أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَنْزَلَ وَفْدَ ثَقِيفٍ فِي مَسْجِدِهِ** چې نبی کريم ﷺ وفد ثقيف پخپل جمات کې کينولی وو **وَهُمْ كُفَّارٌ**[1] او هغوی کافران وو **وَلِأَنَّ الْخَبَثَ فِي اعْتِقَادِهِمْ** او خکه چې چټلې د هغوی په اعتقاد کې ده **فَلَا يُؤَدِّي إِلَى تَلْوِيثِ الْمَسْجِدِ** نو دا به د جمات ګنده کاوه ارخ ته متعدی نه وی **وَالْآيَةُ مَحْمُولَةٌ عَلَى الْحُضُورِ اسْتِيلَاءً وَاسْتِعْلَاءً** او آيت محمول دې. حاضريدو باندې د غلبې او د اوچت والی په طريقه **أَوْ طَائِفِينَ عُرَاةً** ( يا آيت محمول دې چې دوی حاضر نشی). چه په بربنډه طواف اوکړی.. **كَمَا كَانَتْ عَادَتُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ** لکه څنګه چې په زمانه د جاهليت کې ددوی عادت وو.

حل اللغة: ① الخبث: نجاست، مرداری (مرداری ، ② تلويث: ګنده کول ③ عراة: جمع دعاری، بربنډ ④ استيلاء: اوچتوالی﴾

تشريح:- دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې. ① چې د نبی کريم ﷺ په خدمت کې د ثقيف وفد حاضر شو. چه دوی کافران وو. خو نبی کريم ﷺ دوی په جمات کې ايسار کړل. ② دويمه وجه دا ده. چه د کافر بدن نا پاك نه دې. بلکه دده اعتقاد نا پاك او پليت دې. خو د اعتقاد په خرابئ سره د جمات خرابيدل نه لازميږی. ③ او نبی کريم ﷺ ثمامه بن اثال رضی الله عنه د کفر په حالت کې په جمات کې اوتړلو. چه دده واقعه مشهوره ده. او پاتې شو مذکوره آيت نو ددې مطلب دا دی. چه اوس د مشرکانو غلبه او زور او ختم شو. يا دا مطلب دې. چه مشرکان د جاهليت د زمانې پشان بربنډه طواف لپاره جمات کې داخل نشی.

مسئله ①: په ﴿ وَلَا تَقْرَبُوا ﴾ کې نهی تشريعی نه ده. بلکه تکوينی ده. يعنی الله تعالی به مشرکانو کې مسجد حرام ته نژدې والې پيدا نکړی.

مسئله ②: په جمات کې د کافرانو داخليدل جائز دی. خو په مسجدحرام کې د محقق قول مطابق داخليدل جائز نه دی. امام محمد رحمه الله په سيرکبير کې د داخليدو نه منع فرمائيلې ده. او هم دا ددوی آخری تصنيف دې. او ددوی په مکه او مدينه کې داخليدل هم ممنوع دی. البته که د تجارت لپاره څی. نو شامی ليکلی دی. چه جائز دی. خو زيات به نه پاتې کيږی. ﴿شامی ص: ۲۴۸، ج۵﴾

فائده ③: کله چې الله تعالی د شرك توان ختم کړو. او د جزيرهٔ عرب صدرمقام ( مکه معظمه) ئې ( په مسلمانانو فتح) کړله. او د عربو قبيلې ډلې ډلې په دائره د اسلام کې داخليدل پيل شو. نو بيا ئې سن۹هـ کې اعلان اوکړو. چه روستو به ( ددې نه روسته ) هيڅ مشرك په مسجد حرام کې نه داخليږی. بلکه دې ته نژدې يعنی د حرم په حدود کې دې هم نه راځی. خکه چې ددې زړونه د شرك او کفر نجاست نه دومره پليت او ګنده دی. چه د ټولو نه لوئې مقدس مقام او د ايمان او د توحيد مرکز کې د داخليدو لائق نه دی. ددې نه روسته د صحيح احاديثو نه ثابته ده. چه نبی کريم ﷺ د جزيرة العرب نه د مشرکانو او يهود او نصاری د ټولو د اوښکلو حکم اوفرمائيلو. او د نبی کريم ﷺ د آخری وصيت مطابق د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې دا حکم عملاً نافذ کړې شو. اوس په طور د مورزاده (پيدائشی) اوسيدو يا توطن ( مستقل نيشنليتی په طور) هلته د کافرانو په اوسيدو باندې مسلمانانو له رضامند کيدل جائز نه دی. بلکه جزيرة العرب د توان په اندازه ( د مشرکانو نه) پاك ساتل ددوی فريضه ده.

تنبيه ④: سعودی حکومت ددوی په داخليدو باندې پابندی لګولې ده.،،

## د خصی نه د خدمت اخستلو حکم

[1] من حديث عثمان بن أبي العاص رضی الله عنه أخرجه أبوداود فی الإمارة باب ۲۶ رقم ۳۰۲۶ وأحمد فی المسند (۲۱۸\٤)_

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَيُكْرَهُ اسْتِخْدَامُ الْخُصْيَانِ او د خصیانو نه خدمت اخستل مکروه دی لِأَنَّ الرَّغْبَةَ فِي اسْتِخْدَامِهِمْ خکه چې ددوی نه په خدمت اخستلو کې شوق لرل حَثُّ النَّاسِ عَلَى هَذَا الصَّنِيعِ خلګ ددوی په حرکت باندې راپورته کول وَهُوَ مُثْلَةٌ حالانکه دا مثله ده مُحَرَّمَةٌ.چه دا حرام ده.

**حل اللغة** ① خصیان: جمع د حصی، هغه څوک چې هګۍ ترې ویستلې شوې وی ② الرغبة: شوق ③ الصنیع: ډول عمل﴾

**تشریح:-** یعنی کوم خلګ چې خصیې (هګۍ) اوباسی.او هیجړا او خصیان کیږی.د هغوی نه خدمت اخستل مکروه دی.ځکه کله چې ددوی نه خدمت اخستلې شی.نو نورو خلګو ته به هم شوق کیږی.چه دا خو د آمدنۍ ذریعه ده.نو هغوی به هم خان نه هیجړاګان جوړه وی.حالانکه دا حرام دی.ځکه چې دا مثله کول دی.چه ددې نه صراحت سره منع شوې ده.

### د خاروو خصی کول.او خر په اسپې د خیجولو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَلَا بَأْسَ بِخِصَاءِ الْبَهَائِمِ وَإِنْزَاءِ الْحَمِيرِ عَلَى الْخَيْلِ او د خاروو په خصی کاوه کې، او خر په اسپو باندې اچولو کې هیڅ باك نشته لِأَنَّ فِي الْأَوَّلِ مَنْفَعَةً لِلْبَهِيمَةِ وَالنَّاسِ ځکه چې په ړومبی (صورت) کې د خاروو او د خلګو فائده ده وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَكِبَ الْبَغْلَةَ (١) او دا خبره صحیح ده.چه نبی کریم ﷺ په خچر باندې سور شوې دې فَلَوْ كَانَ هَذَا الْفِعْلُ حَرَامًا نو که دا فعل حرام وې، لَمَا رَكِبَهَا نو نبی کریم ﷺ به په خچر باندې نه سوریدو لِمَا فِيهِ مِنْ فَتْحِ بَابِهِ په دې وجه چې په دې کې ددې دروازه کلاوول دی.

**حل اللغة** ① اخصاء: خصی کول ② انزاء الحمیر: خرۀ په اسپو اچول ③ رکب: سوارۀ﴾

**تشریح:-** د خاروی په خصی کولوکې دخاروی هم فائده ده.چه دا بنه سربه کیږی.او چاقیږی.او د انسان فائده هم ده.چه ددې د شر نه محفوظ کیږی.او خر په اسپې باندې خیجول، ددې لپاره چې خچره پیدا شی.نوجائز دی.ځکه چې نبی کریم ﷺ په خچر باندې سور شوې دې.که دا (خر په اسپه خیجول) حرام وې.نو نبی کریم ﷺ به په خجر باندې نه سواریدو.چه ددې ممنوع فعل دروازه کلاو نشی.

### د یهودیانو او نصرانیانو د بیمار پرسۍ کولو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی وَلَا بَأْسَ بِعِيَادَةِ الْيَهُودِيِّ وَالنَّصْرَانِيِّ او د یهودی او نصرانی په عیادت (بیمارپرسی) کې هیڅ باك نشته لِأَنَّهُ نَوْعُ بِرٍّ فِي حَقِّهِمْ او ځکه چې دا د ښیګړې (احسان) یو ډول دې وَمَا نُهِينَا عَنْ ذَلِكَ او موږ ددې نه نه یو منع شوی وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَادَ يَهُودِيًّا او دا خبره صحیح ده.چه نبی کریم ﷺ د یو یهودی بیمار پرسی کړې وه،،مَرِضَ بِجِوَارِهِ (٢) چه هغه ددوی ﷺ په ګاونډ کې بیمار شوې وو.

**تشریح:-** د یهودی او نصرانی یا د بل یو کافر په بیمار پرسۍ کاوه کې هیڅ باك نشته.ځکه چې اسلام د نیکۍ کار کاوه نه نه منع کوی.او د نبی کریم ﷺ نه ثابته ده.چه دوی ﷺ د یهودی عیادت کړې وو.اګرچه د مجوسی (آتش پرست) په بیمار پرسۍ کې د احنافو دوې (دوه) اقواله دی.خو جواز اصح دې.او دغه ډول د فاسق بیمار پرسی جائز ده.ځکه چې دا مسلمان دې.او بیمار پرسی د مسلمانانو د حقوقو ځنې ده.البته که بیمار ته د

---

(١) من حدیث براء بن عازب رضی الله عنه أخرجه البخاری فی الجهاد باب ٥٢ ومسلم فی الجهاد رقم ٧٨ والترمذی فی الجهاد باب ١٥ وأحمدفی المسند(٢٨٠١٤)_

(٢) من حدیث أنس رضی الله عنه أخرجه البخاری فی الجنائز باب ٨٠ وأبوداود فی الجنائز باب ٢ وأحمد فی المسند(٢٢٧١٣)_



راتلونکی په وجه تکلیف وی.نو په داسې صورت کې بیمار پرسی مکروه ده.﴿شامی ص:٢٤٨،ج٥﴾

### په دعا کښې د أسألك بمقعد العز من عرشك ویلو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی وَيُكْرَهُ أَنْ يَقُولَ الرَّجُلُ فِي دُعَائِهِ او مکروه دی.چه سړې پخپلو دعاګانو کې دا ووایي أَسْأَلُكَ بِمَعْقِدِ الْعِزِّ مِنْ عَرْشِكَ چې،، زه ستا نه سوال کوم.ستا د عرش نه د عزت د غوټو ور کاوه په واسطې در کاوه سره وَلِلْمَسْأَلَةِ عِبَارَتَانِ ددې دوې (دوه) عبارتونه دی ::هَذِهِ یوهم دغه دې وَمَقْعَدُ الْعِزِّ او دوهم ،، مقعد العز ،، دې وَلَا رَيْبَ فِي كَرَاهَةِ الثَّانِيَةِ او د دوهم په مکروه کیدو کې هیڅ شبه نشته لِأَنَّهُ مِنَ الْقُعُودِ ځکه چې دا د قعود نه ماخوذ دې ،وَكَذَا الْأُولَى دغه ډول ړومبې هم مکروه دې لِأَنَّهُ يُوهِمُ تَعَلُّقَ عِزِّهِ بِالْعَرْشِ ځکه چې دا موهوم دې.چه د الله ﷻ تعلق عرش سره دې وَهُوَ مُحْدَثٌ حالانکه عرش حادث دې،،،وَاللَّهُ تَعَالَى بِجَمِيعِ صِفَاتِهِ قَدِيمٌ.او الله تعالى سره د خپلو ټولو صفاتو قدیم دې.

**تشریح:-** په دعا کې داسې کلمات وئیل مکروه دی.چه دا موهم د شرك یا په شان د الله تعالى کې موهم د نقصان وی.الله تعالى سره دخپلو ټولو صفاتو قدیم دې.او واړه عالم (مخلوق) حادث دې.تردې چې عرش او کرسی هم حادث دی.نو داسې کلمات وئیل،چه په دې کې د الله تعالى د عرش مقر (د سکون ځائې) ثابتیږی.یا د عزت مقام معلومیږی.د ابهام په وجه مکروه دی.نو په دې الفاظو سره دعا کول ﴿أسئلك بمعقد العزمن عرشك یا أسئلك بمقعد العز من عرشك﴾ دواړه مکروه دی.ړومبۍ (دعا) ځکه مکروه ده.چه معقد د عقد نه مشتق دې.چه ددې معنى د غوټې تړلو د ځائې ده.نو ددې معنى دا شوه چې د ،، د عرش نه دعزت د غوټې تړلو ځائې،، نو په دې کې عرش ته د عزت د تړلو ځائې وئیل، موهم د حدوث دی.ځکه چې عرش قدیم نه دې.بلکه حادث دې.نو عرش سره متعلق عزت به هم حادث وی.حالانکه ددې د حادث کیدو محل کیدل باطل دی.او په دوهم صورت کې دا مقعد د قعود نه ماخوذ دې.چه دده معنى ده.،، د عرش نه کیناستلو ځائې،، یعنی عرش کوم چې د عزت مقر (مقام) دې.په دې صورت کې به عرش باندې تمکن (کیناستل) ثابتیږی.چه دا د مجسمۀ (باطلې فرقې) قول دې.او سراسر باطل دې.

### د امام ابویوسف رحمه الله نقطه نظر

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا بَأْسَ بِهِ او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی ډنه لا بڈس به چې په دې کې هیڅ باك نشته وَبِهِ أَخَذَ الْفَقِيهُ أَبُو اللَّيْثِ رحمه الله او هم دا (قول) فقیه ابواللیث رحمه الله اخستې دېلډنه مڈثور لِأَنَّهُ مَأْثُورٌ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې دا د نبی کریم ﷺ نه منقول دې رُوِيَ أَنَّهُ كَانَ مِنْ دُعَائِهِ نقل دی.چه ددوی ﷺ په دعاء کې دا کلمات دی اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِمَعْقِدِ الْعِزِّ مِنْ عَرْشِكَ! زه ستا د عرش د عزت د تړلو د ځائې وَمُنْتَهَى الرَّحْمَةِ مِنْ كِتَابِكَ،او ستا د کتاب د رحمت د انتهاء وَبِاسْمِكَ الْأَعْظَمِ او ستا د اسم عظم او دعظمت او د کبریایۍ (لویې)..،وَجَدِّكَ الْأَعْلَى وَكَلِمَاتِكَ التَّامَّةِ (١) او ستا د کاملو کلمو واسطه درکوم.او غواړم.

**تشریح:-** امام ابویوسف رحمه الله دې ته جائز وئیلی دی.او دا کلمات نې دعاء ماثوره ثابته کړې ده. ﴿.. قلت،، رواه البیهقی فی الدعوات الکبیر، ورواه إبن الجوزی فی الموضوعات، قال إبن الجوزی هذا حدیث موضوع بلا شك وإسناده مخبط کما تری﴾ اوګورئ: ﴿نصب الرایه ص:٢٧٣،ج٤﴾

### د امام ابویوسف رحمه الله د استدلال جواب

وَلَكِنَّا نَقُولُ: هَذَا خَبَرُ وَاحِدٍ خو موږ وایو.دا خبر واحد دې فَكَانَ الِاحْتِيَاطُ فِي الِامْتِنَاعِ نو احتیاط په منع کیدو

---

(١) من حدیث ابن مسعود رضی الله عنه أخرجه البیهقی فی الدعوات الکبیر قاله الزیلعی رحمه الله (نصب:٥٨٣١٤)_

كي دي ﴿وَيُكْرَهُ أَنْ يَقُولَ الرَّجُلُ فِي دُعَائِهِ بِحَقِّ فُلَانٍ أَوْ بِحَقِّ أَنْبِيَاؤُكَ وَرُسُلِكَ﴾ او مكروه دى.چه پخپله دعاء كي اووائي. «بحق فلان يا بحق أنبياءك و رسلك» ﴿لِأَنَّهُ لَاحَقَّ لِلْمَخْلُوقِ عَلَى الْخَالِقِ﴾ خكه چې د مخلوق هيڅ حق په خالق باندې نشته.

تشريح:- دا د امام ابويوسف رحمه الله ( د قول) څواب دې.او تيرشوې څواب ددې نه ښه دې.ددې حاصل دا دې.چه حديث قابل د استدلال نه دې.بيا كوم چې دا رواج دې.چه په دعاء كي وائي.چه ،، بحق فلان و فلان،، نو دا مكروه دى.خكه چې الله تعالى باندې د هيڅ چا هيڅ حق نشته.بلكه هغه چې كوم څه وركوى.خالص د هغه مهرباني ده... فتدبر..

مسئله ① په ﴿سكب الانهر ص:۴۸۵،ج۲﴾ باندې نې وئيلى دى.چه دا ډير زيات واقع كيږى... فليحفظ..

مسئله ② خوكه حق په دې معنى كي وانخستلې شي.كوم اړخ ته چې ذهن منتقل كيږى.بلكه ددې نه عزت او عظمت ( مراد واخستلې شى).يا په نورو الفاظو كي داسې چې وسيله مراد واخستلې شي.نو په دې كي هيڅ باك نشته.او زموږ د مشانخو په شجرو كي چې كوم خائې دا لفظ استعمال شوې دې.نو هغه صرف د توسل په معنى كي دې.او وسيله جائز ده.علامه شامى په ﴿ ردالمختار ص:۲۵۴،ج۵﴾ باندې دې تاويل ته د اشارو كاوه نه روسته فرمائيلى دى.چه واړه داسې احتمالات دى.چه دا په ښكاره د متبادر خلاف دى.په دې وجه زموږ امامانو مطلقاً منع فرمائيلې ده... قلت،، خو زموږ په ژبه كي د توسل په معنى كي ددې استعمال ښكاره دې.نو په دې به د كراهت حكم نشى جارى كولې.او د يو حديث نه هم ددې تائيد كيږى. حديث دا دې. «ألّلهم إنى أسئلك بحق السائلين عليك و بحق ممشاى إليك... ألحديث» ﴿فى ردالمختار ص:۲۵۴،ج۵﴾

### د شطرنج، نرد، او د منزرې لوبو كولو حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي فرمائيلى دى ﴿وَيُكْرَهُ اللَّعِبُ بِالشِّطْرَنْجِ وَالنَّرْدِ وَالْأَرْبَعَةَ عَشَرَ﴾ او شطرنج او نرد او چوده گوټى ( منزرى) سره بازې كول مكروه دى ﴿وَكُلِّ لَهْوٍ﴾ او هره لوبه ( مكروه ده). ﴿لِأَنَّهُ إِنْ قَامَرَ بِهَا﴾ خكه كه ده په دې سره جوارى اوكړله ﴿فَالْمَيْسِرُ حَرَامٌ بِالنَّصِّ﴾ نو جوارى حرام ده.په نص سره ﴿وَهُوَاسْمٌ لِكُلِّ قِمَارٍ﴾ او ميسر نوم دې.د جوارئ ﴿وَإِنْ لَمْ يُقَامِرْ﴾ او كه جوارى نې اونكړله ﴿فَهُوَ عَبَثٌ وَلَهْوٌ﴾ نو دا عبث او لهو ( بازې) دې ﴿وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ﴾ او نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى. ﴿لَهْوُ الْمُؤْمِنِ بَاطِلٌ إِلَّا الثَّلَاثَ﴾ د مؤمن بازې باطل دى.مگر درې،: ﴿تَأْدِيبُهُ لِفَرَسِهِ﴾ دده خپل اس ته ادب وركول، ﴿وَمُنَاضَلَتُهُ عَنْ قَوْسِهِ﴾ او په خپلې ليندې سره غشې ويشتل، ﴿وَمُلَاعَبَتُهُ مَعَ أَهْلِهِ﴾([1]) او دده بازې ( مشغولتيا) خپلې ښځې سره،

حل اللغة ① اللعب: بازې ② النرد: منزرې ③ قمار: جوارى ④ فرس: اس ⑤ قوس: لينده ⑥ مناصل: لينده»

تشريح:- شطرنج، او نرد او چوده گوټى ( منزرې) او دغه ډول هر قسمه بازې مكروه دى.خكه كه په دې كي د جوارئ صورت وى.نو ددې حرمت نص سره ثابت دې.او كه د جوارئ صورت نه وى.نو دا ټولې بازې عبث او لغوه دى.او دا حرام دى.او په حديث كي د مؤمن ټولو لوبو ته عبث وئيلى شوى دى.علاوه د دريو لوبو نه ① شهسوارى ( په اسونو ټريننگ كول).② تيراندازى ( په غشو ويشتلو ټريننگ كول).③ خپلې ښځې سره بازې كول.

### د بعضو حضراتو مسلك

وَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ:او بعضو خلگو وئيلى دى ﴿يُبَاحُ اللَّعِبُ بِالشِّطْرَنْجِ﴾ چې شطرنج باندې بازې كول جائز دى ﴿لِمَا

[1]) من حديث عقبة رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى الجهاد باب۲۳ رقم ۲۶ والنسائى فى الخيل باب ۸ وابن ماجه فى الجهاد بـاب ۱۹ رقم ۲۸۱۱)_



فِيهِ مِنْ تَشْحِيذِ الْخَوَاطِرِ وَتَذْكِيَةِ الْأَفْهَامِ﴾ خكه چې دې كي ذهنونه تيزول او د عقلونو تيزول دى، ﴿وَهُوَ مَحْكِيٌّ عَنِ الشَّافِعِيِّ﴾ او هم دا د امام شافعى رحمه الله نه رانقل دى.

تشريح:- بعضو حضراتو شطرنج ته جائز وئيلى دى.خكه چې په دې كي ذهن تيزيږى.او هوښياريږى.د امام شافعى رحمه الله نه هم دا منقول دى.

### د احنافو دليل

﴿لَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ﴾ او زموږ دليل د نبى كريم ﷺ فرمان دې ﴿مَنْ لَعِبَ بِالشِّطْرَنْجِ وَالنَّرْدَشِيرِ﴾ كوم كس چې شطرنج او نرد شير( منزرى) سره بازې اوكړلې ﴿فَكَأَنَّمَا غَمَسَ يَدَهُ فِي دَمِ الْخِنْزِيرِ﴾([1]) نو هغه خپل لاس د خنزير په وينه كي ډوب كړ ﴿وَلِأَنَّهُ نَوْعُ لَعِبٍ يَصُدُّ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ او خكه چې دا د بازې داسې ډول دې.چه دا د الله تعالى دذكر نه بندوى ﴿وَعَنِ الْجُمَعِ وَالْجَمَاعَاتِ﴾ او د جمعو او جماعتونو نه نې منع كوى ﴿فَيَكُونُ حَرَامًا لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ﴾ نو دا به حرام وى.د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه ﴿مَا أَلْهَاكَ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ فَهُوَ مَيْسِرٌ﴾([2]) چې كوم كار تا د الله ﷻ د ذكر نه غافله كړې.نو هغه جوارى ده ﴿ثُمَّ إِنْ قَامَرَ بِهِ﴾ بيا .كه ده په بازې سره جوارى اوكړله ﴿تَسْقُطُ عَدَالَتُهُ﴾ نو دده عدالت به ساقطيږى، ﴿وَإِنْ لَمْ يُقَامِرْ لَا تَسْقُطُ﴾ او كه جوارى نې اونكړله.نو نه ساقطيږى ﴿لِأَنَّهُ مُتَأَوِّلٌ فِيهِ﴾ خكه چې هغه په دې كي تاويل كونكې دې ﴿وَكَرِهَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ التَّسْلِيمَ عَلَيْهِمْ﴾ او امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله په دوى باندې سلام كول مكروه گنړلى دى.ددوى د تحذير په غرض سره ﴿وَتَحْذِيرًا لَهُمْ، وَلَمْ يَرَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ بِهِ بَأْسًا﴾ او امام ابوحنيفه رحمه الله په دې كي هيڅ باك نه دې گنړلې ﴿لِيَشْغَلَهُمْ عَمَّا هُمْ فِيهِ﴾.چه د هغې نه مشغوله كړى.په كومې (لوبې) كي چې دوى (شروع ) دى.

حل اللغة ① شطرنج : د شين په كسرې سره يو ډول لوبه ده.چه دا په هندوستان وغيره كي مشهوره ده.دا د ،، سنسكرت،، لفظ دې.چه دا په اصل كي د چترنگ نه معرب دې.( چې په پښتو كي ورته تاش يا پتې وائى په دې كي شپږ قسمه مهرونو سره لوبه كولې شى.چه دې ته ( شاه، فرزين، فيل، اسپ، رخ، او پيدل ) وائى.شامى وئيلى دى.چه دا د شدرنج معرب دې.اوگورئ: ﴿ شامى ص:۲۵۳،ج۵﴾② نرد (تاش)او نرد شير دا د فارسئ نه معرب دې.دا يو ډول لوبه ده.چه دا ،، ارد شير بن بابك،، ايجاد كړې ده. په دې وجه دې ته نرد شير وائى.په قهستانى ( نومې كتاب) كي دى.چه دا لوبه د ،، شاپور بن ارد شير،، د ايجاداتو څنې ده.چه دا د ساسانيه بادشاهانو دوهم بادشاه دې. اودا حرامه ده.﴿شامى ص: ۲۵۳،ج۵﴾③ ،، أربعة عشر،، څوارلس گيټئ يوه لوبه ده.( چې دې ته پښتو كي منزرې وائى...از مترجم) دا حرامه ده.

تشريح:- مونږه دا بازې مكروه گرخولى دى.چه ددې دليل ذكر شو.بيا دا ټولې بازې د جمعې او جماعتونو او د الله تعالى د ذكر نه غافله كوى.نو ددې په نص د حديث جوارى كيدل ثابتيږى.بيا په دې لوبو كي مشغوليدونكې جوارگر هم دې.نو دده عادل كيدل به ختميږى.يعنى دده گواهى به معتبر نه وى.اوكه (صرف خان بوخت كړى) جوارى او سټه بازى ( گټه بيلات) اونكړى.نو عدالت به ئې نه ساقطيږى.بيا صاحبينو رحمهما الله

[1]) قال الزيلعى رحمه الله غريب بهذا اللفظ والحديث فى مسلم وليس فيه ذكرالشطرنج ..عن بريدة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من لعب بالنرد شير فكأنما صبغ يده فى لحم خنزير ودمه أخرجه مسلم فى الشعر،رقم٤م ١٠ وأبوداود فى الأدب باب ٥٦ وابن ماجه فى الأدب باب ٤٣) ثم ذكرالزيلعى رحمه الله احاديثاً فى تحريم الشطرنج وذكرمنها حديث أبى هريرة رضي الله عنه قال مر رسول الله ﷺ بقوم يلعبون بالشطرنج فقال ما هذه الكوبة؟ ألم أنه عنها؟ لعن الله من يلعب بها وعزاه إلى ضعفاء العقيلى (نصب:٥٨٦\٤)_

[2]) قال الزيلعى رحمه الله غريب مرفوعاً ورواه أحمد فى كتاب الزهد ..عن القاسم بن محمد قا لكل ما ألهى عن ذكرالله وعن الصلا[ة] فهو ميسر(نصب:٥٨٧\٤)_

په داسې خلکو سلام کول مکروه ګرځولي دي.چه دوی ته څه تنبیه (او زورنه) اوکړې شي.خو امام صاحب رحمه الله سلام جائز ګرځولې دې.او دلیل ئې دا پیش کړې دې.چه څومره وخت به په سلام او ددې په خواب کې خرچ کیږي.دغومره وخته پورې به دا خلګ د بازۍ نه منع کیږي.

مسئله① ﴿ په ګیره خرونکې او بوټۍ کونکې هم فاسق معلن دې.د قاعدې مطابق دوی ته هم سلام کول مکروه دي.خو حضرت مولا اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمائیلي دي.چه دوی ته د تعلیم په غرض سره سلام کولې شي.د تعظیم په طور نشي کولې.

مسئله② ﴿ داسې بازۍ او تماشې چې په دې کې د دین او دنیا هیڅ ضروری فائده نه وی.هغه واړه ممنوع او ناجائز دی.که په هغې سره جواری اولګولې شی.اوکه جلا جلا اوکړې شی.نو کوترۍ الوځول، پتنګ الوځول، مرزان جنګول، چرګان جنګول، چوسه (یوډول لوبه ده) شطرنج (پټې)، تاش، د سپو منډه وغیره واړه ددې ناجائز صورت افراد دی.﴿جواهر الفقه ص:۲۵۳،ج۲﴾

مسئله③ ﴿ په کومو لوبو سره چې بعضې دینی او دنیاوی فائدې حاصلیدې شی.هغه جائز دی.په دې شرط چې هم ددې فائدو په نیت سره په دې بازۍ اوکړې شی.صرف د لهو،لعب نیت نه وی.خو ددې په کاوه باندې د هیڅ معاوضې یا انعام شرط مقررول جائز نه دی.مثلاً د بال بازۍ کول،چه په دې سره د بدن ورزش کیږي.(نو والی بال، فټ بال وغیره واړه جائز دی).یا د ډنډې وغیره لوبه یا د پهلوانانو پرزول کول وغیره، چې دا دجهاد په قوت کې مددګار کیداې شی.دغه ډول دونړې ویشتل، شعر بازی، تعلیمی تاش، د ګټې بیلات مقابله کول، خو په دې د معاوضې رقم مقررول جائز نه دې.بلکه قمار (جواری) حرام ده.﴿جواهر الفقه ص:۲۵۱،ج۲﴾

مسئله④ ﴿ په شامی ،، باب ما یفسد الصلاة،، کې هغه ځایونه بیان کړې شوی دی.کوم ځائې چې سلام کول مکروه دی.هغې کې شطرنج سره بازۍ کونکې هم دې.او فاسق معلن (ښکاره فاسق) ته سلام کول مکروه لیکلی دی.والله أعلم بالصواب

مسئله⑤ ﴿ هرهغه معامله چې دا د نفعې او نقصان په منځ کې مبهم وی.په اصطلاح د شرع کې قمار او میسر شمارلې کیږي.په اردو ژبه کې دې ته جوا (او په پښتو کې ورته جواری) وئیلې شی.

## د تاجر غلام هدیه او دعوت قبلول.او د ځاروو په

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلي دی **وَلَابَأسَ بِقَبُولِ هَدِيَّةِ الْعَبْدِ التَّاجِرِ** او د تاجر غلام هدیه قبلولو کې هیڅ باک نشته **وَإِجَابَةِ دَعْوَتِهِ وَاسْتِعَارَةِ دَابَّتِهِ** او دده په دعوت قبلولو کې ، او دده د ځاروی په مستعار اخستلو کې **وَتُكْرَهُ كِسْوَتُهُ الثَّوْبَ وَهَدِيَّتُهُ الدَّرَاهِمَ وَالدَّنَانِيرَ** او مکروه ده د غلام کپړه اغوستل، او دده هدیه قبلول) د دراهمو او دنانیرو **وَفِي الْقِيَاسِ** او دا (دده هدیه قبلول وغیره قبلول) **بَاطِلٌ** او په قیاس کې دا واړه باطل دی.:**لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ وَالْعَبْدُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ** ځکه چې دا تبرع ده.او غلام د تبرع اهل نه وی. استحسان دې **كُلُّ ذٰلِكَ**

تشریح:- که غلام ماذون له فی التجارة وی.او هغه معمولی شان هدیه پیش کړی.نو جائز ده.دغه ډول دعوت اوکړی.نو جائز دې.یا دده اس (ځاروې) مستعار اخستل جائز دی.خو که دا غلام په هدیه کې کپړې یا دراهم او دنانیر وغیره پیش کړی.نو ددې قبلول مکروه دی.او په رومبی صورت کې چې کوم جواز دې.دا د استحسان په وجه دې.ګنی په قیاس کښې باطل دې.ځکه چې غلام د عدم ملك په وجه د تبرع (احسان کولو) اهل نه دې.او دا واړه تبرع دې.

### استحسانی دلیل

وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ د استحسان دلیل دا دې **أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَبِلَ هَدِيَّةَ سَلْمَانَ** رضی الله عنه چې نبی کریم ﷺ د سلمان



فارسی رضی الله عنه هدیه قبول کړې وه. **حِينَ كَانَ عَبْدًا**[1] حالانکه هغه غلام وو **وَقَبِلَ هَدِيَّةَ بَرِيرَةَ وَكَانَتْ مُكَاتَبَةً**[2] او د حضرت بریره رضی الله عنها هدیه ئې قبوله کړې وه.او دا مکاتبه وه **وَأَجَابَ رَهْطٌ مِنَ الصَّحَابَةِ دَعْوَةَ مَوْلَى أَبِي أُسَيْدٍ وَكَانَ عَبْدًا**[3] او د صحابو رضی الله عنهم یو جماعت د ابو اسید غلام دعوت قبول کړې وو.او هغه (ابوسید) غلام وو **وَلِأَنَّ فِي هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ ضَرُورَةً** او ځکه چې په دې څیزونو کې اړتیا دې **لَا يَجِدُ التَّاجِرُ بُدًّا مِنْهَا**.تاجر ددې نه خلاصې نشی موندې.ومن ملك شيئا او څوك چې د کوم شي مالك وی **وَمَنْ مَلَكَ شَيْئًا يَمْلِكُ مَا هُوَ مِنْ ضَرُورَاتِهِ** نو هغه دهغې د لوازماتو هم مالك وی **وَلَا ضَرُورَةَ فِي الْكِسْوَةِ وَإِهْدَاءِ** او د کپړو ور کاوه او دراهمو هدیه قبلولو کې هیڅ اړتیا ،،**الدَّرَاهِمِ فَبَقِيَ عَلَى أَصْلِ الْقِيَاسِ** نو دا په اصل قیاس باندې پاته پاتې شو

حل اللغة① الكسوة: جامې ② اهداء: هدیه کول ③ رهط: جماعت، ډله﴾

تشریح:- دلته د استحسان دلیل بیانوی.① د حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه هدیه نبی کریم ﷺ قبوله کړې وه.او هغه غلام وو.بیا حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه هغه واخستلو.او آزاد ئې کړو.② حضرت عائشې صدیقې رضی الله عنها د نبی کریم ﷺ نه پوښتنه اوکړو.چه په بریره رضی الله عنها باندې خلګ صدقه کوی.هغه د هغې نه موږ له هم رالیږي.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه هغې لپاره صدقه ده.او زموږ لپاره هدیه ده.علامه زیلعی رحمه الله فرمائی.چه د حدیث په هیڅ طریق کې ما ته ملاو نشو.چه حضرت بریره رضی الله عنها دغه وخت مکاتبه وه.مصنف ابن عبدالرزاق کې د حضرت عروه رضی الله عنه دومره نقل دی.چه حضرت عائشې رضی الله عنها حضرت بریره رضی الله عنها په داسې حال کې اخستې وه.چه هغه مکاتبه وه.او هغه ئې د اتو اوقیو په بدله کې اخستې وه.او حضرت بریره رضی الله عنها په بدل کتابت کې هیڅ ادا کړی نه وو.③ ابو سعید چې دا د ابوسید غلام وو.هغوی د ولیمې دعوت اوکړو.نو د اصحابو رضی الله عنهم یو جماعت ددوی دعوت قبول کړو.خو دا حدیث غریب دې.او ددې په ځائې یو بل مرفوع حدیث استدلال لپاره موجود دې ﴿عن أنس ابن مالك رضی الله عنه قال كان رسول الله ﷺ يعود المريض ويتبع الجنازة ويجيب دعوة المملوك أخرجه الترمذی و ابن ماجه﴾ بیا دکاندار د معمولی ملمستیا اړتیا راپیښیږی.نو ددې اجازت ملاویدل پکار دې.

## د لقیط پالونکې د لقیط د اړخه هدیه او صدقه باندې قبضه کولاې شی

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی **وَمَنْ كَانَ فِي يَدِهِ لَقِيطٌ لَا أَبَ لَهُ** او کوم سړې چې دده په پرورش کې څوك داسې لقیط وی.چه د هغه پلار نه وی **فَإِنَّهُ يَجُوزُ قَبْضُهُ الْهِبَةَ وَالصَّدَقَةَ لَهُ** نو جائز ده.ددغه سړی د لقیط لپاره په هبه او صدقه باندې قبضه کول **وَأَصْلُ هٰذَا أَنَّ التَّصَرُّفَ عَلَى الصِّغَارِ أَنْوَاعٌ ثَلَاثَةٌ**:او ددې اصل دا دې.چه په ماشومانو باندې تصرف په درې قسمه دې **نَوْعٌ هُوَ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ** یو ډول هغه دې.کوم چې د ولایت د باب ځنې دې **لَا يَمْلِكُهُ إِلَّا مَنْ هُوَ وَلِيٌّ** د هغې هیڅ څوك مالك نه وی.خو هغه کوم چې ولی وی **كَالْإِنْكَاحِ** لکه نکاح کول **وَالشِّرَاءِ وَالْبَيْعِ لِأَمْوَالِ الْقُنْيَةِ** او کوم مالونه چې د ایخودو قابل دی.د هغې خرڅول، او اخستل **لِأَنَّ الْوَلِيَّ هُوَ الَّذِي قَامَ مَقَامَهُ** ځکه چې ولی د بچی قائم مقام دې **بِإِنَابَةِ الشَّرْعِ**.د شریعت نائب جوړولو سره.

حل اللغة① لقیط: هغه ماشوم چې موندلې شوې وی ② انابة: نائب جوړول﴾

---

[1]) من حديث سلمان رضی الله عنه أخرجه ابن حبان في صحيحه فی النوع الثالث والثلاثين من القسم الخامس (نصب:۵۸۷\۴)_

[2]) من حديث عائشة رضی الله عنها أخرجه البخاری فی النكاح باب ۱۸ ومسلم فی العتق رقم ۹ وأبوداود فی الطلاق باب ۱۹ رقم ۲۲۳۳ والترمذی فی الرضاع باب ۷ رقم ۱۱۵۴ والنسائی فی الطلاق باب ۲۹ وابن ماجه فی الطلاق باب ۲۹)_

[3]) قال الزيلعی رحمه الله غريب ثم قال وفيه حديث مرفوع أخرجه الترمذی فی الجنائز وابن ماجه فی الزهد عن مسلم الأعور عن أنس بن مالك رضی الله عنه قال كان رسول الله ﷺ يعود المريض ويتبع الجنائز ويجيب دعوة المملوك ويركب الحمار ولقد كان يوم خيبر يوم قريضة على حمار خطامه حبل من ليف وتحته إكاف من ليف (نصب:۵۹\۴)

تشريح:- د يوكس ته پيدا شوې ماشوم بچې په لاره كې پروت ملاو شو. هغه دا راوچت كړو. نو دې بچې ته په لحاظ د مايؤل اليه لقيط ونيلې شي. او دده پلار ښكاره نه دې. او هم دا اوچتونكې دده پرورش كوي. نو ځوك ددې لقيط لپاره صدقه يا هبه كوي. نو دا سړې (پرورش كونكې) دده لپاره قبضه كولې شي. نو بل بچې باندې تصرف په درې قسمه كيږي① تصرف د ولايت② تصرف د اړتيا③ تصرف د خالص نفعې. بيا په تصرف د ولايت كې صرف هغه كس ته د تصرف كاوه اجازت وي. ځوك چې د بچې ولي وي. يعنى دده پلار، نيكه، تره، قاضي وغير. لكه نكاح كول. او كوم قيمتي مالونه چې ايخودو سره نه خرابيږي. او دا د ايخودو لپاره دی. نو د هغې د اخستلو او خرڅولو حق صرف ولي ته دې.

## د ماشومانو لپاره تصرفات او د اخستلو خرڅولو حكم

وَنَوْعٌ آخَرُ او دوهم ډول هغه دې مَا كَانَ مِنْ ضَرُورَةِ حَالِ الصِّغَارِ كوم چې د بچو د مال د ضرورياتو څخه وي وَهُوَ شِرَاءُ مَا لَابُدَّ لِلصَّغِيرِ مِنْهُ او دا د هغه شئ اخستل دی. كوم چې بچې لپاره ضروري دی وَبَيْعُهُ وَإِجَارَةُ الْأَظْآرِ او ددې خرڅول او شيدې وركونكې دينړه (رضاعي) په اجاره باندې اخستل دی وَذَلِكَ جَائِزٌ مِمَّنْ يَعُولُهُ او دا جائز دی. د هغه سړي د اړخه ځوك چې د صغير (ماشوم) پرورش كوي وَيُنْفِقُ عَلَيْهِ او په ده باندې نې خرچ كړي كَالْأَخِ وَالْعَمِّ وَالْأُمِّ وَالْمُلْتَقِطِ إِذَا كَانَ فِي حِجْرِهِمْ لكه رور او تره، او مور او ملتقط (دا بچې راوچتونكې) كله چې بچې دده په پرورش كې وي وَإِذَا مَلَكَ هَؤُلَاءِ هَذَا النَّوْعَ او هركله چې ددې نوع دا خلگ مالكان دی فَالْوَلِيُّ أَوْلَى بِهِ نو ولي به خو په درجه اولى (مالك وی). إِلَّا أَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ فِي حَقِّ الْوَلِيِّ خو د ولي په حق كې دا شرط نشته.. أَنْ يَكُونَ الصَّبِيُّ فِي حِجْرِهِ. چه بچې دده په پرورش كې وی.

حل اللغة① حجر: تربيت② الصبى: ماشوم③ ملتقط: په لار كې د يو شئ موندونكې④ أظار: جمع داينړې﴾

تشريح:- دوهم ډول تصرف د اړتيا دې. يعنى ماشومانو لپاره څه ضروري سامان اخستل وی. يا دده سامان خرڅول وی. چه كه خرڅ نكړې شو. نو ددې د خرابوالي خطره ده. يا دا د پيو ښنلو ماشوم دې. چه دده لپاره د پيو ځكونكې (داينړې) په اجرت باندې د مقررولو اړتيا دې. نو كوم سړې هم چې دده پرورش كوی. او دده نفقه ادا كوی. هغه دا تصرفات كولې شی. لكه رور، تره، مور، او ملتقط (چا چې دا ماشوم د يو ځائې نه راوچت كړې دې) خو ددې خلگو لپاره شرط دا دې. چه بچې ددوی په پرورش كې وی. ددې نه دا مسئله معلومه شوه. چې هركله دا خلگ ددې تصرف مالكان دی. نو ولي به په درجه اولى مالك وی. فرق صرف دومره دې. چه ولي لپاره دا شرط نشته. چه بچې دده په پرورش كې وی. بلكه كه د بل چا په پرورش كې وی. ولي به بيا هم د تصرفاتو مجاز وی.

## د ماشومانو د خالص نفعو او قبضه كولو حكم

وَنَوْعٌ ثَالِثٌ او دريم ډول هغه دې مَا هُوَ نَفْعٌ مَحْضٌ. چه دا صرف نفع وی كَقَبُولِ الْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ وَالْقَبْضِ لكه هبه، او صدقه قبلول، او قبضه كول فَهَذَا يَمْلِكُهُ الْمُلْتَقِطُ وَالْأَخُ وَالْعَمُّ وَالصَّبِيُّ بِنَفْسِهِ نو ملتقط او رور، او بچې به پخپله ددې مالك وی. إِذَا كَانَ يَعْقِلُ كله چې دې هوښيار وی لِأَنَّ اللَّائِقَ بِالْحِكْمَةِ فَتْحُ بَابِ مِثْلِهِ نَظَرًا لِلصَّبِيِّ ځكه چې د حكمت لائق ددې پشان دروازه كلاووی. د بچو د پرورش دپاره، فَتَمَلَّكَ نو ددې تصرف اختيار به حاصل وی. بِالْعَقْلِ وَالْوِلَايَةِ وَالْحِجْرِ عقل سره (بچې ته پخپله)، او ولايت سره (ولي ته پخپله) او پرورش سره (هغه كس ته ځوك چې دده پرورش كوی). وَصَارَ بِمَنْزِلَةِ الْإِنْفَاقِ او دا د خرچ كاوه پشان شو. والله اعلم

تشريح:- دا دريم ډول دې. چه په دې كې د بچې خالص نفع ده. لكه هبه قبلول، او صدقه قبلول، او په دې باندې قبضه كول، نو ملتقط، رور، تره، او پخپله ماشوم هم په دا تصرف كولې شی. كله چې دا عاقل وی. ځكه د حكمت تقاضا دا ده. چه داسې دروازه كلاو شی. چه د بچې فائده وی. نو عقل سره، او ولايت سره او



پرورش سره به ددې تصرف ولايت حاصليږی. بلكه د ولايت او حجر نه بغير هم كه ځوك قبضه اوكړی. او بچې ته وركړی. نو صحيح ده. ځكه چې دې كې خالص نفع ده. او دا داسې ده. لكه په بچې باندې خرچ كول، چې دده ځومره زړه غواړی. خرچ كړی. ځكه چې دې كې د بچې خالص نفع ده.

## ملتقط يا اكا (تره) ته دا حق نشته چې ماشوم په اجاره وركړی

قَالَ امام محمد رحمه الله او فرمائيل وَلَا يَجُوزُ لِلْمُلْتَقِطِ أَنْ يُؤَاجِرَهُ او ملتقط لپاره جائز نه دی. چه هغه لقيط په اجاره باندې وركړی وَيَجُوزُ لِلْأُمِّ أَنْ تُؤَاجِرَ ابْنَهَا إِذَا كَانَ فِي حِجْرِهَا و مور لپاره جائز دی. چه هغه خپل خوئې په اجاره باندې وركړی. كله چې هغه ددې په پرورش كې وی وَلَا يَجُوزُ لِلْعَمِّ او اكا (تره) لپاره جائز نه دی وَأَنَّ الْأُمَّ تَمْلِكُ إِتْلَافَ مَنَافِعِهِ بِاسْتِخْدَامٍ ځكه چې مور دده د منافعو ضائع كاوه مالكه ده او ددې نه نفع (خدمت) اخستل (مور لپاره جائز دی). وَلَا كَذَلِكَ الْمُلْتَقِطُ وَالْعَمُّ او ملتقط او اكا (تره) داسې نه دی وَلَوْ آجَرَ الصَّبِيُّ نَفْسَهُ لَا يَجُوزُ او كه بچې پخپله خپل ځان په اجاره باندې وركړو نو جائز نه ده لِأَنَّهُ مَشُوبٌ بِالضَّرَرِ إِلَّا إِذَا فَرَغَ مِنَ الْعَمَلِ ځكه چې دا ضرر سره ملاو شوې دې. خو كله چې دې د كار نه فارغ شو. (نو جائز دی). لِأَنَّ عِنْدَ ذَلِكَ تَمَحَّضَ نَفْعًا ځكه چې دغه وخت خالص نفع پاتې شوه فَيَجِبُ الْمُسَمَّى نو اجرت مسمى به واجب وی وَهُوَ نَظِيرُ الْعَبْدِ الْمَحْجُورِ يُؤَاجِرُ نَفْسَهُ او دا د محجور غلام مثال دې. چه هغه خپل ځان په اجاره باندې وركړی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او مونږ دا بيان كړی دی.

تشريح:- ملتقط يا اكا (تره) وغيره ته دا حق نشته. چه هغه بچې په اجاره باندې وركړی. يعنى د چا سره نې اجير يا ملازم كړی. البته مور ته حق حاصل دې. چه هغه نې دچا سره اجير يا نوكر كړی. خو شرط دا دې. چه بچې دمور په پرورش كې وی. ځكه چې مور ته دا حق حاصل دې. چه د خپل بچې نه منفعت او خدمت واخلی. او د هغه منافع ضائع كړی. او ملتقط او اكا (تره) ته دا حق نشته. نو دوی ته به په اجاره باندې د وركاوه هم حق نه وی. او كه بچې پخپله خپل ځان چا سره ملازم كړو. يا نې اجير كيدو لپاره خپل ځان پيش كړو. نو دا به عقلاً جائز نه وی. خو كله چې بچې دكار نه فارغ شو. (نو بيا جائز دی). ځكه چې د بچې هغه عقد صحيح وی. كوم چې خالص نفع وی. او دلته نفع او ضرر ملاو شوې دې. نو عقد به لازم نه وی. خو كله چې دا بچې د كار نه فارغ شو. نو اوس دا خالص نفع پاتې شوه. ځكه چې كار خو ختم شو. صرف اجرت اخستل پاتې دی. نو اوس به په دې عقد باندې د صحت حكم جاري كولې شی. او دا د غلام محجور مثال دې. چه كه هغه خپل ځان په اجاره باندې وركړی. نو جائز نه ده. د اجازت نه كيدو په وجه، خو كله چې هغه د كار نه فارغ شو. نو اوس به استحساناً د عقد د صحيح كيدو حكم وركولې شی.

مسئله① د پلار، نيكه او قاضي هم (د لقيط) اجاره باندې وركول صحيح دی. ﴿شامى ص: ۲۵۰، ج۵﴾ او په ترور (د پلار مور) كې اختلاف دې.

مسئله② ملتقط ته به د بچې په اجاره باندې د وركاوه اجازت نه وی. البته د يو كار زده كاوه لپاره د سپارلو اختيار شته. بعضو حضراتو دا دواړه يو گڼرلې دې. او په اجاره باندې وركول نې هم جائز گرځولی دی. حالانكه دا غلط دی. اوگورئ: ﴿شامى ص: ۲۵۰، ج۵﴾

## د خپل غلام په مرئ كښې د طوق (غاړكئ) اچولو حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی وَيُكْرَهُ أَنْ يَجْعَلَ الرَّجُلُ فِي عُنُقِ عَبْدِهِ الرَّايَةَ او مكروه دی. چه يو سړې د خپل غلام په ستړ كې طوق واچوی وَيُرْوَوْنَ الدَّايَةَ او نقل دی. ،،دايه،، (په ځائې د ،، رايه،،) وَهُوَ طَوْقُ الْحَدِيدِ الَّذِي يَمْنَعُهُ مِنْ أَنْ يُحَرِّكَ رَأْسَهُ او دا د اوسپنې طوق دې. چه دا غلام د سر خوزولو نه منع كوی وَهُوَ مُعْتَادٌ بَيْنَ الظَّلَمَةِ او دا په ظالمانو كې معتاد (او رواج) دې لِأَنَّهُ عُقُوبَةُ أَهْلِ النَّارِ ځكه چې دا د جهنميانو سزا ده فَيُكْرَهُ كَالْإِحْرَاقِ بِالنَّارِ نو دا مكروه دی. په اور كې د سوزولو پشان وَلَا يُكْرَهُ أَنْ يُقَيِّدَهُ او په پښو كې هتكړئ (بيړئ) (

زنځير) اچول مكروه نه دى لِأَنَّهُ سُنَّةُ الْمُسْلِمِينَ فِي السُّفَهَاءِ وَأَهْلِ الدَّعَارَةِ ځكه چې دا د مسلمانانو سنت ( طريقه) ده.د بدكارو لپاره فَلَا يُكْرَهُ فِي الْعَبِيدِ نو دا په غلام كې مكروه نه ده تَحَرُّزًا عَنْ إِبَاقِهِ.د هغه د تختيدو نه د بچ كاوه لپاره ،وَصِيَانَةً لِمَالِهِ او د خپل مال د ساتنه دپاره.

حل اللغة ① الراية: طوق ② الحديد: اوسپنه ③ احراق: سوزول ④ صيانة: ساتنه ⑤ السفهاء: جمع د سفيه،بيوقوف ⑥ اباق: تخيدل﴾

تشريح:- په ظالمانو خلګو كې غلامانو ته تكليف وركاوه دا طريقه وه.چه ددوى په سټ كې به ئې د اوسپنې درونډ طوق اچولو.چه ددې د سختوالى او درونډوالى به هغه خپل سر ته حركت هم نشو وركولې. دا ظلم دې.په دې وجه ددې منع كړې شوې ده.البته د خپل مال د ساتنه اسباب ساتل واجب دى.او جائزدى. چې غلام چرته اونه تختى.په دې وجه دده په پښو كې زنځير اچول جائز دى.او د كومو غلامانو چې د تختيدو يره وى.نو دا طريقه په مسلمانانو كې رائج پاتې شوې ده.

مسئله ﴿ په سټ كې ددې طوق آچولو به دا مطلب وو.چه دا ددې نښانه وى.چه دا بهګوړه دې.بيا ئې فرمائيلى دى.چه زموږ په زمانه كې په دې كې هيڅ باك نشته.ځكه چې تختيدل ډير زيات دى.خاص كړ په سوډان كې ( خو ډير زيات تختى).او شامى په حواله د قهستانى ددې هم دا طريقه خودلې ده.كومه چې تيره شوه.او ددې نه روسته ئې ليكلى دى.،، فتنبه له،، ،، قلت،، يعنى ددې په كراهت كې كلام نشته.كله چې هتكړئ (بيړئ، زنځير) ددې د رامنع كاوه لپاره كافى دې. ﴿درمختار ص:٢٥٣،ج٥﴾

## د حقنه حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلى دى وَلَا بَأْسَ بِالْحُقْنَةِ او په حقنه كې هيڅ باك نشته يُرِيدُ بِهِ التَّدَاوِيَ امام محمد رحمه الله په دې سره د دوائى ( علاج) اراده كوى لِأَنَّ التَّدَاوِيَ مُبَاحٌ بِالْإِجْمَاعِ،ځكه چې دوائى كول بالاجماع مباح ده وَقَدْ وَرَدَ بِإِبَاحَتِهِ الْحَدِيثُ او په دوائى كولو كې حديث وارد شوې دې [1] وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ او په سړو او ښځو كې هيڅ توپير نشته إِلَّا أَنَّهُ لَا يَنْبَغِي خو دا مناسب نه ده أَنْ يُسْتَعْمَلَ الْمُحَرَّمُ.چه حرام شئ استعمال كړې كَالْخَمْرِ وَنَحْوِهَا لكه شراب، او ددې پشان لِأَنَّ الِاسْتِشْفَاءَ بِالْمُحَرَّمِ حَرَامٌ ځكه چې حرام سره دوائى كول حرام دى.

تشريح:- حقنه كول جائز دى.په دې شرط چې دوائى مقصود وى.يعنى قولنج د ( پښتو درد) وغيره ناروغى (ناروغى (بيمارى)) ختمول مقصود وى.اوكه د حقنې اخستل مقصد صرف غټوالې ( سربه كيدل) وى.نو جائز نه دى.په دې وجه ئې د دوائى قيد لګولې دې.او د دوائى جواز د حديث نه ثابت دې.چه په دې كې د شپږو اصحابو ﷺ حديث دى.حضرت اسامه، حضرت ابوالدرداء، حضرت انس، حضرت ابن مسعود، حضرت ابوهريره او حضرت ابن عباس رضي الله عنهم بيا په دارو درمل او د حقنې كاوه په جواز كې دسړى او ښځې په منځ كې هيڅ توپير نشته.ټولو لپاره جائز دى.البته كوم شيان چې حرام دى.لكه شراب وغير، نو ددې استعمال حرام دې.ځكه چې حرام شئ سره شفاء غوښتل هم حرام دى.

مسئله ﴿ د مريض لپاره علاج په طور باندې وينه څكل، موتيازې څښل او مردار خوړل جائز دى.كله چې مسلمان حاذق ( ماهر) ډاكټر دا اووائى.چه ددې ( مرض) شفاء هم په دې كې ده.او هيڅ جائز شئ ددې قائم مقام نه وى.،، كذا فى كتب الفقه،،

## د امير المومنين او د قاضى د تنخواه حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل وَلَا بَأْسَ بِرِزْقِ الْقَاضِي و د قاضى په روزئ كې هيڅ باك نشته لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ

---

[1] - يشيرالى حديث أسامة رضي الله عنه وفيه تداووافان الله جعل لكل داء دواء اخرجه ابوداودفى الطب باب ١ رقم ٣٨٥٥والترمذى فى الطب باب ٢ وابن ماجه فى الطب باب ١ رقم ٣٤٣٦والنسائى فى السنن الكبرى ٤/ ٣٦٨-



وَالسَّلَامُ بَعَثَ عَتَّابَ بْنَ أَسِيدٍ إِلَى مَكَّةَ وَفَرَضَ لَهُ،ځكه چې نبى كريم ﷺ عتاب ابن اسيد رضي الله عنه مكې ارخ ته اوليګلو.او ددوى لپاره ئې نفقه مقرر كړله وَبَعَثَ عَلِيًّا إِلَى الْيَمَنِ وَفَرَضَ لَهُ [1] او حضرت على رضي الله عنه ئې يمن ارخ ته اوليګلو.او هغوى لپاره ئې نفقه مقرر كړله وَلِأَنَّهُ مَحْبُوسٌ لِحَقِّ الْمُسْلِمِينَ او ځكه چې قاضى د مسلمانانو په حقوقو كې راګير دې فَتَكُونُ نَفَقَتُهُ فِي مَالِهِمْ نو دده نفقه به د مسلمانانو په مال كې وى وَهُوَ مَالُ بَيْتِ الْمَالِ او دا د بيت المال دې وَهَذَا لِأَنَّ الْحَبْسَ مِنْ أَسْبَابِ النَّفَقَةِ او دا ځكه چې حبس ( راګيريدل) د نفقې د اسبابو څخې دې ،كَمَا فِي الْوَصِيِّ وَالْمُضَارِبِ إِذَا سَافَرَ بِمَالِ الْمُضَارَبَةِ لكه څنګه په وصى او مضارب كې دى.كله چې مضارب په مال د مضاربت سره سفر اوكړى ،وَهَذَا فِيمَا يَكُونُ كِفَايَةً،او دا جواز هغه مقدار كې دې.كوم چې د كافى كيدو په اندازه وى فَإِنْ كَانَ شَرْطًا فَهُوَ نو كه شرط وى حَرَامٌ نو دا حرام دې لِأَنَّهُ اسْتِئْجَارٌ عَلَى الطَّاعَةِ ځكه چې دا په طاعت باندې اجرت اخستل دى ،إِذِ الْقَضَاءُ طَاعَةٌ بَلْ هُوَ أَفْضَلُهَا ځكه چې قضاء طاعت بلكه افضل طاعت دې.

تشريح:- امير المؤمنين به د قاضى رزق د بيت المال نه وركوى.او قاضى لپاره اخستلو كې هيڅ باك نشته.ځكه ① چې نبى كريم ﷺ پخپله عتاب ابن اسيد رضي الله عنه د مكې او او حضرت على رضي الله عنه ئې د يمن عامل مقرر كړو.او ددوى لپاره ئې نفقه مقرر كړله.او په دې زمانه كې بيت المال نه وو.نونبى كريم ﷺ به د خپل مال نه وركوله.،، وفيه تفصيل،،

② اوځكه چې قاضى د مسلمانانو په امورو كې محبوس ( بند) دې.نو دده نفقه هم دمسلمانانو د مال نه ملاويدل پكار دى.او د مسلمانانو مال د بيت المال مال دې.ځكه چې چا لپاره قيد كيدل د نفقې د اسبابونو څنې دى.لكه وصى كله چې دې د يتيم په كار كې راګير شى.نو دده ( يعنى د يتيم) په مال كې خپله نفقه د كفايت په اندازه اخستل جائز دى.اوهم دغه ډول مضارب دې.كله چې هغه مال د مضاربت واخلى.او سفر اوكړى.هم ددې نه د كافى كيدو په اندازه خپله نفقه اخستلې شى.خو ددې طريقه به دا وى.چه امير قاضى مقرر كړى.د څه شرط نه بغير، بيا د كفايت په اندازه هغه ته وظيفه ( تنخواه) وركوى.او كه د وړاندې نه دا شرط اوكړې شى.چه مياشت په مياشت به دومره روپئ اخلم.نو دا حرام دى.ځكه چې دا په طاعت باندې اجرت اخستل دى.او دا حرام دى.بلكه قضاء خو افضل عبادت دې.

① مسئله ﴿ اوس خو د قرآن د تلاوت لپاره هم د اجرت حيلې لټون كولې شى.او په عامه توګه (عام طور) باندې حافظان د قرآن تلاوت كوى.او اجرت اخلى.دا قطعاً حرام دى.،، فتدبروا،،

② مسئله ﴿ ددې نه معلومه شوه.چه د حنفيانو په نيز طاعاتو باندې اجرت اخستل حرام دى.او متاخرينو چې د اړتيا په وجه كومو طاعاتو كې اجرت جائز ګرځولې دې.دا هغه طاعات دى.په كومو كې چې اړتيا دې.لكه تعليم د قرآن، او تعليم د فقهې، او آذان او امامت.والله اعلم بالصواب

## غريب قاضى لپاره د بيت المال نه د اخستلو حكم

ثُمَّ الْقَاضِي إِذَا كَانَ فَقِيرًا بيا كه قاضى غريب وى فَالْأَفْضَلُ بَلِ الْوَاجِبُ الْأَخْذُ نو افضل بلكه واجب اخستل دى؛ لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ إِقَامَةُ فَرْضِ الْقَضَاءِ ځكه چې ده له به فرض قضاء پوره كول ممكن نه وى.إِلَّا بِهِ مګر هم دې

---

[1] ) قال الزيلعى رحمه الله غريب وروى الحاكم فى المستدرک فى كتاب الفضائل (٣/ ٥٩٥) من طريق ابراهيم الحربى ثنامصعب بن عبدالله الزبيرى قال استعمل رسول الله ﷺ عتاب بن آسيد على مكة وتوفى رسول الله ﷺ وهوعامله عليهاومات عتاب بمكة فى جمادى الآخرة سنة ثلاث عشرة ثم اسند الى عمروبن ابى عقرب قال سمعت عتاب بن أسيد رضي الله عنه وهومسندظهره الى الكعبة يقول والله ماصيت فى عملى الذى ولانى رسول الله الاثوبين معقدين فكسوتهما مولاى (نصب: ٤/ ٥٩٧)-

(اخستلو سره:، إِذَالِاشْتِغَالُ بِالْكَسْبِ يُقْعِدُهُ عَنْ إِقَامَتِهِ او ځکه چې مزدورۍ کې مشغوليدل به دې د فرض قائمولو نه عاجزه کړي.

تشريح:- كه قاضي غريب وي.نو هغه لپاره واجب دی.چه هغه د بيت المال نه رزق ( تنخواه) واخلي.ځکه چې د رزق نه بغير به كار نه چليږي.او كه د مزدورۍ په كارونو كي وينخلي.نو د قضاء په امورو كي به خلل پيدا كيږي.چه په دې كي د ټولو مسلمانانو نقصان دې.حضرات شيخينو ﷺ د بيت المال نه د كفايت په اندازه وظيفه اخستې ده.

## مالدار قاضي لپاره د بيت المال نه د اخستلو حكم

لپاره وَإِنْ كَانَ غَنِيًّا او كه قاضي توانگر وی فَالْأَفْضَلُ الْإِمْتِنَاعُ نو افضل بچ كيدل دی عَلَى مَا قِيلَ ځنكه چې وئيلی شوی دی رِفْقًا بِبَيْتِ الْمَالِ..د بيت المال رعايت كاوه سره وَقِيلَ الْأَخْذُ او وئيلی شوی دی.چه اخستل افضل دی وَهُوَ الْأَصَحُّ صِيَانَةً لِلْقَضَاءِ عَنِ الْهَوَانِ او هم دا زياته صحيح ده.قضاء د ذلت نه بچ كولو.وَنَظَرًا لِمَنْ يَتَوَلَّى بَعْدَهُ مِنَ الْمُحْتَاجِينَ او په هغه كس باندې شفقت كاوه سره، كوم چې ددې نه روسته محتاجو كي قاضي جوړ كړې شی لِأَنَّهُ إِذَا انْقَطَعَ زَمَانًا ځكه چې رزق كله يوې زمانې پورې منقطع پاتې شو يَتَعَذَّرُ إِعَادَتُهُ.نو ددې واپس كول به متعذر وی ثُمَّ تَسْمِيَتُهُ رِزْقًا يَدُلُّ نو ددې نوم رزق ايخودل په دې خبره دلالت كوی،عَلَى أَنَّهُ بِقَدْرِ الْكِفَايَةِ.چه دا په اندازه دكفايت دې.

حل اللغة: ① رفق: آسانی ② نظر: شفقت ③ الهوان: سپك والې ،ذلت﴾

تشريح:- اوكه قاضي توانگر دې.نو په دې كي دوې (دوه) قوله دی① د بيت المال نه رزق نه اخستل افضل دی. چې د بيت المال رعايت اوساتلې شی.② د بيت المال نه اخستل افضل دی.او هم دا اصح دې.ځكه چې هركله په ټولو سركاری كارونو كي ډيرې ډيرې پيسې خرچ كولې شی.او عهده د قضاء قاضي مفت پوره كوی.نو خلگ به دا منصب ذليل گنړی.حالانكه دا د ټولو نه اوچت كار دې.او ددې نه بغير خلگو باندې په دين عمل كول ډير مشكل دی.او دويمه وجه دا هم ده.چه كله دده نه روسته بل څوك داسې قاضي مقرر كړې شی.چه هغه غريب وی.نو هغه ته به پريشانی وی.او معاملات به په صحيح طريقه نشی چلولې.او د منتظمينو د بد انتظامۍ په وجه دده په وظيفې جاری كاوه كي هم تاخير كيږی.ځكه چې په داسې موقع باندې نوې اندراج ( جاری كول) فوراً نشی كيدې.بيا دې ته رزق وئيلی شوی دی.نو دا ددې خبرې دليل دې.چه دا وظيفه به په اندازه د كفايت ملاويږی.

## تنخواګانې به د بيت المال دكوم فنأ نه ور كولې شی

وَقَدْ جَرَى الرَّسْمُ بِإِعْطَائِهِ فِي أَوَّلِ السَّنَةِ او رواج پيل دې د رزق ور كاوه د كال په پيل كي لِأَنَّ الْخَرَاجَ يُؤْخَذُ فِي أَوَّلِ السَّنَةِ او ځكه چې خراج به اخستلې شو.د كال په پيل كي وَهُوَ يُعْطَى مِنْهُ او رزق ور كولای شی هم ددې نه وَفِي زَمَانِنَا الْخَرَاجُ يُؤْخَذُ فِي آخِرِ السَّنَةِ او زموږ په زمانه كي خراج اخستلې شی.د كال په اخر كي وَالْمَأْخُوذُ مِنَ الْخَرَاجِ خَرَاجُ السَّنَةِ الْمَاضِيَةِ او كوم خراج چې اخستلې شی.هغه د تير شوی كال خراج وی ،هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده ،وَلَوِ اسْتَوْفَى رِزْقَ سَنَةٍ او كه قاضي د واړه كال رزق وصول كړو وَعُزِلَ قَبْلَ اسْتِكْمَالِهَا او د كال مكمل كيدو نه وړاندې مړ شو قِيلَ هُوَ عَلَى اخْتِلَافٍ مَعْرُوفٍ فِي نَفَقَةِ الْمَرْأَةِ او وئيلی شوی دی.چه دا په هغه اختلاف ( مبنی) دې.كوم چې معلوم شوې دې، د ښځې د نفقې په اړه كي ،إِذَا مَاتَتْ فِي السَّنَةِ بَعْدَ اسْتِعْجَالِ نَفَقَةِ السَّنَةِ كله چې دا مړه شی د كال په منځ كي ، د كال نفقه د معجل اخستلو نه روسته وَالْأَصَحُّ او اصح دا دي ،،أَنَّهُ يَجِبُ الرَّدُّ.چه واپسی واجب ده

حل اللغة: ① اعطاء: وركول ② عزل: معزول كوله ③ استعجال: تلوار كول ④ النفة: خرچه﴾



تشريح:- مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه رزق وغيره د خراج نه وركولې شی.او د متقدمينو په زمانه كي د خراج اخستلو عادت د كال په پيل كي وو.نو رزق به هم د كال په پيل كي وركولې شو.خو زموږ په زمانه كي خراج د كال په آخر كي اخستلې شی.نو رزق به هم د كال په آخر كي وركولې شی.او كه قاضي د كال په پيل كي د واړه ( راروان) كال نفقه وصول كړله.او د كال مكمل كاوه نه وړاندې مړ شو.نو فرمائی.چه د اصح قول مطابق به ددې واپسی ضروری وی.

## وينځه او ام ولد د محرم نه بغير سفر كولې شی

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی وَلَا بَأْسَ بِأَنْ تُسَافِرَ الْأَمَةُ وَأُمُّ الْوَلَدِ بِغَيْرِ مَحْرَمٍ او هيڅ باك نشته.چه وينځه او ام ولد د محرم نه بغير سفر اوكړی لِأَنَّ الْأَجَانِبَ فِي حَقِّ الْإِمَاءِ فِيمَا يَرْجِعُ ځكه چې پردی ( غير خلگ ) د وينځو په حق كي هغه شئ كي كوم چې راجع دې إِلَى النَّظَرِ وَالْمَسِّ بِمَنْزِلَةِ الْمَحَارِمِ كتلو او لاس اوړلو اړخ ته، د محارمو په درجه كي دی عَلَى مَا ذَكَرْنَا مِنْ قَبْلُ ..د هغه تفصيل مطابق كوم چې موږ وړاندې ذكركړې دې وَأُمُّ الْوَلَدِ أَمَةٌ لِقِيَامِ الْمِلْكِ فِيهَا او ام ولد وينځه ده.په دې كي د ملكيت قائميدو په وجه وَإِنِ امْتَنَعَ ،،بَيْعُهَا ، اگرچه ددې بيع ممتنع ده.والله اعلم بالصواب

تشريح:- وړاندې تفصيل تير شوې دې.چه وينځې اړخ ته كتل د پردو خلگو لپاره داسې دی.لكه خپلو محارمو اړخ ته كتل، نو وينځه او ام ولد د محرم نه بغير سفركولې شی.والله اعلم.كه په دې اړه كي نور تفصيل پكار وی.نو په ،، فصل فی الولی و النظر و المس ،، كي ئې اوگورئ.

# كتاب إحياء الموات

ژباړه:- ( دا) كتاب د احياءِ موات (يعنی د شاړې زمكې ابادولو د احكامو په بيان كي ) دې.

تشريح:- ①؟ موات په اصل كي هغه حيوان ته وئيلې شی.چه هغه مړ شوې وی.بيا هغه زمكې ته چې د هغې هيڅ څوك مالك نه وی.او هغه نا قابل انتفاع وی.د ځاروی مرگ سره تشبيه ور كاوه سره موات ( مړه يعنی شاړه مځكه ) نوم ايخودلې شوې دې.او د احياء نه مراد په اعتبار د عرف تصرف او انتفاع ده.مثلاً مځكه باندې ئې عمارت جوړ كړو.يا ئې په دې كي كرونده اوكړله، يا ئې ونې اولگولې.

**المناسبة بما قبله:** علامه عينی رحمه الله د كتاب ألكراهيه او كتاب احياء الموات په مينځ كي وجه د مناسبت دا وجه ذكركړې ده.چه په دې كي د موات ( د مړې، شاړې زمكې) ذكر دې.چه دا نا قابل انتفاع ده.او سره زر، سپين زر، او ريښم هم نا قابل انتفاع دی.لكه چې د سروزرو او سپينو زرو په لوخو كي خوراك څكاك د سړو او ښځو ټولو لپاره حرام دی.او د ريښمو نا قابل انتفاع كيدل صرف د سړو لپاره دی.البته دومره خبره ده.چه د موات ( شاړې زمكې) نا قابل انتفاع كيدل د عادت په طور دی.او د ذكرشوی څيزونو نا قابل انتفاع كيدل په شرعی اعتبار سره دی.② اكثرو شارحينو د كتاب الكراهت او احياء الموات په منځ كي وجه د مناسبت دا ذكركړې ده.چه په دې كي هم ډير احكام مكروه او غير مكروه دی.خو دا وجه مشكوك ده.،كما هو ظاهر،، ③ علامه محمد يوسف تالوئی په اشرف الهدايه كي دا مناسبت بيان كړې دې چې ددې دواړو څيزونو مقصد د انسانی رزقونو زياتوالې دی.،،كما هو ظاهر،، ددې د مشروعيت وجه دا حديث دې. ﴿من أحى أرضاً ميتةً فهى له﴾ او ددې سبب د بقاءِ مقدر تعلق دې.او ددې حكم د محی ( آبادونكی) مالك كيدل دی.د هغه زمكې كومه چې ده ژوندئ ( او آباده) كړې ده.

## د ارض موات مصداق

قَالَ قدوری رحمه الله اوفرمائيل الْمَوَاتُ مَا لَا يُنْتَفَعُ بِهِ مِنَ الْأَرَاضِي موات هغه مځكه ده.چه هغې نه انتفاع اونكړې شی لِانْقِطَاعِ الْمَاءِ عَنْهُ د هغې نه د اوبو د منقطع كيدو په وجه، أَوْ لِغَلَبَةِ الْمَاءِ عَلَيْهِ يا هغې باندې د اوبو د غلبې په

وجه أَوْمَا أَشْبَهَ ذٰلِكَ مِمَّا يَمْنَعُ الزِّرَاعَةَ یا کومه چې ددې مشابه وی.د هغه څیزونو خنې کوم چې کرونده منع کوی سُمِّيَ بِذٰلِكَ لِبُطْلَانِ الْاِنْتِفَاعِ بِهٖ په دې (موات) سره نوم کیخودې شو.ددې نه د انتفاع باطلیدو په وجه.

**حل اللغة:** ① الاراضی: جمع د ارض، مځکه ② الانتفاع: فائده اخستل﴾

**تشريح:**- دا د موات شرعی تعریف دې.چه موات هغه زمکې ته وئیلې شی.چه په څه وجه هغه قابل د انتفاع نه وی پاتې شوې.یا خو ددې د مالګیجن کیدو په وجه، یا د شګې د ډیروالی په وجه، یا د اوبو منقطع کیدو په وجه، یا د اوبو د ډیر والی په وجه،نو مرغینانی رحمه الله وجه تسمیه اوښودله.کومه چې موږ په پیل کې لیکلې ده.

## د ارض موات مصداق

قَالَ قدوری رحمه الله اوفرمائیل فَمَا كَانَ مِنْهَا عَادِيًّا لَا مَالِكَ لَهٗ نو کومه مځکه چې عادی وی.(پخوانۍ شاړه او بې آباده) چې د هغې هیڅ څوك مالك نه وی أَوْ كَانَ مَمْلُوكًا فِي الْاِسْلَامِ یا هغه په اسلام کې قبضه کړې شوې وی لَا يُعْرَفُ لَهٗ مَالِكٌ بِعَيْنِهٖ چې دهغې څوك معین مالك معلوم نه وی وَهُوَ بَعِيْدٌ مِنَ الْقَرْيَةِ او هغه د کلی نه دومره لرې وی وَبِحَيْثُ إِذَا وَقَفَ إِنْسَانٌ مِنْ أَقْصَى الْعَامِرِ فَصَاحَ چې کله څوك د آبادۍ په آخر کې اودریږی.او آواز اوکړی لَا يُسْمَعُ الصَّوْتُ فِيْهِ فَهُوَ مَوَاتٌ نو هغې کې آواز واؤ نه ریدې شی.نو هغه موات (مړه او شاړه) ده.

**حل اللغة:** ① القرية: کلې ② صاح: آواز اوکړی ③ الصوت: آواز﴾

**تشريح:**- موات هغه زمکې ته وائی.چه د پخوا زمانې داسې وُرانه، شاړه،او د کروندې نا قابله پرته وی.او د هغې هیڅ څوك مالك نه وی.یا دارالاسلام د هغې مالك وی.خو څوك سړې د هغې مالك نه وی.او د آبادۍ نه دومره لرې وی.که څوك سړې د آبادۍ آخری برخه کې اودریږی.او آواز اوکړی.نو دغه زمکې پورې آواز نه رسیږی.که دا شرطونه موجود نه وی.نو هغې ته به موات نه وائی.او د هغې آبادول به صحیح نه وی.او که دا آبادۍ ته نژدې وی.نو دا د شهر فناء (حریم او احاطه) ده.چه د کلی خلګ ددې نه فائده اخلی.نو ددې آبادول به صحیح نه وی.

قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: حضرت مرغینانی رحمه الله فرمائی هٰكَذَا ذَكَرَهُ الْقُدُوْرِيُّ مرغینانی.چه هم دغه ډول قدوری ذکرکړی دی وَمَعْنَى الْعَادِيِّ مَا قَدُمَ خَرَابُهٗ. او د عادی معنی دا ده.چه ددې خرابیدل د پخوا داسې وی وَالْمَرْوِيُّ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام محمد رحمه الله نه کوم چې نقل دی.هغه دا دی أَنَّهٗ يُشْتَرَطُ أَنْ لَا يَكُوْنَ مَمْلُوْكًا لِمُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ انْقِطَاعِ الْاِرْتِفَاقِ چې شرط دا دې.چه دا د یو مسلمان یا ذمی مملوك نه وی.د انتفاع منقطع کیدو باوجود ددې سره بِهَا لِيَكُوْنَ مَيْتَةً مُطْلَقًا چې دا مطلقاً مړزګې (شاړه بې آباده) وی، فَأَمَّا الَّتِيْ هِيَ مَمْلُوْكَةٌ لِمُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ لَا تَكُوْنُ مَوَاتًا نو بهرحال هغه مځکه کومه چې د یو مسلمان یا ذمی مملوك وی.هغه به موات نه وی وَإِذَا لَمْ يُعْرَفْ مَالِكُهٗ او هرکله چې ددې مالك معلوم نه وی تَكُوْنُ لِجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِيْنَ نو هغه به د مسلمانانو د جماعت لپاره وی وَلَوْ ظَهَرَ لَهٗ مَالِكٌ او که ددې مالك ښکاره شی يُرَدُّ عَلَيْهِ نو هغه ته به واپس کولای شی "وَيَضْمَنُ الزَّارِعُ نُقْصَانَهَا او زمیندار به ددې د نقصان ضامن وی.

**تشريح:**- امام ابو الحسین قدوری رحمه الله هغه بیان کړل.کوم چې متن کې ذکر شو.خو امام محمد رحمه الله دا شرط لګولې دې.چه د زمکې نا قابل انتفاع کیدو سره سره دا شرط هم دې.چه دا د یو مسلمان یا ذمی مملوك نه وی. ګڼی دا به موات نه وی.اوکه ددې څوك مالك معلوم نه وی.نو هغه د مسلمانانو د جماعت لپاره ده.خاص یو کس ته به ددې د مالك جوړیدو حق نه وی.

که د یوکس په مځکه کې نې کرونده اوکړله.بیا دهغې مالك ښکاره شو.نو دا مځکه به مالك ته واپس



کولې شی.او زمیندار به ددې د نقصان تاوان مالك ته ورکوی.

**قوله عادیاً** عاد اړخ ته منسوب دې.چه په دې سره د پخوانۍ کیدو کنایه کولې شی.څکه چې عاد پخوا زمانه کې وو.نو عاد هغې ته وئیلی شوی دی.چه پخوانۍ وُرانه وی.او ددې هیڅ څوك مالك معلوم نه وی.

**قوله لتکون میتة مطلقاً** قاعده دا ده.چه مطلق کامل اړخ ته منسوب (او مائل) وی.او مطلق موات هغه مځکه ده.کومه چې د هیڅ مسلمان او ذمی مملوك نه وی.نو که یوه مځکه د یو مسلمان یا د یو ذمی وی.او هغه وُرانه وی.نو هغې ته به مړزګې (شاړه) نشی وئیلې.څکه چې کومه مځکه د مسلمان یا ذمی مملوك ده.د هغې د خرابوالی باوجود به د هغې نه د مسلمان ملکیت نه زائل کیږی.نو په حدیث کې چې کوم لفظ د میته استعمال شوې دې.د هغې څخه به کامل مراد وی.او د کامل کیدو لپاره ضروری ده.چه هغه د چا مملوك نه وی.په دې وجه امام محمد رحمه الله دا شرط اولګولو.کوم چې ذکر شو.

## د کلی نه د لرې والی شرط

وَالْبُعْدُ عَنِ الْقَرْيَةِ عَلٰى مَا قَالَ شَرَطَهٗ أَبُوْ يُوْسُفَ او د آبادۍ نه لرې کیدل، لکه څنګه چې قدوری اوفرمائیل.ددې شرط امام ابویوسف رحمه الله لګولې دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ مَا يَكُوْنُ قَرِيْبًا مِنَ الْقَرْيَةِ ددې لپاره ښکاره دا ده.چه کومه مځکه آبادۍ ته نژدې وی، لَا يَنْقَطِعُ ارْتِفَاقُ أَهْلِهَا عَنْهُ د هغې څخه به د هغې د اوسیدونکو انتفاع نه منقطع کیږی فَيُدَارُ الْحُكْمُ عَلَيْهِ نو د حکم مدار په نژدې والی باندې اوشو وَمُحَمَّدٌ اعْتَبَرَ انْقِطَاعَ ارْتِفَاقِ أَهْلِ الْقَرْيَةِ عَنْهَا حَقِيْقَةً او امام محمد رحمه الله اعتبار کړې دې.ددې زمکې نه په حقیقت کې د کلی د خلګو د انتفاع د منقطع کیدو وَإِنْ كَانَ قَرِيْبًا مِنَ الْقَرْيَةِ،(۱) اګرچه دا کلی ته نژدې وی.، كَذَا ذَكَرَهُ الْاِمَامُ الْمَعْرُوْفُ بِخُوَاهَرْزَادَهْ، وَشَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرَخْسِيُّ اعْتَمَدَ عَلٰى مَا اخْتَارَهُ أَبُوْ يُوْسُفَ هم دغه ډول ذکر کړی دی.دا امام خواهرزاده رحمه الله، او شمس الائمه سرخسی رحمه الله په هغې اعتماد کړې دې.کوم چې امام ابویوسف رحمه الله اختیار کړې دې.

**تشريح:**- د آبادۍ نه د لرې والی کوم شرط چې متن کې تیرشو.دا د امام ابویوسف رحمه الله قول دې.څکه چې دې سره به معلومه شی.چه ددې نه د کلی د خلګو انتفاع منقطع شوې ده.اوکه نژدې وی.نو په دې کې د انتفاع انقطاع نه کیږی.بهرحال د امام ابویوسف رحمه الله په نیز مدار په قرب او عدم قرب باندې دې.او امام محمد رحمه الله په حقیقت کې د انتفاع منتقطع کیدو اعتبار کړې دې.که لرې وی.او که نژدې وی.نو که دا مځکه کلی ته نژدې وی.خو د کلی د خلګو انتفاع ددې سره متعلق نه وی.نو دا د امام محمد رحمه الله په نیز موات ده.امام خواهرزاده دا ذکرکړی دی.خو د امام ابویوسف رحمه الله قول امام ابو الحسین قدوری ،او شمس الائمه سرخسی،اوطحاوی رحمهم الله ذکرکړې دې.

① مسئله: که زمیندار په دې کې کرونده اوکړله.او ددې کروندې په وجه مځکه کې څه نقصان او کمې اوشو.نو زمیندار به ددې نقصان ضامن وی.اوکه کمې اونشو.نو ضامن به نه وی.﴿مجمع الانهرص۵۳۲ج۲﴾

② مسئله: د امام محمد رحمه الله په قول فتوی ده.﴿مجمع الانهرص۵۳۳ج۲ ،سکب الانهر ۴۹۰ج۲، درمختار ص۲۷۸ج۲﴾

## د شاړې زمکې آبادولو مالك جوړیدو لپاره د امام د اجازت مسئله

ثُمَّ مَنْ أَحْيَاهُ بِإِذْنِ الْاِمَامِ بیا چا چې آباده کړله وُرانه مځکه ،د امام په اجازت سره مَلَكَهٗ، نو هغه به ددې

---

۱ - هوهذا قول محمد رحمه الله كذافى مجمع الانهر(٤/ ٢٣٩) وردالمختار(٥/ ٣٠٧) والهندية (٥/ ٣٨٥) نقلاعن القول الراجح (٢/ ٣٠٨)-

مالك وى وَإِنْ أَحْيَاهُ بِغَيْرِ إِذْنِهِ او كه دا ئې د امام د اجازت نه بغير آباده كړې وى لَمْ يَمْلِكْهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (١)نو ددې مالك به نه وى.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز وَقَالَا: يَمْلِكُهُ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلى دى.چه ددې مالك به وى.د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه مَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَيْتَةً فَهِيَ لَهُ (٢) چا چې آباده كړله مړه مځكه نو هغه دده ده وَلِأَنَّهُ مَالٌ مُبَاحٌ سَبَقَتْ يَدُهُ إِلَيْهِ او ځكه چې دا مباح ( او جائز) مال دې.دې ارخ ته چې د چا قبضه مخكې شوې ده فَيَمْلِكُهُ كَمَا فِي الْحَطَبِ وَالصَّيْدِ نو هغه به ددې مالك وى.لكه په خشاكو، او ښكار كې

حل اللغة: ① سبقت: وړاندې والې كړې وى ② الحطب: خاشى(خشاك) ③ الصيد: ښكار﴾

تشريح:- د امام صاحب رحمه الله په نيز كه احياءِ موات ( شاړه مځكه آبادول) د امام په اجازت سره شوې وى.نو ابادونكې به ددې مالك وى.گنى نه به وى.صاحبين رحمهما الله فرمائى.چه په هرصورت كې به هغه ددې مالك وى.هغوى يو حديث په① دليل كې پيش كړې دې.چه دا مطلق دې. چې په دې كې د امام د اجازت قيد نشته.② دوهم عقلى دليل دې.چه په مباح مال باندې څوك د وړاندې قابض شى.نو هغه هم د هغه وى.لكه ښكار او خشاك،نو دلته كې به هم دغه ډول وى.

فائده: د امام صاحب رحمه الله قول مختار دې.اوكه آبادونكې ذمى وى.نو بالاتفاق د امام اجازت شرط دې.﴿سكب الانهر ص ۴۹۰ ج۲﴾

## د امام صاحب رحمه الله دليل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل د نبى كريم ﷺ فرمان دې لَيْسَ لِلْمَرْءِ إِلَّا مَا طَابَتْ نَفْسُ إِمَامِهِ (٣) نشته د سړى لپاره مگر هغه كوم چې دده د امام زړه خوښ كړى

حل اللغة: ① طابت: خوشحاله وى﴾

تشريح:- امام صاحب رحمه الله خپل دليل① اول د يو حديث نه پيش كړې دې.چه،، سړى ته هغه شئ ملاويدې شى.په كوم سره چې دده امام راضى شى،، نو ددې نه د امام اجازت شرط كيدل معلوميږى.② دوهم دليل دا چې دا مځكه هم د مال غنيمت خنې ده.او په مال غنيمت كې چاته هم دا حق نه وى.چه دا پخپله واخلى.بلكه د امام د اړخه په تقسيمولو باندې موقوف ده.او ددې مال غنيمت كيدل ښكاره دى.ځكه چې مسلمانانو ته دا مځكه حاصل شوې ده.په داسې حال كې چې دوى په اسونو سواره شوى وو.او چور ئې كړې وه.

وَمَا رَوَيَاهُ او كوم چې صاحبينو رحمهما الله روايت كړې دې يَحْتَمِلُ أَنَّهُ إِذْنٌ لِقَوْمٍ لَا نَصْبٌ لِشَرْعٍ هغې كې احتمال دې.چه هغه د يو مخصوص قوم لپاره اجازت وى.شرع مقررول نه وى وَلِأَنَّهُ مَغْنُومٌ لِوُصُولِهِ إِلَى يَدِ الْمُسْلِمِينَ بِإِيجَافِ الْخَيْلِ وَالرِّكَابِ او ځكه چې دا مال غنيمت دې.ددې د رسيدو په وجه د مسلمانانو په قبضه كې ، د اسونو او ښانو د زغلولو په وجه، ( يعنى په دې سواره شوې وى.او چور ئې كړى وى) ،فَلَيْسَ لِأَحَدٍ أَنْ يَخْتَصَّ بِهِ بِدُونِ إِذْنِ الْإِمَامِ كَمَا فِي سَائِرِ الْغَنَائِمِ نو هيڅ چاته حق نشته.چه هغه دې سره خاص شى.د امام د اجازت نه بغير، لكه څنگه چې په ټولو غنيمتونو كې دى.

(١) القول الراجح هوهذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى العناية (٤١٩) وردالمحتار (٣٠٧١٥) وملتقى الأبحر (٢٢٩١٤) والخانية (٢٥٣١٤) والدرالمنتقى (٢٢٩١٤)نقلاً عن القول الراجح (٣٠٩١٢)-

(٢) من حديث عائشة (رض) أخرجه البخارى فى الحرب والمزارعة باب ١٥ ورواه احمد فى المسند(١٢٠١٦)_

(٣) قال الزيلعى رحمه الله رواه الطبرانى وفيه ضعف من حديث معاذ رضى الله عنه وقد تقدم فى كتاب السير(نصب ٦٠٤١٤)_



حل اللغة: ① ايجاف: زغلول ② الخيل: اسونه ③ الركاب: سپرلئ﴾

تشريح:- د صاحبينو رحمهما الله د دليل ځواب پاتې شو هغه حديث د كوم نه چې صاحبينو رحمهما الله استدلال كړې دې.نو په دې كې احتمالات دى.نو دا د استدلال قابل نه دې.په دې كې ① دا احتمال هم دې.چه ددوى مقصد په دې سره يوه شرعى قاعده مقرر كول وى.لكه څنگه چې په ﷺمن قاء فى صلوة أو رعف...ﷺ كې دى.چه دا د ټولو لپاره عام دې.② او دا هم كيداې شى.چه قاعده كليه نه وى.بلكه د يو مخصوص قوم لپاره ترغيباً دا حكم فرمائيلې شوې وى.لكه څنگه چې په ﷺمن قتل قتيلاً فله سلبه...ﷺ كې دى.چه دا حكم عام نه دې. لنډيز د كلام دا چې روايت د امام صاحب رحمه الله مفسر دې.او روايت د صاحبينو رحمهما الله محتمل دې.په دې وجه به د امام صاحب رحمه الله ته ترجيح وى.

وَيَجِبُ فِيهِ الْعُشْرُ او په دې كې به عشر واجب وى ،لِأَنَّ ابْتِدَاءَ تَوْظِيفِ الْخَرَاجِ عَلَى الْمُسْلِمِ لَا يَجُوزُ ځكه چې مسلمان باندې ابتداء كې د خراج وظيفه مقررول جائز نه دى إِلَّا إِذَا سَقَاهُ بِمَاءِ الْخَرَاجِ خو كله ئې چې دا د خراج په اوبو سره اوبه كړې وى لِأَنَّهُ حِينَئِذٍ يَكُونُ إِبْقَاءُ الْخَرَاجِ عَلَى اعْتِبَارِ الْمَاءِ ځكه چې دغه وخت به كيږى.د خراج پاته پاتې كيدل د اوبو په اعتبار باندې فَلَوْ أَحْيَاهَا نو كه ده مځكه آباده كړله ،ثُمَّ تَرَكَهَا بيا ئې دا پريخودله .فَزَرَعَهَا غَيْرُهُ او په دې كې دده نه علاوه بل چا كرونده اوكړله فَقَدْ قِيلَ الثَّانِي أَحَقُّ بِهَا نو ويلى شوى دى.چه دوهم كس ددې زيات حقدار دې ،لِأَنَّ الْأَوَّلَ مَلَكَ اسْتِغْلَالَهَا ځكه چې ړومبې ددې د حاصلاتو ( غلې وغيره) مالك شوې دې لَا رَقَبَتَهَا، ددې د ذات نه دې ( مالك) فَإِذَا تَرَكَهَا نو كله چې هغه دا پريخودله كَانَ الثَّانِي أَحَقَّ بِهَا. نو دوهم كس به ددې زيات حقدار وى وَالْأَصَحُّ أَنَّ الْأَوَّلَ يَنْزِعُهَا مِنَ الثَّانِي او اصح دا ده.چه ړومبې كس دا د دوهم نه اخستلې شى ،لِأَنَّهُ مَلَكَهَا بِالْإِحْيَاءِ عَلَى مَا نَطَقَ بِهِ الْحَدِيثُ،ځكه چې هغه د آبادولو په وجه ددې مالك شوې وو.لكه څنگه چې په دې سلسله كې حديث ناطق دې إِذِ الْإِضَافَةُ فِيهِ فَاللَّامُ التَّمْلِيكِ وَمِلْكُهُ ځكه چې اضافت په دې كې په لام د تمليك سره دې لَا يَزُولُ بِالتَّرْكِ او دده ملكيت به د پريښولو په وجه نه زائل كيږى.

حل اللغة: ① استغلال: طلب دغلې ② ينزع: اوباسى ③ التعاقب: يوبل پسې﴾

تشريح:- په مسلمان باندې ابتداء كې خراج مقررول جائز نه دې.نو په مسلمان باندې به په دې مځكه كې عشر واجب وى.البته كه دا ئې خراجى اوبو باندې اوبه كړې وى.نو بيا په مسلمان باندې هم خراج واجبولې شى.چه ددې تفصيل په هدايه ثانى كې تير شوې دې.

كه يوكس مځكه آباده كړله.او پرې ئې خودله.او دوهم كس په دې كې كرونده اوكړله.نو په دې كې دوې (دوه) قوله دى.① دوهم كس به ددې مستحق وى.ځكه چې ړومبې كس صرف ددې د حاصلاتو ( منافعو) مالك شوې وو.ددې د ذات نه وو مالك شوې.نو كله چې ړومبى دا پريخودله.نو دوهم كس به ددې مستحق وى.② ړومبې كس به ددې مستحق وى.او د دوهم كس څخه به ددې د واپس اخستلو حقدار وى.ځكه چې هغه د ابادولو په وجه ددې مالك شوې وو.ځكه چې حديث كې ﷺفهوله ﷺ ارشاد دې.نو دا په اضافت د لام تمليك سره يعنى هغه ددې مالك جوړيږى.او هركله چې هغه ددې مالك جوړيږى.نو د پريخودو په وجه به دده ملكيت نه زائل كيږى.

وَمَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَيْتَةً او چاچه اباده كړله شاړه مځكه ثُمَّ أَحَاطَ الْإِحْيَاءُ بِجَوَانِبِهَا الْأَرْبَعَةِ مِنْ أَرْبَعَةِ نَفَرٍ عَلَى التَّعَاقُبِ بيا آبادئ ددې څلور واړه طرفونه راگير كړل.د څلورو كسانو د اړخه يو بل پسې فَعَنْ مُحَمَّدٍ نو د امام محمد رحمه الله نه نقل دى أَنَّ طَرِيقَ الْأَوَّلِ فِي الْأَرْضِ الرَّابِعَةِ لِتَعَيُّنِهَا لِتَطَرُّقِهِ چې د ړومبى كس لاره به د څلورم كس په مځكه كې وى.ددې زمكې د متعين كيدو په وجه، دده د لارې لپاره ،وَقَصَدَ الرَّابِعُ إِبْطَالَ حَقِّهِ او څلورم اراده كړې ده.دده د حق باطلولو.

**تشريح:-** يوكس يوه مځكه آباده كړله.بيا دې څلور واړه طرفونه څلورو كسانو بلا ناغه آباد كړل.نو ړومبى كس ته به لاره په كومه مځكه كي ملاويږي؟ نو فرمائي.چه كوم كس د ټولو نه روسته آباده كړي وي.هغه مځكه كي به دده لاره وي.ځكه چې هركله مځكي د درې طرفونه آباد كړي شو.نو د لارې لپاره هم دا څلورمه برخه متعين شوه.او ګويا څلورم كس دده د حق باطلولو اراده كړې ده.نو دده اراده به هم د هغه په مخ باندې ويشتلې شي.

①مسئله دا آخرى تفصيل هغه وخت دې.چه آبادونكى څلور نفر وي.او بلا ناغه وي.ګنى كه يو وي.يا څلور وي.خو بلا ناغه نه وي.نو ده ته اختيار دې.چه په كوم اړخ خپله لاره جوړه وي.﴿شامى ص۲۷۸ج۵﴾

②مسئله په درمختار وغيره كي د ړومبى كس د حقدار كيدو تصحيح شوې ده.﴿درمختار ص۲۷۸ج۵﴾

**قَالَ** امام ابو الحسين قدورى رحمة الله عليه فرمائي **وَيَمْلِكُ الذِّمِّيُّ بِالْإِحْيَاءِ** او د زمكې آبادولو سره به ذمى ددې مالك كيږي **كَمَا يَمْلِكُهُ الْمُسْلِمُ** لكه څنګه چې مسلمان ددې مالك كيږي **لِأَنَّ الْإِحْيَاءَ سَبَبُ الْمِلْكِ** ځكه چې آبادول د ملك سبب دي **إِلَّا أَنَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ إِذْنَ الْإِمَامِ مِنْ شَرْطِهِ** خو د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نيز،د امام اجازت ددې شرط دي **فَيَسْتَوِيَانِ فِيهِ كَمَا فِي سَائِرِ أَسْبَابِ الْمِلْكِ** نو دوې دواړه ( مسلمان او ذمى) به په دې كي برابر وي.لكه څنګه چې د ملك واړه اسباب دى **حَتَّى الْاسْتِيلَاءِ عَلَى أَصْلِنَا** تردې چې استيلاء ( يعنى د كافرانو په مالونو باندې غلبه) كي زموږ د اصل مطابق.

**حل اللغة:** ① استيلاء: د كافرانوپه مالونو باندې غلبه حاصلول ② سائر: ټول﴾

**تشريح:-** لكه څنګه چې مسلمان د آبادې زمكې د آبادولو په وجه ددې مالك كيږي.دغه ډول ذمى هم مالك كيږي.ځكه چې آبادول د ملك سبب دي.نو لكه څنګه چې دوى دواړه د ملك په نورو اسبابو كي برابر دى.دلته به هم برابر وي.تردې چې لكه څنګه موږ د كافرانو په مالونو د غلبې په وجه ددې مالك كيږو.نو كافران به هم د مسلمانانو په مالونو باندې د غالب كيدو په وجه ددې مالونو مالك كيږي.چه ددې تفصيل په هدايه ټوك ثانى كي تيرشوې دي.

## مالك جوړيدو لپاره د نشاناتو لګولو حكم

**قَالَ** امام ابو الحسين قدورى رحمة الله عليه اوفرمائيل **وَمَنْ حَجَّرَ أَرْضًا** چا چې ( د آبادولو لپاره علامت) په مځكه كي د كاڼرو حد اولګولو **وَلَمْ يَعْمُرْهَا ثَلَاثَ سِنِينَ** و دا ئې آباده نكړله.تر دريو كالو پورې **أَخَذَهَا الْإِمَامُ وَدَفَعَهَا إِلَى غَيْرِهِ** نو امام به دا اخلي.او دا به دده نه علاوه ته وركوى **لِأَنَّ الدَّفْعَ إِلَى الْأَوَّلِ كَانَ لِيَعْمُرَهَا** ځكه چې ړومبى ته وركول ددې لپاره وو.چه هغه به دا آباده وى **فَتَحْصُلَ الْمَنْفَعَةُ لِلْمُسْلِمِينَ مِنْ حَيْثُ الْعُشْرُ أَوِ الْخَرَاجُ** نو د مسلمانانو لپاره به د عشر او خراج په حيثيت سره منفعت حاصليږي **فَإِذَا لَمْ تَحْصُلْ** نو كله چې نفع حاصل نشوه **يَدْفَعُ إِلَى غَيْرِهِ تَحْصِيلًا لِلْمَقْصُودِ** نو امام به دا دده نه علاوه ته وركوى.د مقصود حاصلولو لپاره **وَلِأَنَّ التَّحْجِيرَ لَيْسَ بِإِحْيَاءٍ لِيَمْلِكَهُ بِهِ** او ځكه چې د كاڼرو حد ( نشان) لګول احياء ( ژوندى كول) نه ده.چه ددې په ذريعه هغه ددې مالك شي؛ **لِأَنَّ الْإِحْيَاءَ إِنَّمَا هُوَ الْعِمَارَةُ وَالتَّحْجِيرُ الْإِعْلَامُ**، ځكه چې ژوندى كول،دا آبادول دى.او كاڼرې لګول خو د خبرولو لپاره دى.**سُمِّيَ بِهِ** نوم كيخودې شو د خبرولو، په كاڼرو لګولو سره **لِأَنَّهُمْ كَانُوا يُعْلِمُونَهُ بِوَضْعِ الْأَحْجَارِ حَوْلَهُ** ځكه چې دا د موات ( د مړې، بې آبادې) كيدو خبر وركوى.دكاڼرو په ايخودلو سره، ددې شاو خوا (ګيرچاپيره). **أَوْ يُعْلِمُونَهُ لِحَجْرِ غَيْرِهِمْ عَنْ إِحْيَائِهِ**، يا دې د موات كيدو خبر وركولو، د خان نه علاوه د منع كاوه په وجه، ددې د احياء ( او آبادولو نه) **فَبَقِيَ غَيْرَ مَمْلُوكٍ كَمَا كَانَ** نو پاته پاتې شوه دا غير مملوك، لكه څنګه چې وه **هُوَ الصَّحِيحُ** هم دا خبره صحيح ده.

**حل اللغة:** ① العمارة:آبادول ② التحجير:كاڼرې لګول ③ اعلام: خبر وركول﴾



**تشريح:-** كه يوكس د نشاناتو او علامتونو لګولو نه روسته دريو كالو پورې مځكه هم هغه شان شاړه پريخودله.نو امام دې دا مځكه بل چا ته حواله كړي.چه د زمكې د آبادولو ذريعه اوشي.او مسلمانانو ته د دې نه عشر يا خراج د زمكې دحيثيت مطابق ملاويږي.چه مسلمانانو ته نفع اورسيږي.او د كاڼرو په نشاناتو او علامتونو لګولو په وجه به ددې نه مالك كيږي.ځكه چې مالك كيږي.په احياء ( ژوندى كولو) سره.او احياء ابادولو سره كيږي.په كاڼرو لګولو سره نه كيږي.بلكه دا خو يو علامت دې.چه خلګو ته خبردارې اوشي.چه دا موات دې.او بل څوك ددې احياء ( آبادې) اونكړي.نو دا مځكه چې څنګه وه.هم هغه شان دده مملوك پاتې شوه؟ يعنى داسې نه ده.لكه څنګه چې بعضو وئيلى دى.چه ملك وو.خو دا مؤقت وو.بلكه ملكيت خو اوسه پورې شوې هم نه دې.ځكه چې د ملك سبب نه دې موجود شوې.او هغه احياء ده.بيسا مرغينانى رحمة الله عليه اوفرمائيل...وهو الصحيح،، يعنى په كاڼرو لګولو سره ملكيت نه ثابتيږي.ځكه چې احياء به هغه وخت وى.كله چې دا د كروندې قابله جوړه كړى.

## د نشاناتو لګونكي لپاره د انتظار موده

**وَإِنَّمَا شَرَطَ تَرْكَ ثَلَاثِ سِنِينَ لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ:** او شرط اولګولو مرغينانى رحمة الله عليه د دريو كالو پريښولو ، د عمر رضى الله عنه د قول په وجه **لَيْسَ لِمُتَحَجِّرٍ بَعْدَ ثَلَاثِ سِنِينَ حَقٌّ.**[1] چې د كاڼرو نښې لګونكى لپاره د دريو كالو نه روسته حق نشته **وَلِأَنَّهُ إِذَا أَعْلَمَهُ** او ځكه چې ده په دې باندې نښانه اولګوله **لَا بُدَّ مِنْ زَمَانٍ يَرْجِعُ فِيهِ إِلَى وَطَنِهِ** نو د دومره زمانې كيدل ضرورى دى.چه هغې كي دننه خپل وطن اړخ ته واپس كيداې شى **وَزَمَانٍ يُهَيِّئُ أُمُورَهُ فِيهِ** او د دومره زمانې كيدل چې هغه د احياء په سلسله كي د احياء ( آبادولو) امور حاصل كړى **ثُمَّ زَمَانٍ يَرْجِعُ فِيهِ إِلَى مَا يَحْجُرُهُ** بيا د دومره مودې كيدل چې هغه واپس راشى.هغه مځكه پورې، په كوم چې ده د كاڼرو نښې لګولې دى **فَقَدَّرْنَاهُ بِثَلَاثِ سِنِينَ** نو موږ دا دريو كالو پورې اندازه كړو **لِأَنَّ مَا دُونَهَا مِنَ السَّاعَاتِ وَالْأَيَّامِ وَالشُّهُورِ لَا يَفِي بِذَلِكَ** ځكه چې كوم كس ددې نه په كمو لمحاتو، ورځو، او مياشتو كي ددې لپاره نشي پوره كيدې.( يعنى نا كافى كيږي).

**تشريح:-** چا چې د احياء ( د زمكې آبادولو) لپاره نشان لګولې دې.د هغه به دريو كالو پورې انتظار كولې شي.ددې نه روسته به نه كيږي.ځكه ① چې قاضى ابويوسف رحمة الله عليه په كتاب الخراج كي د سعيد بن المسيب رحمة الله عليه نه د عمرفاروق رضى الله عنه دا فرمان نقل كړې دې.چه د كاڼرو نښې لګونكى لپاره د دريو كالو نه روسته هيڅ حق نشته.② بيا ددې عقلى دليل پيش كړې دې.چه د نښو لګولو نه روسته دده لپاره دومره زمانه پكار ده.چه هغه خپل وطن ته لاړ شى.او هلته اوسيږي.او د زمكې آبادولو سامان حاصل كړى.بيا د هغه ځائې نه راواپس شى.او مځكه آباده كړى.ځكه دارالاسلام دومره فراخه دې.چه ددې د يو ګوټ څخه به د بل ګوټه پورې به يوكال كي رسيږي ( يعنى پيدل).او فرض كړه.چه دې د يوګوټ اوسيدونكي دې.او په بل ګوټ كي ده د كاڼرو نشانات لګولى دى.چه مځكه آباده كړى.نو دوې (دوه) كاله خو د تلو راتلو لپاره شو.او يوكال د اسبابو ( آلاتو) حاصلولو په مشغولتيا كي ، نو درې كاله شو.او د دريو كالو نه كم مقدار به ددې ټولو امورو پوره كاوه لپاره ناكافى وى.

**وَإِذَا لَمْ يَحْضُرْ بَعْدَ انْقِضَائِهَا** او كله چې هغه حاضر نشو د دريو كالو تيريدو نه روسته **فَالظَّاهِرُ أَنَّهُ تَرَكَهَا** نو ښكاره دا ده.چه هغه دا پريخودله **قَالُوا: هَذَا كُلُّهُ دِيَانَةً** مشائخو فرمائيلى دى.چه دا ديانت دي **فَأَمَّا إِذَا أَحْيَاهَا غَيْرُهُ قَبْلَ مُضِيِّ هَذِهِ الْمُدَّةِ** نو بهرحال كله چې دده نه علاوه ددې احياء اوكړله.ددې مودې د تيريدو نه مخكي **مَلَكَهَا لِتَحَقُّقِ الْإِحْيَاءِ مِنْهُ دُونَ الْأَوَّلِ** نو هغه به ددې مالك كيږي.د هغه د اړخه د احياء ( ابادول) متحقق كيدو په وجه، د ړومبى به نه وى **وَصَارَ كَالِاسْتِيَامِ** نو داسې شوه.لكه د بل په نرخ باندې نرخ كول **فَإِنَّهُ يُكْرَهُ** چې دا مكروه دى

[1] - أخرجه أبو يوسف رحمة الله عليه فى كتاب الخراج(نصب ٤\٦٠٤)_

وَلَوْفُعِلَ او كه وي كړو، يَجُوزُالْعَقْدُنو عقد به جائز وي.

**تشريح:-** خوكه هغه د دريو كالو نه روسته هم واپس رانغلو.نو دا به ددې دليل وي.چه ده خپله اراده پريښودې ده. خو دا واړه بحث د ديانت په طور دې.او د حكم په اعتبار سره خبره دا ده.كه د دريو كالو تيريدو نه وړاندې بل چا دا آباده كړله.نو هم هغه به ددې مالك جوړيږي.څكه چې آبادول بل كس كړى دى.ړومبى نه دى كړى. نو دا بالكل داسې ده.لكه چې د بل كس په نرخ باندې نرخ كول مكروه دى.خو كه داسې ئې اوكړل.او وائې خستل.نو جائز دى.

## د نشاناتو لګولو د مختلفو طريقو بيان

ثُمَّ التَّحْجِيرُقَدْيَكُونُ بِغَيْرِالْحَجَرِيا نشانات لګول كله كله د كاڼړو نه بغير هم كيږي بِأَنْ غَرَزَحَوْلَهَا أَغْصَانًايَابِسَةًپه دې طريقه چې ددې نه شاو خوا (ګيرچاپيره) اوچ لرګى اولګوى أَوْنَقَّى الْأَرْضَ يا ئې مځكه صفا كړله وَأَحْرَقَ مَا فِيهَامِنَ الشَّوْكِ او په دې كي چې كوم ازغى دى.هغه ئې اوسوزول.أَوْخَضَدَمَافِيهَامِنَ الْحَشِيشِ أَوِالشَّوْكِ يا په دې كي چې كومه ګيا او ازغى دى.هغه ئې كټ كړل، وَجَعَلَهَاحَوْلَهَا او هغه د زمكې نه ګير چاپيره اولګول وَجَعَلَ التُّرَابَ عَلَيْهَامِنْ غَيْرِأَنْ يُتِمَّ الْمُسَنَّاةَ او د هغې سربيره ئې خاوره واچوله. بغير ددې نه چې پوره ئې بند كړى وَلِيَمْنَعَ النَّاسَ مِنَ الدُّخُولِ چې خلګ د داخليدو نه منع شي، أَوْحَفَرَمِنْ بِئْرِذِرَاعًاأَوْذِرَاعَيْنِ يا ئې يوګز يا دوې (دوه) ګزه كوهى اوكنستو، وَفِي الْأَخِيرِوَرَدَالْخَبَرُ[1] او د آخيرى په اړه كي حديث وارد شوې دي.

**حل اللغة:** ① **غرز:** اوكرى ② **اغصان:** جمع دغصن، ښاخ ③ **احرق:** اسوزوى ④ **الشوک:** غنه ⑤ **الحشيش:** ګياه ⑥ **التراب:** خاوره

**تشريح:-** مرغينانى رحمه الله دا بيانول غواړي.چه د نشاناتو لګولو لپاره كاڼړى لګول ضرورى نه دى.بلكه د لګولو مختلف طريقې دى.مثلاً ① د زمكې ګير چاپيره اړخ ته ئې د لرګو بند (حد) اولګولو.② مځكه ئې صفا كړله.او ددې ازغى ئې اوسوزول.③ په مځكه چې كومه ګيا او واخه ولاړ وى.هغه ټوله ګيا، واخه او ازغى وغيره ئې كټ كړل.څلور واړه اړخ ته ئې كيخودل،او په دې ئې خاوره واچوله.چه دې ته خلګ داخل نشى.④ يوګز دوې (دوه) ګزكه څاه ئې اوكنستو.او پرې ئې خودلو..... په دې ټولو صورتونو كي به نشانات اولګولې شي. خو احياء به نه وى.مرغينانى رحمه الله په دې كي څلورم وار باندې د كوم نشان لګولو ذكركړې دې.يعنى يوګز دوې (دوه) ګزه څاه كنستل،او په دې سره نشانات لګول په حديث سره ثابت دى.او هغه حديث دا دې. «من حفر من بير مقدار ذراع فهو متحجر».

**قوله مسناة** دا بند ته وائى.كوم چې د كيارې په منځ كي ددې لپاره وركولې شي.چه مځكې په اوله برخه كي بنه اوبه ورشى.بيا وريسې كلاؤ كړې شى.دا بند دلته كي مراد نه دې.بلكه دلته كي د بند نه مراد هغه بند دې.كوم چې د خپلې زمكې د برخې (حصې) نه ګير چاپيره لوڼې بند اولګولې شي.چه د سيلاب اوبه راشى.او زمكې ته نقصان او نه رسوى.نو په داسې بند لګولو سره صرف نشان لګول نه بلكه د احياء (او زمكې آبادولو) ثبوت هم كيږي.په دې وجه مرغينانى رحمه الله قيد اولګولو.چه «من غير أن يتم المسناة» يعنى د زمكې څلور واړه طرفونو ته ازغى او ګيا واچوى.او په دې باندې خاوره واچوى.چه په دې كي خلګ داخل نشى.بند يا ديوال ئې جوړ نكړو.نو ړومبى سره به صرف نشان لګول ثابتيږي.او په آخرى دواړو صورتونو كي به احياء ثابتيږي.او دلته كي صرف د نشان لګولو بيان وو.په دې وجه دا قيد اولګولې شو.

[1]) قال الزيلعى رحمه الله قلت:قال السغناقى (حسين بن على بن حجاج بن على حسام الدين الفقيه الحنفى نزيل حلب والمتوفى بها سنة ۷۱۱هجرى) هو حفرالبئرورد فيه الخبروهو قوله ﷺ من حفر من بئر مقدارالرزراع،فهو محتجر،وهذا الحديث ما رأيته ولا أعرفه ولم أرمن ذكره (نصب الرأية:۴\۶۰۵)_



## مځكه آبادول د كوم وخت نه شمارلې كيږي

وَلَوْكَرَبَهَاوَسَقَاهَا او كه په مځكه كي ئې ګوډ اوكړو( يا ئې ايوه اوكړله).او دا ئې اوبه كړله فَعَنْ مُحَمَّدٍأَنَّهُ إِحْيَاءٌ نو د امام محمد رحمه الله نه نقل دى.چه دا احياء ( يعنى ابادول) دى وَلَوْفَعَلَ أَحَدَهُمَا او كه په دې دواړو كي ئې يو كار اوكړو يَكُونُ تَحْجِيرًا نو دا به نشان ( حد) لګول وى وَلَوْحَفَرَأَنْهَارَهَاوَلَمْ يَسْقِهَا او كه ددې نالې ئې اوكنستلې.او دا ئې اوبه نكړله يَكُونُ تَحْجِيرًا نو دا به نشان لګول وى، وَإِنْ سَقَاهَامَعَ حَفْرِالْأَنْهَارِ او كه دا ئې اوبه هم كړله.د نالې كنستو سره سره كَانَ إِحْيَاءًلِوُجُودِالْفِعْلَيْنِ نو دا به احياء ( آبادول) وى.د دواړو كارونو ( نالې كنستل، او اوبه كول) موندلو په وجه وَلَوْحَوَّطَهَاأَوْسَنَّمَهَابِحَيْثُ يَعْصِمُ الْمَاءَ او كه په دې ئې ديوال جوړ كړو.يا ئې په دې بند اولګولو.چه د اوبو نه ساتنه اوشى يَكُونُ إِحْيَاءً نو دا به احياء وى. لِأَنَّهُ مِنْ جُمْلَةِ الْبِنَاءِ څكه چې دا په منزله د ابادئ دې، وَكَذَاإِذَابَذَرَهَا او هم دغه ډول به ( احياء) وى.كله ئې چې په دې كي تخم اوكړلو.

**حل اللغة:** ① **حفر:** كنستل ② **الانهار:** جمع د نهر ③ **البناء:** آبادې ④ **حوط:** ديوال جوړول ⑤ **سنم:** بند جوړ كړو ⑥ **يعصم:** ساتنه كوى

**تشريح:-** په ايوه (ګوډ) كاوه او اوبه خور كاوه سره په قول د امام محمد رحمه الله احياء ده.او په دې دواړو كي په يو كار كاوه سره به صرف نشان لګول وى.او كه نالې ئې جوړې كړې.او اوبه خور ئې اوكړو.نو بيا به هم احياء وى.او كه صرف يو كار ئې اوكړو.نو نشان (او حد) لګول به وى.يعنى د نالو او اوبه خور كاوه جمع كول داسې دى.لكه څنګه چې د ګوډ او اوبه خور كاوه حكم دې.په دواړو صورتونو كي به احياء ( يعنى آبادول) وى.اوكه ددې ګير چاپيره ئې ديوال اولګولو.يائې بند اولګولو.چه اوبه رانشى.نو دا هم احياء ده.څكه چې ديوال لګول، يا بند لګول، د آبادئ په درجه كي دى.نو لكه څنګه چې د آبادولو په صورت كي احياء وى.دلته به هم وى.او په تخم اچولو سره به هم احياء ( ابادول) وى.

## آبادئ ته د نيزدې زمكې د احياء حكم

قال امام ابو الحسين قدورى رحمه الله اوفرمائيل ولايجوزاحياءماقرب من العامر او كومه مځكه چې آبادئ ته نژدې وى.د هغې احياء جائز نه ده ويترك مرعى لأهل القرية ومطرحا لحصائدهم او پريخودلې به شي.دا د كلى د خلګو چراګاه ( ورشو) دپاره،او ددوى د كټ شوو فصلونو اچولو د خائې (درمن) لپاره لتحقق حاجتهم اليها حقيقها أودليلها على ما بيناه دې اړخ ته ددوى د حاجت متحقق كيدو په وجه، كه حقيقتاً وى.او كه دلالتاً وى.د هغه تفصيل مطابق كوم چې موږ بيان كړې دې فلايكون مواتالتعلق حقهم بها بمنزلة الطريق والنهر نو ( كومه مځكه چې آبادئ ته نژدې ده) دا به موات ( مړه او شاړه مځكه ) نه وى.ددوى د حق متعلق كيدو په وجه، دې زمكې سره،د لارې او د وياله په مرتبه كي ده

**حل اللغة:** ① **مرعى:** د څرخائې، چراګاه ② **مطرح:** درمن، ③ **حصائد:** كټ شوې فصلونه ④ **الملح:** مالګه ⑤ **الآبار:** جمع د بئر، څاه

**تشريح:-** كومه مځكه چې آبادئ ته نژدې وى.هغه به موات نه وى.په دې وجه به ددې احياء جائز نه وى.بلكه دا مځكه به د كلى د خلګو لپاره چراګاه ( ورشو) او د درمن ( د كټ شوى فصل راجمع كولو) لپاره پريښودې شى.څكه چې دې زمكې ته د كلى د خلګو حاجت دې.كه حقيقى حاجت وى.لكه څنګه چې امام ابويوسف رحمه الله فرمائيلى دى.او دا واړه محمد رحمه الله فرمائيلى دى.يا دليل حاجت وى.لكه څنګه چې امام ابويوسف رحمه الله فرمائيلى دى.هم دغه حال به دهغه مځكې تير شو.نو لكه څنګه چې لاره او وياله موات نه دې.او ددې احياء جائز نه ده.هم دغه حال به دهغه زمكې وى.كومه چې آبادئ ته نژدې وى.

وعلى هذاقالوا او په دې اړه كي مشائخو فرمائيلى دى لايجوزأن يقطع الإمام مالاغنى بالمسلمين عنه چې جائز نه

ده.چه امام داسې شئ جاګير (مالکانه) جوړ کړي.چه د هغې نه مسلمانانو ته خلاصې (او بې حاجته کيدل) نه وي كـالملح والآبار التي يستقي الناس منها لما ذكرنا لكه مالګه، او څاه د کوم نه چې خلګ اوبه حاصله وي.د هغه دليل په وجه کوم چې موړ ذکرکړې دي.

**تشريح:-** بلکه امام لپاره جائز نه دی.چه کوم د مسلمانانو د عام ضرورت شئ وي.هغه د يو خاص سړي جاګير (مال) جوړ کړي.لکه د مالګې کان، يا کوهې چې ددې نه خلګ خپل ضرورتونه پوره کوي.په ،، بما ذکرنا،، سره اشاره ده ،، لتعلق حقهم بها،، اړخ ته.

①مسئله*:،،حقيقتها،، او،، دليلها،، د،،حاجتهم،، نه د بدل کيدو په وجه مجرور دی.او په دې سره د امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله تيرشوی اختلاف اړخ ته اشاره ده.يعنی امام ابويوسف رحمه الله د کلی (آبادئ) نه د دومره لرې والی اعتبار کړې دې.کوم چې مخکنی متن کي تير شوې دې.او امام محمد رحمه الله د انتفاع منقطع کيدو حقيقتاً اعتبار کړې دې.اګرچه نژدې وی.نو امام محمد رحمه الله د حقيقی حاجت او امام ابويوسف رحمه الله د دليل حاجت اعتبار کړې دې.

①پټرول* د رانجو، تارکولو،او د پټرولو وغيره د چينو (کانونو) حکم د مالګې د اړتيا پشان دې.چه ددې جاګير (او مالك) کول جائز نه دی.

②تنبيه۞ دلته په متن کي د ،، قريب،، قيد د امام ابويوسف رحمه الله په قول باندې مبنی دې.حالانکه د ظاهرالرواية مطابق د انتفاع د حقيقت اعتبار دی.که نژدې وی.اوکه لرې وی.﴿شامی ص۲۷۸ج۵﴾

## د کوهی کنستلو.د چينې وغيره او ددې د احاطې بيان

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَمَنْ حَفَرَ بِئْرًا فِي بَرِّيَّةٍ او چا چې په ځنګل کي څاه اوکنستلو فَلَهُ حَرِيمُهَا نو هغه لپاره ددې حريم (احاطې) دي وَمَعْنَاهُ إِذَا حَفَرَ فِي أَرْضٍ مَوَاتٍ بِإِذْنِ الْإِمَامِ عِنْدَهُ او ددې مطلب دا دې.چه کله ده په مړه (شاړه) مځکه کي څاه کنستلې وی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د امام په اجازت سره أَوْ بِإِذْنِهِ وَبِغَيْرِ إِذْنِهِ عِنْدَهُمَا يا د امام په اجازت يا دده د اجازت نه بغير د صاحبينو رحمهما الله په نيز لِأَنَّ حَفْرَ الْبِئْرِ إِحْيَاءٌ ځکه چې څاه کنستل احياء ده.

**حل اللغة*** حريم د کوهی حريم (احاطه) ددې سره نژدې هغه ځائې دې.کوم چې د کوهی حقوقو او منافعو سره تعلق ساتي.او دې ته حريم ځکه وائی.چه په بل کس باندې دا حرام دی.چه په دې کي څاه اوکنی.يا بل څه تصرف اوکړي.

**تشريح:-** احياء (آبادول) د ملك د اسبابو ځنې ده.او په کوهی کنستلو سره هم احياء کيږي.،، کما هو ظاهر،، بيا د امام صاحب رحمه الله په نيز دې کي د امام اجازت د تيرشوی (مسئلو) پشان شرط دې.د صاحبينو رحمهما الله په نيز شرط نه دې.،، کما مر،، نو کله چې يوکس په مړه (شاړه) مځکه کي (په اختلاف د دواړو اقوالو) څاه اوکنستلو،نو هغه لپاره به ددې حريم (احاطه) ملاويږي.چه دهغې په وجه به بل کس ته دا حق نه وی.چه دده په حريم کي څاه اوکنی.يا بل څه تصرف اوکړي.

①مسئله* که پخپل ملك کي کوهی اوکنی.نو پخپل ملك کي چې د کوم ځائې پورې غواړی.ددې حريم دې مقرر کړی.او د بل کس په مملوکه مځکه کي کوهی کنستلو باندې به حريم نه ملاويږی. ﴿درمختار ص۷۹ج۵﴾

## د فصل اوبه کولو والا کوهی لپاره د احاطې اندازه

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله اوفرمائيل فَإِنْ كَانَتْ لِلْعَطَنِ که څاه (څاروو ته) د اوبو څښلو لپاره وی فَحَرِيمُهَا أَرْبَعُونَ ذِرَاعًا لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نو ددې حريم (احاطه) څلويښت ذراعه (ګزه) ده.د نبی کريم ﷺ د



فرمان په وجه مَنْ حَفَرَ بِئْرًا چا چې څاه اوکنستلو فَلَهُ مِمَّا حَوْلَهَا أَرْبَعُونَ ذِرَاعًا عَطَنًا لِمَاشِيَتِهِ (۱) نو هغه لپاره ددې شاو خوا (ګيرچاپيره) څلويښت ذراعه ده.د خپلو څاروو کينولو لپاره ثُمَّ قِيلَ: الْأَرْبَعُونَ مِنْ كُلِّ الْجَوَانِبِ بيا ونيلی شوی دی.چه د هر اړخ څلويښت دی (يعنی مجموعی څلويښت). وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ او صحيح دا ده.چه څلويښت د هر اړخه دی لِأَنَّ فِي الْأَرَاضِي رَخْوَةً وَيَتَحَوَّلُ الْمَاءُ إِلَى مَا حُفِرَ دُونَهَا ځکه چې زمکو کي نرمی ده.او واپس کيږي به اوبه،هغه کوهی اړخ ته کوم چې ددې نه کم کي کنستلې شوې دې وَإِنْ كَانَتْ لِلنَّاضِحِ او که څاه د اوبه خور لپاره وی فَحَرِيمُهَا سِتُّونَ ذِرَاعًا نو د هغې حريم شپيته ذراعه (ګزه) دې وَهَذَا عِنْدَهُمَا او دا د صاحبينو رحمهما الله په نيز دی.، وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ أَرْبَعُونَ ذِرَاعًا او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز څلويښت ذراعه (ګزه) دې.

**حل اللغة*** ① العطن: د څارو اوبو څکل ② رخوة: نرمه مځکه ③ ماشية: څاروی ④ الناضح: اوبه خوړ ⑤ حريم: احاطه﴾

**حل اللغة* عطن:** د کوهی ګير چاپيره د اوښانو د کينساتلو ځائې، او د بير عطن نه مراد هغه کوهې چې ددې مقصد صرف څاروو ته اوبه ورکول وی.فصلونو ته اوبه ورکول ددې مقصد نه وی.،، ناضح،، په حقيقت کي هغه کوهی ته وائی.کوم چې په عطن (د کوهی شاو خوا (ګيرچاپيره) احاطه) کي چړکاؤ کوی.بيا په هر اوښ کي ددې استعمال اوشو.اګرچه هغه پخپل ځان باندې اوبه نه بار کوی.او په اوښه (چه د اړټ نه پرې اوبه راويستې شی) او اړټ کي به چونکه اوښ يا غوئې تړلې شو.او کار به ترې نه اخستلې شو.(لړه موده وړاندې ددې رواج وو.نن سهار زموږ په علاقو کي ددې رواج ختم شو.او د بجلئ ټيوب ويل ددې په ځائې اولګولی شو) په دې وجه داسې کوهی ته بيرناضح اوونيلی شو.د بير ناضح نه مراد هغه څاه دې.د کوم نه چې پټی اوبه کولې شی.

**تشريح:-** وړاندې دا خبره معلومه شوې وه.چه کوهی لپاره به حريم وی.اوس سوال پيدا شو.چه حريم به څومره وی؟ نو وې فرمائيل.که څاه ددې لپاره وی.چه ددې نه په لاس سره اوبه راوښکلې شی.او څاروو باندې څکولې شی.او ددې نه ګير چاپيره به څاروی آرام کوی.نو د داسې کوهی حريم څلويښت ذراع (شرعی ګزه) دې.يعنی د هر اړخه څلويښت څلويښت ذراع،اوکه څاه ددې لپاره وی.چه ددې څخه به فصلونه (پټی) اوبه کولې شی.نو ددې په حريم (احاطه) کي اختلاف دې.د امام صاحب رحمه الله په نيز ددې حريم هم څلويښت ذراع دې.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز ددې حريم شپيته ذراع دې.د فريقينو دلائل روسته ذکر دی.د بيرعطن (څارو ته د اوبو ورکاوه څاه) حريم څلويښت ذراع دې.په دې اړه کي حديث ذکردې.دا حديث په ابن ماجه او مسند احمد کي دې.رومبې حديث په روايت د عبدالله ابن مغفل رضي الله عنه او دوهم په روايت د ابوهريره رضي الله عنه نقل دې.

①فائده* په اړټ وغيره کي د امام صاحب او صاحبينو رحمهم الله اختلاف ذکر شو.په فتاوی تا تارخانيه او فتاوی کبری کي د صاحبينو رحمهما الله قول مفتی به ګرځولې شوې دې.په درمختار کي د امام صاحب رحمه الله قول مفتی به ګرځولې شوې دې.علامه قاسم ابن قطلوبغا د امام صاحب رحمه الله قول ته ترجيح ورکړې ده.د مرغينانی رحمه الله د بيان انداز هم د امام صاحب رحمه الله د قول تقاضه کوی.

②فائده* څلويښت ذراع (شرعی ګزونه) د هر اړخه معتبر دی.،،هو الصحيح،، ﴿سکب الأنهر ص۴۹۱ج۲﴾

## د صاحبينو رحمهما الله دليل

لَهُمَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صاحبينو رحمهما الله دليل د نبی ﷺ فرمان دې.چه حَرِيمُ الْعَيْنِ خَمْسُمِائَةِ ذِرَاعٍ وَحَرِيمُ بِئْرِ الْعَطَنِ

---

(۱) من حديث عبدالله بن مغفل رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه فی سننه فی الرهن باب ۲۲ رقم ۲۴۸۶) وراه الدارمی فی البيوع باب ۸۲)_

أربعون ذراعا د چينې حريم پنځه سوه ذراع او د بيرعطن حريم څلويښت ذراع دي وحريم بئر الناضح ستون ذراعا (1) او د بيرناضح حريم شپيته ذراعه دي "ولأنه قد يحتاج فيه إلى أن يسير دابته للاستقاء او ځکه چې کله کله په دې کې د اوبه خور لپاره د څاروی چلولو حاجت راپيښيږي وقد يطول الرشاء او کله کله رسئ اوږده وي وبئر العطن للاستقاء منه بيده فقلت الحاجة او بيرعطن د اوبو راښکلو لپاره دي.پخپل لاس سره به خو حاجت کم وي "فلا بد من التفاوت نو تفاوت ( فرق) ضروري دي.

**حل اللغة:** ① ذراع: گز ② الاستقاء: اوبه خور ③ الرشاء: رسئ ④ بئر: څاه ⑤ التفاوت: مختلف

**تشريح:-** حضرات صاحبينو اختلافی مسئله کي پخپل قول باندې دا دليل پيش کړي دې.① رومبې د سعيد بن مسيب مرسل حديث دې.چه دې ته مسند وئيل وهم دې.خو مرسل هم په دې الفاظو سره نه دې.

② دوهم عقلی دليل چې په بير ناضح کي په اوبنو (چه د ارټ نه پرې اوبه راويستې شی) کي اوبښ وغيره ترلې شی.او اکثر رسئ اوږده وی.نو په دې کي د زيات حريم ( احاطې) اړتيا دې.نو شپيته ذراع مقرر شو.او په بيرعطن کي ددې حاجت نشته.ځکه چې دې کي اوبه په لاس سره راوښکلې کيږی.نو په دې دواړو کي توپير کول ضروری دی.چه په رومبی کي څلويښت او دوهم کي شپيته ذراع وی.

## د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل

وله ما روينا من غير فصل او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل هغه حديث دې.کوم چې موږ روايت کړې دې.د تفصيل نه بغير "والعام المتفق على قبوله والعمل به أولى عنده من الخاص المختلف في قبوله والعمل به او هغه عام چې په قبلولو، او په دې د عمل کاوه باندې اتفاق وی.غوره دې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، د هغه خاص نه چې د هغې په قبوليت او په هغې د عمل کاوه کي اختلاف وی.

**حل اللغة:** ① يابى: انکار کوی ② بعير: اوبښ

**تشريح:-** دا د حضرت امام صاحب رحمه الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه کوم حديث موږ روايت کړې دې. ① رومبې دليل: من حفر بيرا... دا حديث عام دې.هر کوهی ته ګډ دې.که بير عطن وی.اوکه بيرناضح وی.بيا دې مقدار پورې د ټولو اتفاق دې.او په دې مقدار باندې د ټولو عمل دې.او کوم روايت چې صاحبينو ذکرکړې دې.هغه خاص دې.ځکه چې دې کي د بيرعطن او بيرناضح حکم جلا جلا بيان کړې شوې دې.بيا ددې په قبلولو کي او په دې باندې عمل کاوه کي اختلاف هم دې.نو لنډيز دا شوه.چه رومبې حديث عام متفق عليه دې.معمول به دې.او دوهم خاص دې.مختلف فيه دې.نو په داسې صورت کي به د امام صاحب رحمه الله د اصولو مطابق رومبې ( عام) قابل د ترجيح وی.

تنبيه ① رومبی حديث ته عام وئيل د شك مقام دې.ځکه چې دې کي د ,,عطن لماشيته,, قيد موجود دې.ددې مطلب دا دې.چه دا د بيرعطن حکم دې؟

خواب: "من حفر بيرا..." عام دې هر کوهی ته.په دې کي هيڅ قيد نشته.نو دا دواړه کوهيانو ته ګډ دې.او "فله مما حولها أربعون ذراعا" ددې مطلق بير ( کوهی) جزاء او حکم دې.او بيا روسته ,,عطن لماشيته,, فرمائيل، تقييد نه دې.بلکه دا په غالبو حالاتو باندې محمول کاوه سره د کوهی د حريم د منفعت ذکر

(1) غربه الزيلعي رحمه الله ثم قال أخرج أبوداود في مراسيله عن الزهري عن سعيد بن المسيب رحمه الله قال :قال رسول الله ﷺ حريم البئر العادية خمسون ذراعاً وحريم بئر البدى خمس وعشرون ذراعاً قال السعيد من قبل نفسه وحريم قليبب الزرع ثلاثمائة ذراع وزاد الزهري وحريم العين خمسماءة ذراع من ناحية فهذا حريم ما يطأذن به السلطان إلا أن يكون القوم في أرض أسلموا عليها وابتاعوها (نصب الراية: ٤\٦٠٧)_



دې.او د بيرعطن او بير ناضح شاو خوا (ګيرچاپيره) اوښان وغيره کينولې شی.په نورو الفاظو کي دا په تغليب باندې محمول دې.په تقييد باندې نه دې.لکه څنګه چې په ,,و ذروا بيع,, کي هم د تغليب لحاظ دې.د تقييد نه دې.

ولأن القياس يأبى استحقاق الحريم او ځکه چې قياس د حريم ( احاطې) د استحقاق نه منع کوی لأن عمله في موضع الحفر ځکه چې د کنستونکی عمل د کنستلو په ځائې کي دې والاستحقاق به او استحقاق دعمل په وجه سره وی "ففيما اتفق عليه الحديثان نو په کوم مقدار کي چې دواړه حديثونه متفق شوی دی ترکناه موږ قياس پريښولو "وفيما تعارضا فيه حفظناه او په کوم مقدار کي چې متعارض دی.موږ قياس محفوظ اوساتلو.

**تشريح:-** دوهم دليل: قياس دا غواړی.چه حريم ( احاطه) بالکل ملاؤ نشی.ځکه چې استحقاق د عمل په وجه ثابتيږی.او د کنستلو عمل د کنستلو ځائې پورې دې.نو حريم ملاويدل پکار نه دې.نو موږ اووئيل.چه په کوم مقدار باندې دوې (دوه) حديثونه متفق عليه دی.هلته به موږ قياس پريږدو.او په کوم مقدار چې مختلف دی.هلته به موږ د قياس نه کار اخلو.او په څلويښتو( ذراع)کي متفق او شپيتو کي مختلف دی.نو موږ څلويښت ( ذراع ) واخستل.

ولأنه قد يستقى من العطن بالناضح او ځکه چې کله کله د بيرعطن نه د اوښ په ذريعه اوبه راوښکلې کيږی ومن بئر الناضح باليد او د بيرناضح نه په لاس سره راوښکلې کيږی فاستوت الحاجة فيهما نو په دواړو کي حاجت کي برابر شو.

**تشريح:-** دريم دليل: د بيرعطن نه کله کله د اوښ په ذريعه اوبه راوښکلې شی.او کله د بيرناضح نه په لاس سره اوبه راوښکلې کيږی.نو اړتيا په دواړو کي برابر شو.نو مقدار به هم برابر وی.يعنی څلويښت ذراع به وی.

تنبيه: مرغينانی رحمه الله په "لأنه قد يستق...." سره کوم تعليل بيان کړې دې.دا کمزورې دې.او د تيرشوو تصريحاتو خلاف دی.او که داسې اوشی.نو په دې سره به د بير عطن يا بير ناضح حقيقت نه متغير کيږی.

يمكنه أن يدير البعير حول البئر او ممکن ده دې دپاره.چه اوښ د کوهی ګير چاپيره تاؤ کړې شی "فلا يحتاج فيه إلى زيادة مسافة نو د زيات مسافه ( او فاصلې) حاجت به نه وی.

**تشريح:-** څلورم دليل: تاسو فرمائيلی دی.چه کله کله رسئ اوږده وی.نو د زيات ځائې حاجت راپيښيږی.نو ددې ځواب ئې ورکړو.چه دا اړتيا خو په اوښو (چه د ارټ نه پرې اوبه راويستې شی)کي راپيښيږی ارټونو کي نه راپيښيږی.نو هغه له پکار دی.چه د ارټ نه کار واخلی.

## د چينې د احاطې بيان

قال امام ابو الحسين قدوری رحمه الله اوفرمائيل وإن كانت عينا که هغه چينه وی فحريمها خمسمائة ذراع لما روينا نو ددې حريم ( احاطه) پنځه سوه ذراع دې.هغه دليل سره، کوم چې موږ روايت کړو ولأن الحاجة فيه إلى زيادة مسافة او ځکه چې دې کي د زيات مسافه ( او فاصلې) اړتيا دې "لأن العين تستخرج للزراعة ځکه چې چينه د کروندې لپاره اوښکلې شی فلا بد من موضع يجري فيه الماء نو ضروری دې.د داسې ځائې کيدل چې هغې کي اوبه روانې شی "ومن حوض يجتمع فيه الماء او د داسې حوض کيدل چې هغې کي اوبه راجمع شی ومن موضع يجري فيه إلى المزرعة او د داسې ځائې کيدل چې هغې کي اوبه فصل پورې اورسيږی.فلهذا يقدر بالزيادة په دې وجه دا زياتوالی سره اندازه کړې شوې دې.

**تشريح:-** مخکې د کوهی حريم ( احاطه) بيان کړې شوې دې.او دا د چينې د حريم مقدار دې.يعنی پنځه سوه ذراع، ځکه چې دې کي د زيات ځائې اړتيا دی.لکه څنګه چې د متن نه ښکاره ده.

وَالتَّقْدِيرُ بِخَمْسِمِائَةٍ بِالتَّوْقِيفِ او پنخو سوو سره قيد لګول توقيفي دي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ خَمْسُمِائَةِ ذِرَاعٍ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ كَمَا ذَكَرْنَا فِي الْعَطَنِ او اصح دا ده.چه پنخه سوه ذراع د هر اړخه دي.لكه څنګه چي مونږ عطن كي بيان كړي دي وَالذِّرَاعُ هِيَ الْمُكَسَّرَةُ او ذراع هغه كسروي ذراع دي وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ. او دا مونږ وړاندي بيان كړي دي.( چي روسته به هم تشريح كي بيان شي) وَقِيلَ إِنَّ التَّقْدِيرَ فِي الْعَيْنِ وَالْبِئْرِ بِمَا ذَكَرْنَاهُ فِي أَرَاضِيهِمْ لِصَلَابَةٍ بِهَا او وئيلي شوي دي.چه په چينې او كوهي كي چي كومه اندازه مونږ ذكر كړي ده.دا د هغوى په زمكو كي ده.په دي وجه چي هغې كي سختوالي دي وَفِي أَرَاضِينَا رَخَاوَةٌ او زمونږ په زمكو كي نرموالي دي فَيُزَادُ كَي لَا يَتَحَوَّلَ الْمَاءُ إِلَى الثَّانِي فَيَتَعَطَّلَ الْأَوَّلُ نو اندازه به زياتولي شي چي د بل په اړخ اوبه لاړي نشي.چه رومبې بې استعماله پاتي شي.

تشريح:- دا عبارت د يوتقديري سوال خواب دي هغه دا چي خو په كوهي كي هم د زيات اندازي حاجت كيداي شي؟ نو ددي خواب وركوي چي د چينې دا مقدار توقيفي دي.لكه څنګه چي د ذكرشوي حديث نه ثابت ده.د تيرشوي پشان دلته كي هم پنخه سوه ذراع د هر اړخه مراد دي.بيا دلته كي د ذراع نه مراد ذراع كرباس دي.چه دي ته ذراع كسروي هم وئيلي شي.چه دا په مك سره سره تعبير كړي شوي دي. چي دا په مسئله د.، ده در ده.، كي مرغيناني رحمه الله بيان كړي دي.بيا مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل.چه بعضو فقهاؤ فرمائيلي دي.چه ذكرشوي حكم د عربو په سخته مځكه كي دي.چه د هغه خاني مځكه سخته ده.پاتي شوه زمونږه مځكه ، نو دا نرمه ده.په دي كي به د اړتيا په اندازه زيات حريم وركولي شي.چه څاه يا چينه معطله ( او بې استعماله) پاتي نشي.

فائده: په عربو كي دوي (دوه) قسمه ذراع استعماليدل.يو ذراع كرباس ( د كپړې ناپ كاوه ګن)، دوهم ذراع مساحت ( د زمكي وغيره ناپ كاوه ګن).ذراع مساحت د قاضيخان وغيره د تصريح موافق اووه موټي ده.چه په دي كي په هر موټي بتُه ګوته ولاړه وي.(كذا في البحرالرائق ص۱۸۷ج۱) او دا موټي چي په دي بتُه ګوته ولاړه وي.د نن سهار پيمانش په حساب شپږ انچه جوړيږي.ځكه چي په دي طريقه دوي (دوه) موټي يو فټ ګرځولي شوي دي.ددي نه معلوميږي.چه ذراع مساحت دري نيم فټه يا دوي (دوه) ځلويښت انچه وي.چه دا انګريزي نه شپږ انچه زيات دي.

خو په كلام د فقهاؤ كي عموماً چي كوم خاني كي لفظ د ذراع وئيلي شوي دي.ذراع مساحت مراد نه دي بلكه ذراع كرباس مراد وي.او بعضو ذراع مسافه مراد اخستي دي.لكه څنګه چي د ماء كثير په بحث كي او د.، ده در ده.، په تعين كي قاضي خان ذراع مساحت اختيار كړي دي.خو جمهور فقهاء.لكه مرغيناني رحمه الله او عام متون او شروحاتو په دي مقام كي ذراع كرباس صحيح ګرځولي دي.او ذراع كرباس هم په دوي (دوه) قسمه مشهور دي.په متقدمينو كي د دوي (دوه) ديرشو ګوتو برابر ذراع مشهور دي.او متاخرينو كي د څلېريشتو ګوتو، د ګوتي نه مراد دا دي.چه څلور ګوتي يوځاني كيخودي شي.او بتُه ګوته دي سره شامله نكړي شي.بيا څلور هغې سره برابر ( يو ځاني) او بيا دغه ډول څلور څلور كيخودي شي.تردي چي ۳۲ يا ۲۴ پوره شي.او چونكي يو موټي هم د څلورو ګوتو وي.په دي وجه به د متقدمينو ذراع اته موټي او د متاخرينو شپږ موټي وي.د مذهب په عامو كتابونو، متونو، شروحاتو، او فتاوو كي د متاخرينو ذراع مستعمل دي.هم په دي باندي شرعي حسابونه مقرر كړي شوي دي.يعني د شپږ موټو يا ۲۴ ګوتو يو ذراع دي.(و بحثه في العالمكيريه ص۱۸۸ج۱) ددي نه دا معلوميږي.چه د اوبو د پيمانش متعلق په.، ده در ده.، مسئله كي ذراع كرباس معتبر دي.او ددي صحيح او راجح پيمانش ( ناپ) ۲۴ ګوتي دي.يا شپږ موټي دي.او دا بعينه هغه مقدار دي.چه دي ته زمونږ په عرف ( او رواج) كي يو لاس وئيلي شي.چه ددي تفصيل وړاندي تير شوي دي.هلته كي عبارت نه دا هم معلوميږي.چه د بحر په بحث المياه كي كوم قول نقل كړي شوي دي.چه اووه موټي يو ذراع وي.دا د هغه پخواني ذراع پيمانش دي.كوم چي د آخري كسرى د فارس د ملك ذراع دي.او په اسلام كي په عامه توګه (عام طور) باندي كوم ذراع رائج شو.هغه يو موټي كم



يعني د شپږ موټو يا د ۲۴ ګوتو ذراع دي.او هم دا معتبر دي.او د عربو او د فقهاؤ د مزاج او سادګئ هم دا تقاضه ده.چه ددوى په كلام كي د ذراع نه مراد هم دا ذراع وي.ځكه چي دا د ذراع طبعي ( يو لاس) صحيح مقدار دي.او دا ذراع د انګريزي ګز په نيمه يعني يو نيم فټ يا ۱۸ انچه وي.لكه څنګه چي عام طورپه د چكورتي ( علم حساب) كي ددي تصريح په لاندينو الفاظو كي موجود ده:

۹ انچ يعني يوه ليشت، شپږ ليشتي يعني ۱۸ انچه يا يو لاس، شپږ لاسه يعني يو ګز يعني ۳ فټ يا ۳۶ انچ لنډيز دا چي د موجوده وخت انګريزي ګز او فټ په اعتبار سره د ذراع مساحت ( او مقدار) يو ګز او شپږ انچه دي.يا دري نيم فټه يا دوي (دوه) څلويښت انچه دي.او ذراع كرباس نيم ګز يا يو نيم فټ يا ۱۸ انچه دي.نو لكه څنګه چي د اوبو په مسئلو كي ذراع كرباس معتبر دي.دغه ډول به حريم ( احاطه) كي هم ذراع كرباس معتبر وي.هم دا ذراع كرباس دي.او هم دا ذراع كسروي دي.او هم دا ذراع كمسر دي.

## د بل په احاطه كښي د كوهي كنستلو حكم

قَالَ قدوري رحمه الله اوفرمائيل فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يَحْفِرَ فِي حَرِيمِهَا نو چا چي اراده اوكړله.دده په حريم كي د كوهي كنستلو مُنِعَ مِنْهُ كَي لَا يُؤَدِّيَ إِلَى تَفْوِيتِ حَقِّهِ وَالْإِخْلَالِ بِهِ نو هغه به ددي نه منع كولي شي.چه دا د رومبی د حق فوت كولو،او هغې كي دخلل اچولو پوري متعدى نشي وَهَذَا لِأَنَّهُ بِالْحَفْرِ مَلَكَ الْحَرِيمَ ضَرُورَةَ تَمَكُّنِهِ مِنَ الِانْتِفَاعِ بِهِ او دا ( منع كول) ددي لپاره دي.چه څاه كنستونكي د كنستلو په وجه د حريم مالك شو.د هغې په انتفاع باندي د قدرت د اړتيا په وجه حريم سره فَلَيْسَ لِغَيْرِهِ أَنْ يَتَصَرَّفَ فِي مِلْكِهِ نو دده غير (علاوه) ته به حق نه وي.چه هغه دده په ملك كي تصرف اوكړي.

حل اللغة: ① تفويت: فوت كول ② الانتفاع: فائده اخستل

تشريح:- هركله چي په تيرشوي تفصيل سره حريم ( احاطه) ثابت شو.نو دده په حريم كي به هيڅ چاته د كوهي كنستلو حق نه وي.ځكه چي د رومبی كوهي والا د كنستلو په وجه د كوهي او ددي د حريم مالك شوي دي.ځكه چي كوهي نه انتفاع د حريم نه بغير ممكن نه ده.نو كه بل كس ته هم په دي كي د تصرف حق وركړي شي.نو د رومبی كس حق به فوت شي.يا به په هغې كي خلل پيدا شي.

## د بل په احاطه كښي د كوهي كنستلو حكم

فَإِنِ احْتَفَرَ آخَرُ بِئْرًا فِي حَرِيمِ الْأَوَّلِ نو كه دوهم كس د رومبی په حريم كي څاه اوكنستلو لِلْأَوَّلِ أَنْ يُصْلِحَهُ وَيَكْبِسَهُ تَبَرُّعًا نو رومبی ته حق شته.چه هغه د احسان په طور ددي اصلاح ( مرمت) اوكړي.او پټ (ډك) ئې كړي وَلَوْ أَرَادَ أَخْذَ الثَّانِي فِيهِ او كه هغه په دي كي دوهم كس ګرفتارول غواړي قِيلَ: لَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ وَيَكْبِسَهُ نو وئيلي شوي دي.چه هغه ته ددي حق شته.چه هغه ده لره ددي په ټيك كاوه ګرفتار كړي.لِأَنَّ إِزَالَةَ جِنَايَةِ حَفْرِهِ بِهِ ځكه چي د هغه د كوهي كنستلو د جرم ازاله به هم په دي سره كيږي كَمَا فِي الْكُنَاسَةِ يُلْقِيهَا فِي دَارِ غَيْرِهِ لكه څنګه چي په خزله ( ګند) كي كيږي.چه دا څوك د بل چا په كور كي اوغورځوى فَإِنَّهُ يُؤْخَذُ بِرَفْعِهَا نو هغه به ددي په اوچتولو كي ګرفتارولي شي وَقِيلَ يُضَمِّنُهُ النُّقْصَانَ ثُمَّ يَكْبِسُهُ بِنَفْسِهِ او وئيلي شوي دي.چه هغه د نقصان ضامن جوړ كړي.بيا دا پخپله ډك كړي كَمَا إِذَا هَدَمَ جِدَارَ غَيْرِهِ، و لكه يوكس د بل چا ديوال اوغورځولو هَذَا هُوَ الصَّحِيحُ ذَكَرَهُ فِي أَدَبِ الْقَاضِي لِلْخَصَّافِ او هم دا صحيح ده.چه دا امام خصاف رحمه الله په ادب القاضي كي بيان كړي دي. وَذَكَرَ طَرِيقَ مَعْرِفَةِ النُّقْصَانِ او د نقصان معلومولو طريقه ئې ذكر كړي ده

حل اللغة: ① تبرع: احسان ② الكبس: مرمت كول اصلاح كول ③ هدم: اونړولو ④ جدار: ديوال

تشريح:- كه بل كس دده په حريم كي څاه اوكنستلو.نو اوس د رومبی لپاره دا هم جائز دي.چه په دوهم كس باندي احسان اوكړي.او ددي په مرمت او صحيح كاوه كي د دوهم كس كومك اوكړي.او كه احسان او تبرع نه

کوی.بلکه هغه نه تاوان اخستل غواړي.نو اوس دوي (دوه) قوله دی.① دې مکلف کړی.چه خپل څاه بند کړه.او هم په دې خاوره ئې بند کړه.ځکه چې کوم جرم ئې کړې دې.د هغې د ټيك کاوه دا ښه طريقه ده.او دا بالکل داسې ده.چه يوکس د بل چا په کور کې خزله او ګند اوغورځولو.نو غورځونکې مکلف کولې شي.چه دا اوچت کړی.② د رومبی کوهی ته چې کوم نقصان رسيدلې دې.هغه د دوهم کس نه واخلی.بيا خپل څاه پخپله مرمت کړی.او د نقصان معلومولو طريقه دا ده.چه دا اوګوری.چه د رومبی کوهی قيمت څه وو.او د دوهم کوهی قيمت څه دې.مثلاً د رومبی کوهی قيمت پنځوس روپۍ وو.او د دوهم کوهی په وجه څلويښت پاتې شو.نو هغه نه دې لس روپۍ ضمان واخلی.او څاه دې پخپله مرمت کړی.او دا داسې ده.لکه چې يوکس د بل چا ديوال اوغورځولو.نو دده څخه به ضمان اخستلې شي.بيا به مالك خپل ديوال پخپله ټيك کوی. حضرت مرغينانی رحمه الله فرمانی.چه دوهم قول صحيح دې.او امام خصاف رحمه الله دا پخپل کتاب ادب القاضی کې بيان کړې دې.او د نقصان معلومولو ذکرشوې طريقه هم دوی بيان کړې ده.

**که په رومبی کوهی کښې څوك مړه شي.نو د ضمان حکم**

وَمَاعَطِبَ فِي الْأَوَّلِ او په اول (کوهی) کې چې څه پريوځی.او هلاك شی فَلَاضَمَانَ فِيهِ نو په ده باندې ضمان نشته لِأَنَّهُ غَيْرُمُتَعَدٍّ ځکه چې هغه غير متعدی دې.(يعنی زياتې کونکې نه دې).إِنْ كَانَ بِإِذْنِ الْإِمَامِ که د امام په اجازت سره وی،فَظَاهِرٌ نو ښکاره ده.وَكَذَا إِنْ كَانَ بِغَيْرِإِذْنِهِ عِنْدَهُمَا او هم دغه دول کله چې د امام نه بغير وی.د صاحبين رحمهما الله په نيز وَالْعُذْرُلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ جَعَلَ فِي الْحَفْرِتَحْجِيرًا او د امام ابوحنيفه رحمه الله د اړخه عذر دا دې.چه هغه کنستل نشان لګول ګنړی وَهُوَيَسْتَبِيحُ مِنْهُ بِغَيْرِإِذْنِ الْإِمَامِ او هغه د امام د اجازت نه بغير د نښاناتو لګولو په حق باندې دې.(يعنی علامات لګول جائز دی).،وَإِنْ كَانَ لَايَمْلِكُهُ بِدُونِهِ اګرچه د امام د اجازت نه بغير به هغه نه مالك کيږی.

حل اللغة° ① العطب: کوهی ته پريوتل ② تحجير: ګانړی لګول ﴾

تشريح:- چونکه رومبې کس په کوهی کنستلو کې په حقه دې.نو که په دې کې څوك پريوځی.او مړ شی.نو په ده باندې هيڅ ضمان نشته.ځکه چې دې کې د کنستونکی هيڅ جرم نشته.لکه چې يوکس پخپله مملوکه مځکه کې څاه اوکنی.او په دې کې څوك پريوځی.او مړشی.نو په ده باندې هيڅ ضمان نشته.د تعدی (زياتی) نه موجود کيدو په وجه، څاه که د امام په اجازت سره کنستې وی.او که د اجازت نه بغير،په رومبی کې خو هيڅ اشکال نشته.البته په دوهم صورت کې د امام صاحب رحمه الله د مذهب مطابق اشکال واردیږی.چه د امام د اجازت نه بغير کنستونکې ددې نه مالك کيږی.نو زياتې شو. نو ضمان واجبيدل پکار دی.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله د اړخه دا عذر پيش کړې شو.يعنی دا توجيه پيش کړې شوه.چه دوی کنستل نشان لګول ګرځولی دی.او نشانات لګول د امام د اجازت نه بغير جائز دی.اګرچه دامام د اجازت نه بغير ملکيت نه ثابتيږی.خو په نښاناتو لګولو کې تعدی (زياتې کول) ضرور ثابته شوه.نو ضمان به واجب نه وی.

**په دوهم کوهی کښې که څوك مړه شي.نو د ضمان حکم**

وَمَاعَطِبَ فِي الثَّانِيَةِ او کوم شئ چې په دوهم کې (پريوتلو او) هلاك شو فَفِيهِ الضَّمَانُ نو په دې کې ضمان شته، لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيهِ حَيْثُ حَفَرَفِي مِلْكِ غَيْرِهِ ځکه چې هغه په دې کې متعدی (زياتې کونکې) دې.په دې حيثيت سره چې ده د غير په ملك کې څاه کنستې دې.

تشريح:- که يوکس د بل چا په کوهی کې پريوځی.او مړ شی.نو په ده به ضمان وی.ځکه چې دده تعدی او زياتې کول ښکاره دی.چه ده د بل په ملك کې څاه کنستې دې.

**په دوهم کوهی کنستلو سره په رومبی کوهی کښې د اوبو اوچيدو مسئله**



وَإِنْ حَفَرَالثَّانِي بِئْرًاوَرَاءَ حَرِيمِ الْأَوَّلِ او که دوهم کس څاه اوکنستلو.د رومبی کس د حريم (احاطې) نه بهر فَذَهَبَ مَاءُالْبِئْرِالْأَوَّلِ نو د رومبی کوهی اوبه ختمې شوې فَلَاشَيْءَ عَلَيْهِ نو په ده (دوهم کس) باندې هيڅ ضمان نشته، لِأَنَّهُ غَيْرُمُتَعَدٍّ فِي حَفْرِهَا ځکه چې هغه په دې کنستلو کې متعدی نه دې وَلِلثَّانِي الْحَرِيمُ مِنَ الْجَوَانِبِ الثَّلَاثَةِ دُونَ الْجَانِبِ الْأَوَّلِ او دوهم کس ته به د دريو طرفونو نه حريم ملاويږی.د رومبی په اړخ کې به نه ملاويږی، لِسَبْقِ مِلْكِ الْحَافِرِالْأَوَّلِ فِيهِ د رومبی کنستونکی د ملکيت مخکې کيدو په وجه، په دې کې.

تشريح:- دوهم کس د رومبی کس د حريم نه بهر يعنی څلويښت ذراعه جلا څاه اوکنستو.چه ددې په وجه د رومبی کس په کوهی کې اوبه ختمې شوې.نو په دوهم باندې به هيڅ ضمان نه وی.ځکه چې دده د اړخه هيڅ تعدی (زياتې) نه دې موجود شوې.ځکه چې ده د رومبی د حريم نه بهر څاه کنستې دې.بيا د دوهم کوهی لپاره هم حريم پکار دې.نو وې فرمائيل.چه د رومبی کوهی په اړخ کې خو د رومبی کوهی حريم دې.تر څلويښت ذراعه (شرعی ګزونو) پورې.نو په دې اړخ کې به خو دوهم کوهی ته حريم نه ملاويږی.ځکه چې دې اړخ کې د رومبی ملك مقدم دې.البته ددې اړخ نه علاوه پاتې دريو طرفونو کې به دوهم کس ته حريم ملاويږی.

فائده۞ اوبه د زمکې لاندې د هيڅ چا ملکيت نه دی.نو په ده باندې دا زبردستی نشی کيدې.چه د دې خائې نه خپل څاه لرې کړه.ځکه چې ده هيڅ تعدی نه ده کړې.او دا داسې ده.لکه چې د يوکس دوکان دې.او هم ددې شئ دوکان بل کس ددې په خواکې اوکړو.چه په دې سره رومبې دوکان کمزورې شو.نو په دوهم باندې هيڅ ضمان نشته.﴿مجمع الانهر ص۳۳۵ج۲﴾

**د لختي (وړوکي نهر) د احاطې اندازه**

وَالْقَنَاةُ لَهَاحَرِيمٌ بِقَدْرِمَايُصْلِحُهَا و نالۍ (لختې)، ددې حريم به دومره وی.کوم چې ددې مناسب وی وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْبِئْرِفِي اسْتِحْقَاقِ الْحَرِيمِ.[1] او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه دا د حريم د استحقاق په سلسله کې د کوهی په مثل دې وَقِيلَ هُوَعِنْدَهُمَا او ويلې شوی دی.چه دا د صاحبينو رحمهما الله په نيز دی.وَعِنْدَهُ لَاحَرِيمَ لَهَامَالَمْ يَظْهَرِالْمَاءُ عَلَى الْأَرْضِ او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دده لپاره حريم نه وی.ترکومه پورې چې اوبه په مځکه ښکاره نشی لِأَنَّهُ نَهْرٌفِي التَّحْقِيقِ ځکه چې دا په حقيقت کې وياله دې فَيُعْتَبَرُبِالنَّهْرِالظَّاهِرِ نو دا به په ښکاره وياله باندې قياس کولای شی .قَالُواوَعِنْدَظُهُورِالْمَاءِعَلَى الْأَرْضِ هُوَبِمَنْزِلَةِ عَيْنٍ فَوَّارَةٍ مشائخو فرمائيلی دی.او د اوبو ښکاره کيدو په وخت په مځکه دا د خوټکيدونکې چينې پشان ده فَيُقَدَّرُحَرِيمُهُ بِخَمْسِمِائَةِ ذِرَاعٍ نو ددې حريم پنځه سوه ذراعه سره اندازه کولې شی.

حل اللغی° ① القناة: لختې، نالۍ ② عين فوارة: خوټکيدونکې د اوبو چينه﴾

تشريح:- يو خو کلاؤ (پلن) وياله وی.او کله داسې وياله وی.چه دا د بره نه پټولې (او بندولې) شی.دې ته قناة او کاريز وائی.او پټه کړې شوې وړوکې بندې نالۍ ته هم قناة او کاريز وائی.او په بلوچستان کې خو د اوبه خور هم دا طريقه ده.بهرحال د محقق قول مطابق به لختی (نالۍ) ته دومره حريم ملاويږی.د څومره چې اړتيا وی.او دا د امام (حاکم) په رائې باندې موقوف ده.صاحبينو رحمهما الله دې ته د کوهی درجه ورکړې ده.چه د کوهی په اندازه به حريم وی.او د امام صاحب رحمه الله په نيز د کلاؤ وياله لپاره به هم حريم نه وی.او دا هم وياله دې.نو ددې لپاره به هم حريم نه وی.مشائخو فرمائيلی دی.چه کله اوبه په مځکه ښکاره شی.نو هغه د چينو په حکم کې دې.چه ددې حريم به پنځه سوه ذراع وی.

**په ارض موات کښې د لګولو شوو ونو د احاطې بيان**

---

[1] القول الراجح هوهذا قول محمد رحمه الله كذا فی ردالمحتار(۵/۳۰۹) وملتقى الأبحر(۴/۲۳۳) نقلاً عن القول الراجح (۲/۱۱۱۳)-

وَالشَّجَرَةُ تُغْرَسُ فِي أَرْضٍ مَوَاتٍ او ونه کومه چې اولګولې شي.په شاړه (موات) مځکه کې لَهَا حَرِيمٌ أَيْضًا حَتَّى لَمْ يَكُنْ لِغَيْرِهِ أَنْ يَغْرِسَ شَجَرًا فِي حَرِيمِهَا هغې لپاره هم حریم شته.تردې چې بل کس ته به حق نه وي.چه دده په حریم کې ونه اولګوي لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى حَرِيمٍ لَهُ يَجُدُّ فِيهِ ثَمَرَهُ وَيَضَعُهُ فِيهِ ځکه چې ونه لګونکې ددې د حریم محتاج دې.چه هغې کې هغه میوې اوشوکوي.او کیږدي وَهُوَ مُقَدَّرٌ بِخَمْسَةِ أَذْرُعٍ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ، بِهِ وَرَدَ الْحَدِيثُ.(١) او هغه د هر اړخه (ګیر چاپیره) پنځو ذراعو سره اندازه شوې ده.هم دې سره حدیث وارد شوې دې.

**تشریح:**- چا چې په مړه (شاړه) مځکه کې ونه اولګوله.نو د ونې به هم حریم وي.چه ددې مقدار پنځه ذراعه دې.چه د حدیث نه ثابت دې.کوم حدیث چې په ابوداؤد کې دې.ځکه چې ده ته به اړتیا وي.د داسې ځائې چې دې کې اودریږي.میوې اوشوکوي.او په دې ځائې کې نې کیږدي.او کله کله د اوچولو اړتیا هم راپیښیږي.

### د دریاب د اوبو لاره بدلولو سره ددغه زمکې د آبادۍ حکم

قَالَ وَمَا تَرَكَ الْفُرَاتُ أَوِ الدِّجْلَةُ او کوم ځائې چې فرات یا دجله پریخودو وَعَدَلَ عَنْهُ الْمَاءُ و هغې نه اوبه واوړیدې وَيَجُوزُ عَوْدُهُ إِلَيْهِ او دلته اوبه واپس راتګ ممکن دی لَمْ يَجُزْ إِحْيَاؤُهُ لِحَاجَةِ الْعَامَّةِ إِلَى كَوْنِهِ نَهْرًا نو ددې احیاء (آبادول) جائز نه دی.د عامو خلګو د حاجت په وجه، ددې د ویاله کیدو په طرف، وَإِنْ كَانَ لَا يَجُوزُ أَنْ يَعُودَ إِلَيْهِ او که ددې د واپس کیدو امکان نه وي فَهُوَ كَالْمَوَاتِ إِذَا لَمْ يَكُنْ حَرِيمًا لِعَامِرٍ نو هغه د موات (شاړې زمکې) په مثل ده.کله چې دا د بل آبادونکی حریم نه وي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي مِلْكِ أَحَدٍ ځکه چې دا د هیڅ چا ملکیت نه دې لِأَنَّ قَهْرَ الْمَاءِ يَدْفَعُ قَهْرَ غَيْرِهِ ځکه چې د اوبو غلبه بل لرې کوي كذا موهُوَ الْيَوْمَ فِي يَدِ الْإِمَامِ او دا اوس د امام په قبضه کې ده.

**تشریح:**- دریاب کله کله خپل ځائې پریږدي.لکه چې ګنګا، جمنا کې اکثر هم داسې کیږي.نو د فرات او دجله تخصیص نه دې.بلکه چې هریو دریاب وي.نو په دې کې دریائې نیل، ګنګا، جمنا وغیره واړه داخل دی.نو اوس به کتلې شي.چه دې ځائې کې بیا دوباره د اوبو د چپو راتلو امکان شته او که نشته؟ په ړومبی صورت کې ددې احیاء جائز نه ده.ځکه چې دا موات (شاړه) نه ده.دا اوس هم د ویاله په حکم کې ده.چه ددې احیاء (آبادول) جائز نه ده.او که دوباره د اوبو د چپو راتلو امکان نه وي.نو اوس دوې (دوه) صورتونه دی.① یا به د یوې آبادۍ حریم وي.② یا به د آباد ځائې حریم نه وي.په ړومبی صورت کې ددې احیاء جائز نه ده.ځکه چې دا موات نه ده.او په دوهم صورت کې ددې احیاء جائز ده.ځکه چې اوس دا موات ده.چه ددې هیڅ څوک مالك نشته.ځکه چې د اوبو قبضه د ټولو قبضه ختمه وي.او دې وخت دا د امام په قبضه کې ده.نو دده په اجازت سره (د امام صاحب رحمه الله په نیز) او په دواړو صورتونو کې (د صاحبینو رحمهما الله په نیز) ددې احیاء جائز وي.

تنبیه: کله کله داسې کیږي.چه د یخنۍ او ګرمۍ زمانه کې اوبه نه چلیږي.صرف په بارانونو کې چلیږي.نو په کومه زمانه کې چې اوبه نه چلیږي.دغه زمانه کې ددې احیاء جائز ده.﴿شامی ص ٨٠ ج ٢﴾

### د بل په مځکه کښې د نهر د احاطې بیان

قَالَ امام ابو الحسین قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ كَانَ لَهُ نَهْرٌ فِي أَرْضِ غَيْرِهِ او د کوم کس چې د بل په مځکه کې ویاله وي فَلَيْسَ لَهُ حَرِيمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِلَّا أَنْ يُقِيمَ بَيِّنَةً عَلَى ذَلِكَ، نو دده لپاره د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز حریم نشته.مګر دا چې هغه په دې باندې ګواهان قائم کړي، وَقَالَا: لَهُ مُسَنَّاةُ النَّهْرِ يَمْشِي عَلَيْهَا وَيُلْقِي عَلَيْهَا طِينَهُ او

١) من حدیث أبی سعید الخدری رضي الله عنه أخرجه أبوداود فی سننه فی آخر الأقضیة رقم ٣٦٤٠ـ



صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه دده لپاره به د ویاله پوله وي.چه ددې سربیره هغه ګرځي.او په دې باندې د ویاله خټه اچوي.

**حل اللغة:** ① مسناة النهر: د ویاله پوله ② طین: خټه ﴾

**تشریح:**- د یو کس ویاله دې.چه ددې دواړو طرفونو کې د بل کس مځکه ده.نو د ویاله لپاره به حریم وي.او که نه؟ په دې کې اختلاف دې.صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه حریم به وي.یعنی کم ازم کم د ویاله پوله به وي.چه ددې لپاره تللې شي.او د ویاله کنستو په وخت ددې خټه په دې سربیره اچولې شي.خو امام صاحب رحمه الله فرمائي.چه حریم به نه وي.د اختلاف په وخت به پوله هم د زمکې د مالك ملکیت وي.البته که د ویاله والا ګواهان قائم کړل.چه پوله زما ده.او زه ددې مالك یم.نو دده ګواهان به معتبر وي.

①مسئله: کشف الغوامض کې دی.چه دا اختلاف په لوئې ویاله کې دې.چه ددې هر وخت د کنستلو اړتیا نه راپیښیږي.بهرحال وړوکی نهرونه (لختی او نالی) چې ددې هر وخت د کنستلو اړتیا راپیښیږي.نو ددې لپاره به بالاتفاق حریم وي.﴿هکذا ذکر فی النهایه﴾ خو د مرغینانی رحمه الله ښکاره کلام ددې سره جوړ نه ساتي.

②مسئله: په غایة البیان کې په حواله د شرح طحاوی ذکر دی.که د پولې او د زمکې د مالك د زمکې په منځ کې دیوال وي.نو پوله به د ویاله والا وي.او دا بالاجماع دې.اوکه ددې په منځ کې څه حائل (دیوال) نه وي.نو د امام صاحب رحمه الله په نیز د زمکې مالك د پولې مالك دې.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز د ویاله والا ددې مالك دې.غایة البیان کې د شیخ الاسلام د شرحې د کتاب الشرب په حواله ذکر دی.اختلاف په دې کې دې.چه د پولې سربیره د ونو لګولو یا د کروندې کاوه حق چا ته دې.نو د امام صاحب رحمه الله په نیز د زمکې مالك ته، او د صاحبینو رحمهما الله په نیز د ویاله مالك ته دې.

### د امام په اجازت سره د کنستلې کوهې د حریم حکم

قِيلَ هَذِهِ الْمَسْأَلَةُ بِنَاءٌ عَلَى أَنَّ مَنْ حَفَرَ نَهْرًا فِي أَرْضٍ مَوَاتٍ بِإِذْنِ الْإِمَامِ ونیلی شوی دی.چه دا مسئله مبنی ده.په دې خبره چې کوم کس په مړه (شاړه) مځکه کې ویاله اوکنستلو.د امام په اجازت سره لَا يَسْتَحِقُّ الْحَرِيمَ عِنْدَهُ نو هغه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د حریم نه مستحق کیږي وَعِنْدَهُمَا يَسْتَحِقُّهُ او د صاحبینو رحمهما الله په نیز مستحق کیږي.

**تشریح:**- د مختصر القدوری دا مسئله دوې (دوه) احتماله لري: یودا چې دا مسئله په دویمه اختلافی مسئلې باندې مبنی وي.دلته مرغینانی رحمه الله هم دا دوهم صورت بیانوي.فرمائي.چه د کتاب دا مسئله په هغه دویمه مسئله باندې مبنی ده.چه کوم کس د امام په اجازت سره په شاړه مځکه کې ویاله اوکنستلو.نو د امام صاحب رحمه الله په نیز به ده ته حریم نه ملاویږي.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به ملاویږي.دا اصل مسئله شوه.اوس په دې باندې د کتاب مسئله مبنی ده.چه کله د یو کس سره مځکې نه موجود دې.او د بل کس مځکه ددې په اطرافو کې ده.نو د ړومبۍ مسئلې پشان به دلته کې هم پوله وغیر د صاحبینو رحمهما الله په نیز د ویاله د مالك وي.او د امام صاحب رحمه الله په نیز به د زمکې د مالك وي.اوس وریسې د صاحبینو رحمهما الله دلیل اوګورئ.دوهم احتمال دا دې چې دا جلا مسئله شي.په دویمه اختلافی مسئلې باندې مبنی نشي.

### د صاحبینو رحمهما الله دلیل

لِأَنَّ النَّهْرَ لَا يُنْتَفَعُ بِهِ إِلَّا بِالْحَرِيمِ ځکه چې نهر، ددې څخه به نفع نشی اخستلې.خو سره د حریم نه لِحَاجَتِهِ إِلَى الْمَشْيِ لِتَسْيِيلِ الْمَاءِ ددې د حاجت کیدو په وجه، د اوبو بهیولو دپاره، تللو اړخ ته وَلَا يُمْكِنُهُ الْمَشْيُ عَادَةً فِي بَطْنِ النَّهْرِ او په عامه توګه (عام طور) باندې په ویاله کې دننه تلل ممکن نه وي وَإِلَى إِلْقَاءِ الطِّينِ. (او ددې د محتاج کیدو په وجه) د ختې اچولو اړخ ته وَلَا يُمْكِنُهُ النَّقْلُ إِلَى مَكَانٍ بَعِيدٍ إِلَّا بِحَرَجٍ او ده ته لرې ځائې اړخ ته خته منتقل کول ممکن نه دی خو سره د تکلیف نه، ،،فَيَكُونُ لَهُ الْحَرِيمُ اعْتِبَارًا بِالْبِئْرِ نو دده لپاره به حریم

وی.په کوهی باندې قیاس کاوه سره

**حل اللغة**: ① **المشی**: تګ ② **تسییل**: بیول ③ **بطن**: نس ④ **الطین**: ختهٔ

**تشریح**:- دا د صاحبینو رحمهما الله دلیل دې.چه د ویاله مالك ته به حریم ملاویږی.ځکه چې ښکاره حال هم دده لپاره شاهد دې.ځکه چې د حریم نه بغیر د ویاله نه نفع نشی اخستې کیدې.ځکه چې د ویاله مالك ته د اوبو د ساتنه لپاره په پوله باندې د تللو اړتیا راپیښیږی.او په اوبو کې دننه تلل د عادت خلاف دی.او د ویاله خته راویستلو لپاره په پوله باندې د اچولو اړتیا راپیښیږی.ګنی بل ځائې ته خته اوړلو، او اچولو کې ښکاره ضرر دې.نو لکه څنګه چې د اړتیا په خاطر د کوهی لپاره حریم وی.نهر لپاره به هم حریم وی.دا د صاحبینو رحمهما الله دلیل دې.ددې نه روسته د امام صاحب رحمه الله دلیل بیانولې شی.

### د امام صاحب رحمه الله دلیل

وَلَهُ أَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَاهُ عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ او دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه قیاس د حریم د ثبوت انکار کوی.دهغه تفصیل مطابق کوم چې موږ ذکر کړې دې وَفِي الْبِئْرِ عَرَفْنَاهُ بِالْأَثَرِ او په کوهی کې دا موږ په اثر سره معلوم کړې دې وَالْحَاجَةُ إِلَى الْحَرِيمِ فِيهِ فَوْقَهَا إِلَيْهِ فِي النَّهْرِ او په کوهی کې د حریم حاجت، په ویاله کې د حریم د حاجت نه زیات دې لِأَنَّ الِانْتِفَاعَ بِالْمَاءِ فِي النَّهْرِ مُمْكِنٌ بِدُونِ الْحَرِيمِ ځکه چې نهر کې د حریم نه بغیر د اوبو نه نفع اخستل ممکن دی، وَلَا يُمْكِنُ فِي الْبِئْرِ إِلَّا بِالِاسْتِقَاءِ او په کوهی کې نفع اخستل ممکن نه ده.خو د اوبو راوښکلو سره، وَلَا اسْتِقَاءَ إِلَّا بِالْحَرِيمِ او اوبه به نشی راویستلې.خو سره د حریم نه، فَتَعَذَّرَ الْإِلْحَاقُ نو لاحق (مولښتی) کول متعذر شو.(ویاله د کوهی سره)

**تشریح**:- دا د امام صاحب رحمه الله دلیل دې.لکه څنګه چې زموږ د ذکر شوی تفصیلاتو مطابق معلومه شوې ده.چه د حریم ثبوت خلاف قیاس دې.خو که دا اووئیلې شی.چه په کوهی کې د حریم ثبوت په نص سره ثابت دې.نو ،،إلحاق النهر بالبير،، مشکل دې.او په کوهی کې د حریم اړتیا زیات دې.او په ویاله کې کم دی.ځکه چې د ویاله نه بغیر د حریم نه نفع اخستل ممکن ده.خو په کوهی کې د حریم نه بغیر نفع اخستل ممکن نه ده.ځکه چې نهر کې خو اوبه چلول دی.او د کوهی نه راویستل دی.او د راویستلو لپاره څه ځائې پکار دې.که انسان ئې راوباسی.هغه لپاره هم، اوکه اوښ یا غوئې ئې راوباسی.بیا هم، ځائې په دواړو صورتونو کې ضروری دې.نو ددې نه هم معلومه شوه.چه ویاله د کوهی سره لاحق کول متعذر او مشکل دی.

### وجه د استحقاق

وَجْهُ الْبِنَاءِ أَنَّ بِاسْتِحْقَاقِ الْحَرِيمِ تَثْبُتُ الْيَدُ عَلَيْهِ اعْتِبَارًا او د بناء وجه ده.چه د حریم استحقاق سره به په دې باندې قبضه ثابتیږی تَبَعًا لِلنَّهْرِ، د ویاله د تبعیت په اعتبار سره وَالْقَوْلُ لِصَاحِبِ الْيَدِ او معتبر قول د قبضې والا وی.

**تشریح**:- که د کتاب مسئلې ته په دې مسئله باندې مبنی اووئیلې شی.کومه چې ذکر شوه.نو په دې کې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه هرکله د امام په اجازت سره په شاړه مځکه کې په ویاله کنستلو سره حریم ثابتیږی.نو په دې به د ویاله د مالك قبضه هم ثابت وی.هغه بله خبره ده.چه په ویاله باندې قبضه اصالةً ده.او په حریم بالتبع ده.بهرحال قبضه شته.او قاعده دا مقرر ده.چه د قبضې والا قول معتبر وی.نو د ویاله د مالك قول به معتبر وی.او د ویاله پوله به هم د هغه ملکیت وی.

### د امام صاحب رحمه الله دلیل

وَبَعْدَمَا اسْتَحَقَّهُ لَا تَنْعَدِمُ الْيَدُ او د حریم نه مستحق کیدو په وجه به قبضه معدوم (غیرموجود) وی، وَالظَّاهِرُ يَشْهَدُ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ عَلَى مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او ښکاره حال د زمکې د مالك شاهد دې.د هغه تفصیل مطابق کوم به چې موږ ذکرکړو.که الله اوغوښتل.(یعنی یو څو کرخې روسته).



**تشریح**:- دا د امام صاحب رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه هرکله ددوی په نیز د سره د حریم استحقاق اونشو.نو د ویاله د مالك به په دې باندې قبضه هم نه وی.نو هرکله چې د هغه قبضه اونشوه.نو ښکاره حال د زمکې دمالك لپاره شاهد جوړ شو.چه ددې وجه اوس روسته راروان دې.دا خو اختلافی مسئله ده.ددې حضراتو دلیل هغه وخت دې.کله چې دا په دویمې اختلافی مسئلې باندې مبنی اومنلې شی.اوکه جلا مسئله شمار کړې شی.نو ددې بیان دا دې.

### د صاحبینو رحمهما الله دلیل

وَإِنْ كَانَتْ مَسْأَلَةً مُبْتَدَأَةً او که دا جلا مسئله وی فَلَهُمَا أَنَّ الْحَرِيمَ فِي يَدِ صَاحِبِ النَّهْرِ بِاسْتِمْسَاكِهِ الْمَاءَ بِهِ وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ صَاحِبُ الْأَرْضِ نَقْضَهُ نو د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه حریم د ویاله د مالك په قبضه کې دې.د هغه د منع کاوه (بندولو) په وجه او د حریم په ذریعهاو هم په دې وجه د زمکې والا ددې د ماتولو مالك نه دې.

**تشریح**:- که د مختصرالقدوری دا مسئله جلا مسئله اومنلې شی.لکه څنګه چې موږ وړاندې دې ته اشاره کړې وه

نو بیا په دې کې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې. چې د ویاله مالك د پولې په ذریعه د خپل ویاله اوبه بندې کړی دی.او هم دا وجه ده.چه بالاتفاق د زمکې والا ددې پولې د وړانولو او ماتولو مالك نه دې.ددې نه معلومه شوه.چه پوله د ویاله د مالك ملکیت دې.دا د صاحبینو رحمهما الله دلیل پوره شو.

### د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل

وَلَهُ أَنَّهُ أَشْبَهُ بِالْأَرْضِ صُورَةً وَمَعْنًى او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه دا (حریم) د زمکې زیات مشابه دې.د صورت اومعنی په اعتبار سره أَمَّا صُورَةً فَلِاسْتِوَائِهِمَا بهرحال د صورت په اعتبار سره، ددې دواړو (د حریم او زمکې) د برابرکیدو په وجه، وَمَعْنًى مِنْ حَيْثُ صَلَاحِيَّتُهُ لِلْغَرْسِ وَالزِّرَاعَةِ او د معنی په اعتبار سره د حریم د صلاحیت (او قابلیت) په اعتبار سره د وُنو (او بوټو) لګولو او د کروندې لپاره، وَالظَّاهِرُ شَاهِدٌ لِمَنْ فِي يَدِهِ مَا هُوَ أَشْبَهُ بِهِ او ښکاره حال شاهد وی.د هغه کس دپاره، د چا په قبضه کې چې هغه شئ وی.کوم چې د حریم مشابه وی كَاثْنَيْنِ تَنَازَعَا فِي مِصْرَاعِ بَابٍ لَيْسَ فِي يَدِهِمَا لکه (مثلاً) دوې (دوه) نفر جګړه اوکړی.د دروازې د یو بازو (درشل) په اړه کې، کوم چې ددوی دواړو په قبضه کې نه دې وَالْمِصْرَاعُ الْآخَرُ مُعَلَّقٌ عَلَى بَابِ أَحَدِهِمَا او دوهم بازو (درشل) په دوی دواړو کې د یو په دروازه باندې لګیدلې دې، يُقْضَى لِلَّذِي فِي يَدِهِ مَا هُوَ أَشْبَهُ بِالْمُتَنَازَعِ فِيهِ نو فیصله به کولې شی.د هغه کس دپاره، د چا په قبضه کې چې هغه شئ دې.کوم چې متنازع فیه (د جګړې والا څیز) سره زیات مشابه وی.

**تشریح**:- دا د امام صاحب رحمه الله دلیل دې.چه دحریم مشابهت ویاله سره هم دې.او زمکې سره هم دې.خو زیات مشابهت ئې زمکې سره دې.د صورت په اعتبار سره هم، او د معنی په اعتبار سره هم،د صورت په اعتبار سره خکه دې.چه مځکه او حریم هوار دی.او ویاله جوړ (کنده) ځائې شو.او معنوی مشابهت دا دې.چه لکه څنګه په مځکه کې وُنې (او بوټی) لګولې شی.او کرونده کولې شی.دغه ډول پوله هم ددې صلاحت لری.چه په دې کې بوټی اوکرلې شی.او کرونده اوکړې شی.په خلاف د نهر،چه نه په دې کې بوټی لګولې شی.او نه کرونده کولې شی.نو دلته کې ښکاره حال د زمکې د مالك لپاره شاهد دې.ځکه چې د حریم مشابه شئ بې شکه چې دده په قبضه کې دې.او هغه دده مځکه ده.

*ؒ* په دې داسې پوهه شئ؛چه دوې (دوه) بازوګان (درشلې) دی.په دې کې یو د زید په دروازه کې لګیدلې دې.او بل دوهم بازو هم ددې پشان ددې د جوړې دې.چه په دې کې د زید او خالد جګړه ده.نو دا بازو به زید ته ملاویږی.ځکه چې ښکاره حال هم دده لپاره شاهد دې.ځکه چې ددې مشابه بازو دده په قبضه کې دې.دغه ډول به دلته کې هم حریم د زمکې مالك ته ملاویږی.ځکه چې ددې مشابه مځکه د زمکې د مالك

په قبضه کي ده.

### د قاضي د قضاء دوي (دوه) قسمونه

**وَالْقَضَاءُ فِي مَوْضِعِ الْخِلَافِ قَضَاءُ تَرْكٍ**

ژباړه:- او د اختلاف په ځاني کي قضاء، قضاءِ ترك ده.

**تشريح:-** د قاضي د قضاء دوي (دوه) قسمونه دي: ① قضاءِ ترك په کي دا حق شته. چه فيصله بدله شی. او ددي په خلاف حکم جاری کړی. ② قضاءِ ملك و استحقاق، په کي چي د کوم کس خلاف فيصله اوشوه. بيا هم په دي واقع کي دده په حق کي فيصله نشی کيدي. نو که د وياله مالك خپل ځان لپاره د پولي په ملکيت کيدو باندي بينه قائم کړی. نو په رومبی صورت کي د وياله د مالك لپاره د پولي فيصله کولي شی. او په دوهم صورت کي نشی کيدي. نو دلته د قاضي د قضاء نه مراد قضاءِ ترك ده. يعني په قول د امام ابوحنيفه رحمه الله دا د زمکي د مالك په قبضه کي پريږدی. او په قول د صاحبينو رحمهما الله د وياله د مالك په قبضه کي پريږدی.

### د صاحبينو رحمهما الله د دليل جواب

**وَلَانِزَاعَ فِيمَا بِهِ اسْتِمْسَاكُ الْمَاءِ** او په دومره برخه کي هيڅ نزاع (او جګړه) نشته. په کوم سره چي د اوبو رکاوټ دي **إِنَّمَا النِّزَاعُ فِيمَا وَرَاءَهُ مِمَّا يَصْلُحُ لِلْغَرْسِ** جګړه خو ددي نه په علاوه کي ده. کومه چي د بوټو لګولو صلاحيت (او قابليت) لري **عَلَى أَنَّهُ إِنْ كَانَ مُسْتَمْسِكًا بِهِ مَاءُ نَهْرِهِ** علاوه ددي خبري نه که هغه ددي په ذريعه د وياله اوبه بندونکي دي، **فَالْآخَرُ دَافِعٌ بِهِ الْمَاءَ عَنْ أَرْضِهِ** نو دوهم ددي په ذريعه د خپلي زمکي نه اوبه منع کونکي دي **وَالْمَانِعُ مِنْ نَقْضِهِ تَعَلُّقُ حَقِّ صَاحِبِ النَّهْرِ لَا مِلْكُهُ** او ددي د ماتولو نه چي کوم شئ مانع دي. هغه د وياله د مالك حق متعلق کيدل دي. د هغه ملك (مانع) نه دي **كَالْحَائِطِ لِرَجُلٍ** لکه (مثلاً) يو ديوال د يوکس وی **وَلِآخَرَ عَلَيْهِ جُذُوعٌ** او په دي باندي د بل کس برګي (لرګی) وی، **لَا يَتَمَكَّنُ مِنْ نَقْضِهِ وَإِنْ كَانَ مِلْكَهُ** نو هغه (د ديوال مالك) ددي په ماتولو باندي قادر نه دي. اګرچه دا دده ملك دي.

**تشريح:-** په دي عبارت سره علامه مرغيناني رحمه الله د امام صاحب رحمه الله د اړخه د صاحبينو رحمهما الله د دليل ځواب ورکوی چي تاسو کوم څه اوفرمائيل. چه د وياله مالك په حريم سره د خپل وياله اوبه منع کوی. نو ځواب ئي ورکړو. چه په څومره برخي (حصي) سره اوبه منع کوی. هغي کي زموږ جګړه نه ده. بلکه ددي نه په علاوه کي ده. کومه چي د بوټو لګولو او د کروندي صلاحيت لري. اوکه دا اومنلي شی. چه په پوره پوله کي اختلاف دي. نو بيا ځواب دا دي. که د وياله مالك په دي سره د خپل وياله اوبه منع کوی. نو د زمکي مالك په دي بند سره خپله مځکه کي د اوبو راتلو نه د زمکي ساتنه کوی. نو د وياله د مالك استحقاق به نه ثابتيږی. او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلی وو. چه هم دا وجه ده. چه د زمکي مالك دا پوله (بند) نشی ماتولي. ددي مطلب دا نه دي. چه د وياله والا هم ددي مالك دي. بلکه د نه ماتولو وجه دا ده. چه دي پولي سره د وياله د مالك حق متعلق دي. او کوم شئ سره چي د بل کس حق متعلق وی. نو اګرچه هغه مالك نه وی. بيا هم مالك ته ددي د ماتولو اختيار نه وی. لکه مثلاً د زيد په ديوال باندي د خالد د کور لرګی (برګي) پرتي وی. نو اګرچه ديوال د زيد ملك دي. خو زيد ته دا حق نشته. چه دا وران کړی. بالکل هم دا حال د زمکي د مالك او د پولي دي.

### د موضع اختلاف وضاحت

**وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ نَهْرٌ لِرَجُلٍ إِلَى جَنْبِهِ مُسَنَّاةٌ** او په جامع صغير کي دی. چه د يوکس يو وياله دي. د هغي په اړخ (طرف) کي يو بند (پوله) دي **وَلِآخَرَ خَلْفَ الْمُسَنَّاةِ أَرْضٌ تَلْزَقُهَا** او د بند شاته د بل کس مځکه ده. چه هغه دي بند سره متصل ده **وَلَيْسَتِ الْمُسَنَّاةُ فِي يَدِ أَحَدِهِمَا** او بند په دوی کي د هيڅ چا په قبضه کي نه دي **فَهِيَ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** نو دا بند به د زمکي د مالك وی. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، **وَقَالَا هِيَ لِصَاحِبِ النَّهْرِ حَرِيمًا لِمُلْقَى**



**طِينِهِ وَغَيْرِ ذَلِكَ** او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلی دی. چه د وياله والا به وی. د حريم دپاره، ددي د ختي اچولو، او ددي نه علاوه دپاره.

**تشريح:-** د جامع صغير روايت بيانولو سره د مرغيناني رحمه الله مقصد صرف د اختلاف موضع واضح کول دی. چه دا اختلاف په دي صورت کي دي. کله چي حريم د هيڅ چا په قبضه کي نه وی. پاته خبري په دي کي هغه دی. کومي چي وړاندي ذکر شوی دی. چه د امام صاحب رحمه الله په نيز د حريم مالك د زمکي والا دي. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د وياله والا دي.

### د مسناة د قيد وضاحت

**وَقَوْلُهُ وَلَيْسَتِ الْمُسَنَّاةُ فِي يَدِ أَحَدِهِمَا** کي **مَعْنَاهُ: لَيْسَ لِأَحَدِهِمَا عَلَيْهِ غَرْسٌ** ددي مطلب دا دي. چه په دي باندي د هيڅ چا ونې نه وی **وَلَا طِينٌ مُلْقًى** او نه اچولي شوي خټه وی **فَيَنْكَشِفُ بِهَذَا اللَّفْظِ مَوْضِعُ الْخِلَافِ** نو هم په دي لحاظ سره د اختلاف ځاني ښکاره کيږی.

**تشريح:-** د جامع صغير په عبارت کي چي کوم دا قيد دي. «وليست المسناة...» ددي مطلب دا دي. چه په دوی کي د يو کس هم په دي بند باندي قبضه نه وی. يعني نه په دي باندي د چا ونې وی. او نه خټه وی. نو ددي نه معلومه شوه. چه اختلاف په دي صورت کي دي. کله چي دوی دواړو کي د هيڅ يو کس د قبضي علامات ښکاره نه وی. ګني د کوم کس د قبضي علامات چي ښکاره وی. د پولي (بند) مالك به هم هغه وی.

### د اوو مسئلو وضاحت

**أَمَّا إِذَا كَانَ لِأَحَدِهِمَا عَلَيْهِ ذَلِكَ** بهرحال کله چي دوی دواړو کي د يوکس په دي دا (بوټي يا خټه) وی **فَصَاحِبُ الشُّغْلِ أَوْلَى** نو شغل والا به اولی (راجح) وی، **لِأَنَّهُ صَاحِبُ يَدٍ** ځکه چي هغه قبضي والا دي **وَلَوْ كَانَ عَلَيْهِ غَرْسٌ** او که په دي باندي ونې وی **لَا يُدْرَى مَنْ غَرَسَهُ** چي په دي اړه کي دا معلومه نه وی. چه دا چا لګولی دی **فَهُوَ مِنْ مَوَاضِعِ الْخِلَافِ أَيْضًا** نو دا هم د اختلاف د ځايونو څخه دي **وَثَمَرَةُ الِاخْتِلَافِ أَنَّ وِلَايَةَ الْغَرْسِ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ عِنْدَهُ** او د اختلاف فائده دا ده. چه د ونو لګولو ولايت د امام صاحب رحمه الله په نيز د زمکي د مالك ته دي. **وَعِنْدَهُمَا لِصَاحِبِ النَّهْرِ** او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د وياله مالك ته دي.

**حل اللغة:** ① **الغرس:** د ونې نال کول ② **مصراع:** چوکاټ ③ **المتنازع:** هغه شئ په کوم کي چي جګړه وی.

**تشريح:-** په دي عبارت کي مرغيناني رحمه الله څه مسئلي ذکر کړی دی ① د وياله په حريم (پوله يا بند) باندي چي په دواړو کي د کوم کس خټه پرته ده. يا د کوم کس ونې دی. نو دا شيان چي د کوم کس دی. هم هغه د حريم مالك دي. ځکه چي قبضي والا اولی (راجح) وی. مشغوليت والا يعني د کوم کس په حق کي چي دا مځکه مشغوله ده. ② د وياله په حريم باندي ونې دی. خو ددي د لګونکی علم نشته. نو دا ځاني هم اختلافی دي. د امام صاحب رحمه الله په نيز به د حريم مالك د زمکي مالك وی. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به د وياله مالك وی. ③ د امام صاحب او د صاحبينو رحمهم الله د اختلاف نتيجه به دا وی. چه د امام صاحب رحمه الله په نيز په حريم کي د ونو لګولو حق به د زمکي مالك ته وی. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به د وياله مالك ته وی.

**وَأَمَّا إِلْقَاءُ الطِّينِ** او باتي شوه خټه اچول **فَقَدْ قِيلَ إِنَّهُ عَلَى الْخِلَافِ** نو وئيلی شوی دی. چه دا هم په اختلاف (مبنی) دی، **وَقِيلَ إِنَّ لِصَاحِبِ النَّهْرِ ذَلِكَ مَا لَمْ يَفْحُشْ** او وئيلی شوی دی. چه د وياله والا لپاره ددي حق دي. کله چي ډير زيات نه وی.

**تشريح:-** پاتي شوه دا مسئله، چي د وياله مالك ته په پولي باندي د ختي اچولو حق شته، او که نشته؟ نو په دي کي دوي (دوه) قوله دی:[1] د امام صاحب رحمه الله په نيز به حق نه وی. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به حق وی.[2] بالاتفاق به د ختي اچولو حق وی. په دي شرط چي دومره خټه وانه چوی. چه د زمکي مالك د سره ددي نه نفع

نشي حاصلولې.علامه زيلعي رحمه الله فرماني.چه د حريم مالك كه هرڅه غواړي.خو دوهم كس به ددې نه د نفع اخستلو نه نشي منع كولې.په كوم سره چې د مالك حق نه باطليږي.نو د ونو لګولو حق خو صرف مالك ته دي.البته دوهم كس ته د تللو او د ختې اچولو حق شته.

وَأَمَّا الْمُرُورُ او پاتې شو تيريدل فَقَدْ قِيلَ يُمْنَعُ صَاحِبُ النَّهْرِ عِنْدَهُمَا نو ونيلي شوي دي.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د وياله مالك منع كولاى شي وَقِيلَ لَا يُمْنَعُ لِلضَّرُورَةِ او ونيلي شوي دي.چه د اړتيا په وجه به نشي منع كولې قَالَ الْفَقِيهُ أَبُو جَعْفَرٍ آخُذُ بِقَوْلِهِ فِي الْغَرْسِ او فقيه ابوجعفر فرمائيلي دي.چه زه د ونو لګولو په سلسله كې د امام ابوحنيفه رحمه الله قول اخلم ،وَبِقَوْلِهِمَا فِي إِلْقَاءِ الطِّينِ او د ختې اچولو په سلسله كې د صاحبينو رحمهما الله (قول اخلم).

تشريح:- پاتې شوه د تيريدو مسئله ، نو په دې كې هم دوې (دوه) قوله دي [1] د تيرشوي پشان په دې كې هم اختلاف دي.[2] بالاتفاق به د تيريدلو نه نشي منع كولې.ځكه چې دې كې اړتيا دې.

فقيه ابوجعفر رحمه الله فرماني.چه ما په دواړو قولونو باندې عمل اوكړو.خو لږ تفصيل دې.يعنى په ونو لګولو كې زه د امام صاحب رحمه الله قول اخلم.او په خته اچولو كې د صاحبينو رحمهما الله په قول باندې عمل كوم.يعنى د امام صاحب رحمه الله د قول مطابق د ونو لګولو حق صرف د زمكې مالك ته دې.او په اصول د صاحبينو رحمهما الله د وياله مالك ته په دې باندې د ختې اچولو حق شته.

ثُمَّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله بيا د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى أَنَّ حَرِيمَهُ مِقْدَارُ نِصْفِ النَّهْرِ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ چې د وياله حريم د وياله د دننه طرف برخې (حصې) په نيم مقدار دې.د هر اړخه ،وَعَنْ مُحَمَّدٍ او د امام محمد رحمه الله نه نقل دى بِمِقْدَارِ بَطْنِ النَّهْرِ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ چې د هر اړخه د وياله د منځنۍ برخې (حصې) په مقدار دې.وَهٰذَا أَرْفَقُ بِالنَّاسِ () او دا قول (د امام محمد رحمه الله) د خلګو لپاره د آسانتيا سبب دې.

تشريح:- د حريم مقدار به څه وي.نو په دې كې د امام ابويوسف رحمه الله او د امام محمد رحمه الله اختلاف دې.او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز هر اړخ ته د وياله د پلن والى د نيمې په برابر به د حريم مقدار وي.او د امام محمد رحمه الله په نيز به د وياله د پلن والى په اندازه حريم وي.مرغيناني رحمه الله فرماني.چه د امام محمد رحمه الله قول د خلګو لپاره د آسانتيا سبب دې.خو فتوى د امام ابويوسف رحمه الله په قول ده.

① فائده: د اړتيا په اندازه به د ختې وغيره اچولو لپاره حريم ملاويږي. وهو الصحيح كما فى القهستاني نقلاً عن التتمة

② فائده: د حريم د مقدار متعلق فتوى د امام ابويوسف رحمه الله په قول ده.

③ فائده: زموږ په زمانه كې د لويو (غټو) نهرونو مالك حكومت دې.او هغې لپاره حريم (بند) وي.د هغې هم حكومت مالك وي.د كومو خلګو زمكو سره چې نهر جاري وي.د هغوى هيڅ ملكيت د وياله په پولو (بندونو) باندې نه وي.صرف هغوى ته په دې باندې د تيريدو حق وي.د ونو لګولو حق نه وي.بيا چې د نهرونو نه كومې نالې اوېستلې شي.هغې باندې په عامه توګه (عام طور) باندې خاص كر د وياله نه په څه فاصله باندې وراندې پوله (بند) نه وي.بلكه د اوبو دا معمولي شان بند وي.چه سړې پرې تللې شي.دې ته پوله وائى.ددې مالك د زمكې والا دې.البته هغه ته دا حق نه وي.چه دا وران كړي.ځكه چې دې سره د بل كس حق متعلق دې.هركله چې د لختى والا د شرب (اوبه خور) خپل حق پريږدي.نو دا خاني د زمكې د مالك په تصرف كې راځى.لكه ځنګه چې دا زموږ په علاقو كې كيږي.

[1] ) هوهذا قول محمد رحمه الله كذا فى ردالمحتار(٣١٠\٥) وملتقى (٢٣٣\٤) ومجمع الأنهر (٢٣٤\٤) نقلاً عن القول الراجع (٣١٢\٢)-



## فصول فى مسائل الشرب

ژباړه:- دا يو څو فصلونه د اوبه خور د مسائلو (په بيان كې) دى.

تشريح:- د باب احياء الموات نه روسته د اوبه خور مسائلو د بيانولو وجه دا ده.چه په احياء موات (د شاړې زمكې په آبادولو) كې د شرب (اوبه خور) اړتيا راپيښيږي.,, كما هو ظاهر.,

Ⓣ شرب (په ضمې د شين سره) ځكل،چه دا د شارب فعل دې.او دا شرب دې.په معنى د اوبو د حصې،او په شريعت كې شرب وائى.د اوبو هغه برخې (حصې) ته د كوم نه چې پخپل وار كې نفع واخستلې شي.د پټو (فصلونو) اوبو كاوه دپاره، يا څاروو ته د اوبو وركاوه دپاره، په دې كې مرغيناني رحمه الله درې فصلونه بيان كړي دى.

Ⓣ په كومو ملكونو كې چې كوهيان، حوضونه، او تالابانه نه وى.بلكه د وياله نه وار په وار اوبه وركولې شى.نو د هر يو لپاره ددې خپل وار مقرر وى.بيا په مورزاده (پيدائش) دريابونو كې او په كنستلى شوى عامو او خاصو نهرونو كې توپير دې.او هر يو سره خاص او عام حقوق متعلق دى.په دې وجه دلته كې ددې د تفصيل په غرض سره د اوبو اقسام او ددې حقوق او احكام بيانولې شى.

## فصل فى المياه

ژباړه:- (دا) فصل دې داوبو (په بيان كې)

تشريح:- وجه تقديم فصل الماء على غيره: د اوبو فصل ئې په نورو فصلونو باندې وړاندې كړو.ځكه چې ددې ټولو فصلونو مقصد اوبه دى.او اوبه اصل دى.

### د كوهي يا لختى يا نهر نه د اوبو ځكلو نه د منع كولو حكم

وَإِذَا كَانَ لِرَجُلٍ نَهْرٌ أَوْ بِئْرٌ أَوْ قَنَاةٌ او كله چې د يوكس نهر، يا كوهې، يا لختې وى فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَمْنَعَ شَيْئًا مِنَ الشَّفَةِ نو هغه ته دا حق نشته.چه يوكس د شونډو نه منع كړى ،وَالشَّفَةُ الشُّرْبُ لِبَنِي آدَمَ وَالْبَهَائِمِ او شفه (شونډې) اوبه څښل دى.د انسان يا څاروو.

حل اللغة: ① قناة لختې ② الشفة: غاړه ③ البهائم: څناور

تشريح:- ديوكس د وياله يا كوهى نه كه يو انسان يا حيوان (څاروې) اوبه څكى.نو ده ته د منع كاوه حق نشته.ځكه چې دڅښلو په اعتبار سره دې كې د ټولو اشتراك دې.

تحقيق الشفة: شفة په اصل كې شفهة وو.د تخفيف په وجه ،،هاء،، حذف كړې شوې ده.ځكه چې ددې تصغير شفيهة او ددې جمع تكسير شفاة راځى.او دا دواړه هرحكم ددې اصل اړخ ته واپس كوى.ددې معنى ده شونډې.خو ددې نه مراد د څاروواو انسانانو اوبه څښل دى.

### د اوبو اقسام

اِعْلَمْ أَنَّ الْمِيَاهَ أَنْوَاعٌ پوهه شه.چه د اوبو يو څو قسمونه دى مِنْهَا مَاءُ الْبِحَارِ دریاب اوبه ،وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ النَّاسِ فِيهَا حَقُّ الشَّفَةِ وَسَقْيِ الْأَرَاضِي او په دې كې ټولو خلګو ته د څښلو او د زمكې اوبه كاوه حق شته حَتَّى إِنَّ مَنْ أَرَادَ أَنْ يَكْرِيَ نَهْرًا مِنْهَا إِلَى أَرْضِهِ تردې كه يوكس اراده اوكړله.چه ددې نه خپلې زمكې پورې وياله اوكنى لَمْ يُمْنَعْ مِنْ ذٰلِكَ نو ددې څخه به نشى منع كولې وَالِانْتِفَاعُ بِمَاءِ الْبَحْرِ كَالِانْتِفَاعِ بِالشَّمْسِ وَالْقَمَرِ وَالْهَوَاءِ او د درياب د اوبو نه نفع حاصلول داسې دى.لكه د لمر او سپوږمۍ او د هوا نه نفع اخستل:,, فَلَا يُمْنَعُ مِنَ الِانْتِفَاعِ بِهِ عَلَى أَيِّ وَجْهٍ شَاءَ نو هغه به ددې نه د نفع اخستلو نه نشى منع كولې.چه ځنګه هم غواړى.

تشريح:- رومبې قسمعلامه عينى رحمه الله فرمائى.مناسب دا ده.چه دلته كې د بحار (درياب) نه هغه غټ دريابونه

مراد واخستلې شي.کوم چې د دريائي شور نه علاوه دي.لکه دريائي نيل وغيره، چې په دې باندې هم د بحر( درياب) اطلاق کيږي.گنې د دريائي شور نه د څښلو او د زمکې اوبه کاوه نفع نشي حاصليدې.نو دريائي فرات، دجله، نيل، گنگا، جمنا، واړه په دې حکم کې داخل دي.نو ددې نه چې څوك هم اودس کول غواړي.يا اوبه څښل غواړي.يا خپله مځکه اوبه کوي.هغه به نشي منع کولې.او جرنده لگول هرڅه جائز دي.يا وياله کنستل او خپلې زمکې ته راويستل واړه جائز دي.ځکه چې ددې دريابونو نه فائده اخستل داسې ده.لکه د لمر او سپوږمۍ نه فائده اخستل، او لکه د هوا نه نفع حاصلول،چه چاته هم دا حق نشته.چه څوك ددې نه د نفع اخستلو نه منع کړي.

## دوهم قسم

وَالثَّانِي مَاءُ الْأَوْدِيَةِ الْعِظَامِ او دوهم ډول د غټو نهرونو اوبه دي كَجَيْحُونَ وَسَيْحُونَ وَدِجْلَةَ وَالْفُرَاتِ لِلنَّاسِ فِيهِ حَقُّ الشَّفَةِ عَلَى الْإِطْلَاقِ لکه جيحون، سيحون، او دجله او فرات، د خلگو لپاره په کې مطلق د څښلو حق دې وَحَقُّ سَقْيِ الْأَرَاضِي او د زمکو د اوبه کاوه حق دې ،فَإِنْ أَحْيَا وَاحِدٌ أَرْضًا مَيِّتَةً په دې طريقه چې يوکس يوه شاړه مځکه آباده کړې وي وَكَرَى مِنْهُ نَهْرًا لِيَسْقِيَهَا او هغه وياله کنستې وي.چه په دې سره ئې اوبه خور اوکړي إِنْ كَانَ لَا يَضُرُّ بِالْعَامَّةِ نو که دا ( وياله کنستل) عامو خلگو لپاره ضرري نه وي وَلَا يَكُونُ النَّهْرُ فِي مِلْكِ أَحَدٍ او نه دا وياله د يوکس مملوك وي .لَهُ ذَلِكَ،لِأَنَّهَا مُبَاحَةٌ فِي الْأَصْلِ هغه لپاره دا ( نهرونه) اصل کې مباح دي إِذْ قَهْرُ الْمَاءِ يَدْفَعُ قَهْرَ غَيْرِهِ ځکه چې د اوبو غلبه ددې د غير غلبه لرې کوي.

حل اللغة* ① الاودية العظام: غټ نهرونه ② ضفت: اوشليږي ③ الرحى: ميچن ④ القرى: جمع د قرية، کلې﴾

تشريح:- دا د اوبو دوهم ډول دې.او د مرغيناني رحمه الله د ډول مطابق په دې کې ذکر شوي واړه دريابونه داخل دي.د علامه عيني خبره ډيره زړه نه خوښه وي.بهرحال په دې ذکرشوي دريابونو کې ټولو خلگو ته دا حق حاصل دې.چه ددې نه اوبه اوڅکي.او خپلې زمکې اوبه کړي.څوکه څوك ددې نه وياله کنې.او خپلې زمکې پورې راوستل غواړي.نو دا کار د خلگو لپاره د تکليف سبب نه وي.او نه دا درياب د کوم نه چې دې نهرکنستل غواړي.دچا ملکيت وي.نو بيا دده لپاره وياله کنستل جائز دي.

وَإِنْ كَانَ يَضُرُّ بِالْعَامَّةِ اوکه دا ( وياله کنستل) عامو خلگو لپاره ضررناك وي فَلَيْسَ لَهُ ذَلِكَ نو هغه لپاره به ددې حق نه وي لِأَنَّ دَفْعَ الضَّرَرِ عَنْهُمْ وَاجِبٌ ځکه چې د عامو خلگ ونه ضرر لرې کول واجب دي وَذَلِكَ فِي أَنْ يَمِيلَ الْمَاءُ إِلَى هَذَا الْجَانِبِ او دا ( ضرر) په دې کې دې.چه اوبه دې اړخ ته اوبهيږي ،إِذَا انْكَسَرَتْ ضِفَّتُهُ کله چې دې غاړه اوشليږي فَيُغْرِقَ الْقُرَى وَالْأَرَاضِي نو دا به کلي او زمکې ډوبې کړي ،وَعَلَى هَذَا نَصْبُ الرَّحَى عَلَيْهِ او هم په دې باندې په دې باندې جرنده لگول دي ،لِأَنَّ شَقَّ النَّهْرِ لِلرَّحَى كَشَقِّهِ لِلسَّقْيِ بِهِ ځکه چې نهر شلول د جرندې دپاره، دا د وياله د شلولو پشان دي.په دې سره د اوبه خور کاوه دپاره.

تشريح:- دوهم صورت دا دې که دغه کار د خلگو لپاره د تکليف سبب وي.ځکه ممکن ده.چه په وياله کلاوولو سره کله د دريا غاړه اوشليږي.د اوبو زور په دې اړخ شي.او په دې سره کلي او کورونه ډوب شي.او مځکه خرابه شي.نو اوس دده لپاره دا کار جائز نه دې.او دې به ددې نه منع کولې شي.دغه ډول که يوکس د درياب په غاړه جرنده لگول اوغواړي.نو په دې کې هم دا تفصيل دې.که چرې ضرر نه رسوی.نو جائز دي.گنې منع کولې به شي.د دواړو دليل هم يو شان دې.

## دريم قسم

وَالثَّالِثُ إِذَا دَخَلَ الْمَاءُ فِي الْمَقَاسِمِ او د اوبو دريم ډول کله چې اوبه په ويش کې داخلې شي فَحَقُّ الشَّفَةِ ثَابِتٌ نو د څښلو حق خو ثابت دې وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او اصل په دې کې د نبي کريم ﷺ فرمان دې .النَّاسُ



شُرَكَاءُ فِي ثَلَاثٍ: چې خلگ په دريو څيزونو کې شريك دي الْمَاءِ وَالْكَلَإِ وَالنَّارِ(۱) اوبو، گيا، او اور کې وَأَنَّهُ يَنْتَظِمُ الشِّرْبَ،وَالشِّرْبُ خُصَّ مِنْهُ الْأَوَّلُ او دا حديث شرب ( اوبه خور) او شرب (څښلو ) ته گډ وو.ددې نه ړومبې خاص کړې شو،وَبَقِيَ الثَّانِي وَهُوَ الشَّفَةُ او دوهم ( شرب) پاته دې.او هغه څښل دي.

حل اللغة* ① المقاسم: جمع د مقسم ،په معنى د قسم ② الشقي: څښل ③ الكلاء: وابنه ④ النار: اور﴾

تشريح:- دا د اوبو دريم ډول دې.کله چې دا تقسيمولو کې داخل شي.او وار مقرر شي.نو دغه وخت به دې څوك د څښلو نه خو نه منع کوي.البته د زمکې د اوبه کاوه څخه به ئې منع کوي.د اوبو څښلو اجازت ددې حديث نه ثابت دې.کوم چې ذکر شو.چه په دې دريو څيزونو کې واړه شريك دي.اوبه، گيا، او اور کې .ددې حديث تقاضه خو دا وه.چه د شرب ( څښلو ) پشان اوبه خور کې هم شرکت وو.ځکه چې هغه هم اوبه دي.خور( شرب) اوبه خور بالاجماع ددې نه خاص کړې شوې دي.نو صرف شرب ( څکل) پاته پاتې شو.

وَلِأَنَّ الْبِئْرَ وَنَحْوَهَا مَا وُضِعَ لِلْإِحْرَازِ او ځکه چې څاه مقرر نه دې.د محفوظ کاوه دپاره.وَلَا يَمْلِكُ الْمُبَاحَ بِدُونِهِ كَالظَّبْيِ إِذَا تَكَنَّسَ فِي أَرْضِهِ او مباح بغير د محفوظ کاوه نه مملوك نه وي.لکه هوسۍ ديو کس په مځکه کې کور جوړ کړي.

حل اللغة* ① الاحراز: ساتنه ② الظبي: هوسۍ ③ تكنس: هوسۍ کور جوړو کړو﴾

تشريح:- دوهم عقلي دليل دا دې.چه په کوهي کې کومې اوبه دي.د محفوظ کاوه نه بغير دا د کوهي د مالك مملوك نه دي.او کوم شئ چې مباح الاصل وي.هغه د احراز نه بغير نه مملوك کيږي.لکه مثلاً هوسۍ د يوکس په مځکه کې خپل کور جوړ کړو.نو دا هوسۍ به د زمکې والا مملوك نه وي.البته کله چې دا اونيسي.نو د احراز موجود کيدو په وجه به هغه ددې مالك وي.دغه ډول د کوهي اوبه چې ترکومه پورې کوهي کې دي.مباح دي.د کوهي د مالك ملکيت نه دې.نو د څښلو څخه به د منع کاوه حق نه وي.

وَلِأَنَّ فِي إِبْقَاءِ الشَّفَةِ ضَرُورَةً، او ځکه چې د څښلو د پاته ساتلو اړتيا دې لِأَنَّ الْإِنْسَانَ لَا يُمْكِنُهُ اسْتِصْحَابُ الْمَاءِ إِلَى كُلِّ مَكَانٍ ځکه چې انسان ممکن دې ده لره هر ځائې کې اوبه ساتل وَهُوَ مُحْتَاجٌ إِلَيْهِ لِنَفْسِهِ وَظَهْرِهِ حالانکه دې د خان لپاره او د خپلو سوارلو ( څاروو) لپاره د اوبو محتاج دې فَلَوْ مُنِعَ عَنْهُ نو که دې د اوبو نه منع کړې شي؛ أَفْضَى إِلَى حَرَجٍ عَظِيمٍ نو دا به ډير لوئې تکليف ته مفضي وي.

حل اللغة* ① ابقاء: پاته ساتل ② استصحاب: خان سره ساتل، يوځائې کول﴾

تشريح:- دريم دليل د شرب ( د څښلو ) د اجازت اړتيا دې. ځکه چې انسان هر وخت اوبه خپل خان سره نه گرځوي.نو که انسان ددې نه منع کړې شي.نو ډير لوئې حرج ( او تکليف) به واقع شي.حالانکه انسان ته خپل خان لپاره او د خپلې سوارلۍ لپاره د اوبو اړتيا راپيښيږي.

مسئله* که د څاروو د ډيروالي په وجه يره وي.چه کښت به خراب شي.نو د منع کاوه حق شته.﴿مجمع الانهر ص۵۳۸ ج۲﴾

## د اوبو د دريم قسم وضاحت

فَإِنْ أَرَادَ رَجُلٌ أَنْ يَسْقِيَ بِذَلِكَ أَرْضًا أَحْيَاهَا نو که اراده اوکړله يو سړي چې اوبه خور اوکړي.په دې سره د خپلې هغه زمکې دکوم چې ده احياء کړې ده ( آباده کړې ده) كَانَ لِأَهْلِ النَّهْرِ أَنْ يَمْنَعُوهُ عَنْهُ أَضَرَّ بِهِمْ أَوْ لَمْ يَضُرَّ نو د وياله والا ته ددې نه د منع کاوه حق شته.دا ددوی لپاره ضررناك وي.او که ضررناك نه وي.

تشريح:- دا د اوبو د دريم ډول ذکر روان دې.د چا چې وار مقرر کړې شوې دې.که يوسړې په دې سره خپله

---

(۱) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه ابن ماجه في سننه في الرهون باب ۱۶ رقم ۲۴۷۲).

هغه مځكه اوبه كول اوغواړي.كومه چې ده ( شاړه مځكه ) اباده كړې ده.نو د وياله خلگو ته به حق وی.چه هغه ددې نه منع كړی.كه هغوی ته ضرر وی.او كه نه وی.

| لِأَنَّهُ حَقٌّ خَاصٌّ لَهُمْ خكه دا داسې حق دې.چه هم ددوی لپاره مخصوص دې وَلَا ضَرُورَةَ هيڅ اړتيا نشته وَلِأَنَّا لَوْ أَبَحْنَا ذٰلِكَ او خكه كه دا جائز اوگرځوو. لَانْقَطَعَتْ مَنْفَعَةُ الشُّرْبِ نو د شرب ( د اوبه خور د نمبر) منفعت به ختم شي. |
|---|

تشريح:- خكه چې دا هم د هغوی مخصوص حق دې.او څه داسې اړتيا هم نشته.چه د هغې په وجه مباح كول ضروری شي.لكه څنگه چې څښلو كې اړتيا وو.اوكه ددې اجازت ملاؤ شي.نو د شرب ( د اوبه خور د نمبر) منفعت به ختم شي.

## څلورم قسم

| وَالرَّابِعُ: اَلْمَاءُ الْمُحْرَزُ فِي الْأَوَانِي او څلورم هغه اوبه دی.كومې چې لوخو كې ډكې كړې شوې وی وَأَنَّهُ صَارَ مَمْلُوكًا لَهُ بِالْإِحْرَازِ او هغه د ډكونكو مملوك شوې.د ډ كاوه په وجه ، وَانْقَطَعَ حَقُّ غَيْرِهِ عَنْهُ او ددې نه دده د غير حق منقطع شو كَمَا فِي الصَّيْدِ الْمَأْخُوذِ لكه په نيولی شوی ښكار كې إِلَّا أَنَّهُ يَبْقٰى فِيهِ شُبْهَةُ الشَّرِكَةِ نَظَرًا إِلَى الدَّلِيلِ خو په دې كې دليل اړخ ته نظر كاوه سره د شركت شبه پاته ده ، وَهُوَ مَا رَوَيْنَا ، حَتّٰى لَوْ سَرَقَهُ إِنْسَانٌ فِي مَوْضِعٍ يَعِزُّ وُجُودُهُ او دليل هغه دې.كوم چې موږ روايت كړې دې.تردې كه اوبه چا كښت ( غلا) كړلې.په داسې ځائې كې ،كوم ځائې كې چې د اوبو وجود كم دې وَهُوَ يُسَاوِي نِصَابًا او اوبه د نصاب برابر وی لَمْ تُقْطَعْ يَدُهُ نو دده لاس به نشی كټ كولی. |
|---|

حل اللغة* ① المحرز: محفوظ ② الاوانی: جمع د أنية: لوښې ③ يعزّ: كم وی﴾

تشريح:- كومې اوبه چې په لوخو كې ډكې كړې شی.او محفوظ كړې شی.نو هغه د محرز ( محفوظ كونكی) ملكيت دې.اوس په دې كې حق عام پاتې نشو.لكه كله چې يو كس ښكار اونيسی.نو ددې نه د عامو خلگو دريو څيزونو كې شركت دې.په دې وجه دې كې د شركت څه شبه پاته ده.او حدود د شبهاتو په وجه ختمولې شی.نو ددې په رڼړا كې موږ اووئيل.كه يو ځائې كې د اوبو كموالې وی.اوكه يوكس دومره اوبه غلا ( پټې) كړې.چه ددې مقدار د سرقة د نصاب برابر دې.يعنی د لسو درهمو ماليت دې.بيا به هم لاس نشی كټ كولې.ددې ذكر شوې شبهٔ په وجه.( فتدبر)

## د نوروابو په موجودګۍ كښې د كوهی او چينې وغيره نه د منع كولو حكم

| وَلَوْ كَانَ الْبِئْرُ أَوِ الْعَيْنُ أَوِ الْحَوْضُ أَوِ النَّهْرُ فِي مِلْكِ رَجُلٍ اوكه څاه يا چينه يا تالاب يا وياله د يوكس په ملك كې وی لَهُ أَنْ يَمْنَعَ مَنْ يُرِيدُ الشَّفَةَ مِنَ الدُّخُولِ فِي مِلْكِهِ نو هغه ته حق شته.چه كوم كس اوبه څښل اوغواړی.هغه خپل ملك كې د داخليدو نه منع كړی إِذَا كَانَ يَجِدُ مَاءً آخَرَ يَقْرُبُ مِنْ هٰذَا الْمَاءِ فِي غَيْرِ مِلْكِ أَحَدٍ كله چې هغه دې اوبو ته نژدې نورې اوبه داسې اومومې.چه هغه د بل چا په ملك كې نه وی وَإِنْ كَانَ لَا يَجِدُ او كه هغه اوبه او نه مومی ، يُقَالُ لِصَاحِبِ النَّهْرِ: إِمَّا أَنْ تُعْطِيَهُ الشَّفَةَ أَوْ تَتْرُكَهُ يَأْخُذُ بِنَفْسِهِ بِشَرْطِ أَنْ لَا يَكْسِرَ ضِفَّتَهُ نو وياله والا ته به وئيلې شی.چه يا خو ته ده باندې اوبه اوڅكوه.يا هغه ته پخپله د څښلو اجازت وركړه.په دې شرط چې هغه د وياله غاړه اونشلوی وَهٰذَا مَرْوِيٌّ عَنِ الطَّحَاوِيِّ رحمه الله او دا د طحاوی نه نقل دی ، وَقِيلَ مَا قَالَهُ صَحِيحٌ فِيمَا إِذَا احْتَفَرَ فِي أَرْضٍ مَمْلُوكَةٍ لَهُ او وئيلې شوی دی.چه كوم څه د طحاوی نه نقل دی.دا صحيح دی.په دې صورت كې چې كله دده خپله مملوكه مځكه كنستلې وی. |
|---|

تشريح:- د يوكس سره نهر دې.يا څاه وغيره دې.او بل كس اوبه څښل غواړی.نو چونكه مځكه د وياله د مالك ملكيت دې.نو كه هغه اوغواړی.نو دوهم كس پخپل ملكيت كې د داخليدو نه منع كولې شی. خو شرط دا دې.چه هغه ته دې سره نژدې نورې اوبه ملاويدې شی.اوكه نورې اوبه نه ملاويږی.نو اوس دوې (دوه)



صورتونه دی:

① د زمكې مالك ته به وئيلې شی.چه هغه ته دلته كې اوبه راوړی.او اوڅكوی.② او كه پخپله اوبه نه وركوی.نو هغه ته دې اجازت وركړی.چه هغه پخپله اوبه اوڅكی.او ستا هيڅ نقصان اونكړی.دا تفصيل د امام طحاوی رحمه الله نه نقل دې.او بعض فقهاؤ په دې اړه كې فرمائيلی دی.چه د امام طحاوی رحمه الله خبره صحيح ده.خو دا هغه وخت صحيح ده.كله چې ده پخپله مملوكه مځكه كې وياله كنستلې وی.يا ئې پخپله مځكه كې څاه كنستې وی.اوكه په شاړه مځكه كې ئې كنستې وی.نو ددې تفصيل دا دې.كوم چې روسته راروان دې.

## په شاړه مځكه كښې د كنستلی كوهی نه د منع كولو حكم

| أَمَّا إِذَا احْتَفَرَهَا فِي أَرْضٍ مَوَاتٍ بهرحال كله چې ده څاه اوكنستلو.په شاړه مځكه كې فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَمْنَعَهُ نو ده ته د منع كاوه حق نشته لِأَنَّ الْمَوَاتَ كَانَ مُشْتَرَكًا خكه چې شاړه مځكه مشترك ده ، وَالْحَفْرُ لِإِحْيَاءِ حَقٍّ مُشْتَرَكٍ او څاه كنستل د مشترك حق د ژوندی كاوه لپاره دې. فَلَا يَقْطَعُ الشِّرْكَةَ فِي الشَّفَةِ نو كنستل د څښلو شركت نه ختموی. |
|---|

تشريح:- اوكه يوكس په شاړه مځكه كې څاه اوكنستلو.نو هغه ته دا حق هم نشته.چه هغه غيركس د دواړو نه منع كړی.خكه چې موات ( شاړه) مشترك حق وو.او په دې كې څاه كنستل گويا د مشترك حق احياء ( او آبادول) دی.نو د كوهی كنستلو په وجه سره د اوبو څښلو شركت نه ختميږی.

## د خپل ځان يا سوارلئ د هلاكت د خطرې په وخت د تورې په زور د اوبو اخستلو حكم

| وَلَوْ مَنَعَهُ عَنْ ذٰلِكَ او كه هغه ( د وياله مالك) منع كړو.ددې ( اوبو د څښلو ) نه وَهُوَ يَخَافُ عَلٰى نَفْسِهِ أَوْ ظَهْرِهِ الْعَطَشَ او هغه پخپل ځان يا پخپله سوارلئ باندې د تندې نه يريږی ، لَهُ أَنْ يُقَاتِلَهُ بِالسِّلَاحِ نو هغه ته حق شته.چه دده سره وسلې ( تورې وغيره) سره جنگ اوكړی لِأَنَّهُ قَصَدَ إِتْلَافَهُ بِمَنْعِ حَقِّهِ وَهُوَ الشَّفَةُ خكه هغه اراده كړې ده.دده دهلاكولو ،دده د حق منع كاوه سره.او هغه څښل دی. وَالْمَاءُ فِي الْبِئْرِ مُبَاحٌ غَيْرُ مَمْلُوكٍ حالانكه كوهی كې اوبه مباح دی. مملوك نه دی ، بِخِلَافِ الْمَاءِ الْمُحْرَزِ فِي الْإِنَاءِ حَيْثُ يُقَاتِلُهُ بِغَيْرِ السِّلَاحِ په خلاف د هغه اوبو ، كومې چې په لوخی كې ډكې كړې شوی دی.په دې حيثيت سره چې هغه دده سره وسلې نه بغير جنگ اوكړی ، لِأَنَّهُ قَدْ مَلَكَهُ خكه چې هغه ددې مالك شوې دې. |
|---|

حل اللغة* ① العطش: لوږه ② السلاح: وسله

تشريح:- كه اوبه غوښتونكی ته خطره وی.چه زه يا زما سوارلئ به د تندې نه هلاكه شی.او د وياله مالك نه اوبه راوړی.او وركوی.او نه هلته كې د تلو اجازت وركوی.او نه نژدې نورې څه اوبه شته.نو اوبه غوښتونكی ته حق شته.چه د وياله مالك سره جنگ اوكړی.او وسله سره جنگ اوكړی.خكه چې هغه د غوښتونكی حق منع كړې دې.او د هغه د هلا كاوه قصد ئې كړې دې.او هغه حق اوبه څښل دی.چه هغې كې دده حق دې.خكه چې اوبه تركومه پورې په كوهی كې دی.هغه دده ملك نه دې.البتهٔ كه هم دا صورت وی.خو اوبه په لوخو كې ډكې كړې شوی وی.نو د انكار په صورت كې ده ته حق دې.چه اوبو والا سره جنگ اوكړی.خو د وسلې نه بغير ،خكه چې د اوبو مالك د محفوظ كاوه په وجه د اوبو مالك شوې دې.او په ړومبی صورت كې وسلې سره جنگ كاوه كې د عمر رضی الله عنه اثر موجود دې.

## د سختې لوږې په حالت كښې د تورې په زور د خوراك يا اوبو اخستلو حكم

| وَكَذَا الطَّعَامُ عِنْدَ إِصَابَةِ الْمَخْمَصَةِ او هم دغه ډول خوراك دې.د سختې لوږې رسيدو په وخت وَقِيلَ فِي الْبِئْرِ وَنَحْوِهَا الْأَوْلٰى أَنْ يُقَاتِلَهُ بِغَيْرِ السِّلَاحِ بِعَصًا او وئيلې شوی دی.چه په كوهی او ددې په مثل كې غوره دا ده.چه دده سره د وسلې نه بغير جنگ اوكړی.په ډنډې سره ، لِأَنَّهُ ارْتَكَبَ مَعْصِيَةً خكه چې ده د يو معصيت انكار كړې دې ، فَقَامَ |
|---|

ذٰلِكَ مَقَامَ التَّعْزِيرِ لَهُ نو دا (د وسلې نه بغير جنګ کول) به دده لپاره د تعزير قائم مقام شي.

حل اللغی* ① المخمصة: هغه لوږه چې هلاکت ته نژدې وي ② عصا: همسا﴾

تشريح:- که يوکس د سختې لوږې په حالت کې دې.او د بل سره خوراك دې.چه هغه د ور کاوه نه انکار کوي.نو د سختې لوږې والا ته به حق وي.چه د وسلې نه بغير دده سره جنګ اوکړي.او په زبردستئ خوراك واخلي.او وې خوري.خو روسته به ددې خوراك ضمان اداکول وي.په ړومبی صورت کې چې کوم دا وئيلی شوی وو.چه په اوبو کې دده سره په وسلې جنګ اوکړي.نو اوس دوهم قول نقل کوي.چه د کوهي وغيره مسئله کې غوره دا ده.چه وسلې جنګ اونکړي.بلکه لرګی سره جنګ اوکړي.ځکه چې منع کونکې د يوې ګناه جرم کوي.نو دا لرګی (ډنډې) سره جنګ کول به دده په حق کې د تعزير قائم مقام وي.او هغه د تعزير مستحق هم دې.د ګناه جرم کاوه په وجه.

## د وړوکی لختی نه د ډېرو څاروو د منع کولو حکم

وَالشَّفَةُ إِذَا كَانَ يَأْتِي عَلَى الْمَاءِ كُلِّهِ بِأَنْ كَانَ جَدْوَلًا صَغِيرًا. او اوبه څښل کله چې ټولې اوبه ختمې کړي.په دې طريقه چې دا وړوکې نالۍ (لختې) وي وَفِيمَا يَرِدُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْمَوَاشِي كَثْرَةٌ يَنْقَطِعُ الْمَاءُ بِشُرْبِهَا او د هغې څاروو نه کوم چې راځي د اوبنانو نه او د څاروو نه په دومره ډېر والی سره چې ددوی په څښلو سره به اوبه ختمې شي قِيلَ لَا يُمْنَعُ مِنْهُ نو وئيلی شوی دی.چه ددې څخه به نشی منع کولې لِأَنَّ الْإِبِلَ لَا تَرِدُهُ فِي كُلِّ وَقْتٍ ځکه چې اوبنان دلته هر وخت نه راځي وَصَارَ كَالْمُيَاوَمَةِ نو دا د ورځې وار مقرر کاوه پشان شو وَهُوَ سَبِيلٌ فِي قِسْمَةِ الشِّرْبِ او د اوبو څښلو د ويش يوه طريقه ده وَقِيلَ لَهُ أَنْ يَمْنَعَ اعْتِبَارًا بِسَقْيِ الْمَزَارِعِ وَالْمَشَاجِرِ او وئيلی شوی دی.چه ده ته حق شته.چه دا منع کړي.د فصلونو او ونو په اوبه کاوه باندې قياس کاوه سره.وَالْجَامِعُ تَفْوِيتُ حَقِّهِ او جامع خبره دده حق فوت کول دی.

حل اللغة* ① الشفة: څکاك ② المياومة: د ورځې وار مقرر کول ③ المشاجر: جمع د شجرة: وونه﴾

تشريح:- که دا وړوکې شان نالۍ وي.او څاروی دومره وي.که دا اوبه اوڅکی.نو اوبه به ختمې شي.نو اوس د منع کاوه حق شته اوکه نه؟ نو په دې کې دوې (دوه) قوله دی ① منع کولې به نشي.ځکه چې څاروی دلته کې هر وخت نه راځي.نو ګويا وار مقرر شو.او په څښلو کې داسې قسمه ويش کيداې شي.چه په دې باندې د الله تعالی فرمان ﴿لَهَا شِرْبٌ وَلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَعْلُومٍ﴾ دلالت کوي. ② منع کولې شي.لکه څنګه چې هغه منع کولې شي.چه هغه ددې نه خپل فصل يا خپل باغ اوبه کړي.او دا ئې چې په فصل وغيره باندې قياس کړې دې.نو علت جامعه دا دې.چه په دواړو صورتونو کې د اوبو د مالك حق فوت کول لازميږي.

## د اودس او کپړو وينځلو لپاره د اوبو اخستلو حکم

وَلَهُمْ أَنْ يَأْخُذُوا الْمَاءَ مِنْهُ لِلْوُضُوءِ وَغَسْلِ الثِّيَابِ فِي الصَّحِيحِ او دوی ته حق شته.چه هغوی د نالۍ نه د اودس کاوه او کپړو وينځلو لپاره د صحيح قول مطابق اوبه واخلي لِأَنَّ الْأَمْرَ بِالْوُضُوءِ وَالْغُسْلِ فِيهِ ځکه چې په نالۍ کې د اودس او کپړو وينځلو حکم کول كَمَا قِيلَ يُؤَدِّي إِلَى الْحَرَجِ وَهُوَ مَدْفُوعٌ لکه څنګه چې وئيلی شوی دی. مفضی الی الحرج دی.دا حرج (او تکليف) لرې کولې شوې دې.

تشريح:- خلګو ته چې څنګه د اوبو څښلو حق حاصل دې.دغه ډول دا حق هم حاصل دې.چه د نالو نه اودس ورکولې.چه هم په دې کې اودس اوکړي.او کپړې اووينځي.دا حق به دوی ته نشی خلګو ته به ددې نه په څښلو کې کرکه راځي.او شريعت حرج لرې کړې دې.نو اوبه دې واخلي.او جلا دې اودس وغيره اوکړي.یا کپړې اووينځي.ځکه چې دې کې حرج (تکليف) دې. چې نورو



## د کور ونو او بوټو اوبه کولو لپاره په منګو کښې د اوبو وړلو حکم

وَإِنْ أَرَادَ أَنْ يَسْقِيَ شَجَرًا أَوْ خَضِرًا فِي دَارِهِ حَمْلًا بِجِرَارِهِ او که دې اراده اوکړي.چه اوبه کړي.د خپل کور ونې او بوټی، پخپلو منګو ډ کاوه سره لَهُ ذٰلِكَ فِي الْأَصَحِّ نو په اصح قول کې دده لپاره ددې حق شته لِأَنَّ النَّاسَ يَتَوَسَّعُونَ فِيهِ وَيَعُدُّونَ الْمَنْعَ مِنَ الدَّنَاءَةِ ځکه چې خلګ په دې کې فراخی کوی.او منع کول بد (سپك) ګڼړي.

حل اللغة* ① خضرا: شنه ② جرار: د منګو ډکول ③ الدناءة: سپکوالي ،ذلت﴾

تشريح:- د يوکس د نالۍ نه يو سړې په منګو کې اوبه ډکه وي.او خپلې ونې بوټی اوبه کول غواړي.کوم چې ده پخپل کور کې نال کړي (او لګولی) دی.يا ئې چې په کور کې کوم چمن جوړ کړې دې.هغه اوبه کړي.نو د اصح قول مطابق به دې نشی منع کولې.ځکه چې خلګ په دې کې فراخی کوی.او منع کول سپك (اوکنجوسی) ګڼړي.نو يا خو په عرف (او رواج) کې اجازت دې.نو غوښتونکی ته حق شته.چه خپل منګی ډك کړي.او خپلو ونو او بوټو له اوبه ورکړي.

## د زمکې يا باغ اوبه کولو لپاره اجازت اخستل ضروری دی

وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَسْقِيَ أَرْضَهُ وَنَخْلَهُ وَشَجَرَهُ مِنْ نَهْرِ هٰذَا الرَّجُلِ وَبِئْرِهِ وَقَنَاتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ نَصًّا او ده ته دا حق نشته.چه دې خپله مځکه ، او کجورې، يا نورې ونې وغيره (بل څه باغ) ددې سړی د وياله نه، او دده د کوهي نه، يا دده د لختی نه، خو دده په صريح اجازت سره ، وَلَهُ أَنْ يَمْنَعَهُ مِنْ ذٰلِكَ او ده ته حق شته.چه ددې نه ئې منع کړي لِأَنَّ الْمَاءَ مَتَى دَخَلَ فِي الْمَقَاسِمِ ځکه چې هرکله اوبه په ويش کې داخل شوې ، انْقَطَعَتْ شَرِكَةُ الشِّرْبِ بِوَاحِدَةٍ نو د اوبه خور شرکت بالکل ختم شو ، لِأَنَّ فِي إِبْقَائِهِ قَطْعَ شِرْبِ صَاحِبِهِ ځکه چې د شرط په پاته ساتلو کې د اوبه خور وار ختمول دی.

تشريح:- د يوکس د وياله وغيره نه اوبه د څښلو لپاره ډکې کړي.نو دا خو جائز دی.خو ددې نه خپله مځکه يا باغ اوبه کاوه لپاره د مالك ښکاره اجازت پکار دې.او صاحب دحق ته حق شته.چه هغه بل کس منع کړي.ځکه چې هرکله ويش اوشو.نو اګرچه اوبه خور پاته دې.خو د اوبه خور وار بالکل ختم شو.ځکه که د اوبه خور شرکت پاته اوساتلې شی.نو د اوبه خور والا حق ختمول لازميږي.او دا باطل دی.

## د اجازت نه بغير د ممانعت وجه

وَلِأَنَّ الْمَسِيلَ حَقُّ صَاحِبِ النَّهْرِ او ځکه چې مسيل (لختې او د اوبو بهيدو ځائې) د وياله د مالك حق دې وَالضِّفَّةَ تَعَلَّقَ بِهَا حَقُّهُ او غاړه (پوله) متعلق دې ددې سره د وياله د مالك حق فَلَا يُمَكِّنُهُ التَّسْيِيلُ فِيهِ وَلَا شَقُّ الضِّفَّةِ نو ممکن نه ده، دده (يعنی د مالك نه علاوه) لپاره اوبه بهيول، په دې (نالۍ) کې.

حل اللغة* ① مسيل: لختې ،د اوبو لاره ② المحرز: محفوظ﴾

تشريح:- د وياله د مالك د اجازت نه بغير طالب ته د خپل فصل وغيره اوبه کاوه حق ولې نشته؟ ددې يو دليل ددې نه وړاندې تير شوې دې.او دا ددې دوهم دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه د اوبو تيريدو ځائې (لختې) د وياله د مالك حق دې.او د وياله غاړې سره ددې حق متعلق دې.ځکه چې ددې د ساتنه نه بغير به اوبه نه چليږي.نو لنډيز د کلام دا چې د وياله غاړه هم دده حق شو.نو بل کس ته دا اختيار نشته.چه دده په حق کې دده په نالۍ (او لختی) کې اوبه جاری کړي.يا د وياله غاړه اوشلوی.او خپل فصل اوبه کړي.

فَإِنْ أَذِنَ لَهُ صَاحِبُهُ فِي ذٰلِكَ او (ممکن نه وه ده لره) غاړه شلول، نو که اجازت ورکړو، ده ته ددې مالك ددې په اره کې أَوْ أَعَارَهُ او ده خپل وياله هغه ته مستعار ورکړو فَلَا بَأْسَ بِهِ؛ نو په دې کې هيڅ حرج (باك) نشته لِأَنَّهُ حَقُّهُ ځکه چې دا دده حق دې فَتَجْرِي فِيهِ الْإِبَاحَةُ نو په دې کې به اباحت جاری کيږي كَالْمَاءِ الْمُحْرَزِ فِي إِنَائِهِ لکه هغه اوبه کومې چې محفوظ کړې شوی وي.دده په لوخی کې. وَاللهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

**تشريح:-** خوكه د وياله مالك اجازت وركړي.او خپل وياله طالب ته مستعار وركړي.نو په دې كي هيڅ حرج نشته.ځكه چې دا دده حق دې.چه دې كي اباحت جاري كيږي.لكه مثلاً يوكس په لوخې كي اوبه ډكي كړي.نو هغه به د محفوظ كونكي حق وي.خو هغه چې د ځا لپاره غواړي.دا مباح كولې شي.دغه ډول دلته كي هم دي.

## فَصْلٌ فِي كَرْيِ الْأَنْهَارِ

ژباړه:- ( دا) د نهرونو كنستلو ( په بيان كي ) دې.

**تشريح:-** چونكه په شرب كي د وياله كنستو اړتيا راپيښيږي.بيا كله چې د وياله كنستو اړتيا راپيښ شي.نو ددې خرچه به څوك اوچتوي. په دې وجه دې فصل كي د وياله قسمونه او ددې احكام بيانوي.

### د نهر درې قسمونه

**قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: اَلْأَنْهَارُ ثَلَاثَةٌ** مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه نهرونه په درې قسمه دي **نَهْرٌ غَيْرُ مَمْلُوكٍ لِأَحَدٍ** يو وياله هغه دې.كوم چې د چا مملوك نه وي **وَلَمْ يَدْخُلْ مَاؤُهُ فِي الْمَقَاسِمِ بَعْدُ كَالْفُرَاتِ وَنَحْوِهِ**،او تر اوسه پورې ددې اوبه په ويش كي نه وي داخل شوي.لكه فرات او ددې پشان، **وَنَهْرٌ مَمْلُوكٌ دَخَلَ مَاؤُهُ فِي الْقِسْمَةِ إِلَّا أَنَّهُ عَامٌّ** او دوهم نهر هغه دې.كوم چې مملوك وي.چه ددې اوبه په ويش كي داخل شوې وي.دا عام دې **وَنَهْرٌ مَمْلُوكٌ دَخَلَ مَاؤُهُ فِي الْقِسْمَةِ وَهُوَ خَاصٌّ** او دريم وياله هغه مملوك دې.چه ددې اوبه په ويش كي داخل شوې وي.او دا خاص دې:... **وَالْفَاصِلُ بَيْنَهُمَا اسْتِحْقَاقُ الشُّفْعَةِ بِهِ وَعَدَمُهُ** او ددې دواړو په منځ كي توپير ددې په ذريعه د شفعې استحقاق او عدم استحقاق دې.

**تشريح:-** دلته د نهرونو درې قسمونه بيان شوي دي ① چې د هغې هيڅ څوك مالك نه وي.او د هغې د اوبو نه د څه ركاوټ نه بغير زمكې اوبه كولې شي.لكه دجله، فرات، گنگا او جمنا وغيره چې دي.② وياله عام وي.خو مملوك وي.او ددې اوبه د خلگو په منځ كي ويش شوي وي.③ د دوهم پشان دې.خو دومره توپير دې.چه دوهم عام دې.او دا خاص دې.بيا په عام او خاص كي څه توپير دې.په دې كي مختلف اقوال دي.مرغيناني رحمه الله بيان كړي دي.كه په دې وياله باندې د زمكې كيدو په وجه شفعه كي استحقاق اوشي.نو خاص دې.گني عام دې.

① مسئله: د خاص او عام په تحديد كي ډير اقوال دي.په فتاوي قاضي خان كي دي.چه دا د مجتهد په رائې باندې محمول دې.چه هغه د هر زمانې په لحاظ سره ددې فيصله اوكړي.زموږ د عرف ( او رواج) په اعتبار سره دا يو ښكاره شئ دې.په دې وجه دا اقوال موږ نه ذكر كوو.

② مسئله: زموږ په نيز كوم ته چې نهر وائي.واړه د حكومت مملوك دي.او حكومت ددې انتظام كوي.بيا حكومت د اوبه خور كرائي وصول كوي.البته د نهرونو نه چې كومې نالې ويستلې شوي دي.هغه د حكومت مملوك نه وي.بلكه ددې مالكان د زمكې والا وي.

### ړومبي قسم

**فَالْأَوَّلُ كَرْيُهُ عَلَى السُّلْطَانِ مِنْ بَيْتِ مَالِ الْمُسْلِمِينَ** نو اول، ددې كنستل د بادشاه په ذمه دي.د مسلمانانو د بيت المال نه **لِأَنَّ مَنْفَعَةَ الْكَرْيِ لَهُمْ** ځكه چې د كنستلو منفعت هم ددوى لپاره دې **فَتَكُونُ مُؤْنَتُهُ عَلَيْهِمْ** نو ددې خرچه به هم په دوى وي **وَيُصْرَفُ إِلَيْهِ مِنْ مُؤْنَةِ الْخَرَاجِ وَالْجِزْيَةِ دُونَ الْعُشُورِ وَالصَّدَقَاتِ** او په دې كي به د خراج او جزيه مال خرچ كولې شي. د عشرونو او صدقې به نشي خرچ كولې **لِأَنَّ الثَّانِيَ لِلْفُقَرَاءِ** ځكه چې دوهم د فقيرانو لپاره دې.**"وَالْأَوَّلُ لِلنَّوَائِبِ** او اول د مصيبتونو او ضروورياتو لپاره دي.



**حل اللغة:** ① **مونة:** مشقت ② **الكرى:** كنسل ③ **العشور:** جمع د عشر،د عشري زمكې په پيدوار باندې چې كومه لسمه برخه مقرره هغې ته عشر وائي.

**تشريح:-** د ړومبي وياله كنستل د امام ( بادشاه) فريضه ده.چه دا به د بيت المال هغه مال نه كني.كوم چې د خراج او جزيه نه راجمع شوې دې.ځكه چې دا هم ددې قسمه كارونو لپاره دې.او د عشر او صدقاتو ( زكاتونو) چې كوم مالونه راجمع دي.دا مالونه به په دې كي نه خرچ كوي.ځكه چې دا د فقيرانو حق دې.

**فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي بَيْتِ الْمَالِ شَيْءٌ** نو كه په بيت المال كي هيڅ څه ( مال) نه وي **فَالْإِمَامُ يُجْبِرُ النَّاسَ عَلَى كَرْيِهِ إِحْيَاءً لِلْمَصْلَحَةِ الْعَامَّةِ** نو امام به خلگ ددې په كنستلو باندې مجبور كوي.د عامو خلگو د مصلحت ژوندې ساتلو لپاره **إِذْ هُمْ لَا يُقِيمُونَهَا بِأَنْفُسِهِمْ** ځكه چې هغه دا كار پخپله نشي پوره كولې **وَفِي مِثْلِهِ قَالَ عُمَرُ** رضي الله عنه او هم ددې په مثل اړه كي عمر رضي الله عنه فرمائيلي دي **لَوْ تُرِكْتُمْ لَبِعْتُمْ أَوْلَادَكُمْ** (1) كه تاسو ( پخپل حال) پريښودې شئ.نو تاسو به خپل اولاد خرڅ كړئ **إِلَّا أَنَّهُ يُخْرِجُ لَهُ مَنْ كَانَ يُطِيقُهُ** خو امام به كنستلو لپاره هغه خلگ اوباسي.كوم چې د كنستلو توان لري **وَيَجْعَلُ مُؤْنَتَهُ عَلَى الْمَيَاسِيرِ الَّذِينَ لَا يُطِيقُونَهُ بِأَنْفُسِهِمْ** او ددوى خرچه به په هغه مالدارو خلگو باندې مقرروي.كوم چې پخپله نشي كنستلې.

**حل اللغة:** ① **المياسير:** جمع د موسر،مالدار ② **يجبر:** مجبوره كوي.

**تشريح:-** كه په بيت المال كي مال نه وي.نو امام به د عامو خلگو د مصلحت ژوندې ساتلو لپاره خلگ په وياله كنستلو باندې مجبور كوي.ځكه چې خلگ پخپله دا لوئې كار سر ته نه رسوي.په دې وجه به امام دوى مجبوره كوي.او كوم خلگ چې كنستل كولې شي.د هغوى په ذمه دې د كنستلو كار مقرر كړي.او كوم خلگ چې پخپله نشي كنستلې.د داسې مالدارو خلگو په ذمه دې ددې خرچه اولگوي.د عمر رضي الله عنه د فرمان «لو تركتم لبعتم أولادكم» مطلب دا دې.چه د بادشاه نه بغير خلگ خپل كارونه نشي پوره كولې.لكه څنگه چې ښكاره ده.

### دوهم قسم

**وَأَمَّا الثَّانِي** او بهرحال د وياله دوهم قسم **فَكَرْيُهُ عَلَى أَهْلِهِ لَا عَلَى بَيْتِ الْمَالِ** نو ددې كنستل ددې په خلگو باندې دي.په بيت المال نه دې **لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ وَالْمَنْفَعَةَ تَعُودُ إِلَيْهِمْ عَلَى الْخُصُوصِ وَالْخُلُوصِ** ځكه چې حق هم ددوى لپاره دې.او منفعت هم ددوى اړخ ته واپس كيږي.په خصوص او خالص طريقه **وَمَنْ أَبَى مِنْهُمْ** او څوك چې په دې كي انكار اوكړي **يُجْبَرُ عَلَى كَرْيِهِ دَفْعًا لِلضَّرَرِ الْعَامِّ** نو هغه به په كنستلو باندې مجبوره كولې شي.د عام ضرر لرې كاوه لپاره **وَهُوَ ضَرَرُ بَقِيَّةِ الشُّرَكَاءِ** او هغه د پاته شريكانو ضرر دې **وَضَرَرُ الْآبِي خَاصٌّ** او د انكار كونكي ضرر خاص دې **وَيُقَابِلُهُ عِوَضٌ** او ددې په مقابله كي عوض دې **فَلَا يُعَارَضُ بِهِ** نو خاص ضرر د عام معارض او مقابل نه جوړيږي **"وَلَوْ أَرَادُوا أَنْ يُحَصِّنُوهُ خِيفَةَ الِانْبِثَاقِ** او كه دوى اراده اوكړله.چه وياله مضبوط جوړ كړي.د غاړو ماتيدو د يرې نه **وَفِيهِ ضَرَرٌ عَامٌّ كَغَرَقِ الْأَرَاضِي وَفَسَادِ الطُّرُقِ** او په دې كي عام ضرر وي.لكه د زمكو غرق كيدل، او د لارو خرابيدل **يُجْبَرُ الْآبِي، وَإِلَّا فَلَا** نو انكار كونكې به مجبوره كولې شي.گني نه به شي منع كولې **لِأَنَّهُ مَوْهُومٌ بِخِلَافِ الْكَرْيِ** ځكه چې دا امر موهوم دې.په خلاف د كنستلو **لِأَنَّهُ مَعْلُومٌ** ځكه چې دا معلوم دې.

**حل اللغة:** ① **خيفة:** ويره ② **انبثاق:** د غاړې ماتيدل ③ **يجبر:** مجبوره كولې به شي ④ **الكرى:** كنستل

**تشريح:-** د وياله دوهم ډول كوم چې ددې د خلگو مملوك وي.البته عام وي.نو دا به هغه خلگ كني.دچا چې په دې كي حق وي.ددې كنستل د بادشاه فريضه نه ده.ځكه چې دا هم ددې خلگو مخصوص او خاص حق دې.

(1) غربه الزيلعي رحمه الله۔

دي. نو که یو کس په دې کې د کنستلو نه انکار کوي. نو په ده به زبردستي کولې شي. یعنې د پاته شریکانو ضرر لرې شي. چه عام ضرر لرې

که څوك دا ووایي چې دده هم ضرر دې. چه په دې کې به محنت کول راځي. او مال خرچ کول به راځي؟ نو وې فرمائیل. چه دا ضرر خاص دې. او هغه ته به ددې منفعت زیات ملاویږي. چه خپل فصلونه اوبه کړي. نو د عام ضرر لرې کاوه لپاره به خاص ضرر برداشت کولې شي. هم دا مرغیناني رحمه الله اوفرمائیل «فلا یعارض به» یعنې په دې دواړو کې هیڅ تعارض نشته. بلکه عام ضرر غالب کیږي. نو د عام ضرر لرې کاوه کوښښ به واجب وي.

که دا خطره وي. چه د ویاله غاړه به اوشلیږي. او لوئې نقصان به اوکړي. په دې وجه خلګو اوغوښتل. چه دا مضبوطه کړې شي. چه اونه شلیږي. نو انکار کونکې به مجبورولې شي. اوکه دا خطره نه وي. نو بیا به د موهوم امر لپاره زبردستي نشي کولې. اوچونکه ددې منفعت او اړتیا موهوم شيء نه دې بلکه معلوم دې نوځکه پرې زبردستي کولای شي

**دریم قسم**

> **وَأَمَّا الثَّالِثُ** او بهرحال دریم قسم **وَهُوَ الْخَاصُّ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ** او دا په هرشان خاص دې **فَكَرْيُهُ عَلَى أَهْلِهِ لِمَا بَيَّنَّا** نو ددې کنستل ددې د خلګو په ذمه دې. د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې **ثُمَّ قِيلَ يُجْبَرُ الْآبِي كَمَا فِي الثَّانِي** بیا ونیلې شوي دي. چه انکار کونکې به مجبورولې شي. لکه په دوهم کې **وَقِيلَ لَا يُجْبَرُ** او ونیلې شوي دي. چه مجبورولې به نشي **لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنَ الضَّرَرَيْنِ خَاصٌّ** ځکه چې دواړو ضررونو کې هریو خاص دې **وَيُمْكِنُ دَفْعُهُ عَنْهُمْ بِالرُّجُوعِ عَلَى الْآبِي بِمَا أَنْفَقُوا فِيهِ إِذَا كَانَ بِأَمْرِ الْقَاضِي** او ممکن ده. ددې لرې کول، ددې انکار کونکې باندې رجوع کاوه سره، هم ددې مال په سلسله کې کوم چې دوی په دې کې خرچ کړې دې. کله چې خرچ کول د قاضي په حکم سره وي. **فَاسْتَوَتِ الْجِهَتَانِ، بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ** نو دواړه طرفونه برابر شو. په خلاف د هغه صورت کوم چې وړاندې تیرشوې دې.

**تشریح:-** د دریم ډول ویاله به هم هغه خلګ کنی. څوك به چې ددې نه نفع اخلي. هم هغه دلیل سره کوم چې د دوهم نهر په بیان کې تیر شوې دې. بیا که څوك انکار اوکړي. نو په هغه به زبردستي کولې شي. اوکه نه؟ نو په دې کې دوې (دوه) قوله دي ① زبردستي به کولې شي. لکه څنګه چې په دوهم نهر کې زبردستي کولای شي. ② زبردستي به نشي کولې. ځکه چې دواړه ضرر خاص دی. نو مخکنې دلیل به دلته کې نه جاري کیږي. او ضرر دفع کول په دې طریقه کیداې شي. چه دا خلګ اوکني. او دده په برخه کې چې کومه خرچه راځي. هغه دده نه وصول کړي. خو دا وصولول به هله صحیح وي. کله چې دوی کوم څه خرچ کړې دې. دا خرچه د قاضي په حکم سره وي. نو دواړه طرفونه دلته کې برابر دی. د ضرر په خاص کیدو کې هم، او خرچ اخستلو سره دواړه په یوه درجه کې د کیدو په اعتبار سره هم. پاتې شوه د دوهم ډول مسئله نو هلته کې د ضرر په مقابله کې عام وو. په دې وجه هلته کې زبردستي کړې شوې وه.

**انکار کونکي باندي د جبر حکم**

> **وَلَا يُجْبَرُ لِحَقِّ الشَّفَةِ كَمَا إِذَا امْتَنَعُوا جَمِيعًا** او د څښلو دحق په وجه به زبردستي نشي کولې. لکه کله چې دا واړه خلګ منع شي.

**تشریح:-** یو ویاله خاص دې. تاسو اوفرمائیل. چه په انکار کونکي به زبردستي نشي کولې. خو دلته کې هم د عام ضرر مقابله خاص ضرر سره ده. نو دلته کې زبردستي کول واجبول پکار نه دي. سوال ولې؟ ځکه چې کوم خلګ به ددې نه اوبه څکي. عام دي. نو که ویاله نې او نه کنستلو. نو ددوی به ضرر وي. نو وې فرمائیل. چه ددې خلګو د حق په وجه به زبردستي نشي کولې. ځکه که واړه شریکان د کنستلو نه منع شي. نو د څکونکو



په وجه دوی باندې زبردستي نشي کولې. او هم دا ښکاره مذهب دې. او بعضو متاخرینو فرمائیلي دي. چه د شفعې دحق په وجه به امام خلګ د ویاله په کنستلو باندې مبجور کوي.. کذا في الکفایه..

**د مشترك نهر کنستلو د خرچې مسئله**

> **وَمُؤْنَةُ كَرْيِ النَّهْرِ الْمُشْتَرَكِ عَلَيْهِمْ مِنْ أَعْلَاهُ** او د مشترك ویاله کنستلو خرچه به په دوی باندې د ویاله په پورتنۍ برخه سره وي **فَإِذَا جَاوَزَ أَرْضَ رَجُلٍ** نو کله چې کنستل د یوسړي د زمکې نه زیاته شوه **رُفِعَ عَنْهُ** نو هغه څخه به خرچه اوچتولې شي **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** (1) او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی.

**حل اللغة:** ① مونة: مشقت ② ارض: مځکه ③ اعلا پورته اړخ ④ اسفل: کښته طرف

**تشریح:-** هغه نهرخاص، کوم چې مشترك دې. نو ددې کنستل به د اول نه پیل کیږي. او خرچه به په دوی ټولو باندې د اوبه خور او د زمکو د برخو په حساب سره وي. خو د کومو خلګو د زمکو نه چې کنستل زیات تیریږي. نو وریسې به هغه باندې خرچه نه وي. او دا د امام صاحب رحمه الله مذهب دې. ددې صورت دا وي. چه مثلاً لس نفر دی. او اتفاق سره د ټولو مځکه برابر ده. نو د پورته کس چې د زمکې کومه خرچه وي. د هغې لس برخې (حصې) کړه. او په هریو باندې یوه برخه راوله. او کله چې کنستل زیات شي. نو خرچه په نهه برخو باندې ویش کړه. او هم دې حساب سره آخر پورې چلیږه.

> **وَقَالَا: هِيَ عَلَيْهِمْ جَمِيعًا مِنْ أَوَّلِهِ إِلَى آخِرِهِ بِحِصَصِ الشِّرْبِ وَالْأَرَضِينَ** اوصاحبین رحمهما الله فرمائي. چه صرفه به په دوی دواړو وي. ددې د اول نه تر آخره پورې، د اوبه خور او د زمکې د برخو په اندازه **لِأَنَّ لِصَاحِبِ الْأَعْلَى حَقًّا فِي الْأَسْفَلِ** ځکه چې د اوچتې مالك لپاره حق شته په لاندې کې **لِاحْتِيَاجِهِ إِلَى تَسْيِيلِ مَا فَضَلَ مِنَ الْمَاءِ فِيهِ**. دده د محتاج کیدو په وجه لاندې کي، ددې اوبو بهیدو اړخ ته کومې چې پاتې شوي دی.

**تشریح:-** صاحبین رحمهما الله فرمائي. چه دا خرچه به ټولو باندې تر آخره پورې چلیږي. ځکه چې د لاندیني چې څنګه لاندیني خلګ محتاج دی. پورتني خلګ هم دی. ځکه چې کومې اوبه زیاتي بچ شي. هغه به کوم خوا ته بوځي. یقیناً ددې بهیول به لازمي وي. او لختې لاندې دې. نو لکه څنګه چې دده حق په پورتني کې دې. په لاندیني کې هم دې.

**د امام صاحب رحمه الله دلیل**

> **وَلَهُ أَنَّ الْمَقْصِدَ مِنَ الْكَرْيِ الِانْتِفَاعُ بِالسَّقْيِ** او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې. چه د ویاله کنستلو مقصد د اوبه خور نفع اخستل دی **وَقَدْ حَصَلَ لِصَاحِبِ الْأَعْلَى** او انتفاع د پورتني مالك ته حاصله شوه **فَلَا يَلْزَمُهُ إِنْفَاعُ غَيْرِهِ** نو هغه له د ځان نه علاوه ته نفع رسول لازم نه دي **وَلَيْسَ عَلَى صَاحِبِ الْمَسِيلِ عِمَارَتُهُ** او په لختي والا باندې د لختي جوړول لازم نه دی **كَمَا إِذَا كَانَ لَهُ مَسِيلٌ عَلَى سَطْحِ غَيْرِهِ، كَيْفَ** لکه کله چې وي دده لپاره لختې د ځان نه علاوه د بل په چهت (مځکه)، نو څنګه کیداې شي **وَأَنَّهُ يُمْكِنُهُ دَفْعُ الْمَاءِ عَنْ أَرْضِهِ بِسَدِّهِ مِنْ أَعْلَاهُ** حالانکه ده لره ممکن دی. د خپلې زمکې نه اوبه لرې کول، په ویاله منع کاوه سره، چې دده نه پورته دې.

**حل اللغة:** ① سطح: چت ② سد: بند ③ اعلا: پورته طرف

**تشریح:-** دا د امام صاحب رحمه الله دلیل دې. چه د ویاله کنستلو کوم مقصد دې. هغه دده په حق کې پوره شوې دې. نو نورو ته نفع رسول دده په ذمه واجب نه دی. او صاحبینو رحمهما الله چې کوم دلیل بیان کړې دې. نو د هغې ځواب دا دې. چه زیات نه زیات به تاسو دا فرمایئ؛ چه لاندې دده لختې یعنې د اوبو تیرولو ځائې

---

(1) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الكفاية (١٦/٩) وقاضيخان (٢٥٢/٤) وردالمحتار (٣١٤/٥) وتبيين (٤١/٦) وكشف الأستار (٢٥١/٢) والهندية (٢٩٠/٤) نقلاً عن القول الراجح (٣١٤/٢)-

دي.حالانکه مسئله دا ده.چه په لختی والا باندې واجب نه دی.چه هغه د لختی تعمير ( مرمت) اوکړی.مثلاً يوکس ته د بل په چهت باندې د اوبو بهيولو حق دې.يعنی د يوکس چهت د بل لختې دې.نو د چهت مرمت د چهت والا فريضه ده.د لختی والا نه ده.نو په دې دې دا هم قياس کړې شی.بيا که زياتې اوبه وی.نو دا څه ضروری ده.چه هغه په لاندينی کي بهيول لازمی دی.نهر هم بندولې شی.لکه څنګه چې په عامه توګه (عام طور) باندې کيږی.

## خرچ به ترکومه پورې پاته وی

ثُمَّ إِنَّمَا يُرْفَعُ عَنْهُمْ بيا به دده نه خرچه اوچتولې شی إِذَا جَاوَزَ أَرْضَهُ كَمَا ذَكَرْنَاهُ کله چې کنستل دده د زمکې نه واوړی.( زيات شی). لکه څنګه چې موږ ذکر کړی دی ،وَقِيلَ إِذَا جَاوَزَ فُوَّهَةَ نَهْرِهِ او وئيلی شوی دی.کله چې زيات شی.دده د لختی د خولې نه وَهُوَ مَرْوِيٌّ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ او دا د امام محمد رحمه الله نه نقل دی وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او اول اصح دې ،،لِأَنَّ لَهُ رَأْيًا فِي اتِّخَاذِ الْفُوَّهَةِ مِنْ أَعْلَاهُ وَأَسْفَلِهِ خکه چې ده ته حق دې.په خوله کلاوولو کي ،د وياله پورته او لاندې برخه کي.

حل اللغة* ① اتخاذ الفوهة: په خوله کولاوهل﴾

تشريح:- د يوسړی مثلاً شل ايکړه مځکه ده.هغه په لس ايکړه باندې د وياله نه نالئ ( لختې) اوويستلو.نو آيا دې خانې پورې به دده د ذمې نه خرچه لرې کولې شی.يا وريسې چې کومه نوره لس ايکړه پاته ده.نو د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه کوم خانې کي ده د خپلې نالئ سورې ( رو) جوړ کړې دې.هغه خانې پورې به په ده باندې خرچه وی.ددې نه په مځکې به نه وی.خو اصح دا دی.چه ترکومه پورې دده پوره مځکه ختمه نه وی.دده په ذمه به خرچه پاته وی.خکه ده ته اختيار دې.چه دې پخپله مځکه کي چرته غواړی.سورې ( رو) جوړه کړی.نو مدار په سوری ( رو) نشو.بلکه په مځکه شو.

## کنستل چې د زمکې نه زيات شی.نو د اوبو کلاوولو حکم

فَإِذَا جَاوَزَ الْكَرْيُ أَرْضَهُ نو کله چې کنستل دده په مځکه کي زياتی شو حَتَّى سَقَطَتْ عَنْهُ مُؤْنَتُهُ تر هغه پورې دده نه د هغې خرچه ساقط شوه يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَفْتَحَ الْمَاءَ لِيَسْقِيَ أَرْضَهُ لِانْتِهَاءِ الْكَرْيِ فِي حَقِّهِ نو وئيلی شوی دی.چه ده ته حق شته.چه دې اوبه کلاؤ کړی.چه خپله مځکه اوبه کړی.دده په حق کي د کنستل ختميدو په وجه ،وَقِيلَ لَيْسَ لَهُ ذَلِكَ مَا لَمْ يَفْرُغْ شُرَكَاؤُهُ نَفْيًا لِاخْتِصَاصِهِ او وئيلی شوی دې.چه ده ته دا حق نشته.چه ترکومه پورې دده شريکان فارغ نشی.دده د اختصاص د نفی په وجه وَلَيْسَ عَلَى أَهْلِ الشَّفَةِ مِنَ الْكَرْيِ شَيْءٌ او په څکونکو باندې کنستلو کي هيڅ نشته ،لِأَنَّهُمْ لَا يُحْصَوْنَ خکه چې دوی بې شماره دی،وَلِأَنَّهُمْ أَتْبَاعٌ او خکه چې دوی تابع دی.

حل اللغة* ① الشفة: څښل ② لايحصون: شمارلې نشی﴾

تشريح:- کله چې کنستل دده د زمکې نه ورانده پورې اورسيدل.نو آيا ده ته حق شته.چه اوبه کلاؤ کړی.او خپل کښت اوبه کړی.نو په دې کي دوې (دوه) قوله دی① کولې شی.خکه چې کنستل دده په حق کي ختم شوی دی.② نشی کولې.چه دا شبه نه وی.چه انتفاع سره هم دا مخصوص دی.کوم خلګ به چې صرف اوبه څکی.آيا هغوی به هم کنستل کوی.نو وې فرمائيل.چه دوی به نه کوی.خکه چې اول خو دوی مجهول دی...کما هو ظاهر،، او دويمه دا چې دوئ أتباع دی.او حکم په متبوع لګی.په تابع نه لګی.په لوړې څخه (پورته نه) باندې دی.چه خرچه په مالك پريوځي.چه هغه ته په طريقه د اباحت حق رسيږی.خکه چې شامی ص۲۸۴ج۵ پريوځی.

## فصل في الدعوي والاختلاف والتصرف فيه

ژباړه:- ( دا) فصل د اوبه خور د دعوې او په دې کي د اختلاف او د تصرف ( په بيان کي ) دی.



تشريح:- دا د اوبه خور د مسئلو دريم فصل دې.دې کي به دا بيانولې شی.چه کله کله د اوبه خور په اړه کي دعوه کولې شی.نو د هغې حل به څه وی.او کله د اوبه خور په اړه کي اختلاف راځی.نو ددې به څه حل وی.او کله په اوبه خور کي تصرف کولې شی.نو ددې به څه حل وی.

## د زمکې نه بغير د اوبه خور دعوه کول

قَالَ وَتَصِحُّ دَعْوَى الشِّرْبِ بِغَيْرِ أَرْضٍ اسْتِحْسَانًا او د اوبه خور دعوه استحساناً د زمکې نه بغير صحيح ده لِأَنَّهُ قَدْ يُمَلَّكُ بِدُونِ الْأَرْضِ إِرْثًا،خکه چې اوبه خور د ميراث په طور کله د زمکې نه بغير مملوك وی وَقَدْ يَبِيعُ الْأَرْضَ وَيَبْقَى الشِّرْبُ لَهُ او کله سړې مځکه خرڅوی.او خپل اوبه خور پاته ساتی وَهُوَ مَرْغُوبٌ فِيهِ فَيَصِحُّ فِيهِ الدَّعْوَى او اوبه خور مرغوب فيه دې.نو په دې کي دعوه صحيح ده.

تشريح:- د زمکې نه بغير که يوکس د اوبه خور دعوه اوکړی.نو د قياس تقاضه دا وه.چه دده دعوه مسموع ( او قابل قبول) نه وی.خکه چې اوبه خور د زمکې نه بغير د تمليك احتمال نه لری.لکه مثلاً يو مسلمان د شرابو دعوه اوکړی.نو دا به مسموع وی.خو دلته کي قياس پريښودې شوې دې.او په استحسان باندې عمل کړې شوې دې.چه کله د زمکې نه بغير هم اوبه خور په ميراث کي ملاويدې شی.او دا هم کيدای شی.چه سړې مځکه وپلوری .او اوبه خور ځان سره اوساتی.نو دده دعوه به آوريدلې شی.

## پخپله مځکه کښې د بل جاری نهر د بهيدو نه منع کول

وَإِذَا كَانَ نَهْرٌ لِرَجُلٍ يَجْرِي فِي أَرْضِ غَيْرِهِ او کله چې د يوکس ذاتی وياله دده نه علاوه د بل چا په مځکه کي بهيږی فَأَرَادَ صَاحِبُ الْأَرْضِ أَنْ لَا يُجْرِيَ النَّهْرَ فِي أَرْضِهِ نو د زمکې والا اراده اوکړله.چه دده په مځکه کي وياله او نه بهيږی تُرِكَ عَلَى حَالِهِ نو وياله به پخپل حال پريښودې شی ،لِأَنَّهُ مُسْتَعْمَلٌ لَهُ بِإِجْرَاءِ مَائِهِ خکه چې هغه ددې استعمالونکې دې.ددې اوبه جاری کيدو سره فَعِنْدَ الِاخْتِلَافِ يَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو د اختلاف په وخت به هم دده قول معتبر وی.،فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي يَدِهِ،وَلَمْ يَكُنْ جَارِيًا نو که وياله دده په قبضه کي نه وی.او نه جاری وی .فَعَلَيْهِ الْبَيِّنَةُ أَنَّ هَذَا النَّهْرَ لَهُ،نو د مدعی په ذمه ګواهان دی.چه دا وياله دده دې أَوْ أَنَّهُ قَدْ كَانَ مَجْرَاهُ لَهُ فِي هَذَا النَّهْرِ يَسُوقُهُ إِلَى أَرْضِهِ لِيَسْقِيَهَا يا ده ته په دې وياله کي د اوبو جاری کول حق وو.چه دا خپلې زمکې پورې بوځی.چه هغه خپله مځکه اوبه کړی فَيَقْضِي لَهُ لِإِثْبَاتِهِ بِالْحُجَّةِ مِلْكًا لَهُ أَوْ حَقًّا مُسْتَحَقًّا فِيهِ نو د وياله فيصله به دده لپاره کولې شی.ددې د ثابتولو په وجه، خپل ملك يا داسې حق کوم چې دې کي ثابت وی.

حل اللغة* ① مجراه: د اوبو جاری کاوه حق ② مصب: د اچولو ځانې (ډنډ) ③ سطح: چت ④ الميزاب: ناوه ⑤ الممشی: د تلو لاره﴾

تشريح:- د يوکس وياله د بل کس په مځکه کي جاری دې.د زمکې والا غواړی.چه دا وياله زما په مځکه کي او نه چليږی.نو که وياله د وياله د مالك په قبضه کي دې.يا دا وياله جاری دې.نو د ګواهانو نه بغير به دا هم په دې خپل حال باندې پريخودلې شی.په کوم حال چې دې.يعنی د وياله د مالك په حق کي به فيصله کولې شی.اوکه د قبضې هيڅ صورت ښکاره نه وی.او وياله جاری وی.نو بيا به دعوه په ګواهانو سره ثابتولې شی.چه دا زما وياله دې.يا ما ته دلته کي د اوبو بهيولو حق وو.چه په دې کي خپلې زمکې ته اوبه بوځم.او اوبه خور اوکړم.نو بيا به دده لپاره فيصله کولې شی.که ګواهانو سره ئې ملکيت ثابت کړې وی.نو ددې فيصله به وی.يا ئې د اوبو بهيولو حق ثابت کړې وی.نو ددې فيصله به کولې شی.

وَعَلَى هَذَا الْمَصَبُّ فِي نَهْرٍ أَوْ عَلَى سَطْحٍ او دغه ډول په يو وياله کي يا په يو چهت باندې د اوبو بهيدو حق أَوِ الْمِيزَابُ أَوِ الْمَمْشَى فِي دَارِ غَيْرِهِ، يا ناوه يا د تيريدو ځانې د خپل ځان نه علاوه په کور کي فَحُكْمُ الِاخْتِلَافِ فِيهَا نَظِيرُهُ فِي الشِّرْبِ نو په دې کي د اختلاف حکم په اوبه خور کي د اختلاف مثال دې.

تشريح:- دغه ډول كه يو كس دعوه اوكړله چه ماته په فلانى وياله كي د زياتي اوبو بهيولو حق وو. يا د فلانى په جهت باندې ماته د اوبو بهيولو حق دې. يا زما د ناوې د فلانى په مځكه كي د بهيولو حق دې. يا ما ته د فلانى په مځكه كي د تلو راتلو حق دې. يعنى زما لاره ده. نو په دې ټولو صورتونو د اختلاف هم دا حكم دې. كوم چې اوبه خور كي ذكر شو. يعنى كه دا واړه شيان بالفعل اوس موجود وي. نو هم دده قول به معتبر وي. گني دا به گواهانو سره ثابتول وي. چه دا زما حق دې. نو بيا به دده په حق كي فيصله كولې شي.

**مشترك نهر نه اوبه خور شولو كښي په مقدار كښي د جګړې مسئله**

وَإِذَا كَانَ نَهْرٌ بَيْنَ قَوْمٍ كله چې يو نهر د يو قوم په منځ كي مشترك وي وَاخْتَصَمُوا فِي الشِّرْبِ او هغوى په اوبه خور كي جګړه اوكړي كَانَ الشِّرْبُ بَيْنَهُمْ عَلَى قَدْرِ أَرَاضِيهِمْ نو اوبه خور به ددوى د زمكو په اندازه وي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ الِانْتِفَاعُ بِسَقْيِهَا خكه چې مقصود مځكه اوبه كاوه سره فائده اخستل دي فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهِ بِخِلَافِ الطَّرِيقِ نو اوبه خور به په اندازه د انتفاع مقرر وي. په خلاف د لارې لِأَنَّ الْمَقْصُودَ التَّطَرُّقُ خكه چې مقصود لاره جوړول دي وَهُوَ فِي الدَّارِ الْوَاسِعَةِ وَالضَّيِّقَةِ عَلَى نَمَطٍ وَاحِدٍ او لاره په كلاڼ او تنګ كور كي يوشان وي.

حل اللغة: ① التطرق: لاره جوړول ② الواسعة: فراخه ③ الضيقة: تنګه ④ نمط: طرز﴾

تشريح:- د مخصوص وياله شريكان خپل منځ كي جنګ اوكړي. چه زما اوبه خور دومره او زما دومره دې نو اوبه خور به ددوى په منځ كي ددوى د زمكو په حساب سره وركولې شي. چه كوم مقصد دې. هغه هم حاصل شي. او د ارتيا په اندازه وي. اوكه د لارې په مقدار كي جګړه وي نو هلته به دا طريقه نه وي. خكه چې كور كلاڼ وي. اوكه تنګ وي. لاره خو د تيريدو لپاره ضرور پكار ده او لاره به د ټولو لپاره په يوه اندازه وي. دا نه چې د غټ كور والا ته زياته او د تنګ كور والا ته كمه ملاؤ شي.

فَإِنْ كَانَ الْأَعْلَى مِنْهُمْ لَا يَشْرَبُ حَتَّى يَسْكُرَ النَّهْرَ نو كه په دوى كي پورته كس خپله مځكه اوبه نكړې شي. تردې چې په وياله كي بند اولګوى لَمْ يَكُنْ لَهُ ذَلِكَ لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّ الْبَاقِينَ نو ده ته به ددې حق نه وي. په دې وجه چې دې كي د پاته خلګو حق باطلول دي وَلَكِنَّهُ يَشْرَبُ بِحِصَّتِهِ نو هغوى به د خپلې برخې (حصې) په اندازه مځكه اوبه كوى فَإِنْ تَرَاضَوْا عَلَى أَنْ يَسْكُرَ الْأَعْلَى النَّهْرَ حَتَّى يَشْرَبَ بِحِصَّتِهِ نو كه دوى واړه راضي شي. چه په پورتنى وياله كي بند اولګوى. تردې چې هغه د خپلې برخې (حصې) په اندازه اوبه خور اوكړي أَوْ اصْطَلَحُوا عَلَى أَنْ يَسْكُرَ كُلُّ رَجُلٍ مِنْهُمْ فِي نَوْبَتِهِ يا واړه په دې باندې اتفاق اوكړي. چه پخپل وار كي هر يو بند اولګوى جَازَ نو جائز دى لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ إِلَّا أَنَّهُ إِذَا تَمَكَّنَ مِنْ ذَلِكَ بِلَوْحٍ خكه چې حق هم ددوى دې. خو كله چې دې په تختې سره بند لګولو باندې قادر وي «لَا يَسْكُرُ بِمَا يَنْكَبِسُ بِهِ النَّهْرُ مِنْ غَيْرِ تَرَاضٍ لِكَوْنِهِ إِضْرَارًا بِهِمْ» نو په داسې شي سره دې بند نه لګوى. چه په دې سره نهر ډك شي. (او مكمل بند شي) د رضامندۍ نه بغير، ددې د كيدو په وجه دوى ته نقصان رسول.

حل اللغة: ① اصطلحوا: صلح اوكړله ② لوح: تختې ③ ينكبس: بنديږي﴾

تشريح:- په دې شريكانو كي چې دكوم كس مځكه مخكې ده او پورته ده چه اوبه نه خيږي. ددې باوجود هم هغه ته دا حق نشته چه هغه وياله كي بند اولګوى او خپله مځكه اوبه كړي. خكه چې دې كي د نورو شريكانو نقصان دې. بلكه د بند لګولو نه بغير د خپلې برخې (حصې) مطابق اوبه خور كاوه حق دې. البته كه واړه شريكان راضي شي او اجازت وركړي. نو جائز دى. دغه ډول كه ټولو اتفاق اوكړو چه پخپل وار كي هر يو بند لګوي. نو جائز دى. خكه چې دا هم ددوى حق دې. خو بند به داسې شي سره لګوى چه هغې سره نهر نه بنديږي. مثلاً په تخته وغيره سره دې د خټې بند نه لګوى. ګني نورو شريكانو ته به ددې په اوښكلو كي تكليف وي. او كه هغوى په دې هم راضي شي. نو جائز دى.

**د مشترك نهر نه د بل نهر كښلو حكم**



وَلَيْسَ لِأَحَدِهِمْ أَنْ يَكْرِيَ مِنْهُ نَهْرًا او په دوى كي هيڅ چاته دا حق نشته. چه ددې نه وياله اوكني أَوْ يَنْصِبَ عَلَيْهِ رَحًى يا په وياله باندې جرنده اولګوى. خو د خپلو ملګرو (شريكانو) په رضامندۍ سره (كولې شي). إِلَّا بِرِضَا أَصْحَابِهِ لِأَنَّ فِيهِ كَسْرَ ضِفَّةِ النَّهْرِ خكه چې دې كي دنهر غاړې ماتول دى وَشَغْلَ مَوْضِعٍ مُشْتَرَكٍ بِالْبِنَاءِ او مشترك خائې په عمارت كي مشغولول دى. إِلَّا أَنْ يَكُونَ رَحًى لَا يَضُرُّ بِالنَّهْرِ وَلَا بِالْمَاءِ خو دا چې جرنده وياله او اوبو ته نقصان نه رسوى وَيَكُونُ مَوْضِعُهَا فِي أَرْضِ صَاحِبِهَا او ددې خائې د مالك په مځكه كي وي لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِي مِلْكِ نَفْسِهِ خكه چې دا پخپل ملك كي تصرف دې وَلَا ضَرَرَ فِي حَقِّ غَيْرِهِ او دده نه د علاوه په حق كي هيڅ ضرر نه دې.

حل اللغة: ① يكرى: اوكنى ② رحى: جرنده ③ ضفة: غاړه﴾

تشريح:- د مخصوص مشترك وياله نه بل څوك وياله كنستل غواړي. نو د خپلو ملګرو (شريكانو) د رضامندۍ نه بغير نشي كولې. دغه ډول د مشترك مخصوص وياله په غاړه باندې جرنده لګول غواړي. نو د خپلو شريكانو د رضامندۍ نه بغير نشي لګولې. خكه چې دې كي د وياله غاړه ماتول لازميږي. او په جرنده كي به مشترك خائې خپل عمارت كي راګيره وي. او دا دواړه ممنوع دى. اوكه جرنده داسې وي. چه په دې سره نهر او ددې اوبو ته هيڅ نقصان نه رسيږي. او پخپل خائې كي جرنده لګول غواړي. نو دا جائز دى. خكه چې دا پخپل ملك كي تصرف دې. چه دې كي هيڅ چاته نقصان نه دې.

**د نهر د نقصان مصداق**

وَمَعْنَى الضَّرَرِ بِالنَّهْرِ مَا بَيَّنَّاهُ مِنْ كَسْرِ ضِفَّتِهِ او د وياله د نقصان معنى هم هغه ده. كومه چې موږ بيان كړله. يعنى د وياله غاړه ماتول وَبِالْمَاءِ أَنْ يَتَغَيَّرَ عَنْ سُنَنِهِ الَّذِي كَانَ يَجْرِي عَلَيْهِ او د اوبو ضرر دا دې. چه هغه د خپل هغه عادت نه متغير شي. په كوم چې دا جارى وو «وَالدَّالِيَةُ وَالسَّانِيَةُ نَظِيرُ الرَّحَى» او ارټ او اوبنه (چه د ارټ نه پرې اوبه راويستې شي) د جرندې په مرتبه كي دى.

حل اللغة: ① الدالية: ارټ ② السانية: د ارټ نه اوبه راويستونكې اوبنه﴾

تشريح:- كوم څه چې وړاندې ونيلى شو دى. كه د وياله او اوبو نقصان نه وي. نو جائز دى. نو د وياله د نقصان نه مراد دا دې. چه ددې غاړه ماته كړې شي. او د اوبو نقصان نه مراد دا دې. چه دا په مخكنۍ طريقه باندې او نه بهيږي. او د جرندې لګولو چې كوم حكم دې. هم دا حكم د ارټ او اوبنه (چه د ارټ نه پرې اوبه راويستې شي) لګولو دې. كه مضر وي. نو جائز نه دى. خو په اجازت سره، او كه ضررناك نه وي. او پخپل خائې كي وي. نو جائز دى.

**په مخصوص نهر باندې د پل جوړولو حكم**

وَلَا يَتَّخِذُ عَلَيْهِ جِسْرًا وَلَا قَنْطَرَةً بِمَنْزِلَةِ طَرِيقٍ خَاصٍّ بَيْنَ قَوْمٍ او نه به جوړه وي. په دې (مشترك وياله) باندې پل، د يو قوم په منځ كي د خاص لارې په درجه كي،

حل اللغة: ① جسر: د لرګى پل ② قنطرة: پوخ پل﴾

تشريح:- دغه ډول هيڅ شريكوال ته حق نشته. چه په مخصوص مشترك وياله باندې د لرګئ وغيره يا پوخ پل جوړ كړي. لكه هغه لاره كوم چې د يو څو كسانو په منځ كي مشترك وي. هغوى كي هيڅ چا ته دا حق نشته. چه په لاره كي تصرف اوكړي. دغه ډول دلته كي هم دي. البته كه شريكان راضي وي. نو جائز دى.

**پخپل نهر باندې د پل جوړولو حكم**

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ لِوَاحِدٍ نَهْرٌ خَاصٌّ په خلاف ددې صورت كله چې د يو كس خاص (خپل) وياله وي يَأْخُذُ مِنْ نَهْرٍ خَاصٍّ بَيْنَ قَوْمٍ كوم نې چې د قوم په منځ كي د خاص (مشترك) نه راويستلې دي فَأَرَادَ أَنْ يُقَنْطِرَ عَلَيْهِ بيا دده

اراده اوكړله.چه په دې پل جوړ كړي وَيَسْتَوْثِقَ مِنْهُ او دا مضبوط كړي لَهُ ذٰلِكَ نو ده ته ددې حق شته أَوْ كَانَ مُقَنْطِرًا مُسْتَوْثِقًا فَأَرَادَ أَنْ يَنْقُضَ ذٰلِكَ يا دا مضبوط پل وو.نو ده ددې د ماتولو اراده اوكړله ، وَلَا يَزِيدُ ذٰلِكَ فِي أَخْذِ الْمَاءِ او دا په اوبو اخستلو كې زياتوالې نه كوي حَيْثُ يَكُونُ لَهُ ذٰلِكَ نو ده ته به ددې حق وي لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ فِي خَالِصِ مِلْكِهِ وَضْعًا وَرَفْعًا خكه چې دا خالص پخپل ملك كې تصرف كوي.په اعتبار د جوړولو، او وړانولو.وَلَا ضَرَرَ بِالشُّرَكَاءِ بِأَخْذِ زِيَادَةِ الْمَاءِ او د شريكانو هيڅ ضرر نشته د اوبو د زياتوالى په اخستلو كې.

**تشريح:-** زيد د يو خاص مشترك وياله نه د هغوى په اجازت سره يو وياله اوكنستلو.اوس هغه پخپل وياله باندې پل جوړول غواړي.نو چونكه په دې كې د هيڅ چا څه نقصان نشته.نو دا جائز دى.يا د مخكې نه په دې باندې پل وو.ددې لرې كول غواړي.نو بيا هم جائز دى.خكه چې دې كې د هيڅ چا نقصان نشته.هغه پخپل ملك كې تصرف كوي.هركله چې په داسې كاوه كې د اوبو په راتلو كې هيڅ زياتوالې نه كيږي.نو په جوړولو او نفع اخستلو كې ده ته اختيار دې.

### د نهر د خولې كلاوولو حكم

وَيُمْنَعُ مِنْ أَنْ يُوَسِّعَ فَمَ النَّهْرِ او دې به منع كولې شى.د وياله د خولې كلاوولو نه ، لِأَنَّهُ يَكْسِرُ ضِفَّةَ النَّهْرِ خكه چې دې به د وياله غاړه ، وَيَزِيدُ عَلَى مِقْدَارِ حَقِّهِ فِي أَخْذِ الْمَاءِ او زياتوالې به كوي.د خپل حق په مقدار باندې په اوبو اخستلو كې.

**تشريح:-** يعنى د ذكرشوى څيزونو نه خو دې منع نكړې شو.خو كه دې د خپل وياله خوله پلنول اوغواړي.نو ددې څخه به دې منع كولې شى.خكه چې دې غاصب دې.د نورو خلوق حقوق ضائع كونكې دې.

### د سوړو په ذريعه تقسيمولو كښې د كلاوولو حكم

وَكَذَا إِذَا كَانَتِ الْقِسْمَةُ بِالْكُوَى او هم دغه ډول كله چې ويش د سوړو ( رووُنو) په ذريعه وى.

**حل اللغة:** ① الكوى: جمع د كوة، سوړه، روه»

**تشريح:-** د وياله ددوى په منځ كې ويش د سوړو ( رووُنو) په ذريعه شوې وو.لكه څنګه چې زموږ په علاقو كې كيږي.نو هيڅ چا ته دا اختيار نشته.چه خپل سوړې ( رو) ارت كړي.

### د نهر د خولې نه د تختې شاته كولو حكم

إِذَا أَرَادَ أَنْ يُؤَخِّرَهَا عَنْ فَمِ النَّهْرِ او هم دغه ډول كله نې چې اراده اوكړله.چه تختې د سوړې ( مورئ) كړي.د وياله د خولې نه فَيَجْعَلَهَا فِي أَرْبَعَةِ أَذْرُعٍ مِنْهُ لِاحْتِبَاسِ الْمَاءِ فِيهِ نو دا (شاته) كړي.د وياله د خولې نه څلور ګزه ( د شرعى ګز نو ده ته به ددې حق نه وى) په دې كې د اوبو قيد كيدو ( او راګيريدو) په وجه فَيَزْدَادُ دُخُولُ الْمَاءِ فِيهِ نو زياتيږي به د اوبو دخول.

**تشريح:-** يو شريك خپله تخته د وياله د خولې نه څلور ګزه شاته لګول اوغواړي.نو هغه ته به ددې حق نه وى.خكه چې دې صورت كې به د اوبو په رفتار كې زياتوالې راخى.اوهغه به د خپل حق نه زيات اخستونكې وى.

### د شاته كولو نه بغير د پورته كولو يا لاندې كولو حكم

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَرَادَ أَنْ يُسَفِّلَ كُوَاهُ أَوْ يَرْفَعَهَا حَيْثُ يَكُونُ لَهُ ذٰلِكَ فِي الصَّحِيحِ؛ په خلاف ددې صورت كله چې ده اراده اوكړله.چه خپله تخته ( مورئ) لاندې يا پورته كړي.په دې حيثيت سره د صحيح قول مطابق ده ته ددې حق شته لِأَنَّ قِسْمَةَ الْمَاءِ فِي الْأَصْلِ بِاعْتِبَارِ سَعَةِ الْكُوَّةِ وَضِيقِهَا خكه چې اصل كې د اوبو ويش د سوړې ( رو) د پلن والى او ددې د تنګوالى په اعتبار سره دې مِنْ غَيْرِ اعْتِبَارِ التَّسَفُّلِ وَالتَّرَفُّعِ د لاندې والى او اوچت والى په اعتبار كاوه نه



بغير وَهُوَ الْعَادَةُ او عادت هم دا دې فَلَمْ يَكُنْ فِيهِ تَغْيِيرُ مَوْضِعِ الْقِسْمَةِ نو په دې كې د قسمت خائې بدلول نه دى.

**حل اللغة:** ① التسفل: كښته والې ② الترفع: اوچت والې ③ الكوة: سوړه»

**تشريح:-** د شريك د اوبو سوړه چې كوم خائې ده.هم هلته كې د شاته كاوه نه بغير ددې تخته پورته كول يا لاندې كول غواړي.نو دا جائز دى.خكه چې دلته كې د اوبو ويش په اصل كې د سوړې د پلن والى او تنګوالى په حساب سره دې.چه هغې كې دې هيڅ اضافه نه كوي.بلكه په كوم خائې چې دې.د هغې نه لږ پورته يا لاندې كول غواړي.نو په دې كې د ويش د خائې بدلول او تغير نه دې.نو دا جائز دى.

### د رووُنو په ذريعه ويش نه روسته د ورځو په ذريعه د ويش غوښتلو مسئله

وَلَوْ كَانَتِ الْقِسْمَةُ وَقَعَتْ بِالْكُوَى او كه ويش د سوړو ( او رووُنو) په ذريعه واقع شوې وى فَأَرَادَ أَحَدُهُمْ أَنْ يَقْسِمَ بِالْأَيَّامِ نو په دوى كې يو كس اراده اوكړله.چه د ورځو په ذريعه ويش وى. لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته ددې حق نشته ، لِأَنَّ الْقَدِيمَ يُتْرَكُ عَلَى قِدَمِهِ لِظُهُورِ الْحَقِّ فِيهِ خكه چې پخوانې شئ ددې پخپله طريقه پريښودې شى.په دې كې د حق ښكاره كيدو په وجه.

**تشريح:-** د اوبو ويش د مخكې نه د سورو ( رووُنو) په ذريعه شوې دې.او د هر يو په پټي كې د راتلو لپاره په وياله كې رووُنه لګيدلى دى.اوس كه څوك دا اوغواړى.چه ددې په خائې ويش ورځو سره اوشى.نو يوه ورځ پوره وياله هغه چلوى.او يوه ورځ دې.نو ده ته به اختيار نه وى.خكه چې كومه طريقه د مخكې نه مقرر شوې ده.هغه به نشى ماتولې.كه واړه شريكان راضى شى.نو جائز ده.

### د مخصوص سوړې د غټولو حكم

وَلَوْ كَانَ لِكُلٍّ مِنْهُمْ كُوًى مُسَمَّاةٌ فِي نَهْرٍ خَاصٍّ اوكه په دوى كې د ټولو لپاره په مقرر وياله كې خاص سوړې وى لَيْسَ لِوَاحِدٍ أَنْ يَزِيدَ كُوَّةً نو هيڅ چاته دا اختيار نشته.چه په سورې ( رو) كې زياتوالې اوكړي وَإِنْ كَانَ لَا يَضُرُّ بِأَهْلِهِ؛ اګرچه دا دده خلګو لپاره مضر نه وى لِأَنَّ الشَّرِكَةَ خَاصَّةٌ خكه چې شركت خاص دې بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الْكُوَى فِي النَّهْرِ الْأَعْظَمِ؛ په خلاف ددې صورت كله چې رووُنه په غټ وياله كې وى لِأَنَّ لِكُلٍّ مِنْهُمْ أَنْ يَشُقَّ نَهْرًا مِنْهُ ابْتِدَاءً خكه چې ددې په پيل كې هر يو ته دا حق وو.چه ددې نه وياله اوباسى فَكَانَ لَهُ أَنْ يَزِيدَ فِي الْكُوَى بِالطَّرِيقِ الْأَوْلَى نو دده لپاره به په رو ( سوړه) كې د زياتوالى په درجه اولى حق وى.

**تشريح:-** په خاص وياله كې ډيرې سوړې ( رووُنه) لګيدلى وي.په هغې كې يوكس غواړي.چه خپلې زمكې ته راتلونكې رو زيات كړي.يعنى يو بل اولګوى.يا ړومبې اوباسى.بل يو ګلاؤ ( ارت) هلته كې اولګوى.نو دا جائز نه دى.كه شريكانو ته مضر وى.اوكه نه وى.خكه چې دا شركت خاصه دې.چه په دې كې د شريكانو د اجازت نه بغير تصرف كول هم نه جائز كيږي.البته په غټ وياله كې داسې كاوه كې هيڅ باك نشته.خكه چې ددې نه هر يو ته د وياله كنستلو او راوستلو حق وو.نو د رو كلاوولو حق به په درجه اولى وى.

### د شريك داسې زمكې ته د اوبو بيولو (بوتللو) حكم چې د هغې اوبه خور په دې نهر نه وى

وَلَيْسَ لِأَحَدِ الشُّرَكَاءِ فِي النَّهْرِ أَنْ يَسُوقَ شِرْبَهُ إِلَى أَرْضٍ لَهُ أُخْرَى او د وياله د اوبه خور په شريكانو كې هيڅ چا ته دا حق نشته.چه هغه خپل اوبه خور ، خپل هغه بلې زمكې ته بوځى لَيْسَ لَهَا فِي ذٰلِكَ شِرْبٌ چې د هغې په دې وياله كې اوبه خور نشته ، لِأَنَّهُ إِذَا تَقَادَمَ الْعَهْدُ يُسْتَدَلُّ بِهِ عَلَى أَنَّهُ حَقُّهُ خكه چې كله زمانه تيره شى.نو هغه به ددې نه په دې خبره استدلال كوى.چه دا دده حق دې.

**حل اللغة:** ① تقادم العهد: زمانه تيره شوې وى، وخت شوې وى»

**تشريح:-** كه په شريكانو كې يوكس د وياله اوبه پخپله بله مځكه كې بوځى.چه دهغې اوبه خور په دې وياله كې نشته.نو هغه لپاره دا جائز نه دى.ګنى د څه زمانې تيريدو نه روسته به دې وائى.چه دا خو زما حق

دي.نو دې به د مخكې نه منع كولې شي.البته كه شريكان راضي شي او اجازت وركړي نوبيا څه باك نشته.

**يوه مځكه د اوبو نه ډكه كړي يا ددې نه پله مځكه اوبه كول غواړي**

وَكَذَا إِذَا أَرَادَ أَنْ يَسُوقَ شِرْبَهُ فِي أَرْضِهِ الْأُولَى او هم دغه ډول (حكم دى).كله چې دې اراده اوكړي.چه خپل اوبه خور خپلې رومبۍ زمكې ته بوخي حَتَّى يَنْتَهِيَ إِلَى هَذِهِ الْأَرْضِ الْأُخْرَى تردې چې دا اورسيږي دې دويمې زمكې پورې لِأَنَّهُ يَسْتَوْفِي زِيَادَةً عَلَى حَقِّهِ په دې وجه به دې د خپل حق نه زيات وصوله وي، إِذِ الْأَرْضُ الْأُولَى تَنْشِفُ بَعْضَ الْمَاءِ قَبْلَ أَنْ تَسْقِيَ الْأَرْضَ الْأُخْرَى خكه چې رومبۍ مځكه به څه اوبه جذب كوي.ددې نه مخكې چې دا دويمه مځكه اوبه كړي.

حل اللغة: ① تنشف: اوچيږي ﴾

تشريح:- د يوكس دوې (دوه) زمكې دي.په دې كې د يوې زمكې اوبه خور په دې وياله دې.او د دوهم نه دې.نو په دويمه مځكه كې اوبه بوتلل جائز نه دي.خوكه ده رومبۍ مځكه دومره ډكه كړله.چه بيا ددې نه دويمه مځكه ډكه كړي.دا هم جائز نه دي.خكه چې دده حق د يوې زمكې د ډ كاوه وو.او ده دوې (دوه) زمكې ډكې كړې.خكه چې رومبۍ مځكه به څه اوبه راكاږي.ددې نه روسته به دا دويمې زمكې ته راخي. لنډيز د كلام دا چې رومبې او دا، دواړه صورتونه جائز نه دي. (خو كه ده رومبۍ مځكه ډكه كړله.او د وياله خوله ئې بنده كړله.او بيا ده په دې اوبو سره دويمه مځكه اوبه كړله.نو جائز دي.خكه چې ده په دې طريقه د خپل حق نه زياته وانخستله.او كه خوله ئې بنده نكړله.نو جائز نه دي كذا في شامي)

**د ذكر شوې مسئلې مثال**

وَهُوَ نَظِيرُ طَرِيقٍ مُشْتَرَكٍ او دا د مشترك لارې مثال دې أَرَادَ أَحَدُهُمْ أَنْ يَفْتَحَ فِيهِ بَابًا إِلَى دَارٍ أُخْرَى سَاكِنُهَا غَيْرُ سَاكِنِ هَذِهِ الدَّارِ الَّتِي يَفْتَحُهَا فِي هَذَا الطَّرِيقِ كله چې اراده اوكړي په دوى كې يو كس،چه كلاؤ كړي په دې كې يوه دروازه، هغه كور اړخ ته چې د هغې اوسيدونكې ددې كور د اوسيدونكى نه علاوه دې.كوم كس چې دې لارې اړخ ته دروازه كلاوول غواړي.

تشريح:- يوه مشترك لاره ده.چه په دې كې سرى مشترك دي.چه په دوى كې يوكس زيد هم دې.چه دده دوې (دوه) كورونه دي.د يوكور دروازه هم په دې لاره كې ده.او د دوهم كور دروازه ئې په دې لاره كې نه ده.او په دې كې زيد بل څوك آباد كړى دى.اوس زيد غواړي.چه ددې لاره هم دا لاره شي.او د هغې دروازه دې لارې اړخ ته كلاوول غواړي.نو زيد ته به دا حق نه وي.خكه چې مشترك لاره كې به د تلونكو تعداد زيات شي.البته كه په دې كې اوسيدونكې بل څوك نه وي.نو زيد ته د دروازې كلاوولو حق شته.خكه چې په دې كې د تيريدونكو خلګو د تعداد زياتوالې نه كيږي.دغه ډول كه د مذكوره دويمې زمكې په دې وياله كې اوبه خور نشته.نو زيد ته حق نشته.چه ددې اوبه هلته كې بوخي.چه په مخكه كې زياتوالې اونشى.او هغه مخكه په دې كې داخله نشى.دكوم چې په دې كې حق نشته.

**د پورته زمكې والا د بعضو سوړو (روونو) بندولو حكم**

وَلَوْ أَرَادَ الْأَعْلَى مِنَ الشَّرِيكَيْنِ فِي النَّهْرِ الْخَاصِّ او كه اراده اوكړله.په خاص وياله كې دوې (دوه) شريكانو كې يوكس، وَفِيهِ كُوًى بَيْنَهُمَا أَنْ يَسُدَّ بَعْضَهَا دَفْعًا لِفَيْضِ الْمَاءِ عَنْ أَرْضِهِ كَيْ لَا تَنِزَّ او په دې ددوى په منځ كې روونه دي.دا چې په دې كې بعض بندې كړي.د خپلې زمكې نه د اوبو بهيولو لرې كاوه دپاره، چې مځكه لمده نشى لَيْسَ لَهُ ذَلِكَ لِمَا فِيهِ مِنَ الضَّرَرِ بِالْآخَرِ نو هغه ته به ددې حق نه وي.په دې وجه چې دې كې د بل ضرر دې.

حل اللغة: ① فيض الماء: د اوبه تيريدل،جاري كيدل﴾

تشريح:- په مبسوط كې صورت د مسئلې دا ذكر دې.چه په يو غټ وياله كې دوې (دوه) سړو لپاره پنځه روونه



لګيدلي دي.په دوى كې د يوكس مځكه پورته ده.او د بل كس لاندې ده.اوس پورته والا دا غواړي.چه په دې روونو كې يوه يا دوې (دوه) بندې كړي.خكه چې د اوبو د زياتوالى په وجه مځكه لمديږي.نو ده ته ددې حق نشته.خكه چې دا په مشترك څائې كې د خپل شريكوال د رضامندئ نه بغير تصرف دې.نو دا هم هغه شان نا جائز دې.لكه څنګه چې د رو (او سوړې) كلاوولو حق دې.

**د سوړو په ذريعه تقسيم، نيم په نيمه تقسيمولو كښې بدلول**

وَكَذَا إِذَا أَرَادَ أَنْ يُقَسِّمَ الشِّرْبَ مُنَاصَفَةً بَيْنَهُمَا او هم دغه ډول كله چې اراده اوكړله.(په دوى كې يوكس) چې اوبه خور نيم په نيمه ويش كړي. (نو جائز نه دى). لِأَنَّ الْقِسْمَةَ بِالْكُوَى تَقَدَّمَتْ إِلَّا أَنْ يَتَرَاضَيَا خكه چې روونو سره تقسيمول وړاندې شوى دى.خو دا چې دواړه راضي لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمَا، خكه چې حق هم ددوى دواړو دې وَبَعْدَ التَّرَاضِي لِصَاحِبِ الْأَسْفَلِ أَنْ يَنْقُضَ ذَلِكَ او د راضي كيدو نه روسته لاندې والا ته دا حق شته.چه دا مات كړي كَذَا لِوَرَثَتِهِ مِنْ بَعْدِهِ او هم دغه ډول دده وارثانو ته حق شته دده نه روسته وَلِأَنَّهُ إِعَارَةُ الشِّرْبِ،خكه چې دا د اوبه خور اعاره ده، فَإِنَّ مُبَادَلَةَ الشِّرْبِ بِالشِّرْبِ بَاطِلَةٌ خكه چې اوبه خور سره تبادله باطل ده.

حل اللغة: ① مناصفة: نيم په نيمه ② التراضى: يوبل راضي كول﴾

تشريح:- دوې (دوه) شريكان دي.ددوى يو وياله دې.چه په دې كې دواړو خپل خپل روونه جوړ كړى دى.اوس پورته والا دا غواړي.چه وار په دې طريقه مقرر كړو.چه اته ورځې پوره وياله ته استعماله وه.او اته ورځې به ئې زه استعمالوم.نو پورته والا ته دا حق نشته.خكه چې ويش د مخكې نه د روونو په ذريعه شوې دې.البته كه دوهم شريك هم راضي وي.نو جائز دى.خو د اوبه خور، اوبه خور سره تبادله باطل ده.نو دا به اعاره ګرځولې شي.او معير چې كله اوغواړي.رجوع كولې شي.نو د لاندې والا ته به حق وي.چه كله اوغواړي ددې معاهدې نه رجوع كولې شي.او دده د مرګ نه روسته دده د وراثانو هم دا حق پاته پاتې كيږي.چه كله اوغواړي.دا معاهده ماته كړي.او په مخكنى ويش باندې عمل اوكړي.

**د رومبۍ مسئلې دليل**

وَالشِّرْبُ مِمَّا يُورَثُ او اوبه خور د داسې څيزونو څنې دې.چه دا ميراث جوړيږي وَيُوصَى بِالِانْتِفَاعِ بِعَيْنِهِ، بِخِلَافِ الْبَيْعِ وَالْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ او ددې د عين نه د انتفاع وصيت كولې شي.په خلاف دبيع، هبې او صدقې وَالْوَصِيَّةِ بِذَلِكَ حَيْثُ لَا تَجُوزُ الْعُقُودُ إِمَّا لِلْجَهَالَةِ أَوْ لِلْغَرَرِ، أَوْ لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ مُتَقَوِّمٍ او په خلاف د هغه عقودو د وصيت، چې دا عقود به جائز نه وي.د جهالت، يا دهوكې، يا د مال متقوم نه كيدو په وجه حَتَّى لَا يَضْمَنَ إِذَا سَقَى مِنْ شِرْبِ غَيْرِهِ تردې چې نه ضامن كيږي.كه د بل په اوبه خور سره ئې اوبه كړي وَإِذَا بَطَلَتِ الْعُقُودُ او هركله چې دا عقود باطل شو، فَالْوَصِيَّةُ بِالْبَاطِلِ بَاطِلَةٌ نو د باطل وصيت هم باطل دې.

حل اللغة: ① الانتفاع: فائده اخستل ② الغرر: دهوكه﴾

تشريح:- دا جلا مسئله هم كيداې شي.او د رومبۍ مسئلې دليل هم كيداې شي.بهرحال په اوبه خور كې ميراث جاري كيږي.او ددې دعين نه د نفع اخستلو وصيت هم جائز دې.چه فلانې به ددې نه دوې (دوه) ورځې اوبه خور كوي.او په پاته ورځو كې به زما وارثان كوي.البته د اوبه خور د خرڅولو وصيت كول باطل دې.خكه چې هركله د اوبه خور بيع، هبه او صدقه كول هيڅ جائز نه دي.بلكه واړه باطل دي.نو د باطل وصيت هم باطل دې.او د اوبه خور د بيع نه جائز كيدو وجه جهالت دې.يا دهوكه ده.چه معلومه نه ده. څومره اوبه به راځي.يادا وجه ده.چه مال متقوم نه دې.او د مال متقوم نه كيدو دليل دا دې.كه يوكس د بل د اوبه خور نه خپل كښت (فصل) اوبه كړو.نو په ده هيڅ ضمان نشته.كه دا مال متقوم وې.نو ضمان به وو.نو هركله چې دا واړه عقود باطل شو.نو ددې وصيت هم باطل دې.

مسئله: فتوى په دې ده.چه ضمان واجب نه دي.خو د كوم كس په اوبه خور ئې چې فصل اوبه كړي دي.هغه

له پکار دی.چه مقدمه بادشاه ته يوسی.چه دده څه تاديب اوکړې شی.او که ده څو ځله داسې اوکړل.نو بادشاه دې دده تاديب اوکړی.په وهلو او د قيد په ذريعه، که په دې کې مصلحت اوګڼړی.

**اوبه خور د مهر په طور د مقررولو حکم**

وَكَذَا لَا يَصْلُحُ مُسَمًّى فِي النِّكَاحِ او هم دغه ډول اوبه خور په نکاح کې د مهر جوړيدو صلاحيت نه لری حَتّٰى يَجِبَ مَهْرُ الْمِثْلِ تردې چې مهر مثل به واجب وی وَلَا فِي الْخُلْعِ حَتّٰى يَجِبَ رَدُّ مَا قَبَضَتْ مِنَ الصَّدَاقِ لِتَفَاحُشِ الْجَهَالَةِ او نه په خلع کې د بدل جوړيدو، تردې چې ددې مهر واپس کول به واجب وی.کوم چې دې قبضه کړې دې. د فاحش جهالت کيدو په وجه وَلَا يَصْلُحُ بَدَلُ الصُّلْحِ عَنِ الدَّعْوٰى او د دعوې د بدل صلح جوړيدو صلاحيت هم نه لری ،، لِأَنَّهُ لَا يُمْلَكُ بِشَيْءٍ مِنَ الْعُقُودِ ځکه چې اوبه خور په عقودو کې د چا نه هم نه مملوك کيږی.

**حل اللغة:** ① الصداق: مهر ② تفاحش: زيات والې

**تشريح:-** اوکه اوبه خور په مهر کې مقرر کړې شو.نو دا مقررول به صحيح نه وی.او مهر مثل به واجب وی. دغه ډول که په خلع کې اوبه خور بدل مقرر کړې شو.نو دا مقررول به هم صحيح نه وی.او قبض کړې شوې مهر واپس کول به ضروری وی.ځکه چې اوبه خور کې ډير زيات جهالت دې.دغه ډول که د قصاص نه علاوه مدعی په زيد باندې څه دعوه اوکړله.او زيد په اوبه خور باندې صلحه اوکړله.نو دا مصالحت اونشو.ځکه چې شرب کې د بدل جوړيدو صلاحيت نشته.او نه په شرب کې دا صلاحيت شته.چه د يو عقد په وجه مملوك جوړ شی.نو مدعی پخپله دعوه باندې پاته دې.

**د اوبه خور د مالك په پور کښې د اوبه خور خرڅولو حکم**

وَلَا يُبَاعُ الشِّرْبُ فِي دَيْنِ صَاحِبِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ بِدُونِ أَرْضٍ او اوبه خور به نشی خرڅولې.د اوبه خور والا په پور کې د مرګ نه روسته د زمکې نه بغير كَمَا فِي حَالِ حَيَاتِهِ لکه څنګه چې دده په ژوند کې وَكَيْفَ يَصْنَعُ الْإِمَامُ او امام به څنګه کوی؟ الْأَصَحُّ أَنْ يَضُمَّهُ إِلَى أَرْضٍ لَا شِرْبَ لَهَا نو اصح دا دی.چه اوبه خور د داسې زمکې سره ملاؤ کړی.چه هغه لپاره اوبه خور نه وی ؟ فَيَبِيعَهَا بِإِذْنِ صَاحِبِهَا بيا دا دواړه خرڅ کړی.د زمکې د مالك په اجازت سره ، ثُمَّ يَنْظُرُ إِلَى قِيمَةِ الْأَرْضِ مَعَ الشِّرْبِ وَبِدُونِهِ بيا دې اوګوری.د زمکې قيمت اوبه خور سره.او د اوبه خور نه بغير ، فَيَصْرِفُ التَّفَاوُتَ إِلَى قَضَاءِ الدَّيْنِ نو تفاوت ( فرق) دې د پور ادا کاوه په اړخ کې خرچ کړې شی.

**حل اللغة:** ① التفاوت: فرق، ② مخر: ډکول

**تشريح:-** وړاندې ونيلی شوی دی.چه يواځې د اوبه خور بيع جائز نه ده.نوکه څوك سړې مړ شی.او صرف اوبه خور پريږدی.او مړ شی.او دده په ذمه پور وی.نو د اوبه خور بيع اوس هم جائز نه ده.نو په دې صورت کې د دده د پور ادا کاوه لپاره يوه طريقه دا ده چې ددې ( اوبه خور) په برابر دې داسې مځکه اوګوری.چه هغې لپاره اوبه خور نه وی.او امام دې دا اوبه خور دغه زمکې سره ملاؤ کړی.او د زمکې د مالك په اجازت سره دې مځکه سره د اوبه خور وپلوری .اوس دې غور اوکړې شی.چه د اوبه خور نه بغير د زمکې څه قيمت وو.او د اوبه خور سره ئې څه قيمت دې.مثلاً اوبه خور سره د زمکې قيمت پنځه سوه۵۰۰\ روپۍ دې.او د اوبه خور نه بغير درې سوه۳۰۰\ روپۍ وو.نو درې سوه روپۍ د زمکې د مالك شوې.او دوې (دوه) سوه روپۍ دې په پور ادا کاوه کې خرچ کړی.

وَإِنْ لَمْ يَجِدْ ذٰلِكَ او که امام داسې مځکه او نه مومی اشْتَرٰى عَلٰى تَرِكَةِ الْمَيِّتِ أَرْضًا بِغَيْرِ شِرْبٍ نو د مړی په ترکه دې د اوبه خور نه بغير والا مځکه واخلی ، ثُمَّ ضَمَّ الشِّرْبَ إِلَيْهَا وَبَاعَهُمَا بيا دې اوبه خور ددې سره ملاؤ کړی.او دا دواړه دې خرڅ کړی فَيَصْرِفُ مِنَ الثَّمَنِ إِلٰى ثَمَنِ الْأَرْضِ وَيَصْرِفُ الْفَاضِلَ إِلٰى قَضَاءِ الدَّيْنِ نو ثمن دې د زمکې د ثمن په اړخ کې خرچ کړی.او زياتی دې د پور ادا کاوه په طرف وَإِذَا سَقَى الرَّجُلُ أَرْضَهُ أَوْ مَخَرَهَا مَاءً أَيْ مَلَأَهَا او يو کس خپله



مځکه اوبه کړله.يا ئې دا د اوبو نه ډکه کړله فَسَالَ مِنْ مَائِهَا فِي أَرْضِ رَجُلٍ نو ددې زمکې اوبه د بل کس زمکې اړخ ته اوبهيدلې فَغَرَّقَهَا نو هغه ئې غرق کړو أَوْ نَزَّتْ أَرْضُ جَارِهِ مِنْ هٰذَا الْمَاءِ يا دده د ګاونډی مځکه لمده شوه.په دې اوبو سره لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ ضَمَانُهَا نو په ده باندې ددې ضمان نشته.، لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِيهِ ځکه چې دا غير متعدی ده په دې کې

**تشريح:-** دويمه طريقه په دې متن کې بيان شوې ده هغه چې امام ( بادشاه) دې په ترکه باندې داسې مځکه واخلی.چه هغې لپاره اوبه خور نه وی.او دا اوبه خور دې دغه زمکې سره ملاؤ کړی.بيا دې دا دواړه خرڅ کړی.نو د زمکې ثمن دې هلته کې ورکړی.د کوم ځائې نه ئې چې د زمکې اخستلو لپاره رقم اخستې وو.او په پاته دې د مړی قرضه ادا کړی.يو سړی خپله مځکه په اوبه خور سره اوبه کړله.بيا ددې زمکې نه اوبه اووتلې.د بل په مځکه کې اورسيدلې.او هغه ته ئې نقصان اورسولو.نو کوم کس چې پخپله مځکه کې اوبه ډکې کړې وې.هغه باندې هيڅ ضمان نشته.ځکه چې د هغه د اړخه تعدی (او زياتې) نه دې موجود شوې.ځکه چې دده مقصد خپله مځکه اوبه کول وو.د بل مځکه لمدول نه وو.

**دليله:** ځکه چې د ړومبی فعل سبب دې.او سبب باندې ضمان واجبيدو لپاره تعدی شرط ده.او تعدی موجود نشوه.نو ضمان به هم واجب نه وی.خو دا هغه وخت دی.کله چې ده پخپل وار ( نمبر) کې ډکې کړې وی.او د خپل حق په اندازه ئې ډکې کړې وی.اوکه پخپل وار کې ئې نه وی ډکې کړې.يا ئې دخپل حق نه زيات ډکې کړې.په نورو الفاظو کې داسې چې ده د عام طريقې په خلاف ډکې کړې وی.نو دا تعدی ده.نو اوس به په ده باندې ضمان واجب وی.،، وعليه الفتوی.،

## كتاب الأشربة

ژباړه:- ( دا) کتاب د شرابو ( د احکامو په بيان کې ) دې.

**تشريح:-** د شرب ( د اوبه خور) د احکامو نه روسته ئې کتاب الاشربه بيان کړو.ځکه چې دواړو کې لفظی اشتراك دې.ګويا چې دواړه د يوې ونې څانګونه دی.او د شرب د حلال کيدو په وجه ئې هغه مقدم کړو.او اشربه ( شراب) ځکه مؤخر کړل.چه په دې کې څه حرام دی.

**د شراب شرعی معنی**

سُمِّيَ بِهَا نوم کيخودې شو ددې کتاب په دې ( الاشربه) سره، وَهِيَ جَمْعُ شَرَابٍ لِمَا فِيهِ مِنْ بَيَانِ حُكْمِهَا حالانکه اشربه د شراب جمع ده.په دې وجه چې دې کې ددې ( اشربه) د انواعو د حکم بيان دې.

**تشريح:-** شراب په اصل کې هغه شئ ته وائی.چه هغه څښلې کيږی.لکه اوب، شربت، شهد وغيره.او په اصطلاح د شرع کې شراب هغه دی.کوم چې نشه راولی.او سست او بې هوشه کړی.پاتې شو د مرغينانی رحمة الله عليه ددې عبارت مطلب نو دا دې.چه دلته کې دا يو سوال کيداې شی.چه دلته کې ئې د کتاب عنوان ولې ورکړو. حالانکه کتاب هغې ته وائی.چه هغې کې د مختلف الانواع احکامو بيان وی.او اشربه خو د شراب جمع ده.چه په دې کې دا خبره نه محسوسيږی.نو ددې ځواب ئې ورکړو.چه د اشربه انواع ډير دی.او ددې ټولو انواعو د احکامو بيان دې.نو د کتاب عنوان ورکول صحيح دی.دلته کې ملاسعدی چلپی رحمة الله عليه ددې پشان يو ځواب ورکړې دې.او صاحب د نتائج رحمة الله عليه په دې باندې ښه تفصيل سره کلام کړې دې.

**د شرابو ځلور قسمونه**

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمة الله عليه اوفرمائيل الْأَشْرِبَةُ الْمُحَرَّمَةُ أَرْبَعَةٌ کوم شرابونه چې حرام دی.هغه ځلور دی الْخَمْرُ ۱ (۱) خمر وَهِيَ عَصِيرُ الْعِنَبِ إِذَا غَلٰى وَاشْتَدَّ وَقَذَفَ بِالزَّبَدِ و د انګورو شيره ده.کله چې جوش اووهی.او تيز

شی.او خګ راشی ﴿وَالْعَصِيرُ﴾[2] شیره د انګورو ﴿إِذَا طُبِخَ حَتَّى يَذْهَبَ أَقَلُّ مِنْ ثُلُثَيْهِ﴾ کله چې پخه کړې شی.تردې چې ددې دوې (دوه) ثلثه ( دریو برخو کې دوې (دوه) حصې) نه کم پاتې شی ﴿وَهُوَ الطِّلَاءُ الْمَذْكُورُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ﴾ او دا هم هغه طلاء دې.کوم چې جامع صغیر کې ذکر دی ﴿وَنَقِيعُ التَّمْرِ﴾[3] او نقیع التمر ( د کجورو خوږې اوبه) ﴿وَهُوَ السَّكَرُ﴾ او دا سکر دې ﴿وَنَقِيعُ الزَّبِيبِ﴾[4] او نقیع زبیب ( د اوسکو خوږې اوبه)، ﴿إِذَا اشْتَدَّ وَغَلَى﴾ کله چې تیز شی.او جوش اووهی.

حل اللغة* ① غلی: جوش اووهی ② الزبد: زګ ③ العصیر: نچوړ،رس ④ زبیب: اوسکه﴾

تشریح:- مرغینانی رحمه الله دلته کې د شرابو څلور قسمونه بیان کړی دی.او دا څلور هغه قسمونه دی.چه حرام دی.① اول د انګورو کچه شراب کله دا جوش اووهی.او خګ اونیسی.او د سختوالی نه مراد دا دې.چه هغه ددې قابل شی.چه نشه راوستونکې وی.او هم دې ته خمر ( شراب) وائی.② دوهم ډول طلاء یعنی د انګورو شیره کله چې دا پخه کړې شی.او په ددې په دریو برخو کې دوې (دوه) برخو نه لږ کم ختم شی.خو په محیط کې دی.چه طلاء ثلث ( دریمې حصې) ته وائی.یعنی چې دکوم چې دوې (دوه) برخې (حصې) ختمه شی.او دکوم چې دوې (دوه) ثلثه ختم شوې نه وی.بلکه کم وی.نو دې ته باذوق وائی.③ دریم ډول سکر دې.یعنی اوبو کې چوارې اچولې شوې وی.او اوبه پخې کړې شوې نه وی.کله چې دا جوش اووهی.او خګ اونیسی.④ څلورم ډول نقیع الزبیب یعنی اوسکې ( مویز) په اوبو کې اچولې شوې وی.او په دې کې جوش او سختوالې پیدا شی.

## په لسو بحثونو کښې ړومبې بحث

﴿أَمَّا الْخَمْرُ فَالْكَلَامُ فِيهَا فِي عَشَرَةِ مَوَاضِعَ﴾ بهرحال خمر په دې کې لس ځانې کې کلام دې ﴿أَحَدُهَا فِي بَيَانِ مَائِيَّتِهَا﴾ په دې کې یو ددې په مائیت ( او شربت) کې بیان دې ﴿وَهِيَ النِّيءُ مِنْ مَاءِ الْعِنَبِ إِذَا صَارَ مُسْكِرًا﴾ او دا د انګورو کچه اوبه دی.کله چې دا نشه ور شی ﴿وَهَذَا عِنْدَنَا﴾ او دا زموږ په نیز دی ﴿وَهُوَ الْمَعْرُوفُ عِنْدَ أَهْلِ اللُّغَةِ وَأَهْلِ الْعِلْمِ﴾ او د اهل لغت او اهل علم په منځ کې دا مشهور دی.

تشریح:- د خمر مصداق ړومبې مرغینانی رحمه الله د خمر په اړه کې کلام فرمائی.چه په خمر کې لس مباحث دی. په ړومبی بحث کې ددې مائیت بیان دې.بیا ئې ددې مائیت اوخودلو.چه د انګورو کچه اوبه کله چې دا نشه پیدا کونکې شی.دې ته خمر وائی.ددې نه علاوه نورو څکونکو څیزونو نه چې شراب جوړ کړې شی.هغې ته به خمر نشی وئیلې.د اهل لغت او د اهل علم په منځ کښې هم دا مشهوره ده.چه خمر صرف هم دې ته وائی.

## د ائمه ثلاثه رحمهم الله او د ظواهرو نقطه نظر

﴿وَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ﴾ او بعضو خلګو وئیلی دی ﴿هُوَ اسْمٌ لِكُلِّ مُسْكِرٍ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ﴾ چې خمر نوم دې د هر نشه ور څیز،د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه ﴿كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ﴾[1] چې هر نشه پیدا کونکې شئ حرام دې ﴿وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ﴾ او د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه ﴿الْخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ﴾ چې خمر ددې دواړو ونو نه جوړیږی ﴿وَأَشَارَ إِلَى الْكَرْمَةِ وَالنَّخْلَةِ﴾ او اشاره ئې اوفرمائیله، انګورو او کجورو اړخ ته ﴿وَلِأَنَّهُ مُشْتَقٌّ مِنْ مُخَامَرَةِ الْعَقْلِ﴾ او ځکه چې خمر د ،، مخامرة العقل،، نه مشتق دې،﴿وَهُوَ مَوْجُودٌ فِي كُلِّ مُسْكِرٍ﴾ او دا معنی په هر نشه ور

---

[1]) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه مسلم فى الأشربة رقم ٨٣_

[2]) من حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه مسلم فى الأشربة رقم ١٣ وأبوداود فى الأشربة باب ٤ والترمذى فى الأشربة باب ٨ والنسائى فى الأشربة باب ١٩ وابن ماجه فى الأشربة باب ٥ وأحمد فى المسند(٢٧٩١٢)_



شئ کې موجود ده.

حل اللغة* ① الکرمة: انګور ② النخلة: خرما (قجوره) ③ الخمر: خمر مشتق دې د ،، مخامرة العقل،، نه یعنی د عقل پټیدل او مغلوب کیدل﴾

تشریح:- د ائمه ثلاثه رحمهم الله او د اصحاب ظاهر دا وینا ده.چه هر نشه ور شئ خمر دې.د انګورو نه جوړ شی.او که د بل شئ نه،دې فریق پخپله دعوه باندې درې دلیلونه پیش کړی دی.① حدیث ﴿کل مسکر حرام﴾ ② حدیث ﴿الخمر من هاتین الشجرتین﴾ چې ددې دواړو ونو نه چې کوم جوړ شی.هغه خمر دې.یعنی د انګورو او کجورو نه، ددې نه هم معلومه شوه.چه د خمر دا اطلاق د انګورو د شرابو نه علاوه په نورو باندې هم کیږی.

## د احنافو رحمهم الله دلائل

﴿وَلَنَا﴾ او زموږ دلیل دا دې ﴿أَنَّهُ اسْمٌ خَاصٌّ بِإِطْبَاقِ أَهْلِ اللُّغَةِ فِيمَا ذَكَرْنَا﴾ چې خمر مخصوص نوم دې.د هغه شئ کوم چې موږ ذکر کړې دې.د اهل لغت د په اتفاق سره ﴿وَلِهَذَا اشْتَهَرَ اسْتِعْمَالُهُ فِيهِ﴾ او هم په دې وجه مشهور دې، ددې استعمال په خمر کې ﴿وَفِي غَيْرِهِ غَيْرُهُ﴾ او ددې نه علاوه کې ددې نه علاوه دې ﴿وَلِأَنَّ حُرْمَةَ الْخَمْرِ قَطْعِيَّةٌ﴾ او ځکه چې د خمر حرمت قطعی دې ﴿وَهِيَ فِي غَيْرِهَا ظَنِّيَّةٌ﴾ او حرمت د خمر نه علاوه کې ظنی دې.

حل اللغة* ① اطباق: اتفاق ② قطعیة: یقینی ③ ظنیة: ګمانی﴾

تشریح:- دا زموږ دلیلونه دی.① د اهل لغت اتفاق دې.چه خمر صرف د انګورو شراب دی.او ددې دلیل دا دې.چه د خمر استعمال هم د انګورو په دې شرابو کې معروف او مشهور دې.او ددې نه علاوه چې کوم نور شراب دی.د هغې لپاره خپل نومونه دی.لکه سکر، او نقیع وغیره.② د خمر حرمت قطعی او د خمر نه د علاوه شرابو حرمت ظنی دې.که د انګورو شرابو نه علاوه نورو شرابو ته خمر اووئیلې شی.نو بیا به ددې حرمت قطعی منل ضروری وی.حالانکه دا بې دلیله ده.

## د فریق مخالف د دریم دلیل جواب

﴿وَإِنَّمَا سُمِّيَ خَمْرًا لِتَخَمُّرِهِ﴾ او د خمر نوم خمر ایخودې شوې دې.ددې د قوت په وجه ﴿لَا لِمُخَامَرَتِهِ الْعَقْلَ، عَلَى أَنَّ مَا ذَكَرْتُمْ﴾ ددې د عقل پټولو په وجه نه دې ایخودې شوې.علاوه د هغه خبرې نه چې تاسو ذکر کړې ده ﴿لَا يُنَافِي كَوْنَ الِاسْمِ خَاصًّا فِيهِ﴾ هغه د نوم مخصوص کیدو منفی نه ده.په خمر کې ﴿فَإِنَّ النَّجْمَ مُشْتَقٌّ مِنَ النُّجُومِ وَهُوَ الظُّهُورُ،﴾ ځکه چې نجم مشتق دې.د نجوم نه چې دا د ښکاره کیدو په معنی کې دې ﴿ثُمَّ هُوَ اسْمٌ خَاصٌّ لِلنَّجْمِ الْمَعْرُوفِ﴾ بیا نجم د یو مشهور ستوری نوم دې ﴿لَا لِكُلِّ مَا ظَهَرَ﴾ هر هغه شئ نوم نه دې.کوم چې ښکاره وی ﴿وَهَذَا كَثِيرُ النَّظِيرِ﴾ او ددې مثالونه ډیر دی.

حل اللغة* ① تخمر:قوت ② النجم: ښکاره کیدل، یو مشهور ستورې﴾

تشریح:- دا د فریق مخالف د دریم دلیل ځواب دې.چه تاسو اوفرمائیل. چې خمر د ،،مخامرت،، نه مشتق دې. داسې نه ده.بلکه دا د تخمر نه ماخوذ دې.چه ددې معنی توان او تیزوالې دې.او د تیزوالی او توان معنی صرف د انګورو په شرابو کې ده.چه دا د ټولو نه زیات مضبوط او طاقتور دی.نو استدلال باطل شو.اوکه ستاسو خبره اومنلې شی.چه خمر د ،، مخامرة العقل،، نه مشتق دې.بیا به هم ستاسو استدلال تام ( پوره) نه وی.لکه څنګه چې نجم د نجوم نه مشتق دې.چه ددې معنی ښکاره کیدل دی.ددې باوجود هم هر ښکاره شئ ته نجم نشی وئیلې.بلکه دا صرف د ثریا ( ستوری) نوم دې.دغه ډول قاروره د قرار نه مشتق دې.ددې باوجود هر هغه شئ ته قاروره نه وئیلې کیږی.چه په هغې کې څه شئ قرار نیسی.بلکه شیشې او بوتل ته قاروره وئیلې شی.نو ددې نه دا قاعده راووتله.چه د یو شئ د داسې لفظ نه مشتق کیدل، چې هغې کې څه عامه معنی وی.ددې خبرې دلیل نه جوړیږی.چه هغه لفظ د ټولو څیزونو نوم هم وی.دغه ډول که خمر

د ،،مخامرة العقل،، نه مشتق اومنلې شي.بيا به هم دا خبره نه ثابتيږي.چه خمر ( هر ډول نشه ور ځيزونو ته ګڼل دي.او) صرف د انګورو د شرابو نوم نه دې.

## د فريق مخالف د ړومبی او دوهم دليل جواب

> وَالْحَدِيثُ الْأَوَّلُ طَعَنَ فِيهِ يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ او په ړومبی حديث کي يحيٰ بن معين طعن کړې دې وَالثَّانِي أُرِيدَ بِهِ بَيَانُ الْحُكْمِ او دوهم حديث په دې سره د حکم بيان مراد دې ،،إِذْ هُوَ اللَّائِقُ بِمَنْصِبِ الرِّسَالَةِ ځکه چې هم دا د رسالت د منصب لائق دې.

**تشريح:-** دا د فريق مخالف ړومبي او دوهم دليل دې① په ،، کل مسکر خمر ،، سره استدلال صحيح نه دې. ځکه چې يحيٰ بن معين په دې حديث کي طعن کړې دې.② رسول الله ﷺ ددې خبرې بيانولو لپاره نه دې راغلي.چه دا پزه ده، دا غوږ دې.دا خمر دې.ځکه چې شيان خو خلګو ته پخپله معلوم دی.نو مذکوره حديث نه دا مراد نه دې.چه دا خمر دې.کوم چې ددې دواړو نه جوړ شی.بلکه شرعی حکم بيانول دی.چه دا دواړه حرام دی.او ددې موږ هم قائل يو.

## دوهم بحث: خمر ته به خمر کله وئيلې شي؟

> وَالثَّانِي فِي حَقِّ ثُبُوتِ هَذَا الِاسْمِ او دوهم بحث ددې نوم ثابتيدو د حد په بيان کي وَهَذَا الَّذِي ذَكَرَهُ فِي الْكِتَابِ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ او دا کوم چې امام ابو الحسين قدوری رحمه الله په کتاب کي ذکرکړې دی.د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې رحمه الله وَعِنْدَهُمَا إِذَا اشْتَدَّ صَارَ خَمْرًا، او د صاحبينو رحمهما الله په نيز کله چې تيز شی.نو خمر به وی وَلَا يُشْتَرَطُ الْقَذْفُ بِالزَّبَدِ،() او ځګونه راتګ شرط نه دی لِأَنَّ الِاسْمَ يَثْبُتُ بِهِ،ځکه چې د خمر نوم په دې سره ثابتيږي وَكَذَا الْمَعْنَى الْمُحَرِّمُ وَهُوَ الْمُؤَثِّرُ فِي الْفَسَادِ بِالِاشْتِدَادِ او هم دغه ډول هغه معنی کوم چې حرامونکې ده.په سختوالی سره ثابتيږي او معنی د حراموالی په فساد کي موثر ده.

**حل اللغة**① الاشتداد: سختوالی﴾

**تشريح:-** دا په لسو مباحثو کي دوهم بحث دې.چه خمر ته به خمر کله وئيلې شي.نو امام صاحب رحمه الله اوفرمائيل.چه کله چې په دې کي جوش او ټنګوالې پيدا شي.او ځګونه پيل شي.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د ځګونو راتلو نه وړاندې صرف په ټنګوالی سره به دې ته خمر وئيلې شي.صاحبين رحمهما الله فرمايي .چه په ټنګوالی سره دې کي نشه پيدا کيږي.او هم دا د حرمت وجه ده.او نشه په فساد کي موثر ده.نو دا به د ټنګوالی نه روسته د خمر په نوم سره نومول (نامدار)کولې شي.

## د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل

> وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ الْغَلَيَانَ بِدَايَةُ الشِّدَّةِ،او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه جوش راتګ د ټنګيدو پيل ده وَكَمَالُهَا بِقَذْفِ بِالزَّبَدِ وَسُكُونِهِ او پوره ټنګوالې په ځګ راتلو او د جوش په کيناستلو کي دې إِذْ بِهِ يَتَمَيَّزُ الصَّافِي مِنَ الْكَدِرِ ځکه چې ځګ راتلو سره صفا د ګنده نه جلا کيږي ،وَأَحْكَامُ الشَّرْعِ قَطْعِيَّةٌ او د احکام د شرعی قطعی دی،فَتُنَاطُ بِالنِّهَايَةِ كَالْحَدِّ وَإِكْفَارِ الْمُسْتَحِلِّ وَحُرْمَةِ الْبَيْعِ نو ددې مدار به په ختميدو وی.لکه حد ، او حلال ګڼرونکی ته کافر وئيل، او د بيع حرمت وَقِيلَ يُؤْخَذُ فِي حُرْمَةِ الشُّرْبِ بِمُجَرَّدِ الِاشْتِدَادِ احْتِيَاطًا او وئيلی شوی دی.چه نيولې به شي په حرمت د شرابو کي په صرف په ټنګوالی سره ( بغير د ځګ راتلو نه) د احتياط په طور.

---

[1]) هوقول الصالحين رحمهما الله ردالمختار (۵/ ۳۱۸) وتبين ( ۶/ ۴۵۵ والدرالمختار ۹۴/ ۲۴۶ ) والهندية (۵/ ۴۵۹) نقلاعن القول الراجح (۲/ ۳۱۵)-



**حل اللغة**① الصافی: صفا ②.الکدر: ګنده، خيرن③ تناط: مدرا﴾

**تشريح:-** دا د امام صاحب رحمه الله دليل دې.چه د ټنګوالی او د نشې پيل او ابتداء په جوش وهلو سره ده.او ددې کمال ( او پوره والی) په ځګ راتلو سره کيږي.او د جوش په ختميدو سره کيږي.ځکه چې د ځګ راتلو په وجه پورتنې لاندې کيږي.او لاندينې پورته کيږي.چه ددې په وجه هغه خمر کوم چې صفا ستره او خالص وی.جدا کيږي.او کوم چې خراب دی.هغه لاندې کينی. لنډيز د کلام دا چه① مدار په جوش وهلو دې.او ددې پيل صرف جوش وهل دی.او د جوش وهلو انتهاء ځګونه راتګ دی.نو د احکامو مدار په انتهاء باندې ايخودلې کيږي.نو خمر ته به خمر هغه وخت وئيلې شي.هرکله چې دا آخری درجې ته اورسيږي② او دويمه دا چې شرعی احکام قطعی وی.نو ددې مدار هرځائې کي په انتهاء او پوره کيدو باندې ايخودې شی.لکه ځنګه چې سرقه ( غلا) او زنا کي کيږي.دغه ډول به دلته کي هم د حد وجوب، او ددې حلال ګڼرونکی ته کافر وئيل،او ددې بيع حرام ګيدل، ددې ټولو ځيزونو مدار په پوره کيدو او انتهاء باندې ايخودې کيږي.بعضو مشانخو فرمائيلی دی.چه د احتياط تقاضه په څښلو کي دا ده.چه صرف د ټنګيدو په وجه دې ته حرام اووئيلې شی.علامه ابوحفص کبير رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله قول اختيار کړې دې.او هم دا ښکاره ده.او غوره دا ده.چه دا اختلاف صرف د حد په وجوب کي دې.پاتی شو ځکل، نو دا بالاتفاق حرام دی.)

## دريم بحث: د عين خمر حرمت

> وَالثَّالِثُ أَنَّ عَيْنَهَا حَرَامٌ غَيْرُ مَعْلُولٍ بِالسُّكْرِ او دريم بحث دا دې.چه عين خمر حرام دی.چه دا نشې سره معلول نه دی. وَلَا مَوْقُوفٍ عَلَيْهِ او نه په نشې باندې موقوف دی وَمِنَ النَّاسِ مَنْ أَنْكَرَ حُرْمَةَ عَيْنِهَا او په خلګو کي څه داسې دی.چه دوی د عين خمر د حرمت انکار کړې دې وَقَالَ إِنَّ السُّكْرَ مِنْهَا حَرَامٌ او وئيلی ئې دی. چې ددې نشه حرام ده ،،لِأَنَّ بِهِ يَحْصُلُ الْفَسَادُ ځکه چې په نشې سره فساد حاصليږي وَهُوَ الصَّدُّ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَهَذَا كُفْرٌ او دا د الله تعالی د ذکر نه منع کول دی.او دا کفر دې لِأَنَّهُ جُحُودُ الْكِتَابِ ځکه چې دا د کتاب انکار دې فَإِنَّهُ تَعَالَى سَمَّاهُ رِجْسًا ځکه چې کتاب الله کي دا رجس ګرځولې دې وَالرِّجْسُ مَا هُوَ مُحَرَّمُ الْعَيْنِ او رجس هغه دې. چې ددې عين حرام وی وَقَدْ جَاءَتِ السُّنَّةُ مُتَوَاتِرَةً او د تواتر په طريقه حديث وارد شوې دې أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ حَرَّمَ الْخَمْرَ[1]) چې نبی کريم ﷺ خمر حرام ګرځولی دی وَعَلَيْهِ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ،او هم په دې اجماع منعقد شوې ده ،لِأَنَّ قَلِيلَهُ يَدْعُو إِلَى كَثِيرِهِ او ځکه چې ددې لږ ددې ډيرو اړخ ته بوتلونکې دې وَهَذَا مِنْ خَوَاصِّ الْخَمْرِ او دا د خمر د خواصو ځنې دې وَلِهَذَا تَزْدَادُ لِشَارِبِهِ اللَّذَّةُ بِالِاسْتِكْثَارِ مِنْهُ، بِخِلَافِ سَائِرِ الْمَطْعُومَاتِ په دې وجه ددې د اوبو څکونکی لپاره په زياتو څښلو سره مزه زياتيږي.په خلاف د ټولو خوړونکو ځيزونو.

**حل اللغة**① الحجود: انکار② الصد:منع کول ③ الرجس: ګندګی﴾

**تشريح:-** دا په لسو مباحثو کي دريم خائې دې.چه خمر بعينه حرام دې.د نشې وجه نه دې.نو هغه کم مقدار چې دهغې په وجه نشه نه راځی.هغه هم قطعی دې.قدامه بن مطعون او د شام بعضو خلګو نه نقل دی.چه عين خمر حرام نه دی.بلکه ددې نشه حرام ده.ځکه چې فساد صرف نشې سره کيږي.او د فساد نه مراد د الله تعالی د ذکر نه منع کول دی.خو ددوی دا قول کفر دې.ځکه چې دې کي د کتاب الله انکار دې.ځکه چې کتاب کي الله تعالی دا رجس ګرځولې دې.او رجس هغې ته وائی.د کوم چې حرمت عينی وی.بيا په طريقه د تواتر حديث منقول دې.چه نبی کريم ﷺ خمر حرام ګرځولی دی.او هم په دې د امت اجماع منعقد شوې ده.بيا د شرابو د خواصو ځنې دا دې.چه ددې معمولی زياتو اړخ ته بوتلونکې دې.او هم دا وجه ده.چه ددې اوبو

---

[1]) منها حديث أنس بن عمروبن العاص رضي الله عنهما قال سمعت رسول الله ﷺ يقول:إن الله تعالى حرم الخمرالحديث أخرجه أحمد فى المسند(۱۵۸|۲)_

څکونکو ته په زياتو څښلو سره زيات لزت حاصليږي.نو د پيل نه معمولي ( کم مقدار) باندې د زياتو اولګولې شو.او دا حرام اوګرځولی شو.او د خمر نه علاوه نورو نشه ور څيزونو کې دا خبره نشته.چه معمولي مقدار زياتو اړخ ته بوتلونکې وي.دلته د مرغيناني رحمه الله په،، مطعومات،، ونيلو باندې عالمانو اعتراض کړې دې.چه ده دپاره،، سائر المسکرات،، ونيلو پکار وو.

## د خمر معمولي مقدار هم حرام دې

ثُمَّ هُوَ غَيْرُ مَعْلُولٍ عِنْدَنَا بيا دا ( کوم نص چې په حرمت د خمر کې وارد دې) زموږ په نيز غير معلول دې حَتّٰى لَا يَتَعَدّٰى حُكْمُهُ إِلٰى سَائِرِ الْمُسْكِرَاتِ تردې چې ددې حکم به ټولو نشې څيزونو اړخ ته متعدی نه وي وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ يُعَدِّيهِ إِلَيْهَا،او امام شافعي رحمه الله دا حکم ټولو مسکراتو اړخ ته متعدی کړې دې وَهٰذَا أَبْعَدُ او دا قياس لرې دې.

**تشريح**:- د خمر کم ( معمولي) مقدار حرام دې.چه ددې حرمت نص قطعي سره ثابت دې.او دا حرمت معلول نه دې.چه نشه وي.نو حرام دې.ګني حرام نه دې.هرکله چې دا حکم د سره معلول نه دې.نو په دې باندې نور نشاني شيان نشو قياس کولې.چه ددې معمولي هم د خمر پشان حرام دی.خو امام شافعي رحمه الله د خمر حرمت معلول مني.او بيا د حرمت دا حکم ټولو نشې څيزونو اړخ ته متعدی کوي.او فرمائي.چه ددې قليل او کثير هم برابر دې.خو د امام شافعي رحمه الله دا تعليل صحيح نه دې.

لِأَنَّهُ خِلَافُ السُّنَّةِ الْمَشْهُورَةِ ځکه چې د سنت مشهور نه خلاف دې وَتَعْلِيلُهُ لِتَعْدِيَةِ الْاِسْمِ، وَالتَّعْلِيلُ فِي الْأَحْكَامِ لَا فِي الْأَسْمَاءِ او د نوم تعديه لپاره تعليل دې.حالانکه تعليل په احکامو کې وي.اسماء ( نومونو) کې نه وي.

**تشريح**:- ځکه چې ددوی دا تعليل د سنت مشهوره خلاف دې.چه خمر حرام لعينه دی.او د پاتې شرابو نشه حرام ده. دويمه دا چې تعليل په احکامو کې کيږي.په اسماء ( نومونو) کې نه کيږي.او امام شافعي رحمه الله په دې تعليل سره غير خمر ته هم خمر وائي.او بيا په ټولو نشاني څيزونو باندې د خمر حکم جاري کوي.بهرحال تعليل احکامو کې کيږي.په نومونو او لغاتو کې نه کيږي.ځکه چې قياس سره هيڅ تعلق نشته.

## څلورم بحث: د خمر په نجاست غليظه کيدو کښې

وَالرَّابِعُ أَنَّهَا نَجِسَةٌ نَجَاسَةً غَلِيظَةً او څلورم بحث دا دې.چه خمر ناپاک دی.په نجاست غليظه سره كَالْبَوْلِ لِثُبُوتِهَا بِالدَّلَائِلِ الْقَطْعِيَّةِ عَلٰى مَا بَيَّنَّا، لکه متيازې، ددې د نجاست ثابتيدو په وجه، په قطعي دلائلو سره، د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دې.

**تشريح**:- دا په لسو مباحثو کې څلورم بحث دې.چه خمر د متيازو پشان نجاست غليظه دې.ځکه چې نص قطعي دا رجس ګرځولې دې.

## پنځم بحث: د خمر حلال ګڼرونکی په کافر کيدوکښې

وَالْخَامِسُ أَنَّهُ يَكْفُرُ مُسْتَحِلُّهَا لِإِنْكَارِهِ الدَّلِيلَ الْقَطْعِيَّ او پنځم بحث دا دې.چه ددې حلال ګڼرونکې به کافر ګرځولې شي.دده د انکار په وجه، دليل قطعي لره

**تشريح**:- دا پنځم بحث دې.چه کوم کس خمر حلال ګڼري.هغه کافر دې.ځکه چې د نص قطعي منکر دې.

## شپږم بحث: د خمر په غيرمتقوم کيدوکښې

وَالسَّادِسُ سُقُوطُ تَقَوُّمِهَا فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ او شپږم بحث د خمر د تقوم ساقط کيدو دې.د مسلمان په حق کې حَتّٰى لَا يَضْمَنَ مُتْلِفُهَا وَغَاصِبُهَا وَلَا يَجُوزُ بَيْعُهَا تردې چې ددې ضائع کونکې او ددې غاصب به ضامن نه وي.او څخه به ددې بيع جائز وي لِأَنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى لَمَّا نَجَّسَهَا ځکه چې هرکله الله تعالی دا ناپاک اوګرځول فَقَدْ أَهَانَهَا نو الله



تعالی ددې سپکوالې اوفرمائيلو وَالتَّقَوُّمُ يُشْعِرُ بِعِزَّتِهَا او تقوم ( قيمتي کيدل) به ددې عزت ښکاره کول وي وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی إِنَّ الَّذِي حَرَّمَ شُرْبَهَا حَرَّمَ بَيْعَهَا وَأَكْلَ ثَمَنِهَا[1] چې،، کوم ذات د خمر څښل حرام ګرځولی دی.هغه ددې بيع او ثمن خوړل حرام ګرځولی دی وَاخْتَلَفُوا فِي سُقُوطِ مَالِيَّتِهَا او فقهاء ددې د ماليت په سقوط کې اختلاف کړې دې وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ مَالٌ او اصح دا دې.چه دا مال دې لِأَنَّ الطِّبَاعَ تَمِيلُ إِلَيْهَا وَتَضِنُّ بِهَا ځکه چې طبيعتونه دې اړخ ته مائل کيږي.او په دې اړه کې بخل کوی.

**حل اللغة**: ① السقوط: ساقطيدل ② اهانة: سپکوالې ③ التقوم: قيمت لګول

**تشريح**:- دا شپږم بحث دې.چه د مسلمان په حق کې خمر غيرمتقوم مال دې.نو که د يو کس شراب ئې توی کړل.يا ئې غصب کړل.نو د عدم تقوم په وجه به ضمان واجب نه وي.او هم دغه ډول د عدم تقوم په وجه د خمر بيع حرام ده.د عدم تقوم دليل دا دې.چه الله تعالی ددې په ناپاک ګرځولو سره دې ته د سپکوالی ( او بې قدرۍ) قابل فرمائيلی دی.او ددې تقوم به ددې عزت ثابتوی.په دې وجه به بيع جائز نه وي.په حديث کې دی.چه،، کوم ذات خمر څښل حرام کړی دی.هم هغه ذات ددې بيع او ددې ثمن خوړل حرام کړی دی.ددې نه معلومه شوه.چه خمر غير متقوم دې.پاتې شوه دا خبره چې خمر مال دې.او که نه دې؟ په دې کې د فقهاو اختلاف دې.مرغيناني رحمه الله فرمائي.اصح دا دی.چه مال دې.خو غير متقوم دې.ځکه چې دې باندې د مال تعريف صادقيږي.ځکه مال هغې ته وائی.کوم اړخ ته چې د طبعيتونو ميلان ( او شوق) وي.او طبعيت چې د کوم په اړه کې بخل کوی.

## د شرابو بيع باطل ده

وَمَنْ كَانَ لَهُ عَلٰى مُسْلِمٍ دَيْنٌ او کوم مسلمان چې دده په بل مسلمان باندې پور وي فَأَوْفَاهُ ثَمَنَ خَمْرٍ نو هغه پور ادا کړو.د خمر په ثمن سره لَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ نو مسلمان لپاره اخستل حلال نه دی وَلَا لِلْمَدْيُونِ أَنْ يُؤَدِّيَهُ او نه قرضدار لپاره ددې ادا کول حلال دی لِأَنَّهُ ثَمَنُ بَيْعٍ بَاطِلٍ ځکه چې دا د بيع باطل ثمن دی وَهُوَ غَصْبٌ فِي يَدِهِ أَوْ أَمَانَةٌ عَلٰى حَسَبِ مَا اخْتَلَفُوا فِيهِ او دا دده په قبضه کې يا خو غصب دې.او يا امانت دې.د هغې مطابق کوم چې فقهاو په دې کې اختلاف کړې دې كَمَا فِي بَيْعِ الْمَيْتَةِ لکه څنګه چې د مردار په بيع کې دی وَلَوْ كَانَ الدَّيْنُ عَلٰى ذِمِّيٍّ او که پور د ذمی په ذمه وی فَإِنَّهُ يُؤَدِّيهِ مِنْ ثَمَنِ الْخَمْرِ نو هغه پور د خمر په ثمن سره ادا کولای شی وَالْمُسْلِمُ الطَّالِبُ يَسْتَوْفِيهِ او مسلمان غوښتونکې هغه اخستلې شی لِأَنَّ بَيْعَهَا فِيمَا بَيْنَهُمْ جَائِزٌ ځکه چې د خمر بيع د ذميانو ( پخپل) منځ کې جائز ده.

**تشريح**:- د مردار بيع او د شراب بيع باطل ده.او څومره بيوع چې باطل دی.هغې کې چې بائع ته کوم ثمن راغلې دې.نو دا ثمن د بعض فقهاو په نيز غصب دې.او د بعضو په نيز امانت دې.او دواړو سره خپل پور ادا کول جائز نه دی.نو که د يو مسلمان په بل مسلمان باندې پور وي.او قرضدار د خمر په ثمن سره پور ادا کړی.نو نه ئې اخستل جائز دی.او نه ورکول.ځکه چې دا خو يا امانت دې.او يا غصب دې.البته د ذميانو لپاره د خمر معامله خپل منځ کې جائز ده.نو که په يو ذمی باندې د مسلمان قرضه وي.او ذمی د خمر په ثمن سره پور ادا کړی.نو مسلمان لپاره اخستل جائز دی.ځکه چې دا د بيع باطل ثمن نه دې.

## اووم بحث: د خمر نه انتفاع حاصلولو کښې

وَالسَّابِعُ حُرْمَةُ الْاِنْتِفَاعِ بِهَا او اووم بحث د خمر نه انتفاع حرام کيدل دی لِأَنَّ الْاِنْتِفَاعَ بِالنَّجِسِ حَرَامٌ ځکه چې فائده اغستل د نجس شئ نه حرام دی وَلِأَنَّهُ وَاجِبُ الْاِجْتِنَابِ او ځکه چې ددې نه بچ کيدل واجب دی. وَفِي الْاِنْتِفَاعِ بِهِ

[1] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه مسلم فی المساقاة رقم ٦٨)_

اَلْقِرَابُ. او ددې نه نفع حاصلولو کې دې ته نژدې کیدل دی.

تشریح:- دا اووم بحث دې.چه د خمر نه نفع اخستل حرام دی.یعنی څاروو باندې څکل، دوائی او علاج کول، حقنه اخستل، یا د ذکر( یعنی د اندام خاص) په سوری کې اچول، واړه حرام دی.ځکه چې خمر نه لرې کیدل ضروری دی.او ددې نه نفع اخستلو کې دې ته نژدې والې دې.خو دا تعلیل په سوټو ( او خاشنړو) سره ماتیږی.

## اتم بحث: خمر څکونکی باندې د حد لګولو مسئله

وَالثَّامِنُ أَنْ يُحَدَّ شَارِبُهَا او اتم بحث دا دې.چه ددې څکونکی ته به حد لګولې شی وَإِنْ لَمْ يَسْكَرْ مِنْهَا لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اګرچه په دې سره نشه نه وی شوې.د نبی کریمﷺ د فرمان په وجه مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُ چې چا خمر اوڅکل.هغه ته کوړې اولګوئ فَإِنْ عَادَ فَاجْلِدُوهُ (دوه) نو که دوباره اوڅکی.بیا کوړې اولګوئ، فَإِنْ عَادَ فَاجْلِدُوهُ (دوه) نو که بیا اوڅکی.بیا کوړې اولګوئ. فَإِنْ عَادَ فَاقْتُلُوهُ[1] إِلَّا أَنَّ حُكْمَ الْقَتْلِ قَدْ انْتَسَخَ فَبَقِيَ الْ ټوک مَشْرُوعًا نو که بیا اوڅکی.نو هغه قتل کړئ،، مګر دا چې د قتل حکم منسوخ شوې دې.نو کوړې لګول به مشروع پاته پاتې کیږی ،وَعَلَيْهِ انْعَقَدَ إِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ او په دې د صحابو اجماع منعقد شوې ده وَتَقْدِيرُهُ ذَكَرْنَاهُ فِي الْحُدُودِ او د حد مقدار هغه دې.کوم چې موږ د حد په بیان کې ذکرکړې دې.

تشریح:- دا په لسو مباحثو کې اتم بحث دې.چه په خمر څکونکی باندې به حد جاری کولې شی.لکه څنګه چې دې حدیث کې راغلی دی.کوم چې ( متن کې ) تیر شو.البته قتل خو بالاجماع منسوخ دې.نو صرف کوړې لګول مشروع دی.هم په دې د صحابو اجماع ده.چه ددې مقدار آزاد لپاره اتیا کوړې او غلام لپاره څلویښت کوړې دی.په هدایه دوهم ټوک ،، کتاب الحدود،، کې ددې تفصیلی بیان تیرشوې دې.

## نهم بحث: د خمر په پخولو سره د حرمت حکم

وَالتَّاسِعُ أَنَّ الطَّبْخَ لَا يُؤَثِّرُ فِيهَا او نهم بحث دا دې.چه پخول په خمر کې موثر نه دی لِأَنَّهُ لِلْمَنْعِ مِنْ ثُبُوتِ الْحُرْمَةِ ځکه چې پخول د حرمت ثبوت منع کاوه لپاره دې لَا لِرَفْعِهَا بَعْدَ ثُبُوتِهَا د حرمت اوچتولو لپاره نه دې.روستو د ثبوت د حرمت ددې نه ، إِلَّا أَنَّهُ لَا يُحَدُّ فِيهِ مَا لَمْ يَسْكَرْ مِنْهُ عَلَى مَا قَالُوا خو په دې کې به حد نشی لګولې.ترکومه چې په دې سره نشه رانشی.د هغه تفصیل مطابق کوم چې مشائخو فرمائیلې دې لِأَنَّ الْحَدَّ بِالْقَلِيلِ فِي النِّيءِ خَاصَّةً لِمَا ذَكَرْنَا ځکه چې د معمولی مقدار په وجه حد خاص طریقه باندې په کچاؤ کې دې.په هغه وجه کومه چې موږ ذکر کړې ده وَهَذَا قَدْ طُبِخَ او دا پخ کړې شوی دی.

حل اللغة: ① الطبخ: پخول ② النیء: کچه ③ یسکر: نشه کوی

تشریح:- په لسو مباحثو کې دا نهم څانې دې.که خمر پاخه کړې شو.نو ددې حرمت به پاته ساتلې کیږی.ځکه چې پخول د حرمت د ثبوت لپاره مانع دې.خو د ثابت شوی حرمت پورته کونکې نه دې.لکه څنګه چې د حدث نه مانع ده.د حدث پورته کونکې نه ده.البته دومره توپیر دې.چه د پخولو نه روسته چې ترکومه پورې نشه نه وی.حد به نشی لګولې.ځکه چې دا خصوصیت خو د کچه ؤ دې.چه ددې معمولی زیاتو اړخ ته بوتلونکې وی. نو معمولی سره به هم حد ثابتیږی.د پخولو نه روسته ددې دا کیفیت ختمیږی.

## لسم بحث: د خمر نه د سرکې جوړولو حکم

وَالْعَاشِرُ جَوَازُ تَخْلِيلِهَا او لسم بحث د خمر نه د سرکې د جواز دې وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کې د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې وَسَنَذْكُرُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى ،هَذَا هُوَ الْكَلَامُ فِي الْخَمْرِ او موږ به دا نژدې بیان کړو.انشاء

---

[1] - تقدم تخریجه فی الحدود)_



الله تعالی دا وو بحث په خمر کښې.

تشریح:- دا په لسو مباحثو کې آخری بحث دې.چه د خمر نه سرکه جوړول جائز دی.امام شافعی رحمه الله په دې کې اختلاف کوی.مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه ددې ذکر به اوس راځی.دا د خمر په اړه کې بحث وو.کوم چې ختم شو...فتلك عشرة كاملة..

## د انګورو د شیرې بیان

وَأَمَّا الْعَصِيرُ إِذَا طُبِخَ حَتَّى يَذْهَبَ أَقَلُّ مِنْ ثُلُثَيْهِ او بهرحال شیره د انګورو کله چې پخه کړې شی.تردې چې ددې د دوې (دوه) ثلثه نه کم ختم شی وَهُوَ الْمَطْبُوخُ أَدْنَى طَبْخَةٍ او دا هغه دې. چې پخولې شی.معمولی شان پخول وَيُسَمَّى الْبَاذَقَ او نوم ایخودې شی ددې باذوق ( باده) وَالْمُنَصَّفُ وَهُوَ مَا ذَهَبَ نِصْفُهُ بِالطَّبْخِ او منصف او دا هغه دې.چه د پخولو په وجه ددې نیم ختم شوې وی فَكُلُّ ذَلِكَ حَرَامٌ عِنْدَنَا إِذَا غَلَى وَاشْتَدَّ وَقَذَفَ بِالزَّبَدِ نو دا واړه ( باده او منصف دواړه) زموږ په نیز حرام دی.کله چې جوش اووهی.او تیز شی.او ځګ نه ډک شی أَوْ إِذَا اشْتَدَّ عَلَى الِاخْتِلَافِ یا چې تیز شی د مذکوره اختلاف مطابق.

حل اللغة: ① المطبوخ: پخ شوې ② الباذق: باده ③ المنصف: چې نیم نې تلې او ختم شوې وی

تشریح:- د خمر د بحث نه د فراغت نه روسته د طلاء ( د انګورو د شیرې) بیان دې.او ددې نوم باده دې.چه دا معرب کاوه سره باذوق وئیلې شوې دی.او دا واړه د انګورو د شیرې نه جوړیږی.او دا معمولی شان پخولې شی.تردې چې دریو برخو کې د دوې (دوه) برخو نه کم ختم شی.او یو ډول ددې منصف دې.چه ددې په پخولو سره نیم ختم شی.بهرحال دا دواړه قسمونه حرام دی.او دا زموږ مسلك دې.خو حرام به هله وی.کله چې د تیزجوش سره ځګ هم راشی.،، كذا قال الإمام رحمه الله،، او د صاحبینو رحمهما الله په نیز د ځګ راتلو نه بغیر به هم د تیزوالی نه روسته دې ته حرام وئیلې شی.

## د امام اوزاعی رحمه الله نقطه نظر

وَقَالَ الْأَوْزَاعِيُّ او امام اوزاعی رحمه الله فرمائیلی دی إِنَّهُ مُبَاحٌ، چې دا مباح دی وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ الْمُعْتَزِلَةِ او هم دا د بعضو معتبر معتزله قول دې لِأَنَّهُ مَشْرُوبٌ طَيِّبٌ وَلَيْسَ بِخَمْرٍ ځکه چې دا پاك شراب دی.او خمر نه دې ،وَلَنَا أَنَّهُ رَقِيقٌ مُلِذٌّ مُطْرِبٌ او زموږ دلیل دا دې.چه دا نرم ( نری) دی.خوندور دی.خوشحالی راوستونکی دی وَلِهَذَا يَجْتَمِعُ عَلَيْهِ الْفُسَّاقُ او په دې وجه دې باندې فاسقان خلګ راټولیږی فَيَحْرُمُ شُرْبُهُ دَفْعًا لِلْفَسَادِ الْمُتَعَلِّقِ بِهِ نو ددې څښل به حرام وی.د هغې فساد لرې کاوه لپاره کوم چې ددې سره متعلق دې.

تشریح:- موږ مذکوره دواړه شرابونه حرام ګرځولی دی.خو امام اوزاعی رحمه الله جائز ګرځولی دی.او د بعض معتزله هم دا قول دې.او دلیل ددوی دا دې.چه دا خو پاك شراب دی.خمر نه دې.خو موږ دا حرام ګرځولی دی.او ددې دلیل دا دې.چه په دې کې د شرابو پشان نرمی، خوند، او لذت دې.هم دا ( خوند او) مزه ده. په دې وجه خو ددې په څښلو کې فاسقان خلګ لګیا وی.نو ددې فساد لرې کاوه لپاره کوم چې ددې سره متعلق دې.ددې څښل به حرام وی.او فساد دا دې.چه په دې باندې د فاسقانو اجتماع کیږی.او ددې معمولی زیاتو اړخ ته بوتلل کوی.(البته که دوې (دوه) ثلثه ختم شی.او صرف یو ثلث پاته پاتې شی.نو که صرف خوږوالې پیدا شوې وی.نو بالاتفاق ددې څښل حلال دی.اوکله چې په دې کې جوش او عجلی پیدا شی.نو د شیخینو رحمهما الله په نیز حلال دې.او د امام محمد رحمه الله په نیزحلال او جائز دې

## د نقیع تمر( یعنی د کجورو د کچه اوبو) بیان

وَأَمَّا نَقِيعُ التَّمْرِ او بهرحال نقیع تمر وَهُوَ السَّكَرُ او دا نشه ده وَهُوَ النِّيءُ مِنْ مَاءِ التَّمْرِ: أَيِ الرُّطَبِ او دا د لمدو کجورو کچه اوبه دی فَهُوَ حَرَامٌ مَكْرُوهٌ نو دا حرام مکروه دی.

حل اللغة* ① نقيع: رس، نچوړ ② التمر: قجوره ③ الرطب: لونده،﴾

تشريح:- دا د دريم ډول د نقيع تمر بيان دې.چه په دې كي لمدې كجورې اوبو كي اچولې شوې وى.نو ددې حكم دا دې.چه دا حرام مكروه دې.

تنبيه* خو نتائج الافكار كي په دې باندې دا اعتراض شوې دې.چه ددې معمولى شان پخول شرط دى.لكه څنگه چې په معتبرو كتابونو كي ذكر دى.او دلته كي نوم مراد دې.

نكته* شارحينو وئيلى دى.چه د لمدو كجورو شرط ځكه لگولې شوې دې.چه د خوشتو شوو چوارو اوبه چې ورته نبيذالتمر وائى.د شيخينو رحمهما الله په نيز حلال دى.

## د شريك بن عبدالله نقطه نظر او د احنافو رحمهم الله دليل

وَقَالَ شَرِيكُ بْنُ عَبْدِاللهِ او شريك بن عبدالله فرمائيلى دى إِنَّهُ مُبَاحٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا چې دا مباح دى.د الله تعالى د فرمان ﴿ تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا ﴾ ﴿النحل:٦٧﴾ په وجه امْتَنَّ عَلَيْنَا بِهِ الله تعالى ددې په وجه موږ باندې احسان اوزباتلو وَهُوَ بِالْمُحَرَّمِ لَا يَتَحَقَّقُ او احسان زباتل په حرامو كي نه متحقق كيږى وَلَنَا إِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ زموږ دليل د صحابه كرامو رضي الله عنهم اجماع ده وَيَدُلُّ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ(١) او په دې باندې هغه حديث دلالت كوى.كوم چې موږ وړاندې روايت كړې دې وَالْآيَةُ مَحْمُولَةٌ عَلَى الِابْتِدَاءِ او آيت په ابتداء د اسلام باندې محمول دې إِذْ كَانَتِ الْأَشْرِبَةُ مُبَاحَةً كُلُّهَا او (كله) چې واړه قسمونه د شرابونو مباح وو وَقِيلَ أَرَادَ بِهِ التَّوْبِيخَ او وئيلى شوى دى.چه په دې سره زورنه ( يا ملامتيا او توبيخ) مراد ده «مَعْنَاهُ وَاللهُ أَعْلَمُ: تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَتَدَعُونَ رِزْقًا حَسَنًا چې ددې معنى .. والله أعلم.. دا ده.چه تاسو ددې نه سكر جوړه وئ.او ښائسته رزق پريږدئ.

تشريح:- شريك بن عبدالله النخعي زيږيدل سن۹۵هـ، وفات سن۱۷۷هـ د امام صاحب رحمه الله د شاگردانو څخه دې.دوى سكر جائز گرځوى.او دوى د ذكر شوى آيت نه استدلال كوى.لكه څنگه چې ښكاره ده.خو زموږ دليل ددوى خلاف ① د صحابو رضي الله عنهم اجماع ده.② موږ چې وړاندې كوم حديث پيش كړې دې.يعنى حرمت الخمر من هاتين....﴾ په دې سره هم د خمر حرمت ثابت دې.اوس دا آيت په ابتداء د اسلام باندې محمول دې.او دغه وخت واړه شرابونه جائز وو.او بعضو حضراتو وئيلى دى.چه د آيت نه مراد توبيخ ( او ملامتيا) ده.چه د الله تعالى ددې نعمتونو د ټيك استعمالولو په ځائې تاسو ددې نه سكر جوړه وئ.او دده ښائسته رزق پريږدئ.

## د نقيع الزبيب ( يعنى د اوسكو د كچه اوبو) بيان

وَأَمَّا نَقِيعُ الزَّبِيبِ او بهرحال نقيع زبيب وَهُوَ النِّيءُ مِنْ مَاءِ الزَّبِيبِ او دا د اوسكو ( مويزو) كچه اوبه دى فَهُوَ حَرَامٌ إِذَا اشْتَدَّ وَغَلَى نو دا حرام دى.كله چې تيزې شى.او جوش اووهى وَيَتَأَتَّى فِيهِ خِلَافُ الْأَوْزَاعِيِّ او په دې كي د امام اوزاعى رحمه الله اختلاف دې «وَقَدْ بَيَّنَّا الْمَعْنَى مِنْ قَبْلُ او موږ وجه ددې نه مخكي بيان كړې ده.

تشريح:- او بهرحال نقيع زبيب، او دا د اوسكو او مويزو كچه اوبه دى.كله چې په دې كي جوش او عجلى پيدا شى.نو دا حرام دى.امام اوزاعى رحمه الله دا مباح گرځوى.او كوم خواب چې موږ په نقيع تمر كي وركړې دې.هم هغه خواب به ددې هم وى.لنډيز د كلام دا چې د خمر نه علاوه دا واړه د شرابو قسمونه حرام دى.

## د شرابو څلورو اقسامو په حرمت كښې وجه د فرق

(١) كما يعلم من حديث عبدالله بن مسعود رضي الله عنه أخرجه عبدالرزاق فى مصنفه ومن حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه ابن أبى شيبة أنظر للتفصيل نصب الراية:٩١٥)_



إِلَى أَنَّ حُرْمَةَ هَذِهِ الْأَشْرِبَةِ دُونَ حُرْمَةِ الْخَمْرِ خو ددې شرابونو حرمت د خمر د حرمت نه كم دې حَتَّى لَا يَكْفُرَ مُسْتَحِلُّهَا، وَيَكْفُرُ مُسْتَحِلُّ الْخَمْرِ تردې چې ددې حلال گنړلو والا به كافر نه وى.او د خمر حلال گنړلو والا به كافر وى لِأَنَّ حُرْمَتَهَا اجْتِهَادِيَّةٌ، وَحُرْمَةُ الْخَمْرِ قَطْعِيَّةٌ ځكه چې ددې حرمت اجتهادى دې.او د خمر حرمت قطعى دې وَلَا يَجِبُ الْحَدُّ بِشُرْبِهَا حَتَّى يَسْكَرَ او ددې په څښلو سره به حد نه واجبيږى.تردې چې نشه پيدا شى وَيَجِبُ بِشُرْبِ قَطْرَةٍ مِنَ الْخَمْرِ او د خمر په يوه قطره څښلو سره حد واجبيږى وَنَجَاسَتُهَا خَفِيفَةٌ فِي رِوَايَةٍ وَغَلِيظَةٌ فِي أُخْرَى او ددې نجاست په يو روايت كي خفيفه، او په دوهم روايت كي غليظه دې «وَنَجَاسَةُ الْخَمْرِ غَلِيظَةٌ رِوَايَةً وَاحِدَةً او خمر صرف ( نجاست) غليظه دې.يو روايت دې.

تشريح:- د شرابو مذكوره څلور اقسام حرام دى.خو په خمر او نورو شرابونو كي توپير دې.① د خمر حرمت سخت او د نورو شرابونو معمولى دې.② د خمر حلال گنړلو والا كافر دې.او د نورو شرابونو د حلال گنړونكى تكفير به نشى كولې.③ د خمر حرمت قطعى دې.د كتاب الله نه ثابت دې.او د نورو شرابونو ظنى دې.④ د خمر په يو څاڅكى ( قطره) څښلو سره حد واجبيږى.او په نورو شرابونو كي به حد واجبيږى.خو كله چې نشه راشى.⑤ د خمر متعلق صرف يو روايت دې.چه دا نجاست غليظه دې.او د نورو شرابونو په اړه كي دوې (دوه) روايتونه دى① نجاست غليظه دى.② نجاست خفيفه دى.دا ددې ځائې پورې پنځه فرقونه شو.موږ هر يو د سهولت لپاره جلا جلا ذكر كړل.

## د شرابو د بيع او هلاكولو حكم

وَيَجُوزُ بَيْعُهَا، وَيَضْمَنُ مُتْلِفُهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د نورو شرابونو بيع جائز ده.او هلاكونكې به ضامن وى.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز اختلاف دې خِلَافًا لَهُمَا فِيهِمَا د صاحبينو رحمهما الله په دې ( بيع او ضمان) دواړو كي اختلاف دې لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ ځكه چې دا ( غيرخمر) مال متقوم دې وَمَا شَهِدَتْ دَلَالَةٌ قَطْعِيَّةٌ بِسُقُوطِ تَقَوُّمِهَا، بِخِلَافِ الْخَمْرِ او هيڅ دليل قطعى ددې د تقوم پا ساقطيدو باندې شاهد نه دې.په خلاف د خمر غَيْرَ أَنَّ عِنْدَهُ يَجِبُ قِيمَتُهَا لَا مِثْلُهَا عَلَى مَا عُرِفَ سوا ددې خبرې نه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به ددې شرابونو قيمت واجب وى.ددې مثل به ( واجب) نه وى.د هغه تفصيل مطابق كوم چې معلوم شوې دې وَلَا يُنْتَفَعُ بِهَا بِوَجْهٍ مِنَ الْوُجُوهِ او ددې شرابونو څخه به هيڅ نفع نشى حاصلولې.په يوه طريقه هم «لِأَنَّهَا مُحَرَّمَةٌ ځكه چې دا حرام دى «وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَجُوزُ بَيْعُهَا إِذَا كَانَ الذَّاهِبُ بِالطَّبْخِ أَكْثَرَ مِنَ النِّصْفِ دُونَ الثُّلُثَيْنِ او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى.چه ددې بيع جائز ده.كله چې پخولو سره د ختم شوى مقدار نيم نه زيات، ددوې (دوه) ثلث نه كم وى.

حل اللغة* ① متلف: هلاكونكې ② الطبخ: پخول﴾

تشريح:- ⑥ شپږم توپير دا دې.چه د خمر بيع باطل ده.او د نورو شرابونو بيع جائز ده.⑦ اووم توپير د خمر په هلاكونكى باندې ضمان نشته.د نورو شرابو په هلاكونكى باندې ضمان شته دې.خو دا د امام صاحب رحمه الله مذهب دې.د صاحبينو رحمهما الله په نيز ددې بيع هم جائز نه ده.او ددې په هلاكونكى باندې ضمان واجب نه دې.خو امام صاحب رحمه الله فرمائى.چه نور شرابونه مال متقوم دى.او د هيڅ يو دليل قطعى نه دا ثابته نشوه.چه دا مال متقوم نه دې.په خلاف د خمر، چې ددې تقوم ساقط دې.په دې وجه ددې بيع باطل ده.او څوك چې دا ضائع كړى.هغه باندې ضمان نشته.خو مسلمان په حرام كي تصرف نشى كولې.په دې وجه چې كله ضمان واجب شى.نو مثل به واجب نه وى.بلكه د شرابو د قيمت ضمان به واجب وى.البته په دې حكم كي دواړه مشترك دى.چه لكه څنگه چې خمر نه انتفاع جائز نه ده.دغه ډول په نورو شرابونو سره هم هر قسمه انتفاع حرام ده.ځكه چې دا واړه هم حرام دى.د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى.چه د خمر نه علاوه د نورو شرابونو بيع به هغه وخت جائز وى.كله چې دا د دوې (دوه) ثلثه نه كم او د نيمې نه زيات ختم شوې وى.

## د څلور قسمه شرابو نه علاوه د پاته شرابو حکم

وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: او امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې فرمائيلي دی وَمَا سِوَى ذَٰلِكَ مِنَ الْأَشْرِبَةِ فَلَا بَأْسَ بِهِ او
کوم چې ددې نه علاوه شراب دی.هغې کې هيڅ باك نشته قَالُوا: هَذَا الْجَوَابُ عَلَى هَذَا الْعُمُومِ وَالْبَيَانِ لَا يُوجَدُ فِي غَيْرِهِ
مشائخو فرمائيلي دی.چه دا ځواب ددې عموم او بيان مطابق دجامع صغير نه علاوه کې موجود نه دې وَهُوَ
نَصٌّ عَلَى أَنَّ مَا يُتَّخَذُ مِنَ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالْعَسَلِ وَالذُّرَةِ حَلَالٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا ځواب نص دې.په دې خبره چې کوم
شراب جوړولې شی.د غنمو نه، او اوربشو نه، او شهدو، او جوارو نه، حلال دی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز
وَلَا يُحَدُّ شَارِبُهُ عِنْدَهُ وَإِنْ سَكِرَ مِنْهُ او ددوی په نيز ددې په څکونکی باندې به حد نشی لګولې.اګر چې په دې سره
مست شی وَلَا يَقَعُ طَلَاقُ السَّكْرَانِ مِنْهُ بِمَنْزِلَةِ النَّائِمِ او ددې د نشائی طلاق به نه واقع کيږی.د اوده کس په
درجه کې وَمَنْ ذَهَبَ عَقْلُهُ بِالْبَنْجِ وَلَبَنِ الرِّمَاكِ او لکه (مثلاً) هغه کس چې دهغه عقل زائل شوې وی.د بهنګو په
وجه، او د اسپې د پيو په وجه.

حل اللغة:* ① الحنطة: غنم ② الشعير: اوربشې ③ البنج: بنګ ④ لبن: شيدې ⑤ الرماک: اسپه»

تشريح:- امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې دا عبارت ارشاد فرمائيلې دې.کوم چې تير شو.ددې مطلب دا
دې چه د ذکرشوی څلورو اقسامو نه علاوه کوم چې نور شراب دی.لکه د غنمو او اوربشو وغيره هغې کې
هيڅ باك نشته.په دې باندې فخرالاسلام وغيره د جامع صغير په شروحو کې فرمائيلي دی.چه لکه څنګه
امام محمد رحمه الله عام انداز دلته کې اختيار کړې دې.پخپلو نورو کتابونو کې ئې دا عموم نه دې بيان
کړې.بيا د امام صاحب رحمه الله په نيز د ذکر شوی څلورو اقسامو نه علاوه چې کوم شراب دی.هغه حلال دی.او
ددې په څکونکی باندې به حد نه وی.اګرچه نشه هم شی.او ددې د څښلو په وجه که مست شی.او طلاق
ورکړی.نو طلاق به هم نه واقع کيږی.لکه چې اوده سړې طلاق ورکړی.يا هغه سړې طلاق ورکړی.کوم چې په
بهنګو يا د اسپې په پيو سره متاثر شی.او دده عقل زائل شی.

## په ذکر شوې مسئله کښې د امام محمد رحمه الله نقطه نظر

وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ حَرَامٌ او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه دا واړه حرام دی وَيُحَدُّ شَارِبُهُ او ددې په څکونکی باندې به
حد لګولې شی.کله چې په دې سره مست شی وَيَقَعُ طَلَاقُهُ إِذَا سَكِرَ مِنْهُ او دده طلاق به واقع کيږی.کله چې دې
سره مست شی كَمَا فِي سَائِرِ الْأَشْرِبَةِ (١) لکه څنګه هغه ټولو شرابو باندې کوم چې حرام دی.

تشريح:- کوم چې وړاندې تير شو.هغه د امام صاحب رحمه الله قول وو.او امام محمد رحمه الله فرمائی.چه دا هم حرام
دی.او څوك چې دا اوڅکی.نو هغه باندې به حد لګولې شی.په دې شرط چې نشه شوې وی.او دغه ډول کله
چې شراب اوڅکی.او مست شی.او ښځې ته طلاق ورکړی.نو دده طلاق به هم واقع کيږی.او د ټولو حرامو
شرابو هم دا حکم دې.(ياد ساتئ: چې فتوی د امام محمد رحمه الله په قول ده)

## د امام ابويوسف رحمه الله د خپل ړومبی قول نه رجوع

وَقَالَ فِيهِ أَيْضًا: او امام محمد رحمه الله جامع صغير کې دا هم وئيلې دی كَانَ أَبُو يُوسُفَ يَقُولُ: مَا كَانَ مِنَ الْأَشْرِبَةِ
يَبْقَى بَعْدَ مَا يَبْلُغُ عَشَرَةَ أَيَّامٍ وَلَا يَفْسُدُ چې امام ابويوسف رحمه الله فرمائيلی وو.چه په شرابو کې کوم (شراب) د جوش
وهلو نه روسته لس ورځو پورې پاته پاتې شی.او خراب نشی فَإِنِّي أَكْرَهُهُ نو زه دا مکروه (حرام) ګنړم ثُمَّ رَجَعَ
إِلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله بيا د امام ابوحنيفه رحمه الله قول ارخ ته رجوع اوکړله وَقَوْلُهُ الْأَوَّلُ مِثْلُ قَوْلِ مُحَمَّدٍ او د امام

(١)هو هذا قول محمد كذا في الكفاية (٩/٣٢) وتبيين الحقائق (٦/٤٧) وملتقى الابحر (٤/٤٥٠) نقلا عن القول الراجح (٢/٣١٦)-



ابويوسف رحمه الله ړومبې قول د امام محمد رحمه الله د قول پشان دې رحمه الله أَنَّ كُلَّ مُسْكِرٍ چې هر مسکر (نشه
ورکونکې) حرام دې حَرَامٌ إِلَّا أَنَّهُ تَفَرَّدَ بِهَذَا الشَّرْطِ خو امام ابويوسف رحمه الله په دې شرط کې متفرد دې وَمَعْنَى قَوْلِهِ: يَبْلُغُ:
يَغْلِي وَيَشْتَدُّ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ وَلَا يَفْسُدُ: لَا يَحْمُضُ او د امام محمد رحمه الله د قول يبلغ معنی ،،يغلی،، او،،يشتد،، ده.او ددوی د
قول ،،ولا يفسد،، معنی ،،لا يحمض،، ده وَوَجْهُهُ أَنَّ بَقَاءَهُ هَذِهِ الْمُدَّةَ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَحْمُضَ دَلَالَةُ قُوَّتِهِ وَشِدَّتِهِ او ددې وجه دا
ده.چه دې مودې پورې پاته پاتې کيدل د تريو (ترش) کيدو نه بغير وی.ددې د قوت او تيزوالی دليل دې،
فَكَانَ آيَةَ حُرْمَتِهِ نو دا ددې د حرمت نښانه ده ،وَمِثْلُ ذَلِكَ يُرْوَى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (١) او هم ددې پشان د ابن
عباس رضي الله عنهما نه نقل دی.

حل اللغة:* ① الحمض: ترشوالی ② المدة: موده، وخت ③ شدة: سختوالی» (؟)جاری

تشريح:- يعنی په جامع صغير کې امام محمد رحمه الله دا هم فرمائيلی دی.چه مخکې د امام ابويوسف رحمه الله مسلك
دا وو.چه دا شرابونه د جوش او تيزوالی نه روسته لس ورځو پورې پاتې شی.او خراب نشی.نو دا به ئې حرام
ګنړل.بيا امام ابويوسف رحمه الله د امام صاحب رحمه الله قول ارخ ته رجوع اوکړله.او د امام ابويوسف رحمه الله ړومبی قول
د امام محمد رحمه الله دقول پشان دې.چه هر مسکر حرام دې.يعنی د امام محمد رحمه الله په نيز هر مسکر حرام
دې.او هم دا به مخکې امام ابويوسف رحمه الله فرمائيل.يعنی کوم قول چې اوس ددوی تيرشوې دې.ددې انجام
هم دا دې.چه دا قول د امام محمد رحمه الله د قول پشان دې.نو امام ابويوسف رحمه الله يوه خبره زياتی کړې ده.چه هغه
د امام محمد رحمه الله په قول کې نشته.يعنی هم دا کومه چې ذکر شوه.چه لسو ورځو پورې شراب نه خرابيدل
شرط دی.او د لسو ورځو شرط لګولو وجه دا ده.چه هرکله دا شراب لس ورځې پاتی شو.او تراوه (ترش)
نشو.نو دا ددې شرابو د قوت او تيزوالی دليل دې.چه دا د حرمت نښانه هم ده.کوم شرط چې د امام
ابويوسف رحمه الله نه نقل دې.هم دغه ډول د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم نقل دې.خو د ابن عباس رضي الله عنهما دا اثر
هيڅ چرته ملاؤ نشو.

## په خمر او غيرخمر کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله حد مقررول

وَأَبُو حَنِيفَةَ يَعْتَبِرُ حَقِيقَةَ الشِّدَّةِ عَلَى الْحَدِّ الَّذِي ذَكَرْنَاهُ فِيمَا يَحْرُمُ أَصْلُ شُرْبِهِ او امام ابوحنيفه رحمه الله اعتبار کوی.د حقيقی
تيزوالی،د هغه حد په مقدار باندې کوم چې مونږ ذکرکړې دې.په هغه شرابو کې چې دهغې اصل څښل حرام
دی وَفِيمَا يَحْرُمُ السُّكْرُ مِنْهُ عَلَى مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او په هغې کې د کوم چې سکر (نشه) حرام دې.د هغه
تفصيل مطابق کوم چې به مونږ انشاء الله بيان کړو.

تشريح:- امام صاحب رحمه الله په خمر او غيرخمر کې د حقيقی تيزوالی اعتبار کوی.لکه څنګه چې تير شو. چې د
جوش او تيزوالی سره ځګ هم راشی.نو هله به حرام وی.که خمر وی.اوکه غيرخمر وی.دواړو کې هم دا حد
مقرر دې.ددې نور تفصيل به روستو راشی.

## د امام ابويوسف رحمه الله رجوع

وَأَبُو يُوسُفَ رَجَعَ إِلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ او امام ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله قول ارخ ته رجوع کړې ده فَلَمْ يُحَرِّمْ
كُلَّ مُسْكِرٍ بيا دوی هر مسکر حرام نه دی ګرځولی ،وَرَجَعَ عَنْ هَذَا الشَّرْطِ أَيْضًا او ددې شرط نه ئې هم رجوع کړې
ده.

تشريح:- يعنی امام ابويوسف رحمه الله د خپل مذکوره قول نه، او ور سره د مذکوره شرط نه،، چې لس ورځو پورې
ساتلو سره خراب نشی،، رجوع فرمائيلې ده.او د هغه قول قائل شو.کوم چې د امام صاحب رحمه الله مسلك

(١) غربه الزيلعی رحمه الله ثم أخرج عن ابی عباس رضي الله عنهما قال النبيذ الذی بلغ فسد وأما ما زاده علی طول الترک جودة فلا خيرفيه
(نصب الراية:١٠١٥)_

دي.چه ذکرشوی شرابونه حرام نه دی.

### د نبیذ تمر او نبیذ زبیب د معمولي شان پخولو او څکلو حکم

وقال في المختصر:او امام ابو الحسين قدوري رحمه الله په مختصر کي فرمائيلی دی ونبيذ التمر والزبيب اذا طبخ کل واحد منهما ادنى طبخة حلال او نبيذ تمر او نبيذ زبيب کله چې دې کي هر يو معمولي شان پاخه کړې شی.نو حلال دی وان اشتد اګرچه جوش اووهي اذا شرب منه ما يغلب على ظنه کله چې دا اوڅکی دومره مقدار چې دده غالب ګمان دا وی انه لا يسكره من غير لهو ولا طرب چې دا به نشه نه کوی.( کله چې اوڅکی) بغير د مشغولتيا او خوشحالي ( حاصلولو) نه وهذا عند ابي حنيفة وابي يوسف او دا د شيخينو رحمهما الله په نيز دی رحمهما الله عند محمد والشافعي حرام والكلام فيه كالكلام في المثلث العنبي او د امام محمد او امام شافعي رحمهما الله په نيز حرام دی. او کلام په دې کي ، د انګورو د دریمې برخې (حصې) پاتې شوی کي د کلام پشان دې ونذكره ان شاء الله تعالى او دا به موږ انشاء الله ذکر کړو.

حل اللغة* ① نبیذ: رس،نچوړ ② الزبيب: اوسکي﴾

تشریح:- نبیذ تمر او نبیذ زبیب کله چې دا معمولي شان پاخه کړې شی.د شیخینو رحمهما الله په نیز حلال دی.خو① روميې شرط معمولي شان پخول دی.② دوهم شرط چې دومره مقدار اوڅکی.چه په دې سره نشه نه راځي③دريم شرط د څښلو مقصد مشغولتيا او خوشحالي حاصلول نه وی.بلکه د بدن توان وی.او د امام محمد او امام شافعي رحمهما الله په نيز حرام دی.لکه د انګورو اوبه کله چې پخې کړې شی.او ددې دوې (دوه) ثلثه ختمې شی.په دې کي هم دا اختلاف دې.چه ددې بيان روسته راروان دې.

### د کجورو او اوسکو لړد شرابو حقيقت او ددې حکم

قال امام ابو الحسين قدوري رحمه الله اوفرمائيل ولا باس بالخليطين لما روي عن ابن زياد او خلیطين (کجورې او انګور ملاؤ شوی) کي هيڅ باك نشته په دې وجه چې د ابن زياد نه نقل دی انه قال: سقاني ابن عمر رضي الله عنه شربة چې ابن عمر رضي الله عنهما په ما يو شربت اوڅښلو ما كدت اهتدي الى منزلي زه نژدې نه وو.چه خپل کور والا ته اورسيږم فغدوت اليه من الغد بيا زه په راروانه ورځ ابن عمر رضي الله عنهما ته لاړم فاخبرته بذلك ما هغوی ته ددې خبر ورکړو فقال: ما زدناك على عجوة وزبيب (١) نو وې فرمائيل.زيات نکړل موږ تا ته په کجورو او اوسکو باندې من الخليطين وكان مطبوخا او دا خليطين دی.او دا پاخه کړې شوی وو لان المروي عنه حرمة نقيع الزبيب (٢) خکه چې د ابن عمر رضي الله عنهما نه د نقيع الزبيب حرمت نقل دې وهو النيئ منه او دا د اوسکو کچه اوبه دی وما روي انه عليه الصلاة والسلام او حد نقل دې.د نبي کريم ﷺ نه نهى عن الجمع بين التمر والزبيب والزبيب والرطب والرطب والبسر (٣) چې هغوی ﷺ منع فرمائيلې ده.،، د جمع کاوه د چوارو او اوسکو نه.او د اوسکو او د کجورو ، او د کجورو او جوارو په منځ کي «محمول على حالة الشدة وكان ذلك في الابتداء دا د کاختی (قحط) په حالت باندې محمول دې.او دا خبره په پيل د اسلام کي وه.

حل اللغة* ① الرطب: قجورې ② البسر جوارې ③ عجوة: د قجورې يو ډول دې چې ډيرښه ډول دې﴾

تشریح:- د خليطينو حقيقت دا دې.چه کجورې او انګور، يا اوسکې او کجورې ملاوکړې شی.او شربت جوړ

---

(١) اخرجه محمد رحمه الله في كتاب الآثار (نصب الراية:١٠١٥)_

(٢) غريبه الزيلعي رحمه الله (نصب الرايه:١٠١٥)_

(٣) - من حديث جابر رضي الله عنه اخرجه البخاري في الأشربة باب ٨ ومسلم في الأشربة رقم ١٧ وأبوداود في الأشربة باب ٨ والترمذي في الأشربة باب ٩ والنسائي في الأشربة باب ٩ وابن ماجه في الأشربة باب ١١)_



کړې شی.او دا حلال دی.په دې شرط چې معمولي شان پوخ کړې شی.لکه څنګه چې ابن زياد فرمائيلی دی.چه په ما ابن عمر رضي الله عنهما يو شربت اوڅښلو .هغې سره زما دا حالت جوړ شو.چه کوره پورې تلل راته ګران شو.په بله ورځ ما هغوی ته دا واقعه بيان کړله.نو وې فرمائيل.چه موږ تا ته د کجورو او اوڅکو نه بغير زيات نه دی څه نه دی څکولی.دې ته خليطين وائی.او دا پخکړې شوی هم وو.چه ددې دليل دا دې.چه د ابن عمر رضي الله عنهما نه نقل دې.چه د اوڅکو وغيره کچه اوبه حرام دی.نو ددوی ددې خبرې نه معلومه شوه.چه دا پخکړې شوی وو.ګنی هغوی به دا په ابن زياد باندې څنګه څکل.

که څوك دا اعتراض اوکړی چې تاسو خليطينو ته جائز وايئ.حالانکه حديث کي ددې ممانعت راغلې دې.چه انګور او چوارې او انګور اوکجورې او کجورې او چوارې ملاؤ ( يوځائي) استعمال کړې شی؟نو د دې خواب دا دې چې دا ممانعت په ابتداء د اسلام کي هغه وخت وو.کله چې د کاختی (قحط) زمانه وه.او مقصد دا وو.چه دا مه جمع کوئ.بلکه په يو باندې اکتفاء ( او بسوالي) کوئ.او دوهم غريبانانو ته ورکوئ.

### د شهدو، انځرانو، د جوارو او اوربشو د نبيذو حکم

قال امام ابو الحسين قدوري رحمه الله اوفرمائيل ونبيذ العسل والتين ونبيذ الحنطة والذرة والشعير حلال وان لم يطبخ او د شهدو او انځرانو نبيذ او د غنمو او جوارو او د اوربشو نبيذ حلال دی. اګرچه پاخه نکړې شی وهذا عند ابي حنيفة وابي يوسف رحمهما الله او دا شيخينو رحمهما الله په نيز دی ،اذا كان من غير لهو وطرب لقوله عليه الصلاة والسلام کله چې د لوبو او خوشحالولو نه بغير وی.د نبي کريم ﷺ د فرمان په وجه چې الخمر من هاتين الشجرتين،(١) خمر ددې دواړو ونو نه جوړيږی واشار الى الكرمة والنخلة او انګورو او کجورو اړخ ته ئې اشاره اوکړله خص التحريم بهما او نبي کريم ﷺ تحريم دې دواړو سره خاص کړو والمراد بيان الحكم او مراد حکم بيانول دی.

حل اللغة* ① العسل:شهد② التين: انځر ③ الحنطة: غنم ④ الذرة:چواره ⑤ الشعير:اوربشې﴾

تشریح:- دا واړه ذکر شوی نبيذ د شيخينو رحمهما الله په نيز حلال دی.اګرچه پخکړې شوې هم نه وی.خو شرط دا دې.چه د لهو او خوشحالولو نه بغير د بدن د توان لپاره ئې استعمال کړی.وړاندې تيرشوی دی.چه نبي کريم ﷺ د احکامو د بيان لپاره راليګلې شوې دې.او نبي کريم ﷺ چې کوم ارشاد فرمائيلې دې. الخمر من هاتين..... ددې مطلب دا دې.چه کوم شراب حرام دی.هغه د انګورو او کجورو نه جوړولې شی.نو ددې نه معلومه شوه.چه کوم د شهدو او انځيرانو وغيره نه جوړولې شی.نو هغه به حرام نه وی.

### د شيخينو رحمهما الله په نيز د پخولو شرط

ثم قيل يشترط الطبخ فيه لاباحته بيا ونيلی شوی دی.چه په دې کي پخول شرط دې.ددې د جواز لپاره ،وقيل لا يشترط وهو المذكور في الكتاب او ونيلی شوی دی.چه شرط نه دې.او هم دا په کتاب کي ذکر دی ،لان قليله لا يدعو الى كثيره كيفما كان خکه چې ددې لږ ډيرو اړخ ته بلونکی نه دی.چه څنګه هم وی.( يعنی که پخکړې شوی اوکه نه وی).

تشریح:- د شيخينو رحمهما الله په نيز ددې نبيذو د حلت لپاره آيا پخول شرط دی؟ نو په دې کي دوې (دوه) قوله دی① شرط دی.ګنی بيا به حلال نه وی.② شرط نه دې.لکه څنګه چې قدوري کي ددې صراحت دې.دويمه خبره دا ده.چه ددې قليل کثير اړخ ته بلونکی نه دی.که کچه وی.او که پاخه وی.

### د غنمو او اوربشو نه جوړشوو شرابو سره په نشه راتلو د حد حکم

وهل يحد في المتخذ من الحبوب اذا سكر منه؟او آيا حد به لګولې شی.په هغه شرابو کي کوم چې د دانو نه جوړ کړې

---

(١) - تقدم في أول الباب)_

شوي وي. کله چې په دې سره مست شي قِيلَ لَا يُحَدُّ نو ونيلې شوي دي. چه حد به نشي لګولې وَقَدْ ذَكَرْنَا الْوَجْهَ مِنْ قَبْلُ او موږ ددې وجه مخکې ذکر کړې ده قَالُوا: وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يُحَدُّ مشائخو فرمائيلي دي. او اصح دا دې. چه حد به لګولې به شي «فَإِنَّهُ رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ فِيمَنْ سَكِرَ مِنَ الْأَشْرِبَةِ خکه د امام محمد رحمه الله نه نقل دي. د هغه سړي په اړه کې کوم چې شرابو سره مست شو أَنَّهُ يُحَدُّ مِنْ غَيْرِ تَفْصِيلٍ چه هغه ته به حد لګولې شي. بغير د تفصيل نه «وَهَذَا لِأَنَّ الْفُسَّاقَ يَجْتَمِعُونَ عَلَيْهِ فِي زَمَانِنَا اجْتِمَاعَهُمْ عَلَى سَائِرِ الْأَشْرِبَةِ، بَلْ فَوْقَ ذَلِكَ او دا حد په دې وجه دې. چه فاسقان راجمع کيږي. په دې باندې زموږ په زمانه کې. ددوی د راجمع کيدو پشان په ټولو شرابو باندې، بلکه ددې نه هم زيات.

حل اللغة* ① الحبوب: جمع د حبة: دانه ② المتخذ: جوړ کړې شوي﴾

تشريح:- د غنمو او اوربشو وغيره نه چې کوم شراب جوړولې شي. نو که د هغې په څښلو سره نشه پيدا شوه. نو حد به لګولې شي. او که نه؟ نو په دې کې دوې (دوه) قوله دي.① فقيه ابو جعفر فرمائي. چه حد به نشي لګولې. خکه چې دا د بهنګو او د اسپې د پيو په مرتبه کې دي.② او دوهم قول دا دې. چه حد به لګولې شي. او هم دا اصح دي. خکه د امام محمد رحمه الله نه نقل دي. چه کوم سړې د خمر نه علاوه په نورو شرابو سره په نشه کې شو. نو په ده به حد لګولې شي. دا د امام محمد رحمه الله د تفصيل نه بغير فرمائيلي دي. يعني په دې کې دا تفصيل نشته. چه شراب د دانو نه جوړشي. نو دا حکم نشته. او که د شهدو نه جوړ شي. نو شته. او د حد د وجوب يوه وجه دا هم ده. چه ددې په څښلو کې فاسقان خلګ مشغوليږي. او دا هم دوی د نورو شرابو پشان څکې. نو د فساد دفع کاوه لپاره حد واجبيدل پکار دي.

## د پيو نه جوړ شوو شرابو څکلو سره د حد لګولو حکم

وَكَذَلِكَ الْمُتَّخَذُ مِنَ الْأَلْبَانِ إِذَا اشْتَدَّ او هم دغه ډول هغه شراب، کوم چې د پيو نه جوړ کړې شي. کله چې دا جوش اووهي. فَهُوَ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ نو دا هم په دې اختلاف باندې دی وَقِيلَ: إِنَّ الْمُتَّخَذَ مِنْ لَبَنِ الرَّمَاكِ او ونيلې شوي دي. چه کوم شراب د اسپې د پيو نه جوړ کړې شي لَا يَحِلُّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ اعْتِبَارًا بِلَحْمِهِ هغه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز حلال نه دی. ددې په غوښې باندې قياس کاوه سره إِذْ هُوَ مُتَوَلِّدٌ مِنْهُ خکه چې شيدې د غوښې نه پيدا کيږي قَالُوا: وَالْأَصَحُّ مشائخو فرمائيلي دي. او اصح دا دی. چه حلال دی. «أَنَّهُ يَحِلُّ، لِأَنَّ كَرَاهَةَ لَحْمِهِ لِمَا فِي إِبَاحَتِهِ مِنْ قَطْعِ مَادَّةِ الْجِهَادِ خکه چې ددې د غوښې کراهت په دې وجه دې. چه ددې په جواز کې ماده د جهاد ختمول دي أَوْ لِاحْتِرَامِهِ فَلَا يَتَعَدَّى إِلَى لَبَنِهِ يا ددې د احترام په وجه، نو دا حکم به متعدی نه وی. ددې د پيو اړخ ته.

حل اللغة* ① الالبان: جمع د لبن، شيدې شودۀ ② الرماك: اسپه ③ لحم: غوښه﴾

تشريح:- کوم شراب چې د پيو نه جوړ کړې شوي وي. نو د نشې په صورت کې به حد واجب وی او که نه؟ نو په دې کې هم د تيرشوو پشان دوې (دوه) قوله دی. او بل قول دلته کې دا هم دې. د اسپې د پيو نه جوړ شوي شراب د امام صاحب رحمه الله په نيز حلال نه دی. د اسپې په غوښه باندې قياس کاوه سره، خکه چې شيدې د غوښې نه پيدا کيږي. خو مشائخ فرمائي. اصح دا دی. چه حلال دی. او د اسپې د غوښې کراهت يا خو ددې د احترام په وجه دې. يا په دې وجه دې. چه ماده (او آله) د جهاد ختمه نشي. او دا وجه په پيو کې نشته. خکه چې پيو څښلو سره د جهاد ماده نه ختميږي.

## د انګورو شيره چې پخولو سره دوې (دوه) حصې ختم شي نو ددې حکم

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله او فرمائيل وَعَصِيرُ الْعِنَبِ إِذَا طُبِخَ حَتَّى ذَهَبَ ثُلُثَاهُ وَبَقِيَ ثُلُثُهُ حَلَالٌ وَإِنِ اشْتَدَّ او د انګورو شيره چې کله پخه کړې شي. تردې چې ددې دوې (دوه) ثلثه ختم شوې وي. او يو ثلث پاته پاتې شي. نو دا حلال دی. اګرچه جوش اووهي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا د شيخينو رحمهما الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ



وَمَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ: حَرَامٌ(١) او فرمائيلي دې امام محمد، امام مالك، او امام شافعي رحمهم الله چې حرام دی وَهَذَا الْخِلَافُ فِيمَا إِذَا قَصَدَ بِهِ التَّقَوِّيَ او دا اختلاف په دې صورت کې دې. کله چې څکونکې د قوت حاصلولو اراده اوکړی أَمَّا إِذَا قَصَدَ بِهِ التَّلَهِّيَ بهرحال کله چې دې اراده اوکړی. د لهو (او عبث) «لَا يَحِلُّ بِالِاتِّفَاقِ نو بالاتفاق حلال نه دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ مِثْلُ قَوْلِهِمَا او د امام محمد رحمه الله نه نقل دي. د شيخينو رحمهما الله د قول پشان «وَعَنْهُ أَنَّهُ كَرِهَ ذَلِكَ او د امام محمد رحمه الله نه (دا هم) نقل دي. چه دوی دا مکروه ګرخولی دی «وَعَنْهُ أَنَّهُ تَوَقَّفَ فِيهِ او د امام محمد رحمه الله نه نقل دي. چه دوی په دې کې توقف کړې دې.

حل اللغة* ① التلهي: بازې کول ② اشتد: سخت شي﴾

تشريح:- مرغيناني رحمه الله وړاندې وعده کړې وه. چه موږ به مثلث عنبی حکم بيانوو. دا هم هغه د مثلث عنبی مسئله ده. چه د انګورو نچوړ شوې رس دومره پوخ کړې شي. چه په دريو کې دوې (دوه) برخې (حصې) ختمې شي. او صرف يوه برخه پاته پاتې شي. او په دې کې جوش او عجلی راغلې وی. نو په دې کې اختلاف دې. شيخينو رحمهما الله دا جائز ګرخولې دې. کله چې مقصد په طاعاتو به قوت حاصلول وی. او که عبث او خوشحالی مقصد وی. نو بالاتفاق حرام دی. او امام محمد، امام مالك، او امام شافعي رحمهم الله دا حرام ګرخوی. او د امام محمد رحمه الله په قول باندې فتوی ده. د امام محمد رحمه الله نه درې نور روايات هم نقل دی ① پشان د شيخينو رحمهما الله ② مکروه ③ توقف.

## د امام محمد رحمه الله دليل

لَهُمْ فِي إِثْبَاتِ الْحُرْمَةِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ددوی ټولو دليل د حرمت په ثابتولو کې د نبی کريم ﷺ فرمان دې كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ(٢) چه،، هر مسکر خمر دې وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبی کريم ﷺ فرمان دې أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ(٣) چې ،، د کوم کثير مسکر وی. د هغې قليل حرام دې مَوْيُرْوَى عَنْهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبی کريم ﷺ نه نقل دی، إِذِ الْعَطْفُ لِلْمُغَايَرَةِ مَا أَسْكَرَ الْجَرَّةُ مِنْهُ فَالْجُرْعَةُ مِنْهُ حَرَامٌ(٤)، چې ،، د کوم يو منګې مسکر وی. د هغې يو ګوټ حرام دې وَلِأَنَّ الْمُسْكِرَ يُفْسِدُ الْعَقْلَ او خکه چې مسکر (نشه راوستونکې) عقل فاسده وی فَيَكُونُ حَرَامًا قَلِيلُهُ وَكَثِيرُهُ كَالْخَمْرِ نو دا به حرام وی. ددې قليل او کثير پشان د خمر.

حل اللغة* ① الجرة: منګې ② الجرعة: ګوټ﴾

تشريح:- دا د امام محمد رحمه الله وغيره دليل دې. چه په دې کې درې حديثونه او يو عقلی دليل دې ① ،، كل مسكر خمر ،، نو لږ او ډير به ئې برابر وی. ② د کوم چې زيات مقدار نشه راولی. د هغې لږ حرام دی. ③ د کوم چې يوه چاټئ نشه راولی. د هغې يو ګوټ هم حرام دې. ④ عقلی دليل خمر چونکه مفسد د عقل دی. نو ددې لږ او ډير برابر دی. او چونکه په مثلث کې هم نشه ده. او نشه عقل خرابه وی. نو ددې به هم قليل او کثير او حرام وی.

---

[1] - هوقول محمد رحمه الله كذافي ملتقى الابحر (٤/ ٢٥٠) وردالمختار (٥/ ٣٢٤) والدرالمنتقى (٤/ ٢٥٠) ومجمع الانهر (٤/ ٢٥٠) نقلاعن القول الراجح (٢/ ٣١٨)-

[2] - تقدم تخريجه فی اول الباس

[3] - من حديث عمروبن شعيب عن ابيه عن جده رضی الله عنه اخرجه النسائی فی الاشربة باب ٢٥ رقم ٥١٨٠ وابن ماجه فی الاشربة باب ١٠ رقم ٣٣٩٤

[4] - قال الزيلعي رحمه الله هذه رواية غريبة لكن معناها فی حديث عائشة رض ما اسكر الفرق فملا الكف منه حرام اخرجه ابوداؤد نصب الرية ١٥١٥

### د شیخینو رحمهما الله دلیل

وَلَهُمَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د شیخینو رحمهما الله دلیل د نبی کریم ﷺ فرمان دې حُرِّمَتِ الْخَمْرُ لِعَيْنِهَا چې خمر حرام لعینه دي وَيُرْوَى بِعَيْنِهَا قَلِيلُهَا وَكَثِيرُهَا[1] او نقل دی. بعینها ددې قلیل او کثیر وَالسُّكْرُ مِنْ كُلِّ شَرَابٍ او د هر شراب سکر (نشه راوستونکې) حرام دې خَصَّ السُّكْرَ بِالتَّحْرِيمِ فِي غَيْرِ الْخَمْرِ نبي کریم ﷺ سکر خاص کړو. تحریم سره، په غیر خمر کې إِذِ الْعَطْفُ لِلْمُغَايَرَةِ ځکه چې عطف مغایرت لپاره وی وَلِأَنَّ الْمُفْسِدَ هُوَ الْقَدَحُ الْمُسْكِرُ او مفسد هم دا مسکر (نشه راوستونکې) پیالۍ ده، وَهُوَ حَرَامٌ عِنْدَنَا او دا زموږ په نیز حرام دی.

حل اللغة: ① القدح: پیالۍ

تشریح:- دا د شیخینو رحمهما الله دلیل دې. چه دې کې یو حدیث دې. او دوهم عقلي دلیل دې ① خمر حرام لعینه دی. ددې قلیل او کثیر حرام دې. او د هرشراب مسکر حرام دې. نو عطف چونکه د مغایرت تقاضه کوی. نود حدیث نه ثابته شوه. چه د خمر عین حرام دې. او د غیرخمر سکر (نشه راوستونکې) حرام دې. او د سکر نه مخکې حلال دی. ② که یوکس ته په پنځو پیالو سره نشه راځی. نو د پیل څلور پیالۍ به حلالې وی. او آخری پیالۍ کومه چې نشه راولی. هغه به حرام وی. او ددې د حرمت موږ هم قائل یو.

### شیخینو رحمهما الله باندې د یو اشکال جواب

إِنَّمَا يَحْرُمُ الْقَلِيلُ مِنْهُ او د خمر قلیل حرام دې لِأَنَّهُ يَدْعُو لِرِقَّتِهِ وَلَطَافَتِهِ إِلَى الْكَثِيرِ ځکه چې دا رابلی. د خپل نری والي او د خپل باریک کیدو په وجه ډیر اړخ ته. فَأُعْطِيَ حُكْمَهُ نو قلیل ته به د کثیر حکم ور کولای شی وَالْمُثَلَّثُ لِغِلَظِهِ او مثلث د خپل تینګ والي په وجه رابلونکې نه دې لَا يَدْعُو، وَهُوَ فِي نَفْسِهِ غِذَاءٌ او مثلث پخپله یوه غذا ده فَبَقِيَ عَلَى الْإِبَاحَةِ نو دا به په جواز باندې پاته پاتې وی وَالْحَدِيثُ الْأَوَّلُ غَيْرُ ثَابِتٍ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ، ثُمَّ او ړومبني حدیث ثابت نه دې. د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دې هُوَ مَحْمُولٌ عَلَى الْقَدَحِ الْأَخِيرِ بیا دا محمول دې. په آخری پیالۍ باندې، إِذْ هُوَ الْمُسْكِرُ حَقِيقَةً ځکه چې حقیقت کې مسکر (او نشه راوستونکې) هم دا ده.

حل اللغة: ① رقة: نرموالې ② غلظ: سختوالې

تشریح:- په شیخینو رحمهما الله یو اعتراض کیدلو. چه بیا د خمر قلیل مقدار ولې حرام دې. حالانکه چې دا نشه راوستونکې نه دی. نو ددې ځواب ئې ورکړو. چه په خمرو کې نرۍ والی او باریک والې دې. چه ددې په وجه لږ د ډیرو اړخ ته رابلی. نو کوم حکم چې د ډیرو دې. هم هغه لږو ته ورکړې شو. لکه څنګه چې التقاء د ختانینو ته د غسل د وجوب په حق کې د دخول او انزال درجه ورکړې شوې ده. او په مثلث کې ټینګوالې دې. چه دا ډیرو اړخ ته نه رابلی. بیا مثلث په حقیقت کې غذا ده. او په غذا کې اصل جواز دې. نو د مثلث جواز پاته پاتې دې. او پاتې شو د فریق مخالف ړومبې دلیل دا هم هغه دې. په کوم کې چې یحي بن معین طعن کړې دې. او دا ئې غیرثابت ګرځولې دې. او بالفرض که اومنلې شی. نو دا دده په آخری پیالۍ باندې محمول دې. چه دا مسکر دې. یعنی د غیر خمر چې کوم مقدار نشه راوستونکې وی. اوس به هغې باندې د خمر پشان د حرمت حکم جاری کیږی.

### دوې (دوه) حصې ختمیدو نه روسته اوبه ملاوولو سره ددې حکم

وَالَّذِي يُصَبُّ عَلَيْهِ الْمَاءُ بَعْدَ مَا ذَهَبَ ثُلُثَاهُ بِالطَّبْخِ حَتَّى يَرِقَّ او هغه (مثلث) چې دې کې اوبه اچولې شوې وی. ددې د دوې (دوه) ثلثه ختمیدو نه پس. د پخولو په وجه. تردې چې دا نری شی ثُمَّ يُطْبَخُ طَبْخَةً بیا دا پاخه کړې شی حُكْمُهُ حُكْمُ الْمُثَلَّثِ نو ددې حکم د مثلث حکم دې لِأَنَّ صَبَّ الْمَاءِ لَا يَزِيدُهُ إِلَّا ضَعْفًا ځکه چې د اوبو اچول به نه زیاتی

[1] من حدیث علی رضی الله عنه أخرجه العقیلی فی کتاب الضعفاء فی ترجمة محمد بن الفرات (نصب:۱۶۱۵)_



کوی. سوا د کمزورۍ نه.

تشریح:- ددې شرابو نوم یعقوبی او ابویوسفی دې. ځکه چې امام ابویوسف رحمه الله به دا ډیر زیات څکل. ددې حقیقت دا دې. چه د انګورو شیره پخولو سره ددې دوې (دوه) ثلثه اوسوزی. او دریمه برخه پاتې شی. نو اوس دا مثلث شو. بیا په دې کې نورې اوبه واچولې شوې. چه هغې سره دا نری شو. او دا ئې بیا پاخه کړل. نو دا هم هغه مثلث دې. او هم هغه ددې حکم دې. ځکه چې هرکله مثلث د شیخینو رحمهما الله په نیز حلال دی. نو په دې کې اوبو اچولو سره به د مثلث په قوت (او طاقت) کې کمی واقع کیږی. نو دا به په درجه اولی حلال وی.

### د انګورو رس کښې اوبه ملاوول او پخولو سره چې دوې (دوه) حصې ختمې شی نو ددې حکم

بِخِلَافِ مَا إِذَا صُبَّ الْمَاءُ عَلَى الْعَصِيرِ به خلاف ددې صورت کله چې د انګورو په رس کې اوبه واچولې شوې ثُمَّ يُطْبَخُ حَتَّى يَذْهَبَ ثُلُثَا الْكُلِّ بیا دا پخې کړې شوې. تر دې چې د کُل نه دوې (دوه) ثلثه ختمې شوې لِأَنَّ الْمَاءَ يَذْهَبُ أَوَّلًا لِلَطَافَتِهِ ځکه چې اوبه د خپل نرموالی په وجه مخکې سوزیږی، أَوْ يَذْهَبُ مِنْهُمَا یا به ددې دواړو نه سوزیږی، فَلَا يَكُونُ الذَّاهِبُ ثُلُثَيْ مَاءِ الْعِنَبِ نو د سوزولی شوی انګورو اوبه دوې (دوه) ثلثه نشوې.

تشریح:- که د انګورو په رس کې د مخکې نه اوبه ملاؤ کړې شوې. او بیا دا پخې کړې شوې. تردې چې دوې (دوه) ثلثه اوسوزیدې. او د مجموعې نه یو ثلث پاتې شوې. نو دا به حلال نه وی. ځکه چې مثلث حلال دې. او دلته کې دا مثلث جوړ نکړې شو. ځکه مثلث خو دا دې. چه د انګورو د رس نه دوې (دوه) ثلثه ختم شی. او دلته کې د اوبو او د رس دوې (دوه) ثلثه ختم شوی دی. نو دا مثلث نه دې. او نه دا حلال دی.

### انګور پخول او نچوړولو نه روسته ددې د استعمال حکم

وَلَوْ طُبِخَ الْعِنَبُ كَمَا هُوَ او که خالص انګور پاخه کړې ثُمَّ يُعْصَرُ بیا نچوړ کړې شو يُكْتَفَى بِأَدْنَى طَبْخَةٍ فِي رِوَايَةٍ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ نو په معمولی شان پخولو باندې به اکتفاء کولې شی. د امام ابوحنیفه رحمه الله نه د یو روایت مطابق وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ لَا يَحِلُّ مَا لَمْ يَذْهَبْ ثُلُثَاهُ بِالطَّبْخِ او ددوی ځخه به په دوهم روایت کې حلال نه وی. ترکومه پورې چې ددې دوې (دوه) ثلثه ختم نشی. د پخولو په وجه، وَهُوَ الْأَصَحُّ او هم دا اصح دی، لِأَنَّ الْعَصِيرَ قَائِمٌ فِيهِ مِنْ غَيْرِ تَغَيُّرٍ ځکه چې انګورو کې شیره د تغیر نه بغیر موجود ده، فَصَارَ كَمَا بَعْدَ الْعَصْرِ نو داسې شوه. لکه د نچوړ کاوه نه پس.

تشریح:- که د انګورو د شیرې په ځائې خالص انګور پاخه کړې شی. او روسته نچوړ کړې شی. او استعمال کړې شی. نو څه حکم دې؟ نو فرمائی. چه په دې کې د امام صاحب رحمه الله نه دوې (دوه) روایتونه دی: ① معمولی شان پخول کافی دی. ② ددې حکم هم هغه دې. کوم چې د انګورو د رس دې. یعنی که دومره پوخ کړې شو. چه دوې (دوه) ثلثه رس ختم شی. نو حلال به وی. ګنی نه به وی. نو د انګورو د رس یوشان حکم دې. د نچوړ کاوه نه مخکې هم. او روستو هم.

### کجورې یا چوارې اوبو کښې اچولو نه روسته ټنګوالې او نه پیدا کیدل

وَلَوْ جُمِعَ فِي الطَّبْخِ بَيْنَ الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ أَوْ بَيْنَ التَّمْرِ وَالزَّبِيبِ او که په پخولو کې انګور او کجورې، یا کجورې او اوسکې جمع کړې شو لَا يَحِلُّ حَتَّى يَذْهَبَ ثُلُثَاهُ نو دا به حلال نه وی. تردې چې ددې دوې (دوه) ثلثه ختم شی. لِأَنَّ التَّمْرَ إِنْ كَانَ يُكْتَفَى فِيهِ بِأَدْنَى طَبْخَةٍ ځکه چې کجورې اګرچه په دې کې معمولی شان پخولو باندې اکتفاء کولای شی فَعَصِيرُ الْعِنَبِ لَا بُدَّ أَنْ يَذْهَبَ ثُلُثَاهُ نو د انګورو په رس کې دوې (دوه) ثلثه ختمیدل ضروری دی فَيُعْتَبَرُ جَانِبُ الْعِنَبِ احْتِيَاطًا نو د احتیاط په بناء به د انګورو د اړخ اعتبار کولای شی، وَكَذَا إِذَا جُمِعَ بَيْنَ عَصِيرِ الْعِنَبِ وَنَقِيعِ التَّمْرِ لِمَا قُلْنَا او هم دغه ډول کله چې جمع اوکړې شی. د انګورو د رس او د نقیع تمر (د کجورو د خوړو اوبو) په منځ کې د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې.

**تشريح:-** كه كجورې يا چوارې اوبو كې واچولې شوې.او په دې كې تنګوالې او نشه پيدا شوه.نو دا هم حرام دى.خو كه دا پوخ كړې شى.نو دا حرام نه دى.او ددې معمولى شان پخول كافى دى.دوې (دوه) ثلثه ختميدل ضرورى نه دى.بلكه دا حكم خوصرف د انګورو په رس كې دې.خو كه د انګورو رس او د چوارو اوبه يو ځاى ملاؤ كړلې.نو اوس به څه حكم وى.نو وې فرمائيل.چه د احتياط په بناء باندې به مجموعې باندې د انګورو حكم جارى كولې شى.او تركومه پورې چې دوې (دوه) ثلثه او نه سوزيږى.تر هغه وخته پورې به حلال نه وى.

**قوله: اوبين التمروالزبيب** مرغينانى رحمه الله فرمائيلى دى ،،أو بين التمر و الزبيب،، اوددې نه وړاندې ئې فرمائيلى وو **،،بين العنب و التمر،،** حالانكه دا صرف د انګورو او چوارو حكم دې.د اوسكو او چوارو حكم نه دې.ځكه چې اوسكې د انګورو په حكم كې نه دى.نو دا د مرغينانى رحمه الله يا د ناسخينو او ناقلينو سهوه ده...كما لا يخفى،،

## د كجورو او اوسكو خوږې اوبه معمولى شان پخولو نه روسته چوارې يا اوسكې ملاوول او ددې حكم

وَلَوْطُبِخَ نَقِيعُ التَّمْرِوَالزَّبِيبِ أَدْنٰى طَبْخَةٍاو كه نقيع تمر او نقيع زبيب معمولى شان پوخ كړې شو ثُمَّ أُنْقِعَ فِيهِ تَمْرٌأَوْزَبِيبٌ بيا په دې كې چوارې يا اوسكې واچولې شوې إِنْ كَانَ مَا أُنْقِعَ فِيهِ شَيْئًا يَسِيرًا كه هغه مقدار كوم چې دې كې اچولې شوې دې.معمولى شان وى ،لَا يُتَّخَذُ النَّبِيذُ مِنْ مِثْلِهِ چې ددې د مثل ( پشان) نه نبيذ نشى جوړولې لَا بَأْسَ بِهِ نو په دې كې هيڅ باك نشته، وَإِنْ كَانَ يُتَّخَذُ النَّبِيذُ مِنْ مِثْلِهِاو كه ددې د مثل نه نبيذ جوړولې شى ،لَمْ يَحِلَّ نو دا حلال نه دې كَمَا إِذَا صُبَّ فِي الْمَطْبُوخِ قَدَحٌ مِنَ النَّقِيعِ لكه په مطبوخ كې كله چې د نقيع يوه پيالۍ اچولې شوې وى وَالْمَعْنٰى تَغْلِيبُ جِهَةِ الْحُرْمَةِاو ددې سبب د حرمت د اړخ غلبه ده.

**تشريح:-** نقيع تمر او نقيع زبيب ( د كجورو او اوسكو اوبه) معمولى شان پوخ كړې شوې وې.چه ددې په وجه دا حلال كړې شوې وو.خو د پخولو نه روسته په دې كې بيا كجورې يا اوسكې واچولې.نو اوس ددې څه حكم دې؟ نو ځواب ئې وركړو.كه چوارې يا اوسكې ئې دومره اچولى وى.چه ددې نه په عامه توګه (عام طور) نبيذ نشى جوړولې.يعنى ډير كم مقدار ئې اچولې دى.نو دا د نيشت په درجه كې شو.او دا پخپل حال حلال دى. خوكه دومره ئې واچول.چه ددې نه په عامه توګه (عام طور) باندې نبيذ جوړولې شى.نو اوس دا حلال نه دى.بلكه حرام دى.او دا بالكل داسې ده.لكه نبيذ تمر وغيره كې ( كله چې دا پوخ كړې شوې وى.چه دا حلال دى) ئې نقيع تمر يوه پيالۍ واچول.نو اوس واړه حرام شو.او وجه ددې دا ده.چه كوم ځاى كې د حلت او حرمت اجتماع اوشى.هلته غلبه او ترجيح حرمت ته وى.

## په ذكرشوى نبيذو څكلو سره د حد لګولو حكم

وَلَا حَدَّ فِي شُرْبِهِاو ددې په څښلو كې حد نشته.لِأَنَّ التَّحْرِيمَ لِلِاحْتِيَاطِ.ځكه چې حرمت د احتياط په وجه دې وَهُوَ لِلْحَدِّ فِي دَرْئِهِاو احتياط په حد كې لرې كاوه كې دې وَلَوْطُبِخَ الْخَمْرُأَوْغَيْرُهُ بَعْدَ الِاشْتِدَادِ حَتّٰى يَذْهَبَ ثُلُثَاهُاو كه د خمر د تنګيدو نه روسته پاخه كړې شو.تردې چې ددې دوې (دوه) ثلثه اوسوزيدل.لَمْ يَحِلَّنو دا حلال نه دى لِأَنَّ الْحُرْمَةَ قَدْ تَقَرَّرَتْځكه چې حرمت قائم شوې دې فَلَا تَرْتَفِعُ بِالطَّبْخِنو دا به د پخولو په وجه نه اوچتيږى.

**تشريح:-** د شرابو مذكوره ډول كوم چې پوخ كړې شوې وو.خو روستو په دې كې نقيع تمر اچولې شوې وى.نو ددې څښل حرام دى.ځكه چې د احتياط تقاضه هم دا ده.خوكه يوكس اوڅكل.نو حد به لګولې شى. او كه نه؟ نو وې فرمائيل.چه په حد كې احتياط لرې كاوه كې دې.نو حد به نشى لګولې.شراب جوړ شوى دى.او تيار شوى دى.چه په دې كې جوش، عجلى او نشه موجود ده.كه خمر وى.او كه غير خمر وى.اوس دا پخولې شى.چه دوې (دوه) ثلثه ختم شى.نو دا به حلال نه وى.ځكه چې پخول د حرمت د ثبوت نه مانع دې.د حرمت



ثبوت لرې كونكې نه دې.

## په كدو، چاټۍ، او مزفت كښې د نبيذ جوړولو حكم

قَالَ امام ابو الحسين قدورى رحمه الله اوفرمائيل وَلَا بَأْسَ بِالِانْتِبَاذِ فِي الدُّبَّاءِو هيڅ باك نشته. په نبيذ جوړولو سره.د كدو په لوخى كې وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ وَالنَّقِيرِ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثٍ فِيهِ طُولٌ بَعْدَ ذِكْرِ هٰذِهِ الْأَوْعِيَةِ فَاشْرَبُوا فِي كُلِّ ظَرْفٍ او په حنتم (چاټۍ) كې او مزفت موړلى شوى لوخى كې .د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه، هغه حديث كې په كوم كې چې اوږد والې دې.ددې لوخو د ذكر نه روسته ( ئې اوفرمائيل) چې په هر لوخى كې څكئ، فَإِنَّ الظَّرْفَ لَا يُحِلُّ شَيْئًا ځكه چې لوخې يو شئ نه حلاله وى وَلَا يُحَرِّمُهُ او نه دا حرامه وى وَلَا تَشْرَبُوا الْمُسْكِرَ(١)او نشه پيدا كونكې مه څكئ وَقَالَ ذٰلِكَ بَعْدَ مَا أَخْبَرَ عَنِ النَّهْيِ عَنْهُاو دوى دا خبره فرمائيلې وه.ددې لوخو د ممانعت نه روسته فَكَانَ نَاسِخًا لَهُنو دا قول د نهى ناسخ جوړ شو.

**حل اللغة:** ① الانتباذ: نبيذجوړول ② الدباء: كدو ③ الحنتم: چاټۍ ④ المزفت:پالش شوې لوښې»

**تشريح:-** د باء: د كدو لوخې، حنتم: د شين رنګ د خاورو كنډولې( منګې)، مزفت: د تار كاوه پشان يو شئ دې.چه هغې ته زفت وائى.كله چې په يو لوخى باندې ددې پالش اوكړې شى.نو دې لوخى ته مزفت وائى.بهرحال دا خو د لوخى نوم دې.لكه زموږ په علاقو كې چاټۍ (كوزه، منګې) او مطلب دا دې.چه خلګو به په دې لوخو كې شراب جوړول.كله چې د شرابو حرمت نازل شو.نو نبى كريم ﷺ ددې لوخو د استعمال نه منع فرمائيلې وه.چه د شرابو نفرت په زړونو كې ښه كينى.بيا څه موده روسته كله چې مقصد حاصل شو.نو ددې لوخو د استعمال اجازت ملاؤ شو.او ړومبې حكم منسوخ شو.دا حديث په مشكواة كې ستاسو په وړاندې تير شوې دې.چه هلته كې ددې ممانعت دې.

## په ناپاك لوخى كښې د نبيذ جوړولو حكم

وَأَمَّا يُنْتَبَذُ فِيهِ بَعْدَ تَطْهِيرِهِاو په دې كې به نبيذ جوړولې شى.ددې د پا كاوه نه روسته فَإِنْ كَانَ الْوِعَاءُ عَتِيقًا كه لوخې پخوانې وى يُغْسَلُ ثَلَاثًا فَيَطْهُرُنو دا دې درې خله اووينځلې شى.نو دا به پاك شى وَإِنْ كَانَ جَدِيدًااو كه دا نوې وى ،لَا يَطْهُرُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ لِتَشَرُّبِ الْخَمْرِ فِيهِ بِخِلَافِ الْعَتِيقِنو د امام محمد رحمه الله په نيز به نه پاكيږى.په دې كې د خمر د جذب كيدو په وجه، په خلاف د پخوانى ( او زوړ) وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يُغْسَلُ ثَلَاثًااو د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به درې خله وينځلې شى وَيُجَفَّفُ فِي كُلِّ مَرَّةٍاو په هرځل دې اوچ كړې شى وَهِيَ مَسْأَلَةُ مَا لَا يَنْعَصِرُ بِالْعَصْرِاو دا مسئله د هغه شئ دې.چه هغه نچوړولو سره نشى نچوړيدې ،وَقِيلَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ: يُمْلَأُ مَاءً مَرَّةً بَعْدَ أُخْرٰى، حَتّٰى إِذَا خَرَجَ الْمَاءُ صَافِيًا غَيْرَ مُتَغَيِّرٍاو وئيلى شوى دى.چه د امام ابويوسف رحمه الله په نيز بلا ناغه اوبه ډكې كړې شى.تردې چې كله اوبه صفا راوځى.چه دا متغير نه وى يُحْكَمُ بِطَهَارَتِهِ(٢)نو د لوخى د پاكوالى حكم به لګولې شى.

**تشريح:-** د شرابو د لوخى ذ پاكوالى طريقه كوم لوخې چې ناپاك وى.يعنى مخكې په دې كې شراب وو.نو كله چې دا په نورو څيزونو كې استعمالولې شى.نو مخكې به ددې پاكول ضرورى وى.مثلاً كه په دې كې نبيذ جوړولې شى.نو مخكې به ددې پاكول ضرورى وى.او د پخوانى لوخى د پاكوالى طريقه دا ده.چه په درې ځله وينځلو سره پاك شى.اوكه نوې وى.نو د امام محمد رحمه الله په نيز ددې د پا كاوه هيڅ طريقه نشته.ځكه چې دې كې شراب ورننوتې دى.البته په پخوانى كې به شراب نه ورننوځى.دا خو د امام محمد رحمه الله په نيز هم درې ځله

---

[1] - من جديث بريدة رضي الله عنه اخرجه مسلم فى الاشربة رقم ۶۵وابوداودفى الاشربة باب ۷ رقم ۳۶۹۸ والترمذى فى الاشربة باب ۶ والنسائى فى الاشربة رقم ۵۶۶۶ وابن ماجه فى الاشربة رقم ۳۴۰

[2] - هوقول ابى يوسف رحمه الله كذافى الهندية(۵/ ۴۱۶) نقلاعن القول الراجح (۲/ ۳۱۹)-

وينځلو سره پاکيږي.البته د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د نوي لوخي د پاکاوه دوې (دوه) طريقې دي① درې
خله اووينځلې شي.او د هر ځل وينځلو نه روسته اوچ کړې شي.او کوم شئ چې نشي نچوړکيدې.په هغې کې
هم دا حکم دې② په دې لوخي کې بار بار اوبه ډکې کړې شي.او توې کړې شي.کله چې دا ښکاره شي.چه
بالکل صفا دي.او د بل څه شئ اثر په اوبو کې نشته.نو لوخې پاک شو.

## که شراب پخپله سرکه جوړه شي نو څه حکم دې ؟

قَالَ امام ابو الحسين قدوري رحمه الله اوفرمائيل وَإِذَا تَخَلَّلَتِ الْخَمْرُ حَلَّتْ سَوَاءٌ صَارَتْ خَلًّا بِنَفْسِهَا أَوْ بِشَيْءٍ يُطْرَحُ فِيهَا او کله
چې خمر سرکه جوړه شوه.نو حلال شو.که هغه پخپله سرکه جوړه شوې وي.يا په څه داسې شئ سره ( سرکه
جوړه شوې وي) کوم چې دې کې اچولې شوې وي وَلَا يُكْرَهُ تَخْلِيلُهَا او ددې سرکه جوړول مکروه نه دي.

**حل اللغة:** ① **التخليل:** سرکه جوړول ② **التمول:** مالداره کول،مالداري

**تشريح:**- که د شرابو نه پخپله سرکه جوړه شي.او که جوړه کړې شي.اوس به دا حلال وي.او ددې نه سرکه
جوړول مکروه هم نه دي.

## په سرکه جوړولو کښې د امام شافعي رحمه الله نقطهٔ نظر

وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُكْرَهُ التَّخْلِيلُ او امام شافعي رحمه الله فرمائي.سرکه ( د خمر) مکروه ده وَلَا يَحِلُّ الْخَلُّ الْحَاصِلُ بِهِ
إِنْ كَانَ التَّخْلِيلُ بِإِلْقَاءِ شَيْءٍ فِيهِ قَوْلًا وَاحِدًا او کومه سرکه چې د خمر نه حاصله شي.حلال به نه وي.که سرکه
جوړول په دې کې د څه شئ په اچولو سره وي.( په دې صورت کې دا) يو قول دې وَإِنْ كَانَ بِغَيْرِ إِلْقَاءِ شَيْءٍ فِيهِ
او که په دې کې د څه شئ اچولو نه بغير ( سرکه جوړه شوې) فَلَهُ فِي الْخَلِّ الْحَاصِلِ بِهِ قَوْلَانِ نو ددې د سرکې په
اړه کې کوم چې ددې نه حاصل شو.دوې (دوه) قوله دي.

**تشريح:**- امام شافعي رحمه الله سرکه جوړول مطلق مکروه ګرځوي.اوس پاتې شوه حاصل شوې سرکه نو په دې کې
تفصيل دې① که په خمر کې څه شئ شاملولو سره سرکه جوړه کړې شوې ده.نو د امام شافعي رحمه الله په دې کې
صرف يو قول دې.چه دا سرکه حلال نه ده.② او که د څه اچولو نه بغير سرکه جوړه شوې وي.نو په دې کې د
امام شافعي رحمه الله دوې (دوه) قوله دي [1] يو دا چې حلال ده.[2] دوهم دا چې حلال نه ده.

## د امام شافعي رحمه الله دليل

لَهُ د امام شافعي رحمه الله دليل دا دې أَنَّ فِي التَّخْلِيلِ اقْتِرَابًا مِنَ الْخَمْرِ عَلَى وَجْهِ التَّمَوُّلِ وَالْأَمْرُ بِالِاجْتِنَابِ يُنَافِيهِ چې په سرکه
جوړولو کې خمر سره نژدې والې دې.د مال حاصلولو په طريقه، او د شرابو نه د بچ کيدو حکم د نژدې والي
منافي دې.

**تشريح:**- دا د امام شافعي رحمه الله دليل دې.چه کله د خمر نه سرکه جوړه کړې شي.نو دا د خمر ته د تمول ( او مال
حاصلولو) په طريقه قرب او نژدې والې دې.او موږ ته د بچکيدو حکم ملاؤ دې.او په حکم د بچکيدو او دې
ته په نژدې والي کې منافات دې.

## د احنافو رحمهم الله دليل

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زموږ دليل د نبي کريم ﷺ فرمان دې نِعْمَ الْإِدَامُ الْخَلُّ چه،، سرکه ښومره ښه سالن (
اونګلې) دې مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ،(١) وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خَيْرُ خَلِّكُمْ خَلُّ خَمْرِكُمْ(١) وَلِأَنَّ بِالتَّخْلِيلِ يَزُولُ الْوَصْفُ الْمُفْسِدُ او

[1] من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه مسلم فى الأشربة رقم ١٦٧ وأبوداود فى الأطعمة باب ٣٩ والترمذى فى الأطعمة باب ٣٤



ښکه چې په سرکه جوړولو سره مفسد صفت زائل کيږي وَتَثْبُتُ صِفَةُ الصَّلَاحِ مِنْ حَيْثُ تَسْكِينُ الصَّفْرَاءِ وَكَسْرُ الشَّهْوَةِ
او د ښه والي صفت پيدا کيږي.يعنى صفراء ( زيړې) ته سکون ( او آرام) ورکول، او شهوت ماتول وَالتَّغَذِّي بِهِ
وَالْإِصْلَاحُ مُبَاحٌ او دغه ډول ددې په ذريعه غذا حاصلول، او داسې اصلاح جائز ده وَكَذَا الصَّالِحُ لِلْمَصَالِحِ اعْتِبَارًا
بِالْمُتَخَلِّلِ بِنَفْسِهِ او هم دغه ډول (حلال دې) هغه شئ کوم چې مصلحتونو کې د کار راتلو قابل شي.قياس کول
پخپله شراب کيدو باندې وَبِالدِّبَاغِ وَالِاقْتِرَابِ لِإِعْدَامِ الْفَسَادِ او ( دغه ډول حلاليږي) په دباغت ( رنګ ورکولو) سره
او نژدې والې د فساد لرې کاوه لپاره ،،فَأَشْبَهَ الْإِرَاقَةَ نو دا د بهيولو مشابه شو.

**حل اللغة:** ① **الادام:** ترکاري ② **الخل:** سرکه ③ **الصفراء:** زيړوالې، ④ **الدباغ:** رنګ ⑤ **الاراقة:** تويول

**تشريح:**- دا زموږ دليل دې.چه حديث کې سرکې ته غوره سالن ( ترکاري) فرمائيلې شوې دې.بيا سرکه جوړول
حلال کيدل پکار دي.ښکه چې اوس مفسد وصف زائل شو.او ښه ( صالح) وصف پيدا شو.يعنى صفراء ته په
دې سره سکون ملاويږي.او شهوت ختميږي.او په دې سره غذا حاصليږي.او داسې اصلاح صحيح ده.او دا په
انساني ضروري فائدو کې د کار راتلو قابل جوړيږي.نو لکه څنګه چې خمر پخپله سرکه جوړه شوه.او هغه
حلال ده.نو دا هم حلال کيدل پکار دي.او لکه څنګه چې مرږګي څرمن په رنګ کاوه سره پاکيږي.او دې ته
رنګ ورکول د کراهت نه بغير جائز دې.نو هم دغه ډول دلته کې پکار دي.او هرکله چې حرام شئ ته نژدې
کيدل ددې د فساد لرې کاوه لپاره وي.نو داسې نژدې کيدل جائز دې.لکه که شراب بهيول وي.نو دې ته
نژدې کيدل بالاتفاق جائز دې.

## د شرابو نه د سرکې جوړولو حکم

وَالتَّخْلِيلُ أَوْلَى لِمَا فِيهِ مِنْ إِحْرَازِ مَالٍ يَصِيرُ حَلَالًا فِي الثَّانِي او سرکه جوړول غوره دي.په دې وجه چې په دې کې د
داسې مال ساتنه دې.چه دا به په راروانه زمانه کې حلال ګرځيږي فَيَخْتَارُهُ مَنِ ابْتُلِيَ بِهِ نو دا دې اختيار
کړي.هغه سړې څوک چې دې کې اخته شوې دې.

**حل اللغة:** ① **الاحراز:** محفوظ کول ② **ابتلى به:** څوک چې پرې مبتلى (اخته) شوې وي

**تشريح:**- يو سړې ته مثلاً شراب په ميراث کې ملاؤ شو.او دا مال دې.اګرچه غير متقوم دې.او راروانه زمانه
کې ددې د حلال کيدو اميد دې.نو کوم کس چې دې کې اخته وي.نو هغه له پکار دي.چه ددې نه سرکه
جوړه کړي.چه د مال ساتنه اوشي.

## د خمر نه د سرکې جوړولو نه روسته د لوخي د پاکوالي حکم

وَإِذَا صَارَ الْخَمْرُ خَلًّا او هرکله چې د خمر نه سرکه جوړه شوه يَطْهُرُ مَا يُوَازِيهَا مِنَ الْإِنَاءِ نو کوم لوخې چې د خمر برابر ( او
مقابل) وو.هغه به پاک وي فَأَمَّا أَعْلَاهُ بهرحال ددې پورتنئ برخه وَهُوَ الَّذِي نَقَصَ مِنْهُ الْخَمْرُ او دا هغه ده.چه د شرابو نه
بچ شوې ده ،قِيلَ يَطْهُرُ تَبَعًا نو ونيلې شوي دي.چه لوخې به تبعاً پاک وي.

**تشريح:**- کله چې د خمر نه سرکه جوړه شي.نو ترکومه پورې چې سرکه ډکه کړې شوې ده.تر هغې پورې به
لوخې پاک وي.او پاتې شوه پورتنئ برخه په کومه کې چې اوس شراب نشته.نو د لوخي په پاکوالي کې يو
قول دا دې چې پاکيږي.خو تبعاً،

والنسائى فى الأيمان باب ٢١ وابن ماجه فى الأطعمة باب ٣٣ والدارمى فى الأطعمة باب ١٨ وأحمد فى المسند (١٣٠١\٣)

[1] من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه البيهقى فى المعرفة (نصب:٢٣١٥)_

وَقِيْلَ لَايَطْهُرُ او ونیلي شوي دي.چه پاك به نه وي «لِأَنَّهُ خَمْرٌ يَابِسٌ خکه چې دا اوچ خمر دی إِلَّا إِذَا غُسِلَ بِالْخَلِّ خو کله
چې دا (لوخي) په سرکې سره اووينځلې شو فَيَتَخَلَّلُ مِنْ سَاعَتِهٖ فَيَطْهُرُ نو دا فوراً سرکه جوړه کيږي.نو دا به پاك
وی وَكَذَا إِذَا صُبَّ فِيْهِ الْخَمْرُ او دغه ډول کله چې د لوخی نه خمر اووينځلی شو «ثُمَّ مُلِئَ خَلًّا يَا دا د سرکې نه ډك کړې
شوې وي يَطْهُرُ فِي الْحَالِ عَلَى مَا قَالُوْا نو دا به في الحال پاکيږي.بناء په هغه قول چې دوی ونيلي دي.

تشريح:- او دوهم قول دا دې چه ناپاك به وي.خکه چې دې کې د خمر اوچ اجزاء ملاؤ شوي دي.البته که لوخي
سرکې سره او وينځلې شی.نولوخې به فوراً پاك شی.او که د مخکې نه لوخی کې شراب ډك کړې شوي
دی خو که دا اوغورزولې شی.او دا د سرکې نه ډك کړې شی.نو لوخی به پاك وی.

### د شرابو تلچټ څکل او په دې د ګومنځولو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې فرمايي وَيُكْرَهُ شُرْبُ دُرْدِيِّ الْخَمْرِ وَالْاِمْتِشَاطُ بِهٖ او د شرابو تلچټ څښل او
ددې نه ګومنځول مکروه دی «لِأَنَّ فِيْهِ أَجْزَاءَ الْخَمْرِ، وَالْاِنْتِفَاعُ بِالْمُحَرَّمِ حَرَامٌ خکه چې تلچټ کې د خمر اجزاء دی.او
حرامو نه نفع اخستل حرام دی وَلِهٰذَا لَا يَجُوْزُ أَنْ يُدَاوِيَ بِهٖ جُرْحًا او هم په دې وجه جائز نه دی.دا چې خمر سره د زخم
علاج اوکړی أَوْ دَبَرَةَ دَابَّةٍ يا د خاروی زخمی شوې شا (ملا) علاج اوکړی وَلَا أَنْ يَسْقِيَ ذِمِّيًّا او نه دا (جائز دی)
چې ذمی باندې ئې اوڅکوی اوڅکوی لَا أَنْ يَسْقِيَ صَبِيًّا لِلتَّدَاوِيْ او نه دا چې دوايئ لپاره ئې بچې باندې،
وَالْوَبَالُ عَلَى مَنْ سَقَاهُ او وبال (ګناه) به په هغه کس وی.چاچه بچې ته اوڅکول وَكَذَا لَا يَسْقِيْهَا الدَّوَابَّ او هم دغه
ډول به خمر څاروو ته نشي ورکولې وَقِيْلَ: لَا تُحْمَلُ الْخَمْرُ إِلَيْهَا او ونيلی شوی دی.چه شراب به څاروو ته نشی
اوړلې «أَمَّا إِذَا قِيْدَتْ إِلَى الْخَمْرِ بهرحال کله چې څاروی اوشړلې شی.او شرابو ته راوستلې شی فَلَا بَأْسَ بِهٖ كَمَا فِي
الْكَلْبِ وَالْمَيْتَةِ نو په دې کې هيڅ باك نشته.لکه څنګه (حکم) چې په سپی او مردار کې دې.

حل اللغة: ① الامتشاط: ګومنځول ② التداوی: دوائی کول ③ جرح: زخم ④ دردی: تلچټ، يعنی په کوم لوښی
کې چې شراب اوڅښلې شی اوپه هغې کې د شرابو کوم اثر پاته وی نو هغې ته تلچټ وائی.

تشريح:- لکه څنګه چې تيل وغيره تلچټ (د ايخ کوټ) وی.دغه ډول د خمر هم وی.نو ددې څښل او نورو
باندې څکول، په دې سره دوائی او علاج کول، واړه امور نا جائز دی.نو د څاروی چې شا لګيدلې وی.(
زخمی شوې وی) هغې باندې شراب موګل.او ذميانو ته څکل، او د دوائی لپاره بچو ته ورکول، واړه ناجائز
امور دی.بيا شراب اوچتول.او څاروو ته اوړل جائز نه دی.البته که څاروی اوشړلې او راوستلې شی.او شرابو
باندې ئې پريږدی.نو په دې کې هيڅ باك نشته.لکه چې مرږګې اوچتول او سپی له اوړل جائز نه دی.او که
سپې مردارې له راوستلې شی.او پريخودلې شی.نو په دې کې هيڅ باك نشته.

### که په سرکه کښې تلچټ غورزيدو سره سرکه جوړه شی؟

وَلَوْ أُلْقِيَ الدُّرْدِيُّ فِي الْخَلِّ که ده د خمر تلچټ په سرکه کې واچولو لَا بَأْسَ بِهٖ نو په دې کې هيڅ باك نشته «لِأَنَّهُ يَصِيْرُ
خَلًّا خکه چې تلچټ به سرکه جوړه شی لَكِنْ يُبَاحُ حَمْلُ الْخَلِّ إِلَيْهِ خو جائز دی چې سرکه تلچټ اړخ ته يوړلې
شی لَا عَكْسُهُ لِمَا قُلْنَا ددې الټه جائز نه دې.د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې.

تشريح:- د خمر تلچټ سرکه کې غورزيدو سره سرکه جوړيږی.نو په دې کې هيڅ باك نشته.خو دومره خبره
ده.چه سرکه دې اوچته کړی.د خمر تلچټ خوا له دې راوړی.تلچټ دې سرکې له نه راوړی.لکه څنګه چې
اوس تيره شوه.د سپی او د مردارې مسئله.

### د خمر تلچټ څکلو سره د حد حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل وَلَا يُحَدُّ شَارِبُهٗ أَيْ شَارِبُ الدُّرْدِيِّ إِنْ لَمْ يَسْكَرْ و تلچټ څکونکو ته به حد نشي



لګولې.که نشه ور نه وی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُحَدُّ او امام شافعی رحمه الله فرمائی.حد به لګولې شی «لِأَنَّهُ شَرِبَ جُزْءًا مِنَ
الْخَمْرِ خکه چې ده د شرابو جزء څښلې دي وَلَنَا أَنَّ قَلِيْلَهُ لَا يَدْعُوْ إِلٰى كَثِيْرِهٖ لِمَا فِي الطِّبَاعِ مِنَ النُّبُوَّةِ عَنْهُ او زموږ دليل
دا دې.چه ددې قليل ددې ډيرو اړخ ته رابلونکې نه دی.په دې وجه چې طبعيتونو کې ددې نه لرې والې دې
فَكَانَ نَاقِصًا نو دا ناقص شراب شو فَأَشْبَهَ غَيْرَ الْخَمْرِ مِنَ الْأَشْرِبَةِ نو دا د خمر نه علاوه د نورو شرابونو مشابه شو وَلَا
حَدَّ فِيْهَا إِلَّا بِالسُّكْرِ، او په دې کې حد نشته.خود سکر (د نشې) په وجه وَلِأَنَّ الْغَالِبَ عَلَيْهِ الثُّفْلُ او خکه چې تلچټ
باندې ايخ کې ناست شئ غالبيږی فَصَارَ كَمَا إِذَا غَلَبَ عَلَيْهِ الْمَاءُ بِالْاِمْتِزَاجِ نو داسې شوه.کله چې خمر باندې اوبه
غالب شوې وی.د ملاويدو په وجه.

حل اللغة: ① النبوة: لرې والې ② الثفل: ويخ ③ الامتزاج ګډون

تشريح:- زموږ په نيز د خمر تلچټ څکونکو باندې حد نه راځی.ترکومه پورې چې څښلو سره نشه اونشی.او
کله چې نشه اوشی.نو حد به لګولې شی.خکه چې ده ته د خمر والا حکم نشی ورکولې.خکه چې ددې نه
طبعيتونه متنفر دی.نو دا خمر ناقص دی.نو دا د خمر نه علاوه د نورو شرابونو په حکم کې شو.او دا حکم
هلته کې دې.چه د سکر نه بغير حد نشته.نو هم دا حکم به په تلچټ کې هم وی.بيا په تلچټ کې په ايخ کې
ناست کوټ دې.او ددې غلبه ده.نو دا داسې شوه.لکه چې خمر باندې د پاسه اوبه غالب شوې وی.نو ددې په
څکونکی باندې حد نشته.دغه ډول په دې باندې هم حد پکار نه دې.امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه حد به
لګولې شی.خکه چې هرکله ده تلچټ اوڅښلو .نو په دې کې د خمر اجزاء موجود دی.نو د خمر حکم به هم
جاری کولې شی.

### خمر سره حقنه کول او د ذکر په سوړه کښې اچول

وَيُكْرَهُ الْاِحْتِقَانُ بِالْخَمْرِ وَإِقْطَارُهَا فِي الْإِحْلِيْلِ او د خمر نه حقنه کول، او خمر د ذکر په سوړه کې اچول مکروه دی
لِأَنَّهُ انْتِفَاعٌ بِالْمُحَرَّمِ خکه چې دا د حرام نه انتفاع ده «وَلَا يَجِبُ الْحَدُّ لِعَدَمِ الشُّرْبِ وَهُوَ السَّبَبُ او حد به واجب نه وی.د څښلو د
نه کيدو په وجه، او هم دا څښل د حد سبب دې وَلَوْ جُعِلَ الْخَمْرُ فِيْ مَرَقَةٍ او که خمر په ښوروا کې واچولی شو «لَا
تُؤْكَلُ لِتَنَجُّسِهَا بِهَا نو ښوروا به نشی خوړلې.د ښوروا د نا پاکه کيدو په وجه، په خمر سره. وَلَا حَدَّ مَا لَمْ يَسْكَرْ
مِنْهُ نو حد به واجب نه وی ترکومه پورې چې ددې په وجه نشه اونشی «لِأَنَّهُ أَصَابَتْهُ الطَّبْخُ خکه چې دې ته پخول
رسيدلی دی وَيُكْرَهُ أَكْلُ خُبْزٍ عُجِنَ عَجِيْنُهٗ بِالْخَمْرِ لِقِيَامِ أَجْزَاءِ الْخَمْرِ فِيْهِ او هم دغه ډول د ډوډئ خوراك مکروه دې.چه
دهغې اوړه خمر سره اغږلې شوې وی.هغې کې د شرابو اجزاء موجود کيدو په وجه.

حل اللغة: ① الاحتقان: په دبر کې شراب اچول ② الاقطار: قطره اچول ③ الاحليل: د ذکر سوړه ④ خبز: ډوډئ ⑤
العجن: اوړه

تشريح:- د خمر نه هر قسمه انتفاع حرام ده.نو ددې نه حقنه اخستل،او د ذکر په سوړه کې څاڅکی کول مکروه
دی.خو که داسې اوکړې شو.نو حد به واجب نه وی.خکه چې د حد سبب څښل دی.او دلته کې څښل نه دی
موجود شوی.اوکه شراب په ښوروا کې واچولی شو.نو ددې ښوروا خوراك جائز نه دې.خکه چې اوس دا
ښوروا نا پاکه شوې ده.خوکه يوکس دا ښوروا استعمال کړله.نو ترکومه پورې چې نشه اونشی.نو حد به
نشی لګولې.خکه چې دلته خمر د ښوروا سره پاخه شوی دی.او خمر د انګورو کچه اوبو ته وائی.د کومو
روټو اوړه چې په خمر سره اغږلې شوې وی.ددې ډوډئ خوړل مکروه دی.خکه چې ډوډئ کې د خمر اجزاء
موجود دی.

## فَصْلٌ فِيْ طَبْخِ الْعَصِيْرِ

ژباړه:- (دا) فصل د انګورو د شيرې پخولو (په بيان کې) دې.

تشريح:- وړاندې دا خبره تېره شوې ده.چه د انګورو شيره د پخولو په وجه تركومه پورې دوې (دوه) ثلثه ختمه نشي.نو دا نه حلالېږي.نو مرغيناني رحمه الله په دې فصل كې د پخولو طريقه بيان فرمائيلې ده.چه څنګه به پخولې شي.تردې چې ددې دوې (دوه) ثلثه ختم شي.بيا دا بحث نه په جامع صغير كې ذكر دې.او نه په قدوري كې ، دا مرغيناني رحمه الله په ړومبۍ مسئله باندې د تفريع په طور بيان كړې دې.او دا مسئله په مبسوطو كې ذكر ده.

**ړومبۍ قاعده: د انګورو د شيرې پخولو اندازه**

والأصل أن ما ذهب بغليانه بالنار وقذفه بالزبد اصل دا دې.چه كوم مقدار د اور په وجه جوش وهلو سره، او ددې خګونو راتلو سره ختم شي يجعل كأن لم يكن نو دا به معدوم ( نيشت) شمارلې كيږي ويعتبر ذهاب ثلثي ما بقي او د پاته پاتې دوې (دوه) ثلثه ختميدل به معتبر وي ليحل الثلث الباقي چې پاته پاتې دريمه برخه حلاله شي.

تشريح:- په دې فصل كې مرغيناني رحمه الله يو څو اصول بيان كړي دي.دا ړومبۍ قاعده ده.ددې حاصل دا دې.چه د انګورو د شيرې كوم مقدار په جوش وهلو او خګونو غورزيدو سره ختم شي.هغه به د نيشت پشان شمارلې شي.د دومره مقدار پريخود نه روسته چې كوم پاته پاتې دې.د هغې دوې (دوه) ثلثه سوزيدل ضروري دي.مثلاً لس ليټره خمر دي.او يو ليټر په جوش سره او خګونو غورزيدو سره ختم شو.نو پاته نهه ليټره پاتې شو.نو په دې كې دوې (دوه) برخې (حصې) يعنې د شپږ ليټرو سوزيدل ضروري دي.اوس چې پاته كوم درې ليټره پاته پچ پاتې شو.هغه حلال دي.

**د پيمانو په حساب د شيرې پخول**

بيانه ددې بيان دا دې عشرة دوارق من عصير طبخ چې لس پيمانې شيره پخه كړې شوه فذهب دورق بالزبد نو په ځګونو راتلو سره يوه پيمانه ختمه شوه يطبخ الباقي حتى يذهب ستة دوارق ويبقى الثلث فيحل نو پاته به پخولې شي.تردې چې شپږ پيمانې ختمې شي.او درې پيمانې پاته پاتې شي.نو دا به حلال وي لأن الذي يذهب زبدا هو العصير ځكه چې كوم ځګ جوړ شي.او ختم شي.هغه شيره ده ، أو ما يمازجه يا هغې سره ملاؤ شوې شئ دې وأيا ما كان جعل او څه چې هم وي ، كأن العصير تسعة دوارق فيكون ثلثها ثلاثة دغه ډول به شمارلې شي.چه شيره نهه پيمانې وه.نو ددې ثلث به درې پيمانې وي.

حل اللغة: ① دوراق: د دورق جمع ده. دا د شرابو يوه پيمانه ده.

تشريح:- ددې بيان پورته تېر شوې دې.او دا واضح هم دې.

**دويمه قاعده: اوبو ملاوول سره د پخولو اندازه كله چې اوبه مخكې سوزي.ږي**

وأصل آخر أن العصير إذا صب عليه ماء قبل الطبخ او دوهم اصل دا دې.چه د انګورو په شيره كې كله د پخولو نه مخكې اوبه واچولې شوې ثم طبخ بمائه بيا سره د اوبو دا پخه كړې شوه ، إن كان الماء أسرع ذهابا لرقته ولطافته كه اوبه د خپل نرم والي او نرۍ كيدو په وجه مخكې اوسوزي يطبخ الباقي بعد ما ذهب مقدار ما صب فيه من الماء حتى يذهب ثلثاه ، نو پاته به پخولې شي.ددې اوبو د سوزيدو نه روسته كومې چې دې كې اچولې شوې وې.تردې چې د انګورو شيره دوې (دوه) ثلثه اوسوزېږي لأن الذاهب الأول هو الماء والثاني العصير ځكه چې كوم مخكې سوزيدلې دي.هغه اوبه دي.او دويمه شيره ده ، فلا بد من ذهاب ثلثي العصير نو د شيرې دوې (دوه) ثلثه سوزيدل ضروري دي.

تشريح:- دا دويمه قاعده ده.چه د پخولو نه مخكې د انګورو په شيره كې اوبه واچولې شوې.بيا دا سره د اوبو نه پخول پكار دي.نو ددې صورت به څه وي.نو وې فرمائيل.چه اوبه مخكې سوزيږي.او كه اوبه او شيره



دواړه يوځائې ختميږي.كه اوبه مخكې ختميږي.نو دومره دې پخه كړي.چه اوبه مخكې ختمې شي.او بيا د شيرې دوې (دوه) ثلثه ختم شي.دا خو هغه وخت دې.كله چې اوبه مخكې سوزيږي.اوكه دواړه په يو ځائې سوزيږي.نو ددې حكم دا دې.كوم چې روستو راروان دې.

**د اوبو او شيرې مجموعي مقدار پخولو سره د حلال كيدو اندازه**

وإن كانا يذهبان معا اوكه دا دواړه يو ځائې ختميږي تغلى الجملة حتى يذهب ثلثاه نو پوره جوش دې وركړې شي.تردې چې پوره دوې (دوه) ثلثه اوسوزيږي ويبقى ثلثه فيحل او د پوره يو ثلث پاته پاتې شي.نو دا به حلال وي لأنه ذهب الثلثان ماء وعصيرا والثلث الباقي ماء وعصير ځكه چې د اوبو او شيرې دوې (دوه) ثلثه ختم شو.او كوم ثلث چې پاته پاتې شوې دې.هغه اوبه اوبه او شيره ده فصار كما إذا صب الماء فيه بعد ما ذهب من العصير بالغلي ثلثاه نو داسې شوه.لكه چې دې كې اوبه اچولې شوې وي.په جوش وركاوه سره،د شيرې دوې (دوه) ثلثه ختميدو نه پس.

تشريح:- كه اوبه او شيره يو ځائې ختميږي.نو بيا د ټولو د مجموعي مقدار دوې (دوه) ثلثه ختم شي.نو حلال دي.دا به داسې شمارلې شي.چه كوم مقدار ختم كړې شوې دې.هغه د اوبو او شيرې دوې (دوه) ثلثه دي.او كومې اوبه چې پاته دي.هغه د اوبو او شيرې يو ثلث دې.نو دا حلال دې.نو دا حلال دي.او دا بالكل داسې ده.لكه چې د انګورو شيره پخه كړې شي.او ددې دوې (دوه) ثلثه ختم شي.بيا په پاته ثلث كې اوبه ملاؤ كړې شي.نو دا حلال دي.نو هم دغه ډول به ددې حكم وي.

**د مذكوره قاعدې مثال**

بيانه ددې بيان دا دې عشرة دوارق من عصير وعشرون دورقا من ماء چې لس پيمانې شيره ده،او شل پيمانې اوبه دي ففي الوجه الأول يطبخ حتى يبقى تسع الجملة نو په ړومبې صورت كې پخې كړې شي.تردې چې د كل نهه برخې (حصې) پاته پاتې شي. ،لأنه ثلث العصير ځكه چې هم دا د شيرې ثلث دې ، وفي الوجه الثاني حتى يذهب ثلثا الجملة لما قلنا او په دوهم صورت كې تردې چې د كل دوې (دوه) ثلثه ختم شي.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

حل اللغة: ① اهريق: اوبيهولې شي ② الطبخ: پخول

تشريح:- اوس مرغيناني رحمه الله د مذكوره قاعدې مثال پيش كوي.چه لس پيمانې شيره ده.او شل پيمانې اوبه دي.نوكه اوبه مخكې سوزيږي.او شيره روستو سوزيږي.نو ددې دومره پخول ضروري دي.چه د مجموعي مقدار نهمه برخه پاته پاتې شي.او د ديرشو نهمه برخه درې او د دريو دريمه ده.اوس چې كله په كل كې درې او د دريو دريمه برخه پاته پاتې شوه.نو دا به د شيرې ثلث شمارلې شي.او دا به حلال وي.اوكه اوبه او شيره يو ځائې ختميږي.نو بيا دومره ختميدل ضروري دي.چه د مجموعي مقدار دوې (دوه) ثلثه ختم شي.او يو ثلث پاته پاتې شي. يعنې په ديرشو كې شل برخې (حصې) ختمې شي.او لس پاته پاتې شي.،،لما قلنا،، د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.يعنې دا چې په دې صورت كې ختم شوې مقدار به هم ددې دواړو وي.او كوم چې پاته دې.هغه به هم ددوی دواړو ثلثه وي.

**د انګورو د شيرې پخولو اندازه**

والغلي بدفعة أو دفعات سواء إذا حصل قبل أن يصير محرما او جوش وركول يو ځل او څو ځله برابر ده.كله چې دا ددې د حرام ګرځيدو نه مخكې حاصل شي ولو قطع عنه النار او كه ددې نه اور مړ شو فغلى حتى ذهب الثلثان يحل نو دې جوش اووهلو.تردې چې دوې (دوه) ثلثه ختم شي.نو حلال دي ،لأنه أثر النار ځكه چې دا د اور اثر دې.

حل اللغة: ① الغلي: جوش ② النار: اور

تشریح:- د انګورو د شیرې دوې (دوه) ثلثه د پخولو په وجه سوزول ضروري دي.که په یو خل اوسوزولې شي.یا
په څو خله خوټ کاوه سره وي.خو شرط دا دې.چه ددې د خمر جوړیدو نه مخکې داسې اوکړې شي.ګنې د
خمر جوړیدو نه روسته به پخول ګټور نه وي.ځکه چې پخول مانع د حرمت دې.پورته کونکې نه دې.اوکه
ددې لاندې اور بلیدو.او دا خوټکیدله.چه اور مړ شو.او دا هم هغه شان خوټکیدو.تردې چې دوې (دوه) ثلثه
ختم شو.نو حلال دی.ځکه چې دا د اور د اثر په وجه خوټکیدو.خو که معمولي شان ختم شوی وو.چه اور مړ
شو.او شیره خوټکیدل بند شو.تردې چې دا یخه شوه.او بیا اوخوټکیدله.تردې چې دوې (دوه) ثلثه ختم
شو.نو دا به حلال نه وي.ځکه چې دا خوټکیدل د اور په وجه نه دي.بلکه ددې د تیزوالي او زور په وجه
دي.او هم دا خمر دې.او د خمر نه روسته پخول هیڅ مفید نه دي.

**دریمه قاعده: څه برخه غورزیدو نه روسته د حلال کیدو طریقه**

وَأَصْلٌ آخَرُ او دریم اصل دا دې أَنَّ الْعَصِيرَ إِذَا طُبِخَ چې د انګورو شیره کله پخه کړې شي فَذَهَبَ بَعْضُهُ نو ددې بعض
برخه ختمه شي ثُمَّ أُهْرِيقَ بَعْضُهُ بیا ددې بعض برخه اوغورزولې شي كَمْ تُطْبَخُ الْبَقِيَّةُ حَتَّى يَذْهَبَ الثُّلُثَانِ نو ددې بعض
خومره پخولې شي.تردې چې ددې دوې (دوه) ثلثه ختم شي فَالسَّبِيلُ فِيهِ أَنْ تَأْخُذَ ثُلُثَ الْجَمِيعِ نو پاته
ده.چه ته د واړه نه دوې (دوه) ثلثه اوباسه فَتَضْرِبَهُ فِي الْبَاقِي بَعْدَ الْمُنْصَبِّ بیا دې ته په هغې کې ضرب ورکړه
چې د غورزیدو نه روسته پاته پاتې شوې دي ثُمَّ تَقْسِمَهُ عَلَى مَا بَقِيَ بَعْدَ ذَهَابِ مَا ذَهَبَ بِالطَّبْخِ قَبْلَ أَنْ يَنْصَبَّ مِنْهُ شَيْءٌ بیا
ته دا په هغې باندې ویش کړه.کوم چې پاته پاتې شوې دي.د هغه مقدار ختمیدو نه روسته کوم چې پخولو
کې ختم شوې دې.د هغې نه د بعض د غورزیدو نه مخکې فَمَا يَخْرُجُ بِالْقِسْمَةِ فَهُوَ حَلَالٌ نو کوم چې د ویش نه حاصل
راشي.هغه حلال دي.

تشریح:- دا دریم اصل دې.په دې کې دا بیان دې.چه اوس په پخولو سره څه مقدار ختم شي.او بیا څه مقدار په
مخکه باندې اوغورزولې شو.نو اوس به پاته پاتې څومره پخول پکار وي.چه دا حلال شي.نو ددې یو قاعده
کلیه نې بیان کړله.چه د انګورو رس چې څومره هم وي.د هغې ثلث اوباسه.او محفوظ نې کړه.بیا اوګوره
چې د غورزولو نه مخکې سوزیدو سره څومره مقدار ختم شوې دې.هغه محفوظ اوساته.بیا اوګوره.چه
څومره مقدار پاته پاتې شوې دې.دا هم محفوظ اوساته.بیا د پخولو او غورزولو نه روسته چې کوم مقدار
وو.هغې کې د کل ثلث ته ضرب ورکړه.بیا حاصل د ضرب ته د پوخوالي نه په روستو مقدار باندې ویش
کړه.اوس چې کوم حاصل د ویش راشي.دومره مقدار به نور سوزول ضرروري وي.بیا به پاته پاتې مقدار
حلال وي.مثلاً نهه لیټره شیره ده.چه د هغې ثلث درې دی.د هغې نه درې لیټره اوسوزیدله.پاته پاتې شوه
شپږ لیټره، بیا د شپږو لیټرو نه یو لیټر اوغورزولې شو.پاته پاتې شو پنځه لیټره، اوس د مذکره قاعدې
مطابق درېو ته په پنځو کې ضرب ورکړې شو.نو حاصل د ضرب پنځلس لیټره شو.بیا پنځلس د قاعدې
مطابق شپږو سره ضرب ورکړې شو.نو حاصل د ویش ۲۱۱ شو.نو معلومه شوه.چه ۲۱۱ لیټره به نور هم
سوزولې شي.نو هله به پاته پاتې حلال وي.

**د انګورو د شیرې معمولي شان پخولو نه روسته بعض مقدار غورزولو نه روسته ددې حکم**

بَيَانُهُ عَشَرَةُ أَرْطَالِ عَصِيرٍ طُبِخَ حَتَّى ذَهَبَ رِطْلٌ ددې بیان دا دې.چه لس رطله د انګورو شیره ده.چه دا پخه کړې
شوه.تردې چې یو رطل ختم شو ثُمَّ أُهْرِيقَ مِنْهُ ثَلَاثَةُ أَرْطَالٍ بیا ددې نه درې رطله اوغورزولې شوه تَأْخُذُ ثُلُثَ
الْعَصِيرِ كُلِّهِ نو د پوره شیرې ثلث دې واخلې وَهُوَ ثَلَاثَةٌ وَثُلُثٌ او هغه درې او د درېو دریمه برخه ده وَتَضْرِبُهُ فِيمَا بَقِيَ
بَعْدَ الْمُنْصَبِّ وَهُوَ سِتَّةٌ او ته دې ته ضرب ورکړه.په هغې کې کوم چې د غورزولو نه روسته پاته پاتې دي.او هغه
شپږ دي. فَيَكُونُ عِشْرِينَ نو دا به شل شي ثُمَّ تَقْسِمُ الْعِشْرِينَ عَلَى مَا بَقِيَ بَعْدَ مَا ذَهَبَ بِالطَّبْخِ مِنْهُ قَبْلَ أَنْ يَنْصَبَّ مِنْهُ
شَيْءٌ وَذَلِكَ تِسْعَةٌ بیا ته شل ویش کړه.په هغې کوم چې پاته پاتې شوي وو.ددې نه روسته چې کوم ختم شوی



وو.د پخولو په وجه، ددې نه د بعض غورزیدو نه وړاندې، او هغه نهه دی فَيَخْرُجُ لِكُلِّ جُزْءٍ مِنْ ذَلِكَ اثْنَانِ
وَثُلُثَانِ نو په دې کې به د هر جزء لپاره دوې (دوه) او دوې (دوه) نوی برخې (حصې) راوځي، فَعَرَفْتَ أَنَّ الْحَلَالَ
فِيمَا بَقِيَ مِنْهُ رِطْلَانِ وَثُلُثَانِ نو معلومه شوه.چه حلال هغه دې.چه کوم د شیرې نه دوې (دوه) رطله او دوې
(دوه) نوی برخې (حصې) پاته پاتې شي.

تشریح:- په دې متن کې علامه مرغیناني رحمه الله دوهم مثال ذکر کوي چې لس رطله د انګورو شیره ده.په دې کې
یو لیټر پخولو سره اوسوزیدو.او ددې نه روسته درې لیټره اوغورزولې شو.نو اوس څومره پوخ کړی.چه پاته
پاتې حلال شي.نو د ذکرشوې قاعدې مطابق د لسو ثلث راوښکلې شو.یعنی ۳۱۱ لیټره، بیا دې ته په شپږ
لیټرو کې ضرب ورکړې شو.نو حاصل د ضرب شل لیټره شو.بیا دا نهو لیټرو باندې ویش کړې شو.نو
حاصل د تقسیم ۹۱۲ شو.نو معلومه شوه.چه دومره مقدار به نور هم سوزول ضروري وي.چه ۹۱۲ لیټر پاته
پاتې شي.اوس دا حلال دی.

**خلاصه د بحث**

وَعَلَى هَذَا تُخَرَّجُ الْمَسَائِلُ او په دې اصول باندې د مسئلو تخریج کیږي وَلَهَا طَرِيقٌ آخَرُ او ددې لپاره دویمه طریقه
ده، وَفِيمَا اكْتَفَيْنَا بِهِ كِفَايَةٌ وَهِدَايَةٌ إِلَى تَخْرِيجِ غَيْرِهَا مِنَ الْمَسَائِلِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ او په دې طریقه چې موږ پرې اکتفاء
کړې ده.کفایت او هدایت دې.ددې نه علاوه د نورو مسئلو تخریج اړخ ته...والله أعلم بالصواب،،

تشریح:- مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه موږ ستاسو په وړاندې یوه داسې اصولي نقطه پیش کړې ده.چه په دې سره
ددې ډول د ټولو مسئلو تخریج کیږي.نو حساب په ذهن کې کینول پکار دي.بیا فرمائي.چه په دې کې د
حساب بله طریقه هم شته.خو کومه طریقه چې موږ بیان کړې ده.هغه کافي او پوره ده.،والله أعلم بالصواب،،
تنبیه۞ په کفایة او هدایة کې باریك اشاره ده.کفایة المنتهی او هدایة اړخ ته.

## كِتَابُ الصَّيْدِ

ژباړه:- (دا) کتاب د ښکار (د احکامو په بیان کې) دې.

تشریح:- لکه څنګه چې شرابو سره خوشحالي حاصلولې شي.دغه ډول ښکار سره هم خوند او مزه حاصلولې
شي.،،کما لا یخفی،، نو بیا د دواړو په منځ کې وجه د مناسبت ښکاره ده.او ښکار د خوراکوتو ځنې دې.چه
ددې شرابو سره مناسبت ښکاره دې.بیا لکه څنګه چې شراب څه حلال او څه حرام دی.دغه ډول په ښکار کې
هم څه حلال او څه حرام دی.بیا د اشربه مخکې ذکر کاوه وجه دا ده.چه په دې کې د حرمت غلبه ده.او په دې
کې د حلت.،کما هو ظاهر،،

د دې نه وړاندې چې د دې کتاب په مسائلو پیل اوکړو د ښکارد شرطونو بیان مناسب ګنړم نو زده کړه دا
خبره چې د ښکار د جواز پنځلس شرطونه دی.په دې کې پنځه هغه دی.چه دهغې تعلق ښکار کونکی
(ښکاري) سره دې.او هغه دا دی.(١) د ذکاة (ذبح) اهل وي.(٢) دده د اړخه لیږل اوموندې شي.(٣) دده سره
په لیږلو کې داسې کس شریك نه وي.چه د هغه ښکار حلال نه دې.(٤) په قصد سره نې تسمیه (بسم الله) نه
وي پریښودې.(٥) د لیږلو او نیولو په منځ کې بل څه کار کې نه وي بوخت شوې.

او پنځه شرطونه هغه دی.چه د هغې تعلق سپي سره دې.او هغه پنځه دی.(١) سپې معلم وي.چه ددې
تفصیل اوس راروان دې.(٢) سپې نې چې په کومه طریقه (او رفتار) باندې پریښودې وي.هم په هغه طریقه
باندې روان شي.(٣) په ښکار نیولو کې دده سره داسې سپې نه وي شریك شوې.چه د هغه مړښکار حلال نه
دې.(٤) سپې ښکار زخمي کړي.داسې نه چې پخپل بوج سره نې مړ کړي.(٥) سپې ددې نه هیڅ او نخوري.

او پنځه شرطونه هغه دي. کوم چې په ښکار کي دي. او هغه دا دي. ① ښکار د حشرات الارض ځني نه وي. ② د کب (مې) نه علاوه بل څه دريابي ځناور نه وي. ③ دا ښکار داسې وي. چه هغه پخپلو لاسونو او پنجويا ښکرو (وغيره) سره د خپل ځان ساتنه کونکې وي. ④ داسې ځناور نه وي. چه هغه پخپلو غاښونو سره شلول کوي. او خوري. يا پخپلو پنجو سره راشوکه وي. او خوري. لکه بابنه، باز او لکه شرمخ، زمرې، ⑤ دا د ذبح کاوه پورې په لاس نه وي راغلې. بلکه د ښکاري ځناور په زخمي کاوه سره مړ شوې وي. نو هله په لاس راغلې وي. نو که دا په لاس راغې. نو اوس د ذبح نه بغير حلال نه دې. او ددې لنډيز دا ده. چه اصل کي پخپل لاس سره ذبح کول لازم دي. او کله چې اختياري ذبح ممکن نه وي. نو اضطراري ذبيحه به په ذريعه د غشي او ښکاري څاروي هلاکاوه سره حلال وي. نو کله چې ده ښکاري ځناور پريخودو. او ده اونيولو. او مالك ورته اورسيدو. حالاتکه اوسه پورې ښکار ژوندې دې. نو اوس په ده باندې اختياري ذبح کول واجب دي. ترديې که دا مړ شو. او ده ذبح نکړو. نو مردار شو.

### د.. صيد.. لغوي معنى او د ښکار د حلت دلائل

الصَّيْدُ الِاصْطِيَادُ صيد په معنى د ښکار کاوه کي دې، وَيُطْلَقُ عَلَى مَا يُصَادُ او ونيلې شي دا هغه څاروی ته چې ښکار کولای شي وَالْفِعْلُ مُبَاحٌ لِغَيْرِ الْمُحْرِمِ فِي غَيْرِ الْحَرَمِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا او دا فعل مباح دې. د غير محرم دپاره، په غير حرم کي، د الله تعالى د فرمان ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا﴾ وَقَوْلُهُ عَزَّ وَجَلَّ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا او د الله ﷻ د فرمان ﴿وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ﴾ په وجه. وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِعَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ الطَّائِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د نبی کريم ﷺ د فرمان په وجه عدی بن حاتم طائی رضی الله عنه ته إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ الْمُعَلَّمَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ کله چې تا خپل تعليم يافته سپې پريښولو. او په هغې دې د الله تعالى نوم واخستلو. فَكُلْ نو خوره وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ فَلَا تَأْكُلْ او که سپي ددې نه خوړلې وي. نو مه خوره لِأَنَّهُ إِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ ځکه چې سپي ښکار خپل ځان لپاره ساتلې دې وَإِنْ شَارَكَ كَلْبَكَ كَلْبٌ آخَرُ فَلَا تَأْكُلْ او که ستا سپي سره بل سپې شريك شوې وي. نو مه خوره فَإِنَّكَ إِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلَى كَلْبِكَ ځکه چې تا په خپل سپي باندې تسميه ونيلې ده، وَلَمْ تُسَمِّ عَلَى كَلْبِ غَيْرِكَ (۱) او د خپل سپي نه علاوه باندې دې تسميه نه ده ونيلې.

**حل اللغة:** ① **كلب:** سپې ② **المعلم:** تربيت شده ﴾ (؟) جاري

**تشريح:-** د.. صيد.. دوې (دوه) معانې دي ① هغه حيوان (څاروې) کوم چې ښکار کړې شي. ② ښکار کول بيا ښکار کول جائز فعل دې. خو شرط دا دې. چه ښکار کونکې د احرام په حالت کي نه وي. او په حرم کي ښکار اونکړي. مرغيناني رحمه الله د ښکار په جواز باندې پنځه دليلونه ذکرکړي دي. درې په دې عبارت کي کوم چې ذکر دې. او دوې (دوه) ددې نه روسته دا درې دليلونه نقلي دي. چه په دې کي ړومبی دوې (دوه) د قرآن آياتونه دي. او دريم حديث دې. د ړومبی آيت نه معلومه شوه. چه په حالت د حلال (عدم احرام) کي ښکار حلال دې. د دوهم آيت نه معلومه شوه. چه د احرام په حالت کي ښکار حرام دې. او په حديث کي ددې نور تفصيل ذکر دې. چه دا صرف د ژباړې نه ښکاره دې.

### څلورم او پنځم دليل

وَعَلَى إِبَاحَتِهِ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ او د ښکار په اباحت باندې اجماع منعقد شوې ده وَلِأَنَّهُ نَوْعُ اكْتِسَابٍ او ځکه چې دا کتې د (مزدورۍ) يو ډول دې وَانْتِفَاعٍ بِمَا هُوَ مَخْلُوقٌ لِذَلِكَ او د انتفاع يو ډول دې. د هغه څاروی نه کوم چې

(۱) اخرجه البخاری فی الوضوء باب ۳۳ ومسلم فی الصيد رقم ۳ وابوداؤد فی الاضاحی باب ۲۲س والترمذی فی الصيد باب ۶ والنسائی فی الصيد باب ۲ والدارمی فی الصيد باب ۱ واحمد فی المسند ۱۴\۲۵۶) ۱۲



انتفاع لپاره پيدا کړې شوې دې وَفِيهِ اسْتِبْقَاءُ الْمُكَلَّفِ وَتَمْكِينُهُ مِنْ إِقَامَةِ التَّكَالِيفِ او په دې کي د مکلف پاته ساتل دي. او ده ته د تکاليفو قائمولو قدرت ورکول دي فَكَانَ مُبَاحًا بِمَنْزِلَةِ الِاحْتِطَابِ نو دا مباح دې. د خشاکو راجمع کاوه په مرتبه کي ثُمَّ جُمْلَةُ مَا يَحْوِيهِ الْكِتَابُ فَصْلَانِ بيا هغه واړه مباحث په کوم چې کتابونه مشتمل دي. دوې (دوه) فصلونه دي أَحَدُهُمَا فِي الصَّيْدِ بِالْجَوَارِحِ په هغې کي يو جوارح (ښکاري ځناورو) سره د ښکار کاوه په بيان کي دې، وَالثَّانِي فِي الِاصْطِيَادِ بِالرَّمْيِ او دوهم په غشي ويشتلو سره د ښکار کاوه په بيان کي دې.

**حل اللغة:** ① **يحوي:** مشتمل دې ② **تمكين:** قدرت ورکول ③ **الرمي:** ويشتل﴾

**تشريح:-** دا څلورم او پنځم دليل دې. ④ د ښکار اباحت باندې اجماع منعقد شوې ده. ⑤ ښکار کول د مزدورۍ کاوه يوه طريقه ده. او دا جائز دي. او په ښکار کاوه کي ځناور په هغه شئ کي استعمالول د کوم لپاره چې هغه پيدا شوې دې. او په دې کي د مکلف پاته ساتل دي. او مکلف ته د تکاليف شرعيه قائمولو قدرت ورکول دي. نو ښکار کول به داسې مباح وي. لکه څنګه چې خاشې (خشاك) راجمع کول جائز دي. بيا مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه په دې کتاب کي دوې (دوه) فصلونه دي. په ړومبی فصل کي په جوارح (ښکاري ځناورو) سره د ښکار کاوه تفصيلي بيان دې. او په دوهم فصل کي په غشي وغيره سره د ښکار کاوه تفصيلي بيان دې.

## فَصْلٌ فِي الْجَوَارِحِ

ژباړه:- (دا) فصل د جوارح (په بيان کي) دې.

**تشريح:-** په دې فصل کي مرغيناني رحمه الله د هغه ځناورو د ښکار بيان فرمائي. کوم چې زخمي کونکي دي. او جوارح د جارحة جمع ده. ددې دوې (دوه) معانې راځي ① کسب کونکې ② زخمي کونکې. او دلته کي دواړه معانې مراد دي.. كما سيأتي.. بيا ئې جوارح په رمي (ويشتلو) باندې مقدم کړو. ځکه چې جوارح حيوان دې. چې دا فاضل دې. او رمي غيرحيوان دې. چه دا مفضول دې. او فاضل په مفضول باندې مقدم وي.

### په تعليم يافته سپي، پړانګ، او باز سره د ښکار حکم

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله او فرمائيل وَيَجُوزُ الِاصْطِيَادُ بِالْكَلْبِ الْمُعَلَّمِ وَالْفَهْدِ وَالْبَازِي وَسَائِرِ الْجَوَارِحِ الْمُعَلَّمَةِ او په تعليم يافته سپي، او پړانګ، او باز، او ټولو تعليم يافته ځناورو سره ښکار کول جائز دي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ وَكُلُّ شَيْءٍ عَلَّمْتَهُ مِنْ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ وَذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ او په جامع صغير کي دي. او هرهغه شئ چې تا ورته تعليم ورکړو. يعنی د درنده ګانو ځني، د غاښونو والا، او په مارغانو کي د پنجو والا فَلَا بَأْسَ بِصَيْدِهِ نو ددې په ښکار کي هيڅ باك نشته، وَلَا خَيْرَ فِيمَا سِوَى ذَلِكَ إِلَّا أَنْ تُدْرِكَ ذَكَاتَهُ او ددې نه په علاوه کي هيڅ خير نشته. خو دا چې ته ددې ذبح اومومې.

**حل اللغة:** ① **الاصطياد:** ښکار کول ② **الفهد:** پړانګ ③ **البازي:** باز ④ **ذكاة:** ذبح﴾

**تشريح:-** کوم (درنده يا مارغه) ته چې تا تعليم ورکړو. (چې ددې تفصيل نزدې راروان دې) که هغه ښکار کونکې درنده وي. او که مارغه وي. نو د هغې کړې ښکار حلال دې. ړومبی ته.. ذی ناب.. او دوهم ته.. ذی مخلب.. وائي. او که دا تعليم يافته نه وي. نو بيا ددې په ښکار کي هيڅ خير نشته. يعنی حلال نه دې. بلکه حرام دې. البته که غير معلم ښکار اونيولو. او دا ښکار تا ته ژوندې ملاؤ شو. او تا دا ذبح کړو. نو دا حلال دې.

### د ذکر شوي ځناورو د ښکار د جواز دليل

وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ او اصل په دې كي ( يعنى په دې كي چې د جارح ذى ناب كيدل، او ذى مخلب كيدل شرط دى) د الله تعالى فرمان دې. ﴿ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ ﴾ ﴿المائده: ۴﴾ وَالْجَوَارِحُ: الْكَوَاسِبُ قَالَ فِي تَأْوِيلِ او جوارح په معنى د كواسب دى. ( كټه كونكي) د تاويل مطابق الْمُكَلِّبِينَ: الْمُسَلِّطِينَ او مكلبين د مسلطين په معنى كي دې، فَيَتَنَاوَلُ الْكُلَّ بِعُمُومِهِ.، ( اوهركله چې هم دا معنى كومه چې مونږ ذكركړله) نو د الله تعالى فرمان به ګډ وى. ټولو جوارحو ته د خپل عموم په وجه دَلَّ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ عَدِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم په دې عموم دلالت كوى هغه حديث كوم چې مونږ روايت كړې دې. د عدى ﷺ حديث وَاسْمُ الْكَلْبِ فِي اللُّغَةِ يَقَعُ عَلَى كُلِّ سَبُعٍ حَتَّى الْأَسَدِ خكه په دې كي دى عمر اذا أرسلت كلبك... ﷺ او لفظ د كلب په لغت كي هر درنده ته وئيلي شى. تردې چې شرموښ ته هم وئيلي شى.

هل اللغة: ① الجوارح: ماتونكى ② الكواسب: جمع د كاسب كټه كونكي ③ الاسد: زمري ④ سبع: درنده ﴾

تشريح:- په متن كي چې كومه مسئله ذكر ده. په دې كي د ښكارى خناور ذى ناب او ذى مخلب كيدل شرط دى. او شرط په هغه آيت سره ثابت دې. په كوم كي چې د جوارح ذكر دې. او د مكلبينو جوارح هغه ټولو خناورو ته ګډ دې. كوم چې پخپلو غاښونو او پنجو سره ښكار كونكى دى. چونكه جوارح د كواسب په معنى كي دې. او ښكار كول ګټه كول دى. نو دا واړه خناور ګټه كونكى دى. او دلته د مكلبين معنى سپې نه دې. بلكه ددې معنى مسلطين ده. يعنى تاسو دا جوارح ( مزدورى او ګټه كونكى) په ښكار باندې پريږدئ. او دا په ښكار باندې مسلط كړئ. د ..فى تاويل.. قيد ئې خكه لګولي دې. چه بعضو حضراتو جوارح په معنى د زخمى كونكى هم اخستې ده...كما سيأتى.. بهرحال هركله چې د آيت معنى دا شوه. كومه چې ذكر شوه. نو ددې په عموم كي واړه جوارح داخل دى. او دا حكم صرف سپو لپاره مخصوص پاتې نشو. او د حضرت عدى ﷺ حديث هم په دې عموم باندې دلالت كوى. په كوم چې لفظ د كلب راغلي دې. او لفظ د كلب په لغت كي ټولو درنده ګانو ته وئيلي شى. چه په دې كي شرموښ هم داخل دې.

پوره آيت دا دې ﴿يَسْأَلُونَكَ مَاذَا أُحِلَّ لَهُمْ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ﴾ خلګ ستاسو نه پوښتنه كوى. چه ددوى لپاره څه شئ حلال دې. تاسو اوفرمايئ چه ستاسو پاكيزه شيان حلال دى. او هغه چې تاسو اوښايئ ښكارى خناورو نه په ښكار پسې ورتلل، چې تاسو ئې ورته ښايئ: د هغه خبرو نه كوم چې الله تعالى تاسو ته خودلى دى. نو تاسو خورئ د هغې نه كوم چې هغوى اوساتى. ستاسو دپاره، او په دې د الله نوم اخلئ، بهرحال لفظ د جوارح خپلې مادې ( د جرح) په اعتبار سره دې ته هم ګډ دې. چه ښكارى خناور ښكار زخمى هم كړى. او هم دا د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې. چه تفصيل نزدې راروان دې.

**په كومو خناورو سره ښكار كول جائز دى؟**

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ اسْتَثْنَى مِنْ ذَلِكَ الْأَسَدَ وَالذِّئْبَ، او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى. چه دوى د جوارح نه د شرموښ او سمساره استثناء كړې ده لِأَنَّهُمَا لَا يَعْمَلَانِ لِغَيْرِهِمَا خكه چې دا دواړه د خان نه علاوه لپاره كار نه كوى الْأَسَدُ لِعُلُوِّ هِمَّتِهِ وَالذِّئْبُ لِخَسَاسَتِهِ شرموښ د خپل لوئې همت په وجه، او سمساره د خپل بخيل توب په وجه وَأَلْحَقَ بِهِمَا بَعْضُهُمُ الْحِدَأَةَ لِخَسَاسَتِهَا او يوخاني كړې ئې دې. دوى دواړو سره د دوى نه بعضو ټپوس ددې د بخيل توب په وجه وَالْخِنْزِيرُ مُسْتَثْنًى او خنزير ( د آيت د عموم نه) مستثنى دې، لِأَنَّهُ نَجِسُ الْعَيْنِ فَلَا يَجُوزُ الِانْتِفَاعُ بِهِ خكه چې دا نجس العين دې. نو ددې نه انتفاع جائز نه ده، ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ التَّعْلِيمِ بيا د تعليم كيدل ضرورى دى لِأَنَّ مَا تَلَوْنَا مِنَ النَّصِّ يَنْطِقُ بِاشْتِرَاطِ التَّعْلِيمِ خكه چې كوم نص مونږ تلاوت كړې دې. هغه د تعليم په شرط كيدو باندې دلالت كوى وَالْحَدِيثُ بِهِ وَبِالْإِرْسَالِ او حديث د تعليم او ليګلو په شرط كيدو باندې دلالت كوى وَلِأَنَّهُ إِنَّمَا يَصِيرُ آلَةً



بِالتَّعْلِيمِ لِيَكُونَ عَامِلًا لَهُ او خكه چې ښكارى خناور به د تعليم په وجه د ذبح كاوه آله جوړيږى چه هغه د ليګونكى لپاره عمل كونكې شى، فَيَتَرَسَّلُ بِإِرْسَالِهِ وَيُمْسِكُهُ عَلَيْهِ نو هغه روان شى. د ښكارى په پريخودو سره، او ښكار د خپل مالك لپاره اوساتى.

هل اللغة: ① الذئب: سمساره ② خساسة: سپكوالې ③ همة: حوصله﴾

تشريح:- په ټولو جوارحو سره ښكار كول جائز دى. خو په دې كي سمساره او شرموښ او ټپوس مستثنى دى. خكه چې دا د نورو لپاره ښكار نه كوى. شرموښ خو د خپلې بهادرئ په وجه، او سمساره او ټپوس د خپل خيانت په وجه، او خنزير هم مستثنى دې. خكه چې دا نجس العين دې. چه ددې نه نفع اخستل حلاله نه ده. بيا د تعليم كيدل او د ښكارى د اړخه ليګل هم ضرورى دى. ذكر شوې آيت په تعليم، او حديث د عدى ﷺ په تعليم او ليګلو دواړو باندې دلالت كوى. او ښكارى خناور داسې شو. ګويا چې ښكارى پخپلې چړې وغيره ذبح كوى. په نورو الفاظو كي داسې چې كله خناور د انسان خونې زده كړو. دا په ذبح كي د سړى قائم مقام شو. خو ددې نيابت لپاره تعليم شرط دې. د تعليم نه روسته به دا د ليګونكى لپاره ښكار كوى. دده په پريخودو به په ښكار ورغړبه كيږى. او بيا به ښكار دده لپاره ساتى.

**د سپي او باز په تعليم كښې فرق**

قَالَ قدورى رحمه الله اوفرمائيل تَعْلِيمُ الْكَلْبِ أَنْ يَتْرُكَ الْأَكْلَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، او د سپى په تعليم كي توپير دا دې. چه دا درې خله خوراك پريږدى وَتَعْلِيمُ الْبَازِي أَنْ يَرْجِعَ او د باز تعليم دا دې. چه هغه واپس راشى وَيُجِيبَ إِذَا دَعَوْتَهُ وَهُوَ مَأْثُورٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا[1] او هركله چې دا راوبللې شى. نو قبول كړى. ( يعنى واپس راشى) او دا تفصيل نقل دې. د ابن عباس رضي الله عنهما نه.

تشريح:- بيا د سپى او باز په تعليم كي توپير دې. سپى ته به هغه وخت معلم ( تعليم يافته) وئيلې شى. كله چې په ده د تعليم او تاديب دا اثر ښكاره شى. چه دې ښكار اوكړى. او دا اونه خورى. بلكه مالك لپاره ئې اوساتى. او دا فعل دده نه درې خله صادر شوې وى. او د باز تعليم دا دې. چه هغه ستا په رابللو باندې راشى. مرغينانى رحمه الله فرمائى. چه دا تفصيل د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې. علامه زيلعى رحمه الله ددې اثر په اړه كي فرمائى. ..لم أجده..

**وجه د فرق**

وَلِأَنَّ بَدَنَ الْبَازِي لَا يَحْتَمِلُ الضَّرْبَ او خكه چې د باز بدن د وهلو برداشت نشى كولې وَبَدَنُ الْكَلْبِ يَحْتَمِلُهُ او د سپى بدن د وهلو احتمال لرى فَيُضْرَبُ لِيَتْرُكَهُ نو سپې به وهلې شى. چه هغه خوراك پريږدى وَلِأَنَّ آيَةَ التَّعْلِيمِ تَرْكُ مَا هُوَ مَأْلُوفُ عَادَةً او خكه چې د تعليم علامت د هغه شئ پريښول دى. كوم چې ده ته په عامه توګه (عام طور) باندې خوښ وى، وَالْبَازِي مُتَوَحِّشٌ مُتَنَفِّرٌ او باز وحشى دى. د انسان نه متنفر دې فَكَانَتِ الْإِجَابَةُ آيَةَ تَعْلِيمِهِ نو دده واپس راتګ دده د تعليم علامت دې، وَأَمَّا الْكَلْبُ فَهُوَ مَأْلُوفٌ اوهرچه سپې دې. نو دې بلدى خناور دې يَعْتَادُ الِانْتِهَابَ اود خوښو څيزونو د لوټ مار عادتى دې فَكَانَ آيَةُ تَعْلِيمِهِ تَرْكَ مَأْلُوفِهِ نو دده د تعليم علامت خپل مرغوب ( خوښ) شئ پريښول دى وَهُوَ الْأَكْلُ وَالِاسْتِلَابُ او هغه خوړل او لوټ مار كول ( او تختول) دى.

هل اللغة: ① مالوفة: بلد، اموخته ② متوحش: وحشى خنګلى ③ متنفر: نفرت كونكې ④ الانتهاب: لوټ كول ⑤ الاستلاب: لوټ مار كول﴾

[1]) قال الزيلعى رحمه الله غريب ثم قال وفى البخارى وقال ابن عباس رضي الله عنه ان اكل الكلب فقد افسده انما امسك على نفسه والله تعالى يقول تعلمون مما علمكم الله فيضرب ويعلم حتى يترك اخرجه البخارى فى الذبائح

تشريح:- بيا په سپي او باز کي توپير څکه شوی دی.چه سپی ته تعليم ورکول آسان دی.څکه چې دا وهل برداشت کولی شی.او د باز بدن وهل نه برداشت کوی.او دويمه خبره دا ده.چه د تعليم علامت دا دی.چه ځناور د خپل خوښ شیٔ د خوراك د عادت او فطرت نه منع شی.او سپی چونکه سړی سره اوسيدونکی (او اموخته) دی.نو په رابللو باندی راتګ به دده د تعليم علامت نه وی.البته د سپی عادت دی.چه څه ملاؤ شی.هغه اوخوری.او لوټ مار اوکړی.او کله چې ده ښکار اونيولو.او وې نه خوړلو.نو دا به دده د معلم او مؤدب کيدو علامت وی.او باز خو وحشی مارغه دی.کله چې دا تا سره دومره عادت شی.چه په رابللو سره راشی.نو هم دا به د تعليم علامت شمارلی شی.

## سپی به کله تعليم يافته ګڼړلی شی؟

ثُمَّ شَرَطَ تَرْكُ الْأَكْلِ ثَلَاثًا بيا (قدوری) شرط اولګولو.د دری ځله پريخودو وَهٰذَا عِنْدَهُمَا[1] او دا د صاحبينو رحمهما الله په نيز دی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او هم دا روايت دی.د امام ابوحنيفه رحمه الله نه لِأَنَّ فِيمَا دُونَهُ مَزِيدَ الِاحْتِمَالِ څکه چې ددی نه په کم کي زيات احتمال دی فَلَعَلَّهُ تَرَكَهُ مَرَّةً أَوْمَرَّتَيْنِ شِبَعًا نو کيدای شی چې ده خوراك پريښودی وی.يو يا دوی (دوه) ځله د موړ والی په وجه فَإِذَا تَرَكَهُ ثَلَاثًا دَلَّ عَلَى أَنَّهُ صَارَ عَادَةً لَهُ نو کله چې ده دری ځله خوراك پريخودو.نو دا په دی خبره دلالت کوی.چه دده عادت جوړ شوی دی وَهٰذَا لِأَنَّ الثَّلَاثَ مُدَّةٌ ضُرِبَتْ لِلِاخْتِبَارِ وَإِبْلَاءِ الْأَعْذَارِ كَمَا فِي مُدَّةِ الْخِيَارِ او دا څکه چې دری يوه داسې موده ده.چه دا د امتحان لپاره اود عذرونو آزمائش لپاره مقرر کړی شوی ده.لکه د خيار په موده کي وَفِي بَعْضِ قَصَصِ الْأَخْيَارِ او د بعضو غوره حضراتو په واقعاتو کي.

حل اللغة: ① ابلاء: امتحان، ازمائش ② الاخيار: غوره، برګزيده

تشريح:- د سپی د تعليم شرط دا دی.چه دا دری ځله ښکار او نخوری.او دا د صاحبينو رحمهما الله مذهب دی.او د امام ابوحنيفه رحمه الله په دی کي دوی (دوه) قوله دی.يو هم دا دی.کوم چې د صاحبينو رحمهما الله دی.او دوهم دا دی.کوم چې روستو راروان دی .چه ددی هيڅ مقدار مقرر نه دی.بلکه دا په رائې د اخته به باندی موقوف ده.بهرحال د ړومبی مذهب دليل دا دی.که ده يو ځل يا دوی (دوه) ځله خوراك پريخودلی وی.نو په دی کي اوس هم ډير احتمالات دی.چه کيدای شی د ګيډې د ډکوالی په وجه ئې نه وی خوړلی.البته کله چې ده دری ځله پورې اونخوړله.نو دا د عادت کيدو دليل دی.او دريو ته په عادت معلومولو کي او په نورو عذرونو کي کافی دخل دی.او د موسی او خضر عليهما السلام په واقعه کي هم د دريو دخل دی.حضرت موسی عليه السلام د دريم ځل په اړه کي فرمائيلی وو. ﴿إِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا﴾

تنبيه: او ددی ډير مثالونه دی ① ﴿أَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ﴾ ② ﴿فِي دَارِكُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ﴾ ③ ..إذا إستأذن أحدكم ثلاثاً فلم يؤذن له فيرجع.. ④ ..من إتجر فی شئ ثلاث مرات فلم يربح فليشغل إلی غيره.. ⑤ ..إمهال مرتد.. دری ورځې دی.⑥ اقل د حيض هم دری ورځې دی.

## د تعليم يافته کيدو لپاره علامت او مقدار

وَلِأَنَّ الْكَثِيرَ هُوَ الَّذِي يَقَعُ أَمَارَةً عَلَى الْعِلْمِ دُونَ الْقَلِيلِ او څکه چې زيات هغه مقدار دی.چه د علم علامت جوړيدی شی.چه قليل (داسې) نه دی وَالْجَمْعُ هُوَ الْكَثِيرُ او جمع هم دا کثير (مقدار) دی وَأَدْنَاهُ الثَّلَاثُ او د جمع کم اکا (ترۀ) درجه دری ده فَقُدِّرَ بِهَا نو علم به دريو سره اندازه کولای شی وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ عَلَى مَا ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ:

[1] القول الراجح هوهذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فی الفقه علی المذاهب الأربعة (٣٢/٢) وردالمحتار (٣٣٠/١٥) والهندية (٤٢٢/١٥) نقلاً عن القول الراجح (٣٢٠/١٢)-



لَا يَثْبُتُ التَّعْلِيمُ مَا لَمْ يَغْلِبْ عَلَى ظَنِّ الصَّائِدِ أَنَّهُ مُعَلَّمٌ او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مبسوط کي د ذکر شوی روايت مطابق تعليم نه ثابتيږی.ترکومه پورې چې د ښکاری په ګمان باندې دا خبره غالب نشی.چه دا تعليم يافته دی وَلَا يُقَدَّرُ بِالثَّلَاثِ او دريو ځلو پورې به نشی اندازه کولی لِأَنَّ الْمَقَادِيرَ لَا تُعْرَفُ اجْتِهَادًا بَلْ نَصًّا وَسَمَاعًا څکه چې مقدارونه اجتهاد سره نه پيژندلی کيږی.بلکه په نص او سماع سره (پيژندلی کيږی) وَلَا سَمْعَ فَيُفَوَّضُ إِلَى رَأْيِ الْمُبْتَلَى بِهِ او هيڅ سمع نشته.نو دا به په رائې د مبتلی به باندې پريښودی شی كَمَا هُوَ أَصْلُهُ فِي جِنْسِهَا لکه څنګه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله هم دا قاعده ده.په داسې قسمه مسئلو کي.

تشريح:- د دری ځله خوراك پريخودو بل دليل فرمائی.چه د يو علم علامت قليل نه کيدل بلکه کثير کيدل دی.او جمع کثير ده.قليل نه ده.نود جمعې اقل افراد دری واخستلی شو.او دا د علم علامت مقرر کړی شوی دی.په مبسوط کي ذکر دی.چه د امام صاحب رحمه الله مذهب دا دی.چه په دی کي د دريو ځلو هيڅ حد نشته.بلکه دا خو په رائې د اخته به باندې پريخودلی شوی دی.څکه چې مقاديرو کي قياسی حد بنديانې کار نه ورکوی.بلکه دلته کي نص ضروری دی.او نص موجود نه دی.نو دا به د امام صاحب رحمه الله د اصول مطابق په رائې د اخته به باندې پريښودی شی.

## ثمره د اختلاف او د صاحبينو رحمهما الله دليل

وَعَلَى الرِّوَايَةِ الْأُولَى عِنْدَهُ يَحِلُّ مَا اصْطَادَهُ ثَالِثًا او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ړومبی روايت مطابق هغه ښکار حلال دی.کوم چې سپی په دريم ځل ښکار کړی دی وَعِنْدَهُمَا لَا يَحِلُّ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز حلال نه دی لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَصِيرُ مُعَلَّمًا بَعْدَ تَمَامِ الثَّلَاثِ وَقَبْلَ التَّعْلِيمِ غَيْرُ مُعَلَّمٍ څکه چې دا به تعليم يافته وی.د دريو ځلو نه پس، او د تعليم نه وړاندې دا غير معلم دی فَكَانَ الثَّالِثُ صَيْدَ كَلْبٍ جَاهِلٍ نو دريم ځل به د جاهل سپی ښکار وی وَصَارَ كَالتَّصَرُّفِ لِمُبَاشِرٍ فِي سُكُوتِ الْمَوْلَى او دا داسې شوه.لکه هغه تصرف کوم چې اوکړې شی.د مولا د خاموشۍ په وخت کي،

تشريح:- مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله ددی ړومبی روايت مطابق کوم چې د صاحبينو رحمهما الله سره دی.په دی کي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، د دريم ځل نيولی شوی ښکار حلال دی.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د دريم ځل نيولی شوی ښکار حلال نه دی.د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دی.چه سپی تعليم يافته جوړيږی.د دريو ځلو پوره کيدو نه پس، او د تعليم نه وړاندې سپی غيرمعلم وو.نو په دريم ځل کي ثلث مکمل نشو.نو اوس به دا ښکار د جاهل سپی ښکار شمارلی کيږی.او ددی بعينه مثال دا دی.چه غلام مولا اوکتلو.چه هغه مال خرڅوی.او مولا په ده باندې چوپوالی اختيار کړله.نود مولا چوپوالی اجازت دی.او اوس به غلام ماذون له فی التجارة جوړيږی.خو دا بيع کومه چې اوس د کيدو په وخت مولا اوکتله.دا به لازم نه وی.تردی چې مولا ته ددی د ماتولو حق شته.نو صاحبين رحمهما الله فرمائی. چې لکه څنګه دا مسئله ده.دغه ډول د دريم ځل ښکار دی.چه دا به حلال نه وی.البته د ثالث نه روسته چې کوم ښکار کوی.هغه به حلال وی.

وَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دی. أَنَّهُ آيَةُ تَعَلُّمِهِ عِنْدَهُ چې دا (خوراك پريخودل) د سپی د تعليم علامت دی.د دريم ځل په وخت فَكَانَ هٰذَا صَيْدَ جَارِحَةٍ مُعَلَّمَةٍ نو وی به دا (دريم ځل) د تعليم يافته سپی ښکار، بِخِلَافِ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ په خلاف ددی (مولا د خاموشۍ) مسئلې لِأَنَّ الْإِذْنَ إِعْلَامٌ څکه چې اجازت خبر ورکوی وَلَا يَتَحَقَّقُ دُونَ الْعِلْمِ او خبر ورکول به متحقق نه وی.د غلام د پوهيدو نه بغير وَذٰلِكَ بَعْدَ الْمُبَاشَرَةِ او د غلام پوهيدل، د مباشرت (فعل) نه روسته دی.

تشريح:- امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی.چه هرکله سپی په دريم ځل خوراك پريخودو.نو اوس دا تعليم يافته شو.او دا ښکار د تعليم يافته سپی ښکار دی.او پاتې شوه هغه مسئله کومه چې صاحبينو رحمهما الله په استدلال کي پيش کړې ده.نو هغې به استدلال څکه صحيح نه دی.چه د مولا د اجازت حقيقت خبر ورکول دی.او خبرول نه

متحقق کیږی.د غلام دعلم نه بغیر، او غلام ته به علم حاصلیږی.د مباشرت نه پس، او څه چې غلام د علم نه مخکې کړی دی.نو هغه د محجور( غیرماذون) تصرف دې.چه دا به نه نافذ کیږی.

### د تعلیم یافته سپی یا باز د زخمی ښکار حکم

قَالَ قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا أَرْسَلَ كَلْبَهُ الْمُعَلَّمَ أَوْ بَازِيَهُ او هرکله چې ښکاری پریخودو خپل تعلیم یافته سپی، یا تعلیم یافته باز وَذَكَرَ اسْمَ اللهِ تَعَالَى عِنْدَ إِرْسَالِهِ او ده دالله نوم واخستلو.ده د پریخودو په وخت فَأَخَذَ الصَّيْدَ وَجَرَحَهُ فَمَاتَ حَلَّ أَكْلُهُ لِمَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ عَدِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، نو ده ښکار اونیولو.او دا ئې زخمی کړو.نو ښکار مړ شو.نو ددې خوراک جائز دې.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ روایت کړې دې.یعنی د عدی رضی الله عنه حدیث.

تشریح:- کله چې ښکاری بسم الله اوونیله.او خپل معلم سپی یا باز ئې پریخودو.او سپی یا باز ښکار اونیولو .او دا ئې زخمی کړو.او ښکار مړ شو.نو ددې خوراک حلال دې.چه په دې باندې د عدی رضی الله عنه حدیث دلالت کوی.

### د چاړې پشان سپی او باز هم د ذبح آله ده

وَلِأَنَّ الْكَلْبَ أَوِ الْبَازِيَ آلَةٌ او څکه چې سپی یا باز آله ده ،وَالذَّبْحُ لَا يَحْصُلُ بِمُجَرَّدِ الْآلَةِ إِلَّا بِالْاِسْتِعْمَالِ او ذبح نه حاصلیږی.صرف په آلې سره، مګر په استعمالولو سره وَذَلِكَ فِيهِمَا بِالْإِرْسَالِ او استعمال په دې دواړو کې پریخودو سره دې فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ الرَّمْيِ وَإِمْرَارِ السِّكِّينِ نو لیګل به د ویشتلو، او چاړې چلولو په مرتبه کې راکوزولې شی فَلَا بُدَّ مِنَ التَّسْمِيَةِ عِنْدَهُ نو ( د لیګلو په وخت) تسمیه کیدل ضروری دی.

حل اللغة: ① امرار: رانښکل ② السکین:چاړه ③ التسمیة: بسم الله ونیل

تشریح:- لکه څنګه چې چاړه وغیره د ذبح آله ده.دغه ډول سپی او باز هم د ذبح آله ده.او ښکاره ده.چه چاړه د استعمال نه بغیر ذبح کول نه کوی.تردې که چاړه پرته وی.او وزه په دې سربیره پریوتله.او ددې مرئ کټ شوه. نو دا ذبح نشوه.څکه چې استعمال او نه موندې شو.دغه ډول سپی او باز هم د ښکاری لپاره د ذبح آلې دی.او آله د استعمال نه بغیر کار نه کوی.او په سپی او باز کې استعمال دا دې.چه دا په ښکار پسې پریږدی.نو ددې په ښکار پسې پریښول داسې دی.لکه غشې ویشتل، او چاړه چلول،نو لکه څنګه چې د چاړې چلولو په وخت او د غشی ویشتو په وخت تسمیه ضروری ده.دغه ډول د سپی او باز پریخودو په وخت هم تسمیه ضروری ده.

### د متروك التسمیه ښکار حکم

وَلَوْ تَرَكَهُ نَاسِيًا حَلَّ أَيْضًا عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ او که تسمیه ئې هیره شوه.او ښکار ئې پریخودو.نو بیا هم حلال دې.د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دې ،وَحُرْمَةُ مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا فِي الذَّبَائِحِ او په قصد سره د تسمیه پریښودې شوی ښکار حرمت په کتاب الذبائح کې ( تیر شوې) دې.

تشریح:- که په وخت د لیګلو تسمیه هیره شوه.نو ښکار حلال دې.او که په قصد سره ئې تسمیه پریښودې وی.نو ښکارحرام دې.چه ددې تفصیل په کتاب الذبائح کې تیر شوې دې.

### ښکار لپاره د زخمی کولو شرط

وَلَا بُدَّ مِنَ الْجَرْحِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او ضروری دی زخمی کول د ظاهرالراية مطابق لِيَتَحَقَّقَ الذَّكَاةُ الْاِضْطِرَارِيُّ چې ذکاة اضطراری متحقق شی وَهُوَ الْجَرْحُ فِي أَيِّ مَوْضِعٍ كَانَ مِنَ الْبَدَنِ بِانْتِسَابِ مَا وُجِدَ مِنَ الْآلَةِ إِلَيْهِ بِالْاِسْتِعْمَالِ او هغه زخمی کول دی.چه د بدن په کومه برخه کې هم وی.د منسوب کیدو په وجه، د هغه آلې کومه چې



موجود شوې ده.د ښکاری په اړخ استعمال سره.

تشریح:- دا خبره ضروری ده.چه ښکاری ځناور ښکار زخمی هم کړی.کنی که زخم نه وی.او حیوان (ځاروې) مړ شوې وی.نو دا به حلال نه وی.او که زخمی کړې ئې وی.او ښکار مړشی.نو حلال دې.او دې زخم ته به د ذکاة اضطراری مرتبه ورکولې شی.او په ذکاة اضطراری چې د بدن په کومه برخه کې هم زخم اولګی.دا کافی دې.خو دا خبره ضروری ده.چه کومه آله استعمال کې راشی.هغه ښکار اړخ ته منسوب وی.او نسبت کول د استعمال په اعتبار سره وی.نو سپی او باز هم د ښکار لپاره آلې دی.دده د اړخه استعمال یعنی ننبلیدل ضرور پکار دی.

### د زخمی کیدو د شرطیت دلیل

وَفِي ظَاهِرِ قَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ﴾ مَا يُشِيرُ إِلَى اشْتِرَاطِ الْجَرْحِ او په ظاهر کې په فرمان د الله تعالى ﴿وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ﴾ ﴿المائدة: ٤﴾ کې داسې خبره ده.چه دا د زخم لګیدو د شرط کیدو اړخ ته اشاره کوی إِذْ هُوَ مِنَ الْجَرْحِ بِمَعْنَى الْجِرَاحَةِ فِي تَأْوِيلٍ څکه چې دا ( جوارح) د جرح نه مشتق دې.چه دا د جراحت (زخمی کولو په معنی کې دې.د یو تاویل مطابق ،فَيُحْمَلُ عَلَى الْجَارِحِ الْكَاسِبِ بِنَابِهِ وَمِخْلَبِهِ نو دا به محمول کولې شی.هغه جارح باندې، کوم چې کار ( مزدوری) کونکې دې.پخپلو غاښونو او خپلو پنجو سره وَلَا تَنَافِيَ او په جمع کاوه کې هیڅ منافات نشته وَفِيهِ أَخْذٌ بِالْيَقِينِ او په دې کې یقین اخستل دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ رُجُوعًا إِلَى التَّأْوِيلِ الْأَوَّلِ او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه زخمی کول شرط نه دی.رومبی تاویل اړخ ته رجوع کاوه سره، وَجَوَابُهُ مَا قُلْنَا او ددې ځواب هغه دې.کوم چې موږ بیان کړې دې.

حل اللغة: ① الجراحة: زخم ② مخلب: مخوکه

تشریح:- مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه په ښکاره د الله تعالى فرمان﴿وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ﴾سره هم د جرح معنی ثابتیږی.څکه چې جوارح د جرح نه مشتق دې.چه ددې معنی زخم لګول دی.اګرچه ددې یو تفسیر هغه دې.کوم چې ماقبل کې تیر شوې دی.چه جوارح د کواسب ( کارکونکې ) په معنی کې دې.او یو تفسیر دا دې.چه د جوارح معنی ده.،زخمی کونکې.او که دواړه معانې مراد واخستلې شی.نو په دې کې هیڅ منافات نشته.څکه چې دا ښکاری ځناور لکه څنګه چې زخم لګونکی دی.دغه ډول ګټه کونکی هم دی.نو د دواړو معانو اجتماع ممکن ده.او په دې کې یقین هم دې.کنی د یوې معنی مراد اخستلو په صورت کې احتمال دې.چه دویمه معنی مراد وی.او هرکله چې دواړه معانې جمع شوې.نو یقین حاصل شو.خو امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه جوارح په معنی د کواسب ده.نو زخمی کول به شرط نه وی.خو ددې ځواب هغه دې.کوم چې اوس موږ بیان کړې دې.

### د سپی یا پړانګ د ښکار نه د خوړلو حکم

قَالَ قدوری اوفرمائیل فَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ الْكَلْبُ أَوِ الْفَهْدُ که د ښکار نه سپی یا پړانګ اوخوړلو لَمْ يُؤْكَلْ نو ښکار به نشی خوړلې وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ الْبَازِي أُكِلَ او که ددې نه باز اوخوړلو.نو خوړلې به شی وَالْفَرْقُ مَا بَيَّنَّاهُ فِي دَلَالَةِ التَّعْلِيمِ او توپیر هغه دې.کوم چې موږ د تعلیم په دلالت کې بیان کړې دې وَهُوَ مُؤَيَّدٌ بِمَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ عَدِيٍّ رضی الله عنه او ددې تائید کیږی.د عدی رضی الله عنه هغه حدیث سره کوم چې موږ روایت کړې دې وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ فِي قَوْلِهِ الْقَدِيمِ فِي إِبَاحَةِ مَا أَكَلَ الْكَلْبُ مِنْهُ او دا حجت دې.په امام مالك او امام شافعی رحمهما الله باندې، ددوی په قول قدیم کې ، د هغه ښکار په جائز ګرځولو کې د کوم نه چې سپی خوړلې وی.

حل اللغة: ① الکلب: سپی ② الفهد: پړانګ

تشریح:- که سپی یا پړانګ د ښکار نه خوراك اوکړو.نو دا ښکار خوړل جائز نه دی.که باز اوخوړلو.نو د هغې

خوراك جائز دي.چه ددې تفصيل وړاندې تير شوې دې.او د عدی ﷺ د حديث نه ددې تائيد كيږي.د امام مالك رحمه الله قول او د امام شافعي رحمه الله قول قديم دا دې.كه سپی د ښكارنه خوراك اوكړو.نو ددې ښكار خوراك جائز دې.په دوی دواړو باندې د عدی ﷺ حديث حجت دې.چه په دې كي صراحت سره ذكر دی چې ﷺ وإن أكل منه فلا تأكل ﴾

## د سپی وېزو ښكارونو نه روسته د يو ښكار نه خوراك كول

وَلَوْ أَنَّهُ صَادَ صُيُودًا او كه سپی يو څو ښكاره اوكړل وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهَا او ددې نه ئې خوراك اونكړو ثُمَّ أَكَلَ مِنْ صَيْدٍ بيا د يو ښكار نه ده اوخوړلو لَا يُؤْكَلُ هَذَا الصَّيْدُ نو دا ښكار به نشي خوړلې ،لِأَنَّهُ عَلَامَةُ الْجَهْلِ خكه چې خوړل د جهل (نا پوهتيا) د علامت دې وَلَا مَا يَصِيدُهُ بَعْدَهُ حَتَّى يَصِيرَ مُعَلَّمًا عَلَى اخْتِلَافِ الرِّوَايَاتِ او نه به شی خوړلې هغه ښكار كوم چې دې روسته اوكړی.تردې چې دې تعليم يافته شی.د رواياتو د اختلاف مطابق ،كَمَا بَيَّنَّاهَا فِي الِابْتِدَاءِ لكه څنګه چې موږ ددې رواياتو په پيل كي بيان كړی دی.

حل اللغة* ① الصيود:جمع د صيد ، ښكار② محرز: محفوظ ③ المفازة: ډګر ،صحراء﴾

تشريح:- څپی يو څو ښكاره اونيول.او هغې نه ئې اونخوړلو.چه ددې نه معلومه شوه.چه دا سپې تعليم يافته دې.بيا روستو ده يو ښكار اونيولو.او د هغې نه ئې اوخوړلو.نو اوس به دا ښكار نشی خوړلې.او دغه ډول كومه پورې چې دا تعليم يافته نشی.تر هغه پورې به روستنی ښكارونه هم نه خوړلې كيږی.خكه چې كله ده د ښكار نه خوراك اوكړو.نو معلومه شوه.چه دا سپې جاهل دې.او د تعليم يافته كيدو هغه تفصيلات دی.كوم چې وړاندې تير شوی دی.

## د مخكښې نيولې شوو ښكارونو حكم

وَأَمَّا الصُّيُودُ الَّتِي أَخَذَهَا مِنْ قَبْلُ او بهرحال هغه ښكارونه كوم چې ده مخكي نيولی دی فَمَا أَكَلَ مِنْهَا نو د هغې نه چې كوم څه اوخوړلې شو لَا تَظْهَرُ الْحُرْمَةُ فِيهِ لِانْعِدَامِ الْمَحَلِّيَّةِ نو هغې كي به خو حرمت ښكاره نه وی.د محليت د نه كيدو په وجه وَمَا لَيْسَ بِمُحْرَزٍ بِأَنْ كَانَ فِي الْمَفَازَةِ بِأَنْ لَمْ يَظْفَرْ صَاحِبُهُ بَعْدُ تَثْبُتُ الْحُرْمَةُ او كوم چې محفوظ نه دې.په دې طريقه چې دې په څنګل كي وی.په دې طريقه چې مالك تر اوسه پورې په دې كامياب شوې نه وی فِيهِ بِالِاتِّفَاقِ نو په دې كي به بالاتفاق حرمت ثابتيږی ،وَمَا هُوَ مُحْرَزٌ فِي بَيْتِهِ يَحْرُمُ عِنْدَهُ[1] خِلَافًا لَهُمَا او كوم ښكار چې دده په كور كي محفوظ دې.هغه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز حرام دې.د صاحبينو رحمهما الله اختلاف دې.

تشريح:- اوس پاتې شوه مسئله دهغه ښكارونو كوم چې ده مخكي نيولی دی.چه دهغې څه حكم دې.نو وې فرمائيل.چه اول ددې ويش كولې شی.او ددې درې قسمونه دی① كوم چې خوړلې شوې دې.② كوم چې لا تر اوسه پورې نه دې ملاؤ شوې.په څنګل كي پروت دې.③ كوم چې په كور كي دې.اوسه پورې ئې خوړلې نه دې.نو په رومبی ډول كي به د محليت نه كيدو په وجه د حرمت حكم نه ښكاره كيږی.او دوهم ډول بالاتفاق حرام دې.او دريم ډول مختلف فيه دې.امام ابوحنيفه رحمه الله دا ناجائز ګرځوی.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز دا حلال دې. روستو د فريقينو دلائل ذكر دی.

## د صاحبينو رحمهما الله دليل

هُمَا يَقُولَانِ إِنَّ الْأَكْلَ لَيْسَ يَدُلُّ عَلَى الْجَهْلِ فِيمَا تَقَدَّمَ صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه خوراك جهالت باندې دلالت

---

[1] - هوقول ابی حنيفة رحمه الله كذافی العناية (٩/ ٥٠) وردالمختار (٥/ ٣٢٢) والهندية (٥/ ٤٢٣) نقلاعن القول الراجح (٢/ ٣٢١)-



نه كوی.په هغه ښكار كي كوم چې مخكي شوې دې لِأَنَّ الْحِرْفَةَ قَدْ تُنْسَى خكه چې حرفت (هنر) كله كله هيريږی وَلِأَنَّ فِيمَا أَحْرَزَهُ قَدْ أَمْضَى الْحُكْمَ فِيهِ الِاجْتِهَادُ او خكه چې په هغه ښكار كي كوم چې ښكاری محفوظ ساتلې دې.اجتهاد سره د حلت حكم نافذ شوې دې فَلَا يُنْقَضُ بِاجْتِهَادٍ مِثْلِهِ نو دا حكم به ددې د مثل اجتهاد سره نه ماتيږی لِأَنَّ الْمَقْصُودَ قَدْ حَصَلَ بِالْأَوَّلِ بِخِلَافِ غَيْرِ الْمُحْرَزِ خكه چې مقصود اول سره حاصل شوې دې.په خلاف د غير محفوظ، لِأَنَّهُ مَا حَصَلَ الْمَقْصُودُ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ لِبَقَائِهِ صَيْدًا مِنْ وَجْهٍ لِعَدَمِ الْإِحْرَازِ خكه چې هر اعتبار سره مقصود نه دې حاصل شوې.دده د ښكار پاته پاتې كيدو په وجه، يو اعتبار سره د نه محفوظ كاوه په وجه ،فَحَرَّمْنَاهُ احْتِيَاطًا نو دا موږ د احتياط په بناء باندې حرام اوګرځولو.

حل اللغة* ① الحرفة: كسب،هنر② الشبع: موړوالې﴾

تشريح:- دا اختلافی مسئله ده.دا د صاحبينو رحمهما الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه ډير وخته حرفت (هنر) د ذهن نه اوځی.او دا هيريږی.خو دا ددې خبرې دليل نه دې.چه كوم ده مخكي ښكارونه كړی دی. په هغې كي هم دې جاهل وو.نو كوم ښكار چې دده په كور كي محفوظ دې.هغه حلال دې.او يو اجتهاد په بل اجتهاد سره نه باطليږی.او په رومبی ښكار كي د حلت حكم جاری شوې وو.نو اوس به په دوهم اجتهاد سره د حلت دا حكم نه ختميږی.خكه چې مقصود هغه محفوظ ساتل دی.او دا مقصود په رومبی اجتهاد سره حاصل شوې دې.پاتې شو هغه ښكار كوم چې لا تر اوسه په قابو كي نه دې راغلې.او غير محفوظ دې.نو هغه اوس هم ښكار دې.او اوس لا هغه مقصود هم نه دې حاصل شوې.كوم چې ددې نه مطلوب دې.نو دا د احتياط په بناء باندې حرام ګرځولې شوې دې.

وَلَهُ أَنَّهُ آيَةُ جَهْلِهِ مِنَ الِابْتِدَاءِ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه خوړل د جهالت علامت دې.د پيل نه ،لِأَنَّ الْحِرْفَةَ لَا يُنْسَى أَصْلُهَا خكه چې د حرفت (پيشې) اصل نه هيريږی فَإِذَا أَكَلَ تَبَيَّنَ أَنَّهُ كَانَ تَرَكَ الْأَكْلَ لِلشِّبَعِ لَا لِلْعِلْمِ نو كله چې ده هيركړو.نو دا خبره واضحه شوه.چه دده خوراك پرېښول د موړوالی په وجه وو.د علم په وجه نه وو وَتَبَدَّلَ الِاجْتِهَادُ قَبْلَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ او د اجتهاد توپير د مقصود حاصليدو نه مخكي ده ،لِأَنَّهُ بِالْأَكْلِ خكه چې د مقصود حصول د خوراك په وجه دې فَصَارَ كَتَبَدُّلِ اجْتِهَادِ الْقَاضِي قَبْلَ الْقَضَاءِ نو داسې شوه.لكه د قاضی د اجتهاد بدليدل، د فيصلې كاوه نه وړاندې.

تشريح:- د امام صاحب رحمه الله د اړخه خواب ﷺ امام ابوحنيفه رحمه الله خواب وركړو.چه هركله ده اوخوړلو.نو دا ددې دليل دې.چه دا د پيل نه جاهل دې.او حرفت (پيشه) هيڅ كله نه هيريږی ،، كما هو ظاهر،، نو دده خوړل ددې خبرې دليل دې.چه مخكي كوم ده خوراك پرېښودې وو.هغه د علم په وجه نه وو.بلكه د موړوالی په وجه وو.او تاسو چې كوم د اجتهاد مسئله كړې ده.د هغې څواب دا دې.چه د مقصود حاصليدو نه مخكي كه اجتهاد بدل شی.نو د رومبی اجتهاد حكم به ساقطيږی.لكه كله چې د قاضی اجتهاد د فيصلې كاوه نه مخكي بدل شی.او د ښكار مقصود خوړل دی.او هغه هم نه دې حاصل شوې.

## باښه به كله نا پوهه ګڼړلې شی؟

وَلَوْ أَنَّ صَقْرًا فَرَّ مِنْ صَاحِبِهِ او كه باښه د خپل مالك نه اوتختيدو فَمَكَثَ حِينًا نو لږ شان ايسار ثُمَّ صَادَ بيا ئې ښكار اوكړو لَا يُؤْكَلُ صَيْدُهُ نو دده ښكار به نشی خوړلې ،لِأَنَّهُ تَرَكَ مَا صَارَ بِهِ عَالِمًا خكه چې ده داسې شی پرېښودو.د كوم په وجه چې دا تعليم يافته ګڼړلې كيږی فَيُحْكَمُ بِجَهْلِهِ نو دده د جهالت حكم به ور كولای شی كَالْكَلْبِ إِذَا أَكَلَ مِنَ الصَّيْدِ لكه سپې كله چې دې د ښكار نه خوراك اوكړی.

حل اللغة* ① صقر: باښه﴾

تشريح:- باښه د خپل مالك د لاس نه والوتله.او څو څو خله مالك راؤغوښتله.خو دا رانغله.نو اوس به دده د

جهالت د حكم وركولې شي. كه ده ښكار اونيولو. نو حلال به نه وي. تفصيلي بيان تير شوې دې.

## د ښكاري سپي د ښكار وينه څكل

وَلَوْشَرِبَ الْكَلْبُ مِنْ دَمِ الصَّيْدِ او كه سپي د ښكار وينه اوڅكله وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ أُكِلَ اود ښكار نه نې هيڅ نخوړل نو دا به خوړلې شي ،لِأَنَّهُ مُمْسِكٌ لِلصَّيْدِ عَلَيْهِ څكه چې سپې ښكار مالك لپاره ساتونكې دې وَهٰذَا مِنْ غَايَةِ عِلْمِهِ حَيْثُ شَرِبَ مَالَا يَصْلُحُ لِصَاحِبِهِ او دا د سپي د انتهائي د علم خبره ده. چه كوم شئ دده د مالك لپاره صحيح نه دې. هغه نې اوڅښلو ،وَأَمْسَكَ عَلَيْهِ مَا يَصْلُحُ لَهُ او كوم شئ چې هغه لپاره ګټور دې. هغه نې هغه لپاره اوساتلو.

**تشريح:**- سپي صرف د ښكار وينه اوڅكله او غوښه نې اونخوړله. نو دا ښكار حلال دې. څكه چې ددې سپي زيات مهارت معلوميږي. او دا دده د پي ايچ ډي ډيګري حاصليدو علامت دې. چه كوم شئ مالك لپاره حلال دې. هغه نې اوساتلو. او كوم چې مالك لپاره حرام دې. هغه نې اوڅښلو .

## د ښكاري سپي د ښكار وينه څكل

وَلَوْأَخَذَ الصَّيْدَ مِنَ الْمُعَلَّمِ كه ښكاري د تعليم يافته سپي ښكار واخستلو ثُمَّ قَطَعَ مِنْهُ قِطْعَةً وَأَلْقَاهَا إِلَيْهِ بيا دده د ښكار نه يوه ټكړه كټ كړله. او هغه نې د سپي مخې ته واچوله فَأَكَلَهَا يُؤْكَلُ مَا بَقِيَ نو هغه اوخوړله. نو پاته پاتې به خوړلې شي ،لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ صَيْدًا څكه چې دا ښكار پاتې نشو فَصَارَ كَمَا إِذَا أَلْقَى إِلَيْهِ طَعَامًا غَيْرَهُ نو داسې شوه. لكه چې ده هغه ارخ ته څه بل څه خوراك اچولې وي وَكَذَا إِذَا وَثَبَ الْكَلْبُ فَأَخَذَهُ مِنْهُ وَأَكَلَ مِنْهُ او هم دغه ډول كله چې سپي ټوپ اووهلو. نو ښكار نې دمالك نه واخستلو. او ددې نه نې اوخوړلو.( نو دا حلال دې) لِأَنَّهُ مَا أَكَلَ مِنَ الصَّيْدِ څكه چې ده د ښكار نه اونخوړلو وَالشَّرْطُ تَرْكُ الْأَكْلِ مِنَ الصَّيْدِ او شرط په ښكار كې خوړل پريښول وو فَصَارَ كَمَا إِذَا افْتَرَسَ شَاتَهُ نو داسې شوه. لكه چې كله سپې د مالك وزه ماته كړې بِخِلَافِ مَا إِذَا فَعَلَ ذٰلِكَ قَبْلَ أَنْ يُحْرِزَهُ الْمَالِكُ په خلاف ددې صورت كله چې سپي دا كار د مالك د محفوظ كاوه نه مخكې كړې وي ،لِأَنَّهُ بَقِيَتْ فِيهِ جِهَةُ الصَّيْدِيَّةِ څكه چې ښكار كې د ښكار كيدو جهت پاته دې.

**حل اللغة:** ① افترس: ښكار كول ② الصيدية: ښكار

**تشريح:**- كله چې سپي ښكار اونيولو. او وې نخوړلو. نو دا حلال دې.،،كمامر،، بيا كه مالك دښكار نه يوه ټكړه كټ كړله. او سپي ته نې وركړله. او هغه نې اوخوړله. نو په دې سره د ښكار په حلت باندې هيڅ توپير نه پريوځي. څكه چې اوس دا ښكار نه دې. دا خو داسې شوه. لكه چې مالك ده ته څه خوراك واچوي. او هغه اوخوري. بلكه كه په دې حالت كې سپې د مالك د لاس نه ښكار واخلي. او څه اوخوري. بيا هم پاته پاتې جائز دې. څكه چې دا اوس د سره ښكار نه دې. او د معلم كيدو شرط د ښكار نه نه خوړل وو. لكه كه سپې د مالك وزه ماته كړې. نو دده په تعليم يافته كيدو باندې هيڅ توپير نه راځي. البته كه د مالك د محفوظ كاوه نه مخكې سپې د ښكار نه څه اوخوري. نو اوس ددې خوړل حلال نه دي. څكه چې دا اوس هم ښكار دې.

## په سپي د ښكار غوښه خوړلو سره د پاته غوښې حكم

وَلَوْنَهَسَ الصَّيْدَ او كه سپي ښكار په غاښونو اوشوكولو فَقَطَعَ مِنْهُ بِضْعَةً فَأَكَلَهَا نو ددې يوه ټكړه نې كټ كړله. نو هغه نې اوخوړله ثُمَّ أَدْرَكَ الصَّيْدَ فَقَتَلَهُ بيا ده ښكار اونيولو. نو هغه نې مړ كړو وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ لَمْ يُؤْكَلْ او ددې نه نې او نخوړلو. نو دا به نشي خوړلې ،لِأَنَّهُ صَيْدُ كَلْبٍ جَاهِلٍ حَيْثُ أَكَلَ مِنَ الصَّيْدِ څكه چې دا د بې تعليمه سپي ښكار دې. په دې حيثيت سره چې ده د ښكار نه اوخوړلو.

**حل اللغة:** ① نهس: په غاښونوشوكول، څيرل

**تشريح:** سپي ښكار پسې منډه كړله. او سپي په ښكار خوله ورخښه كړه. چه په دې سره د ښكار د غوښې يوه



ټكړه د بدن نه جلا شوه. دې سپي دا ټكړه اوخوړله. او د خوړلو نه چې فارغ شو. بيا نې ښكار پسې منډه كړله. او هغه نې اونيولو. او مړ نې كړو. او هغې نه نې هيڅ اونخوړل. نو دا ښكار به نه خوړلې كيږي. څكه چې كله سپې په خوراك كې لګيا شو. نو معلومه شوه. چه دا جاهل سپې دې. او دا معلومه شوې ده. چه د جاهل سپي مړ ښكار حلال نه دې.

## د ښكار يو اندام خوړلو نه روسته ښكار نيولو سره ددې حكم

وَلَوْأَلْقَى مَا نَهَسَهُ وَاتَّبَعَ الصَّيْدَ فَقَتَلَهُ او كه سپي اوغورزوله هغه ټكړه، كومه چې ده غاښونو سره راشوكولې ده. او ښكار پسې شو. نو هغه نې قتل كړو وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ وَأَخَذَهُ صَاحِبُهُ او هغې نه نې اونخوړلو. او ښكار دده مالك واخستلو ثُمَّ مَرَّ بِتِلْكَ الْبِضْعَةِ فَأَكَلَهَا يُؤْكَلُ الصَّيْدُ بيا سپي هغه ټكړې پسې لاړو. او وې خوړلو. نو ښكار به خوړلې شي ،لِأَنَّهُ لَوْ أَكَلَ مِنْ نَفْسِ الصَّيْدِ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ لَمْ يَضُرَّهُ څكه كه سپي په دې حالت كې د نفس ښكار نه خوړلې وو. نو ده ته به ضرر نه وو( حلال به وو). ،فَإِذَا أَكَلَ مَا بَانَ مِنْهُ وَهُوَ لَا يَحِلُّ لِصَاحِبِهِ أَوْلَى نو هركله چې ده هغه ټكړه اوخوړله. كومه چې د ښكار نه جلا ده. حالانكه هغه دده د مالك لپاره حلال نه ده. نو په درجه اولى به ( ښكار حلال ) وي.

**تشريح:**- دا هم هغه ړومبئ مسئله ده. صرف دومره توپير دې. چه ړومبى صورت كې سپې ددې ټكړې په خوړلو كې بوخت شوې وو. او په دې صورت كې سپي اونخوړله. بلكه دا ټكړه نې اوغورزوله. او ښكار نيولو پسې هم هغه شان روان وو. تر دې چې وې نيولو. او مړې نې كړو. نو اوس ددې خوړل حلال دي. اګرچه د مالك د ښكار نه اخستلو نه روسته سپې هغه ټكړې پسې لاړشي. او وې خوري. بيا هم حلال دې. څكه چې هركله ښكار د مالك په لاسونو كې راغې. نو اوس دا ښكار پاتې نشو. هم دا وجه ده. كه په دې حالت كې سپې د مالك نه په زبردستئ واخلي. او وې خوري. بيا به هم ښكار حلال وي. نو هركله چې سپي هغه ټكړه اوخوړله. كومه چې مالك لپاره حلال نه ده. نو دا به په درجه د ښكار د جواز سبب وي. پاتې شو مخكنې حالت نو هغه څكه حلال نه وو. چه سپي د ښكار كاوه په حالت كې خوړلې وو. چه دا دده د جاهل كيدو دليل وو.

## د ښكار يو اندام كټ كولو نه روسته ښكار نيولو سره ددې حكم

بِخِلَافِ الْوَجْهِ الْأَوَّلِ په خلاف د ړومبى صورت لِأَنَّهُ أَكَلَ فِي حَالَةِ الِاصْطِيَادِ څكه چې سپي د ښكار كاوه په حالت كې خوړلې دې ،فَكَانَ جَاهِلًا مُمْسِكًا لِنَفْسِهِ نو دا سپې به جاهل وي. خپل ځان لپاره ښكار ساتونكې وَلِأَنَّ نَهْسَ الْبِضْعَةِ قَدْ يَكُونُ لِيَأْكُلَهَا او څكه چې ټكړه شوكول، كله ددې لپاره كيږي. چه هغه دا اوخوري وَقَدْ يَكُونُ حِيلَةً فِي الِاصْطِيَادِ لِيَضْعُفَ بِقَطْعِ الْقِطْعَةِ مِنْهُ او كله د ښكار كاوه حيله وي. چه ښكار ددې ټكړې كټ كاوه په وجه كمزورې شي فَيُدْرِكَهُ نو دې هغه اونيسي فَالْأَكْلُ قَبْلَ الْأَخْذِ يَدُلُّ عَلَى الْوَجْهِ الْأَوَّلِ نو د ښكار نيولو نه مخكې خوړل په ړومبئ وجه باندې دلالت كوي.( چې هغه خپل ځان لپاره شوكولې دې. چه وې خوري) ،وَبَعْدَهُ عَلَى الْوَجْهِ الثَّانِي فَلَا يَدُلُّ عَلَى جَهْلِهِ او د نيولو نه روسته ټكړه خوړل په دويمه وجه باندې دلالت كوي.( چې ده داسې څكه كړې دي. چه ښكار كمزورې شي) نودا خوړل دده په جهالت باندې دلالت نه كوي.

**حل اللغة:** ① البضعة: ټكړه، برخه ② الاصطياد: ښكار كول

**تشريح:**- كه سپي ټكړه اوشوكوله. او خوراك نې پيل كړې وو. نو دا به دده د جهالت دليل وو. نو ددې ښكار خوراك حلال نه دې. او شو كاوه نه روسته نه خوړل، او ښكار پسې تلل، ددې خبرې دليل دې. چه ده دا كار څكه كړې دې. چه ښكار كمزورې شي. او ددې د درد په وجه به زيات نشي تختيدې. نو بيا دا فعل د جهالت دليل نه دې. نو ددې خوراك حلال دې. بهرحال كله كله ټكړه شوكول د خوړلو لپاره وي. او كله د كمزور كاوه لپاره وي. نو كله چې ده خوړل پيل كړل. نو دا ددې خبرې دليل دې. چه ددې فعل مقصد هم دا وو. نو معلومه شوه. چه سپي د مالك لپاره ښكار نه دې كړې. بلكه خپل ځان لپاره نې كړې دې. نو دا به حلال نه وي. او

هرکله چې وې نخوړلو.نو دا ددې خبرې دليل دی.چه دده ددې فعل مقصد ښکار کمزورې کول دی.نو ددې په خوړلو کې هيڅ باك نشته.نو د نيولو نه مخکې خوړل په ړومبئ وجه دلالت کوی. اود نيولو نه روسته خوړل په دوهم صورت باندې دلالت کوی.نو دا خوړل د سپی په جهالت باندې دلالت کوی.

## د ښکاري سپي د ژوندي ښکار ذبح کولو حکم

قَالَ قدوری اوفرمائيل وَإِنْ أَدْرَكَ الْمُرْسِلُ الصَّيْدَ حَيًّا که ليګونکی ښکار ژوندې اوموندلو وَجَبَ عَلَيْهِ أَنْ يُذَكِّيَهُ نو په ده واجب دی.چه دا ذبح کړی وَإِنْ تَرَكَ تَذْكِيَتَهُ حَتّٰى مَاتَ لَمْ يُؤْكَلْ اوکه ده ذبح کول پريخودل.تردې چې ښکار مړ شو.نو خوړلې به نشی وَكَذَا الْبَازِيْ وَالسَّهْمُ و هم دغه ډول باز او تير دی ،لِأَنَّهُ قَدَرَ عَلَى الْأَصْلِ قَبْلَ حُصُوْلِ الْمَقْصُوْدِ بِالْبَدَلِ ځکه چې دې قادر شو په اصل باندې، د مقصود حاصليدو نه مخکې په بدل سره ،إِذِ الْمَقْصُوْدُ هُوَ الْإِبَاحَةُ ځکه چې مقصود هغه اباحت دې ،،وَلَمْ تَثْبُتْ قَبْلَ مَوْتِهِ فَبَطَلَ حُكْمُ الْبَدَلِ او اباحت نه ثابتيږی.د ښکار د مرګ نه مخکې ، نو د بدل حکم باطل شو.

حل اللغة* ① السهم:تير﴾

تشريح:- ښکاری په ښکار باندې خپل تعليم يافته باز پريخودو.يا ئې غشې اوويشتلو .چه په دې سره ښکار اونيولې شو.نو اوس به کتلې شی.چه هغه ژوندې دې.اوکه مړ دې.که مړ شوې وی.نو د هغې خوراك جائز دې.اوکه ژوندې وی.نو دا به هغه وخت حلال وی.چه دا ذبح کړې شی.ګنی که ذبح نکړې شو.تردې چې مړ شو.نو حلال به نه وی.ځکه چې اصول دا مقرر دې.که په بدل سره د مقصود حاصليدو نه مخکې مخکې اصل باندې قدرت اوشی.نو د بدل حکم به باطل وی.مثلاً يوکس تيمم اوکړو.او تر اوسه ئې لمونځ نه دې کړې.چه اوبه باندې قادر شو.نو د تيمم حکم باطل شو.او اودس کول او لمونځ کول به واجب وی.دغه ډول دلته کې مقصود د خوراك جواز دې.او ښکاره ده.چه د خوراك د جواز ښکاره کيدل به د ښکار د مرګ نه روسته کيږی.ګنی ددې ژوندې خوراك حلال نه دې.او اصول ذکاة اختياری دې.او بدل ذکاة اضطراری دې.نو په ذکاة اضطراری سره اوس مقصود حاصل شوې نه وو.چه دې په اصل باندې قادر شو.نو ذکاة اضطراری کوم چې بدل دې.هغه به باطل وی.

## بغير د ذبح نه د ښکار حکم

وَهٰذَا إِذَا تَمَكَّنَ مِنْ ذَبْحِهِ او دا حکم هغه وخت دې.کله چې دې په ذبح باندې قادر شی أَمَّا إِذَا وَقَعَ فِيْ يَدِهِ بهر حال هرکله چې ښکار دده په لاس کې راغې وَلَمْ يَتَمَكَّنْ مِنْ ذَبْحِهِ او هغه ددې په ذبح کاوه باندې قادرشوې نه دې مِنَ الْحَيَاةِ فَوْقَ مَا يَكُوْنُ فِي الْمَذْبُوْحِ او په دې کې ژوند شته.چه د ذبح شوی د ژوند نه زيات دې وَفِيْهِ لَمْ يُؤْكَلْ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ نو په ظاهرالرواية کې به نشی خوړلې.

تشريح:- فرمائی.چه دا کوم حکم موړ بيان کړې دې.چه ددې خوراك حلال نه دې.دا هغه وخت دې.کله چې دا ښکار ښکاری ته ژوندې ملاؤ شوې وی.او ښکاری ته ددې د ذبح کاوه قدرت وی.بيا هم ده ذبح کړې نه وی. او که قدرت نه وی ملاؤ شوې.يا په دې وجه چې چاړه نشته.يا چاړه شته.خو دومره وخت ملاؤ نشو.چه دې چاړه تيزه کړی.او دا ذبح کړی.ددې نه مخکې ښکار مړشو.نو ددې حکم دا نه دې.کوم چې ذکر شو.بلکه په دې کې اختلاف دې.ظاهرالرواية دا دې.که داسې اوشوه.چه ده ته دا ښکار ژوندې ملاؤ شو.خو ده ته په څه وجه د ذبح قدرت ملاؤ شو.تردې چې دا مړ شو.نوددې خوراك حلال نه دې.

وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ يَحِلُّ او د امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله نه نقل دی.چه حلال دې وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او هم دا د امام شافعی رحمه الله قول دې لِأَنَّهُ لَمْ يَقْدِرْ عَلَى الْأَصْلِ ځکه چې دې په اصل باندې نه دې قادر شوې فَصَارَ كَمَا إِذَا رَأَى الْمَاءَ وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى الْإِسْتِعْمَالِ نو داسې شوه.لکه چې ده اوبه اوکتلې.او په استعمال



قادر نشو.

تشريح:- او د شيخينو رحمهما الله يو روايت او د امام شافعی رحمه الله قول دا دې.چه دا حلال دې.ځکه چې دلته کې ښکاری ته د ذکاة اختياری د سره قدرت نشته.نو دا داسې ده.لکه چې تيمم کونکی اوبه اوکتلې.او په استعمال باندې قادر نشو.نو دده تيمم نه ساقطيږی.

مسئله۞ د څاروی ذبح کاوه نه روسته لږ وخت پورې په ده کې څه ژوند محسوسيږی.که په ښکار کې هم دومره ژوند شته.نو دا (ژوند) پشان د عدم دې،، کما سيأتی،، اوکه ددې نه زيات ژوند وی.نو بيا دا اختلاف دې.کوم چې ذکر شو.

## د ظاهرالرواية دليل

وَوَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّهُ قَدَرَ اعْتِبَارًا د ظاهرالرواية دليل دا دې.چه دې اعتباری لحاظ سره قادر شو ،لِأَنَّهُ ثَبَتَ يَدُهُ عَلَى المذبح ځکه چې دده قبضه په محل د ذبح باندې ثابته شوې ده وهو قائم مقام التمكن من الذبح او دا قبضه په ذبحه باندې د قدرت قائم مقام ده اذ لا يمكن اعتباره ځکه چې د قدرت اعتبار ممکن نه دې لانه لابد له من مدة ځکه چې د قدرت لپاره يوه موده کيدل ضروری دی والناس يتفاوتون فيها على حسب تفاوتهم فِي الْكِيَاسَةِ وَالْهِدَايَةِ فِيْ أَمْرِ الذَّبْحِ او خلګ په دې موده کې مختلف وی.د ذبح په معامله کې د مهارت او هدايت مختلف کيدو اعتبار سره فَأُدِيْرَ الْحُكْمُ عَلٰى مَا ذَكَرْنَاهُ نو د حکم مدار به هم په دې وی.کوم چې موږ ذکرکړی دی.

حل اللغة* ① الكياسة:مهارت ② الهداية: تجربه﴾

تشريح:- دا د ظاهرالرواية دليل دی.ددې حاصل دا دې.چه حکمی او اعتباری لحاظ سره ښکاری ته په ذبح باندې قدرت حاصل شوې دې.ځکه چې هرکله ښکار دده په لاسونو کې راغې.نو د ذبح محل دده په لاس کې دې.او د ذبح محل په لاسونو کې کيدل په ذبح بانې د قدرت قائم مقام دې.په دې وجه د حقيقی قدرت اعتبار مشکله معامله ده.ځکه چې ددې لپاره به بيا يوه موده پکار وی.بيا به دا موده څومره وی.دا به ګرانه مسئله وی.ځکه چې د ذبح په معامله کې خلګ متفاوت دی.څوك زر (په لږ وخت کې) ذبح کوی.چه دوی ته مهارت او طريقه او تجربه شته.بعض خلګ نا پوهه وی.چه په دې کې ډير وخت لګوی.نو د قدرت مدار په دې شو.چه دده په لاسونو کې ښکار راشی.

## د ښکار د آخری معمولی ژوند حکم

بِخِلَافِ مَا إِذَا بَقِيَ فِيْهِ مِنَ الْحَيَاةِ مِثْلُ مَا يَبْقٰى فِي الْمَذْبُوْحِ په خلاف ددې صورت کله چې ښکار کې دومره ژوند پاته وی.څومره چې ذبح کړې شوی کې پاته وی لِأَنَّهُ مَيِّتٌ حُكْمًا ځکه چې دا حکماً مړ دې أَلَا تَرٰى أَنَّهُ لَوْ وَقَعَ فِي الْمَاءِ وَهُوَ بِهٰذِهِ الْحَالَةِ لَمْ يَحْرُمْ آيا تاسو نه ګورئ.که ښکار اوبو کې پريوځی.او هغه هم په دې حالت وی.نو نه حراميږی ،،كَمَا إِذَا وَقَعَ وَهُوَ مَيِّتٌ وَالْمَيِّتُ لَيْسَ بِمَذْبَحٍ لکه څنګه چې ښکار په اوبو کې مړشی.حالانکه هغه مړ وی.او مړ د ذبح کاوه محل نه دې.

تشريح:- د کوم ښکار بحث چې پيل دې.که ددې حالت (او پوزيشن) دا وی.چه په ده کې ژوند شته.خو دا ژوند دومره دې.څومره چې ذبح کړې شوی کې وی.نو دې ته به ژوند نشی وئيلې.بلکه دا خو د اضطراب په وجه د غوښې حرکت (ړچ) دې.نو دده د ذبح کاوه اړتيا نشته.ځکه چې دا مړ شوې دې.هم دا وجه ده.که دا هم په دې حالت کې اوبو کې پريوځی.او په ده کې صرف دومره ژوند وی.څومره چې مذبوح کې وی.نودا به حرام نه وی.لکه څنګه چې بالکل مړ شوې ښکار يا مذبوح په اوبو کې پريوځی. نو دا به حرام نه وی.او مړ د ذبح محل نه وی.نو دا به نشی ذبح کولې.او مخکنې ذکاة اضطراری به ددې د حلال کيدو لپاره کافی وی.

### د ښكار په معمولي ژوند كښې په ذبح د قدرت كيدو يا نه كيدو حكم

وَفَصَّلَ بَعْضُهُمْ فِيهَا تَفْصِيلًا او بعض مشائخو په دې كې (كله چې ښكار كې د مذبوح نه زيات ژوند وي) لږ
تفصيل كړې دې وَهُوَ أَنَّهُ إِنْ لَمْ يَتَمَكَّنْ لِفَقْدِ الْآلَةِ لَمْ يُؤْكَلْ او هغه دا دې. كه دا قادر نه وي. د آله نه موجود كيدو
په وجه، نو خوړلې به نشي، وَإِنْ لَمْ يَتَمَكَّنْ بِضِيقِ الْوَقْتِ لَمْ يُؤْكَلْ عِنْدَنَا او كه قادر نه وي. د وخت د تنګوالي په
وجه، نو زموږ په نيز به نشي خوړلې.

تشريح:- بعض مشائخو ددې دا تفصيل بيان كړې دې. كه په ښكار كې ژوند وي. او دا ژوند د مذبوح د ژوند
نه زيات وي. نو كتلې به شي. چه په ذبح باندې قدرت ولې نشته. كه د چاړې وغيره نه كيدو په وجه قدرت
نشته. نو ددې خوراك به حلال نه وي. ځكه چې بې غورى د ښكارى د اړخه ده. چه ده چاړه خان سره ولې نه ده
ساتلې. او كه د قدرت نه كيدو سبب د وخت تنګوالې وو. نو بيا به هم زموږ په نيز نشي خوړلې.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ د امام شافعي رحمة الله عليه اختلاف دې، لِأَنَّهُ إِذَا وَقَعَ فِي يَدِهِ (زموږ دليل دا دې) ځكه چې هركله
ښكار دده په لاسونو كې راغلې لَمْ يَبْقَ صَيْدًا نو دا ښكار پاتې نشو فَبَطَلَ حُكْمُ ذَكَاةِ الْإِضْطِرَارِ نو د ذكاة
اضطرارى حكم باطل شو، وَهَذَا إِذَا كَانَ يُتَوَهَّمُ بَقَاؤُهُ او دا (د عدم حلت حكم) هغه وخت دې. كله چې دده د
پاته پاتې كيدو وهم وي.

تشريح:- د امام شافعي رحمة الله عليه په نيز دا حلال دې. او دا استحسان دې. او هم دا د حسن بن زياد او محمد بن
مقاتل رحمهما الله قول دې. او قاضي خان رحمة الله عليه هم دا اختيار كړې دې. ددې حضراتو دليل دا دې. چه كله د وخت د
تنګئ په وجه اصل باندې قدرت اونشو. نو ذكاة اضطرارى د حلت سبب موجود دې.
زموږ دليل دا دې. چه هركله ښكار د ښكارى په لاس كې راغې. نو اوس دا ښكار پاتې نشو. نو اوس د ذكاة
اضطرارى حكم باطل شو. ځكه چې ذكاة اضطرارى په ښكار كې چليږي. او اوس دا ښكار نه دې. خو دا
تفصيل او ددې حلال نه كيدل د ذبح نه بغير هغه وخت دې. كله چې ددې خبرې توهم وي. چه دا ښكار زخم
سره ژوندې پاتې كيداې شي. ګنى كه دا كيفيت وي. چه دا ددې زخم سره ژوندې نشي پاتې كيدې. نو ذكاة
اضطرارى به كافي وي... فتأمل..

### د ښكارى سپى د ښكار خيټه شلول

أَمَّا إِذَا شَقَّ بَطْنَهُ وَأَخْرَجَ مَا فِيهِ بهرحال هركله چې تعليم يافته سپى دده نس اوشلوله. او كوم څه چې دده په نس
كې دى. هغه ئې راؤ ويستل ثُمَّ وَقَعَ فِي يَدِ صَاحِبِهِ حَلَّ بيا دده دمالك په لاس كې راغې. نو حلال دې لِأَنَّ مَا بَقِيَ
اضْطِرَابُ الْمَذْبُوحِ فَلَا يُعْتَبَرُ ځكه چې كوم شئ پاته دې. هغه د مذبوح اضطراب دې. نو ددې اعتبار به نشي كولې
كَمَا إِذَا وَقَعَتْ شَاةٌ فِي الْمَاءِ بَعْدَ مَا ذُبِحَتْ لكه څنګه چې كله وزه په اوبو كې پريوځي. روستو ددې نه چې دا ذبح
كړې شوې وى وَقِيلَ هَذَا قَوْلُهُمَا او وئيلى شوى دى. چه دا د صاحبينو رحمهما الله قول دې، أَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فَلَا يُؤْكَلُ
أَيْضًا[1] بهرحال د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نيز به دا هم نشي خوړلې، لِأَنَّهُ وَقَعَ فِي يَدِهِ حَيًّا فَلَا يَحِلُّ إِلَّا بِذَكَاةِ الْإِخْتِيَارِ
رَدًّا إِلَى الْمُتَرَدِّيَةِ عَلَى مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى[2] ځكه چې ښكار دده په لاس كې ژوندې راغلې دې. نو دا به
حلال نه وي. مګر په ذكاة اختيارى سره، په متردیه (رازغړولې شوې) باندې قياس كاوه سره، چه دا به موږ

---

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمة الله عليه كذا فى ملتقى الأبحر (۴\۲۶۶) والكفاية فى صدر الفتح القدير (۹\۵۳)
وردالمحتار (۵\۳۳۴) وكشف الأستار (۲\۲۶۳) نقلاً عن القول الراجح (۲\۳۲۲)-
[2] هوقول ابى حنيفة رحمه الله كذافى ملتقى الابحر(۴/ ۲۶۶) والكفاية فى صدرالفتح القدير(۹/ ۵۳) وردالمحتار(۵/
۳۳۴) وكشف الاستار (۲/ ۲۶۳) نقلاعن القول الراجح (۲/ ۳۲۲)-



ان شاءالله بيان كړو.

حل اللغة: ① شق: څيرې والې ② بطن: نس ③ الاضطراب: حركت، خوزيدل ④ المتردية: رارغړولې شوې

تشريح:- وړاندې وئيلى شوى وو. چه د ذبح نه بغير عدم حلت هغه وخت دې. كله چې ددې د ژوند وهم (او
احتمال) وي. او كه دا وهم نه وي. نو هغه حلال دې. نو وې فرمائيل. كه تعليم يافته سپى د ښكار نس
اوشلوله. او ددې كلمې او لړې ئې بهر راويستلو. نو ددې ژوند غيرمتوهم دې. كه ښكارى دا ښكار ژوندې
اوموندلو. بيا هم د ذبح نه بغير حلال دې. ځكه چې په ده كې كوم ژوند محسوسيږي. هغه ژوند نه دې. بلكه د
مذبوح رږ (او حركت) دې. چې ددې هيڅ اعتبار نشته. لكه څنګه چې د ذبح نه روسته وزه اوبو كې
اوغورزيږي. نو هيڅ باك نشته. په دې باندې ابوبكر جصاص رازى رحمة الله عليه فرمائى. چه دا د حلت حكم صرف د
صاحبينو رحمهما الله قول دې. د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نيز به مشقوق البطن (شليدلې خيټې والا) هم حلال نه
وي. ځكه چې هركله دا مالك ته ژوندې ملاؤ شو. نو ددې حلت به د ذكاة اختيارى نه بغير نه كيږي. او دا د
متردیه (رازغړولې شوې) پشان دې. يعنى هغه حيوان (څاروې) كوم چې كوهى كې پريوځي. يا د غر يا چت نه
راوزغړي. نو هلته كې هم دا حكم دې. كه ژوندې ملاؤ شي. او ذبح كړې شي. نو حلال دې. ګنى نه دې. هم دا د
مشقوق البطن حال دې.

### د شليدلي خيټې ښكار ذبح كول

هَذَا الَّذِي ذَكَرْنَا إِذَا تَرَكَ التَّذْكِيَةَ او دا (عدم حلت) كوم چې موږ ذكركړې دى. هغه وخت دې. كله چې ده ذبح
كول پريخودى وى فَلَوْ أَنَّهُ ذَكَّاهُ حَلَّ أَكْلُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو كه ده دا ذبح كړې وى. نو ددې خوراك د امام
ابوحنيفه رحمة الله عليه په نيز حلال دې.

تشريح:- كه ده ښكار ذبح كړې وى. اګرچه دا مشقوق البطن وى. نو اوس بالاتفاق حلال دې. د امام صاحب
رحمة الله عليه په نيز، ځكه چې په ذكاة اختيارى باندې عمل شوې دې. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز ذكاة اختيارى كافي
وو.

### د متردیه، نطيحه، موقوذه او د شليدلي خيټې د يو څاروى معمولي ژوند كښې د ذبح حكم

وَكَذَا الْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَالْمَوْقُوذَةُ، وَالَّذِي بَقَرَ الذِّئْبُ بَطْنَهُ او هم دغه ډول متردیه، او نطيحه، او موقوذه، او هغه (
څاروې) چې شرموښ د هغې نس شلولې وى وَفِيهِ حَيَاةٌ خَفِيَّةٌ او په هغې كې پټ يا ښكاره ژوند وى أَوْ بَيِّنَةٌ، وَعَلَيْهِ
الْفَتْوَى لِقَوْلِهِ تَعَالَى إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ اسْتَثْنَاهُ مُطْلَقًا مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ او هم په دې فتوى ده. د الله تعالى د فرمان ﴿إِلَّا مَا
ذَكَّيْتُمْ﴾ المائدة: ۳ په وجه، الله تعالى ددې مطلقه استثناء فرمائيلې ده. د تفصيل نه بغير.

حل اللغة: ① متردية: متردیه هغه حيوان (څاروې) دې. چه هغه د بره نه راوزغړي. او مړ شي. ② نطيحة: هغه
دې. كوم چې د بل څاروى په ښكرونو سره مړشى. ③ موقوذة: هغه دې. چه ورته په وهلو سره تكليف رسولې
شوې وى. او هغه مړشي.

تشريح:- ښكاره ژوند كوم چې د ذبح شوى څاروى د ژوند نه زيات وى. حيات خفيفه (پټ يا) معمولي ژوند
هغه دې. چه هغې سره صرف دومره اندازه اوشى. چه دا ژوندې دې. هركله چې دا خبره په ذهن كې
كيناستله. نو اوس واورئ. چې مرغينانى رحمة الله عليه فرمائى. كه متردیه وى. او كه نطيحه يا موقوذه وى. يا هغه
حيوان (څاروې) وى. چه شرموښ د هغې نس شلولې وى. او اوس لا په دې كې ژوند شته. كه معمولي وى. او كه
ډير وى. نو كه په دې صورت كې دا ذبح كړې شى. نو دا حلال دى. ګنى حرام دى. او ذكاة اضطرارى خو دلته
كې د سره معدوم دې. او د امام صاحب رحمة الله عليه په قول فتوى ده.
امام صاحب رحمة الله عليه د هغه آيت نه استدلال كړې دې. چه په هغې كې فرمائيلى دى. ﴿إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ﴾ نو د

محرماتو نه ئې د ذبح شوی مطلقه استثناء فرمائيلې ده.چه په دې كي د حياتِ ظاهره او خفيفه هيڅ تفصيل نشته.د صاحبينو رحمهما الله په نيز كه حياتِ ظاهره وی.نو ددې ذبح كول به معتبر وی.ګنی حرام دې.بيا په دواړو كي خپل منځ كي اختلاف دې.چه حياتِ ظاهره كوم يو دې.نو امام ابويوسف رحمه الله اوفرمائيل.كه دومره حيات (ژوند) وی.چه هغه ددې په وجه ژوندې پاتې كيداې شی.نو دا حياتِ ظاهره دې.ګنی خفيفه دې.نو په دوهم صورت كي كه دا ذبح كړې شو.نو دا ذبح به معتبر نه وی.څكه چې ددې مړكيدل د ذبح په وجه نه دی... كماهو ظاهر.. او امام محمد رحمه الله فرمائی.كه دومره حيات وی.څومره چې مذبوح كي وی.نو دا حياتِ خفيفه دې.چه دا غير معتبر دې.او كه د مذبوح د حيات نه زيات وی.نو دا حياتِ ظاهره دې.چه معتبر دې.او اوس به ذبح كول معتبر وی.او حيوان (ښاروې) به حلال وی.( ددې نه روسته ) هم دا مرغينانی رحمه الله فرمائی.

**د امام ابويوسف رحمه الله نقطه نظر**

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ إِذَا كَانَ بِحَالٍ لَا يَعِيشُ مِثْلُهُ لَا يَحِلُّ او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز كله چې دا ښكار په داسې حالت كي وی.چه ددې پشان ژوند نشی پاتې كيدې.نو هغه حلال نه دې،لِأَنَّهُ لَمْ يَكُنْ مَوْتُهُ بِالذَّبْحِ څكه چې ددې مړكيدل د ذبح په وجه نه دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ إِنْ كَانَ يَعِيشُ فَوْقَ مَا يَعِيشُ الْمَذْبُوحُ يَحِلُّ وَإِلَّا فَلَا او امام محمد رحمه الله اوفرمائيل.كه ددې پشان ژوندې پاتې كيداې شی.د مذبوح د ژوندی پاتې كيدو نه زيات، نو حلال دې.ګنی نه دې،لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِهَذِهِ الْحَيَاةِ عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ څكه چې ددې ژوند هيڅ اعتبار نشته.د هغه تفصيل مطابق كوم چې موږ بيان كړې دې.

**تشريح:-** په متن كي څه اشكال نشته

**د ښكار نيولو نه بغير صرف موندلو نه روسته په نه ذبح كولو سره حكم**

وَلَوْ أَدْرَكَهُ وَلَمْ يَأْخُذْهُ، فَإِنْ كَانَ فِي وَقْتٍ لَوْ أَخَذَهُ أَمْكَنَهُ ذَبْحُهُ لَمْ يُؤْكَلْ او كه ښكاری ښكار بياموندو.او دا ئې نيولې نه دې.نوكه دومره وخت وی.كه ده هغه نيولې وې.نو ده ته به د هغې ذبح كول ممكن وی.نو خوړلې به نشی لِأَنَّهُ صَارَ فِي حُكْمِ الْمَقْدُورِ عَلَيْهِ څكه چې دا د مقدور عليه په معنی كي شو وَإِنْ كَانَ لَا يُمْكِنُهُ ذَبْحُهُ أُكِلَ او كه ده ته د هغې ذبح كول ممكن نه وو.نو خوړلې به شی ،لِأَنَّ الْيَدَ لَمْ تَثْبُتْ بِهِ، وَالتَّمَكُّنُ مِنَ الذَّبْحِ لَمْ يُوجَدْ څكه چې موندلو سره قبضه ثابت نشوه.او د ذبح قدرت او نه موندې شو.

**تشريح:-** په تيرو شوو مسئلو كي ښكاری ښكار نيولې وو.او دلته كي ئې نيولې نه دې.اګرچه دا ئې موندلې اونكړل.نو كه دومره وخت وی.چه ښكاری په دومره وخت كي ښكار نيولې شی.او ذبح كولې شی. خو ده داسې نو ددې خوراك حلال نه دې.څكه چې په دې باندې د ذبح قدرت حاصل دې.هم دا مرغينانی رحمه الله مقدورعليه سره تعبير كړې دې.كه دومره وخت نه وی.نو بيا خوراك حلال دې.څكه چې صرف موندلو سره په بغير د نيولو نه قبضه نه ثابتيږی.نو د ذبح قدرت هم موجود نشو.په دې وجه ددې خوراك حلال دې.

**د موندو نه روسته په ذبح كولو سره ددې حكم**

وَإِنْ أَدْرَكَهُ فَذَكَّاهُ حَلَّ لَهُ كه ښكاری ښكار اوموندلو.نو دا ئې ذبح كړو.نو دا دده لپاره حلال دې.،لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ فِيهِ حَيَاةٌ مُسْتَقِرَّةٌ څكه كه په دې كي حياتِ مستقره ( د پاته پاتې كيدو ژوند) وی فَالذَّكَاةُ وَقَعَتْ مَوْقِعَهَا بِالْإِجْمَاعِ نو ذبح پخپل مقام باندې واقع شوې ده.بالاجماع وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ حَيَاةٌ مُسْتَقِرَّةٌ،او كه په دې كي حياتِ مستقره نه وی فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ ذَكَاتُهُ الذَّبْحُ عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ددې ذكاة ذبح كول دی.د هغه تفصيل مطابق كوم چې موږ ذكركړې دې ،وَقَدْ وُجِدَ، وَعِنْدَهُمَا لَا يَحْتَاجُ إِلَى الذَّبْحِ او ذبح كول موجود شوی دی.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د ذبح حاجت نشته.



**تشريح:-** اوكه ده ښكار اونيولو.دا ئې ذبح كړو.نو بالاجماع حلال شو.څكه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز خو دلته كي د سره د ذبح حالت نه دې.څكه چې دې كي ژوند نشته.اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ذبح كول شرط دی.اګرچه حياتِ خفيفه هم وی.نو شرط پوره شو.او ددې خوراك حلال شو.اوكه په دې كي حياتِ مستقره وی.نو بيا هم بالاجماع حلال شو.څكه چې دا د ذبح محل وو.او دا ذبح كړې شوې دې.

**په كوم ښكار چې پريخودې شوې وو د هغې نه د علاوه ښاروی ښكاركول**

وَإِذَا أَرْسَلَ كَلْبَهُ الْمُعَلَّمَ عَلَى صَيْدٍ وَأَخَذَ غَيْرَهُ حَلَّ او كله چې ښكاری خپل سپې په يو ښكار باندې پريخودو.او ده د هغې نه علاوه ( بل ښكار) اونيولو.نو حلال دې وَقَالَ مَالِكٌ: لَا يَحِلُّ او امام مالك رحمه الله فرمائی.حلال نه دې، لِأَنَّهُ أَخَذَهُ بِغَيْرِ إِرْسَالٍ، څكه چې سپی د ليګلو ( او پريخودو) نه بغير نيولې دې إِذِ الْإِرْسَالُ مُخْتَصٌّ بِالْمُشَارِ إِلَيْهِ څكه چې ليګل مشاراليه سره مختص دې وَلَنَا أَنَّهُ شَرْطٌ غَيْرُ مُفِيدٍ،او زموږ دليل دا دې.چه دا ( معين ښكار نيول) داسې شرط دې.چه غيرمفيد دې لِأَنَّ مَقْصُودَهُ حُصُولُ الصَّيْدِ څكه چې د ښكاری مقصود ښكار حاصلول دی إِذْ لَا يَقْدِرُ عَلَى الْوَفَاءِ بِهِ،څكه چې سپې ددې شرط په پوره كاوه قادر نه دې ،إِذْ لَا يُمْكِنُهُ تَعْلِيمُهُ عَلَى وَجْهٍ يَأْخُذُ مَا عَيَّنَهُ څكه چې مالك له دا ممكن نه ده.چه سپی ته داسې ډول تعليم وركړی.په دې طريقه چې دې هم هغه (ښكار) اونيسی.كوم چې ده ( ښكاری) متعين كړې دې ،فَسَقَطَ اعْتِبَارُهُ نو ددې اعتبار ساقط شو.

**تشريح:-** يو ښكاری په يو ( معين) ښكار باندې خپل تعليم يافته سپې پريښنولو .او سپی بل ښكار اونيولو .نو زموږ په نيز دا حلال دې.او د امام مالك رحمه الله په نيز حلال نه دې.د امام مالك رحمه الله دليل دا دې.چه سپی د ليګلو نه بغير نيولې دې.څكه چې ليګل خو صرف په هغه ښكار پسې وو.د كوم اړخ ته چې مالك اشاره كړې وه.او زموږ دليل دا دې.چه د معين ښكار نيولو شرط لګول داسې شرط دې.چه نه د مالك لپاره مفيد دې.او نه د سپی دپاره، څكه چې د مالك مقصود خو ښكار كول دی.معين ښكار نيول نه دی.اوكله اګرچه معين ښكار هم مقصود وی.خو سپې د هغې پوره كاوه نه معذور وی.څكه چې سپې بيا هم سپې دې.دا نا ممكن ده.چه سپی ته داسې تعليم وركړې شی.چه كوم ښكار مالك متعين كړې دې.هغه صرف هم هغه اونيسی.نو صرف ليګل به معتبر وی.تعين به معتبر نه وی.

**په ډيرو ښكارونو باندې پريخودو سره د يوځل بسم الله وئيلو حكم**

وَلَوْ أَرْسَلَهُ عَلَى صَيْدٍ كَثِيرٍ اوكه ده په ډيرو ښكارونو باندې سپې پريخودو وَسَمَّى مَرَّةً وَاحِدَةً حَالَةَ الْإِرْسَالِ او يو ځل ئې تسميه اووئيله.د پريخودو په وخت فَلَوْ قَتَلَ الْكُلَّ يَحِلُّ بِهَذِهِ التَّسْمِيَةِ الْوَاحِدَةِ نوكه سپی واړه مړه كړل.نو هم په دې يوه تسميه واړه حلال دی لِأَنَّ الذَّبْحَ يَقَعُ بِالْإِرْسَالِ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ،څكه چې ذبح كول ليګلو سره واقع شوی دی.د هغه تفصيل مطابق كوم چې موږ بيان كړې دې. وَلِهَذَا تُشْتَرَطُ التَّسْمِيَةُ عِنْدَهُ او هم په دې وجه د ليګلو په وخت تسميه شرط ده وَالْفِعْلُ وَاحِدٌ او ليګل يو فعل دې فَيَكْفِيهِ تَسْمِيَةٌ وَاحِدَةٌ، بِخِلَافِ ذَبْحِ الشَّاتَيْنِ بِتَسْمِيَةٍ وَاحِدَةٍ نو دې لپاره يوه تسميه كافی ده.په خلاف د دوې (دوه) چيلو ذبح كاوه په يوه تسميه سره لِأَنَّ الثَّانِيَةَ تَصِيرُ مَذْبُوحَةً بِفِعْلٍ غَيْرِ الْأَوَّلِ څكه چې دويمه وزه به مذبوح وی.په داسې فعل سره چې د ړومبی نه علاوه دې فَلَا بُدَّ مِنْ تَسْمِيَةٍ أُخْرَى، حَتَّى لَوْ أَضْجَعَ إِحْدَاهُمَا فَوْقَ الْأُخْرَى، وَذَبَحَهُمَا بِمَرَّةٍ وَاحِدَةٍ نو دويمه تسميه ضروری ده.تردې كه ده يوه په دويمه باندې سملوله.او دواړه ئې په يو ځل ذبح كړلې ،تَحِلَّانِ بِتَسْمِيَةٍ وَاحِدَةٍ نو دا به په يوه تسميه حلال وی.

**حل اللغة:** ① اضطجع: سملول ② الارسال: ليږل

**تشريح:-** د ذبح په يو فعل باندې يوه تسميه كافی ده.اوكه فعل متعدد وی.نو بسم الله به هم متعدد وی.نو كه وزه يو بل پسې ذبح كوی.نو په فعل كي تعدد دې.نو په تسميه كي به هم تعدد وی.او كه دوې (دوه) وزه په يوځل د يو بل سربيره سملوی.او ذبح ئې كړی.نو دا به هم يو فعل شمارلې كيږی.او يوه تسميه به كافی

وی.دغه ډول سپی ليګل هم يو فعل دی.نو په دې يو فعل کې به تسميه هم يوه وی.نوکه سپې ئې په ډيرو ښکارونو باندې ليګلې وی.او واړه ده مړه کړل.نو هم به په يوه تسميه سره واړه حلال وی.ځکه چې د ليګلو فعل يو دې.نو تسميه به هم يوه کافی وی.

## د سپی يا پړانګ د ښکار لپاره مورچه کيدو نه روسته د ښکار کولو حکم

وَمَنْ أَرْسَلَ فَهْدًا او چا چې پړانګ (ښکار پسې) پريخودو فَكَمَنَ حَتَّى يَسْتَمْكِنَ نو ده مورچه اولګوله.تردې چې دې قادر شی ثُمَّ أَخَذَ الصَّيْدَ فَقَتَلَهُ يُؤْكَلُ بيا ده ښکار اونيولو.نو هغه ئې قتل کړو.نو خوړلې به شی «لِأَنَّ مُكْثَهُ ذَلِكَ حِيلَةٌ مِنْهُ لِلصَّيْدِ لَا اسْتِرَاحَةٌ ځکه چې دده دا ايساريدل، دده د اړخه د ښکار کاوه تدبير (او چل) دې.آرام کول نه دی فَلَا يَقْطَعُ الْإِرْسَالَ نو دا ايساريدل به ليګل نه منقطع کوی وَكَذَا الْكَلْبُ إِذَا اعْتَادَ عَادَتَهُ او هم دغه ډول سپې کله چې ده د پړانګ عادت اختيار کړې وی.

حل اللغة" ① الاستراحة: آرام، راحت ② اعتاد: عادت وی»

تشريح:- د سپی او پړانګ په ښکار کې فرق د سپی عادت په مورچه کې د کيناستو نه دې.نو کله چې دا مالك پريخودو.او دا د خپل زوړ عادت نه اخوا شو.او بيا لاړو.او ښکار ئې اونيولو.نو دا ښکار به حلال نه وی.ځکه چې ليګل منقطع شوی دی.او د پړانګ عادت دا دې.چه دې يوځائې کې پټيږی (مورچه کيږی).او د ښکار نيولو تدبيرکوی.نو که پړانګ ئې په ښکار باندې پريخودو.او هغه يو ځائې کی د ښکار د تدبير لپاره په مورچه کې کيناستو.او بيا ئې ښکار اونيولو.نو دا حلال دې.ځکه چې دلته کې ليګل نه دی منقطع شوی.ځکه چې د پړانګ دا فعل آرام کول نه دی.بلکه د ښکار کاوه تدبير دې.البته که د يو سپی عادت د پړانګ پشان د کيناستلو جوړ شوې وی.نو بيا به ددې حکم هم هغه وی.کوم چې د پړانګ دې.

## د سپی په ښکار باندې پريوتلو نه روسته د بل ښکار حکم

وَلَوْ أَخَذَ الْكَلْبُ صَيْدًا فَقَتَلَهُ او که سپی يو ښکار اونيولو.او دا ئې مړکړو ثُمَّ أَخَذَ آخَرَ فَقَتَلَهُ بيا ئې دوهم اونيولو.او دا ئې هم مړ کړو وَقَدْ أَرْسَلَهُ صَاحِبُهُ أُكِلَا جَمِيعًا حالانکه دده مالك ده لره پريښودې وو.نو دواړه ښکارونه به خوړلې شی «لِأَنَّ الْإِرْسَالَ قَائِمٌ لَمْ يَنْقَطِعْ ځکه چې ليګل قائم دی.منقطع شوی نه دی وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ مَا لَوْ رَمَى سَهْمًا إِلَى صَيْدٍ او دا په دې درجه کې دې.که ده ښکار اړخ ته غشې اوويشتلو «فَأَصَابَهُ وَأَصَابَ آخَرَ نو دا هغه ته اولګيدو.او بل ته هم اولګيدو.

تشريح:- مالك خپل سپې پريخودو.هغه ښکار اوکړو.او مړ ئې کړو.بيا ئې دوهم ښکار اوکړو.او مړ ئې کړو.نو دواړه ښکارونه حلال دی.ځکه چې د مالك ليګل ختم شوی نه دی.او دا فعل واحد دې.چه په دې کې يوه تسميه کافی ده.لکه که يو کس ښکار اړخ ته غشې اوغورزولو.او غشې ده ته اولګيدو.او دوهم ښکار ته هم اولګيدو.نو دواړه ښکارونه حلال دی.دغه ډول به دلته کې هم حلال وی.

وَلَوْ قَتَلَ الْأَوَّلَ وکه سپی رومبې ښکار قتل کړو فَجَثَمَ عَلَيْهِ طَوِيلًا مِنَ النَّهَارِ بيا په دې باندې پروت وو.د ورځې اوګدې برخې (حصې) پورې ثُمَّ مَرَّ بِهِ صَيْدٌ آخَرُ فَقَتَلَهُ بيا دده په خواکې بل ښکار تيريدو.نو ده هغه هم مړ کړو لَا يُؤْكَلُ الثَّانِي لِانْقِطَاعِ الْإِرْسَالِ بِمُكْثِهِ نو دوهم ښکار به نشی خوړلې.د ليګلو د منقطع کيدو په وجه، دده په ايساريدو سره إِذْ لَمْ يَكُنْ ذَلِكَ حِيلَةً مِنْهُ لِلْأَخْذِ وَإِنَّمَا كَانَ اسْتِرَاحَةً، بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ ځکه چې دا دده د اړخه د نيولو (تدبير او) حيله نه ده.او دا خو آرام دې.په خلاف د هغه صورت کوم چې تير شو.

حل اللغة" ① الجثم: پروت ② استراحة: دم، آرام»

تشريح:- که سپی ښکار مړ کړو.او په ښکار پروت پريوتلو.بيا دده سره پخواکې بل ښکار تيرشو.چه دا هم سپی مړ کړو.نو اوس به دوهم ښکار نه خوړلې کيږی.ځکه چې د سپی دا ايساريدل آرام لپاره دی.د ښکار



لپاره حيله نه ده.نو ددې ارام په وجه ليګل منقطع شو.او په رومبی صورت کې د سپی يا پړانګ کښينستل آرام لپاره نه وو.بلکه دا د ښکار نيولو تدبير وو.

## د هغه تعليم يافته باز د ښکار حکم چې د هغه پريښودونکې معلوم نه وی

وَلَوْ أَرْسَلَ بَازِيَهُ الْمُعَلَّمَ عَلَى صَيْدٍ اوکه خپل تعليم يافته باز ئې ښکار باندې پريخودو فَوَقَعَ عَلَى شَيْءٍ نو هغه په يوځيز باندې پروت وو ثُمَّ اتَّبَعَ الصَّيْدَ فَأَخَذَهُ وَقَتَلَهُ بيا په يو ښکار پسې شو.تر دې چې وې نيولو.او مړ ئې کړو فَإِنَّهُ يُؤْكَلُ نو دا ښکار به خوړلې شی وَهَذَا إِذَا لَمْ يَمْكُثْ زَمَانًا طَوِيلًا لِلِاسْتِرَاحَةِ او دا هغه وخت کې دی.کله چې دا د ډير وخته پورې آرام لپاره ايسار شوې نه وی «وَإِنَّمَا مَكَثَ سَاعَةً لِلتَّمْكِينِ لِمَا بَيَّنَّاهُ فِي الْكَلْبِ بلکه لږ وخت ايسار شوې وی.د مورچه لګولو دپاره، د هغه دليل په وجه کوم چې موږ د سپی په بيان کې ذکرکړې دې.

تشريح:- که يوکس خپل تعليم يافته باز په ښکار باندې پريخودو.او چونکه د باز عادت دادې.چه هغه مخکې په شئ کينی.او ګوری.او د هغې د نيولو تدبير کوی.نو که ده لږ وخت تدبير اوکړو.او بيا ئې ښکار اونيولو.او مړ ئې کړو.نو ښکار حلال دې.ځکه چې د باز په دې طريقې سره ليګل نه منقطع کيږی.لکه څنګه چې په پړانګ کې نه کيږی.

## د تعليم يافته باز د مورچه کيدو نه روسته د ښکار حکم

وَلَوْ أَنَّ بَازِيًا مُعَلَّمًا أَخَذَ صَيْدًا فَقَتَلَهُ اوکه تعليم يافته باز ښکار اونيولو.نو هغه ئې مړ کړو. وَلَا يُدْرَى أَرْسَلَهُ إِنْسَانٌ أَمْ لَا او دا خبره معلومه نه ده.چه دا کوم انسان پريښودې دې.او که نه؟ لَا يُؤْكَلُ لِوُقُوعِ الشَّكِّ فِي الْإِرْسَالِ نو دا ښکار به نشی خوړلې.په ليګلو کې د شك واقع کيدو په وجه «وَلَا تَثْبُتُ الْإِبَاحَةُ بِدُونِهِ او د ليګلو نه بغير جواز نه ثابتيږی.

تشريح:- تعليم يافته باز يو ښکار اونيولو.او مړ ئې کړو.او دا معلومه نشوه.چه دا چا پريښودې دې.نو اوس به دا ښکار نه خوړلې کيږی.ځکه چې ليګلو کې شك واقع شو.او جواز په ليګلو سره ثابتيږی.

## د زخم نه بغير صرف مرئ زورلو سره د ښکار حکم

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَإِنْ خَنَقَهُ الْكَلْبُ وَلَمْ يَجْرَحْهُ لَمْ يُؤْكَلْ اوکه سپی د ښکار مرئ خفه کړه.او دا ئې زخمی نکړله.نو خوړلې به نشی لِأَنَّ الْجُرْحَ شَرْطٌ عَلَى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ ځکه چې د ظاهرالرواية مطابق زخم لګول شرط دی.د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ ذکرکړې دي وَهَذَا يَدُلُّكَ عَلَى أَنَّهُ لَا يَحِلُّ بِالْكَسْرِ او دا تصريح به تاته ددې لاره ښائی.چه ښکار به حلال نه وی.د يو اندام ماتيدو په وجه، وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ إِذَا كَسَرَ عُضْوًا فَقَتَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی.چه هرکله سپی د ښکار يو اندام مات کړو.نو دا ئې مړ کړو لَا بَأْسَ بِأَكْلِهِ نو ددې په خوراك کې هيڅ باك نشته «لِأَنَّهُ جِرَاحَةٌ بَاطِنَةٌ ځکه چې دا پټ زخم دې فَهِيَ كَالْجِرَاحَةِ الظَّاهِرَةِ نو دا پشان د ښکاره زخم دې وَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّ الْمُعْتَبَرَ جُرْحٌ يَنْتَهِضُ سَبَبًا لِإِنْهَارِ الدَّمِ رومبی قول دليل دا دې.چه معتبر داسې زخم دې.چه هغه د وينې بهيدو سبب جوړ شی «وَلَا يَحْصُلُ ذَلِكَ بِالْكَسْرِ فَأَشْبَهَ التَّخْنِيقَ او دا په اندام ماتولو سره نه حاصليږی.نو دا د مرئ خفه کاوه پشان شو.

حل اللغة" ① الخنق: مرئ خفه کول، بندول ② الكسر: ماتول ③ عضو: اندام»

تشريح:- اوکه سپی د ښکار په مرئ زور کړو.(مرئ ئې خفه کړله) او زخم ئې اونه لګولو.نو دا به حلال نه وی.ځکه چې د ظاهرالرواية مطابق زخم لګول شرط دی.ددې نه دا خبره هم معلومه شوه.که سپی د ښکار خپه وغيره ماته کړله.نو دا به حلال نه وی.خو د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی.که سپی د ښکار يو اندام مات کړو.هغه حلال دې.ځکه چې دلته کې اګرچه ښکاره زخم نشته.خو پټ زخم شته.او زخم لګول شرط دی.او هغه موجود دې.د رومبی قول دليل دا دې.چه زخم داسې کيدل شرط دی.چه دهغې نه وينه اوبهيږی.او دا

مقصد په خپه ماتولو سره نه حاصليږي.نو دا داسې شوه.لکه چې مرئ ئې خفه کړې وي.او مړ کړې ئې وي.

## د معلم سپي د ښکار بعض حرام صورتونه

قَالَ وَإِنْ شَارَكَهُ كَلْبٌ غَيْرُ مُعَلَّمٍ أَوْ كَلْبُ مَجُوسِيٍّ قدوري اوفرمائيل.که شريك شو.دتعليم يافته سپي سره بې تعليمه سپې،يا د مجوسي سپې أَوْ كَلْبٌ لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ يا داسې سپې چې هغې باندې د الله تعالى نوم نه دې اخستې شوې يُرِيدُ بِهِ عَمْدًا مراد ددې نه قصداً دې لَمْ يُؤْكَلْ لِمَا رَوَيْنَا فِي حَدِيثِ عَدِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نو خوړلې به نشي.په هغه وجه کومه چې موږ روايت کړې ده.د عدی﷛ په حديث کي وَلِأَنَّهُ اجْتَمَعَ الْمُبِيحُ وَالْمُحَرِّمُ فَيُغَلَّبُ جِهَةُ الْحُرْمَةِ او خکه چې د مبيح او محرم ( حلالونکي او حرامونکي) اجتماع شوې ده، نَصًّا أَوِ احْتِيَاطًا نو د حرمت اړخ به غالب وي.په بناء د نص يا په بناء د احتياط سره.

**تشريح:**- که د مسلمان هغه تعليم يافته سپي سره کوم چې بسم الله وئيلو سره پريښودې شوې دې.بل يو سپې شريك شو.چه يا خو بې تعليمه دې.يا د مجوسي دې.يا په دې باندې قصداً بسم الله نه ده وئيلې شوې.نو دده دا نيولې شوې ښکار به نه خوړلې کيږي.د حضرت عدی﷛ په حديث کي ددې صراحت موجود دې.او دويمه وجه دا ده.چه کله د حلال او حرام اجتماع اوشي.نو غلبه حرام ته حاصليږي.داسې ولې کيږي؟ خکه چې په دې اړه کي حديث موجود دې.کوم چې په مسند عبدالرزاق کي په ابن مسعود رضي الله عنه موقوف دې.يا ددې وجه احتياط ده.خکه چې حرام واجب الترك دې.او حلال جائز الترك دې.نو احتياط په ترك کي دې.

## که دوهم سپي نه وي زخمي کړې نو د ښکار حکم

وَلَوْ رَدَّهُ عَلَيْهِ الْكَلْبُ الثَّانِي وکه واپس کړو ښکار په ړومبي سپي باندې، دوهم سپي وَلَمْ يَجْرَحْهُ مَعَهُ او ده د ړومبي سپي سره ( په ملگرتياکي ) نه دې زخمي کړې وَمَاتَ بِجُرْحِ الْأَوَّلِ يُكْرَهُ أَكْلُهُ لِوُجُودِ الْمُشَارَكَةِ فِي الْأَخْذِ وَفَقْدِهَا فِي الْجُرْحِ،او ښکار مړشو.د ړومبي سپي د زخم لگولو په وجه، نو ددې خوراك مکروه دې.په نيولو کي د شرکت موجود کيدو په وجه، او په زخمي کاوه کي د مشارکت د مقصود کيدو په وجه وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا رَدَّهُ الْمَجُوسِيُّ بِنَفْسِهِ حَيْثُ لَا يُكْرَهُ او دا ددې صورت خلاف دې.کله چې مجوسي دا پخپله واپس کړې وي.په دې حيثيت سره چې دا مکروه نه دې، لِأَنَّ فِعْلَ الْمَجُوسِيِّ لَيْسَ مِنْ جِنْسِ فِعْلِ الْكَلْبِ خکه چې د مجوسي فعل د سپي د فعل د جنس خني نه دې فَلَا تَتَحَقَّقُ الْمُشَارَكَةُ نو مشارکت به نه متحقق کيږي وَتَتَحَقَّقُ بَيْنَ فِعْلَيِ الْكَلْبَيْنِ لِوُجُودِ الْمُجَانَسَةِ او مشارکت متحقق کيږي.د دوې (دوه) سپو د فعل په منځ کي ، د مجانست موجود کيدو په وجه.

**تشريح:**- کوم دوهم سپې چې شريك شوې دې.که ده په نيولو کي او زخمي کاوه کي شرکت نه وي کړې. بلکه صرف دا کار ئې کړې وي.چه ښکار ئې نيولې وي.او ړومبي سپي اړخ ته ئې گرځولې وي.او ړومبي سپي دا زخمي کړو.او مړ ئې کړو.نو دلته کي من وجه مشارکت دې.او من وجه نه دې.يعنی په نيولو کي مشارکت دې.او په زخمي کاوه کي مشارکت نشته.نو ددې خوراك به حرام نه وي.او نه به بالکل جائز وي.بلکه مکروه تحريمي دې.

او د مجوسي سپي ښکار تعليم يافته سپي اړخ ته راگرځولې وي.نو ښکار به حلال وي.خکه چې د مجوسي فعل د سپي د فعل هم جنس نه دې.نو مشارکت اونه موندې شو.او چونکه د دواړو سپو فعل هم جنس دې.نو هلته کي مشارکت موجود دې.

## که دوهم سپي په نيولو کښې شريك شوې نه وي نو د ښکار حکم

وَلَوْ لَمْ يَرُدَّهُ الْكَلْبُ الثَّانِي عَلَى الْأَوَّلِ او که دوهم سپي ښکار په ړومبي سپي باندې نه وي راگرځولې لٰكِنَّهُ أَشَدَّ



عَلَى الْأَوَّلِ حَتَّى اشْتَدَّ عَلَى الصَّيْدِ فَأَخَذَهُ وَقَتَلَهُ خو دا په ړومبي باندې را په منډه شو.تردې چې دوهم په ښکار باندې تيز شو.نو دا ئې اونيولو.او مړ ئې کړو لَا بَأْسَ بِأَكْلِهِ نو ددې په خوراك کي هيڅ باك نشته لِأَنَّ فِعْلَ الثَّانِي أَثَّرَ فِي الْكَلْبِ الْمُرْسَلِ دُونَ الصَّيْدِ خکه چې د دوهم فعل په ليگلی شوی سپي کي اثر کړې دې.په ښکار کي ئې نه دې کړې حَيْثُ ازْدَادَ بِهِ طَلَبًا په دې حيثيت سره، چې دوهم ددې په وجه په طلب کي وړاندې شو فَكَانَ تَبَعًا لِفِعْلِهِ، لِأَنَّهُ بِنَاءٌ عَلَيْهِ نو شی به فعل د دوهم فعل، تابع د فعل د ړومبي،چه هغه په دې مبنی دې فَلَا يُضَافُ الْأَخْذُ إِلَى التَّبَعِ، بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ رَدَّهُ عَلَيْهِ نو نيول به تابع اړخ ته مضاف نه وي.په خلاف ددې صورت، کله چې دوهم ښکار ړومبي باندې واپس کړې وي، لِأَنَّهُ لَمْ يَصِرْ تَبَعًا فَيُضَافُ إِلَيْهِمَا خکه چې فعل تابع نه دې.نو نيول به دوی دواړو اړخ ته مضاف وي.

**تشريح:**- په ړومبي صورت کي دواړه سپي په نيولو کي شريك دی.اگرچه په زخم لگولو کي شريك نه دی.او په دې صورت کي نيولو کي هم شريك نه دی.بلکه صرف ړومبي سپي ښکار نيولې دې.نو دا حلال دې.صورت د مسئلې دا دې.چه زيد خپل تعليم يافته سپې په ښکار پسې پريخودو.او هغه ښکار پسې منډې وهلې.تردې چې دوهم جاهل ( بې تعليمه) سپې په تعليم يافته سپې پسې په منډه شو.چه ددې په وجه د تعليم يافته سپي رفتار تيز شو.او ده ښکار اونيولو.نو دا ښکار حلال دې.خکه چې د دوهم سپي فعل په ړومبي سپي کي عجلې پيدا کړې ده.په ښکار کي دده هيڅ اثر نشته.نو د دوهم سپي فعل به د ړومبي سپي د فعل تابع شمارلې کيږي.خکه چې د ړومبي سپي فعل مقدم دې.او د حکم اضافت د تابع اړخ ته نه کيږي.بلکه اصل اړخ ته کيږي.او کله چې دوهم سپي ښکار په ړومبي سپي باندې واپس کړې وو.هلته کي د دوهم سپي فعل تابع نه وو.په دې وجه به د نيولو اضافت دواړو ( سپو) اړخ ته کيږي.

## د مسلمان خپل معلم سپې پريخودو نه روسته د مجوسي په تيزولو د ښکار حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله ( په جامع صغيرکي ) فرمائيلي دی وَإِذَا أَرْسَلَ الْمُسْلِمُ كَلْبَهُ و کله چې مسلمان خپل سپې پريخودو. فَزَجَرَهُ مَجُوسِيٌّ نو يو مجوسي په ده غصه اوکړله فَانْزَجَرَ بِزَجْرِهِ نو دې تيز شو په غصې دده سره فَلَا بَأْسَ بِصَيْدِهِ نو دده په ښکار خوړلو کي هيڅ باك نشته وَالْمُرَادُ بِالزَّجْرِ الْإِغْرَاءُ بِالصِّيَاحِ عَلَيْهِ اود زجر ( غصې) نه مراد په سپي باندې چغه وهل او تيزول دی وَبِالِانْزِجَارِ إِظْهَارُ زِيَادَةِ الطَّلَبِ او د انزجار نه مراد د طلب زياتوالې ښکاره کول دی وَوَجْهُهُ أَنَّ الْفِعْلَ يُرْفَعُ بِمَا هُوَ فَوْقَهُ أَوْ مِثْلُهُ او ددې وجه دا ده.چه فعل په داسې فعل سره ختميږي.کوم چې ددې نه زيات وي.يا ددې مثل وي كَمَا فِي نَسْخِ الْآيِ لکه څنګه چې د آياتونو په نسخ کي کيږي،، وَالزَّجْرُ دُونَ الْإِرْسَالِ لِكَوْنِهِ بِنَاءً عَلَيْهِ او ترټل (شړل) د ليگلو نه کم تر دی.د زجر (شړلو) د بناء کيدو په وجه په ليگلو باندې.

**حل اللغة:** ① الزجر: ترټل (شړل) ② الاغراء: الصياح: په سپي پسې چغې

**تشريح:**- مسلمان تسميه اووئيله.او خپل تعليم يافته سپې ئې په ښکار ورپريخودو.نو يو مجوسي سپې اوشړلو.او سپې دده په شړلو نور هم په منډه کي تيز شو.نو دا ښکار به حلال وي.خکه چې د مجوسي د تيزولو په وجه د مسلمان ليگل نه دی ختم شوی.خکه چې د يو فعل ختميدل د خپل نه په زيات قوی يا په برابر فعل سره کيږي.او فعل د مجوسي کم تر دې.نو په دې سره به د مسلمان فعل نه ختميږي.او د مجوسي د فعل کم تر کيدو دليل دا دې.چه دا ترټل (شړل) دی.او د مسلمان فعل ليگل دی.او ليگل اصل دې.او ترټل (شړل) تابع دی.او تابع د متبوع نه کم تر وي.لکه څنګه چې د آيت نسخ د خپل نه په اوچت يا مثل سره کيږي.کم تر سره نه کيږي.نو محکم به د مجمل په وجه نه منسوخ کيږي.،، وفصلناه في درس الحسامي،، د زجر دوې (دوه) معانې دی① مجوسي سپې اورټی.او ښکار پسې ئې د تللو نه منع کړی.او انزجار دا دې.چه دې

منع شي.او ښكار اونكړي. بيا لاړشي.او ښكار مړ كړي.نو دا ښكار به حلال نه وي.② مجوسي چغې كړي.او سپې په ښكار باندې نور هم تيز كړي.او انزجار دا چې هغه نور هم تيز شي.دلته كې هم دا معنى مراد ده.لكه زموږ په علاقه كې چې د اغراء صورت دا دې.چه اځ ځويه بيا به څه كوې.وغيره

**د يو مسلمان د مجوسي د سپي تيزولو سره د ښكار حكم**

قَالَ وَلَوْ أَرْسَلَهُ مَجُوسِيٌّ او كه سپې مجوسي پريښودې وي فَزَجَرَهُ مُسْلِمٌ نو مسلمان هغه اوشړلو فَانْزَجَرَ بِزَجْرِهِ لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه دده په شړلو تيز شو.نو خوړلې به نشي لِأَنَّ الزَّجْرَ دُونَ الْإِرْسَالِ څكه چې زجر (شړل) د ليګلو نه كم تر دى وَلِهَذَا لَمْ تَثْبُتْ بِهِ شُبْهَةُ الْحُرْمَةِ په دې وجه د حرمت شبه په دې سره نه ثابتيږي فَأَوْلَى أَنْ لَا يَثْبُتَ بِهِ الْحِلُّ نو په درجه اولى به په دې سره حلت نه ثابتيږي "وَكُلُّ مَنْ لَا تَجُوزُ ذَكَاتُهُ كَالْمُرْتَدِّ وَالْمُحْرِمِ وَتَارِكِ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا فِي هَذَا بِمَنْزِلَةِ الْمَجُوسِيِّ او هر هغه سړې چې دده ذكاة (ذبحه) جائز نه دې.لكه مرتد، او محرم، او په قصد سره تسميه پريښودونكې.په دې مسئله كې د مجوسي په درجه كې دى.

**تشريح:**- لكه څنګه چې ړومبى صورت كې د مجوسي په شړلو سره د حرمت يا د حرمت شبه ثابت نشوه .دغه ډول په ذكر شوې صورت كې د مسلمان په زجر (او شړلو) سره به په درجه اولى حلت نه ثابتيږي.بيا كه مجوسي ليګلى كړې وي.اوكه محرم، يا مرتد، يا په قصد سره تسميه پريښودونكى، او بيا مسلمان شړلې وي. نو حلت به نه ثابتيږي.او د كومو خلګ و چې ذكاة جائز نه دې.هغه په دې باب كې د مجوسي په مرتبه كې دې.

**د يو مسلمان د غير مسلم د سپي تيزول او تسميه وئيلو سره د ښكار حكم**

وَإِنْ لَمْ يُرْسِلْهُ أَحَدٌ او كه سپې چا نه دې پريښودې فَزَجَرَهُ مُسْلِمٌ فَانْزَجَرَ نو مسلمان هغه اوشړلو.(او بسم الله ئې اووئيله) نو هغه (په شړلو) تيز شو فَأَخَذَ الصَّيْدَ نو هغه ښكار اونيولو فَلَا بَأْسَ بِأَكْلِهِ نو ددې په خوراك كې هيڅ باك نشته لِأَنَّ الزَّجْرَ مِثْلُ الْانْفِلَاتِ څكه چې زجر (شړل)،د پخپله تللو پشان دې.(او په برابر سره نسخ كيداې شي) "لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ دُونَهُ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ بِنَاءٌ عَلَيْهِ فَهُوَ فَوْقَهُ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ فِعْلُ الْمُكَلَّفِ څكه چې زجر (شړل)، اګرچه د پخپله تللو نه كم دې.په دې حيثيت سره چې زجر پخپله منډه كولو (تللو) باندې مبنى دې.نو شړل، پخپله تللو نه زيات دې.په دې حيثيت چې دا د مكلف فعل دې فَاسْتَوَيَا فَصَلَحَ نَاسِخًا نو دواړه برابر شو.نو دا (زجر) د ناسخ جوړيدو صلاحيت لرى.

حل اللغة: ① الانفلات: په خپله تلل ② الزجر: شړل

**تشريح:**- كه سپې چا نه دې پريښودې .بلكه پخپله ئې ښكار پسې منډه كړله.او دا تعليم يافته سپې دې.او يو مسلمان په ده غصه اوكړه.او تسميه ئې اووئيله.نو دده ښكار حلال دې.څكه چې اصول دا مقرر دې.چه پخپل برابر والا سره نسخ جائز ده.نو دلته كې پخپله ښكار پسې ورتلل، او د مسلمان ور تيزول برابر دى.نو په تيزولو د مسلمان سره به د سپي پخپله ښكار پسې ورتلل منسوخ كيږي.او اوس به داسې ګڼړو. چې دا مسلمان پريښودې دې.او د برابر كيدو وجه دا ده.چه په يو حيثيت سره پخپله ورتلل اعلى دى.او په يو حيثيت سره زجر (شړل) اعلى دى.پخپله ورتلل څكه اعلى دى.چه دا اصل دې.او متبوع دې.او د مسلمان ترټل (شړل) تابع دى.او په ړومبى مبنى دې.او زجر څكه اعلى دې.چه دا د مكلف فعل دې.او پخپله ورتلل د غير مكلف فعل دې.په دې اعتبار سره به زجر اعلى وى.نو دا دواړه د برابر په مرتبه كې راكښته كړې شو.او په برابر سره نسخ جائز ده.نو پخپله ورتلل منسوخ شو.او صرف زجر پاته پاتې شو.نو دا داسې شوه.ګويا چې مسلمان دا سپې په ښكار باندې پريښودې دې.

**ښكار مخكښې راپرزول او بيا مړ كولو سره ددې حكم**



وَلَوْ أَرْسَلَ الْمُسْلِمُ كَلْبَهُ عَلَى صَيْدٍ وَسَمَّى او كه مسلمان خپل سپې په ښكار ورپريخودو.او تسميه ئې اووئيلې فَأَدْرَكَهُ فَضَرَبَهُ وَوَقَذَهُ ثُمَّ ضَرَبَهُ فَقَتَلَهُ أُكِلَ نو سپي ښكار اونيولو.او وې وهلو.او راوې پرزولو.بيا ئې دا مړ كړو.نو دا ښكار به خوړلې شي وَكَذَا إِذَا أَرْسَلَ كَلْبَيْنِ فَوَقَذَهُ أَحَدُهُمَا او هم دغه ډول كله ئې چې دوې (دوه) سپي پريخودل.نو يو سپي ښكار راوپرزولو.(چې اونه تختى) ثُمَّ قَتَلَهُ الْآخَرُ أُكِلَ بيا دوهم سپي دا قتل كړو.نو خوړلې به شي لِأَنَّ الْإِمْتِنَاعَ عَنِ الْجُرْحِ بَعْدَ الْجُرْحِ لَا يَدْخُلُ تَحْتَ التَّعْلِيمِ فَجُعِلَ عَفْوًا څكه چې د زخمى كاوه نه روسته د زخمى كاوه نه منع كول په تعليم كې داخل نه دى.دا به معاف ګرځولې شي.

حل اللغة: ① وقذ: راؤ پرزولو ② جرح: زخم

**تشريح:**- مسلمان په ښكار باندې خپل سپې ورپريخودو.هغه ښكار اونيولو.او هغه ئې اووهلو.او راوې پرزولو. چې اونه تختى.بيا په دوهم ځل ئې دا مړ كړو.نو دا ښكار حلال دې.دغه ډول مسلمان دوې (دوه) سپي په ښكار ورپريخودل.او يو سپي دا اووهلو.او را وې پرزولو.او دوهم دا مړ كړو.اوس به هم دا ښكار خوړلې كيږي.څكه چې سپي ته دا تعليم نشي وركړې كيدې.چه كله دا زخمى كړي.نو نه دې مړ كوي.بلكه د مالك انتظاردې اوكړي.چه هغه راشي.او دا ذبح كړي.چه حلال شي.نو هركله چې دا د تعليم لاندې نشي داخليدې .نو دا به عذر شمارلې كيږي.او معاف به ګرځولې شي.

**د دوې (دوه) كسانو سپو كښې د يو سپي راپرزول او د بل مړكولو سره د ښكار حكم**

وَلَوْ أَرْسَلَ رَجُلَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَلْبًا او كه دوې (دوه) (مسلمانانو) سرو خپل خپل سپې پريخودو فَوَقَذَهُ أَحَدُهُمَا نو په دوى كې يو سپي ښكار راوپرزولو وَقَتَلَهُ الْآخَرُ أُكِلَ لِمَا بَيَّنَّا او دوهم دا قتل كړو.نو دا به خوړلې شي.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

**تشريح:**- ددوې (دوه) مسلمانانو دوې (دوه) سپي دى.او دواړو دا دواړه په ښكار باندې پريخودل.نو يو سپي ښكار راوپرزولو. او دوهم دا مړ كړو.نو دا حلال دې.څكه چې د ذكرشوي بيان مطابق به دا معاف شمارلې كيږي. خو په دې دا سوال پيدا كيږي.چه دا ښكار به د كوم يوكس ملكيت وي.نو دا به د ړومبى سپي د مالك ملكيت وي.څكه چې ړومبى سپي دا د ښكار كيدو نه اوښكلې دې.مرغيناني رحمه الله (ددې نه پس) فرمائى.

**ددې ښكار مالك به څوك وي؟**

وَالْمِلْكُ لِلْأَوَّلِ او ملك د ړومبى لپاره دې لِأَنَّ الْأَوَّلَ أَخْرَجَهُ عَنْ حَدِّ الصَّيْدِيَّةِ څكه چې ړومبى دا د ښكار كيدو د حد نه خارج كړې دې إِلَّا أَنَّ الْإِرْسَالَ مِنَ الثَّانِي حَصَلَ عَلَى الصَّيْدِ خو د دوهم د اړخه ليګل په ښكار حاصل شوي دى وَالْمُعْتَبَرُ فِي الْإِبَاحَةِ وَالْحُرْمَةِ حَالَةُ الْإِرْسَالِ او په اباحت او حرمت كې معتبر د ليګلو حالت دى فَلَمْ يَحْرُمْ بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْإِرْسَالُ مِنَ الثَّانِي بَعْدَ الْخُرُوجِ عَنِ الصَّيْدِيَّةِ بِجُرْحِ الْكَلْبِ الْأَوَّلِ نو دا به حرام نه وي.په خلاف ددې صورت كله چې د دوهم د اړخه ليګل د ښكار كيدو نه د وتلو نه روسته وى.د ړومبى سپي د زخمى كاوه په وجه.

**تشريح:**- مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل.چه دا ښكار د ړومبى سپي د مالك مملوك دې.څكه چې ړومبى سپي دا د ښكار كيدو نه خارج كړې دې.

سوال: ښكار خودا وه چې هركله چې ړومبى سپي دا د ښكار كيدو نه خارج كړو.او هغه دا مړ كړې نه وو.نو په مالك به زكاة اختيارى واجب وى.او چې ذكاة اختيارى په عمل كې رانغلو.او هغه ددې نه مخكې د دوهم سپي په مړ كاوه سره مړ شو.نو دا حرام كيدل ښكار دى؟ خو ددې ځواب دا دې چې دوهم كس هم خپل سپې په ښكار باندې پريښودې دې.او په اباحت او حرمت كې د ليګلو د حالت اعتبار دې.په دې وجه به

ښکار حرام نه وي.او دا عذر هم دی.ځکه چې دا په تعليم کي نشی داخليدی.په دی وجه به معاف وی.البته که دوهم کس خپل سپی هغه وخت پریښودی وی.کله چې رومبی سپی دا د ښکار کیدو نه خارج کړی وی.او دی (دوهم سپی) راغلی.او دا (ښکار) ئې مړ کړو.نو اوس به ښکار حلال نه وی.ځکه چې لیګل په ښکار باندې نه دی.

## فصل في الرمي

ژباړه:- (دا) فصل د (غشی) ویشتلو (په بیان کي) دی.

تشریح:- دا فصل ولې د وړاندینی فصل نه روستو کړې شو ددې بیان موږ په فصل اول کي بیان کړی دی.

**په ښکار محسوسیدو سره په غشي یا سپي باندې د ښکار مړکولو حکم**

وَمَنْ سَمِعَ حِسًّا او چاچه څه کشار واوریدو ظَنَّهُ حِسَّ صَيْدٍ دا ئې د ښکار کشار ګمان کړو فَرَمَاهُ أَوْ أَرْسَلَ كَلْبًا أَوْ بَازِيًا عَلَيْهِ نو په دې ئې غشي اوویشتلو.یا ئې په دې سپي یا باز فَأَصَابَ صَيْدًا نو دا یو ښکار ته اولګیدو ثُمَّ تَبَيَّنَ أَنَّهُ حِسُّ صَيْدٍ بیا تا ته دا خبره ښکاره شوه.چه دا د یو ښکار کشار وو حَلَّ الْمُصَابُ أَيَّ صَيْدٍ كَانَ نو کوم ښکار چې په لاس راغلی دی.حلال دی.که هغه هریو ښکار وی.(یعنی هغه د کوم کشار ئې چې اوریدلی وو) لِأَنَّهُ قَصَدَ الِاصْطِيَادَ[1] ځکه چې ده د ښکار کاوه قصد کړی دی «وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ خَصَّ مِنْ ذَلِكَ الْخِنْزِيرَ لِتَغْلِيظِ التَّحْرِيمِ» او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه دوی په دې سره خنزیر خاص کړی دی.د تحریم د سخت والی په وجه «أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَا تَثْبُتُ الْإِبَاحَةُ فِي شَيْءٍ مِنْهُ بِخِلَافِ السِّبَاعِ» تاسو نه ګورئ چه ددې په هیڅ برخه کي اباحت نه ثابتیږی.په خلاف د درنده ګانو «لِأَنَّهُ يُؤَثِّرُ فِي جِلْدِهَا» ځکه چې ښکار د درنده ګانو په څرمنه کي موثر دی «وَزُفَرُ خَصَّ مِنْهَا مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ» او امام زفر رحمه الله ددې نه هغه ځناور خاص کړی دی.د کومو چې غوښه نه خوړلی کیږی «لِأَنَّ الْإِرْسَالَ فِيهِ لَيْسَ لِلْإِبَاحَةِ» ځکه چې په دې (غير ماكول اللحم) کي لیګل (یا ویشتل) د جواز لپاره نه دی.

تشریح:- دا واړه تقریر هغه وخت دی.کله چې کشار د یو شئ واوری.او غشي بل ښکار ته اولګی.نو په دې صورت کي چې د کوم شئ کشار اوریدلی شوی دی.د هغې مطلق ښکار کیدل کافی دی.چه فعل د اصطیاد (ښکار کیدو) اوشی.نو په ظاهر الروایة کي په دې کي شرموښ او خنزیر وغیره واړه داخل دی.البته امام ابویوسف رحمه الله خنزیر او امام زفر رحمه الله ،،مالا یوکل لحمه،، ددې نه خاص کړی دی،،،وقد بيناه في التقرير السابق،،

**د ظاهر الروایة دلیل**

وَوَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ اسْمَ الِاصْطِيَادِ لَا يَخْتَصُّ بِالْمَأْكُولِ او د ظاهر الروایة دلیل دا دی.چه لفظ د اصطیاد ماکول اللحم سره مختص نه دی فَوَقَعَ الْفِعْلُ اصْطِيَادًا نو دا فعل به اصطیاد واقع وی وَهُوَ فِعْلٌ مُبَاحٌ فِي نَفْسِهِ، او في نفسه فعل مباح دی وَإِبَاحَةُ التَّنَاوُلِ تَرْجِعُ إِلَى الْمَحَلِّ او د خوراك اباحت محل اړخ ته راجع دی فَتَثْبُتُ بِقَدْرِ مَا يَقْبَلُهُ لَحْمًا وَجِلْدًا نو اباحت ثابتیږی، هغه مقدار کي کوم چې محل قبول کړی.په غوښه کي یا څرمنه کي وَقَدْ لَا تَثْبُتُ إِذَا لَمْ يَقْبَلْهُ او کله اباحت نه ثابتیږی.کله چې محل دا قبول نکړی وَإِذَا وَقَعَ اصْطِيَادًا صَارَ كَأَنَّهُ رَمَى إِلَى صَيْدٍ او کله چې فعل اصطیاد واقع شو.نو داسې شوه.ګویا چې ده یو ښکار اړخ ته غشي ویشتلی دی «فَأَصَابَ غَيْرَهُ» نو هغه ددې نه علاوه ته اولګیدو.

تشریح:- دا د ظاهر الروایة دلیل دی.ددې حاصل دا دی.چه ښکار ماکول اللحم سره مختص نه دی.بلکه د ښکار نه کله غوښه او څرمن دواړه مقصود وی.او کله صرف څرمن مقصود وی.لکه په شرموښ وغیره کي

[1]) القول الراجح هوهذا ظاهر الراواية كذا في ردالمحتار (٣٣٧/١٤) وتبيين (٦/١٦) نقلاً عن القول الراجح (٣٢٤/٢)-



،او کله نقصان او ضرر لرې کول مقصود وی.لکه په خنزیر کي .نو د کوم شئ اواز یا کشار چې اوریدلی شوی دی.د هغې صرف ښکار کیدل کافی دی.که په ذکر شوی اقسامو کي هر یو وی.اوس پاتې شوه هغه ښکار، کوم چې مړ کړې شوی دی.اوس به ده ته کتلی شی.که دا د رومبی ډول خنی دی.نو څرمن، او غوښه، او ایخته وغیره واړه به حلال او جائز الاستعمال وی.او په دوهم ډول کي به غوښه حلال نه وی.بلکه ددې څرمن به جائز الاستعمال وی.او په دریم ډول کي به هیڅ هم حلال نه وی.بلکه دلته کي خو مقصود نقصان لرې کول دی.او هغه حاصل شوی دی.او لنډیز د کلام دا چې مدار دلته په دې خبره دی.چه دا فعل ښکار کول شمار کړې شی.بیا به د محل د استعداد او قابلیت مناسبت سره په دې کي احکام جاری کولی شی.او ددې مثال بعینه داسې دی.چه یوکس ښکار باندې غشي اوویشتلو.او دا ددې ښکار په ځائې بل ښکار ته اولګیدو.نو دا جائز کیږی.دغه ډول به دا هم جائز وی.

**د سړي کشار معلومیدو نه روسته د مړشوی ښکار حکم**

وَإِنْ تَبَيَّنَ أَنَّهُ حِسُّ آدَمِيٍّ أَوْ حَيَوَانٍ أَهْلِيٍّ او که دا خبره ښکاره شوه.چه دا د یو سړي یا د ساتلی شوی څاروی کشار وو لَا يَحِلُّ الْمُصَابُ نو مصاب (کوم چې مړشوی او په لاس راغلی دی) به حلال نه وی لِأَنَّ الْفِعْلَ لَيْسَ بِاصْطِيَادٍ ځکه چې فعل د اصطیاد نه دی شوی «وَالطَّيْرُ الدَّاجِنُ الَّذِي يَأْوِي الْبُيُوتَ أَهْلِيٌّ وَالظَّبْيُ الْمُوَثَّقُ بِمَنْزِلَتِهِ لِمَا بَيَّنَّا» او هغه ساتلی شوی چوغکه کوم چې شپې تیرولو له کورونو ته پخپله راځی. دا پاللی شوی دی.او ساتلی شوې هوسئ د د پاللی شوی په مرتبه کي ده.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی دی.

حل اللغة: ① الطير: مارغه ② الداجن: حیوان (څاروی) ③ الظبي: هوسئ﴾

تشریح:- ددې خبرې بیان وړاندې شوی ووچه کله فعل ته اصطیاد (ښکار کول) اوونیلی شی.نو هلته کي په لاس راغلی ښکار د استعداد او قابلیت په اندازه حلال وی.او که اصل فعل اصطیاد نه دی شوی.نو بیا به په لاس راغلی ښکار هم حلال نه وی.نو کشار (او حرکت) ئې چې د کوم اوریدلی وو.که هغه سړی وی.یا بل څه ساتلی شوی حیوان (څاروی) وی.نو اوس به فعل اصطیاد نه وی.او په لاس راغلی ښکار به حلال نه وی.نو د کوم آواز ئې چې اوریدلی دی.هغه چوغکه وی.کوم چې کورونو کي جاله جوړه وی.او اوسیږی.نو دا د ساتلی شوی په مرتبه کي دی.دغه ډول ساتلی شوی هوسئ هم د پاللی شوی په درجه کي ده.یعنی دا دواړه ښکار نه دی.د ښکار حقیقت خو دا وی.چه هغه متوحش وی.نو که ددې کشار ئې واوریدو.او غشي ئې اوویشتو.او دا بل کوم ښکار ته اولګیدو.نو دا به حلال نه وی.ځکه چې اصل فعل اصطیاد نه دی شوی.دی اړخ ته مرغینانی رحمه الله اشاره کړی ده.پخپل قول «لما بينا» سره، یعنی دا فعل اصطیاد نشو.

**د معین ښکار په ځائې بل ښکار اولګیدو او مړ شو**

وَلَوْ رَمَى إِلَى طَائِرٍ او که ده یوې چوغکه اړخ ته غشي اوویشتلو فَأَصَابَ صَيْدًا وَمَرَّ الطَّائِرُ نو دا بل یو ښکار ته اولګیدو.او چوغکه والوتله وَلَا يَدْرِي وَحْشِيٌّ هُوَ أَوْ غَيْرُ وَحْشِيٍّ حَلَّ الصَّيْدُ او دا خبره معلومه نشوه.چه دا چوغکه وحشی ده.او که غیر وحشی ده.نو ښکار حلال دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ فِيهِ التَّوَحُّشُ ځکه چې چوغکه کي وحشی کیدل ښکاره دی وَلَوْ رَمَى إِلَى بَعِيرٍ فَأَصَابَ صَيْدًا او که ده اوښ اړخ ته غشي اوغورزولو.نو دا یو ښکار ته اولګیدو وَلَا يَدْرِي نَادٌّ هُوَ أَمْ لَا او دا خبره معلومه نشوه.چه دا تختیدلی (او تریدلی) شوی دی.او که نه؟ يَحِلُّ الصَّيْدُ نو ښکار به حلال نه وی «لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهِ الِاسْتِئْنَاسُ» ځکه چې اوښ کي اصل مانوس (او اموخته) کیدل دی.(وحشی کیدل نه دی).

حل اللغة: ① الاستئناس: بلدیدل، اموخته کیدل﴾

تشریح:- یو چوغکه اړخ ته ئې غشي اوغورزولو.نو دا خو اوتختیده.او بل یو ښکار ته غشي اولګیدو.اوس که

دا تختيدونکې ښکار دې.نو په لاس راغلې ښکار به حلال وی.ګنی نه به وی.،، کما مر.، خو دا معلومه نشوه. چې تختيدونکې وحشی دې.او که غيروحشی دې؟ نو په ړومبی صورت کې دا ښکار دې.او په دوهم صورت کې نه دې.( په زيربحث صورت کې به) اوس څه کولې شی.نو وې فرمائيل.چه ښکار حلال دې.ځکه چې مرغو کې اصل وحشی کيدل دی.نو تختيدونکې به ښکار شمارلې شی.او که غشې ئې اوويشتلو.اوښ ته.او اولګيدو بل يو ښکار ته،نو که اوښ پخپل اصلی حالت باندې دې.نو ښکار به حلال نه وی.او که دا تختيدلې ( او تريدلې) شوې دې.نو دا د وحشی په مرتبه کې دې.نو ښکار به حلال وی.خو که دا معلومه نشوه.چه دا تريدلې دې.اوکه نه؟ نو وې فرمائيل.چه اوس به هم حلال نه وی.ځکه چې اوښ کې اصل دا دې.چه دا وحشی نه وی.بلکه مانوس ( او اموخته) وی.

## د کب په ځائې بل ښکار اولګيدو او مړ شو

وَلَوْرَمٰى اِلٰى سَمَكَةٍ اَوْجَرَادَةٍ فَاَصَابَ صَيْدًا او که ده کب يا مولخ ارخ ته غشې اوويشتلو.نو دا غشې بل يو ښکار ته اولګيدو يَحِلُّ فِىْ رِوَايَةٍ عَنْ اَبِىْ يُوْسُفَ نو دا حلال دې.د امام ابويوسف رحمه الله نه په يو روايت کې لِاَنَّهُ صَيْدٌ ځکه چې دا ښکار حلال دې ،وَفِىْ اُخْرٰى عَنْهُ لَايَحِلُّ او د امام ابويوسف رحمه الله نه په دوهم روايت کې حلال نه دې ،لِاَنَّهُ لَاذَكَاةَ فِيْهِمَا ځکه چې دې دواړو کې ذکاة ( ذبح کول) نشته.

حل اللغة:① سمكة: کب ② جرادة: ملخ

تشريح:- که ده کب يا مولخ ارخ ته غشې اوويشتلو.او دا بل يو ښکار ته اولګيدو.نو اوس د ښکار څه حکم دې؟ نو په دې کې د امام ابويوسف رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه دی① ښکار حلال دې.ځکه چې دکوم په ارخ غشې ويشتلې شوې دې.يعنی کب او مولخ، هغه هم ښکار دې.② حلال نه دې.ځکه چې کب او مولخ نشی ذبح کولې.او د کوم په طرف چې غشې اوويشتلې شی.نو هلته چې ځنګه د هغې ښکار کيدل شرط دی.هلته دا هم شرط دې.چه د هغې حلت په ذبح سره مشروط وی.او دلته کې دا شرط موجود نه دې.نو ښکار به حلال نه وی.

## کوم ښکار ئې چې مړ کړې دې په ده ئې د انسان ګمان وونو ددې ښکار حکم

وَلَوْرَمٰى فَاَصَابَ الْمَسْمُوْعَ حِسُّهُ او که غشې ئې اوويشتلو.او هم هغه ښکار ته اولګيدو.د کوم ئې چې کشار اوريدلې وو وَقَدْ ظَنَّهُ اٰدَمِيًّا فَاِذَا هُوَصَيْدٌ يَحِلُّ حالانکه ده هغه سړې ګمان کړې وو.نو اچانك هغه ښکار دې.نو دا حلال دې لِاَنَّهُ لَامُعْتَبَرَ بِظَنِّهِ مَعَ تَعَيُّنِهِ ځکه چې دده د ګمان اعتبار به نشی کولې.د ښکار متعين کيدو نه پس.

تشريح:- د کوم ئې چې کشار اوريدلې وو.بعينه هم هغه ته تير اولګيدو.حالانکه ده په هغې باندې انسان ګمان کړې وو.حالانکه هغه ښکار دې.او غشې هم ده ته لګيدلې دې.نودا به حلال وی.او دلته دده په فعل او ګمان کې تعارض دې.نو ګمان لغوه اوګرځولې شو.او د فعل اعتبار کړې شوې دې.او فعل اصطياد دې.نو ښکار به حلال وی.دا ښکاره د مخکنۍ مسئلې سره تعارض دې.ددې تفصيلی ځواب موږ مخکې بيان کړې دې.

## د غشی ايشتلو لپاره د تسميه حکم

فَاِذَا سَمَّى الرَّجُلُ عِنْدَ الرَّمْىِ وکله چې انسان د ايشتلو په وخت تسميه اوونيله أُكِلَ مَا أَصَابَ إِذَا جَرَحَ السَّهْمُ فَمَاتَ نو کوم (ښکار) ته چې غشې لګيدلې دې.هغه به خوړلې شی.کله چې غشې زخمی کړې وی.نو ښکار مړشی لِاَنَّهُ ذَابِحٌ بِالرَّمْىِ لِكَوْنِ السَّهْمِ اٰلَةً لَهُ ځکه چې دا ( ويشتونکی ښکاری) د غشی ويشتلو په ذريعه ذبح کونکې دې.د غشی دده لپاره د آله کيدو په وجه ،فَتُشْتَرَطُ التَّسْمِيَةُ عِنْدَهُ شرط ده عِنْدَهُ ،وَجَمِيْعُ الْبَدَنِ مَحَلٌّ نو د غشی غورزولو په وخت تسميه او پوره بدن د ذکاة ددې نوع محل دې لِهٰذَا النَّوْعِ مِنَ الذَّكَاةِ ،وَلَابُدَّ مِنَ الْجُرْحِ



لِيَتَحَقَّقَ مَعْنَى الذَّكَاةِ عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ او ضروری دې.زخم لګول،چه د ذکاة معنی متحقق شی.د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دې.

تشريح:- لکه ځنګه چې د ( د سپی وغيره) ليګلو په وخت تسميه ضروری وه.دغه د ويشتلو په وخت هم ضروری ده.لکه ځنګه چې ( د سپی وغيره) ليګل د ذبح آله ده.دغه ډول غشې غورزول هم آله ده.او ليګل او ويشتل د ذکاة اضطراری ( يعنی د غير مقدور الذبح) لاندې داخل دی.او په ذکاة اضطراری کې د بدن هيڅ برخه معين نه ده.بلکه په هر ځائې چې اولګی.نوکه غشې په سترګه کې ښخ شی.يا په پتونانو کې واړه برابر دی.البته زخمی کول شرط دی.چه ددې تفصيل د ليګلو په بيان کې تيرشوې دې.

## که ښکار ژوندې ملاؤ شو نو د ذبح حکم؟

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَاِذَا اَدْرَكَهُ حَيًّا ذَكَّاهُ نوکه ( ښکاری) ښکار ژوندې اوموندلو.نو دا دې ذبح کړی. وَقَدْ بَيَّنَّاهَا بِوُجُوْهِهَا او موږ دا مسئله سره ددې د ټولو صورتونو ،وَالْاِخْتِلَافُ فِيْهَا فِى الْفَصْلِ الْاَوَّلِ فَلَانُعِيْدُهُ او په دې کې اختلاف په ړومبی فصل کې بيان کړې دې.نو موږ به دا دوباره نه ذکر کوو.

تشريح:- که غشی ويشتونکی والا ته ښکار ژوندې ملاؤ شی.نو اوس ذبح کول لازم دی.ګنی حلال به نه وی. مرغينانی رحمه الله په ړومبی فصل کې ددې مسئلې واړه صورتونه او په دې کې اختلاف په تفصيل سره بيان کړې دې.

## که ښکار په غشی اولګيدو.اوتختيدو او بيا مړ ملاؤ شو؟

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَاِذَا وَقَعَ السَّهْمُ بِالصَّيْدِ او کله چې غشې ښکار ته اولګيدو.( چې په دې سره هغه پريوتو). فَتَحَامَلَ حَتّٰى غَابَ عَنْهُ وَلَمْ يَزَلْ فِىْ طَلَبِهِ حَتّٰى اَصَابَهُ مَيِّتًا اُكِلَ بيا په مشقت سره هغه اوتختيدو.ترڅو چې ښکاری نه غائب شو.او دې پيوسته د هغې په لټون کې وو. ترڅو چې هغه دا مړ اوموندو.نو دا به خوړلې شی وَاِنْ قَعَدَ عَنْ طَلَبِهِ اوکه هغه ددې د طلب نه کيناستو ثُمَّ اَصَابَهُ مَيِّتًا بيا ئې دا مړ شوې اوموندلو لَمْ يُؤْكَلْ ،لِمَا رُوِىَ عَنِ النَّبِىِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اَنَّهُ كَرِهَ اَكْلَ الصَّيْدِ اِذَا غَابَ عَنِ الرَّامِىْ نو خوړلې به نشی.په دې وجه چې د نبی کريم ﷺ نه نقل دی.چه نبی کريم ﷺ ښکار خوړل مکروه اوګرځولو.کله چې دا د ويشتونکی نه غائب شی ،وَقَالَ: لَعَلَّ هَوَامَّ الْاَرْضِ قَتَلَتْهُ(۱) او وې فرمائيل.چه کيداې شی د زمکې ځناورو دا مړکړې وی وَلِاَنَّ احْتِمَالَ الْمَوْتِ بِسَبَبٍ اٰخَرَ قَائِمٌ او ځکه چې په بل سبب سره د مړ کيدو احتمال قائم دې فَمَا يَنْبَغِىْ اَنْ يَحِلَّ اَكْلُهُ نو دا خبره مناسب نه ده.چه ددې خوراك حلال وی ،لِاَنَّ الْمَوْهُوْمَ فِىْ هٰذَا كَالْمُتَحَقَّقِ لِمَا رَوَيْنَا ځکه چې موهوم په دې باب کې د متحقق په مثل دې.د هغه روايت په وجه کوم چې موږ روايت کړې دې.

تشريح:- ښکار ته غشې اولګيدو.( زخمی شو) خو ده مشقت برداشت کړو.اوتختيدو.او غائب شو.بيا دا ملاؤشو.خو مړ شوې وو.نو اوس څه حکم دې؟ نو کتلې به شی.چه غشې ويشتونکې پيوسته دده په لټون کې دې.اوکه ناست دې.په ړومبی صورت کې حلال دې.او په دوهم صورت کې حرام دې.چه ددې مرغينانی رحمه الله دوې (دوه) دليلونه ذکر کړی دی① نبی کريم ﷺ ددې خوراك ناخوښه ګرځولې دې.فرمائيلی ئې دی.چه کيداې شی د زمکې ځناورو دې وژلې وی.② عقلی دليل دا دې.چه احتمال دې.چه دا ښکار د ستا د غشی نه علاوه په بل څه سبب سره مړ شوې وی.نو بيا ددې خوړل مناسب نه دی.

که څوك دا اعتراض اوکړی چې دلته د غشی ويشتل يو تحقيقی امر دې تاسو دا يقينی امر پريخودو او

---

[1] - من حديث أبي رزين أخرجه إبن ابى شيبة وكذا الطبرانى فى معجمه (نصب :۳۳۱۵)_

يووهمي باندې مو بنا (بنياد) کيخودونو د دې ځواب دا دې چې د ښکار په باب کې موهوم د متحقق په مرتبه کې دې.او هرکله چې دواړه برابر شو.نو تعارض پيدا شو.او د تعارض په وخت حرمت ته ترجيح ورکړې شوې دې... كما هو الأصل..

## يو سوال او د هغې جواب

**إلا أنا أسقطنا اعتباره ما دام في طلبه ضرورة أن لا يعرى الاصطياد عنه** خو موږ ساقط کړو.د موهوم اعتبار کول،ترکومه پورې چې دې د هغې په طلب کې وي.ددې خبرې د اړتيا په وجه، چې ښکار کول ددې نه خالی نه وي، **ولا ضرورة فيما إذا قعد عن طلبه لإمكان التحرز عن توار يكون بسبب عمله** او هيڅ اړتيا نشته.په دې صورت کې کله چې هغه ددې د طلب نه کيني.د بچ کيدو د ممکن کيدو په وجه، په داسې پټيدو سره، کوم چې د ښکاری د فعل په سبب سره وي **والذي رويناه حجة على مالك في قوله إن ما توارى عنه إذا لم يبت يحل** اوکوم حديث چې موږ روايت کړې دې.په امام مالک رحمه الله باندې حجت دې.د هغوی په دې وئيلو کې ، چې کوم ښکار دده نه پټ شوې دې.کله چې شپه نه وی تيره شوې.نو حلال دې، **فإذا بات ليلة لم يحل** او کله چې شپه تيره شي.نو حلال نه دې.

**حل اللغة:** ① **يعرى**: خالی کيږی ② **التحرز**: ځان ژغورل ③ **توار**: پټيدل ﴿

**تشريح:**- سوال: دلته کې يو اعتراض واردیږی.چه هرکله موهوم د متحقق پشان دې.نو ښکاری اګرچه د ښکار په لټون کې دې.او بيا ئې دا مړ موندلې دې.نو اوس هم په دې کې احتمال دې.چه دا د زمکې د ځناورو مړکړې وی.او موهوم د متحقق پشان وی.نو تاسو له پکار دی.چه تاسو دا هم حرام اوګرځوئ.حالانکه تاسو دې ته حلال وايئ.

ځواب: مرغينانی رحمه الله په ﴿إلا أنا أسقطنا....﴾ سره ددې اعتراض ځواب ورکړې دې.حاصل د ځواب دا دې.چه ښکار کول په عامه توګه (عام طور) باندې ددې نه خالی نه وی.چه ښکار پټيږی.او غائبيږی.اوکه پټيدو سره د حرمت حکم جاری کړې شی.نو د اصطياد دروازه بندول لازميږی.

او پاتې شو دوهم صورت کله چې ښکاری د ښکار د طلب نه کينی.نو ددې نه بچ کيدل ممکن دی.چه دې کينني.او پيوسته ښکار لټون کوی.نو ګويا دلته کې غائب کيدل د داسې فعل په وجه دی.کوم چې د ښکاری فعل دې.يعنی دده کيناستل، مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه موږ حديث بيان کړې دې. ﴿لعل هوام الأرض قتلته﴾ دا حديث د امام مالک رحمه الله خلاف حجت دې.ځکه چې دوی دداسې ښکار اړه کې فرمائيلی دی.که په دې شپه تيره شوه.نو خوراک حلال نه دې.اوکه تيره نشوه.نو حلال ده.

تنبيه: حديث صحيح دې. ﴿إذا رميت سهمك فغاب ثلاثة أيام و أدركته فكله مالم ينتن﴾ (رواه مسلم و أحمد و أبوداؤد) نو په امام مالک رحمه الله باندې د حجت کيدو خبره مناسب نه ده.نو دلته کې به دا تاويل کولې شی.چه ددې حديث محمل دا دې.چه هغه د طلب نه ناست نه وی.بلکه پيوسته طلب کوی.او کوم حديث چې مرغينانی رحمه الله ذکر کړې دې.هغه په دې حالت باندې محمول کړې شی.کله چې دې د طلب نه کينی.

## که په ښکار کښې د غشی نه علاوه بل څه زخم وی؟

**ولو وجد به جراحة سوى جراحة سهمه لا يحل** او که په ښکار کې ئې بل څه زخم اوکتلو.چه دده د غشی د زخم نه علاوه وو.نو حلال به نه وی **لأنه موهوم يمكن الاحتراز عنه** ځکه چې دا داسې موهوم دې.چه ددې نه بچ کيدل ممکن دی **فاعتبر محرما، بخلاف وهم الهوام** او دا به محرم شمارلې کيږی.په خلاف د ګمان د زمکې د ځناورو **والجواب في إرسال الكلب في هذا كالجواب في الرمي في جميع ما ذكرناه** او ځواب په سپی پريخودو کې په دې سلسله کې د غشی ويشتلو پشان دې.هغه ټولو صورتونو کې کوم چې موږ ذکرکړی دی.



**تشريح:**- کله چې ښکاری ښکار اوموندلو.او دا مړشوې دې.نو ددې تفصيلی حکم تير شوې دې.خو دا حکم هغه وخت دې.چه دده د غشی نه علاوه بل څه زخم په ښکار کې نه وی.او که ددې نه علاوه بل څه زخم هم ملاؤ شی.نو اوس دا حرام دې.که دې ئې پيوسته لټون کوی.يا ناست وی.ځکه چې هميشه داسې نشی کيدې.چه دده د غشی نه علاوه بل څه زخم ښکار ته اولګی.نو دا داسې موهوم امر دې.چه ددې نه بچ کيدل ممکن دی.او په باب دښکار کې موهوم پشان د متحقق وی.او بچ کيدل هم ممکن دی.نو دلته کې به موهوم محرم ګرځولې شی.لکه څنګه چې محرم کې کيږی.

پاتې شوه مسئله د زمکې د ځناورو د وهم، نو ددې نه بچ کيدل ممکن دی.ځکه چې ښکار به په ځمکه خو خامخا غورزيږی.او ځمکه د ځناورو نه خالی نه وی.نو ترکومه پورې چې دې کينني.ددې موهوم اعتبار به نشی‌کولې.او ښکار به حلال ګرځولې شی.بيا که چا غشې پريښودې وی.يا ئې سپې پريښودې وی.نو په ټولو ذکر شوو صورتونو کې حکم برابر دې.يعنی سپې ئې پريخودو.او سپی دا زخمی کړو.اوس هغه اوتختيدو. بيا مړ شوې ملاؤ شو.نو اوس هم دا حکم دې.که ښکاری کيناستو.نو حرام دې.ګنی حلال دې. او که د سپی د زخم نه علاوه بل څه زخم په دې کې دې.نو بيا به په دواړو صورتونو کې حلال نه وی.

## د راغورځيدلي ښکار حکم

**قال** قدوری رحمه الله اوفرمائيل **وإذا رمى صيدا** او کله چې ده ښکار په غشی اوويشتلو **فوقع في الماء** نو دا ښکار اوبو کې پريوتلو **أو وقع على سطح** يا په يو چت باندې پريوتو **أو جبل** يا په غر باندې پريوتو **ثم تردى منه إلى الأرض لم يؤكل** بيا ددې نه راوزغړيدو.او په ځمکه راپريوتو.نو دا به نشی خوړلې **لأنه المتردية وهي حرام بالنص** ځکه چې دا متردیه دې.او دا په نص (د قرآن) سره حرام دې **ولأنه احتمل الموت بغير الرمي** او ځکه چې دا احتمال لری.د مرګ د غشی نه بغير **إذ الماء مهلك** ځکه چې اوبه هلاکونکې دی **وكذا السقوط من عال ويؤيد ذلك قوله عليه الصلاة والسلام لعدي رضي الله عنه وإن وقعت رميتك في الماء فلا تأكل** او هم دغه ړول د داسې اوچت ځائې نه راغورزيدل، عدی رضی الله عنه ته د نبی کريم ﷺ فرمان ددې تائيد کوی.که ستا ويشتلې شوې ښکار په اوبو کې پريوځی.نو مه خوره **فإنك لا تدري أن الماء قتله أو سهمك**[1] ځکه چې ته نه پوهيږې.چه دا اوبو مړ کړې دې.او که ستا غشی.

**حل اللغة:** ① **سطح**: چت ② **المتردية**: راغورزيدلې ﴾

**تشريح:**- د متردیه (راژغړيدلې ځاروی) بيان وړاندې تير شوې دې.په نص د قرآن سره ددې حرمت ثابت دې.نوکه يو ښکار ته غشې اولګيدو.او هغه زخمی شو.او په اوبو کې پريوتلو.يا په يوچت باندې، يا په غر باندې پريوتو.بيا د هغه ځائې نه راوزغړيدو.او په ځمکه راپريوتو.او دا مړ شو.نو دا متردیه دې.چه حرام دې. بيا په دې کې احتمال دې.چه دا په غشی مړشوې دې.او دا احتمال هم شته.چه د اوبو په وجه مړ شوې وی.يا د پورته ځائې نه رازغړيدو سره مړ شوې وی.نو هرکله چې دوې (دوه) سببونه جمع شو.نو د ذکر شوی اصول مطابق به د حرمت سبب ته ترجيح ورکولې شی.او د حضرت عدی رضی الله عنه حديث د ابن حاتم طائی نه کوم چې نبی کريم ﷺ ارشاد فرمائيلې وو.هغې کې هم دا حکم ذکر دې.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.چه کله ستا په غشې لګيدلې ښکار اوبو کې پريوځی.نو دا مه خوره.ځکه چې دلته کې دا معلومه نه ده.چه ددې مرګ اوبو کې پريوتلو سره واقع شوې دې.او که د غشی په وجه.

## د غشي لګيدو نه روسته د ښکار په ځمکه پريوتل او مړ کيدل

**وإن وقع على الأرض ابتداء أكل** او که ښکار د پيل نه په ځمکه پريوتلو.نو خوړلې به شی **لأنه لا يمكن**

---

[1] - اخارجه البخاری فی الذبائح باب ٨ ومسلم فی الصيد رقم ٧ والترمذی فی الصيد سباب ٥ والنسائی فی الصيد باب ١٨ والدارمی فی سننه ١٤ \ ٢٩٤)رقم ٩٠)

الاِحْتِرَازُ عَنْهُ، ځکه چې ددې نه بچ کيدل ممکن نه دی وَفِي اعْتِبَارِهِ سَدُّ بَابِ الاِصْطِيَادِ بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ او د بچ کيدو اعتبار کاوه کي د ښکار دروازې بندول دي.په خلاف د ړومبی صورت، لِأَنَّهُ يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ ځکه چې هغې نه بچ کيدل ممکن دي.

تشريح:- که ښکار په غشي اولگيدو.او فی الحال زمکې له راغې.نو دا حلال دې.ځکه چې ښکار به په مځکه خامخا غورځيږي.ددې نه څو خلاصې نشته.او په غر وغيره باندې پريوتل، څه لازم او ضروری نه دی.په نورو الفاظو کي داسې چې د غورزيدو نه بچ کيدل ممکن نه دی.نو ددې اعتبار اونکړې شو.او ښکار ته حلال اووئيلی شو.گڼی د ښکار کاوه دروازه به بنده شي.او په غر وغيره باندې غورزيدل داسې شئ دې.چه ددې نه بچ کيدل ممکن دی.په دې وجه دا حرام اوگرځولی شو.

## د حلت او حرمت قاعده کليه

فَصَارَ الأَصْلُ أَنَّ سَبَبَ الْحُرْمَةِ وَالْحِلِّ إِذَا اجْتَمَعَا نو قاعده کليه دا شوه.چه د حرمت او حلت سببونه، چې کله دواړه جمع شی وَأَمْكَنَ التَّحَرُّزُ عَمَّا هُوَ سَبَبُ الْحُرْمَةِ او د حرمت د سبب نه بچ کيدل ممکن وی تُرَجَّحُ جِهَةُ الْحُرْمَةِ احْتِيَاطًا نو د احتياط په بناء به د حرمت سبب ته ترجيح ور کولای شی وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ اوکه دا سبب د هغه څيزونو څني وی.چه هغې نه بچ کيدل ممکن نه وی، جَرَى وُجُودُهُ مَجْرَى عَدَمِهِ نو ددې سبب وجود به د عدم سبب په درجه کي وی. لِأَنَّ التَّكْلِيفَ بِحَسَبِ الْوُسْعِ ځکه چې تکليف د وسعت ( او توان ) په اندازه وی.

تشريح:- مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه زموږ د تيرشوی تقرير نه يوه قاعده کليه معلومه شوه.چه کله يو شئ کي د حلت او حرمت دواړو سببونه جمع شی.نو اگرچه د حرمت سبب ته ترجيح ورکولې شی.خو ددې نه مځکې به د حرمت په سبب باندې غور کولې شی.چه ددې نه بچ کيدل هم ممکن دی.اوکه نه؟ که بچ کيدل ممکن وی.نو ذکر شوی قاعده به جاری کولې شی.يعنی حرمت ته به ترجيح ورکولې شی.اوکه ددې نه بچ کيدل ممکن نه وی.لکه د ښکار په مځکه پريوتل شو.نو دا به کالعدم شمارلې شی.او هرکله چې دا معدوم ( نيشت) شمار کړې شو.نو اوس صرف د حلت سبب پاته پاتې شو.نو ښکار به حلال وی.ځکه چې اصول مقرر دې.چه تکليف په اندازه د قدرت وی.د الله تعالی فرمان دې﴿لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾

## هغه اسباب چې د هغې نه بچ کيدل ممکن دی

فَمَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ إِذَا وَقَعَ عَلَى شَجَرٍ أَوْ حَائِطٍ أَوْ آجُرَّةٍ نو هغه اسباب چې دهغې نه بچ کيدل ممکن دی.چه کله ښکار په ونه باندې، يا ديوال باندې، يا په پوخ ديوال باندې پريوځی ثُمَّ وَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ أَوْ رَمَاهُ بِيا په مځکه راپريوځی.ياني ښکار په غشي ويشتلې وی وَهُوَ عَلَى جَبَلٍ فَتَرَدَّى مِنْ مَوْضِعٍ إِلَى مَوْضِعٍ حَتَّى تَرَدَّى إِلَى الْأَرْضِ او ښکار په غر وی.نو هغه راوزغړيدو، د يو ځائې نه بل ځائې اړخ ته.تردې چې زمکې پورې په رازغړيدو راغې أَوْ رَمَاهُ فَوَقَعَ عَلَى رُمْحٍ مَنْصُوبٍ يا ئې په غشي اوويشتلو.نو هغه (ښکار) په ښخه شوې نيزه باندې راپريوتو أَوْ قَائِمَةٍ أَوْ عَلَى قَصَبَةٍ يا ښخ شوی بانړس باندې، يا د پخې خښتې په غاړه باندې، أَوْ عَلَى حَرْفِ آجُرَّةٍ لِاحْتِمَالِ أَنَّ حَدَّ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ قَتَلَهُ ددې خبرې د احتمال په وجه، چې ددې څيزونو تيرې ځائې ( يعنی تيره والی) دا مړ کړې وی.

حل اللغة: (۱) تردی: راغورزيږی (۲) موضع: ځائې (۳) رمح: نيزه (۴) قصبة: بانړس (۵) أجرة: پخه ښخته﴾

تشريح:- کله چې مرغينانی رحمه الله قاعده کليه بيان کړله.نو اوس ضروری وو.چه دا واضحه شی.چه هغه کوم اسباب دی.چه هغې احتراز او بچ کيدل ممکن دی.او هغه کوم اسباب دی.چه هغې نه بچ کيدل او ځان ژغورل ممکن نه دی.نو دلته کي مرغينانی رحمه الله هم په ړومبی وار د هغه اسبابو تفصيل بيان کړې دې.د کوم نه چې بچ کيدل ممکن دی.او د کومو نه چې نشی بچ کيدې.هغه ئې په دوهم وار کي بيان کړی دی.د کومو نه بچ کيدل ممکن دی. هغه دا دی(۱) په غشي نښليدل او په ونه کي پريوتل.(۲) په يو ديوال باندې پريوتل.



(۳) په پخه خښته پريوتل (۴) په غر باندې پريوتل، او بيا ددې ځائې نه په رازغړيدو زمکې ته راتگ.(۵) په ښخه شوې نيزې پريوتل.(۶) په ولاړ بانړس او نرکل ( نل) باندې پريوتل.(۷) د پخې خښتې په جانې ( غاړه) باندې پريوتل، اومړ کيدل.نو دا احتمال چې کيداې شی.ددې څيزونو تيره والی دا مړ کړې وی.نو کله چې دوهم احتمال پيدا شو.او ددې نه بچ کيدل ممکن دی.نو د ذکرشوې قاعدې مطابق به د حرمت اړخ ته ترجيح ورکولې شی.اوښکار به حرام وی.او دذکر شوی ټولو اسبابو نه بچ کيدل ځکه ممکن دی.چه ښکار هميشه داسې نه راغورزيږی.بلکه د عوارضو په وجه کله کله داسې کيږی.په دې وجه دې ته د بچ کيدو ممکن اووئيلی شو.

## د کومو اسبابو نه چې بچ کيدل ممکن نه دی

وَمَا لَا يُمْكِنُ الاِحْتِرَازُ عَنْهُ او د هغه اسبابو نه د کوم نه چې بچ کيدل ممکن نه دی إِذَا وَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ كَمَا ذَكَرْنَاهُ، کله چې ښکار په مځکه پريوځی لکه چې موږ دا ذکر کړی دی أَوْ عَلَى مَا هُوَ مَعْنَاهُ كَجَبَلٍ أَوْ ظَهْرِ بَيْتٍ أَوْ لَبِنَةٍ مَوْضُوعَةٍ أَوْ صَخْرَةٍ يا په داسې شئ باندې، کوم چې د زمکې په مرتبه کي دې.لکه غر، يا د کور چت، يا پرته کچه خښته، يا کانړې فَاسْتَقَرَّ عَلَيْهَا نو دا ښکار په دې ايسار شو لِأَنَّ وُقُوعَهُ عَلَيْهِ وَعَلَى الْأَرْضِ سَوَاءٌ ځکه چې د ښکار په دې څيزونو باندې او په مځکه راپريوتل برابر دی.

حل اللغة: (۱) جبل: غر(۲) لبنة: خښته (۳) صخرة: کټه﴾

تشريح:- ددې ځائې نه د هغه څيزونو بيان دې.چه د هغې نه بچ کيدل ممکن نه دی.کوم چې معدوم شمارلې کيږی.او ښکار حلال گڼرلې شی.هغه دا دی.(۱) د ښکار په مځکه باندې پريوتل.(۲) د يو کور په چت باندې پريوتل.(۳) په پرته کچه خښته باندې پريوتل.(۴) په يو غټ کانړی باندې پريوتل.او کوم ځائې چې راغورزيدلې دې.هم هلته کي ايسار شی.گڼی که په غر باندې راپريوتلو.او په رازغړيدو زمکې له راغلې دې.نو دا حرام دې.،،کمامر،، نو په دې ټولو صورتونو کي مراد دا دې.چه دا په دې راپريوځی.او ايسار شی.نو اوس د ښکار په دې څيزونو باندې راپريوتل او په مځکه پريوتل برابر دی.

## که ښکار په کانړی پريوتلو او خيټه ئې اوشليدله؟

وَذُكِرَ فِي الْمُنْتَقَى او په منتقى کي ذکر دی لَوْ وَقَعَ عَلَى صَخْرَةٍ فَانْشَقَّ بَطْنُهُ لَمْ يُؤْكَلْ لِاحْتِمَالِ الْمَوْتِ بِسَبَبٍ آخَرَ که ښکار په کانړی باندې راپريوتو.نو نس ئې اوشليده.نو خوړلې به نشي. په بل سبب سره د مرگ د احتمال په وجه وَصَحَّحَهُ الْحَاكِمُ الشَّهِيدُ او دا حاکم شهيد صحيح گرځولې دې وَحُمِلَ مُطْلَقُ الْمَرْوِيِّ فِي الْأَصْلِ عَلَى غَيْرِ حَالَةِ الاِنْشِقَاقِ او حاکم شهيد د مبسوط مطلق روايت د خيټې په نه شليدو حالت باندې محمول کړې دې.

حل اللغة: (۱) انشق: څيری شی (۲) بطن: نس﴾

تشريح:- منتقى د حاکم شهيد رحمه الله کتاب دې.مبسوط د امام محمد رحمه الله تصنيف دې.امام سرخسی رحمه الله د مبسوط شرح ليکلی ده.چه ډيره غټه ( ضخيم) ده.امام محمد رحمه الله په مبسوط کي فرمائيلی دی.که ښکار په کانړی راپريوتلو.او ايسار شو.نو حلال دې.يعنی که دده نس شليدلې وی.اوکه نه وی شليدلې.په دې اړه کي ددوی قول مطلق دې.او حاکم شهيد رحمه الله پخپل کتاب منتقى کي ذکرکړی دی.که ښکار په کانړی پريوتلو.او دده نس اوشليدله.نو حرام دې.خوړلې به نشی.ځکه چې د ايشتلو نه علاوه په بل سبب سره د مړکيدو احتمال دې.او ددې د ذکر کاوه نه روسته حاکم شهيد رحمه الله دا اصح گرځولې دې.او حاکم شهيد رحمه الله فرمائيلی دی.چه د مبسوط دا جزئيه چې حلال دې.ددې محمل ( او حقيقت) دا دې.چه ددې نس شليدلې نه وی.گڼی حرام به وی.

وَحَمَلَهُ شَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرَخْسِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ عَلَى مَا أَصَابَهُ حَدُّ الصَّخْرَةِ او شمس الائمه سرخسی رحمه الله د حاکم شهيد قول په هغه

ښکار باندې محمول کړې دي.چه هغې سره د کاڼړي تیره غاړه لګیدلې وی فَانْشَقَّ بَطْنُهُ بِذٰلِكَ نو په دې وجه دده نس شلیدلې وَحَمَلَ الْمَرْوِيَ فِي الْأَصْلِ عَلٰى أَنَّهُ لَمْ يُصِبْهُ مِنَ الْآجُرَّةِ او سرخسی محمول کړې دي.هغه روایت کوم چې مبسوط کې نقل دي.په دې حالت چې ښکار ته په پخې خښتې زخم نه وی رسیدلې إِلَّا مَا يُصِيبُهُ مِنَ الْأَرْضِ خو دومره کوم چې ده ته په زمکې سره رسیږي لَوْ وَقَعَ عَلَيْهَا وَذٰلِكَ عَفْوٌ وَهٰذَا أَصَحُّ که دا په مځکه پریوتلې وو.او دا معاف دي.او دا اصح دي.

تشریح:- د امام سرخسی رحمه الله توجیه لنډیز د کلام دا چې حاکم شهید رحمه الله مسئله بیان کړله.کومه چې ذکر شوه.او د مبسوط په روایت کې ئې تاویل ذکرکړو.بیا د مبسوط شارح امام سرخسی راغې.او دوی د منتقی او مبسوط په دواړو روایتونو باندې غور اوکړو.چه د منتقی د روایت محمل دا دې.چه ښکار په کاڼړي پریوتلو.او د کاڼړي تیره جانې یا سوکې د ښکار نس اوشلوله.نو دا حرام دې.او د مبسوط د روایت محمل دا دې.چه ښکار په کاڼړي وغیره باندې پریوتلو.او په دې سره ده ته دومره زخم اولګیدو .کوم چې په عامه توګه (عام طور) باندې مځکه باندې پریوتلو سره لګی.نو دا زخم معاف دې.نو که ښکار په مځکه راپریوتو.او دده نس اوشلیده.نو دا معاف دې.او حلال دې.دغه ډول که په کاڼړي راپریوتو.او دده نس اوشلیده.نو دا به هم حلال وی.ځکه چې دا هم ده ته دومره زخم لګیدلې دې.کوم چې په مځکه پریوتو سره لګی.مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د امام سرخسی رحمه الله تاویل اصح دې.ګنی د منتقی د روایت مطابق په کاڼړي پریوتو سره نس شلیدو سره ښکار حرامیږي.

## د اوبو د خاروی په غشي لګیدو نه روسته اوبو کښې مړ کیدل

وَإِنْ كَانَ الطَّيْرُ مَائِيًّا او که د اوبو چوغکه (ځناور) وی فَإِنْ كَانَتِ الْجِرَاحَةُ لَا تَنْغَمِسُ فِي الْمَاءِ أُكِلَ نو که زخمی اوبو کې ډوب نشی.نو خوړلې به شی ،،وَإِنِ انْغَمَسَتْ لَا يُؤْكَلُ كَمَا إِذَا وَقَعَ فِي الْمَاءِ او که ډوب شی.نو خوړلې به نشی.لکه ځنګه چې کله (د بغیر اوبو ښکار) اوبو کې پریوځی.

حل اللغة: ① انغماس: غوپه وهل ﴾

تشریح:- دریابی ځناور ته غشې اولګیدو.او هغه په اوبو کې دې.نوکه ددې زخم اوبو کې ډوب نشی.نو دا حلال دې.ځکه دا ددې خبرې دلیل دې.چه دا د غشی په زخم سره مړ شوې دې.اوکه زخم اوبو کې ډوب شی.او ځناور مړشی.نو اوس به نشی خوړلې.ځکه اوس ښکاره دا ده.چه دا ښکار په زخم کې د اوبو تللو په وجه مړ شوې دې.که دا د اوبو ځناور دې.خو سره د زخم نه اوبو کې اوسیدل ددې د شان مناسب نه دې.لکه که یو د اوچې ځناور په غشی اولګیدو.او اوبو کې پریوتلو.اومړ شو.نو حرام دې.ځکه ښکاره هم دا ده.چه دا د اوبو په وجه مړ شوې دې.

## د غشی په پلن والی سره د مړ شوی ښکار حکم

قَالَ امام ابو الحسین قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَا أَصَابَهُ الْمِعْرَاضُ بِعَرْضِهِ او هغه ښکار چې هغې ته د سوکې نه بغیر غشې اولګیدو.خپل پلن والی (پیړې غاړې) سره لَمْ يُؤْكَلْ، وَإِنْ جَرَحَهُ يُؤْكَلُ اوکه دا ئې زخمی کړلو.نو خوړلې به شی.د نبی کریم ﷺ قَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِيهِ سلسله کې أَصَابَ بِحَدِّهِ فَكُلْ، وَمَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَلَا تَأْكُلْ (1) د فرمان په وجه، د معراض (پلن والی، ډنډې) په کوم ښکار چې هغې ته غشې اولګیدو.خپلې سوکې

---

[1] من حدیث عدی بن حاتم رضی الله عنه أخرجه البخاری فی البیوع باب ۳ ومسلم فی الصید ر۴م ۲ وأبوداود فی الأضاحی باب ۲۲ والترمذی فی الصید باب ۷ والنسائی فی الصید باب ۲ وابن ماجه فی الصید باب ۷ والدارمی فی الصید باب ٤ وأحمد فی المسند (۲۵۶\۱٤)_



سره،نو هغه خوری.او کوم ته چې ددې غشی ډنډه (پیړوالې) اولګیده.نو هغه مه خوری مَوْلَانَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْجُرْحِ لِيَتَحَقَّقَ مَعْنَى الذَّكَاةِ عَلٰى مَا قَدَّمْنَاهُ او ځکه چې زخم لګول شرط دی.چه د ذکاة (ذبح) معنی متحقق شی.د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دي.

حل اللغة: ① المعراض: دسوکې نه بغیرغشی ② الجرح: زخم ③ العرض: پلنوالې ﴾

تشریح:- معراض: د سوکې نه بغیر غشې،یعنی ،،سهم بلا ریش،،(بغیر غاښونو والا غشې) چې ددې دواړه غاړې نرئ وی.او منځنئ برخه ئې پیړه وی.عرض: ډنډه،(پلن والې) کومه چې د تیره والی نه علاوه ده.مطلب دا دې.چه ښکار په غشی اولګیدو.او هغه مړ شو.خو هغې ته د غشی منځ اولګیدو.کوم چې ډنډې سره تعبیر شوې دې.نو دا شلول او ماتول شو. پرې کول نشو.په دې وجه به دا حلال ښکار نه وی.البته که غشی دا زخمی کړې وی.نو خوړلې به شی.خو دلته د زخمی کاوه نه مراد شلول، ماتول نه دی.بلکه مراد دا دې.چه د غشی سوکه ده.چه تیره ده.که دا سوکه ښکار ته اولګیده.او هغه ئې زخمی کړو.او مړ ئې کړو. نو ښکار به حلال وی.اوکه ډنډې زخمی کړو.نو حلال به نه وی.﴿والبسط فی الشامس ۳۰۴ ج۵﴾

㉝ دا مضمون په حدیث د عدی بن حاکم رضی الله عنه سره ثابتیږي.د نبی کریم ﷺ ارشاد مبارك دې.که غشې ښکار ته د سوکې د اړخه اولګیدو.نو خوری.که د غشی ډنډه اولګیده.نو مه خوری.او د مخکنی نه مراد ماتول نه دی.بلکه زخم او پریکول دی.چه دا نوکدار (او د سوکې والا) شئ سره حاصلیږي.

## په ټوپك سره د لګیدلی ښکار حکم

قَالَ امام ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی وَلَا يُؤْكَلُ مَا أَصَابَتْهُ الْبُنْدُقَةُ فَمَاتَ بِهَا او خوړلې به نشی.کوم (ښکار) ته چې مرزکې (د ټوپك ګولۍ) اولګیده.او هغه په دې سره مړ شو لِأَنَّهَا تَدُقُّ وَتَكْسِرُ وَلَا تَجْرَحُ فَصَارَ كَالْمِعْرَاضِ إِذَا لَمْ يَخْزِقْ ځکه چې غله تکول (چقول) کوی.او ماته وی.او نه زخمی کوی.نو دا د بغیر سوکې والا غشی پشان شو.کله چې دا دننه ښخ نشی ،وَكَذٰلِكَ إِنْ رَمَاهُ بِحَجَرٍ، او هم دغه ډول (خوړلې به نشی) که ښکار په کاڼړي اولی وَكَذَا إِنْ جَرَحَهُ او هم دغه ډول (خوړلې به نشی) که کاڼړي دا زخمی کړې وی، قَالُوا: تَأْوِيلُهُ إِذَا كَانَ ثَقِيلًا فقهاو فرمائیلی دی.ددې تاویل دا دې.کله چې کاڼړې درونډ وی وَبِهِ حِدَّةٌ لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ قَتَلَهُ بِثِقَلِهِ او په دې کې تیره والې وی.ددې خبرې د احتمال په وجه، چې کاڼړي ښکار د خپل بوج په وجه مړ کړې دې ،وَإِنْ كَانَ الْحَجَرُ خَفِيفًا او که کاڼړې سپك وی وَبِهِ حِدَّةٌ يَحِلُّ لِتَعَيُّنِ الْمَوْتِ بِالْجُرْحِ حالانکه په دې کې تیره والې شته.نو حلال دې.د مرګ متعین کیدو په وجه،په زخمی کیدو سره وَلَوْ كَانَ الْحَجَرُ خَفِيفًا او که کاڼړې سپك وی وَجَعَلَهُ طَوِيلًا كَالسَّهْمِ حالانکه دا ئې پشان د غشی اوګد جوړ کړې دې وَبِهِ حِدَّةٌ فَإِنَّهُ يَحِلُّ او په دې کې تیره والې دې.نو ښکار حلال دې ،،لِأَنَّهُ يَقْتُلُهُ بِجُرْحِهِ ځکه چې دا کاڼړې به ښکار پخپله تیره غاړه قتلوی.

حل اللغة: ① تدق: تکول چقول ② تکسر: ماتیږي ③ طویل: اوږد ﴾

تشریح:- غله:ګولۍ، مرزکې کوم چې ټوپك کې چلیږي.اوهم دغه ډول چاړه او د ټوپك ګولۍ پرې کول نه کوی.بلکه شلول او ماتول کوی.نو کله چې ددې په وجه ښکار مړ شو.نو خوړلې به نشی.او دا واړه د معراض (بغیرسوکی والا غشی) په درجه کې دی.

بیا دلته کې مرغینانی رحمه الله بعض جزئیات ذکرکړې دی. فرمائی:① ښکار ئې په کاڼړي اوویشتو.او مړ ئې کړو.نو دا به حلال نه وی.د ذکر شوی دلیل په وجه.② کاڼړې درونډ وو.او په هغې کې تیره غاړه هم شته.په هغې ئې ښکار اوویشتلو.او ښکار زخمی شو .نو اوس به نشی خوړلې.ځکه چې اوس په دې کې دا احتمال شته.چه کاڼړي ښکار پخپلې تیره جانې نه دې زخمی کړې بلکه په بوج ئې مړ کړې دې.③ کاڼړې سپك وی.او په دې کې تیره جانې (غاړه) وی.او ددې په ویشتلو سره ښکار مړ شو.نو ښکار حلال دې.ځکه چې

دلته دا خبره متعين ده.چه د زخم په وجه مرګ واقع شوي دي.④ كاڼړي سپك دي.چه دا ئې د غشي پشان اوګد ساز کړي دي.او په دې کې تيره غاړه ده.نو ددې ښکار به هم حلال وي.ځکه چې دا کاڼړي به ښکار د زخم کاوه په وجه مړ کوي.پخپل بوج سره به ئې نه مړ کوي.

## په سنګ مرمر سره د لګيدلي ښکار حکم

وَلَوْ رَمَاهُ بِمَرْوَةٍ حَدِيدَةٍ وَلَمْ تَبْضَعْ بِضْعًا لَا يَحِلُّ او که دا ئې په تيره سنګ مروه ( مرمر ) سره اوويشتلو.او دې څه اندام کټ نکړو.نو دا به حلال نه وي ،لِأَنَّهُ قَتَلَهُ دَقًّا ځکه چې دې ښکار شلولي دي.او مړکړي ئې دي ،وَكَذَا إِذَا رَمَاهُ بِهَا فَأَبَانَ رَأْسَهُ أَوْ قَطَعَ أَوْدَاجَهُ او هم دغه ډول ( حلال نه دې) کله ئې چې ښکار په سنګ مروه سره ايشتلي وي.نو ددې سر ئې جلا کړو.يا ئې ددې رګونه ( د سټ،حلق،او د مرئ) کټ کړل لِأَنَّ الْعُرُوقَ تَنْقَطِعُ بِثِقَلِ الْحَجَرِ كَمَا تَنْقَطِعُ بِالْقَطْعِ ځکه چې رګونه کټ کيږي.د کاڼړي په بوج سره هم.لکه څنګه چې کټ کيږي.په کټ کاوه سره ، فَوَقَعَ الشَّكُّ أَوْ لَعَلَّهُ مَاتَ قَبْلَ قَطْعِ الْأَوْدَاجِ نو شك پيدا شو.يا کيداي شي چې ښکار مړ شوي وي.د رګونو د کټ کيدو نه مخکې.

حل اللغة ① مروة: مروا يو سخت ډول کاڼړي دي.چه دې ته صفوان هم وئيلې شي.( لکه سنګ مرمر) چې دا د چاړې پشان تيره وي.② اوداج: هغه رګونه کوم چې ځټ اړخ ته تلي وي ﴾

تشريح:- په مروه سره څاروې ذبح کيداې شي.ددې واحد مروه ده.دا هم جزئيات دي.څلور وړاندې تيرشوي دي⑤ سنګ مروه چې تيره غاړې والا وي.دا ئې په ښکار اوويشتلو.او دې د ښکار بدن کټ نکړو.او دا ښکار مړ شو.نو داسې به ګڼرلي شي.چه کاڼړي ښکار ټکولي او مړ کړي دي.نو دا به حلال نه وي.⑥ هم دا کاڼړي ئې اوغورزولو.چه په دې سره د ښکار سر اولګيدو.يا دده رګونه کټ شو.اوس به هم ښکار حلال نه وي.ځکه چې دې کې شك پيدا شو.او وجه د شك دا ده.چه رګونه څنګه کټ کاوه سره کټ کيږي.او جلا کيږي.دغه ډول د کاڼړي زخم سره هم جلا کيږي.او دا احتمال هم شته.چه د کاڼړي د زخم په وجه د رګونو کټ کيدو نه مخکې ښکار مړ شوي وي.بهرحال د شك په وجه به خوراك حلال نه وي.

## په همسا يا لرګي ( ډنډې ) سره د مړ شوي ښکار حکم

وَلَوْ رَمَاهُ بِعَصًا أَوْ بِعُودٍ حَتَّى قَتَلَهُ لَا يَحِلُّ او که ښکار ئې په همسا يا لرګي اووهلو.تردې چې دا ئې مړ کړو.نو دا به حلال نه وي ،لِأَنَّهُ يَقْتُلُهُ ثِقَلًا لَا جُرْحًا، اللَّهُمَّ ځکه چې دا (همسا او لرګي) ښکار په بوج سره مړ کوي.په زخم سره نه ( مړکوي) إِلَّا إِذَا كَانَ لَهُ حِدَّةٌ يَبْضَعُ بِضْعًا فَحِينَئِذٍ لَا بَأْسَ بِهِ خو کله چې ددې نرۍ غاړه وي.چه بدن ئې کټ کړو.نو دغه وخت په دې کې هيڅ باك نشته لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ السَّيْفِ وَالرُّمْحِ ځکه چې دا د تورې او نيزې په درجه کې دي.

حل اللغة ① عصا: همسا ② حدة: نرۍ غاړه ③ يبضع: کټ کوي ④ سيف: توره ⑤ الرمح: نيزه﴾

تشريح:- دا هم يوه جزئيه ده⑥ که په ښکار ئې همسا يا ډنډه اوغورزولو.چه په دې سره هغه مړ شو.نو دا حلال نه دې.ځکه چې همسا او ډنډه پرې کول نه کوي.بلکه پخپل بوج سره شله وي. البته که همسا او ډنډه کې داسې تيره غاړه وي.چه دا بدن سيرې کوي.او کټ کوي.نو اوس به دا د تورې او نيزې په درجه کې ايخودې شي.او حيوان (څاروې) به حلال وي.

فائده⑤ ﴿اللَّهُمَّ﴾ دا کلمه د استثناء نه مخکې هغه وخت استعمالولې شي.کله چې مستثنی نادر او ناشنا وي.چه په دې سره د هغې قدرت او نا آشنا کيدو اړخ ته اشاره وي.

## قاعده کليه

وَالْأَصْلُ فِي هَذِهِ الْمَسَائِلِ أَنَّ الْمَوْتَ إِذَا كَانَ مُضَافًا إِلَى الْجُرْحِ بِيَقِينٍ كَانَ الصَّيْدُ حَلَالًا او په دې مسئلو کې



قاعده کليه دا ده.چه مرګ کله يقين سره زخم اړخ ته مضاف وي.نو ښکار به حلال وي ،وَإِذَا كَانَ مُضَافًا إِلَى الثِّقَلِ بِيَقِينٍ كَانَ حَرَامًا او کله چې يقين سره بوج اړخ ته مضاف وي.نو حرام به وي.،وَإِنْ وَقَعَ الشَّكُّ وَلَا يُدْرَى مَاتَ بِالْجُرْحِ أَوْ بِالثِّقَلِ كَانَ حَرَامًا احْتِيَاطًا او که شك شي.او دا معلومه نشي.چه د زخم په وجه مړ شوي دي.يا د بوج په وجه.نو احتياطاً به حرام وي.

تشريح:- دا قاعده کليه ده.چه د زخم نه مړ شوي وي.نو حلال، او د بوج په وجه مړ شوي وي.نو حرام، او که دا معلومه نشوه.نو بيا به هم احتياطاً حرام وي.

## په توره يا چاړه سره د ويشتلي ښکار حکم

وَإِنْ رَمَاهُ بِسَيْفٍ أَوْ بِسِكِّينٍ فَأَصَابَهُ بِحَدِّهِ فَجَرَحَهُ حَلَّ، او که ښکار ئې په توره يا چاړه باندې اوويشتلو.نو دا ښکار ته په تيره اړخ اولګيدو.نو دا ئې زخمي کړو.نو حلال دې وَإِنْ أَصَابَهُ بِقَفَا السِّكِّينِ أَوْ بِمَقْبِضِ السَّيْفِ لَا يَحِلُّ او که دې ته لګيدلې وي.د چاړې د شا د طرفه، يا د تورې په موټی سره، نو حلال نه ،لِأَنَّهُ قَتَلَهُ دَقًّا ،وَالْحَدِيدُ وَغَيْرُهُ فِيهِ سَوَاءٌ ځکه چې دې ( دواړو کې هر يو په دې وخت) ښکار سره ټکره وهلې ده.( يعنی ښکار ئې ټکولې دې).او اوسپنه او غير اوسپنه په دې کې برابر دی.

حل اللغة ① سيف: توره ② سكين:چاړه ③ مقبض: د چړې لاستې ④ حديد: اوسپنه﴾

تشريح:- دا اتمه جزئيه ده.ښکار ئې په توره يا چاړې سره اوويشتلو.نو که په تيره اړخ سره اولګيدو.او حيوان (څاروې) زخمي شو.او مړ شو.بيا خو حلال دې.که د تورې په شا اولګيدو.يا د تورې په موټی اولګيدو.نو حلال نه دې.ځکه چې دې وخت ښکار ددې په بوج سره مړ شوې دې.او دا پرې کول نه دی.بلکه ماتول او ټکول دی. ،،و الحديد و غيره فيه سواء،، او اوسپنه او غير اوسپنه په دې کې برابر دی.يعنی په ښکار کې زخم او پريکول شرط دی.که په اوسپنه وي.اوکه په بل څه وي.که د اوسپنې د تيره غاړې په څه شئ سره ئې اوويشتلو.خو په تيره اړخ سره ئې زخمي نشو.بلکه په لګيدو( وهلو) سره مړ شو.نو حرام دې.لکه څنګه چې دلته کې ذکر دی.نو لنډيز د کلام دا چې مدار په اوسپنه نه دې.بلکه په مقصد دې.اوهغه زخمي کول او پرې کول دی.

## ښکار په غشي سره زخمي شو او بيا مړ شو نو ددې ښکار حکم

وَلَوْ رَمَاهُ فَجَرَحَهُ وَمَاتَ بِالْجُرْحِ، إِنْ كَانَ الْجُرْحُ مُدْمِيًا يَحِلُّ بِالِاتِّفَاقِ او که ښکار ئې په غشي اوويشتلو.نو دا ئې زخمي کړو.او ښکار د زخم په وجه مړ شو.که زخم د وينې وي.نو بالاتفاق حلال دې وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُدْمِيًا فَكَذَلِكَ عِنْدَ بَعْضِ الْمُتَأَخِّرِينَ سَوَاءٌ كَانَتِ الْجِرَاحَةُ صَغِيرَةً أَوْ كَبِيرَةً که د وينې نه وي.نو د بعضو متاخرينو په نيز هم دغه ډول دې.که زخم وړوکې وي.اوکه لوئې وي ،لِأَنَّ الدَّمَ قَدْ يَحْتَبِسُ بِضِيقِ الْمَنْفَذِ أَوْ غِلَظِ الدَّمِ ځکه چې وينه کله کله بنديږي.د منفذ ( د راوتلو د ځائې ) د تنګ کيدلو په وجه ،يا د وينې د ټنګوالی په وجه ،وَعِنْدَ بَعْضِهِمْ يُشْتَرَطُ الْإِدْمَاءُ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَأَفْرَى الْأَوْدَاجَ فَكُلْ (۱) شَرَطَ الْإِنْهَارَ"...او د بعض متاخرينو په نيز وينه کيدل شرط دی.د نبی کريم ﷺ د فرمان په وجه ،، کوم چې وينه اوبهيوی.او رګونه کټ کړي. نو خوره،، د وينې بهيولو شرط ئې لګولې دې.

حل اللغة ① الجراحة: زخم ② يحتبس:بنديږی ③ ضيق: تنګوالې ④ المنفذ: د راوتلو ځائې ⑤ غلط: ټينګ والې﴾

تشريح:- جزئيه⑨ ۞ دا نهمه جزئيه ده.ددې حاصل دا دې.چه ښکار ئې په غشي اوويشتلو.چه په دې سره هغه

---

[1] - تقدم تخريجه فی الذبائح)_

زخمي شو.او مړ شو.نو کتلې به شي.چه د زخم نه وينه بهيدلې ده.اوکه نه؟ نوکه زخم په وينه لړلې وي.نو ښکار بالاتفاق حلال دې.اوکه زخم په وينه لړلې شوې نه وي.نو په دې کي دوې (دوه) ډلې دي.د متاخرينو يوه ډله دې ته حلال وائي.او دويمه ډله دې ته حرام وائي.بيا ړومبۍ ډله وائي.كه زخم وړوكې وي.او كه لوئې وي.په هر صورت كي حلال دې.او دا ډله وائي.چه كله كله د وينې د راوتلو د لارې د تنګوالي يا د وينې د ټينګوالي په وجه وينه بنديږي.د متاخرينو دويمه ډله دې ته حرام وائي.ددوی دليل داحديث دې.چه ،،كوم وينه اوبهيوی. او رګونه كټ كړی.نو هغه خورئ،، نو دلته كي حديث كي صراحت سره د وينې بهيولو شرط دې.

### د بعضو متاخرينو نقطه نظر

وَعِنْدَ بَعْضِهِمْ اِنْ كَانَتْ كَبِيرَةً حَلَّ بِدُونِ الْاِدْمَاءِ او د بعض متاخرينو په نيز كه زخم لوئې وي.نو حلال دې.په وينې سره د لړلو نه بغير ،وان كانت صغيرة لابد من الادماء او كه وړوكې وي. نو وينه بهيول ضروري دي وَلَوْ ذَبَحَ شَاةً وَلَمْ يَسِلْ مِنْهُ الدَّمُ او كه وزه (چيلۍ) ئې ذبح كړله.او ددې نه وينه او نه بهيدله قِيلَ لَا تَحِلُّ نو ونيلی شوی دی.چه حلال نه دې وَقِيلَ تَحِلُّ او ونيلی شوی دی.چه حلال دې وَوَجْهُ الْقَوْلَيْنِ دَخَلَ فِيمَا ذَكَرْنَاهُ او د دواړو قولونو وجه داخل ده.په هغه تقرير كي كوم چې موږ بيان كړې دې وَاِذَا اَصَابَ السَّهْمُ ظِلْفَ الصَّيْدِ اَوْقَرْنَهُ، فَاِنْ اَدْمَاهُ حَلَّ وَاِلَّا فَلَا او كله چې د ښكار نوكانو يا ددې ښكر ته اولګيدو.نو كه دا اندام په وينه لړلې شوې وي.نو ښكار حلال دې.ګنی نه دې وَهٰذَا يُؤَيِّدُ بَعْضَ مَا ذَكَرْنَاهُ او دا د بعضو هغه خبرو تائيد كوی.كوم چې موږ ذكر كړی دی.

**حل اللغة:** ① ظلف: نوك ② سهم: غشی﴾

**تشريح:-** په دې ړومبۍ مسئله كي د بعض متاخرينو رائې دا ده.كه زخم لوئې وي.نو په وينه د لړلو نه بغير حلال دې.اوكه زخم وړوكې وي.نو په وينه لړلې كيدل شرط دی.بهرحال دلته كي د وينې نه وتل د وينې د نه كيدو په وجه دی.نو دا به مضر نه وي.كه يوكس چيلي ذبح كړله.او ددې نه وينه او نه وتله.نو ابو القاسم صفار رحمه الله دې ته حلال نه وائي.او ابوبكر الاسكاف رحمه الله دې ته حلال وائي.او ددې دواړو قولونو وجه وړاندې تيره شوې ده.يعنی په وينه لړلې كيدل او نه كيدل.غشې د ښكار نوكانو يا ښكرو باندې اولګيدو.نو كه نوكانو يا ښكر په وينه لړلې شوی وو.نو ښكار حلال دې.ګنی نه دې.او په دې تقرير سره د ابو القاسم صفار رحمه الله تائيد كيږي.

### په غشی ويشتلو سره د ښكار څه برخه كټ شوه نو ددې ښكار حكم

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَاِذَا رَمٰى صَيْدًا او كله چې ده ښكار په غشی اوويشتلو فَقَطَعَ عُضْوًا مِنْهُ اُكِلَ الصَّيْدُ لِمَا بَيَّنَّاهُ وَلَا يُؤْكَلُ الْعُضْوُ نو په دې سره دده يو اندام كټ شو.نو ښكار به خوړلې شي.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.او اندام به نشي خوړلې.

**تشريح:-** كه ښكار ئې په غشی اوويشتلو.چه په دې سره د ښكار د بدن څه برخه كټ شوه.او پريوتله.نو اوس څه حكم دې؟ نو وې فرمائيل.چه ښكار خو بالاتفاق حلال دې.ځكه چې هركله اندام كټ شو.نو زخم كوم چې د حلت شرط وو.اوموندې شو.نو ښكار حلال شو.اوس پاتې شوه مسئله د هغه ټكړې كومه چې كټ شوې ده.او پريوتلې ده.نو په دې كي اختلاف دې.د حنفيانو مسلك دا دی.چه ددې خوراك حرام دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: اُكِلَا اِنْ مَاتَ الصَّيْدُ مِنْهُ او امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه دواړه به خوړلې شي.كه په دې كټ كاوه سره ښكار مړ شوې وي لِاَنَّهُ مُبَانٌ بِذَكَاةِ الْاِضْطِرَارِ فَيَحِلُّ الْمُبَانُ وَالْمُبَانُ مِنْهُ ځكه چې دا اندام په ذكاة اضطراری سره جدا كړې شوې دې.نو مبان (كوم چې جدا كړې شوې دې) او مبان منه ( د كوم ښكار نه



چې جدا كړې شوې دې) دواړه حلال دی ،كَمَا اِذَا اُبِينَ الرَّأْسُ بِذَكَاةِ الْاِخْتِيَارِ بِخِلَافِ مَا اِذَا لَمْ يَمُتْ ،لكه چې ذكاة اضطراری سره سر جلا كړې شوې وي. په خلاف ددې صورت كله چې ښكار مړ شوې نه وي لِاَنَّهُ مَا اُبِينَ بِالذَّكَاةِ ځكه چې دا اندام د ذكاة په وجه نه دې جداكړې شوې.

**حل اللغة:** ① مبان: جلا شوې ② الذكاة: ذبح﴾

**تشريح:-** اود امام شافعي رحمه الله په مذهب كي تفصيل دې.كه ښكار ددې نه روسته ژوندې وي.او مړ نشي.نو حلال نه دې.او كه مړشي.نو دا اندام حلال دې.لكه څنګه چې ښكار حلال دې.ړومبی ( كټ شوی اندام) په مبان او دوهم ( ښكار) په مبان منه سره تعبير كړې شوې دې.

دليل دا دې كه په ذكاة اختياری كي سر جلا شي.نو د حنفيانو په نيز هم د دواړو خوراك حلال دې.ځكه چې په ذكاة اختياری كي كله داسې كيږي.دغه ډول په ذكاة اضطراری كي هم دغه ډول كيږي.چه يو اندام جلا شي.نو دا به هم حلال وي.خو شرط هم هغه دې.چه ښكار مړ شوې وي.اوكه ښكار مړ شوې نه وي.نو ذكاة نه دې شوې.په دې وجه به اندام هم نشي خوړلې.

① مسئله: د ښكار اندام كټ شو.خو هغه اوس هم په څرمنه كي اينختې دې.جدا شوې نه دې.نو كه هغه داسې وي.چه د هغې د وروستلو او جوړيدو امكان وي.نو اندام به خوړلې شي.ګنی خوړلې به نشي. ﴿سكب الانهر ص ٥١١ ج٢﴾

② مسئله: كه د اندام كټ كيدو نه روسته د ځاروی ژوندې پاتې كيدل ممكن نه وي.نو اندام به هم خوړلې شي.او د سرنه علاوه په پاته اندامونو كي ژوندې پاتې كيدل ممكن دی. ﴿شامی ص ٣٠٥ ج٥﴾

### د احنافو رحمه الله دليل

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زموږ دليل د نبی كريم ﷺ فرمان دې مَا اُبِينَ مِنَ الْحَيِّ فَهُوَ مَيِّتٌ[1] چې كوم اندام د ژوندی نه جلا كړې شوې وي.نو هغه مړې دې ذُكِرَ الْحَيُّ مُطْلَقًا نو نبی كريم ﷺ د مطلق ژوندی ذكر كړې دې فَيَنْصَرِفُ اِلَى الْحَيِّ حَقِيقَةً وَحُكْمًا .نو دا مطلق به منصرف وي.داسې ژوندی اړخ ته كوم چې ژوندې وي.حقيقتا او حكماً وَالْعُضْوُ الْمُبَانُ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ او كوم چې جدا كړې شوې دې.هغه هم په دې صفت باندې دې لِاَنَّ الْمُبَانَ مِنْهُ حَيٌّ حَقِيقَةً لِقِيَامِ الْحَيَاةِ فِيهِ ځكه چې مبان عنه ( دكوم نه چې دا اندام جلا كړې شوې دی) حقيقت كي ژوندې دې.هغې كي د ژوند موجود كيدو په وجه ،وَكَذَا حُكْمًا او هم دغه ډول حكماً ( ژوندې دې) لِاَنَّهُ تُتَوَهَّمُ سَلَامَتُهُ بَعْدَ هٰذِهِ الْجِرَاحَةِ ځكه چې ددې زخم نه روسته د ښكار د سلامتيا وهم شته ،وَلِهٰذَا اعْتَبَرَهُ الشَّرْعُ حَيًّا، حَتّٰى لَوْ وَقَعَ فِي الْمَاءِ وَفِيهِ حَيَاةٌ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ يَحْرُمُ او هم په دې وجه شريعت ددې ژوند اعتبار كړې دې.ترڅو كه دا ښكار اوبو كي مړشي.او په دې كي ددې صفت ژوند وي.نو دا به حرام وي.

**تشريح:-** دا زموږ دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه ﴿المطلق إذا أطلق مراد به الفرد الكامل﴾ او د ژوندی فرد كامل دا دې.چه په ده كي حقيقتاً او حكماً ژوند وي.د كوم ښكار نه چې اندام جلا كړې شوې دې.نو په وخت د جلا كاوه په دې كي حقيقی ژوند موجود دې.دا حقيقی ژوند دې.او ددې اندام د جلا كيدو نه روسته كه دا ژوندې پاتې كيداې شي.نو دا دده حكمی ژوند دې.هركله چې دا تقرير په ذهن كي كيناستو.نو اوس په دليل پوهه شئ.حديث كي راغلی دی. ﴿ما أبين من الحيّ فهو ميت﴾ كوم اندام چې د ژوندی نه جلا كړې شوې وي.او كټ كړې شوې وي.هغه مړ دې.اومړ حرام وي.نو نبی كريم ﷺ دلته كي مطلق حيّ ( ژوندې) ارشاد فرمائيلې دې.نو ددې څخه به فرد كامل مراد وي.او فرد كامل دا دې.كوم چې موږ ذكركړې دې.چه په ښكار كي فی الحال ژوند شته.او روستو ژوندې پاتې كيداې شي.ړومبې ژوند حقيقی او دوهم حكمی دې.نو هركله چې د

[1] - من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه ابن ماجه في سننه في الصيدباب ٨ رقم (٣٢١٦)_

ژوندی د بدن ټکړه حرام ده.نو دا اندام به هم حرام وی.ځکه چې مبان منه اوس هم ژوندې دې.او روستو هم دده د ژوند احتمال شته.اوهم دا وجه ده.که ددې احتمال وی.او په داسې حالت کې اوبو کې پریوځی.نو دا به حرام وی.او داسې به ونیلې شی.چه اوبو دا هلاك کړې دې.نو معلومه شوه.چه شریعت د داسې ژوند اعتبار کړې دې.او اوس ئې دا ژوندې شمار کړې دې.او د ژوندی اندام په نص د حدیث سره حرام دې.

## د امام شافعي رحمه الله دليل او د هغې جواب

وَقَوْلُهُ أُبِينَ بِالذَّكَاةِ او د امام شافعی رحمه الله قول چې دا په ذکاة سره جدا کړې شوې دې قُلْنَا حَالَ وُقُوعِهِ لَمْ يَقَعْ ذَكَاةً لِبَقَاءِ الرُّوحِ فِي الْبَاقِي نو موږ خواب ورکوو.چه ددې د واقع کیدو په وخت دا ذکاة واقع نشو.په پاته ښکار کې د روح پاته پاتې کیدو په وجه وَعِنْدَ زَوَالِهِ لَا يَظْهَرُ فِي الْمُبَانِ لِعَدَمِ الْحَيَاةِ فِيهِ او د روح د زوال په وخت به ذکاة په مبان کې نه ښکاره کیږی.هغې کې د ژوند نه کیدو په وجه وَلَا تَبَعِيَّةَ لِزَوَالِهَا بِالِانْفِصَالِ او تابع کول نشی کیدې.د تبعیت د زائل کیدو په وجه.په جلا کیدو سره فَصَارَ هَذَا الْحَرْفُ هُوَ الْأَصْلُ، لِأَنَّ الْمُبَانَ مِنَ الْحَيِّ حَقِيقَةً وَحُكْمًا لَا يَحِلُّ نو هم دا نقطه قاعده کلیه جوړه شوه.چه کومه ټکړه جلا کړې شوی وی.د داسې ژوندی نه،کوم چې حقیقتاً او حکماً وی.نو دا به حلال نه وی ،،وَالْمُبَانُ مِنَ الْحَيِّ صُورَةً لَا حُكْمًا يَحِلُّ او که جلا کړې شوی وی.د داسې ژوندی نه، کوم چې صورتاً ژوندې وی.حکماً نه وی.نو هغه حلال دې.

تشریح:- امام شافعی رحمه الله پخپل استدلال کې فرمائیلی وو. «لأنه مبان بذكاة الإضطرار» چې دا اندام د ذکاة اضطراری په وجه جلا شوې دې.نو حلال کیدل پکار دی.هم ددوی دا استدلال ئې مخفف کړې دې.او وئیلی ئې دی.چه ددوی قول ،، أبين بالذكاة،،

بهرحال د امام شافعی رحمه الله استدلال وو.چه دا د ذکاة اثر دې.نو حضرت مرغینانی رحمه الله خواب ورکړو.چه حضرت امام شافعی رحمه الله هرکله چې اوس هم په ښکار کې روح پاته دې.او دا ژوندې دې.نو اوس تاسو دې ته ذکاة څنګه ونیلې شئ.ځکه چې هرکله دا اندام جلا شوې دې.نو ښکار ژوندې دې.او په ده کې روح پاته دې؟

خواب: هرکله چې دا اندام جلا کړې شو.او نه په دې کې ژوند شته.او نه روح شته.نو د ښکار روح وتلو په وجه به ذکاة په ښکار کې موندلې کیږی.په اندام کې به نه موندلې کیږی.ځکه چې د ذکاة حقیقت د زخم نه د روح وتل دی.او دلته په دې اندام کې د سره روح نشته.

اعتراض: امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه آو خبره ستاسو صحیح ده.خو ښکار متبوع دې.او اندام ددې تابع دې.او د متبوع حکم د تابع لپاره ثابتیږی.نو د متبوع ذکاة به د تابع یعنی د اندام هم ذکاة وی؟

خواب: حضرت دمتبوع او تابع خبره خو به هله صحیح وه.کله چې اندام جلا نه وو.اوکله چې دا جلا شو.نو د سره تبعیت زائل شو.نو ددې تقریر نه یو جنرل پوائنټ ( یو خاص خبره) راووتلو.او هم دا ددې باب قاعده کلیه ده.چه کوم اندام دداسې ښکار نه جلا شوې وی.چه هغه حقیقتاً او حکماً ژوندې وی.نو هغه به حرام وی...کمامر..اوکه د داسې ښکار نه جلا شوې وی.چه هغه حقیقتاً ژوندې وی.اوحکماً ژوندې نه وی.بلکه مړ وی.نو هغه به حلال وی.اوس ضروری ده.چه ددې مثال اوښودلې شی.نو مرغینانی رحمه الله ددې مثال پیش کوی.

## د ذکر شوې مسئلې مثال

وَذَلِكَ بِأَنْ يَبْقَى فِي الْمُبَانِ مِنْهُ حَيَاةٌ بِقَدْرِ مَا يَكُونُ فِي الْمَذْبُوحِ او دا په دې طریقه چې په مبان ( کټ کړې شوی اندام) کې دومره ژوند پاته پاتې وی.څومره چې مذبوح کې پاتې وی فَإِنَّهُ حَيَاةٌ صُورَةً لَا حُكْمًا نو دا صورتاً ژوند دې.حکماً ژوند نه دې وَلِهَذَا لَوْ وَقَعَ فِي الْمَاءِ وَبِهِ هَذَا الْقَدْرُ مِنَ الْحَيَاةِ أَوْ تَرَدَّى مِنْ جَبَلٍ أَوْ سَطْحٍ لَا يَحْرُمُ او هم په دې وجه که دا په اوبو کې پریوځی. او په دې کې دومره قدرې ژوند وی.یا د غر یا چت نه راوزغړی.نو دا به حرام نه وی،



فَتُخَرَّجُ عَلَيْهِ الْمَسَائِلُ، فَنَقُولُ نو هم په دې کلی قانون باندې د مسئلو تخریج کیږی.نو موږ وایو.

حل اللغة: ① جبل: غر ② سطح: چت

تشریح:- دا په تیرشوی بیان کې د فرمائلیی شوی جنرل پوائنټ ( خاص قاعدې) مثال دې.چه هغه ښکار د کوم چې اندام کټ کړې شوې دې.که هغې کې دومره ژوند وی.څومره چې په مذبوح کې وی.نو دا صرف صورتاً ژوند دې.حکماً نه دې.نو که دا په اوبو کې پریوځی.نو حرام به نه وی.ځکه چې مړکیدل د اوبو په وجه نه دې.بلکه د زخم په وجه دې.دغه ډول که دا په دې حال کې په غر وغیره کې راپریوځی.او راوزغړی.نو بیا به هم حرام نه وی.ځکه چې ددې مړکیدل د زخم په وجه دی.د رازغړیدو په وجه نه دی. اوس مرغینانی رحمه الله فرمانی.دا داسې قاعده کلیه ده.چه په دې باندې ډیرې مسئلې متفرع کیږی.اوس به بعض متفرع جزئیات بیانولې شی.

## په ذکر شوې قاعده متفرع جزئيات

إِذَا قَطَعَ يَدًا أَوْ رِجْلًا أَوْ فَخِذًا أَوْ ثُلُثَهُ مِمَّا يَلِي الْقَوَائِمَ کله ئې چې کټ کړو لاس، یا خپه، یا ورون ، یا د ښکار ثلث کومه چې لاسونو پښو سره مولښتی ده أَوْ أَقَلَّ مِنْ نِصْفِ الرَّأْسِ يَحْرُمُ الْمُبَانُ وَيَحِلُّ الْمُبَانُ مِنْهُ یا دنیم سر نه کم، نو مبان ( کټ کړې شوې اندام) حرام دې.مبان منه حلال دې لِأَنَّهُ يُتَوَهَّمُ بَقَاءُ الْحَيَاةِ فِي الْبَاقِي ځکه چې په پاته کې د ژوند پاته پاتې کیدو توهم دې ،وَلَوْ قَدَّهُ بِنِصْفَيْنِ أَوْ قَطَعَهُ أَثْلَاثًا وَالْأَكْثَرُ مِمَّا يَلِي الْعَجُزَ اوکه دا ئې دوې (دوه) ټکرې کړې.یا ئې درې ټکرې کړې.او کومه برخه چې لاندې تنې سره متصل ده.که هغه ئې کټ کړله أَوْ قَطَعَ نِصْفَ رَأْسِهِ أَوْ أَكْثَرَ مِنْهُ یا ئې ددې نیم سر، یا ددې نه زیاته کټ کړله.نو مبان او مبان منه دواړه حلال دی يَحِلُّ الْمُبَانُ وَالْمُبَانُ مِنْهُ، لِأَنَّ الْمُبَانَ مِنْهُ حَيٌّ صُورَةً لَا حُكْمًا ځکه چې مبان منه نه صورتاً ژوندې دې.او نه حکماً ژوندې دې ل، إِذْ لَا يُتَوَهَّمُ بَقَاءُ الْحَيَاةِ بَعْدَ هَذَا الْجُرْحِ ځکه چې ددې زخم نه روسته د ژوند پاته پاتې کیدو توهم نشته.

تشریح:- دا په ذکر شوې قاعدې متفرع جزئیات دی.په مخکنی ټولو مثالونو کې د ښکار د ژوندی پاتې کیدو توهم وو.په دې وجه ښکار حلال او اندام حرام اوګرخولې شو.او په نورو ټولو مثالونو کې ددې توهم نشته.چه دا ژوندې پاتې شی.نو دلته کې ئې دواړه حلال اوګرځول.پاته تفصیل د ژباړې نه ښکاره دې.

## د کب د کټ شوي جزء حکم

وَالْحَدِيثُ وَإِنْ تَنَاوَلَ السَّمَكَ وَمَا أُبِينَ مِنْهُ فَهُوَ مَيِّتٌ او مذکوره حدیث اګرچه کب ته ګډ دې.او کوم چې د کب نه جلا کړې شی.نو هغه مردار ( مړ) دې ،إِلَّا أَنَّ مَيْتَتَهُ حَلَالٌ بِالْحَدِيثِ الَّذِي رَوَيْنَاهُ خو د کب مردار حلال دې.د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړې دې.

حل اللغة: ① تناول: شاملیږی ② السمک: کب

تشریح:- په حدیث کې چې دا راغلی دی.چه «ما أبين من الحي فهو ميت» د کب لپاره هم عام دې.نو دکب نه چې کوم اندام جلا کړې شی.هغه به هم مردار وی.خو څه اوکړې شی.چه هغه د مردار کیدو باوجود هم حلال وی.ځکه چې وړاندې حدیث تیر شوې دې.چه ددې مردار حلال دې.په دې وجه به دا حکم دلته کې نه جاری کیږی.

## په ویښتلو سره د وزه (چیلۍ) نه سر جدا شونو ددې حکم

وَلَوْ ضَرَبَ عُنُقَ شَاةٍ فَأَبَانَ رَأْسَهَا يَحِلُّ لِقَطْعِ الْأَوْدَاجِ کړو.نو حلال ده.د رګونو د کټ کیدو په وجه وَيُكْرَهُ هَذَا الصَّنِيعُ لِإِبْلَاغِهِ النُّخَاعَ او دا طریقه مکروه ده.ددې د نخاع ( حرام مغز) پورې د رسیدو په وجه وَإِنْ ضَرَبَهُ مِنْ قِبَلِ الْقَفَا، إِنْ مَاتَ قَبْلَ قَطْعِ الْأَوْدَاجِ لَا يَحِلُّ او که دا ئې د سټ د اړخه اووهله.نوکه دا د رګونو د کټ کیدو نه مخکې مړه شی.نو حلال نه ده ،،وَإِنْ لَمْ يَمُتْ حَتَّى قَطَعَ الْأَوْدَاجَ حَلَّ او که مړه نشی.تردې چې رګونه ئې کټ کړې شی.نو حلال ده.

**حل اللغة:** ① عنق: څټ ② اوداج: رګونه ﴾

**تشريح:-** که د وزه (چيلۍ) مرۍ ئې اووهله.او سر ئې جلا کړو.نو دا طريقه مکروه ده.او وزه (چيلۍ) حلال ده.د حلت وجه د ذبح رګونه کټ کيدل دی.او د کراهت وجه نخاع ( حرام مغز) پورې رسول دی.چه ددې بيان په کتاب النخاع کي تير شوې دې.اوکه د شا نه ئې سټ اووهلو.نو که د رګونو کټ کيدو نه مخکي دا مړه شی.نو حلال نه ده.اوکه د رګونو کټ کيدو پورې دا ژوندئ پاتې شی.نو حلال ده.

## په وهلو سره د ښکار څه برخه کټ شوهغو جدا نه دهنو ددې ښکار حکم

وَلَوْضَرَبَ صَيْدًا فَقَطَعَ يَدًا أَوْرِجْلًا وَلَمْ يُبِنْهُ اوکه ده ښکار اووهلو.نو لاس يا خپه ئې کټ کړله.او دا ئې جلا نکړله إِنْ كَانَ يُتَوَهَّمُ الْإِلْتِئَامُ وَالْإِنْدِمَالُ نو که توهم د جوړيدو او صحيح کيدو وی فَإِذَامَاتَ حَلَّ أَكْلُهُ نو کله چې دا ښکار مړ شی.نو ددې خوراك حلال دې لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ سَائِرِ أَجْزَائِهِ خکه چې دا دده د ټولو اجزاء په درجه کي دې وَإِنْ كَانَ لَايُتَوَهَّمُ بِأَنْ بَقِيَ مُتَعَلِّقًا بِجِلْدِهِ اوکه ده ته توهم نه وی.په دې طريقه چې دا رازوړند پاته پاتې شو.ددې خرمنې پورې، حَلَّ مَاسِوَاهُ لِوُجُوْدِ الْإِبَانَةِ مَعْنًى وَالْعِبْرَةُ لِلْمَعَانِي نو ددې اندام نه علاوه حلال دې.معنیً د جدايئ موجود کيدو په وجه.او اعتبار د معانيو کيږي.

**حل اللغة:** ① الالتئام: جوړيدل ② الاندمال: صحيح کيدل ③ جلد: څرمن ﴾

**تشريح:-** د ښکار د بدن کومه برخه چې جدا شوې نه ده.اوکټ شوه.نو که ددې د جوړيدو توهم وی.نو دا د پاته نورو اجزاء په حکم کي دې.د ښکار د مرګ نه روسته دا اندام او ښکار حلال دې.اوکه دا هم دغه ډول په خرمن کي زوړند پاتې شو.او ددې د صحيح کيدو توهم نه وی.نو دا به جلا شمارلې شی.او ددې خوراك به حلال نه وی.البته ښکار به حلال وی.

که څوك دا اعتراض اوکړی چې هرکله چې اندام اوس هم متصل (مولښتی) دې.نو بيا تاسو منفصل (جدا) ولې اومنلو؟ نوددې خواب دادې چې دا معنیً منفصل دې...کماهو ظاهر.. او اعتبار د معانيو کيږي.

## د مجوسی، مرتد، او بت پرست د ښکار حکم

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَلَايُؤْكَلُ صَيْدُ الْمَجُوْسِيِّ وَالْمُرْتَدِّ وَالْوَثَنِيِّ و د مجوسی او بت پرست ښکار به نشی خوړلې لِأَنَّهُمْ لَيْسُوا مِنْ أَهْلِ الذَّكَاةِ عَلَى مَابَيَّنَّاهُ فِي الذَّبَائِحِ خکه چې دوی دواړه د ذکاة اهل نه دی.د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ په کتاب الذبائح کي بيان کړې دې ؕ لَابُدَّ مِنْهَا فِي إِبَاحَةِ الصَّيْدِ بِخِلَافِ النَّصْرَانِيِّ وَالْيَهُوْدِيِّ او خکه چې د ښکار د اباحت لپاره ذکاة کيدل ضروری دی.په خلاف د نصرانی او يهودی ؤ لِأَنَّهُمَا مِنْ أَهْلِ الذَّكَاةِ اِخْتِيَارًا خکه چې دوی دواړه د ذکاة اختياری اهل دی فَكَذَا اِضْطِرَارًا نو هم دغه ډول به د ذکاة اضطراری (اهل هم وی).

**تشريح:-** په ښکار کي ذکاة اضطراری داسې دې.لکه څنګه چې په غيرښکار کي ذکاة اختياری، نو کوم کس چې د ذکاة اختياری اهل نه وی.هغه به د ښکار کاوه هم اهل نه وی.او کوم کس چې د ذکاة اختياری اهل وی.نو هغه به د ذکاة اضطراری او ښکار کاوه اهل هم وی.ددې تفصيل نه معلومه شوه.چه آتش پرست او بت پرست د ذبح اهل نه دی.نو دوی به د ذکاة اضطراری اهل هم نه وی.لکه څنګه چې د دوی ذبيحه حرام وی.د هغوی ويشتلې شوې ښکار به هم حرام وی.او د نصرانی او يهودی ذبيحه حلال ده.ددوی ويشتلې شوې ښکار به هم حلال وی.

## ښکار کښې د بچ کيدو قوت نشته چې دوهم کس په غشی اوويشتلو نو ددې د ملکيت مسئله

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَمَنْ رَمٰى صَيْدًا و چا چې ښکار په غشی اوويشتلو فَأَصَابَهُ وَلَمْ يُثْخِنْهُ وَلَمْ يُخْرِجْهُ عَنْ حَيِّزِ الْإِمْتِنَاعِ و هغه په دې اولګيدو.او هغه ئې سخت زخمی نکړو.او هغه ئې د د خان بچ کاوه



د قوت نه خارج نکړو فَرَمَاهُ آخَرُ فَقَتَلَهُ نو دوهم سړی دا په غشی اوويشتلو.نو دا ئې مړ کړو فَهُوَ لِلثَّانِيْ وَيُؤْكَلُ نو ښکار به د دوهم کس وی.او خوړلې به شی لِأَنَّهُ هُوَ الْآخِذُ وَقَدْ قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الصَّيْدُ لِمَنْ أَخَذَهُ(1) خکه چې دوهم ددې نيونکې دې.او نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی.چه ښکار د هغه چا لپاره وی.څوك چا دا اونيسی.

**تشريح:-** يو سړی ښکار په غشی اوويشتلو.او هغه اولګيدو.خو په وحشی څناور کي چې د خپل خان بچ کاوه کوم قوت وی.هغه په ده کي موجود دې.چه هغه خپل خان بچ کولې شی.چه بل کس دا (ښکار) په غشی اوويشتلو. او دا ئې هلاك کړو.اوس دلته کي دوې (دوه) سوالونه جوړ شو.① دا حلال دې اوکه نه؟ ② ددې مالك به څوك وی.نو څواب ئې ورکړو.چه ښکار حلال دې.خکه چې دا اوس د ښکار کيدو نه خارج شوی نه وو.چه ددې نه وړاندې دوهم کس دا په غشی اوويشتلو.نو غشی باندې ښکار اولګيدو.چه دلته کي ذکاة اضطراری کافی کيږي.او ددې مالك دوهم کس دې.خکه چې نيونکې او په دې باندې قبضه کونکې دوهم سړې دې.او په حديث کي دی.چه ښکار د هغه کس وی.څوك چې دا اونسی.او نيونکې دوهم کس دې.ذکر شوې حديث غريب دې.چه ددې هيڅ اصل نشته.

## د ړومبی غشی نه د بچ کيدو احتمال نه روسته د بل په غشی سره مړ کيدل او ددې حکم

وَإِنْ كَانَ الْأَوَّلُ أَثْخَنَهُ او که ړومبی دا سخت زخمی کړو فَرَمَاهُ الثَّانِيْ فَقَتَلَهُ نو دوهم دا په غشی اوويشتلو.نو دا ئې مړ کړو فَهُوَ لِلْأَوَّلِ وَلَمْ يُؤْكَلْ لِاحْتِمَالِ الْمَوْتِ بِالثَّانِيْ نو ښکار د ړومبی دې.او خوړلې به نشی.په دوهم غشی سره د مرګ د احتمال په وجه. وَهٰذَا لَيْسَ بِذَكَاةٍ لِلْقُدْرَةِ عَلٰى ذَكَاةِ الْإِخْتِيَارِ بِخِلَافِ الْوَجْهِ الْأَوَّلِ او دا ذکاة نه دې.په ذکاة اختياری باندې د قدرت په وجه.په خلاف د ړومبی صورت وَهٰذَا إِذَا كَانَ الرَّمْيُ الْأَوَّلُ بِحَالٍ يَنْجُوْ مِنْهُ الصَّيْدُ او دا هغه وخت دې.کله چې ړومبې غشې ويشتل په داسې حالت کي وی.چه ددې نه ښکار بچ کيدای شی" لِأَنَّهُ حِيْنَئِذٍ يَكُوْنُ الْمَوْتُ مُضَافًا إِلَى الرَّمْيِ الثَّانِيْ خکه چې دې وخت به مرګ د دوهم غشی غورزولو اړخ ته منسوب وی.

**حل اللغة:** ① الثخن: سخت زخم ② الرمی: ويشتل﴾

**تشريح:-** که ړومبی غشی دا سخت زخمی کړې وی.چه په دې سره ئې د خان بچکيدو نه اوښکلې وی.بيا دوهم کس غشې اوويشتلو.او دا ئې هلاك کړو.نو اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائيل.چه دلته کي درې حکمونه دی① ښکار د ړومبی کس ملکيت اوګرځولې شی.② دا ښکار به نشی خوړلې.③ دوهم به ددې د قيمت ضامن وی.( ددې تفصيل په روسته مسئله کي راروان دې) د ړومبی سړی ملکيت به په دې وجه وی.چه هغه دا د بچکيدو ( ژوند) نه اوښکلې دې.او خوړلې به څکه نشی.چه دې کي احتمال دې.چه په دوهم غشی سره مړ شوې وی.او په دوهم غشی سره مرګ ذکاة نه دې.څکه چې ړومبی غشی سره هرکله ښکار د صيديت (ښکار کيدو) نه خارج شو.نو ددې ذبح کول لازم شو.او په ذبح باندې قدرت موجود دې.چه دوهم په دې حالت کي غشې اوويشتلو.چه اوس دا ښکار نه دې.نو حرام شو.په ړومبی صورت کي دا د ښکار کيدو نه خارج شوې نه وو.په دې وجه دا دوهم غشې ذکاة اضطراری وو.دا په دواړو مسئلو کي وجه د توپير ده.خو د خوراك حرمت هغه وخت دې.کله چې ړومبې غشې په داسې طريقه لګيدلې وی.چه ښکار بچ کيدای شی.او ژوندې پاتې کيدای شی.نو دغه وخت به ددې مرګ دوهم غشی اړخ ته منسوب کولې شی.

وَأَمَّا إِذَا كَانَ الْأَوَّلُ بِحَالٍ لَايَسْلَمُ مِنْهُ الصَّيْدُ اوکه ړومبې په داسې حالت کي وی.چه ددې نه ښکار صحيح سلامت

---

(1) - اغربه الزيلعی رحمه الله ثم نقل عن سعيدبن زيد قال قال رسول الله ﷺ من احی ارضافهی له وعزاه الی کتاب الذکرة لابی عبدالله محمد بن حمدون (نصب : ۱۵ ۳۹) ۱۲

نشي پاتې كيداې بِأَنْ لَا يَبْقَى فِيهِ مِنَ الْحَيَاةِ إِلَّا بِقَدْرِ مَا يَبْقَى فِي الْمَذْبُوحِ، كَمَا إِذَا أَبَانَ رَأْسَهُ يَحِلُّ په دې طريقه چې په دې كي دومره ژوند پاته وي.څومره چې مذبوح كي پاته وي.لكه ( مثلاً) ددې سر ئې جلا كړې وي.نو حلال دي لِأَنَّ الْمَوْتَ لَا يُضَافُ إِلَى الرَّمْيِ الثَّانِي لِأَنَّ وُجُودَهُ وَعَدَمَهُ بِمَنْزِلَةٍ خكه چې مرګ به دوهم غشي ارخ ته نه منسوب كيږي.خكه چې د دوهم وجود او عدم په يو درجه كي دې.

**حل اللغة:** ① **يعيش:** ژوند تيروي﴾

**تشريح:-** اوكه ړومبې غشي داسې اولګيدو.چه ښكار بچ كيداې نشي.او په دې كي صرف دومره ژوند پاته پاتې وي.لكه څومره چې مذبوح كي وي.مثلاً ړومبی غشی ددې سر جلا كړې وي.او هم دغه وخت دوهم كس غشې ويشتلې وي.نو اوس دا حلال دې.خكه چې دلته كي مرګ دوهم غشی ارخ ته منسوب نه دې.بلكه دوهم غشې خو دلته كي د عدم په درجه كي دې.يعني ددې وجود او عدم دواړه برابر دی.

### د ړومبی غشی نه د نه بچ كيدو احتمال نه روسته په دوهم غشی سره مړ كيدل او ددې حكم

وَإِنْ كَانَ الرَّمْيُ الْأَوَّلُ بِحَالٍ لَا يَعِيشُ مِنْهُ الصَّيْدُ إِلَّا أَنَّهُ يَبْقَى فِيهِ مِنَ الْحَيَاةِ أَكْثَرُ مِمَّا يَكُونُ بَعْدَ الذَّبْحِ كه ړومبې غشې ويشتل په داسې حالت كې وي.چه د هغې په وجه ښكار ژوندې نشی پاتې كيدې.خو په دې كي د مذبوح د ژوند نه زيات پاته دې بِأَنْ كَانَ يَعِيشُ يَوْمًا أَوْ دُونَهُ په دې طريقه چې هغه يوه ورځ يا دوې (دوه) ورځې ژوندې پاتې كيداې شی فَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ لَا يَحْرُمُ بِالرَّمْيِ الثَّانِي نو اوس د امام ابويوسف رحمه الله په قول به د دوهم غشی ويشتلو په وجه دا حرام نه وي لِأَنَّ هَذَا الْقَدْرَ مِنَ الْحَيَاةِ لَا عِبْرَةَ بِهَا خكه چې د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د ژوند د مقدار هيڅ اعتبار نشته عِنْدَهُ وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَحْرُمُ او د امام محمد رحمه الله په نيز به حرام وي لِأَنَّ هَذَا الْقَدْرَ مِنَ الْحَيَاةِ مُعْتَبَرٌ عِنْدَهُ عَلَى مَا عُرِفَ مِنْ مَذْهَبِهِ خكه چې د ژوند دومره مقدار د امام محمد رحمه الله په نيز معتبر دې.لكه څنګه چې دا د دوی مشهور مذهب دې فَصَارَ الْجَوَابُ فِيهِ وَالْجَوَابُ فِيمَا إِذَا كَانَ الْأَوَّلُ بِحَالٍ لَا يَسْلَمُ مِنْهُ الصَّيْدُ سَوَاءً فَلَا يَحِلُّ نو وي به ( برابر) خواب په دې كي او خواب په هغه صورت كي كله چې ړومبې غشې په داسې حالت كي وي.چه ددې نه ښكار بچ كيداې شي.برابر،او ښكار به حلال نه وي.

**حل اللغة:** ① **المثخن:** وينه بيوونكې زخم ② **منقوص:** صيغه داسم مفعول ناقص شوې ③ **اتلاف:** هلاكول﴾

**تشريح:-** كه د ړومبی غشی نه نه روسته د ښكار حالت داسې وي.چه دا بچ كيداې شي.خو په دې كي د مذبوح د ژوند نه زيات ژوند دې.يعني يوه يا دوې (دوه) ورځې ژوندې پاتې كيداې شي.نو امام ابويوسف رحمه الله د دومره اندازه ژوند اعتبار نه كوي.او دوهم غشې به لغو ګرځولې شي.او ښكار به حلال وي.او دوهم غشې به دا نه حراموي.خو وړاندې د امام محمد رحمه الله مذهب تير شوې دې.چه ددوی په نيز د دومره مقدار ژوند هم معتبر دې.نو ددوی په نيز به ښكار حرام وي.نو د امام محمد رحمه الله په نيز په دې مسئله كي او په هغه مسئله كي چرته چې دا وهم وي.چه ښكار بچ كيداې شي.او بل څوك غشې اولی او دا هلاك كړي.يو حكم دې.يعني ددوی په نيز دې دواړومسئلو كي يوځواب دې.چه ښكار حرام دې.

### د ښكار بچ كيدو احتمال كښې د دوهم كس د ضامن كيدو حكم

قَالَ امام ابو الحسين قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَالثَّانِي ضَامِنٌ لِقِيمَتِهِ لِلْأَوَّلِ غَيْرَ مَا نَقَصَتْهُ جِرَاحَتُهُ او دوهم ضامن دې.د ښكار د قيمت د اول دپاره، علاوه ددې نه كوم چې ښكار ته نقصان رسيدلې دې،د ړومبی زخم لِأَنَّهُ بِالرَّمْيِ أَتْلَفَ صَيْدًا مَمْلُوكًا لَهُ خكه چې دوهم په غشی ويشتلو سره د ړومبی مملوك ښكار ضائع كړې دې لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِالرَّمْيِ الْمُثْخِنِ وَهُوَ مَنْقُوصٌ بِجِرَاحَتِهِ خكه چې ړومبې ددې مالك شو.د وينې بهيونكی ويشتلو سره.او ښكار ناقص شوې دې.د ړومبی د زخم په وجه وَقِيمَةُ الْمُتْلَفِ تُعْتَبَرُ يَوْمَ الْإِتْلَافِ او د هلاك شوی قيمت به د هلاكاوه د ورځې معتبر وي.



**تشريح:-** دا د ذكر شوی صورت دريم حكم دې.چه دوهم كس چا چې ښكار په غشی ويشتلې دې.دا حرام كړې دې.هغه به د ړومبی لپاره د ښكار د قيمت ضامن وي.خكه چې ښكار د ړومبی مملوك شوې وو.كله چې ده داسې غشې ويشتلې وو.چه هغه د بچكيدو د امكان نه خارج شو.خو په دوهم كس به د ښكار پوره قيمت واجب نه وي.بلكه د ړومبی زخم لګيدو په وجه چې كوم ددې قيمت كم شوې دې.هغه نقصان به اوښكلې شی.او پاته قيمت به واجب وي.مثلاً د زخم لګيدو نه مخكې ددې قيمت پنځه روپۍ وو.او د زخمی كيدو په وجه ددې څلور روپۍ پاتې شو.نو هم دا څلور روپۍ به واجب وي.بيا دا سوال پاته پاتې شو.چه د هلاكاوه په ورځ د ښكار قيمت پنځه روپۍ وو.او د اداكاوه په ورځ شپږ روپۍ دې.نو د كوم قيمت اعتبار به كولې شی؟ نو وې فرمائيل.چه د هلاكاوه د ورځې د قيمت اعتبار به كولې شی.

### د ښكار د نه بچ كيدو احتمال كښې د دوهم كس د ضامن كيدو حكم

قَالَ ﷺ حضرت مرغينانی رحمه الله اوفرمائيل تَأْوِيلُهُ إِذَا عَلِمَ أَنَّ الْقَتْلَ حَصَلَ بِالثَّانِي ددې تاويل دا دې.چه كله معلومه شی.چه قتل په دوهم غشی سره حاصل شوې دې دې بِأَنْ كَانَ الْأَوَّلُ بِحَالٍ يَجُوزُ أَنْ يَسْلَمَ الصَّيْدُ مِنْهُ په دې طريقه چې ړومبې غشې په دې حال كي وي.چه ددې نه دښكار بچ كيدل ممكن وي وَالثَّانِي بِحَالٍ لَا يَسْلَمُ الصَّيْدُ مِنْهُ لِيَكُونَ الْقَتْلُ كُلُّهُ مُضَافًا إِلَى الثَّانِي او دوهم غشې په دې حال كي وي.چه ددې نه ښكار نشی بچ كيدې.چه قتل پوره په پوره دوهم ارخ ته منسوب وي وَقَدْ قَتَلَ حَيَوَانًا مَمْلُوكًا لِلْأَوَّلِ مَنْقُوصًا بِالْجِرَاحَةِ حالانكه دوهم كس داسې څناور قتل كړې دې.كوم چې د مخكنی مملوك دې.كوم چې د زخم په وجه ناقص شوې فَلَا يَضْمَنُهُ كَمَلًا كَمَا إِذَا قَتَلَ عَبْدًا مَرِيضًا نو هغه به د پوره ښكار ضامن نه وي.لكه كله ئې چې قتل كړې وي.مريض غلام.

**تشريح:-** مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه كوم مطلق حكم ذكر شوې دې.دا هغه وخت دې.چه دا معلومه شی.چه ښكار په دوهم غشی سره لګيدلې دې.ګنی د ړومبی غشی په زخم سره ددې د ژوندی پاتې كيدو امكان وو.نو اوس به په دوهم باندې ضمان واجب وي.خو پوره ضمان به واجب نه وي.بلكه د ړومبی زخم د نقصان په اندازه به كمولې شی.او د پاته قيمت ضمان به واجب وي.لكه كه يوكس د بل كس مريض غلام قتل كړو.نو د مرض د حالت د قيمت ضمان به واجب وي.او لكه كه د يوكس زخمی وزه (چيلۍ) ئې مړه كړله.نو د صحت مندې وزه (چيلۍ) د ضمان به واجب وي.بيا دا ضمان هغه وخت دې.كله چې دا خبره معلومه شی.چه ړومبې زخم قتلونكې نه وي.اوس چونكه دوهم زخم د حرمت سبب جوړ شوې دې.نو ضمان به واجب وي. اوكه د ړومبی زخم نه روسته د ژوند احتمال نه وي.نو اوس ښكار حلال دې.نو په دوهم به ضمان هم واجب نه وي.خكه چې دې صورت كي د ړومبی كس هيڅ نقصان نه دې شوې.او دا واړه تفصيل هغه وخت دې.چه د ړومبی غشی قاتل نه كيدل او د دوهم قاتل كيدل معلوم شی.او كه د دواړو په قتل كي دخل وي.نو ددې حكم روستو راروان دې.

### كه دواړو زخمونو سره د ښكار مړ كيدل يا بچ كيدل معلوم نه وي؟

إِنْ عَلِمَ أَنَّ الْمَوْتَ يَحْصُلُ مِنَ الْجِرَاحَتَيْنِ اوكه دا خبره معلومه شی.چه په دواړو زخمونو سره مرګ حاصل شوې دې أَوْ لَا يَدْرِي يا دا معلومه نشی قَالَ فِي الزِّيَادَاتِ: يَضْمَنُ الثَّانِي مَا نَقَصَتْهُ جِرَاحَتُهُ ثُمَّ يَضْمَنُهُ نِصْفَ قِيمَتِهِ نو په زيادات كي فرمائيلی دی.چه دوهم به ددې ضامن وي.كوم چې دده زخم نقصان رسولې دې.بيا به ددې د قيمت ضامن وي.

**تشريح:-** اوكه صورت حال دا وي.چه په دواړو زخمونو سره د ښكار مړينه معلوم وي.يا دا معلومه نشی.چه په كوم زخم سره مړ شوې دې.نو امام محمد رحمه الله چه په زيادات كي كوم حكم بيان كړې دې. چې د يو ښكار قيمت مثلاً شل روپۍ دې.كله چې ړومبی كس غشې اوويشتلو.او دا ئې زخمی كړو.نو اوس ددې قيمت شپاړس روپۍ شو.او دوهم كس چې غشې اوويشتلو.او زخمی ئې كړو.نو اوس ددې قيمت دولس روپۍ پاتې

شو.نو د دوهم کس په زخم سره څلور روپۍ نقصان اوشو.نو دې به څلور روپۍ ورکوی.نو اوسه پورې د دواړو
د زخمونو په وجه ددې په قیمت کې اته روپۍ کمې شوې.او صرف دولس روپۍ ددې قیمت پاتې شو.نو اوس
به دوهم کس ددې دولسو د نیم یعنې د شپږو روپو به نور هم ضامن وی.یعنې دا د ښکار د موجوده قیمت
نصف دې.کوم چې مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل

مَجْرُوحًا بِجِرَاحَتَيْنِ په داسې حال کې چې دا زخمي شوې دې.په دوې (دوه) زخمونو سره ثُمَّ يَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهِ لَحْمًا بیا
به ددې د غوښې د نیم قیمت ضامن وی.

تشریح:- مجروحاً بجراحتین یعنې دواړو زخمونو سره چې اوس کوم قیمت پاتې شوې دې.د هغې قیمت د
نصف به ضامن وی.کوم چې په مذکوره مثال کې شپږ روپۍ جوړیږی.بیا دې اوکتلې شی.چه ددې د غوښې
څه قیمت دې.نو مثلاً د غوښې قیمت شپږ روپۍ دې.او ددې نیمه دریې روپۍ دی.نو دلته به دوهم کس د
غوښې د نیم قیمت یعنې د دریو روپو ضامن وی.نو د دوهم کس په ذمه د زخم د نقصان څلور روپۍ د
نصف قیمت شپږ روپۍ او د غوښې د نصف قیمت دریې روپۍ واجب وی.په مذکوره مثال کې چې ددې
مجموعه دیارلس روپۍ شوې.نو په مذکوره صورت کې به دوهم کس رومبی کس ته دیارلس روپۍ ورکوی.او
دوهم کس به د غوښې د دوهم نصف ضامن نه وی.ځکه چې ددې ضامن هغه د ښکار ژوندی کیدو په
حساب سره شوې دې.ګنی د ضمان تکرار به لازم شی.

## د نقصان د ضمان او د قیمت د ضمان وجه

أَمَّا الْأَوَّلُ بهرحال رومبی فَلِأَنَّهُ جَرَحَ حَيَوَانًا مَمْلُوكًا لِلْغَيْرِ وَقَدْ نَقَصَهُ نو ځکه چې دوهم د غیر مملوك ښکار زخمي کړې
دې.او په دې کې ئې نقصان پیدا کړې دې.فَيَضْمَنُ مَا نَقَصَهُ أَوَّلًا نو مخکې ئې چې کوم نقصان کړې دې.د هغې
به ضامن وی وَأَمَّا الثَّانِي او بهرحال دوهم فَلِأَنَّ الْمَوْتَ حَصَلَ بِالْجِرَاحَتَيْنِ فَيَكُونُ هُوَ مُتْلِفًا نِصْفَهُ نو ځکه چې مرګ د
دواړو زخمونو په وجه حاصل شوې دې.نو دوهم کس به ددې د نصف ضائع کونکې شی وَهُوَ مَمْلُوكٌ لِلْغَيْرِ
حالانکه هغه ددې د غیر مملوك دې فَيَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهِ مَجْرُوحًا بِالْجِرَاحَتَيْنِ نو هغه به ددې د نصف قیمت ضامن
وی.په داسې حال کې چې دا زخمي دې.په دوې (دوه) زخمونو سره لِأَنَّ الْأُولَى مَا كَانَتْ بِصُنْعِهِ ځکه چې رومبی
زخم دده په کاوه سره نه دې شوې وَالثَّانِيَةُ ضَمِنَهَا مَرَّةً فَلَا يَضْمَنُهَا ثَانِيًا او دوهم زخم (اګرچه دده په کاوه سره شوې
دې) د هغې ده یو خل ضمان ادا کړې دې.نو دوباره به ددې ضامن نه وی.

تشریح:- د ذکر شوی صورت حکم خو مرغینانی رحمه الله د زیادات په حواله سره بیان کړو.چه هغې کې دریې شیان
دی ① د نقصان ضمان ② د قیمت ضمان ③ د غوښې د قیمت ضمان، ددې ځائې نه مرغینانی رحمه الله هریو
دلیل بیانوی.فرمائی.د ضمان نقصان دلیل دا دې.چه د بل کس مملوك ښکار ئې زخمي کړو.او دا ئې ناقص
کړو.نو مخکې به دده د نقصان ضمان وصولولې شی.
د زخمي شوی قیمت د ضمان دلیل: کله چې د ښکار مرګ د دواړو په زخم سره واقع شوې دې.نو دوهم
کس دغیر مملوك ښکار نصف ضائع کړو.نو په ده به نصف قیمت واجب وی.خود زخم لګیدلی د قیمت
نصف به واجب وی.او زخمي هم هغه زخمي کوم چې دوې (دوه) زخمونو سره زخمي شوې وی.په ذکرشوی
مثال کې دولس روپۍ وې.چه ددې نصف شپږ روپۍ دی.
دلته یو اعتراض کیدای شی هغه دا چې په دوهم باندې د زخمونو ضمان هم واجب کیدل پکار
دی؟خوددې خواب دادې چې د رومبی په زخم کې د دوهم د فعل د هیڅ دخل نشته.نو په ده به د هغې
ضمان هم واجب نه وی.او پاتې شو دده خپل لګولې شوې زخم، نو ده دهغې مخکې د نقصان ضمان ادا
کړې دې.نو ددې به دوباره ضمان په ده نه واجبیږی.

## د قیمت د ضمان دلیل



وَأَمَّا الثَّالِثُ او بهرحال دریم فَلِأَنَّ بِالرَّمْيِ الْأَوَّلِ صَارَ بِحَالٍ يَحِلُّ بِذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ نو په دې وجه چې ښکار د رومبی
غشی غورځولو په وجه داسې حال کې وو.چه دا په ذکاة اختیاری سره حلال کیدای شو لَوْلَا الرَّمْيُ الثَّانِي که
دوهم غشې ئې نه وې ویشتلی فَهَذَا بِالرَّمْيِ الثَّانِي أَفْسَدَ عَلَيْهِ نِصْفَ اللَّحْمِ نو دوهم کس چې دوهم غشی
اوویشتلو.په رومبی ئې نیمه غوښه فاسد کړله فَيَضْمَنُهُ وَلَا يَضْمَنُ النِّصْفَ الْآخَرَ نو دوهم به ددې ضامن وی.او د
دوهم نصف به ضامن نه وی لِأَنَّهُ ضَمِنَهُ مَرَّةً فَدَخَلَ ضَمَانُ اللَّحْمِ فِيهِ ځکه چې دې یو خل د هغې ضامن شوې دې.نو
په دې کې د غوښې ضمان داخل شو.

تشریح:- دا د غوښې د نیم قیمت د ضمان دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د رومبی غشی لګیدو نه روسته
دې کې دومره ژوند وو.چه دا په ذبح اختیاری سره ذبح کیدای شو.خوکه دوهم غشې ئې نه وې ویشتلی.خو
چې دوهم غشی ئې اوویشتلو.نو ددې غوښه ئې حرام کړله.نو ددې به هغه ضامن وی.او د دوهم نیمې برخې
(حصې) غوښې ضمان به په ده واجب نه وی.ځکه چې ده ددې ښکار د نصف مخکې ضمان ادا کړې دې.چه
په دې کې دغوښې ضمان هم داخل شوې دې.

وَإِنْ كَانَ رَمَاهُ الْأَوَّلُ ثَانِيًا که رومبی کس دا دوباره په غشی اوویشتلو فَالْجَوَابُ فِي حُكْمِ الْإِبَاحَةِ كَالْجَوَابِ فِيمَا
إِذَا كَانَ الرَّامِي غَيْرَهُ نو خواب د جواز په حکم کې ددې خواب پشان دې.کوم چې په دې صورت کې دې.چه
غشی ویشتونکې د رومبی نه علاوه وی. وَيَصِيرُ كَمَا إِذَا رَمَى صَيْدًا عَلَى قُلَّةِ جَبَلٍ فَأَثْخَنَهُ ثُمَّ رَمَاهُ ثَانِيًا فَأَنْزَلَهُ لَا يَحِلُّ او
دا به داسې شی.کله چې ده یو ښکار د غره په سوکه باندې په غشی اوویشتلو.نو هغه ته تیره زخم
اولګیدو.بیا ئې دا په دوهم غشی اوویشتلو.نو دا ئې لاندې راغورزولو.نو دا حلال نه دې لِأَنَّ الثَّانِي مُحَرِّمٌ
كَذَا هَذَا ځکه چې دوهم غشې حرامونکې دې.دغه ډول دا( صورت هم دې).

تشریح:- په رومبی زخم سره ذکاة اختیاری کیدای شوه.چه ده دوباره دوهم غشې اوویشتلو.چه دې سره هغه مړ
شو.نو اوس دا حلال پاتې نشو.هغه دلیل سره کوم چې تیر شو.لکه چې یوکس د غر په سوکه ښکار په غشی
اوویشتلو.او تیره زخم ئې اولګولو.چه په دې سره دا د بچکیدو د امکان نه خارج شوه.بیا ده هغه په دوهم
غشی اوویشتلو.چه دې سره هغه لاندې راپریوتلو.نو ښکار حلال نه دې.ځکه چې د ذکر شوی دلیل موافق
دوهم غشی ښکار حرام کړې دې.دغه ډول حکم دلته کې هم دې.لنډیز د کلام دا چې په دوهم خل دې پخپله
غشې اولی.یا بل څوك اولی ښکار به حلال نه وی.

## د ماکول اللحم او غیر ماکول اللحم ښکار حکم

قَالَ امام ابو الحسین قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَيَجُوزُ اصْطِيَادُ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ الْحَيَوَانِ وَمَا لَا يُؤْكَلُ لِإِطْلَاقِ مَا
تَلَوْنَا او جائز دې ښکار کول، د هغه څناور د کوم چې غوښه خوړلې شی.او د کوم چې نشی خوړلې.د هغه
آیت د مطلق کیدو په وجه کوم چې موږ تلاوت کړې دې وَالصَّيْدُ لَا يَخْتَصُّ بِمَأْكُولِ اللَّحْمِ او ښکار ماکول الحم
سره خاص نه دې قَالَ قَائِلُهُمْ: صَيْدُ الْمُلُوكِ أَرَانِبُ وَثَعَالِبُ او وئیل یوکس ددوی نه: د بادشاهانو ښکار خو سویه (
خرګوش) او لومبړې دی - وَإِذَا رَكِبْتُ فَصَيْدِيَ الْأَبْطَالُ او کله چې زه سور شوم.نو زما ښکار بهادران زره ور
دی، وَلِأَنَّ صَيْدَهُ سَبَبٌ لِلِانْتِفَاعِ بِجِلْدِهِ أَوْ شَعْرِهِ او ځکه چې د غیر ماکول اللحم ښکار ددې د څرمنې یا ددې د ویښتو
یا ددې د وزرو نه د انتفاع سبب دې.یا ددې د شر لرې کاوه سبب دې أَوْ رِيشِهِ أَوْ لِاسْتِدْفَاعِ شَرِّهِ وَكُلُّ ذَلِكَ مَشْرُوعٌ او
دا ټولې خبرې مشروع دی.والله اعلم بالصواب

حل اللغة: ① ارانب: جمع د ارنب: سویهٔ (خرګوش) ② ثعالب: جمع د ثعلب: لومبړه ③ جلد: څرمن ④ شعر: ویښته
⑤ ریش: بنړې ⑥ استدفاع: دفع کول

تشریح:- ښکار د ماکول اللحم او غیر ماکول اللحم دواړو جائز دې.ځکه چې ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا﴾ مطلق

دي.او لفظ د صيد (ښکار) ماکول اللحم سره خاص نه دي.لکه څنګه چې شعر کي موجود دي.چه شاعر د زړه ورو سړو د صيد (ښکار) اطلاق کړي دي.حالانکه د سړو غوښه په هيڅ قوم کي هيڅ وخت کي هم جائز نه ده.نو ددي نه معلومه شوه.چه د ښکار اطلاق صرف ماکول اللحم سره خاص نه دي.او پاته تقرير آسان دي.

# كتاب الرهن

ژباړه:- (دا) کتاب د رهن (د مسائلو په بيان کي) دي.

تشريح:- د کتاب الصيد او کتاب الرهن په منځ کي مناسبت دا دي.چه ددي دواړو مقصود مال حاصلول دي.بيا رهن مصدر دي.ددي معنى ده ګانړه ايخودل.او مصدر کله کله د اسم مفعول په معنى کي استعماليږي.نورهن کله د مرهون په معنى کي راځي.يعنى هغه سامان کوم چي ګانړه ايخودي شي.راهن هغه دي.کوم کس چي خپل مال بل سره ګانړه ايږدي.مرتهن هغه دي.د چا سره چي ګانړه ايخودي شي.

### د رهن لغوى او شرعى معنى

الرَّهْنُ لُغَةً: حَبْسُ الشَّيْءِ رهن د لغت په اعتبار سره يو شئ قيد کول (او خان سره بند ساتل) دي بِأَيِّ سَبَبٍ كَانَ.په کوم سبب سره چي هم وي وَفِي الشَّرِيعَةِ: جَعْلُ الشَّيْءِ مَحْبُوسًا او په شريعت کي يو شئ محبوس (ګيرول) کول دي بِحَقٍّ يُمْكِنُ اسْتِيفَاؤُهُ مِنَ الرَّهْنِ) د داسي حق په بدله کي چي ددي وصولول رهن سره ممکن وي كَالدُّيُونِ، وَهُوَ مَشْرُوعٌ بِقَوْلِهِ تَعَالَى فَرِهَانٌ مَقْبُوضَةٌ لکه قرضي، او رهن مشروع دي.د الله تعالى د فرمان ﴿فَرِهٰنٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾ ﴿البقره:۲۸۳﴾ په وجه وَبِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اشْتَرَى مِنْ يَهُودِيٍّ طَعَامًا ،او په دي وجه کوم چي نقل دي.چه نبي کريم ﷺ د يو يهودي نه غله واخستله وَرَهَنَهُ بِهِ دِرْعَهُ ().او هغه سره ئي خپله زغره رهن کيخودله وَقَدْ انْعَقَدَ عَلَى ذَلِكَ الْإِجْمَاعُ .او ددي په جواز باندي اجماع منعقد شوي ده وَلِأَنَّهُ عَقْدُ وَثِيقَةٍ لِجَانِبِ الِاسْتِيفَاءِ.او څکه چي رهن د وصولولو د اړخ پوخوالي يو عقد دي ،فَيُعْتَبَرُ بِالْوَثِيقَةِ فِي طَرَفِ الْوُجُوبِ وَهِيَ الْكَفَالَةُ نو دا به قياس کولي شي.د وجوب اړخ په مضبوطوالي باندي،او دا مضبوطي کفالت دي.

تشريح:- مخکي مرغيناني رحمه الله د رهن لغوى او شرعى معنى خودلي ده.فرمائي.چه د رهن معنى ده.په يو سبب د يو شئ محبوس کول (او راګيرول).او په شريعت کي رهن وائي.د پور په بدله کي يو شئ محبوس کول.چه د ارتيا په وخت د پور وصولول په رهن سره اوشي.بيا مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل.چه رهن يو جائز عقد دي.په کتاب الله، او حديث او اجماع سره،او په قياس سره هم ددي جواز ثابت دي.

① کتاب الله: ﴿وَإِن كُنتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾ يعنى که په سفر کي د پور معامله کوئ.او د عهد ليکلو لپاره څوك ليکونکي ملاؤ نشي.نو د پور په عوض څه شئ قرضدار له ايخودل پکار دي.په سفر کي د رهن حاجت په نسبت د حضر (مقيم) زيات وي.څکه چي حضر (اقامت) کي کتابت او شهادت سره هم په آسانتيا د قرضخواه اطمينان ممکن دي.په دي وجه سفر کي د رهن حکم اوشو.ګني حضر (اقامت) کي د ليکونکي په موجودګئ کي هم رهن صحيح دي.لکه څنګه چي حديث کي موجود دي.لنډيز د کلام دا چي د قرآن ددي آيت نه د رهن جواز ثابتيږي.

② سنت رسول ﷺ: د بخاري اومسلم روايت دي.چه نبي کريم ﷺ د يو يهودي نه غله واخستله.او د ثمن په بدله کي ئي خپله زغره هغه سره رهن (ګانړه) کيخودله.نو د حديث نه معلومه شوه.چه رهن جائز دي.

③ اجماع: د رهن په جواز باندي اجماع منعقد ده.

[1] - من حديث عائشة (رض) أخرجه البخاري في الإستقراض باب ۱ ومسلم في المساقاة رقم ۱۲۴ وأبوداود في الجهاد باب ۱۳۶ والنسائي في البيوع باب ۵۹ ومالک في الجهاد رقم ۱۸ وأحمد في المسند (۶/۴۲)_



④ قياس: کفالت بالاتفاق جائز دي.او ددي حقيقت دا دي.چه واجب حق د کفيل نه وصول کړي شي.نو د کفالت په وجه د وصولولو په اړخ کي پوخوالي پيدا کيږي.دغه ډول د رهن په وجه د حق وصولولو اړخ پخيږي.نو رهن به کفالت باندي قياس کولي شي.او ونيلي به شي.چه لکه څنګه کفالت جائز دي.دغه ډول رهن هم جائز دي. لنډيز د کلام دا چه په ادلهٔ اربعه سره د عقد رهن جواز ثابت دي.

### د رهن منعقد کيدو او قبضه کولو بيان

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل الرَّهْنُ يَنْعَقِدُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ چي رهن منعقد کيږي.په ايجاب او قبول سره وَيَتِمُّ بِالْقَبْضِ او تماميږي په قبضې سره قَالُوا الرُّكْنُ الْإِيجَابُ بِمُجَرَّدِهِ،بعض مشائخو فرمائيلي دي.چه رکن صرف ايجاب دي لِأَنَّهُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ فَيَتِمُّ بِالْمُتَبَرِّعِ ....څکه چي رهن يو عقد تبرع ده.نو دا په متبرع سره تماميږي كَالْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ وَالْقَبْضُ شَرْطُ اللُّزُومِ لکه په هبه او صدقه کي .او قبضه د لزوم شرط دي عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى د هغه تفصيل مطابق کوم به چي موږ انشاء الله بيان کړو.

تشريح:- لکه څنګه چي نور عقدونه په ايجاب او قبول سره منعقد کيږي.دغه ډول رهن هم ايجاب او قبول سره منعقد کيږي.او قبضې سره تماميږي.هم دا دجمهور احنافو مسلك دي.په دي باندي شيخ الاسلام خواهر زاده رحمه الله فرمائي.چه صرف او صرف ايجاب رکن دي.او قبول رکن نه دي.بلکه شرط دي.خو اصح دا دي.چه دا دواړه رکن دي.امام خواهرزاده رحمه الله فرمائي.چه رهن عقد تبرع ده.او کوم چي عقد تبرع وي.هغه صرف متبرع سره تماميږي.لکه هبه او صدقه چي عقد تبرع دي.چه دا صرف په متبرع سره پوره کيږي.اوقبضه رکن نه دي.بلکه لزوم د عقد رهن لپاره شرط دي.

### د امام مالك رحمه الله نقطهٔ نظر

وَقَالَ مَالِكٌ: يَلْزَمُ بِنَفْسِ الْعَقْدِ او امام مالك رحمه الله فرمائي.رهن لازميږي.نفس عقد سره لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِالْمَالِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ په دي وجه دا مختص دي.د دواړو طرفونو نه مال سره فَصَارَ كَالْبَيْعِ نو رهن پشان د بيع شو وَلِأَنَّهُ عَقْدُ وَثِيقَةٍ فَأَشْبَهَ الْكَفَالَةَ .او څکه چي رهن د مضبوط والي يو عقد دي.نو دا د کفالت مشابه شو.

تشريح:- د امام مالك رحمه الله مذهب دا دي.چه رهن صرف ايجاب او قبول سره لازميږي.قبضه په دي کي شرط نه ده.اورهن داسي دي.لکه په بيع کي ثمن او مبيع دواړه مال دي.دغه ډول په رهن کي دين او رهن دواړه مال دي.او د مبيع د لزوم لپاره قبضه شرط نه ده.نو د رهن د لزوم لپاره به هم قبضه شرط نه وي.او دغه ډول کفالت هم په قبلولو سره لازميږي.په دي کي قبضه شرط نه ده.نو دغه ډول رهن کي به هم د قبضې د لزوم شرط نه وي.حالانکه رهن او کفالت دواړه داسي عقدونه دي.چه د مضبوطئ لپاره دي.

### د احنافو رحمهم الله دلائل

وَلَنَا مَا تَلَوْنَا او زموږ دليل هغه آيت دي.کوم چي موږ تلاوت کړي دي وَالْمَصْدَرُ الْمَقْرُونُ بِحَرْفِ الْفَاءِ او هغه مصدر کوم چي د ,,فا،، حرف سره ملاؤ شوي وي فِي مَحَلِّ الْجَزَاءِ په محل د جزاء کي يُرَادُ بِهِ الْأَمْرُ،د هغې نه امر مراد وي وَلِأَنَّهُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ او څکه چي رهن يو عقد تبرع دي ،لِمَا أَنَّ الرَّاهِنَ لَا يَسْتَوْجِبُ بِمُقَابَلَتِهِ عَلَى الْمُرْتَهِنِ شَيْئًا په دي وجه چي راهن د رهن په مقابله کي مرتهن باندي د څه شئ نه مستحق کيږي وَلِهَذَا لَا يُجْبَرُ عَلَيْهِ او په دي وجه راهن باندي جبر (او زبردستي) نشي کولي فَلَا بُدَّ مِنْ إِمْضَائِهِ نو د رهن نافذ کول ضروري دي كَمَا فِي الْوَصِيَّةِ لکه په وصيت کي وَذَلِكَ بِالْقَبْضِ او نافذ کول به د قبضې په ذريعه وي.

حل اللغة: ① الامضاء: نافذ کول ② المقرون: مولښتي ③ لايجبر: نشي مجبوره کولي ﴾

تشريح:- موږ وئيلي وو.چه د قبضې نه بغير رهن نه تماميږي.ددي خائي نه زموږ دليلونه پيل کيږي.

① زموږ دليل ﴿فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾ دلته کي رهن د مقبوضه کيدو په صفت سره متصف شوي دي.او کله

چې د نکره وصف بیانولې شی.نو دا عام وی.لکه ( مثلاً ) ،، لا أكلم إلا رجلاً كوفياً،، نو ددې نه دا خبره ثابته شوه.چه هر رهن به دې وصف سره مشروع وی.بیا رهان مصدر دې.چه په دې فاء داخل ده.او رهن په محل د جزاء کې دې.اوکله چې داسې وی.نو هلته مصدر په معنی د امر وی.یعنی د رهن معامله کوئ.په داسې حال کې چې په دې باندې قبضه کوئ.د قبضې په شرط کیدو باندې دلیل عقلی رهن عقد تبرع ده.او ددې په عقد تبرع کیدو باندې دوې (دوه) دلیلونه دی (١) راهن باندې زبردستی جائز نه ده.چه هغه خامخا رهن کیږدی.(٢) راهن ته د رهن په بدله کې مرتهن نه هیڅ شئ نه حاصلیږی.نو د رهن امضاء ( حکم جاری کول) او نفاذ ضروری دې.چه د مرتهن استحقاق ثابت شی.لکه څنګه چې وصیت هم یوه تبرع ده.د موصی له د استحقاق لپاره نفاذ ضروری دې.او هم دا نفاذ به د قبضې په ذریعه کیږی.بهرحال د رهن د جواز لپاره قبضه شرط ده.

ثُمَّ يَكْتَفِي فِيهِ بِالتَّخْلِيَةِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ بیا په ظاهرالروایة کې به قبضه کې تخلیه باندې اکتفاء کولای شی لِأَنَّهُ قَبْضٌ بِحُكْمِ عَقْدٍ مَشْرُوعٍ خکه چې دا قبضه ده.د داسې عقد دحکم په وجه کوم چې مشروع دې فَأَشْبَهَ قَبْضَ الْمَبِيعِ .نو دا قبضه مبیع باندې د قبضې مشابه شوه.

**حل اللغة**: ① التخلية: خالی کول ،پریخودل﴾

**تشریح**:- اود قبضې دوې (دوه) قسمونه دی.① تحقیقی ② حکمی.... تحقیقی دا دې.چه قابض دا واخلی.او خپل خان سره ئې یوسی.اودحکمی نه مراد تخلیه ده.یعنی راهن دمرهون او مرتهن په منځ کې تخلیه اوکړی .چه هلته کې د مرتهن په قبضه کاوه کې هیڅ مشکلات نه وی.نو دلته کې کومه قبضه شرط ده.نو مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.چه په ظاهرالروایة کې قبضۀ حکمی کافی ده.یعنی تخلیه کافی ده.لکه کله چې بائع د مشتری او مبیع په منځ کې تخلیه اوکړله.نو قبضه اوشوه.دغه ډول به دلته کې هم کیږی .څکه چې قبضه دواړو کې د عقد مشروع حکم دې.نو دواړو کې تخلیه کافی ده.

### د امام ابویوسف رحمه الله نقطه نظر

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ لَا يَثْبُتُ فِي الْمَنْقُولِ چې په منقول شئ کې به قبضه نه ثابتیږی. إِلَّا بِالنَّقْلِ خو په منتقل کاوه سره. لِأَنَّهُ قَبْضٌ خکه چې دا ( قبضه د رهن) داسې قبضه ده مُوجِبٌ لِلضَّمَانِ ابْتِدَاءً بِمَنْزِلَةِ الْغَصْبِ چې دا په پیل کې ضمان واجبونکې ده.د غصب په مرتبه کې ،. بِخِلَافِ الشِّرَاءِ په خلاف د شراء ( اخستلو). لِأَنَّهُ نَاقِلٌ لِلضَّمَانِ مِنَ الْبَائِعِ إِلَى الْمُشْتَرِي څکه چې شراء بائع نه مشتری ارخ ته ضمان نقل کونکې دې وَلَيْسَ بِمُوجِبٍ ابْتِدَاءً وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او په پیل کې واجبونکې نه دې.او ړومبې اصح دې.

**تشریح**:- د ظاهرالروایة حکم تیرشو.چه قبضه حکمی کافی ده.دا د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه په اشیاء منقوله کې قبضه حقیقی ضروری ده.څکه چې رهن کې قبضه پیل کې ضمان واجبوی.لکه څنګه چې غصب کې پیل کې ضمان واجبیږی.نو لکه څنګه چې غصب کې د ضمان د ثبوت لپاره نقل ضروری دې.دغه ډول په رهن کې هم نقل ضروری دې.او تخلیه نا کافی ده.او پاتې شوه مسئله د شراء ( اخستلو) نو هلته کې ضمان په پیل کې واجبیږی.بلکه د اخستلو نه روستو د قبضې نه وړاندې دا د بائع په ضمان کې دې.او د قبضې نه روسته د مشتری په ضمان کې داخلیږی.نو رهن په شراء ( اخستلو) باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دې.مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه ظاهرالروایة زیات صحیح دې.چه تخلیه سره د قبضې ثبوت اوشی.

### مرهون باندې د مرتهن د قبضې کولو بیان

قَالَ قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا دست (تصرف) الْمُرْتَهِنُ نو کله چې په دې باندې مرتهن قبضه اوکړله مَحُوزًا مُفَرَّغًا مُتَمَيِّزًا په داسې حال کې چې مرهون مجوز، مفرغ او متمیز وی تَمَّ الْعَقْدُ فِيهِ لِوُجُودِ الْقَبْضِ بِكَمَالِهِ نو عقد



په مرهون کې تمام وی.د مکمل قبضې موجود کیدو په فَلَزِمَ الْعَقْدُ وَمَا لَمْ يَدست (تصرف) وجه.نو عقد به لازم وی.او ترکومه پورې چې مرتهن په رهن باندې قبضه نه وی کړې. فَالرَّاهِنُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ سَلَّمَهُ نو راهن سره اختیار دې.که غواړی.دا دې اوسپاری وَإِنْ شَاءَ رَجَعَ عَنِ الرَّهْنِ او که غواړی.د رهن نه دې رجوع اوکړی لِمَا ذَكَرْنَا په وجه دهغه دلیل کوم چې موږ ذکر کړې دې أَنَّ اللُّزُومَ بِالْقَبْضِ چې لزوم قبضې سره کیږی إِذِ الْمَقْصُودُ لَا يَحْصُلُ قَبْلَهُ څکه چې مقصود د قبضې نه مخکې نه حاصلیږی

**تشریح**:- کله چې مرتهن په مرهون باندې قبضه اوکړله.نو عقد رهن تمام شو.او عقد لازم شو.او ترکومه پورې چې مرتهن قبضه نه ده کړې.نو راهن ته اختیار شته.که غواړی.مرهون دې مرتهن ته حواله کړی.اوکه غواړی.نه دې ورکوی.بلکه د رهن نه دې رجوع اوکړی.څکه چې لزوم د عقد قبضې سره کیږی.څکه چې مقصود د رهن قبضه کاوه نه وړاندې نه حاصلیږی.خو د قبضې پوره کیدو لپاره امام قدوری رحمه الله درې شیان بیان کړی دی

### رهن باندې د مرتهن د قبضې کولو حیثیت

قَالَ قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا سَلَّمَهُ إِلَيْهِ او کله چې راهن مرهون ( ځینې) مرتهن اړخ ته اوسپارلو فَدست (تصرف) بیا مرتهن په دې باندې قبضه اوکړله دَخَلَ فِي ضَمَانِهِ نو مرهون د مرتهن په ضمان کې داخل شو وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: او امام شافعی رحمه الله فرمائی هُوَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ چې مرهون د مرتهن په لاس کې امانت دې ،وَلَا يَسْقُطُ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ بِهَلَاكِهِ او د مرهون د هلاکیدو په وجه به د دین نه هیڅ نه ساقطیږی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَا يَغْلَقُ الرَّهْنُ د نبی ﷺ د فرمان په وجه چې ،، رهن به مطلق ( بند) نه وی ،، قَالَهَا ثَلَاثَةً دا نبې درې خل ارشاد اوفرمائیلو لِصَاحِبِهِ غُنْمُهُ د رهن والا لپاره ددې منفعت دې ،وَعَلَيْهِ غُرْمُهُ (١) او هم په ده ددې تاوان دې قَالَ امام شافعی رحمه الله فرمائی ،وَمَعْنَاهُ لَا يَصِيرُ مَضْمُونًا موږ بِالدَّيْنِ او ددې مطلب دا دې.چه رهن به د پور په وجه مضمون نه وی.

**حل اللغة**: ① غرم: تاوان ② الدين: پور﴾

**تشریح**:- زموږ په نیز رهن باندې د مرتهن قبضه، قبضه د ضمانت ده.او د امام شافعی رحمه الله په نیز قبضه د امانت ده.زموږ په نیز د مرهون په هلاکیدو سره پور ساقطیږی.چه ددې تفصیل روستو راروان دې.او د امام شافعی رحمه الله په نیز د مرهون په هلاکیدو سره د پور نه هیڅ نه ساقطیږی.امام شافعی رحمه الله پخپله دعوه باندې دوې (دوه) دلیلونه پیش کړی دی.اول نقلی او دوهم عقلی.دلیل نقلی دا حدیث دې. ﷺ لا يغلق الرهن...؛ ددې مطلب امام شافعی رحمه الله دا ګڼړلې دې.چه رهن د پور په بدله کې مضمون نه وی.بلکه رهن امانت وی.موږ به ددې حدیث مطلب ددې په ځواب کې عرض کړو.

### د امام شافعی رحمه الله عقلی دلیل

وَلِأَنَّ الرَّهْنَ وَثِيقَةٌ بِالدَّيْنِ او څکه چې رهن د پور مضبوطی ده فَبِهَلَاكِهِ لَا يَسْقُطُ الدَّيْنُ نو د رهن د هلاکیدو په وجه به پور نه ساقطیږی اعْتِبَارًا بِهَلَاكِ الصَّكِّ د چك (اقرارنامه) په هلاکیدو باندې قیاس کاوه سره وَهَذَا لِأَنَّ بَعْدَ الْوَثِيقَةِ يَزْدَادُ مَعْنَى الصِّيَانَةِ او دا ( نه ساقطیدل) څکه دی.چه د پوخوالی نه روسته د خیانت معنی زیاتیږی وَالسُّقُوطُ بِالْهَلَاكِ يُضَادُّ مَا اقْتَضَاهُ الْعَقْدُ او د هلاکت په وجه د پور سقوط ددې منافی دې.چه عقد رهن ددې تقاضه

---

(١) - من حديث ابى هريرة رضي الله عنه اخرجه ابن حبان فى صحيحه فى النوع الثالث والاربعين من القسم الثالث والحاكم فى المستدرك (٢\١ ٥١) وقال الزيلعى رحمه الله انه قول صاحب الهداية قالها ثلاثا لم اجده فى شئ من طرق الحديث (نصب ٥\٤٢ ٣٠) ١٢

كوى إِذَا الْحَقُّ بِهِ يَصِيرُ بِعَرَضِ الْهَلَاكِ .ځکه چې حق د سقوط په وجه د هلاکت په خانې کې راځی ،،وَهُوَ ضِدُّ الصِّيَانَةِ او هلاکت د ساتنه ضد دی.

تشریح:- دا د امام شافعی رحمه الله عقلی دلیل دی.ددې حاصل دا دی.که د پور معاهده اولیکلې شی.او اقرار نامه هلاکه شی.نو آیا پور ساقطیږی؟ ښکاره ده.چه په دې سره پور نه ساقطیږی.نو دغه ډول د رهن مصدر هم وثیقه او مضبوطی او پوخوالې دی.نو د رهن د هلاکیدو په وجه به پور نه ساقطیږی.او د پور نه ساقطیدو دویمه وجه دا ده.چه مضبوطوالې خو د ساتنه او ساتلو په معنی کې زیاتوالې راولی.نو که د رهن د هلاکت په وجه پور ساقط شی.نو دا د عقد رهن د تقاضې خلاف دی.

## د احنافو رحمهم الله دلیل

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِلْمُرْتَهِنِ او زموږ دلیل د نبی ﷺ فرمان دی مرتهن ته بَعْدَمَا نَفَقَ فَرَسُ الرَّهْنِ عِنْدَهُ ذَهَبَ حَقُّكَ() دده سره د اس د هلاکیدو نه روسته ستا حق ختم شو وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ إِذَا عُمِّيَ الرَّهْنُ او د نبی ﷺ فرمان دی.چه کله رهن مشتبه شی فَهُوَ بِمَا فِيهِ() نو دا به د هغې مقابل وی.د کوم په بدله کې چې دا دی مَعْنَاهُ: عَلَى مَا قَالُوا إِذَا اشْتَبَهَتْ قِيمَةُ الرَّهْنِ ددې معنی د مشانخو د قول مطابق کله چې د رهن قیمت مشتبه شی بَعْدَمَا هَلَكَ ددې د هلاکیدو نه روسته وَإِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ او د صحابه کرامو او تابعینو اجماع ده عَلَى أَنَّ الرَّهْنَ مَضْمُونٌ مَعَ اخْتِلَافِهِمْ په دې خبره چې رهن مضمون وی. سره ددوی د اختلاف نه فِي كَيْفِيَّتِهِ د ضمان په کیفیت کې ،وَالْقَوْلُ بِالْأَمَانَةِ خَرْقٌ لَهُ نو د امانت قائل کیدل د اجماع مخالف دی.

تشریح:- په دې عبارت کې مرغینانی رحمه الله خپل دلیل بیانوی.دوې (دوه) حدیثونه او اجماع پیش کوی.① رومبې حدیث دا دی.چه رسول الله ﷺ مرتهن ته فرمائیلی وو.دده سره د رهن اس هلاکیدو نه روسته ستا حق ختم شو.دا واضح دلیل دی.چه رهن مضمون وی.② دوهم حدیث کله چې د رهن قیمت مشتبه شی.چه د پور نه کم دې اوکه زیات دې.او که برابر دې.نو رهن به د پور برابر شمارلې کیږی.او د رهن په هلاکت سره به پوره قرضه ساقطیږی.د،،إذا عمی الرهن،، معنی ،،إشتبهت قيمة الرهن،، ده.③ دریم دلیل د صحابه کرامو رضی الله عنهم او د تابعینو اجماع ده.چه رهن مضمون وی.اګرچه ددې حضراتو د ضمان په کیفیت کې اختلاف دی.خو په نفس ضمان کې هیڅ اختلاف نشته.نو د امام شافعی رحمه الله د امانت قول، د اجماع مخالف دی.او د اجماع مخالفت جائز نه دی.

## د امام شافعی رحمه الله د استدلال جواب

وَالْمُرَادُ بِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَا يَغْلَقُ الرَّهْنُ() او مراد د نبی کریم ﷺ د فرمان ﷺ لا يغلق الرهن.... ﷺ نه ،، عَلَى مَا قَالُوا الْإِحْتِبَاسُ الْكُلِّيُّ وَالتَّمَكُّنُ لکه ځنګه چې مشانخو فرمائیلی دی،،احتباس کلی ( مکمل راګیرول) دی بِأَنْ يَصِيرَ مَمْلُوكًا لَهُ او په دې طریقه رهن د مرتهن مملوک شی كَذَا ذَكَرَ الْكَرْخِيُّ عَنِ السَّلَفِ.() لکه ځنګه چې ذکر کړی دی.کرخی رحمه الله د سلفو نه.

حل اللغة: ① الاحتباس الكلى: پوره راګیرول ② لايغلق: نشی بندولې ﴿

- من حديث أبى هريرة رضى الله عنه أخرجه ابن حبان فى صحيحه فى النوع الثالث والأربعين من القسم الثالث والحاكم فى المستدرك (٥١\٢) وقال الزيلعى رحمه الله أنه قول صاحب الهداية قالها ثلاثاً لم أجده فى شى من طرق الحديث (نصب:٤٢\٥، ٤٣)_
[2] - من حديث عطاء أخرجه أبوداود فى مراسيله وابن أبى شيبة فى مصنفه (نصب:٤٣\٥)_
[3] من حديث أنس رضى الله عنه أخرجه الدارقطنى فى سننه (٣٢\٣) رقم ١٢٣)_
[4] - من حديث أنس رضى الله عنه أخرجه الدارقطنى فى سننه (٣٢\٣) رقم ١٢٣)_



تشریح:- امام شافعی رحمه الله چه د کوم حدیث نه استدلال کړې وو.هغه کمزورې وو.دلته کې د هغه حدیث مطلب بیانولې شی.چه رهن بالکلیه د مرتهن مملوك شی.داسې به نه کیږی.امام کرخی رحمه الله د سلفو نه هم دغه ډول نقل کړی دی.نو اوس د حدیث مطلب دا شو.چه رهن بند نکړې شی.یعنی مرتهن د پوره رهن بالکلیه مالك شی.داسې به نه کیږی.بلکه که ددې په خرڅولو سره د مرتهن پور ادا کاوه نه روسته څه بچ پاتې شی.نو ددې مالك به راهن وی.او که ددې قیمت پور پوره نکړی.نو دا به راهن ادا کوی.دا مفهوم ئې په ،،لصاحبه غنمه،، او،،وعليه غرمه،، سره بیان کړې دی.

## په مقصود او مطلوب باندې تمهيد

وَلِأَنَّ الثَّابِتَ لِلْمُرْتَهِنِ يَدُ الْإِسْتِيفَاءِ او ځکه چې مرتهن لپاره د وصولولو قبضه ضروری ده وَهُوَ مِلْكُ الْيَدِ وَالْحَبْسِ او هغه د قبضې او حبس ( یعنی د منع کولو) مالك کیږی ،لِأَنَّ الرَّهْنَ يُنْبِئُ عَنِ الْحَبْسِ الدَّائِمِ په دې وجه رهن د دائمی حبس ( همیشه د ځان سره د ساتلو) خبر ورکوی ،قَالَ اللَّهُ تَعَالَى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ الله تعالی فرمائیلی دی.هر نفس پخپلو اعمالو کې مرهون دی.﴿المدثر:٣٨﴾ وَقَالَ قَائِلُهُمْ: او په دوی کې یو ویونکی وئیلی دی. وَفَارَقَتْكَ بِرَهْنٍ لَا فِكَاكَ لَهُ او ای محبوبې زه ستا نه جلا شوې یم.په داسې رهن سره چې د هغې لپاره خلاصې نشته يَوْمَ الْوَدَاعِ فَأَمْسَى الرَّهْنُ قَدْ غَلِقَا د رخصتئ ورځ خو شوه رهن محبوس وَالْأَحْكَامُ الشَّرْعِيَّةُ تَنْعَطِفُ عَلَى الْأَلْفَاظِ عَلَى وَفْقِ الْأَنْبَاءِ او احکام شرعیه مائل کیږی.الفاظو باندې د خبر ور کاوه موافق.

حل اللغة: ① الاستيفاء: حاصلول ② رهين: ګانړه ③ تنعطف: مائل کیږی ④ الانباء: جمع دنبا، خبر ورکول﴿

تشریح:- دلته مرغینانی رحمه الله پخپل مقصود او مطلوب باندې تمهید تړی.او روستو به په یو ځل وائی.چه ددې نه ثابته شوه.چه رهن مضمون وی.فرمائی.چه مرتهن ته د رهن په ذریعه د خپل پور وصولولو حق شته.چه دا مرغینانی رحمه الله په ،،يد الاستيفاء،، سره تعبیر کړې دی.بیا ئې هم ددې ید الاستیفاء اړه کې وئیلی دی.چه دا د قبضې او حبس ( بندولو) ملکیت دی.یعنی مرتهن ته حق شته.چه په رهن باندې قبضه اوکړی.او دا د خپل ځان سره محبوس ( بند) اوساتی.اوس مرغینانی رحمه الله په دې محبوس ( او ځان سره بند) ساتلو باندې دلیل پیش کوی.چه د رهن لغوی معنی حبس دائم ( همیشه ځان سره د ساتلو) ده.چه ددې ثبوت د قرآن آیت سره دې.او شعر سره.① آیت﴿كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ﴾ هر سړې به پخپلو کفریه اعمالو کې محبوس ( راګیر) وی.نو د رهن معنی د حبس دائم ده.② شعر: شاعر خپلې محبوبې ته وائی.چه زه په ورځ د جدایئ ستا نه په داسې حال کې جلا شوم.چه زما زړه تا سره رهن دی.چه دا حبس دائمی سره محبوس ( قید) دی.چه دا خلاصیدې نشی.یعنی هغه ستا دائمی مِلك شوې دی،،دلته کې هم رهن د حبس دائمې په معنی کې دی.هرکله چې د لغت په اعتبار سره د رهن مفهوم حبس دائمی دی.نو په رهن کې به شرعاً هم ددې معنی لحاظ ساتلې کیږی.په نورو الفاظو سره داسې چې حقائق شرعیه د حقائق لغویه نه نه جلا کیږی.

## په مقصود اصلی باندې دوهم تمهيد

وَلِأَنَّ الرَّهْنَ وَثِيقَةٌ لِجَانِبِ الْإِسْتِيفَاءِ او ځکه چې رهن د وصولولو اړخ لپاره مضبوطیا ده وَهُوَ أَنْ تَكُونَ مُوصِلَةً إِلَيْهِ او مضبوطی دا ده.چه دا وصولولو پورې رسونکې ده وَذَلِكَ ثَابِتٌ لَهُ بِمِلْكِ الْيَدِ وَالْحَبْسِ او دا ( د اقرار نامې وصولولو پورې رسیدل) به د قبضې او حبس مالك کیدو سره کیږی لِيَقَعَ الْأَمْنُ مِنَ الْجُحُودِ چې د انکار نه امن واقع شی مَخَافَةَ جُحُودِ الْمُرْتَهِنِ الرَّهْنَ د مرتهن د رهن نه د انکار کاوه د یرې وَلِيَكُونَ عَاجِزًا عَنِ الْإِنْتِفَاعِ بِهِ او لپاره ددې چې شی راهن عاجز، د انتفاع د مرهون نه ،فَيَتَسَارَعُ إِلَى قَضَاءِ الدَّيْنِ لِحَاجَتِهِ أَوْ لِضَجَرِهِ .نو راهن به مخکې کیږی د پور ادا کاوه اړخ ته، د خپل حاجت په وجه.یا د خپل زړه د تنګوالی په وجه.

حل اللغة: ① الاستيفاء: حاصلول ② الجحود: انکار ③ ضجر: د زړه تنګسیا ④ يتسارع: تلوار کوی﴿

**تشریح:-** دا په مقصود اصلي باندې د تمهید دویمه پوړۍ ده.ددې حاصل دا دې.چه رهن د وصولولو د پوخوالي ذریعه ده.چه ددې پوخوالي په ذریعه وصولولو پورې رسیدل اوشي.او ددې پوخوالي، وصولولو پورې رسیدل ثابت دي.په ملك د قبضې او حبس سره.یعنی کله چې مرتهن په رهن باندې قبضه اوکړله.نو دا به د پور وصولولو ذریعه وي.ځکه چې اوس راهن د پور نه انکار نشي کولې.او ده ته به دا یره وي.چه چرته مرتهن د رهن نه انکار اونکړي.او د مرتهن قبضه په دې وجه هم رسونکې ده.چه رهن نه د راهن منفعت ختم شوې دې. حالاتکه هغه ته ددې اړتیا دې.یا دده په زړه کې تنګی ده.چه ستا قیمتی مال د فلانی سره رهن دې.نو هغه به زر تر زره د پور ادا کاوه کوښښ کوی.دا ددې ځانې پورې تمهید دې.ددې نه روسته مرغینانی رحمه الله اصل مقصود بیانوی.

## په تمهید باندې یو مبنی مسئله

> **وَإِذَا كَانَ كَذَلِكَ** او هرکله چې خبره هم دغه ډول **يَثْبُتُ الِاسْتِيفَاءُ مِنْ وَجْهٍ** نو من وجه وصولول ثابت شو **وَقَدْ تَقَرَّرَ بِالْهَلَاكِ** او دا وصولول مضبوط شو د هلاکت په وجه **فَلَوْ اسْتَوْفَاهُ ثَانِيًا** نو که دې دوباره دا وصول کوی **يُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا** نو دا به سود ارخ ته متعدی وی **بِخِلَافِ حَالَةِ الْقِيَامِ** به خلاف د رهن د موجود کیدو د حالت **لِأَنَّهُ يَنْتَقِضُ هَذَا الِاسْتِيفَاءُ** ځکه چې دا وصولول به مات شی ،،**بِالرَّدِّ عَلَى الرَّاهِنِ فَلَا يَتَكَرَّرُ** .راهن باندې په رد کاوه سره به وصولول نه مکرر کیږي.

**تشریح:-** ددې ټولو تمهیدونه دا خبره معلومه شوه.چه مرتهن خپل حق من وجه حاصل کړې دې.او که مرهون هلاك شو.نو په دې وصولولو کې نوره هم مضبوطی پیدا شوه.نو که مرتهن دوباره خپل وصول کړي.نو سود او رباء به لازمیږي.

⁉که څوك اعتراض اوکړي که مرهون موجود وي.او د راهن نه پور وصول کړې شی.نو دوې (دړه) ځل وصولول، خو دلته کې هم لازمیږي؟ ددې ځواب دا دې چې دلته دوې (دوه) ځله وصولی نه لازمیږي ځکه چې هرکله مرهون موجود دې.نو مرهون به راهن ته واپس کولې شی.نو په وصولولو کې به تکرار نه لازمیږي.

## د سوال مقدر جواب

> **وَلَا وَجْهَ إِلَى اسْتِيفَاءِ الْبَاقِي** او هیڅ وجه نشته.د پاته وصولولو ارخ ته **بِدُونِهِ** د قبضې نه بغیر ،**لِأَنَّهُ لَا يُتَصَوَّرُ** .ځکه چې دا متصور نه دې.

**تشریح:-** دا عبارت د یو سوال مقدر ځواب دې.سوال دا دې چې تاسو د پور وصولول، د مرهون د هلاکیدو نه روسته سود ګرځولې دې.حالاتکه موږ تاسو ته داسې صورت خودلې شو.چه دوباره د راهن نه قرضه وصول کړې شی.او سود لازم نشی.او هغه صورت دا دې. چې په مرهون باندې د مرتهن قبضه د ملك حاصله وه.ملك رقبه نه وه.او کله چې مرهون هلاك شو.نو د ملك ید (قبضې) وصولول مضبوط شو.خو د پور مقابل خو قبضه او رقبه دواړه دی.قبضه وصول شوه.رقبه پاته ده. نو راهن نه صرف رقبه وصول کړې شی.نو سود نه لازمیږي؟

ځواب⊛ دا دې.چه د ملك ید نه بغیر د ملك رقبه وصولول نا ممکن دی.نو که ملك رقبه وصول کړې شوه.د ملك ید په حق کې به د وصولولو تکرار نه لازمیږي.کوم چې سود دې.نو په دې وصولولو سره به عجز لازمیږي.او ددې مثال بعینه داسې دې.لکه په قول د طرفینو رحمهما الله چې دا مسئله ده.چه د یوسړي په بل کس باندې یو زر کره درهم دی.نو قرضدار یو زر کهوټه درهم ورکړل.رب الدین (قرضخواه) دا پخپل اړتیا کې خرچ کړل.بیا هغه ته معلومه شوه.چه هغه خو کهوټه وې.نو اوس دده د حق کره کیدو اعتبار ساقط شو.ځکه چې اوس د کره وصولولو هیڅ صورت نه دې پاتې شوې.ګنی سود به لازمیږي.هم دغه ډول مذکوره مثال هم دې.



## د سوال مقدر جواب

> **وَالِاسْتِيفَاءُ يَقَعُ بِالْمَالِيَّةِ** او وصولول به مالیت باندې واقع کیږي **أَمَّا الْعَيْنُ فَأَمَانَةٌ** بهرحال عین، امانت دې **حَتَّى كَانَتْ نَفَقَةُ الْمَرْهُونِ عَلَى الرَّاهِنِ فِي حَيَاتِهِ** تردې چې د مرهون نفقه به د مرهون په ژوند کې د راهن په ذمه وی **وَكَفَنُهُ بَعْدَ مَمَاتِهِ** او دده کفن دده د مرګ نه روسته **وَكَذَا قَبْضُ الرَّهْنِ لَا يَنُوبُ عَنْ قَبْضِ الشِّرَاءِ** او هم دغه ډول به د رهن قبضه د شراء د قبضې نیابت نه کوی **إِذَا اشْتَرَاهُ الْمُرْتَهِنُ** کله چې مرتهن رهن اخستې وی.**لِأَنَّ الْعَيْنَ أَمَانَةٌ** ځکه چې عین، امانت دې ،،**فَلَا تَنُوبُ عَنْ قَبْضِ ضَمَانٍ** .نو قبضه د امانت به د قبضې د ضمان نیابت نه کوی.

**تشریح:-** دا هم د یو تقدیری سوال مقدر ځواب دې.سوال دا دې.چه حق د خپل جنس نه وصولولې شی.او دلته په عین او دین کې مجانست نشته؟ ددې ځواب دا دې ددې ځواب دا دې.چه مرتهن خپل حق د مرهون د مالیت نه وصول کوی.او دوی دواړو کې مجانست موجود دې.پاتې شو عین، نو دا مرتهن سره امانت دې.او د عین، د امانت کیدو واضح دلیل دا دې.چه ترکومه پورې مرهون غلام ژوندې وی.نو دده نفقه به د راهن په ذمه وی.او د غلام د مرګ نه روسته به دده کفن هم د راهن په ذمه وی.او د عین د امانت کیدو یو دلیل دا هم دې.که مرتهن دا واخلی.نو د شراء لپاره به دوباره قبضه کول ضروری وی.ځکه چې ړومبۍ قبضه، قبضه د امانت وه.او دا قبضه د شراء ده.هغه قبضه د امانت ده.او دا قبضه د ضمان ده.

## د امام شافعی رحمه الله د استدلال عقلی جواب

> **وَمُوجِبُ الْعَقْدِ ثُبُوتُ يَدِ الِاسْتِيفَاءِ** او د عقد رهن موجب د وصولولو د قبضې ثبوت دې **وَهَذَا يُحَقِّقُ الصِّيَانَةَ** او دا د پور ساتنه ثابتوی **وَإِنْ كَانَ فَرَاغُ الذِّمَّةِ مِنْ ضَرُورَاتِهِ** اګرچه د راهن د ذمې فراغت د وصولولو د ضروریاتو څخه دې ،**كَمَا فِي الْحَوَالَةِ** .لکه څنګه چې حواله کې دی.

حل اللغة* ① الصیانه: حفاظت﴾

**تشریح:-** دا د امام شافعی رحمه الله د عقلی استدلال ځواب دې.ددې حاصل دا دې.چه امام شافعی رحمه الله د عقد رهن موجب خودلې وو. ﴿الوثیقة بالدین و بعد الوثیقة یزداد معنی الصیانة.....﴾ نو مرغینانی رحمه الله ځواب ورکړو .چه د عقد رهن موجب هغه نه دې.کوم چې امام شافعی رحمه الله خودلې دې.بلکه ددې موجب دا دې.چه مرتهن ته په وصولولو باندې قبضه حاصل شی.او د عقد رهن دا موجب د پور ساقطولو سبب نه دې. بلکه ددې د ساتنه سبب دې.دا اتفاقی امر دې.که مرتهن سره مرهون هلاك شی.نو چونکه د مرتهن حق وصول شو.په دې وجه د راهن ذمه فارغ شوې ده.خو دا پور مفت ساقط نشو.بلکه د رهن دهلاکت په وجه ساقط شوې دې.چه ددې وجه تیره شوې ده.او دا بالکل د حوالهٔ پشان دې.چه په دې کې د طالب د حق د ساتنه په غرض سره پور په محتال علیه باندې واجبیږي.او ددې د ضروریاتو څخه دې.چه د محیل ذمه فارغ شی.بهرحال د امام شافعی رحمه الله رهن په چك یعنی اقرارنامه باندې قیاس کول صحیح نه دی.ځکه چې د اقرار نامې په ذریعه قبضه د استیفاء نه حاصلیږي.دغه ډول د ګواهانو په ذریعه قبضه د استیفاء نه حاصلیږي.او د رهن په ذریعه قبضه داستیفاء حاصلیږي.نو قیاس صحیح نه دې.

## رهن د کوم څیز په بدله کښې قید کولای شي

> **فَالْحَاصِلُ أَنَّ عِنْدَنَا حُكْمَ الرَّهْنِ صَيْرُورَةُ الرَّهْنِ** نو حاصل دا دې.چه زموږ په نیز د رهن حکم د رهن محبوس کیدل (او ګیریدل) دی **مُحْتَبِسًا بِدَيْنِهِ** د مرتهن د پور په بدله کې **بِإِثْبَاتِ يَدِ الِاسْتِيفَاءِ عَلَيْهِ** په یداستیفاء ثابتیدو سره په رهن باندې، **وَعِنْدَهُ تَعَلُّقُ الدَّيْنِ بِالْعَيْنِ** او د امام شافعی رحمه الله په نیز د پور تعلق دې.د عین سره **اسْتِيفَاءً مِنْهُ** په غرض د وصولولو ددې سره، **عَيْنًا بِالْبَيْعِ** عین ته د بیع په ذریعه **فَيُخَرَّجُ عَلَى هَذَيْنِ الْأَصْلَيْنِ عِدَّةٌ مِنْ**

الْمَسَائِلِ او په دې دواړو اصلونو باندې د ډېرو هغه مسئلو تخريج شوي دي الْمُخْتَلَفِ فِيهَا بَيْنَنَا وَبَيْنَهُ كومو كي چې زموږ او ددوی په منځ كي اختلاف دي عَدَدْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِى جُمْلَةً. دا ټولې موږ په كفاية المنتهى كي شمار كړي دي.

تشريح:- زموږ په نيز د رهن حكم دا دې.چه رهن د دين په بدله كي محبوس ( ګيرشوي) دې.چه مرتهن د رهن په ذريعه خپل پور وصول كړی.ځكه چې مرتهن ته يد استيفاء حاصليدل پكار دی.يعنی د وصولولو قبضه. او د امام شافعي رحمه الله په نيز د دين تعلق عين رهن سره دې.ددې د ماليت سره نه دې.او دا صورت صرف د بيع صورت دې.بيا په دې اصل كلی باندې ډېرې مختلفې مسئلې متفرع كيږی.د كومو اړه كي چې مرغيناني رحمه الله فرمائيلی دی.چه دا ټولې مسئلې موږ په كفاية المنتهى كي بيان كړي دي.بيا دلته كي هم مرغيناني رحمه الله يوه جزئيه پيش كړې ده.چه زموږ د اصل ( قاعدې) مطابق چونكه د پور ادا كاوه پورې مرتهن ته د حبس دائم حق شته.نو كه راهن رهن واپس اخستل غواړی.نو هغه ته به ددې حق نه وی.ګنی په دې سره به د حبس دائم فوت كيدل او ختميدل لازميږی.او د امام شافعي رحمه الله د اصل ( او قاعدې) مطابق به راهن د واپس اخستلو نه نشی منع كولې.ځكه چې واپس اخستلو سره موجب د رهن يعنی بيع لپاره تعين كي هيڅ خلل نه واقع كيږی.مرغيناني رحمه الله فرمائی.او ډېر جزئيات او فروعيات دی.چه په ذكر شوی دواړو اصولو ( قاعدو) باندې متفرع دی.چه دا به د مسئلو په منځ كي ستاسو په وړاندې راځی.

## رهن د كوم څيز په بدله كښې كې ږی؟

قَالَ قدوري رحمه الله او فرمائيل وَلَا يَصِحُّ الرَّهْنُ او رهن به صحيح نه وی إِلَّا بِدَيْنٍ مَضْمُونٍ خو د دين مضمون په بدله كي دې لِأَنَّ حُكْمَهُ ثُبُوتُ يَدِ الِاسْتِيفَاءِ ځكه چې ددې حكم د يد استيفاء ثبوت ، وَالِاسْتِيفَاءُ يَتْلُو الْوُجُوبَ. او وصولول وجوب پسې راځی.

تشريح:- رهن صرف د پور په بدله كي صحيح كيږی.ځكه د رهن حكم دا دې.چه مرتهن ته په رهن باندې داسې قبضه حاصله شی.چه په دې سره هغه خپل پور وصول كړی.او وصولولې به هله شی.كله چې د مخكې نه د دين وجوب ثابت شوې وی.

تنبيه: دين ( قرض) مضمون وی.نو بيا دَين د مضمون قيد سره مقيد كول د تاكيد په طريقه دی.او بعض حضراتو وئيلی دی.چه د دين مضمون نه د قدوري مر

## د اعيان مضمونه په بدله كښې د رهن حكم

قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: مرغيناني رحمه الله فرمائيلی دی هٰذَا يَدْخُلُ عَلَى هَذَا اللَّفْظِ الرَّهْنُ بِالْأَعْيَانِ او د قدوري رحمه الله په دې لفظ باندې، هغه اعيان سره اشكال وارديږی وَالْمَضْمُونَةِ بِأَنْفُسِهَا كوم چې پخپله مضمون دی ، فَإِنَّهُ يَصِحُّ الرَّهْنُ بِهَا وَلَا دَيْنَ. چه ددې په بدله كي رهن صحيح دې.حالانكه دين نه دې.

تشريح:- دلته دا سوال وارديږی چې امام قدوري رحمه الله حصر او كړو.چه ،، رهن صرف د دين په بدله كي صحيح كيږی،، د دې امله مرغيناني رحمه الله فرمائی.چه كوم شئ دين نه دې.بلكه عين دې.او د هغې ضمان واجبيږی.نو د هغې په بدله كي رهن صحيح كيږی.حالانكه هلته كي دين نشته.نو د دين نه بغير رهن صحيح شو.نو د امام قدوري رحمه الله حصر غلط شو.مثلاً زيد د خالد اس غصب كړو.نو په زيد ددې ضمان واجب دې.دغه شان چې كوم شئ د سوم شراء په طريقه مقبوض وی.د هغې ضمان واجب دې.او كله چې ضمان واجب شو.نو ددې په بدله كي به رهن صحيح وی.نو په دې دواړو صورتونو كي د دين نه بغير رهن صحيح شو.ددې نه معلومه شوه.چه د امام قدوري رحمه الله مذكوره حصر صحيح نه دې؟ دا اعتراض مكمل شو.ددې نه روسته مرغيناني رحمه الله ددې خواب وركوی.

## د ذكر شوی سوال جواب



فَيُمْكِنُ أَنْ يُقَالَ: او ممكن ده چې خواب وركړې شی إِنَّ الْوَاجِبَ الْأَصْلِيَّ فِيهَا هُوَ الْقِيمَةُ چې په دې ( اعيان مضمونه) كي موجب اصلی قيمت دې. وَرَدُّ الْعَيْنِ مُخَلِّصٌ او عين واپس كول خلاصول دی عَلَى مَا عَلَيْهِ أَكْثَرُ الْمَشَايِخِ د هغه تفصيل مطابق په كوم چې اكثر مشائخ دی وَهُوَ دَيْنٌ او قيمت دين دې وَلِهَذَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِهَا او هم په دې وجه ددې كفالت صحيح دې.

تشريح:- مرغيناني رحمه الله فرمائی.چه د مذكوره اشكال دا خواب وركيداې شی.كوم چې د اكثرو مشائخو د تقرير مطابق دې.چه اعيان كي هم اصل قيمت واجبيږی.البته كه دې عين مغصوب واپس كړی.دې سره به هم دې بری الذمه شی.او قيمت دين دې.عين نه دې.هركله چې ددې دين كيدل ثابت شو.نو معلومه شوه. چې رهن د دين په بدله كي دی.د عين په بدله كي نه دې.نو هيڅ اشكال نه كيږی.او د اعيان مضمونه كفالت بالاتفاق صحيح دې.او د دين كفالت خو صحيح دې.ددې نه هم معلومه شوه.چه په اعيان مضمونه كي د دين جهت موجود دې.

## يو اشكال او د هغې جواب

وَلَئِنْ كَانَ لَا يَجِبُ اګرچه قيمت نه واجبيږی إِلَّا بَعْدَ الْهَلَاكِ خو د هلاكت نه روسته لَكِنَّهُ يَجِبُ عِنْدَ الْهَلَاكِ بِالْقَبْضِ السَّابِقِ ليكن قيمت واجبيږی.د هلاكت په وخت د مخكنۍ قبضې په وجه وَلِهَذَا تُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْقَبْضِ په دې وجه د مغصوب قيمت د قبضې د ورځې معتبر دې فَيَكُونُ رَهْنًا بَعْدَ وُجُودِ سَبَبِ وُجُوبِهِ نو د مغصوب په بدله كي به رهن وی.ددې د وجوب سبب د موجود كيدو نه روسته فَيَصِحُّ نو رهن به صحيح وی كَمَا فِي الْكَفَالَةِ ځكه چې كفالت كي دی.

حل اللغة: ① تعتبر: معتبرولې شی

تشريح:- دلته يو اشكال وارديږی.چه قيمت د مغصوب خو د مغصوب د هلاكت نه روسته واجبيږی.او تر كومه پورې چې مغصوب شئ پخپل حال موجود دې.نو بيا ددې واپس كول ضروری دی.نو قيمت ته موجب اصلی وئيل به څنګه صحيح وی؟

خواب: ددې خواب دا دې.چه خبره اګرچه هم داسې ده.لكه څنګه چې تاسو اوفرمائيله.خو د هلاكت په وخت چې كله قيمت واجب شو.ددې د وجوب سبب هم دا مخكنۍ قبضه ده.او هم دا وجه ده.چه د مغصوب به هم هغه قيمت معتبر وی.كوم چې د قبضې په ورځ ددې قيمت وو.نو هركله چې خبره هم دغه ډول ده.نو معلومه شوه.چه د قيمت د وجوب سبب، غاصبانه قبضې كاوه سره فی الحال ثابت شوه.نو رهن د غصب په بدله كي ، د دين د وجوب سبب موجود كيدو نه روسته شوې دې.او د نكتې په وجه د اعيان مضمونه كفالت صحيح كيږی.ځكه چې فی الجمله وجوب قيمت پورې رسيږی.

## په اعيان مضمونه كښې د اصل قيمت وجو

وَلِهَذَا لَا تَبْطُلُ الْحَوَالَةُ او هم په دې وجه ( يعنی اعيان كي موجب اصلی د قيمت كيدو په وجه) هغه حواله نه باطليږی الْمُقَيَّدَةُ بِهِ كومه چې عين مغصوب سره مقيد وی بِهَلَاكِهِ د مغصوب د هلاكيدو په وجه ، بِخِلَافِ الْوَدِيعَةِ په خلاف د وديعت ( امانت).

حل اللغة: ① الوديعة: امانت

تشريح:- هركله چې دا معلومه شوه.چه اعيان مضمونه كي اصل قيمت واجب دې.نو اوس واورئ.زيد د خالد ګهړئ غصب كړله.او د خالد په ذمه د بكر پور دې.خالد حواله اوكړله.چه زما پور به زيد دركوی.يعنی په ګهړئ سره به دا قرضه ادا كوی.او اتفاق سره د زيد ( چې غاصب دې) نه دا ګهړئ هلاك شوه.نو حواله باطل نشوه.او زيد به د ګهړئ د قيمت نه مذكوره دين ادا كوی.او كه بعينه هم دا صورت وی.خو زيد سره د غصب په ځائې امانت وی.نو د امانت په هلاكيدو سره به حواله باطليږی.ځكه چې امانت كي حواله عين

امانت سره ده.نو د عین هلاکیدو سره حواله باطلیږی.او په رومبی مثال کي د عین هلاکت سره حواله نه باطلیږی.ځکه چې موجب اصلی قیمت موجود دې.

## مرهونه څیز په کوم مقدار کښې د مرتهن په ضمان کښې داخل دې ؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَهُوَمَضْمُونٌ بِالْأَقَلِّ مِنْ قِيمَتِهِ وَمِنَ الدَّيْنِ (١) او مرهون مضمون وی.په کم سره، د قیمت د رهن او د پور نه، فَإِذَاهَلَكَ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ نو کله چې مرهون هلاك شو.د مرتهن په قبضه کي وَقِيمَتُهُ وَالدَّيْنُ سَوَاءٌ او ددې قیمت او پور برابر وی صَارَ الْمُرْتَهِنُ مُسْتَوْفِيًا لِدَيْنِهِ نو شی به مرتهن د خپلې پور وصول کونکې، وَإِنْ كَانَتْ قِيمَةُ الرَّهْنِ أَكْثَرَ فَالْفَضْلُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ او که د رهن قیمت زیات وی.نو زیاتوالې امانت دې لِأَنَّ الْمَضْمُونَ بِقَدْرِ مَا يَقَعُ بِهِ الِاسْتِيفَاءُ په دې وجه به مضمون هم په هغه اندازه وی.چه د هغې په ذریعه وصولول واقع شی وَذَاكَ بِقَدْرِ الدَّيْنِ او ( وصولول) په اندازه د پور دی وَإِنْ كَانَتْ أَقَلَّ نو که قیمت کم وی سَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ بِقَدْرِهِ نو د پور څخه به ددې په اندازه ساقطیږی وَرَجَعَ الْمُرْتَهِنُ بِالْفَضْلِ او مرتهن به زیاتی واپس اخلی،،،لِأَنَّ الِاسْتِيفَاءَ بِقَدْرِ الْمَالِيَّةِ .ځکه چې وصولول په اندازه د مالیت وی.

**تشریح:-** وړاندې ونیلی شوی دی.چه مرهون د مرتهن په ضمانت کي داخل وی.اوس په دې باندې سوال پیدا کیږی.چه په څومره مقدار کي به مضمون وی؟ نو دلته کي ددې ځواب ورکړې شوې دې.

ځواب: حاصل د ځواب دا دې.چه د رهن قیمت او پور کي چې کوم یوهم کم وی.هغه مقدار سره به مضمون وی.نوکه د رهن قیمت دوې (دوه) سوه روپۍ وی.او پور سل روپۍ وی.نو سل روپۍ کمې دی.او د رهن قیمت زیات دې.نو په دې صورت کي به ضمان په اندازه د سلو روپو وی.اوکه ددې په عکس وی.بیا به هم ضمان په اندازه د سلو روپو وی.نو که مرتهن سره مرهون هلاك شو.او د پور او رهن قیمت برابر وی. نو مسئله برابر سرابر شوه.او مرتهن به د خپلې پور وصولونکې شمارلې کیږی.او که د رهن قیمت زیات وی.نو زیاتوالې به امانت وی.اوکه پور ادا شو.ځکه چې مرتهن په څومره مقدار سره خپله قرضه وصول کولې شی.هم په هغه اندازه مضمون وی.او دا مقدار په اندازه د دین ده.اوکه د رهن قیمت کم وی.او پور زیات وی.نو څومره چې د رهن قیمت وی.په رهن هلاکیدو سره دومره قرضه ساقط شوه.او پاته پور به مرتهن د راهن نه وصول کوی.ځکه چې دلته کي مرتهن د دومره مقدار وصول کونکې شمارلې شی.څومره چې د رهن مالیت دې.

## د امام زفر رحمه الله نقطه نظر

وَقَالَ زُفَرُ او امام زفر رحمه الله فرمائی الرَّهْنُ مَضْمُونٌ بِالْقِيمَةِ چې رهن قیمت سره مضمون وی حَتَّى لَوْهَلَكَ الرَّهْنُ تردې که رهن هلاك شی وَقِيمَتُهُ يَوْمَ الرَّهْنِ أَلْفٌ وَخَمْسِمِائَةٍ او د رهن قیمت د رهن ایخودو په ورځ پنځلس سوه وی وَالدَّيْنُ أَلْفٌ پور زر روپۍ وی،،رَجَعَ الرَّاهِنُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ بِخَمْسِمِائَةٍ.او نو راهن به مرتهن نه پنځه سوه روپۍ واپس اخلی.

**تشریح:-** زموږ مذهب هغه دې.کوم چې تیر شو.د امام زفر رحمه الله مذهب دا دې.چه د رهن کوم قیمت وی.د هغې په اندازه به مرتهن باندې ضمان وی.نو که د رهن ایخودو په ورځ د مرهون قیمت پنځلس سوه روپۍ وی.او پور زر روپۍ وی.او رهن مرتهن سره هلاك شی.نو د مرتهن قرضه به هم ادا وی.او راهن به مرتهن نه پنځه سوه روپۍ اخلی.امام زفر رحمه الله دلیل نقلی او دلیل عقلی پیش کړې دې.

## د امام زفر رحمه الله دلیل

لَهُ عَنْهُ د امام زفر رحمه الله دلیل د حضرت علی رضی الله عنه حدیث دې قَالَ دوی فرمائیلی دی يَتَرَادَّانِ الْفَضْلَ فِي الرَّهْنِ(١) ( راهن او مرتهن) دواړه به په رهن کي د زیاتوالی لین دین ( ورکړه راکړه) کوی وَلِأَنَّ الزِّيَادَةَ عَلَى الدَّيْنِ مَرْهُونَةٌ او ځکه چې رهن باندې زیاتوالې مرهون دې لِكَوْنِهَا مَحْبُوسَةً بِهِ د زیاتوالی د محبوس کیدو ( او بندیدو) په وجه د دین په بدله کي فَتَكُونُ مَضْمُونَةً نو زیاتوالې به مضمون وی اعْتِبَارًا بِقَدْرِ الدَّيْنِ د دین په مقدار باندې قیاس کاوه سره.

**حل اللغة:** ① یترادان: یوبل ته واپس کوی.

**تشریح:-** دا د امام زفر رحمه الله دلیل دې.① رومبې دلیل نقلی دې.چه حضرت علی رضی الله عنه د رهن په اړه کي فرمائیلی دی.چه ،، راهن او مرتهن به د زیاتوالی لین دین کوی،، یعنی که پور د رهن نه زیات دې.نو زیاتوالې به د راهن نه اخستلې شی.او که د رهن قیمت زیات دې.نو زیاتوالې به د مرتهن نه وصولولې شی.② دوهم دلیل عقلی دې.ددې حاصل دا دې.چه لکه څنګه د رهن هغه مقدار مرهون دې.کوم چې د دین په اندازه دې.دغه ډول ددې نه زیات مقدار هم مرهون دې.ځکه چې اصل او زیاتوالې دواړه د پور په بدله کي محبوس دی. نو لکه څنګه چې د رهن هغه مقدار مضمون دې.کوم چې د دین په اندازه دې.دغه ډول به هغه مقدار هم مضمون وی.کوم چې ددې نه زیات دې.مثلاً یو اس رهن دې.چه ددې قیمت پنځه سوه روپۍ دې.او پور دوې (دوه) سوه روپۍ دی.نو واړه اس مرتهن سره مرهون او محبوس دې.نو ضمان هم د پوره واجبیدل پکار دی.

## د احنافو رحمهم الله دلیل

وَمَذْهَبُنَا مَرْوِيٌّ عَنْ عُمَرَ وَعَبْدِ اللهِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ،(٢) او زموږ مذهب نقل دې د حضرت عمراو د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه وَلِأَنَّ يَدَ الْمُرْتَهِنِ يَدُ الِاسْتِيفَاءِ او ځکه چې د مرتهن قبضه دا د وصولولو قبضه ده فَلَا تُوجِبُ الضَّمَانَ .نو دا به نه واجبوی.ضمان إِلَّا بِالْقَدْرِ الْمُسْتَوْفَى خو په هغه مقدار سره کوم چې وصول کړې شوې دې كَمَا فِي حَقِيقَةِ الِاسْتِيفَاءِ،لکه څنګه چې د حقیقی استیفاء په صورت کي دی وَالزِّيَادَةُ مَرْهُونَةٌ بِهِ .او زیاتوالې مرهون دې ضَرُورَةَ امْتِنَاعِ حَبْسِ الْأَصْلِ بِدُونِهَا .د زیاتوالی نه بغیر د اصل د حبس ممتنع کیدو د اړتیا په وجه وَلَا ضَرُورَةَ فِي حَقِّ الضَّمَانِ.او د ضمان په حق کي هیڅ اړتیا نشته.

**تشریح:-** دلته کي مرغینانی رحمه الله خپل دلیل بیانوی.رومبې دلیل نقلی او دوهم عقلی دلیل دې.① نقلی دلیل دا دې.چه د حضرت عمر او عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما نه هم دغه ډول نقل دی.څنګه چې زموږ مذهب دې.② عقلی دلیل دا دی.چه د مرتهن قبضه د وصولولو قبضه ده.نوڅومره مقدار چې د وصولولو وی.هم هغومره ضمان واجبیدل پکار دی.ځکه چې د مرتهن دا وصولول خو حقیقی وصولول نه دی.بلکه دا وصولول شمار کړې شوی دی.اوکه حقیقی وصولول وی.نو بیا هم دا حکم دې.کوم چې موږ بیان کړو.چه په اندازه د دین دا مضمون دې.او پاته امانت دې.مثلاً د زید په خالد باندې یو زر روپۍ دی.او خالد زید ته یوه تهیلۍ چې په دې کي دوې (دوه) زره روپۍ دی.رهن ورکړله.اتفاق سره د زید نه دا تهیلۍ هلاکه شوه.نو د زید پور وصول شو.او پاته زر روپۍ به امانت شمارلې کیږی.نو دلته کي هم دغه ډول کیدل پکار دی.ددې نه روسته مرغینانی رحمه الله د امام زفر رحمه الله د عقلی دلیل ځواب ورکوی.چه قاعده دا ده. ﴿الضرورة تتقدر بقدر ضرورته﴾ نو مرتهن سره پوره اس ځکه رهن ایخودې شوې دې.چه د دوې (دوه) سوه مقداره پورې اس دده سره رهن

---

١ - [illegible] الراجح هو هذا قول الأئمة الثلاثة رحمهم الله كذا فى الإختيار لتعليل المختار (٣٠٨\١) وملتقى (٢٧٢\٤ والدرالمختار [illegible] عن القول الراجح (٣٢٥\١٢)_

١ - أخرجه عبدالرزاق فى مصنفه فى أثناء البيوع (نصب:٤٦\٥)_

٢ - أما رواية عمر رضی الله عنه فأخرجه البيهقى فى السنن الكبرى (٧١\٦) رقم ١١٢٢٨) وأما رواية ابن مسعود رضی الله عنه فأخرجه فقال الزيلعى رحمه الله وقال هى غريبة (نصب :٤٨\٥)_

کیخودي شي.او دري سوه مقدار والا کینخودي شي.نو دا صورت ممتنع دي.نو د اړتیا په بناء باندي پوره اس کیخودي شو.خو اړتیا د اړتیا حده پوري وي.نو زیاتی په رهن ایخودو کي اړتیا وو.په دي وجه دا جائز اوګرځولي شو.او د ضمان په حق کي هیڅ اړتیا نشته.په دي وجه به ضمان واجب نه وي.

**د امام زفر رحمه الله د استدلال جواب**

وَالْمُرَادُ بِالتَّرَادِّ فِيمَا يُرْوَى حَالَةُ الْبَيْعِ او مراد په دي لین دین سره، هغه حدیث کي کوم چي امام زفر رحمه الله روایت کړي دي د بیع حالت دي، فَإِنَّهُ رُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: ځکه چي د حضرت علی رضی الله عنه نه نقل دی.دوی فرمائیلی دی لِلْمُرْتَهِنِ أَمِينٌ فِي الْفَضْلِ.(۱) چه د مرتهن د زیاتی په حق کي امانت دار دي.

تشریح:- د کوم حدیث نه چي امام زفر رحمه الله استدلال کړي وو.دا دهغه حدیث ځواب دي.ددي حاصل دا دي.چه امام زفر صاحب رحمه الله تاسو دهوکه شوی یئ.او د حدیث هغه مطلب نه دي.کوم چي تاسو ګنړلي دي.بلکه مطلب دا دي.که مرهون خرڅ کړي شی.نو د کمی زیاتي ورکړه راکړه به کولي شی.او په بیع کي هم موږ هم ددي قائل یو.او زموږ او ستاسو بحث د مرهون په هلاکت کي دي.او دا د حدیث مراد نه دي.

که څوک دا ووايي چي تاسو سره څه دلیل دي.چه حدیث کي د بیع حالت مراد دي؟ددي ځواب دا دي چي زموږ سره دلیل دا دي.چه د حضرت علی رضی الله عنه نه دوهم روایت دا نقل دي.چه د زیاتی په سلسله کي مرتهن امانت دار دي.ددي نه معلومه شوه.چه ړومبي حدیث بیع باندي محمول کړي شی.ګنی د حضرت علی رضی الله عنه په اقوالو کي به تعارض لازم شي.

**رهن سره د مرتهن حق ادا کيږي اوکه نه؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يُطَالِبَ الرَّاهِنَ بِدَيْنِهِ او مرتهن ته حق شته.چه هغه د راهن نه د پور مطالبه اوکړی وَيَحْبِسَهُ بِهِ او د پور په وجه دي قید کړی.لِأَنَّ حَقَّهُ بَاقٍ بَعْدَ الرَّهْنِ ځکه چي دده حق د رهن نه روسته پاته دي وَالرَّهْنُ لِزِيَادَةِ الصِّيَانَةِ رهن د ساتنه د زیاتوالی لپاره دي فَلَا تَمْتَنِعُ بِهِ الْمُطَالَبَةُ نو د رهن په وجه به مطالبه ممتنع نه وی وَالْحَبْسُ جَزَاءُ الظُّلْمِ او حبس (قید) د ظلم سزا ده، فَإِذَا ظَهَرَ مَطْلُهُ عِنْدَ الْقَاضِي نو هرکله چي د قاضی په وړاندي دده ټال مټول ښکاره شو يَحْبِسُهُ نو قاضی به دي قید کوی، كَمَا بَيَّنَّاهُ عَلَى التَّفْصِيلِ فِيمَا تَقَدَّمَ لکه څنګه چي موږ دا وړاندي تفصیل سره بیان کړی دی.

حل اللغة: ① مطل: ټال مټول

تشریح:- د رهن په وجه د مرتهن حق نه ادا کیږی.بلکه رهن خو صرف ددي لپاره وی.چه د مرتهن مال محفوظ پاتي شی.نو هرکله چي خبره داسي ده.نو د رهن باوجود هم مرتهن ته حق شته.چه هغه د راهن نه د خپل پور مطالبه اوکړی.او د نه ورکاوه په صورت کي دي ګرفتار کړی.نو هرکله چي دي نه پور ادا کوی.او نه د ادا کاوه لپاره مرهون خرڅوی.نو د راهن ظلم ثابت شو.او قید کول د ظلم سزا ده.د هدایة دریم ټوک د کتاب القضاء په ،، فصل فی الحبس،، کي ددي تفصیلی بیان تیر شوي دي.

**که مرتهن د پور مطالبه اوکړی نو د رهن حکم؟**

وَإِذَا طَلَبَ الْمُرْتَهِنُ دَيْنَهُ او کله چي مرتهن د خپل پور مطالبه اوکړله يُؤْمَرُ بِإِحْضَارِ الرَّهْنِ نو مرتهن ته به د مرهون حاضرولو حکم ور کولای شی ،لِأَنَّ قَبْضَ الرَّهْنِ قَبْضُ اسْتِيفَاءٍ ځکه چي د رهن قبضه د وصولولو قبضه وی فَلَا يَجُوزُ أَنْ يَقْبِضَ مَالَهُ نو دا جائز نه ده.چه مرتهن پخپله قرضه باندي قبضه اوکړی مَعَ قِيَامِ يَدِ الِاسْتِيفَاءِ د وصولولو د قبضي قائم پاتي کیدو سره سره ،لِأَنَّهُ يَتَكَرَّرُ الِاسْتِيفَاءُ ځکه چي وصولول به مکرر شی عَلَى اعْتِبَارِ

۱- أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه (نصب:٤٩١٥)_



الْهَلَاكِ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ وَهُوَ مُحْتَمَلٌ.د مرتهن په قبضه کي د هلاکت اعتبار کاوه سره.او د هلاکت احتمال شته.

تشریح:- د مرتهن په قبضه کي چي رهن وی.نو احتمال شته.چه مرهون هلاک شی.او ددي باوجود هم که ده ته پور ورکړي شی.نو ډبل (دوباره) به وصول کول شی.په دي وجه دا صورت اختیار کړي شو.چه هرکله مرتهن د راهن نه خپله قرضه اوغواړی.نو مرتهن ته به ونیلي شی.چه مخکي مرهون حاضر کړه.

**مخکښي به پور ادا کولي شاوکه رهن؟**

وَإِذَا أَحْضَرَهُ او کله چي مرتهن رهن حاضر کړو أُمِرَ الرَّاهِنُ بِتَسْلِيمِ الدَّيْنِ إِلَيْهِ أَوَّلًا نو راهن ته به مخکي د پور سپارلو حکم ور کولای شی لِيَتَعَيَّنَ حَقُّهُ چي د مرتهن حق متعین شی كَمَا تَعَيَّنَ حَقُّ الرَّاهِنِ تَحْقِيقًا لِلتَّسْوِيَةِ لکه څنګه چي د راهن حق متعین شو.د برابرئ ثابتولو لپاره كَمَا فِي تَسْلِيمِ الْمَبِيعِ وَالثَّمَنِ يُحْضَرُ الْمَبِيعُ لکه څنګه چي د مبیع او ثمن په سپارلو کي مبیع حاضرولي شی ثُمَّ يُسَلَّمُ الثَّمَنُ أَوَّلًا.بیا مخکي ثمن سپارلي شی.

حل اللغة: ① التسوية: برابری ② تحقيقاً: لپاره د ثابتولو

تشریح:- کله چي مرتهن مرهون حاضر کړی.نو چونکه مرهون متعین شئ دي.چه په دي کي د راهن حق متعین دي.او په روپو کي حق متعین نه دي.چونکه دا غیر معین دی.په دي وجه د برابرئ غرض نه وړاندي به راهن پور ادا کوی.بیا به مرتهن مرهون ده ته حواله کوی.لکه څنګه چي مبیع او ثمن کي هم دا حکم دي.چه مخکي ثمن ورکولي شی.ددي نه روسته مبیع حواله کولي شی.

**په بل ښار کښي د پور د مطالبي حکم**

وَإِنْ طَالَبَهُ بِالدَّيْنِ اوکه مرتهن د راهن نه د پور مطالبه اوکړله.فِي غَيْرِ الْبَلَدِ الَّذِي وَقَعَ الْعَقْدُ فِيهِ د هغه ښار نه علاوه کي په کوم کي چي عقد واقع شوي وو إِنْ كَانَ الرَّهْنُ مِمَّا لَا حَمْلَ لَهُ وَلَا مُؤْنَةَ نو که رهن د هغه څیزونو څني دي.د کوم لپاره چي بوج او مشقت نشته فَكَذَلِكَ الْجَوَابُ نو ځواب هم دغه ډول دي.(یعنی مخکي به مرتهن ته حکم ورکولي شی.چه رهن حاضر کړی ،لِأَنَّ الْأَمَاكِنَ كُلَّهَا فِي حَقِّ التَّسْلِيمِ كَمَكَانٍ وَاحِدٍ ځکه چي واړه ځایونه د سپارلو په حق کي د یو ځائي پشان دی فِيمَا لَيْسَ لَهُ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ په هغه شئ کي چي هغي لپاره بوج او مشقت (تکلیف) نه وی وَلِهَذَا لَا يُشْتَرَطُ بَيَانُ مَكَانِ الْإِيفَاءِ فِيهِ فِي بَابِ السَّلَمِ بِالْإِجْمَاعِ*..)..اوپه دي وجه داسي شئ کي (کوم کي چي بوج وغیره نه وی) بالاجماع په طریقه د سلم کي ورکولو کي ځائي بیانول شرط نه دی وَإِنْ كَانَ لَهُ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ او ددي لپاره بوج او مشقت وی يَسْتَوْفِي دَيْنَهُ نو مرتهن به خپله قرضه وصول کړی وَلَا يُكَلَّفُ إِحْضَارَ الرَّهْنِ او مرتهن ته به د رهن حاضرولو تکلیف نشی ورکولي لِأَنَّ هَذَا نَقْلٌ ځکه چي دا (رهن حاضرول) نقل کول دی وَالْوَاجِبُ عَلَيْهِ التَّسْلِيمُ او په مرتهن چي څه واجب دی.هغه سپارل دی بِمَعْنَى التَّخْلِيَةِ او دا د تخلیه (د منع پورته کولو) په معنی کي دي ،لَا النَّقْلُ مِنْ مَكَانٍ یو ځائي نه بل ځائي ته منتقل کول نه دی إِلَى مَكَانٍ ،لِأَنَّهُ يَتَضَرَّرُ بِهِ زِيَادَةَ الضَّرَرِ وَلَمْ يَلْتَزِمْهُ.د.ځکه چي دي سره به مرتهن زیات ضرر اوچته وی.حالانکه ده د ضرر اوچتولو التزام نه دي کړي.

حل اللغة: ① البلد: ښار ② مونة: مشقت ③ حمل: بوج ④ التخلية: مانع لري کول ⑤ احضار: حاضرول

تشریح:- عقد د رهن واقع شوي وو.مثلاً دیوبند کي.او مرتهن د راهن نه د خپلي پور مطالبه اوکړله دهلی کي.نو مرتهن ته خو د مطالبي حق شته.خو آیا دلته کي به هم مرتهن ته حکم ورکولي شی.چه مخکي مرهون حاضر کړه؟ نو وي فرمائیل.چه مخکي به دا کتلي شی.چه مرهون څنګه شئ دي.ددي په اوچتولو،او اوړلو کي به مشقت وی اوکه نه وی؟ او ددي د اوړلو لپاره به سوارلئ نیولي شی.او که ددي نه بغیر نقل کیداي شی؟ د ړومبی مثال ګهړئ، قلم ، ګتمه وغیره دی.او د دوهم مثال ډیر زیات کتابونه یا ددي پشان نور څه.نو په ړومبی صورت کي خو به مرتهن ته ونیلي شی.چه مخکي مرهون حاضر کړه.او بیا خپله قرضه

وصول کړه.ځکه چې هرکله مرهون معمولي او سپك شئ دې.نو دده لپاره د سپارلو په حق کې واړه خاېونه برابر دي.او هم دا وجه ده.چه په داسې ځيزونو کې باالاجماع د سلم په طريقه د سپارلو لپاره ځائې متعين کول شرط نه دی.او که دا شئ د دوهم ډول ځنې دې.نو مرتهن به خپله قرضه وصول کړي.او مرتهن ته به دا تکليف نشي ورکولې.چه مرهون دهلی ته راحاضر کړه.ځکه چې د مرتهن په ذمه سپارل دی.چه ددې حقيقت تخليه ده.نقل کول په ده ضروری نه دی.او مرتهن ته به نقل کاوه سره ضرر وی.حالانکه ده د ضرر التزام نه دې کړې.

## عادل لپاره مرهون په نقد او پور خرڅولو حکم

وَلَوْسَلَّطَ الرَّاهِنُ الْعَدْلَ عَلٰى بَيْعِ الْمَرْهُوْنِ او که راهن عادل د مرهون په خرڅولو باندې مسلط ( مقرر) کړو فَبَاعَهُ بِنَقْدٍ اَوْنَسِيئَةٍ نو عادل دا په نغدو يا په پور خرڅ کړو جَازَ لِاِطْلَاقِ الْاَمْرِ نو جائز دی.د حکم د مطلق کيدو په وجه فَلَوْطَالَبَ الْمُرْتَهِنُ بِالدَّيْنِ نو که مرتهن د پور مطالبه اوکړله لَايُكَلَّفُ الْمُرْتَهِنُ اِحْضَارَ الرَّهْنِ نو مرتهن به د رهن حاضرولو مکلف نه وی ،لِاَنَّهُ لَاقُدْرَةَ لَهُ عَلَى الْاِحْضَارِ.ځکه چې د مرتهن په حاضرولو باندې قدرت نشته.

حل اللغة" ① سلط:مقرر کړو ② العدل: عادل ﴾

تشريح:- عادل هغه کس ته وائی.چا سره چې د راهن او مرتهن په اتفاق سره مرهون ايخودې شوې دې.نوکه راهن عادل ته اووئيل.چه مرهون خرڅ کړه.نو چونکه د راهن حکم مطلق دې.نو دا به نقد او پور دواړو ته ګډ وی.نو که عادل دا پور خرڅ کړو.نو جائز دی.بهرحال په دې مهال کې مرتهن د راهن نه د خپلې پور مطالبه اوکړله.نو دده مطالبه په حق ده.خو دلته کې به مرتهن ته دا حکم نشی ورکولې.چه هغه مخکې رهن حاضر کړی.ځکه چې اوس مرتهن ته د رهن حاضرولو قدرت نشته...کما هو ظاهر..

## مرتهن ته د مرهون خرڅولو د اجازت حکم

وَكَذَا اِذَا اَمَرَ الْمُرْتَهِنُ بِبَيْعِهِ او هم دغه ډول ( حکم دې) کله چې راهن مرتهن ته حکم ورکړو.د مرهون د خرڅولو فَبَاعَهُ نو مرتهن دا خرڅ کړو وَلَمْ يَقْبِضِ الثَّمَنَ او په ثمن ئې قبضه اونکړله لِاَنَّهُ صَارَ دَيْنًا ځکه چې دا دين شوې دې بِالْبَيْعِ بِاَمْرِ الرَّاهِنِ د راهن په حکم سره د خرڅولو په وجه ،فَصَارَ كَاَنَّ الرَّاهِنَ رَهَنَهُ نو داسې شوه.ګويا چې راهن دا ايخودې دې وَهُوَدَيْنٌ په داسې حال کې چې دا دين دې وَلَوْ دست (تصرف) او که مرتهن په ثمن باندې قبضه اوکړله. يُكَلَّفُ اِحْضَارَهُ نو ثمن به حاضر کوی.مکلف به وی لِقِيَامِ الْبَدَلِ مَقَامَ الْمُبْدَلِ د بدل د مبدل قائم مقام کيدو په وجه ،لِاَنَّ الَّذِيْ يَتَوَلّٰى قَبْضَ الثَّمَنِ خو کوم سړې چې په ثمن باندې د قبضه کاوه متولي وی هُوَالْمُرْتَهِنُ هغه به مرتهن وی لِاَنَّهُ هُوَالْعَاقِدُ ځکه چې عاقد هم دې پخپله دې ،فَتَرْجِعُ الْحُقُوْقُ اِلَيْهِ،نو حقوق به هم دده اړخ ته راجع کيږی وَكَمَا يُكَلَّفُ اِحْضَارَ الرَّهْنِ.او مرتهن چې څنګه مکلف وی.د رهن حاضرولو لِاِسْتِيْفَاءِ كُلِّ الدَّيْنِ د پوره پور وصولولو لپاره يُكَلَّفُ لِاِسْتِيْفَاءِ نَجْمٍ دغه ډول به مکلف وی يو قسط وصولولو لپاره قَدْحَلَّ لِاِحْتِمَالِ الْهَلَاكِ د دکوم وخت چې راغلې دې.د هلاکت د احتمال په وجه ثُمَّ اِذَا قَبَضَ الثَّمَنَ بيا کله چې مرتهن په ثمن باندې قبضه اوکړله يُؤْمَرُ بِاِحْضَارِهِ نو ده ته به د ثمن حاضرولو حکم ور کولای شی ،كرده لِاِسْتِيْفَاءِ الدَّيْنِ لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْعَيْنِ.د پور وصولولو دپاره.د ثمن عين قائم مقام کيدو په وجه.

تشريح:- که راهن مرتهن ته اجازت ورکړو.چه هغه مرهون خرڅ کړی.نو مرتهن دا خرڅ کړو.او مرتهن دا ثمن وصول نکړو.نو بيا به هم د مطالبې په وخت مرتهن ته د مرهون حاضرولو حکم نشی ورکولې.ځکه چې اوس رهن عين پاتې نشو.بلکه دين شو.او دده دا دين کيدل د هغه دين په وجه دی. کوم چې د راهن په حکم سره شوې ده.بهرحال دا عين اوس دين شو.او دا دين کيدل د مخکې نه نه وو. بلکه اوس شوی دی.او که دا د مخکې نه دين وی.او دا عادل سره په رهن کې په اتفاق د راهن او مرتهن ايخودلې شوې



وې.نو مرتهن ته به د دين د مطالبې حق وو.دغه ډول دلته کې هم دی.البته که مرتهن ثمن وصول کړې وی.نو چونکه ثمن د مرهون قائم مقام دې.په دې وجه به ده ته د ثمن حاضرولو حکم ورکولې شی.او ددې سره دلته کې دا خبره کول هم ضروری دی.چه مشتری نه د ثمن وصولولو استحقاق مرتهن ته شته.ځکه چې هم دا مرتهن خرڅونکې دې.اګرچه د راهن د اړخه وکيل دې.نو د بيع حقوق به هم دې اړخ ته راجع کيږی.او من جمله د حقوقونه مبيع سپارل دی.او ثمن وصولول دی.

بيا واضحه دې وی.چه پور قسطوار وی.په يوځل نه وی.نو په داسې صورت کې هم هغه حکم دې.کوم چې د پوره پور وصولولو په صورت کې دې.يعنی د قسط ادا کاوه په وخت به هم د ثمن حاضرولو هم هغه شان حکم وی.لکه څنګه چې د پوره پور ادا کاوه په وخت د رهن حاضرولو حکم دې. ځکه احتمال شته ،چه مرهون هلاك شوې وی.نو بيا به دا قسط ادا کول هم لازم نه وی.بهرحال هرکله چې مرتهن د راهن په حکم مرهون خرڅ کړې وی.نو ددې ثمن وصولول به د مرتهن کار وی.بيا کله چې مرتهن ثمن وصول کړو.نو ده ته به د خپلې پور وصولولو حکم ورکولې شی.چه مذکوره ثمن حاضر کړه.ځکه چې دا ثمن د عين مرهون قائم مقام دې.

## د رهن د غلام قتل کيدو حکم

وَهٰذَا بِخِلَافِ او دا حکم د هغه صورت خلاف دې مَا اِذَا قَتَلَ رَجُلٌ الْعَبْدَ الرَّهْنَ خَطَأً کله چې يو سړی د رهن غلام په خطاء قتل کړو حَتّٰى قَضٰى بِهٖ بِالْقِيْمَةِ عَلٰى عَاقِلَتِهٖ تردې چې دده په خاندان باندې د قيمت فيصله اوکړې شوه فِىْ ثَلَاثِ سِنِيْنَ په دريو کالو لَمْ يُجْبَرِ الرَّاهِنُ عَلٰى قَضَاءِ الدَّيْنِ نو راهن به د پور په ادا کاوه باندې نشی مجورولې حَتّٰى يُحْضِرَ كُلَّ الْقِيْمَةِ،تردې چې مرتهن پوره قيمت حاصل کړی لِاَنَّ الْقِيْمَةَ خَلَفٌ عَنِ الرَّهْنِ ځکه چې قيمت د رهن خليفه دې فَلَا بُدَّ مِنْ اِحْضَارِ كُلِّهَا نو د پوره قيمت حاضرول ضروری دی كَمَا لَا بُدَّ مِنْ اِحْضَارِ كُلِّ عَيْنِ الرَّهْنِ لکه څنګه چې د پوره عين رهن حاضرول ضروری دی وَمَا صَارَتْ قِيْمَةً او دا قيمت نه جوړيږی بِفِعْلِهٖ،د راهن په فعل سره وَفِيْمَا تَقَدَّمَ صَارَ دَيْنًا بِفِعْلِ الرَّاهِنِ او په رومبی صورت کې دين شوې وو.د راهن په فعل سره فَلِهٰذَا افْتَرَقَا په دې وجه دا په دواړو صورتونو کې جلا جلا شو.

تشريح:- که د رهن غلام چا په خطاء قتل کړو.او قاضی د قاتل په عاقله ( خاندان) باندې دغلام قيمت واجب کړو.چه دا به دوی دريو کالو کې قسطوار ادا کوی.نو دلته مرتهن، راهن په پور ادا کاوه باندې نشی مجبورولې.ترکومه پورې چې د غلام پوره قيمت حاضر نکړی.ځکه چې قيمت د رهن خليفه دې.نو لکه څنګه چې د رهن موجود کيدو په صورت کې پوره رهن حاضرول ضروری دی.دلته کې هم د پوره قيمت حاضرول ضروری دی.او وجه د توپير دا ده.چه دلته کې د رهن قيمت جوړيدل د راهن په فعل سره دی.په دې وجه رومبی صورت کې رهن حاضرول ضروری نشو.او دلته کښې رهن حاضرول ضروری شو.

## بل چا سره د رهن امانت کيخودو د اجازت حکم

وَلَوْوَضَعَ الرَّهْنَ عَلٰى يَدِ الْعَدْلِ او که راهن مرهون د عادل سره کيخودو وَاَمَرَ اَنْ يُوْدِعَهُ غَيْرَهُ او هغه ته ئې اجازت ورکړو چې هغه د ځان نه علاوه سره دا امانت کيږدی فَفَعَلَ نو هغه اوکړل ثُمَّ جَاءَ الْمُرْتَهِنُ يَطْلُبُ دَيْنَهُ بيا مرتهن د خپل پور مطالبه اوکړله لَايُكَلَّفُ اِحْضَارَ الرَّهْنِ نو دې به په رهن حاضرولو نشی مکلف کولې لِاَنَّهُ لَمْ يُؤْتَمَنْ عَلَيْهِ ځکه چې ده باندې اعتماد اونکړې شو حَيْثُ وُضِعَ عَلٰى يَدِ غَيْرِهٖ په دې حيثيت سره.چه راهن ( مرهون) دده نه علاوه سره کيخودې دې ،فَلَمْ يَكُنْ تَسْلِيْمُهُ فِىْ قُدْرَتِهٖ.نو ددې سپارل د مرتهن په قدرت کې نه دی.

تشريح:- په رومبو صورتونو کې اکثر صورتونه هغه دی.په کومو کې چې مرتهن ته د رهن حاضرولو حکم ورکولې شی.خو په دې صورت کې به مرتهن ته د رهن حاضرولو حکم نه ورکولې کيږی.او ددې نه بغير به ده ته د خپل غوښتلو اختيار وی.صورت د مسئلې دا دې.چه زيد د خالد نه پور واخستلو.خالد د رهن کيخودو

مطالبه اوکړله.خو دا رهن ئې خالد سره کېښخودو.بلکه يو عادل سره کيښودې شو.او ددې سره راهن عادل ته دا اجازت هم ورکړو.چه ته دا د بل چا سره کيښودې شې.نو عادل دا د بل چا سره رهن کيښودو.نو خالد ته حق شته.چه هغه د زيد نه د خپل پور مطالبه اوکړي.او دلته کې به خالد ته د رهن حاضرولو حکم نه ورکولې کيږي.ځکه چې رهن حاضرول د خالد په توان کې نه دی.

## خپل اهل وعيال سره د امانت ايخودو نه روسته د غائب کيدو حکم

وَلَوْوَضَعَهُ الْعَدْلُ فِيْ يَدِ وکه رهن عادل هغه چا سره کيښودو مَنْ فِيْ عِيَالِهٖ چې هغه دده عيال کې دې وَغَابَ او عادل غائب شو وَطَلَبَ الْمُرْتَهِنُ دَيْنَهٗ .او مرتهن د خپل پور مطالبه اوکړله وَالَّذِيْ فِيْ او د چا په قبضه کې چې رهن دې يَدِهٖ يَقُوْلُ اَوْدَعَنِيْ فُلَانٌ هغه وائي.چه فلاني زما سره دا وديعت ايخودې دې وَلَا اَدْرِيْ لِمَنْ هُوَ او ماته معلومه نه ده.چه دا د چا دې يُجْبَرُ الرَّاهِنُ عَلٰى قَضَاءِ الدَّيْنِ نو راهن به په پور ادا کاوه باندې مجبورولې شي لِاَنَّ اِحْضَارَ الرَّهْنِ لَيْسَ عَلَى الْمُرْتَهِنِ ځکه چې رهن حاضرول د مرتهن په ذمه نه دی لِاَنَّهٗ لَمْ يَقْبِضْ ځکه چې ده په څه شي باندې قبضه نه ده کړې وَكَذٰلِكَ اِذَا غَابَ الْعَدْلُ بِالرَّهْنِ او دغه ډول کله چې عادل سره د رهن، غائب شو شَيْئًا. وَلَا يُدْرٰى اَيْنَ هُوَ لِمَا قُلْنَا .او دا خبره معلومه نه ده.چه هغه چرته دې.د هغه دليل په وجه.کوم چې مونږ بيان کړې دې.

تشريح:- د عيال نه مراد هغه کس دې.کوم چې دده په کفالت ( پرورش) کې وی.او دهغه د نان نفقې ذمه وارعادل وی... وسياق تفصيله.. عادل رهن د داسې کس سره وديعت کيښودو.او غائب شو.کوم چې دده په عيال کې دې.دلته کې مرتهن د خپلې پور مطالبه اوکړله.او عادل چې چا سره مرهون ايخودې وو. او غائب شوې وو.هغه اووئيل.چه د فلاني وديعت خو زما سره دې.خو ما ته دا پته نشته.چه دا دچا دې.نو راهن به په پور ادا کاوه باندې مجبورولې شي.بغير د حاضرولو د رهن نه.ځکه چې مرتهن د سره په رهن باندې قبضه نه ده کړې.نو د حاضرولو حکم به څنګه ورکولې شي؟ او هم دغه ډول که عادل رهن واخستلو.او غائب شو.او دا معلومه نشي.چه هغه چرته دې.نو بيا به هم راهن په پور ادا کاوه باندې مجبورولې شي.د هغه تيرشوی دليل په وجه.

## د مودع د رهن د امانت نه د انکار حکم

وَلَوْاَنَّ الَّذِيْ اَوْدَعَهُ الْعَدْلُ او که هغه سړي چا سره چې عادل وديعت ايخودې دې يَجْحَدُ الرَّهْنَ د رهن نه انکار اوکړي وَقَالَ هُوَ مَالِيْ او اووائي.چه دا خو زما مال دې لَمْ يَرْجِعِ الْمُرْتَهِنُ عَلَى الرَّاهِنِ بِشَيْءٍ نو مرتهن به د راهن نه هيڅ نه اخلی حَتّٰى يَثْبُتَ كَوْنُهٗ رَهْنًا تردې چې مرتهن ددې رهن کيدل ثابت کړي ،لِاَنَّهٗ لَمَّا جَحَدَ الرَّهْنَ فَقَدْ تَوِيَ الْمَالُ ځکه چې مودع هرکله انکار اوکړو.نو مال ضائع شو وَالتَّوِيْ عَلَى الْمُرْتَهِنِ او هلاکت په مرتهن باندې راځي فَيَتَحَقَّقُ اسْتِيْفَاءُ الدَّيْنِ وَلَا يَمْلِكُ الْمُطَالَبَةَ بِهٖ .نو د پور وصولول متحقق شو.نو مرتهن به د دين د مطالبې حقدار نه وی.

تشريح:- وړاندې تير شوی دی.که مرهون هلاک شي.نو ددې هلاکت مرتهن باندې پريوځي.او د رهن د هلاکت په صورت کې مرتهن د خپلې پور وصولونکې شمارلې کيږي.نو که هغه کس چاسره چې عادل رهن ايخودې دې.او غائب شوې دې.د رهن انکار اوکړي.او داسې اووائي.چه دا خو زما مال دې.رهن نه دې.نو دا د رهن د هلاکت صورت دې.چه دا به په مرتهن باندې راپريوځي.ځکه عادل ته دا حق شته.چه هغه رهن بل چا سره وديعت کيږدی.چه دا ( حق) د راهن او مرتهن په اجازت سره ملاو شوې دې.نو په ذکر شوی صورت کې مرتهن د راهن نه خپل پور نشي وصولولې.بلکه د هلاکت په وجه دې د پور وصولولو والا شمارلې کيږي.البته که په دعوې او ګواهانو سره مرتهن ددې رهن کيدل ثابت کړي.نو مرتهن ته به د دين د مطالبې



حق وی.ګني نه به وی.

## مرتهن څومره پورې رهن ځان سره ساتلې شي

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل وَاِنْ كَانَ الرَّهْنُ فِيْ يَدِهٖ او که رهن د مرتهن په قبضه کې وی لَيْسَ عَلَيْهِ اَنْ يُمَكِّنَهٗ مِنَ الْبَيْعِ نو مرتهن باندې ضروری نه ده.چه هغه راهن ته د مرهون خرڅولو قدرت ورکړي حَتّٰى يَقْضِيَهُ الدَّيْنَ تردې چې راهن دده قرضه ادا کړي.لِاَنَّ حُكْمَهُ الْحَبْسُ الدَّائِمُ ځکه چې د رهن حکم حبس دائم (هميشه ګيرول) دی اِلٰى اَنْ يَقْضِيَ الدَّيْنَ عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ.تردې چې راهن قرضه ادا کړي.د هغه تفصيل مطابق کوم چې مونږ( په پيل د کتاب الرهن کې ) بيان کړې دې.

تشريح:- ترکومه پورې چې مرتهن خپله قرضه وصول نکړي.تر هغه وخته پورې هغه ته حق شته.چه رهن واپس نکړي.نو که راهن، رهن خرڅول اوغواړي.نو مرتهن باندې ضروری نه ده.چه هغه رهن خرڅ کړي.

## د دريو مسئلو وضاحت

وَلَوْقَضَاهُ الْبَعْضَ او که مرتهن ته ئې څه پور ادا کړو . فَلَهٗ اَنْ يَحْبِسَ كُلَّ الرَّهْنِ نو مرتهن ته حق شته.چه هغه پوره رهن ځان سره ګير اوساتی حَتّٰى يَسْتَوْفِيَ الْبَقِيَّةَ اعْتِبَارًا بِحَبْسِ الْمَبِيْعِ تردې چې پاته ( قرض) وصول کړي.د مبيع په حبس ( قيد) باندې قياس کاوه سره فَاِذَا قَضَاهُ الدَّيْنَ نو کله چې راهن مرتهن ته پوره قرضه ادا کړله قِيْلَ لَهٗ سَلِّمِ الرَّهْنَ اِلَيْهِ نو مرتهن ته به ونيلې شي.چه رهن، راهن ته حواله کړه ،لِاَنَّهٗ زَالَ الْمَانِعُ مِنَ التَّسْلِيْمِ ځکه چې کوم شئ د سپارلو نه مانع وو.هغه زائل شو لِوُصُوْلِ الْحَقِّ اِلٰى مُسْتَحِقِّهٖ حق ددې مستحق ته د رسيدو په وجه فَلَوْهَلَكَ قَبْلَ التَّسْلِيْمِ نو که رهن هلاک شو.د سپارلو نه مخکې اِسْتَرَدَّ الرَّاهِنُ مَا قَضَاهُ نو راهن به هغه مال واپس اخلی.کوم ئې چې مرتهن ته ادا کړې وو ،لِاَنَّهٗ صَارَ مُسْتَوْفِيًا عِنْدَ الْهَلَاكِ بِالْقَبْضِ السَّابِقِ ځکه چې مرتهن د هلاکيدو په وخت د مخکنئ قبضې په وجه وصولونکې شو،فَكَانَ الثَّانِيْ اسْتِيْفَاءً بَعْدَ اسْتِيْفَاءٍ فَيَجِبُ رَدُّهٗ نو بل ( دويم) وصولول به د وصولولونه روسته وصولول وی. نو ددې ( دويم) واپس کول به واجب وی.

تشريح:- په دې عبارت کې درې مسئلې دی① په مسئلو د بيع کې بائع ته دا حق وی.چه ترکومه پورې مشتري ثمن ادا نکړي.مبيع حواله نکړي.بلکه ځان سره دې بند اوساتی.اوکه مشتري څه ثمن ادا کړو.او څه پاته دې.بيا هم بائع ته حق شته.چه د پوره ثمن وصولولو پورې مبيع ځان سره ګير اوساتی.دغه ډول که راهن بعضې قرضه ادا کړله.او څه پاته ده.نو مرتهن ته حق شته.چه ترکومه پورې راهن پوره قرضه ادا نکړي.مرهون ځان سره ګير ساتلې شي.② کله چې راهن پوره قرضه ادا کړله.نو اوس مرتهن ته داحق نشته. چې مرهون خپل ځان سره بند اوساتی.ځکه چې مرتهن خپل حق وصول کړو.نو په کوم بنا (بنياد) چې مرتهن ته د بندولو حکم وو.هغه بنا (بنياد) ختم شو.③ راهن پوره قرضه ادا کړله.د دين ادا کاوه نه پس.اتفاقی داسې اوشوه.چه مرهون د مرتهن سره هلاک شو.نو راهن چې کومه قرضه ادا کړې وه.هغه به واپس اخلی.ځکه چې مرتهن ددې هلاکاوه په وجه د خپلې پور وصولونکې شو.نو دا بل ډبل ( دوې (دوه) ځل) وصولول وی.ددې نه د بچ کيدو لپاره ددې واپس کول ضروری دی.

## د دريو مسئلو بيان

وَكَذٰلِكَ لَوْتَفَاسَخَا الرَّهْنَ و هم دغه ډول که دواړو رهن فسخ کړو لَهٗ حَبْسُهٗ مَا لَمْ يَقْبِضِ الدَّيْنَ نو مرتهن به رهن ګيره وی.تر کومه پورې چې دې قرضه باندې قبضه اونکړي اَوْيُبْرِئَهٗ، يا راهن د پور نه بری کړي وَلَا يَبْطُلُ الرَّهْنُ و رهن نه باطليږي اِلَّا بِالرَّدِّ عَلَى الرَّاهِنِ عَلٰى وَجْهِ الْفَسْخِ مګر راهن باندې د فسخ کاوه په طريقه باندې واپس کاوه سره ،لِاَنَّهٗ يَبْقٰى مَضْمُوْنًا مَا بَقِيَ الْقَبْضُ وَالدَّيْنُ ځکه چې رهن به مضمون پاته پاتې وی.ترکومه

پورې چې قبضه او دين پاته وي وَلَوْهَلَكَ فِي يَدِهٖ سَقَطَ الدَّيْنُ او كه مرهون د مرتهن په قبضه كې هلاك شي.نو پور به ساقطيږي إِذَا كَانَ بِهٖ وَفَاءٌ بِالدَّيْنِ لِبَقَاءِ الرَّهْنِ.كله چې دا ( رهن) د دين برابر وي.د رهن د پاته پاتې كيدو په وجه.

**تشريح:**- په دې عبارت كې هم درې مسئلې دي.① لكه څنګه چې مرتهن ته حق شته.چه تركومه پورې خپل حق وصول نكړي تر هغه وخته پورې مرهون بند اوساتي.دغه ډول كه راهن او مرتهن دواړو زباني فسخ اوكړله. خو اوس هم مرهون د مرتهن په قبضه كې دې.نو اوس به رهن فسخ نه وي.نو مرتهن ته به اوس هم ددې د منع كاوه ( او خان سره د ساتلو) حق وي.تر كومه پورې چې راهن ددې قرضه ادا نكړي.يا مرتهن راهن د پور نه برى كړي.د برى كاوه او د پور ادا كاوه نه روسته به مرتهن ته د خان سره ساتلو حق نه وي.② رهن به هغه وخت باطل وي.كله چې د فسخ په طريقه مرتهن، راهن ته رهن اوسپاري.ګنى تركومه پورې چې دين سره قبضه د مرتهن پاته وي.په دې به د رهن احكام جاري كيږي.او د مخكې پشان به رهن مضمون وي.③ د رهن بطلان به زباني فسخ سره هغه وخت كيږي.كله چې مرتهن،راهن ته مرهون اوسپاري .ګنى نه به وي.نو كه د زباني فسخې نه روسته مرهون واپس نكړې شو.او د مرتهن په قبضه كې دا هلاك شو.نو دا رهن به مضمون وي.او كه ددې قيمت د پور برابر دې.نو پور به ساقطيږي.اوكه كم دې.نو د مخكې پشان به پاته پاتې (قرض) د راهن نه وصول كوي.او دلته د پور ساقطيدو وجه دا ده. چې د واپس كاوه نه مخكې رهن پاته دې.نو په دې به د رهن احكام جاري كيږي.

**مرتهن د رهن نه فائده اخستې شي اوكه نه؟**

وَلَيْسَ لِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يَنْتَفِعَ بِالرَّهْنِ او مرتهن ته دا حق نشته.چه هغه د مرهون نه نفع واخلي لَا بِاسْتِخْدَامٍ، وَلَا يُسْكُنَى نه په طريقه د خدمت، او نه په طريقه د اوسيدو وَلَا لُبْسٍ او نه په طريقه د اغوستلو إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ الْمَالِكُ مګر دا چې ده ته مالك اجازت وركړي «لِأَنَّ لَهُ حَقَّ الْحَبْسِ دُونَ الِانْتِفَاعِ.څكه چې مرتهن ته د ګيرولو حق دې.د نفع اخستلو نه دې.

**حل اللغة**• ① **الاستخدام:** طلب د خدمت ② **الانتفاع:** فائده اخستل﴾

**تشريح:**- مرتهن لپاره جائز نه ده.چه هغه مرهون نه نفع حاصله كړي.يعنى كه دا غلام دې.نو دده نه د خدمت اخستلو جواز نشته.اوكه كور دې.نو په دې كې د اوسيدو جواز نشته.اوكه دا كپړه ده.نو ددې د اغوستلو جواز نشته.څكه چې مرتهن ته د نفع اخستلو حق نشته.بلكه صرف د ګيرولو حكم دې.البته كه راهن اجازت وركړي.نو بيا انتفاع جائز ده.

مسئله• د مرهون نه انتفاع حرام ده.او سود دې.اګرچه راهن هم اجازت وركړي.څكه چې سود په اجازت ور كاوه سره نه حلاليږي.او،، المعروف كالمشروط،، قاعده كليه ده.او اوس غالب ( ګمان) هم دا دې.چه خلګ د خلګو زمكې رهن باندې څكه اخلي.چه ددې نه آمدنى ( منافع) حاصل كړي.نو د مرغينانى رحمه الله فرمان د هغوى په زمانه باندې محمول كيداې شي.چه ددوى په زمانه كې د انتفاع او مرهون رواج نه وو.﴿اوګورئ شامى ص ٣١٠ ج٥﴾

**مرتهن لپاره د رهن خرڅولو حكم**

وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَبِيعَ او مرتهن ته حق نشته.چه هغه مرهون خرڅ كړي إِلَّا بِتَسْلِيطٍ مِنَ الرَّاهِنِ، مګر په مقررولو سره.او حق نشته ده ته، وَلَيْسَ لَهُ خو د راهن د ورکړې. أَنْ يُؤَاجِرَ چې مرهون اجاره باندې وركړي وَيُعِيرَ او عاريت باندې لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ وِلَايَةُ الِانْتِفَاعِ بِنَفْسِهٖ او څكه چې ده ته پخپله د فائدو اخستلو ولايت نشته فَلَا يَمْلِكُ تَسْلِيطَ غَيْرِهٖ عَلَيْهِ نو دې به فائدو اخستلو باندې د بل چا مقرر كاوه هم مالك نه وي، فَإِنْ فَعَلَ نو كه مرتهن داسې اوكړل



كَانَ مُتَعَدِّيًا نو ددې زياتې كونكې دې ،وَلَا يَبْطُلُ عَقْدُ الرَّهْنِ بِالتَّعَدِّي..او ددې تعدى ( زياتې) په وجه به عقد رهن نه باطليږي.

**تشريح:**- مرتهن مرهون نشي خرڅولې.البته كه راهن اجازت وركړي.نو خرڅولې شي.دغه ډول مرتهن دا په اجاره باندې يا اعاره باندې نشي وركولې.څكه چې هركله مرتهن ته پخپله ددې نه د نفع اخستلو حق نشته.نو نورو خلګو ته د نفع اخستلو حق څنګه كيداې شي؟ خو كه مرتهن دا په اجاره وغيره باندې وركړو.نو دا دده زياتې دې.خو ددې زياتئ په وجه به عقد رهن نه باطليږي.بلكه عقد رهن به پخپل حال قائم وي.

**په كومو خلقو سره د رهن حفاظت كول جائز دي؟**

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يَحْفَظَ الرَّهْنَ بِنَفْسِهٖ او مرتهن له جائز دى.چه هغه د رهن پخپله ساتنه اوكړي وَزَوْجَتِهٖ او د خپلې ښځې (بى بى ) په ذريعه، وَوَلَدِهٖ او دخپل خوى په ذريعه وَخَادِمِهِ الَّذِي فِي عِيَالِهٖ او د خپل هغه خادم په ذريعه كوم چې دده په عيال كې دې قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ:مرغينانى رحمه الله اوفرمائيل مَعْنَاهُ أَنْ يَكُونَ الْوَلَدُ فِي عِيَالِهٖ أَيْضًا،ددې مطلب دا دې.چه كوم بچې دده په عيال كې وى وَهٰذَا، لِأَنَّ عَيْنَهُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهٖ او دا څكه چې عين رهن مرتهن سره امانت فَصَارَ كَالْوَدِيعَةِ نو دا د وديعت پشان شو وَإِنْ حَفِظَهُ بِغَيْرِ مَنْ فِي عِيَالِهٖ اوكه ده ساتنه دهغه كس نه علاوه سره اوكړو.كوم چې دده په عيال كې نه دې أَوْ أَوْدَعَهُ يا ئې دا وديعت ايخودې وى ضَمِنَ نو مرتهن به ضامن وى هَلْ يَضْمَنُ الثَّانِي او آيا راهن به دوهم كس ضامن جوړه وى؟ فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ نو دا په مشهور اختلاف ( مبنى) دې ،وَقَدْ بَيَّنَّا جَمِيعَ ذٰلِكَ بِدَلَائِلِهٖ فِي الْوَدِيعَةِ.اومونږ دا ټولې خبرې سره ددې د دلائلو په وديعت كې بيان كړې دى.

**تشريح:**- مرتهن باندې ضرورى ده.چه د رهن ساتنه يا پخپله اوكړي.يا خپلې بىبى سره اوكړي.ياخپل څوى سره،يا هغه خادم سره اوكړي.كوم چې دده په عيال كې وى.ګنى كه د نورو په ذريعه ساتنه اوكړي.نو به مرتهن به د مرهون د هلاكت په صورت كې د غصب پشان د پوره قيمت ضمان واجب وى.

①مسئله• عين رهن وديعت ايخودل امانت دې.او د امانت هم هغه احكام دى.كوم چې ذكر شو.

②مسئله• مرغينانى رحمه الله ددې پوره تفصيل ﴿هدايه ج٣﴾ كې بيان كړې دې.يو نظر د هغې مطالعه اوكړئ.

③مسئله• د عيال كيدو مدار د هغه په كور كې اوسيدل دى،كه په ده د هغه نفقه واجب وى.اوكه نه وى.لكه بىبى او دده اولاد، او دده خادم، يا دده مياشتنه مزدور (ماهانه نوكر) ، واړه به دده په عيال كې شمارلې كيږي. كوم چې د روزانه مزدور دې.هغه به عيال كې داخل نه وى.او د شركت مفاوضه او عنان شريك هم د عيال قائم مقام دى.او د بىبى او څوى لپاره دده په عيال كې كيدل شرط نه دى.﴿شامى ص٣١٣ ج٥﴾

**مرتهن لپاره رهن كښې د تعدى حكم**

وَإِذَا تَعَدَّى الْمُرْتَهِنُ فِي الرَّهْنِ وكله چې مرتهن په رهن كې تعدى ( زياتې) اوكړله ضَمِنَهُ نو مرتهن به ددې ضامن وى ضَمَانَ الْغَصْبِ د غصب د ضمان په طريقه بِجَمِيعِ قِيمَتِهٖ ددې د پوره قيمت لِأَنَّ الزِّيَادَةَ عَلَى مِقْدَارِ الدَّيْنِ أَمَانَةٌ څكه چې زياتوالې د دين په اندازه امانت دې «وَالْأَمَانَاتُ تُضْمَنُ بِالتَّعَدِّي.او امانتونه د تعدى په وجه مضمون كيږي.

**حل اللغة**• ① **التعدى:** تجاوز كول، زياتې كول﴾

**تشريح:**- كه د مرتهن د اړخه رهن كې تعدى اوموندې شوه.نو د غصب په مثل به د مرهون د پوره قيمت ضمان واجب وى.څكه چې د رهن كوم مقدار د دين نه زياتى دې.هغه امانت دې.خو څه اوكړې شى.چه د تعدى په صورت كې د امانتونو هم ضمان واجبيږي.

**مرتهن لپاره د رهن د استعمال حكم**

وَلَوْرَهَنَهُ خَاتَمًا او که مرتهن سره ئې ګتمه رهن کیخودله فَجَعَلَهُ فِي خِنْصِرِهٖ نو هغه دا په کچه ګوته کې واچوله فَهُوَ ضَامِنٌ نو هغه به ضامن وي، لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ بِالْاِسْتِعْمَالِ ځکه چې هغه د استعمال په وجه زیاتي کونکې دې، لِأَنَّهُ غَيْرُ مَأْذُونٍ فِيهِ ځکه چې ده ته د استعمال اجازت نشته وَإِنَّمَا الْإِذْنُ بِالْحِفْظِ او اجازت د ساتنه کاوه دې وَالْيُمْنَى وَالْيُسْرَى فِي ذٰلِكَ سَوَاءٌ او په دې سلسله کې ښي لاس او چپه (چپ) لاس برابر دي لِأَنَّ الْعَادَةَ فِيهِ مُخْتَلِفَةٌ ځکه چې دې کې عادت مختلف دې وَلَوْ جَعَلَهُ فِي بَقِيَّةِ الْأَصَابِعِ او که ده دا په پاته ګوتو کې واچوله، كَانَ رَهْنًا بِمَا فِيهِ نو دا به رهن وي. هغه مقدار سره د کوم په عوض چې دا ده، لِأَنَّهُ لَا يَلْبَسُ كَذٰلِكَ عَادَةً ځکه چې په عامه توګه (عام طور) باندې په دې طریقه نشی اچولې فَكَانَ مِنْ بَابِ الْحِفْظِ، نو دا به د ساتنه د طریقو ځنې وي وَكَذَا الطَّيْلَسَانُ إِنْ لَبِسَهُ لُبْسًا مُعْتَادًا او هم دغه ډول که پټو (څادر) ئې په مشهوره طریقه واغوستلو ضَمِنَ، نو ضامن به وي وَإِنْ وَضَعَهُ عَلَى عَاتِقِهِ لَمْ يَضْمَنْ او که دا ئې په اوږه کیخودو. نو ضامن به نه وي.

حل اللغة: ① اليمنى: راسته لاس ② اليسرى: چپه لاس ③ الطيلسان: پټو (څادر) ④ عاتق: اوږه ﴾ ن

تشریح:- مرتهن د مرهون د استعمال په وجه ضامن کیږي. د ساتنه په وجه به ضامن نه وي. او استعمال به هغه وخت وي. کله چې دې دا په عامه طریقه کار کې راولي. ګنی استعمال به ورته نشی وئیلې. نو په ګتمه کې که په کچه ګوته کې ئې ګتمه واچوله. نو دا به د مرهون استعمال وي. او په مرتهن به ضمان واجب وي. او که په پاته ګوتو کې ئې واچوله. چه هغې کې د اغوستلو رواج نه دې. نو دې ته به ساتنه وئیلې شی. نو دلته کې به عام رواج دا دې. چه په خنصر یعنی کچې ګوته کې اغوستلې شی. که ښې لاس وي. او کهچوپ (ګس) وي. نو ضامن نه وي. په دې طریقه ئې که د رهن پټو (څادر) په مشهوره طریقه واغوستلو. نو دا استعمال دې. او که اوګو ئې کیخودلو. نو دا ساتنه دې.

مسئله: ددې نه معلومه شوه. چه سړو له ګتمه په خنصر (کچه ګوته) اچول پکار دی. البته مرتهن ښځه وي. نو په پاته ګوتو کې د اغوستلو په وجه به ضمان واجب وي. ځکه چې ښځو کې عام رواج دې. چه دوی په ټولو ګوتو کې اغوندی. او د خنصر (کچې ګوتې) تخصیص نه کیږي. ﴿اوګورئ سکب الانهر: ص٥١٥ ج٢﴾

## د مرهونه تورې غاړه کښې د رازوړندولو حکم

وَلَوْرَهَنَهُ سَيْفَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً او که مرتهن سره ئې دوې (دوه) یا درې تورې کیخودلې. فَتَقَلَّدَهَا نو مرتهن دا تورې رازوړندې کړې لَمْ يَضْمَنْ ضامن به نه وي فِي الثَّلَاثَةِ که درې وي وَضَمِنَ فِي السَّيْفَيْنِ. او په دوې (دوه) تورو کې به ضامن وي. لِأَنَّ الْعَادَةَ جَرَتْ بَيْنَ الشُّجْعَانِ بِتَقَلُّدِ السَّيْفَيْنِ فِي الْحَرْبِ ځکه عادت جاری دې د بهادرانو په منځ کې په جنګ کې د دوې (دوه) تورو رازوړندولو وَلَمْ تَجْرِ بِتَقَلُّدِ الثَّلَاثَةِ. او عادت جاری نه دې. د دریو تورو د رازوړندولو.

حل اللغة: ① تقلد: زوړند کړلو ② السيفين: تثنیه دسیف، توره ③ الشجعان: جمع د شجاع، بهادر﴾

تشریح:- په غاړه کې د دوې (دوه) تورو رازوړندلو عام رواج دې. او د دریو عادت نه دې. نو که مرتهن درې تورې په غاړه کې واچولې. نو دې ته به استعمال نشی وئیلې. بلکه دا ساتنه دې. او که دوې (دوه) ئې رازوړندې کړې. نو دا استعمال دې. او اوس به ضامن وي. او په دریو کې به ضامن نه وي.

## مرتهن لپاره په یوه ګتمه کښې د دوې (دوه) مرهونه ګتمو اچولو حکم

وَإِنْ لَبِسَ خَاتَمًا او که ده د (یوې) ګتمې سربیره (بله) ګتمه واچوله فَوْقَ خَاتَمٍ، إِنْ كَانَ هُوَ مِمَّنْ يَتَجَمَّلُ بِلُبْسِ خَاتَمَيْنِ که دې د هغه خلګو ځنې وي. چه هغوی دوې (دوه) ګتمو اچولو سره ښائست اختیاره وي ضَمِنَ نو ضامن به وي، وَإِنْ كَانَ لَا يَتَجَمَّلُ بِذٰلِكَ. او که دې په دې سره زینت نه حاصلوی فَهُوَ حَافِظٌ فَلَا يَضْمَنُ. نو دې ساتنه کونکې دې. نو ضامن به نه وي.



تشریح:- مرتهن د رهن ګتمه په یوه ګوته کې دوې (دوه) واغوستلې. نو اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل. چه مدار په عادت دې. یعنی که دده عادت دا وي. چه دې په یوه ګوته کې ډبل ډبل (دوې (دوه) دوه) ګتمې اچوی. نو دې ته به استعمال وئیلې شی. او ضمان به واجب وي. او که دده په دې طریقه عادت نه دې. نو دا به د ساتنه د قبیلې نه شمارلې کیږي. او ضمان به واجب نه وي.

## د مرهونه څیز د حفاظت د اجرت مسئله

قَالَ وَأُجْرَةُ الْبَيْتِ الَّذِي يُحْفَظُ فِيهِ الرَّهْنُ او د هغه کور اجرت په کوم کې چې د مرهون ساتنه کولای شی عَلَى الْمُرْتَهِنِ د مرتهن په ذمه دي وَكَذٰلِكَ أُجْرَةُ الْحَافِظِ او هم دغه ډول د ساتنه کونکی (څوکیدار) اجرت وَأُجْرَةُ الرَّاعِي او د څرونکی اجرت وَنَفَقَةُ الرَّهْنِ عَلَى الرَّاهِنِ او د مرهون نفقه د راهن په ذمه ده وَالْأَصْلُ أَنَّ مَا يَحْتَاجُ إِلَيْهِ لِمَصْلَحَةِ الرَّهْنِ او قاعده کلیه دا ده. چه د کوم شئ حاجت راپیښ شي. د مرهون د مصلحت لپاره وَتَبْقِيَتِهِ او د هغې د پاته ساتلو لپاره فَهُوَ عَلَى الرَّاهِنِ سَوَاءٌ كَانَ فِي الرَّهْنِ فَضْلٌ أَوْ لَمْ يَكُنْ نو هغه د راهن په ذمه دې. که رهن په دین باندې زیات وي. او که نه وي لِأَنَّ الْعَيْنَ بَاقٍ عَلَى مِلْكِهِ ځکه چې عین دده په ملك باندې پاته دې وَكَذٰلِكَ مَنَافِعُهُ مَمْلُوكَةٌ لَهُ او هم دغه ډول ددې منافع د راهن مملوك دی، فَيَكُونُ إِصْلَاحُهُ وَتَبْقِيَتُهُ عَلَيْهِ نو ددې اصلاح او ددې پاته ساتل به د راهن په ذمه وي، لِمَا أَنَّهُ مُؤْنَةُ مِلْكِهِ ځکه چې دا دده د ملك مؤونت (او حفاظت) دې كَمَا فِي الْوَدِيعَةِ لکه څنګه چې ودیعت کې کیږي وَذٰلِكَ مِثْلُ النَّفَقَةِ فِي مَأْكَلِهِ وَمَشْرَبِهِ او دا لکه څنګه چې دده د خوراك څکاك نفقه ده، وَأُجْرَةُ الرَّاعِي فِي مَعْنَاهُ، لِأَنَّهُ عَلَفُ الْحَيَوَانِ. او د څرونکی اجرت دې. هم په دې درجه کې دې. ځکه چې دا د څاروی ګیا (ونډه) ده.

حل اللغة: ① علف: ګیاه ② تبقية: پاته پاتې کول﴾

تشریح:- وړاندې دا خبره تیره شوې ده. چه مرهون مرتهن سره محبوس (ګیر) وي. اوس په دې باندې دا سوال پیدا کیږي. چه ددې نفقه به په چا واجب وي. او په کوم کور کې چې ددې ساتنه کولې شی. د هغې کرایه به څوك ورکوی. ددې د ساتنه لپاره چې کوم اجیر (مزدور) پریښودې شی. نو دده مزدوری به څوك ورکوی؟ نو په دې سلسله کې یوه قاعده کلیه بیان کړې شوې ده. چه کوم شئ د ساتنه د باب ځنې وی. هغه خو د مرتهن په ذمه دې. او کوم شئ چې د اصلاح او د پاته پاتې کیدو د باب ځنې وي. هغه به د راهن په ذمه وي. نو قاعده کلیه دا ده. او په هرصورت کې حکم دغه دې. که د رهن قیمت د پور نه زیات وي. نوهم. او که کم وي. نو بیا هم. نو په اطاق کې چې دا ایخودې شوې وي. دا خبره د ساتنه ځنې ده. او دغه ډول د څوکیدار مقرر کول هم د باب د ساتنه ځنې دی. نو د کور کرایه او د څوکیدار مزدوری به مرتهن باندې واجب وي. او د څرونکی اجرت او د مرهون نفقه او کپړه واړه به د راهن په ذمه وي. او ددې وجه داده. چه د مرهون عین د راهن ملکیت دې. او منافع د مرهون هم د راهن ملکیت دی. او ملکیت لپاره چې کوم شئ د اصلاح او د پاته پاتې کیدو لپاره وي. هغه د مالك په ذمه واجب وي. هم دا وجه ده. چه په خالص ودیعت کې هم د اصلاح او بقاء شیان د مالك په ذمه وي.

که څوك دا اعتراض اوکړي چې راعی (څرونکې) چې څنګه حیوان (څاروې) څروی. نو ددې ساتنه هم کوی. نو د څرونکی اجرت دواړو باندې کیدل پکاردی؟ نو د دې ځواب دا دې چې د څرونکی اصل مقصد پوول دی. چه دا د اصلاح او د بقاء د باب ځنې دی. او ساتنه ضمنی شئ دې. په دې وجه به د څرونکی پوره اجرت د راهن په ذمه وي.

که څوك دا ووایي چې ددې څه دلیل دې. چه د څرونکی اصل مقصد ساتنه نه دې؟ نوموږ د دې ځواب کوو که یوکس د چراګاه نه حیوان (څاروې) پټ (غلا) کړي. نو د هغه لاس به نشی کټ کولې. که څرونکې محافظ وې. نو د محفوظ مقام نه د غلا کاوه په وجه به لاس کټ کیدو.

## د اصلاح او د ابقاء څيزونه

وَمِنْ هٰذَا الْجِنْسِ او هم ددې جنس ( يعنى د اصلاح او د ابقاء) دجنس څنې دی كِسْوَةُ الرَّقِيقِ د غلام كپړې وَأُجْرَةُ ظِئْرِ وَلَدِ الرَّهْنِ اود مرهون د بچې لپاره د رضاعى مور اجرت وَسَقْيُ الْبُسْتَانِ او باغ له اوبه وركول ،وَكَرْيُ النَّهْرِ او وياله كنستل ،وَتَلْقِيحُ نَخِيلِهِ او د باغ په ونو كي ماده كي د نر غوټۍ لګول وَجُذَاذُهُ، او ددې ميوې شوكول وَالْقِيَامُ بِمَصَالِحِهِ.او ددې نورو مصلحتونو لپاره قائم پاتې كيدل.

**حل اللغة** ① **كسوة الرقيق**: دغلام جامې ② **البستان**: باغ ③ **تلقيح**: قلم لګول ،په نر كي د مادې تيغه لګول ﴾

**تشريح**:- د كومو څيزونو شمار چې د اصلاح او د ابقاء د باب څنې دی.مرغينانى رحمه الله د هغې نه د بعضو امورو نشاندهي كوی.فرمائی① د غلام كپړې هم ددې جنس څنې دی.نو دا به د راهن په ذمه وی.② يوه وينځه رهن كيخودې شوه.چه ددې بچې پيدا شو.او د وينځې شيدې نه راكوزيږی.نو بچې لپاره د رضاعى مور په اجرت باندې د نيولو اړتيا راپيښيږی.نو اجرت به د راهن په ذمه وی.③ باغ ئې رهن كيخودلو.نو ددې اوبه خور كول به د راهن ذمه وارى وی.④ كه د باغ د اوبه خور لپاره د نالۍ ( لختى) كنستلو اړتيا وی.نو دا كار به هم د راهن په ذمه وی.⑤ په ماده ونو كي د نر ونو غوټۍ لګولو كار به هم د راهن په ذمه وی.دې تلقيح ته تابير ( قلمى كول) وائى.او دا جائز دې.او د الله ﷻ په حكم تابير ( قلمى كولو) سره ميوې زياتې نيسى.⑥ او ددې نه علاوه چې څومره امور دی.چه هغه د باغ د اصلاح او ابقاء لپاره ضرورى دی.هغه به واړه د راهن په ذمه وی.كه پخپله ئې كوی.او كه په مزدور ئې كوی.

## د مرهونه څيز حفاظت، او د واپس كولو اجرت د مرتهن په ذمه دې

وَكُلُّ مَا كَانَ لِحِفْظِهِ او هرهغه كار چې د مرهون د ساتنه لپاره وی أَوْلِرَدِّهِ إِلَى يَدِ الْمُرْتَهِنِ يا دا مرتهن اړخ ته د واپس كاوه لپاره وی أَوْلِرَدِّ جُزْءٍ مِنْهُ يا ددې د يو جزء واپس كاوه لپاره وی.فَهُوَ عَلَى الْمُرْتَهِنِ هغه د مرتهن په ذمه دی مِثْلُ أُجْرَةِ الْحَافِظِ لكه د ساتنه كونكى مزدورى لِأَنَّ الْإِمْسَاكَ حَقٌّ لَهُ څكه چې امساك ( منع كول) د مرتهن حق دې ،وَالْحِفْظُ وَاجِبٌ عَلَيْهِ او ساتنه كول مرتهن باندې واجب دې فَيَكُونُ بَدَلُهُ عَلَيْهِ نود ساتنه عوض به مرتهن باندې وی. وَكَذٰلِكَ أُجْرَةُ الْبَيْتِ الَّذِي يُحْفَظُ الرَّهْنُ فِيهِ او هم دغه ډول د هغه كور اجرت،په كوم كي چې د رهن ساتنه كولای شی ،وَهٰذَا فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ.او دا په ظاهرالرواية كي دی.

**تشريح**:- كوم كار چې د ساتنه د باب څنې وی.هغه د مرتهن په ذمه وی.اوكه مرتهن اوتختى.نو ددې واپس كول هم د باب د ساتنه څنې دی.نو واپس راوړل،يا ددې مزدورى به هم د مرتهن په ذمه وی.دغه ډول كه مرتهن بيمار شی.نو ددې علاج معالجه ګويا چې ددې د جزء واپس كول دی.نو دا هم د مرتهن په ذمه دې دغه ډول د ساتنه كونكى مزدورى هم د مرتهن په ذمه ده.څكه چې دا د ساتنه د باب څنې دی.څكه چې مرتهن ته د مرهون د ګيرولواو بندولو حق دې.نو ساتنه به هم دده په ذمه ضرورى وی.نو د ساتنه عوض به هم دده په ذمه ضرورى وی.دغه ډول په كومه اطاق كي چې د مرهون ساتنه كولې شی.د هغې كرايه به هم د مرتهن په ذمه وی.او دا ظاهرالرواية دې.

## د امام ابويوسف رحمه الله نقطه نظر

وعن أبي يوسف رحمه الله أن كراء المأوي على الراهن او د امام ابويوسف رحمه الله نه ( په نوادر كي ) نقل دی چې د كور كرايه به په راهن وی بمنزلة النفقة د نفقې مرتبه كي په .څكه چې دا ددې په پاته ساتلو كي كوښښ كول دی.

**تشريح**:- امام ابويوسف رحمه الله فرمائى.چه د كور كرايه به د راهن په ذمه وی.لكه څنګه چې نفقه راهن په ذمه وی.څكه چې لكه څنګه نفقه د اصلاح او ابقاء د اسبابو څنې ده.دغه ډول كور هم د اصلاح او ابقاء د اسبابو څنې دې.



## د مرهون تختيدلى غلام د واپس راوستلو د مزدورۍ مسئله

وَمِنْ هٰذَا الْقِسْمِ جُعْلُ الْآبِقِ او هم ددې ډول نه د تختيدلى غلام ( د واپس راوستلو) جعل ( خرچ) دې فَإِنَّهُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ نو دا د مرتهن په ذمه ده لِأَنَّهُ مُحْتَاجٌ إِلَى إِعَادَةِ الْإِسْتِيفَاءِ څكه چې مرتهن محتاج دې.د يد استيفاء ( دوصولولو د قبضې) واپس كاوه اړخ ته الَّتِي كَانَتْ لَهُ كوم چې ده ته حاصل وو لِيَرُدَّهُ چې دې مرهون (راهن اړخ ته) واپس كړی ،فَكَانَتْ مُؤْنَةُ الرَّدِّ نو دا د واپسۍ د خرچې څنې شو.فَيَلْزَمُهُ، نو دا په مرتهن باندې لازم دې وَهٰذَا او دا ( مرتهن باندې د واپس كاوه خرچه) هغه وخت ده إِذَا كَانَتْ قِيمَةُ الرَّهْنِ وَالدَّيْنِ سَوَاءً كله چې دين او د رهن قيمت برابر وی.

**تشريح**:- كه غلام اوتختى.نو كوم كس چې دې واپس راولى.هغه لپاره جعل ( د واپس راوستلو مزدورى) واجبيږی.دې مزدورۍ ته جعل وائى.﴿په هدايه ج۲﴾ كي د جبس تفصيل ذكر دې.كه غلام مرهون د مرتهن نه اوتختى.نو دده پور به ساقطيږی.هغه هم د پور مطالبه كولې شی.چه مذكوره غلام حاضر كړی.ددې نه معلومه شوه.چه د تختيدلى غلام واپس راوستل د ساتنه د اقسامو څنې دې.نو كوم سړې چې دې واپس راولى.نو دهغه مزدورى به د مرتهن په ذمه وی.خو په مرتهن باندې د پوره مزدورۍ وجوب هغه وخت دې.كله چې د مرهون قيمت او دين برابر وی.ګنى كه د رهن قيمت زيات وی.نو ددې حكم بل شان دې.او هغه دا دې.

## د پور نه د زياتې رهن د ضمان حكم

وَإِنْ كَانَتْ قِيمَةُ الرَّهْنِ أَكْثَرَ او كه د رهن قيمت ( د پور نه) زيات وی فَعَلَيْهِ بِقَدْرِ الْمَضْمُونِ نو د مرتهن په ذمه په اندازه مضمون دې وَعَلَى الرَّاهِنِ بِقَدْرِ الزِّيَادَةِ عَلَيْهِ او راهن باندې د مضمون د زياتى په اندازه دې لِأَنَّهُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ څكه چې زياتى د مرتهن په لاس كي امانت دې. وَالرَّدُّ لِإِعَادَةِ الْيَدِ او واپسى د قبضې واپس كاوه لپاره دې، وَيَدُهُ فِي الزِّيَادَةِ يَدُ الْمَالِكِ او د مرتهن زياتى قبضه د مالك قبضه ده.،إِذْ هُوَ كَالْمُودَعِ فِيهَا څكه چې مرتهن په زياتى كي ( مودع) دې فَلِهٰذَا يَكُونُ عَلَى الْمَالِكِ نو هم په دې وجه به ( په اندازه د زياتوالى مزدورى) د مالك په ذمه وی.

**تشريح**:- د مرهون غلام قيمت دوې (دوه) سوه روپۍ دې.او پور يو سل پنځوس روپۍ دی.او جعل ( د واپس راوستلو مزدورى) مثلاً څلويښت روپۍ دی.نو ديرش د مرتهن په ذمه دی.او لس د راهن په ذمه دی.څكه چې دې په دوې (دوه) سوه روپۍ ماليت كي د يو سل پنځوس روپو ماليت مضمون دې.نو ددې جعل ( مزدورى) به مرتهن وركوی.او پنځوس روپۍ ماليت امانت دې.او امانت كي دمودع قبضه ګويا د مالك قبضه وی.او مودع ګويا د مالك نائب دې.نو ددې په اندازه جعل به د مالك يعنى راهن په ذمه وی.او ۲۰۰\۱۱۵۰ او ۲۰۰\۵۰ كي چې كوم نسبت دې.هم دا نسبت په ۴۰\۱۳۰ او ۴۰\۱۱۰ كي دې.نو په مرتهن باندې ۴۰\۱۳۰ او راهن باندې ۴۰\۱۱۰ مزدورى واجب وی.

## يو اشكال او د هغې جواب

وَهٰذَا بِخِلَافِ أُجْرَةِ الْبَيْتِ الَّذِي ذَكَرْنَاهُ او دا د هغه كور د اجرت خلاف دې.كوم چې مونږ ذكركړې دې فَإِنَّ كُلَّهَا تَجِبُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ څكه چې پوره اجرت مرتهن باندې واجبيږی وَإِنْ كَانَ فِي قِيمَةِ الرَّهْنِ فَضْلٌ اګرچه د رهن په قيمت كي (د پور نه) زياتوالې وی لِأَنَّ وُجُوبَ ذٰلِكَ بِسَبَبِ الْحَبْسِ ،څكه چې ددې ( كور مزدورى) وجوب د جبس ( قيد) په سبب سره دې وَحَقُّ الْحَبْسِ فِي الْكُلِّ ثَابِتٌ لَهُ او دجبس حق مرتهن لپاره په واړه كي ثابت دې فَأَمَّا الْجُعْلُ إِنَّمَا يَلْزَمُهُ نو بهرحال خرچه په مرتهن باندې لازميږی لِأَجْلِ الضَّمَانِ د ضمان په سبب سره ،فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الْمَضْمُونِ نو خرچه به په اندازه د مضمون مقرر وی.

**تشريح**:- په دې عبارت كي د يو اشكال ځواب دې.هغه دا چې كله د رهن قيمت د پور نه زيات وی.نو د دين

په اندازه خرچه د مرتهن په ذمه ده.او د زياتی خرچه د راهن په ذمه ده.نو هم دغه ډول كه د رهن قيمت د دين نه زيات وی.نو د ساتنه د كرائی اطاق په مرتهن باندې په اندازه د مضمون كيدل پكار ده.او د زياتی كرايه راهن باندې كيدل پكار ده.حالانكه تاسو واړه اجرت د مرتهن په ذمه لازم كړې دې؟ نو مرغينانی رحمه الله ددې خواب وركړې دې.

نو د دې ځواب دا دې چې مرتهن پوره مرهون خپل ځان سره ګيره وی.او په ده ساتنه د ګيرولو (او ځان سره د ساتلو) په وجه دې.او حبس د واړه دې.نو پوره اجرت به مرتهن باندې واجب وی.او مرتهن باندې د خرچې لزوم د حبس په وجه نه دې.بلكه د ضمان په وجه دې.او مضمن په اندازه د دين دې.او پاته امانت دې.نو كوم مقدار چې مضمون وی.هم د هغې خرچه به د مرتهن په ذمه وی.او پاته جعل به مالك ادا كوی.

## د زخمونو او دانو او بيمارو علاج.او دجنايت د فديه مسائل

| |
|---|
| وَمُدَاوَاةُ الْجِرَاحَةِ اود زخم علاج، وَالْقُرُوحِ او دانو علاج وَمُعَالَجَةُ الْأَمْرَاضِ او د بيمارو علاج وَالْفِدَاءُ مِنَ الْجِنَايَةِ تَنْقَسِمُ عَلَى الْمَضْمُونِ وَالْأَمَانَةِ او د جنايت ( د مجرمانه حركت) فديه تقسيميږی.په مضمون او امانت باندې. |

حل اللغة: ① مداومة: علاج كول ② الجراحة: زخم

تشريح:- كه غلام مرهون زخمی شی،يا پرې دانې راوځی.يا نورې څه بيماريانې پكې پيدا شی.يا بل څه داسې مجرمانه حركت اوكړی.چه د هغې فديه ادا كول ضروری شی.نو ددې حساب به د مخكې پشان وی.يعنې د مضمون په اندازه علاج او فديه به د مرتهن په ذمه وی.او د امانت په اندازه به د راهن په ذمه وی.مثلاً د مرهون غلام قيمت دوې (دوه) سوه روپۍ دې.او پور يوسل پنځوس روپۍ دی.او په مذكوره څيزونو كې مثلاً شل روپۍ خرچ شوې.نو پنځلس به د مرتهن په ذمه وی.او پنځه به د راهن په ذمه وی.

## خراج به په چا وی؟

| |
|---|
| وَالْخَرَاجُ عَلَى الرَّاهِنِ خَاصَّةً او خراج به خاص طور باندې د راهن په ذمه وی. لِأَنَّهُ مِنْ مُؤَنِ الْمِلْكِ ځكه چې خراج خو د ملكيت بار دې. |

تشريح:- كه خراجی مځكه ني رهن كيخودله.نو ددې خراج به څوك ادا كوی.نو وې فرمائيل.چه راهن به ئې ادا كوی.ځكه چې د زمكې مالك صرف راهن دې.او خراج د ملكيت بار او خرچه ده.نو دا به صرف په راهن باندې وی.

## عشر به په چا وی؟

| |
|---|
| وَالْعُشْرُ فِيمَا يَخْرُجُ مُقَدَّمٌ عَلَى حَقِّ الْمُرْتَهِنِ اوعشرد پيداوار د مرتهن په حق باندې وړاندې دې. لِتَعَلُّقِهِ بِالْعَيْنِ د عشرد متعلق كيدو په وجه، عين سره وَلَا يَبْطُلُ الرَّهْنُ فِي الْبَاقِي او په پاته كې به رهن نه باطليږی. لِأَنَّ وُجُوبَهُ لَا يُنَافِي مِلْكَهُ، بِخِلَافِ الِاسْتِحْقَاقِ ځكه چې د رهن وجوب د راهن د ملك منافی نه دې.په خلاف د استحقاق. |

تشريح:- كوم باغ يا ونې چې مرهون دی.كه دا ميوې اونيسی.نو دا به د راهن ملكيت وی.خو دا به مرتهن سره محبوس ساتلې كيږی.كله چې راهن پور اداكړی.نو واړه به واپس اخلی.او وړاندې تير شوی دی.چه مرهون لپاره ضروری دی.چه هغه مشترك نه وی.ګنې عقد رهن به صحيح نه وی.هركله چې دا خبره په ذهن كې كيناستله.نو اوس دلته كې دوې (دوه) مسئلې دی① كه مرهونه مځكه عشری ده.نو د پيداوار عشر به رومبې اوښكلې شی.او پاته نهه برخې (حصې) به مرتهن سره ايږدلې كيږی.او عشر اوښكل د مرتهن د حق نه مقدم دی ولې؟ ځكه چې د عشر تعلق عين رهن سره دې.او د مرتهن د حق تعلق د رهن ماليت سره دې.او كوم حق چې د عين نه مقدم وی.دا د هغه حق نه مقدم وی.كوم چې د ماليت سره وی.② كه يوكس يوه مځكه رهن كيخودله.او بيا يوكس ددې زمكې په ۱۰/۱ كې د استحقاق دعوه اوكړله.او خپله دعوه ئې ثابته كړله.نو رهن باطل شو.ځكه چې د مستحق عشر (۱۰/۱) په طريقه د شيوع دې.حالانكه وړاندې تير



شوی دی.چه د رهن لپاره ضروری ده.چه هغه مشترك نه وی.بهرحال په مذكوره صورت كې به رهن باطل وی.

كه څوك دا پوښتنه اوكړی چې كله چې د پيداوار عشر اوښكلې شی.نو دا هم په طريقه د شيوع دې.نو دلته كې هم رهن باطليدل پكار دی؟ نو ددې ځواب دا دې چې د استحقاق په صورت كې به ددې برخې (حصې) لسمه برخه وركولې شی.او عشرپه صورت كې مالك ته اختيار دې.چه هم ددې پيداوار لسمه برخه وركړی.يا د عشر په اندازه ددې نه علاوه غله وركړی.نو ددې تفصيل نه معلومه شوه.چه د استحقاق په صورت كې په ملك د راهن كې خلل واقع شو.او دا مشاع شو.په دې وجه رهن باطل شو.او د عشر په صورت كې د راهن ملك كې خلل واقع نشو.او پيدا وار مشاع نشو.په دې وجه به دلته كې رهن باطل نه وی.

## د راهن او مرتهن د يو بل د اړخه دغه خيز ادا كولو حكم

| |
|---|
| وَمَا أَدَّاهُ أَحَدُهُمَا او كومه چې ادا كړه دوی دواړو كې يوكس مِمَّا وَجَبَ عَلَى صَاحِبِهِ د هغه خرچې نه كومه چې دده په انډيوالان واجب وه فَهُوَ مُتَطَوِّعٌ نو دې احسان كونكې دې وَمَا أَنْفَقَ أَحَدُهُمَا مِمَّا يَجِبُ عَلَى الْآخَرِ او كومه چې خرچ كړله.دوی دواړو كې يوكس دهغه خرچې نه، كومه چې په دوهم واجب وه بِأَمْرِ الْقَاضِي د قاضی په حكم سره رَجَعَ عَلَيْهِ نو دې به په هغه باندې رجوع كوی.( واپس به اخلی) كَأَنَّ صَاحِبَهُ أَمَرَهُ بِهِ ګويا چې دده انډيوالان ده ته حكم كړې دې «لِأَنَّ وِلَايَةَ الْقَاضِي عَامَّةٌ ځكه چې د قاضی ولايت عام دې. |

تشريح:- د رهن د ساتنه د كور كرايه د مرتهن په ذمه واجب وه.خو راهن ادا كړله.دغه ډول نفقه د راهن په ذمه واجب وه.خو مرتهن ادا كړله.نو دوی ته حق شته.چه د دوهم نه خپل خرچ شوې مقدار واخلی.اوكه نشته؟ نو وې فرمائيل.كه دا خرچ كول د قاضی په حكم سره وی.نو واپس اخستلې شی.او كه د قاضی د حكم نه بغير وی.نو واپس نشی اخستلې.د واپس نه اخستلو وجه دا ده.چه هركله قاضی ده ته حكم وركړې دې.نو داسې شوه.لكه چې يو انډيوالان پخپله ده ته د خرچ كاوه حكم وركړې وی.ځكه چې قاضی ته عام ولايت حاصل دې.او په دې صورت كې واپسی جائز كيږی.نو دلته كې به هم واپسی جائز وی.دا پوره تفصيل د ظاهرالروايه مطابق دې.

## اقوال فقهاء

| |
|---|
| وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه ( په نوادر) كې نقل دی لَا يَرْجِعُ إِذَا كَانَ صَاحِبُهُ حَاضِرًا چې دې به رجوع نه كوی.كله چې دده انډيوال موجود وی. وَإِنْ كَانَ بِأَمْرِ الْقَاضِي اګرچه دا د قاضی په حكم سره وی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ أَنَّهُ يَرْجِعُ فِي الْوَجْهَيْنِ (۱)او امام ابويوسف رحمه الله ( په نوادركې ) فرمائی.چه په دواړو صورتونوكې به رجوع كوی «وَهِيَ فَرْعُ مَسْأَلَةِ الْحَجْرِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ او دا مسئله د حجر فرع ده.والله اعلم بالصواب. |

تشريح:- په نوادر كې په دې مسئله كې د امام ابوحنيفه او دامام ابويوسف رحمهما الله اختلاف نقل كړې شوې دې.د هغې تفصيل دا دې.چه امام صاحب رحمه الله فرمائی.كه دا دوهم انډيوال د چا د اړخه چې خرچه كړې شوې ده.غائب نه دې.بلكه حاضر موجود دې.او دده د اړخه دوهم انډيوالان خرچه اوكړله.اګرچه د قاضی په حكم سره ئې خرچ كړې وی.بيا هم خپل خرچ كړې مال د خپل انډيوالان نه واپس نشی اخستلې.او امام ابويوسف رحمه الله فرمائی.چه په دواړو صورتونو كې واپس اخستلې شی.كه دوهم انډيوال حاضر وی.او كه غائب وی.لنډيز د كلام دا چې د امام صاحب رحمه الله په نيز رجوع جائز نه ده.او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز رجوع جائز ده.په دې باندې مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه دا د حجر د مسئلې فرع ده.

---

[1]) هوقول ابی يوسف رحمه الله كذافی ردالمختار (٥/ ٣٤٧) وكشف الاستار (٢/ ٢٦٧) والهندية (٥/ ٤٥٥) والدرالمتقى (٤/ ٢٧٨) ونصب (٦/ ٦٨) نقلاعن القول الراجح (٢/ ٣٢٧)-

Scanned with CamScanner

﴿كه څوك دا پوښتنه اوكړي چې ددې څه مطلب دې؟نو موږ ځواب وركوو چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز قاضي ته دا ولايت نشته.چه هغه آزاد، عاقل، بالغ سړې محجور اوګرځوي. چې هغه حاضر او موجود دې.اوكه قاضي په ده حجر ( او بنديز) اوكړو.نو دا به غيرمعتبر وي.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز قاضي ته دا ولايت شته.چه هغه په ذكرشوي سړي باندې حجر اوكړي.

خودلته بيا هم وئيلې شي چې دا خبره خو پوهه كې راغله.خود فرعيت مسئله باندې پوه نه شوم؟نو د دې ځواب دا دې چې هركله چې د امام صاحب رحمه الله په نيز حاضر ( موجود) باندې حجر جائز نه دې.نو اګرچه قاضي ده ته اجازت وركړې.چه ته دده د اړخه خرچ اوكړه.حالانكه هغه موجود او حاضر دې.غائب نه دې.نو ګويا قاضي ده لره محجور ګرځوي.خوحجر معتبر نه دې.او هغه محجور شوې نه دې.نو هركله چې هغه محجور نشو.نو د خرچ كونكي خرچ تبرع او احسان شو.چه په دې كي د واپس اخستلو حق نه وي.او امام ابويوسف رحمه الله په نيز چې كله قاضي دوهم كس ته د خرچ كاوه اجازت وركړو.نو ګويا چې ده لره محجور ګرځوي.او دا حجر صحيح دې.هركله چې حجر صحيح شو.نو ګويا خرچ كونكې دده ولي شو.او د ولايت سبب د قاضي حكم دې.نو ده ته به حق وي.چه دې خپل حق د خپل انډيوالان نه واپس واخلي.

## بَابُ مَا يَجُوزُ ارْتِهَانُهُ وَالْاِرْتِهَانُ بِهٖ وَمَا لَا يَجُوزُ

ژباړه:- ( دا) باب د هغه څيزونو ( په بيان كي ) دې.د كومو څيزونو رهن چې جائز دې.او د كومو په عوض چې رهن اخستل جائز دى.او د هغه ( څيزونو په بيان كي ) دې.د كومو چې رهن اخستل،او د كومو په عوض چې رهن اخستل جائز نه دى.

تشريح:- په دې باب كي به دا بيانولې شي.چه كوم كوم شيان مرهون او د عوض رهن جوړيدې شي.اوكوم كوم شيان نشي جوړيدې.په نورو الفاظو كي داسې چې دا د رهن د مقدماتو د بيان نه روسته د تفصيل بيان دې.چه كوم شيان مرهون جوړيدې شي.او كوم نشي جوړيدې.او تفصيل د اجمال نه روسته وي.

### د غير منقسم رهن حكم

قَالَ: امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل وَلَا يَجُوزُ رَهْنُ الْمُشَاعِ او د مشاع ( غيرمنقسم) رهن جائز نه دې وَقَالَ الشَّافِعِيُّ يَجُوزُ او امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه جائز دې وَلَنَا فِيهِ وَجْهَانِ او په دې كي زموږ دوې (دوه) دليلونه دي أَحَدُهُمَا يَنْبَنِي عَلَى حُكْمِ الرَّهْنِ په دې كي خو يو د رهن په حكم باندې مبنى دې فَإِنَّهُ عِنْدَنَا ثُبُوتُ يَدِ الْاِسْتِيفَاءِ په دې وجه د رهن حكم زموږ په نيز د وصولولو د قبضې ثبوت دې هٰذَا لَا يُتَصَوَّرُ فِيمَا يَتَنَاوَلُهُ الْعَقْدُ او دا متصور نه دى.په هغه شئ كي .كوم ته چې عقد ګډه وي. وَهُوَ الْمُشَاعُ او هغه مشاع ( مشترك) وي.وَعِنْدَهُ الْحُكْمُ عِنْدَهُ او د امام شافعي رحمه الله په نيز مشاع هغه شئ قبلوي.كوم چې ددوی په نيز حكم دې وَهُوَ تَعَيُّنُهُ لِلْبَيْعِ او الْمُشَاعُ يَقْبَلُ مَا هُوَ هغه د مرهون، بيع لپاره تعين دې.

حل اللغة ① مشاع: خور وور،ناقابل ويش ② يتناول: شامليږي﴾

تشريح:- زموږ په نيز د مشاع رهن جائز نه دې.بلكه ضروري ده.چه دا ويش شوې وي.د امام شافعي رحمه الله په نيز د مشاع رهن جائز دې.ځكه چې د امام شافعي رحمه الله په نيز د رهن حكم دا دې.چه دا خرڅيدې شى. او دمشاع بيع جائز ده.نو ددې رهن جائز دې.زموږ دليل په دوې (دوه) طريقو دې① زموږ په نيز د رهن حكم د يد استيفاء ( د وصولولو د قبضې) ثبوت دې.او د يد استيفاء ثبوت مشاع كي نشي حاصليدې.نو د مشاع رهن به هم جائز نه وي.( دوهم دليل لاندې دې)

### د احنافو رحمهم الله دوهم دليل

وَالثَّانِي او په دويمه طريقه دليل دا دې أَنَّ مُوجِبَ الرَّهْنِ هُوَ الْحَبْسُ الدَّائِمُ چې د رهن موجب، هغه حبس دائم (



د پور وصولئ پورې ځان سره ساتل) دې لِأَنَّهُ لَمْ يُشْرَعْ إِلَّا مَقْبُوضًا بِالنَّصِّ ځكه چې رهن نه دې مشروع شوې.خو په داسې حال كي چې دا مقبوض وي.د نص په وجه أَوْ بِالنَّظَرِ إِلَى الْمَقْصُودِ مِنْهُ وَهُوَ الْاِسْتِيثَاقُ يا د رهن د مقصود لحاظ كاوه سره.او دا مضبوطى حاصلول دى.مِنَ الْوَجْهِ الَّذِي بَيَّنَّاهُ په هغه طريقه كومه چې موږ بيان كړې ده.، وَكُلُّ ذٰلِكَ يَتَعَلَّقُ بِالدَّوَامِ او دا ټولې خبرې دوام ( هميشوالى) سره تعلق ساتى وَلَا يُفْضِي إِلَيْهِ إِلَّا اسْتِحْقَاقُ الْحَبْسِ او دائمى حبس اړخ ته صرف د حبس استحقاق مفضى كيږي وَلَوْ جَوَّزْنَاهُ فِي الْمُشَاعِ او كه موږ په مشاع كي رهن جائز اوګرځوو. يَفُوتُ الدَّوَامُ نو دوام به فوت شي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْمُهَايَاةِ فَيَصِيرُ ځكه چې دلته د منافعو ويش ضروري دې.نو دا به داسې شى كَمَا إِذَا قَالَ رَهَنْتُكَ يَوْمًا ګويا راهن داسې اووئيل. چې ما يوه ورځ رهن ايخودې دې وَيَوْمًا لَا او په دويمه ورځ مې نه دې ايخودې وَهٰذَا لَا يَجُوزُ فِيمَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ او په دې وجه رهن نه جائز كيږي.هغه څيزونو كي كوم چې د ويش احتمال لرى وَمَا لَا يَحْتَمِلُهَا او په هغه څيزونو كي كوم چې د ويش احتمال نه لرى.

تشريح:- ② دا زموږ دوهم دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه د رهن مقبوض كيدل شرط دى.لكه د الله تعالى فرمان﴿فَرِهٰنٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾ په دې دلالت كوى.او د رهن مقصود هم دا واضح كوى.ځكه د رهن مقصود دا دې.چه مضبوطى حاصله شى.چه راهن د پور انكار اونكړى.بهرحال د مضبوطيا او قبضې حاصلولو لپاره ضرورى ده.چه مرهون برابر مرتهن سره محبوس پاتې وى.او مرتهن ته د دين ادا كاوه پورې د حبس استحقاق حاصل وى.او په مشاع كي دائمى حبس د سره كيداې نشى.ځكه چې دې كي د دوهم حق موجود دې.كه د مشاع رهن جائز اوګرځولې شى.نو په دې كي مهايات ( او نمبرى) ضرورى ده.چه يوه ورځ دا مرتهن سره وى.او په بله ورځ د راهن شريك سره وى.او دا هم دغه ډول ناجائز دې.لكه څنګه كه راهن د غير مشاع مرهون په اړه كي صراحت سره دا اووائى.چه مرهن به يوه ورځ مرتهن سره وى.او يوه ورځ به زما سره وى.او دا ناجائز دې.نو ړومبې قول به هم جائز نه وى.هركله چې دا خبره شوه.چه مشاع كي به دائمى حبس فوت شى.چې دا په رهن كي ضرورى دې.نو د مشاع رهن به جائز نه وى.كه دا د ويش قابل وى.اوكه نه وى.ځكه چې حبس دائمى دواړو صورتونو كي موجود نه دې.

### د غيرمنقسم رهن مطلقاً ناجائز دې

بِخِلَافِ الْهِبَةِ حَيْثُ يَجُوزُ په خلاف د هبې،په دې حيثيت سره چې هبه جائز ده فِيمَا لَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ د هغه څيزونو كوم چې قابل د ويش نه وى. لِأَنَّ الْمَانِعَ فِي الْهِبَةِ غَرَامَةُ الْقِسْمَةِ ځكه چې هبه كي مانع، د تقسيمولو ضرردې وَهُوَ فِيمَا يُقْسَمُ اودا ( غرامة القسمة) ،،ضرر د تقسيم،، به هغه څيزونو كي وى.كوم چې تقسيميدې شى أَمَّا حُكْمُ الْهِبَةِ الْمِلْكُ وَالْمُشَاعُ يَقْبَلُهُ بهرحال د هبې حكم ملك دې.او مشاع ملك قبلوى وَهَاهُنَا الْحُكْمُ ثُبُوتُ يَدِ الْاِسْتِيفَاءِ وَالْمُشَاعُ لَا يَقْبَلُهُ او دلته ( په رهن كي ) حكم د يد استيفاء ثبوت دې.او مشاع دا نه قبلوى وَإِنْ كَانَ لَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ.اګرچه دا ويش احتمال نه لرى.

حل اللغة ① الغرامة: تاوان﴾

تشريح:- د مشاع ( غير منقسم څيز) رهن مطلقاً ناجائز دې.كه دا مشاع د ويش قابل وى.اوكه نه وى.دغه ډول به د مشاع رهن جائز نه وى.كه شيوع ( شركت) په پيل كي وى.اوكه روسته پيدا شوې وى.،،كما سيأتي،، د مشاع په هبه كي تفصيل دې.كه مشاع داسې وى.كوم چې تقسيميدې شى.د هغې هبه هم جائز نه ده.اوكه مشاع داسې وى.چه د هغې ويش نشى كيدې.نو د داسې مشاع هبه هم جائز ده.ړومبې صورت ځكه جائز نه دې.چه په دې كي واهب باندې دا فريضه عائد كيږى.چه هغه موهوب لـه ته موهوب اوسپارى.په داسې حال كي چې ددې ويش شوې وى.نو په واهب به د قيمت تاوان راځى.د كوم چې ده التزام نه دې كړې دې.اوپه دوهم صورت كي به هبه ځكه جائز وى.چه په دې كي د تقسيمولو تاوان واهب باندې نه لازميږى. ځكه چې دا د سره د قيمت قابل نه دې.هركله چې دا تفصيل ذهن كي كيناستلو.نو اوس واورئ.

که څوك دااعتراض اوکړي چې هر کله د غیر قابل ویش شئ هبه جائز ده.نو ددې رهن هم جائز کیدل پکار دی؟ نو مرغینانی رحمه الله ددې ځواب دا ورکوی چې دا قیاس مع الفارق دې.ولې؟ ځکه چې د هبې مقصد او ددې حکم دا دې.چه موهوب له ددې مالك جوړ شی.او ملکیت په مشاع باندې هم پیدا شی.لکه څنګه چې په غیر مشاع باندې ثابتیږی.او د رهن حکم داسې دې.د رهن حکم خو د ید استیفاء ثبوت دې.او دا حکم به مشاع کې نه حاصلیږی.که قابل د ویش وی.اوکه نه وی.

که څوك دا سوال اوکړی چې هرکله چې خبره هم دغه ډول ده.چه د هبې حکم د ملك ثبوت دې.نو د قابل قسمت هبه هم صحیح کیدل پکار دی؟نود دې ځواب دادې چې دا هم قیاس مع الفارق دې.ځکه چې قابل د ویش کې به واهب د ویش په مشقت کې راګیر شی.او په غیر قابل ویش کې دا خبره نشته.،. فلا إشكال فيه.،

**دغیر منقسم د رهن د عدم جواز دلیلونه**

وَلَا يَجُوزُ مِنْ شَرِيكِهِ او جائز نه دې ( د مشاع رهن) د خپل شریك په لاس کې .لِأَنَّهُ لَا يَقْبَلُ حُكْمُهُ عَلَى الْوَجْهِ الْأَوَّلِ ځکه چې دا رهن مشاع، د رهن حکم نه قبلوی.د ړومبئ امله مطابق وَعَلَى الْوَجْهِ الثَّانِي يَسْكُنُ يَوْمًا بِحُكْمِ الْمِلْكِ او د دویمې امله مطابق به مرتهن په دې کې یوه ورځ اوسیږی.د ملکیت په حکم سره وَيَوْمًا بِحُكْمِ الرَّهْنِ او یوه ورځ د رهن په حکم سره فَيَصِيرُ كَأَنَّهُ رَهَنَ يَوْمًا وَيَوْمًا لَا، ګویا چې ده یوه ورځ رهن کیخودو.او یوه ورځ نې رهن کینخودو.

**تشریح:**- د رهن مشاع د عدم جواز دوې (دوه) دلیلونه وړاندې بیان کړې شوی دی① د ید استیفاء عدم ثبوت ② د حبس دائمی استحقاق.اوس واورئ.که یوکس داسې کور رهن کیخودو.کوم چې دده او د زید په منځ کې د شیوع په طریقه مشترك دې.او د زید سره نې رهن کیخودو.نو دا هم ناجائز دی.ځکه چې د ړومبی دلیل مطابق حکم د رهن، د ید استیفاء ثبوت دې.او هغه دلته کې موجود نه دې.ځکه چې مشاع باندې د ید استیفاء ثبوت د سره کیږی هم نه.او د دوهم دلیل مطابق به هم رهن جائز نه وی.ځکه چې حبس دائمی موجود نه دې.بلکه دلته کې به خو صورت دا وی.چه مرتهن به په دې کې یوه ورځ د خپل ملکیت په لحاظ سره اوسیږی.او یوه ورځ به د رهن په اعتبار سره اوسیږی.ګویا یوه ورځ رهن دې.او په دویمه ورځ نه دې.او ددې د عدم جواز وړاندې صراحت شوې دې.نو د شریك په لاس د مشاع رهن جائز نه دې.

**د یوکس په رهن شوی کور کښې د استحقاق دعوه کول**

وَالشُّيُوعُ الطَّارِئُ يَمْنَعُ بَقَاءَ الرَّهْنِ فِي رِوَايَةِ الْأَصْلِ او روستو پیدا شوې شیوع د مبسوط د روایت مطابق، بقاء د رهن منع کوی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا يَمْنَعُ او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه نه منع کوی لِأَنَّ حُكْمَ الْبَقَاءِ أَسْهَلُ مِنْ حُكْمِ الِابْتِدَاءِ ځکه چې د بقاء حکم د پیل د حکم نه آسان دې فَأَشْبَهَ الْهِبَةَ.نو دا د هبې مشابه شو.

**حل اللغة:** ① الطاري: عارضی، روستو پیدا شوې ﴾

**تشریح:**- یوکس یو کور رهن کیخودلو.روستو زید په دې کې خپل استحقاق ثابت کړو.او وې وئیل.چه ددې غیر معین دومره برخه زما سره ده.نو اوس به څه چم کیږی؟ ځکه چې اوس دې کې شیوع راغله.او دې ته شیوع طاری ( روستو پیدا شوې شریکوالی) وئیلې شی.ځکه چې دا د مخکې نه ښکاره نه دې.بلکه دا اوس ښکاره کیږی.نو په دې کې دوې (دوه) روایتونه دی① د مبسوط روایت دا دې.چه رهن فاسد شو.ځکه چې شیوع که په پیل کې وی.او که روستو پیدا شوې وی.دا د رهن د جواز منافی دې.② د امام ابویوسف رحمه الله روایت دې.چه دا جائز دې.ځکه چې دا د رهن د بقاء حالت دې.د رهن د پیل حالت نه دې.او په حالت د بقاء کې ، د پیل په مقابله کې څه آسانی او تخیف وی.نو دا جائز دې.او رهن به نه فاسدیږی.او دا داسې شوه.لکه چې هبه کې دا صورت راپیښ شی.نو هبه نه فاسدیږی.نو رهن به هم نه فاسدیږی.

**ړومبې دلیل**



وَجْهُ الْأَوَّلِ ړومبې دلیل دا دې أَنَّ الِامْتِنَاعَ لِعَدَمِ الْمَحَلِّيَّةِ چې ( د رهن مشاع) ممنوع کیدل، د محلیت د نه کیدو په وجه سره دی وَمَا يَرْجِعُ إِلَيْهِ او هغې ته کوم چې محل اړخ ته راجع دی فَالِابْتِدَاءُ وَالْبَقَاءُ سَوَاءٌ نو پیل او بقاء برابر دی كَالْمَحْرَمِيَّةِ فِي بَابِ النِّكَاحِ لکه په باب د نکاح کې محرمیت بِخِلَافِ الْهِبَةِ په خلاف د هبې لِأَنَّ الْمُشَاعَ يَقْبَلُ حُكْمَهَا وَهُوَ الْمِلْكُ ځکه چې مشاع د هبې حکم قبلوی.او دا حکم ملك دې وَاعْتِبَارُ الْقَبْضِ فِي الِابْتِدَاءِ لِنَفْيِ الْغَرَامَةِ او په پیل کې د قبضې اعتبار، د تاوان لرې کاوه لپاره دې عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دې وَلَا حَاجَةَ إِلَى اعْتِبَارِهِ فِي حَالَةِ الْبَقَاءِ او په حالت د بقاء کې د قبضې اعتبار کاوه هیڅ حاجت نشته وَلِهَذَا يَصِحُّ الرُّجُوعُ فِي بَعْضِ الْهِبَةِ او هم په دې وجه د هبې په بعض برخه کې رجوع جائز ده وَلَا يَجُوزُ فَسْخُ الْعَقْدِ فِي بَعْضِ الرَّهْنِ.او د مرهون په بعض برخه کې د عقد رهن فسخ جائز نه ده.

**تشریح:**- مرغینانی رحمه الله ددې خائې نه د مبسوط د روایت دلیل بیانوی.ددې حاصل دا دې.چه په مشاع کې دا صلاحیت د سره نشته.چه دا د رهن محل جوړ شی.او په کوم شئ کې چې د سره محلیت موجود نه وی.هغې کې پیل او بقاء دواړه برابر وی.لکه مثلاً خپلې رضاعی خور سره نکاح حرام ده.ځکه چې دا د نکاح محل نه دې.خو که په بې علمئ کې نې نکاح اوکړله.او روستو معلومه شوه.چه دا خو دده رضاعی خور ده.نو فوراً به تفریق واجب وی.په پیل او بقاء کې هیڅ توپیر نشته.ځکه چې محل د نکاح موجود نه دې.دغه ډول دلته کې محل د رهن موجود نه دې.نو په پیل او بقاء دواړو صورتونوکې به یو حکم وی.یعنی عدم جواز دې.

دلته په ذهن کې یو سوال دا راځی که زید خالد ته یو کور هبه کړو.او روستو بکر په دې کورکې خپل استحقاق ثابت کړو.نو دا هبه هم باطلیدل پکار دی.حالانکه هبه باطل نه ده؟ نو د دې ځواب دا دې چې هبه به باطل نه وی.ځکه چې د هبې د جواز مدار په دې دې.چه د هبې حکم موجود شی.او هغه ملکیت دې.چه موجود دې.په دې وجه هبه صحیح ده.

خوکه څوك دا ووایې چې کله تاسو دهبې دحکم موجود کیدو په وجه هبه باطل نکړله.نو تاسو له پکار دی.چه د قابل ویش شئ هبه په پیل کې هم ستاسو په نیز جائز وی.ځکه چې دملك وجود به هلته کې هم کیږی .حالانکه تاسو دې ته جائز نه وایئ؟ نو موږ ځواب ورکوو چې وړاندې موږ وئیلی دی.چه په دې صورت کې واهب باندې د ویش تاوان هسې بیسه لازمیږی .حالانکه هغه ددې التزام نه دې کړې.په دې وجه مذکوره صورت کې د هبې پیل د ملك موجود کیدو باوجود جائز او نه ګرځولې شوه.او په حالت د بقاء کې د قبضې د اعتبار کاوه هیڅ حاجت نه دې پاتې شوې.ځکه چې قبضه خو د عقد تمام کیدو په وجه لازمیږی.او دلته کې عقد د مخکې نه تمام شوې دې.او د دې تائید د دې جزئی مسئلو نه هم کیږی مثلاً① زید خالد ته خپل کور هبه کړو.بیا نې غیرمعین یوه برخه واپس واخستله.نو هبه به باطل نه وی.ځکه چې دا شیوع روستو پیدا شو.چه دا د هبې لپاره مضر نه دې.② زید خالد سره خپل کور رهن کیخودو.بیا دوی دواړو د مرهونه کور غیر معین برخه د عقد رهن نه خارج کړله.نو دا جائز نه ده.بلکه عقد رهن به باطل وی.ځکه چې دا شیوع روستو پیدا شوې دې.چه دا رهن فاسده وی.

**د کومو څیزونو رهن ایخودل صحیح نه دی**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَلَا رَهْنُ ثَمَرَةٍ عَلَى و جائز نه دې.د هغه میوو رهن کومې چې په ونو کې دی رُءُوسِ النَّخِيلِ د ونو نه بغیر دُونَ النَّخِيلِ وَلَا زَرْعِ الْأَرْضِ دُونَ الْأَرْضِ او نه د زمکې د فصل رهن د زمکې نه وَلَا رَهْنُ النَّخِيلِ فِي الْأَرْضِ دُونَهَا او نه دهغه ونو رهن کوم چې مځکه کې دی.بغیر د زمکې نه وَلِأَنَّ الْمَرْهُونَ مُتَّصِلٌ بِمَا لَيْسَ بِمَرْهُونٍ خِلْقَةً ځکه چې مرهون هغه شئ سره مورزاده (پیدائشی) متصل دې.کوم چې مرهون نه دې فَكَانَ فِي مَعْنَى الشَّائِعِ.نو دا د شائع په مرتبه کې شو.

**تشريح:-** هركله چې دا صورت راپيښ شي.چه مرهون غير مرهون سره داسې متصل وي.چه د اختلاط (او ګډون) نه بغير يواځې مرهون باندې قبضه ممكن نه وي.نو دا صورت به جائز نه وي.او دې ته د مشاع درجه وركړې شوې ده.او ناجائز شمار كړې شوې ده.دا داسې قاعده كليه ده.چه په دې باندې ډير جزئيات متفرع دي.مثلاً ① كومې ميوې چې په ونو كې لګيدلې دي.د ونو نه بغير ددې ميوو رهن جائز نه دې.② كوم فصل چې په مځكه ولاړ دې.د زمكې نه بغير ددې فصل رهن جائز نه دې.③ كومې ونې چې په مځكه ولاړې دي.د زمكې نه بغير ددې رهن جائز نه دې.ځكه چې مرهون هغه شئ سره مورزاده (پيدائشي) متصل دې.كوم چې مرهون نه دې.نو دا د شائع په مرتبه كې شو.

| وَكَذَا اِذَا رَهَنَ الْاَرْضَ | او دغه ډول كله چې ده رهن كيخوده مځكه | دُوْنَ النَّخِيْلِ | ، بغير د ونو نه، | اَوْدُوْنَ الزَّرْعِ اَوِ النَّخِيْلَ دُوْنَ الثَّمَرِ | يا بغير د فصل نه.يا د قجورې ونې بغير د ميوو نه لِاَنَّ الْاِتِّصَالَ يَقُوْمُ بِالطَّرَفَيْنِ ځكه چې اتصال د دواړو طرفونو نه قائم وي فَصَارَ الْاَصْلُ اَنَّ الْمَرْهُوْنَ اِذَا كَانَ مُتَّصِلًا بِمَا لَيْسَ بِمَرْهُوْنٍ نو قاعده كليه دا شوه.چه مرهون كله د داسې شئ سره متصل وي.كوم چې مرهون نه وي لَمْ نو دا جائز نه دې يَجُزْ لِاَنَّهُ لَا يُمْكِنُ قَبْضُ الْمَرْهُوْنِ وَحْدَهُ ځكه چې يواځې مرهون باندې قبضه كول ممكن نه ده.

**تشريح:-** ④ د زمكې رهن بغير ددې د ونو نه كومې چې په دې كې ولاړې دي.جائز نه دې. ⑤ د زمكې رهن بغير د هغه فصل نه كوم چې په دې ولاړ دې.جائز نه دې.⑥ د ونو رهن بغير د هغه ميوو نه كوم چې په دې كې لګيدلې دي.جائز نه دې. ځكه چې لكه څنګه چې ميوې ونو سره متصل دي.دغه ډول ونې ميوو سره متصل دي.نو اتصال به د دواړو اړخه وي.او دا اتصال به د رهن د جواز نه مانع وي.

### د امام ابوحنيفه رحمه الله نقطه نظر

وَعَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اَنَّ رَهْنَ الْاَرْضِ بِدُوْنِ الشَّجَرِ جَائِزٌ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دي.چه د ونو نه بغير د زمكې رهن جائز دې لِاَنَّ الشَّجَرَ اسْمٌ لِلنَّابِتِ ځكه چې ونه د هغې نوم دې.كوم چې راؤخيجي فَيَكُوْنُ اسْتِثْنَاءُ الْاَشْجَارِ نو ونه به سره د خپلو ځايونو نه مستثنى كيږي بِمَوَاضِعِهَا، بِخِلَافِ مَا اِذَا رَهَنَ الدَّارَ دُوْنَ الْبِنَاءِ په خلاف دهغه صورت كله چې د آبادئ نه بغير كور رهن كيږدي لِاَنَّ الْبِنَاءَ اسْمٌ لِلْمَبْنِىْ ځكه چې بناء (عمارت) نوم دې دهغه برخې (حصې) كوم چې جوړولې شي فَيَصِيْرُ رَاهِنًا جَمِيْعَ الْاَرْضِ نوشى به دې د ټولې زمكې رهن ايخودونكې وَهِيَ مَشْغُوْلَةٌ بِمِلْكِ الرَّاهِنِ حالانكه دا د زمكې ملكيت سره بوخت ده.

**حل اللغة:** ① البناء: كور، ابادي ② الدار: كور ③ مواضع: جمع د موضع، ځائې

**تشريح:-** امام حسن بن زياد رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله يو قول دا نقل كړې دې.چه د ونو نه بغير د زمكې رهن جائز دې.ځكه چې په دې صورت كې ګويا راهن مځكه كيخودله.او ونې سره ددې د ځايونو نه كوم ځائې چې دا راختلې دي.مستثنى ئې كړل.نو دا جائز ده.ځكه چې دا ځائې متعين دې.مشاع نه دې. نو بيا به په دې باندې د مشاع حكم نه جارى كيږي.

او كه څوك دا ووايې چې د مذكوره دليل په رڼا كې كه يوكس كور رهن كيخودو.او عمارت ئې مستثنى كړو.نو دا هم جائز كيدل پكار دى.نو موږ وايو چې دا جائز نه دې.ځكه عمارت هغه دې.كوم چې په مځكه جوړ كړې شوې دې.نو دلته كې صورت دا شو.چه راهن خپله پوره مځكه رهن كيخودله.خو مځكه د راهن ملك سره بوخت ده.نو دا جائز نه ده.

### ونې سره د زمكې په رهن كښې ايخودل

| وَلَوْ رَهَنَ النَّخِيْلَ بِمَوَاضِعِهَا | وكه ده ونې سره ددې د ځايونو رهن كيخودې | جَازَ | نو جائز ده لِاَنَّ هٰذِهٖ مُجَاوَرَةٌ وَهِيَ |



لَا تَمْنَعُ الصِّحَّةَ.ځكه چې دا مجاورت (او ګاونډ توب) دې.او مجاورت صحت د رهن نه منع كوي.

**تشريح:-** يوكس ونې رهن كيخودې.او ور سره ئې هغه ځايونه هم رهن كيخودل.كومو ځايونو كې چې دا ونې راختلې دي.نو دا جائزكيدل پكار نه دي.ځكه چې پاتې مځكه د راهن ده.نو مرهون د راهن ملك سره متصل ده.نو ددې ځواب ئې وركړو.چه جائز ده.او دلته كې دې مرهون سره مورزاده (پيدائشي) اتصال نه دې.بلكه دا مجاور او ګاونډ توب دې.او مجاورت د شيوع په مرتبه كې نه دې.نو دا جائز دې.

### د ونو په رهن كښې د ميوو حكم

| وَلَوْ كَانَ فِيْهِ ثَمَرٌ يَدْخُلُ فِى الرَّهْنِ | اوكه په دې ونو كې كجورې وي.نو دا به په رهن كې داخليږي.لِاَنَّهُ تَابِعٌ لِاتِّصَالِهٖ بِهٖ ځكه چې دا شائع دې.ددې د متصل كيدو په وجه ددې سره.فَيَدْخُلُ تَبَعًا تَصْحِيْحًا لِلْعَقْدِ، نو دا به تبعاً داخل وي.د عقد صحيح كاوه لپاره بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع، لِاَنَّ بَيْعَ النَّخِيْلِ بِدُوْنِ الثَّمَرِ جَائِزٌ، ځكه چې د ونو بغير د كجورو نه جائز ده. وَلَا ضَرُوْرَةَ اِلَى اِدْخَالِهٖ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ او هيڅ اړتيا نشته.كجورې په بيع كې د داخلولو،بغير ددې د ذكر كاوه نه وَبِخِلَافِ الْمَتَاعِ فِى الدَّارِ او په خلاف د هغه سامان كوم چې كور كې ايخودې شوې دي حَيْثُ لَا يَدْخُلُ فِىْ رَهْنِ الدَّارِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرِهٖ په دې حيثيت سره.چه دا بغير د ذكر نه د كور په رهن كې داخل نه وي ،لِاَنَّهُ لَيْسَ بِتَابِعٍ بِوَجْهٍ مَا ځكه چې سامان په هيڅ شان تابع نه دې وَكَذَا يَدْخُلُ الزَّرْعُ وَالرَّطْبَةُ فِىْ رَهْنِ الْاَرْضِ او هم دغه ډول فصل او شنه ګياه (واخه) داخليږي.د زمكې په رهن كې ،وَلَا يَدْخُلُ فِى الْبَيْعِ او په بيع كې به نه داخليږي ،لِمَا ذَكَرْنَا فِى الثَّمَرَةِ.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ د ميوو (په مسئله) كې ذكر كړې دې. |

**تشريح:-** وړاندې بيان كړې شوې دي.چه د مشاع رهن جائز نه دې.نو اوس واورئ.چه ونې ئې رهن كيخودې .او په دې باندې ميوې لګيدلې دي.چه ددې هيڅ ذكر ئې د منع كاوه يا د نه منع كاوه نه دې كړې.نو ميوې به هم رهن كې داخليږي.چه عقد صحيح شي.ځكه كه دا داخل او نه منلې شي.نو مرهون سره دغير مرهون د اتصال په وجه رهن مشاع لازميږي.او عقد رهن باطليږي.البته كه يوكس ونې خرڅې كړې.او په دې باندې ميوې لګيدلې دي.نو د صراحت نه بغير به ميوې په بيع كې داخل نه وي.چه ددې تفصيلي بيان د هدايهٔ دريم ټوك په پيل كې تير شوې دې.دغه ډول كه كور ئې رهن كيخودو.او په دې كې د راهن سامان دې.نو دا سامان بغير د ذكر كاوه او صراحت رهن كې داخل نه وي.ځكه چې سامان دكور تابع نه دې.دغه ډول كه مځكه ئې رهن كيخوده.او په دې كې فصل ولاړ دې.كه هر ډول فصل وي.اګرچه د تازه سبزئ (يا ګيا) جړې وي.نو فصل به هم د زمكې په رهن كې داخليږي.اوكه مځكه ئې خرڅه كړله.او په دې كې فصل ولاړ دې.نو فصل به بغير د ذكر نه په بيع كې داخل نه وي.ددې دليل هم هغه دې.كوم چې په ميوو كې تير شوې دې.

### د زمكې ،كور،او كلي په رهن كښې د ونو او آبادئ حكم

| وَيَدْخُلُ الْبِنَاءُ وَالْغَرْسُ فِىْ رَهْنِ الْاَرْضِ وَالدَّارِ وَالْقَرْيَةِ | او د زمكې، اوكور، او كلي په رهن كې عمارت (آبادى) او ونې داخليږي لِمَا ذَكَرْنَاهُ د مذكوره دليل په وجه | وَلَوْ رَهَنَ الدَّارَ بِمَا فِيْهَا جَازَ | او كه كور ئې رهن كيخودو. سره د هغه سامان كوم چې په دې كې دې.نو جائز دې. |

**تشريح:-** يوكس خپله مځكه رهن كيخودله.يا ئې خپل كور رهن كيخودو.يا يو زميدار خپل يو كور رهن كيخودو.نو په دې كې چې كومې ونې ولاړې دي.او كوم عمارت جوړ شوې دې.واړه به رهن كې داخل وي.ددې دليل هم هغه دې.كوم چې وړاندې تير شوې دې.اوكه يو كس خپل يو كور رهن كيخودو.او ور سره ئې هغه سامان هم كوم چې په دې كور كې ايخودې شوې دې.رهن كيخودو.نو جائز دى.ځكه چې هيڅ شئ مانع

د جواز نشته.

### که د مرهون خول مستحق شو، نو څه حکم دی؟

وَلَوِاسْتُحِقَّ بَعْضُهُ او که د مرهون بعض برخه مستحق شوه إِنْ كَانَ الْبَاقِي نو که پاته داسې وی يَجُوزُ ابْتِدَاءُ الرَّهْنِ عَلَيْهِ وَحْدَهُ چې په دې باندې يواځې د پيل نه رهن جائز وی بَقِيَ رَهْنًا بِحِصَّتِهِ دده د برخې اندازه، نورهن به پاته ساتلې شی وَإِلَّا بَطَلَ كُلُّهُ کنی پوره رهن به باطل وی، لِأَنَّ الرَّهْنَ جُعِلَ كَأَنَّهُ مَا وَرَدَ إِلَّا عَلَى الْبَاقِي ځکه چې رهن به شمارلې کيږی. ګويا چې دا په پاته باندې وارد شوې دې.

تشريح:- يو سړی يو کور رهن کيخودو. بيا ئې ددې په غيرمعين جزء کې استحقاق ثابت کړو. نو شيوع اونشو. او پاته مقدار ددې قابل دې. چه هغه مرهون جوړ شی. نو عقد رهن به جائز وی. او داسې به ګنړلې شی. چه عقد رهن په دې پاته مقدار باندې د پيل نه واقع شوې دې. اوس که ددې پوره کور قيمت مثلاً دوې (دوه) سوه روپۍ وی. او پور هم دوې (دوه) سوه روپۍ وی. چه په دې کې يوه څلورمه مستحق واخستله. نو که پاته هلاکيږی. نو د مرتهن د پور څخه به ۱۵۰ روپۍ ساقطيږی. او پنځوس روپۍ به هغه د راهن نه واپس اخلی. او که موجوده مقدار د پور برابر دې. نو د هلاکت په صورت کې به پوره پور ساقطيږی.

### کوم کوم څيزونه د رهن لپاره مانع دی؟

وَيَمْنَعُ التَّسْلِيمَ كَوْنُ الرَّاهِنِ أَوْمَتَاعِهِ فِي الدَّارِ الْمَرْهُونَةِ، او سپارل منع کوی په مرهونه کور کې د راهن يا دده د سامان کيدل وَكَذَا مَتَاعُهُ فِي الْوِعَاءِ الْمَرْهُونِ او هم دغه ډول په مرهون لوخی کې د راهن د سامان کيدل وَيَمْنَعُ تَسْلِيمَ الدَّابَّةِ الْمَرْهُونَةِ الْحِمْلُ عَلَيْهَا. او په مرهونه څاروی باندې بار (بوج) موجود کيدل، ددې سپارل منع کوی فَلَا يَتِمُّ نو سپارل به تام نه وی حَتَّى يُلْقِيَ الْحِمْلَ تردې چې دې بوج اوغورځوی، لِأَنَّهُ شَاغِلٌ لَهَا. ځکه چې بوج د څاروی مشغولونکې دې.

حل اللغة ① متاع: سامان ② الوعاء: لوښې ③ شاغل: بوخت ④ الدابة: سورلی

تشريح:- دلته د دې بيان کوی چې د مرتهن قبضه او مرتهن ته سپارل به کله شمارلې کيږی. ① زيد خپل کور رهن کيخودو. نو ترکومه پورې چې راهن مقيم وی. يا د راهن سامان موجود دې. ترهغه وخته پورې به سپارل نه وی. ② يو لوخې يا تهيلۍ وغيره ئې رهن کيخودو. چه په دې کې د راهن سامان پروت دې. نو اوس به سپارل نه شمارلې کيږی. ③ زيد مثلاً خپل اس رهن کيخودو. او په دې باندې د زيد سامان بار شوې دې. نو چونکه اس د زيد په بوج کې بوخت دې. په دې وجه اس هم سپارل نه دی شوی. بلکه سپارل به هغه وخت وی. کله چې دې خپل بوج راکوز کړی. او اس مرتهن ته حواله کړی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا رَهَنَ الْحِمْلَ دُونَهَا په خلاف ددې صورت چې صرف بوج ئې رهن ايخودې وی. څاروې ئې نه وی (څاروې) هغه ته حَيْثُ يَكُونُ رَهْنًا تَامًّا په دې حيثيت سره چې دا رهن به تاميږی. إِذَا دَفَعَهَا إِلَيْهِ کله ئې چې حيوان ايخودې لِأَنَّ الدَّابَّةَ مَشْغُولَةٌ بِهِ ځکه چې حيوان (څاروې) بوج سره دې. (ددې عکس نه دې) فَصَارَ كَمَا إِذَا رَهَنَ مَتَاعًا نو داسې شوه. کله چې ده هغه سامان رهن کيخودو فِي دَارٍ کوم چې په کور کې دې أَوْفِي وِعَاءٍ دُونَ الدَّارِ وَالْوِعَاءِ. يا په لوخی کې دې. کور او لوخې نه،

تشريح:- ④ البته که زيد هغه سامان رهن کيخودو. کوم چې اس باندې بار شوې دې. نو کله چې دا اس مرتهن ته اورسيدو. نو سپارل اوشو. ځکه چې دلته کې کوم سامان مرهون دې. هغه اس سره بوخت نه دې. بلکه اس ددې سامان سره بوخت دې. او دا دلته کې مضر نه دی. ځکه چې اس دلته کې مرهون نه دې. ⑤ که يوکس هغه سامان رهن کيخودو. کوم چې په کور يا لوخی کې پروت دې. او کور او لوخې ئې رهن نه دې ايخودې. نو د سپارلو لپاره دکور او لوخی نه جلا کول ضروری نه دی. ځکه چې سامان کور او لوخی سره بوخت نه



دې. بلکه کور او لوخې سامان سره بوخت دې. نو لکه څنګه چې دا صورت جائز دې. دغه څلورم وار صورت هم جائز دې.

بِخِلَافِ مَا إِذَا رَهَنَ سَرْجًا په خلاف ددې صورت کله چې ده زين رهن کيخودو عَلَى دَابَّةٍ کوم چې په څاروی دې أَوْ لِجَامًا فِي رَأْسِهَا يا هغه واګې کومې چې د څاروی په سر کې دی وَدَفَعَ الدَّابَّةَ مَعَ السَّرْجِ وَاللِّجَامِ او حيوان (څاروې) ئې سره دزين او واګو ورکړو حَيْثُ لَا يَكُونُ رَهْنًا حَتَّى يَنْزِعَهُ مِنْهَا په دې حيثيت سره چې دا به رهن نه وی. تردې چې دې دا د څاروی نه جلا کړی. ثُمَّ يُسَلِّمَهُ إِلَيْهِ بيا دا مرتهن ته حواله کړی لِأَنَّهُ مِنْ تَوَابِعِ الدَّابَّةِ بِمَنْزِلَةِ الثَّمَرَةِ لِلنَّخِيلِ ځکه چې دا د څاروی د توابعو څخه دې. د ميوې په مرتبه کې د ونو لپاره، حَتَّى قَالُوا يَدْخُلُ فِيهِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ تردې چې مشائخو اوفرمائيل. چه دا (مځکه او واګې) په دې (رهن د اس) کې بغير د ذکر نه داخل وی.

حل اللغة ① السرج: زين ② اللجام: واګې

تشريح:- ⑥ کوم زين چې اس باندې ترلې شوې دې. او کومې واګې چې اس ته اچولې شوې دی. که د اس نه بغير ئې زين او واګې رهن کيخودې. نو ترکومه پورې چې دا دواړه د اس نه جلا کړی. او مرتهن ته حواله نکړی. هر هغه وخته پورې به سپارل نه شمارلې کيږی. ځکه چې زين او واګې د اس توابع دی. لکه څنګه چې ميوې د ونې تابع دی. هم داوجه ده. که يوکس مذکوره اس رهن کيخودو. او په دې باندې زين ترلې شوې دې. نو اس سره به بغير د ذکر کاوه نه زين او واګې هم رهن وی. لکه څنګه چې د ونو په رهن کې ددې ميوې هم د ذکر کولونه بغير رهن کې داخليږی.

### د کومو کومو څيزونو رهن صحيح دې؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَلَا يَصِحُّ الرَّهْنُ بِالْأَمَانَاتِ او صحيح نه دې رهن په بدله د امانتونو کې كَالْوَدَائِعِ پشان د ودائعو وَالْعَوَارِيِّ او عاريتونو وَالْمُضَارَبَاتِ او مضاربتونو وَمَالِ الشَّرِكَةِ او د شرکت د مالونو.

حل اللغة ① الودائع: جمع د وديعة: امانت ② العواري: جمع دعارية: په خواست سره يو شئ غوښتل يا ورکول

تشريح:- په متن کې د امانت او وديعت الفاظ راغلی دی دنفس مسئلې د وضاحت نه وړاندې په دې دواړو کې توپير زده کړه هغه دا چې په وديعت او امانت کې د عموم خصوص مطلق نسبت دې. يعنی وديعت هغه دې. کوم چې په قصد سره د بل سره کيخودې شی. يعنی په دې کې د بل په قبضه کې ورکول مقصود وی. او امانت کې اثبات د يد ضمنی وی. مثلاً هوا پيل شوه. او دې د زيد کپړې والوځولې. او د خالد په غيږه کې ئې اوغورځولې. نو دا امانت دې. او که زيد په قصد سره دا کپړه خالد سره ايخودې وه. نو دا وديعت دې. "كذا فى النهايه."

اوس د متن حل کاوه ته راشه وړاندې تير شوی دی. چه رهن ځکه ايخودې شی. چه د مرهون نه وصولی اوشی. او مرهون مرتهن سره مضمون وی. تردې که مرهون مرتهن سره هلاک شی. نو پور د مذکوره حکم مطابق ساقطيږی. ددې تفصيل نه دا خبره پخپله معلومه شوه. چه کوم شئ مضمون نه وی. نو د هغې په عوض به رهن ايخودل هم جائز نه وی.

لِأَنَّ الْقَبْضَ فِي بَابِ الرَّهْنِ ځکه چې قبضه په باب د رهن کې مضمون قبضه وی قَبْضٌ مَضْمُونٌ فَلَا بُدَّ مِنْ ضَمَانٍ ثَابِتٍ نو د ضمانت ثبوت ضروری دې لِيَقَعَ الْقَبْضُ مَضْمُونًا چې قبضه مضمون واقع شی وَيَتَحَقَّقُ اسْتِيفَاءُ الدَّيْنِ مِنْهُ. او ددې نه د دين وصولول متحقق شی.

تشريح:- ځکه چې هرکله دلته ضمان واجب نه دې. نو په رهن سره به د کوم شئ وصولول کولې شی. نو معلومه شوه. چه کوم شيان د امانت په فهرست کې راځی. د هغې په عوض رهن جائز نه دې. د امانت په فهرست کې کوم شيان راځی. نو د هغې نه بعض بيان کړې شوی دی. ① زيد د بل کس سره خپل څه شئ وديعت

كيخودو.او د مودع نه ئې ددې په بدله كي رهن اوغوښتلو.نو رهن باطل دې.④ زيد خالد ته يو شئ مستعار وركړو.او ددې په بدله كي ئې خالد نه رهن اوغوښتلو.نورهن باطل دې.ځكه چې عاريت پشان د امانت او وديعت مضمون نه وى.⑤ زيد خالد ته خپل څه مال مضاربت باندې وركړو.او د هغې په بدله كي ئې د خالد نه څه رهن اوغوښتلو.نو دا رهن باطل دې.⑥ د زيد او خالد په منځ كي شركت دې.په دوى كي يوكس د بل نه دشركت مال په عوض رهن اوغوښتلو.نو دا عقد رهن به باطل وى.هركله چې په دې ټولو صورتونو كي عقد رهن باطل شو.نو كله چې دا مرهون د مرتهن سره هلاك شى.نو په ده به رهن احكام نه جارى كيږى.بلكه د امانت احكام به جارى كيږى.او ضمانت به واجب نه وى.

## د مضمون بغيره په عوض كښي د رهن حكم

وَكَذٰلِكَ لَا يَصِحُّ او هم دغه ډول رهن صحيح نه دې بِالْأَعْيَانِ الْمَضْمُونَةِ بِغَيْرِهَا هغه څيزونو په بدله كي كوم چې مضمون بغيره وى كَالْمَبِيعِ فِي يَدِ الْبَائِعِ لكه څنګه چې د بائع په قبضه كي مبيع دې لِأَنَّ الضَّمَانَ لَيْسَ بِوَاجِبٍ ځكه چې ضمان واجب نه دې فَإِنَّهُ إِذَا هَلَكَ الْعَيْنُ نو كله عين (مبيع) هلاك شى لَمْ يَضْمَنِ الْبَائِعُ شَيْئًا نو بائع به د هيڅ شئ ضامن نه وى لٰكِنَّهُ يَسْقُطُ خو ثمن ساقطيږى الثَّمَنُ وَهُوَ حَقُّ الْبَائِعِ فَلَا يَصِحُّ الرَّهْنُ.او دا (ثمن) د بائع حق دې.نو رهن به صحيح نه وى.

تشريح:- د امانت په عوض رهن صحيح نه دې.او په مضمون بعينه شئ كي رهن صحيح دې.او مضمون به هغه شئ ته وائى.چه هغه د ادا كاوه يا د ابراء نه بغير نه ساقطيږى.لكه پور او هغه شيان هم د مضمون په مرتبه كي دى.كوم به چې راروان عبارت كي ذكر كيږى.د امانتونو او مضمون بعينه په منځ كي يو شئ هغه دې.كوم چې مضمون بعينه سره تعبير كولې شى.لكه چې د بائع په قبضه كي مبيع مضمون بغيره وى.او مضمون بغيره هغه شئ ته وائى.چه ددې په هلاكيدو سره ددې مثل يا قيمت هيڅ واجب نشى.البته ددې په بدله كي چې كوم شئ ملاويدو والا وو.اوس به هغه نه ملاويږى.لكه څنګه چې د بائع په قبضه كي مبيع دې.او هغه ده سره هلاك شى.بهرحال دې ته مضمون بغيره په دې معنى وئيلې شى.چه دا د ثمن مقابل دې.او ددې په هلاكيدو سره ثمن ساقطيږى.كنى دا په حقيقت كي غير مضمون دې.او اوس وړاندې معلومه شوې ده.چه د غير مضمون په عوض رهن صحيح نه دې.او كه كيخودې شو.نو عقد رهن به باطل وى.او كه مرهون مرتهن سره هلاك شى.چه د ضمان د وجوب نه بغير به هلاك وى.لنډيز د كلام دا كه بائع د مبيع په بدله كي مشترى سره رهن كيخودو.نو دا جائز نه ده.ځكه چې مبيع (د كوم په عوض كي چې رهن دې) غير مضمون دې.

مسئله*كه مبيع هلاك نشى.بلكه كوم رهن چې د مبيع په بدله كي ايخودې شوې دې.هغه هلاك شو.نو بيع پخپل حال صحيح دې.او رهن مذكور باطل وو.نو د هغې به هيڅ ضمان مشترى باندې نه وى.﴿الجوهرة النيرة:ص٢٧٦ج١﴾

## د مضمون بعينها په بدله كښي د رهن حكم

فَأَمَّا الْأَعْيَانُ الْمَضْمُونَةُ بِعَيْنِهَا نو بهرحال كوم شيان چې پخپله مضمون دى وَهُوَ أَنْ يَكُونَ مَضْمُونًا بِالْمِثْلِ أَوْ بِالْقِيمَةِ او دا هغه دى.چه د مثل يا قيمت په عوض كي مضمون وى عِنْدَ هَلَاكِهِ د خپل هلاكيدو په وخت مِثْلَ الْمَغْصُوبِ وَبَدَلِ الْخُلْعِ وَالْمَهْرِ لكه مغصوب، او بدل خلع، او بدل مهر وَبَدَلِ الصُّلْحِ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ او د دم عمد بدل صلح، يَصِحُّ الرَّهْنُ بِهَا نو ددې څيزونو بدله كي رهن صحيح دې لِأَنَّ الضَّمَانَ مُتَقَرِّرٌ، ځكه چې ضمان ثابت دې فَإِنَّهُ إِنْ كَانَ قَائِمًا ځكه كه دا شيان موجود وى وَجَبَ تَسْلِيمُهُ،نو ددې سپارل واجب دى وَإِنْ كَانَ هَالِكًا او كه هلاك شى.نو ددې قيمت واجب دې تَجِبُ قِيمَتُهُ، فَكَانَ رَهْنًا بِمَا هُوَ مَضْمُونٌ فَيَصِحُّ.نو دا رهن به د داسې شئ



په بدله كي وى.كوم چې مضمون دې.نو رهن صحيح دې.

تشريح:- د كومو څيزونو بدله كي چې رهن ايخودلې شوې دې.كه هغه مضمون بعينه وى.نو رهن به صحيح وى.او د مضمون بعينه پيژندلو علامه دا ده.چه كه دا موجود وى.نو دا چې څنګه وى.هم هغه شان واپس كول ضرورى دى.اوكه هلاك شى.نو كه دا د ذوات الامثال څخه وى.نو ددې مثل سپارل واجب دى.او كه د ذوات القيم څخه وى.نو ددې قيمت سپارل واجب دى.نو په داسې صورت كي به رهن د داسې شئ په عوض كي وى.كوم چې مضمون دې.نو رهن به صحيح وى.چه مرغينانى رحمه الله ددې څلور مثالونه بيان كړى دى.① زيد د خالد اس غصب كړو.او د مغصوب اس په بدله كي ئې رهن كيخودو.نو جائز دې. ځكه كه اس موجود دې.نو بعينه ددې سپارل واجب دى.او كه هلاك شى.نو چونكه دا د ذوات القيم څخه دې.نو ددې د قيمت سپارل به واجب وى.نوكه رهن د داسې شئ په بدله كي دې.كوم چې مضمون بعينه دې.نو رهن به صحيح وى.② خالدې د زيد سره خلع اوكړله.او د خلع بدل مثل يو اس ئې مقرر كړو.او ددې په بدله كي ئې زيد سره رهن كيخودو.نو جائز دې.د مذكوره دليل په وجه.③ زيد د خالدې سره نكاح اوكړله.او مثلاً يو اس ئې په مهر كي مقرر كړو.او د اس په بدله كي ئې خالدې سره رهن كيخودو.نو دا رهن جائز دې.د مذكوره دليل په وجه.④ زيد خالد په قصد سره قتل كړو.چه ددې په وجه زيد باندې قصاص واجب شو.خو زيد د خالد وارثانو سره صلح اوكړله.چه زه به تاسو ته مثلاً يو اس دركړم.تاسو قصاص معاف كړئ.بيا زيد ددې اس په بدله كي رهن كيخودو.نو دا رهن جائز دې.د تير شوى دليل په وجه.

## د رهن بالدرك او كفالت بالدرك حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله جامع صغير كي فرمائيلى دى وَالرَّهْنُ بِالدَّرَكِ بَاطِلٌ وَالْكَفَالَةُ بِالدَّرَكِ جَائِزَةٌ او رهن بالدرك باطل دې.او كفالت بالدرك جائز دې وَالْفَرْقُ أَنَّ الرَّهْنَ لِلِاسْتِيفَاءِ او توپير دا دې.چه رهن د وصولولو لپاره دې وَلَا اسْتِيفَاءَ قَبْلَ الْوُجُوبِ او د وجوب نه مخكي وصولول وَإِضَافَةُ التَّمْلِيكِ إِلَى زَمَانٍ فِي الْمُسْتَقْبَلِ لَا تَجُوزُ أَمَّا الْكَفَالَةُ فَلِالْتِزَامِ الْمُطَالَبَةِ د مطالبې د التزام لپاره دې وَالْتِزَامُ الْأَفْعَالِ يَصِحُّ مُضَافًا إِلَى الْمَآلِ او د افعالو التزام مال اړخ ته اضافت كاوه سره صحيح دې كَمَا فِي الصَّوْمِ وَالصَّلَاةِ لكه په روژه او لمونځ كي (چې كيږى). وَلِهٰذَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِمَا ذَابَ لَهُ عَلَى فُلَانٍ او هم په دې وجه كفالت جائز دې.د هغه شئ كوم چې دده لپاره ثابت وى.په فلانى باندې،، وَلَا يَصِحُّ الرَّهْنُ.او رهن صحيح نه دې.

تشريح:- درك په معنى د تاوان او نقصان دې.او كله داسې كيږى.چه زيد دخالد نه څه شئ واخستلو.خو هغه يريږى.چه چرته په دې كي نقصان اونشي.نو بكر د زيد لپاره ضامن جوړيږى.چه ته مه يريږه.زه كفيل يم.كه د څه تاوان او نقصان خبره راپيښه شوه.نو زه به ستا ثمن واپس دركړم.نو دې ته كفالت بالدرك وائى.او دا جائز دې.اوس سوال پيدا كيږى.چه دا توپير ولې دې.نو مرغينانى رحمه الله ددې ځواب وركوى.چه رهن ددې لپاره وى.چه وصولول اوشى.او هركله چې څه واجبى حق نه دې.نو وصولول به د كوم شئ كيږى .ځكه چې اوس بائع باندې د مشترى هيڅ حق نشته.

*كه څوك دا ووايي چې اوس حق نشته.خو روستو دكيدو احتمال شته.نو بايد ده (پكار ده) چې رهن صحيح وى د دې ځواب دا دې چې كه يوكس په روستو زمانه كي د كيدونكى پور په عوض كي د اوس نه رهن كيږدى.نو دا هم جائز نه دې.نو رهن بالدرك هم دغه ډول دې.نو دا به هم جائز نه وى.پاتې شوه خبره د كفالت، نو ددې مقصد استيفاء نه ده.بلكه التزام د مطالبې دې.او د مطالبې التزام چې لكه څنګه د موجوده څيزونو په اړه كي كيداې شى.دغه ډول د راروانو څيزونو په اړه كي هم كيداې شى.لكه څنګه چې په لمونځ او روژه كي كيږى.چه په راروانه زمانه كي نذر كونكې لمونځ او روژه پخپل ځان باندې د نذر په ذريعه لازموى.اوس ددې خبرې پوهولو لپاره دوهم مثال پيش كوى.چه زيد خالد ته اووئيل.چه په بكر باندې

ستا كومه قرضه ښكاره شي.زه د هغې كفيل يم.نو كفالت صحيح دې.خو په دې صورت كې رهن ايښودل صحيح نه دى.نو هم دغه ډول كفالت بالدرك جائز دې.او رهن بالدرك جائز نه دې.

## رهن باندې د وجوب نه وړاندې قبضه كول او هلاكيدو سره د ضمان حكم

فَلَوْدست(تصرف)نوكه مشتري رهن باندې قبضه اوكړله قَبْلَ الْوُجُوبِ د وجوب نه مخكې فَهَلَكَ عِنْدَهُ نو دا رهن مشتري سره هلاك شو يَهْلِكُ أَمَانَةً نو د امانت په طريقه به په مالك هلاك وى.لِأَنَّهُ لَا خكه چې عقد رهن نه دې؛ عَقْدَ حَيْثُ وَقَعَ بَاطِلًا.په دې حيثيت سره چې دا باطل واقع شوې وو.

تشريح:- رهن بالدرك جائز نه دې.( كمامر) ددې باوجود هم كه مشتري رهن كيښودو.نو چونكه عقد رهن خو باطل دې.نو كه مشتري سره دا مرهون هلاك شي.نو په ده به ددې ضمان واجب نه وى.بلكه په ده به د امانت حكم جاري كيږى.او امانت كې ضمان نه واجبيږى.دغه ډول به دلته كې هم وى.

## د وعده شوى پور په بدله كښې د رهن ايښودو حكم

بِخِلَافِ الرَّهْنِ بِالدَّيْنِ الْمَوْعُودِ په خلاف د هغه رهن كوم چې د موعود ( وعده كړې شوى) پور په بدله كې ( ايښودې شوې) وى وَهُوَأَنْ يَقُولَ رَهَنْتُكَ هَذَا او هغه دا دې.چه راهن اووائى.ما تا سره دا شئ رهن كيښودو لِتُقْرِضَنِي أَلْفَ دِرْهَمٍ چې ته ماته زر درهمه پور راكړې وَهَلَكَ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ اومرتهن سره دا مرهون هلاك شى حَيْثُ يَهْلِكُ بِمَا سَمَّى مِنَ الْمَالِ نو دا به دهغه د مال په عوض هلاك وى بِمُقَابَلَتِهِ كوم چې ددې مقابله كې وئيلې شوې دي لِأَنَّ الْمَوْعُودَ جُعِلَ كَالْمَوْجُودِ بِاعْتِبَارِ الْحَاجَةِ،خكه چې موعود د حاجت په اعتبار سره د موجود پشان كولاى شى وَلِأَنَّهُ مَقْبُوضٌ بِجِهَةِ الرَّهْنِ او خكه چې دا مرهون مقبوض دې د هغه رهن په وجه الَّذِي يَصِحُّ عَلَى اعْتِبَارِ وُجُودِهِ كوم چې دخپل وجود په اعتبار سره صحيح كيږى فَيُعْطَى لَهُ حُكْمُهُ نو دده لپاره به د رهن حكم ور كولاى شى كَالْمَقْبُوضِ عَلَى سَوْمِ الشِّرَاءِ لكه هغه سامان په كوم چې د اخستلو په نرخ قبضه كړې شوې وى، فَيَضْمَنُهُ.نو دا مرتهن به ددې ضامن وى.

حل اللغة* ① الموعود: چې وعده ئې شوې وى ② يعطى: ور كولاى شى ③ المقبوض:چه قبض شوې وى﴾

تشريح:- دا عبارت په اصل كې د يو سوال ځواب دې د هغې تفصيل دا دې چې اعتراض ويونكې وائى اوس بيان تير شو.چه رهن بالدرك جائز نه دې.نو په دې شبه كيدله.چه كه زيد خالد سره وعده اوكړله.چه زه به تاته زر درهمه پور دركړم.خو اوس ئې لا وركړې نه دې.او ددې موعود پور په بدله كې ده رهن كيخودو.نو دا رهن هم جائز كيدل پكار نه دى.خكه چې دا رهن د هغه پور په بدله كې دې.كوم چې لا اوس د سره واجب نه دې.نو لكه ځنګه چې رهن بالدرك جائز نه دې.دا هم جائز كيدل پكار نه دى.حالانكه تاسو دا جائز ګرځوئ؟

مرغيناني رحمة الله عليه ددې ځواب وركړو.چه د خلګو په عامه توګه (عام طور) باندې عادت دا دې.چه مخكې رهن ايږدى.بيا پور وركوى.نو دلته كې حاجت او اړتيا دې.ګنى د پور دروازه به بنده شى.ددې اړتيا په وجه موږ موعود ته د موجود مرتبه وركړله. ددې په عوض كې مو رهن جائز اوګرځوو .خكه چې د پور نه مخكې اګرچه دا اوس اصلى رهن نه دې جوړ شوې.خو روستو رهن جوړيدونكې دې.نو د ماؤل اليه ( د انجام) د علاقې اعتبار كاوه سره به دا د اوس نه رهن شمارلې كيږى.هركله چې دا رهن اومنلې شو.نو بيا به په دې باندې درهن احكام جاري كيږى.اوكه دا مرتهن سره هلاك شي.نو په ده به ضمان واجب وى.

او د دې لپاره موږ بل مثال هم پيش كولې شو مثلاً زيد د بكر اس اوكتلو.او بكر ددې نرخ زر روپۍ اوخودلو.بيا زيد دا اس پخپله قبضه كې راوستلو.مثلاً د كور خلګو ته خودلو دپاره،چه دا اس دده سره هلاك شو.نو په زيد به د اس هغه قيمت واجب وى.كوم چې بكر ددې نرخ خودلې وو.نو ګويا دلته كې د اخستلو واقع كيدو اعتبار اوكړې شو.دغه ډول په تير شوى مثال كې موعود، موجود شمار كړې شوې دې.

## د بيع سلم د راس المال، د بيع صرف د ثمن، او د مسلم فيه په بدله كښې د رهن حكم



قَالَ امام قدورى رحمة الله عليه اوفرمائيل كيږى وَيَصِحُّ الرَّهْنُ بِرَأْسِ مَالِ السَّلَمِ او د بيع سلم د راس المال په بدله كښې وَبِثَمَنِ الصَّرْفِ او د بيع صرف د ثمن په بدله كې وَالْمُسْلَمِ فِيهِ او د مسلم فيه په بدله كې رهن صحيح دې وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَجُوزُ،او امام زفر رحمة الله عليه فرمائى.جائز نه دې لِأَنَّ حُكْمَهُ الِاسْتِيفَاءُ، خكه چې د رهن حكم استيفاء ده وَهَذَا اسْتِبْدَالٌ لِعَدَمِ الْمُجَانَسَةِ او دا بدلول دى.د مجانست نه كيدو په وجه وَبَابُ الِاسْتِبْدَالِ فِيهِمَا او په دې ځيزونو كې د بدلولو دروازه بنده ده مَسْدُودٌ وَلَنَا أَنَّ الْمُجَانَسَةَ ثَابِتَةٌ فِي الْمَالِيَّةِ او زموږ دليل دا دې.چه بدلولو كې مجانست ثابت دى فَيَتَحَقَّقُ الِاسْتِيفَاءُ مِنْ حَيْثُ الْمَالُ نو د مال په اعتبار سره به وصولول متحقق ،وَهُوَ الْمَضْمُونُ عَلَى مَا مَرَّ او د تيرشوى تفصيل مطابق ماليت مضمون وى.

حل اللغة* ① استبدال: بدلول ② مسدود: بند شوې ③ الاستيفاء: حاصلول﴾

تشريح:- د بيع سلم او بيع صرف تفصيلى بيان په هدايه دريم ټوك كې تير شوې دې.په بيع سلم كې ثمن ته راس المال ، او مبيع ته مسلم فيه، او بائع ته مسلم اليه او مشتري ته رب السلم وائى.په بيع سلم كې د معاقدينو د جلا كيدو نه مخكې راس المال باندې قبضه ضرورى ده.او كوم چې راس المال يا مسلم فيه مقرر كړې شوې دې.د هغې بدلول جائز نه دى.دغه ډول بيع صرف كې هم د عاقدينو د جلا كيدو نه مخكې په ثمن او مبيع باندې قبضه شرط ده.او د ثمن بدلول جائز نه دى.هركله چې دا تفصيل په ذهن كې كيناستو.نو اوس واؤرئ چې زموږ په نيز د راس المال په عوض او د بيع صرف د ثمن په عوض او هم دغه ډول د مسلم فيه په عوض كې رهن ايخودل جائز دى.

البته په دې ځائې كې دا اعتراض كيداې شى چې دا رهن جائز نه وى.خكه چې كله ددې په بدله كې رهن ايخودې شى.نو ددې ځيزونو بدلول به لازميږى.يعنى راس المال بل څه مقرر دې.او ددې په بدله كې ئې بل څه وركړل.يعنى مرهون خو حق وصولول نشو.بلكه په حق كې توپير شوه.په دې وجه امام زفر رحمة الله عليه مذكوره رهنونه ناجائز ګرځولى دى.خكه چې د مرهون او حق په منځ كې مناجنست نشته.نو د استيفاء حق په ځائې استبدال لازميږى؟ نو د دې ځواب دا دې چې وړاندې تير شوى دى.چه د مرهون عين امانت دې.او ددې ماليت مضمون دې.نو مذكوره رهن اګرچه د خپل عين په اعتبار سره غير جنس دې.خو د خپل ماليت په اعتبار سره غير جنس نه دې.بلكه د مجانس حق دې.او هركله چې رهن كې اصل مضمون ماليت دې.نو ماليت په دواړو كې موجود دې.نو مجانست متحقق دې.او د بدلولو اعتراض غلط دې.

## د مبيع په بدله كښې د رهن حكم

قَالَ امام قدورى رحمة الله عليه اوفرمائيل وَالرَّهْنُ بِالْمَبِيعِ بَاطِلٌ او د مبيع په بدله كې رهن باطل دې لِمَا د هغه دليل په وجه،كوم چې موږ بيان كړې دي بَيَّنَّا أَنَّهُ غَيْرُ مَضْمُونٍ بِنَفْسِهِ چې مبيع غير مضمون بنفسه دې فَإِنْ هَلَكَ نو كه مرهون مشتري سره هلاك شي ذَهَبَ بِغَيْرِ شَيْءٍ.نو د څه شئ څخه به بغير هلاك وى.

تشريح:- وړاندې مرغيناني رحمة الله عليه د مضمون بغيره حكم بيان كړې دې.اوس هم دا مفهوم د امام قدورى رحمة الله عليه په الفاظو كې بيان كړې شوې دې.چه چونكه مبيع مضمون بعينه نه وى.په دې وجه به ددې په عوض كې رهن جائز نه وى.بلكه عقد رهن به باطل وى.او كه دا مرهون مشتري سره هلاك شى.نو په مشتري به هيڅ ضمان نه وى.

لِأَنَّهُ لَا اعْتِبَارَ خكه چې د عقد باطل اعتبار نه كيږى لِلْبَاطِلِ فَبَقِيَ قَبْضًا بِإِذْنِهِ.نو مرهون د بائع ( راهن) په اجازت سره مقبوض پاتې شو.

تشريح:- خكه چې دا د سره مرهون نه دې.ددې حقيقت خو دا دې.چه د بائع په اجازت سره مشتري دده په سامان باندې قبضه كړې ده.نو دا امانت شو.او د امانت ضمان نه واجبيږى.

### که د ثمن یا راس المال په بدله کښې رهن وي.اوهم په دې مجلس کښې هلاك شي؟

وَاِنْ هَلَكَ الرَّهْنُ بِثَمَنِ الصَّرْفِ وَرَاْسِ مَالِ السَّلَمِ فِيْ مَجْلِسِ الْعَقْدِ او که په مجلس د عقد کي د بیع صرف د ثمن او د بیع سلم د راس المال په عوض رهن هلاك شي تَمَّ الصَّرْفُ وَالسَّلَمُ نو بیع صرف او بیع سلم به تمام وي وَصَارَ الْمُرْتَهِنُ مُسْتَوْفِيًا لِدَيْنِهِ حُكْمًا او مرتهن به دخپلي پور وصولونکې وي.په اعتبار د حکم لِتَحَقُّقِ الْقَبْضِ حُكْمًا د قبضي متحقق کیدو په وجه وَاِنْ افْتَرَقَا قَبْلَ هَلَاكِ الرَّهْنِ و که دواړه جلا شو.د رهن هلاکیدو نه مخکي، بَطَلَا لِفَوَاتِ الْقَبْضِ حَقِيْقَةً وَحُكْمًا، نو دواړه عقد به باطل وي.حقیقتاً هم او حکماً هم.د قبضي فوت کیدو په وجه.

**تشریح:-** په بیع صرف کي د ثمن په بدله کي رهن کیخودې شو.یا د راس المال په بدله کي رهن کیخودې شو.او تر اوسه د عاقدینو مجلس نه دې بدل شوې.چه مرهون هم په دې مجلس کي هلاك شو.نو بیع صرف او بیع سلم به تام شمارلې کیږي.چونکه د مرتهن په قبضه کي د مرهون هلاکیدو په وجه حکماً مرتهن پخپل پور باندې قبضه کړې ده.نو دواړه عقد تام شو.البته که د مرهون د هلاکیدو نه مخکې دواړه جلا شو.نو اوس دواړه عقدونه، یعني بیع صرف او بیع سلم باطل دی.ځکه چې ثمن او راس المال باندې نه حقیقتاً قبضه شوې ده.لکه څنګه چې ښکاره ده.او نه حکماً شوې ده.ځکه چې مرهون نه دې هلاك شوې.که هلاك شوې وې.نو حکماً به قبضه شمار کیدله.

که دلته څوك دا ووایې چې تاسو خو وړاندې خپل او د امام زفر رحمه الله اختلاف بیان کړې دې.چه زموږ په نیز د راس الماله په بدله کي او د بیع صرف د ثمن په بدله کي رهن صحیح دې.او دلته کي تاسو فرمایئ.چه هم په دې مجلس کي که هلاك شي.نو عقد صرف او عقد سلم تام دې.ګني باطل دې؟ موږ خواب ورکوو چې ددې مسئلې مطلب هم دا دې.چه رهن ددې څیزونو په بدله کي جائز دې.خو روستو به دا شئ کتلې شي.چه مرهون هم په دې مجلس کي هلاك شوې دې.او که نه (روستو هلاك شوې دې).که هم په دې مجلس کي هلاك شوې وي.نو عقد تام دې.ګني نه دې.ځکه چې هیڅ قسمه قبضه نه ده شوې.ځکه چې دواړه عقدونه به باطل وي.په نورو الفاظو کي داسې چې دا د مخکنۍ اجمالي مسئلې تفصیل دې.

### د مسلم فیه په بدله کښې د رهن هلاکیدو حکم

وَاِنْ هَلَكَ الرَّهْنُ بِالْمُسْلَمِ فِيْهِ او د مسلم فیه د عوض رهن هلاك شي بَطَلَ السَّلَمُ بِهَلَاكِهِ نو ددې د هلاکیدو په وجه به سلم باطلیږي وَمَعْنَاهُ: اَنَّهُ يَصِيْرُ مُسْتَوْفِيًا لِلْمُسْلَمِ او ددې مطلب دا دې.چه دا (رب السلم) د مسلم فیه وصولونکې ګرځیږي فِيْهِ فَلَمْ يَبْقَ السَّلَمُ.نو عقد سلم پاته پاتې نشو.

**تشریح:-** زید او خالد خپل منځ کي بیع سلم اوکړو.زید د شریعت د حکم مطابق، راس المال خالد ته حواله کړو.او خالد د مسلم فیه په عوض زید سره خپل اس رهن کیخودو.نو دا جائز دې.اوس صورت دا شو.چه زید سره هغه اس کوم چې د مسلم فیه عوض دې.هلاك شو.نو عقد سلم باطل شو.په دې باندې مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د ,,بطل،، څه معنی ده؟ نو وې فرمائیل.ددې مطلب دا دې.چه عقد سلم تام شو.او تام ختم شو.ځکه چې هرکله رب السلم د مسلم فیه په عوض باندې قبضه اوکړله.او هغه دده سره هلاك شو.نو ګویا ده پخپل حق باندې قبضه اوکړله.یعني مسلم فیه نې وصول کړو.نو اوس عقد سلم پاته پاتې نشو.بلکه پوره شو.خو دا حکم هغه وخت دې.کله چې د مرهون قیمت د اصل حق برابر وي.یا زیات وي.اوکه قیمت کم وي.نو په اندازه د قیمت حق وصول شو.او پاته به دې د مسلم الیه نه واپس اخلي... کذا فی العینی،،

### بیع سلم فسخ کولو سره رهن د راس المال بدل جوړیدل



وَلَوْ تَفَاسَخَا السَّلَمَ او که دواړو عقد سلم فسخ کړو وَبِالْمُسْلَمِ فِيْهِ رَهْنٌ او د مسلم فیه په عوض رهن وو يَكُوْنُ ذٰلِكَ رَهْنًا بِرَاْسِ الْمَالِ نو دا رهن به د راس المال په بدل کي شي.نو رب السلم به مرهون محبوس (خان سره ګیر)ساتي حَتّٰى يَقْبِضَهُ (تردې چې خپل راس المال واپس واخلي).

**تشریح:-** زید او خالد بیع سلم کړې وو.او زید راس المال خالد ته حواله کړې وو.او خالد د مسلم فیه په عوض زید سره خپل اس رهن ایږدلې وو.نو عقد جائز وو.خو اوس دواړو خپل منځ کي رضامندۍ سره بیع سلم فسخ کړو.او رهن زید سره موجود دې.نو اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل.چه دا اس مخکي د مسلم فیه په عوض رهن وو.اوس به دا د هغه راس المال په عوض رهن شي.کوم چې زید خالد ته ورکړې وو.نو زید ته به حق وي.چه ترکومه پورې خالد دده راس المال ورنکړي.نو دې به د هغه اس نه ورکوي.

لِاَنَّهُ بَدَلُهُ ځکه چې راس المال د مسلم فیه بدل دې فَصَارَ كَالْمَغْصُوْبِ اِذَا هَلَكَ نو داسې شوه.لکه چې مغصوب کله چې هلاك شي وَبِهِ رَهْنٌ او د مغصوب په بدله کي رهن وي يَكُوْنُ رَهْنًا بِقِيْمَتِهِ.نو دا به ددې د قیمت په بدله کي رهن وي.

**تشریح:-** ځکه چې راس المال د مسلم فیه بدل دې.نو هرکله چې مسلم فیه معدوم شو.نو ددې بدل یعني راس المال به ددې قائم مقام ګرځولې شي.او وئیلې به شي.چه اوس دا رهن په ځانې د مسلم فیه د راس المال په عوض محبوس (ګیر) دې.او ددې مثال بالکل داسې دې.چه زید د خالد اس غصب کړو.بیا زید خالد سره د مغصوب په بدله کي څه شئ رهن کیخودو.نو جائز دې.بیا زید سره دا مغصوب اس هلاك شو.نو اوس دا حکم دې.چه مذکوره رهن مخکي د مغصوب بدل وو.او اوس به د مغصوب د قیمت بدل وي.ترکومه پورې چې زید د اس قیمت خالد ته حواله نکړي.تر هغه وخته پورې خالد ته حق شته.چه مرهون خپل ځان سره ګیر اوساتي.هم دغه ډول مذکوره مسئله هم ده.

### د بیع سلم فسخ کولو نه روسته د رهن هلاکیدو مسئله

وَلَوْ هَلَكَ الرَّهْنُ بَعْدَ التَّفَاسُخِ او که د فسخ کاوه نه روسته مرهون هلاك شي يَهْلِكُ بِالطَّعَامِ نو د هغه غلې (خوراك) په بدله کي به هلاك وي الْمُسْلَمِ فِيْهِ کوم چې مسلم فیه دې لِاَنَّهُ رَهْنُهُ ځکه چې دا دهغې په عوض کي رهن دې، بِهِ، وَاِنْ كَانَ مَحْبُوْسًا بِغَيْرِهِ.اګرچه د هغې نه د علاوه په عوض کي ګیر دې.

**تشریح:-** مذکوره حکم هغه وخت دې.چه مرهون هلاك نه وي.او که د فسخ نه روسته مرهون هلاك شي.نو اګرچه مرهون اوس د راس المال په عوض ګیر شوې وو.خو دا په اعتبار د اصل د مسلم فیه په عوض رهن دې.نوکه مرهون هلاك شي.نو د مسلم فیه په عوض به هلاك وي.او اوس به حکم دا وي.چه راهن به دومره غله مسلم الیه ته ورکوي.کومه چې مسلم فیه مقرر شوې وه.نو هله به دې د خپل راس المال واپس اخستلو حقدار وي.

### د رومبۍ مسئلې یو مثال

كَمَنْ بَاعَ عَبْدًا لکه هغه سړې چې خپل غلام نې خرڅ کړو وَسَلَّمَ الْمَبِيْعَ او مبیع نې اوسپارلو وَاَخَذَ بِالثَّمَنِ رَهْنًا او د ثمن په عوض نې رهن واخستلو ثُمَّ تَقَايَلَا الْبَيْعَ لَهُ اَنْ يَحْبِسَهُ بیا دوی دواړو د بیع اقاله اوکړله.نو بائع ته حق شته.چه مرهون خان سره ګیر کړي لِاَخْذِ الْمَبِيْعِ د مبیع اخستلو لپاره لِاَنَّ الثَّمَنَ بَدَلُهُ ځکه چې ثمن ددې بدل دې، وَلَوْ هَلَكَ الْمَرْهُوْنُ يَهْلِكُ بِالثَّمَنِ او که مرهون هلاك شي.نو د ثمن په عوض به هلاك وي لِمَا بَيَّنَّا.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې.

**تشریح:-** په دې کي مرغیناني رحمه الله د رومبۍ مسئلې واضح کاوه لپاره ددې یو مثال پیش کوي. فرمائي. مثـ
زید د خالد په لاس یو غلام خرڅ کړو.او غلام نې خالد ته حواله کړو.او خالد د ثمن په عوض مثلاً یو اس

**كه د ثمن يا راس المال په بدله كښې رهن وى.اوهم په دې مجلس كښې هلاك شى؟**

وَإِنْ هَلَكَ الرَّهْنُ بِثَمَنِ الصَّرْفِ وَرَأْسِ مَالِ السَّلَمِ فِي مَجْلِسِ الْعَقْدِ او كه په مجلس د عقد كي د بيع صرف د ثمن او د بيع سلم د راس المال په عوض رهن هلاك شى تَمَّ الصَّرْفُ وَالسَّلَمُ نو بيع صرف او بيع سلم به تمام وى وَصَارَ الْمُرْتَهِنُ مُسْتَوْفِيًا لِدَيْنِهِ حُكْمًا او مرتهن به دخپلې پور وصولونكې وى.په اعتبار د حكم لِتَحَقُّقِ الْقَبْضِ حُكْمًا د قبضې متحقق كيدو په وجه وَإِنْ افْتَرَقَا قَبْلَ هَلَاكِ الرَّهْنِ او كه دواړه جلا شو.د رهن هلاكيدو نه مخكي، بَطَلَا لِفَوَاتِ الْقَبْضِ حَقِيقَةً وَحُكْمًا، نو دواړه عقد به باطل وى.حقيقتاً هم او حكماً هم.د قبضې فوت كيدو په وجه.

**تشريح:-** په بيع صرف كي د ثمن په بدله كي رهن كيخودې شو.يا د راس المال په بدله كي رهن كيخودې شو.او تر اوسه د عاقدينو مجلس نه دې بدل شوې.چه مرهون هم په دې مجلس كي هلاك شو.نو بيع صرف او بيع سلم به تام شمارلې كيږي.چونكه د مرتهن په قبضه كي د مرهون هلاكيدو په وجه حكماً مرتهن پخپل پور باندې قبضه كړې ده.نو دواړه عقد تام شو.البته كه د مرهون د هلاكيدو نه مخكي دواړه جلا شو.نو اوس دواړه عقدونه، يعنى بيع صرف او بيع سلم باطل دى.ځكه چې ثمن او راس المال باندې نه حقيقتاً قبضه شوې ده.لكه څنګه چې ښكاره ده.او نه حكماً شوې ده.ځكه چې مرهون نه دې هلاك شوې.كه هلاك شوې وې.نو حكماً به قبضه شمار كيدله.

كه دلته څوك دا ووايي چې تاسو خو وړاندې خپل او د امام زفر رحمه الله اختلاف بيان كړې دې.چه زموږ په نيز د راس الماله په بدله كي او د بيع صرف د ثمن په بدله كي رهن صحيح دې.او دلته كي تاسو فرمايئ چه هم په دې مجلس كي كه هلاك شى.نو عقد صرف او عقد سلم تام دې.ګني باطل دې؟ موږ ځواب وركوو چې ددې مسئلې مطلب هم دا دې.چه رهن ددې څيزونو په بدله كي جائز دې.خو روستو به دا شئ كتلې شى.چه مرهون هم په دې مجلس كي هلاك شوې دې.او كه نه ( روستو هلاك شوې دې). كه هم په دې مجلس كي هلاك شوې وى.نو عقد تام دې.ګني نه دې.ځكه چې هيڅ قسمه قبضه نه ده شوې.ځكه چې دواړه عقدونه به باطل وى.په نورو الفاظو كي داسې چې دا د مخكنۍ اجمالى مسئلې تفصيل دې.

**د مسلم فيه په بدله كښې د رهن هلاكيدو حكم**

وَإِنْ هَلَكَ الرَّهْنُ بِالْمُسْلَمِ فِيهِ او د مسلم فيه د عوض رهن هلاك شى بَطَلَ السَّلَمُ بِهَلَاكِهِ نو ددې د هلاكيدو په وجه به سلم باطليږي وَمَعْنَاهُ: أَنَّهُ يَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا لِلْمُسْلَمِ او ددې مطلب دا دې.چه دا (رب السلم) د مسلم فيه وصولونكې ګرځيږي فِيهِ فَلَمْ يَبْقَ السَّلَمُ.نو عقد سلم پاته پاتې نشو.

**تشريح:-** زيد او خالد خپل منځ كي بيع سلم اوكړو.زيد د شريعت د حكم مطابق، راس المال خالد ته حواله كړو.او خالد د مسلم فيه په عوض زيد سره خپل اس رهن كيخودو.نو دا جائز دې.اوس صورت دا شو.چه زيد سره هغه اس كوم چې د مسلم فيه عوض دې.هلاك شو.نو عقد سلم باطل شو.په دې باندې مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د ”بطل“ څه معنى ده؟

نو وې فرمائيل.ددې مطلب دا دې.چه عقد سلم تام شو.او تام ختم شو.ځكه چې هركله رب السلم د مسلم فيه په عوض باندې قبضه اوكړله.او هغه دده سره هلاك شو.نو ګويا ده پخپل حق باندې قبضه اوكړله.يعنى مسلم فيه ئې وصول كړو.نو اوس عقد سلم پاته پاتې نشو.بلكه پوره شو.خو دا حكم هغه وخت دې.كله چې د مرهون قيمت د اصل حق برابر وى.يا زيات وى.اوكه قيمت كم وى.نو په اندازه د قيمت حق وصول شو.او پاته به دې د مسلم اليه نه واپس اخلى.“ كذا فى العينى“.

**بيع سلم فسخ كولو سره رهن د راس المال بدل جوړيدل**



وَلَوْ تَقَايَلَا السَّلَمَ او كه دواړو عقد سلم فسخ كړو وَبِالْمُسْلَمِ فِيهِ رَهْنٌ او د مسلم فيه په عوض رهن وو يَكُونُ ذَلِكَ رَهْنًا بِرَأْسِ الْمَالِ نو دا رهن به د راس المال په بدل كي شى.نورب السلم به مرهون محبوس(خان سره ګير)ساتى حَتَّى يَحْبِسَهُ(تردې چې خپل راس المال واپس واخلى ).

**تشريح:-** زيد او خالد بيع سلم كړې وو.او زيد راس المال خالد ته حواله كړې وو.او خالد د مسلم فيه په عوض زيد سره خپل اس رهن ايښودلې وو.نو عقد جائز وو.خو اوس دواړو خپل منځ كي رضامندۍ سره بيع سلم فسخ كړو.او رهن زيد سره موجود دې.نو اوس څه حكم دې؟ نو وې فرمائيل.چه دا اس مخكي د مسلم فيه په عوض رهن وو.اوس به دا د هغه راس المال په عوض رهن شى.كوم چې زيد خالد ته وركړې وو.نو زيد ته به حق وى.چه تركومه پورې خالد دده راس المال ورنكړى.نو دې به د هغه اس نه وركوى.

لِأَنَّهُ بَدَلُهُ ځكه چې راس المال د مسلم فيه بدل دې فَصَارَ كَالْمَغْصُوبِ إِذَا هَلَكَ نو داسې شوه.لكه چې مغصوب كله چې هلاك شى وَبِهِ رَهْنٌ او د مغصوب په بدله كي رهن وى يَكُونُ رَهْنًا بِقِيمَتِهِ.نو دا به ددې د قيمت په بدله كي رهن وى.

**تشريح:-** ځكه چې راس المال د مسلم فيه بدل دې.نو هركله چې مسلم فيه معدوم شو.نو ددې بدل يعنى راس المال به ددې قائم مقام ګرځولې شى.او وئيلې به شى.چه اوس دا رهن په ځائې د مسلم فيه د راس المال په عوض محبوس ( ګير) دې.او ددې مثال بالكل داسې دې.چه زيد د خالد اس غصب كړو.بيا زيد خالد سره د مغصوب په بدله كي څه شئ رهن كيخودو.نو جائز دې.بيا زيد سره دا مغصوب اس هلاك شو.نو اوس دا حكم دې.چه مذكوره رهن مخكي د مغصوب بدل وو.او اوس به د مغصوب د قيمت بدل وى.تركومه پورې چې زيد د اس قيمت خالد ته حواله نكړى.تر هغه وخته پورې خالد ته حق شته.چه مرهون خپل خان سره ګير اوساتى.هم دغه ډول مذكوره مسئله هم ده.

**د بيع سلم فسخ كولو نه روسته د رهن هلاكيدو مسئله**

وَلَوْ هَلَكَ الرَّهْنُ بَعْدَ التَّفَاسُخِ او كه د فسخ كاوه نه روسته مرهون هلاك شى يَهْلِكُ بِالطَّعَامِ نو د هغه غلې ( خوراك) په بدله كي به هلاك وى الْمُسْلَمِ فِيهِ كوم چې مسلم فيه دې لِأَنَّهُ رَهْنُهُ ځكه چې دا دغې په عوض كي رهن دې، بِهِ، وَإِنْ كَانَ مَحْبُوسًا بِغَيْرِهِ.اګرچه د هغې نه ٥ علاوه په عوض كي ګير دې.

**تشريح:-** مذكوره حكم هغه وخت دې.چه مرهون هلاك نه وى.او كه د فسخ نه روسته مرهون هلاك شى.نو اګرچه مرهون اوس د راس المال په عوض ګير شوې وو.خو دا په اعتبار د اصل د مسلم فيه په عوض رهن دې.نوكه مرهون هلاك شى.نو د مسلم فيه په عوض به هلاك وى.او اوس به حكم دا وى.چه راهن به دومره غله مسلم اليه ته وركوى.كومه چې مسلم فيه مقرر شوې وه.نو هله به دې د خپل راس المال واپس اخستلو حقدار وى.

**د ړومبۍ مسئلې يو مثال**

كَمَنْ بَاعَ عَبْدًا لكه هغه سړې چې خپل غلام ئې خرڅ كړو وَسَلَّمَ الْمَبِيعَ او مبيع ئې اوسپارلو وَأَخَذَ بِالثَّمَنِ رَهْنًا او د ثمن په عوض ئې رهن واخستلو ثُمَّ تَقَايَلَا الْبَيْعَ لَهُ أَنْ يَحْبِسَهُ بيا دوى دواړو د بيع اقاله اوكړله.نو بائع ته حق شته.چه مرهون خان سره ګير كړى لِأَخْذِ الْمَبِيعِ د مبيع اخستلو لپاره لِأَنَّ الثَّمَنَ بَدَلُهُ ځكه چې ثمن ددې بدل دې ،وَلَوْ هَلَكَ الْمَرْهُونُ يَهْلِكُ بِالثَّمَنِ او كه مرهون هلاك شى.نو د ثمن په عوض به هلاك وى لِمَا بَيَّنَّا.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

**تشريح:-** په دې كي مرغينانى رحمه الله د ړومبۍ مسئلې واضح كاوه لپاره ددې يو مثال پيش كوى. فرمائي. مثلاً زيد د خالد په لاس يو غلام خرڅ كړو.او غلام ئې خالد ته حواله كړو.او خالد د ثمن په عوض مثلاً يو اس د

زید سره رهن کیخودو.نو دا جائز دی.بیا دوی دواړو خپل منځ کي رضامندئ سره اقاله اوکړله.نو لکه څنګه چي زید ته مخکي دا حق وو.چه ترکومه پوري ثمن وصول نکړي.دا مرهون اس دي خان سره ګیر اوساتی.نو اوس د اقالي په وجه ثمن ختم شو.نو اوس به زید ته حق وی.چه ترکومه پوري خپل غلام وصول نکړي.تر هغه وخته پوري دي دا مرهون خان سره اوساتی.دا خو هغه وخت دي.چه مرهون هلاك نشي.اوکه د رهن دا اس هلاك شي.نو اوس اګرچه دا د مبیع په بدله کي ګیر وو.خو په حقیقت کي د ثمن عوض دي.نو د مرهون د هلاکت په صورت کي به ونیلي شی.چه مرهون د ثمن په عوض هلاك شوي دي.نو مخکي به زید خالد ته د ثمن مثل اداکوی.نو هله به خالد د زید غلام ده ته حواله کوی.

**دوهم مثال**

وَكَذَا لَوِ اشْتَرَى عَبْدًا شِرَاءً فَاسِدًا او هم دغه ډول ئي که غلام په شراء فاسد سره واخستلو وَأَدَّى ثَمَنَهُ او دده ثمن ئي ادا کړو لَهُ أَنْ يَحْبِسَهُ لِيَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ نو مشتری ته حق شته.چه مبیع د خان سره اوساتی چي ثمن وصول کړی ثُمَّ لَوْ هَلَكَ الْمُشْتَرِي فِي يَدِ الْمُشْتَرِي بیا که مشتری (اخستي شوي غلام) د مشتری په قبضه کي هلاك شی يَهْلِكُ بِقِيمَتِهِ.نو د خپل قیمت په عوض به هلاك وی.

**تشریح:**- خالد د زید نه یو غلام واخستلو.په شراء فاسد سره.او د بیع فاسد ماتول شرعاً واجب دی.خیر خالد ددي ثمن هم ادا کړي دي.او په اخستي شوی غلام باندي ئي قبضه کړي ده.بیا دوی دواړو اراده اوکړله.چه د شرعی حکم مطابق دا بیع ماته کړی.نو خالد ته حق شته.چه ترکومه پوري خپل ثمن د زید نه وصول نکړي.هغه وخته پوري اخستي شوي غلام خان سره ګیر اوساتی.څکه چي دا غلام دلته د مرهون په مرتبه کي دي.کله چي زید دده ثمن واپس کړی.نو دي به دا غلام هغه ته حواله کوی.او که خالد سره دا غلام هلاك شي.نو د خپل قیمت په عوض به هلاك وی.نو په خالد به ضروری وی.چه ددي غلام قیمت زید ته حواله کړي.بیا د زید نه خپل ثمن وصول کړي.

**د حر،مدبر،مکاتب،او ام ولد د رهن په طور ایخودو حکم**

قَالَ مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل وَلَا يَجُوزُ رَهْنُ الْحُرِّ وَالْمُدَبَّرِ وَالْمُكَاتَبِ وَأُمِّ الْوَلَدِ او آزاد او مدبر او مکاتب او ام ولد رهن ایخودل جائز نه دی لِأَنَّ حُكْمَ الرَّهْنِ ثُبُوتُ يَدِ الِاسْتِيفَاءِ،څکه چي د رهن حکم د ید استیفاء ثبوت دي وَلَا يَتَحَقَّقُ الِاسْتِيفَاءُ مِنْ هَؤُلَاءِ او ددي خلګو نه وصولول نه متحقق کیږی.لِعَدَمِ الْمَالِيَّةِ فِي په آزاد کي د مالیت نه کیدو په وجه الْحُرِّ وَقِيَامِ الْمَانِعِ فِي الْبَاقِينَ.او په پاته کي د مانع موجود کیدو په وجه.

**تشریح:**- آزاد چونکه مال نه دي.او پاته مال دي.خو په دي کي من وجه د حریت پیدا کیدو په وجه ددي نه پور وصولول نا ممکن دی.نو بیا به دا رهن ایخودل هم جائز نه وی.

**د کومو څیزونو په عوض کښي چي رهن ایخودل جائز نه دي**

وَلَا يَجُوزُ الرَّهْنُ بِالْكَفَالَةِ بِالنَّفْسِ او د کفالت بالنفس په بدله کي رهن جائز نه دي وَكَذَا بِالْقِصَاصِ فِي النَّفْسِ او هم دغه ډول د نفس وَمَا دُونَهَا لِتَعَذُّرِ الِاسْتِيفَاءِ،او د نفس نه د کم قصاص په بدله کي رهن جائز نه دي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الْجِنَايَةُ خَطَأً په خلاف ددي صورت کله چي جنایت خطاء وی لِأَنَّ اسْتِيفَاءَ الْأَرْشِ مِنَ الرَّهْنِ مُمْكِنٌ څکه چي رهن نه د تاوان وصولول ممکن دی. وَلَا يَجُوزُ الرَّهْنُ بِالشُّفْعَةِ؛ او د شفعهٔ په بدله کي رهن جائز نه دي، لِأَنَّ الْمَبِيعَ غَيْرُ مَضْمُونٍ عَلَى الْمُشْتَرِي څکه چي مشتری باندي مبیع مضمون نه دي.

**تشریح:**- د کومو څیزونو په عوض کي چي رهن ایخودل جائز نه دي.د هغي د بعضو څیزونو بیان کوی.(١) په زید باندي عدالت کي مثلاً یوه مقدمه ده.چه ددي په وجه هغه ګرفتار دي.خالد د زید ضمانت اوکړو.ددي مقصد دا وی.چه دي به چرته کي نه تختی.زه دده د حاضرولو کفیل یم.خالد د زید کفالت بالنفس په عوض



کي رهن کیخودو.نو دا رهن به جائز نه وی.څکه رهن خو ددي لپاره وی.چه ددي په وجه د حق وصولول اوشی.او دلته کي د رهن نه د زید حاضرول او وصولول نشی کیدي(٢) زید خالد په قصد سره قتل کړو.چه ددي په وجه زید باندي قصاص واجب دي.زید د قصاص په بدله کي رهن کیخودو.نو دا رهن جائز نه دي.څکه چي رهن نه د قصاص وصولول نشی کیدي(٣) زید په قصد سره د خالد لاس کټ کړو.چه ددي په وجه به قصاص کي د زید لاس کټ کولي شی.زید ددي قصاص په بدله کي رهن کیخودو.نو دا رهن به جائز نه وی.څکه چي مرهون نه د لاس کټ کاوه وصولی نشی کیدي(٤) البته که زید په خطاء سره خالد قتل کړو.یا ئي په خطاء سره دده لاس کټ کړو.چه ددي په وجه دیت یا تاوان واجب شو.زید د دیت او تاوان په بدله کي مثلاً خپل موټربس رهن کیخودو.نو دا جائز دي.څکه چي دلته کي دیت یا د جرم تاوان وصولول دی.چه ددي وصولول په دي مرهون سره کیداي شی.(٥) د زید او خالد مځکه خپل منځ کي متصل ده.خو د زید مځکه دریاب سره یو ځاني ده.او د خالد مځکه پورته ده.نو زید خپله مځکه د بکر په لاس خرڅه کړله.او خالد شفعه طلب کړله.نو بکر خالد سره د شفعهٔ (د زمکي د شفعي) په عوض رهن کیخودو.نو دا رهن به جائز نه وی.څکه که د دریاب چپي (او زور) بدل شو.او دي چپو د زید مبیع مځکه کټ کړله.او لاره ئي جوړه کړه.نو په بکر باندي ددي ضمان واجب نه دي.او رهن ئي ددي شئ په عوض رهن کیخودو.نو دا رهن جائز نه دي.څکه که د دریاب لاره بدله شوه.او دي د زید مبیعه مځکه کټ کړله.او لاره ئي جوړه کړله.نو په بکر باندي ددي ضمان واجب نه دي.او رهن د هغه شئ په عوض کي جائز کیږی.کوم چي مضمون بنفسه وی.

وَلَا بِالْعَبْدِ الْجَانِي وَالْعَبْدِ الْمَأْذُونِ الْمَدْيُونِ او مجرم غلام او د ماذون قرضدار غلام په بدله کي رهن جائز نه دي؛ لِأَنَّهُ غَيْرُ مَضْمُونٍ عَلَى الْمَوْلَى څکه چي مولا باندي غلام مضمون نه دي فَإِنَّهُ لَوْ هَلَكَ نو که غلام هلاك شي لَا يَجِبُ عَلَيْهِ شَيْءٌ نو مولا باندي هیڅ واجب نه دی، وَلَا بِأُجْرَةِ النَّائِحَةِ وَالْمُغَنِّيَةِ،او نه دژړا کونکي او د ګانو ویونکي د اجرت په بدله کي رهن جائز دي وی حَتَّى لَوْ ضَاعَ لَمْ يَكُنْ مَضْمُونًا؛ تردي که مرهون ضائع شي.نو دا به مضمون نه لِأَنَّهُ لَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مَضْمُونٌ.څکه چي هیڅ مضمون شئ ددي مقابل نه دي.

**حل اللغة*** (١) النائحة: ویر کونکي زنانه (٢) المغنية: سندرغاړي (٣) ضاع: ضائع شو*

**تشریح:**- (٦) د زید غلام خطاء سره د یوکس لاس کټ کړو.ددي په وجه دا واجب شو.چه دا مجرم غلام لاس پري کړي شوی کس ته حواله کړي شي.نو که مولا ددي په عوض کي رهن ورکړي.نو جائز نه دي.څکه که دا غلام هلاك شي.نو په مولا باندي هیڅ ضمان واجب نه دي.او د غیر مضمون په عوض رهن ایخودل جائز نه دی.(٧) زید خپل غلام ته د تجارت اجازت ورکړو.چه ددي په وجه دي قرضدار شو.نو دا غلام به قرضخواهانو ته حواله کولي شی.مولا اوغوښتل.چه د غلام په عوض رهن کیږدم.نو جائز نه دي.ددي مذکوره دلیل په وجه.(٨) د زید په کور کي څوك سړي مړ شو.خالده ئي مزدوره اونیوله.چه هغه په دي باندي اوژاړي.(واویلا او ماتم اوکړي) .بیا ئي ددي د اجرت په عوض ددي سره څه شئ رهن کیخودو.نو دا رهن جائز نه دي.دغه ډول زید خپل کور کي څوك د ګانو ویونکي ښځه اجرت باندي راوستله.بیا ئي ددي د اجرت په عوض کي ددي سره رهن کیخودو.نو دا رهن جائز نه دي.څکه چي د ژړا کونکي او ګانو ویونکي اجرت واجب نه دي.نو دا غیر مضمون دي.او د غیر مضمون عوض رهن جائز نه وی.نو دا رهن به جائز نه وی.نو که رهن ئي کیخودو.او مرهون ددي ښځو سره هلاك شو.نو په دوی به ضمان واجب نه وی.څکه چي دا رهن نه دي.نو په دي به د رهن احکام هم نه جاری کیږی.

(٩) هم دا مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.«لانه لا يقابله شئ مضمون» څکه چي ددي رهن مقابله کي هیڅ شئ مضمون نه دي.څکه چي اجرت مضمون نه دي.هم داوجه ده.که دوی د اجرت نه مخکي د قاضی په عدالت کي د رهن نه مخکي د خپل اجرت دعوه اوکړي.نو قاضی به دا حکم نه ورکوی.چه دوی ته دوی اجرت ورکړي شی.

## د کومو شیزونو رهن جوړول جائز نه دی

وَلَا يَجُوزُ لِلْمُسْلِمِ أَنْ يَرْهَنَ خَمْرًا او مسلمان لپاره جائز نه دی.چه دې شراب رهن ورکړي أَوْ يَرْتَهِنَهُ مِنْ مُسْلِمٍ یا دا رهن واخلی.که د مسلمان نه وی أَوْ ذِمِّيٍّ وکه د ذمی نه وی لِتَعَذُّرِ الْإِيفَاءِ وَالِاسْتِيفَاءِ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ د مسلمان د حق کي د اخستلو او ور کاوه د متعذر کیدو په وجه ثُمَّ الرَّاهِنُ إِذَا كَانَ ذِمِّيًّا بیا راهن کله چې ذمی وی فَالْخَمْرُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ نو مسلمان باندې ذمی لپاره شراب مضمون وی ،لِلذِّمِّيِّ كَمَا إِذَا غَصَبَهُ،.لکه چې مسلمان د ذمی شراب غصب کړي وی.

**تشریح:-** مسلمان لپاره جائز نه دی.چه دې شراب رهن ورکړي.یا رهن واخلی.ځکه چې مسلمان د شرابو مالك کیداې شی.او نه جوړولې شی.یعنی د شرابو اخستل خرڅول ددوی په حق کي ممنوع دی.بهرحال که مسلمان او ذمی په منځ کي عقد رهن اوشو.نو اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل.که مسلمان مرتهن وی.او راهن ذمی وی.او مسلمان سره دا شراب هلاك شی.نو په مسلمان به دا ضمان واجب وی.ځکه که مسلمان د ذمی شراب غصب کړي وې.بیا به هم مسلمان باندې ددې ضمان واجبیدو.

وَإِنْ كَانَ الْمُرْتَهِنُ ذِمِّيًّا او که مرتهن ذمی لَمْ يَضْمَنْهَا لِلْمُسْلِمِ نو مسلمان لپاره به شراب ضامن نه وی كَمَا لَا يَضْمَنُهَا لکه څنګه چې ذمی د شراب ضامن نه دی. بِالْغَصْبِ مِنْهُ،کله چې ده د مسلمان نه شراب غصب کړي وی بِخِلَافِ مَا إِذَا جَرَى ذَلِكَ فِيمَا بَيْنَهُمْ، په خلاف ددې صورت کله چې دا عقد د ذمیانو خپل منځ کي وی لِأَنَّهَا مَالٌ فِي حَقِّهِمْ ځکه چې شراب ددوی په حق کي مال دې.

**تشریح:-** دلته د وړاندینی صورت د عکس حکم بیانوی.یعنی مرتهن ذمی وی.او راهن مسلمان وی.نو ذمی باندې به مسلمان لپاره ضمان واجب نه وی.ځکه که ذمی د مسلمان شراب غصب کړي وې.بیا به هم ذمی باندې ضمان نه واجبیدو.دغه ډول به دلته کي هم نه وی.او که دا عقد د دوې (دوه) ذمیانو په منځ کي وی.نو اوس به په دواړو صورتونو کي د رهن احکام جاری کیږی.ځکه چې شراب د ذمیانو په حق کي مال دې.

## د مردار د رهن ایخودو حکم

أَمَّا الْمَيْتَةُ بهرحال مردار، فَلَيْسَتْ بِمَالٍ عِنْدَهُمْ نو دا ددوی په نیز مال نه دې فَلَا يَجُوزُ رَهْنُهَا وَارْتِهَانُهَا فِيمَا بَيْنَهُمْ نو دا رهن ورکول، او دا رهن اخستل،ددوی په منځ کي هم جائز نه دې، كَمَا لَا يَجُوزُ فِيمَا بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ لکه څنګه چې د مسلمانانو په منځ کي جائز نه دې.

**تشریح:-** شراب خو د ذمیانو په حق کي مال دې.خو مردار مال نه دې.نو د مردار رهن چې لکه څنګه د مسلمانانو په منځ کي جائز نه دې.دغه ډول د ذمیانو په منځ کي هم جائز نه دې.

## که د مرهون شراب، یا مردار،یا آزاد کیدل روستو معلوم شی؟

وَلَوِ اشْتَرَى عَبْدًا وکه غلام نې واخستلو وَرَهَنَ بِثَمَنِهِ عَبْدًا او ددې د ثمن په بدله کي نې غلام أَوْ خَلًّا یا سرکه أَوْ شَاةً مَذْبُوحَةً یا مذبوح وزه (چیلئ) رهن کیخودو ثُمَّ ظَهَرَ الْعَبْدُ حُرًّا أَوِ الْخَلُّ خَمْرًا أَوِ الشَّاةُ مَيْتَةً بیا ښکاره شوه.چه غلام آزاد، او سرکه شراب، او وزه (چیلئ) مړزکي وه فَالرَّهْنُ مَضْمُونٌ نو رهن مضمون دې ،لِأَنَّهُ رَهَنَهُ بِدَيْنٍ ځکه چې مشتري دا شیان د داسې شئ په بدله کي رهن ایخودی وو وَاجِبٍ ظَاهِرًا.چه هغه ښکاره واجب دی.

**حل اللغة:** ① **شاة:** ګډه ② **مذبوحة:** ذبح شوې ③ **الخل:** سرکه ④ **میتة:** مړزکي

**تشریح:-** دا واړه احکام په هغه وخت کي دی کله چې د مرهون شراب کیدل، یا مردار یا آزاد کیدل د مخکي نه ښکاره وی.او که د مخکي نه ښکاره نه وی.بلکه روستو دا خبره ښکاره شوه.نو ددې حکم بل شان دې.چه دا دلته کي بیانولې شی.① زید د خالد نه مثلاً یو غلام واخستلو.او د ثمن په بدله کي نې بائع سره یو



غلام یا سرکه یا مذبوح وزه (چیلئ) رهن کیخودله.نو رهن صحیح دې.خو روستو معلومه شوه.چه دا مرهون غلام نه دې.بلکه آزاد دې.یا مرهون سرکه نه ده.بلکه شراب دی.یا د مذبوح وزه (چیلئ) په اړه کي معلومه شوه.چه دا خو مړزکي ده.نو آیا اوس به هم د مرهون ضمان واجب وی.نو وې فرمائیل چه مرهون مضمون دې.ځکه کله چې رهن ایخودې شوې وو.نو په ښکاره د واجبی پور په بدله کي ایخودې شوې دې. بهرحال دلته به ضمان واجب وی.پاتې شوه داخبره چې څومره ضمان به واجب وی؟ نو ددې ځواب دا دې.چه د مبیع ثمن او د مرهون په قیمت کي چې کم وی.د هغې مطابق به ضمان وی.او دلته د دین واجبی دلیل دا دې.که د ذکر شوی خبرو د ښکاره کیدو نه مخکي بائع د ثمن په اړه کي قاضی ته مقدمه پیش کړی.نو قاضی به د ثمن ادا کاوه حکم کوی.

وَكَذَا إِذَا قَتَلَ عَبْدًا او هم دغه ډول کله نې چې یو غلام قتل کړو وَرَهَنَ بِقِيمَتِهِ رَهْنًا او ددې د قیمت په بدله کي نې رهن کیخودو ثُمَّ ظَهَرَ أَنَّهُ حُرٌّ بیا دا خبره ښکاره شوه.چه مقتول غلام آزاد دې وَهَذَا كُلُّهُ عَلَى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ.او دا واړه بحث د ظاهرالروایة مطابق دې.

**تشریح:-** په دې کي دوهم صورت بیانوی هغه دا که زید د خالد غلام خطاء سره قتل کړو.او ددې د قیمت په بدله کي زید، د خالد سره رهن کیخودو.نو جائز دې.بیا معلومه شوه.چه کوم کس قتل کړې شوې دې.هغه آزاد دې.بیا به هم رهن مضمون وی.په پورته ذکر شوی دلیل سره.او دا ظاهرالروایة دې.او په نوادر کي هم ددې په خلاف نقل دی.البته د امام ابویوسف رحمه الله د قول قیاس دا وانی.چه ددوی په دې ټولو صورتونو کي اختلاف دې.

وَكَذَا إِذَا صَالَحَ عَلَى إِنْكَارٍ او هم دغه ډول کله نې چې انکار باندې مصالحت اوکړو وَرَهَنَ بِمَا صَالَحَ عَلَيْهِ رَهْنًا او دکوم شئ په عوض نې چې صلح اوکړله.د هغې په بدله کي نې رهن کیخودو ثُمَّ تَصَادَقَا أَنْ لَا دَيْنَ بیا دواړو اتفاق اوکړو.چه پور نه وو فَالرَّهْنُ مَضْمُونٌ نو رهن مضمون دې. وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ خِلَافُهُ او د امام ابویوسف رحمه الله نه ددې په خلاف نقل دی ،وَكَذَا قِيَاسُهُ فِيمَا تَقَدَّمَ مِنْ جِنْسِهِ..او ددې پشان مخکنو مسائلو کي (هم) د امام ابویوسف رحمه الله هم دا قیاس دې.

**تشریح:-** په دې کي دریم صورت بیانوی هغه دا چې زید په خالد باندې د سلو روپو دعوه اوکړله.خالد انکار اوکړو.خو د جګړې زیاتیدو په وجه خالد مصالحت اوکړو.بیا نې د مال صلح په بدله کي د هغه سره رهن کیخودو.بیا دواړو اتفاق اوکړو.چه هیڅ پور نشته.بیا به هم رهن مضمون وی.د امام ابویوسف رحمه الله په نیز به رهن مضمون نه وی.ځکه چې هرکله دواړو د پور په نه کیدو باندې اتفاق اوکړو.نو دوی په عدم ضمان باندې اتفاق اوکړو.او ددوی دواړو اتفاق به ددوی په حق کي حجت وی.د امام ابویوسف رحمه الله نه محفوظ روایت هم په دې مصالحت والا مسئله کي دې.خو دوی د قول قیاس دا غواړی.چه د "ولو اشتری" نه تر دې ځائې پورې ټولو مسئلو کي دا اختلاف جاری کیدل پکار دی.

## د صغیر ځوی مال په رهن کښي د ایخودو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائی وَيَجُوزُ لِلْأَبِ أَنْ يَرْهَنَ بِدَيْنٍ عَلَيْهِ عَبْدًا لِابْنِهِ الصَّغِيرِ او جائز دی پلار لپاره چې هغه رهن کیږدی.د خپل پور په عوض کي ، د خپل صغیر ځوی مال نه لِأَنَّهُ يَمْلِكُ الْإِيدَاعَ ځکه چې پلار د ودیعت ایخودو مالك دی وَهَذَا أَنْظَرُ فِي حَقِّ الصَّبِيِّ مِنْهُ او دا (رهن ایخودل) د بچی په حق کي د زیات شفقت سبب دې.د ودیعت ایخودو لِأَنَّ قِيَامَ الْمُرْتَهِنِ بِحِفْظِهِ أَبْلَغُ خِيفَةَ الْغَرَامَةِ ځکه چې د مرتهن قیام د مرهون په ساتنه کي زیات مضبوط دې.د تاوان د یرې نه ،وَلَوْ هَلَكَ او که مرهون هلاك شی،يَهْلِكُ نو مضمون به وی ،مَضْمُونًا ،وَالْوَدِيعَةُ تَهْلِكُ أَمَانَةً.او ودیعت د امانت په طور هلاکیږی.

**حل اللغة:** **الصبي:** ماشوم ② **خيفة:** ويره ③ **الغرامة:** تاوان ④ **الوديعة:** امانت

**تشريح:-** پلار ته پخپل صغير خوى باندې ولايت وى.او دده د مال د حفاظت ولايت هم وى.نو پلار لپاره جائز دى.چه هغه د بچي مال چا سره امانت كيږدي.خو دا خبره هم ښكاره ده.چه د امانت ايخودو نه زيات ساتنه په رهن كي دې.خكه كه د امانت په صورت كي مال هلاك شى.نو مودع باندې ضمان واجب نه دې.او د رهن په صورت كي مرتهن باندې ضمان واجبيږى... كما مر.. هركله چې دا معلومه شوه.چه په رهن كي د وديعت نه زيات ساتنه دې.نو دا په درجه اولى جائز دې.نو اوس واوزئ.چه د زيد بچى ته دده د مور په تركه ( ميراث) كي يو غلام ملاو شو.او په زيد د چا قرضه ده.چه ددې په بدله كي نې د بچى غلام په رهن كي كيخودو.نو دا جائز دى.

> **وَالْوَصِيُّ بِمَنْزِلَةِ الْأَبِ فِي هٰذَا الْبَابِ** او وصى په دې معامله كي د پلار په مرتبه كي **لِمَا بَيَّنَّا** د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې **وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ وَزُفَرَ** رحمهما الله او د امام ابويوسف او امام زفر رحمهما الله نه نقل دى **أَنَّهُ لَا يَجُوزُ ذٰلِكَ مِنْهُمَا** چې دا رهن ددوى دواړو ( پلار او وصى) د اړخه جائز نه دې، **وَهُوَ الْقِيَاسُ اعْتِبَارًا بِحَقِيقَةِ الْإِيفَاءِ**.او هم دا قياس دې.په حقيقى ور كاوه باندې قياس كاوه سره.

**تشريح:-** اوكه د پلار وصى وى.نو د هغه هم دا حكم دې.يعنى هغه هم دغه ډول ايخودې شى.خو امام ابويوسف او امام زفر رحمهما الله فرمائى.چه لكه څنګه دا جائز نه ده.چه پلار يا وصى خپل پور د صغير په مال سره خلاص كړى.نو دغه ډول دده د مال رهن ايخودل هم جائز نه دى.او قياس هم دا دې.

### وجه د فرق

> **وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الظَّاهِرِ وَهُوَ الْاِسْتِحْسَانُ** او د ظاهرالرواية مطابق وجه د توپير او هم دا استحسان دې **أَنَّ فِي حَقِيقَةِ الْإِيفَاءِ إِزَالَةَ مِلْكِ الصَّغِيرِ** دا ده.چه حقيقتاً ور كاوه كي د صغير د ملك ازاله ده **مِنْ غَيْرِ عِوَضٍ يُقَابِلُهُ فِي الْحَالِ** د څه داسې عوض نه بغير كوم چې فى الحال دده د ملك مقابل وى **وَفِي هٰذَا نَصْبُ حَافِظٍ لِمَالِهِ نَاجِزًا** او په رهن كي دده د مال لپاره فى الحال ساتنه كونكې مقررول دى، **مَعَ بَقَاءِ مِلْكِهِ فَوَضَحَ الْفَرْقُ**. سره ددې چې د صغير ملك هم پاته وى.نو توپير ښكاره شو.

**تشريح:-** په ظاهرالرواية كي د بچى د مال نه پور ادا كول جائز نه دى.بهرحال د طرفينو رحمهما الله قول استحسان دې.او د امام ابويوسف او امام زفر رحمهما الله قول قياس دې.وجه د توپير دا ده.چه په حقيقت كي د بچى په مال سره قرضه ادا كړې شى.نو فى الحال د بچى د ملك هيڅ عوض نشته.نو دا په مفتو( بغير د څه عوض نه) د بچى ملك ختمول دى.او دا جائز نه دى.او كه رهن كيخودې شى.نو په دې كي فى الحال د بچى د مال لپاره دده د ملكيت سره سره نګران او محافظ مقررول دى.خكه چې دا جائز دى.

### د بچى مال په رهن كښې د ايخودو حكم

> **وَإِذَا جَازَ الرَّهْنُ** او كله چې رهن جائز شو **يَصِيرُ الْمُرْتَهِنُ مُسْتَوْفِيًا دَيْنَهُ** نو مرتهن د خپل پور وصولونكې جوړيږى **لَوْ هَلَكَ فِي يَدِهِ** كه مرهون دده په قبضه كي هلاك شى **وَيَصِيرُ الْأَبُ أَوِ الْوَصِيُّ مُوفِيًا لَهُ** او پلار يا وصى به ددې ادا كونكې وى دې **وَيَضْمَنُهُ لِلصَّبِيِّ** و پلار او وصى به د بچى لپاره ددې ضامن وى، **لِأَنَّهُ قَضَى دَيْنَهُ بِمَالِهِ**،خكه چې دوئ د بچى د مال نه خپل پور ادا كړې دې **وَكَذَا لَوْ سَلَّطَا الْمُرْتَهِنَ عَلَى بَيْعِهِ** او هم دغه ډول كه دوى دواړو د مرهون په بيع باندې مرتهن مسلط ( مقرر) كړې وى، **لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ بِالْبَيْعِ** خكه چې مقررول د بيع توكيل **وَهُمَا يَمْلِكَانِهِ** او دوى دواړه د توكيل ( وكيل مقررولو) مالكان دى.

**تشريح:-** هركله چې پلار او وصى لپاره د بچى مال په رهن كي ايخودل جائز دى.نو اوس به په دې باندې د رهن احكام جارى كيږى.او كه مرتهن سره مرهون هلاك شى.نو مرتهن به د خپلې پور وصولونكې او پلار او



وصى به ادا كونكى شمارلې كيږى.او چونكه دوى د بچى په مال سره خپله قرضه ادا كړې ده.په دې وجه به په دوى باندې ضمان واجب وى.ددې تفصيل دا دې.چه د مرهون قيمت د دين برابر وى.اوكه زيات وى اوكه كم وى.په ټولو صورتونو كي به د مرهون قيمت وركولې شى.د برابرئ او كموالى صورت خو ښكاره دې.او د زياتوالى په صورت كي خكه چې پلار او وصى په زياتوالى كي مودع او امين دې.چه ددې ضمان نه واجبيږى.پلار او وصى ته دا اختيار هم شته.چه د بچى مال خرڅ كړى.نو د خرڅولو د وكيل جوړولو حق به هم وى.نوكه دواړو مرتهن ته اوونيل.چه ته رهن خرڅ كړه.نو دا هم جائز دى.

### پلار او وصى لره د بچى مال قرضخواهانو باندې د خرڅولو حكم

> **قَالُوا:** مشائخو فرمائيلى **أَصْلُ هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ الْبَيْعُ** چې ددې مسئلې اصل مبيع دې **فَإِنَّ الْأَبَ أَوِ الْوَصِيَّ إِذَا بَاعَ مَالَ الصَّبِيِّ مِنْ غَرِيمِ نَفْسِهِ** خكه چې پلار يا وصى كله د بچى مال دخپل قرضخواه په لاس خرڅ كړى، **جَازَ** نو جائز دې **وَتَقَعُ الْمُقَاصَّةُ** او مقاصه به واقع كيږى **وَيَضْمَنُهُ لِلصَّبِيِّ عِنْدَهُمَا**.او دوى دواړه به د بچى لپاره ددې ضامن وى.د طرفينو رحمهما الله ([1])په نيز.

**تشريح:-** مشائخو حضراتو فرمائيلى دى.چه د امام ابويوسف او طرفينو رحمهم الله اصل ختلاف په بيع كي دې.هم دا اختلاف په رهن كي فټ ( لګولې) شوې دې.مثلاً پلار يا وصى د صغير مال د خپل قرضخواه په لاس خرڅ كړو.نو بيع جائز دې.او مقاصه به صحيح شى.يعنى ثمن به د دين په بدل كي شى.او پلار يا وصى به د بچى لپاره دده د مال ضامن وى.دا د طرفينو رحمهما الله مذهب دې.امام ابويوسف رحمه الله فرمائى.چه بيع جائز ده.خو مقاصه به صحيح نه وى.بلكه د قرضخواهانو قرضه به پخپل حال پاته وى.او ثمن به د بچى لپاره وى.دغه ډول زيد د خپل اس خرڅولو لپاره بكر وكيل جوړ كړو.اتفاق سره هغه دا اس د خالد په لاس خرڅ كړو.او د خالد زر روپئ په زيد باندې پور دى.نو بيع جائز ده.او مقاصه به صحيح وى.يعنى په زيد چې كوم پور دې.دا ثمن به د هغې بدل شى.د طرفينو رحمهما الله په نيز.

> **وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ لَا تَقَعُ الْمُقَاصَّةُ** او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز مقاصه نه واقع كيږى **وَكَذَا وَكِيلُ الْبَائِعِ بِالْبَيْعِ** او هم دغه ډول د بيع په سلسله كي د بائع وكيل دې، **وَالرَّهْنُ نَظِيرُ الْبَيْعِ** او رهن د بيع مثال دې، **نَظَرًا إِلَى عَاقِبَتِهِ** د خپل انجام په اعتبار سره **مِنْ حَيْثُ وُجُوبِ الضَّمَانِ** د ضمان واجبيدو حيثيت سره.

**تشريح:-** او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به مقاصه صحيح نه وى.بهرحال اصل اختلاف دلته كي دې.خو كله اوكتلى شو.چه لكه څنګه د بيع په صورت كي په پلار يا وصى باندې ضمان واجبيږى.دغه ډول په رهن كي هم ضمان واجبيږى.نو دا اختلاف په رهن كي هم جارى كړې شو.هم دا مرغينانى رحمه الله اوفرمائيل.چه د انجام ( او نتيجې) ،، يعنى د ضمان د وجوب،، په اعتبار سره رهن د بيع مثال دې.

### د خوى مال خپل ځان يا بل چا سره د رهن ايخودو حكم

> **وَإِذَا رَهَنَ الْأَبُ مَتَاعَ الصَّغِيرِ مِنْ نَفْسِهِ** وكله چې پلار خپل ځان سره رهن كيخودو. **أَوْ مِنِ ابْنٍ لَهُ صَغِيرٍ** يا نې خپل بل وړوكى بچى سره **أَوْ عَبْدٍ لَهُ تَاجِرٍ لَا دَيْنَ عَلَيْهِ** يا خپل هغه سوداګر غلام سره په كوم چې پور نشته.( رهن كيخودو) **جَازَ** نو دا جائز دى، **لِأَنَّ الْأَبَ لِوُفُورِ شَفَقَتِهِ أُنْزِلَ مَنْزِلَةَ شَخْصَيْنِ** خكه چې پلار د خپل كمال شفقت په وجه د دوو سړو په مرتبه كي راكښته كړې شوې دې **وَأُقِيمَتْ عِبَارَتُهُ مَقَامَ عِبَارَتَيْنِ فِي هٰذَا الْعَقْدِ** او دده عبارت په دې عقد كي د دوو كسانو د عبارت قائم مقام ګرځيږى. **كَمَا فِي بَيْعِهِ مَالَ الصَّغِيرِ مِنْ نَفْسِهِ** لكه ( مثلاً) د پلار په خرڅولو كي

---

[1]) هوقول الطرفين رحمهما الله كذافى ردالختار (۵/ ۳۵۲) ونصب (۶/ ۷۲) والبحر(۸/ ۴۵۳) والدرالمنتقى (۴/ ۲۸۴) نقلاعن القول الراجح (۲/ ۳۲۸)-

د صغير مال پخپل لاس، فَتَوَلَّى طَرَفَيِ الْعَقْدِ. نو پلار به متولي وي.د عقد د دواړو طرفونو، ( د ايجاب او قبول).

تشريح:- كه پلار د بچي مال خپل خان سره رهن كيخودو.يا ئې داسې خلگو سره كيخودو.كوم چې دده د نفس په مرتبه كي دی.مثلاً د خپل بل وړوكی بچی سره، يا خپل داسې سوداګر غلام سره چې هغه باندې قرضه نه وی.نو دا جائز دې.

خوكه څوك دا اعتراض اوكړی چې رهن لپاره ايجاب او قبول پكار دې.كه دده قول ايجاب اومنلې شی.نو قبول نشته.او كه قبول اومنلې شی.نو ايجاب نشته.نو دا رهن صحيح كيدل پكار نه دی؟نو موږ ځواب كوو چې خبره هم دغه ډول ده.خو موږ اوكتل.چه په پلار كي پوره شفقت دې.په دې وجه دې د دوو سړو په مرتبه كي راكښته كړې شوې دې.او دده قول ته د دوو كسانو مرتبه وركړې شوې ده.لكه مثلاً كه پلار د بچی مال پخپله واخلی.نو جائز دې.دلته كي هم دې يواځې د ايجاب او قبول متولی كيږی.نو په رهن كي به هم دغه ډول كيږی.

## وصی خپل ځان سره رهن ايخودې شی اوكه نه؟

وَلَوِارْتَهَنَهُ الْوَصِيُّ مِنْ نَفْسِهِ اوكه وصی د صغير مال خپل خان سره رهن كيخودو أَوْمِنْ هٰذَيْنِ يا دوی دواړو سره ( يعنی خپل بل بچی يا خپل سوداګر غلام سره) وَرَهَنَا عَيْنَالَهُ مِنَ الْيَتِيمِ يا وصی د يتيم سره خپل څه سامان رهن كيخودو بِحَقٍّ لِلْيَتِيمِ عَلَيْهِ .د هغه حق په بدله كي كوم چې وصی باندې دې. لَمْ يَجُزْ نو دا جائز نه دې لِأَنَّهُ وَكِيلٌ مَحْضٌ خكه چې وصی صرف وكيل دې وَالْوَاحِدُ لَايَتَوَلَّى طَرَفَيِ الْعَقْدِ فِي الرَّهْنِ او په رهن كي يو سړې د عقد د دواړو طرفونو متولی نشی جوړيدې كَمَا لَايَتَوَلَّاهُمَا فِي الْبَيْعِ لكه څنګه چې يو سړې په بيع كي د دواړو متولی نشی كيداې وَهُوَقَاصِرُالشَّفَقَةِ او وصی قاصر الشفقة ( كم شفقت والا) دې «فَلَايَعْدِلُ عَنِ الْحَقِيقَةِ فِي حَقِّهِ إِلْحَاقًالَهُ بِالْأَبِ .نو د وصی په حق كي دې د پلار سره برابرولو كي به د حق نه عدول ( او تجاوز) نشی كولې.

حل اللغة* ① قاصر: بې غوری كونكې ② طرفی: تثنيه د اړخ ده په معنی د اړخ ③ الحاقاً: لپاره د يوځائې كولو

تشريح:- خپل خان سره رهن ايخودل پلار لپاره جائز دی.او وصی لپاره جائز نه دی.دغه ډول كه وصی ،، د يتيم د هغه واجبی حق په بدله كي كوم چې د يتيم په ده باندې دې ،، يتيم سره رهن كيږدی.نو دا هم جائز نه دې. لنډيز د كلام داچه څلور واړه صورتونه ناجائز دی.خكه چې اصول دا مقرر شوې دې.چه خانله يو كس د ايجاب او قبول دواړو متولی نه په بيع كي كيداې شی.او نه په رهن كي كيداې شی.او د پلار حكم د پوره شفقت په وجه خلاف قياس دده لپاره مخصوص دې.اووصی په ده باندې نشی قياس كيداې .خكه چې د وصی شفقت كم(يعنی قاصر الشفقة) دې.نو دې دپلار سره لاحق كاوه لپاره به د حقيقت نه عدول ( او تيريدل) جائز نه وی.

وَالرَّهْنُ مِنِ ابْنِهِ الصَّغِيرِ وَعَبْدِهِ التَّاجِرِ او خپل وړوكی بچی او خپل هغه غلام سره رهن ايخودل، الَّذِي لَيْسَ عَلَيْهِ دَيْنٌ چې هغه باندې قرضه نه وی بِمَنْزِلَةِ الرَّهْنِ مِنْ نَفْسِهِ خپل خان سره د رهن ايخودو په مرتبه كي دې بِخِلَافِ ابْنِهِ الْكَبِيرِ په خلاف د خپل غټ خوی وَأَبِيهِ وَعَبْدِهِ الَّذِي او د خپل هغه غلام چې هغه باندې قرضه وی عَلَيْهِ دَيْنٌ لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَيْهِمْ خكه چې دوی باندې وصی ته هيڅ ولايت نشته بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ إِذَا بَاعَ مِنْ هٰؤُلَاءِ په خلاف د بيع د وكيل، كله ئې چې هغه ددوی په لاس خرڅ كړی «لِأَنَّهُ مُتَّهَمٌ فِيهِ وَلَا تُهْمَةَ فِي الرَّهْنِ خكه چې هغه بيع كي متهم دې.او په رهن كي هيڅ تهمت نشته لِأَنَّ لَهُ حُكْمًا وَاحِدًا .خكه چې د رهن يو حكم دې.

تشريح:- او وړوكې بچی او سوداګر غلام ،، چې په ده باندې قرضه نه وی،، چونكه دوی دواړو باندې ولايت حاصل دې. په دې وجه دوی د خپل نفس په مرتبه كي شمارلې كيږی.البته پلار ته پخپل بالغ خوی باندې او



پخپل پلار باندې او په هغه غلام سوداګر چې هغه باندې قرضه وی. ولايت نشته.نو ددوی سره رهن ايخودل به وصی لپاره هم جائز وی.صرف رهن ايخودل به ددوی سره جائز وی.كه زيد بكر د خپل سامان خرڅولو وكيل جوړ كړو.او هغه دا سامان پخپل خوی يا پخپل پلار خرڅ كړو.يا ئې د خپل هغه غلام په لاس خرڅ كړو.چه په هغه قرضه ده.نو دا جائز نه دې.خكه چې دلته كي دې بيع كي تهمت دې...كما لا يخفی.. او په رهن كي هيڅ تهمت نشته.خكه چې د رهن خو يو حكم دې.د يد استيفاء ثبوت، او د مرهون مضمون كيدل.كه مرتهن هرڅوك وی.خكه چې تهمت نشته.

## د يتيم د ضرورت لپاره د وصی د پور اخستلو حكم

إِنِ اسْتَدَانَ الْوَصِيُّ لِلْيَتِيمِ فِي كِسْوَتِهِ وَطَعَامِهِ اوكه وصی د يتيم لپاره د هغه د كپړو او دهغه د خوراك لپاره پور واخستلو وَرَهَنَ بِهِ مَتَاعًا لِلْيَتِيمِ جَازَ نو ددې په بدله كي ئې د يتيم سامان رهن وركړو.نو جائز دې.لِأَنَّ الِاسْتِدَانَةَ جَائِزَةٌ لِلْحَاجَةِ خكه چې د اړتيا لپاره پور اخستل جائز دی «وَالرَّهْنُ يَقَعُ إِيفَاءً لِلْحَقِّ او رهن حق وركول واقع كيږی فَيَجُوزُ نو دا جائز دې.

حل اللغة* ① الاستدانة: طلب د پور كول ② ايفاء: وركول ﴾

تشريح:- وصی د يتيم اړتيا مثلاً د كپړو او خوراك لپاره څه پور واخستلو.او ددې په بدله كي ئې د يتيم څه مال رهن وركړو.نو جائز دې.خكه چې داسې قسمه اړتيا راپيښيږی.او د رهن مقصد د حق والا حق وركول دی.او وصی ته حق شته.چه هغه بچی باندې واجب شوې حق د بچی د مال نه ادا كړی.

## د يتيم په مال كښې تجارت كولو كښې د رهن ايخودو حكم

وَكَذٰلِكَ لَوِاتَّجَرَ لِلْيَتِيمِ او هم دغه ډول كه وصی د يتيم لپاره تجارت اوكړو فَارْتَهَنَ نو ده رهن واخستلو أَوْرَهَنَ يا ئې رهن وركړو نو جائز دې لِأَنَّ الْأَوْلٰى لَهُ التِّجَارَةُ تَثْمِيرًا لِمَالِ الْيَتِيمِ خكه چې د يتيم مال زياتوالی لپاره دده لپاره تجارت غوره دې فَلَا يَجِدُ بُدًّا مِنَ الِارْتِهَانِ وَالرَّهْنِ نو دې د رهن وركاوه او اخستلو خلاصې نشی موندلې، «لِأَنَّهُ إِيفَاءٌ وَاسْتِيفَاءٌ .خكه چې دا ( رهن اخستل او وركول) پوره وركول او پوره اخستل دې.

حل اللغة* ① تثمير: زياتوالې ② الارتهان: ګانړه كول ③ الايفاء: حاصلول﴾

تشريح:- وصی د يتيم په مال كي د زياتولو لپاره تجارت كوی.نوپه دې كي كله د رهن ايخودو او د رهن اخستلو حاجت راپيښيږی.ددې نه بغير خلاصې نشته.نو رهن اخستل او رهن وركول دواړه به جائز وی.

## د څوی د بلوغ نه روسته د پلار د ايخودی شوی رهن حكم

وَإِذَا رَهَنَ الْأَبُ مَتَاعَ الصَّغِيرِ اوكله چې پلار د بچی سامان په رهن كي وركړو فَأَدْرَكَ الِابْنُ نو هلك بالغ شو وَمَاتَ الْأَبُ. او پلار مړ شو لَيْسَ لِلِابْنِ أَنْ يَرُدَّهُ نو څوی ته حق نشته.چه دې مرهون واپس واخلی حَتّٰى يَقْضِيَ الدَّيْنَ لِوُقُوعِهِ لَازِمًا مِنْ جَانِبِهِ تردې چې قرضه ادا كړی.د رهن واقع كيدل لازميدو په وجه.د بچی د اړخه إِذْ تَصَرُّفُ الْأَبِ بِمَنْزِلَةِ تَصَرُّفِهِ بِنَفْسِهِ بَعْدَ الْبُلُوغِ خكه چې د پلار تصرف د بلوغ نه روسته پخپله دده د تصرف په مرتبه كي دې لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ .د پلار دده د قائم مقام كيدو په وجه.

تشريح:- پلار د صغير مال رهن كيخودو.كه د صغير په قرضه كي وی.او كه د پلار، او اوس دا بچی بالغ شو. (پلار كه ژوندې وی.اوكه مړشی).دواړو صورتونو كي يو حكم دې.او دلته د مات ( مړ) قيد قيد اتفاقی دې.نو زوې غواړی.چه د مرتهن نه خپل سامان واخلم.نو دده د پور ادا كاوه نه بغير نشی اخستلې.خكه د پلار تصرف داسې دې.ګويا چې ده د بلوغ نه روسته پخپله كړی دی.نو رهن به دده د اړخه لازم شمارلې شی.

## پخپل پور كښې د بچی سامان په رهن كښې د ايخودو حكم

وَلَوْكَانَ الْأَبُ رَهَنَهُ لِنَفْسِهِ او كه پلار دا دخپل ځان لپاره رهن فَقَضَاهُ الْإِبْنُ نو ځوی دا ( د پلار قرضه ) ادا كړله وَرَجَعَ بِهِ فِي مَالِ الْأَبِ نو هغه به په دې سلسله كي د پلار په مال كي رجوع كوی لِأَنَّهُ مُضْطَرٌّ فِيهِ ځكه چي زوی په دې ادا كاوه كي مجبور دې لِحَاجَتِهِ إِلَى إِحْيَاءِ مِلْكِهِ دده د محتاج كيدو په وجه. دخپل ملك ژوندی كولو ( او حفاظت ) ارخ ته فَأَشْبَهَ مُعِيرَ الرَّهْنِ نو دا د معير رهن مشابه شو وَكَذَا إِذَا هَلَكَ قَبْلَ أَنْ يَفْتَكَّهُ او هم دغه ډول ( رجوع كولي شی ) كله چي رهن هلاك شي. ددې د خلاصولو نه مخكي لِأَنَّ الْأَبَ يَصِيرُ قَاضِيًا دَيْنَهُ بِمَالِهِ ځكه چي پلار خپل پور د هغه د مال نه ادا كړې فَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ عَلَيْهِ دې. نو ده ته په پلار باندې د رجوع حق شته.

حل اللغة: ① مضطر: مجبوره ② ان يفتك: چي آزاد كړی

تشريح:- پلار د بچی سامان پخپله قرضه كي رهن ايخودې وو. نو ځوی د مرتهن قرضه ادا كړله. او خپل سامان ني واخستلو. نو ده چي څومره قرضه ادا كړې ده. د دغه اومره مال د خپل پلار په مال كي د اخستلو حقدار دې.

كه څوك دا ووايي چي ده ته پلار كله حكم وركړې دې. چه ته زما قرضه ادا كړه. نو رجوع جائز كيدل پكار نه دی؟

نو موږ ځواب وركوو چه پلار حكم نه دې وركړې. خو دې د خپل سامان په ساتنه باندې مجبور وو. په دې وجه به ده ته د رجوع كاوه حق وی. اوددې مثال هم شته زيد د بكر نه پور اوغوښتلو. بكر سره روپۍ نه وې. ده خپله قيمتی ګهړۍ هغه ته وركړله. چه دا په رهن كي كيږده. او پور واخله. خپل كار روان كړه. بيا بكر مرتهن ته قرضه وركړله. او خپله ګهړني را لنديز كړله. نو بكر چي كوم رقم مرتهن ته حواله كړې دې. هغه به د زيد نه وصول كوی. دغه ډول به دا هم وی. او تر اوسه پورې ځوی مرهون راخلاص كړې نه وو. چه مرهون مرتهن سره هلاك شو. چه په دې سره د پلار قرضه ساقطه شوه. نو ځوی ته به حق وی. چه هغه د پور د مقدار مطابق د پلار د مال نه وصول كړی.

### د خپل او د ځوی دواړو قرضونو بدله كښي د بچی د سامان په رهن ايخودو حكم

وَلَوْرَهَنَهُ بِدَيْنٍ عَلَى نَفْسِهِ او كه پلار د بچی مال رهن كيخودو. پخپل ځان باندې د پور په بدله كي ددی د مشتمل كيدو په وجه په دوو څيزونو باندې وَبِدَيْنٍ عَلَى الصَّغِيرِ او په بچی باندې د پور په بدله كي. جَازَ نو جائز دې لِاشْتِمَالِهِ عَلَى أَمْرَيْنِ جَائِزَيْنِ فَإِنْ هَلَكَ كه مرهون هلاك شي ضَمِنَ الْأَبُ حِصَّتَهُ مِنْ ذَلِكَ لِلْوَلَدِ نو پلار به په دې رهن كي د خپلې برخې (حصې) په اندازه بچی لپاره ضامن وی لِإِيفَائِهِ دَيْنَهُ د پلار د خپلې پور ادا كاوه په وجه. مِنْ مَالِهِ د بچی په مال سره بِهَذَا الْمِقْدَارِ هم ددې مقدار مطابق وَكَذَلِكَ الْوَصِيُّ او هم دغه ډول وصی دې، وَكَذَلِكَ الْجَدُّ أَبُ الْأَبِ إِذَا لَمْ يَكُنِ الْأَبُ أَوْوَصِيُّ الْأَبِ. او نيكه كله چي پلار يا د پلار وصی نه وی.

تشريح:- كه په پلار باندې سل روپۍ پور وو. او په بچی هم سل روپۍ وې. پلار ددې دواړو په بدله كي د بچی سامان رهن كيخودو. نو جائز دې. ځكه كه دې دواړو كي يو ځانله وو. نو ( رهن ايخودل ) جائز وو. نو اوس به هم جائز وی. خو كه مرهون هلاك شي. نو په پلار به د خپلې برخې (حصې) په اندازه ضمان واجب وی. د پوره به واجب نه وی. ځكه چي ده هم په اندازه مال سره خپل پور ادا كړې دې. بيا په دې مذكوره مسئلو كي د پلار وصی يا نيكه د پلار پشان دې. كله چي پلار نه وی. يا د پلار وصی نه وی.

### وصی لپاره د تيم په مال كښي د تصرف حكم

وَلَوْرَهَنَ الْوَصِيُّ مَتَاعًا لِلْيَتِيمِ او كه وصی د يتيم سامان رهن كيخودو فِي دَيْنٍ اسْتَدَانَهُ عَلَيْهِ د هغه پور په بدله كي. كوم چي ده د يتيم لپاره پور اخستې وَقَبَضَ الْمُرْتَهِنُ وو. اومرتهن ( په مرهون ) قبضه اوكړله ثُمَّ اسْتَعَارَهُ الْوَصِيُّ لِحَاجَةِ الْيَتِيمِ بيا وصی مرهون د يتيم د اړتيا لپاره مستعار واخستلو فَضَاعَ فِي يَدِ الْوَصِيِّ نو مرهون د



وصی په قبضه كي ضائع شو فَإِنَّهُ خَرَجَ مِنَ الرَّهْنِ نو مرهون د رهن نه خارج شو وَهَلَكَ مِنْ مَالِ الْيَتِيمِ او د يتيم مال هلاك شو لِأَنَّ فِعْلَ الْوَصِيِّ كَفِعْلِهِ بِنَفْسِهِ بَعْدَ الْبُلُوغِ ځكه چي د وصی فعل د بلوغ نه روسته د يتيم پشان دې لِأَنَّهُ اسْتَعَارَهُ لِحَاجَةِ الصَّبِيِّ ځكه چي د وصی فعل د بچی د اړتيا لپاره عاريت اخستل دی وَالْحُكْمُ فِيهِ هَذَا عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللّهُ تَعَالَى. او په دې كي هم دا حكم دې. دهغه تفصيل مطابق كوم به چي موږ انشاء الله بيان كړو.

تشريح:- وصی د بچی لپاره پور واخستلو. او د بچی سامان ني رهن كيخودو. او بيا ني د بچی د اړتيا لپاره مستعار واخستلو. اتفاق سره مرهون وصی سره هلاك شو. نواوس دا رهن پاتې نشو. او په وصی به هيڅ ضمان نه وی. بلكه دا د بچی مال هلاك شو. ځكه چي د وصی فعل د بچی د فعل پشان دې. او كه بچی غټ شوې وې. او داسې كار ني كړې وې. نو بيا به هم دا حكم وو. چه پور به په دوی هم پخپل حال قائم پاتې وو. نو دا به هم داسې وی.

### په ذكر شوی صورت كښي د مرتهن قرضه ساقطيږي اوكه نه؟

وَالْمَالُ دَيْنٌ عَلَى الْوَصِيِّ او مال به په وصی باندې پور وی مَعْنَاهُ هُوَ الْمُطَالَبُ بِهِ ددې مطلب دا دې چه د وصی څخه به ددې مطالبه كولای شی ثُمَّ يَرْجِعُ بِذَلِكَ عَلَى الصَّبِيِّ بيا به وصی په دې سلسله كي په بچی باندې رجوع كوی لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِي هَذِهِ الْإِسْتِعَارَةِ ځكه چي وصی په دې مستعار اخستلو كي زياتې كونكې نه دې إِذْ هِيَ لِحَاجَةِ الصَّبِيِّ ځكه چي دا استعاره د بچی د اړتيا لپاره ده وَلَوِاسْتَعَارَهُ لِحَاجَةِ نَفْسِهِ او كه وصی دا د خپل اړتيا لپاره مستعار واخستلو ضَمِنَهُ لِلصَّبِيِّ بچی لپاره به ددې ضامن وی لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ ځكه چي وصی زياتې كونكې دې إِذْ لَيْسَ لَهُ وِلَايَةُ الْإِسْتِعْمَالِ فِي حَاجَةِ نَفْسِهِ ځكه چي وصی ته پخپل اړتيا كي د استعمالولو ولايت نشته.

تشريح:- په ذكر شوی صورت كي د مرتهن قرضه ساقط نشوه. اوس پاتې شوه دا خبره چي دا قرضه د چا ده. نو امام محمد رحمه الله په مبسوط كي فرمائيلی دی. چه «والمال دين على الوصي» چي مال يعني د مرتهن پور وصی باندې قرضه ده. او وړاندې بيان شوی دی. چه د بچی مال هلاك شي. نو پور به وصی څنګه دې. بلكه په بچی پكار دې؟ نو مرغينانی رحمه الله ددې وضاحت اوفرمائيلو. چه د امام محمد رحمه الله ددې فرمان مطلب دا دې. چه مرتهن به د پور مطالبه وصی نه كوی. ځكه كه وصی رهن نه ايخودو. بيا به هم دده نه مطالبه كيدله. اوس به هم مطالبه دده نه كيږي. بيا به وصی دا د بچی دمال نه وصول كوی. او د بچی د مال څخه به ني ځكه اخلی. چه د وصی مذكوره فعل هيڅ تعدی او زياتې نه دې. ځكه چي ده د بچی د اړتيا لپاره مستعار اخستې دې. او كه وصی د خپل اړتيا لپاره مستعار اخستې وی. او هغه دده سره هلاك شي. نو چونكه اوس وصی متعدی دې. ځكه چي وصی ته دا ولايت نه وو. چه هغه د ماشوم مال پخپلو ضروورياتو كي استعمال كړی. نو وصی به د ماشوم لپاره ددې مال ضامن وی. او په بچی به د وصی پور پخپل حال پاته وی.

### وصی د بچی مرهون غصب كړو، او هلاك شو، نو د ضمان حكم

وَلَوْغَصَبَهُ الْوَصِيُّ بَعْدَ مَا رَهَنَهُ او كه وصی هغه (مرهون) غصب كړو. كوم رهن ني چي ايخودې وو فَاسْتَعْمَلَهُ لِحَاجَةِ نَفْسِهِ نو دا ني پخپل اړتيا كي استعمال كړو حَتَّى هَلَكَ عِنْدَهُ تردې چي دا دده سره هلاك شو فَالْوَصِيُّ ضَامِنٌ لِقِيمَتِهِ نو وصی به ددې د قيمت ضامن وی لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِي حَقِّ الْمُرْتَهِنِ ځكه چي دا د مرتهن په حق كي متعدی دې بِالْغَصْبِ وَالْإِسْتِعْمَالِ په غصب او استعمال سره وَفِي حَقِّ الصَّبِيِّ بِالْإِسْتِعْمَالِ فِي حَاجَةِ نَفْسِهِ او دبچی په حق كي متعدی دې. پخپل اړتيا كي استعمال سره «فَيَقْضِي بِهِ الدَّيْنَ إِنْ كَانَ قَدْ حَلَّ. نو ددې په ذريعه به پور ادا كولې شی. كه ددې د ادا كاوه وعده راغلې وی.

تشريح:- په ذكر شوی صورت كي وصی د مرتهن سره د بچی مرهون سامان غصب كړو. او پخپل استعمال كي

نې راوستلو.چه په دې سره دا هلاك شو.نو په وصي باندې د مرهون د قيمت ضمان واجب دې.ځکه چې دلته كي وصي دېل ( دوه ) زياتي كړې دی.د مرتهن په حق كي هم او د بچي په حق كي هم.د مرتهن په حق كي دا چې ده مرهون غصب كړو.او استعمال نې كړو.او د بچي په حق كي دا چې د ولايت نه بغير نې دده سامان استعمال كړو.د بچي په حق كي نفس غصب تعدي نه ده.ځکه چې وصي ته د يتيم دمال اخستلو ولايت وی.بهرحال دلته كي د قيمت ضمان واجب دې.بيا ددې قيمت څه اوكړې شی.نو كه اوس د پور ادا كاوه وعده راغلې نه وی.نو قيمت به مرتهن سره رهن وی...كما سيجی... اوكه وعده راغلې وی.نو په دې قيمت سره دې قرضه ادا كړې شی.ددې تفصيل دا دې.چه ( دې پسې ) راروان دې.

**په قيمت سره د پور ادا كولو صورتونه**

فَإِنْ كَانَ قِيمَتُهُ مِثْلَ الدَّيْنِ نوكه د مرهون قيمت د پور برابر وی أَدَّاهُ إِلَى الْمُرْتَهِنِ نو وصي دې دا مرتهن ته ادا كړی وَلَا يَرْجِعُ عَلَى الْيَتِيمِ او وصي به يتيم باندې رجوع نه كوی لِأَنَّهُ وَجَبَ لِلْيَتِيمِ عَلَيْهِ مِثْلُ مَا وَجَبَ لَهُ عَلَى الْيَتِيمِ ځکه چې يتيم لپاره وصي باندې هم ددې مثل واجب دې.كوم چې وصي لپاره يتيم باندې واجب دې فَالْتَقَيَا قِصَاصًا نو دواړو كي به خپل منځ كي مقاصه اوشی، وَإِنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ أَقَلَّ مِنَ الدَّيْنِ اوكه د رهن قيمت د پور نه كم وی أَدَّى قَدْرَ الْقِيمَةِ إِلَى الْمُرْتَهِنِ .نو وصي دې د قيمت په اندازه مرتهن ته ادا كړی وَأَدَّى الزِّيَادَةَ مِنْ مَالِ الْيَتِيمِ او زياتي دې د يتيم دمال نه لِأَنَّ الْمَضْمُونَ عَلَيْهِ قَدْرُ الْقِيمَةِ .ځکه چې وصي باندې مرهون په اندازه د قيمت مضمون دې الَاغَيْرُ ددې نه زيات نه دې وَإِنْ كَانَتْ قِيمَةُ الرَّهْنِ أَكْثَرَ مِنَ الدَّيْنِ اوكه د رهن قيمت د پور نه زيات وی أَدَّى قَدْرَ الدَّيْنِ مِنَ الْقِيمَةِ إِلَى الْمُرْتَهِنِ نو وصي دې په اندازه د دين مرتهن ادا كړی وَالْفَضْلُ لِلْيَتِيمِ.او زياتي دې يتيم ته وركړی.

**تشريح:**- په ذكر شوی صورت كي چې كله قيمت سره پور ادا كړی.نو درې صورتونه دی.او د هريو حكم جلا جلا دې① د مرتهن پور زر روپۍ دې.او د مرهون قيمت هم زر روپۍ دې.نو د قيمت زر روپۍ دې وصي مرتهن ته وركړی.او جګړه به ختمه شی.

ؔكه معترض اعتراض اوكړی چې وصي د بچي پور ادا كړې دې.نو وصي له حق پكار دې.چه دا مقدار د بچي دمال نه وصول كړی؟ نوموږ منوچه دا خبره صحيح ده.خو د بچي هم په وصي باندې زر روپۍ واجب دی.ځکه چې ده په ناحقه د بچي سامان هلاك كړې دې.نو دواړو كي به مقاصه واقع شی.يعنی دا بدلون او تبادله شوه.

② د مرهون قيمت اته سوه روپۍ دې.او پور زر روپۍ دې.نو وصي اته سوه روپۍ د خپل اړخه او دوې (دوه) سوه روپۍ د بچي د مال نه ادا كړی.ولې؟ ځکه چې په وصي به د مرهون ضمان په اندازه د قيمت وی.په اندازه د دين نه وی.③ د مرهون قيمت دولس سوه روپۍ او پور زر روپۍ دې.نو وصي به زر روپۍ مرتهن ته وركوی.او پاته پاتې دوې (دوه) سوه روپۍ به د بچي وی.دا واړه تفصيل هغه وخت دې.كله چې د پور ادا كاوه وخت راغلې وی.

**د پور ادا كولو د وخت نه مخكښې د مرهون د قيمت حكم**

وَإِنْ كَانَ لَمْ يَحِلَّ الدَّيْنُ اوكه د پور ادا كاوه وخت نه وی راغلې فَالْقِيمَةُ رَهْنٌ نو قيمت به رهن وی لِأَنَّهُ ضَامِنٌ لِلْمُرْتَهِنِ ځکه چې وصي مرتهن لپاره ضامن دې بِتَفْوِيتِ حَقِّهِ الْمُحْتَرَمِ دده د محترم حق فوت كيدو په وجه فَتَكُونُ رَهْنًا عِنْدَهُ نو قيمت به دده سره رهن وی ثُمَّ إِذَا حَلَّ الْأَجَلُ بيا كله چې موده راشی ،كَانَ الْجَوَابُ عَلَى التَّفْصِيلِ الَّذِي فَصَّلْنَاهُ.نو خواب د هغه تفصيل مطابق دې.دكوم تفصيل چې موږ بيان كړې دې.

**تشريح:**- كه اوس د پور ادا كاوه وخت نه وی راغلې.نو دا قيمت به مرتهن سره رهن ايخودې شی.ځکه چې



وصي غصب كاوه سره محترم حق فوت كړې دې.چه ددې به وصي باندې ضمان وی.او قيمت د مرهون قائم مقام دې.نو هم دا به د مرهون په ځائې رهن ايخودې شی.بيا كله چې وعده راشی.نو هم دې قيمت سره به د مرتهن پور ادا كولې شی.او دلته كي هم دريو واړو كي هم هغه حكم وی.كوم چې مخكي بيان شوې دې.

**وصي د بچي مرهون غصب كړو نو ددې بچي په ضرورت كښې د استعمال حكم**

وَلَوْ أَنَّهُ غَصَبَهُ اوكه وصي مرهون غصب كړو وَاسْتَعْمَلَهُ لِحَاجَةِ الصَّغِيرِ او دا نې د بچي په اړتيا كي استعمال كړو حَتَّى هَلَكَ فِي يَدِهِ تردې چې دا د وصي په قبضه كي هلاك شو يَضْمَنُهُ لِحَقِّ الْمُرْتَهِنِ نو وصي به د مرتهن د حق لپاره ضامن وی وَلَا يَضْمَنُهُ لِحَقِّ الصَّغِيرِ او د بچي د حق لپاره به ضامن نه وی لِأَنَّ اسْتِعْمَالَهُ لِحَاجَةِ الصَّغِيرِ لَيْسَ بِتَعَدٍّ،ځکه چې د وصي د بچي په اړتيا كي استعمال تعدی ( زياتي ) نه دې. وَكَذَا الْأَخْذُ او هم دغه ډول اخستل ( تعدی نه ده). لِأَنَّ لَهُ وِلَايَةَ أَخْذِ مَالِ الْيَتِيمِ ځکه چې وصي لپاره د يتيم د مال اخستلو ولايت شته وَلِهَذَا قَالَ فِي كِتَابِ الْإِقْرَارِ هم په دې وجه امام محمد رحمه الله د مبسوط په كتاب الاقرار كي فرمائيلي دی،: إِذَا أَقَرَّ الْأَبُ أَوِ الْوَصِيُّ بِغَصْبِ مَالِ الصَّغِيرِ چې كله پلار يا وصي د بچي د مال غصب كاوه اقرار اوكړو ،لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ نو په ده باندې هيڅ لازم نه دی ،لِأَنَّهُ لَا يُتَصَوَّرُ غَصْبُهُ .ځکه چې دده غصب متصور نه دې لِمَا أَنَّ لَهُ وِلَايَةَ الْأَخْذِ.ځکه چې ده ته د اخستلو ولايت شته دې.

**تشريح:**- وصي ته دا حق شته.چه د بچي په اړتيا كي دده سامان استعمال كړی.دا هيڅ تعدی نه ده.وصي ته دا حق هم شته.چه د بچي سامان واخلی.دده نه يا دده د غير نه.د امام محمد رحمه الله فرمائيلې شوې جزئيه كومه چې د مبسوط په كتاب الاقرار كي ده.په دې دلالت كوی.دوی فرمائی.كه پلار يا وصي اقرار كړې دې.چه موږ د بچي سامان غصب كړې دې.نو دا اقرار معتبر نه دې.او په دوی به هيڅ واجب نه وی.ځکه چې د غصب حقيقت د بل سامان اخستل دی.او پلار او وصي ته دا ولايت شرعاً حاصل دې. چې دوی د بچي مال واخلی.بهرحال هركله چې ددوی لپاره ولايت شته.نو كه وصي د بچي سامان د بچي د اړتيا لپاره غصب كړې وی.نو وصي به د بچي په حق كي متعدی ( او زياتې ) كونكې نه شمارلې كيږی.هركله چې دا تفصيلات په ذهن كي كيناستل.نو اوس واورئ.چه وصي د بچي مرهون سامان د مرتهن دخوا نه غصب كړو.او د بچي په اړتيا كي نې استعمال كړو.چه ددې په وجه وصي سره مرهون هلاك شو.نو په وصي به ددې د قيمت ضمان واجب وی.چه په دې سره د مرتهن پور ادا كړې شی.بيا به چې وصي مرتهن ته كوم مقدار ادا كوی.هغه به د بچي د مال نه وصول كوی.ځکه چې دلته كي د وصي هيڅ فعل د بچي په حق كي تعدی نه ده.

ؔيضمنه لحق المرتهن ولا يضمنه لحق الصغير... د امام محمد رحمه الله ددې عبارت مطلب هم دا دې.يعنی په پيل كي به وصي باندې ضمان واجب وی.چه هغه د مرتهن حق ادا كړی.ځکه چې وصي په غصب او استعمال سره د مرتهن په حق كي تعدی كړې ده.او د مرهون ضمان به نه وی.د بچي په حق كي ، يعنی وصي ته به دا حق وی.چه كوم مقدار پور چې ده ادا كړې دې.هغه به د بچي د مال نه اخلی.په بعضو حاشيو كي چې ددې كوم تقرير شوې دې.هغه غلط او كمزورې دې.ددې وضاحت مرغينانی رحمه الله روستو بيانوی. اوګورئ.

**وصي سره د مرهون هلاكيدو د ضمان حكم**

.فَإِذَا هَلَكَ فِي يَدِهِ نو كله چې مرهون د وصي په قبضه كي هلاك شی يَضْمَنُهُ لِلْمُرْتَهِنِ نو وصي به ددې مرتهن لپاره ضامن وی يَأْخُذُهُ بِدَيْنِهِ مرتهن به دا ضمان د خپل پور په عوض اخلی اِنْ كَانَ قَدْ حَلَّ كه د دين ادا كاوه وخت راغلې وی وَيَرْجِعُ الْوَصِيُّ عَلَى الصَّغِيرِ نو وصي به په بچي رجوع كوی ،لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُتَعَدٍّ بَلْ هُوَ عَامِلٌ لَهُ ځکه چې وصي متعدی نه دې.بلكه بچي لپاره كار كونكې دې ،وَإِنْ كَانَ لَمْ يَحِلَّ او كه د پور ادا كاوه وخت نه وی راغلې يَكُونُ رَهْنًا عِنْدَ الْمُرْتَهِنِ نو ضمان به مرتهن سره رهن وی ،ثُمَّ إِذَا حَلَّ الدَّيْنُ بيا كله چې د پور ادا كاوه وخت راشی يَأْخُذُ دَيْنَهُ مِنْهُ نو مرتهن به ددې ضمان نه خپل پور اخلی،وَيَرْجِعُ الْوَصِيُّ عَلَى الصَّبِيِّ بِذَلِكَ او ددې

ضمان په اندازه به وصی په بچی باندې رجوع کوی لِمَاذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه.کوم چې موږ ذکر کړې دي.

تشريح:- د مرغيناني رحمه الله ددې تشريح نه معلومه شوه.چه د مبسوط د عبارت مطلب دا دې.کوم چې موږ ذکر کړې دي.

**د مکیلي او موزوني څیزونو د رهن ايښودو حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَيَجُوزُرَهْنُ الدَّرَاهِمِوَالدَّنَانِيرِوَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ او دراهم او دنانير اود مکيل او موزون رهن جائز دي.لِأَنَّهُ يَتَحَقَّقُ الِاسْتِيفَاءُ مِنْهُ ځکه چې په دې کې د هر يو نه وصولول متحقق کيږي فَكَانَ مَحَلًّالِلرَّهْنِ.نو په دې کې به هر يو د رهن محل وي.

تشريح:-لکه څنګه چې نور سامانونه رهن ايښودې شی.دغه ډول دراهم او دنانير او مکيلي او موزوني شيان هم رهن ايښودې شی.ځکه چې د رهن مقصد د حق وصولول دی.کوم چې په دې ټولو صورتونو کې هم ثابت دي.نو معلومه شوه.چه ذکر شوی شيان مرهون جوړيدې شی.او دا د رهن محل دی.

فائده:کيلي هغه شيان دی.کوم چې کيل سره اخستلې شی.او ورکولې شی.لکه په اعتبار د زمانې د رسول الله ﷺ غنم وغيره،او وزني هغه دی.چه د هغې اخستل او ورکول په وزن او تول سره کيږي.او درهم او دينار هم اګرچه وزني دی.خو نورشيان مراد دی.او دې ته نقدين، يا حجرين يا ثمنين ونيلې شی.او درهم او دينار رهن ايښودل، او ددې نه پور نه ادا کول، د بعضو موقعو په لحاظ سره دی.مثلاً سره او سپين زر د يوکس نه دځه مقصد لپاره واخلی.مثلاً د يوکس نه د سرو زرو هار ( اميل) واخلی.دده مقصد دادې.چه دا به واپس کوم.او ددې په بدله کي درهم يا دينار رهن کيږدی.بيا د رهن په ذکر شوی صورت کې د مرهون د هلاکيدو په صورت کي مختلف احکام پيدا کيږي.او مختلف صورتونه به وی.مرغيناني رحمه الله ددې نه روستو ددې صورتونه او احکام بيانوی.

**څیز د خپل جنس په بدله کښې د رهن ایښودو حکم**

فَإِنْ رُهِنَتْ بِجِنْسِهَا نو که مذکوره شيان ئې د خپل جنس په عوض رهن کيخودل فَهَلَكَتْ نو دا هلاک شو هَلَكَتْ بِمِثْلِهَا مِنَ الدَّيْنِ نو د خپل مثل دين په عوض به هلاک وی وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي الْجَوْدَةِ اګرچه دواړه پخپل کره والي (او اصليت) کي مختلف وی.لِأَنَّهُ لَامُعْتَبَرَ بِالْجَوْدَةِ عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِجِنْسِهَا ځکه چې خپل جنس سره د مقابلې په وخت کره کيدل معتبر نه دی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی،لِأَنَّ عِنْدَهُ يَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا بِاعْتِبَارِ الْوَزْنِ ځکه چې ددوی په نيز به مرتهن د وزن په اعتبار سره د حق حاصلونکې وی دُونَ الْقِيمَةِ د قيمت په اعتبار سره به نه وی.

حل اللغة: ① الجودة: کره والې ② مستوفياً: قبض کونکې﴾

تشريح:- دراهم ئې مثلاً د دراهمو په بدله کي رهن کيخودو.مثلاً سل درهم پور دی.چه ددې په بدله کي سل درهمه رهن کيخودې شو.او مرهون مرتهن سره هلاک شو.نو مرتهن د خپل وصولونکې شو.اګرچه دې دراهمو کي د کره والي (اصليت) په اعتبار سره هيڅ توپير نشته.بيا هم دا د امام صاحب رحمه الله فرمان دي.ځکه امام صاحب رحمه الله فرمائی.چه کله د جنس، جنس سره مقابله وی.او د هغه څيزونو ځنې وی.چه هغې کي کموالی، زياتوالی سره سود جوړيږی.نو په دې کې د کره والی هيڅ اعتبار نه کيږی.او نه د قيمت اعتبار کيږی.بلکه صرف د وزن اعتبار کيږی.نو مرتهن خپل حق اوموندلو.

وَعِنْدَهُمَا يَضْمَنُ الْقِيمَةَ مِنْ خِلَافِ جِنْسِهِ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به ددې د جنس په خلاف د قيمت ضامن وی وَتَكُونُ رَهْنًا مَكَانَهُ.او دا قيمت به ددې په ځائې رهن وی.

[1] - هوقول ابی حنيفة رحمه الله كذافى ملتقى (٤/ ٢٨٥) وكنز(٣٨٢) نقلاعن القول الراجح (٢/ ٣٢٩)-



تشريح:- خو صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه په ذکر شوی صورت کې به مرتهن د سل درهمو په ځائې دومره دينار رهن ايږدی.کوم چې د سلو درهمو د قيمت برابر وی.مثلاً لس دينار، اوس به لس دينار مرهون شمارلې کيږي.راهن به هغه ته سل درهمه ورکوی.او لس ديناره به اخلی.ځکه چې دا د مرهون قائم مقام دی.ددې نه روسته مرغيناني رحمه الله د جامع صغير يوه جزئيه پيش کوی.او بيا به د هغې شرح کوی.او واضح کوی به چې د صاحبينو رحمهما الله په کوم صورت کي اختلاف او کومه پورې اتفاق دې.فرمائی.

**د سپينو زرو د لوټې د رهن ايښودو حکم**

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او جامع صغير کي دی فَإِنْ رَهَنَ إِبْرِيقَ فِضَّةٍ نو که د سپينو زرو لوټه ئې رهن کيخودله وَزْنُهُ عَشَرَةٌ بِعَشَرَةٍ چې ددې وزن لس درهمه دې.د لس درهمو په عوض کي فَضَاعَ نو لوټه ضائع شوه فَهُوَبِمَافِيهِ نو دا به د هغې په بدله کي وی.دکوم چې دا عوض دې قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مرغيناني رحمه الله فرمائی مَعْنَاهُ أَنْ تَكُونَ قِيمَتُهُ مِثْلَ وَزْنِهِ أَوْأَكْثَرَ ددې معنی دا ده.چه د لوټې قيمت ددې د وزن برابر يا ددې نه زيات وی هَذَا الْجَوَابُ فِي الْوَجْهَيْنِ بِالِاتِّفَاقِ دا ځواب دواړو صورتونو کي بالاتفاق دې،لِأَنَّ الِاسْتِيفَاءَ عِنْدَهُ بِاعْتِبَارِ الْوَزْنِ.ځکه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز وصولول د وزن په اعتبار سره دی.

حل اللغة: ① ابريق: لوټه ② فضة: سپين زر ③ ضاع: ضائع شوه﴾

تشريح:- زيد سره د سپينو زرو يوه لوټه ده.چه ددې وزن لس درهمه دې.او هغه د خالد نه لس درهمه پور واخستل.او دا لوټه ئې هغه سره رهن کيخوده.اوس دا لوټه مرتهن يعنی خالد سره هلاکه شوه.نو خالد د خپل پور وصولونکې شو.او جګړه ختمه شوه.تردې ځائې پورې د آئمه ثلاثه رحمهم الله اتفاق دې.خو ددې حکم شرط دا دې.چه د لوټې قيمت د لوټې د وزن برابر يا ددې نه زيات وی.يعنی د لوټې وزن لس درهمه دې.نو ددې قيمت هم لس درهمه وی.يا ددې قيمت دولس درهمه وی.نو خالد به په دواړو صورتونو کي بالاتفاق دخپل پور وصولونکې شمارلې کيږي.د امام صاحب رحمه الله په نيز خو د وزن اعتبار دې.او وزن د دواړو برابر دې.

وَعِنْدَهُمَا بِاعْتِبَارِ الْقِيمَةِ اود صاحبينو رحمهما الله په نيز د قيمت په اعتبار سره دی وَهِيَ مِثْلُ الدَّيْنِ فِي الْأَوَّلِ او قيمت په ړومبی صورت کي د پور برابر دې وَزِيَادَةٌ عَلَيْهِ فِي الثَّانِي او په دوهم صورت کي پور باندې زيات دې فَيَصِيرُ بِقَدْرِ الدَّيْنِ مُسْتَوْفِيًا نو مرتهن به د پور په اندازه وصولونکې وی،فَإِنْ كَانَ قِيمَتُهُ أَقَلَّ مِنَ الدَّيْنِ که ددې قيمت د پور نه کم وی فَهُوَعَلَى الْخِلَافِ الْمَذْكُورِ.نو دا په مذکوره اختلاف باندې دې.

تشريح:- او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د قيمت اعتبار دې.او قيمت په ړومبی صورت کي برابر دې.او په دوهم کي زيات دې.نو په ړومبی صورت کي خالد د خپل پور وصولونکې شو.او په دوهم کي هم شو.ځکه چې دده د پور مقدار لس درهمه دې.چه دا ئې خپلې لوټې سره وصول کړو.او پاته دوې (دوه) درهمه چونکه امانت دی.چه ددې به په خالد باندې ضمان واجب نه وی.

او دتفاوت په صورت کي اختلاف خوکه د لوټې قيمت اته روپې وی.نو اوس اختلاف دې.د امام صاحب رحمه الله په نيز خالد خپله قرضه وصول کړله.چونکه د لوټې وزن لس درهمه دې.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز خلاف جنس سره به ددې د قيمت ضامن وی.او دا قيمت به د رهن په ځائې حسابولې شی.

**د صاحبينو رحمهما الله دليل**

لَهُمَا د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې أَنَّهُ لَاوَجْهَ إِلَى الِاسْتِيفَاءِ بِالْوَزْنِ چې په وزن سره د وصولولو هيڅ وجه نشته.لِمَا فِيهِ مِنَ الضَّرَرِ بِالْمُرْتَهِنِ ځکه چې دې کي د مرتهن ضرر دې،وَلَاإِلَى اعْتِبَارِ الْقِيمَةِ او نه د قيمت اعتبار کاوه (څه وجه شته)، لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا ځکه چې دا سود اړخ ته متعدی دې،فَصِرْنَا إِلَى التَّضْمِينِ، بِخِلَافِ الْجِنْسِ نو موږ خلاف جنس سره تضمين اړخ ته رجوع اوکړله.لِيَنْتَقِضَ الْقَبْضُ چې قبضه ماته شی وَيُجْعَلَ مَكَانَهُ او دا د

مرهون په خائې ګرخولې شی ثُمَّ يَتَمَلَّكُهُ بيا به راهن ( پور ادا كاوه سره) ددې مالك جوړ شی.

**تشريح:-** دا د صاحبينو رحمهما الله دليل دې.چه خلاف جنس سره ضمان واجبول،دا د مرهون په خائې ولې ګرخولې شی.او بيا به دا حكم ولې وی.چه كله راهن پور ادا كړی.نو ددې قائم مقام به د مرهون مالك جوړيږی.نو دوی اووئيل.چه دې كې مختلف احتمالات وو.خو ټولې باطل ښكاره شوې.په دې وجه موږ هم دا صورت اختيار كړو.ځكه چې د وزن اعتبار كاوه سره د مرتهن نقصان دې.هغه څنګه؟ هغه داسې چې لوټه اګرچه د لس درهمو د وزن ده.خو قيمت ددې اته روپۍ دې.نو ښكاره ده.چه په دې كې د مرتهن نقصان دې.په دې وجه دا صورت خو باطل شو.اوكه د قيمت اعتبار كوو.چه مثلاً اته روپۍ مرتهن د لوټې د قيمت نه وصول كړلې.او راهن دوې (دوه) روپۍ نورې هم وركړی.نو دا ربوا او سود دې.ځكه ددې مطلب خو دا شو.چه ده د لس درهمو په بدله كې دولس درهمه وصول كړل.نو هركله چې دا دواړه صورتونه باطل شو.نو د ذكر شوی ضمان قول اختيار كړې شو.

اوكه څوك دا پوښتنه اوكړی چې مذكوره ضمان په خلاف جنس سره ولې واجب دې؟ نو موږ ځواب وركووچه ځكه واجبيږی.كه نور لس درهمه كيخودې شی.نو په دې كې دا احتمال وو.چه شايد مرتهن خپل حق وصول كړې دې.په دې وجه مرهون باندې د قبضې مضبوطولو لپاره خلاف جنس اوساتلې شو.نو مخكنې احتمال ختم شو.دا د صاحبينو رحمهما الله دليل وو.وروسې د امام صاحب رحمه الله دليل راروان دې.

## د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل

وَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې أَنَّ الْجَوْدَةَ سَاقِطَةُ الْعِبْرَةِ فِي الْأَمْوَالِ الرِّبَوِيَّةِ عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِجِنْسِهَا، چې كره والې په سودی مالونو كې خپل جنس سره د مقابلې په وخت ساقط الاعتبار دې وَاسْتِيفَاءُ الْجَيِّدِ بِالرَّدِيءِ جَائِزٌ او كره وصولول د ردی په بدل كې جائز دی كَمَا إِذَا تَجَوَّزَ بِهِ لكه كله چې ئې دده سره بې پرواهی كړې وی وَقَدْ حَصَلَ الِاسْتِيفَاءُ بِالْإِجْمَاعِ او بالاجماع استيفاء حاصله شوه.

**تشريح:-** دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې.چه په كومو مالونو كې رباء متحقق كيداې شی.هغې كې جنس سره د مقابلې په وخت د كره والی هيڅ اعتبار نه كيږی.ګنی سود به پيدا كيږی.اوكه فرض كړه د لوټې قيمت كم اومنلې شی.خو وزن ددې پوره لس درهمه دې.نو دومره خبره شوه.چه پور ( دراهم) كره دی.اومرهون ( لوټه) ردی ده.او مرتهن د كره په عوض ردی وصول كړې دې.نو دا جائز دې.لكه څنګه چې بدل صرف يا بيع سلم كې كه د كره دراهمو په خائې د بې پرواهۍ په طور كهوټه واخستلې شی.نو جائز دی.اوحق به ادا كيږی.نو اوس خو دلته كې ددې كتلو اړتيا پاته پاتې شو.چه مرتهن خپل حق موندلې دې.اوكه نه؟ نو موږ چې كله غور اوكړو.نو معلومه شوه.چه مرتهن سره كله مرهون هلاك شی.نو دهغې وصولونكې شمارلې كيږی.نو معلومه شوه.چه مرتهن خپل حق وصول كړو.بلكه دلته كې د حق وصولول بالاجماع حاصل شوی دی.

كه څوك دا اعتراض اوكړی چې هركله د صاحبينو رحمهما الله په نيز وصولول حاصل نشو.نو دا خو اجماع نشوه حالانكه تاسو بالاجماع ورته بالاجماع اووئيل نو ددې ځواب دا دې چې بالاجماع وصولول حاصل شوی دی.په دې وجه خو صاحبينو رحمهما الله ته د قبضې پريخودو حاجت راپيښيږی.ځكه چې قبضه د مرهون قبضه د استيفاء ده.نو د مرتهن وصول او استيفاء اوموندې شوه.

وَلِهَذَا يَحْتَاجَانِ إِلَى نَقْضِهِ په دې وجه ددې د ماتولو حاجت راپيښ شوې دې وَلَا يُمْكِنُ نَقْضُهُ بِإِيجَابِ الضَّمَانِ .او ضمان واجبولو سره ددې ماتول ممكن نه دی لِأَنَّهُ لَا بُدَّ لَهُ مِنْ مُطَالِبٍ وَمُطَالَبٍ ځكه چې ضمان لپاره د مطالب او مطالب كيدل ضروری دی.وَكَذَا الْإِنْسَانُ لَا يَضْمَنُ مِلْكَ نَفْسِهِ او هم دغه ډول انسان د خپل ملك نه ضامن كيږی،وَبِتَعَذُّرِ التَّضْمِينِ يَتَعَذَّرُ النَّقْضُ.او د ضمان لازمولو د متعذر كيدو په وجه استيفاء ماتول متعذر شوه.

**تشريح:-** بهرحال د صاحبينو رحمهما الله دا فرمان چې وصول به ماتولې شی.دا ددې خبرې دليل دې.چه وصولول



حاصل شوی دی.اوس پاتې شوه دا خبره چې صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه وصولول به ماتولې شی.نو په دې غور پكار دې.ځكه چې ددې وصولول ماتول مرتهن باندې د ضمان واجبولو لپاره يو مطالب پكار دې.او دلته كې هيڅ څوك مطالب نشته.نو نه به ضمان واجب وی.او نه به وصولول ماتيږی.چه نه سيخ اوسوزی او نه كباب.چه مطالب نشته.نو ددې وجه دا ده.چه مطالب به تاسو راهن منئ.او كه مرتهن؟ او دواړه باطل دی.راهن خو ځكه مطالب نشی كيدې.چه په دې كې د راهن ضرر دې.او نفع هيڅ نشته.لكه څنګه چې ښكاره ده.او مرتهن هم مطالب نشی كيدې.ځكه چې كله تاسو په دې معامله كې مرتهن مدعی عليه ګرخولې دې.نو هم دا مدعی څنګه كيداې شی.او هم دغه ډول مرتهن د خلاف جنس ضامن جوړول هم غلط دی.ځكه چې كله مرهون د هلاكيدو په وجه مرتهن وصولونكې شمار كړې شو.او هم دې د مرهون مالك شمار كړې شو.نو دې د خپل ملك لپاره څنګه ضامن كيداې شی.نو معلومه شوه.چه د ضمان هيڅ صورت نشته.او هركله چې ضمان واجبول ناممكن شو.نو وصولول ماتول هم محال او متعذر شو.دا د امام صاحب رحمه الله دليل دې.

## د امام صاحب او صاحبينو رحمهم الله د اختلاف اصل بنياد

وَقِيلَ:او وئيلې شوی دی هَذِهِ فُرَيْعَةُ مَا إِذَا اسْتَوْفَى الزُّيُوفَ مَكَانَ الْجِيَادِ چې دا مسئله فرع ده.ددې مسئلې كله چې ده د كره په خائې كهوټه وصول كړې وی فَهَلَكَتْ . نو هم دده سره هلاك شوې ثُمَّ عَلِمَ بِالزِّيَافَةِ يَمْنَعُ الِاسْتِيفَاءَ بيا ده ته د كهوټه كيدو پته اولګيده وَهُوَ مَعْرُوفٌ او( حكم ددې مسئلې) معروف او مشهور دې غَيْرَ أَنَّ الْبِنَاءَ لَا يَصِحُّ علاوه ددې خبرې نه چې بناء ( يعنی د رهن مسئله په دې بناء كول) صحيح نه دی.مَا هُوَ الْمَشْهُورُ مشهور قول مطابق، لِأَنَّ مُحَمَّدًا فِيهَا مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ ځكه چې امام محمد رحمه الله په دې ( اصل مسئله) كې د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دې وَفِي هَذَا مَعَ أَبِي يُوسُفَ او په دې ( رهن والا مسئله) كې امام ابويوسف رحمه الله سره دې رحمه الله وَالْفَرْقُ لِمُحَمَّدٍ او امام محمد رحمه الله لپاره وجه د توپير دا ده رحمه الله أَنَّهُ قَبَضَ الزُّيُوفَ لِيَسْتَوْفِيَ مِنْ عَيْنِهَا چې ده په كهوټه باندې قبضه كړې ده.چه ددې دعين نه ئې وصول كړی ،وَالزِّيَافَةُ لَا تَمْنَعُ الِاسْتِيفَاءَ او كهوټه كيدل د وصولولو نه نه منع كوی وَقَدْ تَمَّ بِالْهَلَاكِ او د هلاكت په وجه وصولول پوره شو وَقَبْضُ الرَّهْنِ لِيَسْتَوْفِيَ مِنْ مَحَلٍّ آخَرَ او په رهن باندې قبضه ځكه ده.چه دا د بل محل نه وصول كړې شی ،فَلَا بُدَّ مِنْ نَقْضِ الْقَبْضِ نو قبضه ماتول ضروری دی ،وَقَدْ أَمْكَنَ عِنْدَهُ بِالتَّضْمِينِ او د امام محمد رحمه الله په نيز مرتهن ضامن جوړولو سره قبضه ماتول ممكن دی.

**حل اللغة:** ① **الزيوف:** كهوټه روپۍ ② **الجياد:** كره روپۍ چې په بازار كې چليږی ③ **التضمين:** ضامن ول

**تشريح:-** مرغينانی رحمه الله فرمائی.د بعضو حضراتو وينا ده.چه رهن كې امام ابوحنيفه رحمه الله او د صاحبينو رحمهما الله مذكوره اختلاف د يوې بلې مسئلې فرع ده.او هغه دا ده.چه د زيد په بكر باندې سل درهمه پور دی.بكر ادا كړلې.خو كومې ئې چې ادا كړی دی.هغه كهوټه وې.نو اوس څه حكم دې؟ امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی.چه بس د زيد حق ادا شو.او بكر ته د هيڅ څه كاوه اجازت نشته.صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه زيد به بكر ته هم دغه ډول كوټه دراهم وركوی.او د بكر څخه به كره دراهم اخلی.دا اصل مسئله ده.چه په دې باندې دا اختلافی مسئله متفرع ده.خو مرغينانی رحمه الله دا په " قيل" سره تعبير كړې ده.چه دا ددې ضعف اړخ ته اشاره ده.په دې وجه د بعضو حضراتو وينا ده.چه دا مستقل مسئله ده.

كه څوك دا اعتراض اوكړی چې دا بناء صحيح نه ده.ځكه چې اصل كې امام محمد رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دې.او په فرع كې د امام ابويوسف رحمه الله سره دې.نو بيا بناء څنګه ده؟ نو د دې ځواب دا دې چې موږ منو،خو ددې باوجود هم بناء صحيح ده.او امام محمد رحمه الله چه په دې دواړو كې كوم توپير كړې دې.د هغې وجه دا ده.چه اصل مسئله كې د قبضې مقصود د حق عين دراهمو نه استيفاء ده.او دا استيفاء او وصولول په كهوټه دراهمو سره هم كيږی.او هلاكت وصولول نورهم مضبوط كړی دی.او د فرع والا مسئله

كي مرهون باندي د قبضې اصل مقصد مضبوطی ده.چه د مرهون په بنا (بنياد) باندې د بل محل نه خپل حق وصول كړې شی.او مرتهن ضامن جوړولو سره د بل محل نه وصولول كيداې شی.نو د قبضې ماتولو لپاره به خلاف جنس سره ددې قيمت رهن وی. خودا بحث هغه وخت دې.كله چې د مرهون لوټه هلاكه شوې وی.اوكه دا هلاكه شوې نه وی.بلكه ماته شوې وی.نو ددې حكم هغه دې.كوم چې روستو بيانولې شی.

① تنبيه *اصح دا ده.چه د رهن مسئله پخپله مستقله ده.نو ددې تاويلاتو حاجت به نه پيښيږی.

## په مرهون لوټه كښې د نقصان پيدا كيدو حكم

وَلَوِانْكَسَرَ الْإِبْرِيقُ اوكه لوټه ماته شوه فَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ وَهُوَ نو په رومبی صورت كي او هغه دا دې مَا إِذَا كَانَتْ قِيمَتُهُ مِثْلَ وَزْنِهِ كله چې د لوټې قيمت ددې د وزن برابر وی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ لَا يُجْبَرُ عَلَى الْفِكَاكِ نو د امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله په نيز به راهن د رهن په خلاصولو باندې نشی مجبورولې إِلَى أَنْ يَذْهَبَ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ خكه چې ددې خو هيڅ وجه نشته.چه څه پور ساقط شی لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ، لِأَنَّهُ يَصِيرُ قَاضِيًا دَيْنَهُ بِالْجَوْدَةِ عَلَى الْإِنْفِرَادِ خكه چې راهن به صرف په كره والی او جوړخت سره خپل پور ادا كونكې شی.( او دا باطل دې). وَلَا إِلَى أَنْ يَفْتَكَّهُ مَعَ النُّقْصَانِ او نه ددې څه وجه شته.چه راهن د نقصان باوجود دا خلاص كړی لِمَا فِيهِ مِنَ الضَّرَرِ خكه چې دې كي د راهن ضرر دې فَخَيَّرْنَاهُ نو موږ دا اختيار كړل إِنْ شَاءَ افْتَكَّهُ بِمَا فِيهِ كه غواړی.دا دې دده د پور په عوض راخلاص كړی.( يعنی تاوان دې برداشت كړی.او مرتهن ته دې پوره پور ادا كړی).ا وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَتَهُ كه غواړی.نو مرتهن دې ددې د قيمت ضامن كړی مِنْ جِنْسِهِ كه ددې د جنس څخې وی أَوْ خِلَافِ جِنْسِهِ اوكه ددې د جنس نه خلاف وی وَتَكُونُ رَهْنًا عِنْدَ الْمُرْتَهِنِ او قيمت به مرتهن سره رهن وی «وَالْمَكْسُورُ لِلْمُرْتَهِنِ بِالضَّمَانِ.او مات شوې به د ضمان ادا كاوه په وجه د مرتهن ملك وی.

حل اللغة* ① انكسر:ماته كړه ② ابريق: لوټه ③ لايجبر: نشی مجبوره كولې ④ الانفراد: ځانله ⑤ المكسور: ماته شوې》

تشريح:- كله چې لوټه مرهون وه.هغه د مرتهن سره د هلاكيدو په ځاې ماته شوه.مثلاً ددې بمبه ( ساخسوړه) ماته شوه.او دا كندم (او بونجی) شوه.نو اوس څه حكم دې؟ نو وې فرمائيل.كه د لوټې وزن او قيمت برابر وی.نو په دې كي د شيخينو رحمهما الله او د امام محمد رحمه الله اختلاف دې.شيخين رحمهما الله فرمائی.چه راهن ته دوې (دوه) اختياره دی ① نقصان برداشت كړی.او د مرتهن پوره قرضه ادا كړی.او خپله لوټه چې په كوم حال كي ده.واپس واخلی.② مرتهن مكلف كړی.چه د لوټې ته مالك جوړشه.او ته ددې قيمت راكړه.چه لس درهمه دې.او قيمت د مرهون په ځاې ځان سره كيږده.بيا كله چې راهن پور ادا كړی.نود مرهون قائم مقام يعنی مذكوره قيمت به د مرتهن نه واپس اخلی.بيا د قيمت ضمان كه هغه په دراهمو سره ادا كړی.او كه دينار سره، دواړه جائز دی.دا په دې صورت كي د شيخينو رحمهما الله مذهب دې.نو په راهن باندې د شيخينو رحمهما الله په نيز دا زبردستی نشی كيدې.چه رهن راخلاص كړی.خكه چې ددې هم دوې (دوه) صورتونه كيداې شی.او دواړه باطل دی.هركله چې دا دواړه صورتونه باطل شو.نو موږ راهن ته اختيار وركړو.او هغه دوې (دوه) باطل صورتونه دا دی

① راهن ماته شوې لوټه واخلی.او د مرتهن په لسو درهمو كي د ماتولو په وجه درې درهمه كم كړی. خكه چې د لوټې وزن خو پوره پاته دې.نو درې درهمه كمول به د خالص لوټې د جوړخت په وجه وی.چه د دې مطلب به دا وی.چه راهن د لوټې د جوړخت په وجه درې درهمه پور ادا كړې دې.او دا باطل دې.② يا راهن ښكاره ضرر دې.چه ده سلامته لوټه ايخودې وه.او ملاويږی ماته شوې لوټه.نو هركله چې دا دواړه صورتونه باطل شو.نو موږ اختيار خوښ كړو.



## د امام محمد رحمه الله نقطهٔ نظر

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ إِنْ شَاءَ افْتَكَّهُ نَاقِصًا او د امام محمد رحمه الله په نيز كه غواړی.نودا دې د نقصان په حالت كي را النديز كړی ،وَإِنْ شَاءَ جَعَلَهُ بِالدَّيْنِ اوكه غواړی.نو دا دې د پور عوض اوګرخوی اعْتِبَارًا لِحَالَةِ الْإِنْكِسَارِ بِحَالَةِ الْهَلَاكِ د ماتيدو حالت د هلاكت په حالت باندې قياس كاوه سره لِمَا تَعَذَّرَ الْفِكَاكُ مَجَّانًا صَارَ بِمَنْزِلَةِ الْهَلَاكِ او دا خكه چې هركله مفت خلاصول متعذر شو.نو ماتول د هلاكت په مرتبه كي شو وَهَذَا لِأَنَّهُ وَفِي الْهَلَاكِ الْحَقِيقِيِّ مَضْمُونٌ بِالدَّيْنِ بِالْإِجْمَاعِ او د حقيقی هلاكت په صورت كي بالاجماع به مرهون د پور په بدله كي مرهون فَكَذَا فِيمَا هُوَ فِي مَعْنَاهُ كيدو.نو دغه ډول په دې صورت كي هم چې د هلاكت په مرتبه كي وی.

حل اللغة* مجانا: مفت، هسې ② الانكسار: ماتول》

تشريح:- دا د امام محمد رحمه الله مذهب دې.چه راهن ته په ذكر شوی صورت كي دوې (دوه) اختياره دی ① رومبې هغه كوم چې په نمبر(۱) باندې شيخينو رحمهما الله فرمائيلی وو.چه نقصان دې برداشت كړی.او د مرتهن قرضه دې وركړی.او ماته شوې لوټه دې واپس واخلی.② راهن ته دا اختيار هم شته.چه ماته شوې لوټه د پور بدل اوګرخوی.يعنی ګويا چې راهن د مرتهن پور ادا كړو. لنډيز د كلام دا چې امام محمد رحمه الله په ماتولو باندې د هلاكت حكم جاری كړې دې.اوكه لوټه هلاكه شوې وې.نو هم دا حكم به وو.چه د مرتهن قرضه به ساقطيدله.او ماتيدل هم ګويا چې هلاكت دې.نو كوم شی چې د هلاكت په مرتبه كي شو.نو په هغې به هم د هلاكت حكم جاری كولې شی.او وئيلې به شی.چه ماته شوې لوټه د پور بدل شو.او خبره ختمه شوه.خكه كه ماته شوې لوټه د هلاكت په مرتبه كي وانخستې شی.نو درې صورتونه كيداې شی① د كره والی (او جوړخت) ختميدو په وجه پور كي څه كمی اوكړې شی.او دا باطل دې... كما مر...② راهن د مرتهن نه د ماتيدو ضمان واخلی.دا هم باطل دې.خكه چې دې كي سود دې.③ نقصان مفت پريږدی.او پوره پور ادا كړی.ماته شوې لوټه واخلی.نو په دې كي د راهن ضرر دې.نو هركله چې هيڅ صورت جوړ نشو.نوموږ مجبوراً اووئيلې.چه كله مفتو كي رهن خلاصول نا ممكن وی.يعنی د نقصان عوض اخستلو نه بغير رهن خلاصول ممكن نه وی.نو دا نقصان د هلاكاوه په مرتبه كي شو.او د هلاكت په صورت كي بالاتفاق، هلاكت د پور په مقابله كي وی.دغه د ماتيدو په صورت كي به هم كيږی.خكه چې هركله راهن باندې دا زبردستی نشی كيدې.چه هغه ماته شوې لوټه واخلی. نو مجبوراً به هم دا مرتهن ايږدی.نو دا نقصان د هلاكت په مرتبه كي شو.او په هلاكاوه كي ټوله قرضه ساقطيږی.نو دلته كي به هم ساقطيږی.

## د امام محمد رحمه الله د استدلال جواب

قُلْنَا:موږ وايو الْإِسْتِيفَاءُ عِنْدَ الْهَلَاكِ بِالْمَالِيَّةِ چې د هلاكت په وخت وصولول ماليت سره كيږی وَطَرِيقُهُ أَنْ يَكُونَ مَضْمُونًا موږ بِالْقِيمَةِ او ددې طريقه دا ده.چه مرهون مضمون بالقيمة وی ،ثُمَّ تَقَعُ الْمُقَاصَّةُ وَفِي جَعْلِهِ بِالدَّيْنِ إِغْلَاقُ الرَّهْنِ بيا مقاصه واقع كيږی.او مرهون د پور عوض ګرخولو كي مرهون مكمل ګيرول دی. وَهُوَ حُكْمٌ جَاهِلِيٌّ او دا د جاهليت زمانې حكم دې فَكَانَ التَّضْمِينُ بِالْقِيمَةِ أَوْلَى .نو د قيمت ضامن جوړول به غوره ( او راجح) وی.

تشريح:- په دې عبارت سره د امام محمد رحمه الله د استدلال ځواب وركوی.چه كله مرهون هلاك شی. نو چونكه عين ختم شو.نو د پور وصولی به د عين نه نه كيږی.بلكه د مرهون د ماليت نه كيږی.ددې وئيلو مطلب دا دې.چه د مرهون د هلاكت په صورت كي هم د مرهون عوض قيمت وی.بيا چونكه قيمت او پور يو شان دې.په دې وجه بيا اجازت ملاويږی.چه بس مرتهن دې دا قيمت خپل ځان سره رهن كيږدی.او راهن دې دا پور خپل ځان سره اوساتی.يعنی مقاصه كيږی.نو هركله چې صورت حال دا دې.نو د امام محمد رحمه الله به په دې هلاكت باندې قياس كول صحيح نه وی.او دا په هلاكت باندې قياس كولو كي دويمه خرابی بله هم ده.چه مرهون موجود دې.ددې باوجود هم مرتهن ته دا حق ملاؤ شو. چې هغه د مرهون مالك جوړ شی.كوم چې د

جاهلیت د زماني حکم وو.او دوی کې رواج وو.چه دا شریعت رد کړې دې.نو د قیمت د ضمان نه علاوه بل هيڅ صورت پاته پاتې نشو.( شارحینو رحمهم الله لیکلی دی.چه د مرغینانی رحمه الله په عبارت کې کمی ده.ګنی د قیمت ضمان غوره نه دې.بلکه واجب دې)

**د ذکرشوې مسئلې دريم صورت**

وَفِي الْوَجْهِ الثَّالِثِ او په دریم صورت کې وَهُوَ مَا إِذَا كَانَتْ قِيمَتُهُ أَقَلَّ مِنْ وَزْنِهِ او هغه دا دې.کله چې د لوټې قیمت ددې د وزن نه کم وی ثَمَانِيَةً یعنی اته درهمه وی يَضْمَنُ قِيمَتَهُ جَيِّدًا مِنْ خِلَافِ جِنْسِهِ نو مرتهن ددې د کره قیمت خلاف جنس سره أَوْ رَدِيئًا مِنْ جِنْسِهِ یا د کهوټه هم ددې د جنس نه ضامن وی وَتَكُونُ رَهْنًا عِنْدَهُ او قیمت به مرتهن سره رهن وی وَهَذَا بِالِاتِّفَاقِ او دا حکم بالاتفاق دې أَمَّا عِنْدَهُمَا فَظَاهِرٌ بهرحال د شیخینو رحمهما الله په نیز،نو دا خو ښکاره دې.وَكَذَلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او هم دغه ډول د امام محمد رحمه الله په نیز لِأَنَّهُ يَعْتَبِرُ حَالَةَ الِانْكِسَارِ بِحَالَةِ الْهَلَاكِ، وَالْهَلَاكُ ځکه چې دې د ماتیدو حالت د هلاکت په حالت باندې قیاس کوی ،عِنْدَهُ بِالْقِيمَةِ .او د امام محمد رحمه الله په نیز په دې صورت کې هلاکت مضمون بالقیمت وی.

**تشریح:-** که د لوټې قیمت اته درهمه وی.او پاته تفصیلات پخپل حال وی.نوڅه حکم دې؟ نو وې فرمائیل. چې بالاتفاق به د لوټې د قیمت یعنی د اتو درهمو ضامن جوړولې شی.او دا قیمت به د مرهون په ځائې لګولې شی.د شیخینو رحمهما الله په نیز خو دا خبره ښکاره ده.ځکه چې ددوی په نیز ړومبی صورت کې هم د قیمت ضمان راغلې وو.نو دلته کې به په درجه اولی راځی.

خود امام محمد رحمه الله اتفاق د سوچ مقام دې.ځکه چې دوی په ړومبی مثال کې مرهون مضمون بالدین ګرځولې دې.او دلته کې مضمون بالقیمت وائی ولې؟ ځکه چې امام محمد رحمه الله ماتیدل په هلاکت باندې محمول کړې دی.او ددوی په نیز که په ړومبی صورت کې هلاکت وی.نو مرهون مضمون بالدین وی.که قیمت د وزن نه کم وی.او په دې صورت کې هلاك شوې وی.نو بیا مرهون مضمون بالقیمت وی.او دلته قیمت کم دې.په دې وجه دوی هم د شیخینو رحمهما الله قول سره اتفاق کړې دې. ځکه چې امام محمد رحمه الله مرهون د پور بدل کې هغه وخت شماری.کله چې ددې امکان وی.او دلته کې ددې امکان نشته.ځکه که مرهون د وزن په اعتبار سره د دین بدل اوګرځوو.نو د مرتهن ضرر لازمیږی.ځکه چې د رهن قیمت اته درهمه او دده پور لس درهمه دې.او که د قیمت اعتبار اوکړې شی.نو دا به سود وی.......کما هو ظاهر.. نو د قیمت د ضمان نه سوا بله څه لاره نشته.﴿هکذا فی البدائع:ص۱۶۴ج۴﴾

تنبیه* په بدائع کې وئیلی شوی دی.چه په دې صورت کې به د قیمت ضمان خلاف جنس سره وی.مرغینانی رحمه الله داسې فرمائیلی دی.چه که ددې جنس نه وی.اوکه د بل جنس نه وی.دواړه جائز دی.بس ددې خیال ساتل پکار دی.چه د سود شبه او نه موندې شی.نو که د درهم په ځائې قیمت کې دینار کیږدی.نو په کره دینار راځی.او سود نه لازمیږی.البته کله چې قیمت په دراهمو سره وی.نو دا سپین زر کهوټه کیدل پکار دی.د مرهون پشان، چې سود لازم نشی.بهرحال چونکه احتیاط په ړومبی کې وو.په دې وجه بدائع کې صرف هم دا ذکر کړې شوې دې.او ګنجائش ددې هم شته.نو مرغینانی رحمه الله دواړه بیان کړی دی.

لنډیز د کلام دا چې خلاف جنس نه د کره مال ایخودو حکم د جواز په طریقه دې.ګنی ددې په عکس کې هم هیڅ باك نشته.او د جنس د اتحاد په صورت کې د کهوټه مال حکم په طریقه د وجوب دې.چه سود رانشی.د هدایه په شروحو کې ددې وضاحت نه دې شوې.په دې وجه اصول مخې ته ایخودو سره چه کومه خبره معلومه شوه.هغه مې عرض کړې ده.والله اعلم بالصواب.

**د مذکوره مسئلې دوهم صورت**



وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي او په دوهم صورت کې او هغه دا دې.وَهُوَ مَا إِذَا كَانَتْ قِيمَتُهُ أَكْثَرَ مِنْ وَزْنِهِ کله چې د لوټې قیمت ددې د وزن نه زیات وی.اثْنَيْ عَشَرَ یعنی دولس درهمه وی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ يَضْمَنُ جَمِيعَ قِيمَتِهِ نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به مرتهن د لوټې د پوره قیمت ضامن وی وَتَكُونُ رَهْنًا عِنْدَهُ .او دا قیمت به مرتهن سره رهن وی.

**تشریح:-** اوکه صورت حال دا وی.چه د لوټې قیمت دولس درهمه وی.نو امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.چه مرتهن د لوټې د پوره قیمت یعنی د دولس درهمو ضامن وی.او لوټه به د مرتهن ملك وی.او دولس درهمه به د مرهون په ځائې رهن وی.کله چې راهن قرضه ادا کړی.نو د مرهون قائم مقام یعنی دولس درهمه به اخلی.

لِأَنَّ الْعِبْرَةَ لِلْوَزْنِ عِنْدَهُ ځکه چې ددوی په نیز اعتبار د وزن دې لَا لِلْجَوْدَةِ وَالرَّدَاءَةِ کهره کیدو او کهوټه کیدو نه دې شو فَإِنْ كَانَ بِاعْتِبَارِ الْوَزْنِ كُلِّهِ مَضْمُونًا نو که مرهون د وزن په اعتبار سره پوره مضمون وی يُجْعَلُ كُلُّهُ مَضْمُونًا نو په اعتبار د قیمت به ددې واړه مضمون شمارلې کیږی ،وَإِنْ كَانَ بَعْضُهُ او که ددې بعض (مضمون) وی فَبَعْضُهُ نو ددې بعض ( به په اعتبار د قیمت مضمون شمارلې کیږی). وَهَذَا لِأَنَّ الْجَوْدَةَ تَابِعَةٌ لِلذَّاتِ دا په دې وجه چې کهره والې د ذات تابع دې وَمَتَى صَارَ الْأَصْلُ مَضْمُونًا او هرکله چې اصل مضمون ،اسْتَحَالَ أَنْ يَكُونَ التَّابِعُ أَمَانَةً نو دا ناممکن شوه.چه تابع امانت وی.

**تشریح:-** ځکه چې د امام صاحب په نیز اصل اعتبار د وزن دې.د کره والی او ردی کیدو اعتبار نشته.خو صورت حال دا دې.چه کوم ځائې مرهون په اعتبار د وزن واړه په ټوله مضمون وی.نو دا به په اعتبار د قیمت هم پوره مضمون شمارلې کیږی.اوکوم ځائې چې د وزن بعض برخه مضمون وی.هلته کې به د قیمت هم بعض برخه مضمون وی.او پاته به امانت وی.خو دلته کې څه اوکړې شی.دلته خو پوره لوټه په اعتبار د وزن مضمون ده.ځکه چې پور هم لس درهمه دې.او ددې وزن هم لس درهمه دې.نو هرکله چې پوره وزن مضمون شو.نو قیمت هم پوره مضمون شو.په دې وجه امام صاحب رحمه الله دلته اوفرمائیل.چه د پوره قیمت ضمان به واجب وی.او عذر دا هم دې.چه لوټه جوهر او ددې کره والې عرض دې.او د عرض، د محل نه جدائی نا ممکن ده.نو هرکله چې جوهر پوره مضمون دې.نو د تبعیت په بناء کره والې یعنی عرض هم اومنلې شو.او د پوره قیمت ضمان واجب شو.ګنی د جوهر مضمون او د عرض امانت کیدل به لازمیږی.او دا باطل دې.دا د امام صاحب رحمه الله مذهب دې.

**د امام ابویوسف رحمه الله نقطه نظر**

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يَضْمَنُ خَمْسَةَ أَسْدَاسِ قِيمَتِهِ او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز به مرتهن د لوټې د قیمت ۵/۶ ضامن وی وَيَكُونُ خَمْسَةُ أَسْدَاسِ الْإِبْرِيقِ لَهُ بِالضَّمَانِ او د لوټې د۵/۶ د ضمان وجه په وجه به د مرتهن ملك وی وَسُدُسُهُ يُفْرَزُ او ۱/۶ به جلا کولې شی.حَتَّى لَا يَبْقَى الرَّهْنُ شَائِعًا تردې چې رهن شائع پاته پاتې نشی ،وَيَكُونُ مَعَ قِيمَتِهِ خَمْسَةَ أَسْدَاسِ الْمَكْسُورِ رَهْنًا او دا ( شپږمه حصه) به د ماتې شوې لوټې د ۵/۶ قیمت سره رهن وی ،فَعِنْدَهُ تُعْتَبَرُ الْجَوْدَةُ وَالرَّدَاءَةُ نو د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د کره والی او د ردی کیدو اعتبار شوې دې وَتُجْعَلُ زِيَادَةُ الْقِيمَةِ كَزِيَادَةِ الْوَزْنِ او د قیمت زیاتوالې به د وزن د زیاتوالی پشان ګرځولې شی ،كَأَنَّ وَزْنَهُ اثْنَا عَشَرَ ګویا چې ددې وزن ۱۲ درهمه دې.

**تشریح:-** په ذکر شوی صورت کې د امام ابویوسف رحمه الله مذهب دا دې.چه د لوټې شپږ برخې (حصې) کړې شی. ددې د شپږو برخو نه د۵/۶ قیمت مرتهن نه زمان واخستلې شی.او په دې کې شپږمه برخه پاته پاتې شوې ده.دا به جلا کولې شی.او د مخکنی قیمت سره به مرتهن سره رهن کیخودې شی.او د لوټې ۵/۶ به د مرتهن ملکیت وی.ځکه چې هغه ددې ضمان ادا کړې دې.او د ۱/۶ لنډیز ۲/۱۲ او د ۵/۶ لنډیز ۱۰/۱۲ ده.﴿و فصلنا الحساب فی درس السراجی﴾ .بهرحال امام ابویوسف رحمه الله د وزن پشان د کره والی او ردی کیدو اعتبار هم کړې دې.نو ددوی په نیز د قیمت زیاتیدل د وزن زیاتیدو پشان دې.او داسې ئې شمار کړل.ګویا چې ددې

وزن ۱۲ درهمه دي.

## د امام ابویوسف رحمه الله دلیل

وَهٰذَا لِأَنَّ الْجَوْدَةَ مُتَقَوَّمَةٌ فِي ذَاتِهَا او دا (د کره والی) اعتبار خکه دي.چه کره والي پخپله متقوم دي حَتّٰى تُعْتَبَرَ عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِخِلَافِ جِنْسِهَا تردي چي ددي د جنس په خلاف د مقابلې په وخت د کره والی اعتبار کولای شی وَفِي تَصَرُّفِ الْمَرِيضِ او د مریض په تصرف کي اعتبار کولای شی وَإِنْ كَانَتْ لَا تُعْتَبَرُ عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِجِنْسِهَا اگرچه شریعت کي د سمع په وجه د خپل جنس د مقابلې په وخت د کره والی اعتبار نشی کولی «سَمْعًا فَأَمْكَنَ اعْتِبَارُهَا» نو (په رهن کي) د کره والی اعتبار ممکن دي.

تشریح:- دا د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دي.چه دوی کره والی قیمتی ولي شمار کړي دي.نو وي فرمائیل. که د کره سپینو زرو په مقابله کي سره زر وی.نو د کره سپینو زرو په اعتبار سره قیمت لګولې شی.او په دي کي هیڅ اختلاف نشته.دغه ډول که مریض په مرض الموت کي سل کره درهم د سل کهوټه درهمو په بدله کي خرڅ کړل.نو صرف دا تصرف به د دریمي برخي (حصي) مال نه معتبر وی.نو معلومه شوه.چه کره والي معتبر دي.خو کله چي جنس سره مقابله وی.نو دغه وخت د کره والی اعتبار نه کیږي.خکه چي شریعت ددي نه منع کړي ده.نو په دي سره دا نه لازمیږي.چه د مرهون په صورت کي هم د جنس د مقابل نه بغیر کره والي معتبر نه وی.نو کله چي شریعت په نورو مسئلو کي د کره والی اعتبار کړي دي.نو د مرهون په صورت کي چي کومه پورې ممکن وی.اعتبار به کولی شی.چه راهن ته نقصان او نه رسیږي.دا د امام ابویوسف رحمه الله قول دي.پاتي شو د امام محمد رحمه الله قول، نو مرغیناني رحمه الله فرمائی.

## د امام محمد رحمه الله د قول تفصیل

فَفِي بَيَانِ قَوْلِ مُحَمَّدٍ نَوْعُ تَطْوِيلٍ او د امام محمد رحمه الله د قول په بیان کي لږ اوګد والي دي وَيُعْرَفُ فِي مَوْضِعَيْنِ مِنَ الْمَبْسُوطِ وَالزِّيَادَاتِ مَعَ جَمِيعِ شُعَبِهَا .چه دا پخپل مقام باندي یعنی مبسوط او زیادات کي سره ددي دټولو ښاخونو پیژندي شی.

تشریح:- مرغیناني رحمه الله فرمائی.چه د امام محمد رحمه الله په قول کي لږ تفصیل دي.که تاسو ته حاجت وی.نو په مبسوط او زیادات کي ددي تفصیلات موجود دی.علامه عینی په تفصیل سره دا واضح کړی دی.او په «بدائع:ص۱۶۴ج۳» باندي دی.

## د معین څیز رهن اخـودو په شرط د غلام خرڅولو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا او چا چي غلام خرڅ کړو عَلٰى أَنْ يَرْهَنَهُ الْمُشْتَرِي شَيْئًا بِعَيْنِهِ په دي شرط چي مشتری به دده سره څه معین شئ رهن ایږدی جَازَ اسْتِحْسَانًا نو دا استحساناً جائز دی وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوزَ او قیاس دا دي.چه جائز نه وی وَعَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ وَالِاسْتِحْسَانِ او هم په دي قیاس او استحسان باندي دی. إِذَا بَاعَ شَيْئًا عَلٰى کله ني چي څه شئ په دي شرط خرڅ کړو أَنْ يُعْطِيَهُ كَفِيلًا مُعَيَّنًا چي مشتری به ده ته څوك معین کفیل ورکوی حَاضِرًا فِي الْمَجْلِسِ کوم چي مجلس کي حاضر وی فَقَبِلَ نوکفیل کفالت قبول کړی.

تشریح:- زید د عمرو نه مثلاً اس واخستلو.او ثمن ئي ادا نکړو.بلکه ثمن پور پاتي شو.نو په داسي صورت کي که عمرو دا شرط اوکړی.چه ته به د ثمن په عوض یو معین شئ مثلاً خپل دا غلام رهن ایږدي.نو دا جائز دي اوکه نه؟ دغه ډول که عمرو زید سره دا شرط اوکړو.چه ستا دوست خالد چي په مجلس د عقد کي موجود دي.ته به دي کفیل بالثمن مقرر کوې.نو د کفالت دا شرط جائز دي اوکه نه؟نو وي فرمائیل.چه دا بالاتفاق جائز دی.په دي کي دهیڅ چا اختلاف نشته.خو په دي کي د قیاس او استحسان تعارض دي.د قیاس تقاضه دا ده.چه داجائز نـه وی.او د استحسان تقاضـه دا ده.چـه دا جائز وی. بهرحال مـونږ قیـاس پریخودو.او استحسان ته مو ترجیح ورکړله.او په دي مو عمل اوکړو.او اکثرو خایونو کي استحسان ته په قیاس باندي



ترجیح ورکولي شی. فیصل قابل غور ژباره

اوددي نه منع شوي ده وَجْهُ الْقِيَاسِ دلیل د قیاس دا دي أَنَّهُ صَفْقَةٌ چي دا په صفقه کي صفقه ده فِي صَفْقَةٍ وَهُوَ مَنْهِيٌّ عَنْهُ (۱) وَلِأَنَّهُ شَرْطٌ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ او خکه دا داسي شرط دي.چه عقد ددي تقاضه نه کوی. وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِهِمَا او په دي کي دوی دواړو کي یوکس ته نفع ده ،وَمِثْلُهُ يُفْسِدُ الْبَيْعَ .او ددي مثل بیع فاسده وی.

تشریح:- ① د قیاس دلیل دا دي.چه دا په یوه صفقه کي بله صفقه ده.چه د دریم ټوك په پیل کي ددي تفصیلی بحث تیر شوي دي.او صفقه فی صفقه منهی عنه، ممنوع او باطل ده.② او دا عقد د مقتضاء عقد خلاف دي.او په دي کي عاقدینو کي د بائع نفع ده.او داسي شرط د عقد مفسد وی.چه ددي تفصیل هم په دریم ټوك کي تیر شوي دي.

مسئله* کوم شئ چي عقد سره د شرط نه بغیر ثابت شی.لکه بائع باندي د مبیع سپارل، او مشتری باندي د ثمن سپارل، بیا ددي شرط کول،د عقد د مقتضاء مطابق دي.او رهن داسي نه دي.نو ددي شرط به د عقد د مقتضاء خلاف وی.

## استحساني دلیل

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ د استحسان دلیل دا دي أَنَّهُ شَرْطٌ مُلَائِمٌ لِلْعَقْدِ دا داسي شرط دي.چه د عقد بیع مناسب دي. لِأَنَّ الْكَفَالَةَ وَالرَّهْنَ لِلِاسْتِيثَاقِ خکه چي کفالت او رهن د ثمن مضبوطوالی لپاره دي وَأَنَّهُ يُلَائِمُ الْوُجُوبَ .او دا د ثمن د وجوب مناسب دي.

حل اللغة: ① ملائم: مناسب ② الاستیثاق: طلب د مضبوطتیا ،طلب د اعتماد.

تشریح:- دا د استحسان دلیل دي.چه عقد بیع اگرچه ددي تقاضه نه کوی.خو دا د عقد بیع د تقاضي خلاف هم نه دي.بلکه مناسب دي.خکه د رهن او کفالت مقصد دا دي.چه د ثمن مضبوطی حاصله شی.او ثمن واجب دي.نو دا به د ثمن د وجوب مناسب ګرخولي شی.نو دا شرط داسي دي.لکه د ثمن د کره والی شرط لګول.

## چه کفیل حاضر ونو د معین رهن او عقد حکم

فَإِذَا كَانَ الْكَفِيلُ حَاضِرًا فِي الْمَجْلِسِ نوکله چي کفیل مجلس کي حاضر وی وَالرَّهْنُ مُعَيَّنًا او رهن معین وی اعْتَبَرْنَا فِيهِ الْمَعْنَى نو مونږ په دي کي د معنی اعتبار کړي دي وَهُوَ مُلَائِمٌ او معنی د عقد مناسب ده فَصَحَّ الْعَقْدُ نو دا عقد به صحیح وی وَإِذَا لَمْ يَكُنِ الرَّهْنُ وَلَا الْكَفِيلُ مُعَيَّنًا او کله چي رهن او کفیل معین نه وی أَوْ كَانَ الْكَفِيلُ غَائِبًا یا کفیل غائب وی حَتّٰى افْتَرَقَا تردي چي دوی دواړه جلا شو لَمْ يَبْقَ مَعْنَى الْكَفَالَةِ وَالرَّهْنِ لِلْجَهَالَةِ نو د کفالت او د رهن معنی د جهالت په وجه پاته پاتي نشوه. فَبَقِيَ الِاعْتِبَارُ لِعَيْنِهِ نو د عین شرط اعتبار پاته پاتي شو ،فَيَفْسُدُ نو عقد به فاسدیږي. كَانَ غَائِبًا اوکه کفیل غائب وی وَلَوْ حَضَرَ فِي الْمَجْلِسِ وَقَبِلَ نو هغه مجلس کي حاضر شو ،صَحَّ او کفالت ئي قبول کړو.نو عقد به صحیح وی.

تشریح:- په مذکوره صورت کي رهن او کفالت ته استحساناً جائز ونیلی شوی دی.خو دا هغه وخت کله چي مرهون او کفیل متعین وی.ګنی د جهالت په وجه به عقد فاسد وی.اوکه کفیل متعین دي.خو په مجلس د عقد کي حاضر نه دي.نو اوس بـه هم عقد فاسد وی.خکه کیداې شی.چه کفیـل جوړیدل قبول نکړی.ددي تفصیل نه روسته پوهه شئ.

* که څوك دا پوښتنه اوکړی چي د معین کیدو په صورت کي او د غیر معین کیدو په صورت کي دي فاسد

۱) قال الزیلعی رحمه الله یشیر إلی حدیث ابن مسعود رضی الله عنه أن النبی ﷺ نهی عن صفقتین فی صفقة أخرجه أحمد وتقدم تخریجه فی کتاب البیوع (نصب:۵:۱۵)_

ولې دي؟ نو موږ خواب ورکوو چې د کفالت او رهن کوم شرط چې عقد کې لګيدلې دې.په دې کې د لفظ او معنى دواړو لحاظ دې.دلفظ په اعتبار سره دا په يوه صفقه کې بله صفقه ده.او د معنى په اعتبار سره دا داسې شرط دې. چې د عقد مناسب دې.نو موږ د معين کيدو په صورت کې دمعنى اعتبار کړې دې.او عقد مو جائز ګرځولې دې.او د غيرمعين کيدو په صورت کې موږ د لفظ اعتبار کړې دې.او عقد مو فاسد ګرځولې دې.لکه چې په ،،من،، کې جمع او واحد لفظى او معنوى اعتبار سره ملحوظ دى.په دې وجه دې ارخ ته د واحداوجمع ضميرراجع کيږى.اوکه کفيل د مخکې نه مجلس کې نه وو.خو د جلا کيدونه مخکې حاضر شو. اوکفالت ئې قبول کړو.نوجائز ده.

الإعتراض* په دليل کې د حضرت مرغينانى رحمه الله صرف ،،للجهالة،، وئيل مشکوك دى.خکه چې غائب کفيل راسته دا علت نه برابريږى.نو ددې نه روسته دا زيادت مناسب وو. «لو الجواز أن لا يقبل الكفالة عند حضوره»

### د مشترى د مرهون سپارلو نه د منع کيدو حکم

> وَلَوِامْتَنَعَ الْمُشْتَرِي عَنْ تَسْلِيمِ الرَّهْنِ اوکه مشترى د مرهون سپارلو نه منع لَمْ يُجْبَرْعَلَيْهِ نو په ده به زبردستى نشى کولې وَقَالَ زُفَرُ: يُجْبَرُاو امام زفر رحمه الله فرمائيلى دى.چه زبردستى به کولاى شى لِأَنَّ الرَّهْنَ إِذَاشُرِطَ فِي الْبَيْعِ خکه چې هرکله رهن په بيع کې مشروط شو صَارَحَقًّامِنْ حُقُوقِهِ نو رهن د بيع په حقوقو کې يو حق شو كَالْوَكَالَةِ الْمَشْرُوطَةِ فِي الرَّهْنِ پشان د هغه وکالت کوم چې رهن کې مشروط دې فَيَلْزَمُهُ بِلُزُومِهِ نو په مشترى به د بيع لازميدو په وجه رهن لازميږى وَنَحْنُ نَقُولُ: الرَّهْنُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ مِنْ جَانِبِ الرَّاهِنِ او موږ وايو.چه رهن يو عقد تبرع ده.د راهن د اړخه عَلَى مَابَيَّنَّاهُ د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دې وَلَاجَبْرَعَلَى التَّبَرُّعَاتِ او په تبرعاتو کې زبردستى نشى کولې.

**تشريح:-** عقد مذکور کې د رهن شرط کړې شوې وو.خو اوس مشترى د رهن ور کاوه نه منع کيږى.نو آيا په ده زبردستى جائز ده.نو په دې کې زموږ او د امام زفر رحمه الله اختلاف دې.موږ وايو.چه مخکې تفصيل تير شوې دې.چه عقد رهن تبرع ده.او اصول مقرر دى.چه په تبرعاتو باندې زبردستى نشى کولې.په دې وجه به مشترى باندې زبردستى نه کيږى.امام زفر رحمه الله فرمائى.که راهن عادل يا مرتهن وکيل جوړ کړو.چه د پور ادا کاوه په وخت راتلو باندې مرهون خرڅ کړى.نو دا وکالت لازم دې.اوس راهن وکيل د وکالت نه نشى معزول کولې.دغه ډول دلته کې هم، کله چې رهن په عقد کې مقرر شو.نو لازم به وى.نو هرکله چې بيع لازم ده.نو رهن به هم لازم وى.او د واجبى حق ادا کاوه لپاره زبردستى جائز ده.نو په ده به زبردستى جائز وى.

### په بائع د زبردستى کولو حکم

> وَلَكِنَّ الْبَائِعَ خو بائع په اختيار سره دې بِالْخِيَارِإِنْ شَاءَرَضِيَ بِتَرْكِ الرَّهْنِ که غواړى.په رهن پريخودو دې راضى شى.وَإِنْ شَاءَفَسَخَ الْبَيْعَ اوکه غواړى.نو بيع دې فسخ کړى لِأَنَّهُ وَصْفٌ مَرْغُوبٌ فِيهِ خکه رهن داسې وصف دې.چه دې ارخ ته شوق کولاى شى وَمَارَضِيَ او بائع نه دې راضى شوې إِلَّابِهِ خو رهن سره فَيَتَخَيَّرُبِفَوَاتِهِ نو بائع به ددې د فوت کيدو په وجه مختار وى إِلَّاأَنْ يَدْفَعَ الْمُشْتَرِي الثَّمَنَ حَالًّا خو دا چې مشترى ثمن د عقد ورکړى لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ مقصود حاصليدو په وجه.أَوْيَدْفَعَ قِيمَةَ الرَّهْنِ رَهْنًا يا مشترى د مرهون قيمت رهن ورکړى لِأَنَّ يَدَالِاسْتِيفَاءِ تَثْبُتُ عَلَى الْمَعْنَى وَهُوَالْقِيمَةُ .خکه چې د وصولولو قبضه په معنى ثابتيږى.او معنى دا قيمت دې.

**تشريح:-** په مذکوره صورت زموږ په نيز مشترى باندې زبردستى جائز نه ده.خو د بائع به څه کيږى.هغه ته هم څه اختيار شته.اوکه نه؟ نو وې فرمائيل.چه هغه ته هم اختيار شته.که غواړى.د رهن نه بغير دې مشترى ته حواله کړى.او خپل ثمن دې پخپل وخت د هغه نه وصول کړى.اوکه غواړى.نو بيع دې فسخ کړى.خکه چې په پور بيع کاوه باندې دې د رهن په وجه راضى شوې وو.نو د وصف مرغوب فيه ( د خوښ صفت) د فوت کيدو په وجه به ده ته اختيار وى.خو که مشترى په خائې د رهن ثمن ادا کړى.نواوس بائع ته اختيار



نشته.خکه چې اصل حاصل شوې دې.يا مشترى د مرهون په خائې ددې قيمت رهن کيخودو.نو اوس هم بائع ته اختيار پاتې نشو.خکه چې مقصود حاصل دې.ولې؟ خکه چې عين مرهون خو امانت دې.او يد استيفاء مرتهن ته په ماليت باندې حاصليږى.او ماليت هغه قيمت دې.کوم چې ده ته ورکولې شى.ددې ماليت مفهوم مرغينانى رحمه الله په معنى سره تعبير کړې دې.

### د مشترى د ثمن په بدله کښې کپړه ايخودل به رهن وى

> قَالَ امام محمد رحمه الله جامع صغير کې فرمائيلى دى وَمَنْ اشْتَرَى ثَوْبًابِدَرَاهِمَ او چاچه د دراهمو په بدله کې کپړه واخستله فَقَالَ لِلْبَائِعِ أَمْسِكْ هَذَاالثَّوْبَ نو ده بائع ته اوونيل.چه دا کپړه کيږده حَتَّى أُعْطِيَكَ الثَّمَنَ فَالثَّوْبُ رَهْنٌ .تر دې چې زه تا ته ثمن درکړم.نو کپړه رهن دې.

**تشريح:-** زيدخالد نه يوه کپړه واخستله.بيا ددې کپړې په اړه کې ، يا د بلې يوې کپړې په اړه کې زيد خالد ته اووائى.چه ترکومه پورې زه ستا ثمن درنکړم.دا کپړه خان سره اوساته.نو دا کپړه خالد سره رهن دې.دا زموږ د احنافو مذهب دې

> لِأَنَّهُ أَتَى بِمَايُنْبِئُ عَنْ مَعْنَى الرَّهْنِ خکه چې ده داسې الفاظ راوړلى دى.چه دا د رهن د معنى خبر ورکوى وَهُوَالْحَبْسُ إِلَى وَقْتِ الْإِعْطَاءِ او هغه د ثمن ور کاوه د وخته پورې خان سره ساتل ( بندول) دى. وَالْعِبْرَةُفِي الْعُقُودِلِلْمَعَانِي او په عقدونو کې د معانو اعتبار کيږى حَتَّى كَانَتْ الْكَفَالَةُ بِشَرْطِ بَرَاءَةِ الْأَصِيلِ حَوَالَةً تر دې پورې چې کفالت د اصيل د برائت په شرط سره حواله ده ،وَالْحَوَالَةُ فِي ضِدِّ ذَلِكَ كَفَالَةٌ .او ددې په ضد کې حواله کفالت دې.

**تشريح:-** دليل دا دې.چه زيد اګرچه د رهن الفاظ نه دى وئيلى.خو د رهن معنى ده وئيلې ده.خکه ده وئيلى دى.چه د ثمن در کاوه پورې دا خان سره کيږده.او هم دا د رهن حقيقت دې.او په عقودو کې د رهن اعتبار نشته. بلکه د معانو اعتبار دې.ددې دليل دا دې.چه کفالت کې اصيل برى الذمه کيږى نه، بلکه د اصيل او کفيل دواړو نه مطالبه کولې شى.او حواله کې اصيل برى الذمه کيږى.خو که په کفالت کې دا شرط کړې شوې وى.چه اصيل برى الذمه کيږى.نو اوس دا کفالت پاتې نشو.بلکه حواله شوه.او هم دغه ډول که حواله کې دا شرط لګولې شوې وى.چه اصيل برى الذمه نه دې.نو دا حواله نه ده.بلکه کفاله ده.نو معلومه شوه.چه عقدونو کې د معانو اعتبار دې.د الفاظو نه دې.

### د امام زفر رحمه الله نقطه نظر

> وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله او امام زفر رحمه الله فرمائى لَايَكُونُ رَهْنًا، چې رهن به نه وى وَمِثْلُهُ عَنْ أَبِي يُوسُفَ لِأَنَّ قَوْلَهُ او هم ددې پشان د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى. خکه چې د مشترى دا وئيل چه ،،أَمْسِكْ خان سره اوساته،، يَحْتَمِلُ الرَّهْنَ وَيَحْتَمِلُ الْإِيدَاعَ، د رهن احتمال لرى.اود ايداع احتمال لرى وَالثَّانِي أَقَلُّهُمَا او دوهم ( ايداع) په دې دواړو کې کم دې فَيُقْضَى بِثُبُوتِهِ نو هم ددې د ثبوت فيصله به کولاى شى بِخِلَافِ مَا إِذَاقَالَ: په خلاف ددې صورت کله چې ده وئيلى وى أَمْسِكْهُ بِدَيْنِكَ أَوْبِمَالِكَ چې دا پخپل پور د خپل مال په بدله کې خان سره کيږده لِأَنَّهُ لَمَّاقَابَلَهُ بِالدَّيْنِ فَقَدْعَيَّنَ جِهَةَ الرَّهْنِ خکه چې هرکله ده کپړه د پور مقابل اوګرخوله.نو د رهن اړخ ئې متعين کړو.

**تشريح:-** د امام زفر رحمه الله قول دا دې.چه دې ته به رهن نشى وئيلې.او داما ابويوسف رحمه الله نه هم دا نقل دى.دوى فرمائى. چې په ،،امسك،، وئيلو کې د رهن او وديعت دواړو احتمال دې.او په دې دواړو کې وديعت معمولى دې. خکه چې ددې ضمان نه واجبيږى.او اوصل دا دې.چه په داسې موقعو چې کله د مضبوط يا د زيات د اثبات دليل ملاؤ نشى.نو دا به په کم او سپك باندې محمول کولې شى.نو دا قول به وديعت ايخودو باندې محمول کولې شى.

> قُلْنَا موږ وايو مَامَدَّهُ إِلَى الْإِعْطَاءِ چې کله ده ،،د کپړې هغه سره ساتل د ثمن ور کاوه پورې اوګد کړل كَ عَلِمَ

أَنَّ مُرَادَهُ الرَّهْنُ نو دا خبره معلومه شوه.چه دده مراد رهن دي.

تشریح:- مونږ ددوی د استدلال دا ځواب ورکړي دي.چه هرکله مشتري د کپړې د امساك (هغه سره د ایږدلو) موده ثمن ادا کول بیان کړل.نو د رهن معنی پخپله ښکاره شوه.او دا خبره ثابته شوه.چه د مشتري مقصد رهن دي.ودیعت نه دي.که مشتري دا الفاظ استعمال کړي وي.چه ..امکسه بدینك أو بمالك.. نو دا امام زفر رحمه الله هم رهن شمار کوي.ځکه چې د کپړې او پور مقابله د رهن مضبوط دلیل دي.

## فصل

ژباړه:- (دا) فصل دي.

تشریح:- تر اوسه پورې د رهن هغه مسائل بیان کړې شو.په کوم کې چې مرهون، او راهن او مرتهن کې تعدد نشته.اوس هغه مسئلې بیانولې شي.په کومو کې چې مرهون متعدد (د یو نه زیات) وي.یا راهن متعدد وي.یا مرتهن متعدد وي.

### د دوو غلامانو د رهن ایخودو حکم

وَمَنْ رَهَنَ عَبْدَيْنِ بِأَلْفٍ او چا چې د زر (روپو) په بدله کې دوې (دوه) غلامان رهن کیخودل فَقَضَى حِصَّةَ أَحَدِهِمَا نو په دوی کې ئې د یو برخه ادا کړله لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَدُسْتَ (تصرف) نو دده لپاره به دا حق نه وي.چه په دې باندې قبضه اوکړي حَتَّى يُؤَدِّيَ بَاقِيَ الدَّيْنِ وَحِصَّةُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا تردې چې پاته پور اداکړي.او په دوی کې د هر یو برخه هغه ده.مَا يَخُصُّهُ کومه چې خاص دده په برخه کې راشي إِذَا قُسِمَ الدَّيْنُ عَلَى قِيمَتِهِمَا کله چې پور ددوی دواړو په قیمت باندې ویش کړې شي.

تشریح:- د زید په خالد باندې زر روپۍ دي.زید د زرو روپو په بدله کې خپل دوې (دوه) غلامان خالد سره رهن کیخودل.په دوی کې د یو قیمت اووه سوه روپوۍ دي.او د دوهم درې سوه روپۍ دي.زید اووه سوه روپۍ ادا کړې.او درې سوه روپۍ پاته پاتې شوې.نو آیا زید ته دا حق شته .چه دا غلام د خالد نه واخلي.دکوم قیمت چې اووه سوره روبۍ دي؟ نو وې فرمائیل.چه زید ته دا حق نشته.کله چې د خالد پوره پور ادا کړي .بیا به خپل دواړه غلامان اخلي.

وَهَذَا لِأَنَّ الرَّهْنَ مَحْبُوسٌ بِكُلِّ الدَّيْنِ او دا ځکه چې رهن د پوره پور په عوض کې ګیر دي فَيَكُونُ مَحْبُوسًا بِكُلِّ جُزْءٍ نو د پور د هریو جزء په عوض کې به ګیر (قید) وي مِنْ أَجْزَائِهِ مُبَالَغَةً فِي چور عَلَى قَضَاءِ الدَّيْنِ رهن په دین ادا کاوه باندې په تیزولو کې د مبالغې په غرض سره وَصَارَ كَالْمَبِيعِ فِي يَدِ الْبَائِعِ .او دا داسې شوه.لکه د بائع په قبضه کې مبیع.

تشریح:- ځکه چې رهن د پوره پور په بدله کې ګیر دي.نو داسې به ګنړو.چه د پور د هر هر جزء په بدله کې ګیر دي.نو ترکومه پورې چې یوه پیسه هم پاته پاتې وي.زید ته به دا حق نه وي.چه مرهون د راهن نه واخلي.او په دې کې دا راز هم دي.چه زید د پور ادا کاوه فکر (او غم) اوکړي.ګویا چې دا په پور ادا کاوه باندې د زید د تیزولو یو تدبیر (او چل) دي.او ددې مثال بعینه داسې دي.چه زید د خالد نه دوې (دوه) غلامان په زر روپۍ واخستل.او اووه سوه روپۍ ثمن ئې خالد ته ورکړو.نو اوس به زید ته دا حق نه وي. چې یو غلام د خالد نه واخلي.بلکه کله چې د هغه پوره ثمن ادا کړي.هله به هغه ته مبیع حواله کولې شي.

[1] ځوکه ځوك داپوښتنه اوکړي چې دده برخه څه شئ دي؟ نو ددې ځواب ئې ورکړوچه وحصة كل واحد منهما.. [2] یعني کله چې ددوی دواړو قیمت اولګولې شو.او پور په دوی باندې ویش کړې شو.نو دکوم په برخه کې چې څومره پور راغې.هم دا دهغه برخه ده.لکه څنګه چې په ذکر شوی مثال کې د یوحصه اووه سوه او د بل درې سوه ده. تنها

### د معلوم مقدار په عوض کښې په دوو ځیزونو کښې د یو د تعین حکم



فإن سمى لكل واحد من أعيان الرهن شيئا نو که صراحت ئې کړې وي.د هر یو لپاره د رهن د ځیزونو نه ددې مال څه برخه د کوم په بدله کې چې دا رهن دي هكذا الجواب في رواية الأصل نو د مبسوط په روایت کې هم دا ځواب دي وفي الزيادات له أن يقبضه.او د زیادات په روایت کې راهن ته حق دي.چه په ده باندې قبضه اوکړي إذا أدى ما سمي له .کله ئې چې هغه مقدار ادا کړې وي.کوم چې دده لپاره مقرر کړې شوې وو.

تشریح:- یو صورت خو هغه وو.کوم چې وړاندې تیر شو.خو که راهن دا تعین اوکړو.چه دا غلام د اووه سوه (روپو) په عوض کې دي.او دا د دریو سوو (په عوض کې دي).نو کله چې ده اووه سوه روپۍ ادا کړې.نو د اووه سوو (روپو) والا دغلام اخستلو حق به وی اوکه نه؟ دغه ډول مثلاً پور زر روپۍ دي.او ده دوې (دوه) غلامان رهن کیخودل.او دا ئې واضحه کړله.چه دا دواړه د پنځو سوو په بدله کې دي.او پاته پنځه سوه د رهن نه بغیر دي.بیا ده پنځه سوه روپۍ ورکړلې.او وې وئیل.چه دواړه غلامان ورکړه.ځکه دا پنځه سوه د دې.چه ددې په غلام مرهون دي.نو آیا دا جائز دي؟ نو وې فرمائیل.چه په دې کې د مبسوط او زیادات روایات مختلف دي.مبسوط کې دي.چه جائز نه دي.او زیادات کې دي.چه جائزدي.

وجه الأول أن العقد متحد او د ړومبی وجه داده.چه عقد متحد دي لايتفرق بتفرق التسمية چې دا به د تسمیه په تفرق سره نه متفرق کیږي كما في المبيع.لکه څنګه چې بیع کې (صفقه نه متفرق کیږي)

تشریح:- د مبسوط د روایت دلیل دا دي.چه دا عقد متحد دي.یو دي.په ذکر شوی صراحت سره به ددې یو والي (توحد) نه ختمیږي.او په دې کې به تعدد او تفریق نه پیدا کیږي.نو هرکله چې دا یو شو.نو هم دا مخکنې حکم به ددې هم وي.او ددې مثال بعینه هم دا دي.که زید دوې (دوه) غلامان د زر (روپو) په بدله کې خرڅ کړل.او دا ئې واضحه کړله.چه ددې غلام قیمت شپږ سوه روپۍ او ددې دوهم څلور سوه روپۍ دي.نو که مشتري د یو قیمت ورکړي.او په ده باندې قبضه کول اوغواړي.نو ده ته به دا حق نه وي.چه تفرق د صفقې لازم نشي.

وجه الثاني أنه لا حاجة إلى الإتحاد دوهم دلیل دا دي.چه د اتحاد هیڅ اړتیا نشته لأن أحد العقدين لا يصير مشروطا في الآخر ځکه چې عقد کې یو په دوهم کې مشروط نه وی ألا يرى أنه لو قبل الرهن في أحدهما آیا دا نه ګورې.که مرتهن په دوی کې په یو کې رهن قبول کړو جاز.نو جائز دي.

تشریح:- د زیادات د روایت دلیل دا دي.چه حقیقت کې دا جلا جلا عقدونه دي.او اصول دا دي.چه یو عقد د بل عقد لپاره شرط نه وي.اوګورئ که په دې صورت کې دا واضح کړې شوې وي.چه دا د شپږ سوه په بدله کې او دا د څلور سوو په بدله کې دي.که مرتهن صرف یو کې عقد قبول کړي.او په دوهم کې قبول نکړي.نو جائز دي. لنډیز د کلام دا چې رهن کې تفرق دي.او دا جائز دي.او مضر نه دي.نو ددې د متحد (اویو) کاوه هیڅ اړتیا نشته.البته دا ضرر صرف د بیع په صورت کې لازمیږي.ځکه چې دې کې تفرق مضر دي.او ددې وجه دا ده.چه بیع کې د کره او ردی ملاوول،او د خرڅولو عام عادت دي. نو د بائع ضرر به لازمیږي.

### یو ځیز د دوو سړو د قرضو په بدله کښې د رهن ایخودو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل فَإِنْ رَهَنَ عَيْنًا وَاحِدَةً عِنْدَ رَجُلَيْنِ نو که یو شئ ئې دوو سړو سره رهن کیخودو بِدَيْنٍ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَيْهِ د هغه پور په بدله کې کوم چې ددوی دواړو په ده باندې دي جَازَ نو جائز دي وَجَمِيعُهَا رَهْنٌ عِنْدَ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا، او پوره شئ به په دوی دواړو کې هر یو سره رهن وی. لِأَنَّ الرَّهْنَ أُضِيفَ إِلَى جَمِيعِ الْعَيْنِ فِي صَفْقَةٍ وَاحِدَةٍ ځکه چې یوه معامله کې پوره شئ اړخ ته د رهن اضافت شوې دي وَلَا شُيُوعَ فِيهِ په دې کې شیوع نشته وَمُوجِبُهُ صَيْرُورَتُهُ مُحْتَبِسًا بِالدَّيْنِ او د رهن حکم مرهون د پور په بدله کې ګیریدل دي وَهَذَا مِمَّا لَا يَقْبَلُ الْوَصْفَ بِالتَّجَزِّي او دا د هغه ځیزونو څخه دي.چه دا د ټکړې کاوه وصف نه قبلوی فَصَارَ مَحْبُوسًا بِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو

مرهون به په دوی دوارو کي د هریو په بدله کي قید وی **وَهٰذَا بِخِلَافِ الْهِبَةِ مِنْ رَجُلَيْنِ حَيْثُ لَا تَجُوْزُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ** رحمه الله .او دا دوو سړو ته د هبه کاوه خلاف دي.چه دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز دي.

**تشریح:**- په زید د خالد او بکر سل روپئ پور دی.زید خپله ګهړئ د سلو روپو په عوض دوی دوارو سره رهن کیخوده.نو دا رهن جائز دي.او داسې به ګنړلي شی.چه پوره ګهړئ هر یو سره مرهون او ګانړه ده.

؟که څوك دا اعتراض اوکړی چې هرکهل مستحقینو کي تعدد دي.نو ددې په وجه رهن کي شیوع پیدا شو.او دا د رهن د جواز نه مانع دي؟ نوبکاردا وه چې دا جائز نه وه ددې خواب دا دي چې په یو محل کي د مستحقینو تعدد شیوع نه ثابته وی.لکه (مثلاً) یو جماعت لپاره زید باندې قصاص واجب وی.نو د مستحقینو دا تعدد به د محل شیوع نه لازموی. اوکه دغه معترض دا ووایي چې دا نه منم چې دا شیوع نه ده څکه چې د رهن دوې (دوه) کسانو ته نسبت د دوی دوارو په منځ کي نیم په نیمه تقسیمول ثابته وی.لکه څنګه چې د هلاکت په صورت کي مذکوره ویش منلي شوې دي؟ نو مونږ خواب ورکوو چې د جواز لټون کاوه لپاره به انقسام نه وی.بلکه مرهون به ددوی دوارو په حق کي محبوس (قید) شمارلې کیږی.یعنی ګویا د تقسیمولو نه بغیر مرهون هر یو سره پوره دې.څکه چې ګهړئ کي دا صورت خو د سره کیدای نشی.چه دوارو سره ګیر وی.نو داسې به شمارلې کیږی.چه په دوی دوارو کي د هریو د حق په بدله کي ګیر دي.او د هبې مقصد چونکه تملیك دې.نو که یو شئ نې دوې (دوه) کسانو ته پوره پوره هبه کړو.نو دواړه ددې مالکان جوړول نا ممکن دی.په دې وجه امام محمد رحمه الله دا جائز نه دې ګرځولي.

## په رهن کښې د دوو مرتهن کسانو د نمبر مقررولو حکم

**فَإِنْ تَهَايَآ فَكُلُّ** نوکه دوی دوارو (قرضخواهانو) مهایات (وار واری) اوکړو **وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي نَوْبَتِهٖ كَالْعَدْلِ فِي حَقِّ الْآخَرِ** .نو په دوی دوارو کي هر یو پخپل وار کي د بل په حق کي د عادل پشان دې.

**تشریح:**- که دوارو دا فیصله اوکړله.چه مرهون ګهړئ به اته ورځې دده سره وی.او اته ورځې به د دوهم سره شمارلې کیږی.دغه دول دلته کي هم هر یو د بل په حق کي د عادل پشان ګنړلې کیږی.او د یوکس به هم وی.نو د دوهم قبضه ختمه شوه؟ نو وې فرمائیل.چه لکه څنګه مرهون عادل سره وی.ددې باوجود دا مرتهن قبضه نه ختمیږی.

## د دوو مرتهن کسانو سره د رهن هلاکیدو مسئله

**قَالَ** امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل: **وَالْمَضْمُوْنُ عَلٰى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حِصَّتُهٗ مِنَ الدَّيْنِ** او په دوی دوارو کي به هر یو باندې د پور نه دده برخه مضمون وی **وَلِأَنَّ عِنْدَ الْهَلَاكِ يَصِيْرُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُسْتَوْفِيًا حِصَّتَهٗ** څکه چې د هلاکت په وخت دوی دوارو کي هر یوکس د خپلې برخې (حصې) وصولونکې شمارلې کیږی **إِذِ الْاِسْتِيْفَاءُ مِمَّا يَتَجَزَّأُ** څکه چې وصولول د هغه څیزونو څنې دی.چه دا تقسیمیدې شی.

**حل اللغة:** ① **مستوفیاً:** وصولونکې ② **یتجزأ:** تقسیمیږی.

**تشریح:**- یعنی د هلاکت نه بغیر خو تقسیمیدل او نه منلې شو.بلکه داسې اوګنړلې شوه.ګویا چې د هر یو په قبضه کي پوره مرهون دې.خوکه مرهون هلاك شی.نو اوس به هغه د خپل دین مطابق ضامن ګرځولې شی.څکه چې وصولولو کي تکړې کیدای شی.مثلاً ① ددوارو په زید باندې پنځوس روپئ وې.په یو باندې پنځویشت او به بل باندې پنځویشت او مرهون هلاك شو.نو د دوارو قرضه ساقطه شوه.② دوهم مثال: د زید په ذمه پنځلس روپئ دی.۱۰ د خالد او ۵ د بکر، زید دوی دوارو سره ۳۰ روپئ د رهن کیخودې.چه په دې کي ۲۰ هلاکې شوې.او ۱۰ پاته پاتې دی.نو اوس څه حکم دې؟ حکم دا دې.چه موجوده ۱۰ به خالد او بکر په دریو برخو کي ویش کړی.بیا به په دې کي ۲۱۳ د خالد او۱۱۳ د بکر وی.او زید به ددوی دوارو د پور کمی د خپل اړخه په دې طریقه پوره کوی.چه هغه به خالد ته د خپل اړخه د لسو دریمه برخه



ورکوی.یعنی پاؤ باندې درې روشیدې، او بکر ته به د پنځو دریمه برخه ورکوی.یعنی ۲۱۳ .. کذا فی الشامی..

## د یو مرتهن قرضه ادا کولو سره د مرهون حکم

**قَالَ** امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل **فَإِنْ أَعْطٰى أَحَدُهُمَا دَيْنَهٗ** که راهن دوی دوارو کي د یو کس قرضه ورکړله **كَانَ كُلُّهٗ رَهْنًا فِي يَدِ الْآخَرِ** نو پوره مرهون به د بل په قبضه کي رهن وی **لِأَنَّ جَمِيْعَ الْعَيْنِ رَهْنٌ فِي يَدِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنْ غَيْرِ تَفَرُّقٍ** څکه چې پوره شئ د څه تفرق (اوتکړې کولو) نه بغیر دوارو کي د هریو کس په قبضه کي رهن دې **وَعَلٰى هٰذَا حَبْسُ الْمَبِيْعِ** او دغه ډول مبیع خان سره ګیرول دی **إِذَا أَدّٰى أَحَدُ الْمُشْتَرِيَيْنِ حِصَّتَهٗ مِنَ الثَّمَنِ** کله چې دوې (دوه) شریکانو کي یو په ثمن کي خپله برخه ادا کړې وی.

**تشریح:**- که راهن په دوی کي د یوکس قرضه ادا کړله.نو اوس به پوره ګهړئ دوهم کس سره رهن وی.څکه چې دده سره خو دا د مخکې نه پوره رهن منلې شوې وو.نو اوس به هم دغه ډول پاته پاتې وی.تر کومه پورې چې دده پور ادا نکړې شی.لکه (مثلاً) دوې (دوه) کسانو یو شئ واخستلو.او په دوی کي یوکس د خپلې برخې (حصې) ثمن ادا کړو.نو ترکومه پورې چې دوهم کس هم د خپلې برخې (حصې) ثمن ادا نکړی.تر هغه وخته پورې به بائع ته حق وی.چه بیع هغه ته حواله نکړی.

## د دوو قرضدارانو یوکس سره د رهن ایخودو حکم

**قَالَ** امام کرخی رحمه الله پخپل مختصر کي فرمائیلی دی **وَإِنْ رَهَنَ رَجُلَانِ بِدَيْنٍ عَلَيْهِمَا رَجُلًا رَهْنًا وَاحِدًا** که دوې (دوه) سړو دهغه پور په بدله کي کوم چې په دوی باندې دې.یو سړی سره یو رهن کیخودو **فَهُوَ جَائِزٌ** نو دا جائز دی **وَالرَّهْنُ رَهْنٌ بِكُلِّ الدَّيْنِ** او رهن به د پوره پور په بدله کي رهن وی **وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يُمْسِكَهٗ** و مرتهن ته به حق وی.چه مرهون ګیر اوساتی **حَتّٰى يَسْتَوْفِيَ جَمِيْعَ الدَّيْنِ** تردې چې پوره قرضه وصول کړی **لِأَنَّ قَبْضَ الرَّهْنِ يَحْصُلُ فِي الْكُلِّ مِنْ غَيْرِ شُيُوْعٍ** څکه چې د رهن قبضه د شیوع (تکړې کاوه) نه بغیر په ټوله کي داخل شوې ده.

**تشریح:**- په زید او بکر باندې د خالد پور دې.نو دوی دوارو خالد سره یو شئ رهن کیخودو.نو رهن جائز دې.او دا مرهون به د دوارو د پور بدله شمارلې کیږی.او خالد چې ترکومه پورې پور وصول نکړی.هغه ته به حق وی.چه مرهون خان سره بند اوساتی.

؟که څوك دا اعتراض اوکړی چې په دې کي خو ښکاره شیوع معلومیږی.چه نصف مرهون د زید ملکیت دې.اونصف مثلاً د بکر دې.او شیوع د رهن د جواز منافی دې؟ نو علامه مرغینانی په «لأن قبض الرهن...» سره ددې خواب ورکړې دې.ددې حاصل دا دې.چه مثلاً یو راهن وی.او یو مرتهن وی.او دغه وخت شیوع نه وو.دغه ډول که دوې (دوه) راهن وی.او یو مرتهن وی.بیا به هم شیوع نه وی.څکه چې قبضه کي هیڅ شیوع نشته.نو دا عقد رهن به جائز وی.

## په یو رهن کښې د دوو کسانو دعوه او ګواهانو قائمولو حکم

**وَإِنْ أَقَامَ الرَّجُلَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ عَلٰى رَجُلٍ** نوکه دوې (دوه) سړو کي هریوکس ددوی نه په یو سړی باندې بینه قائم کړل **أَنَّهٗ رَهَنَهٗ عَبْدَهُ الَّذِيْ فِيْ يَدِهٖ وَدَسْت (تصرف)** چې ده خپل دا غلام کوم چې دده په قبضه کي دې.دده سره رهن ایخودې وو **فَهُوَ بَاطِلٌ** .او ده په دې باندې قبضه کړې وه.نو دا باطل ده.

**تشریح:**- زید او بکر دواړه دعوه کوی.چه د خالد په قبضه کي کوم غلام دې.ده زمونږ سره رهن ایخودې وو.چه په دې باندې مونږ قبضه هم کړې وه.یعنی د زید دعوه د خپل خان لپاره ده.او د بکر خپل خان لپاره ده.او دوارو پخپلو ګواهانو سره خپله دعوه ثابته کړله.نو اوس څه حکم دې؟ نوکه غلام د راهن یعنی د خالد په قبضه کي دې.نو قاضی به هیڅ فیصله نه کوی.او ددوی ګواهان قائمول به باطل وی.

لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَثْبَتَ بِبَيِّنَتِهِ ځكه چې دوى كي هريو پخپلو ګواهانو سره ثابته كړې ده أَنَّهُ رَهَنَهُ كُلَّ الْعَبْدِ چې ده پوره غلام دده سره رهن ايخودې وو وَلَا وَجْهَ إِلَى الْقَضَاءِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْكُلِّ او په دوى كي د هر يو لپاره د پوره غلام د فيصلې هيڅ دليل نشته لِأَنَّ الْعَبْدَ الْوَاحِدَ يَسْتَحِيلُ أَنْ يَكُونَ كُلُّهُ رَهْنًا لِهَذَا ځكه نا ممكن ده. چه يو پوره غلام دده سره هم رهن وى. وَكُلُّهُ رَهْنًا لِذَلِكَ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ، وَلَا إِلَى الْقَضَاءِ بِكُلِّهِ لِوَاحِدٍ بِعَيْنِهِ او هغه سره هم وى. په يو حالت كي لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ او د رومبي والى د نه كيدو په وجه د پوره غلام يو كس لپاره د فيصلې هيڅ وجه نشته وَلَا إِلَى الْقَضَاءِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالنِّصْفِ او په دوى كي هر يو لپاره د نصف د فيصلې كاوه هم نشته لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى الشُّيُوعِ ځكه چې دا به شيوع ارخ ته متعدى وى فَتَعَذَّرَ الْعَمَلُ بِهِمَا نو په دوارو ګواهانو باندې عمل متعذر دې وَتَعَيَّنَ التَّهَاتُرُ نو ساقطول او پرېښول متعين شو.

**حل اللغة:** ① **يستحيل:** ناممكن كيږى ② **الشيوع:** هغه څيزچه ناقابل ويش وى ③ **التهاتر:** ساقطول»

**تشريح:**- په ذكرشوى صورت كي د بطلان تفصيل دا دې چې د فيصلې كاوه درې صورتونه كيداې شي. او درې واړه باطل دى ① د پوره پوره غلام هريو لپاره فيصله اوكړې شي. دا باطل او نا ممكن ده. ځكه چې يو غلام په يو وخت كي د دوارو په قبضه كي جلا جلا وى. نو دا نا ممكن (او محال) ده. ② د پوره غلام فيصله دوى دوارو كي هر يو لپاره اوكړې شي. دا هم باطل ده. ځكه چې ترجيح بلا مرجح ده. ③ غلام په دوى دوارو كي نيم په نيمه اوګرځولې شي. او دا هم باطل ده. ځكه چې شيوع لازميږي. لنډيز د كلام دا چې د دوارو په ګواهانو باندې عمل متعذر شو. نو تساقط او پرېښول متعين شو.

«په ذكرشوې مسئله كي دوې (دوه) صورتونه دا هم دى ① په زيد او بكر كي كه دا غلام د يوكس په قبضه كي وى. نو د كوم كس په قبضه كي چې وى. د هغه لپاره به فيصله كولې شي. ځكه چې هغه ته د مخكي كيدو حق حاصل دې. ② ددوى دوارو په قبضه كي دې. نو كه په څه دليل سره مخكي والې او روستو والې ثابت شي. نو دمخكنى لپاره به فيصله كولې شي. او كه مخكي والې او روستو والې معلوم نشى. نو قاضى به هيڅ فيصله نه كوى.

## دا غلام ددوى دوارو لپاره رهن دې او كه نه؟

وَلَا يُقَالُ: إِنَّهُ يَكُونُ رَهْنًا لَهُمَا او ونيلې به نشي. چه غلام به د دوى دوارو لپاره رهن وى كَأَنَّهُمَا ارْتَهَنَاهُ مَعًا ګويا چې دوى دوارو دا په يو خاې رهن اخستې دې إِذَا جُهِلَ التَّارِيخُ بَيْنَهُمَا، كله چې د دوارو ګواهانو په منځ كي تاريخ نا معلوم وى وَجُعِلَ فِي كِتَابِ الشَّهَادَاتِ هَذَا وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ او امام محمد رحمه الله د مبسوط په كتاب الشهادات كي هم دا استحسانى دليل ګرځولې دې لِأَنَّا نَقُولُ: هَذَا عَمَلٌ عَلَى خِلَافِ مَا اقْتَضَتْهُ الْحُجَّةُ ځكه موږ وايو. چه دا (دده ددوارو لپاره رهن كيدل) د حجت (د ګواهانو) د تقاضې خلاف عمل كول دى. لِأَنَّ كُلًّا مِنْهُمَا أَثْبَتَ بِبَيِّنَتِهِ حَبْسًا فِي الِاسْتِيفَاءِ ځكه چې دوى دوارو كي هر يو پخپلو ګواهانو سره هغه حبس (او قيد) ثابت كړې دې يَكُونُ وَسِيلَةً إِلَى مِثْلِهِ كوم چې استيفاء كي ددې د مثل وسيله وى ٥بِهَذَا الْقَضَاءِ يَثْبُتُ حَبْسٌ او په دې فيصلې سره داسې حبس ثابت شوې دې وَيَكُونُ وَسِيلَةً إِلَى شَطْرِهِ فِي الِاسْتِيفَاءِ، كوم چې وصولولو كي دده د نصف وسيله (او ذريعه) ده وَلَيْسَ هَذَا عَمَلًا عَلَى وَفْقِ الْحُجَّةِ. او دا د حجت (ګواهانو) موافق عمل كول نه دى.

**تشريح:**- كه څوك دا ووايې چې په زيربحث مسئله كي بطلان د دعوې نه د بچ كيدو صورت موجود دې هغه دا چې دا ممكن ده. چه غلام ددوى دوارو په منځ كي نيم په نيمه كړې شي. ځكه چې تاريخ كي جهالت (بې خبرى) ده. نو داسې به ګنړلې شي. چه دوارو په يو خاې دا رهن اخستې وو. لكه كه څه خلګ په يو خاې دريا ب كي ډوب شي. يا په اور كي اوسوځي. يا د كور په غورځيدو سره مړه شي. او د مرګ د مخكي والى او روستو والى علم نه وى. نو داسې ګنړلې شي. چه واړه په يو خاې مړه شوى دى. دغه ډول به دلته كي هم



ګنړلې شي؟ نوعلامه مرغيناني رحمه الله ددې خواب وركوى چې په داسې كاوه كي به د هريو د ګواهانو قائمولو د تقاضې خلاف عمل وى. ځكه چې د هر يو د ګواهانو قائمولو مقصد دا دې. چه هم دا د پوره غلام مستحق دې. او دلته به صرف په نيم كي دننه استحقاق وى. او د حجت د تقاضې خلاف د عمل كاوه حق نشته.

① تنبيه: د مرغيناني رحمه الله ددې عبارت «حبسا يكون....» لنډيز دا ده. چه ددوى مقصود د پوره غلام رهن خپل خان سره كيدل ثابتول دى. نو په مذكوره صورت كي د دعوې خلاف فيصله كول لازميږي. يعنى د «مثله» نه «تمامه» مراد واخستلې شي. اوس به مطلب دا وى «... إلى إستيفاء تمام حقه».

② تنبيه: فيصله نه كول قياس دې. او استحسان دا دې. چه فيصله اوكړې شي. يعنى دا د دوارو په منځ كي نيم نيم اوګرځولې شي. او هم دا مذكوره دليل امام محمد رحمه الله د مبسوط په كتاب الشهادات كي د استحسان دليل ذكر كړې دې.

## د امام محمد رحمه الله نقطه نظر

وَمَا ذَكَرْنَاهُ او كوم چې موږ ذكر كړى دى وَإِنْ كَانَ قِيَاسًا اګرچه قياس دې لَكِنْ مُحَمَّدٌ أَخَذَ بِهِ لِقُوَّتِهِ خو امام محمد رحمه الله هم دا اختيار كړې دې. ددې د قوت په وجه.

**تشريح:**- مرغيناني رحمه الله دا فرمائيل غواړى. چه دلته امام محمد رحمه الله استحسان پرېښودې دې. او په قياس نې عمل كړې دې. ځكه چې قياس د استحسان نه قوى او مضبوط دې. ګنى په عامه توګه (عام طور) باندې استحسان ته په قياس باندې ترجيح وركولې شي. واړه اووه خايونه دى. چه هلته كي قياس په استحسان باندې مخكي كولې شي. ګنى هر خاې كي ددې په عكس سره كيږى. «و فصلنا نكته و سره فى درس الحسامى»

## كه غلام د راهن په قبضه كښې وى نو څه حكم دې؟

وَإِذَا وَقَعَ بَاطِلًا او هركله چې رهن باطل واقع شو فَلَوْ هَلَكَ نو كه دا هلاك شي يَهْلِكُ أَمَانَةً نو د امانت په طور به هلاك وى، لِأَنَّ الْبَاطِلَ لَا حُكْمَ لَهُ ځكه چې باطل لپاره هيڅ حكم نشته.

**تشريح:**- موږ وړاندې بيان كړى دى. چه ددې مسئلې مختلف صورتونه دى. خو په كتاب كي مرغيناني رحمه الله صرف د يو صورت حكم بيان كړې دې. چه هغې كي غلام د راهن په قبضه كي دې. او اتفاق دې. په دې صورت كي هم دغه حكم دې. چه په دې كي دا غلام د دوارو مدعيانو په قبضه كي وى. او د تقدم او تاخر علم اونشى. نو اوس د صورت يو حكم بيانوى. چه كه په دې صورت كي دا غلام دوى سره هلاك شي. نو چونكه دا نې رهن شمار كړې نه وو. نو په دې به د رهن احكام هم نه جارى كيږى. او په دوى به ضمان واجب نه وى.

## د دووكسانو په قبضه كښې د مرهون، راهن وفات كيدو مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي فرمائيلي دى وَلَوْ مَاتَ الرَّاهِنُ وَالْعَبْدُ فِي أَيْدِيهِمَا او كه راهن مړشى. او غلام ددوى دوارو (مدعيانو) په قبضه كي وى فَأَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ عَلَى مَا وَصَفْنَاهُ نو دوى دوارو كي هريو كس په ذكرشوې طريقه ګواهان قائم كړل. كَانَ فِي يَدِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفُهُ رَهْنًا نو د غلام نصف به په دوى دوارو كي د هر يو په قبضه كي وى. د رهن په طور، يَبِيعُهُ بِحَقِّهِ چې هغه دوى پخپل حق كي خرڅولې شي اسْتِحْسَانًا دا حكم استحساناً دې وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله[1] او هم دا د امام ابوحنيفه اوامام محمد رحمهما الله قول دې.

**تشريح:**- په رومبى صورت كي مذكوره حكم هغه وخت وو. چه راهن ژوندې وى. اوكه راهن مړشى. اوغلام ددوى

[1] هوقول الطرفين رحمهما الله كذافى ردالمختار (٥/ ٣٥٦) مجمع الانهار (٤/ ٢٨٨) والدرالمنتقى (٤/ ٢٨٩) نقلاعن القول الراجح (٢/ ٣٣٠)

دوارو په قبضه کي وي.نو قاضي به دا فیصله کوي.چه غلام به د دوی دوارو لپاره نیم په نیمه رهن وي.چه دا دوی پخپل حق کي خرخولې شي.دا استحسان دې اوهم خو دا د طرفینو رحمهما الله قول دې.

وَفِي الْقِيَاسِ هٰذَا بَاطِلٌ او په قیاس کي دا باطل دې وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ او هم دا د امام ابویوسف رحمه الله قول دې. لِأَنَّ الْحَبْسَ لِلِاسْتِيفَاءِ حُكْمٌ أَصْلِيٌّ لِعَقْدِ الرَّهْنِ خکه چې د ځان سره منع کول وصولولو لپاره کیدل، د عقد رهن اصلي حکم دې. فَيَكُونُ الْقَضَاءُ بِهِ قَضَاءً بِعَقْدِ الرَّهْنِ نو استیفاء لپاره د ګیرولو فیصله به د عقد رهن فیصله وي ،وَأَنَّهُ بَاطِلٌ لِلشُّيُوعِ او د عقد رهن فیصله دشیوع په وجه باطل ده ،كَمَا فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ .لکه څنګه چې د راهن د ژوند په حالت کي ( باطل) ده.

تشریح:- اوقیاس دا دې چې فیصله به نه کوي اودا د قیاس تقاضا ده اود امام ابویوسف رحمه الله قول دې د دوی دلیل دا دې.چه لکه څنګه په ړومبی صورت کي په دې شکل کي شیوع لازمیدو. هغه اوس هم لازمیږي.چه دا د راهن په ژوند او مرګ سره نه مختلف کیږي.خکه چې د رهن مقصد خو په هرصورت کي دا دې.چه استیفاء د حق لپاره مرهون مرتهن سره ګیر وي.

## استحسانی دلیل

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ د استحسان دلیل دا دې أَنَّ الْعَقْدَ لَا يُرَادُ لِذَاتِهِ چې عقد رهن پخپله مقصود نه وي وَإِنَّمَا يُرَادُ لِحُكْمِهِ،بلکه ددې حکم مقصود وي وَحُكْمُهُ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ الْحَبْسُ او د راهن د ژوند په حالت کي د رهن حکم حبس(قید) دې وَالشُّيُوعُ يَضُرُّهُ او شیوع ددې لپاره مضر دې وَبَعْدَ الْمَمَاتِ الِاسْتِيفَاءُ بِالْبَيْعِ فِي الدَّيْنِ او د مرګ نه روسته ( د رهن حکم) د بیع په ذریعه د پور وصولول دی ،،وَالشُّيُوعُ لَا يَضُرُّهُ او شیوع ددې لپاره مضر نه دې

تشریح:- دا د طرفینو رحمهما الله دلیل دې.چه بوټی شمیرل مقصود نه وي.بلکه آمونه خوړل مقصود وي.یعنی عقد رهن سره صرف ددې ایجاب او قبول مقصد نه دې.بلکه ددې حکم مقصود وي.او د ژوند او د مرګ د حالت حکم جلا جلا دې.خکه د راهن په ژوند کي د رهن مقصد دا دې.چه مرتهن دا د استیفاء په غرض سره محبوس ( بند) اوساتی.او د راهن د مرګ نه روسته د رهن حکم دا دې.چه دا خرڅ کړي.او پور اداکړي شي.نو په ړومبی صورت کي شیوع مضر دې.خکه موږ دا باطل کړې دې.او په دوهم صورت کي شیوع مضر نه دې.خکه موږ جائز ګرخولې دې.

ضَارًا او داسې شوه. وَكَإِذَا ادَّعَى الرَّجُلَانِ نِكَاحَ امْرَأَةٍ لکه چې دوې (دوه) سړو د یوې ښځې سره د نکاح دعوه اوکړله أَوْ ادَّعَتْ أُخْتَانِ النِّكَاحَ عَلَى رَجُلٍ یا دوې (دوه) خوئیندو په یو سړي باندې د نکاح دعوه اوکړله وَأَقَامُوا الْبَيِّنَةَ او ګواهان ئې قائم کړل تَهَاتَرَتْ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ نو په حالت د ژوند کي به ګواهان ساقطولي شي وَيُقْضَى بِالْمِيرَاثِ بَيْنَهُمْ بَعْدَ الْمَمَاتِ او د مرګ نه روسته به ددوی په منځ کي د میراث فیصله کولای شي ،لِأَنَّهُ يَقْبَلُ الِانْقِسَامَ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ خکه چې میراث ویش قبلوی.والله اعلم بالصواب.

تشریح:- ددې مسئلې نظیر دا دې چې آو واورئ، زید او خالد دوارو دعوه اوکړله.چه زینب زموږ سره نکاح کړې ده.او زینب په دوی دوارو کي د یوکس په قبضه کي هم نه ده.( یعنی د هیڅ یوکس په کور کي نه ده).او دوی دوارو په دې ګواهان هم قائم کړل.ددې باوجود به ددوی ګواهان معتبر نه وي.او قاضي به فیصله نه کوی.خکه د دوی دوارو مقصد دا دې.چه زینب ددوی دوارو لپاره حلاله ده.او په حلت کي احتمال د شرکت نشته.او هم دا صورت که د زینب د مرګ نه روسته واقع شي.نو ددوی دوارو بینه به معتبر وي.خکه چې اوس ددوی دوارو مقصد مال دې.( یعنی میراث).چه دې کي احتمال د شرکت شته.نو په ذکر شوی صورت کي دوی دوارو کي هریو ته به د یوې ښځې ( بي‌بي) د میراث نیمه ملاویږي.او دغه ډول دوې (دوه) سکه خوئیندو دعوه اوکړله.چه زید ددوی دوارو سره نکاح کړې ده.نو د زید په ژوند کي د ذکر شوی دلیل په وجه



به ګواهان قائمول معتبر نه وي.او د زید د مرګ نه روسته صحیح دی.او دوی دواړه به د یوې ښځې په میراث کي شریك وي.

# باب الرهن الذي يوضع علي يد العدل

ژباړه:- ( دا) باب د هغه رهن ( په بیان کي ) دې.کوم چې عادل سره ایخودې شي.

تشریح:- تر اوسه پورې هغه مسئلې ذکر شوې.کوم ګي چې مرهون مرتهن سره ایخودې شي.اوس به هغه مسئلې ذکر کوی.کوم کي چې مرهون عادل سره رهن کیږدی.او دې صرف په ساتنه مامور ( او مقرر) دې. ده ته دا حق نشته.چه د راهن او مرتهن د اړخه مقررولو نه بغیر مرهون خرڅ کړي.

## عادل سره د رهن ایخودو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا اتَّفَقَا عَلَى وَضْعِ الرَّهْنِ عَلَى يَدِ الْعَدْلِ .او هرکله چې دوی دواړه ( راهن او مرتهن) عادل سره په رهن ایخودو باندې اتفاق اوکړي جَازَ نو جائز دی وَقَالَ مَالِكٌ: لَا يَجُوزُ امام مالك رحمه الله فرمائی.جائز نه دې ذُكِرَ قَوْلُهُ فِي بَعْضِ النُّسَخِ د امام مالك رحمه الله قول بعضو نسخو کي ذکر دې.لِأَنَّ يَدَ الْعَدْلِ يَدُ الْمَالِكِ خکه چې د عادل قبضه د مالك قبضه ده ،وَلِهٰذَا يَرْجِعُ الْعَدْلُ عَلَيْهِ عِنْدَ الِاسْتِحْقَاقِ اوهم په دې وجه به د استحقاق په وخت عادل راهن باندې رجوع کوی فَانْعَدَمَ الْقَبْضُ .نود مرتهن قبضه معدوم شوه.

تشریح:- که راهن او مرتهن دوارو اتفاق اوکړو.چه رهن عادل سره کیږدی.نو دا جائز دې.امام مالك رحمه الله اړخ ته دا قول منسوب دې.چه جائز نه دې ولې؟ دوی فرمائی.چه د رهن د جواز لپاره ضروری ده.چه په دې باندې د مرتهن قبضه اوشي.او دلته د مرتهن قبضه نه ده شوې.بلکه د عادل قبضه ده.چه دا د راهن د قبضې قائم مقـــــــــــــــــــــــام ده.

ذکر قوله فی بعض النسخ... ددې نه د مرغینانی رحمه الله مراد دا کیدای شي.چه د مختصر القدوری په بعضو نسخو کي د امام مالك رحمه الله دا قول ذکر دې.او په بعضو کي نشته.او دا هم کیدای شي.چه د سلفو بعضو کتابونو کي د امام مالك رحمه الله دا قول ذکر دې.او په بعضو کي د امام مالك رحمه الله په ځاني دلته کي ابن ابی لیلی رحمه الله ذکر دې.په مبسوط او شرح الاقطع کي ابن لیلی دې.په مجمع الانهر کي د امام زفر او ابن ابی لیلی هم دا قول ذکر دې.

د امام مالك رحمه الله دلیل دا دې چې که مرهون د عادل سره هلاك شي.او ددې نه روسته یوکس په دې مرهون کي خپل استحقاق ثابت کړي.او د عادل نه ئې تاوان وصول کړو.نو عادل به دا تاوان د راهن نه وصول کوی.د راهن نه وصولول ددې خبرې دلیل دې.چه دې په قبضه کي د راهن وکیل وو.ګني که د مرتهن د قبضې نائب وو.نو ده به دا تاوان د مرتهن نه وصولولو.بهرحال د مرتهن قبضه معدوم ده.په دې وجه به رهن جائز نه وي.

تنبیه* مرغینانی رحمه الله په پیل د کتاب الرهن کي فرمائیلی دی.چه د امام مالك رحمه الله په نیز نفس عقد سره رهن لازمیږي.نو بیا ددوی ذکر شوې قول نه صحیح کیږي.چه د مرتهن قبضه معدوم ده.ممکن ده.چه د امام مالك رحمه الله په دې کي دوې (دوه) روایتونه وي.

وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې وَأَنَّ يَدَهُ عَلَى الصُّورَةِ يَدُ الْمَالِكِ چې په صورت د مرهون باندې د عادل قبضه د مالك قبضه ده فِي الْحِفْظِ د ساتنه په سلسله کي إِذِ الْعَيْنُ أَمَانَةٌ، خکه چې عین مرهون امانت دې.وَفِي حَقِّ الْمَالِيَّةِ يَدُ الْمُرْتَهِنِ او د مالیت په حق کي د مرتهن قبضه ده.لِأَنَّ يَدَهُ يَدُ ضَمَانٍ وَالْمَضْمُونُ هُوَ الْمَالِيَّةُ خکه چې د عادل قبضه، قبضه د ضمان ده.او مالیت مضمون وی ،فَنُزِّلَ مَنْزِلَةَ الشَّخْصَيْنِ تَحْقِيقًا لِمَا قَصَدَاهُ مِنَ الرَّهْنِ نو عادل دده د مقصود رهن ثابتولو په وجه د دوو سړو په مرتبه کي راکښته کړې شو.

تشریح:- زموږ دلیل دا دې.چه لکه څنګه امام د مقتدیانو او د خدائې دوارو نائب وي.دغه ډول دلته کي

عادل هم د راهن او مرتهن دواړو نائب دې.او دا ځکه ضروري دي.چه د رهن مقصد پوره شي.نو هرکله چې عادل د دواړو نائب شو.نو داسې به ونیلې شي.چه مرهون کې دوې (دوه) شیان دي.یو ددې ذات او بل ددې مالیت، نو عادل په ذات او صورت کې د راهن نائب دې.خو په مالیت کې د مرتهن نائب دې.او مضمون مالیت وي.صورت او عین نه وي. لنډیز د کلام دا چې هرکله د عادل په واسطه مرهون باندې دده په مالیت کې د مرتهن قبضه ثابته شوه.نو رهن صحیح شو.او د امام مالك رحمه الله اعتراض غلط ثابت شو.

وَإِنَّمَا يَرْجِعُ الْعَدْلُ عَلَى الْمَالِكِ فِي الِاسْتِحْقَاقِ او عادل به مالك باندې رجوع کوي.استحقاق کې لِأَنَّهُ نَائِبٌ عَنْهُ ځکه چې عادل د مالك نائب دې فِي حِفْظِ الْعَيْنِ كَالْمُودَعِ د عین مرهون د ساتنه په سلسله کې پشان د مودع.

تشريح:- داعبارت د تقدیري سوال خواب دې سوال دا دې چې بیا عادل په ذکر شوي صورت کې تاوان د راهن نه ولې وصول کوي؟ نوعلامه مرغیناني رحمه الله په دې سره ځواب ورکوي چې عادل د عین په ساتنه کې د راهن نائب دې.او دا بالکل داسې ده.چه زید د خالد سره خپل ودیعت کیخودو.نو خالد مودع دې.اوس خالد سره دا ودیعت هلاك شو.بیا بکر په دې ودیعت کې خپل استحقاق ثابت کړو.او د خالد نه ئې تاوان واخستلو.نو خالد به تاوان د زید نه وصول کوي. دغه ډول په دې صورت کې هم شوي دي.

## راهن او مرتهن ته د يو بل د حق باطلولو حكم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَلَيْسَ لِلْمُرْتَهِنِ وَلَا لِلرَّاهِنِ أَنْ يَأْخُذَهُ مِنْهُ او مرتهن او راهن ته دا حق نشته.چه مرهون د عادل نه واخلي لِتَعَلُّقِ حَقِّ الرَّاهِنِ فِي الْحِفْظِ د راهن د حق متعلق کیدو په وجه.د ساتنه په سلسله کې بِيَدِهِ وَأَمَانَتِهِ د عادل د قبضې او دده د امانت په وجه، وَتَعَلُّقِ حَقِّ الْمُرْتَهِنِ بِهِ او د مرتهن د حق متعلق کیدو په وجه.مرهون سره اسْتِيفَاءً د استیفاء په اعتبار سره فَلَا يَمْلِكُ أَحَدُهُمَا إِبْطَالَ حَقِّ الْآخَرِ نو په دوي کې به یوکس د بل د حق باطلولو مالك نه وي فَلَوْ هَلَكَ فِي يَدِهِ نو که مرهون د عادل په قبضه کې هلاك شي هَلَكَ فِي ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ نو د مرتهن په ضمان کې به هلاك وي لِأَنَّ يَدَهُ فِي حَقِّ الْمَالِيَّةِ يَدُ الْمُرْتَهِنِ وَهِيَ الْمَضْمُونَةُ ځکه چې مالیت کې د عادل قبضه د مرتهن قبضه ده.او مالیت مضمون وي.

تشريح:- هغه مرهون کوم چې عادل سره ایخودې شوې دي.چونکه په دې کې د راهن او مرهون دواړو حق دې.د رومبي په اعتبار د عین، او د دوهم په اعتبار د مالیت، نو په عاقدینو کې به هیڅ یو کس ته دا حق نه وي.چه د دوهم حق باطل کړي.نو په دوي کې به هیڅ یوکس ته دا حق هم نه وي.چه مرهون د عادل نه واخلي.بیا که دا مرهون د عادل سره هلاك شي.نود مرتهن په ضمان کې به هلاك وي.او د تیرشوي تفصیل مطابق به پور ساقطیږي.ځکه چې مرهون باندې په اعتبار د مالیت د عادل قبضه د مرتهن د قبضې قائم مقام ده.او مالیت مضمون وي.

## عادل به د راهن يا مرتهن حواله کولو سره ضامن وي

وَلَوْ دَفَعَ الْعَدْلُ إِلَى الرَّاهِنِ أَوِ الْمُرْتَهِنِ ضَمِنَ اوکه راهن عادل یا مرتهن ته ورکړو.نو ضامن به وي لِأَنَّهُ مُودَعُ الرَّاهِنِ فِي حَقِّ الْعَيْنِ ځکه چې عادل د عین په حق کې د راهن مودع دي وَمُودَعُ الْمُرْتَهِنِ فِي حَقِّ الْمَالِيَّةِ او د مالیت په حق کې د مرتهن امین دې. وَأَحَدُهُمَا أَجْنَبِيٌّ عَنِ الْآخَرِ او په دوي دواړو (راهن او مرتهن) کې هر یو د دوهم په حق کې اجنبی (پردې) دې، وَالْمُودَعُ يَضْمَنُ بِالدَّفْعِ إِلَى الْأَجْنَبِيِّ او امین اجنبی ته د ور کاوه په وجه ضامن کیږي.

تشريح:- مسئله دا ده.چه امین باندې د امانت د هلاکت په وجه ضمان نشته.خو دا حکم هغه وخت دې.کله چې دده د اړخه هیڅ تعدي (زیاتې) نه وي.ګنی ضمان به واجب وي.او راهن او مرتهن دواړه د یو بل په حق کې اجنبی دی.نو که عادل مرهون په دوي دواړو کې یوکس ته ورکړو.او دا هغه سره هلاك شو.نو په عادل به



ضمان واجب وي.ځکه چې دا دده د اړخه تعدي ده.او دې په مختلف لحاظ سره ددوي دواړو امین دې.نو په بناء د تعدي به په ده باندې ضمان واجب وي.

## كه عادل راهن يا مرتهن ته رهن وركړو،نو هلاكيدو سره د ضمان حكم

وَإِذَا ضَمِنَ الْعَدْلُ قِيمَةَ الرَّهْنِ بَعْدَ مَا دَفَعَ إِلَى أَحَدِهِمَا وکله چې عادل مرهون دوي دواړوکې یوکس ته د ور کاوه په وجه د رهن د قیمت ضامن شو وَقَدِ اسْتَهْلَكَهُ الْمَدْفُوعُ إِلَيْهِ او چاته ئې چې ورکړې دي.هغه دا هلاك کړې وي أَوْ هَلَكَ فِي يَدِهِ یا هغه دده په قبضه کې هلاك شوې وي لَا يَقْدِرُ أَنْ يَجْعَلَ الْقِيمَةَ رَهْنًا فِي يَدِهِ قادر نه دې عادل په دې خبره، چې قیمت پخپله قبضه کې رهن کړي لِأَنَّهُ يَصِيرُ قَاضِيًا وَمُقْتَضِيًا ځکه چې عادل به ادا کونکې او اخستونکې شي وَبَيْنَهُمَا تَنَافٍ او ددې دواړو په منځ کې منافات دي لَكِنْ يَتَّفِقَانِ عَلَى أَنْ يَأْخُذَاهَا مِنْهُ خو که دوي اتفاق اوکړي.په دې خبره، چې قیمت د عادل نه واخلي وَيَجْعَلَاهَا رَهْنًا عِنْدَهُ أَوْ عِنْدَ غَيْرِهِ او دا دده سره یا دده نه علاوه سره رهن کیږدي، وَلَوْ تَعَذَّرَ او که متعذر شي اجْتِمَاعُهُمَا ددوي دواړو اجماع يَرْفَعُ أَحَدُهُمَا إِلَى الْقَاضِي لِيَفْعَلَ كَذَلِكَ نو په دوي کې دې یو کس قاضي ته فیصله وړاندې کړي.چه قاضي داسې اوکړي.

تشريح:- کله چې عادل په دوي کې یو کس ته مرهون ورکړو.او هغه دا هلاك کړو.یا پخپله هلاك شو.نو په عادل ددې د قیمت ضمان واجبیږي.اوس عادل دا غواړي.چه دا قیمت خپل ځان سره رهن کیږدي.نو آیا ده ته داحق شته؟ نو وې فرمائیل.چه نشته.ګنی هم دې به ورکونکې او هم دې به اخستونکې شي.البته که راهن او مرتهن دواړه ملاؤ شي.او قیمت واخلي.او بیا ئې دده سره کیږدي.نو جائز دې.ځکه چې اوس منافات پاتې نشو.او که اوغواړي.نو دده نه علاوه بل چا سره ئې هم ایخودې شي.یا د قاضي نه درخواست اوکړي.چه هغه ئې د چا سره کیږدي.او که څه داسې مانع وي.چه ددې په وجه د راهن او مرتهن اجتماع نشي کیدې.نو په دوي کې یو کس قاضي ته درخواست اوکړي.چه قاضي رهن چا سره کیږدي.

## قاضي عادل سره قيمت رهن كيخودو،نو د مرتهن پور ادا كولو سره ددې رهن حكم

وَلَوْ فَعَلَ ذَلِكَ اوکه قاضي داسې اوکړل.( یعنې د عادل نه ئې قیمت واخستلو.او هم دده سره ئې رهن کیخودو) ثُمَّ قَضَى الرَّاهِنُ الدَّيْنَ بیا راهن قرضه ادا کړله وَقَدْ ضَمِنَ الْعَدْلُ الْقِيمَةَ بِالدَّفْعِ إِلَى الرَّاهِنِ حالانکه عادل راهن ته د ور کاوه په وجه د قیمت ضامن شوې وو فَالْقِيمَةُ سَالِمَةٌ لَهُ .نو قیمت عادل لپاره سلامت پاتې شو لِوُصُولِ الْمَرْهُونِ إِلَى الرَّاهِنِ د مرهون د رسیدو په وجه.راهن اړخ ته وَوُصُولِ الدَّيْنِ إِلَى الْمُرْتَهِنِ او د پور رسیدو په وجه مرتهن اړخ ته وَلَا يَجْتَمِعُ الْبَدَلُ وَالْمُبْدَلُ فِي مِلْكٍ وَاحِدٍ نو په یو ملك کې به بدل او مبدل نه جمع کیږي وَإِنْ كَانَ ضَمِنَهَا بِالدَّفْعِ إِلَى الْمُرْتَهِنِ فَالرَّاهِنُ اوکه عادل مرتهن ته د ور کاوه په وجه د قیمت ضامن شوې وو يَأْخُذُ الْقِيمَةَ مِنْهُ نو راهن به د عادل نه قیمت اخلي لِأَنَّ الْعَيْنَ لَوْ كَانَتْ قَائِمَةً فِي يَدِهِ ځکه که د عادل په قبضه کې عین مرهون موجود وې، يَأْخُذُهَا إِذَا أَدَّى الدَّيْنَ نو راهن چې کله قرضه ادا کړې وه.نو دا به ئې اخستلو، فَكَذَلِكَ يَأْخُذُ مَا قَامَ مَقَامَهَا دغه ډول به دې د عین قائم مقام هم اخلي ،وَلَا يَجْتَمِعُ فِيهِ بَيْنَ الْبَدَلِ وَالْمُبْدَلِ او په دې کې د بدل او مبدل په منځ کې جمع نشته.

تشريح:- کله چې قاضي عادل سره قیمت رهن ایخودې وو.او راهن د مرتهن قرضه ادا کړله.نو قیمت به دچا وي؟ نو وې فرمائیل.که عادل مرهون راهن ته ورکړې وو.نو بس قیمت به د عادل وي.ځکه چې مرتهن ته د هغه قرضه ملاو شوې ده.او راهن ته د هغه ملك (مرهون) ملاو شوې دې.ځکه چې مرهون هم دده سره هلاك شوې دې.نو قیمت به د عادل وي.ځکه که دا قیمت راهن ته ورکړې شي.نو د بدل او مبدل دواړو اجتماع په ملك د راهن کې لازمیږي.او دا ناجائز ده.

دلته دا خبره یاد ساتئ: قیمت هم دې عادل سره رهن وي.یا د بل چا سره وي.دواړو صورتونو کې هم دا حکم

دي.او عادل سره قيمت د رهن، په حکم د قاضي وي.او که د راهن او مرتهن په اتفاق سره وي.دوارو صورتونو کي هم دا حکم دي.

او که عادل مرهون مرتهن ته ورکړو.او اوس راهن د مرتهن قرضه ادا کړله.نو قيمت به د راهن وي.خکه که اصل مرهون وي.نو راهن چي قرضه ادا کړي وي.نو دا به ني اخستلو.نو دلته کي به د مرهون قائم مقام قيمت اخلي.او دلته د بدل او مبدل اجتماع هم نه لازميږي.

که خوک سوال اوکړي چي په دي دوهم صورت کي کله چي مرتهن ته مرهون ورکړي شوي وو.د کوم په وجه چي عادل باندي ضمان راغلي وو.او راهن د مرتهن قرضه ورکړله.او قيمت ني واخستلو.نو آيا عادل ته حق شته.چه هغه د مرتهن نه خپل تاوان وصول کړي؟ نو خواب دا دي چي په دي کي به تحقيق کولي شي.که عادل هغه ته مرهون عاريتاً يا وديعتاً ورکړي وي.او دا هغه سره پخپله بغير د هغه د تعدي نه هلاك شو.نو په مرتهن به ضمان نه وي.او که مرتهن دا هلاك کړي دي.نو په مرتهن به ضمان واجب وي.خکه چي عادل به د ضمان ادا کاوه په وجه د مرهون مالك شمارلي کيږي.نو ګويا چي ده خپل ملك وديعت يا عاريت ورکړي دي.او امانت کي مستعير او مودع د تعدي په وجه ضامن کيږي.نو په مرتهن به ضمان واجب وي.اوکه عادل مرهون هغه ته د رهن په طريقه ورکړي وي.د هغه د حق په بدله کي ،او داسي ني ونيلي وي.چه دا د خپل حق په بدله کي واخله.يا دا د خپل خان سره بند اوساته.نو اوس به عادل ته حق وي.چه په هلاك او استهلاك دوارو صورتونو کي دا تاوان د مرتهن نه وصول کړي.خکه چي عادل مرتهن ته مرهون د ضمان په طريقه ورکړي وو. ﴿شامي:ص ٣٢٤ج٥﴾

### د نيتي په راتلو باندي د رهن خرڅولو د وکيل جوړولو حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله فرماني. وَإِذَا وَكَّلَ الرَّاهِنُ الْمُرْتَهِنَ أَوِ الْعَدْلَ أَوْ غَيْرَهُمَا بِبَيْعِ الرَّهْنِ او کله چي راهن مرتهن، يا عادل، يا ددوی دوارو نه بغير خوک د مرهون د بيع وکيل جوړ کړي وی. عِنْدَ حُلُولِ الدَّيْنِ د پور ادا کاوه وخت راتلو باندي، فَالْوَكَالَةُ جَائِزَةٌ نو وکالت جائز دي. لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ بِبَيْعِ مَالِهِ خکه چي دا د خپل مال د بيع وکيل جوړول دی.

**تشريح:-** راهن که هرخوک وکيل جوړ کړو.چه کله د پور ادا کاوه وخت راشي.نو مرهون خرڅ کړه.او پور ادا کړه.نو چونکه دا د خپل د بيع وکيل جوړول دی.نو ددي په جواز کي شبه نشته.

### که عقدکښي د وکالت شرط وشو د وکيل معزول کولو حکم

وَإِنْ شُرِطَتْ فِي عَقْدِ الرَّهْنِ اوکه وکالت په عقد رهن کي شرط شوي وی فَلَيْسَ لِلرَّاهِنِ نو راهن ته دا حق نشته أَنْ يَعْزِلَ الْوَكِيلَ چي وکيل معزول کړي، وَإِنْ عَزَلَهُ لَمْ يَنْعَزِلْ .اوکه دا ني معزول کړو.نو دا به نه معزول کيږي.

**تشريح:-** د هداية په خلورم ټوک کي د امام زفر رحمه الله د دليل لاندي دا مسئله تيره شوي ده.هلته کي دوی ونيلي وو. والوكالة المشروطة في الرهن فيلزمه بلزومه ددي لنډيز دا ده.که په رهن کي وکالت شرط کړي شو.نو اوس به دا لازم وی.نوکه راهن اوغواړي.چه وکيل معزول کړم.نونشي کولي.او که معزول ني کړي.نو وکيل به نه معزول کيږي.

لِأَنَّهَا لَمَّا شُرِطَتْ فِي ضِمْنِ عَقْدِ الرَّهْنِ خکه چي کله وکالت د عقد رهن په ضمن کي مشروط وی صَارَ وَصْفًا مِنْ أَوْصَافِهِ نو دا د رهن د صفاتو خني يو وصف وَحَقًّا مِنْ حُقُوقِهِ او ددي د حقوقو خني يو حق شو أَلَا تَرَى آيا تاسونه ګوری أَنَّهُ لِزِيَادَةِ الْوَثِيقَةِ ..چه عقد وکالت د مضبوطي زياتوالي لپاره دي فَيَلْزَمُ بِلُزُومِ أَصْلِهِ نو عقد وکالت د خپل اصل ( رهن) لزوم سره لازميږي وَلِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْمُرْتَهِنِ وَفِي الْعَزْلِ إِتْوَاءُ حَقِّهِ او خکه چي عقد وکالت سره د



مرتهن حق متعلق شوي دي.او عزل کي دده حق هلاکول دي.

**حل اللغة:** ① اتواء: هلاکول ② العزل: معزول کوه ﴾

**تشريح:-** خکه چي اوس وکالت د عقد رهن د حقوقو خني يو حق جوړ شوي دي.چه دا د رهن د لزوم په وجه لازميږي.خکه چي د وکالت د شرط مقصد د مضبوطي زياتوالي دي.او دويمه وجه دا هم ده.چه اوس ددي سره د مرتهن حق متعلق شوي دي.او د وکيل په معزولولو کي د مرتهن د حق ابطال دي.چه ددي راهن ته حق نشته.

وَصَارَ كَالْوَكِيلِ بِالْخُصُومَةِ بِطَلَبِ الْمُدَّعِي او دا د مدعي په طلب باندي د وکيل بالخصومت پشان شو.

**تشريح:-** او ددي مثال بالکل داسي دي.چه مدعي د مدعي عليه نه مطالبه اوکړله.چه عدالت کي د خواب ور کاوه لپاره خوک وکيل کړه. په دي سره مدعي عليه خوک وکيل جوړ کړو.نو اوس به مدعي عليه ته حق نه وی.چه د مدعي د علم نه بغير وکيل معزول کړي.خکه چي ددي سره د مدعي حق متعلق شوي دي.دغه ډول د رهن وکيل سره هم د مرتهن حق متعلق شوي دي.خو په دي دوارو کي دومره توپير دي.چه د رهن په صورت کي راهن ته د وکيل معزول کاوه حق صرف هغه وخت وی.کله چي مرتهن راضي شي. او په وکيل بالخصومت کي د مدعي رضامندي ضروري نه ده.بلکه د هغه علم ضروري دي.

### د راهن د مطلق بيع وکيل جوړولو حکم

وَلَوْ وَكَّلَهُ بِالْبَيْعِ مُطْلَقًا او که راهن ده ( يعني دريو وارو کي يو کس) لره د مطلق بيع وکيل جوړ کړو حَتَّى مَلَكَ الْبَيْعَ بِالنَّقْدِ وَالنَّسِيئَةِ تردي چي وکيل د نقد او پور بيع مالك شو ثُمَّ نَهَاهُ عَنِ الْبَيْعِ نَسِيئَةً بيا راهن وکيل د پور بيع نه منع کړو. لَمْ يَعْمَلْ نَهْيُهُ نو دده منع کول به هيڅ عمل نه، لِأَنَّهُ لَازِمٌ بِأَصْلِهِ خکه چي عقد رهن خپل اصل سره لازم دي فَكَذَا بِوَصْفِهِ نو هم دغه ډول خپل وصف سره ( به هم لازم وی). لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه، کوم چي موږ ذکرکړي دي.

**تشريح:-** اوس معلومه شوه.چه کوم عقد رهن کي د وکالت شرط لګولي شوي وی.نو هغه لازميږي.نو هر کله چي اصل وکالت لازم شو.نو ددي صفات به هم لازميږي.خکه چي وصف هم د اصل پشان د رهن په حقوقو کي شمارلي کيږي.نو که راهن مطلقاً وکيل جوړ کړي وو.چه په دي کي د نقد او پور هيڅ تعين نه وو.نو وکيل ته حق حاصل شوي دي.که په نقدو ني خرڅوي.او که په قرضو، خو روستو راهن د پور خرڅولو نه منع کوی.نو اوس به دده منع کول هيڅ عمل نه کوی.خکه چي د اصل لازميدو سره به وصف هم لازم وی.او په وصف کي اطلاق وو.نو دا اطلاق به پخپل حال پاته پاتي وی.

### مرتهن وکيل معزول کولاي شي اوکه نه؟

وَكَذَا إِذَا عَزَلَهُ الْمُرْتَهِنُ و هم دغه ډول کله چي وکيل لره مرتهن معزول لَا يَنْعَزِلُ نو دي به نه معزول کيږي. لِأَنَّهُ لَمْ يُوَكِّلْهُ خکه چي ده لره مرتهن وکيل نه دي جوړ کړي. وَإِنَّمَا وَكَّلَهُ غَيْرُهُ بلکه هغه لره دده غير ( بل چا يعني راهن) وکيل جوړ کړي دي.

**تشريح:-** هرکله چي د راهن معزول کاوه سره وکيل نه معزول کيږي.چه هغه موکل دي.نود مرتهن په عزل سره به په درجه اولی نه معزول کيږي.خکه چي مرتهن موکل نه دي.

### د راهن په مرګ باندي د وکيل معزول حکم

وَإِنْ مَاتَ الرَّاهِنُ لَمْ يَنْعَزِلْ اوکه راهن مړ شو.نو وکيل به نه معزول کيږي لِأَنَّ الرَّهْنَ لَا يَبْطُلُ بِمَوْتِهِ خکه چي د راهن په مرګ سره رهن نه باطليږي وَلِأَنَّهُ لَوْ بَطَلَ إِنَّمَا يَبْطُلُ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ او خکه که وکالت باطليدو.نو د وراثانو د حق په وجه به باطل شوي وو ،وَحَقُّ الْمُرْتَهِنِ مُقَدَّمٌ حالانکه د مرتهن حق مخکي دي.

تشريح:- لکه څنګه چې په ذکر شوی دواړو صورتونو کې وکيل نه معزول کيږي. دغه د راهن په مرګ سره هم نه معزول کيږي. څکه چې د راهن په مرګ سره رهن هم نه باطليږي. نو حقوق د رهن به هم نه باطليږي. اود موکل په مرګ سره چې وکالت کله هم باطليږي. د وارثانو د حق په وجه کيږي. څکه چې ملکيت وارثانو اړخ ته منتقل کيږي. خو دلته کې دا هم نشی کيدې. څکه چې د مرتهن حق په وارثانو باندې مقدم دې.

### د وارثانو په غير موجودګۍ کښې د رهن خرڅولو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې فرمائيلی دی وَلِلْوَكِيلِ أَنْ يَبِيعَهُ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنَ الْوَرَثَةِ او وکيل ته حق شته. چه د وارثانو په غير موجودګۍ کې مرهون خرڅ کړی كَمَا يَبِيعُهُ فِي حَالِ حَيَاتِهِ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنْهُ لکه څنګه ئې چې د راهن په ژوند کې د هغه په غير موجودګۍ کې خرڅولې شو وَإِنْ مَاتَ الْمُرْتَهِنُ فَالْوَكِيلُ عَلَى وَكَالَتِهِ اوکه مرتهن مړ شی. نو وکيل پخپل وکالت باندې پاته دې لِأَنَّ الْعَقْدَ لَا يَبْطُلُ بِمَوْتِهِمَا څکه چې عقد ددوی دواړو په مرګ سره نه باطليږي وَلَا بِمَوْتِ أَحَدِهِمَا او نه په دوی کې د يو په مرګ سره (باطليږي)، فَيَبْقَى بِحُقُوقِهِ وَأَوْصَافِهِ نو عقد رهن به د خپلو حقوقو او صفاتو سره پاته پاتې وی.

تشريح:- د راهن په ژوند کې وکيل لپاره جائز وو. چه د راهن په غير موجودګۍ کې مرهون خرڅ کړی. نو د راهن د مرګ نه روسته به هم ده ته دا حق حاصل وی. چه د وارثانو په غير موجودګۍ کې مرهون خرڅ کړی. او که د راهن په ځائې مرتهن مړشی. بيا هم د وکيل وکالت قائم پاتې دې. څکه چې ددوی دواړو يا د يوکس په مرګ سره عقد رهن نه باطليږي. نو ددې حقوق او صفات به هم نه باطليږي. اود حقوقو نه مراد (مرهون) خان سره ساتل، او استيفاء (وصولی)، او وکالت دې. او د صفاتو نه مراد د عقد لزوم وغيره دې.

### د وکيل په مرګ سره د وکالت حکم

وَإِنْ مَاتَ الْوَكِيلُ انْتَقَضَتِ الْوَكَالَةُ اوکه وکيل مړشو. وکالت به ختميږي. وَلَا يَقُومُ وَارِثُهُ وَلَا وَصِيُّهُ مَقَامَهُ، اود وکيل وارث يا دده وصی به دده قائم مقام نه وی لِأَنَّ الْوَكَالَةَ لَا يَجْرِي فِيهَا الْإِرْثُ، څکه چې وکالت کې وراثت نه جاری کيږي وَلِأَنَّ الْمُوَكِّلَ رَضِيَ بِرَأْيِهِ چې موکل د وکيل په رائې سره راضی شوې وو لَا بِرَأْيِ غَيْرِهِ. دده نه د علاوه په رائې سره نه وو (راضی شوې).

تشريح:- د متن د مسئلې دوضاحت نه وړاندې په دې باندې ځان پوهه کړه چه① بعض امور هغه دی. په کومو کې چې په يوکس باندې وجوب وی. منفعت نه وی. لکه وکالت نو په دې ډول کې ميراث نه جاری کيږي. ② او بعض امور هغه وی. په کومو کې چې منفعت وی. لکه مضاربت دې. په دې ډول کې ميراث جاری کيږي.

ددې وضاحت د يومثال په رڼا کې زده کړه مثلاً که په مړی باندې پور وی. نو دده په وارثانو باندې ددې ادا کول واجب نه دی. اوکه د مړی په بل چا باندې پور وی. نو وارثان به د هغې وارث وی.

علامه مرغينانی رحمه الله فرمايي چې د مرهون د بيع د وکيل وفات اوشو. نو اوس وکالت ختم شو. او چونکه وکالت کې ميراث نه جاری کيږي. نو د وکيل وصی يا وارث به دده قائم مقام نه جوړيږي. او وکيل به نه شمارلې کيږي. او موکل په وکيل مرحوم باندې اعتماد کړې دې. او د هغه په رائې سره راضی شوې دې. د هغه په وصی يا د هغه په خوی باندې نه دې (راضی شوې).

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ وَصِيَّ الْوَكِيلِ يَمْلِكُ بَيْعَهُ او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی. چه د وکيل وصی به د مرهون دخرڅولو مالك وی أَنَّ الْوَكَالَةَ لَازِمَةٌ فَيَمْلِكُهُ الْوَصِيُّ، څکه چې وکالت لازم دې. نو وصی به ددې مالك وی كَالْمُضَارِبِ إِذَا مَاتَ بَعْدَ مَا صَارَ رَأْسُ الْمَالِ أَعْيَانًا لکه کله چې مضارب مړشی. د راس المال اعيان کيدو نه پس، يَمْلِكُ وَصِيُّ الْمُضَارِبِ بَيْعَهَا نو د مضارب وصی به ددې اعيانو د خرڅولو مالك وی ي لِمَا أَنَّهُ لَازِمٌ بَعْدَ مَا صَارَ



أَعْيَانًا څکه چې د راس المال د اعيان کيدو نه روسته عقد مضاربت لازم دې.

تشريح:- د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی. چه د وکيل د مرګ نه روسته به د هغه وصی ته به حق وی. چه مرهون خرڅ کړی. څکه چې د تير شوی صراحت مطابق وکالت لازم وو. چه دا نشی فسخ کيدې. نو وصی به د مرهون د بيع مالك وی. او امام ابويوسف رحمه الله دا د مضارب په يوه مسئله باندې قياس کړې دې. که مضارب په راس المال باندې سامان اخستې دې. يعنی اوس راس المال نه دې. بلکه هغه شيان موجود دی. کوم چې راس المال سره اخستې شوی دی. چه مضارب وفات شو. نو د مضارب وصی ته حق وی. چه دا شيان خرڅ کړی. دلته هم دغه وجه ده. چه د عقد مضاربت نه روسته راس المال د اعيان جوړيدو نه روسته لازميږي. نو کالت هم لازم دې. نو په دې کې به هم وصی د وکيل قائم مقام وی. او د مرهون خرڅولو به مالك وی.

قُلْنَا: التَّوْكِيلُ حَقٌّ لَازِمٌ موږ خواب ورکوو. چه توکيل لازمی حق دې لَكِنْ عَلَيْهِ، وَالْإِرْثُ يَجْرِي فِيمَا لَهُ خو په وکيل باندې، او ميراث هغه څيزونو کې جاری کيږي. کوم چې دده لپاره وی بِخِلَافِ الْمُضَارَبَةِ، لِأَنَّهَا حَقُّ الْمُضَارِبِ په خلاف د مضاربت، څکه چې دا د مضارب حق دې.

تشريح:- موږ خواب ورکوو چې دا منو چې وکالت لازم دې. خو په وکيل باندې حق لازم دې. وکيل لپاره لازم نه دې. نو د ړومبۍ مقدمې مطابق به په دې کې ميراث نه جاری کيږي. اودا به مضاربت باندې قياس کول صحيح نه وی. څکه چې وکالت د ړومبی ډول څنې دې. او مضاربت د دوهم ډول څنې دې. دا مرغينانی رحمه الله داسې تعبير کړې دې. چه د مضارب حق دې.

### د راهن په رضامندۍ سره مرتهن لپاره د خرڅولو حکم

وَلَيْسَ لِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يَبِيعَهُ او مرتهن ته حق نشته. چه مرهون خرڅ کړی إِلَّا بِرِضَا الرَّاهِنِ خود راهن په رضامندۍ سره، لِأَنَّهُ مِلْكُهُ وَمَا رَضِيَ بِبَيْعِهِ څکه چې دا د راهن ملك دې. او هغه ددې په خرڅولو نه دې راضی شوې وَلَيْسَ لِلرَّاهِنِ أَنْ يَبِيعَهُ إِلَّا بِرِضَا الْمُرْتَهِنِ او راهن ته حق نشته. چه هغه مرهون خرڅ کړی. خود مرتهن په رضامندۍ سره لِأَنَّ الْمُرْتَهِنَ أَحَقُّ بِمَالِيَّتِهِ مِنَ الرَّاهِنِ څکه چې مرتهن د هغې د ماليت د راهن نه زيات حقدار دې، فَلَا يَقْدِرُ الرَّاهِنُ عَلَى تَسْلِيمِهِ بِالْبَيْعِ نو راهن به قادر نه وی. د بيع په وجه، د مرهون په سپارلو باندې.

تشريح:- راهن او مرتهن کې يوکس ته هم دا حق حاصل نه دې. چه هغه د خپل دوهم انډيوالان د رضامندۍ نه بغير مرهون خرڅ کړی. مرتهن ئې خو څکه نشی خرڅولې. چه مرهون د راهن ملکيت دې. او راهن ددې په خرڅولو باندې راضی نه دې. او راهن ئې څکه نشی خرڅولې. چه د مرهون په ماليت کې، مرتهن د راهن نه زيات حقدار دې. نو راهن ته به په مبيع سپارلو باندې قدرت (او قابو) نه وی. حالانکه بيع لپاره ضروری ده. چه دا مقدور التسليم وی.

### د دين ادا کولو وخت راتلو باندې. د وکيل مرهون خرڅولو نه انکار کول

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل فَإِنْ حَلَّ الْأَجَلُ نوکه د پور ادا کاوه وخت راشی وَأَبَى الْوَكِيلُ الَّذِي فِي يَدِهِ الرَّهْنُ أَنْ يَبِيعَهُ او هغه وکيل د چا په قبضه کې چې مرهون دې. ددې د خرڅولو نه انکار اوکړی. وَالرَّاهِنُ غَائِبٌ او راهن غائب وی أُجْبِرَ عَلَى بَيْعِهِ نو وکيل به ددې په بيع باندې مجوروولې شی لِمَا ذَكَرْنَا مِنَ الْوَجْهَيْنِ فِي لُزُومِهِ. د هغه دوې (دوه) دليلونو په وجه. کوم چې موږ د وکالت د لزوم په بيان کې ذکر کړی دی.

تشريح:- د پور ادا کاوه وخت راشی. او راهن غائب وی. او وکيل د چا په قبضه کې چې مرهون دې. هغه د بيع نه انکار کوی. نو اوس به څه کولې شی؟ نو وې فرمائيل. چه قاضی به په ده باندې زبردستی کوی. چه هغه مرهون خرڅ کړی. ولې؟ څکه چې هرکله وکالت په عقد رهن کې شرط وی. نودا حق لازميږي. اود حق لازم

لپاره زبردستي جائز وي. او د وكيل په انكار كاوه كي د مرتهن د حق ابطال دي. او د بل د حق باطلولو نه د بچ كاوه لپاره زبردستي جائز وي. هم دا د هغه دوې (دوه) دليلونو لنډيز ده. د كومو چې مرغيناني حواله وركړې ده.

مسئله: كه راهن غائب نه وي. بلكه حاضر وي. نو په راهن به زبردستي كولې شي. په وكيل به نشي كولې. بهرحال كه هغه ئې د زبردستۍ باوجود هم نه خرڅوي. نو قاضي به دا خرڅوي. ﴿شامي: ص ۳۲۵ ج ۵﴾

### د ذكر شوې مسئلې مثال

وَكَذٰلِكَ الرَّجُلُ يُوَكِّلُ غَيْرَهُ بِالْخُصُومَةِ او دغه ډول يو سړى بل څوك وكيل بالخصومت جوړ كړو وَغَابَ الْمُوَكِّلُ او مؤكل غائب شو فَأَبَى أَنْ يُخَاصِمَ نو وكيل د مخاصمت نه انكار اوكړى أُجْبِرَ عَلَى الْخُصُومَةِ لِلْوَجْهِ الثَّانِي نو وكيل به په خصومت باندې مجبورولې شي. د دوهم دليل په وجه وَهُوَ أَنَّ فِيهِ إِتْوَاءَ الْحَقِّ او هغه دا دې. چه په دې كي ابطال دې بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ، لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ يَبِيعُهُ بِنَفْسِهِ فَلَا يَتْوِي حَقُّهُ په خلاف د وكيل د بيع، ځكه چې مؤكل پخپله خرڅوي. نو دهغه حق به نه باطليږي. أَمَّا الْمُدَّعِي لَا يَقْدِرُ عَلَى الدَّعْوَى وَالْمُرْتَهِنُ بهرحال مدعى په دعوه باندې قادر نه دې »لَا يَمْلِكُ بَيْعَهُ بِنَفْسِهِ. او مرتهن پخپله د خرڅولو مالك نه دې.

حل اللغة: ① اتواء الحق: هلاكول د حق﴾

تشريح: - زيد، بكر وكيل بالخصومت جوړ كړو. او زيد غائب دې. اوس بكر د خصومت نه انكار كوي. نو بكر به خصومت باندې مجبورولې شي. ګنې د مدعى د حق ابطال به لازميږي.

كه څوك دا پوښتنه اوكړي كه زيد بكر د خپل شئ خرڅولو وكيل جوړ كړو. ( د رهن نه علاوه) اوهغه د بيع نه انكار اوكړي. نو هغه باندې زبردستي ولې نشي كولې؟ نوموږ وايودا ځكه چې دې كي د مؤكل هيڅ نقصان نشته. ځكه چې هغه پخپله خرڅولې شي. نو د مؤكل د حق ابطال نه لازميږي. څوكه سوال كونكې دا پوښتنه اوكړي چې بيا د مدعى څه نقصان دې. او د مرتهن څه نقصان دې. مرتهن دې پخپله خرڅ كړي؟ نو موږ ورته وايو چې په دې كي د مدعى ( مؤكل) نقصان دا دې. چه ده په وكيل باندې اعتماد كړې دې. په دې وجه به پخپله د خصومت نه خان بچ كوي. او كله چې وكيل هم د خصومت نه خان بچ كړي. نو د مدعى د حق ابطال لازميږي. نو زبردستي به كولې شي. او چونكه مرتهن پخپله په خرڅولو قادر نه دې. او دا هم د بيع نه انكار دې. نو د مرتهن د حق ابطال دې.

### كه وكالت په عقد كښې مشروط نه وي نو وكيل باندې د زبردستۍ كولو حكم

فَلَوْ لَمْ يَكُنِ التَّوْكِيلُ مَشْرُوطًا فِي عَقْدِ الرَّهْنِ نو كه وكيل جوړول په عقد كي شرط نه وي وَإِنَّمَا شُرِطَ بَعْدَهُ بلكه ددې نه روسته شرط شوې وي قِيلَ لَا يُجْبَرُ اعْتِبَارًا بِالْوَجْهِ الْأَوَّلِ ونيلي شوي دي. چه زبردستي به نشي كولې. په اومبى دليل اعتبار كاوه سره. وَقِيلَ يُجْبَرُ رُجُوعًا إِلَى الْوَجْهِ الثَّانِي ونيلي شوي دي. زبردستي به كولې شي. دوهم دليل اړخ ته رجوع كاوه سره، وَهٰذَا أَصَحُّ. اوهم دا زياته صحيح ده.

تشريح: - په وكيل باندې د زبردستۍ كاوه دا تفصيل په دې صورت كي دې. كله چې وكالت په عقد رهن كي شرط شوې وي. او كه په عقد رهن كي وكالت شرط نه وي. بلكه روستو وكالت شرط شوې وي. نو په دې كي دوې (دوه) قوله دي ① زبردستي به نشي كولې. ځكه چې دا وكالت په عقد كي د نه كيدو په وجه د عقد حقوقو ځني نه دې. ② زبردستي به كولې شي. ځكه چې د مرتهن د حق ابطال لازميږي. په دې دواړو صورتونو كي اصح هم دا دې. چه زبردستي به كولې شي.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّ الْجَوَابَ فِي الْفَصْلَيْنِ وَاحِدٌ او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دي. چه په دواړو صورتونو كي خواب يو دې. وَتُؤَيِّدُهُ إِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ وَفِي الْأَصْلِ او په جامع صغير اومبسوط كي د خواب اطلاق ددې تائيد كوي.



تشريح: - دامام ابويوسف رحمه الله نه نقل دي. چه وكالت كه په عقد كي مشروط وي. اوكه روستو شرط شوې وي. دواړو صورتونو كي يو حكم دې. يعنى زبردستي به كولې شي. د امام محمد رحمه الله د طرز( او انداز) نه ددې تائيد كيږي. ځكه چې دوى په جامع صغير او مبسوط كي دا د مطلق وكالت حكم بيان كړې دې. او د. مشروط فى العقد او غير مشروط فى العقد.، ئې هيڅ تحقيق نه دې كړې. ځكه چې امام محمد رحمه الله په جامع صغير اومبسوط كي داسې فرمائيلي دي. «او إذا أبى الوكيل عن البيع يجبر» او دا قول مطلق دې. چه دواړو صورتونو ته ګډ دې.

### د مرهون خرڅولو نه روسته ثمن ددې قائم مقام رهن كيدل

وَإِذَا بَاعَ الْعَدْلُ الرَّهْنَ او كله چې عادل مرهون خرڅ كړو فَقَدْ خَرَجَ مِنَ الرَّهْنِ نو دا د رهن كيدو نه خارج شو وَالثَّمَنُ قَائِمٌ مَقَامَهُ فَكَانَ رَهْنًا او ثمن به ددې قائم مقام وي. نو ثمن به رهن وي وَإِنْ لَمْ يُقْبَضْ بَعْدُ لِقِيَامِهِ مَقَامَ مَا كَانَ مَقْبُوضًا اګرچه تر اوسه پورې قبضه نه وي شوې. د ثمن د مقبوض ( مرهون) قائم مقام كيدو په وجه وَإِذَا تَوِيَ. او كله چې ثمن هلاك شي كَانَ مَالَ الْمُرْتَهِنِ نو دا به د مرتهن مال وي لِبَقَاءِ عَقْدِ الرَّهْنِ فِي الثَّمَنِ په ثمن كي دعقد رهن د پاته پاتې كيدو په وجه، لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْمَبِيعِ الْمَرْهُونِ ثمن د مرهون مبيع قائم مقام كيدو په وجه.

تشريح: - عادل چې كله مرهون خرڅ كړو. نو اوس به مرهون د مشتري ملك وي. او ملك د مشتري رهن نشي كيدې. په دې وجه ونيلي شوي دي. چه اوس مرهون د رهن كيدو نه خارج شو. البته اوس به د مرهون قائم مقام ثمن وي. اوثمن به مرهون شمارلې كيږي.

كه څوك دا اعتراض اوكړي چې لاتراوسه پورې خو مشتري لا ثمن ادا كړې هم نه دې. نو دا به مرهون څنګه شمارلې كيږي؟ نو موږ وايو چې د قبضې نه مخكي به هم دا مرهون او مضمون شمارلې كيږي. ځكه چې د مرتهن د حق په وجه ثمن د مشتري په ذمه كي ثابت شوى دى. نو ګويا ثمن د مرتهن يا عادل په قبضه كي راغلى دى. هم دا مرغيناني رحمه الله په نورو الفاظو كي داسې تعبير كړې دې. چه ثمن غير مقبوض د مرهون مقبوض قائم مقام دې. نو په دې باندې به هم د مقبوض حكم جارى كولې شي. بهرحال هركله چې ثمن مرهون اومنلې شو. نو ثمن د مرتهن يا عادل سره هلاك شي. نو د مرتهن مال به هلاك وي. او دده پور به ساقط وي. ځكه كه اصل مرهون وې. بيا به هم دا حكم وو. نو اوس به هم دا حكم وي. ځكه چې هركله ثمن د مرهون مبيع قائم مقام دې. نو عقد رهن پاته دې.

### مرهون غلام چا قتل كړونو دده د قتل تاوان به مرهون شمارلې كيږي

وَكَذٰلِكَ لَوْ او هم دغه ډول ( به قيمت د مرهون په ځائې ايخودې شي) ذَا قُتِلَ الْعَبْدُ الرَّهْنُ وَغَرِمَ الْقَاتِلُ قِيمَتَهُ، كله چې غلام مرهون قتل كړې شي. او قاتل دده دقيمت تاوان وركړى لِأَنَّ الْمَالِكَ لَا يَسْتَحِقُّهُ مِنْ حَيْثُ الْمَالِيَّةُ، ځكه چې مالك ( راهن) ددې مستحق دې. د ماليت په اعتبار سره وَإِنْ كَانَ بَدَلَ الدَّمِ اګرچه دا د وينې د ضمان بدل دې فَأَخَذَ حُكْمَ ضَمَانِ الْمَالِ فِي حَقِّ الْمُسْتَحِقِّ نو دا ضمان به د مالك ( راهن) په حق كي د مال د ضمان په حكم كي وي فَيَبْقَى عَقْدُ الرَّهْنِ نو عقد رهن پاته پاتې شو وَكَذٰلِكَ لَوْ قَتَلَهُ عَبْدٌ او هم دغه ډول كه غلام مرهون لره يو غلام قتل كړو فَدُفِعَ بِهِ، نو قاتل د غلام په بدله كي وركړې شو لِأَنَّهُ قَائِمٌ مَقَامَ الْأَوَّلِ لَحْمًا وَدَمًا ځكه چې قاتل غلام د ړومبى ( مقتول مرهون غلام) قائم مقام دې. د غوښې او وينې په اعتبار سره.

تشريح: - مرهون غلام چا قتل كړو. چه ددې په وجه هغه باندې د قيمت ضمان واجب شو. نو دا ضمان به مرهون شمارلې كيږي.

كه څوك دا اعتراض اوكړي چې دا ضمان چې كوم ملاو شوې دې. دا په حقيقت كي د وينې بدل دې. ددې دليل دا دې. چه دا به د آزاد د ديت نه كم ايخودې شي. بهرحال دا ضمان د وينې بدل دې. او د غلام وينه د

مولا مملوك نه ده.او نه د ويني رهن ايخودل صحيح دي.نو ددې د بدل رهن ايخودل به هم صحيح نه وي؟ نو موږ وايو چې په غلام كي د مولا ماليت دې.او دا ضمان اګرچه د ويني بدل دې.خو د قاتل د حركت په وجه قاتل باندې د ماليت ضمان واجب شوې دې.او هركله چې دا د ماليت ضمان اومثلي شو.نو پخپله ضمان مال اومثلي شو.نو ددې رهن ايخودل صحيح شو.او په ديت كي د ماليت لحاظ نه وي.بلكه د ويني لحاظ وي.په دې وجه ديت د ټولو برابر دې.كه څوك كمزورې وي.او كه پهلوان وي.

**د عادل مرهون خرڅول او ثمن مرتهن ته وركول نه روسته د مستحق راوتلو حكم**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل وَإِنْ بَاعَ الْعَدْلُ الرَّهْنَ فَأَوْفَى الْمُرْتَهِنَ الثَّمَنَ او كه عادل مرهون خرڅ كړو نو عادل ثمن مرتهن ته وركړو ثُمَّ اسْتُحِقَّ الرَّهْنُ فَضَمَّنَهُ الْعَدْلُ بيا مرهون مستحق اوختلو.نو عادل ددې ضامن شو كَانَ بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الرَّاهِنَ قِيمَتَهُ نو عادل ته اختيار دې.كه غواړي.راهن دې ددې د قيمت ضامن كړي وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْمُرْتَهِنَ الثَّمَنَ او كه غواړي.مرتهن دې د هغې ثمن ضامن جوړ كړي الَّذِي أَعْطَاهُ كوم ني چې ده ته وركړي وو، وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُضَمِّنَهُ غَيْرَهُ او عادل ته دا حق نشته. چې مرتهن ددې د غير ضامن جوړ كړي.

تشريح:- صورت د مسئلي دا دې.چه عادل د وكالت مطابق د پور ادا كاوه وخت راتلو باندې مرهون خرڅ كړو.او ثمن ني مرتهن ته وركړو.بيا يو سړي په دې مرهون مبيع كي خپل استحقاق ثابت كړو.چه ددې په وجه عادل ضمان (تاوان) وركړو.نواوس به عادل څه كوي؟ نو ددې حكم دا دې.چه عادل ته اختيار دې. كه د راهن نه ضمان اخلي.او كه د مرتهن نه ضمان اخلي.كه ده د راهن نه ضمان واخستلو.نو د مرهون پوره قيمت به ضمان اخلي.او كه ده د مرتهن نه ضمان واخستلو.نو صرف دومره ضمان اخستې شي.كوم ني چې ده ته وركړې وو.ددې نه د زيات اخستلو حق نشته.اوس په دې كي د حبس (بندولو) د اجمال وضاحت مرغيناني رحمه الله په راروان عبارت كي پيش كوي.

**د استحقاق نه روسته د مرهون موجودګئ او هلاكت په صورت كښي حكم**

وَكَشْفُ هٰذَا أَنَّ الْمَرْهُونَ الْمَبِيعَ إِذَا اسْتُحِقَّ او ددې وضاحت دا دې.چه كله مرهون مبيع مستحق ثابت شي. إِمَّا أَنْ يَكُونَ هَالِكًا نومرهون به هلاك شوې وي أَوْقَائِمًا يا به موجود وي فَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ الْمُسْتَحِقُّ نو په رومبي صورت كي مستحق ته اختيار دې بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الرَّاهِنَ قِيمَتَهُ كه غواړي.راهن دې ددې د قيمت ضامن جوړ كړي لِأَنَّهُ غَاصِبٌ فِي حَقِّهِ خكه چې راهن دده په حق كي غاصب دې وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْعَدْلَ اوكه غواړي.عادل دې ضامن جوړ كړي «لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِي حَقِّهِ بِالْبَيْعِ وَالتَّسْلِيمِ خكه چې عادل د بيع او سپارلو په وجه دده په حق كي متعدي (او زياتي كونكي) دې.

حل اللغة: ① كشف: وضاحت،ښكاره كول ﴾

تشريح:- د استحقاق نه روسته به رومبې دا كتلې شي.چه مبيع مرهون موجود دې.او كه هلاك شوې دې.كه معلومه شوه.چه هلاك شوې وي.نو بيا دا حكم دې.چه مستحق ته دوې (دوه) اختياره دي ① د راهن نه ضمان واخلي.خكه چې راهن دده شئ غصب كړې دې.او هلاك كړې دې ② د عادل نه دې ضمان واخلي.خكه چې د عادل د ارخه دده په حق كي تعدي او زياتي موجود شوې دې.يو دا چې عادل د هغه سامان خرڅ كړې دې.او دويمه دا چې دا ني مشتري ته حواله كړو.بيا ددې نه روسته كوم احكام دي.نو دا وړپسې بيانوي.

**مستحق به راهن ضامن جوړه وي او كه عادل؟**

فَإِنْ ضَمَّنَ الرَّاهِنَ نو كه مستحق راهن ضامن جوړ كړو نَفَذَ الْبَيْعُ نو بيع نافذ شوه وَصَحَّ الْاِقْتِضَاءُ او د مرتهن وصولول صحيح شو لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ خكه چې راهن ضمان ادا كاوه سره د مرهون مالك شوې دې فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ أَمَرَهُ بِبَيْعِ مِلْكِ نَفْسِهِ نو دا خبره ښكاره شوه.چه راهن عادل ته د خپل ملك خرڅولو حكم وركړې دې وَإِنْ



ضَمَّنَ الْعَدْلَ يَنْفُذُ الْبَيْعُ أَيْضًا او كه مستحق بائع (عادل) ضامن جوړ كړو.نو بيا هم بيع نافذ كيږي «لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ خكه چې عادل د مرهون مالك شوې دې.د ضمان ادا كاوه په وجه فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ بَاعَ مِلْكَ نَفْسِهِ .نو دا خبره واضحه شوه.چه عادل خپل ملك خرڅ كړې دې.

تشريح:- مستحق ته اختيار حاصل شوې وو.چه دې راهن او عادل كي څوك غواړي.ضامن جوړ كړي.او بيع به دواړو صورتونو كي صحيح وي.خكه كه مستحق د راهن نه ضمان واخستلو.نو د ضمان ادا كاوه په وجه به راهن د مرهون مالك شمارلې كيږي.او هركله چې راهن مالك جوړ كړې شو.نو راهن عادل وكيل جوړ كړې دې.چه دده مملوك شئ خرڅ كړي.نو وكيل جوړول صحيح دي.او مرتهن ته چې څه عادل وركړي دي.نو ددې په وجه به مرتهن د پور وصولونكې شي.او كه مستحق دعادل نه ضمان اخستې وي.نو بيع اوس هم صحيح ده.خكه چې عادل د ضمان ادا كاوه په وجه د مرهون مالك اوګرځيدو.او مالك ته حق وي.چه خپل ملك خرڅ كړي.خو كه عادل ضمان ادا كړې وي.نو اګرچه بيع صحيح شوه.خو عادل هسې بيسه راګير شو.نواوس به عادل څه كوي؟ چې ددې تاوان نه بچ شي.كوم چې هسې په ده راغلې دې.نو په راروان عبارت كي دا بيانولې شي.

**كه عادل نه ضمان واخستلې شي نو عادل به دا دچا نه وصول كوي؟**

وَإِذَا ضَمَّنَ الْعَدْلَ او كله چې مستحق عادل ضامن جوړ كړو فَالْعَدْلُ بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ رَجَعَ عَلَى الرَّاهِنِ بِالْقِيمَةِ نو عادل ته اختيار دې.كه غواړي.د راهن نه دې قيمت واخلي لِأَنَّهُ وَكِيلٌ مِنْ جِهَتِهِ عَامِلٌ لَهُ .خكه چې عادل د راهن وكيل دې «فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ بِمَا لَحِقَهُ مِنَ الْعُهْدَةِ نو كومه ذمه واري چې په عادل لازم شوې ده.د هغه په سلسله كي به راهن باندې رجوع كوي وَنَفَذَ الْبَيْعُ او بيع به نافذ وي وَصَحَّ الْاِقْتِضَاءُ او د مرتهن وصولول صحيح شو فَلَا يَرْجِعُ الْمُرْتَهِنُ عَلَيْهِ بِشَيْءٍ مِنْ دَيْنِهِ نو مرتهن به راهن باندې د خپل پور په سلسله كي هيڅ رجوع نه كوي.

تشريح:- مستحق د عادل نه ضمان اخستې وو.نو اوس عادل ته دوې (دوه) اختياره دي ① دراهن نه دې قيمت وصول كړي.يعنی كوم تاوان چې عادل وركړې دې.هغه دې دراهن نه وصول كړي.خكه چې حقيقت كي عادل د راهن وكيل دې.او د راهن لپاره كار كوي.نو عادل ته چې كوم تاوان رسيږي.د هغې پوره كول به د راهن ذمه داري وي.بهرحال كله چې راهن خپل وركړې شوې تاوان وصول كړو.نو راهن د مرهون مالك شو. اوعادل د هغه وكيل شو.نو مذكوره بيع صحيح شوه.هركله چې بيع صحيح شوه.نو مرتهن چې كوم څه وركړې شوي دي.هغه صحيح دې.نواوس به مرتهن ته دا حق نه وي.چه دوباره د راهن نه د پور مطالبه اوكړي.خكه چې د مرهون ثمن هغه ته ملاو شوې دې.

وَإِنْ شَاءَ رَجَعَ عَلَى الْمُرْتَهِنِ بِالثَّمَنِ اوكه عادل اوغواړي.نو مرتهن نه دې ثمن واپس واخلي لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ أَنَّهُ أَخَذَ الثَّمَنَ بِغَيْرِ حَقٍّ خكه دا خبره ښكاره شوه.چه ده ثمن په ناحقه اخستې دې «لِأَنَّهُ مَلَكَ الْعَبْدَ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ خكه چې عادل د ضمان ادا كاوه په وجه د غلام مالك شو وَنَفَذَ بَيْعُهُ عَلَيْهِ .او په ده د عادل بيع نافذ شوه فَصَارَ الثَّمَنُ لَهُ، .نو ثمن د عادل شو وَإِنَّمَا أَدَّاهُ إِلَيْهِ عَلَى حُسْبَانِ او ده ثمن مرتهن ته په دې ګمان وركړې وو أَنَّهُ مِلْكُ الرَّاهِنِ چې مرهون د راهن ملك دې ،فَإِذَا تَبَيَّنَ أَنَّهُ مِلْكُهُ نو هركله چې دا خبره ښكاره شوه.چه مرهون د عادل ملك دې لَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِهِ نو هغه به په دې باندې راضي نه وي فَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ بِهِ عَلَيْهِ نو عادل ته حق شته.چه د مرتهن نه ثمن واپس واخلي وَإِذَا رَجَعَ اوهركله چې عادل ثمن واپس واخستلو بَطَلَ الْاِقْتِضَاءُ نو د مرتهن وصولول باطل شو ،فَيَرْجِعُ الْمُرْتَهِنُ عَلَى الرَّاهِنِ بِدَيْنِهِ نو مرتهن به خپل ثمن د راهن نه وصول كوي.

تشريح:- عادل ته دا اختيار هم شته.چه مرتهن ته ني كوم ثمن وركړې وو.دا دهغه نه واپس واخلي.خكه چې عادل د ضمان ادا كاوه په وجه د مرهون مالك شو.نو ثمن به هم دعادل وي.او عادل ثمن مرتهن ته خكه وركړې وو.چه هغه پخپله ګمان كي دا د راهن ملك ګڼرلې وو.خو دا راز اوس ښكاره شو.چه هغه د راهن ملك

نه دي.بلکه د عـادل ملك دي.نو هغه به خپل حق مرتهن ته ور کاوه بانديږ راضي نه وي.بهرحال اوس دا معلومه شوه.چه د مرتهن ثمن وصولول په ناحقه دي.نو عادل ته حق شته.چه د مرتهن نه ثمن واپس واخلي.او هرکله چې مرتهن ثمن واپس واخستلو.نو د مرتهن پور وصولول هم باطل شو.نو اوس به مرتهن خپل پور د راهن نه وصول کوي.

**که مرهون مشتري سره وئنو مستحق به حق دچا نه اخلي؟**

وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي وَهُوَ أَنْ يَكُونَ قَائِمًا فِي يَدِ الْمُشْتَرِي او په دوهم صورت کي ،او هغه دا دي.چه مبيع مرهون د مشتري په قبضه کي موجود وي فَلِلْمُسْتَحِقِّ أَنْ يَأْخُذَهُ مِنْ يَدِهِ نو مستحق ته حق شته.چه دي هغه د مشتري د قبضي نه واخلي لِأَنَّهُ وَجَدَ عَيْنَ مَالِهِ ځکه چي ده بعينه خپل مال اوموندلو.

**تشريح:-** دا ذکرشوی واړه تفصيلات هغه وخت وو.کله چې مرهون د مشتري په قبضه کي هلاك شي.اوکه مشتري سره مبيع مرهون موجود دي.نو ددي حکم بل شان دي.او هغه دادي.چه مستحق ته حق شته.چه د مشتري نه خپل مال واخلي.ځکه چي ده خپل مال موندلي دي.نو ده ته به د اخستلو حق وي.

ثُمَّ لِلْمُشْتَرِي أَنْ يَرْجِعَ عَلَى الْعَدْلِ بِالثَّمَنِ بيا مشتري ته حق شته.چه هغه د عادل نه ثمن واپس واخلي لِأَنَّهُ الْعَاقِدُ فَتَتَعَلَّقُ بِهِ حُقُوقُ الْعَقْدِ، وَهَذَا مِنْ حُقُوقِهِ ځکه چي عاقد خو عادل دي.نو حقوق دعقد به هم دده سره متعلق وي.او دا (رجوع د ثمن) د عقد د حقوقو څخه دی. حَيْثُ وَجَبَ بِالْبَيْعِ،ځکه چي ثمن د بيع په وجه واجب شوي دي ،وَإِنَّمَا أَدَّاهُ لِيُسَلِّمَ لَهُ الْمَبِيعَ اومشتري عادل ته ددي لپاره ثمن ورکړي دي.چه مبيع دده لپاره سلامت وي وَلَمْ يُسَلِّمْ حالانکه هغه سلامت پاتي نشو.

**تشريح:-** خواوس مشتري غريب هسې بيسه اووهلي شو.نو ددي حل به دا وي.چه مشتري دي عـادل اونيسي.او کوم ثمن چي ده عادل ته ورکړي وو.هغه دي دده نه واپس واخلي.ځکه چي عـادل، عاقد دي.نو حقوق د بيع به هم ده اړخ ته واپس کيږي.او چونکه د ثمن وجوب د بيع په وجه شوي وو.چه ددي کونکي عـادل وو.نو واپسي به هم په عـادل کيږي.ځکه چي ذکر شوی صورت کي په ثمن رجوع کول هم د عقد د حقوقو څخه دي.او د عقد د حقوقوذمه دار عاقد وي.او مشتري عـادل ثمن ددي لپاره ثمن ورکړي وو.چه مبيع مشتري ته ملاو شي. حالانکه مبيع هغه ته ملاو نشو.بلکه دده نه واخستلي شو.نو هغه ته به هم د ثمن واپس اخستلو حق وي.بهرحال د مشتري ځان خو بچ شو.خو اوس عادل راګير شو.نو وربسې ددي حل هم پيش کوي.

**د عادل بچ کولو لپاره د عادل دوي (دوه) اختيارات**

ثُمَّ الْعَدْلُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ رَجَعَ عَلَى الرَّاهِنِ بِالْقِيمَةِ بيا عادل ته اختيار دي.که غواړي.د راهن نه دي ثمن واپس واخلي لِأَنَّهُ هُوَ الَّذِي أَدْخَلَهُ فِي هَذِهِ الْعُهْدَةِ ځکه چي راهن، عادل ددي په ذمه دارئ کي داخل کړي (او راګير کړي) دي فَيَجِبُ عَلَيْهِ تَخْلِيصُهُ نو په ده د هغه خلاصول واجب دي وَإِذَا رَجَعَ عَلَيْهِ صَحَّ قَبْضُ الْمُرْتَهِنِ او کله چي عادل په راهن باندي رجوع اوکړله.نو د مرتهن قبضه صحيح شوه ،لِأَنَّ الْمَقْبُوضَ سَلِمَ لَهُ ځکه چي مقبوض دده لپاره محفوظ شو.

**تشريح:-** دعادل د بچ کاوه لپاره ده ته هم دا اختياره ورکړي شوي دي.مشتري چي کوم ثمن د عـادل نه اخستي دي.دومره مقدار دي عادل د راهن نه وصول کړي.ځکه چي دي (خفګان کي عادل د راهن په وجه راګير شوي وي.نو په راهن به دده خلاصول ضروري وي.نو عـادل دي ثمن د راهن نه واپس واخلي. اوکله چي عـادل د راهن نه ثمن واخستلو.نو د مرتهن حق صحيح سلامت مرتهن ته ملاو شو.نو هغه به د حيلو بهانو حقدار نه وي.

وَإِنْ شَاءَ رَجَعَ عَلَى الْمُرْتَهِنِ او که غواړي.په مرتهن دي رجوع اوکړي. لِأَنَّهُ إِذَا انْتَقَضَ الْعَقْدُ بَطَلَ الثَّمَنُ ځکه چي



کله عقد بيع ختم شو.نو ثمن باطل شو وَقَدْ دست (تصرف) ثَمَنًا حالانکه مرتهن د ثمن کيدو په لحاظ سره په دي قبضه کړي وه فَيَجِبُ نَقْضُ دست (تصرف) ضَرُورَةً،نو د اړتيا په وجه دده قبضه ماتول واجب شو وَإِذَا رَجَعَ عَلَيْهِ او کله چي عادل په مرتهن باندي رجوع اوکړله. وَانْتَقَضَ دست (تصرف) او دده قبضه ماته شوه عَادَ حَقُّهُ فِي الدَّيْنِ نو پور کي د مرتهن حق واپس راغي كَمَا كَانَ فَيَرْجِعُ بِهِ عَلَى الرَّاهِنِ .لکه څنګه چي وو.نو مرتهن به د پور په سلسله کي راهن باندي رجوع کوي.

**تشريح:-** عـادل ته دوهم اختيار دا دي.چه مرتهن دي هغه ثمن واپس واخلي.کوم ئې چي هغه ته ورکړي وو.ځکه چي هرکله ذکرشوي بيع ختمه شوه.نو ددي ثمن کيدل هم باطل شو.حالانکه مرتهن ته دا رقم د ثمن کيدو په لحاظ سره ورکړي شوي وو.او په دي صورت کي راهن باندي د مرتهن حق پخپل حال پاته پاتي وي.نو مرتهن به خپل پور د راهن نه وصول کوي.

**که ثمن د مشتري نه واخستلي شنو مشتري به د عادل نه اخلي اوکه نه؟**

وَلَوْ أَنَّ الْمُشْتَرِيَ سَلَّمَ الثَّمَنَ إِلَى الْمُرْتَهِنِ او که مشتري ثمن مرتهن ته ورکړي وي لَمْ يَرْجِعْ عَلَى الْعَدْلِ نو مشتري به عادل باندي رجوع نه کوي ،لِأَنَّهُ فِي الْبَيْعِ عَامِلٌ لِلرَّاهِنِ، وَإِنَّمَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ ځکه چي عـادل د راهن لپاره عامل دي.عادل باندي هغه وخت رجوع کولای شي إِذَا قَبَضَ چي ده قبضه کړي وي. وَلَمْ يَقْبِضْ حالانکه ده قبضه نه ده کړي فَبَقِيَ الضَّمَانُ عَلَى الْمُوَكِّلِ .نو ضمان به مؤکل ( مرتهن) باندي پاته پاتي وي.

**تشريح:-** دا تفصيل هغه وخت دي.کله چي مشتري ثمن عـادل ته ورکړي وي.اوکه ده ثمن مرتهن ته ورکړي وي.نو اوس به مشتري ته دا حق نه وي.چه د عـادل نه ثمن وصول کړي.ځکه چي عـادل خو د راهن کارينده دي.په ده به رجوع هغه وخت صحيح وي.کله چي هغه ثمن باندي قبضه اوکړي.دلته دده قبضه نه ده شوي.نو ثمن به مرتهن نه وصولولي شي.

فائده* د مؤکل نه مراد مرتهن دي.ځکه چي بيع هم دده د حق په وجه شوي ده.په دي وجه ده ته مؤکل ونيلي شوی دی.اود ضمان نه مراد ثمن دي.نو مطلب دا شو.چه مشتري به خپل ورکړي شوي ثمن د مرتهن نه واپس اخلي.

**د عقد رهن نه روسته د وکيل کولو په صورت کښي څه حکم دي ؟**

وَلَوْ كَانَ التَّوْكِيلُ بَعْدَ عَقْدِ الرَّهْنِ غَيْرَ مَشْرُوطٍ فِي الْعَقْدِ او که وکيل مقررول د عقد رهن نه روسته وي چي دا په عقد کي شرط شوي نه وي فَمَا لَحِقَ الْعَدْلَ مِنَ الْعُهْدَةِ نو کومه ذمه واري چي عادل سره متعلق شوي ده يَرْجِعُ بِهِ عَلَى الرَّاهِنِ د هغي په سلسله کي به دي راهن باندي رجوع کوی قَبَضَ الثَّمَنَ الْمُرْتَهِنُ أَمْ لَا،که مرتهن ثمن قبضه کړي وي.اوکه نه وي کړي لِأَنَّهُ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهَذَا التَّوْكِيلِ حَقُّ الْمُرْتَهِنِ ځکه چي دي وکيل مقررولو سره د مرتهن حق نه متعلق شوي فَلَا رُجُوعَ نو په مرتهن به رجوع نه کيږي.

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه ذکر شوي واړه بحث هغه وخت دي.کله چي وکالت په عقد رهن کي شرط شوي وي.ګنی که د وکالت شرط د عقد رهن نه روسته شوي وي.او عادل مرهون خرڅ کړو.او ثمن ئې مرتهن ته حواله کړو.او بيا په دي کي يوکس د استحقاق دعوه اوکړله.چه په دي کي عـادل باندي ضمان ادا کول لازم شو.نو عادل به دا تاوان د راهن نه وصول کوي.د مرتهن څخه به ئې نه وصول کوي.ځکه چي دي وکالت سره د مرتهن حق نه دي متعلق شوي.بلکه دا به خالص د راهن د حق لپاره شمارلي کيږي. هم دا وجه ده.چه په دي وکيل باندي د بيع لپاره زبردستي نشي کولي.او که مؤکل دده معزول کول اوغوښتل.نو مرتهن ته د منع کاوه حق نشته.

كَمَا فِي الْوَكَالَةِ الْمُفْرَدَةِ عَنِ الرَّهْنِ لکه په هغه وکالت کي کوم چي د رهن نه خالي وي إِذَا بَاعَ الْوَكِيلُ وَدَفَعَ الثَّمَنَ

إِلَى مَنْ كله چې وكيل خرڅ كړي وي.او ثمن ئې ده ته وركړي وي أَمَرَهُ الْمُوَكِّلُ چې په دې اړه كې مؤكل حكم وركړي وو ثُمَّ لِحِقَهُ عُهْدَةٌ بيا وكيل باندې څه ذمه واري متعلق شوه لَا يَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْمُقْتَضِي نو وكيل به دا د قابض نه واپس نه اخلي بِخِلَافِ الْوَكَالَةِ الْمَشْرُوطَةِ فِي الْعَقْدِ په خلاف ددې وكالت، كوم چې عق كې شرط شوې وي. " لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْمُرْتَهِنِ فَيَكُونُ الْبَيْعُ لِحَقِّهِ خكه چې دې سره د مرتهن حق متعلق شوې دې.نو بيع به د مرتهن دحق لپاره وي.

**تشريح:-** او ددې حال بالكل داسې دې.لكه چې يوكس زيد د رهن نه بغير هسې وكيل كړو.چه زما فلانې سامان خرڅ كړه.او ددې ثمن فلانې ته وركړه.هغه داسې اوكړل.ددې نه روسته بكر په دې كې د استحقاق دعوه اوكړله.چه دا ثابته هم شوه.چه ددې په وجه زيد تاوان هم ادا كړو.نوزيد به دا تاوان د مؤكل نه وصول كوي.ددغه كس څخه به ئې نه وصول كوي.چا ته چې ده ثمن ادا كړي وو.كوم وكالت چې په عقد كې مشروط وي.د هغې حكم ددې خلاف دې.هغې كې عادل ته حق شته.كه راهن ضامن جوړه وي.او كه مرتهن جوړه وي.د راهن ضامن جوړول خو ښكاره دې.او مرتهن د ثمن ضامن جوړولو وجه دا ده.چه هركله دده سره د مرتهن حق متعلق شو.نو داسې به ګنړلې شي.چه د عادل بيع د مرتهن دحق لپاره شوې ده.

قَالَ رَحِمَهُ اللهُ هَكَذَا ذَكَرَ الْكَرْخِيُّ، وَهَذَا مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل.چه كرخي رحمه الله هم داسې ذكر كړى دى. يُؤَيِّدُ قَوْلَ مَنْ لَا يَرَى جَبْرَ هَذَا الْوَكِيلِ عَلَى الْبَيْعِ او دا ( د كرخي رحمه الله قول) ددې تائيد كوي.چه دا بيع باندې ددې وكيل زبردستي جائز نه ګرځوي.

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه امام كرخي رحمه الله پخپل مختصر كې هم دغه ډول ذكركړى دى.خو د امام كرخي رحمه الله په دې قول كې د هغه خلګو تائيد ثابتيږي.كوم چې په ذكر شوى دليل سره زبردستي جائز نه ګنړي.حالانكه وړاندې دوهم روايت ته اصح ونيلى شوى دى.كومو حضراتو چې زبردستي جائز ګنړلې ده.د هغوى د اړخه دا خواب ور كيداې شي.چه د وكيل مجبور كيدل د وكالت د لزوم په وجه دى. اګرچه د مرتهن حق نه دې متعلق شوې... فلا تعارض...

### د مرهون غلام مړ كيدو نه روسته د مستحق راوتلو حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلي دى. وَإِنْ مَاتَ الْعَبْدُ الْمَرْهُونُ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ اوكه مرهون غلام د مرتهن په قبضه كې مړ شو ثُمَّ اسْتَحَقَّهُ رَجُلٌ .بيا دده څوك سړې مستحق راووتلو. فَلَهُ الْخِيَارُ نو مستحق ته حق شته. إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الرَّاهِنَ كه غواړي.راهن دې ضامن جوړ كړى" وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْمُرْتَهِنَ اوكه غواړي.مرتهن دې ضامن جوړ كړى.

**تشريح:-** د مرتهن په قبضه كې مرهون غلام مړ شو.بيا دده څوك مستحق راووتلو.نو څه حكم دې؟ نو وې فرمائيل.چه مستحق ته اختيار دې.كه غواړي.د راهن نه دې ضمان واخلي.او كه غواړي.نو مرتهن نه دې ضمان واخلي.

لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُتَعَدٍّ فِي حَقِّهِ خكه چې دوى كې هريو د مستحق په حق كې تعدى كونكې دې. بِالتَّسْلِيمِ أَوْ بِالْقَبْضِ د سپارلو يا د قبضې په وجه. فَإِنْ ضَمَّنَ الرَّاهِنَ نوكه مرتهن راهن ضامن جوړ كړو فَقَدْ مَاتَ بِالدَّيْنِ .نو مرهون غلام د پور په بدله كې مړشوې دې لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ .خكه چې راهن د ضمان ادا كاوه په وجه ددې مالك شو فَصَحَّ الْإِيفَاءُ .نو مرتهن ته ايفاء (او د خپل حق وصولى) صحيح شوه.

**تشريح:-** خكه چې ددوى دواړو د اړخه زياتې او تعدى موجود شوې دې.دراهن د اړخه تعدى داده.چه ده د مستحق غلام بل ته حواله كړو.او د مرتهن د اړخه تعدى دا ده.چه ده د بل په غلام باندې قبضه كړې ده.بهرحال مستحق تـه دا دواړه اختيـاره دى.خـو د هرصـورت جـلا دې.كـه مستحق د راهـن نـه ضـمان



واخستلو.نو راهن د ضمان ادا كاوه په وجه د مرهون مالك شو.نو اوس به غلام باندې د رهن احكام جارى كيږي.نو د مرتهن په قبضه كې دده د هلاكيدو په وجه به د مرتهن قبضه ساقطيږي.او كه دوهم صورت كې وي.نو ددې حكم په راروان عبارت كې بيانولې شي.

### كه مرتهن ضامن كړې شو نو دې به د راهن نه وصول كوي

وَإِنْ ضَمَّنَ الْمُرْتَهِنَ اوكه مستحق مرتهن ضامن جوړ كړو. يَرْجِعُ عَلَى الرَّاهِنِ بِمَا ضَمِنَ مِنَ الْقِيمَةِ وَبِدَيْنِهِ نو مرتهن به ضمان كې ادا كړې شوې قيمت، او خپل پور راهن نه واپس اخلي. أَمَّا بِالْقِيمَةِ فَلِأَنَّهُ مَغْرُورٌ مِنْ جِهَةِ الرَّاهِنِ، بهرحال قيمت، نو په دې وجه، چې مرتهن د راهن د اړخه دهوكه خوړلې ده وَأَمَّا بِالدَّيْنِ فَلِأَنَّهُ انْتَقَضَ اقْتِضَاؤُهُ .او بهرحال قرض، نو خكه چې د مرتهن قبضه ختمه شوه فَيَعُودُ حَقُّهُ كَمَا كَانَ .نو واپس كيږي به دده حق لكه څنګه چې وو.

**حل اللغة:** ① دين: پور ② جهة: اړخ ③ مغرور: دهوكه وركړې شوې ④ اقتضاء: تقاضاكول﴾

**تشريح:-** ذكر شوې تفصيل خو هغه وخت دې.كله چې مستحق د راهن نه ضمان اخستې وي.اوكه ده دمرتهن نه ضمان واخستلو.نو اوس څه حكم دې؟ نو وې فرمائيل.چه د مرتهن پور پخپل حال د راهن په ذمه دې. يو به خو دا واپس اخلي.او بل به هغه ضمان واپس اخلي.كوم چې ده مستحق ته ادا كړې دې.اوس پاتې شوه دا خبره، چې د تاوان قيمت په راهن باندې ولې راغلې دې؟ نو وې فرمائيل.خكه چې اصول دا مقرر دې.چه دهوكه كړې شوى باندې چې كوم تاوان راخي.د هغې پوره والې د دهوكه كونكى نه كولې شي. اودلته كې هم مرتهن مغرور ( دهوكه كړې شوې) دې.او راهن غار ( دهوكه كونكې) دې.او پور خكه پاتې دې.چه راهن د مرهون د سره مالك نه وو.نو د مرهون د هلاكيدو په وجه به مرتهن د خپل حق وصولونكې نه شمارلې كيږي.

### د قاضي بغداد د سوال تقرير

فَإِنْ قِيلَ بيا كه اعتراض اوكړې شي. لَمَّا كَانَ قَرَارُ الضَّمَانِ عَلَى الرَّاهِنِ بِرُجُوعِ الْمُرْتَهِنِ عَلَيْهِ چې هركله د راهن په مرتهن باندې د رجوع په سبب د ضمان لزوم په راهن باندې اوشو وَالْمِلْكُ فِي الْمَضْمُونِ يَثْبُتُ لِمَنْ عَلَيْهِ قَرَارُ الضَّمَانِ .او مضمون كې ملكيت هم د هغه كس لپاره ثابتيږي.په چا چې ضمان لازم شوې وي. فَتَبَيَّنَ نو دا خبره ښكاره شوه. أَنَّهُ رَهَنَ مِلْكَ نَفْسِهِ چې راهن خپل ملك رهن ايخودې دې. فَصَارَ كَمَا إِذَا ضَمَّنَ الْمُسْتَحِقُّ الرَّاهِنَ ابْتِدَاءً نو دا داسې شوه.لكه چې مستحق د پيل نه راهن ضامن جوړ كړې وى قُلْنَا:؟ موږ وايو هَذَا طَعْنُ أَبِي خَازِمٍ الْقَاضِي چې دا د ابو خازم قاضي اعتراض دې.

**تشريح:-** د قاضي بغداد قاضي عبدالمجيد بن عبدالعزيز په حنفيانو باندې يو اعتراض دې.كوم چې مرغيناني رحمه الله نقل كړې دې.حاصل د سوال دا دې.كه مستحق دراهن نه ضمان اخستې وي.نو پور د مرتهن ساقطيږي.ددې وجه داده.چه د ضمان ادا كاوه په وجه راهن ددې مالك كيږي.نو په دې باندې د رهن احكام جارى كيږي.او ددې هلاكت مضمون بالدين وي.دغه ډول كه مستحق د مرتهن نه ضمان وصول كړو.نو بيا مرتهن دا تاوان د راهن نه واپس اخلي.نو اوس هم راهن د مرهون مالك شمارل پكار دى.او دې ته مضمون بالدين ونيل پكار دى.خكه چې ضمان ادا كاوه سره هغه سړې مالك جوړيږي.چرته چې رسيدو باندې ضمان اودريږي.لكه چې راهن باندې رسيدو سره ضمان اودريږي؟

### د جواب تقرير

وَالْجَوَابُ عَنْهُ او ددې خواب دا دې أَنَّهُ يَرْجِعُ عَلَيْهِ بِسَبَبِ الْغُرُورِ.چه مرتهن په راهن باندې د دهوكې په وجه رجوع كوي وَالْغُرُورُ بِالتَّسْلِيمِ .او دهوكه د غير ملك سپارلو په وجه ده كَمَا ذَكَرْنَاهُ.لكه چې موږ دا ذكر كړى دى. أَوْ بِالِانْتِقَالِ مِنَ الْمُرْتَهِنِ إِلَيْهِ يا د مرتهن نه راهن اړخ ته د منتقل كيدو په وجه ده. كَأَنَّهُ وَكِيلٌ عَنْهُ كويا مرتهن

د راهن وكيل دی. «وَالْمِلْكُ بِكُلِّ ذٰلِكَ مُتَأَخِّرٌ عَنْ عَقْدِ الرَّهْنِ او ملك دوی دواړو كي د هر يو د عقد رهن نه مؤخر( روستو) دی.

**تشریح:-** مرغيناني رحمه الله په دې عبارت كي د ذكر شوی قاضی د اعتراض ځواب وركوی. د ځواب لنډيز دا ده. چه دا مسئله په ړومبۍ مسئلې باندې قياس كول، قياس مع الفارق دی. ځكه چې ړومبی صورت كي خو راهن د ضمان ادا كاوه په وجه د عقد رهن نه مخكي ددې مالك شمار كړې شوی دی. په دې وجه په دې باندې د رهن احكام جاري كړې شوي وو. خو دلته د عقد رهن په وخت رهن ملكيت نشي كيدې. ځكه چې د راهن د ملك دلته كي دوې (دوه) سببونه دی① د راهن مرتهن ته دهوكه وركول، چې دا د غير د ملكيت سپارلو په وجه وركړې شوې ده. نو كه دا سبب منو. نو دا سبب د عقد رهن نه روستو پيدا شوي دی. نو ملكيت به هم روستو ثابت وی. او هركله چې ملكيت د عقد رهن نه روسته ثابت شو. نو په دې به د رهن احكام نه جاري كيږي. نو دا به مضمون بالدين نه وی.② يا د راهن ملك دا دی. چه مرتهن د غير په مال باندې قبضه كړې ده. چه ددې په وجه مرتهن د مستحق په حق كي غاصب شو. نو مستحق د مرتهن نه ضمان واخستلو. نو د ضمان نه روستو مرتهن د مرهون مالك شو. خو چونكه مرتهن د راهن په وجه په دې قبضه اوكړله. په دې وجه به تاوان راهن اړخ ته منتقل كيږي. او اوس د ضمان ادا كاوه نه روستو به ددې مالك راهن وی. بهرحال هركله چې د مرتهن ملكيت د قبضې نه روسته پيل شو. نو اوس د منتقل كيدو په وجه د راهن ملكيت هم د قبضې نه روسته پيل شو. نو ملكيت هم د رهن نه روسته شو. نو معلومه شوه. چه مرتهن باندې ضمان ودريدل، د رهن نه روسته ثابت شو. نو راهن خپل ملكيت رهن كړې نه دی. په دې وجه به دې باندې د رهن احكام نه جاري كيږي.

بِخِلَافِ الْوَجْهِ الْأَوَّلِ په خلاف د ړومبی صورت، «لِأَنَّ الْمُسْتَحِقَّ يُضَمِّنُهُ بِاعْتِبَارِ الْقَبْضِ السَّابِقِ عَلَى الرَّهْنِ په دې وجه مستحق مرتهن ددې قبضې په اعتبار سره ضامن جوړه وی. كوم چې رهن باندې مقدم ( وړاندې) دی. فَيَسْتَنِدُ الْمِلْكُ إِلَيْهِ نو ملك به قبضې اړخ ته منسوب وی. فَتَبَيَّنَ نو دا خبره ښكاره شوه. أَنَّهُ رَهَنَ مِلْكَ نَفْسِهِ چې ده خپل ملك رهن ايخودې دی وَقَدْ طَوَّلْنَا الْكَلَامَ فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهَى. او موږ په كفاية المنتهى كي اوږد كلام كړې دی والله اعلم بالصواب.

**تشریح:-** په ړومبی صورت كي چې كله مستحق د راهن نه ضمان واخستلو. نو د راهن ملكيت د رهن نه مخكي ثابت شو. په دې وجه مرهون باندې د رهن احكام جاري كړې شو. او ددې هلاكت مضمون بالدين اوګرځولې شو. ځكه چې دلته كي دا شمار كړې شو. چه مستحق د راهن نه كوم ضمان اخستې دی. هغه نې د هغه قبضې په وجه اخستې دی. كوم چې د عقد رهن نه مخكي ده.

✿✿✿

## کتاب المساقاة ........ ۱۶۰







## کتاب الذبائح ........ ۱۷۱

## فصل فیما یحل أكله وما لا یحل ....... ۱۹۳



## كتاب الأضحية ....... /

ميړه ته ددې خبر ورکولو حکم چې دده ښځه دده رضاعي خور ده ...... ۲۹۶

[چور (حمله)
[چم (چل)
(ح)
[حکمـي مـرداري (حکمـي نجاست)
(خ)
[خلگ (خلق)
[خلگو (خلقو)
[خپاره (خواره)
(د)
[دغه ډول (دغه شان)
[د عمل وړ (د عمل وړ)
[درلودی (لرلو)
[دریم (دریم)
(ر)
[راسته (ښي)
[راتگ (راتلل)
(ز)
[زموږ (موږ)
[زیږیدل (پیدائش)
(ژ)
[زموږ (موږ)
[زیږیدل (پیدائش)
[ژباړې (ترجمې)
[ژباړه (ترجمه)
[ژي (مشکیزه)
[ژوول (جوئیل)
[ژي (مشکیزه)
(س)
[سهار (صبا)
[ساتنه (حفاظت)
[سربیره (دپاسه)
[سراج (ډیوه)
[سلواغه (بوقه)
[ساعتونه (لمحات)
[ساعت (لحمه)
[سراج (ډیوه)
[سپرلۍ (سورلۍ)

[پیوسته (مسلسل)
[پیشی (پیشو)
[پیشلمی (پیشمنې)
[پور (قرض)
[پوست (پوستکې)
[پور (قرضې)
[پوولې (څرولې)
[پښو (خپو)
[پښي (خپې)
[پوول (څرول)
[پلنډه (تان)
[پریښودې (پریخودې)
(ت)
[توانگر (مالدار)
[توپیر (فرق)
[توپیر (توپیر (تبدیلی))
[تیخرگ (ترخ)
[توان (طاقت)
[توپیر (تبدیلی)
(ټ)
[ټوک (جلد)
(ث)
[ټوک (جلد)
(ج)
[جلا (جدا)
[جلا جلا (جدا جدا)
(چ)
[چوپوالې (خاموشی)
[چپه (گس)
[چوپ (چپ)
[چم (چل)
[چنگوښه (چیندخ)
[چوغکه (مرغۍ)
[چتلي (گندگی)
[چمپلان (څپلۍ)
[چاغه (تیاره)
[چمپلان (څپلۍ)

[امله (وجې)
[اړخ (طرف)
[انډیوال (ملگری)
[اوپریمنځل (اووینځل)
[اړتیا (ضرورت)
[اړه (باره)
[الغه (حلقه)
[اخته (مبتلا)
[انډیوالان (ملگری)
[ایله کړې (پرانستې)
[انا (نیا)
[اکا (تره)
[اونه کی (اونکړی)
(ب)
[برخو (حصو)
[برخه (حصه)
[بیرغ (جنډا)
[بلا ناغه (پرله پسې)
[باید ده (پکار ده)
[بوخت (مشغول)
[بولې (متیازې)
[بازې (لوبې)
[بې غوری (کوتاهی)
[بوق (قب)
[بته (مټه)
[بندی خانه (جیلخانه)
(پ)
[پاته (باقی)
[پیل (شروع)
[پوښتنه (تپوس)
[په عامه توگه (عام طور)
[پریښولو (پریخودلو)
[پاته (باقی)
[پریښول (پریخودل)
[پریښولو (پریخودلو)
[پزه (پوزه)
[پر (په)
[پریښولو (پریښولو)



[مځکه (زمکه)
(ن)
[ننښانه (نښه)
[نجوني (نجوني (جینکۍ))
[نفر (کسان)
[نښلیدل (لگیدل)
[ناړې (لیاړې)
[ننښتیزل (نچوړول)
[نژدې (نیزدې)
[نومول (نامدار)
(و)
[ویش (تقسیم)
[واړه (ټول)
[وزه (چیلۍ)
[ولاړ شه (لاړ شه)
[ورون (پتون)
[ورونان (پتونان)
[ور کولای شی (کولې شی)
[ور کولاې (کولې)
[وپلوری (خرڅه کړی)
[ویاله (نهر)
(ه)
[هسکې (پچې)
[هنداره (شیشه)

[کولای شی (کولې شی)
[کوټ (خیرې)
[کوڅیو (کونسۍ)
[کښتۍ (کشتۍ)
[کونجته (کونځله)
[کولاې (کولې)
[کرار کرار (مزه مزه))
(گ)
[گډ (شامل)
[گونډۍ (کونډۍ)
[گوله (نمرۍ)
[گښتونه (چکرونه)
[گټور (گټور (فائده مند))
[گټور (فائده مند)
[گرځ (گرد)
(ل)
[لنډیز (خلاصه)
[لمر (نمر)
[لینگۍ (پنډۍ)
[لنگوټې (پټکی)
[لږترلږ (کم ازکم)
[لویدیځ (مغرب)
[لاستې (لاسکې)
[لوټه (کوزه)
[لاچاری (مجبوری)
(م)
[مهال (دوران)
[ماپښین (ماسپخین)
[میړه (خاوند)
[مسبوق (خلیفه)
[مرداری (پلیتی)
[منځنی (درمیانه)
[مسافه (مسافت)
[مولښتی (پیوست))
[مچی کول (ښکلول)
[مندې (میاندې)
[مړینه (مړکیدل)
[منگوړ (کتمل)

[سرپټ (سرپوښ)
[سرکښه (سرکشه)
[ساعت (لمحه)
[سپنسي (مزې)
(ش)
[شی (څیز)
[شیان (شیان (خگیزونه))
[شرموښ (شرمخ)
[شاگر (شاگرد)
[شتمن (مالدارن)
[شتمن (مالدارن)
(ص)
[صحرائی (بانډیچی)
[صندخ (صندوق)
(ط)
[طرفه (اړخه)
(ع)
[عکس (تصویر)
[عجلی (تیزی)
(ف)
[فرش (قالین)
(ق)
[فرش (قالین)
[قرضونه (پوروونه)
[قلف (تاله)
(ک)
[کوښښ (کوشش)
[کاوه (کولو)
[کیداې (کیدې)
[کومک (مدد)
[کښته (ښکته)
[کښینستل (کیناستل)
[کالی (جامه)
[کوڅیو (کونسۍ)
[کشور (شمشتۍ)
[کوڅیو (کوڅو)
[کښت (پټې)
[کشف (شمشتۍ)